بسم الله الرحمن الرحيم

پښتو

# کیمیای سعادت

بشپړ متن

معاملات، مهلکات، علم النفس (روحیات)، دنیا، د دنیا پېژندنه، تفکر
خلوت، عبادات، منجیات، کیسې، خدای پېژندنه، تصوف
او د آخرت پېژندنه.


تالیف

حجة [illegible] ابو حامد الغزالی رحمة الله علیه

ژباړه

حافظ مولوي حبیب الرحمن مدني



[illegible]

کندهار

# کیمیاي سعادت

## پښتو

### بشپړ متن

هلکات، علم النفس (روحیات) ، دنیا، د دنیا پېژندنه، تفکر، خلوت، :
منجیات، کیسې، خدای پېژندنه، تصوّف، او د آخرت پېژندنه

**تألیف**

حجّةُ الاسلام امام ابو حامد الغزالي رحمه الله

**ژباړه**

حافظ مولوي حبیب الرحمن "مدني"
ابن الشیخ خطیب العصر محمد لعل مکي

## د کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| ❁ د کتاب نوم | : کیمیاي سعادت |
| ❁ تالیف | : حجة الاسلام امام ابو حامد الغزالي رحمه الله |
| ❁ مترجم | : حافظ مولوي حبیب الرحمن مدني |
| ❁ خپرندوی | : صداقت خپرندویه ټولنه/ کندهار |
| ❁ کمپوز/ ډیزاین | : صداقت د کتاب چاپولو اداره |
| ❁ د چاپ کال | : ۱۳۹٤ ل./ ۱٤۳٦ هـ.ق./ ۲۰۱٥ م. |
| ❁ چاپ شمېر | : ۱۰۰۰ ټوکه |
| ❁ د مخونو شمېر | : ۸٤۸ مخه |

# فهرست

# د زړه خبره

اَلحَمْدُلله عَلى حِلمِه بَعْدَ عِلمِه وَ عَلى عَفْوِه بَعْدَ قُدرَتِه، اَللّهُمّ اِنّي اَعُوْذُ بِکَ اَنْ اَقُوْلَ زُوْرًا وَ اغشى فُجُوْرًا، وَصَلّى اللهُ عَلى سَيِّدِنَا وَنَبِيّنَا مُحَمّدٍ وَعَلىٰآلِه وَ اَصْحَابِه وَ سَلّمَ تَسْلِيْمًا کَثِيْرًا.

درنو لوستونکوا ښې هیلي او سلامونه! ستاسو په لاس کي کتاب(کیمیاءِ سعادت) د امام غزالي رحمه الله د کتابونو څخه یو عجیب په زړپوری او یو نامتو کتاب دی چي د دې د هر مضمون، هر عنوان او هري جملې څخه د هدایت او حقیقي سعادت څرک په ډاګه ځلیږي، او بني آدم ته حقیقي نېکبختي او باطني حُسن او د ایمان دائمي ښکلا وربخښي، او د دې په پوره مطالعه سره انشاءالله بنده ته د دین د لاري د ربښتوني سعادت او د هر اړخیز معلومات اګاهي تر لاسه کېږي بالآخره همدغه په دنیا او آخرت کې انسان سرفرازه کوي.

دا کتاب په اصل کي د "احیاء العلوم" څخه منتخب سوی دي او د عوامو د پاره امام غزالي رحمه الله لیکلی دي نو ځکه د کتاب په پیل کي وایي: "موږ دا کتاب د عمومي فایدې د پاره لیکلی دي او د مغلقو ګرانو عبارتونو او باریکو معناګانو او ستونزمنو الفاظو څخه مو ډډه کړې ده"، او احیاء العلوم هغه کتاب دئ چي بعضي علماؤ د هغه په اړه لیکلي دي: " که چیري اسلامي علوم نیستي سول، نو د احیاء العلوم څخه د ټولو را ایستل ممکن دي" او دا خبره د کیماء سعادت په اړه هم ویل کېدای سي، او پوهانو خلګو کیماءِ سعادت ته "دایرةُ المعارفِ اسلامي وعرفاني" یعني د عرفاني او اسلامي معارفو انسایکلوپیډیا ویلي دي. همدا وجه ده چي د نړۍ په مشهورو ژبو لکه: عربي، انګریزي، ترکي، ایټالوي، هندي، بنګالي ،مالي او اُردوکي ځوځله ژباړل سوی دي، او په پښتو کي هم یو ځل په پیښوري پښتوژباړل سوی دي. خو دا معلومه خبره ده چي زموږ د سیمې د پښتنو د پاره دا پښتو زیاته مشکله ده او پوره استفاده نه سي ځیني کولای، او له دې سره سره د نوموړي ژباړل سوي کتاب کتابت او چاپ هم خورا مغشوش وو، چي په هغه سره یې فهم نور هم ستونزمن وو، نو هم له دې وجهي مورد ډېر زیار او خولو تویولو څخه وروسته تر یوه حده کوښښ او زحمت وایستی چي په روانه، معیاري او خوږه پښتو یې ترجمه کړو چي ټول پښتانه وروڼه ګټه ځیني تر لاسه کړي، او په فایدو یې ځان او باطن ښایسته کړي. او په پای کي زما د هر مسلمان څخه دا خواست دی چي په دې د فتنو په دور کي لږ تر لږه خو یو وار ضرور دا کتاب وګوري چي په دې سره به د دیني معلوماتو سره سره د زړه پوره تسلّي او ډاډ هم تر لاسه کړي، نور نه غواړو چي ستاسو او دکتاب تر منځ خنډ سو، دا یې هم تاسي او ستاسي کتاب.

حبیب الرحمٰن "مدني"

# د ډېل خبرې او مناجات

د اسمان د ستورو، او د باران د ډېر شمېره څاڅکو، د درختو د پاڼو، د بیابان د ډېر شمېره شګو ډېرو، او د ځمکې او اسمان د ډېر شمېره ذرّاتو برابر د ثنا او صفت لائق خو هغه سپېڅلی ذات دی چې توحید د هغه یو ځانګړی صفت، او لویي، برتري د هغه خاص وصف دی، او د دې سره سره هیڅ یو مخلوق د ده د کمال او جلال د لا متناهي حدّونو څخه خبر نه دی، او د هغه څخه ما سوا هیڅا ته دا ګنجایش نسته چې د هغه ومعرفت ته د رسېدلو دعویٰ وکړي، بلکې د ده د معرفت څخه د عاجزه کېدلو اقرار د الله ﷻ د دوستانو لوړ مقام دی، او د پیغمبرانو او ملایکو د پاره د ده د ثناء او صفت د حق د اداء کولو آخري درجه دا ده چې د دې څخه د قاصره کېدلو او عاجزه کېدلو اقرار وکړي، د عاقلانو د عقل انتها دا ده چې د ده د جلال یو لږ اندازه دوی په حیرانتیا کې غرق کړي، او د مریدانو د حق او د سالکانو د لارې د سلوک انتها فقط دا کېدای سي چې د جمال حضوري په طلب کې هک پک او لالهانده پاته سي، (بیا هم سره د دې عاجزۍ څخه د وصف) د ده د معرفت څخه د خبرداری په سلسله کې نا اُمیده او مایوسه کېدل ډېر کاري او سُستي ده، او همدارنګه د ده په معرفت کې د کمال حاصلولو دعویٰ کول هم د ذهن کمزوري ده، ځکه چې د ده د جلال په لیدلو سره د هرې سترګې کړېدلو (عاجزه کېدلو) ته د دې نصیبه ویل کیږي، بیا هم د ده د عجیب او رنګارنګ کارونو او صفتونو څخه د خبرداری او معرفت د پاره غور او فکر کول اړین او ضروري دی چې دا پخپل ځای د لوړو عقلونو او پوهو د پاره په منزله د نخوړ دی، داسې خو هیڅ سړی هم نسي کېدای چې د ده د لوی ذات په اړه د دې معلومات کولو کوشش وکړي چې هغه څنګه دي او څه دي؟ لیکن د یو انسان زړه داسې هم نه دي پکار چې د یوې لحظې د پاره د ده د صفاتو او عجائباتو څخه غافل او بې خبر پاته سي، او دا سوچ هم نه وکړي چې پخپله د دې سړي خپله هستي څه ده؟ او د کوم ذات په برکت سره د ده وجود ولاړ او قائم دي؟ او کوم ذات دی پیدا کړی دي؟ چې په قدر د ضرورت خو دومره وپېژني چې دا هر څه چې دي د هغه د قدرت نښې دي، هر طرف ته د هغه د لویي (غتوالي) انوار او نښې ښکاره دي، او د دې قدرت په کارنامه کې چې څه عجائب او غرائب دي د هغه د حکمت په وجه دي، او د هغه جمال رڼا په هر شئ کې ښکاره ده. هر شئ چې دی د هغه د طرف څخه دی او د هغه په برکت سره قائم دی، بلکې هر څه هغه پخپله دی او د هغه څخه ما سوا د یو شئ هستي یا حقیقت د سره سته نه، او د هر شئ وجود د هغه د هستی د

نورمحض یو عکس دی.

او درود پر حضرت مُحَمّد مصطفی ﷺ باندې کوم چې د ټولو پیغمبرانو سردر او دټولو مؤمنانو لار ښوونکی او د الله د رازونو امین او د الله ﷻ مقرب او محبوب دی کوم ته چې الله لوړ مقام ورکړی دی، او د ده په ټولو صحابه کرامو او اهلِ بیتو چې د دوی څخه هر یو د اُمّت امام او د لارې د شریعت ښوونکی دی.

وروسته تر ثناء او درود یاد لره! چې انسان د لوبې او څغلستې، زیار او کوشش د پاره نه دې پیدا کړی سوی بلکې د ده کار لو ښه واری ډېر غټه او د ده مرتبه او قدر ډېر زیات دی، ځکه که هر څومره دا انسان ازلي نه دی بیا هم ابدي ځلمځا دی، او که څه هم د ده جسم خاکي دی لېکن د روح حقیقت یې ربّاني او ډېر عزتمند دی، او د ده په خمیر او فطرت کې که څه هم د ځناورانو درندګانو، مرغانو او شیطانانو ګډون او اختلاط موجود دی، لېکن کله چې دی د مجاهدې، مراقبې او ریاضت په برکت څخه د دې ګنده او پلیتو شیانو څخه ځان وژغوري، او دا اختلاطونه د ځان څخه لیرې کړي نو پاک او صفا سي او د دربار الهي او قُربِ خداوندي لائق سي، نو د ذلت د غار څخه ووځی د ثریا تر لوړوالی او اعلی ترین مقام ته ورسیږي، او هر کښته او پورته د ده د پاره یو شان سي او د ده په تصرف او اختیار کې راسي، او که د ځناورو، درندګانو او شیطانانو په شیر د خواهشاتو او غصّې په دام کې ګیر سي نو ګواکې دی د ذلالت غار ته ولویدی، لېکن کله چې دی د خواهشاتو او غصې څخه نجات حاصل کړي نو د ملایکو درجې ته ورسیږی، او په اعلی علّیین کې یې ځان ته مقام حاصل کړي، مقصد دا چې خواهشات او غصّه دواړه د ده په لاس کې قیدَ سوه او دی یې بادشاه سو. بیا چې که ده ته د باچاهی درجه حاصله سوه نو دی د الله ﷻ دبندګی او عبادت لائق سو او د بندګی قابلیت د ملائکو صفت دی او په دې سره بنده د کمال مرتبې ته رسي.

کله چې د الله ﷻ د جمال د محبت مزه (خوند) بنده ته نصیب سي نو د ده دیدار څخه یو ګړی صبر ېدای نسي، د هغه د نه ختمېدونکي جمال دیدار د ده جنّت سي، او د انسان د سترګو، نس، او شرمګاه د خواهشاتو په حصه کې چې کوم جنّت دی هغه د ده په نزد محض، هیڅ او بې قدره سي.

څنګه چې انسان پیدایشي ناقص او کوتاه دی، نو د کمال درجې ته د ده رسېدل بغیر د علاج، زیار او مشقت څخه ممکن نه دي، لکه څنګه چې هغه کېمیاء کومه چې د اوسپني او ژړو څخه جوړه دي پېژندل یې د هر چا په وَس او طاقت کې نه دي، دغه رنګه په کومه کېمیاء سره چې بنده د حیواناتو د ګنده ګۍ د درجې څخه د فرشتو پاکوالي ته رسیږي، د هغې پېژندل هم د هر یو په وس او توان کې نه

دي، د دې صفايي او پاکوالي په برکت انسان ته د همیشه او ناپایه سعادت نصیب کیږي.

## د کتاب د نوم وجه (وجهٔ تسمیه)

د دې کتاب لیکل هم په دې سبب سره دي چې د همغې کیمیاء د اجزاؤ تشریح او تفصیل بیان سي کوم چې په حقیقي معنی سره کیمیاء د نیکبختی (سعادت) ده او په دې وجه موږ د دې نوم "کیمیاءسعادت" کیښیوی، چې دا نوم د دې د پاره زیات برابر دي، په ژړو (مسو) او سرو زرو کي د دې شخَه ما سوا هیڅ فرق نسته چې د سرو زرو رنګ ژړ وي او په قیمت کي ګران وي لیکن د دې شخه د دنیوي دولت شخه علاوه نور هیڅ فائده نسته، او دنیا خو فاني ده نو بیا د دې نعمت او دولت څه حیثیت سو؟ لېکن د ځناورو او ملایکو په عاداتو او صفاتو کي خو بې انتلزي فرق سته تر دې چې د ځمکي او اسمان شخه هم زیات، او انسان د زیات کښته مقام شخه و ډېر لوړ مقام ته رسول د دې کیمیاء ثمره ده کومي ته چې موږ د همیشه سعادت ویلی دي، همغه سعادت د کوم وقت چې هیڅکله نه ختمیږي، او د کوم شخه چې د حاصل سوو ډول ډول نعمتونو هیڅ انتها نسته، او بیا د دې د صفایي او پاکوالی دا حال دي چې ګندګي او خړوالی پر دې بیخي نسي راتلای، نو د کیماء نوم د دې کیمیاء د سعادت سره ډېر ښه ښکاري، او د دې شخه ما سوا دبل شئ د پاره د دې استعمال د شرم او ننګ باعث دي.

## د ځان پېژندنه

پوه سه! لکه څنګه چې د کیمیاء پیدا کول د هري سپینسري په څوته کي ناممکنه دي، بلکي د ختو خلکو او باچاهانو په خزانو کي یې لټون کېدای سي، دغه ډول د تلپاتي سعادت کیمیاء هم هر ځای نسي پیدا کېدای بلکي صرف او صرف د الله د خزانې شخه په لاس کي راتلای سي او الهي خزانه په اسمان کي د ملائکو او په ځمکه کي د پیغمبرانو زړه وي، نو کوم سړی چې دغه خزانه (یعني کیمیاءِ سعادت) د نبي ﷺ د ذات شخه ما سوا په بل شئ کي تلاش کوي همغه بې لاري سوی دي او آخر دا چې دوکه او فریب به وخوري، د شک او ګمان شخه ماسوا به نور هیڅ شئ ور ته حاصل نسي او د قیامت په ورځ به تش لاس او رسوا سي، او د ده کم اصلوالی (کوته والی) به ښکاره سي او ټول کبر، غرور به یې د خاورو سره خاوري سي او د هر طرف شخه به دا آواز د ده په غوږونو کي پرېوزي: فَكَشَفْنَا عَنكَ

غِطَآءَكَ فَبَصَرُكَ ٱلْيَوْمَ حَدِيدٌ ۞ ژباړه: ستا د غفلت پرده اوس لیرې کړل سوه (نو نن خو) ستا نظر ډېر تېز دی.

او د الله ﷻ د ډېر غټو نعمتونو څخه یو نعمت دا دی چې هغه یو لک څلویشت زره پیغمبران علیهم السلام دنیا ته راولېږل چې هغوی دا د کېمیاء نسخه مخلوق ته وښیي او په دې یې پوه کړي چې د زړه ملغلره په ریاضت او مجاهده کې څنګه لګول پکار دي. او د بدو او نا کاره (خرابو) اخلاقو څخه یې څنګه خوندي ساتل پکار دي او د نېکو او ښو صفتونو د حاصلولو لار ورته وښیي. الله ﷻ چې څنګه خپله پاکي او لویي بیان کړې ده. دغه ډول یې د خپل صفت هم ستاینه کړې ده چې ده ﷻ دنیا ته پیغمبران راولېږل پر مخلوق یې عظیم احسان وکړی لکه څنګه چې الله ﷻ فرمایي:

يُسَبِّحُ لِلَّهِ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ٱلْمَلِكِ ٱلْقُدُّوسِ ٱلْعَزِيزِ ٱلْحَكِيمِ ۞ هُوَ ٱلَّذِى بَعَثَ فِى ٱلْأُمِّيِّۦنَ رَسُولًا مِّنْهُمْ يَتْلُوا۟ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتِهِۦ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْحِكْمَةَ وَإِن كَانُوا۟ مِن قَبْلُ لَفِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ۞ [الجمعه]. ژباړه: د الله تعالیٰ پاکي بیانوي ټول شیان کوم چې په اسمانونو او ځمکو کې دي، چې هغه باچاه دی د عیبونو څخه پاک دی غالب ذات دی د حکمت والا دی. هغه دی چا چې (د عربو) په امیانو کې د دوی څخه یو پیغمبر را ولېږلو کوم چې دوی ته د هغه آیتونه اوروي او د باطلو عقیدو څخه یې پاکوي او و دوی ته کتاب او د پوهې خبري ښیي. او که څه هم دا خلک د دوی د رالېږلو څخه مخکې په ښکاره ګمراهي کې وو.

د يُزَكِّيهِمْ څخه مراد دا دی چې انسانان د دوی د نا کاره (خراب) کارونو او صفتونو څخه محفوظ وساتل سي کوم چې د ځناورو او حیوانانو سره خاص دي او د يُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ معنی دا ده چې د ملائکو صفتونه دانسانانو لباس جوړ کړی سي او په دې لباس سره ښایسته کړی سي، او مقصد د دې کېمیاء دا دی چې د هري داسي خبري څخه ځان وساتل سي کومه چې د نه کولو وي، او د هر داسي صفت څخه ځان وژغوري کوم چې زیان رسوونکی وي، یعني د بدی او کراهت جامې وکاږي او د صفتونو د کمال جامې واغوندي او ځان په ښایسته کړي، او د ټولو څخه غټه کېمیاء دا ده چې بنده د دنیا څخه مخ واړوي او د الله ﷻ و طرف ته متوجّه سي، لکه چې نبی ﷺ ته الله ﷻ پخپله د دې

ښوونه کړې ده، فرمايي: وَٱذۡكُرِ ٱسۡمَ رَبِّكَ وَتَبَتَّلۡ إِلَيۡهِ تَبۡتِيلٗا ﴿٨﴾ [مزمّل]. **ژباړه:** او د خپل رب نوم یادوه، د ټولو څخه تعلق پرې کړه او د هغه طرف ته متوجه اوسه.
او د تبتّل معنی دا ده چې انسان د دنیا د ټولو شیانو څخه تعلق قطع کړی او خپل ځان په پوره توګه خدای پاک ته حواله کړی، نو د دې کیمیاء دا لنډ بیان دی چې تفصیل یې ډېر اوږد دی.

## د کتاب د عنوانونو او ارکانونو څرګندونه

د دې کتاب څلور عنوانونه دي چې په هغه کې د څلور شیانو د پېژندګلوی بیان دی، او د کتاب څلور ارکان دي چې په هغه کې څلور معاملې شاملې دي، د هر رکن لس أصول دي.
اول عنوان دا دی: چې خپل ځان وپېژنئ!، دویم عنوان د الله د معرفت (پېژندلو) دی، دریم عنوان دا دی: چې د دنیا حقیقت وپېژنئ!، څلورم عنوان دا دی: چې د آخرت د حقیقت څخه خبرداری حاصله کړئ!، او د دې څلورو عنوانو پېژندل په حقیقت کې د اسلام (مسلمانی) د پېژندلو عنوان دی (یعني دې ته د اسلام عنوان ویل پکار دي) دغه ډول د معاملې د مسلمانی څلور ارکان دي د کومو څخه چې دوو تعلق د ظاهر سره دی او د دوو د باطن سره دی، او هغه دوه کوم چې د ظاهر سره متعلق دي په دوی کې د اول رکن څخه مراد د الله تعالی احکام پر ځای کول دي چې دې ته عبادات وایي، او د دویم څخه مراد خپل حرکتونه او سکنات او معیشت په نظر کې درلودل دي چې دې ته معاملات وایي، او د باطن سره د تعلق لرونکو دوو ارکانو څخه د اول رکن مطلب دا دی چې زړه د ناکاره (خراب) اخلاقو څخه بالکل پاک صاف کړي لکه: غصه، بخل، حسد، تکبر، ریا کاري (ځان ښوونه) او داسې نور چې دا ټول هغه اخلاق دي کوم چې هلاکوونکي دي او د دین د لارې څخه بې لارې کوونکي دي، او د دویم رکن د زړه په غوره اخلاقو سره د ښایسته کولو متعلق دی، مثلاً: صبر، شکر، محبت، اُمید، توکّل او داسې نور چې دا ټول نجات ورکوونکي دي.
**اول رکن:** پر عباداتو مشتمل دی، د دې لس اصله دي: (۱) اصل د اهل سنت والجماعت په باره کې دي (۲) د علم د طلب په بیان کې دی (۳) د طهارت او پاکۍ اړوند دی (۴) لمونځ (۵) زکات (۶) روژه (۷) حج (۸) تلاوتِ قرآن (۹) ذکرونه او دعاګانې (۱۰) د وظائفو د ترتیب بیان.
**دویم رکن:** د معاملاتو په بیان باندې مشتمل دی او د دې هم لس اصله دي: (۱) اصل د خوړلو ک

ادبونه (۲) دنکاح ادبونه (۳) دکسبِ معاش او تجارت ادبونه (۴) دحلالو طلب (۵) دصحبت ادبونه (۶) دګوښه نشیني ادبونه (۷) دسفر آداب (۸) دسِمَاع او وَجْد ادبونه (۹) دامر بالمعروف او نهی عن المنکر ادبونه (۱۰) دحکمرانی (واکمنی) او درعیت پالني دآدابو متعلق دی.

**دوېم رکن:** ددین دلاري څخه دګمراه کونکو شیانو څخه دځان ساتلو په باره کي دی، او ددې هم لس اصله دي: (۱) دنفس ریاضت (۲) دنس او عورت دشهوت علاج (درملنه) (۳) دژبي دافتونو علاج (۴) دغصّي، بغض (کینه) حسد او نورو مرضونو علاج (۵) ددنیا دمحبت علاج (۶) دمال د محبت علاج (۷) دمرتبي او دبدبي دخوښولو علاج (۸) په عبادتونو کي دریا او منافقت علاج (۹) دتکبر او لويي علاج (۱۰) دځان ښوولو او غلفت علاج.

**څلورم رکن:** دنجات ورکوونکو شیانو په بیان کي دی، ددې هم لس اصلونه دي (۱) په توبه کولو او دظلمونو څخه دخلاصون په پیدا کېدلو کي (۲) په صبر او شکر کي (۳) په یېره او اُمید کي (۴) په فقیری او زهد کي (۵) دنیت خلوص او صدق (۶) محاسبه او مراقبه (۷) تفکر (۸) توکل او توحید (۹) محبت او شوق الهی (۱۰) دمرګ او دآخرت دحالاتو په یادساتلو کي دی.

نو دا فهرست دی دهغو لوکانو او اُصولو کوم چي په دې کتاب "کیمیاء سعادت" کي مذکور دي، چي په دې کي به ددې څلورو عنوانو او ددې سره اړوند دڅلوېښتو اُصولو شرح دفارسي ویونکو حضراتو د پاره بیان کړو، (امام غزالي ﷫ دا کتاب په اصل کي په فارسي لیکلی دی د فارسي خوان حضراتو د پاره، لکه څنګه چي مخکي تېر سوه) او قلم به په قابو کي ساتو چي د ګرانو، ستونزمنو الفاظو او نازک بیاني څخه کار وانه خلو چي عوام په آسانی سره په پوه سي، څکه کوم خلک چي د تحقیق او باریکیو سره مینه لري هغوی ته پکار دي چي د کیمیاءِ سعادت پر ځای هغوی زموږ عربي کتابونه مثلاً احیاء علوم الدین، جواهر القرآن او نورو کتابونو ته رجوع وکړی چي هغه پر دې موضوع په عربي ژبه کي لیکل سوی دي، په دې کتاب کي خو مقصود د دغو معانی وو په فارسي ژبه کي بیانول دي څکه چي په څانګړې توګه موږ ته ددې درخواست سوی دی. الله ﷻ دي زموږ او د دوی نیتونه پاک او صاف کړی او د تکلّف د ګندګی څخه دې وساتي او دخپل رحمت اُمیدلوره دې کړی او د صحیح لاري دروازه دې راته خلاصي کړي او ددې توفیق دې را کړی چي څه موږ پر ژبه بیانوو په دې عملاً هم کار ګر سو څکه چي بې عمله وینا بالکل عبث او بې کاره ده یعني په ژبه ویل او عمل نه په کول دآخرت وَبال پر سر اخیستل دي د کوم څخه چي موږ دالله ﷻ پناه غواړو.

## اول عنوان: د خپل ځان پېژندنه

پوه سه ! چي د الله ﷻ د پېژندلو چابي (کیلي) دا ده چي انسان خپل نفس وپېژني په دې وجه ویل سوي دي: مَنْ عَرَفَ نَفْسَهُ فَقَدْ عَرَفَ رَبَّهُ چا چي ځان وپېژندی هغه خپل رب وپېژندی، او په دې وجه الله ﷻ فرمايلي دي: سَنُرِيهِمْ ءَايَٰتِنَا فِي ٱلْءَافَاقِ وَفِيٓ أَنفُسِهِمْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُ ٱلْحَقُّ (حم سجده: ۵۳). ژباړه: ښيي خلکو ته ښيو چي د حق حقيقت پر دوی ښکاره سي.

اې ملګري! ستا څخه ملسوا په دنيا کي يو شئ داسي نسته چي تا ته ستا تر ذات نژدې وي (يعني تا ته دېر نژدې صرف ستا ذات دی) نو که ته خپل ځان ونه پېژني نو بل به څنګه وپېژني؟ او که ته وايي چي زه خو خپل ځان پېژنم نو ستا دا وينا غلطه ده ځکه چي داسي پېژندل د حق د پېژندلو چابي (کیلي) نه ده، دغسي خو حيوانان هم خپل ځانونه پېژني، پېژندل خو صرف دا نه دي چي په ښکاره پېژندل چي دا زما لاسونه او دا پښې دي دا خو ښه او هلو کي دي، او د باطن په باره کښې صرف دا پېژندل چي لوس زه وږی سوی يم يو څه وخوره يا غصه سوی يم نو جنګ او کړه، شهوت غلبه سي نو نکاح وکړه (دې ته د ځان پېژندل نه ويل کېږي) دا ټولي خبري خو په حيوانانو کي هم ستا په دول پيدا کېږي، (نو ته د حيواناتو څخه په څه شئ بهتره يې؟) په اصل کي تا ته دا پېژندل پکار دي چي ته څه شئ يې، د کوم ځای څخه راغلی يې؟ او کوم ځای ته به ځې؟ او د څه کار د پاره راغلی يې او ته يې د څه د پاره پيدا کړی يې؟ ستا نېک بختي (سعادت) په کوم شئ کي ده او څه شئ ده؟ او ستا بدبختي څه ده او په کوم شي کي ده؟ او دا کوم صفتونه او عادتونه چي په تا کي جمع سوی دي چي ځيني د حيواناتو، درندګانو دي او ځيني شيطاني دي او ځيني ملکوتي (د ملائکو) دي، نو لږ غور او فکر وکړه چي په دغو کي کوم صفتونه په تا کي سته، او ته د دې ټولو څخه خو يو يې او څه يې؟ ستا حقيقت په دغو کي چا ته دېر نژدې دي، او کوم کوم صفتونه دي چي د هغو حيثيت ستا په باطن کي نا ولنده، پردی، او عارضي دی، ځکه چي ته تر څو دا حقيقتونه ونه پېژني نو د خپل سعادت (نېک بختي) طلبګار او تلاشوونکی نسې کېدای، ځکه چي په دوی کي د هر يوه خوراک جلا جلا دی او سعادت يې هم جلا جلا دی، د حيواناتو خوراک او سعادت دا دی چي وخوري، پيده سي او جماع وکړي، که ته هم داسي يې نو شپه او ورځ په دې زيار کي او سه! چي خېټه دي ډکه سي او شهوت دي په آرام سي، د درندګانو خوراک او سعادت په جنګېدو، وژلو او غصه او غضب کي دي، او

د شیطانانو خوراک او سعادت د شرّ پورته کول مکرونه او حیلې جوړول دي، که ته د دوی ځنځه یې نو د دوی په ډول کارونه ضوره کړه چې ستا خوشحالي، راحت او خوشبختي در ته حاصله سي. د ملائکو خوراک او سعادت دا دی چې د جمالِ الهي په دیدار کې مستغرق او ډوب وي د دوی د حیواناتو او درندګانو د صفاتو او عاداتو سره هیڅ تَعلق نسته، ته هم که فرشته صفته یې نو کوشش کوه! چې د الله ﷻ ذات و پېژنې د جمالِ الهي مشاهده او دیدار وکړې، او خپل ځان د شهوت او غصې ځنځه خلاص کړې، او که تلاش کوې نو صرف د دغه یوه ذات تلاش کوه چې تا ته دا هم معلومه سي چې په تا کې د حیواناتو او درندګانو صفتونو پیدا کوونکی څوک دی؟ او دا حقیقت در ته هم ښکاره سي چې پیدا کوونکی چې کوم دا صفتونه په تا کې پیدا کړي دي نو د دې د پاره چې دغه تا خپل قیدي (بندیوان) کړي او پر تا غلبه حاصله کړي پخپله فاتح جوړ سي؟ یا ځکه چې ته دوی خپل قیدیان جوړ کړې او پر دوی غالب راسې چې کوم دغه د آخرت سفر چې ستا په مخ کې دي دوی د راحت سامان جوړ کړې یعني د خپل دغه ځینو قیدیانو ځنځه خپل د سفر آس جوړ کړه، او د ځینو ځنځه لخپله وسله جوړه کړه، او دا څو ورځې چې ته په دې فاني دنیا کې تېروې په دې کې د خپلو دغه غلامانو ځنځه کار واخله، چې د خپل سعات تخم د دوی په مرسته او کومک سره حاصل کړې او کله چې دا تخم د سعادت په لاس درسي نو تر پښو یې لاندې کړه او مو به یې خپل د سعادت د قرار ځای ته داخل سه، چې دغه هغه د قرار ځای دی کوم ته چې د خواصو په ژبه کې "حضورِ حق" وایي، او عوام چې یې د جنت په نوم سره یادوي، دا ټولې خبرې ستا د پوهېدلو دي، ځکه چې تر او سه پوري تا خپل ځان ډېر کم پېژندلی دي، او چا چې دا نه دي پېژندلي هغه د دین د لارې ځنځه پاته دي، او د دین د حقیقت ځنځه محرومه دي.

## انسان د دوو[۲] شیانو ځنځه جوړ دی

که ته خپل ځان پېژندل غواړې نو یاد لره! چې ستا پیدایښت د دوو[۱] شیانو ځنځه سوی دي یو خو دا ظاهري ډانچه (جُثّه) ده چې جسم یا بدن ورته وایي او په ظاهري سترګو لېدل کیږي، او بل باطن دی چې نفس، زړه او روح ورته وایي او په ظاهري سترګو نه لیدل کیږي بلکې د باطن په سترګو سره لیدل کیږي، او ستا حقیقت د دغې باطني معنی پیدا کېدل دي، یعني د دې سره متعلق دی، او د دې ځنځه ما سوا چې څه هم دي د دې تابع، خادمان، او عسکر دي، موږ به راتلونکي بیان کې دا حقیقت د زړه په نوم سره یادوو، نو چې کله موږ د زړه خبره کوو نو یاد ساته! چې زموږ مراد په دې سره د بنده

حقیقت دي که څه هم دې ته روح او نفس هم ویل کیږي، لیکن زموږ مراد د زړه څخه هغه ټکړه نه ده کومه چې په سینه کې چپه طرف ته پرته ده، د دغې هیڅ قدر او قیمت نسته چې دغه خو د حیواناتو او مړو په سینه کې هم وي، او د دغې په ظاهري سترګو سره لیدل هم عین ممکنه دي، او هر هغه شئ چې په ظاهري سترګو سره لیدل کیږي د هغه تعلق د دې عالم سره دی کوم ته چې ظاهري دنیا (عالم شهادت) ویل کیږي، لیکن د زړه د حقیقت تعلق د دې عالم شهادت سره نه دی د ده را تلل دې دنیا ته خو د اجنبي او مسافر په شان دي، او دغه د غوښې ظاهري ټکړه خو د ده د آس او آلې حیثیت لري او د جسم ټول اندامونه د ده عسکر (لښکر) دي او دی د دې ټولو باچاه (حکمران) دی، او معرفت الهي او جمال الهي د ده ځانګړې صفت دي، که د عبادت تکلیف دی نو د ده د پاره که د الله تعالی خطاب دی نو ده ته دی او د ثواب او عذاب تعلق هم د ده سره دي، نیک بختي او بدبختي د ده سره متعلق دي، او په دې ټولو خبرو کې بدن د ده تابع دی، د دې حقیقت او صفتونو پېژندل د الله د پېژندو چابي (کیلي) ده، تا ته دا کوشش کول پکار دي چې ته دا وپېژنې چې دا یو ډېره ګرانه ملغلره ده او تعلق یې د ملائکو د جنس سره دی د الله ﷻ دربار د ده اصل کان او معدن دي، د هغه ځای څخه راغلی دي او هلته به ځي، دلته د یو مسافر په توګه د تجارت او کښت کروندې د پاره راغلی دي، د تجارت او کښت مطلب به مخکې تلسو ته معلوم سي انشاء الله تعالی.

## فصل: د زړه هستي

پوه سه! په دې چې تر سو ته د زړه هستی ونه پېژنې! د ده حقیقت به ونه پېژنې!، اول ته د زړه هستی وپېژنه بیا یې حقیقت وپېژنه، بیا یې لښکر وپېژنه، او بیا دا وپېژنه چې د دې لښکر د ده سره تر څومره اندازې پورې تعلق او نژدیکت دی بیا د ده صفت وپېژنه چې معرفت الهي ده ته څنګه حاصلیږي، او د دې په ذریعه سره دی د خپل سعادت او نیک بختي مقام ته څنګه رسیږي؟ او په دې کې به د هر یوه په باره کې موږ اشاره وکړو، خو په هر حال د ده هستي ظاهره ده ځکه چې بنده ته پخپله هستي کې هیڅ شک نسته، لیکن د ده هستي د دې ظاهري جسم څخه عبارت نه ده ځکه چې محض جسم خو د مړي هم وي حال دا دی چې روح پکښې موجود نه وي، نو زموږ مراد د زړه څخه حقیقت د روح دی چې که دا نه وي په جسم کې نو جسم ته مردار او مړ ویل کیږي، هو! که څوک خپلې سترګې بندې کړي خپل جسم او تن هېر کړي او اسمان او ځمکه او هر هغه شئ هېر کړي کوم چې په ظاهري سترګو لیدل کیږي نو دی به یقیناً خپله هستی وپېژني او سره د دې چې د خپل

جسم، مځکې، اسمان او په دوی کې د موجود هر شيئ څخه بې خبره وي، د خپل ځان څخه به په پوره توګه اګاه او خبرداره وي، او په دې کې که په ښه توګه د غور او فکر څخه کار واخيستل شي نو تر يو اندازې پورې به د اخرت د حقيقت څخه هم خبر حاصل شي، او دا ته به معلومه شي چې د دې جسم د دې څخه ليرې کېدای شي ليکن د دې سره سره د دې قائم پاته کېدل صحيح دي او امکان لري، او دا له فنا نشته.

## زړه او د ده يو ځانګړې صفت

ليکن د زړه[1] د حقيقت په اړه دا معلومول چې دا څه شيئ دی؟ او د ده ځانګړې صفت څه دی؟ د دې د لټون اجازت شريعت نه دی ورکړی او هم دا وجه ده چې نبي کريم ﷺ د دې تشريح نه ده فرمايلې، او صرف همدومره يې ويلي دي د کوم اجازت چې الله ﷻ ورکړی وو. الله تعالی فرمايي: وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي (بني اسرائيل: ۹۵) ژباړه: خلک ستا څخه د روح په اړه پوښتنه کوي نو ووايه! چې روح زما د رب حکم دی. ګواکې د دې څخه د زياتو ويلو اجازه نشته، چې روح د الله د ټولو کارونو څخه يو کار دی او د عالم امر نه دی. أَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ (الاعراف: ۵۴) (د الله ﷻ سره خاص دي خالق کېدل او حاکم کېدل).

هر هغه شيئ چې د ناپ تول، مقدار او اندازې او کيفيت او حالت ته پکښې دخل دی د عالَم خلق په مجموعه کې شامل دی ځکه چې د لغت د رويه د خلق معنی د اندازې کولو ده او د انسان د زړه د اندازې او مقدار سره هيڅ تعلق نشته او دا وجه ده چې زړه تقسيم نه قبلوي، يعنې خپل تقسيم يې قبول نه دي که ده تقسيم قبلولای نو دا به هم روا وای چې د ده يو طرف ته خو به د يو شيئ علم موجود وای او بل جانب ته به يې د دغې په باره کې ناخبرتيا موجوده وای، ګواکې په يوه وخت کې به عالم هم وای او جاهل هم، او دا ناشونې ده، مګر دا روح که هر څومره تقسيم نه قبلوي مقدار او اندازې له په ده کې هيڅ دخل نشته، مګر دی خو پيدا کړل سوی شيئ دي او د خَلق معنی پيدا کول هم دي، او مقدار او اندازه هم پيدا کړل سوې ده، نو په دې اعتبار سره دا هم د خَلق څخه دي که څه هم دبلې معنی په اعتبار سره د عالَم امر نه دی، ځکه چې د عالَم د امر څخه مراد هغه شيان دي کوم چې د مقدار او

[1] دلته د زړه څخه مراد روح دی لکه څنګه چې مخکې امام غزالي ﷫ د دې وضاحت کړی دی. (ژباړن)

انتلزې سره تعلق نه لري، نو کومو خلکو چې روح ته د تقسیم خیال کړی وو نو هغه خطا پر خطا وو. او چا چې وو ته عرض ویلي وو دغه هم پر غلطي وو. ځکه چې عرض قائم پخپل ذات نه وي (د ده قیام روح ته اړتیا لري) او تابع وي، ځکه چې روح اصل سړی دي او ټول جسم د ده تابعدار دي، بیا روح ته عرض څنگه ویل کیږي، بعضو دې روح ته جسم وویل او دا هم غلط دي ځکه چې جسم خو تقسیم قبلوي یعني ټوټې ټوټې جوړیدای سي، او روح (لکه چې لوړ ذکر سوه) تقسیم نه قبلوي.
لیکن یو بل شئ هم سته چې هغه ته روح وایي او دغه تقسیم هم قبلوي لیکن دغه روح په حیواناتو کي هم پیدا کیږي، لیکن دغه روح کوم ته چې موږ زړه وایو د معرفت الهي محل دي او دغه په حیواناتو کي نه وي او ده ته نه جسم ویل کیږي او نه عرض ویل کیږي، دغه خو یو گوهر (ملغلره) ده، او گوهر هم هغه کوم چې د ملائکو د گوهر هم جنسه دی، او د ده حقیقت پیژندل ډېر گران دي او د تشریع او شرکنلوني اجازت یې نسته، او د دین پر لاره د تلو د پاره په شروع کي د دې د پیژندگلوي ضرورت هم نسته ځکه چې په دې لاره کي اولنی شئ مجاهده ده (یعني محنت کول دي) او کله چې شوک صحیح مجاهده کوي نو دا معرفت (پیژندگلوي) د ځانه څخه ده ته حاصلیدای سي بغیر د یو بل د پوه کولو او ښوولو څخه، او دا معرفت مجموعهٔ هغه نه دی د کوم په اړه چې الله ﷻ فرمایي:
وَالَّذِينَ جَٰهَدُوا۟ فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا ۚ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَمَعَ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴿٦٩﴾ [العنکبوت]. ژباړه: او کوم خلک چې زموږ په لاره کي تکلیفونه زغمي موږ به دوی ته د خپل قُرب او ثواب یعني جنت لاره حتماً ښیو.
او کوم چا چې ریاضت او مجاهده تکمیل ته نه وي رسولې، ده ته د روح حقیقت بیانول جائز نه دي، لیکن د ریاضت او مجاهدې څخه دي مخکي د دغه د زړه د لښکر په اړه خو ځان خبر کړی، ځکه چې کوم چا ته د خپل لښکر په اړه خبر نه وي هغه به جهاد (مجاهده) څنگه وکړي.

## بدن د زړه مملکت (هیواد او وطن) دی

پوه سه!! په دې چې بدن د زړه وطن دی او په دې حکومت کي د زړه بیلا بیل لښکري دي: وَمَا يَعْلَمُ جُنُودَ رَبِّكَ إِلَّا هُوَ (المدثر:۳۱). ژباړه: او نه پیژني ستا د رب لښکرونه مگر هغه (یعني د الله ﷻ د لښکرونو خبر د الله ﷻ څخه ماسوا هیچا ته هم نسته) د دې آیت څخه دا مراد دي، چې زړه یې پیدا کړی دي نو د آخرت د پاره یې پیدا کړی دی، او د سعادت او نېکبختي تلاش د ده کار دی. او د ده

سعادت دالله ﷻ پر معرفت بانـدي موقـوف دی، او د صـانع (جـوړونکي) معرفـت پـه مصنـوعاتو (جوړ شوو شیانو) سره ده ته حاصلیږي، او د دې تعلق د عالَم حِس سره دی، او د عجائباتو د عالَم معرفت د ظاهر او باطن په حواسو سره ده ته حاصلیږي او تر څو پورې چې د حواسو تعلق دی د دغو د بدن سره تړاو او ثبات دی، معرفت (پېژندګلوي) د زړه ښکار دی او حواس يې دام دی، بدن يې سورلی دی چې د دغه دام (حواسو) پورته کوونکی دی، نو په دې وجه زړه ته د ګالبُد (کالبوت، بدن) اړتیا سته، او کالبُد د هوا، خاورو، ګرز څخه په جمع جوړ دی، په دې وجه د ده طاقت کم دی، په باطني توګه د لوږې او تندې او په ظاهري توګه د اُور او اُوبو د لاسه د هلاکت په خطره کې دی، ځکه د دښمنانو ارادې او د درندګانو او ځناورو او داسې نورو بیره د ده د هلاکت د سامان په جمع کولو کې دي، لکه څنګه چې د لوږې او تندې د لیرې کولو د پاره خوراک څښاک لازمي سو نو د دې د پاره ده ته د دوو لښکرو ضرورت پېښ سو، یو د ظاهري لښکر لکه لاسونه، پښې، غاښونه، خوله، معده او نور او دویم د باطني لښکر یعني د خوراک اشتها او د څښلو تنده. دغه ډول د خارجي دښمنانو څخه د مدافعت د پاره د دوو لښکرو ضرورت پېښ سو چې په هغو کې یو ظاهري دي یعني لاسونه پښې، وسله او نور. او بل باطني یعني غصه، خواهش او نور.

او بیا بغیر د لیدلو څخه د یو شيءَ طلب کول یا دښمن لیرې کول ممکن نه وو، نو د ادراکاتو حاجت ورته پیدا سو، په دوی کې بعضي ظاهري وو او بعضي باطني، په ظاهري حواسو کې پنځه شیان یعني سترګې، پزه، غوږونه، مس او ذائقه شامل دي، او پنځه حواس باطني دي یعني قوّت د تخیل، قوّت د تفکر، قوّت د حفظ، قوّت د تذکّر او قوّت د توهم، او په دې کې د هر یوه ځای دماغ دي،او په دوی کې د هر قوّت د پاره یو ځانګړی کار دي، او که چیرې په یوه کې خرابي پیدا سي نو د بنده په ټولو کارونو کې خلل پیدا کیږي او د دین دنیا متعلق کارونه د ده خراب سي، دا ظاهري او باطني ټولې لښکرې د زړه تر فرمان لاندې دي، او هغه د دې ټولو امیر او باچاه دي، کله چې ژبې ته حکم کوي نو هغه خبرې کوي او چې لاسو ته حکم کوي نو هغه شیان نیسي، پښې د ده په حکم تګ کوي، سترګې د ده په حکم لیدل کوي قوّت دفکر د ده د حکم مطابق سوچ کوي او دا ټول يې د زړه داسې تابعداره (فرمان برداره ) جوړ کړي دي چې د ده په غلامی کې خوشحاله دي چې زړه هم د دوی نه ساتنه کوي، او خپله د لارې توښه حاصلوي، خپل ښکار نیسي او تجارت په ښه توګه بشپړه کوي، او د خپل سعادت تخم کرې، دا لښکر د زړه حکم داسې مني لکه فرښتې چې د الله تعالی حکم مني او هیڅ وخت يې مخالفت نه کوي.

## د زړه لښکر (پوځ)

د زړه د لښکر په تفصیل سره پېژندل خو یو ستونزمن کار دي، خو دلته د دې څرګندونه په یو مثال سره کیږي، یعني پوه سه! چي جسم ګواکي یو ښار دي، او لاس، پښې او نور اندامونه د دې ښار کارکوونکي دي، او د خواهشاتو حیثیت د خراج وصول کونکو عاملانو دي، غصّه د ښار کوتوال (تانه دار) دي، او زړه د دې ښار باچاه دي، او عقل یې وزیر دي او باچاه ته د دې ټولو ضرورت دي چي د حکمت نظام او اهتمام صحیح او درست وي، لېکن شهوت (خواهش) کوم چي د خراج عامل دي دغه د درواغو ویلو سره سره واهیات، لغو ګو او حریص هم دي او څه چي وزیر (عقل) وایي همیشه د هغه مخالفت ته تیار وسېدل د ده عادت دي، او د ده همېشه دا خواهش وي چي په حکومت کي کوم مال دولت موجود دي دغه د خراج په بهانه لوټ کړي، او کوم چي کوتوال (تانه دار) دي هغه ډېر سختي کوونکی تېز او تریخ مزاجه دي او هر وخت وهل ټکول، شورماشور خوښوي، او لکه څنګه چي د باچاهوانو عادت دی چي هر قسم مشوره د وزیر سره کوي، او درواغجنانو او لالچیانو عاملانو ته سزاور کوي او د وزیر خلاف چي څه ویل کیږي هغه ته غوږ نه اېږدي بلکي کوتوال (تانه دار) پر دا ډول عامل باندي مسلط ساتي چي د داسي فضول او لغوه خبرو څخه یې منع کړي او پخپله کوتوال (تانه دار) ته هم حکم کوي چي پخپله د حدّ څخه بهر ونه ووځي، او دغه د حکم نظام برابر او صحیح ساتي، دغه ډول باچاه د زړه هم که هر کار د عقل د وزیر په مشور سره کوي، خواهش او غضب د عقل تر فرمان لاندي ساتي او عقل پر دوی باندي غالب ساتي، نو د جسم حکومت او کاروبار به درست او برابر وي او په لاره د نېک بختیا به چلېدل او حضور الهي ته رسېدل به ده ته آسانه وي، لېکن که عقل د خواهش او غضب غلام کړي نو حکمت به تباه برباد او بادشاه به د بدبختی ښکار سي.

## د بدن خد متګاره (خدمت کوونکی)

تر اوسه چي څه بیان سوه د دې څخه به تا معلوم کړي وي چي خواهش او غضب د خوراک څښاک او بدن د حفاظت د پاره پیدا سوی دي، نو دا دواړه خو د بدن خادمان سوه، او خوراک څښاک د بدن غلّه سوه او بدن یې د حواسو د بوج پورته کولو د پاره پیدا کړي دي، نو تن د حواسو خادم سو. او حواس یې د عقل د جاسوسی د پاره پیدا کړي دي چي د ده د پاره د دام کار وکړي چي د الله ﷻ په عجائباتو پوه سي، نو حواس د عقل خادمان سو، او عقل یې د زړه د پاره پیدا کړی دي چي د ده د پاره د څراغ او رڼا کار وکړي او د ده په نور او رڼا سره جمال الهي ووېني چي دا دیدار د ده جنت دي، نو عقل د زړه

خادم سو. او زړه یې د جمالِ الهي د نظارې (کتنې) د پاره پیدا کړی دې نو کله چې دی په دې نظاره کې مشغولیږي نو د دربارِ الهي بنده او خادم جوړیږي. او هغه چې الله ﷻ فرمایي: وَمَا خَلَقْتُ ٱلْجِنَّ وَٱلْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ﴿٥٦﴾ [الذاريات]. ژباړه: پیریانان او انسانان موږ د دې د پاره پیدا کړي دي چې زما عبادت وکړي؛

نو د دې معنی هم دا ده، نو زړه یې پیدا کړی دی او دا حکومت او لښکر یې ده ته ورسپارلی دی او د بدن دا سورلی (سپرلی) یې ده ته ورکړی دې چې د عالَم خاکي څخه سفر کوي علّیین ته ورسیږي، اوس که دی د نعمت حق ادا کول غواړي او د بندګی حق پر ځای کول غواړي نو ده ته پکار دي چې د باچاهانو په ډول د سلطنت پر تخت کښیني او د حق تعالی حضور خپله قبله او مقصود جوړ کړي، آخرت خپل وطن او آخري قرارګاه وګڼي، او دې دنیا ته د یو منزل (کور) څخه زیات ځای ورنه کړي، او د بدن څخه د سورلي، او د لاسو، پښو او اندامونو څخه د خادمانو، د عقل څخه د وزیر، د خواهش څخه د ساتونکي د مال او د غصې څخه د کوتوال (تانه دار) او د حواسو څخه د جاسوسانو کار واخلي، او یو د بل په حال معلومولو باندې مأموره کړي چې دا ټول د یو بل خبرونه ده ته ورسوي، او د خیال قوّت کوم چې د دماغ په مخکنۍ برخه کې دی د دوی افسر وټاکي چې ټول جاسوسان خبرونه د ده په مخ کې جمع کړي او قوّت حافظه کوم چې د دماغ د شا په حصه کې دی د خبرونو محافظ جوړ کړي چې کوم خبرونه ده ته د مخبرانو (خبر ورکونو) څخه حاصل سي هغه محفوظ کړي او د وخت مطابق یې عقل (وزیر) ته پېش کړي او وزیر ټول خبرونه کوم چې د مملکت (وطن) څخه موصول سوي دي تر نظر یې لاندې وساتي د سلطنت د کارونو مناسب تدبیرونه او د باچاه د سفر او حضر په سلسله کې مناسب اقدامات په کې راوړي، او کله چې ووینې په لښکر کې څوک باغي سوی دی یعني شهوت (خواهش) یا غصه او نور او د باچاه څخه بغاوت کوي نو ده لره پکار دي چې په یو مناسب تدبیر سره کوشش وکړي او هغه بیا د اصلاح او سمون لاري ته راولي، لیکن د وهولو اراده دې یې نه کوي، ځکه چې بغیر د ده څخه حکومت نسي چلیدلی، بلکي په تدبیر سره دې یې تابعداره کړي چې دغه سفر کوم چې ده ته په مخ کې دی دغه د ده ملګري سي، نه دا چې دښمنان جوړ سي، که داسې وکړي نو سعادت مند او نېکبخت به وي او د نعمت حق به ادا کړي او د دې خدمت بدله او انعام به د وخت په راتلو ده ته حاصلیږي، او که د دې مخالفت کوي او د دې دښمنانو او باکوګانو موافقت شروع کړي نو ناشکره به ورته وایي او آخر به د دې د سزا سره مخامخ سي.

## د باطني لښکر سره د بنده ربط او تعلق

پوه سه! چي د بنده د باطني لښکر سره يو ډول تعلق سته او په دوی کي د هر يو ځانګړی عادتونه او صفتونه دي، په دوی کي بعضي بداخلاقه دي کوم چي د ده د هلاکت باعث کيږي، او بعضي نېک اخلاقه دي کوم چي دی د سعادت منزل ته رسوي، د دې اخلاقو شمېر خو بيخي زيات دی لېکن په مجموعي توګه سره څلور قسمه دي: (۱) د څارويانو اخلاق (۲) د درندګانو اخلاق (۳) د شيطانانو اخلاق (۴) د ملايکو اخلاق. ځکه چي په په انسان کي لالچ (حرص) او خواهش سته په دې وجه دی د څارويانو په ډول کار کوي مثلاً خوړل چښل او د ښځي نارينه تعلقات، او بيا په ده کي غصه هم سته په دې وجه دی د درندګانو په ډول کار کوي مثل وهل، وژل، ښکنځل، جګړه کول، او د حېلې او مکر په ذريعه په خلقو کي فساد جوړول په ده کي سته، په دې وجه دی د شيطانانو په ډول کار کوي، او د عقل شعور په بنده کي موجود دي په دې وجه د ملائکو په ډول کار کوي، مثلاً د علم سره مينه کول د بدو کارونو څخه ځان ساتل او د خلکو سره د نېکي کولو خواهش او آرزو درلودل، د نا کارو او بدو کارونو څخه ځان ساتل چي عزت يې محفوظ پاته سي په هر کار کي په حق پېژندلو خوشحاله کېدل، او جهل عيب ګڼل.

په حقيقت کي چي وکتل سي نو د بنده په طبيعت کي څلور شيان دي: (۱) سپی توب (۲) خنزير توب (۳) شيطنت (۴) او مَلَکيّت، سپی د خپل صورت په وجه سره بد نه دي بلکي په حقيقت کي د خپلو عادتونو په وجه سره بد دی چي په انسانانو پسي غاپي تر دې چي خپل جنس هم وويني نو په غپا شروع سي، دغه ډول خنزير هم د خپل صورت په اعتبار سره بد نه دی بلکي په دې وجه سره ناکاره (خراب) دی چي د ګنده او پليتو شيانو خواهش لري، د سپی او خنزير دا حقيقت دي او په انسان کي هم دا شيان سته، دغه ډول د شيطنت او ملکيت دا معنی ده: چي د بنده د پاره حکم دا دی چي د عقل نور (رڼا) کوم چي د فرشتو د آثارو او انوارو څخه دی، د دې په برکت د شيطان مکر، چم او فريب معلوم کړي چي رُسوا نسي او شيطان دی دوکه نه کړي، نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: پر هر سړي باندي شيطان مسلط دي تر دې چي زما سره هم يو شيطان دي لېکن ماته الله ﷻ زما پر شيطان باندي غلبه را کړې ده او هغه مغلوب دی، اوس هغه ماته د بدی حکم نسي کولی.

دغه ډول بندته هم دا حکم دي چي د لالچ (حرص) او دخواهش سُور (خنزير) او د غصې سپی په قابو کي وساتي او عقل پر دوی باندي حاکم جوړ کړي چي هغه د ده په حکم سره حرکت کوي، کوم

سړی چي داسي وکړي، ده ته به ښه اخلاق حاصل سي او سعادت به یې نصیب سي، او که داسي ونه کړي او پخپله د ده محکوم او تابعداره سي نو بداخلاقه به سي کوم چي د بدبختۍ باعث او سبب دی،
په دې وخت کي که دی خپل حالت په خوب یا بیداری کي ووینې نو د ده مثال به د داسي سړي وي کوم چي د سپي یا خنزیر یا شیطان په مخ کي تیار او ملا تړلی ولاړ وي، او دا خو معلومه ده چي که څوک یو مسلمان یو کافر ته حواله کړي نو حال به یې څه وي؟ نو که د دې شخه زیات که یو څوک د یوې ملائکې لاس د کافر په لاس کي ورکړي نو حال به یې نور هم زیات خراب سي، او زیاتره خلک داسي دي چي که څیري انصاف وکړي او خپله محاسبه وکړي نو معلومه به سي چي دوی شپه او ورځ د خپل نفس د خواهشاتو په حصول کي مصروفه دي او که رښتیا پوښتنه څیني وسي نو اوس که دوی د ظاهري صورت او شکل په اعتبار سره انسانان ښکاري لیکن صبا به په قیامت کي به د دوی اصل حقیقت ښکاره سي، چي په ظاهري صورت کي نه بلکي په باطني صورت کي به راپورته سي:

یعني هغه سړی کوم چي دلته د شهوت او حرص څخه مغلوب دی د خنزیر په بڼول به ښکاره کیږي او پر چا چي غصه غالبه وي هغه به د سپي یا ښرمښ په بڼول ښکاره کیږي، او داوجه ده چي که څیري یو څوک په خوب کي شرمښ ووینې نو تعبیر به یې داوي چي د ظالم سره به مخامخ کیږي او که خنزیر ووینې نو د یو ګنده انسان سره به مخامخ سي، یعني ځان به آخر په دغه صورت کي وینې ځکه چي خوب د مرګ نښه ده، د خوب په وجه انسان د دې دنیا څخه بل ځای لیري ځي، او باطني صورت ور ته ښکاره کیږي یعني هر چا ته هلته هغه صورت ښکاره کیږي کوم چي د ده باطن وي او دا یو عجیبه او زبردست راز دی چي په دې کتاب کي نسي راوړل کېدای.

## انساني عادتونه (خصلتونه) او پر دوی باندي غلبه

هر کله چي دا معلومه سوه چي په باطن کي دا حکم کوونکي (لښکر) موجود دی، نو اوس د څلورو طرفونو څخه خپلو حرکاتو سکناتو ته وګوره چي ته د چا تابع یې او ستا په عادتونو کي د چا غلبه ده؟ او ته یقین وکړه چي ته کوم حرکت کوې د دغې څخه ستا په زړه کي یو صفت پیدا کیږي او په راتلونکي جهان کي به هغه ستا ملګری وي، دې صفتونو ته اخلاق وایي او ټول اخلاق د دغو څلور حکم کوونکو په سبب پیدا کیږي، یعني که ته د خنزیر د خواهش تابعداري کوې نو د ګندګي، بې حیائي، لالچ (حرص)، خوشامندي (غوړه مالي)، د بل په بلو خوشحاله کېدل په بڼول صفتونه به در

کي پیدا سي، که ته د دې خنزیر په ترټلو او لیري کولو کي کامیاب سوې او دی قابو کړې نو د قناعت، حیا، شرم، پوهه، پرهیزګاري، بې طمعي، او غریبي په شان صفتونه به در کي پیدا سي، او که ته د غضب د سپي تابع سوې نو د بې لحاظی، ناپاکی، لویي کول، غرور او تکبر، ځان ښودل، مسخرې او پسخند (ملنډي) وهل، بل سپک ګڼل، د خلکو سره جنګېدل په ډول صفتونه به در کي پیدا کیږي، او که تا دا سپی په قابو کي وساتی نو صبر (تحمّل)، معافي، استقلال، بهادري، سکوت، او د بزرګی په ډول صفتونه به در کي پیدا سي، او که ته د هغه شیطان اطاعت کوې د کوم کار چي سپی او خنزیر پارول دي او د زړه ورکول او مکر ښوول دي، نو دوکه کول، خیانت کول، او د جعلسازی (چالبازی) په ډول خبیث خویونه به در کي پیدا سي، او که تا دی قابو کړی او د ده د مکر او فریب ښخه دی ځان وژغوری او د عقل د لښکر مدد دي وکړی نو پوهه، معرفت، علم، حکمت، صلاحیت، ښه خویونه او د بزرګی په ډول صفتونه به درکي پیدا سي، او کوم دا صفتونه چي ستا سره وي نو ستا نېک یادګار به وي او ستا د نېک بختی (سعادت) تخم به ثابت سي، او د کومو کارونو ښخه چي بد اخلاقي پیدا کیږي هغو ته ګناه وایي او د کومو کارونو ښخه چي ښه اخلاق پیدا کیږی هغو ته عبادت وایي.

د بنده حرکات او کارونه په دوه ډوله دي کوم چي اوس اوس یې ذکر وسو، ګواکي زړه یو روښانه هینداره ده او بدخویونه او صفتونه دود او تیاره ده، د دې په اثر اتو سره د زړه هینداره توریږي او که داسي وسوه نو د قیامت په ورځ به د الله ﷻ د دیدار ښخه داسی سړی محروم وي، او نېک اخلاق رڼا او نور دی کوم چي د زړه د هینداره روښانه کوي، نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: د هری بدی ښخه وروسته نیکي کوه چي د بدی داغ پرېولي او د قیامت میدان ته به هر زړه داسي راسي چي یا به روښانه وي یا به تور، نجات او خلاصون به صرف هغه ته نصیب وي کوم چي د ګناهونو د پاک زړه سره د الله ﷻ مخ ته راسي.

د ابتدائي پیدایښت په اعتبار سره د بدن زړه د اوسپني په شان وي چي د هغه ښخه هینداره جوړېدای سي چي په هغه کي د ټولي دنیا عکس ده ته ښکاره کیږي لیکن که دی یې مناسب حفاظت او ساتنه ونه کړي نو زنګ به ونیسي او داسي به خرابه سي چي بیا به هینداره نسي ور ښخه جوړیدای لکه چي الله ﷻ فرمایي: كَلَّا ۖ بَلْ ۜ رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿١٤﴾ [مطففین] **ژباړه**: داسي نه ده بلکي اصلي وجه د دوی د درواغجن کولو (تکذیب) دا ده چي د دوی په زړونو د دوی دبدو عملونو

زنګ پروت دي.

## انسان ولې پيدا سو

پې شکه ته! داوېلای سې چې هرکله يې د بنده په بدن کې د څارويانو درندګانو شيطانانو او ملائکو صفتونه يو ځای کړي دي نو بيا دا څنګه معلومېږي چې د ده حقيقت ملکوتي ګوهر دی، او باقي ټول صفتونه عارضي دي دارنګه موږ ته به څه څنګه معلومېږي چې دی صرف د ملکوتي اخلاقو د حصول د پاره پيدا سوی دي او د باقي صفتونو سره د ده هيڅ تعلق نسته، نو تاته پوهيدل پکار دي چې بنده د څارويانو او درندګانو څخه افضل او اشرف دي، او الله ﷻ چې هر شئ ته يو کمال ورکړی دي دغه د ده د پاره يو نهايت اوانتها ده، نو ښکاره سوه چې د ده د پيدا کولو مقصد دغه اوچت او لوړ مقام ته د رسېدلو د پاره دی (يعني هرکله چې الله ﷻ وفرمايل چې ستا مرتبه او مقام د څارويانو څخه لوړدی او ته اشرف المخلوقات يې نو مطلب يې دا سو چې ستا اخلاق دي د نورو مخلوق په ډول نه وي کوم چې پر دې ځمکه شتون لري بلکې ستا اخلاق دي د اسماني مخلوق يعني د فرشتو په ډول وي کومو ته چې د خپلو پاکو اخلاقو په وجه د الله ﷻ نژديکت حاصل دي (يعني ستا اخلاق دي ملکوتي وي)، د دې مثال داسې دی چې آس د خره څخه زيات شريف دی ځکه چې خر صرف د بار وړلو د پاره پيدا سوی دي او آس په جنګ او جهاد کې د ځغلولو د پاره چې سپور د ده د ځغلستې او چالاکی څخه کټه واخلي، که څه هم د خره په ډول د بوج (بار) پورته کولو طاقت هم په ده کې سته ليکن ده ته کمال د خره څخه زيات ورکول سوی دي ليکن که دی د خپل اصل (يعني د ځغاستې او سورلی) څخه عاجزه سي نو بيا دی د بار پورته کولو د پاره استعمالېږي او د خره درجې ته را رسيږي، او دا خبره د ده د نقصان او هلاکت ده، اوس دغه ډول ځيني خلک دا خيال کوي چې انسان د خوراک خوب او جماع د پاره پيدا سوی دي نو ټول وخت په دې کې تېرول پکار دي او د ځينو خلکو مثلاً عربو او تر کيانو اونورو دا خيال دی چې زموږ پيدايښت پر نورو مخلوقاتو او شيانو باندې غلبې او فتح د پاره سوی دي، ليکن دا دواړه پر غلطی باندې دي ځکه چې خوراک او جماع خو په څارويانو کې هم ده بلکې خوراک خو اوښ د ده څخه زيات کوي او په مرغيانو کې د جماع خواهش د بنده څخه زيات دی نو بنده د دوی څخه شريف څنګه سو؟ او غلبه او تسلط او ظلم خو په درندګانو کې د انسان څخه زيات دي نو بيا فرق يې څه سو چې انسان اشرف المخلوات سو؟
نو اصلي وجه دا ده چې انسان ته يو شئ زيات هم ورکړل سوی دي کوم چې د ده اصل کمال دی، او د ده

عقل دی چي د هغه په ذریعه دی خدای پېژني، او د ده ټول عجائبات او قدرت پېژندلای سي او د ټولو شخه غته څېره دا ده چي د دې عقل په ذریعه دی د شهوت او غضب څخه ځان ژغورلای سي او دا صفت د ملائکو دي او د دې صفت په وجه دغه پر ښاروېانو او درندګانو باندي غالب دی، او دغه ټول د دوی مسخر سوي دي او د محکي د مخ هر شئ د ده تابع او فرمان برادره دی لکه چي الله ﷻ فرمایي؛ وَسَخَّرَ لَکُم مَا فِی الارضِ جَمِیْعًا. ژباړه: او کم څه چي په ځمکه کي دي دا ټول موږ ستا سو تابع کړی دي. (الجاثیه،۱۳)

نو په حقیقت کي بنده هغه دی کوم چي خپل اصلي شرف او کمال د ځان سره کړی وي او ځیني غافله نه وي، او (لکه چي معلومه ده چي) باقي ټول صفتونه عارضي دي او ټول د ده د مرستي، خدمت او نوکری د پاره رالېږل سوي دي او داوجه ده چي دی کله مرسي نو نه غصه باقي پاته کېږي او نه شهوت. خو هغه روښانه او نوراني ګوهر (ملغلره) کوم چي د ملائکو په صفتونو باندي ښایسته سوی دي او په معرفته الهي سره ښکلی سوی دي (یعني روح) بې شکه د ده ملګری وي، کوم چي دی و لوړ مقام د علیین ته رسوي او د همیشه د پاره ورته د حق حضوري حاصلېږي، فِي مَقْعَدِ صِدْقٍ عِنْدَ مَلِيْكٍ مُقْتَدِرٍ. ژباړه په ډېر ښه مقام (ځای) کي د قدرت والا الله سره (القمر،۱۸۵)، او یا به ور سره تیاره او سرکښته وي تیاره ځکه چي د ګناهونو او معصیت زنګ به پر لګېدلی وي او سرکښته به ځکه وي چي په غصه او شهوت سره به دی تسکین حاصلونکي وو او دغه به په دې دنیا کي ځیني پاته وي او د ده مخ به د دغه جهان وطرف ته وي ځکه چي مرادونه به یې دلته پاته وي او دا جهان خو د هغه جهان څخه لاندي واقع دي نو د ده سربه کښته اوزړېدلی وي او دغه چي کوم ویل سوي دي: وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلْمُجْرِمُونَ نَاكِسُوا۟ رُءُوسِهِمْ عِندَ رَبِّهِمْ (سجده،۱۲) ژباړه: او که ته ووینې نو د دې مجرمانو سرونه به د خدای پاک په مخ کي کښته وي. هم دا معنی ده، څوک به داسي وي چي د دوی ځای به د شیطانانو سره په سجّین کي وي، او د لفظ د سجین معنی هر چاته معلومه نه ده لکه چي الله ﷻ فرمایي: وَمَآ اَدْرٰکَ مَا سِجِّیْنٌ (تاته هیڅ معلومه نه ده چي سجّین څه شئ دي) (المطففین،۸).

## د زړه د نړۍ عجائبات

د زړه (روح) د دنیا د عجائباتو هیڅ انتها نسته او د ده شرف هم دا دی چي د باقي هر شئ څخه زیات

عجیبه دی. لیکن ډېر خلک د دې څخه غافله دی. د ده فضیلت اوبهتري په دوو وجهو سره ده: (١) یو د علم په وجه سره ده (٢) او بل د قدرت په وجه سره. د علم په وجه سره د ده فضیلت په دوو اسبابو سره دی: اول خو په دې چې هر څوک یې ازده کولای سي او په پوهېدای سي، او د وېم څکه چي دا پټ هم دی او هر څوک یې حاصلولای نسي او دا ډېر عزیز(خوبن او گران) دی. او هغه علم چي ظاهر ورته وایي دا دی چي ده ته د ټولو علومو حاصلولو قوّت او په ټولو صنایعو د پوهېدلو طاقت حاصل دي تر دې چي ټول صفتونه پېژندای سي، او څه چي په کتابو کي دي هغه لوستلای سي او په پوهېدلای سي لکه د حساب علم، طب، نجوم، او شریعت او نور. او د دومره مختلفو نوعو کېدلو سره سره د دغه یو جزء وي کوم چي تقسیم نه قبلوي او دا ټول علمونه په ده کي ځای کیږي، بلکي ټوله دنیا په ده کي داسی ځای سي لکه د اُوبو یوه قطره چي په دریاب کي ورکه سي، او د یو ساعت په فکر سره د ده خیال دومره لوړ ځای ته رسي چي دی مشرق او مغرب ته ورسوی او که څه هم دی د دې ډېرو او اُوبو په دنیا کي وسیږي بیا هم د ټولو اسمانونو سېل کوي او د هر ستوري تقدیر پېژني او په اندازه سره یې بنوولی سي چي د فلانی مقام څخه د ده اندازه څومره ده. او په ډول ډول حیلو سره ماهیان د دریاب څخه دباندي او مرغانو د هوا څخه لاندي راولي او غټغټ طاقتور حیوانان مثلاً: اوښ، فیل او آس او نور خپل تابعدار جوړوي. او په دنیا کي چي څومره هم عجیبه او ناآشنا علمونه دي ټول د ده کسب او پېشه ده او دی دا علمونه د خپلو پنځو حواسو په ذریعه حاصلوي، او دا خو یو ښکاره حقیقت دي چي د دې پنځو حواسو تعلق د زړه سره دی، او زیاته عجیبه خبره خو دا ده چي لکه څنګه چي په زړه کي دننه پنځه دروازې دي چي د عالَم محسوسات طرف ته خلاصي سوي دي چي هغه ته عالَمِ جسماني وایي دغه ډول د اسمان طرف ته هم خلاصي سوي دي چي هغه ته عالم روحاني وایي، او ډېر خلک عالم جسماني محسوس کوي، حال دا دی چي دا عالم جسماني خو پخپله ډېر مختصر دي بلکي بې اصله او بې بنیاده دي، او د علم د حصول څخه سوا د حواسو څخه بله لاره ده ته معلومه نه ده، او د حواسو دائره پخپله ډېر محدوده او مختصره ده. او دا د دې امر دلیل دي چي د زړه دننه بله دروازه ضرور سته، او په دې دننه دروازه کي چي کوم علوم حاصلیږي د هغو ذریعه دوه شیان دي: په دوی کي یو خو خوب دي چي کله د خوب په حالت کي د حواس خمسه دروازه بنده سي نو دغه دننه دروازه خلاصه سي او د عالَم ملکوت او لوحِ محفوظ څخه د غیبو خبري ظاهرېدل شروع سي او په راتلونکي وخت کي واقع کېدونکي. یا مخي ته راتلونکي خبري دی یاوریني یا یې پېژني (چي څنګه به وي؟) یا یې لږ تر لږه نوعیت ده ته ښکاره سي یا په مثالي انداز کي د دې اشاره

حاصلیږي چي د هغه دپاره د تعبیر ضرورت وي، او ښکاره خبره ده چي څوک وینې وي، خلک هغه د معرفت زیات مستحق ګڼي، حال دا دی چي هغه پوهیږي چي په وینه په حواسو سره د غیبو شیان په نظر نه راځي، دغه خو په خوب کي لیدل کیږي او دغه هم د حواسو په لاري باندي نه. د خوب حقیقت په دې کي په تفصیل سره نسي بیانېدلای، بیا هم دومره ضرور معلومېدل پکار دي چي د زړه مثال د یوې هینداري په شان دي او د لوحِ محفوظ مثال هم د هینداري په شان دي چي د ټولو موجوداتو عکس په هغې کي سته، څنګه چي یوه هینداره بلي هینداري ته په مخامخ ایښوولو سره د یوې صورتونه بلي ته منعکس کیږي، دغه ډول که د زړه هینداره صافه وي نو د لوحِ محفوظ د هینداري صورتونه په دې کي ښکاره کېدای سي، او دا د زړه هینداره د لوح محفوظ د هینداري سره نسبت پیدا کوي، لیکن تر څو پوري چي دا د عالَمِ محسوساتو سره متعلق وي تر هغه وخته پوري د عالم ملکوت د مناسبت څخه په حجاب (پرده) کي وي، او څنګه چي په خوب کي حواسِ خمسه د ده څخه جدا (بېل) وي مګر خیال خو پر خپل ځای برابر قائم وي نو دغه رنګه داوجه ده چي هغه په دې حالاتو کي چي څه ویني په خیالي دنیا کي یې ویني او دغه شیان صریحاً د ده په وړاندي نه ښکاره کیږي او د غلطی او پټوالی څخه خالي نه وي، هو! که چیري دی مړ سي نو نه خیال باقي پاته کیږي نه حواس بیا دغه مشاهدې بې خیاله وي او د ده څخه پوښتنه کوي چي: فَكَشَفْنَا عَنكَ غِطَآءَكَ فَبَصَرُكَ ٱلْيَوْمَ حَدِيدٌ ﴿٢٢﴾ (ق:۲۲) **ژباړه**: اوس ستا څخه د غفلت پرده پورته کړای سوه نو نن خو ستا نظر ډېر تېز دی، او په جواب کي به وایي: رَبَّنَآ أَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَٱرْجِعْنَا نَعْمَلْ صَٰلِحًا إِنَّا مُوقِنُونَ ﴿١٢﴾ **ژباړه**: اې زموږ ربه! زموږ سترګي او غوږونه خلاص سوه نو موږ بیا بیرته ولېږه! موږ به نیک کارونه کوو، او زموږ پوره یقین دی.

دویم دلیل دا دی چي یو سړی داسي نه وي د کوم په زړه کي چي په ذریعه د الهام او فراست نیک خیالات او نیک تصورات نه پیدا کیږي، چي هغه د حواسو د لاري نه، بلکي خاص په زړه سره پیدا کیږي او ده ته معلومه نه وي چي دا د کوم طرف څخه راغلي دي، خو ده ته دا احساس کیږي چي ټول علوم د محسوساتو سره متعلق نه دي (بلکي د دوی څخه بله ذریعه هم خامخا سته) او په دې وجه سره ده ته دا هم معلومیږي، چي زړه په اصل کي د دې دنیا شئ نه دی بلکي د عالم ملکوت سره متعلق دی، او دغه حواس کوم چي د دې دنیا د پاره ده ته ورکړل سوي دي خامخا د ده د پاره د حجاب (پردې

) درجه لري، چې د هغه عالَم د مطالعې څخه دې په پرده کې ساتي، نو تر څو چې د دې حواسو څخه فراغت حاصل نه کړي هغه عالم ته لاره نسي پیدا کولای.

## روحاني دنیا(عالم) او زړه

لیکن دا گمان کول نه دي پکار چې د عالَمِ ملکوت طرف ته دا خلاصیدونکې د زړه دروازه د خوب او مرگ څخه ماسوا بل وخت نسي خلاصیدلای، ځکه چې په حقیقت کې داسې نه ده بلکې حقیقت دا دی چې په عالَمِ بیداری کې هم که یو سړی د ریاضت او مجاهدې څخه کار واخلي او د غصې او شهوت او د بدو اخلاقو د منگلې څخه زړه را وباسي، او د دې دنیـا څخه مخ واړوي د خلوت طرف اختیـار کړي، سترگې بندې کړي او حواس معطل کړي او د زړه د عالم ملکوت سره مناسبت پیدا کړي او داسې چې همیشه دژبې پر ځای په زړه سره الله الله کوي، تر دې چې د خپل ځان څخه بې خبره سي، د دنیا د جهان هوبش یې پاته نسي او د یو شئ په پروا کې نه وي ماسوا د الله ﷻ څخه، چې کله داسې وسي نو که دی بیداره نه وي د ده د زړه دروازه به خلاصه سي او څه چې نور خلق (مخلوق) په خوب کېویني هغه به دی په بیداری کې ویني، او نېک روحونه او فرشتې به ده ته په ښایسته او ښکلو صورتونو کې ښکاره کیږي، داسې سړی پیغمبران هم ویني او د دوی څخه فائدې حاصلوي او د دوی په امداد سره مشرفه کیږي، او فرشتې د ځمکې او اسمان تولو گوټونه (طرفونه) ده ته ښکاره کوي، او کوم سړي ته چې دا لار ښکاره سي هغه لوی لوی کارونه ویني تر دې چې صفت بیانول یې نا ممکنه وي، رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې: "داسې سړی د ځمکې د مخ هر شئ د مشرقینو څخه تر مغربینو پوري په خپل مخ کي بې حجابه ویني"، او الله ﷻ فرمایي چې: "موږ د حضـرت ابراهیم علیه السلام ته د اسمانونو او ځمکو مخلوقات وښوول" (الانعام: ٧٥) ټول د دې حال سره متعلق دي، بلکې د نبیانو علمونه په دې لاري سره دوی ته حاصلیږي، یعني په ذریعه د الهام، نه دا چې په ذریعه د حواسِ خمسه وو، او د دې ټولو د پاره د تعلیم او هدایت د مجاهدې په برکت سره وي، لکه چې الله ﷻ فرمایي: وَتَبَتَّلْ إِلَيْهِ تَبْتِيلًا (د ټولو څخه تعلق قطع کړه او د هغه وطرف ته متوجه سه) (المزمل: ٨)

او کله چې داسې سي نو الله ﷻ یې ټول کارونه جوړ کړي چې هغه حقیقي کارساز دی: رَّبُّ ٱلْمَشْرِقِ وَٱلْمَغْرِبِ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَٱتَّخِذْهُ وَكِيلًا ﴿٩﴾ [المزمل: ٩] (هغه د مشرق او مغرب خدای دي د هغه څخه سوا

بل معبود نسته نو ته خپل کار هغه ته وسپاره )
او کله چي تا دا حقیقي کارساز خپل وکیل جوړ کړی نو د ټولو شخه تعلق پرې کړه د هغه سره یې
وتړه: وَاَصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَاَهْجُرْهُمْ هَجْرًا جَمِيلاً ۝ [المزمل: ۱۰] (او د دغو خلکو پټي خبرو
صبر کوه او په ښه طریقه سره د دوی شخه جلا سه)
دا ټول تعلیم د ریاضت او مجاهدې دي چي زړه صفا سي او په ده کي د خلکو سره دښمني، د دنیا
خواهش او د عالم محسوساتو د مشغلو (کارونو) خواهش باقي پاته نسي، او دا د صوفیانو لار ده، او دا
لا رد نبوّت ده، لېکن د دې علم حصول د عالمانو د حصول. علم په ټول هم کیدای سي، او د دې هم
لویه درجه ده لېکن دا د هغه علم په نسبت ډېر محدود او مختصر دی کوم چي انبیاؤ او اولیاؤ ته د
خلکو شخه د تعلیم حاصلولو شخه بغیر د الله ﷻ د طرف شخه ورکول سوی دي، او د دوی زړونه
روښانه کوي، هسي خو دا لار په تجربه سره هم معلومه سوې ده او ډېر خلک په دې کي کامیاب سوي
هم دي او په عقلي دلیلونو سره هم دا حاصلیدای سي، لېکن که تا ته دا شئ په ذوق یا تعلیم سره یا
دلیل عقلي سره (یعني په دې سره ممکنو طریقو سره ) حاصل هم نسي نو دومره خو وکړه چي پر
دې ایمان راوړه او تصدیق یې وکړه چي ته د دوی دواړو درجو شخه منکر او په کافرانو کي کي شمار
نه سې، دا د معاملاتو د زړه د دنیا د عجائباتو سره تعلق لري او په دې سره د بنده د زړه بزرګي او شرافت
معلومیږي.

## دا کمالات د هر سړي په وس کي دي او هر سړی یې حاصلولای سي

لېکن دا خیال مه کوه! چي لوړ ذکر سوي صفات صرف د پیغمبرانو د پاره مخصوص (ځانګړي) دي
ځکه چي د ټولو انسانانو فطرت او حقیقت د دې ملکوتي ګوهر لائق دي، ځکه چي هغه کومه
اوسپنه ده چي فطرت یې د دې قابل نه وي چي هینداره ځیني جوړه سي او د ټول عالَم عکس پکښي
ښکاره نسي په دغه کي خو صرف په زنګ کېدو سره خرابي پیدا کیږي او تباه کوي یې (دغه ډول د
زړه هینداره چي حرص د دنیا او نفساني شهوتونه او د ګناه شوق پر دې غالبه سي نو توروي یې او د دې
ښایستوالی شخه محرومه سي) لکه حدیث شریف دي "كُلُّ مَوْلُودٍ يُولَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ. فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهِ.
أَوْ يُنَصِّرَانِهِ. أَوْ يُمَجِّسَانِهِ": (هر بچی پر فطرت پیدا کیږي لېکن د ده مور او پلار دی یهودي یا
نصراني یا مجوسي جوړوي) او په دې آیت کي هم الله ﷻ د دې قابلیت او اهلیّت خبر ورکړی دی:

"أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى" (آیازه ستاسو رب نه یم؟ ټولو وویل هو! ولې نه) [الاعراف: ۱۷۲].
که دیو عقل مند شخصه پوښتنه وسي چي ورووه! یو د دوو شخصه زیات دی کنه؟ نو جواب به یقیناً په اثبات کي وي که څه هم یو عقلمند دا په خوپونو لور بدلي وي او که نه، او په ستر کوپي لیدلي وي او که نه، لېکن د دې جواب په صداقت کي د هیڅا شک او شبه نسته، نو لکه څنګه چي دا ټول اُمور د انسان په فطرت کي په ښکاره داخل دي دغه ډول د الله ﷻ معرفت د ټولو انسانانو په فطرت کي موجود دی، لکه چي الله ﷻ فرمایي: " وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَهُمْ لَيَقُولُنَّ اللَّهُ" (که ته د دوی څخه پوښتنه وکړې چي تاسو چا پیدا کړي یاست نو وبه وایي چي بې شکه الله: او همدارنګه فرمایي: "فِطْرَتَ اللَّهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا" (د الله ﷻ د فطرت تابعداري وکړه پر کوم فطرت چي الله ﷻ خلګ پیدا کړي دي) عقلي دلیل او تجربه هم په دې خبره ګواه ده چي دا خبره په انبیاؤ علیهم السلام پوري ځانګړې نه ده څکه چي هغوی هم د جنس د بشر سره تعلق لري، الله ﷻ فرمایي: قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ (ته ورته ووایه! چي زه هم ستاسو په ډول یو بنده یم) (الکهف: ۱۱۰).
لېکن خبره دا ده چي چاته دا لار ښکاره سي، او د خلګو د اصلاح او سمون ټول کارونه ده ته واضح سي او دی د دې خبرو طرف ته د خلګو دعوت شروع کړي کوم چي ده ته ښکاره سوي او ښوول سوي دي نو دا د شریعت خبري دي او دغه ته د دې شریعت پیغمبر وایي او د دې حالت او کیفیت ته معجزه وایي، لېکن که دغه خلګو ته په دعوت ورکولو کي مشغوله نه وي نو دغه پیغمبر نه بلکي ولي دی او د ده حالاتو ته کرامت وایي، او دا جائز هم نه دي چي هر هغه سړی په کوم یوه چي دا حالات طاري وجاري وي د خلګو په دعوت کي مشغوله سي، څکه چي دا اختیار خو الله ﷻ ته حاصل دي چي شوک وغواړي په دې دعوت کي یې مشغول کړي، او د ولیانو په دې دعوت کي د نه مشغولو یو سبب خو دا دی چي دوی په داسي وخت کي پیدا وي چي شریعت لا اوس نوی (تازه) وي او د بل دعوت ورکوونکي ضرورت نه وي، یا په دې وجه سره چي د ده د دعوت شرطونه مختلف وي، یا داسي وي چي په دې ولي کي موجود نه وي، نو پکار دي چي د اولیاؤ په ولایت او کرامت خو صحیح ایمان ولري، او داوګنې چي د دې کار ابتداء د مجاهدې څخه نه کېږي او اجتهاد ته په دې کي هیڅ دخل نسته لېکن دا هم ضروري نه دي چي "څه کري هغه به ریبي هم"، او "کوم چي روان سي لازماً به منزل ته هم رسي"، او "هر تلاش کوونکی پیدا کېدونکی هم نه دي"، لېکن دا ضروري ده چي کوم کار په

ځومره اندازه غټ وي شرطونه يې هم هغومره زيات او وسيع وي او پيدا کول يې ډېر نادر وي، او دا د انسان دا اشرف ترين او افضل ترين درجو څخه ده او دا مقام د معرفت او طلبِ الهي دی کوم چې بغير د مجاهدې او بغير د کامل مُرشد څخه نسي حاصلېدای، او که دا دواړه حاصل سي نو هم تر څو چې په ازل کي د دې سعادت حکم د ده د پاره جاري سوی نه وي تر هغه وخت پوري دا مراد حاصلولای نسي او درجه د امامت پيدا کول هغه که د علم ظاهري سره متعلق وي يا د نورو کارونو سره د هغه بې مثله لايزال ذات په قدرت او اختيار کي ده.

## د بنده اصل "زړه"

دا خو معلومه سوه چي د بنده اصل زړه (روح) دی او ده ته چي د معرفت په وجه سره کومه بزرگي (لويي) او مرتبه حاصله ده د دې بيان څخه دغه بزرگي د عکس په ډول معلومېږي، اوس پوه سه! چي د قادر کېدلو په اعتبار سره هم ده ته فضيلت حاصل دی چي دغه هم د فرشتو د خصوصياتو څخه دي او په نورو حيواناتو کي نسته، او د دې حقيقت دا دی چي لکه څنګه چي عالَمِ اجسام د فرشتو د حکم تابع دی چي هغوی کله وينې چي خلکو ته د فلاتکی خبري اړتيا سته نو پر مناسبه موقع باندي د الله ﷻ په اجازت او حکم سره باران وروی، د باران په موسم کي هواګاني چلوي، او حيواناتو ته د مور په رحم کي او نباتاتو (وبنو) ته تر مځکي لاندي مختلف صورتونه ورکوي، او بيا يې خارج (د باندي) راباسي، او د دې ډول ټولو کارونو د پاره مختلفي فرشتې مقرّري دي، دغه ډول د بنده زړه دی چي دغه هم د فرشتو د جوهر هَمجنسه (ورته) دی په دې وجه يې ده ته هم قدرت او اختيار ورکړی دي او په دې وجه د اجسام عالَم څخه ځيني د ده د حکم تابعداره وي او د هر سړی خپل ځانګړی (خاص) عالَم د ده جسم دي او جسم د زړه مفتوح دی مثلاً دا ټولو ته معلومه ده چي زړه په ګوته کي نه وي او د علم او ارادې ي مرکز هم ګوته نه وي لېکن کله چي زړه حکم کوي په ګوته کي حرکت راځي او د هغه حکم پر ځای کوي، او دا زړه دی چي کله غصه په ده کي بنکاره سي نو ټول جسم او اندامونه خوَکې خوَکې سي (يعني په خوَلو لوند سي) نو دا د ده ورول سوی باران دی، او کله چي د شهوت تصور په دې زړه کي پيدا سي نو داسي هواوچليږي چي آلې د شهوت ته ورسېږي او کله چي يې د خوراک شوق پيدا سي نو هغه قوّت کوم چي تر ژبي لاندي وي د دې د خدمت د پاره تيار سي، او لاړې (ناوړي) راوتل شروع سي، چي هغه خوراک لندوي چي وخوړل سي، او دا خبره پټه نه ده چي د زړه تصرف او تسلط په جسم کي جاري او ساري دی، او جسم د زړه ما تحت دی

لیکن یاد ساتل پکار دي چي بعضي زړونه په ځانګړي توګه سره زیات افضل او زیات قوي وي او د ملکوتي جوهر سره ډېر زیات مشابه او هم مثله وي، په ده کي دا قدرت هم وي چي د خپل جسم څخه ماسوا نور اجسام هم مطیع او فرمان برداره کړي، مثلاً د ده دبدبه او هیبت که زمری هم وویني نو هغه د ده غلام جوړ سي او که هغه د یو ناجوړی د پاره کوشش وکړي نو شفا یې وسي او که وغواړي چي یو جوړ سړی ناجوړه کړي نو په ناجوړي یې مبتلا کړي او که د چا تصور وکړي او وغواړي چي هغه ده ته راسي نو د دغه سړي په زړه کي داسي شوق را پیدا سي چي هلته یې ورسوي، او که وغواړي چي باران وسي نو باران کیږي، دا ټولي خبري د عقلي دلیلونو په اعتبار سره ممکنه دي او د تجربې څخه هم معلومېدای سي، او هغه کومو ته چي نظر لګېدل وایي او جادو ورته وایي هغه دا هر څه دي او نفس د بنده د تأثیر کرشمه(نښه) وي چي نور اجسام متاثره کوي، مثلاً یو سړی چي هغه حاسد وي هغه که د یو چا ښایسته او جوړ څاروی (حیوان) وویني نو د ده د هلاکت خیال وکړي نو د دغه څاروي مرګ واقع کیږي (او داسي لیدل سوي دي) لکه چي په حدیث شریف کي راغلي دي چي: " بد نظر انسان قبر ته او حیوان کټوي(دېګ) ته رسوي" نو دا ټولي خبري هغه د قدرت عجائبات او اختیارات دي کوم چي په زړه کي سته او داسي خاصیت کله چي په یو سړي کي ښکاره سي نو داسي سړی که خلکو ته دعوت ورکوونکي وي نو دې ته معجزه وایي او که دغه داعي نه وي نو کرامت ورته وایي او که د دې ظهور د کار خیر په سلسله کي وي نو داسي سړي ته نبي یا ولي وایي، او که مقصد یې فتنه او شرو وي نو ده ته ساحر یا جادوګر وایي، او جادو، کرامت او معجزه ټول د بنده د زړه قدرتي خاصیتونه دي، که څه هم د دوی په مینځ کي ډېر زیات فرق سته، لیکن دلته یې د بیان امکان (ګنجایش) نسته.

## د نبوّت حقیقت پېژندل

هغه سړی کوم چي په دومره اندازه هم نه پوهیږي څومره چي تر اوسه بیان سوه، نو بې شکه دغه د نبوت د حقیقت څخه بالکل نا اشنا او نا خبر دی، ما سوا د دې څخه چي ده صرف دا اوریدلي دي چي ولایت او نبوت هم د بنده د زړه د فضیلت او شرافت د درجو څخه یو شئ دی، په هر حال دا د دې درې خصوصیاتو څخه حاصلیږي په کومو کي چي یو خاصیت دا دی چي عام خلک کوم شیان په خوب کي ویني، دغه نبي په بیداری کي لیدلای سي، دویم دا چي د عامو خلکو اثر د دوی تر خپلو اجسامو پوري محدود وي پر نورو باندي اثر نه کوي، لیکن د نبیانو اثر په خارج کي هم (یعني پر

نورو باندي هم ) کیږي، او هغه هم داسي چي په دې کي اصلاح او نېکي وي د فساد په دې کي هیڅ لږ دخل هم نسته، دریم دا چي عامو خلکو ته چي کوم علم حاصلیږي دغه په تعلیم حاصلولو سره وي او نبي ته بغیر د ازده کولو څخه په باطني توګه سره حاصل وي، څنګه چي دا صحیح دي چي یو ذهین او صفا زړه والا سړی په بعضي علمونو باندي د ځانه څخه عبور لري، دغه شان دا هم صحیح دي چي د ده څخه ډېر ذهین او صفا انسان توّل علمونه د ځانه څخه په باطني توګه ازده کړي او دې ته " علم لدني" وایي، لکه چي الله ﷻ فرمایي: وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا [کهف:۶۵]. (او موږ ده ته د خپل طرف څخه یو خاص علم ورکړی)

او کوم سړي ته چي دا درې سره خصوصیات حاصل سي دغه د لویو پیغمبرانو او لویو اولیاؤ څخه دی، او په چا کي چي د دې څخه یو خصوصیت پیدا سي، د ده درجه به هم داوي لیکن فرق په دواړو کي که څه هم ډېر دی ځکه چي د دوی څخه په ځینو کي د دې خصوصیت څخه لږ او ځینو ته زیات کمال حاصل وي، او زموږ د نبي کریم ﷺ کمال داوو چي دوی ته په دې درې سره وو خاصیتونو کي په درجه اتم کمال حاصل وو، ځکه چي د الله ﷻ رضا داوه چي خلکو ته دوی د نبوت لاروښیي چي خلک د ده متابعت وکړي او د سعادت لاره د ده څخه معلومه کړي، په دې وجه دا درې سره خاصیتونه دوی ته ورکړل سوي وه، ځیني د خوب په ذریعه بعضي د عقل او پوهي په برکت او بعضي مخامخ د دوی په ذات کي ښکاره سوه، او دغسي توّل علمونه په دوی کي ښکاره سوه، (یعني په علم لدني سره دوی ونازول سوه) او د بنده د پاره دا ممکنه نه ده چي هغه پر یو داسي شئ ایمان راوړي کوم چي د ده د جنس څخه نه وي، ځکه چي د کوم شئ چي یو جنس نه وي د هغه (جسماني ) تصوّر په ذهن کي نسي راتلای، او داوجه ده چي په حقیقت الهي په پوره شان پوهېدل د چا د پاره ممکن نه دي، او الله ﷻ د خپل ذات علم پخپله لري، د دې د تحقیق تفصیل اوږد دي پر کوم چي د روښانه دلیلو سره موږ ممکل بحث په کتاب " معانی اسماء الله" کي کړی دي.

دلته زموږ مقصد داواضحه کول دي، چي د مذکوره درې سره خاصیتونو څخه ما سوا هم په انبیاؤ او اولیاؤ کي داسي خاصیتونه موجود وي د کومو څخه چي موږ بې خبره یو ځکه چي د دغه تصور اندازه هم زموږ په ذهن کي نسي پیدا کیدای، نو لکه څنګه چي موږ وایو چي د الله ﷻ حقیقت د الله څخه ماسوا بل څوک نسي پېژندلی، دغه ډول داوینا هم روا ده چي نبي کریم ﷺ د نبي کریم ﷺ څخه ماسوا بل څوک نسي پیژندلی، ځکه چي د دوی درجه د نورو انسانو څخه بې اندازې لوړه ده. نو د

پیغمبر مرتبه پخپله پیغمبر ته معلومه وي او موږ ته خوبې صرف ظاهر معلومېدی سي مثلاً که موږ ته د خوب کیفیت عملاً معلوم نه وای (یعني موږ ته خوب نه راتلای) او کوم سړی چې موږ ته د خوب حالت بنوولای دا سي یې ویلای چې بیده سړی هغه وي کوم چې پروت وي یعني حرکت نه کوي نه څه ویني او نه څه اوري او نه په دې پوهېږي چې صبا به څه کوي، حال دا دی چې دا ټول صفتونه په اصل کي په هغه کي سته، نو په دې بیان به موږ هیڅکله یقین نه کوو څکه چې بنده پر هغه خبره یقین نه کوي کومه چې یې په سترګونه وي لیدلې، دغه رنګه الله ﷻ فرمايي: "بَلْ كَذَّبُوا بِمَا لَمْ يُحِيطُوا بِعِلْمِهِ وَلَمَّا يَأْتِهِمْ تَأْوِيلُهُ "[یونس:۳۹] ژباړه: بلکي د هغه شئ تکذیب کوي کوم چې د دوی د علم په احاطه کي هم نسته او حال دا دی چې د دغو تأویل هم دوی ته نه دی رسېدلی.

دارنګه فرمايي: وَإِذْ لَمْ يَهْتَدُوا بِهِ فَسَيَقُولُونَ هَٰذَا إِفْكٌ قَدِيمٌ [الاحقاف: ۱۱] ژباړه: هر کله چې دې خلکو ته په قرآن سره هدایت نصیب نه سو نو وبه وایي چې دا پخواني درواغ دي.

او پټ دې خبره مه حیرانیږه! چې په انبیاؤ او اولیاؤ کي داسي صفتونه هم سته چې نوروته د هغه لږ اندازه خبر هم نسته حال دا دی چې دغه (نبي او ولي) د دغو صفتونو افضل او اشرف قسم لذت محسوسوي (او دا څه د تعجب خبره نه ده) تا به لیدلي وي چې په کوم سړي کي د شعر ذوق موجود نه وي هغه د سروز (غناء، سرود) د لذت څخه هم محروم وي، او که څوک وغواړي چې ده ته د شعر معنی یا د سروز د لذت مفهوم وښیي نو هغه پخپل دې کوشش کي نسي کامیابیدای، څکه چې هغه د دې جنس څخه واقف نه دی، دغه ډول رندو خلکو ته دا ممکنه نه دي چې د رنګونو د لطافت او نظارې لذت وپېژني، نو دا خبره هیڅ کله د حیرانی او تعجب نه ده چې الله تعالی د درجې د نبوت څخه هم زیات داسي شیان وکړي چې مخکي چا ته د دې خبري لږ اندازه هم نه وي سوی.

## د بنده ګی اصلیّت

تر دې ځایه پوري چې څه بیان سوه د دې څخه د بنده د زړه د ګوهر په باره کي به تا ته ډېر څه معلوم سوي وي او په دې به هم خبر سوی یې! چې د صوفیانو لار کومه یوه ده او د صوفیانو د دې قول معنی به هم در ته معلومه سوې وي چې علم د دې لاري پرده ده او شاید ته به دا خبره نه مني! لېکن د دې څخه انکار مه کوه څکه چې دا حقیقت دي، او هغه دا چې ستا نظر پر محسوساتو دي او ټول هغه علوم کوم چې د محسوساتو څخه حاصلیږي هلته حاصلیږي چې ستا حواس پکښې مشغول وي لېکن دا

ظاهري محسوسات ستا د سترګو پر دې ثابتیږي، د زړه مثال د یو حوض دی او د حواس خمسه مثال د پنځه نهرونو (ویالو) دي کوم چي دا حوض د اُوبو څخه ډ کوي، او س که ته غواړې چي ستا د زړه حوض د صافو اوبو څخه ډک سي نو تدبیر یې دا دی چي دغه اوبه کومي چي په دغو پنځه نهرونو کي دي او دې حوض ته راغلي دي بالکل د دې حوض څخه د باندي (خارج) وباسې، او ګنده ختې کومي چي یې په بیخ (پای) کي دي هغه ځیني راوباسې، او د ټولو نهرونو لار بنده کړې چي نوري اوبه دته نسي را، او بیا دې حوض ته ور شوه سې دومره یې وکیندي چي صافي اوبه پخپله د دې په بلله کي د بیخ څخه راپیدا سي چي هر کله دغه حوض تر خولې پوري د دننه اوبو څخه ډک سي نو د بهر څخه د ابو را تلل به ممکن نه وي (چي زړه پاک وي نو د دنیا ګندګي یې نسي ناپا کولای) دغه ډول هغه علم کوم چي د زړه په بیخ کي پټ دی تر هغه وخته بهر (د باندي) نه راځي تر څو چي د بهر څخه راغلی علم ځیني ونه باسې (په محسوساتو سره د حاصل سوي علم د بهر ایستلو څخه بغیر باطني علم نه حاصلیږي) عالم که د دغو بهرنیو علومو څخه زړه خالي کړي او بیا پکښې نه مشغولیږي نو دغه تېر علمونه به بیا د ده د سترګو پردې نه جوړیږي، او عینِ ممکنه ده چي د دغو بدوالی به پر زړه غالبه نه وي، ځکه چي خجاب خو هغه خیالات او محسوسات وي کوم چي یې د زړه څخه ایستلي دي، د مثال په توګه داسي وګڼه چي یو سړی د اهل سنت عقیده ازده کوي او هغه ټول دلیلونه هم ازده کوي کوم چي په دې سلسله کي د مناظرې او بحث د پاره ضروري دي او بیا په پوره توګه سره په هغه کار باندي مصروفه کیږي او ځان د هغه د پاره وقف کوي او پوخ یقین کوي چي د دې علم څخه زیات بل علم بالکل نسته، نو بیا که د دې څخه ما سوا ده په زړه کي یو خیال راسي نو دی به پخپله ووایي چي دا هغه خیال نه دی کوم چي زما په زړه کي دی، دا خو د هغه څخه خلاف دی او د دې سوچ سره به دغه بهرنی خیال د ده په نزد باطله وي، او د داسي سړي د پاره د حقیقت څخه خبر بدل ممکن کیدای نسي ځکه چي د کومو عقیدو تعلیم عوامو خلکو ته ورکول سوی دي هغه صرف دحقیقت قالب وي عین حقیقت نه وي ځکه چي مکمل معرفت د هغه شي نوم دی چي دغه حقیقتونه د دې قالب (بدن) څخه را وړستل سي، لکه د پوستکي څخه چي مغز را وېستل سي، او یاد لره! چي که یو سړی د خپلو عقیدو د رښتنوالي او په نورو باندي د منلو د پاره د مناظرې او جګړې چلونه او خبري ازده کوي ده ته حقیقت هیڅکله هم نسي ښکاره کیدای ځکه چي د ده دا ګمان وي چي هر څه چي دي نو هم دغه دي کوم چي په ده کي دي او څه چي ده ته معلوم دي هر څه هم دغه دي او د ده هره خبره صحیح ده، او د ده دا خیال د ده پرده وي، او په دې وجه سره د ده دا په ځان مغروره کیدل پر ده غالبه سي لو هم

په دغو علمونو کي دی ومښلي کوم چي ده ته معلوم وي او د ده حجاب (پرده) جوړ سي، او مخکي تللو ته يې نه پرېږدي، نو څوک چي په ځان باندي د مغروره کېدلو څخه د باندي راووځی نو د ده ظاهري علم پرده نه جوړېږي، او کله چي ورته دا فتح حاصله سي نو بيا درجې د کمال ته رسيږي، او د ده لار په امن سي او زياته صحي سي، په نسبت د هغه سړي چي قدم يې په علم کي کلک سوی نه وي او دی دغسي په مخه روان وي، تر يوه وخته په باطل خيال کي مبتلی وي او لږ قدر شک او شبهه هم ده ته حجاب (پرده) جوړېږي، په خلاف د عالم چي هغه د داسي خطرونو څخه په امن وي، نو که ته د يو صاحبِ کشف څخه واورې چي علم پرده او حجاب دی نو د دې معنی از ده کول پکار دي نه دا چي د دې څخه انکار وسي، لېکن غير مباح (روا) لره مباح مقرر کوونکي نفس پرسته خلک چي هغه په دې زمانه کي راوتلي دي د دوی دا حال بالکل نه دی دوی د صوفيانو څخه ځيني واهيات خبري اورېدلي دي، د دوی شغل دا دی چي تول ورځ خپل ځانونه پرېولي په لنګ او لباس او ځای نمازونو (مسلو) سره ځان ښايسته کوي د علم او عالمانو بدی بيانوي، دا خلک د قتل قابل دي (يعني درواغجن صوفيان کوم چي د علم او عالمانو بدی وايي) ځکه چي دا خلک د انسانانو شيطانان او د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ دښمنان دي، الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ د علم او علماؤ تعريف کړی دي، او تول جهان ته يې د علم دعوت ورکړی دي، دا بدبختان چي نه "صاحبِ حال" سوي دي او نه دوی علم از ده کړی دي نو دوی ته د علم او عالمانو بدوالی بيانول څنګه جائز دي، او د دغو بدبختو مثال داسي دی لکه چا چي اورېدلي وي چي کېمياء د سرو زرو څخه غوره او بهتره ده ځکه چي په کېمياء سره ډېر سره زر په لاس راځي، او کله چي د سروزرو خزانه ده ته پېش (وړاندي) سي نو دی ور څخه لاس واخلي، او وايي چي سره زر بې کاره دي هيڅ حقيقت يې نسته، ما لره کېمياء پکار ده چي هغه د سرو زرو اصل دی او سره زر نه اخلي او کېمياء يې نه ليدلې وي او نه يې پېژني، داسي سړی د بدبخته کېدلو سره سره به هميشه وږی او مفلس وي، او صرف په دې خبره خوشحالېږي چي کېمياء د سروزرو څخه غوره ده او لوی لوی خبري جوړوي نو ياد ساته! چي د انبياؤ او اولياؤ کشف خو د کېمياء په شول دی او د عالمانو علم د سروزرو په شول دي، او د کېمياء مالک ته د سروزرو پر مالک فوقيت او برتري حاصله ده.

لېکن دلته يوه نکته بله هم سته هغه دا چي که د چا سره دومره کېمياء وي چي د سروزرو د سلو ديناړو څخه زيات شئ ځيني حاصلېدای سي نو داسي سړي ته په هغه سړي هيڅ فضيلت او لوړوالی حاصل نه دي د کوم سره چي د سرو زرو زر... ديناره موجوده دي، او لکه چي د کېمياء کتابونه او

خبري دي، ځکه د دې لټون او تلاش ډېر زيات دی، لېکن په دې زمانه کې د دې حقيقت ډېر کم دی، او زياتره تلاش کوونکي دوکه خوري، دغسې حال د صوفيانو دی، اصل صوفيت د سره ځخه په دې خلګو کې سته نه، ها! کوم چې دې هغه ډېر لږ دي، او دې درجې ته رسېدونکي ډېر کم دي.
نو پوهېدل پکار دي چې کوم څوک لږ صوفي وي هغه ته پر هر عالم فضيلت حاصل نه دی ځکه چې په دوی کې د زياترو حال دا دی چې په ابتداء کې څه خلل پر دوی ښکاره سي نو دغه وخت د دې درجې ځخه راکښته سي، او مقام د کمال ته ونه رسېږي، او ځيني داسې وي چې سودايتوب او کچه فکر او خيال پر دوی غالبه وي چې هغه هيڅ اصل نه لري، او لکه څنګه چې په خوب کې اصل حقيقتونه هم په نظر راځي او وهميات خيالات هم، دغسې د دوی په حال کې هم وي (هر صوفي ته پر هر عالم فضيلت حاصل نه دی ها! کامل صوفي ته پر ظاهري عالم ضرور فضيلت حاصل دی) بلکې پر عالمانو باندې هغه صوفي ته فضيلت حاصل دی کوم چې په دې حال کې داسې کامل او بشپړ سوی وي چې هغه د علم دين سره تعلق لري او د نورو ځخه په ازده کړه باندې حاصل وي، هغه صوفي چې هغه بغير د ازده کړې ځخه په دې علم پوه سي ډېر کم معلومېږي، نو تا لره پکار دي چې د تصوف اصلي لار او د صوفيانو بزرګي ومنې، او د دې زمانې د صوفيانو په سبب د اصلي صوفيانو ځخه بدګمانه نه سې، او په دوی کې چې څوک په علم او د علم پر خاوندانو طعنې (پېغورونه) لګوي نو ته پوه سه! چې دغه ناپوه او ناخبره دي.

## د بنده د سعادت (نېکبختيا) راز

کېدای سي ته به ووايې! چې دا څنګه معلومه سوه چې د بنده د سعادت او نېکبختی راز د الله ﷻ په معرفت (پېژندګلوي) کې دی، نو د دې جواب دا دی چې د بنده د سعادت راز په معرفت الهي کې د کېدلو خبره د دې ځخه معلومېږي چې د هر شئ سعادت په هغه کار کې کې وي په کوم کې چې ده ته خوند (مزه) او آرام نصيب وي، او د هر شئ مزه په هغه کار کې وي کوم ته چې د ده زړه غواړي، او زړه هغه کار غواړي د کوم د پاره چې دغه پيدا سوی وي، لکه د شهوت مزه په دې کې ده چې د بنده آرزو او خواهش پوره سي، او د غصې مزه په دې کې ده چې د دښمن ځخه بدله واخلي، د ستر ګو مزه د ښايسته شيانو په ليدلو کې ده، او د غوږ مزه د ښه او ښايسته آواز په اورېدلو کې ده، او د زړه مزه په هغه کار کې ده کوم چې د زړه خاصيت دی او د کوم د پاره چې الله ﷻ دی پيدا کړی دی، چې هغه د کارونو د حقيقت پېژندل دي ځکه چې دا د زړه خاصه ده لېکن د خواهش او غصې او په پنځه حواسو

سره د محسوساتو پېژندل خو حیواناتو ته هم حاصل دي، او څنګه چې د کارونو د اصل حقیت پېژندل د زړه خاصیت دی، په دې وجه بنده چې په کوم شئ باندي نه پوهیږي د هغه معلومول د ده زړه غواړي او په کوم باندي چې پوه سي په هغه خوشحاله سي فخر په کوي، که دی د نا کاره (خراب) شئ مثلاً د شطرنج د لزده کولو په فکر کي وي او په هغه پوه سي نو دی به د خوشحالی څخه په جامو کي نه ځایږي (یعني ډېر به خوشحاله سي)، ده ته که دا وویل سي چې نورو ته د دې تعلیم مه ورکوه، نو ده ته صبر کول ستونزمن وي، او په دې خوشحالي کي چې د ده یوه عجیبه اوغته لوبه (بازي) ازده ده د هغه د نورو څخه د منع کولو پر ځای به نورو ته د ښوولو کوشش کوي چې د فخر اظهار وکړای سي، او هر کله چې دا خبره معلومه سوه چې د زړه لذت د کار په پېژندو کي دی نو په دې هم پوه سه! چې د کوم شي پوهه حاصله سي دغه شئ چې څومره عظیم او افضل وي دومره به لذت (مزه) زیاته حاصلیږي که یو سړی ته د وزارت د رازونو په پوهېدو خوشحالي حاصلیږي نو ښکاره ده چې که دی د بادشاهت په رازونو پوه سي نو زیات به خوشحاله وي دغه ډول کوم سړی چې د علم هندسه (د حساب علم) په برکت د اسمانونو د هیئت او کیفیت علم لري، هغه به یقیناً د هغه سړي څخه زیات خوشحاله وي کوم چې صرف د شطرنج علم لري، او د شطرنج په باره کي به هم دا درجه مختلفه وي، مثلاً یو سړي ته صرف دومره معلومه وي چې د شطرنج مهر څنګه ایښوول کیږي او بل په دې هم پوه وي چې دا څنګه چلول کیږي نو دې بل ته به خامخا زیاته مزه حاصله وي، او د حق تعالی څخه زیات یو شئ افضل او شریف موجود نه دی ځکه چې د باقي ټولو شیانو شرف د هغه د ذات په سبب دی، او د ټول عالَم اصل حکمران او باچاه هغه دی او په دنیا کي ښکاره کېدونکي ټول عجائب د هغه د قدرت نښي او علامې دي، نو یو معرفت د هغه د معرفت څخه زیات افضل او خوندور نسي کېدای او د نظارې د جمال الهي څخه زیاته یوه نظاره نسي ښایسته کېدای، او د زړه طبعي غوښتنه دا وي، ځکه چې د هر شئ طبعي غوښتنه (تقاضا) هغه خاصیت وي د کوم د پاره چې دی پیدا سوی وي، اوس که یو زړه داسي وي چې په ده کي د دې معرفت تقاضا نه وي پاته سوې، نو د ده مثال د هغه ناجوړی جسم دي چې په هغه کي د خوراک خواهش نه وي پاته سوی او چې هغه ته د خاورو درجه د ډوډۍ څخه زیاته وي، او په علاج کولو سره د ده اشتهاء پرخپل ځای نسي راتلای، او دی په دغه غلط خواهش کي ګرفتار پاته سي، نو پوه سه! چې دغه بدبخته دی او آخر به هلاک سي، دغه ډول هغه سړی چې د هغه په زړه کي د الله ﷻ د معرفت د آرزو او خواهش پر ځای نور خواهشاتو او شهواتو غلبه کړې وي دغه هم مریض او ناجوړه دی، او که د ده علاج ونسي نو هغه د دغې بلې دنیا د پاره بدبخته دی او هلا

کیږي.
د ټولو شهواني لذتونو او محسوساتو تعلق د بنده د جسم سره وي او خامخا د مرګ څخه وروسته دغه ختمیږي او ور سره د دغه خواهشات هم فنا کیږي، لیکن هغه لذت د معرفت د کوم تعلق چي د زړه سره دی دغه په مرګ سره نه ختمیږي بلکي دوچنده زیات سي ځکه چي په مرګ سره د زړه مرګ نه راځي نو په دې وجه په ده کي پر ځای سوی معرفت هم نه مړ کیږي او پرخپل ځای باقاعده پاته وي، بلکي د مخکي څخه زیات روښانه سي، او دا لذت ځکه زیاتیږي چي په ژوند کي خو نور خواهشات د ده د پلر د رحمت باعث وي، هغه هم لیري سي، د دې شرح او تفصیل د دې کتاب په آخر کي به "د محبت د باب" په عنوان سره بیان سي.

## د انسان د باطني اعضاؤ عجائبات

دا وخت د زړه د ګوهر چي کوم حال بیان سو دغه د دې کتاب د پاره کافي دی او که څوک د دې څخه زیات تشریح او تفصیل غواړي هغه دي زموږ بل کتاب "عجائب القلوب" ته رجوع وکړي، (په هغه کي د دې زیاته تشریح ده)، که څه هم په دې دواړو کتابونو سره هم بنده په پوره توګه د ځان پیژندني مقام ته نسي رسیدلای ځکه چي په دغه کي هم د زړه پر بعضو لږو لږ وصفتونو رڼا اچول سوې ده او دا د بنده یو رکن دی، د بنده بل رکن د ده جسم دی او د جسم په پیدایښت کي بې شماره عجائب سته، او د ده په هر اندام کي هغه که ظاهري وي که باطني عجیبه معناوي پټي دي او په هریوه کي عجیبه او نا اشنا حکمتونه پیدا کیږي، د بنده په بدن کي په زرګونو رګونه او پلي او هډوکي دي لیکن د هریو شکل او صورت جلا او صفت یې هم جلا دی او د هریو کار او مقصد هم د جلا نوعیّت دي او (رشتیا خو دا ده) چي ته د دې ټولو څخه بې خبره یې او فقط په دې خبر یې چي لاسونه د شیانو نیولو د پاره دي، پښي د تللو د پاره دي او ژبه د خبرو د پاره ده.
لیکن تاته دا معلومیدل پکار دي چي سترګي په لسو بیلا بیلو پردو کي داسي جوړي سوي دي، چي که په دوی کي یوه هم کمه سي نو په نظر کي به خرابي پیدا سي، او تاته نه ده معلومه چي د هري پردې پیدایښت د کم مقصد د پاره سوی دی؟ او ولي د دې ټولو لیدل د انسان د پاره ممکنه نه دي؟ د سترګي اندازه خو بنکاره ده چي څومره ده، او د سترګو پر علم لوی لوی کتابونه لیکل سوي دي په کومو کي چي د دې شرح او تفصیلات بیان سوی دي، بلکي که تا ته دا اندازه هم نه وي معلومه نو په دې کي د حیرانتیا څه خبره نسته ځکه چي تاته دا هم نه ده معلومه چي ستا دننه اندامونه مثلاً ځیګر،

پښتورگي، توری او تریخی او داسې نور څه شي دي او د کوم مقصد د پاره جوړ کړی سوي دي.
ځیګر (اینه) د دې د پاره ده چي د معدې څخه مختلف ډول خوړل سوي شیان دې ته ورسیږي او دا
ټول یو ډول کړي یعني د وینې په ډول یې جوړ کړي چي د لوو ۰ اندامونو غذا ځیني جوړه سي: (سر،
سینه، ګېډه، دواړه لاسونه او دواړه پښې چي ظاهري اووه اندامونه دي) کله چي وینه په ځیګر کي
تیاره سي نو لاندي خیره ځینې پاته سي دا خیره د سودا رنګ اختیار کړي، د تریخي کار دا دی چي
دغه د ځیګر څخه راکاږي او پر دې باندي چي د کوم ژړ رنګ ماده پیدا کیږي هغې ته صفرا وایي د
توري کار دا دی چي دغه د تریخي څخه راکاږي، وینه چي کله د ځیګر څخه د باندي ووځي نو
نرمه (نری) او بې قوامه وي، او دلته پښتورګي خپل عمل کوي او اوبه د وینې څخه جلا کوي، نو دغه
بغیر د سودا او صفرا څخه قوام جوړ سي، رګونو ته رسیږي، که په توري کي څه نقص پیدا سي نو
صفرا په وینه کي پاته سي او بیا صفراوي مرضونه پیدا کیږي او که په تریخي کي نقصان راسي نو
سودا په وینه کي پاته سي چي سوداوي مرضونه ځیني پیدا کیږي، او که پښتورګی خراب سي نو
په وینه کي اوبه پاته سي چي د دې په سبب د استسقاء ناروغي پیدا کیږي، دغه ډول د انسان ټول
ظاهري او باطني اندامونه الله تعالی د جلا جلا کارنو د پاره پیدا کړی دي چي د دغو څخه بغیر په بدن
کي خلل او خرابي پیدا کیږي، بلکي د بنده بدن که څه هم په ظاهر کي کوچنی دی لیکن په حقیت
کي د ټول جهان د پاره یو مثال دی په دې وجه چي دا کوم څه چي الله ﷻ په ټول جهان کي پیدا کړي
دي د بنده بدن د دې یوه نمونه او مثال دی: هډوکي د غره نمونه، خوَله د باران، وېښته د درختې په مثال
دي، او دماغ د اسمان په ډول دي، او حواس ګواکي ستوري دي، چي د دې تفصیل ډېر اوږد دی بلکي
په جهان کي چي کوم کوم ډول ډول مخلوق سته مثلاً خنزیر، سپی، شرمښ، ښاروی، لېوه، پېرتانو او
فرشتې د دې ټولو مثال د بنده په بدن کي موجود دی او د دې ذکر مخکي سوی دی تر دې چي کوم
کسب ګر (کار او کسب کوونکي) په دې دنیا کي سته د دې ټولو نمونې په انساني جسم کي شتون
لري: کوم قوّت چي په معده کي خوراک هضم کوي، او کوم قوّت چي خالص صفا سوی خوراک
ځیګر ته او فضلات کولمو ته رسوي، نو دغه چاڼ کوونکي او جوس ایستونکی دي، او کوم قوّت
چي غذا (خوراک) په ځیګر کي په وینه بدلوي دغه رنګریز (رنګساز) دی، او کوم قوّت چي وینه د
ښځي سینې ته رسوي شیدې ځیني جوړوي او د سړي خایو (خصییتینو) ته یې رسوي مَنې ځیني
جوړوي دغه دوبی (کالي پرېوونکي) دی او کوم قوّت چي خوراک هر هر اندام او بند ته رسوي دغه
جارو کښ دی، او کوم قوّت چي اوبه د ځیګر څخه راکاږي مثانې ته یې رسوي دغه دڑی (کوزې) په

ډول دي او کوم قوّت چي فضلات د نس څخه د بلنديي باسي دغه د بنګي[1] په ډول دي، او کوم قوّت چي سودا او صفرا د انسان په جسم کي د دې د پاره پيدا کوي چي دی تباه سي، دغه ګواکي مفسد، دوکه باز (چالباز) دي، او کوم قوّت چي صفر او داسي نوري ناروغی ليري کوي دغه ګواکي انصاف داره حاکم دی، او د دې تفصيل هم ډېر اوږد دی، اصلي خبره خو دا ده چي تاته معلومېدل پکار دي چي په تا کي دننه څو ډوله قوّتونه مشغوله دي او ته په خوب بيده د ځان څخه نا خبره يې، حال دا دی چي دغه قوّتونه سمدلاسه پکار لګيا دي او يو هم غافله نه وي، ته نه دا قوّتونه پېژنې او نه د هغه احسان منې کوم چا چي دوی ستا د پاره پيدا کړي دي، که يو سړی خپل نوکر د يوې ورځي د پاره ستا خدمت (چوپړ) ته راواستوي نو ټول عمر به د هغه شکر ادا کوې، او کوم ذات چي په تا کي دننه څو زره کسب ګر ستا د خدمت د پاره مقرر کړي دي کوم چي ستا د خدمت څخه يو ساعت غافله نه وي ته هغه لږ اندازه هم نه يادوې.

دبدن د ترکيب او د انساني اندامونو د نفعو د پوهېدلو نوم "علمِ تشريح" دی او دا ډېرلوی علم دی په مخلوق کي د لوی څخه لوی يې نه پېژني، او څوک چي يې وايي نو د دې د پاره يې وايي چي په علم طب کي استاد سي، پاته سو علم طب نو ګواکي دغه خو مختصر او بې حقيقته دی لېکن د دې حاجت په هر حال سته که څه هم د دين سره د ده هيڅ تعلق نسته، ها! که يو سړی د الله تعالی د عجيبه عجيبه صنعتونو د ليدلو په موخه د دې علم مطالعه کوي نو ده ته به د الله تعالی په صفتونو کي درې صفتونه خو خامخا معلومېږي: يو خو دا چي د دې قالب (غالب يعني بدن) جوړونکی او د دې جسم پيدا کوونکی دومره د قدرت خاوند دی چي د ده په قدرت کي د نقصان لږ شبهه هم نسته، او عاجزي ده ته نژدې هم نه سي ورتلای هغه چي څه غواړي کولای سي، او په دنيا کي د دې څخه زيات څه عجيبه نسته چي د يوې قطرې اوبو څخه داسي جسم پيدا کوي او کوم چي پر دې اعجوبه (عجيبه شئ) باندي قادر وي هغه د مړک څخه وروسته پر ژوندي کولو باندي هم قادر دی.

دويم صفت به دا معلوم سي چي هغه لوی خالق داسي عالم دی چي د ده علم ټولو د اشياؤ احاطه کوونکي دی چي دا عجائبات د خپلو عجيبه او نا اشنا حکمتونو سره د کمال علم څخه بغير ممکن نه دي.

دريم صفت به دا معلوم سي چي د الله مهرباني او لطف او رحمت په خپلو بندګانو بې حسابه او بې

[1] ګندګی صفا کوونکی مزدور چي په عامه اصطلاح بنګي ورته وايي.

اندلزې دی، ځکه چي بنده ته د کوم کوم شئ ضرورت وو هغه يې پيدا کړل ځيګر، زړه، دماغ د حيوان اصل دي دغه يې هم انسان ته ورکړل، او ځيني شيان داسي دي د کومو ضروورت چي نه وو فقط حاجت دي، مثلاً لاسونه، پښې، ژبه دغه يې هم ورکړل، او ځيني شيان بيا داسي دي چي د هغه نه ضرورت وو نه حاجت، خو د زينت داروملار وو هغه يې هم ورکړل، مثلاً د وېښتانو توروالی د شونډو سوروالی د ورځو (وريزو) نښه (ليکه) د سترګو او بانوګانو برابروالی، دا ټول شيان صرف د دې د پاره ورکړل چي په دې سره بنده زيات ښايسته سي او دا لطف او مهرباني صرف د بنده سره خاص نه دي بلکي د ټول مخلوقات سره خاص دي تر دې چي؛ د عسلو مچمچي او علمو مچانو ته هم چي د کومو شيانو ضرورت وو ورېي کړل او د دوی ظاهري صورت يې په ښو ښو نقشونو سره ښايسته کړی او تر څو پوري چي د بنده د پيدايښت تعلق دی دغه په تفصيل په پوره غور سره کتل د الله تعالی د صفاتو د پېژندو چابي (کيلي) ده په دې وجه د علم تشريح ډېر عظمت ستم، د دې د پاره نه چي يو طبيب ته د دې حاجت دی، او شعر، تصنيف او يو صنعت چي څومره زيات ښه وپېژني دومره به د شاعر مصنف او صانع د عظمت زيات قائل (لا رښوونکي) سي، دغه ډول د الله ﷻ عجيبه عجيبه صنعتونه د دې باکماله صانع د عظمت او پېژندو چابي ده، او دا علم طب هم د معرفت د نفس لاره ده، لېکن معلومېدل پکار دي چي دا علم د زړه د علم په مقابله کي مختصر او محدود دي ځکه چي دا د بدن علم دی، علم د زړه نه دی، او د بدن حيثيت د سپرلي (سورلي) دي او زړه د سپور په شان دی او د کائناتو د پيدايښت مقصود سپور دی نه دا چي سپرلی، ځکه چي سپرلی د سپور د پاره دي نه چي سپور د سپرلي د پاره، لېکن د بدن په باره کي دومره ښوول په هرحال کي ضرور دي چي معلومه سي چي دومره په آسانی سره خپل ځان پېژندل ممکنه نه دي، او دا په دې وجه هم ضروري ده چي ستا په نسبت تا ته د ځان څخه بل يو شئ دومره زيات نژدې نسته او ستا په ذات کي ستا بدن په هرحال شامل دي، او څوک چي خپل ځان نه پېژني او د نورو د پېژندلو دعوی کوي، نو د ده مثال د هغه مفلس دي کوم ته چي د ځان د خوراک د پاره خو يوه ټکړه نه رسيږي لېکن دعوی کوي چي د ښار ټول فقيران د ده په ډوډۍ ژوند تېروي، او دا خبره ډېره عجيبه او بدنمايه هم ده.

## د زړه فضيلت

د زړه د برتری او بزرګی په اړه چي هر کله په دومره څه پوه سولې! نو دا هم ياد ساته! چي دا ناياېه ګوهر (ملغلره) تا ته در کړل سوی دي لېکن ستا څخه پټ اېښوول سوی دي که ته د ده طلب نه کوې او

دغسې يې ضايع کوي نو ګواکي خپل ځان ته نه جوړېدونکي تاوان رسوي، کوشش دا وکړه چي ستا زړه تا ته حاصل سي او ته دې د دنيا د ګندګيو (چټلتياوو) څخه راوباسې، او دې خپلې صحيح درجې ته ورسوې (چي پخپله ستا شرف او عزت هم په دې کي دی) چي په هغه جهان کي در ته شرافت او عزت حاصل سي او د غم او پرېشانۍ يو خطره بيا نه وي، او هغه معرفت در ته حاصل سي چي د شک او ګمان هيڅ شبهه پکښې نه وي، او په دې جهان کي د زړه د بزرګی دارومدار په دې خبره کي دي چي په انسان کي دومره استعداد او قابليت پيدا سي چي د حقيقي عزت او شرافت پيدا کېدلو اهل او لايق سي، کنې هسې خو د بنده څخه زيات ناقصه او بې چاره، بې وسه او عاجزه شوک کېدلای سي، چي يو ځای د ګرمی او يخ د لاسه تنګ دی او بل ځای د ناروغی او غم او فکرونو د لاسه مجبوره دی، او بيا چي په کومو شيانو کي دی زيات لذت او راحت محسوسوي هغه ده ته زيات د نقصان باعث دي، او حقيقي نفع خو په تکليف پورته کولو کي لاس ته راځي، نو غوره هغه دی کوم چي عالم وي ځکه چي د انسان شرف، فضيلت او عزت په علم کي دی يا په قدرت او قوت يا په همت او ارادې سره يا په مال او صورت سره، او د انسان د علم طرف ته که وکتل سي نو تر ده غټ جاهل بل هيڅ شوک نسته ځکه چي د ده په دماغ کي که يو رګ خراب سي نو هلاکت يا لږ تر لږه د لېونتوب خطره پيدا کېږي، ده ته بغير د علم څخه دا نه معلومېږي چي په دې صورت کي اوس دی څه وکړي او د کوم ځای څخه د دې علاج وکړي، او داهم کېدای سي چي د ده علاج د ده په مخکي کي کېږي او دی دغه وينې بيا هم په څه نه پوهېږي چي څه کولای سي، دغه ډول که د ده قدرت او قوت ته نظر وکړو نو د ده څخه زيات عاجزه او بې وسه شوک دی؟ چي د يو مچ مقابله هم نسي کولای او که يوه غوماشه هم پر ده مسلطه سي نو د دې د لاسه هلا کېږي، او يوه غالبوزه چي نېښ په جګ کړي نو بې هو ښه کېږي نو د ده څخه زيات کمزوری شوک سو؟ دغسې د ده همت ته وګوره نو معلومه به سي چي د يوې روپۍ په تاوان به د ده حالت بدل سي او د خوراک په حالت کي چي لږه وي نو د يوې ګولې په کمېدو بې هو ښه کېږي نو د ده څخه زيات خسيس شوک دی؟ او که په حسن او صورت يې نظر واچوو نو بس يو پوستکی او ډانچه ده چي ښايسته پوښ ورافوستل سوی دی، او که دوې ورځې يې د پرېولو څخه غافله سي نو داسې بدصورته او منحوس ښکاري چي د ځان څخه يې بيا نفرت کېږي، او که هغه ګندګی کومه چي په ده کي پټه ده ښکاره سي نو معلومه به سي چي د دې څخه زيات نا کاره (خراب) او ګنده شئ خو بالکل نسته، نو د ده اصل جمال دا دی چي خپل ځان پاک صاف ساتي او په ورځ کي لږ تر لږه دوه واره غسل کوي، ځان پرېولي، خپل ښايست خوندي

ساتي.

**قصه**: یو وار شیخ ابو سعید د صوفیانو دیو تولی سره یو ځای روان وو چي پر یو داسي ځای راغلل چي هلته دیو ګنده (چټل) شئ صفایي کېدله، او ګندګی یې یو طرف ته لیري کېدله. ټول صوفیان یودم ودرېدل، پزې یې بندې کړې هاخوا دې خواته یې وځغستل، لیکن شیخ هلته ولاړ وو او ویې ویل: ای صوفیانو! واورئ چي دا نجاست موږ ته څه وایي؟ هغوی پوښتنه وکړه چي څه وایي؟ ویې وفرمایل: دا وایي: چي زه پرون په بازار کي وم تاسو خلکو زما د حاصلولو د پاره خپل جیبونه خلاص کړي وو روپۍ یې خرڅولې، بیا زه یوه شپه ستاسو سره پاتي سوم نو دې حالت ته راورسېدم چي اوس خلک زما څخه تښتي، اوس خو ما ته پکار دي چي ستاسو خلکو څخه وتښتم، ځکه چي ستاسو تیښته زما څخه عجیبه خبره ده.

او حقیقت هم دا دی لکه چي شیخ بیان کړه، ځکه چي په دې دنیا کي د بنده څخه زیات ناقص عاجز او ناکس هیڅ شئ نسته، او صباد قیامت بازار ته هم دی تلونکي دي هلته که د ده سره دغه ګوهر دزړه موجود وي کوم چي یې په کیمیاء د سعادت سره صفا کړی وي نو دی کامیاب کیدای سي او د ځارویانو د درجې څخه د فرشتو درجې ته رسیدلای سي، لیکن که په دې دنیا کي مشغول پاته سي او د دنیا په شهوت او حرص (لالچ) کي اخته سي نو صبابه د ده حال د سپی خنزیر او نورو حیوانانو څخه بدتر وي، بلکي هغوی به د ده څخه زیات افضله وي، ځکه چي هغه خو به مړه سي خاوري به سي او د قیامت د بازار د غم څخه به خلاص سي او دی به په عذاب کي مبتلاوي، نو بنده ته پکار دي چي خپل شرف، برتري او فضیلت وپېژني او دې سره سره خپله ناچاري او عاجزي هم وپېژني چي د حق تعالی د معرفت د چابیانو څخه یوه چابي دا هم ده، او د ځان پېژندلو په باره کي چي دا څه وویل سوه دا کافي دي، ځکه چي په دې کتاب کي د دې څخه د زیاتو ګنجائش نسته.

## دویم عنوان: د الله تعالی د پېژندلو په بیان کي

پوه سه! چي حق تعالی تېرو پیغمبرانو ته په کتابونو کي داسي فرمایلي دي اِعْرِفْ نَفْسَکَ تَعْرِفْ رَبَّکَ (خپل ځان وپېژنه! چي رب العزت وپېژني!) او په احادیثو او آثارو کي هم مشهوره ده چي: مَنْ عَرَفَ نَفْسَهُ فَقَدْ عَرَفَ رَبَّهُ (تحقیق چا چي خپل ځان وپېژندی ده خپل رب وپېژندی) او دا کلمې د دې خبرې روښانه دلیل دی چي د بنده نفس یو هینداره ده چي څوک په دې کي وګوري هغه

خپل رب ويني ليکن خلک سره د دې چې خپل ځان ته ګوري هم خو الله ﷻ نه ويني، نو لازمه ده چې دی د نفس هيندارې ته وګوري نو داسې دې ګوري چې دا په اصل کې د الله تعالی د پيژندو هينداره هم ده او د دې دوې طريقې کېدای سي:

(۱) يو خو ډېره ستونزمنه او ګرانه ده چې عوام خلک په هغه نه پوهيږي او نه يې ازده کولای سي او په کوم شئ چې عام خلک نه پوهيږي د هغې بيانول هم مناسب نه دي.

(۲) ليکن يو بل صورت هم دی چې هر سړی په پوهيږي او هغه دا چې بنده په خپله هستی سره د الله ﷻ ذات وپيژني، او پخپلو صفتونو سره د حق ﷻ صفتونه وپيژني، او خپل سلطنت يعني پخپل بدن او اندامونو کي چې بنده ته کوم تصرف او اختيار دی په دې سره هغه تصرف وپيژني کوم چې الله ﷻ ته په ټول جهان کي حاصل دی، او د دې تفصيل دا دی چې بنده په دې خبره پوه سي چې زه مخکي هيڅ نه ووم او اوس يو څه يم يعني مخکي "نيست" وم اوس "هست" يم، او دا خبره الله تعالی فرمايي: هَلۡ أَتَىٰ عَلَى ٱلۡإِنسَٰنِ حِينٞ مِّنَ ٱلدَّهۡرِ لَمۡ يَكُن شَيۡـٔٗا مَّذۡكُورًا ۝ إِنَّا خَلَقۡنَا ٱلۡإِنسَٰنَ مِن نُّطۡفَةٍ أَمۡشَاجٖ نَّبۡتَلِيهِ فَجَعَلۡنَٰهُ سَمِيعَۢا بَصِيرًا ۝ ژباړه: بې شکه پر انسان په زمانه کي داسې وخت هم وو چې دی هيڅ هم نه وو چې ذکريې سوی وای، موږ دی د مخلوط نطفې څخه پيدا کړی داسې چې دی مکلف جوړ کړو (يعني په ده امتحان وکړو) نو دی مو اورېدونکی او ليدونکی جوړ کړی.

او هغه شئ په کوم سره چې انسان خپل اصل پيدايښت ته رسيږي چې زما اصليت څه شئ دی؟ دا چې دغه د ګنده (چټلو) اوبو يو څاڅکی دی، چې په دې کي عقل، غوږونه، سترګي، سر، لاسونه، پښې، ژبه رګونه، پلې، هډوکي او پوست هيڅ هم نه وو، بلکي دغه يو ډول سپيني اوبه وې، نو دا دومره عجائبات چې په دې کي پيدا سو نو آيا دا د ځانه پيدا سو، که چا پيدا کړه؟ او بيا دا هم سوچ وکړي چې اوس چې دی هر کله درجې د کمال ته رسېدلی دی نو هم په ده کي دومره قدرت نسته چې د يوه ويښته په اندازه پيدا کړي، نو بيا هغه وخت کله چې دی صرف د اوبو يوه قطره وه او تر دې لا زيات ناقص او عاجزه وو نو څنګه د ځانه څخه په وجود کي راتلای سي نو دغه ډول چې پخپل وجود کي په راتلو غور وکړی نو ده ته به د خپل پيدا کوونکي د هستی په باره کي معلومه سي او هر کله چې د خپل بدن په عجائباتو ته نظر وکړي او د بدن ټولو ظاهري او باطني اعضاؤ ته وګوري نو لکه

څنګه چي مخکي بیان سوی دي د خپل پیدا کوونکي قدرت به پخپله ده ته ښکاره سي او دی به ښه پوه سي چي د هغه قدرت کامل دی او هغه چي څه غواړي کوي یې، او څه چي څنګه غواړي پیدا کولای سي ځکه چي د دې څخه زیات کمال قدرت کم شئ کېدلای سي چي د اوبو د یوه څاڅکي څخه څنګه ډول ډول صورتونه ښایسته او ښکلي شکلونه او په عجائباتو د زماني کي شمار بدونکي ښایسته او ښکلي څېرې پیدا کړي دي، دغه ډول انسان که د خپلو عجیبو صفتونو او اندامونو پر کتو باندي سوچ وکړي چي هر یو یې څومره په اندازه او ښایست سره جوړ کړی دي او سوچ وکړي چي د هر یو په پیدایښت کي څه حکمت پټ دی؟ یعني پخپلو ظاهري اندامونو مثلاً لاسونو پښو ژبه سترګي، غاښونو او نورو، او باطني اندامونو یعني ځیګر، پښتورګي، توری، تریخی او داسي نورو سره د خپل د پیداکوونکي علم وپېژني، چي هغه انتهائي کامل دی او په هر شئ باندي محیط دی او پوه به سي چي د دومره لوی دنیا څخه هیڅ شئ هم د الله ﷻ څخه نسي غائب کېدلای، که د ټولي دنیا عاقلان راجمع کړای سي او دوی ته اوږده عمرونه ورکړل سي، او بیا دغه ټول په جمع او اتفاق سره غور اوفکر وکړي چي په دې ټولو اندامونو کي یو اندام په یو بله طریقه سره پیدا کړي چي د موجوده (اوسنۍ) طریقې څخه غوره وي نو دغه به هیڅ کله داسي ونه کړای سي، مثلاً غاښونه په بله طریقه سره جوړ کړی نو نه یې سي جوړولی ځکه چي غاښونه داسي جوړ سوي دي چي د مخ د غاښونو سرونه تېره دي چي خوراک پرېکړي، او دا نور یې هوار جوړ کړی دي چي شیان میده کړي او په مینځ کي ژبه ده چي د دغو میده کونکو غاښونو ژرندي ته خوراکي شیان ور مخ ته کړي، او بیا تر ژبه لاندي لعاب (لاړي) دي چي د دغه میده کړل سوي شیانو څخه د خمیرې ډول جوړ کړي او د ضرورت په اندازه په مناسب وخت کي یې دومره لندوی چي په آسانې سره تر حلق (ستوني) تېر سي، او په حلق کي پاته نسي، ټول عاقلان که جمع سي نو د دې څخه غوره لا څه ! د دې برابر او مثل هم نسي جوړولای، دغه ډول لاسونه دي چي پر پنځه پنځه ګوتو مشتمل دي څلور ګوتې په یو صورت او صفت او غټه ګوته د دوی څخه لیري ده. او په اوږدوالی د دوی څخه کوچنی ده، ځکه چي په دوی کي د هري یوې سره مدد وکړي او د هري یوې سره یو ځای سي او شیان ونیسي، او په هره ګوته کي درې درې بندونه او په غټه ګوته کي دوه بندونه ظاهر دي، چي که وغواړي نو د اوبو را پورته کولو ځای ځیني جوړوي او داسي نور، او چي بند یې کړی نو د وهلو سوک ځیني جوړ کړي او که وغواړي نو موټ وغزوي د پلېټ (غاب) کار ځیني اخلي، او دغه ډول نور ډېر کارونه ځیني اخیستی سي، که د دنیا ټول عاقلان را جمع شي سوچ او فکر وکړي چي یو بل صورت دوی ته ور کړي مثلاً

گوتې داسې جوړې کړې چې د ټولو يو شکل سي، يا دې يو طرف ته او دوې بل طرف ته سې، يا د پنځو څخه شپږ جوړې کړې يا يې څلور کړې يا يې بندونه د دريو پر ځای دوه دوه کړي يا يې څلور څلور کړی مطلب دا که هر څنګه سوچ کوې يا هر څنګه چې غواړې دغه به ټول ناقص وي، کامل او بشپړ به هغه وي کوم چې الله ﷻ جوړې کړې دي، نو ثابته سوه چې علم الهي پر ټولو باندې محيط دي او داواحد ذات په هر شئ باندې خبرداره دی، او د بنده په هر اندام کې داسې داسې حکمتونه او مصلحتونه پټ دي چې کوم سړی د دوی په اړه هر څومره زيات معلومات لري دومره د ده حيرانتيا زياتيږي او د ده په عظيم علم باندې لالهانده(حيران) پاته کيږي.

او بيا چې کله بنده خپلو اړتياوو ته وګوري نو اول د خپلو اندامونو اړتياوې(حاجتونه) ويني، او د خوراک، څښاک، ځای سره د باران، يخ او ګرمی د ضرورت احساس ورته کيږي، نو د هغه صنعتونه ورته ياد سي کوم چې دا ټول شيان د ده د پاره جوړ کړی دي يعني د ده د پاره يې اوسپنه، ژړ، کيلټ، سرپ (يو ډول فلز دی)، لرګي او داسې نور هر څه پيدا کړی دي، بيا چې دې آلاتو ته وګوري نو يقيناً دا سوچ به کوي چې د دې د جوړولو او په استعمال کې د راوستولو د پاره څه تدبيرونه اختيار کړي، او د دې سره به دی داهم محسوسوي چې دا ټول بنايسته شيان کوم چې ده په خپله د نورو شيانو څخه جوړ کړي دي نو آخر چې دا څنګه؟ يقيناً ځکه چې لوی څښتن الله ﷻ ده ته دا هر څه ور کړي دي، که الله ﷻ دا ټول شيان نه وای پيدا کړي نو نه به چا ته دغه شيان په لاس ورتلای او نه به ده دا سوچ کولای چې نور شيان څنګه ځيني جوړ کړي؟ غرض دا چې په پوهه يا په ناپوهی سره چې ده وکړل دغه يې د الله تعالی په فضل او مهربانۍ سره وکړل، نو دی په خپل هر تخليق کې هم د خالق حقيقي صنعت او قدرت جلوه ګر ويني او د هغه رحمت ده ته په هر شئ کې جاري او ساري په نظر راځي، (او دا نکته د ده په سوچ کې راځي چې ټول کائنات او د دې کائنات ټول مخلوقات د د الله ﷻ د قدرت نښه او علامه ده) د دې څخه د دغه بل صفت علم هم کېدای سي په کوم سره چې د الله ﷻ د ټولو اوليانو ژوند ټړل سوی دي، او هغه په هر شئ کې د الله ﷻ رحمت، لطف، فضل او عنايت کتل دي، لکه چې الله ﷻ فرماي: سَبَقَتْ رَحْمَتِيْ عَلَى غَضَبِيْ (زما رحمت زما پرغضب مخکی دی)او لکه څنګه چې نبی کريم ﷺ فرمايلي دي: "چې پر بندګانو د الله ﷻ شفقت د مور پرخپل شيرخواره بچی د شفقت څخه زيات دی" نو خپل ذات ته په کتلو سره د هستی د ذات واجب الوجود ليدل هم ممکن دي او د خپلو اجزاؤ او اعضاؤ په تفصيل سره خبرداری حاصلول ګواکي د قدرت الهي د کمال

په تفصیل سره خبرداري حاصلول دي او د خپلو جسماني اندامونو عجائباتو او نفعو کي د الله ﷻ د علم کمال لیدل کیږي، او دې ټولو ته په مجموعي توګه په کتلو سره هغه که د ضرورت په وجه وي یا د حاجت یا د ښایست او زینت په سلسله کي چي کوم ده د ځان د پاره وضع کړی وي انسان لطف الهي او رحمتِ الهي لیدلای سي، نو دا سبب دي چي د خپل نفس معرفت د الله د معرفت د پاره چلې ده.

## د الله ﷻ د تقدیس او تنزیه بیان

هر کله چي تا پخپلو صفتونو سره د حق تعالی صفتونه وپېژندل او پخپل ذات سره دي د حق ذات وپېژندی، نو د هغه تنزیه او تقدیس هم پخپله تنزیه او تقدیس سره د پېژندو کوشش وکړه، ځکه چي د الله ﷻ تنزیه او تقدیس دا دی چي دغه پاک او مقدّس دی، او څه چي هم زموږ په وهم او ګمان کي راځي د هغه څخه لوړ او بلاتر دي، ده ته د یو ځای سره نسبت نسي ورکول کېدای، حال دا دی یو داسي نسته کوم چي د ده د تصرف څخه خالي وي، او دغه شئ انسان ته پخپل ځان کي هم ښکاره کېدای سي، چي د ده روح دی کوم ته چي موږ زړه وایو دغه هم د دې ټول وهم او خیال څخه منزّه او پاک دی، کوم چي زموږ په ذهن کي راتلای سي، لکه چي موږ دا ویلای سو چي د ده د مقدار یاوزن یا کیفیت او نورو هیڅ علم او اندازه نسته، نه دی تقسیم کېدای سي او نه د ده یو رنګ سته، او د کوم شئ چي رنګ او مقدار نه وي هغه په هیڅ حالت کي هم په خیال او تصور کي نسي راتلای ځکه چي په خیال کي هم هغه شئ راتلای سي کوم چي په سترګو لیدل کیږي یا لږ تر لږه د ده یو هَمْ جنسه شئ لیدل سوی وي، او د اقسامو یا اشکالو څخه ما سوا د سترګو یا خیال په وطن (مملکت) کي هیڅ شئ نسي راتلای، او دا چي کومه د طبیعت تقاضا ده چي دا معلومه کړی چي فلانی شئ څنګه دي؟ نو د دې معنی دا ده چي د هغه شکل څنګه دی؟ کوچنی کي که غټ؟ نو بیا هغه شئ په کوم چي دا صفتونه (رنګ، شکل اونور) نه پیدا کیږي، د هغه په باره کي دا سوال کول چي هغه څنګه دي یو باطل سوال دي، او که ته غواړې چي دا معلومه کړې چي آخر هغه کوم داسي شئ دي د کوم په باره کي چي دا پوښتنه نسي کېدای چي هغه څنګه دی (نو لیري مه زه) پخپله خپل حقیقت ته وګوره! چي ستا حقیقت (یعني ستا روح یا زړه) کوم چي ځای د معرفت دی پخپله تقسیم نه قبلوي د ده یو مقدار نسته او څه اندازه نه لري، "کمیّت یا کیفیّت" یعني رنګ او شکل ته په ده کي هیڅ دخل نسته، او که یو څوک پوښتنه وکړي چي روح څه شئ دی؟ نو جواب یې فقط دا دی چي

څومروالی یا څنګه والی ته په ده کي دخل نسته، نو هر کله چي تا دا صفت پخپله پخپل ځان کي موجود ولیدی، نو بیا په حق تعالی کي خو دا صفت د تقلیس اولیٰ تر دي، او کوم خلک چي په دې خبره تعجب وکړي چي بېله د څنګه والی او څرنګوالی څخه هغه څنګه موجود دی نو ګواکي دوی ته د سره څخه معلومه نه ده چي دوی پخپله دا صفت هم پخپل ځان کي (د زړه په صورت کي) لري، مطلب دا سو چي خپل ځان نه پېژني، نو حق تعالی به څنګه وپېژني، حال دا دی چي بنده پخپل جسم کي که هم تلاش وکړی (زړه خو زړه دی) نو په زرګونو داسي شیان به ووېني چي د بېله څنګه والی او بېله څرنګوالی اطلاق به پر دوی هم کیږي، مثلاً په ده کي غصه ده او درد دی، عشق دی، لذت دی، که دی وغواړي چي د دوی څنګه والی، څرنګوالی، شکل صورت، رنګ او مقدار او نور معلوم کړی نو داسي نسي کولای ځکه چي د دې تولو شیانو یو شکل یا رنګ او نور د سره څخه سته نه، دغه ټول که یو سړی د آواز یا بوی یا د دود حقیقت شکل او رنګ یا مقدار او اندازه اونور معلومول غواړي نو ځیني عاجزه به سي، او وجه یې هغه ده چي څنګه والی او څرنګوالی خو د خیال تقاضا ده کومه چي د سترګو په لیدو سره ځایېدای سي او دی په هر شئ کي د سترګو د حصې تلاش کوونکی دی، او دا سوچ نه کوي چي د سترګو په ټول زمونږ غوږونه هم دي او لکه څنګه چي د غوږونو حصه یعني آواز د سترګو حصه کېدای نسي او د سترګو حصه لیدل د غوږونو حصه کیدای نسي او د څنګه والی او څرنګوالی سوال دلته هم نه پیدا کیږي، نو بیا د څنګه والی او څرنګوالی سوال د حق تعالی په باره کي کول څه ضرور دي؟.

نو څه چي په زړه سره محسوسیږي او په عقل پېژندل کیږي دغه هم ټول د حواس خمسه د نصیب څخه لوړ دي، او د څنګه او څرنګوالي تعلق فقط د محسوساتو سره دی چي تعلق یې د حواس خمسه سره دی، پر دې خبره د څېړني او غور او فکر ضرورت سته چي تفصیل یې موږ د معقولاتو په کتابو کي کړی دی، او په دې کتاب کي دومره اندازه کافي دي، او دلته مقصود فقط دا ښوول دي چي بنده ته د خپل بې څنګه والی او بې څرنګوالی په ذریعه د الله ﷻ بې څنګه والی او څرنګوالی پېژندل پکار دي، او دا پېژندل ده لره پکار دي چي لکه څنګه چي روح (زړه) موجود دی او پر جسم باندي باچاه دی او په جسم کي چي د څنګه او څرنګه والا څومره شیان دي، ټول د ده په حکمت او باچاهي کي شامل دي حال دا دی چي دی پخپله بې څنګه او بې څه رنګه دی، دغه ډول باچاه او حکمران د عالم هم دی چي پخپله بې چون او بې چګون (بې څنګه او څرنګه) دی او ټول محسوسات د ده په حکومت

کې دي.

دویم قسم د هغه د تنزیه دا دی چې ده ته د یو ځای سره نسبت نسي ورکول کېدای او دا خبره پخپله په روح کې سته چې ده ته د جسم د یوې برخې سره ځانګړی نسبت نسي ورکول کېدای (ځکه چې دی خو په ټول جسم کې وي) یعني دا نه سي ویل کېدای چې روح په لاسو کې دي یا پښو کې یا په سر کې یا په بل یو اندام کې، بلکې ټول اندامونه د بدن تقسیم قبلوي (یعني چې پرې کړل سي نو سر، جلا جلا کیږي) او روح تقسیم نه قبلوي، او د نه تقسیمدونکي تقسیمدونکي کېدل محاله دي، ځکه چې په دې صورت کې به دی هم تقسیم قبلوونکی سي (یعني چې جسم ټوټې ټوټې سي نو روح به هم ټوټې سي او دا نسي کېدای هغه خو په یو وخت کې په ټوله بدن کې وي یا نه وي) کنې بیا دا صورت کېدلی سي چې ده ته د یو اندام سره نسبت ورنه کړل سي، حال دا دی چې یو اندام د ده د تصرف څخه خالي هم نه دی، ځکه چې ټول اندامونه د ده په قبضه کې دي او د ده په حکم کې دي. او دی بیله شکه پر دوی باندې باچاه دی، دغه دول ټوله دنیا، د دنیا د باچاه په تصرف کې ده لېکن د دې سره سره د یو خاص مقام سره د ده نسبت نسته، او هغه د دې نسبت او اضافت څخه بالکل منزّه ومُبرأ او پاک دی. او د دې دول د هري نوعې تقدیس او تنزیه هغه وخت پوره ښکاره کېدای سي چې د روح خاصیت او پټ راز صفا صفا بیان کړي، او د دې اجازت نسته. بیا هم فقط په دې بیان سره ټوله خبره واضح کیږي چې: " إِنَّ اللّٰهَ خَلَقَ اٰدَمَ عَلٰى صُوْرَتِهٖ " (چې الله ﷻ آدم ﷺ پخپل صورت پیدا کړی دی) والله اعلم.

## د لوی ښتن الله ﷻ حکومت

هر کله چې د الله ﷻ د پاک ذات معرفت نصیب سو، او را ته معلوم سو، او دا هم معلومه سوه چې د ده صفات هم بیله څنګه والی او بیله څرنګوالی څخه دي او دا چې هغه د یو ځای سره نسبت هم نه لري، او دا هم معلومه سوه چې معرفت د نفس د حق تعالی د معرفت چابي ده نو اوس یوه خبره باقي پاته ده او هغه دا چې پخپل سلطنت او حکومت کې د الله ﷻ باچاهي څنګه ده؟ او د دې باچاهی نظام څه دی؟ یعني د ده فرشتو ته حکم ورکول، د فرشتو دغه پیغام ورل، او د فرشتو په لاسو کې کار ورکول، د اسمانونو څخه په ځمکه کې احکام صادرول، اسمانونو او ستوری په حرکت کې راوستل، د ځمکې والا کارونه د اسمانونو سره تړل او د رزق چابي (کیلیانې) اسمانو نو ته حواله کول او داسي نور، آخر دا هر څه څنګه دي او څنګه کیږي؟ او دا یو عظیم الشانه باب دی د الله تعالی په معرفت کې، او دې ته

"معرفت د افعالو" وايي، لکه چي د دې څخه مخکي معرفت ته "معرفت د صفاتو" ويل کېږي (چي ذکر يې وسو).

او د دې معرفت چابي هم معرفت د نفس دی، او ته چي تر څو پوري داونه پېژني چي پخپله د خپل نفس په مملکت(وطن) کي ته څنګه باچاهي کوې نو په دې هيڅ کله هم نه سې پوهېدای چي باچاه د عالَم څنګه باچاهي (حکمراني) کوي ؟ اول خپل ځان وپېژنه او خپل يو يو فعل وپېژنه مثلاً کله چي ته غواړې چي پر کاغذ بسم الله وليکې، نو اول رغبت او اراده ستا په زړه کي پيدا سي، بيا په زړه کي حرکت او ښوروښ پيدا سي، دا ظاهري زړه کوم چي دغوښي څخه جوړ دی او چپه طرف ته دی، په دې کي حرکت نه وي بلکي د زړه څخه يو لطيف جسم حرکت کوي دماغ ته ځي، دغه لطيف جسم ته طبيبان روح وايي کوم چي د احساس او حرکت قوّتونه راپورته کوي ګرځي، دا روح يو مختلف شئ دی کوم چي په څارويانو کي هم سته او مرګ ته په دې کي دخل سته، او هغه روح کوم ته چي موږ زړه وايو دغه مختلف شئ دی دغه په څارويانو کي نه وي، او دا روح چيري هم نه مړ کېږي، ځکه چي دا د معرفت د حق ځای دی، دا روح حرکت کوي او کله چي دماغ ته ورسيږي نو د دماغ په اوله خزانه کي کوم چي د قوّت خيال ځای دی، د بسم الله صورت پيدا کيږي، او د دماغ څخه پلو ته اثر ورسيږي (يعني اعصابو ته اَثر ورسيږي) ځکه چي د دماغ څخه دغه اثر په ټولو اندامونو کي خورېږي، او څنګه چي ګوتي هم په دې اندامونو کي شاملي دي نو دوی ته هم دا اثر ورسيږي، دغه اعصاب (پلې) د کمزوری سری په لاسونو کي ليدل کيږي کوم چي د تار او رسۍ په ډول ګوتو ته رسيدلي وي، مطلب دا چي د دې اعصابو په اثر سره دا ګوتي حرکت کوي او بيا ګوتي قلم ته حرکت ورکوي د بسم الله صورت کوم چي د دماغ په اوله خزانه کي موجوده وو پر کاغذ ښکاره کيږي، په دې کې د حواسو مدد شامله وي، په ځانګړې توګه د سترګو ځکه چي په دې سلسله کي د دوی حاجت زيات محسوسيږي، نو لکه څنګه چي اول دا کار د رغبت سره متعلق دی کوم چي په انسان کي پيدا کيږي دغه ډول د الله ﷻ د ټولو کارونو ابتداء او شروع د هغه په صفاتو عاليه وو کي يو صفت دی چي د باري تعالی اراده ورته ويل کيږي، نو لکه څنګه يې د ليکلو د ارادې اثر اول ستا په زړه کي کيږي بيا د زړه په واسطه سره بل ځای ته رسيږي، دغه ډول د الله د ارادې اثر اوّل خو پر عرش پيدا کيږي بيا نورو مقاماتو ته رسيږي، او لکه څنګه چي جسم لطيف د هوا په شان د زړه د رګونو دلاري څخه دا اثر دماغ ته رسوي او دغه جسم لطيف ته روح وايي دغه ډول د حق تعالی جوهر لطيف دا اثر د عرش څخه کرسی ته رسوي او دې جوهر ته فرشته او روح او روح القدس هم وايي (فرشتو ته

په دې وجه روحانیان هم وایي) او څنګه چې د دې اثر د زړه څخه دماغ ته ځي او دماغ د ده په قبضه کې دی، دغه ډول د هغه په ولایت کې د عرش الهي څخه دغه اثر کرسی ته ځي، او لکه څنګه چې صورت د بسم الله چې لیکل یې ستا مطلب دی او کوم چې ستا فعل متصوّر کیږي د دماغ د خزانه لوّل څخه ظاهرېږي او د دې مطابق ستا فعل د لیکلو ښکاره کیږي، دغه ډول د هر داسې شئ صورت کوم چې په دنیا کې ښکاره کېلونکي وي اول د دې نقش په لوح محفوظ کې ښکاره کیږي، او لکه څنګه چې قوّت لطیف کوم چې په دماغ کې دی او اعصاب په حرکت کې راولي او هغه مخکې لاسونو او ګوتو ته حرکت ورکوي او ګوتې قلم چلوي، دغه ډول هغه جواهر لطیفه کوم چې په عرش او کرسی باندې مقرر دي اسمانونه او ستوري په حرکت کې راولي، او لکه څنګه چې قوّت د دماغ د رګونو او اعصابو په واسطه سره ګوتې ښوروي، دغه ډول هغه جواهر لطیفه کومو ته چې فرشتې وایي د ستورو په ذریعه او د دوی د نور په واسطه سره عالَم سفلی او د دې ټولو بیخ په حرکت کې راولي کومو ته چې عناصر اربعه وایي چې مراد ځیني ګرمي، یخ، لندوالی او خشکي ده (یعني: اور، اوبه، خاوري، باد) او لکه څنګه چې قلم سیاهي (رنګ) ته حرکت ورکوي او پر کاغذ یې ښوروي او جمع کوي یې تر دې چې صورت د بسم الله نقش پذیر سي، دغه ډول دا اوبه، اور، خاوري او هوا او د هغه ټولو شیانو اصل سره یو ځای سي مرکبات په حرکت کې راولي، او لکه څنګه چې کاغذ سیاهي (رنګ) قبلوي هغه که خوره سوې وي او که جمع (غونډه) وي، دغه ډول رطوبت (لوندوالی) دا مرکبات د شکل قبل جوړوي، او د پیوست والی قوّت(خشکي) د دې شکل محافظ جوړېږي چې دغه نقش وران نسي، څکه چې که رطوبت نه وي نو شکل نه جوړېږي او که خُشکي نه وي نو د شکل حفاظت نسي کېدای (یعني لوند به وي او نه به وچیږي نو خراب به سي) او لکه څنګه چې قلم کله خپل کار وکړي او خپل حرکت مکمّل کړي نو د خیال د خزانې مطابق د سترګو د نظر په مدد سره د بسم الله نقش پر کاغذ ښکاره سي، دغه ډول کله چې حرارت او یخوالی د دغو مرکباتو اصل ته تحریک ورکړی (دفرشتو په کومک سره) نو عین د هغه صورت مطابق کوم چې په لوح محفوظ کې د مخکې څخه نقش وي حیوانات او نباتات او نور په دې دنیاکې په صورت کې راځي، او لکه څنګه چې ستا په هر کار کې اول اثر ستا د زړه څخه پیدا کیږي او بیا په ټولو اندامونو کې خورېږي، دغه ډول د عالَم اجسام د ټولو کارونو اثر اوّل پر عرش ښکاره کیږي او بیا مخکې غورېږي او لکه څنګه چې د دې خاصیت قبلوونکی د ټولو څخه اول زړه دی او باقي ټول اندامونه تر ده لاندې وي او د زړه نسبت تا ته کیږي چې ته پوه سې چې ته په زړه کې یې، دغه ډول پر هر شئ غلبه د عرش په واسطه سره کیږي

ځکه وېل کيږي چي الله ﷻ پر عرش بلندي دی، او لکه چي ته پر زړه غالب سې نو د زړه ټول کلو برابر سو او د تن د مملکت هر تدبير مکمل سو، دغه ډول الله تعالی عرش پيدا کړی پر عرش متصرف سو او عرش يې مغلوب کړی د مملکت د عالَم ټول تدبير يې په عمل کي راوستی، لکه چي الله ﷻ فرمايي: ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ يُدَبِّرُ الْاَمْرَ (بيا پر عرش بلندي قائم سو او د هر کار تدبير کوي) (السجده:۴، ۵) همدې طرف ته اشاره کوي، يادساته! چي دا هر څه حقيقت دي او اهلِ بصيرت د کشف په ذريعه سره دا معلوم کړی هم دي او د دې معنی حقيقت واضح کيږي چي: اِنَّ اللّٰهَ خَلَقَ اٰدَمَ عَلٰى صُوْرَتِهٖ (په تحقيق سره الله تعالی آدم ؑ پر خپل صورت پيدا کړی).

او په دې حقيقت هم پوه سه! چي د باچاهی په رموزو د باچاه څخه ماسوا نور هيڅ څوک نه پوهيږي، که داسي نه وای يعني تا ته يې د خپل بدن پر وطن (مملکت) باچاهی نه وای درکړې او د عالَم خالق د خپل مملکت او باچاهی لږ حصه تا ته نه وای در کړې نو ستا د پاره به د خالقِ عالَم (الله ﷻ) پېژندل هيڅ کله ممکن نه وای نو شکر ادا کړه د دې باچاهی کومه چي يې تا ته ستا د پيدا کولو څخه وروسته در کړې ده، او د خپل مملکت لږ غوندي نقشه يې ستا د زړه پر عرش بلندي قائمه کړه، او روحِ حيواني کوم چي د زړه مرکز او چينه (منبع) دی ستا اسرافيل يې جوړ کړی، او ستا دماغ يې په منزله د کُرسی جوړ کړی او ستا د خيالاتو خزانه يې ستا لوحِ محفوظ جوړ کړی، او ستا سترګي غوږونه او ټول حواس يې ستا فرشتې جوړي کړې او ستا دماغ کوم چي د اعصابو منبع دی ستا د پاره يې د اسمان او ستورو مثل جوړ کړی او ګوتی يې د قلم او رنګ (سياهي) په ذريعه يې طبائع ستا مغلوبه جوړ کړه، ستا زړه يې بې ځنګه والی او بې څرنګوالی پيدا کړی او پر ټولويې باچاهت درکړی، او بيا يې تا ته يې حکم وکړي چي هيڅ کله د خپل ځان څخه او د خپلي باچاهی څخه مه غافله کيږه، ځکه چي دغسي به ته د خپل پيدا کوونکي څخه غافله سې، که ته په دې نکته پوهېدل غواړې چي الله تعالی آدم عليه السلام پخپل صورت پيدا کړی دی نو خپل نفس وپېژنه چي دربّ پېژندل هم دغه رنګه امکان لري.

## فصل

نو دا کومه تفصيلي موازنه چي د انسان د باچاهت او د مالک الملوک د حقيقي باچاهت په مينځ کي وښوول سوه، په دې کي په اصل کي يو خو د هغه عظيم الشان علم طرف ته اشاره سوې ده د کوم

تعلق چي د انسان د نفس سره دی او په کوم کي چي د دې باهمي (خپل مينځوي) تعلق ذکر کول کيږي کوم چي د ده د اعضاؤ، قواوو، قوتونو، صفتونو او کيفيتونو په مينځ کي پيدا کيږي، او د دې ټولو تعلق آخر د زړه سره وي او دا يو ډېر وسيع علم دی چي تفصيل يې په داسي قسم کتاب کي نسي بيانېدای، او دويم د هغه ربط او تعلق تفصيل بيانول کيږي کوم چي د باچاهٔ عالَم د حکمت، او د فرشتو په ميانځ کي د فرشتو د يوبل په مينځ کي، د اسمان او عرش او کرسی د فرشتو په مينځ کي پيدا کيږي او دا علم هم ډېر اوږد دی، او دلته د دې فقط اشارهٔ د بيانولو مقصد دا دی چي هغه خلق کوم چي پوه او زيرک دي پر دې ټولو اعتقاد او ايمان راوړی او د دې ټولو په برکت د حق تعالی عظمت وپېژني، کنې د کم عقلو شخه به څه وايي هغه خو په دومره اشاره باندي هم نسي پوهېدای، او دوی ته خو داهم نه ده معلومه چي دوی په جهالت او غفلت کي نيول سوي دي، په دې وجه هغه خلک د ده د جمال څخه په حجاب کي وي او د جمال د حضور الهی څخه خو خير خلک څه خبرېدای سي، نو دغه دا هم لږ خوندي وليکل سوه، د دې د پاره چي لږ تر لږه دوی ته خو دا معلومه سي چي دغه پخپله څه شئ دي؟

## علمِ نجوم او علمِ طبيعه

هغه عاجزه ناچاره او محرومه خلک کومو ته چي نجومي يا طبيعي وايي او د دنيا ټول کاروبار او نظام د ستورو او طبائعو سره تړلی ګڼي، په اصل کي د هغه ضعيف ميږی په ډول دي، کوم چي پر کاغذ باندي بنوييږي او داويني چي کاغذ توريږي او پر ده مختلف نقشونه را ښکاره کيږي، او دی د قلم سر ويني او خوشحاليږي او ګڼي چي بس دا کار په ښه توګه سره ده لږده کړی، او د ده د کار ختم سويمنې ده ته معلومه سوه چي په کاغذ دا نقشونه د قلم په وجه سره پيدا کيږي، (حال دا دی چي خط او نقشونه د ميږي په وجه وليکل سوه)، دغه رنګه حال د طبيعي (نجومي) دي، کوم چي د محرکاتو په باره کي ملسوا د آخري درجې شخه د بلي هيڅ خبري علم نه لري، او خيال دا کوي چي ده ته د اوّل شخه تر آخره د هري درجې علم حاصل سوی دي.

د دې شخه وروسته د هغه ميږی درجه لږ لوړه ده د کوم چي په سترګو کي نسبتاً زيات وُسعت وي، او د ده د مشاهدې دائره هم په لږ اندازه فراخه وي دی وايي چي اُو هو! ما غلط خيال وکړ و چي دغه نقشونه د قلم تر حکم لاندي شکه ما ته ښکاره کيږي چي تر ده لوړ يو بل شئ دي چي په اصل کي دا نقاشي هغه کوي، او بيا په دې خوشحاله سي چي حقيقت دغه دی د کوم عمل چي ده ته حاصل سي

يعني چي نقاشي كوونكى گوتي دي قلم نه دى او قلم د گوتو تابع دي، دا مثال پر منجم (نجومي) صادقيږي، چي د ده نظر زيات تر ليري پوري ولاړى نو دا يې معلومه کړه چي طبائع د ستورو ماتحت دي لېکن دا يې معلومه نه کړه چي پخپله ستورى د فرشتو ماتحت دى، او د ده د ناقص علم څخه چي كوم شئ لوړ وو هغه ته ونه رسيدى، او لکه څګه چي د نجومي او طبيعي په مينځ کي په عالَم اجسام كي دا تفاوت او فرق سته چي د هغه په وجه سره چي دا اختلاف مخي ته راغلى، دغه ډول د هغو خلكو په مينځ كي اختلاف دى كوم چي په عالَم روحانيت كي ترقي كوي، ځكه چي اكثر خلك خو بس د عالَم اجسام پوري دي، د دې څخه مخكي د دوى مارغه الوتل ونه کړه. دا خلك په اوله درجه باندي او درېدل. او عالَم روحانيت وطرف ته د تللو لاره پر دوى باندي بنده سوه. او عالَم ارواح چي په عالَم انوار سره تعبير كول كيږي په دې كي خو بې شماره منزلونه او ډېر بنديزونه دي، په كومو كي چي د ځينو درجه د ستورو او سيّارو ده. بعضي د سپوږمى په ډول دي بعضي د لمر په ډول دي، او د ترقي دا درجې هغه خلكو ته حاصليږي كومو ته چي فرشتې د دوى لار ونيسي، لكه چي الله ﷻ د حضرت ابراهيم په باره كي فرمايي: وَكَذٰلِكَ نُرِىٓ إِبْرَٰهِيمَ مَلَكُوتَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ (او موږ دغه رنګه ابراهيم عليه السلام ته د اسمانونو او ځمكي مخلوقات وښوول چي د كامل يقين كونكو څخه سي) [الانعام:۷۵]. او حضرت ابراهيم عليه السلام پر دې بنياد باندي وويل: إِنِّى وَجَّهْتُ وَجْهِىَ لِلَّذِى فَطَرَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ (چي متوجه کړو ما خپل مخ د هغه وطرف ته چاچي اسمانونو او ځمكي پيدا كړل) او نبي كريم ﷺ فرمايلي دي: إِنَّ لِلّٰهِ سَبْعِينَ أَلْفَ حِجَابٍ مِّنْ نُّورٍ لَوْ كَشَفَهَا لَأَحْرَقَتْ سُبُحَاتُ وَجْهِهٖ كُلَّ مَنْ أَدْرَكَ بَصَرُهٗ (د الله د نور اويازره پردې دي كه هغه دا پردې ليري كړي نو تجليات الهي به هر هغه مخ وسوځوي كوم چي ده ته وګوري) او د دې شرح موږ پخپل كتاب "مشكوة الانوار او مصفاة الاسرار" كي بيان کړې ده، هلته يې تلاش كول پكار دي دلته مقصود دا ښوول دي چي تا ته دا معلوميدل پكار دي چي بې چاره نجومي هر شئ په ګرمى او يخ سره محمول كړى دي، او د دوى داوينا صحيح هم ده ځكه چي كه دا شيان (ګرمى او يخ) د اسباب الهي په مينځ كي نه وي نو علم طب به بالكل دريدلى واى، لېكن د دوى څخه خطا دا وسوه چي نظر يې ډېر محدود وو، او د دې ملګرتيا يې اونه کړى سوه او پر اول منزل باندي مبتني پاته سو او نه يې اصل وپېژندلو او نه يې د مسخر حقيقت وپېژندو، او دواړه يې جوهر تصور كړل يعني نوكريې مالك وګڼلو، ځكه چي دا دواړه پخپله د لاندي درجې د نوكرانو څخه دي كوم چي په هغو صفونو كي كښېنول كيږي كوم ځاى چي

خلک د څپلی (پیزار) ایږدي.

او منجّم کوم چې ستوري په اسباب الهي کي شمېري او وایي چي که دلسي نه وای نو شپه او ورځ به برابر وای، او چي لمرهم یوه سیّاره ده چي د هغه په وجه سره دې دنیا ته رڼا او ګرمي حاصلیږي، که دلسي نه وای نو د ګرمی او ژمي موسم به یو ډول وای، نه به ګرمي وای او نه به یخنی وای. ځکه چي د ګرمی په موسم کي ګرمي ځکه وي چي لمر د اسمان مینځ ته نژدې وي او په یخنی کي لیري وي، لیکن هغه خدای ﷻ کوم چي لمر ته رڼا او ګرمی ورکولای سي نو څه تعجب دی چي زحل ته یخني خشکي ورکړي او زهره ګرم جوړ کړي؟ په هر حال د منجم په دې مذکوره تشریح سره په مسلمانۍ کي څه فرق نه راځي، لیکن د منجم غلطي دا ده چي ستوري او سیّاري یې هر څه تصوّر کړل، دوی یې اصل او حواله ګاه مقرر کړل، او د دوی مسخّر کیدو ته یې خیال ونه کړی، او دا یې ونه پېژندل چي: الشمس والقمر بحسبان [الرحمن] والقمر والنجوم مسخرات بأمره [النحل: ١٢] (لمر سپوږمی او ستوري ټول د خدای د حکم تابع دي) او د هغه تر فرمان لاندي دی چي هغه کار ځیني اخلي، او دا د هغه کارکوونکی دي، لیکن پخپله خو بنه سره کارکوونکي نه دي بلکي د کارکوونو فرشتو ما تحت دي، لکه څنګه چي د انساني اعصابو حرکت که څه هم په ټول ټول جسم کي وي خو کیږي د دماغ په حکم سره، دغه ستوري هم د ادنیٰ درجې غلامان دي. که څه هم د دوی درجه د هغو تقیلو (چوکیدارانو) ده چي هغو ته د څپلی په ځای کي ځای ملاویږي بیا هم د ځلورو عناصرو په ډول د لاندي درجې مسخّرات هم نه دي لکه د کاتب په لاس کي چي قلم وي.

## د خلګو په مینځ کي د اختلاف سبب او د نجومي د نظر خامي

د خلګو په مینځ کي د اختلاف وجه زیاتره دا وي چي په دوی کي هر یو د بل یوه څخه پر یو لوری په رشتیا وي او صحیح وایي لیکن د دغه شیٔ د بعضو ارخونو څخه واقف (خبر) نه وي او خیال دا کوي چي دی پوره ځیني واقف او خبر دی (او دا د دوی حماقت او جهالت دی) د دوی مثال د ړندو د هغه ډلي په ډول دی کوم چي دا خبره واوري چي بنار ته فیل راغلی دي، او دوی د هغه طرف ته روان سي چي ویې پېژني او د دوی خیال وي چي د پېژندلو د پاره لاسونه کافي دي دغه رنګه لاسونه پر وهي د چا لاس د فیل د غوږونو سره ولګیږي، او د چا د پښو، او د چا د غاښونو سره ولګیږي. او بیا چي نورو ړندو ته ولاړ سي د فیل رنګ او څرنګوالی بیانوي نو هر یو خپلي خپلي خبري کوي د چا لاسونه چي یې پښو ته رسیدلي وي هغه وایي چي فیل د پایې (پیلر) په ډول دی چا چي یې غاښونه نیولي

وي هغه وايي چي فيل د گرز (د لوسپني يوه درنه آله ده) په ډول دي او څا چي يې غوږونه نيولي وي هغه وايي چي فيل د کمبل (شړۍ) په ډول دي، اوس خو دا ټوله صحيح وايي ځکه چي د يو وجهي څخه د دوی بيان صحيح دی لېکن خطا ځيني دا کيږي چي دوی گڼي چي ټول فيل دوی ليدلی دی يا لږ تر لږه يې محسوس کړی دی لېکن داسي نه دي سوي، دغه ډول د منجم او طبيعي نظر هم په اصل کي د الله تعالی د غلامانو څخه صرف پر يوه لگېدلی وي او د دې غلام د باچاهي او اختيار څخه دومره په تعجب کي‌سي چي بس ده ته باچاه ويل شروع کړي او په دې مغالطه کي پراته وي، تر دې چي چاته د الله تعالی په توفيق سره دو باره غور کول نصيبب سي نو هغه د دې نقصان څخه ووځي او پر هغه لوړاو بالا يو حاکم ووينې او وايي چي دا شئ خو پخپله د يويل لوړحاکم تر فرمان لاندي دی او کوم چي د نورو تر حکم لاندي وي هغه د خدايي مستحق نه وي لا اُحِبُّ الاٰفِلِيْنَ (زه غُرُوب کوونکي (لوېدونکي) نه خوښوم)

## ستوري او اسمان

د ستورو او د دوی د طبائعو او برجونو او اسمان کوم چي پر دوولسو اقسامو مشتمل دی او د عرش کوم چي د دې ټولو څخه لوړ واقع دی، د دې ټولو مثال د يو باچاهي (بادشاهت) په ډول دی، د کوم د پاره چي يو خاصه ماڼی (ايوان) وي چي وزيرِ خاص په هغه کي ناست وي، او د دې ماڼی شاوخوا يو غټ ځای وي په کومه کي چي دوولس دروازې وي او پر هره دروازه د دې وزيرانو نائب ناست وي، او اوه نقيبان (چوکيداران) د سپرو په ډول کي (يعني چي پر يو سپرلي سپاره وي) د دې دوولسو دروازو څخه شاوخوا گرځي راگرځي او د وزير د نائبانو د احکامو په اوربدو مأموره وي کوم چي د غو نائبانو ته د وزير د طرف څخه رسېدلي وي، او څلور پياده د دې اوو نقيبانو څخه لږ ليري ولاړ وي او سترگي يې د دې نقيبانو ته نيولي وي چي د دوی په ذريعه د دننه څخه دوی ته څه حکم صادرېږي؟ او د دې څلور پيادوه وو لره څلور کمندونه (يعني لرگيان) په لاسو کي ورکړل سوي وي چي کار ځيني اخلي (او څنگه چي حکم وي) بعضي په حضور د باچا کي حاضر کړي، او بعضي د حضور څخه ليري کړي، چا ته انعام ورکړی او چا ته عذاب ورکړی.

عرش هغه خاص ايوان (ماڼی) ده کوم چي د وزيرِ مملکت د کښېنستلو ځای دی او دغه مقرب ترينه فرشته ده او دوولس برجونه هغه دوولس دروازې دي، او د وزير نائب نوري فرشتې وي چي درجه يې د مقرب ترين فرشتې څخه لږ ده، او په دوی کي د هري يوې په نمه جلاجلا کار دی او اووه ستوري د

لوو سپرو په ډول دي چې د نقیبانو (چوکیدارانو) په ډول همیشه د دې دوولسو دروازو څخه شاوخوا ګرځي راګرځي، او د هري دروازې څخه جلا جلا قسمه احکام دوی ته رسیږي، او هغه چې عناصر اربعه ورته وایي (یعني اور، اوبه، خاوري او باد) د څلور پیادوه په ډول دي، کوم چې د خپل مقام څخه یوه ذره هاخوا دې خوا ته نه کیږي، او څلور طبائع یعني ګرمي، یخ خشکي، تري څلور کمندونه (لزګي) دي کوم چې د پیاده وو په لاسو کي ورکړل سوي دي، اوس مثلاً که دیو چا حال دا سي چې د دې دنیا څخه روګرداني اختیار کړي او بېره او غم پر ده باندي مسلط سوي وي او د دنیا نعمتونه د ده زړه نه غواړي، او د انجام فکر او غم دی نیولی وي، نو مریض وایي چې دی مریض دي، او دې مرض (ناروغي) ته مالیخولیاوایي او د دې علاج په جوشاندهٔ افتیمون سره کیدای سي (یعني ممکنه ده چې په جوشانده افتیمون سره جوړ سي) او طبیمي وایي چې د ده د ناروغی وجه خشکي ده کومه چې د طبیعت څخه پیدا کیږي او پر دماغ باندي غالبه راسي او د دې خشکی سبب د یخ د موسم خشکه هوا وي، په دې وجه تر څو چې بهار (پسرلی) رانسي او تري (لوندوالی) پر هوا باندي غالبه نسي د دې علاج نه سي کېدای او نجومي وایي چې دا سوداء ده کومه چې په ده کي په دې وجه پیدا سوې ده چې پر ده د عطارُد اثر دی، او عطارد په بد اتفاق سره پخپله د مریخ د صحبت په باعث منحوس اثرات قبول کړي دي، په دې وجه تر څو چې عطارد د سعدینو په برجونو کي یا د دوی په تثلیث کي داخل نسي، تر هغه وخته پوري دی د دې ناروغی جوړېدل ستونزمن دي،اوس په رښتیا کي خو تو له صحیح روایي ځکه چې: ذَٰلِكَ مَبْلَغُهُمْ مِنَ الْعِلْمِ (د دې خلکو د علم حدّ تر دې ځایه پوري دی) [النجم: ۳۰]

لیکن د الله ﷻ د دربار څخه د ده د نېک بختی د پاره چې کوم حکم وسو هغه داوو چې د غه نقیب کوم چې پخپل کار کي ماهر دی او د عطارد او مریخ په نوم سره بلل کیږي په دې غرض سره ولېږل سو، چې د درګاه د پیاده وو څخه یو پیاده ده ته ورسي کوم ته چې هوا وایي چې د ده د رښتیا مطابق هغه د خشکی کمند (لزګی) وغورځوي، او د دې مریض د سر او دماغ سره یې ومښلوي او د ده زړه د دنیا د ټولو لذتونو څخه پورته کړي او د بیري او دغم په دُرّه سره د ارادت او طلب په نامه ده ته په حضور د حق کي د حاضری بلنه ورکړي، او دا خبره نه په علم طب کي ده، نه په علم طبیعات کي او نه په علم نجوم کي بلکي دا د علومو د نبوت د سمندر څخه بهر راوځي، کوم چې د مملکت په ټولو اطرافو کي پر ټولو عاملینو او ټولو نقیبانو باندي محیط دی، او کوم چې هر څوک نه پېژني چې ده ته دیو

خاصو فرضو پوره کول دي، او چي هر شئ د چا د حکم پوره کولو د پاره په حرکت کي دی، او مخلوق د کوم ځای شخصه را وړستل کیږي او بیا یې کوم ځای ته بدلول دي او داسي نور......، په دې کي چي هر چا څه ویلي دي صحیح یې ویلي دي لیکن د مملکت د باچاه پټ راز او د ده د ټولو نوکرانو (لښکرونو) چا ته خبر نه وو، د ده مثال د هغه کښتګرو وو چي د باچا دربار ته ورسیږي د دربار شان اودبدبه، جاه و شوکت او نوکرونه یې ووینې، او یو غلام په زرق برق (ښایسته او ځلانده) لباس کي ووینی، او واپس راسي وایي چي ما باچاه ولیدی راغلم، د ده خبره هم غلطه نه ده او د دربا شان وشوکت د باچاه سره تشبیه ورکول یې هم غلط نه دي، لیکن اصل حقیقت خو په هر حال مخالف دي، ځکه چي دربار خو بې شکه چي شاهي دربار وو لیکن کوم غلام چي ده لیدلی دي هغه باچاه نه دی، دغه رسول الله ﷺ د ناروغی بلا او مصیبت بیره او غم په ذریعه خلک خپل دربار ته بولي او وایي چي د دا ناروغي نور هیڅ هم نسته بلکي د لطف او عنایت کمند (لرګی) دی چي په هغه سره موږ خپل دوستان خپل حضور ته رابولو: انّ البلاءَ مُوَكَّلٌ بِالْاَنْبِيَاء ثم الاولیا ثم الامثل فالامثل مَرِضْتُ فَلَمْ تَعُدْنِيْ (یقیناً مصیبتونه او پریشانی د ټولو شخصه زیات پر انبیاؤ بیا پر اولیاؤ پر بوځي بیا د ایمان او یقین په اعتبار سره دوی ته پر زیات نژدې (د الله ﷻ دا ارشاد چي) زه ناجوړه ووم تا زما پوښتنه نه ده کړې، د هغه و خلکو په حق کي ویل سوي دي کوم چي تاسو ناروغه وګڼئ او هغه ناروغه نه وي بلکي د حق عشق وهلی سوي وي، د بنده باچاهی کومه چي د ده په بدن کي دننه ده په اولنی مثال سره خو د هغې حال معلومیږي، او دغه باچاهی کومه چي د بنده د بدن شخصه بهر ده په دویم مثال سره د دې حال واضحه کیږي، او په دې وجه سره د بدن شخصه د بهر باچاهي پېژندل هم د خپل ځان په پېژندلو سره حاصلیږي په دې وجه موږ معرفت د نفس په اولني عنوان کي ذکر کړی.

## د سُبحان الله، الحمدُ لله او الله اکبر معناګاني

اوس تا ته د سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاللهُ اَكْبَرُ معنی ازده کول پکار دي، چي دا څلور په ښکاره لنډي کلمې په حقیقت کي د معرفت الهي د پاره جامع دي، هر کله چي تا د خپلي پاکی او تنزیه په ذریعه د الله تعالی پاکي او تنزیه وپېژندله نو کواکي تا سبحان الله وپېژندله، او کله چي تا د خپلي باچاهی په ذریعه د الله تعالی د باچاهی تفصیل معلوم کړی او دا دی هم معلومه کړه چي ټول اسباب د هغه تابع دي نو د الحَمْدُ لله معنی تا ته معلومه سو، ځکه چي هر کله د هغه شخصه سوا بل

څوک نعمت ورکوونکي نشته، نو حمد او شکر د هغه څخه ماسوا د بل چا د پاره نشي کیدای، او کله چي تا دا خبره معلومه کړه چي د أحکم الحاکمین څخه ماسوا بل څوک حاکم نشته نو د لا اِلٰهَ اِلاَّ الله معنی تا ته معلومه سوه، او اوس هغه مرحله راغله چي د اَللهُ اَکْبَرُ معنی ته معلومه کړې، او دا خبره معلومه کړې چي د اهر څه تا معلوم کړه او ودي پېژندل خو په دې سره د الله ﷻ حقیقت نسي معلومیدای ځکه چي الله ﷻ ډېر لوی دي، د دې مطلب دا دی چي الله ﷻ رب العزت د دې خبري څخه ډېر لوی او لوړ دي چي دی مخلوق د قیاس په ذریعه وپېژني، د دې دا مطلب نه دی چي هغه د نورو څخه لوی او بزرګ دي ځکه چي د ده سره څوک بل شئ په حقیقت کي موجود سته نه، چي دی د هغه څخه بزرګ او لوی وي ځکه چي ټول موجودات د ده د نور رڼا ده، او د لمر نور د لمر څخه ماسوا بېل شئ نه دي چي دا خبره وسو، چي لمر د خپل نور څخه ډېر غټ دي، بلکي د اَللهُ اَکْبَرُ معنی دا ده چي الله د دې امر څخه لوی دي چي په عقلي قیاس سره بنده دی وپېژني.

معاذ الله! چي د الله ﷻ پاکي او تنزیه د بنده د پاکی او تنزیه په شان وي هغه د ټول مخلوقات د مشابهت څخه پاک دی او معاذ الله! چي د الله ﷻ حکمت او باچاهی د بنده د حکمت او باچاهی په شان وي کومه باچاهی چي بنده ته پر خپل بدن باندي حاصله ده او معاذ الله! د دې خبري څخه چي وویل سي چي د هغه صفات، علم او قدرت او داسي نور د انسان د صفاتو په رنګه دي، بلکي د دې ټولو مثالو د پېش کولو څخه مقصد دا دی چي د انسان د محدود او عاجزه قوّت د عقل مطابق د جمالِ الٰهی په اړه یو څه ستا په پوهه کي راسي، او د دې مثال داسي کېدای سي چي یو هلک زموږ څخه پوښتنه وکړي چي په ریاست او حکومت کي څه مزه او خوند دی؟ نو موږ ده ته دا ووایو چي: لکه څنګه چي په فتبال (د ګین په لوبه) او هاکی کي مزه او خوند سته ځکه چي د دې کم عقل هلک ته خو نور هیڅ خبر نسته او کومه مزه چي ده ته حاصله نه ده هغه به په قیاس سره دی څه وپېژني، خو هغه مزه به وپېژني د کومي نمونه چي د ده د نظره سره تېره سوې وي، او دا خو ټولو ته معلومه ده چي د حکومت او سلطنت مزه د فتبال (ګین) او هاکی د لذت سره هیڅ علاقه او تعلق نه لري، خو د لذت او خوشحالی نوم په دواړو باندي صادق راځي نو د نوم په وجه سره دواړه یو رنګه دي، په هر حال د حکمتِ الٰهي کومه نمونه او مثال چي ذکر سو او مثالونه یې بیان سوه، د ځــي دا هم وګڼه او معلومه کړه چي د لله ﷻ حقیقت پوره په پوره څوک نسي پېژندلی.

## د الله ﷻ د معرفت مسئله

د الله ﷻ د معرفت د تفصیل مسئله ډېره اوږده ده او په دې کتاب کي نسي راوړل کېدی، کوم څه چي بیان سول دا کافي دي چي خلک خبر سي او په بنده کي د خپل وس مطابق د زیات تحقیق او لټون ذوق پکښې پیدا سي، په دې وجه چي د بنده د سعادت راز هم په دې کي دی، بلکي د ده د سعادت ذریعه د الله ﷻ معرفت او عبادت دی، دا خبره چي د بنده د سعادت راز د الله ﷻ په معرفت کي دی مخکي بیان سوې ده، او تر څو پوري چي د عبادت او بندګی تعلق سته نو د دې وجه ښکاره ده چي هر کله بنده مرسي نو واسطه به یې د دغه حق ذات سره پرېوځي، الله ﷻ فرمایي: اِلَيْهِ الْمَرْجِعُ وَالْمَصِيْرُ (هغه ته واپس کېدل او رسېدل دي) او کوم سړی چي د یو چا سره وسپېږي او د هغه سره یې ژوند وي، په دغه اعتبار سره موجب د سعادت دا دی چي دی ور سره مینه کوي، دی چي څومره زیاته مینه او محبت ور سره ساتي دومره به د ده په سعادت کي اضافه راځي ځکه چي د محبوب په دیدار کي لذت او راحت ډېر دی، او د الله ﷻ دوستی او معرفت د ذکر په ډېروالی سره کېدای سي، وجه ظاهره ده چي یو څوک د یو سړي سره څومره زیاته دوستي او مینه کوي دومره د هغه ذکر زیات کوي، په دې وجه الله ﷻ داؤد علیه السلام ته وفرمایل: اَنَا بُدُّكَ اللَّازِمُ فَالْزِمْ بُدَّكَ (زه ستاوسیله(اعتماد) یم او ستاواسطه زما سره ده نو یو کړی زما څخه مه غافله کیږه) او د ذکر غلبه په ډېر عبادت سره کېدای سي، او په فراغت او اطمینان سره عبادت هلته کېدای سي کله چي بنده دخواهشاتو څخه تعلق او رشته پرې کړي، او د خواهشاتو سلسله هلته قطع کېدای سي کله چي د ګناهونو څخه لاس واخلي او د ګناهونو څخه لاس پورته کول د زړه د فراغت سبب دی، او عبادت کول د ذکر د غلبې سبب دی او دا دوړه د محبت اسباب دي او محبت د سعادت او نېک بختی تخم دی، سعادت نوم دي د نجات او کامیابی لکه چي الله ﷻ فرمایي: قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ (په تحقیق سره کامیاب دي مؤمنان) [مؤمنون:۱]

او دغه رنګه د الله ﷻ ارشاد دی: قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى، وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ فَصَلّٰى (کامیاب سو هغه سړی چي (قرآن یې واورېدی) پاک سو، او د خپل رب ذکر یې وکړی او لمونځ یې وکړی[الاعلی، ۱۴، ۱۵] او څنګه چي هر عمل ته عبادت نسي ویل کېدای بلکي په دې عملونو کي ځیني په عبات کي شامل دي او ځیني نه دي، او د ټولو خواهشاتو څخه لاس اخیستل هم ممکن نه دي بلکي جائز هم نه دي ځکه چي خوراک هم یو خواهش دی که پرېښوول سي نو مرګ به واقع سي، او تعلق د خاوند او ښځي

هم خواهش او شهوت دی که پرېښول سي نو نسل انساني به منقطع سي، نو په دې وجه معلومه سوه چي ځیني خواهشونه د پرېښوولو قابل نه دي بلکي د دغو پوره کول هم ضروري دي، په دې وجه دا معلومول پکار دي چي هغه کوم یو حدّ دی چي یو د بل څخه جلا کوي، او دا حُدود د دوو حالتونو څخه خالي نه دي، یعني یا به بنده د خپل عقل او ذاتي اجتهاد څخه کار اخلي پخپله به د دې حدّ تعیّن کوي، یا به د بل څخه د دې حقیقت معلوموي، او دا محاله ده چي دی خپل اجتهاد پرېږدي ځکه چي د نفس خواهش کوم چي همیشه پر ده سپور دی، دی د حقي لار ي څخه اړوي او دا لاره د ده څخه پټه ساتي، په دې وجه که دی پرخپل حال باندي پرېښول سي نو دی به دغه صحیح کړي کوم چي د ده نفس صحیح کړي، نو لازمه ده چي د اختیار واګي (قیزه) د ده په لاس کي ورنه کړای سي بلکي د بل په لاس کي وي، او د بل څخه مراد هر کس او ناکس نه دی بلکي د دې څخه مراد داسي سړی دی کوم چي د ټولو څخه زیات صاحب بصیرت او هوښیار او عقل مند وي او دا درجه د انبیاؤ ده، نو د دوی د شریعت پیروي کول او ـ دوی د احکامو په متابعت او پابندي سره د سعادت لاره نصیب کېدای سي، او د بندګي معنی هم دا ده، او ځوک چي د شریعت حدونه پخپله خو ښه سره پرېږدي هغه خپل ځان د هلاکت په خطره کي اچوي او په دې وجه الله ﷻ فرمایي: وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللّٰهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ (بې شکه چا چي د الله ﷻ د حُدودو څخه تجاوز وکړی ده د خپل ځان سره ظلم وکړی).

## فصل: ناروا لوه د روا ګڼونکو د غلطی وجهي (د بر مفید بحث)

کوم خلک چي د اهل اباحت (کفر او زندیقت) څخه دي او کومو چي د الله ﷻ د احکامو څخه مخ اړولی دي د دوی د غلطی او جهالت اووه، وجهي دي:

۱. یوه ډله خو د هغو جاهلانو ده کوم چي په خدای تعالی باندي ایمان نه لري او ځکه یې نه لري چي دوی د خدای تعالی د هستی ثبوت د خپل وهم او خیال په خزانه کي تلاش کړی وي او د ځنګوالی او څرنګوالی دوی تلاش کوونکي سو او کله چي دوی نه کړی پیدا نو منکر سول او د کار د حوالي د پاره یې طبیعیات او نجوم هر څه وګڼل چي بس دا نجومي او طبیعي انسانان دي باقي ټول حیوانان دي، او د دې سره یې دا تصور وکړو چي دا دنیا په دې ترتیب او حکمت سره د ځانه څخه په وجود کي راغلې ده یا د همیشه څخه به داسي موجوده وي، یا دا د طبعي عمل

نتیجه ده، حال دا دی چي طبیعي (نجومي) هر کله د خپل ځان څخه نا خبره دی نو د دنور شیانو څخه به دی څه خبر وي، د ده مثال د هغه سري دی چي په ښه خط (خوشخطه) لیکل سوی یو شئ ووینې او وایې چي پخپله به لیکل سوی وي، او ښکاره ده چي کوم سړی د دومره پوهنوالی حدّ ته رسیدلی وي هغه د بدبختی او ګمراهی د ختولو څخه چیري راوتلای سي، او د خپلي غلطي داحساس د نه کېدلو په وجه سره په طبیعي او نجومي یقین لري، د کومو ذکر چي د دې څخه مخکي سوی دي.

٢. دویمه ډله د هغو جاهلانو ده چي پر آخرت یقین نه لري ځکه چي هغه دا ګني چي بنده هم د نباتاتو (وښو) په ډول دی یا د نورو حیواناتو په ډول دی چي کله مړه سي نو نیست او نابود سي او د دوی سره نه یو حساب او کتاب سته نه د عذاب او عتاب بیره سته او نه د ثواب پروا لري، او د دې جهالت وجه د دوی د خپل نفس څخه بې خبري ده، ځکه چي دوی خپل ځانونه هم د خرو، غویانو او وښو او دنورو بوټو په شان ګني، او د هغه روح د حقیقت څخه نا اشنا وي کوم چي د بنده اصل جوهر دي او اَبدي دی کوم ته چي چیري مرګ نه راځي، صرف د بنده جسم د ده څخه جلا کیږي، او مرګ دغه ته وایي کوم چي جسم ته راځي، او د دې حقیقت به تر څلورم عنوان لاندي بیان سي.

٣. دریم جهالت د هغو خلکو دی کوم چي په الله او په آخرت باندي ایمان خو لري لیکن د دوی ایمان کمزوری وي او د شریعت په معنی هم دوی نه پوهیږي او وایي چي د الله ﷻ زموږ عبادت ته څه حاجت دی او زموږ په ګناهونو د الله ﷻ څه خرابیږي او د ده ناراضه کېدلو ته څه حاجت دی ځکه چي هغه باچاه دی او د خلکو د عبادت څخه بې نیازه دی او د ده په نزد بندګی او نافرماني دواړه برابر دي، او دا جاهلان قرآن مجید ته هم نه ګوري کوم چي وایي وَمَنْ تَزَكَّىٰ فَإِنَّمَا يَتَزَكَّىٰ لِنَفْسِهِ (کوم چا چي ځان پاک کړی نو د خپل د ځان د پاره یې داسي وکړل) [فاطر] وَمَنْ جَاهَدَ فَإِنَّمَا يُجَاهِدُ لِنَفْسِهِ (کوم چا چي مجاهده وکړه نو د خپل ځان د پاره یې وکړه) مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهِ (څوک چي نېک عمل کوي د خپل ځان د پاره یې کوي [حم سجده]

دا بدبخته د شریعت څخه ناخبره دي، دی دا ګني چي شریعت د الله ﷻ د پاره د کار کولو نوم دی لیکن د خدای د پاره د کار کولو ضرورت نسته، د دې مثال خو داسي دي چي یو مریض پرهیز نه

کوي او وايي چې طبيب (ډاکټر) يې څه کوي که زه د هغه خبره ومنم او کنه. نو د ده خبره خو صحيح ده چې د طبيب به نوڅه خراب سي ليکن په هر حال دا مريض خو به هلاک سي، او دا ځکه چې طبيب که ده ته د پرهيز ويلې دي نو د ده پکښې فائده ده. اوس که يې مريض نه مني نو د طبيب هيڅ نه خرابيږي هلاک به دا مريض سي. څرنګه چې د بدن ناروغي په دې جهان کې د هلاکت سبب ده، د زړه ناروغي په هغه جهان بلندي د بدبختي او بربادۍ سبب وي نو دوايي (درمل) او پرهيز د بدن د صحت او سلامتۍ سبب دی، عبادت او معرفت او د ګناهونو څخه پرهيز د زړه د سلامتۍ سبب دی: لَا يَنْفَعُوا إِلَّا مَنْ أَتَى اللهَ بِقَلْبٍ سَلِيْمٍ (هيڅ سړی به نجات نه کړي پيدا مګر هغه سړی کوم چې د ګناهونو څخه ساتلی (سلامت) زړه الله ﷻ ته راوړي).

۴. څلورمه ډله د هغو جاهلانو ده کومه چې د شريعت څخه بل ډول بې خبره ده، دوی وايي چې د شريعت حکم دی چې زړه د شهوت، غصې او رياء څخه بالکل پاک کول پکار دي او دا ناممکنه ده ځکه چې بنده پيدا سوی د دې عناصرو څخه دی، د دې مثال خو داسې دی چې يو سړی يو تک تور شئ سپينول غواړي او په دې کوشش کې لګيا هم سي حال دا دی چې داسې کول محال دي، دې بې وقوف ته دومره هم نه ده معلومه چې شريعت دا نه دي ويلي، بلکې دا يې ويلي دي چې غصه او شهوت په قابو کې ساتئ! يعني د اعتدال داسې درجې ته يې راولئ چې په عقل او شريعت غالب نسي او سرکښي ونه کړي او انسان ته پر شريعت نظر ساتل پکار دي او د کبيره ګناهونو څخه ځان ساتل پکار دي چې د کوچني ګناهونو معافي ورته حاصله سي،او دا عين ممکنه ده او ډېر خلک دې درجې ته په رسېدو کې کامياب سوي هم دي او نبي ﷺ دا نه دي فرمايلي چې غصه د سره څخه کول نه دي پکار، يا شهوت نيست او نابود کول پکار دي، د دوی ﷺ خو نهه بيبياني وې او فرمايل به يې: چې زه هم ستاسو په شان يو بشر يم، او لکه څنګه چې يو بنده ته پر بل بنده غصه راځي دغسې زه هم نورو ته غصه کيږم، او حق تعالی فرمايلي دي: وَالْكَاظِمِيْنَ الْغَيْظَ (نو ګواکي الله ﷻ د داسې سړي تعريف کړی دی کوم چې غصه نرموي (ډباوهي يې) نه د هغه چې غصه بالکل پکښې نه وي.

۵. پنځم جهالت د هغو خلکو دی کوم چې د الله ﷻ د صفاتو څخه بې نصيبه دي او وايي چې خدای رحيم او کريم دی نو که موږ هر څه کوو هغه به خامخا پر موږ رحمت کوي، او په دې نه دي پوه چې هغه څومره چې رحيم او کريم دی دومره سخت ګير او سختي سزاور کولو والا هم

دی، او دې ته نه ګوري چې څومره خلک په مصیبت ناجوړي او لوږه کې ګیر او مبتلا ساتي او سره د دې چې هغه رحیم او کریم دی، او په دې ځان نه پوه کوي چې تر څو پورې دی زراعت یا تجارت ونه کړی مال په لاس نه ورځي او تر څو پورې چې کوشش ونه کړي علم نسي ازده کولای، او د دنیا په طلب کې خو چیرې هم کمې نه کوي او (دمال، دولت د حصول په سلسله کې خو) دا نه وایي چې خدای رحیم کریم دی نو بغیر د کار محنت زراعت او تجارت څخه به رزق پخپله موږ ته را ورسوي، حال دا دی چې د رزق ور کولو وعده خدای پاک پخپله کړې ده او فرمایلي دي وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْاَرْضِ اِلاَّ عَلَى اللّٰهِ رِزْقُهَا [هود] (یو رزق خوړنکی ساکنین (جاندار) پر مخ د مځکې داسې نسته چې د هغه رزق د الله تعالی پر ذمه نه وي) او دآخرت کار عمل ته حواله کوي فرمایي: لَيْسَ لِلْاِنْسَانِ اِلاَّ مَا سَعٰى [النجم] (انسان ته به د ایمان په باره کې خاص د خپل کوشش میوه ملاوېږي) هر کله چې دا خلک په حقیت کې د ده پر کرم او لطف ایمان نه لري او د رزق د طلب او د مال څخه لاس اخلي هم نه، نو دآخرت په باره کې چې هر څه وایي د هغه حقیقت د ژباني ویلو څخه زیات نسي کېدای (دا صرف د ژبې خبرې دي) او دا شیطاني تلقین دي چې حقیقیت او اصلیت یې نسته.

. شپږم قسم جاهلان هغه دي کوم چې مغروره کیږي او وایي چې موږ هغه مرتبې ته رسېدلي یو په کومه کې چې ګناه او نافرماني زموږ هیڅ نسي خرابولای، یعني په ګناه سره موږ ته څه تاوان نه رسیږي، ځکه چې زموږ دین داسې پاک سوی دي چې نجاست د سره قبلوي نه، او په دې احمقانو کې زیات داسې تنګ نظره وي چې که څوک داسې یو خبره وکړي چې د دوی د شان څخه خلاف وي او د دوی ریا او خودنمایي ته څه تاوان ورسیږي نو تول عمر د هغه دښمنان سي، او که یوه ګوله هم د هغه څخه چې دوی یې طمع لري د دوی څخه واخیستل سي نو دنیا پر تنګه او تیاره سي، نو بیا داسې احمق چې د سرېتوب او پاکوالي هغه مقام ته هم نه وي رسیدلی چې دومره کوچني خبرې برداشت کړي نو خپلې دعوې به څنګه په خلګو ومنی. او که څوک ووایي چې دښمني او غصّه شهوت او ریا خو د ده څخه کېدای نسي نو دغه هم مغروره دي او د ده دعوی غلطه ده، ځکه چې دی خو د درجې د انبیاؤ څخه لوړ نسي تللی، ځکه چې داسې دعوی خو انبیاؤ هم نه ده کړې، هغوی خو په ګناه او خطا باندې ژړلي هم دي او عذر او استغفار یې هم کړی دي، او غټو صحابه کرامو په کوچنیو ګناهونو هم استغفار کړی دي، بلکې

فقط د شبهې پر بناء به دومره پېرېدل چې د حلالو شخه به یې هم ځان راتنغښتو، یېا دا احمق څه ګنې چې دی په شیطاني وسوسو کې مبتلا نه دی او د ده درجه د انبیاؤ د درجې څخه هم لوړ ده.
او که یو احمق داسې ووایي چې پیغمبر به واقعي داسې کول (یعني توبه او استغفار) نو دا به یې خلکو ته د ښوونې د پاره کول، نو سوال دا دی چې دا احمق یې خلکو ته د ښوونې د پاره ولې نه کوي، چې په دې خو دوی هم پوهېږي چې که څوک دوی ته ګوري داسې کوي نو هغه هم تباه کیږي، او که دی ووایي چې د خلکو په تباه کېدو زما څه خرابیږي، نو د نبي کریم ﷺ به څه په خرابیدل؟ او که نه یې خرابیدل نو هغوی ولې د تقوی سختې او تکلیفونه برداشت کول، تر دې چې د صدقې یو کجوره یې هم د خپلې خولې مبارکې څخه وغورځول. که دا یې خوړلې وای نو د ده څه خرابیدل یا خلکو ته په دې سره څه تاوان رسېدی بلکې خوړل به یې هر چا ته جائز سوي وای، او که په دغه کې د نبي ﷺ نقصان وو هم نو د دې احمقانو د پاره د شرابو جامونه په جامونو ولی د تاوان باعث نه دی؟ او آیاد شرابو د سل … جامونو څخه یوه کجوره هم زیاته د تاوان باعث وه؟ ګواکې دا احمق خپل ځان په منزله ذ دریاب تصورکوي چې د شرابو سل پیالې هم اثر نسي پر کولای او پیغمبر ﷺ (نَعُوذُ بِالله) یوه کوچنی کوزه تصورکوي چې یوه خُرما هم اثر پر کولای سي. نو وخت دې چې شیطان د دې احمق په برېتو بازی (لوبې) وکړي او د دنیا د احمقانو د پاره مسخره سي، ځکه چې دا خو ناممکنه ده چې هوښیاران د ده پر خبرو خندا وکړي، (هغوی د ده څخه شرم محسوسوي) د دین بزرګان هغه دي چې په دې حقیقت پوه وي چې کوم سړی خواهشات او شهوات په قابو کې نسي راوستلای هغه انسان نه دي بلکې حیوان دي، نو هغوی پوه دي چې د بنده نفس مکار او دوکه باز دی، او د ده ټولې دعوې دروغ دي، او که هغه وایي هم چې زه ستا تر حکم لاندې او غلام یم نو هم د ده څخه د دې اقرار، ثبوت او دلیل طلب کول لازمي دي، او ثبوت یې د دې څخه ما سوا هیڅ نسي کیدلی چې دی د خپل حکم پابند نه وي بلکې د شریعت د حکم پابند سي او یېا همېشه په دې کارکوونکی او بوخت وي نو دغه رښتونی دی او که چیري بیا د خود اختیاري کولو رخصت طلب کوي یا په تأویلونو کې مبتلا وي یا د مبتلا کېدو کوشش کوي او حیلې بهانې تلاش کوي نو دی په اصل کې بنده د شیطان دی، او دعوی ستا د دوستی کوي، نو دا ثبوت د ده څخه تر آخره طلب کول پکار دي او څوک چې داسې نه کوي د ده نفس بیا مغرور کېدای سي او دی

پخپله پر دې مَيَنْ (شيدا) او هلا کيږي او ده ته دا معلومه نه وي چي نفس د شريعت تابع ساتل (که څه هم لازمي دي ليکن د مسلماني معراج هم نه دی بلکي دا هم) د مسلماني فقط اولنی منزل دي.

٧. اوومه وجه د غفلت او شهوت څخه پيدا کيږي نه چي د جهالت څخه، او دا ډلي د هغو کافرانو او زنديقانو دي کومو چي د مذکوره خبرو څخه هيڅ هم نه وي اورېدلي خو يو ډله د دوی د نظر په وړاندي وي چي دغه خلک د کفر او زنديقت پر لاره روان وي، فساد پورته کول د دوی کار، نرمي پستې خبري جوړول د دوی کسب وي د تصوف او ولايت مدّعي وي او لباس يې هم د دوی په ډول اغوستی وي نو (کوم سړی چي د دوی هم جنسه وي) د ده پر طبيعت هم ذلت او شهوت غالبه وي، او دی هم دغسي پر فساد راپورته کولو راضي کوي، او دی راضي سي، او (د گمراهي او شهوت په وجه) دا نه وايي چي په دې سره به په عذاب کي مبتلا سم، حال دا دی چي که داسي ووايي نو يقيناً به دغه فساد ده ته تريخ او ناخوښه محسوس سي ليکن دی چپه داسي گڼي چي دا د سره څخه فساد نه دی بلکي دې ته فساد ويل تهمت او نوې جوړه سوې خبره ده، حال دا دی چي دی نه د تهمت په معنی پوه وي او نه د حديث (خبري). او فقط يو غافل انسان دي کوم چي د شهوت څخه ډک سوی دي او چي په چا باندي شيطان په پوره ډول سره غالب وي، د داسي سړي د پوه کولو څخه هيڅ نه حاصليږي ځکه چي پوه کول پر ده هيڅ اثر نه کوي، په دې وجه چي د ده پخپلو کارونو باندي هيڅ شک او شبهه نه وي او د دې قوم ډېر خلق داسي دي د کومو په باره کي چي الله ﷻ فرمايي: إِنَّا جَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَن يَفْقَهُوهُ وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا (موږ په دې خبره د پوهېدلو څخه د دوی پر زړونو پردې اچولې دي او د دې د اورېدلو څخه د دوی په غوږونو کي بوج (درونوالی) دی نو که ته دوی صحيح لاري ته رابولې نو هم دوی نه راځي) [کهف:٥٧]

نو د داسي خلکو معامله خو په توره سره فيصله کول کيږي، نه داچي په حجّت او په دليل سره (يعني دوهولو قابل دي په خبرو نه سميږي)..

تر دې عنوان لاندي د زنديقانو د گمراهي او غلطی په باره کي دا څه چي موږ ذکر کړل کافي دي، چي د دې ټولو گمراهيو سبب د خپل نفس څخه جهالت دي، يا د معرفت الهي څخه جهالت د دې سبب دی، يا د هغي لاري څخه بې خبري ده کومي ته چي شريعت وايي، او جهالت چي هر کله د

داسي کار سره متعلق وي کوم چې د چا د طبیعت عین موافق وي نو هغه کول گران وي، او دلوجه د چې خیني خلک په داکه د کفر لار اختیاروي او وایي چې موږ خو حیران یو. او که د دوی څخه پوښتنه وسي چې دوی پر څه حیران دي نو هیڅ جواب یې د دوی سره نسته ځکه چې دوی نه د حق طلب کوي او نه پخپل گمراه کېدو شک کوي، او د دوی مثال د هغه سړي دي کوم چې طبیب ته وایي چې زه ناجوړه یم او د خپلې ناروغی نوعیت او شرنگه والی نه بنیي، نو د ده علاج به څوک وکړي، تر څو چې دا معلومه نه کړي چې د ده ناجوړی څه ده؟

نو داسي خلکو ته ما سوا د دې څخه څه جواب ورکول کیږي چې ته که هم دغسي حیران وسې نو حیران وسه!، لېکن دې خبري ته د شک او شبهې په نظر سره مه گوره چې ته بنده یې او ستا خالق قادرمطلق او په ټولو عالم دی څه چې غواړي کولای یې سی، او دا خبره ده ته په دلیل سره بنوول غواړي لکه چې لو ربیان سو.

## دریم عنوان: د دنیا د پېژندلو په بیان کې

پوه سه! چې دنیا د دین د لارې د منزلونو څخه یو منزل دی او د ربار الهي ته د تلونکو مسافرانو د تېرېدو لاره ده او یو داسي بازار دی کوم چې په صحرا کې د لارې پر سر بنایسته کړی سوی وي چې دلارې مسافران خپل د سفر سامان په دې کې حاصل کړي.

او دنیا او آخرت د دوو حالتونو څخه عبارت دی، هغه حالت کوم چې د مرگ څخه وړاندي دي او بنده ته ډېر نژدې وي دنیاوو ته وایي، او کوم چې د مرگ څخه وروسته وي آخرت ور ته وایي، او دا دنیا په اصل کې د آخرت سامان دی، (یعني د آخرت تو بنه دلته حاصلیدای سي) ځکه چې الله تعالی بنده په ابتداء کې ساده او ناقص خو پیدا کړی لېکن دی یې د دې قابل جوړ کړی چې دی کمال حاصل کړي، او صورت ملکوتي د خپل زړه نقش جوړ کړي چې د پاک دربار لائق سي، یعني هلته حاضري ده ته نصیب سي، او د الله ﷻ د دیدار په نظاره کې مشغول وي چې دا د ده جنت هم او دا د ده د سعادت انتها ده، او دی خالق کائنات پیدا کړی د دې مقصد د پاره دی، تر څو چې د ده سترگي خلاصي نسي او دا لازوال جمال ونه پېژني نظاره به څه په وکړي، او پېژندل خو په معرفت سره حاصلیږي او د الله ﷻ د عجیبه عجیبه صنعتونو پېژندل د الله ﷻ د جمال د معرفت چابي ده، او د بنده حواس د دې صنعتونو د معرفت ذریعې او چابیاني دي، او د دې ډانچې (بدن) څخه ما سوا چې هغه د لوبو او خاورو څخه جوړه ده د حواسو وجود ممکن نه وو په دې وجه بنده دې د خاورو عالم ته راغلی چې د دې څخه

تو بنه حاصله کړي، او د خپل نفس معرفت او د ټولو جهانونو معلومات د حواسو په ذریعه کیږي چي د دې د معرفت په چلبي سره د الله ﷻ معرفت حاصل کړي، تر څو چي دا حواس د بنده سره وي او د ده مُخبري کوي نو ویل کیږي چي فلانی په دنیا کي دی او کله چي دا حواس رخصت سي او دی پخپله او د ده ذاتي صفتونه باقي پاته سي نو خلق وایي چي فلانی د دنیا څخه رخصت سو، نو په دنیا کي د بنده د اوسېلو سبب بس دغه دي کوم چي بیان سو.

## په دنیا کي د بنده ضرورتونه (حاجتونه)

بنده ته په دې دنیا کي د دوو شیان ضرورت دی، یو خو دا چي زړه د هلاکت د شیانو څخه وساتي (یعني چي زړه د مُهلکاتو څخه وساتي) او د ده د پاره غذا (خوراک) حاصل کړي، دویم دا چي بدن د هلاکوونکو شیانو څخه وساتي (یعني چي بدن د مُهلکاتو څخه وساتي)، او د ده د پاره غذا حاصله کړي، او د زړه غذا د الله ﷻ معرفت او محبت دی، ځکه چي په حقیقت کي د هر شیٔ غذا هغه وي کومه چي د ده د طبیعت د خواهش مطابقه وي او د ده د خاصیت څخه وي، لکه څنګه چي د بنده د خاصیت بیان وسو، او د الله ﷻ څخه ماسوا د بل شیٔ په محبت کي مشغوله کېدل د بنده د زړه د هلاکت سبب دی او د بدن ساتل په اصل کي د زړه د پاره دي ځکه چي بدن خو به فناسي او محض زړه به باقي پاته سي، او د زړه د پاره د بنده مثال داسي دی لکه د حاجي د پاره چي اوښ دی، نه دا چي حاجي د اوښ د پاره تر څو پوري چي دی کعبة الله ته نه وي رسیدلی چي د اوښ څخه بې فکره او بې پروا نسي تر دغه وخته پوري حاجي ته د اوښ د خوراک انتظام کول دي چي د ده کفالت وکړي لیکن دا کفالت به د ضرورت په اندازه وي، نه دا چي حاجي ټوله ورځ په دې کي مشغوله سي، که دی ټوله ورځ په دې کي مشغول پاته سي نو د قافلي څخه به ورک سي او هلاک به سي، دغه ډول که بنده شپه او ورځ د بدن په خبرګیري او معلوماتو کي لګیا سي یعني د ده په خوراک، جامه (کالي)، چښاک کي مشغوله سي، او د ده د هلاکت څخه د ساتلو په فکر کي وي نو د خپل سعادت څخه به محروم سي.

انساني بدن ته په دنیا کي فقط د دې درې شیانو ضرورت او حاجت دی: خوراک، چښاک او جامه (کالي) او کور، خوراک یعني غله، جامه (کالي) یعني لباس او پوښاک، او کور هغه دی کوم چي د ګرمی او یخ او نورو اسبابو د هلاکت څخه دی وساتي، نو بدن ته د دې څخه ماسوا د بل یو شیٔ ضرورت نسته، بلکي دا درې شیان د دنیا اصل دی.

د زړه غذا معرفت ده، دغه چې څومره زياته وي دومره غوره ده،حال دا دی چې د بنده غذا خوراک دی لیکن که دغه د حدّ څخه زيات سي نو د هلاکت سبب جوړيږي، ها! الله ﷻ خواهش په بنده کي متعين کړی دي چې د خوراک کيږي او کور تقاضاوکړي چې د دې دپاره چې د بدن کوم سوړلی (سپړلی) دي دغه هلاک نسي او د دې خواهش پيدايښت داسي نه دی کوم چې پر يو حدّ او اندازې نه دريږي، او زيات هم طلب کوي، الله ﷻ عقل د دې د پاره پيدا کړی دي چې خواهش پر يو حدّ باندي وساتي او د انبياؤ عليهم السلام زباني شريعت يې په دې وجه مقرر فرمايلی دي چې د خواهش حدّ ظاهر کړی، ليکن څرنګه چې د خواهش حاجت خو وو په دې وجه الله ﷻ دی په کوچنيوالي کي پيدا کړی او د دې څخه وروسته يې عقل پيدا کړی او غالب سو، او عقل او شريعت کوم چې وروسته پيدا سوی دي (نو دا خواهش) د دوی څخه سرکښي کوي د دې د پاره چې بنده هر وخت په خوراک چښاک او کور په تلاش کي وي په دې وجه بنده خپل ځان هېر کړي، او په دې نه پوهيږي چې دا شيان په څه وجه پکار دي او بنده دنيا ته ولي راغلی دي، او د زړه غذا چې هغه د آخرت توښه ده هغه هېره کړي؛ اې دوسته! په دې تولو خبرو سره د دنيا حقيقت او آفت او حاجت خو تاو پيژندی او س ستا فرض دي چې د دنيا شاوخوا و پيژني په دنيا کي چې کم اصل شغل دی د هغه قدر وکړي او هغه وپيژني.

## د دنيا حقيقت

که ته د دنيا په حقيقت کي غور او فکر وکړې نو تا ته به معلومه سي چې دنيا د خپل اصل په اعتبار سره د درې شيانو نوم دی، يو هغه شيان کوم چې په ځمکه کي پيدا کيږي يعني نباتات، معدنيات، او حيوانات، ځکه چې ځمکه د وسېدلو، نفع رسولو او کښت کروندې د پاره ده، او معدنيات مثلاً؛ اوسپنه، ژړ، سرپ د مختلف قسم آلاتو او سامانونو د پاره دي، او حيوانات د سپرتيا او خوراک د پاره دي، بنده خپل زړه او بدن په دې شيانو کي مشغوله ساتي، زړه خو د دې شيانو په محبت او خواهش کي مشغوله ساتي او لاسونه، پښې د دې په صحي کولو او برابرولو کي مشغوله ساتي، زړه په دې شيانو کي په مشغولولو سره پر زړه داسي ناروغی پيدا کيږي کومي چې د هلاکت سبب او ذريعه جوړيږي لکه: حرص، بخل او دښمني او نور، او کله چې لاسونه، پښې په دې کي بوخت ساتي او په دې کي ومښلي خپل ځان هېر کړي او د دنيا په کارونو کي همت نښيي، او لکه څنګه چې په دنيا کي درې شيان دي يعني: خوراک، لباس(جامه) او کور دغه ډول د صنعتونو(کارونو) او کسونو

ضرورت دی، دغه هم دري دي دزرگر صنعت، د جولا (توکر وودونکی) صنعت، د معمار (مستري) صنعت، لیکن په دوی کي د هر یوه څوبناخونه دي؛ څوک اسباب تیاروي لکه د مالوچو وهونکی او تارونه څیني ایستونکی د جولا (توکر وودونکی) د پاره سامان تیاروي، او څیني د ده کار بشپړ تیا ته رسوي لکه درزي (خیاط) کوم چي د جولا (توکر وودونکی) کار پوره کوي، او دې ټولو ته د لرګي اوسپني او څرمني او نورو اسبابو ضرورت دی نو د اوسپني والا ترکاڼ پیدا سو، او هر یو د بل د کومک او مرستي محتاجه دي څکه چي یو سړی ټول کارونه یوائحي نسي کولای نو په دنیا کي ټول راجمع سو لکه درزي د جولا اهنګر (پښ) کار کوي او اهنګر د دوارو، دغه ډول هر یو د بل کار کوي، لکه څنګه چي په دې ټولو کي دا معامله وسوه چي د هغې په سبب دښمني پیدا سوه او یو هم بل ته د خپل حق په ورکولو نه راضي کیږي او په بل پسې وي؛

نو د دې د پاره د دري نورو شیانو ضرورت محسوس سو: یو سیاست او سلطنت بل قضاء او حکومت، دریم علم فقه، چي د هغه په ذریعه مخلوق ته د سلطنت او سیاست قاعدې معلومیږي، او دا کار کوونکي که څه هم د کسبکرو (کسب کوونکو) په شان په لاسو کار نه کوي لیکن دا هم کسب دی، په دې وجه سره په دنیا کي مشغلې ډیري سوې او په یو بل پوري ومښتلې، او مخلوق خپل ځانونه په دې کي ورک کړل او دا یې ونه ګڼل چي د دې ټولو اصل خو فقط دري شیان دي یعني خوراک، لباس او کور، د دنیا ټولي مشغلې (کارونه) د دري درې شیانو د پاره دي او دا دري سره شیان الله تعالی د بدن د پاره پیدا کړي دي، او بدن د زړه د پاره دی چي زړه سپور وګرځوي او زړه د الله ﷻ د پاره دی، نو خلکو خپل ځان او الله هېر کړو، لکه حاجي چي خپل ځان او د کعبې سفر هېر کړی او ټوله وخت یې د اوښ په ساتنه کي ضائع کړی، نو اې دوسته! د دنیا حقیقت خو څه دغه ډول دی کوم چي بیان سو، کوم سړی چي په دنیا کي سر پر پښو کښیږدي او سفر ته تیار نه وي او آخرت ته نه ګوري او د ضرورت څخه زیات ځان په دنیا کي مشغول کړي، ده دنیا ونه پېژندله، او د دې جهالت او کم عقلی سبب دا دی چي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي دنیا د هاروت اوماروت څخه زیاته جادوګره ده د دې څخه ځان ساته! هرکله چي د دنیا دومره غټ جادو دی نو د دې مکر وفریب پېژندل او د مثال په ذریعه د دې حقیقت دنیا ته ښکاره کول ضروري سو په دې وجه د دې مثال بیانول کیږي.

## د دنیا د مکر (چل) او فریب څو مثالونه

**اول مثال:** په دې نکته په ښه ډول سره پوه سه! چي د دنیا اوله جادو خو دا ده چي دا به تاه ته دا فریب

در کوي چي ستا سره به پاته کيږي حال دا دی چي داسي نه ده، بلکي دا ستا څخه په روانه توګه تښتي، د دې دا عمل داسي نه دی چي په هغه سره اندازه وسي چي دا په تيزي سره تښتي او ليري کيږي، بلکي دا عمل ډېر په سست تګ سره جاري دی د دې په مثال داسي پوه سه! چي ګواکي دغه سورلی (سپرلی) دی او سپرلي ته چي ته ګوري نو دی ولاړ په نظر راځي لېکن حقيقت دا دی چي دی په مخه ځي او تا ته معلومه ده چي ستا د عمر سلسله دغه ډول ده چي دا سوکه سوکه (کرار کرار) کميږي، دا دنيا ده چي دغه رنګه تيرېږي لېکن ته بالکل نه يې په خبر.

**دوېم مثال:** د دنيا د جادو دوېم مثال دا دی چي دا په ظاهره خپل ځان ستا دوسته ښکاره کوي او دغه رنګه ستا څخه خپل لاتو جوړوي او د دې اندازلو چم داسي وي چي ګواکي ستا سره به هميشه وفا کوي او بل هيچا ته به نه ځي لېکن ناڅاپه داسي وسي چي دا به تا پرېږدي ستا دښمن ته به ورسي، د دې مثال د يوې زنا کاري او فاحشي ښځي په رنګه دی چي په خلکو بازي کوي او پر ځان يې عاشقان کړی او کورته چي يې بوزي د مرګ مزه په وڅکي (يعني مره يې کړي). حضرت عيسی عليه السلام د کشف په حالت کي دنيا د بوډۍ (سپينسري) ښځي په شکل کي وليده، او د دې څخه يې پوښتنه وکړه چي تا د څومره خاوندانو سره واده کړی دی؟ دې وويل چي شمېر يې مشکل دی، ده پوښتنه ځيني وکړه چي هغه مړه دي که په طلاقونو ئې څخه جلاسوي دي هغې وويل بلکي ټول مې وژلي دي، حضرت عيسی ﷺ وفرمايل چي پر دې احمقانو باندي تعجب دی چي د مخکي خلکو د حشر او انجام د ليدلو سره سره ستا طرف ته په ځغلسته راځي!، او عبرت نه اخلي: اَللّٰهُمَّ اعْصِمْنَا مِنْ سِحْرِهَا (يا الله موږ د دنيا د جادو څخه وساته!)

**دريم مثال:** دا دی چي دنيا خپل ظاهر ډېر ښايسته او سينګار ساتي، او کوم امتحانونه، محنت او مشقت چي دي هغه پټ ساتي چي ناپوهه خلک د دې ظاهر ويني او پر عاشقان سي، ګواکي لکه چي بدې ښځه وي او مخ يې پټ کړی وي او ښايسته لباس يې اغوستی وي او ځان يې سينګار کړی وي چي څوک يې دليري څخه ويني نو پر عاشق سي او کله چي د مخ څخه پرده ليري کړی نو په ذلت سره ځيني يې زاره سي، په حديث شريف کي دي چي نبي کريم ﷺ فرمايي: فرشتې به د قيامت په ورځ دنيا د بدشکلي بوډۍ په شکل کي را مخامخ کړی، د دې سترګي به شنې وي او غاښونه به يې دومره اوږده اوږده وي چي د خولې څخه به بهر راوتلي وي، مخلوق چي هر کله دا ويني نو وبه وايي: په لوی ځښتن پناه دا بدشکله او تور مخې څوک ده؟ فرشتې به ووايي چي دا هغه دنيا ده

د کومي د پاره چي تاسو پخپل مینځ کي دښمني کوله او یو بل به مو پر وژل او تعلقات به مو ختمول، او پر دې به عاشقان کېدلاست، بیا به دنیا دوزخ ته واچوي دا به ووایي چي یا الله زما دوستان څه سو؟ الله تعالی به وفرمایي: چي د دې دوستان هم د دې سره دوږخ ته ورسوئ، نَعُوذُ بِاللّٰه.

**څلورم مثال:** که یو سړی حساب وکړي چي د ازل څخه تر اوسه پوري څومره زمانه تېره سوه، او تر ابده پوري څومره زمانه باقي ده چي دنیا به پکښې نه وي نو ده ته به معلومه سي چي د دنیا مثال داسي دی لکه مسافر چي ابتداء یې ځانګو ده او انتها یې قبر دی، او په میانځ کي په شمار څو منزلونه دي هر کال ګواکي یو منزل دی هره میاشت فرسخ (د دري میله څخه زیاته مسافه) او هره ورځ میل دی، او هره ساه قدم دی، او دی روان دوان دی څوک یو فرسخ ځي څوک زیات څوک کم، او دی داسي ناست دی چي ګواکي همېشه به وسي، د دنیا د کارونو داسي تدبیر کوي چي تر لسو کالو پوري دی بیا کارونو ته محتاج نسي که څه هم په دغه ورځ تر مځکي لاندي کېږي.

**پنځم مثال:** په دې حقیقت یقین وکړئ! چي د دنیا څخه خلک کومه فائده اخلي او دوی به د دې په بدله کي په قیامت کي کوم ذلت او مصیبت برداشت کوي د دوارو په مینځ کي تناسب څه داسي دول دی چي یو سړی ښه خوندور خوراک وخوري چي هر قسم غوړیزګي او خوږوالی پکښې وي تر دې چي د ده معده خرابه سي، او بیا په دغه وخت کي قی کوي او د اسهالو د لاسه رسوا سي، شرم او پښېماني د ده مقدر جوړه سي او محسوس کړي چي دغه خوند او مزه دي ورکه سي چي په بدله کي یې داسي رسوا سوم.

خوراک چي څومره دروند او ښه وي دومره د هغې بوج، بدبويي، سختي او ګندګي زیاته وي، دغه ډول د دنیا لذت چي څومره زیات وي انجام به یې دومره رسوائي او ذلت وي، او دا سلسله د روح ختلو د وخت څخه شروع کېږي چي د کوم سړي سره څومره زیات نعمتونه وي باغونه، غلامان، نوکران، مینځې، سره او سپین زر دومره به یې د جدایي غم هم زیات وي، او یو مفلس ته به هیڅ تکلیف نه وي، او دا رنج داسي دی کوم چي د عذاب یا مرګ څخه زیات نه وي، بلکي نور زیاتیږي په دې وجه چي د دنیا دوستي د زړه معامله ده او زړه د مرګ څخه وروسته هم باقي پاته وي.

**شپږم مثال:** د دنیا کوم کار چي مخي ته راځي، دغه په ښکاره لږ ښکاره کېږي خلک دا ګڼي چي په دې کي به مشغولیت ډېر کم وي، لېکن کېږي داسي چي د یو کار څخه سل کارونه نور پیدا کېږي او ټول عمر په دغه کي تېر سي، حضرت عیسی علیه السلام فرمایي: چي د دنیا د طالب مثال داسي دی

لکه د سمندر څخه د لږو څښوونکي هغه چې څومره زیاتې څښي د ده تنده نوره هم زیاتیږي تر دې
چې په څښلو څښلو کې هلاک سي لیکن د ده تنده نه سړیږي، نبي ﷺ فرمایي: چې دا خبره ناممکنه
ده چې یو سړی اُوبو ته ورشوه سي او پر ده د اوبو اثر ونسي، دغه ډول دا خبره هم ناممکنه ده چې یو
سړی د دنیا په دندو او کارو کې اخته سي او دی پکښې ککړ او متأثره نسي.

**اووم مثال:** کوم سړی چې دنیا ته راسي د ده مثال داسي دی لکه د کور خاوند ته چې میلمه راسي او
د دې د کور خاوند عادت دا وي چې همېشه د میلمنو دپاره کوټه ښایسته ساتي او ډله ډله میلمنه
رابولي د سرو او سپینو زرو پلیټونه او دعود خوشبوداره انګېټې د دوی مخ ته ږدي چې دماغ یې
خوشبوداره سي، او بیا دوی دا هر څه پرېږدي واپس ځي، او د ده شکریه ادا کوي، لېکن کوم میلمه
چې احمق دی د هغه خیال وي چې دا هر څه به ماته ملاوېږي لکه څنګه چې دی په واپسی کې د هر
څه د را ټولو کوشش کوي لېکن د هغه نوکران هغه هر څه د ده څخه اخلي نو دی خفه سي، او چیغې
وهي، نو دنیا هم یوه میمله سرای (میلمه کور) دی چې میمله راسي د ضرورت سامان واخلي او د
ټولو حرص دې نه کوي .

**اتم مثال:** د دنیا په کارونو کې مشغولېدل، او د آخرت هېرولو مثال داسي دی لکه د انسانانو یو
جماعت چې په کښتۍ کې سپاره وي او دغه کښتۍ یوې جزیرې ته ورسیږي، او دغه خلک د خپلو
ضرورتونو او د بدن پاکولو د پاره د کښتۍ څخه بهر راسي، او ملاح (کښتي چلوونکی) اعلان وکړي
چې زیات وخت به نه کوئ!، نو د خپلو ضرورتونو څخه ژر فارغ سئ! ځکه چې کښتۍ به ژر
روانیږي، لېکن خلک خواره سي یوه ډله چې هوښیاران وي ځانونه یې ژر ژر فارغ کړي، او واپس
راسي، په کښتۍ کې پرخپل مناسب ځایونو کښېني او بله ډله د جزیرې په سېل (منظره) پسې سي،
د ښایسته ښکلي ګلونو او مرغانو او نورو په تماشو پسې سي او چې واپس راسي په کښتۍ کې د رڼا
او فراخي ځایونه نیولی سوي وي، په تنګو او تیاره ځایونو کې په تکلیف سره کښېني، او دریمه ډله
په سېلونو پواځې صبر نه سي بلکي د هغه ځای څخه یې د ځان سره ښایسته شګې (سنګریزې) او
نور شیان هم را ټول کړي، غوټې (پلنډې) راوړي، او بیا په کښتۍ کې د هغو د ایښوولو ځای نه وي
نو پر ځان باندې لوړ دغه بوجونه (پلنډې) پر سرونو ساتي او دوې درې ورځې وروسته د دغو څخه
بدبویي شروع سي، او رنګونه یې بدل سي او بیا یې د غورځولو ځای هم نه وي نو اوس د ستوماتی او
خفګان سره دغه بوج هم دغه ډول پر سرونو بار ساتل ورته پرېوځي، او یوه بله ډله خو د جزیرې په

سپلو نو او عجائباتو کي داسي مشغوله سي چي کښتی ځيني ولاړه سي او دوی هلته پاته سي د ملاح خبره ونه مني، نو ځيني درندګان وخوري او ځيني د لوږې څخه مړه سي، نو د لوګي ډلي مثال د مسلمانانو دی، او آخري ډله کومه چي هلاکه سوه د دوی مثال د کافرانو دی چي خپل ځانونه او الله او رسول دارنګه آخرت يې بالکل هېر کړل او ځانونه يې بالکل دنيا ته حواله کړل: اِسْتَحَبُّوا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ (دنيا يې په آخرت باندي غوره کړه) او د مينځ دواړي ډلي د ګناهکارانو په ډول دي، دوی ايمان خو محفوظ کړی ليکن د دنيا څخه يې لاسونه را ونه نغښتل يوې ډلي د افلاس سره سپل وکړو او بوه ډله د بد کاری ښکار سوه بارونه يې جمع کړل ځانو نه يې درانه کړل.

## په دنيا کي هر څه نا کاره او بې کاره نه دي

مخکي د دنيا چي کومه بدي بيان سوه پر دې دا ګمان مه کوه چي دا په دنيا کي چي کوم څه دي دا ټوله بد او ناکاره دي، بلکي په دنيا کي دا شيان هم سته چي هغه په ښکاره توګه په دنيا کي دي ليکن في الحقيقت داسي نه دي، مثلاً علم او عمل چي دا په ظاهري توګه په دنيا کي دي ليکن په حقيقت کي داسي نه دي بلکي دا خو په آخرت کي هم د بنده سره ځي، علم خو داسي د بنده سره وي او د عمل اثر ور سره وي او د دې اثر دوه ډوله دي: يو خو د زړه پاکی او صفايي ده کوم چي د ګناه په پرېښوولو سره نصيب کېږي او يو د الله جَلَّ جَلَالُهُ د ذکر محبت دی کوم چي هميشه په عبادت کولو سره حاصلېږي نو دا ټول باقيات الصالحات دي لکه چي الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي: وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ [الکهف] (او کوم نيک عملونه چي باقي پاته کېدونکي دي دغه ستا د رب په نزد ډېر غوره دي) او د علم، مناجات لذت او د الله جَلَّ جَلَالُهُ د ذکر لذت د ټولو څخه زيات دی، او په ظاهري توګه په دنيا کي دی ليکن په حقيقت کي په دنيا کي نه دی، نو مقصد دا دی چي د دنيا څخه ټول لذتونه بد نه دي، بلکي کوم لذتونه چي فنا کېږي او باقي نه پاته کېږي هغه هم ټول بد نه دي بلکي د دې هم دوه قسمه دي: يو هغه لذت دی کوم چي په دنيا کي دی او د مرګ څخه وروسته فنا کېږي، ليکن د آخرت په کارونو او علم وعمل او د مسلمانانو په ترقی کي مددګاره وي لکه نکاح او هغه خوراک، لباس کوم چي په دنيا کي د کفاف ذريعه وي او د آخرت د پاره ضروري وي، کوم سړی چي په دنيا کي په دومره اندازه قناعت وکړي او په فراغت سره د دنيا د کار کولو نيت وکړي دغه سړی په حقيقت کي دنيا داره نه دی، بده او ناوړه هغه دنيا ده په کومه سره چي د دين کار مقصود نه وي بلکي دغه په دې جهان کي د

غفلت او ځان بښوولو او زړه لګولو باعث وي او د هغه جهان څخه د نفرت باعث وي، په دې وجه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: الدُّنْيَا مَلْعُوْنَةٌ وَ مَلْعوْنٌ مَّا فِيهاإِلا ذِكْرُ الله وَمَاوالاهُ (دنيا او څه چې په دې کې دي ټول ملعون دي ها! دالله ﷻ ذکر (ياد) او څه چې د دې معاون (مددګار) دي ملعون نه دي بلکې باعث د خير او برکت دي .)

د دنيا د حقيقت تفصيل او د دنيا څخه چې کوم مقصود دي د هغه دومره اندازه بيان دلته کافي دي. نور چې کوم شيان د دين په لاره کې د ګټو او نفعو ذريعه جوړيږي دغه به انشاء الله تعالی د آرکانو د معاملې په دريم قسم کې بيان سي، او هلته به ټول حقيقت ښکاره سي.

## څلورم عنوان: د آخرت د پېژندو بيان

ياد ساته! چې تر څو پورې د مرګ حقيقت معلوم نسي تر هغه وخته يو سړی آخرت نسي پېژندلی او د مرګ د حقيقت دارومدار د ژوند دحقيقت په پوهېدلو بانديي دی او هر کله چې د ژوند حقيقت د روح دحقيقت په معلومولو کې دی او د روح د حقيقت انحصار د خپل نفس د حقيقت پر پېژندلو دی، چې لږ اندازه بيان يې لوړ تېر سو.

موږ مخکې ويلي دي چې د بنده پيدايښت د دوو شيانو څخه سوی دي چې يو روح دی، بله دانچه ده (يعني جسم)، روح خو سپور دي او دانچه سورلی (سپرلی) دي او په آخرت کې به د کالبوت(جسم) په وجه سره روح يا په جنت کې وي يا په دوزخ کې، او د قالب (جسم) د شرکت او مداخلت څخه بغير به هم د روح معامله په جنت يا دوزخ کې د يو سره وي، او دغه به يا سعادت مند وي يا بدبخت او د زړه هغه لذتونه او نعمتونه کوم چې بغير د قالب څخه وي دغه ته روحاني جنت وايي، دغه ډول د زړه متعلق هغه غم او تکليف کوم چې بغير د قالب څخه وي په روحاني اور سره تعبير کول کيږي، ليکن هغه جنت او دوزخ چې په هغو کې واسطه د کالبوت ده دغه پخپله ښکاره دي، باغونه، نهرونه، حوري، ښې ښې محلونه، خوراک څښاک او نور به په جنت کې وي، او مارانې لړمان ازغي داري درختې او نور به په دوږخ کې وي، او د دې دوږخ او جنت ذکر په قرآن شريف کې سته او مشهور دی، او هر څوک په پوهيدای سي د دې تفصيل په احياء العلوم (د امام غزالی تصنيف) په باب د ذکر د مرګ کې موجود دی،او دلته پر دې کفايت کوو، يعني د جنت او دوږخ روحاني ذکر محض اشارةً او د مرګ ذکر تفصيلاً کوو، ځکه چې دا هر څوک نه پېژني او نه هر سړی

په پوهیږي، په حدیث قدسي کي دي چي أُعِدَّتْ لِعِبَادِي الصَّالحين مَا لاعينٌ رأتْ ولا أُذُن سَمِعَتْ ولا خَطَرَ عَلَى قَلْبِ بَشَرٍ نو دا به په روحاني جنت کي وي او انساني زړه ته د عالم ملکوت د طرفه یوه دروازه ده چي د هغه په ذریعه دا رازونه معلومیږي، او په دې کي هیڅ شک او شبهه نه پاته کیږي، کوم زړه ته چي د عالم ملکوت د طرف څخه دراوزه خلاصیږي، ده ته دآخرت په نیک بختي او بدبختي باندي کامل یقین راځي، دی فقط په اوریدلو نه بلکي په مشاهد او معاینه سره باور کوي، لکه څنګه چي طبیب په دې خبره باندي پوهیږي چي په دې دنیا کي د انساني بدن دپاره سعادت او شقاوت سته، چي نوم یې صحت او مرض (ناروغي) ده، او د دې مختلف اسباب دي، مثلاً دوایي (درمل) خوړل، پرهیز کول د بدن د سعادت سبب دي او ډېر خوراک او پرهیز نه کول د شقاوت سبب دي، دغه ډول دې سړي ته په مشاهده (کتني) سره معلومېداى سي چي د زړه یعني د بنده د روح د پاره سعادت اوشقاوت سته د دې سعادت دوایي (درمل) او سبب معرفت او عبادت دی او چي د ده زهر جهل او معصیّت دي، او د دې پېژندل ډېرلوی علم دی، ډېر خلک چي هغه عالمان دي دغه نه صرف د دې علم څخه غافله بلکي د دې څخه منکر دي دوی محض بدني جنت او جهنم مني، او آخرت محض په اورېدلو او تقلید سره پېژني، او موږ په دلیلونو سره د دې امر په تحقیق او تشریح کي عربي کتابونه لیکلي دي، او په دې کتاب کي خو صرف دومره ویل کیږي، د دې د پاره چي کوم سړی زیرک او هوښیار دی او د چا باطن چي د تعصب او د تقلید د ګندګیو څخه پاک دی هغه دا لار پیدا کوي او د آخرت لاره د ده په زړه کي محکمه او مظبوطه سي څکه چي دآخرت په معامله کي د زیاترو خلکو ایمان ضعیف او متزلزل دی.

## د مرګ(موت) حقیقت

که ته د مرګ حقیقت پېژندل غواړې او په معنی یې پوهیدل غواړې نو په دې خبره پوه سه! چي د هر بنده دوه روحونه دي: یو د حیواناتو د جنس څخه دی کوم ته چي روحِ حیواني وایي، او یو روح د ملائکو د جنس څخه دی چي د هغه نوم روحِ انساني دي، د حیواني روح سرچمشه(منبع) زړه دی یعني د غوښي هغه ټکره کومه چي په سینه کي چپه طرف ته ده او دا روح د حیوان د باطني خلطونو یو لطیف بخار دی، د ده مزاج معتدله دی چي د زړه څخه د رګونو په ذریعه وڅي دماغ او نورو اعضاؤ ته رسیږي، دا روح دی کوم چي د حسّ او حرکت قوّت یې راپورته کړی دي، کله چي دی دماغ ته رسیږي نو ګرمي یې کمیږي او ډېر معتدله سي، سترګي د ده په ذریعه کتل کوي او غوږونه اورېدل،

دغه ټول تول حواس حاصلیږي، د دې روح مثال د څراغ (ډیوې) په څېر دی چې څراغ کله کوټه واخلي نو کوم ځای ته چې رسیږي هلته د کوټې دېوالونه په رڼا کیږي، لکه څنګه چې په څراغ سره پر دېوالونو رڼا پیدا کیږي، دغه ډول د الله ﷻ په قدرت سره د روح په وجه په سترګو کې نور او په غوږونو کې د اورېدلو طاقت او ټول حواس پیدا کیږي که په یو رګ کې خوټه واسي، نو کوم اندام چې د دې خوټې څخه خالي وي، هغه بې کاره او فالج زده سي په ده کې هیڅ ډول قوّت او حسّ، حرکت نه پاته کیږي، د طبیب کوشش وي چې دغه خوټه خلاصه سي ګواکي روح د څراغ رڼا ده او زړه څراغ دی او غذا (خوراک) یې تېل دي، که تېل ور وانه اچول سي نو څراغ به مړ سي، دغه ډول که خوراک ملاؤ نسي نو د روح په معتدله مزاج کې خلل (تاوان) راځي او حیوان مړ کیږي، که تېل ډېر وي لیکن څراغ تېل زيات راکاږي نو څراغ خراب سي تر دې چې بیا تېل نه راکاږي دغه ډول یو څه زمانه وروسته په زړه کې هم داسي وسي چې خوراک نه قبلوي، او لکه څنګه چې پر څراغ د یو شي ګذارلولګیږي نو سره د دې چې تېل وي خو څراغ مړه سي، دغه ډول په سخت زخم سره حیوان مړ سي، او که دا روح هم دغسي معتدل مزاجه وي لکه څنګه چې پکار دي نو قوّت حس او حرکت قبلوي او د حق تعالی د دستور مطابق د اسماني فرشتو د انوارو څخه فیض پیدا کوي، لیکن که حرارت یابرودت (ګرمی او یخ) یا په یو بله وجه سره دغه مزاج باطل سي نو د دې قابل نه پاته کیږي چې دغه آثار او انوار قبول کړي، لکه څنګه چې هینداره ده چې په دې کې د صورتونو عکس تر هغه پورې ښکاره کیږي تر څو چې دغه صفا او روښانه وي، لیکن هر کله چې خیرنه او زنګ آلوده سي نو د هیڅ شي عکس بیا نه قبلوي، حال دا دی چې د دې وجه دا نه وي چې په دې کې منعکس کېدونکي صورتونه چیري غائب سي یا یې خاتمه وسي، بلکي اصل سبب فقط دا وي چې په دې کې د عکس قبلولو قابلیت باقي پاته نسي، لکه څنګه چې (په روح حیواني کي هم) هر کله چې د اعضاؤ څخه د حس او حرکت د قبلولو اهلیت پاته نسي نو اندامونه د ده د عطاء او بخشش او د ملائکو د انوارو څخه محرومه سي او بې حس او حرکته سي، او موږ وایو چې مرګ یې واقع سو؛ د حیواني مرګ معنی دا ده.او د ده مزاج لره د اعتدال لیرې کوونکی او د دغو اسبابو پیدا کوونکی د الله ﷻ په بندګانو کې یو بنده دی چې د مرګ فرښته یا ملک الموت ورته وایي، لیکن خلک د ده صرف نوم پیژني ځکه چې د ده حقیقت پیژندل یوه اوږده خبره ده، په هر حال دحیواناتو د مرګ معنی دا ده .

لیکن انساني مرګ په نورو وجوهو بلندي مبنی دی ځکه چې په ده کې که یو طرف ته روح حیواني موجود دی هلته یو بل روح هم سته کوم ته چې موږ روح انساني وایو، او زړه مو د ده نوم ایښی دی،

لکه چې په تېرو فصلونو کې ذکر دي، او دا روح انساني د روح حیواني د جنس څخه نه دی کوم چې یو جسم دی د لطیفې هوا په ډول او د پوخ بخار په ډول صاف سوی دي، او دا روحِ انساني مُجسّم (جسم لرونکی) نه دي ځکه چې دی تقسیم کېدای نسي، او د حق تعالی معرفت په ده کې ظهور کوي، او لکه څنګه چې حق تعالی پخپله یو دی او تقسیم نه قبلوي، نو د ده ظهور هم په یو ناسي جسم کې نسي کېدای چې هغه تقسیم قبلوي بلکې په یو داسې جسم کې به ظاهرېږي چې هغه پخپله یو او ناقابل د تقسیم وي، نو د مثال په توګه څراغ او د څراغ اُور او رڼا(نور) په دې کې څراغ د جسم په شان دی، د څراغ اُور د روحِ حیواني په شان دي او د څراغ نُور د روح انساني په شان دی، او لکه څنګه چې نور د څراغ د اُور څخه زیات لطیف او باریک دی، که څه هم د دې تشریح نسي کېدای، دغه رنګه دا مثال هم از روی لطافت صحیح ور ته ویل کېږي کنې په بل شان صحیح کېدلای نسي ځکه چې نُور د څراغ پخپله د څراغ تابع دی او د څراغ په مړ کېدلو سره دغه نور هم ختم کېږي، حال دا دی چې روح انساني د روحِ حیواني تابع نه دی، بلکې دغه پخپله اصل دی او د روحِ حیواني په خاتمه سره د ده خاتمه نه کېږي؛

د دې زیات صحیح او واضح مثال که غواړې نو داسې وګڼه چې دا یو نُور دی کوم چې د څراغ څخه ډېر زیات لطیف دی او د څراغ قیام د ده په سبب سره دی د ده قیام د څراغ په سبب سره نه دی نو دا مثال صحیح کېږي، او روحِ حیواني په یوه وجه سره د انساني روح ګواکې یا سورلی (سپرلی) دي او په یوه وجه سره د ده وسله ده، کله چې د روحِ حیواني مزاج زائل سي نو قالب (جسم) مړ سي او روحِ انساني باقي پاته وي لېکن د سپرلي او وسلې څخه بغیر سي، د سپرلي په تباه کېدلو سره سپور تباه کېږي نه، خو بې سپرلي او یواځې سي، او داوسله دې سپور ته په دې وجه ورکړل سوې ده چې د محبت او معرفت الهي عَنقا ښکار کړي که دی په ښکار کې کامیاب سو نو د وسلې ضایع کېدل د ده په حق کې غوره دي ځکه چې دغه ډول به دی د بوج څخه خلاص سي او نبي کریم ﷺ چې کوم ارشاد فرمایلی دي چې مرګ د مؤمن تحفه او ډالی ده هغه داغه خبره ده، چا چې د ښکار وسله او دام د ځان سره اخیستی وي او د دې بوج یې پخپل سر پورته کړی وي، کله چې ښکار د ده لاس ته راسي نو د دام ضائع کېدل بیا غنیمت شمېري، او خدای مه کړه که د ښکار په لاس کې د راتلو څخه مخکې دام ضائع سي نو ښکاري د حسرت او افسوس نمونه جوړه سي، او په بې پناه مصیبت کې اخته سي چې ابتداء یې د قبر د عذاب څخه کېږي.

## د انساني وجود (هستی) حقیقت

نو پوه سه! که دیو سړي لاسونه، پښې کار پرېږدي (یعني شَلْ سي) نو هم ژوندی پاته کېدای سي ځکه چې د ده ژوند نه په پښو کې دي نه په لاسو کې، بلکې دا لاسونه پښې خو فقط د ده وسله ده او دی د دغو استعمال کوونکی دی، او لکه څنګه چې ستا اصلیت ستا لاسونه او پښې نه دي، دغه ډول ستا حقیقت ستا شا(ملا)، نس یا سر یا جسم هم نه دي، بلکې دا ټول که بې کاره سي نو هم عین ممکنه ده چې ته مړ نه سې، او ته به هم دغسې ژوندی سلامت يې او دمرګ دا مطلب نه دی چې ستا جسم مفلوج سي (ځکه چې د مفلوج کېدو څخه دلته بل څه مراد دي مثلاً) ستا دلاس مفلوج کېدل دا معنی لري چې دغه ستا د اطاعت څخه انکار وکړي، چې ده ته یې ستا د اطاعت کوم صفت ورکړی وو هغه یو صفت وو کوم ته چې د لاس قدرت یا طاقت وایي، او دغه صفت ګواکې نور دی کوم چې د روح حیواني په ځراغ سره لاس ته رسیږي، لیکن هر کله چې په دې رګونو کې (چې هغه د دې نُور د رسولو دلارې کار کوي) څه بندیز پیدا سي نو د لاس هغه قدرت یا طاقت ختم سي او د طاعت څخه معذوره سي دغسې ستا ټول بدن کوم چې ستا اطاعت ته تیار وي نو ستا او د ده په مینځ کې چې کومه واسطه یا تعلق قائم دی هغه د دې روحِ حیواني په وجه دی نو کله چې د روحِ حیواني مزاج په اعتدال پاته نـسي تباه سي، نو دغه د اطاعت څخه انکار کوي او دې ته مرګ وايي، حال دا دی چې ته به پرخپل ځای ژوندی يې، که څه هم ستا اطاعت کوونکی پرخپل ځای باندي نه وي، په دې وجه ستا حقیقت ستا جسم څنګه کېدای سي. که ته سوچ وکړې نو تا ته به معلومه سي چې ستا دا اعضاء هغه اعضا نه دي کوم چې په کوچنیوالي کي وو، ځکه چې دغه خو ټول د بخاراتو په وجه سره تحلیل سوي دي او د خوراک په وجه سره د دغو نعم البدل هم تا ته حاصل سوي دي (یعني دغه تبدیل سو) نو ستاجسم هغه نه دي پاته سوی که څه هم ته پخپله يې، نو ستا حقیقت د دې جسم سره ترل سوی نه دي دا که تباه کیږي نو تباه به سي خو ته به پخپل ځای هم دغسې ژوندی يې.

خو ستاصفتونه پر دوه قسمه دي: یو خو هغه دي چې په هغو کي ستا بدن ته شرکت حاصل دی لکه لوږه تنده او خوب او داسې نور، او دا بغیر د مادې او بغیر د جسم څخه یو وجود نه لري، او په مرګ سره د دوی خاتمه کیږي، لیکن دویم هغه دي چې په هغو کي جسم ته شرکت حاصل نه وي، لکه د الله ﷻ معرفت، نظاره د جمال الهي، او په دې سره حاصله سوې خوشحالي، دا ستاد ذات صفت دی چې هغه ستا سره وي، او دې ته باقیاتِ صالحات (یعني باقي پاته کېدونکي پاک صفا اعمال) ویل

کیږي، او که معامله د دې شخه چپه وي او پر ځای د معرفت الهي ته د ذات حق شخه غافله او جاهله يې نو دا هم ستا ذاتي صفت دي او ستا سره به وي لو (د باقیات صالحات پر ځای به) ستا د روح د پرونډوالی دلیل وي، او ستا دبدبختی تخم به کري، لکه چي الله ﷻ فرمايلي دي: مَنْ كَانَ فِيْ هٰذِهٖۤ اَعْمٰى فَهُوَ فِى الْاٰخِرَةِ اَعْمٰى وَاَضَلُّ سَبِيْلاً (څوک چي په دنیا کي ړوند وي هغه به په آخرت کي هم ړوند وي او د لاري څخه به زیات گمراه وي) نو تر څو پوري چي ته د دې دواړو روحونو (روح حیواني او روح انساني) حقیقت د دوی فرق او د یو بل سره تعلق ونه پیژني، تر هغه وخته پوري ته د مرگ حقیقت نه سې پیژندلای.

## دروح حیواني ربط د عالم سُفلی(دنیا) سره

په ښه توگه پوه سه! چي دا روح حیواني د عالم سُفلي څخه دی، او د ده ترکیب د څلورو شیانو څخه سوی دي یعني: وینه، بلغم، سودا او صفرا، دا د دې اجزاء ترکیبي دي، او د څلورو سره وو اصل: اوبه، اور، خاوري او هوا ده، او د دوی د اختلاف یا اعتدال انحصار پر گرمي، یخ، تري او خشکی دی، او په دې وجه د فن طبابت مقصد دا دی چي د روح پر دې څلورو عناصرو نظر وساتي چي دا روح حیواني د دې قابل سي چي د دې بل روح د پاره د سورلي او وسلې کار ورکړي چي هغه ته موږ روح انساني وایو، او دغه (روح انساني) د دې عالم سفلی څخه نه دي بلکي د عالم عُلوي څخه دی او د فرشتو د جوهر څخه دی، او دې عالم سفلي ته د ده راتلل فقط د یو مسافر غریب الوطن په ډول دي، او بیا د ده دلته راتلل د ده د ذاتي خوښي نتیجه هم نه ده بلکي په دې سفر کي دی څکه رالیږل سوی دي چي دی خپله د لاري تو ښه حاصله کړي، لکه چي الله ﷻ فرمايلي دي: قُلْنَا اهْبِطُوا مِنْهَا جَمِيْعًا فَاِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ مِّنِّيْ هُدًى فَمَنْ تَبِعَ هُدَايَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَاهُمْ يَحْزَنُوْنَ (موږ حکم وکړی چي لاندي ولاړ سئ د دې جنت څخه ټول او بیا که زموږ د طرف څخه یو هدایت تاسو ته راغلی او چا چي د دغه هدایت پیروي وکړه نو د قیامت په ورځ به نه پر دوی بیره وي او نه به پر دوی غم وي) [البقرة] او هغه کوم چي الله ﷻ فرمايلي دي: اِنِّيْ خَالِقٌ بَشَرًا مِّنْ طِيْنٍ فَاِذَا سَوَّيْتُهٗ وَنَفَخْتُ فِيْهِ مِنْ رُّوْحِيْ (زه د خټو څخه یو انسان جوړوم نو کله چي زه دی پوره جوړ کرم او په ده کي د خپل طرف څخه روح پُو کرم) نو په دې کي په اصل کي د دې دواړو روحو نو د مختلف کېدلو طرف ته اشاره ده، چي د یو حواله يې د خاوري څخه ورکړه او ویې ویل "چي دی د خاور څخه پیداکوونکي یم" یعني دی يې جوړ او تیار

کړی او اعتدال دا دی، د دې شخه وروسته یې وفرمایل " کله چي زه په ده کي د خپل طرف شخه روح پوکرم یعني خپل روح پکښي پُوکرم" گواکي د خپل ځان سره یې نسبت ورکړی، او د دې مثال داسي دي چي څوک د پنبه رو کپړو (جلمو) ته اور ورواچوي او کله چي دغه داُور اخستولو قابله سي بیا دغه اور ته نژدې ورسي پوریې کړي چي اور وانخلي، او څنګه چي دسفلي روحِ حیواني د پاره یو حد داعتدال مقرر دی او علم طب د دغې تعین داعتدال شخه خبر دی چي دی د ناروغی شخه وساتل سي او د هلاکت شخه یې محفوظ کړي، دغه ډول د علوي روحِ انساني د پاره هم کوم چي حقیقت د زړه دی یو حد داعتدال مقرر دی، چي د دې د حفاظت د پاره علمِ اخلاق او ریاضت سته، چي دی پر اعتدال ساتي، او د ده د صحت سبب جوړ سي، لکه چي په را روانه کي به د اسلام دارکانو په بیان کي پر دې رڼا واچول سي، نو معلومه سوه چي تر څو پوري یو انسان د روحونو د حقیقت څخه خبر نسي تر هغه وخته پوري ده ته ممکنه نه ده چي پخپله پوهه سره دآخرت حقیقت وپېژني، بالکل دغه ډول ناممکنه ده چي لکه څنګه د خپل ځان د پېژندلو شخه ما سوا د الله ﷻ پېژندل ناممکنه دي، نو خپل نفس پېژندل دالله ﷻ د معرفت چلبي ده، او حقیقت د روحونو پېژندل دمعرفت دآخرت چلبي ده، او د دین بنیاد دا دی چي پر ورځ د قیامت ایمان راوړی او په دې وجه سره د دې معرفت ذکر موږ مخکي وکړی، خو په دې رازونو کي دیو راز ذکر موږ ونه کړی کوم چي د دې اصل بنیاد دي، او دا ځکه چي د دغه د ویلو اجازت نسته، ځکه چي په دې هر سړی نه پوهیږي، که شه هم د معرفت د حق او د معرفت دآخرت بشپړ دارومدار د دې په پوهېدلو باندي دي، په هر حال تا ته پکار دي چي پخپل شان سره مجاهده او طلب وکړې چي په دغه پوه سې ځکه چي د دې په باره کي د بل چا شخه د شه اورېدلو طاقت او وس په تا کي پیدا کېدای نه سي ځکه چي ډېرو خلکو د حق تعالی د شان دا صفت د نورو شخه واورېدی مګر یقین یې ونه کړی سو او د دې داورېدو طاقت یې نه درلودې او انکار یې وکړی او ویې ویل چي د دې امکان نسي کېدای او دا تنزیه او پاکي نه ده بلکي تعطیل او بې کاري ده، هر کله چي دا حال دی نو د بنده به داورېدو تاب په حق کي د دې صفت څنګه راوړی سي، ځکه چي دالله ﷻ د دې صفت ذکر صریحًا نه په قرآن شریف کي راغلی دي او نه په احادیثو کي مذکور دي، داوجه ده چي خلک د دې د اورېدو شخه انکار کوي، او انبیاء علیهم السلام فرمایي: كَلِّمُوا النَّاسَ عَلَى قَدْرِ عُقُوْلِهِمْ (د خلکو سره د دوی د پوهي مطابق خبري کوئ) او پر یو نبي باندي وحي نازلي سوې چي زموږ د صفتونو په باره کي خلکو ته داسي خبري بیانوئ چي په هغه دوی پوهېدای سي، که

نسي په پوه نو انکار به وکړي او انکار به د دوی د نقصان لامل (موجب) وي.

## د مرګ څخه مراد نیست و نابود کېدل نه دي

د دې ټولو خبرو څخه تا ته دومره اندازه خو به معلومه سوې وي چي د بنده روح د ده د خپل ذات سره قائم دی او دغه ذات د جسم څخه بغیر هم د ده ذات دی، یعني د ده د ذات ترکیب او د ده د خاصو صفتونو خمیر د قالب یعني بدن څخه بې نیازه دی او د مرګ مطلب دا نه دي چي دی نیست و نابود سي بلکي د دې څخه مراد دا دی چي د ده تصرّف د ده د جسم (بدن) څخه منقطع سي، او نه د حشر او بعث یا بیا را پورته کېدو دا معنی ده چي د ده د نیست ونابودکېدلو څخه وروسته به دی بیا په وجود کي راوستل سي، بلکي د دې څخه مراد دا دی چي ده ته به جسم ورکړل سي چي یو وار بیا به د ده په تصرف کي وي لکه څنګه چي اول وو. او دا به ډېر آسانه وي، ځکه چي په اول وار خو د جسم او روح دواړو پیدا کول په عمل کي راوستل ضرور وو او بل وار خو به روح پرخپل ځای قائم وي بلکي د روح انساني سره به پخپله د جسم اعضاء هم موجود وي او د دو باره پیدا کول به په نسبت د دغو جمع کولو زیات آسانه وي، که څه هم داوضاحت خو زموږ د حدّ نظر مطابق دي کنې په حقیقت کي خو د آسانی د صفت د فضلِ الهي سره څه واسطه سته یعني د فضلِ الهي آسانی تلاش کولو ته هیڅ ضرورت نسته (نَعُوْذُ بِاللّٰه) ځکه چي کوم ځای ګراني نه وي هلته آساني هم نه وي؛

او د بنده د دو باره ژوندي کولو څخه دا مراد هم نه دي چي ده ته به لازماً هغه جسم دو باره ورکړل سي کوم چي مخکي د ده په تصرف کي وو، ځکه چي دجسم حیثیت خو د سورلي دي نو که سورلي (سپرلی) بدل کړای سي سپور خو به هم هغه وي کوم چي اول وو. او بیا سپور خو هم د کوچنیوالي څخه واخله تر سپنږروالي پوري د خوراکونو په تبدیلی او د مختلف مقدار په باعث خپل حالتونه بدلوی حال دا دی چي دی هم هغه وي کوم چي د اول پیدایښت په وخت کي وو، نو کومو خلکو چي دا شرط لازمي مقرر کړی پر دوی ډول ډول شکلونه وارديږي چي جوابونه يې د دوی سره هم نسته او که چیري سته نو ډېر ضعیف. حال دا دی چي د دې تکلف کولو دوی ته هیڅ حاجت نه وو، د پوښتني کونکو به څه وایي هغوی خو تر دې پوري وایي چي که یو بنده بل بنده وخوري، نو د دواړو اجزاء به سره یو ځای سي یو به سي په دې صورت کي به دو باره (په حشر کي) دغه اعضاء کوم یو ته ورکول کیږي؟ دغه ډول که د چا یو اندام پرې سي، او د دې څخه وروسته دغه سړی عبادت کوي نو په ثواب کي به دغه پرې سوی اندم د ثواب مستحق وي، او که نه: او که مستحق نه وي نو په جنت

کي به د دغه اندام (مثلاً لاس، پښه، سترګه، او نورو) څخه بغیر څنګه وسیږي؟ او که وي نو دغه اندام به د بل اندام سره د ثواب مستحق څنګه تصور کیږي هر کله چي په دغه عبادت کي دی شریک هم نه وو، او خلګ دغسي لغوه او واهیات اعتراضونه کوي او جواب ورکوونکي په ډېر تکلف او سختئ سره جوابونه ورکوي، حال دا دی چي د دې هیڅ ضرورت نه ستهٔ. هر کله چي ته تر مرګ وروسته په ژوندي کېدو پوه سوې او دا درته معلومه سوه چي داوّل قالب دومره ضرورت نستهٔ نو داسي سوال او جواب فقط فضول دی، او د دې اعتراضونو بنیاد داوو چي خلګو دا خیال کړی وو چي ستا هستئ او حقیقت ستا دا قالب دی، اولنی قالب چي هر کله بعینه نه وي نو دی به هم نه وي په دې سبب سره دا خلګ په اعتراض کي پرېوتل، حال دا چي د دې خبري اصل مظبوط نه دی.

## د مرګ اړوند د فقهاؤ او متکلمینو نظریې

اوس که ته دا ووایې چي د فقهاؤ او متکلمینو مشهور مذهب خو دا دی چي د بنده روح په مرګ سره فنا کیږي او دی به دو باره په وجود کي راوستل کیږي او کومه خبره چي دلته بیان سوه دا خو د دغې څخه چپه (مخالفه) ده نو پوه سه! چي څوک د نورو په خبرو باندي په هغو ورپسې کیږي دغه رنلیږي، او څوک چي داسي وایي د دوی شمار نه په مقلّدینو کي کېدای سي نه په عاقلانو کي، ځکه که د ده شمار په عاقلانو کي وي نو دومره خو به پوه وي چي د جسم په مرګ سره د بنده حقیقت نه فنا کیږي، او که دمقلدینو څخه وي نو د قرآن او احادیثو څخه دا خبره پر ده ښکاره کیږي چي د مرګ څخه وروسته د بنده روح قائم وي.

د مرګ څخه وروسته روحونه دوو قسمونو ته تقسیمیږي: یو ته د بدبختانو روحونه وایي، او بل ته مبارک روحونه. د مبارکو روحونو په اړه قرآن کریم فرمایي: ولا تحسبنّ الّذین قُتِلوا في سبیل الله امْواتًا بل اَحیاءٌ عند ربّهم یُرزَقُونَ. فَرِحِینَ بِمَا آتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ [آل عمران] (او کوم خلګ چي دالله ﷻ په لاري کي قتل سوي وي دوی مړه مه ګڼئ بلکي دوی ژوندي دي د خپل رب په نزد. دوی ته رزق هم ورکول کیږي او دوی خوشحاله دي په هغه شئ سره کوم چي الله ﷻ دوی ته پخپل فضل سره ورکړی دی) یعني کوم خلګ چي د الله په لاره کي مړه سو دغه مړه نه دي بلکي ژوندي دي، دوی ته رزق هم د الله ﷻ د طرف څخه ورکول کیږي او خوشحاله دي په هغه انعامونو کوم چي دوی ته د الله ﷻ د طرف څخه ورکول سوي دي، بلکي تر دې چي د جنګ بدر سخت زړي کافران چي کله قتل کړی سوه نو نبي کریم ﷺ دوی ته آواز وکړو ورېې فرمایل چي اې فلانی د فلاني زویه! د دښمنانو په

قهر او عذاب کي د مبتلا کولو په باره کي چي کومي وعدې الله ﷻ کړي دي ما خو هغه بالکل رشتيا پيدا کړې، اوس تاسو ووايياست چي آيا تاسو هم دغه وعدې رشتيا پيدا کړې او که نه؟ چي هغه د مرګ څخه وروسته دعذاب په باره کي ستاسو سره سوې وې؟ خلکو ووېل: يا رسول الله ﷺ! دا خو مړه دي اوس د دوی سره تاسو څنګه خبري کوئ؟ نبي ﷺ وفرمايل: قسم دي په هغه الله د کوم په لاس د قدرت کي چي د مُحَمّد ﷺ روح دي دا خلک دا خبري ستاسو څخه زيات اوري، لېکن فرق صرف دا دی چي دوی د جواب ورکولو څخه لا چاره دي، او که يو سړی په احاديثو کي د دې خبرو په باره کي تحقيق او لټون کوي کومي چي د مړو په باره کي سوي دي، چي دغه (مړي) د دې دنيا د ماتم کونکو زيارت کونکو غرض د هر هغه شي څخه خبرېږي کوم چي دلته کيږي، نو دغه به يقيناً په دې خبره پوه سي چي د دوی د فنا او نيستی په باره کي شريعت هيڅ نه دي ويلي بلکي څه چي يې ويلي دي هغه فقط دا دی چي په مرګ سره صفت بدلېږي منزل بدلېږي اوفنا کيږي نه او چي قبر د دوږخ د غارونو (کندو) څخه يو غار (کنده) يا د جنت د باغونو څخه د يوه باغ شکل اختياروي، نو دا يو تحقيق سوی حقيقت وګڼه چي د مرګ په وجه سره ستا ذات يا ستا صفات هيڅ نه خرابيږي، خو د حواسو حرکاتو او خيالاتو او نورو سلسله ختمه سي، چي هغه د دماغ او بدني اندامونو په وجه (دمرګ څخه اول) په کار مصروف وو، نو يادساته چي ته به هلته يوازې يې او داسي به نه يې لکه د مرګ څخه مخکي چي دلته يې، او دا خو تاته معلومه ده چي که آس مړ سي نو د ده سپور د جولا څخه عالم، فقيه نسي جوړېدای او نه ړوند جوړېدای سي، البته دی به پياده يعني د سورلي څخه به محروم خامخاسي، نو دا جسم دآس حيثيت لري او ته ګواکي د ده سپور يې او داوجه ده چي هغه خلک کوم چي د خپل ذات څخه او د خپلو محسوساتو څخه غائب کيږي (يعني د دوی څخه ډېر کوي) او خپل ځان د خدای په ياد کي مستغرق کوي، لکه چي د تصوف د لاري ابتداء وي، نو دآخرت د حالاتو مشاهده دوی ته حاصليږي، ځکه چي د دوی روحِ حيواني که څه هم د مزاج د اعتدال څخه بدليږي، لېکن دومره اندازه عاجزه او بې وسه سي او د خدای ېېره په ده کي دومره پيدا سي چي د ده ذات دې پخپل ځان کي مشغولېدو ته نه پرېږدي، تر دې چي د ده حالت قريب قريب د مړو په شان سي، نو دغه حقيقتونه کوم چي نورو ته د مرګ څخه وروسته معلوميږي ده ته دلته په دنيا کي په ژوندون معلوم سي، او د دې حالت څخه وروسته چي دی بيا په ځان کي راسي او خپل ځان بيا په دې عالم محسوسات کي ووينې نوزياتره داسي کيږي چي په دغه کي يو شئ ده ته ياد نه پاته کيږي (کوم چي يې ليدلي وي) خو بيا هم اثر يې ضرور باقي وي، مثلاً که په دغه حالت د کشف کي د

جنت حقیقت ده ته ښکاره سوی وي نو د هغې خوشحالي او راحت په ده کي باقي وي، او که د دوږخ حقیقت ورته ښکاره کړی سوی وي نو د زړه د تنګی او بدحالی کیفیت به په ده کي باقي وي او که د دغو (دوږخ او جنت) د مشاهدې څخه ده ته یو حصه یاده پاته سي نو هغه ښوولی هم سي، او که د خیال د خزانې څخه داسي قسم یو شبیه یا مثال داسي ده ته حاصله سي کوم چي یې په ښه شان سره یاد وي نو خبر یې ورکوي، څنګه چي نبي کریم ﷺ په لمانځه کي لاس مخکی کړی او وبې فرمایل چي د جنت څخه د انګورو وږلوري ما ته را کړی سو. او ما غوښتل چي دنیا ته یې راوړم. بیا هم په دې سره دا خیال نه دې کول پکار چي کومې غونچې (وږلوري) د انګور ورکړل سوې دغه یې دې دنیا ته واقعي راوړه هم، ځکه چي دا پرخپل ځای محاله دي چي که ممکنه وي نو دوی به راوړي ولی، او د دې محال کار په حقیت ځان پوه کول ډېره لیري خبره ده او دلته تا ته د دې دطلب کولو ضرورت نسته.

خو د علماؤ په مینځ کي په دې سلسله کي د رایې اختلاف سته چي ځیني خودا سوچ کوي چي د جنت د انګور دا وږلوري څنګه وو، چي دوی ﷺ خو ولیدلو لیکن نورو ونه لیدل. او څوک د دې فعل په بنیاد باندي محض دومره وایي چي دوی صرف لاس وښوروولو، نو په لږ غوندي فعل لمونځ نه فاسدیږي، د دې معاملې په تفصیل کي هغه فکر کوي اوګنی چي د مخکي وروسته ظاهري علم هم دغه اندازه ده چا چي داوپیژندلو او پر دې یې قناعت وکړو اوپه بل علم یعني تصوف سره مشغوله نه سو دغه بې کاره دی او د علم شریعت څخه د ده انکار دی، او د دې بیان څخه مقصود دا دی چي ته دا ګمان مه کوه چي نبي ﷺ د جنت حال محض دجبرئیل امین څخه اوریدلي دي محض په تقلید سره به یې خبر ورکولو، د حضرت جبرئیل علیه السلام څخه داوریدو په معنی باندي خو ته پوهیږي او دا کارهم د نورو کارونو په ډول ګني، لیکن نبي کریم ﷺ جنت لیدلی دي، حال دا چي په دې دنیا کي جنت څوک نسي لیدلی نو مقصد دا دی چي نبي کریم ﷺ هغه جهان ته تشریف یو وړی او د دې جهان څخه غائب سو دا غیبوبت د معراج په ډول وو.

د غیبوبت دوه قسمونه دي: یو د روح حیواني په مرګ سره وي، دویم د ده په کمزوري کېدو سره، په دې جهان کي هیڅ څوک جنت نسي لیدی، څنګه چي اووه اسمانونه اومځکي د پستې په پوستکي کي نه ځایږي دغه ډول د جنت یو زره په دې جهان کي نسي ځایېدی، بلکي قوّت سلمه چي څنګه د دې خبري څخه معذوره دی چي په سترګو کي د اسمان او مځکي صورت څنګه پیدا کیږي، دغه ډول د دې جهان ټول حواس د جنت د ذرّو څخه معذوره دي او د دې جهان حواس بالکل

جلا دي.

## د قبر عذاب

اوس هغه وخت دی چي ته د قبر د عذاب معنی وپېژني او په دې پوه سې! چي عذاب د قبر هم پر دوه ډوله دي يعني روحاني او جسماني، د جسماني په باره کي خو هر سړي ته معلومه ده لېکن د روحاني خبر هيچا ته نسته سوا د هغه چا څخه کوم چي ځان پېژندلی وي او د خپل روح د حقيقت څخه يې هم خبر حاصل کړی وي چي دغه خود بخود قائم دی او د جسم څخه بې نياز دی، د ده خپل جلا خمير دی، او دغه د جسماني مرګ څخه وروسته هم باقي او قائم وي ځکه چي مرګ دی نيست نابود کولای نه سي صرف د ده لاسونه پښې ستر ګي غوږونه او حواس او نور د ده څخه واخيستيل سي، او هر کله چي حواس د ده څخه واپس واخيستل سي نو د دې سره د ده ښځه بچي مال اسباب، غلامان، نوکران، مال، څارويان، کور، خپل خپلوان غرض په دې کائناتو کي په حواسو سره معلومېدونکي هر شئ د مځکي اسمان سره هر څه واپس واخيستل سي، څرنګه چي د دې شيانو سره د ده مينه وه او ده ځان بالکل په کُلي توګه سره د دې عاشق جوړ کړی وو نو د دې د جدايي (بېلتون) پرېشاني به په قبر کي هم لازماً دی په عذاب کي مبتلا کړي، او که ده د دې څخه ځان فارغ کړی وي مخ يې ځيني اړولی وي او د دوی سره يې مينه نه بلکي د مرګ آرزومند وي، نو په قبر کي به په آرام سره وي، او که ده د الله ﷻ د دوستی سعادت هم حاصل کړی وي، او د الله تعالی د ذکر سره يې محبت وي او ځان يې ټول الله ﷻ ته حواله کړی وو او د دنيا د سامان څخه نفرت کوونکي وي، او ليري ځيني اوسېدی نو دلسي وګڼه چي په مرګ سره خپل محبوب ته ورسېدی، او د ده د لاري بنديز (دنيا) بالکل ختم سو او دی خپلي خوشبختی ته ورسيدی، اوس ته پخپله سوچ وکړه چي کوم سړی خپل ځان پېژني او ده ته دا معلومه وي چي د مرګ څخه وروسته به باقي وي او څوک چي په دې پوه وي چي د ده د دنيا مرادونه او محبوب شيان به په دې جهان کي پاته کيږي نو دا څنګه ممکن کېدلای سي چي دی په دې کي شک وکړي (او پر دې ايمان ونه ساتي چي) کله دی د دې دنيا څخه رخصت سي نو دی به په دې محبوب شيانو پسي غم کوي او په عذاب کي به مبتلاوي، لکه چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: محبت کوه د هغو شيانو سره کوم چي ستا خوښ وي لېکن ياد ساته! ته به د دوی څخه جلا کيږې، يا هغه سړی کوم چي پوه وي چي د ده اصل محبوب الله تعالی دی او په دې پوه وي چي دا دنيا او د دې هر شئ د ده دښمن دی، ملسوا د هغه مقدار څخه کوم چي د آخرت د پاره د توښې کار وکړي نو دلسي

سری ته به په دې کې څه شک وي چې هر کله دی د دې دنیا څخه رخصت سي نو دغم او تکلیف څخه به خلاصي بیا پیدا کړي او آرام او راحت به حاصل کړي، نو ځوک چې د دې حقیقتونو څخه خبر وي نو ده ته د قبر په عذاب کې هیڅ شک نسي کېدای چې دغه ستـه او وي به. لیکن د پرهیزګارانو د پاره نسته بلکي د دنیادارو د پاره دي، او د هغو د پاره دي چا چې خپل ځان په پوره توګه دنیا ته حواله کړی وي او د دې حدیث شریف معنی هم دا ده چې: الدُّنْيَا سِجْنُ الْمُؤْمِنِ وَجَنَّةُ الْكَافِرِ (دنیا د مؤمن قیدخانه (جېل) او د کافر د پاره جنت دی).

## د قبر د عذاب درجې

هر کله چې تا د قبر د عذاب اصلیت معلوم کړی، چې دا د دنیا سره د محبت په وجه وي نو په دې هم پوه سه! چې په دې عذاب کې به هم فرق وي، یعني چاته به زیات وي او چاته کم، او دا به په دې تناسب سره وي کوم چې د دنیاوي خواهشاتو په باره کې (په اهل قبورو کې) پیدا کیږي، نو د هغه سړي عذاب کوم چې په ټوله دنیا کې یې صرف د یوشئ سره مینه وي د هغه سړي څخه کم وي کوم چې د مځکي، مال اسباب، غلام، څارویان، جاه وجلال او د ټولي دنیا د نعمتونو سره مینه ساتي، مثلاً په دې دنیا کې که چاته دا وویل سي چې د ده د آسونو څخه یو آس غل بوتلی، نو د ده زړه ته به د هغه سړي د زړه څخه کمه پرېشاني او تکلیف ورسیږي کوم ته چې دا خبر ورسیږي چې ستا لس سره آسونه غله بوتله. دغه ډول که د چا ټول مال غلاسي نو د ده غم به د هغه سړي په نسبت زیات وي د چا چې نیم مال غلاسوی وي، او د دې ټولو غم او خفګان به د هغه سړي په باره کې ډېر کم وي د کوم څخه چې نه صرف مال اسباب غلاسي بلکي ور سره د ده ښځه او بچي هم وتښتول سي او د هر څه مال او حکومت څخه خالي کړی سي یک تنها پرېښوول سي، او د مرګ معنی هم څه داسي ده (چې بنده هر څه دلته پرېږدي یک تنها رخصتیږي).

نو د عذاب او راحت یعني د جزاء او آرام دارومدار د دنیا سره پر زړه لګولو یا په مخ اړولو باندي دی، او د دې مقدار هم د دې زړه تړلو یا د زړه په اړولو باندي منحصر دي، او هغه سړی کوم چې په هر اعتبار سره د دنیوي اسبابو سره موافقت یا محبت ساتي او خپل ځان بالکل دې ته وسپاري لکه چې الله ﷻ فرمایلي دي: ذَالِكَ بِأَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا عَلَى الْآخِرَةِ (دغه عذاب ځکه دی چې دوی د دنیا ژوند د آخرت په مقابله کې زیات خوږه کړی وو) [النحل: ۶] په دې وجه به یې عذاب هم ډېر سخت وي او

دې مطلب ته په کتنې سره نبي کريم ﷺ د اصحابو څخه پوښتنه کړې وه چې پوهیږئ دا آیت په کومه معنی کې نازل سوی دی؟ چې: مَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِيْ فَإِنَّ لَهُ مَعِيْشَةً ضَنْكًا (او څوک چې زما د ذکر څخه بېه وکړي د ده د پاره به د تنګی ژوند وي) ټولو وویل الله او رسول ښه پوه دي. ويې وفرمایل د کافر عذاب په قبر کې دا دی چې يو کم سل ښاماران به پر ده مسلط سي چې د هر يو ښامار به نهه سرونه وي، دغه ټول به دی به چیچي او خوري به يې او دغسې به ور سره کوي تر دې چې دقیامت ورځ راسي، او د نظر خاوندان دغه ښاماران په خلاصو سترګي سره لیدلي هم دي او کم عقل یې نظره خلګ وایي چې موږ خو ډېر واره قبرونو ته په غور سره کتلي دي لېکن موږ خو هیڅ نه دي لیدلي که څه وای نو موږ به لیدلي وی، دا احمقان چې هر څوک دي دوی ته پوهیدل پکار دي چې دا ښاماران د مړي په روحونو کې دننه دي د ده په بهر جسم پوري مېنتي نه وي چې نور يې هم ووینې، بلکې دا ښاماران خو د مرګ څخ مخکې هم په ده کې دننه موجود وي لیکن دی غافل وو او نه په پوهیدی، او پوه سه! چې دا ښاماران پخپله د ده د نفس پیدا کړی صفتونه دي، او د دوی د سرونو شمار هم دومره دی څومره چې د ده بد او رذیله خصلتونه دي، او د دې ښامارانو د خوی خصلت ترکیب د دنیا د دوستی څخه جوړ دی، او د دوی د سرونو شمار دومره وي څومره چې د ده بداخلاق دي مثلاً حسد، ضد، ریاء، تکبر، مکر وفریب، فساد، دښمني او محبت د عزت او جلال او نور...، او د دې ښامارانو شمېر صرف په نُور د نبوّت سره معلومیږي چې د دوی مقدار د بدواخلاق مطابق وي او په ده کې د اخلاقو شمېر معلوم نه دی نو دا ښاماران د کافر په روح کې دننه وي او پټ وي، د دې د پاره نه چې دي د خدای او رسول څخه بې خبره دی بلکې په دې وجه چې دی ټول د دنیا سوی دي لکه چې د حق تعالی ارشاد دی: ذَالِكَ بِأَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا عَلَى الآخِرَةِ [ النحل:۱۰۶] (دا عذاب ځکه دی چې دوی د دنیا ژوند د آخرت پر ژوند باندي غوره کړی وو)، دارنګه فرمايي: أَذْهَبْتُمْ طَيِّبٰتِكُمْ فِىْ حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهَا [ الاحقاف: ۲۰] ( تاسو خپل د خوند شیان پخپل دنیوي ژوند کې حاصل کړل او خوند مو ځیني واخیستی) او که داسي وي چې دا ښامار د ده په ظاهري جسم پوري وي لکه چې خلک خیال کوي نو دا خبره به نسبتاً زیاته آسانه وي چې کله کله خو به يې د ده څخه د يو لږ ساعت پوري لاس اخیستلای، لیکن په کوم صورت سره چې هغه د ده په روح کې دننه ځای نیونکي دي او هغه هم داسي چې پخپله د ده د صفتونو څخه پیدا سوی دي نو څنګه به د ده څخه جلا سي؟ لکه څنګه چې يو سړی خپلي ځواني مینځي خرڅي کړي او بیا د هغه په عشق کې مبتلا سي

ځان په عذاب کي واچوي، دغه ډول (د دنیادار د مرګ ځنځه وروسته) هغه ښامار کوم چي د ده په روح کي د دنته ځنځه دي، دی چیچي، دغه د دنیا عشق دی کوم چي د ده په زړه کي پټ وو او د ی ځیني بې خبره وو، تر دې چي اوس هغه چیچل شروع کړل. او دغه ډول دا نهه نوي " ښاماران په ده کي دننه دمرګ ځنځه مخکي موجود وي، لیکن دی ځیني بې خبره وي، اوس معلومه سوه کله چي هغوی خوړل زخمي کول شروع کړل، او لکه څنګه چي د محبوب سره مشغوله کېدل د ده د پاره د لذت او راحت سبب وو، دغه ډول د هغه ځنځه لیري والی او هجرت سبب د رنځ او د عذاب جوړ سوی دي که د دې دنیا سره یې عشق نه وای کړی نو نن به یې په جدایي دومره ځمجن او رنځور نه وای، ځکه چي د دې دنیا دوستی چي کوم ځای په دنیا کي د عیش او آرام باعث وو هلته نن په قبر کي د عذاب سبب جوړ سوی دي، دی د دنیا د عزت او جلال عشق د ښامار په ډول چیچي، د مال دولت محبت د مار په شان عذاب ورکوي، او د کور او مکان عشق ور ته لړمان جوړ سوي دي او چیچي یې، بس دغسي وګڼه چي لکه څنګه د پېغلي انجلی عاشق په حالت د فراق کي غواړي چي چیري ځان مړ کړی وای او په اوبو کي ډوب سوی مړ سوي وای، یا اُور سوځلی وای، یا ښامار چیچلی وای ختم سوی وای چي د جدایي د دې تکلیف ځنځه خو خلاص سم، دغه ډول ځوک چي د قبر په عذاب کي اخته سي هغه غواړي چي کاش د دې مارانو لړمانو پر ځای هغه ماران لړمان وای کوم چي په دنیا کي خلګو پېژندل چي هغو د د باندي (بهر) ځنځه زه چیچلی وای، او پر ما یې حمله کولای، حال دا دی چي دا ماران خو دننه دننه زخم لګوي او پټپله هم دننه دي په نظر نه راځي، او په ظاهري سترګو سره یې هیڅ ځوک نسي لیدلای، نو په حقیقت کي هر سړی د خپل عذاب سبب د دې دنیا ځنځه د ځان سره وړي کوم چي په اصل کي د ده په باطن کي پټ وي، په دې وجه نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: إِنَّمَا هِيَ أَعْمَالُكُمْ تُرَدُّ إِلَيْكُمْ (دغه ستاسو عملونه دي چي واپس تاسو ته پېښ کیږي) او ځکه الله ﷻ فرمایي: كَلَّا لَوْ تَعْلَمُونَ عِلْمَ الْيَقِينِ لَتَرَوُنَّ الْجَحِيمَ ثُمَّ لَتَرَوُنَّهَا عَيْنَ الْيَقِينِ [التکاثر: ۵ تا ۷] (که تاسو ته علمُ الیقین حاصل وای نو تاسو به دوږخ لیدلي وای، بیا (داسي نه ده تاسو به خامخا په عین الیقین سره (دوږخ) ووینئ) او په دې وجه یې فرمایلي دي چي: إِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ (یقیناً دوږخ پر دا کافرانو راګرځیدلی دي) [توبه: ۴۹] یعني دوی یې په ګیره کي دي، نه دا چي آینده به یې ګیر وي.

## د قبر ماران، لړمان او نور

که ته دا وایې چې په ظاهري شریعت سره خو داسې معلومیږي چې ګواکې دا ښامار به په ظاهري سترګو لیدل کیږي، او دا ښامار کوم چې په روح کې دننه سوی دي نسي لیدل کیدای، نو پوه سه چې دا ښامار هم لیدل کیدای سي، لېکن دا صرف مړی لیدای سي او کوم خلګ چې لا اوس په دې دنیا کې دي د هغوی د پاره د دغو لیدل ناشوني (ناممکنه) دي، ځکه چې هغه شیان د کومو تعلق چې د هغې دنیا سره وي هغوی په دې دنیا کې نسي لیدل کیدای. دغسې دغه ښامار به مړو ته بالکل داسې ښکاریږي ځنګه چې هغه په دې جهان کې ویني لېکن ته یې نسي لیدی. د دې مثال داسې دی چې د خوب په حالت کې اکثره وخت (بیده سړي ته) مار ښکاره سي او داسې معلومیږي چې ګواکې دی چیچي لېکن دا هر څه و ده ته ښکاره کیږي حال دا دی چې د ده سره ناست بیدار سړي ته دغه مار نه ښکاره کیږي حال دا دی چې بیده ته هغه موجوده وي او د چیچلو تکلیف یې هم زغمي، او د وېښ د پاره د ده هیڅ وجود نه وي، او محض په دې وجه چې وېښ ته په نظر نه راځي د دغه بیده په تکلیف کې کمي هم نه راځي، او دغه چول که په خوب کې ځوک مار وچیچي نو تعبیر یې دا وي چې د دښمن څخه به ورته تکلیف ورسیږي، او په دې سره یو روحاني تکلیف رسیږي، ځکه چې اثر یې پر زړه پرېوځي، د دې مثال په دنیا کې داسې دی، چې که د مار په خوب کې د چیچلو څخه وروسته که واقعي دښمن پر ده غالب راسي نو دغه (خوب لیدونکي) وایي چې ما د خپل خوب تعبیر ولیدلو، کاش چې واقعي مار زه چیچلی وای خو چې دښمن را باندي فتح نه وای پیدا کړي، ځکه د دښمن د فتح څخه چې کوم روحاني درد او تکلیف ده ته رسیږي، هغه د جسماني زخم په نسبت ډېر زیات تکلیف ورکوونکی وي، کوم چې د مار د چیچلو څخه پر بدن لګیږي، نو که ته ووایې چې دا مار خو څه وجود نه لري او په خوب کې چې څه په نظر راځي د هغه حیثیت د وهم او تصوّر څخه زیات نه دی نو یاد ساته چې دا ډېره غټه غلطي ده، ځکه چې هغه مار موجود دی ولي چې د کوم شئ وجود لیدل کیږي هغه موجود وي، کنې دعلم وجود په صورت کې خو دغه په خوب کې هم نسي ښکاره کیدای، او کوم شئ چې په خوب کې لیدل کیږي هغه ستا د پاره یقیناً موجود دی، که څه هم بل یې لیدای نسي، او کوم شئ چې تا ته نه ښکاره کیږي او ته یې پیدا کوی نه سې هغه ستا د پاره غیر موجود دی که څه هم باقي ټول خلګ یې ویني ولي نه، بیا چې هر کله عذاب او باعث د عذاب دواړه (په ترتیب سره) د مړي او بیده لیدونکي سوه نو په دې هیڅ فرق نه پرېوځي چې نور یې ونه ویني،

خو دا ضروري ده چي بیده سړی ژر بیدا ره سي او د دغه تکلیف څخه خلاص سي او چي څه یې په خوب کي لیدلي وي هغه ته محض یو خیال وایي، او مړی په دغه حالت کي په مستقله توګه پروت وي، ځکه چي د مرګ څخه آخر حد مقرر نه دی نو دی برابر او مسلسل په دغه حالت کي وي، او دا اثبات داسي دی لکه چي په دې عالم محسوسات کي وي، او په شریعت کي دا چیري ذکر سوی نه دی چي دغه ماران لړمان او ښاماران کوم چي په قبرونو کي دي عام خلک یې هم لیدای سي چي ګواهي یې ورکړي، البته که یو سړی د دې دنیا څخه لیري سي داسي وکښي چي بیده سو او د مړو حال ده ته ظاهر سي (یعني تارک الدنیا ته په ذریعه د کشف د مړو حال ربنوول سي) نو هغه به دغه دماړانو لړمانو په مینځ کي ویني، لیکن انبیاء او اولیاء په حالت د بیداری کي د دې مشاهده کولای سي ځکه چي کومو عامو خلکو ته په خوب کي ښکاره کیږي هغه دوی ته د بیداری په حالت کي هم ښوول کیږي، په دې وجه چي دا عالَم محسوسات د دوی د بل جهان د شیانو په مینځ کي پرده او حائل کېدای نسي (یعني په دې دنیا کي هم د دوی د هغه جهان مشاهده او لیدنه په آزادی سره کولای سي) او دا خبره په دې وجه اوږده بیان سوې ده چي بعضي احمقان د قبر د عذاب څخه په دې وجه منکر کیږي چي) قبرونو ته ولاړ سي او ګوري، او چي په ظاهرو سترګو څه دا ډول شئ ونه ویني، نو د دې حقیقت څخه انکار وکړي او دا ځکه کیږي چي دغه د هغه جهان د معاملاتو څخه یکسر بې خبره وي.

## د عذاب څخه څوک څنګه محفوظه کېدای سي

ممکنه ده چي ته دا خیال وکړې چي که د قبر د عذاب تعلق د انسان د زړه (روح) سره دی چي هغه څومره د دې دنیا سره مینه لري دومره به په عذاب کي مبتلا کیږي، نو بیا په دې دنیا کي خو یو سړی به هم داسي نه وي چي زړه یې د دې مینې څخه خالي وي او چي د ښځي بچیانو مال دولت او عزت څخه د یو سره هم محبت نه ساتي، نو ګواکي د قبر د عذاب څخه د چا محفوظه کېدل ممکن نه سو؟ نو ستا د دې فکر جواب دا دی چي خبره په اصل کي داسي نه ده چي اول خو ډېر خلک داسي هم دي چي زړه یې د دنیا څخه موړ وي دوی ته په دنیا کي یو ځای داسي نه ښکاري کوم ځای چي دوی آرام محسوس کړي، په دې وجه مرګ د دوی آرزو سي او دا قسم خلک په مسلمانانو کي د درویشانو (بزرګانو) په صورت کي ډېر لیدل کیږي. دویم دا چي دغه خلک کوم چي دولتمن او امیران ورته وایي په دغو کي هم دوې ډلې لیدل کیږي، یوه ډله هغه وي کوم چي د دنیا د اسبابو سره

هم مانوس (عادت) وي او د الله هم دوستان وي، نو که دا دوستي یې د الله ﷻ سره د دنیا د دوستي څخه زیاته گرانه (خوښه او محبوبه) وي نو پر دوی به د قبر عذاب نه وي، د دوی مثال د هغه سړي دی د کوم چي خپل ځای (کور او مکان) وي او په داسي ښار کي وي کوم چي ده ته ډېر عزیز (خوښ) وي لیکن هغه ریاست، ملک او وطن د خپل کور څخه هم زیات عزیز گڼي، او که ده ته د ریاست د حکمران (واکمن) د طرف څخه حکم حاصل سي چي دی دي د وطن بل ښار ته ولاړ سي نو دی د خپل ښار څخه په تللو هیڅ غم نه کوي، ځکه چي د ښار او خپل کور دوستي ده ته د ملک د دوستي او میني څخه زیاته نه وي، نو د کور مینه په دې مینه مغلوبه سي بلکي په وخت را تللو بالکل ختم سي او د دې هیڅ اثر د ده پر زړه او ذهن نه وي، نو د انبیاؤ او اولیاؤ او مؤمنانو په زړونو کي که د مال بچو ښار او وطن محبت وي هم لیکن کله چي د حق تعالی دوستي په زړونو کي ځای سي او د دې لذت او خوند او مزه محسوس کړي نو دغه شیان حقیر او سپک گڼي، او دا لذت په مرگ سره پیدا کیږي، نو دغه د قبر د عذاب څخه محفوظ وي، خو په دوی کي چي کوم خلک د دنیا خواهشات زیات عزیز (خوښ او عزتمن) گڼي هغوی د دې عذاب څخه نسي خوندي کېدای، او زیاتره خلک داسي وي، او په دې وجه حق تعالی فرمایلي دي چي: وَإِنْ مِنْكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَقْضِيًّا. ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوْا [مریم] (او په تاسو کي څوک هم داسي نسته چي د هغه پر دې باندي تېرېدل نه وي دا ستا د رب د طرف څخه مؤکده ده کومه چي به ضرور پوره کیږي، بیا به موږ هغه خلکو ته نجات (خلاصون) ورکړو کوم چي د خدای څخه بیرېږي (یعني ایمان راوړي)، نو دغه رنگه خلک به تر یوې مُدې پوري به په عذاب کي مبتلاوي بیا چي کله د دوی د دنیا د تللو څخه وروسته اوږده زمانه تېره سي او د دنیا لذت ځیني هېر سي نو د الله ﷻ دوستي کومه چي په زړه کي پټه وه ظاهره به سي او د عذاب څخه به هم خلاص سي، او د ده مثال د هغه سړي دی کوم ته چي د یو کور په نسبت سره بل کور، او د یو ښار په نسبت سره بل ښار، او د یوې ښځې په نسبت سره بله ښځه زیاته گرانه وي، نو ښکاره ده چي په دغو کي د هر ښار هر کور هري ښځي سره د ده زیاته مینه وي لیکن د دواړو په محبت کي فرق دی او س که د ده څخه هغه لیري او جلا کړل سي د کوم سره چي یې زیاته مینه ده نو ښکاره ده چي تر یو وخته پوري به دی خپه او پرېشانه وي او کله چي د یوې زمانه څخه وروسته یې هېر شئ او د بل محبوب په معامله کي یې د زړه کیفیت بدل سي نو اصل دوستي کومه چي مغلوبه ده غالبه به سي؛ لیکن کوم خلک چي اصلاً د الله ﷻ سره محبت او دوستي نه کوي هغوی به همیشه په دغه

عذاب کې مبتلاوي، ځکه چې د ده د هغه شئ سره دوستي ده کوم چې د ده څخه واخیستل سو. یعني دنیا، نو لوس به د دغه عذاب څخه څنګه خلاصون پیدا کړي، کافران چې به همیشه په عذاب کې وي نو د هغه سبب هم دا دی کوم چې بیان سو.

څوک چې دا دعوی کوي چې زه د الله ﷻ سره دوستي او محبت کوم یا د الله ﷻ سره مې مینه د دنیا د میني څخه زیاته ده او په ژبه سره خو دا دعوی هر څوک کوي نو د ده د ازمایښت (امتحان) د پاره یو تله (پله) ده او هغه دا چې کله د چا نفس د یو شئ خواهش وکړي او د الله ﷻ حکم د دې خلاف وي نو که دی د الله ﷻ د حکم طرف ته خپل زړه زیات مائل وویني نو ګواکي دی الله ﷻ زیات محبوب ګڼي، لکه څنګه چې دیو سړي دوه دوستان وي او دی پکښې دیو سره مینه کمه کوي نو کله چې د دواړو په مینځ کې جګړه، جنګ راسي نو دی به د هغه زیات لحاظ او خیال کوي د کوم سره چې یې زیاته مینه وي، په دې سره د دې خبري اندازه کیږي چې کوم طرف ته د ده زړه زیات مائل دی، که داسې نه وي نو صرف په ژبه سره د دعوې هیڅ فائده نسته، ځکه چې په حقیقت کې داسې ویل درواغ دي، په دې وجه نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: لَآاِلٰهَ اِلاَّ اللّٰه ویونکي که دنیوي معاملاتو ته پر دیني معاملاتو ترجیح او لوړتیا ورنه کړي نو دی ځان د الله تعالی د عذاب څخه ساتي او خوندي کوي یې، او که داسې یې ونه کړه یعني دنیوي معاملاتو ته یې پر دیني معاملاتو ترجیح ورکړه، نو الله ﷻ فرمایي چې ته درواغ وایې ځکه چې لا اله الا الله په داسې معامله کې ویل درواغ دي؛

نو ای ملګری! په دې ټولو خبر و سره چې هغه تا ته معلومې سوې ته پوه سوې چې د نظر خاوند په باطني مشاهده سره ویني چې کوم سړی دی چې د عذاب د قبر څخه خلاص دی، او هغه په دې هم پوه دي چې اکثره مخلوق داسې دي چې خلاصیدای نسي لیکن لکه څنګه چې د دنیا په تعلقاتو کې تفاوت دې چاته کم او چاته زیات وي دغسې د عذاب معامله ده چې چاته کمه او چاته زیاته وي.

## فصل

شاید ته داووا یې چې بعضې کم عقله خلک وایي چې که دا د قبر عذاب سته نو موږ د دې څخه بې خطره یو ځکه چې زموږ د دنیا سره هیڅ تعلق نسته د دنیا کېدل او نه کېدل موږ ته برابر دي، لیکن د دې کم عقلو دا دعویٰ بالکل لغوه او فضول ده بیا هم تر څو پوري چې یې آزمایښت ونسي نه منل

کیږي، که د داسې سړي ټوله سرمایه او سامان غل یووسي او ده ته چې کوم مقبولیت او عزت حاصل دی هغه د ده بل مقابل (دښمن) ته حاصل سي او د ده مریدان او پیروي کوونکي د ده څخه واوړي او د ده بدي بیانوي د دې سره سره د ده په زړه کي څه اثر او غم نه وي، او دغه سړی داسې ګڼي چې زما څخه بلکي د بل چا مال غلا سوی دی او زما څخه د بل عزت او مقبولیت زائل سوی دی نو بیا خو د ده داد هوی رښتوني ده چې زه داسې سړی یم چې د هغه د پاره د دنیا کېدل او نه کېدل برابر دي، تر څو پوري چې د ده مال غلا نسي او د ده مریدان د ده څخه وانه وړي تر هغه پوري دی معذور او نادان (کم عقل) دی، ده ته پکار دي چې خپل مال د ځان څخه جلا کړي او د خپل مقبولیت او عزت پروا نه وکړي دغه رنګه خپل امتحان وکړي په اعتماد سره دا خبره وکړي ځکه چې زیاتر خلګ په خوله خو وایي چې زموږ د ښځي او مینځي سره څه کار نسته، لېکن چې ښځي ته طلاق ورکړي یا مینځه خر څه کړي، نو بیا د ده په زړه کي ښخ (شین) سوی اُور د عشق بَلْ سي او دی د لېونتوب ښکار سي، نو کوم سړی چې غواړي چې د قبر د عذاب څخه محفوظه سي ده ته پکار دي چې د دنیا د هیڅ شئ سره تعلق ونه ساتي، مګر دضرورت په اندازه، لکه د پاخانې (غایطه موادو) حاجت چې کیږي، نو په دغه ځای کي بنده مجبوراً کېښني او دا یې کوشش وي چې د دغه ځای څخه ډېر ژر ووځي، نو بنده ته پکار دي چې څنګه دی بغیر د خواهش او رغبت څخه محض د نس خالي کولو په غرض سره پاخانې (بیت الخلاء) ته ځي دغه ډول چې خوراک فقط د نس ډکولو په نیت سره خوري ځکه چې دا دواړي د مجبوری خبري دي پر دې دي ټول دنیوي کارونه په دې نقطه نظر (او په دافه خیال) سره قیاس کوي، او که د دنیا د تعلقاتو څخه خپل زړه نسي خالي کولای نو پکار دي چې د عبادت او ذکر الهي سره خپل ځان مانوس (اموخته، عادت) کړي او همېشوالی پر وکړي او پر خپل زړه د خدای ﷻ یاد (ذکر) داسې غالبه وکړي چې د ده دوستی د دنیا په محبت غالبه سي، او په دې معامله کي د خپل ځان څخه داسې دلیل طلب کړي چې د شریعت متابعت (پیروي) کوي او پر نفساني خواهشاتو حکم الهي مقدم کړي، او که په دې معامله کي نفس د ده اطاعت وکړي نو بیا دي یقین او بروسه ساتي چې زه به د قبر د عذابه څخه خوندي سېم او که نفس نافرماني کوي نو خپل بدن دي د قبر عذاب ته وسپاري، لیکن که دارحم الرّاحمین رحمت ورته حاصل سي نو خامخا نجات حاصلیدای سي.

## روحاني دوږخ

لوس موږ د روحاني دوږخ معنی بیانوو، د دې څخه مطلب دا دی چې دغه دوږخ کوم چې خاص د روح

د پلوه دي د بدن سره د دې تعلق نسته، د الله ﷻ فرمان دی: نَارُ اللّٰهِ الْمُوْقَدَةُ الَّتِيْ تَطَّلِعُ عَلَى الْاَفْـِٕدَةِ [الهمزة] (دغه د الله ﷻ اور دی کوم چې د الله په حکم سره بل سوی دی چې هغه (بدن ته په لګېدو سره) زړونو ته رسیږي) نو دا خبره ده چې دغه اور به داسې وي چې تسلط به يې پر زړونو وي، او هغه اور کوم چې په بدن کې لګیږي هغه ته جسماني دوږخ وايي، شو پوه سه! چې په روحاني دوږخ کې به درې قسمه اور بلیږي: (۱) د دنیا د خواهشاتو څخه د بیلتون اور (۲) دویم د ندامت او پښېمانی او رسوایی اور (۳) دریم د جمال الهي څخه د محرومی او ناامیدی اور، او په دوی کې هر یو اور هغه اور دی چې تعلق يې سیده سیده د روح او زړه سره دی نه دا چې د جسم سره، او د دې دریو سره تشریح بیلتول لازمي دي کوم چې دی د دې ځای څخه د ځان سره وړي، او د وضاحت د پلوه يې موږ د دنیا یو مثال بیانوو چې په معنی يې بنه پوه سی:

**اولنی اور**: دا اور د دنیا څخه د بیلتون د غم اور دی او د دې د پیدا کېدو سبب د قبر د عذاب په بیان کې بنوول سوی دی، چې دا د دنیا عشق او د خواهشاتو مینه ده، یعني تر څو پورې چې بنده د خپل دې معشوق (دنیا) سره وي، دی ځان په جنت کې محسوسوي او کله چې د دې معشوق څخه جلا سي نو ځان په دوږخ کې محسوسوي، نو د دنیا عاشق چې په دنیا کې وي نو ګواکې په جنت کې وي یعني "دنیا د کافر جنت دی" لیکن آخرت د ده د پاره دوږخ دی، ځکه چې د ده محبوب د ده څخه واخیستل سو، ګواکې یو شئ (دنیا) د ده د پاره د لذت باعث هم دی او دغم او تکلیف باعث هم، د دې دنیا د اور مثال داسې دی چې مثلاً یو باچاه وي چې پر ټوله ځمکه د ده حکومت وي او همیشه د ښایسته او ډېر ښکلو مینځو په مینځ کې وي غلامان پر چاپېره (شاوخوا) وي او هر وخت په ښایسته باغونو او غټو ښکلو کې په تماشه وي، او بیا ناببره یو دښمن زاسي، او دی بندي (قیدي) کړي او خپل غلام يې کړي او د ده د ټولو درباریانو او ملګرو په مخکې دی رسوا کړي، او ده ته د خپلو سپو د ساتلو کار حواله کړي او د ده په مخکې د ده بیبیانې او مینځې یوازې دا نه چې پخپل تصرف کې يې راولي بلکې غلامانو ته حکم وکړي چې دغه تاسو هم پخپل کار کې راولئ، او د ده د خزانې د ټولو څخه ګران شیان د ده دښمنانو ته ورکړي نو تاسو سوچ وکړئ! چې پر دې باچاه به څومره غم وي؟ بې شکه چې په دې حالت کې به د حکومت، بیبیانو، کوچنیانو، مینځو غلامانو، د ډکو خزانو ډول ډول نعمتونو د بیلتون اور دی دومره سوځې چې دی عاجزه به داغواړي چې کاشکې په یو اور دی مړ سوی وای یا یو داسې سخت عذاب پر ده مسلط سوی وای چې د دې آفت څخه خلاص سوی وای،

دا مثال خو دیو اُور دی، او څومره چي نعمت او دولت زیات وي او حکومت او باچاهت څومره ښځ او خوشحاله وي دومره به دا اُور تېز وي.
نو چاته چي په دنیا کي مال اسباب زیات حاصله وي او حالت يې دېر ښه وي د ده به د دنیا سره عشق هم زیات وي، او د دې دنیا څخه به بېلتون به د ده په روح کي د بېلتون اور هم دومره زیات سو ځونکي وي، او دغه اور به داسي وي چي په دې دنیا کي يې مثال پیدا کول ناشوني (ناممکنه) دي، ځکه هغه غم او تکلیف کوم چي په دې دنیا کي وي هغه په پوره توګه په روح او زړه کي ځای سوی نه وي ځکه چي حواس خمسه او دنیاوي مشغلې زړه په یوه شئ بل شئ مشغولوي، او څنګه چي دا مشغلې د زړه پردې وي په دې وجه غم او تکلیف په پوره توګه دننه نه پرېږدي، داوجه ده چي یو غمګین او رنځور سړی کله چي په سترګو څه ویني یا يې په غوږونو اوري نو په دې کي مشغلوېږي نو غم يې سپکېږي، او څنګه چي د دې شغل څخه فارغه سي بیا د دغه غم تکلیف او بوج پر ده راسي بلکي د مخکي څخه زیاتېږي، او په دې وجه کله چي یو مصیبت ځپلی د خوب څخه بیداره سي نو د مصیبت زخم د ده په زړه ګواکي زیات ژور وي ځکه چي دغه وخت د ده طبیعت بالکل صاف وي، ځکه چي د خوب څخه مخکي دی د محسوساتو په وجه (په یو شئ نه یو شئ) کي مشغول وو، نو غم يې سپک وو، او چي بیداره سو نو او س يې زړه بالکل د مشاغلو څخه خالي دی، نو په دې وجه چي هر شئ چي ده ته ورسېږي د هغه اثر پر ده زیات وي او د دې وجه دغه د زړه صافوالی او خالي والی وي، چي د نورو حسّیاتو څخه دی متاثر نه وي، لېکن دا ناممکنه ده چي په دې دنیا کي وي او زړه يې په بشپړه توګه صاف (خالي) وي، لېکن هر کله چي انسان مر سي نو د محسوساتو د اثر څخه بالکل خالي سي، نو دی یا خو د دېر زیات غم او تکلیف ښځ مرکز جوړ سي یا راحت او خوشحالی د ده نصیب سي، او دا خیال مه کوه چي هغه اور به داسي وي لکه په دنیا کي چي وي بلکي دغه اور خو اوریا- واره پرېول سوی دي بیا دنیا ته رالېږل سوی دي.

**دویم قسم اُور**: دا دشرمندګی پښېماني او رسوايي اور دی او د مثال په توګه باندي داسي ورېل کېږي چي فرض کړه یو باچاه یو کمزوری ذلیل سړي ته لوړه مرتبه ورکړي او دی د حکومت نائب مقرر کړي او ده ته د خپل حرم د دننه تلو راتلو اجازت ورکړي تر دې چي ټول حرام والا بیا د ده څخه پرده نه کوي، او باچاه د خپلي خزانې اختیار ده ته حواله کړي، او پخپل هر کار کي پر ده اعتماد کوي، او دغه کم اصله (بدذاته) چي دا نعمتونه ویني نو پر ځای د دې چي د باچاه قرباني او وفاداره جوړ سي د

ده شکر به ادا کړي، د دې پرخلاف دته دته بغاوت او سرکښي او نافرماني ته چمتو سي، او د هغه خزانې پټ په پټه پخپل تصرف کې راولي او په ښکاره د باچاه امانتدار ځان ښکاره کوي، او بیا یوه ورځ عین په هغه وخت کله چي دی د باچاه په حرم کې په فساد اخته وي ناڅاپه په یې دی په نظر سي، او معلومه سي چي باچاه د کړکۍ (دریچه) څخه د ده ټول حرکات ویني او ده ته د دې سره دا معلومه سي چي هره ورځ باچاه دی په دې کارونو کې ویني (او د ده د ټولو فسادونو څخه په پوره توګه خبر دی) او ده ته یې صبر صرف په دې وجه کوی چي د ده خیانت د زیاتو څخه زیات او د ختو څخه ځتې سي او په یو ولار باندي دی ونیسي عذاب ور کړي، نو له خیال وکړه چي د دې ذلت او رسوایي په موقع به د شرم او پښېماني‌تیا څومره ځپ اور د ده په روح او زړه کې بل سي؟ او د سلامت او جوړ جسم سره به آیا د ده دا زړه دانه خواري چي کلش دی تر مځکي لاندي ښخ سوی وای چي د دې سخت او بې پناه ندامت څخه خلاص سي !.

نو یاد ساته چي دغه ډول په دې دنیا کې ته د خپل عادت سره سم چي یو کار کوې هغه خو تاته په ظاهره ښه ښکاره کیږي، حال دا دی چي د دغو حقیقت ډېر قبیح، بدشکله او رُسوا کوونکی وي، او کله چي د دې اصلیت په قیامت کې تا ته ښکاره سي او ستا رسوایي تا ته ښکاره سي، نو خامخا به ته د پښېماني په اور کې سوځې، مثلاً نن ته د چا غیبت کوې او دا ګڼې چي په دې کې څه بدوالی نسته، لېکن د قیامت په ورځ به ته ځان د یو داسي سړی په شان وویني کوم چي په دې دنیا کې د خپل ورور غوښي خوري او ګڼي چي دی سور کړی چرګ خوري، لېکن چي په غور او فکر وګوري ده ته به معلومه سي چي دغه خو د ده د مړه ورور غوښي دي، نو خیال وکړه چي دی به څومره رسوا او ذلیله سي، څنګه اور به د ده په زړه کې بل سي، نو دا دی د غیبت اصلیت او حقیقت، که څه هم نن دا حقیقت که ستا د سترګو څخه پټ دی لېکن صبا به ښکاره سي، په دې وجه که څوک په خوب کې د مرداري (یعني مړه حیوان) غوښي خوري نو تعبیر به یې دا سي : چي دی چغل خور دي، دغه ډول که نن ته د چا دېوال په ډېره ولې، او یو سړی تا خبر کړي چي دغه ډېري خو ټولي ستا په کور کې لوېږي او ستا د بچو سترګي په ړندیږي او بیا ته کور ته ولاړ سې او ویني چي واقعي ستا د ډېرو په وجه سره خو ستا د بچیانو سترګي ړندې سوي دي نو پخپله سوچ وکړه چي ستا په زړه کې به څنګه اور بل سي، او ته به خپل ځان څنګه ذلیله او رسوا وویني؟ دغه ډول کوم سړی چي د یو مسلمان ورور سره حسد کوي نو په قیامت کې به خپل ځان په دې صفت سره ویني، چي د حسد اصلیت او

حقیقت دا دی چې ستا اراده خو دا وي چې دښمن ته ذلالت ورسوم، لیکن د هغه هیڅ نه خرابیږي، خو تا ته نقصان رسیږي، یعني ستا دین تباه کیږي، ځکه چې ستا عبادتونه چې هغه به په هغه جهان ستا د سترګو نُور وي دغه به ستا د دښمن په کاته کي واچول سي (یعني ستا دښمن ته به ورکول سي) او ته به بې عبادته پاته سې، حال دا دی چې دې عبادت ته به ستا ډېر ضرورت وي، نن خو ته د خپلو سترګو نُور خپل زامن ګڼې لیکن د قیامت په ورځ به داسي نه وي هلته به ستا د سترګو نور (رڼا) د زامنو پر ځای به ستا عبادت وي، نو صبا په قیامت کي چې کله صورتونه ارواحانې او حقیقتونه سره مطابق وي (یعني چې څنګه عملونه وي دغه رنګه به صورتونه هم ) او هر شئ کوم چې ستا د نظر څخه تیریږي هغسې به وي چې په اصل راز ښکاره کېدو به پښېماني او شرمندګي حاصله وي، او دا سبب دی چې خوب هغه دنیا ته ډېر نژدی شئ دی ځکه چې په خوب کي د هر شئ شکل د هغه د معنی سره عین (بالکل) مطابق وي، لکه څنګه چې:

**قصه**: یو وار یو سړی د امام ابن سیرین څخه پوښتنه وکړل چې ما په خوب کي ولیدل چې زما په لاس کي یوه ګوتمې ده چې په هغه سره زه د خلکو پر خولو او د ښځو پر شرمګاهو باندي مهرونه لګووم، ابن سرین وفرمایل: ته مؤذن یې او په رمضان کي د سهار کېدو څخه مخکي د لمانځه د پاره آذان کوې، دې سړي وویل بې شکه دا صحیح دي دا زما کار دی.

اوس غور وکړه چې څنګه د خوب په عالَم کي د دې معاملې روح او حقیقت دغه سړي ته ښکاره کړل سو، چې په روژه کي د لمانځه د پاره آذان ورکول ګواکي د ذکر او یاد الهي یو صورت دی، او د سهار د آذان روح او حقیقت دا دی چې د خوراک چښاک څخه او د مباشرت څخه د منع کولو یو خبرداري ده، او عجیبه خبره ده چې په حالت د خوب کي د قیامت دا تولي نښې او نمونې تا ته ښکاره کېدای سي او یا هم ته د یو شي څخه خبر نه یې او په دې معنی کي هغه حدیث شریف هم دي چې په هغه کي ښوول سوي دي چې د قیامت په ورځ به دنیا د یوې سپینسري (بډۍ) ښځې په شکل کي پېښه کړل سي چې داسي بدشکله او بدصورته به وي چې څوک یې ویني نو د الله ﷻ پناه به غواړي، نو دوی ته به وویل سي چې تښتئ مه دا هغه دنیا ده چې د هغې په طلب کي چې تاسو خپل ځان هلاک کړی وو، نو دوی به داسي پښېمانه سي چې د شرم او رسوایي څخه به ووایي مونږ اور ته واچوئ چې د دې شرمندګي څخه خو خلاص سو، او د دغه شرمندګی مثال خو داسی دي لکه په دې قصه کي چې بیان سوی دي.

**قصه:** یو باچاه خپل زوی ته یوه ښځه وروکړه، شهزاده ناوې ته د ورتلو په شپه بې حسابه شراب وڅښل او په نشه کې چې بې خوده د ناوې د خوني وطرف ته روان سو نو لاريې غلطه کړه او د کوره شخه ئبانديې ووتی او يو داسې ځای ته ورسېدی چې هلته يې يو کور وليدی چې ډراغ پکښې بل وو، ده داوګڼله چې زه د ناوې خوني ته راورسېدم چې دننه ولاړی نو خلک يې ويده وليدل که هر څومره آوازونه ور ته وکړی خو چا جواب ور نه کړی، ده وويل چې ناوې ويده ده، په دوی کې پر يوه مړې نوی څادر (پټو) وو، ده په زړه کې داوويل چې هم دا ناوې ده نو پرېوتی او څادر يې څيني ليري کړی نو په خوشبو (عطرو) سره د ده دماغ معطر سو، سوچ يې وکړی چې بې شکه دا ناوې ده، ور سره پرېوتی او مباشرت يې ور سره شروع کړی چې خپله ژبه يې دهغې په خوله کې کښېښوله نو لوندوالی يې د ده خپلې خولې ته راغلی نو ويې ويل چې زړه را پورته کوي او ګلان را باندې پاشي، کله چې ورځ سوه او دی راويښ سو او په هوښ کې راغلی چې ګوري چې دغه خو کور نه دي،بلکې د آتش پرستو خونه ده چې په هغه کې دوی خپل مړي خوړځوي، او دغه چې ده ويده ګڼل دا مړې وو. او کومه چې ده خپله ناوې ګڼلې وه دغه يوه بدشکله بډې ښځه وه چې هغه تازه مړه سوې وه او دغه ښه بوی کوم چې د هغې څخه راتلی د کافورو وو (چې هغه پر مړ باندې اچول کېږي) واو هغه لوندوالی کوم چې د ده خولې ته راغلی وو دغه ټول نجاست وو، او بيا چې يې ځان ته په غور سره وکتل نو خپل ټول ځان يې په دغه نجاست کې ککړ وليدی، او پخپله خوله او تالو کې يې هم د دغه نجاست ترېخوالی محسوس کړی چې زړه ايشېدل ورسره شروع سو، بس اوس يې دا غوښتل چې د دې شرم او رسوايي څخه خو چې اوس زه هلاک سوې واى ښه به واى، ځکه چې دی اوس ېرېدی چې که باچاه (د ده پلار) او لښکر دی په دې حالت کې ووېني، دی په دې فکر کې وو چې ناببره باچاه سره د لښکر د ده په لټون کې دلته راورسېدی،او د ده دا حال يې پخپلو سترګو سره وليدی، نو دغه وخت ده غوښتل چې کاشکې ځمکه چاودلې واى او دی پکښې ښخ سوی واى چې د دې شرمندګې او رسوا يي څخه خو خلاص سوي واى!.

نو صبا (دقيامت په ورځ) به دنيا دار (سرمايه دار) د دنيا ټول لذتونه او شهوتونه په دې صورت کې ويني، او په شهوتونو کې د مبتلا کېدو په وجه چې د دې کوم اثر د دوی په زړه کې باقي پاته سوي وي دغه به دوی دغه رنګه ترېخ او بيزاره کوونکي محسوسوي لکه څنګه چې د نجاستونو په وجه دې شهزاده په خوله او تالو کې محسوس کړی وو، بلکې د دې څخه به ډېر رسوا کوونکی او ډېر خټ وي،

ځکه چې د هغه ځای د سختیو مثال په دې دنیا کې نسې تلاش کېدای، خو په دې (قصه) سره د هغه اُور یوه نمونه څوندي خلمخا مخ ته راځي کوم چې به هلته زړه او روح ته لګیږي (او کوم چې اوس هم موجود دی) لیکن جسم ځیني ناخبره دی او دې ته د پښېمانتیا او رسوایی اُور وایي.

**دریم قسم اُور**: دا د محرومي د افسوس اُور دی یعني په دې حسرت کې د سوځېدونوم دې چې ای کاش! زه د جمالِ الهي او مشاهدهٔ ربّاني څخه محروم سوم او دا سعادت مې نه ولیدی کوم چې د ده په حصول سره حاصلیدای سو، او د دې سبب به هغه ړوندوالی او جهالت او ناخبري وي کوم چې د دې دنیا څخه د خپل ځان سره وړي، یعني معرفت یې نه وي حاصل کړی، په علم او ریاضت او مجاهده سره یې زړه نه وي صفا کړی چې د مرګ څخه وروسته د ربّ ﷻ جلوه په دې هینداره کې ووینې، بلکي د ګناهونو او د خواهشاتو د دنیا زنګ به د ده زړه هینداره توره کړې وي چې دی به ړوند پاته سي (او د نور (ربّا) عکس به قبول نه کړي) او د دې اُور مثال که څوک یې نو فرض کړه چې ته په توره شپه کې د خلګو سره یو داسې ځای (مقام) ته ځې چې هلته بې شمېره ډېري پرتې وي، لیکن د تیاره په وجه نه پېژندل کیږي، ستا ملګري ووایي چې څومره ډېري پورته کولای سې پورته یې کړه، ځکه چې موږ اوریدلي دي چې په دې کې بیخي ډېري ګټې او فائدې سته، او د دې وینا سره هر یو چې څومره پورته کولای سي پورته یې کړي لیکن ته هیڅ شئ پورته نه کړې، بلکي د هغه پر ځای دا ووا یې چې دا خو ناپوهي ده چې دومره بوج او بار په ځان پوري وتړم او دومره تکلیف د وړولو برداشت وکړم، حال دا چې ماته دا علم هم نسته چې صبا به دا په یو کار راسي، او که نه؟ نو هغوی د خپل بارونو سره د هغه ځای څخه روان سي او ته خالي لاسونه د دوی سره روان یې، او په لاري کې پر دوی مسخرې هم کوې او بې وقوفه ورته وایې، افسوس پر کوې، او وایې چې په څا کې عقل او پوهه وي هغه به زما په شان په آرامه سره ځي، ځوک چې احمق وي د خره په ډول به یې پر ځان بوج بار کړی وي، او هغه هم فقط د داسې طمعي په خاطر د کوم څخه چې د یو شه حاصلېدو توقع هم نه وي، لیکن کله چې رڼا سي او ستا نظر پر ولوېږي او تا ته معلومه سي چې دا خو ډېري نه دي بلکي ټول قیمتي لال وجواهر او ملغلري دي او ځیني پکښې سره یا قوت او ځیني ملغلري دي او هره ملغلره داسې ځلیږي او ښایسته وي چې د هري دانې قیمت د یو لک دینارو سره برابر وی نو دغه خلګ به په افسوس سره وایي چې کاش! نور زیات مورا اخیستي وای او ته خو به د دې دوکې او فریب د لاسه هلا کیږي (چې بالکل خالي لاس راغلې) او د دې افسوس او ارمان اور به ستا په زړه کې بل وي، او د بلې خوا به هغه خلګ دغه خرڅوي د دنیا سرداري به حاصله کړي، څنګه او څرنګه نعمتونه چې

خولري خوري به يې، او کوم ځای چې يې زړه وغواړي وسيږي به او ته به وېږې، لګ او هغوی به دې خپل غلام جوړ کړي او حکمونه به در باندې کوي، او ته که هغو ته هر څومره ډېر ووايې چې د دې نعمت څخه ما ته يو حصه را کړئ، لېکن هغه په جواب کي د الله ﷻ دا قول درته ووايي: أَفِيضُوا عَلَيْنَا مِنَ الْمَاءِ أَوْ مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَهُمَا عَلَى الْكَافِرِينَ (او دوږخيان به جنتيانو ته وايي) چې پر موږ لږ اوبه راتوی کړئ يا نور څه را کړئ کوم چې الله ﷻ تاسو ته در کړی دي، (جنتيان به وايي) چې الله ﷻ دا دواړه شيان پر کافرانو باندې حرام (منع) کړي دي [ الاعراف:۵۰]او وبه وايي: إِنْ تَسْخَرُوا مِنَّا فَإِنَّا نَسْخَرُ مِنْكُمْ كَمَا تَسْخَرُونَ [مؤمنون:۳۸] (پرون چې تاسو په موږ پوري خندل نن موږ په تاسو پوري خاندو ) لکه چې دا خبره حضرت نوح عليه السلام د کافرانو ولې ته کړې وه،

نو د جنت د نعمت د لاسه څخه په وتلو او د ديدار الهی څخه په محروم کېدلو د غم مثال بعينه داسې دی، او د دغو جواهراتو مثال د عبادتونو دی، او دغه تيارو د دنيا مثال دی او کومو خلکو چې د دغه جواهراتو (عبادتونو ) د بوج پورته کولو څخه په دې وجه انکار کړی وو چې في الحال دا نغد بوج ولي پورته کړم د کوم حيثيت چې د يو پور(قرض) څخه زيات نه ښکاره کيږي، يعني د کوم نغد کېدل چې په شک کې دي، دې به صبا (د قيامت په ورځ) چيغې وهي چې (اې جنتيانو!) پر موږ لږ اوبه راتوی کړي، او حسرت او افسوس به ولې نه کوي چې صبا (د قيامت په ورځ) به په اهلِ معرفت او اهل عبادت باندې داسې داسې نيک بختيانې راوريږي چې د هغه ځای د يوه ګړی په مقابله کې هم د دې دنيا ټول نعمتونه هيڅ شئ نه دي، بلکې هغه سرې کوم چې به د ټولو څخه آخر د دوږخ څخه وېستل سې ده ته به دومره نعمتونه ورکړل سي چې د دې دنيا د نعمتونو د لس چنده سره به برابر وي او دا مماثلت د وزن يا مقدار په اعتبار سره نه بلکې د روح د نعمت په اعتبار سره دی، او دغه خوشحالي او سوکالي ده(کومه چې به ده ته حاصله وي)، لکه چې مثلاً وايي دا ملغلره په قيمت کې د لسو دينار برابره ده نو د دې څخه دا مراد نه دې چې دغه ملغلره په وزن يا مقدار کې د لسو ديناور برابره ده بلکې مطلب يې دا دی چې د دې ماليت (قيمت) لس ديناره دي، يعني لس ديناره په حاصليږي او د غه ماليت د دې روح دي، نه دا چې وزن او اندازه.

## رحاني دوږخ او جسماني دوږخ

هر کله چي تا دا دري سره اُورونه وپېژندل، نو اوس په دې هم پوه سه! چي دا اُور د هغه اُور څخه ډېر تېز دی کوم چي جسم ته لګېږي، ځکه چي جسم ته خو تر هغه وخته پوري د درد خبر هم نه وي تر څو چي اثر يې روح ته ونه رسېږي، نو د جسم درد چي روح ته ورسېږي نو ډېر زيات سي، نو هغه اُور او هغه درد کوم چي د روح د دننه څخه بهر راوځي هغه به لامحاله ډېر غټ وي، او دا اور (د کوم چي ذکر کيږي) د روح د دننه څخه راوځي د بهر څخه دې ته نه داخليږي، او د هر درد او تکليف سبب همېشه داوي چي يو داسي شئ پر طبيعت مسلّط کړی سي کوم چي د طبيعت د مقتضا څخه خلاف وي او د جسم مقتضاد طبع دا وي چي د ده ترکيب باقي پاته او د ده ټول اعضاء او اجزاء د يو بل سره مجتمع وي، دغه رنګه د عملِ جراحی په وجه چي کله دا اعضاء (يا اجزاء) د يو بل څخه جلا کيږي نو ګواکي دا د مقتضا د طبعي څخه خلاف وي او د دې تضاد ښکاره کېدل د درد او تکليف باعث جوړيږي، ځکه چي جراحت اعضاء د يو بل څخه جلا کوي (او د دې په طبعي ترکيب کي په خلل واقع کېدو سره درد شروع کيږي) دغه ډول اور کله چي په ټولو اجزاؤ کي دننه داخل سي نو ګواکي يو د بل څخه جلا کوي، او په هر اندام د جلا جلا اور احساس کيږي، او ټول بدن د سر څخه تر پښو پوري درد جوړ سي، په دې وجه سره د اور تکليف نور هم زيات ستونزمن سي او سخت سي، نو هغه شئ کوم چي د زړه د مقتضا د طبع څخه خلاف وي، که پخپله په ده کي ځای سي نو د زړه د دننه څخه به په دې سره پيدا کېدونکي درد څامخا ډېر زيات وي، او د زړه مقتضا د طبع معرفت حق تعالی او ديدار الهي دی او د دې ضد ړوندالی دي، او که دا پر ده مسلط سي نو په داسي زړه کي چي کوم درد پيدا وي د هغه هيڅ انتهانسي کېدای.

او که زړه په دې دنيا کي مريض نه وي نو د دې ړوندوالی تکليف به يې په دې دنيا کي هم محسوس کوي (او د دې د علاج تدبير به يې کوي يعني د معرفت حاصلولو) لېکن کله څنګه چي لاس پښې د يخ څخه کله بيده سي نو که اور ته يې ونيسي هم نه په پوهيږي، اوهرکله چي د بيده کېدو کيفيت ليري سي نو اور ته په نژدې کېدو سره هم تکليف محسوسيږي، دغه ډول د خلګو زړونه په دې دنيا کي ګواکي بيده سوي دي او په مرګ سره به دا شئ ځيني ليري سي نو په يو دم کي به دا اور په زړه کي ښکاره سي، او دا اُور چيري د دباندي يا بل ځای څخه خو نه راځي دغه پخپله د ځان سره وړي او دا د مخکي څخه په زړونو کي موجود وي، لېکن څنګه چي علم اليقين نه وي په دې وجه يې نه

وینې، او اوس په قیامت کې چې علم الیقین حاصل سو نو ټوله خبره په فکر کې راغله (خو اوس څه فائده نسته څیني) كَلَّا لَوْ تَعْلَمُونَ عِلْمَ ٱلْيَقِينِ ۞ لَتَرَوُنَّ ٱلْجَحِيمَ ۞ [التکاثر] (که تاسو ته علم الیقین حاصل وای نو تاسو به دوږخ لیدلی وای (مګر اوس تاسو خلک به ضرور دوږخ وویني) د دې آیت هم دا معنی ده.

او شریعت چې کوم د روحاني دوږخ او روحاني جنت تشریح او صفتونه پوره بیان کړی دي نو په دې وجه سره چې ټول خلک په دې پوه سي او په ښه شان سره یې په ذهن کې راولي، لیکن حال دا دی چې چا ته د دې حقیقت بیانیږي هغه یې سپک ګڼي او د ده سختي او ځتوالي په زړه کې نه راولي، لکه څنګه چې کله یو کوچنی ته وویل سي چې سبق وایه! کنې د پلار د دولت او جایداد څخه به محرومه سې، او دغه خوشبختي به ستا څخه واخیستل سي، نو هغه په دې خبره نه پوهیږي او په زړه یې څه خاص اثر نه کوي (حال دا دی چې دا یو لویه تنبیه وي) لیکن که ده ته دا دمکی ورکړل سي چې (که دې نه وویلو نو) استاذ به دې غوږونه پرې کړي، (یعني سزابه در کړي) نو دی فوراً پوه سي او ویریږي (ځکه چې په دې بلدي دی پوه دي) حال دا دی چې دادب نه ازده کوونکی کوچنی د پلره لکه څنګه چې د استاد سزا حقه ده دغه رنګه د پلار د ریاست څخه محرومه کیدل هم حق دي، نو دغه ډول جسماني دوږخ حق دي او د الله ﷻ د حضور څخه د محرومی اور هم حق دي او لکه څنګه چې د ریاست څخه د محرومی د سزا په مقابله کې د استاد سزا او کوټل هیڅ حیثیت نه لري، دغه ډول د روحاني دوږخ په مقابله کې جسماني دوږخ هم نرمه او معمولي سزا ده.

## د آخرت د ژوند به باره کې شکونه

پر دې که ته دا روایې چې دا څه چې موږ بیان کړل دا هم هغه څه دي کوم چې عالمان بیانوي، او دعلماؤ داوینا ده او په کتابونو کي هم لیکلي دي چې دا خبري د تقلید او اوریدو څخه ملسوا پکار کي نه سي راتلای، او د عقل او بصیرت په دې کې څه دخل نسته، نو یاد ساته چې د دوی د دې اعتراض جواب مخکي تېر سوی دي چې دغه څه دي؟ دا رنګه دا چې زموږ وینا د دوی د وینا څخه مختلفه نه ده لیکن د آخرت د تشریح په باره کې چې هغوی څه وایي هغه صحیح دي مګر د دوی تحقیق د محسوساتو پوري محدود دي او د دې څخه دوی بهر نه ځي، او روحانیت دوی پیژندلی نه دي یا د پیژندلو سره سره یې د دې تشریح نه ده کړې، شاید په دې لراده سره چې زیات خلک په دې نه پوهیږي، او کوم چې د جسماني امورو سره متعلق دي چې د دې پیژندل د شریعت د تقلید او د

اوریدلو شخه ماسوا ممکن نه دي، لیکن دا دویم ډول د روح د حقیقت د معرفت یو قسم دی او د دې د پوهېدلو لار د بصیرت او د باطن د مشاهدې لاره ده او دې ته هغه څوک رسېدای سي کوم چي خپل وطن ته خیرآباد وایي (یعني پرېږ اږدي) او دغه ځای پاته کیږي کوم ته چي وطن یا ځای د پیدایښت وایي، بلکې دی د هغه شخه بهر راوځي او هغه لار اختیاروي کومي ته چي د دین لار وایي، لیکن دلته د وطن ښار یا کور شخه هغه ځایونه مراد نه دي کوم چي په مادي توګه مراد ګول کیږي، ځکه چي دغه جسماني وطن وي او د جسماني سفر هیڅ مرتبه نسته، ځکه چي هغه روح کوم چي د بنده اصل حقیقت دي د ده د قرار ځای بل دي، چي د هغه ځای شخه د ده ظهور کیږي او هغه د ده وطن دي،او د دې ځای شخه چي کوم سفر ده ته په مخکي وي هغه دغه وطن ته د رسېدلو په مطلعه کي دي، او په دې لاره کي ده ته ډېر منزلونه پرېکول ګوري، او د هر منزل خپل یو عالَم دي، داسي ووایه چي د ده اولنی قرارګاه یاوطن عالَم محسوسات دي، د دې شخه وروسته عالَم تخیلات، یا عالَم توهمات، بیا عالم معقولات، ګواکي عالَم معقولات د ده څلورم منزل دي او دا هغه منزل دي کوم ته چي دی ورسیږي د خپل حقیقت شخه خبر سي چي د دې شخه مخکي دی بې خبره وو، په دوی کي په هر عالَم باندي د پوهېدلو د پاره به دا مثال مناسب وي.

بنده چي تر څو پوري د محسوساتو په عالَم (دنیا) کي وي نو د پتنګ (پروانې) په شان وي چي هغه ځان په شمع باندي سوځي ځکه چي په ده کي د لیدلو قوّت خو موجود وي لیکن د تحفظ (ځان ساتني) شعور پکښې نه وي، دی د تیارې شخه تښتي او کړکۍ (دریچه) تلاش کوي او ګنې چي څراغ کړکۍ (دریچه) ده نو ځان دغه کړکۍ ته وتړي او داور تکلیف زغمي، لیکن دا تکلیف هم ده ته یاد نه پاته کیږي ځکه چي د ده حافظه نه وي او نه یې قوّت د خیال وي چي په تخیل کي یې راولي، په اصل کي دی دغه درجې ته رسېدلي نه وي (کوم ځای چي د حافظي او خیال کومک موجود وي) په دې وجه په وار وار د دغه څراغ سره مبتلي (تکراوېږي) تر دې چي مړ سي، که په ده کي د یاد ساتلو قوّت یا د تخیل قوّت موجود وای نو د یوار تکلیف کېدلو شخه وروسته به یې دوهم وار دغه حرکت نه کولای، لکه نور حیوانان چي یو وار په لرګي ووهل سي نو بله وار د لرګي په پوړته کولو سره تښتي، ځکه چي د یو وار وهلو یادانښت د دوی په ذهن کي موجود وی نو محسوسات د اول منزل نوم دی.

دویم منزل د تخیلاتو دي، او تر څو پوري چي بنده په دې درجه کي وي نو په ده کي او په حیوانانو کي شه فرق نسته، ځکه چي تر څو پوري دی د یو شئ شخه تکلیف ونه ویني تر هغه وخته پوري د

هغه ځغه ځان نه ساتي، لیکن چې یو وار تکلیف ځیني ووینې بیا نژدې نه ورځي او ځان ځیني ساتي (د پتنګ (پروانه) په ډول په وار وار ځان نه په سوځي).
دریم منزل د موهماتو (توهّماتو) دی او کله چې انسان دې درجې ته ورسیږي نو د ګوډې بزې (وزې) یا آس برابر سي، یعني د نالیدلو تکلیفونو ځغه تښتي، او پوه وي چې د دې ځغه تکلیف را رسیږي مثلاً که ګډ شرمښ او آس، زمری چیري نه وي لیدلی لیکن که یې ووینې نو فوراً ځیني تښتي او پوه سي چې دا دښمن دي، لیکن دغوا اوښ یا فیل ځغه نه تښتي، حال دا دی چې دغه (د زمري او ښرمش ځغه) په بدن کي غټ وي، او دا د دیدار شعور دي کوم چې د دوی په باطن کي الله ﷻ ایښی دي، په کوم سره دوی خپل دښمن پیژني لیکن د دې شعور او احساس سره سره د هغو شیانو ځغه چه نه کوي کوم چې په مستقبل کي مخ ته راتلونکي وي، ځکه چې دا درجه په ځلورم منزل کي حاصلیږي کوم ته چې منزل د معقولاتو وایي، او کله چې بنده دې منزل ته ورسیږي نو د ټولو ځاروپانو ځغه مخکي سي، او چې دې ته ورسیږي نو په حقیقت کي د عالَمِ انسانیت په اوّل منزل کي قدم کښیږدي چې دلته ده ته داسې داسې شیان ښکاره سي کوم چې د محسوساتو (تخیّلاتو) او موهماتو ځغه بالا تر وي او د دې دریو سره وو په دې کي تېر بدل له اندازه هم نه وي او د داسې کارونو نو ځغه ځان ساتي کوم چې آینده واقع کېدونکي وي د ټولو کارونو په حقیقت او روح جلا جلا پوه سي، او د هر شئ په حد او قیمت په داسې توګه پوه سي چې د دې سره متعلقه د ټولو شیانو حقیقت هم پر ده ښکاره سي او د کومو شیانو مشاهده چې په دې دنیا کي کېدای سي هغه بې انتها نه ده. ځکه چې کوم څه چې په عالَم محسوسات کي دي دغه د اجسامو ځغه بهر نه دي او اجسام یقیناً متناهي دي، (یعني داسې نه د ي چې انتها یې نه وي) او په عالم محسوسات کي د چلېدو د پاره چې کوم تردّد پکار دې هغه د دې ځغه زیات نه دي څومره چې پر لواره ځمکه د کرځېدلو د پاره په کار وي، یعني دغه آسانه وي او هر څوک دا سي کولای سي، (په ځمکه تلل خو د هیچا د پاره باعث د تردّد نه وي) لیکن په ځلورم منزل کي چلیدل خو محض د حقیقتونو د روح او د حقیقتونو د کارونو د پاره وي (کوم چې بې انتها ګران دي) او دا ګواکي لوړ پر لوړو د تللو مترادف دي، او په موهومو ځایو کي د ده تردّد په کښتي کي د سپرېدو په شان وي چې د دې درجه د خاورو او اُبو په مینځ مینځ کي ده او د دې درجې د معقولاتو ځغه هاخوا هغه مقام وي کوم ته چې مقام د انبیاؤ او اولیاؤ وایي او د اهلِ تصوّف مقام هم دغه دي، او دغه په هوا کي د تللو په شان وي، لکه څنګه چې دلوجه ده چې کله نبي کریم ﷺ ته خلکو وویل چې حضرت عیسی علیه السلام پر اوبو تللی سو؟ نو دوی ﷺ وفرمایل چې هو! دا صحیح دي

بلکي، وَلَوْ إِزْدَادَ يقيناً لَمَشَى فِي الْهَوَاءِ (يعني که د هغه يقين نور هم زيات وای نو په هوا کي به تللی).

نو د بنده د سفر منزلونه په اصل کي په علم ادراک کي دي او پکار دي چي دی آخري منزل ته ورسيږي، چي د فرشتو مرتبې ته رسېدل حاصل کړي، ګواکي د څارويانو د آخري درجې څخه واخله د ملائکو تر درجې پورې ټول منزلونه د بنده د معراج او ترقی منزلونه دي اوس دا د بنده کار دی چي په لاندي درجو کي پروت وسيږي او که لوړو ته ځان رسوي، او ده ته چي کوم ځای دا خطره په مخکي کي ده چي هسي نه اسفل السافلين (د ټولو څخه لاندي) مقام ته ور ايله سي، هلته دا امکان هم وي چي اَعلی عليين (د ټولو څخه لوړ) مقام ته ورسيږي او د دې خطرې او امکان په باره کي د الله ﷻ فرمان دي: إِنَّا عَرَضْنَا ٱلْأَمَانَةَ عَلَى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَٱلْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَن يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا ٱلْإِنسَٰنُ إِنَّهُۥ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا ﴿۷۲﴾ [الاحزاب] (او موږ دا امانت يعني (احکام) اسمانو او ځمکو او غرونو ته پېش کړل نو دوی د دې د ذمه واری څخه انکار وکړی او د دې څخه ويرېدل او انسان د دې ذمه واری پر خپل سر واخيستله، بې شکه دی ظالم دی، جاهل دی) او څه چي په جماداتو کي دي د دوی درجه نه بدليږي ځکه چي دغه ناخبره دي او د دې سره بې خطرې دي، او فرشتې خو دغه رنګه په عليين کي دي او د دوی په درجو کي تنزل او زوال نه راځي ځکه چي د هر يو خپله خپله درجه ده او دغه ده ته وقف ده لکه چي الله ﷻ فرمايي (يعني فرشتي وايي) وَمَا مِنَّآ إِلَّا لَهُۥ مَقَامٌ مَّعْلُومٌ [الصّٰفّٰت: ۱۶۴] (او په موږ کي د هر يوه معلومه درجه ده) او څارويان د مخکي څخه په اسفل السافلين (لاندي درجه) کي دي او د ترقی او معراج سره د دوی څه کار نسته، نو که خطره ده نو انسانو ته ده کوم چي د دوی په مينځ مينځ کي واقع سوي دي، او د دوی په باره کي بالکل ممکنه ده چي ترقی وکړي او د ملائکو درجې ته ورسيږي، يا دتنزل ښکار سي د څارويانو درجې ته ور ايله سي.

او د امانت د بار د پورته کولو دا معنی ده چي انسان (ځان خطرې ته واچوی) خطرناکه ذمه والی يې قبوله کړه، په دې وجه په دې صورت کي ما سوا د انسان څخه بل چا ته د امانت د بار پورته کولو همت که کېدای سي، او په دې تفصيل کي د ټللو څخه مقصود دا دی چي تا کوم ويلي وو چي ډېر خلکو دا خبره دغه ډول نه ده بيان کړې (د دې جواب وکړای سو) چي تا ته معلومه سي چي د دوی

داسي ویل څه غیر معمولي او عجیبه خبره هم نه ده، ځکه چې مسافر همیشه د مقیم څخه خلاف وي او په خلګو کي ډېر مقیم دي او مسافر خو شاذ ونادر یو څوک، څوک وي، او په دوی کي هم چي څوک د محسوساتو او تخیلاتو په اولنی منزل کي مبتلا پاته سي او دغه خپل وطن او مستقر مقرر کړی، پر ده د کار حقیقت او روح د کارونو چیري اظهار کیدای نسي، او دی روحاني نسي جوړیدای ده ته د کارونو د روح او د روحاني احکامو خبر نه وي، او په دې وجه د دې شرح هم په کتابونو کي ډېره کمه ښکاره کیږي.

نو د آخرت د معرفت په شرح کي موږ پر دې لږ بیان اکتفاء کوو، ځکه چي د دې څخه په زیات پوهیدل د عوامو د پاره به ممکن نه وي، بلکي ډېر خلک خو به په دې مختصر بیان هم شاید چي پوه سي، او اصل حال خو الله ﷻ ته معلوم دی.

## فصل

د بې عقلانو یو ځانګړی شمېر داسي دی چي په دوی کي نه خو یو څه همت وي چي پخپل بصیرت سره پټ رازونه وپېژني او نه دوی ته دا توفیق ورکړل سوی وي چي د شریعت څخه څه حاصل کړي او د کارونو د روح څخه خبر سي، په دې وجه د آخرت په خبرو سره حیرانیږي او د شک او شبهې څخه مغلوبه کیږي، لکه څنګه چي د دې لازمي نتیجه دا وي چي کله خواهش او شهوت پر ده سپور سي او دغه وخت د ده طبیعت دغه شئ غواړي چي دی یې ونه مني نو واقعي (د شهوت د غلبې په وجه) دی د آخرت څخه انکار کوي، او په کرلرره کراره دا انکار د ده په باطن کي ښکاره سي او شیطان خو د داسي خلګو د تربیې (پالنې) د پاره هر وخت تیار وي نو نور (هم لا پروا سي او) دا تصور کوي چي د دوږخ کوم صفت بیان کړی سوی دی دغه فقط د ډېردولو د پاره او د جنت چي کوم صفت بیان سوی دی دغه هم محض یو خوشحالونکې خبره ده (کنې په حقیقت کي دواړه هیڅ هم نسته) نو تر دې خیال لاندي د شهوت غلام جوړ سي او د شریعت پر لاره د تللو څخه تښتي، بلکي کوم خلک چي د شریعت پابند وي دغو ته کم عقله وایي، نفرت ځیني کوي، چي دا (د شریعت پیروي کوونکي) بوری(بوجی) افوستونکي او لېوني دي،اوس د داسي کم عقلو طاقت نسته چي د چا په خبره پوه سي او په دلیل سره رازونه وپېژني، داسي سړي ته دعوت د خبرو ورکول او په یو ظاهري خبره کي ورته د غور او فکر ترغیب ورکول، او بیا د ده څخه پوښتنه کول چي که ستا عقیده دا ده چي یو لک څلوریشت زره پیغمبرانو او ټولو اولیاؤ حکماؤ علماؤ چي څه کول او ویل یې دغه ټول

غلط وو، او چي دغه فقط مغرور انسانان وو، لېکن د دې کم عقلي او غرور سره (چي ته پکښي مبتلا یې) که تا دوی وپېژندل (چي دغه دروغجن او مغروره دي) نو آخر دا هم ممکنه کېدای سي، چي (هغوی نه بلکي) په غلطی ته پخپله یې، او مغروره هم ته یې (چي په لکو انسانانو ته دروغجن او کم عقله وایې) ځکه چي حقیقت دآخرت تا پخپله ونه پېژندی، د روحاني عذاب په معنی ته نه پوهېږې، او د عالم محسوسات څخه د روحانیت تمثیل ستا په ذهن کي نه راځلی (او پر نورو الزام لګوې) اوس په دې هم که هغه احمق خپله غلطی تسلیم نه کړي او وایي چي: "زه خو چي څنګه یو د دوو څخه زیات بولم او دا صحیح بولم دغه هول د دې خبري قائل یم چي د روح هیڅ حقیقت نسته او نه ده ته بقاء حاصله او د جسماني یا روحاني هیڅ هول تکلیف یا راحت سوال نه پیدا کیږي"، نو پوه سه! چي د دې سړي مزاج خراب سوی دی او د ده څخه هیڅ هول اُمید نه دی ساتل پکار چي دغه یقیناً د هغو خلکو څخه دی د کومو په باره کي چي الله ﷻ فرمایلي دي: وَمَا نُرۡسِلُ ٱلۡمُرۡسَلِينَ وَإِن تَدۡعُهُمۡ إِلَى ٱلۡهُدَىٰ فَلَن يَهۡتَدُوٓاْ إِذًا أَبَدٗا ﴿٥٧﴾ [کهف] (اې پیغمبره ﷺ! که ته دې خلکو ته (ډېر) هدایت کوې (هدایت ته یې رابولې) لېکن دوی هیڅ کله هدات طرف ته نه راځي)

او که دا ووایي چي ما دآخرت د کارونو د ناشوني (محال) کېدلو څه تحقیق (څېړنه) نه ده کړې او کېدای سي چي دا ممکنه وي، لېکن د عقل څخه لیري خامخا ده، بیا چي هر کله د دې حقیقت ما ته معلوم نه دي او زما څه عقیده هم نه ده، ځکه چي دا حقیقت زما پر زړه غالب نه راځي، نو محض د یو کمزوری خیال په بنیاد ولي خپل ځان د ټول عمر د پاره د پرهیزګاری په قید کي ور اچوم، او د لذتونو او خوشحالیو څخه په ډډه کیږم، په دې صورت کي دې سړي ته موږ داوایو چي هر کله تا دومره خو ومنله چي دا ممکن کېدای سي، نو بیا خو په عقلي توګه ستا د پاره واجب کیږي چي ته د شریعت لاره اختیاره کړې ځکه چي خطره که څه وي نو د دغې څخه خو په کمزوري ګمان سره هم تېښته کوې، مثلاً که ته د خوراک اراده وکړې او څوک راسي تا ته ووایي چي په دې خوراک کي مار خوله وهلېده نو د دې په اورېدو سره به ته سمدلاسه د هغه خوراک څخه لاس لیري کړې، ځکه چي (تا خو مار په خوله وهلو لیدلی نه دي) ستا فعل محض د ګمان پر بنیاد دي، حال دا دی چي ګمان دا هم کېدای سي چي دغه سړی درواغ وایي، او ځکه وایي چي ته دا خوراک ونه خورې، او هغه یې پخپله وخوري، لېکن ته یې ځکه رشتیا منې چي د رشتیا کېدلو امکان کېدای سي، دغه ډول ته د ځان سره وایې چي: که یې ونه خورم د لوږې تکلیف به زغملای سم، لېکن د لوږې تکلیف د زهرو

خوږولو څخه خوره دي څکه چي که يې وخورم او رنځيا وي نو مړ به سم.
دغه رنګه که ته ناجوړه سې او د مرګ واقع کېدلو خطره محسوسه سي او خاص په دې حالت کي څوک تعويذ ليکونکی ووايي چي ما ته يوه روپۍ را کړه نو تعويذ به در وليکم او ته به فوراً جوړ سې، اوس که هر څومره ستا غالب ګمان دا وي چي د دې تعويذ د جوړېدو سره هيڅ واسطه نسته، لېکن دا ګمان به دې هم وي چي شايد که صحيح وايي او بيا د يوې روپۍ څه خبره ده (او دې ته به چمتو سې) يا مثلاً نجومي تا ته ووايي چي هر کله سپوږمۍ فلانی مقام ته ورسيږي نو فلانی ترخه دوايي وخوره فوراً به جوړ سې په دې وينا به ته د ترخي دوايي څښلو ته هم تيار سې او وا يې به چي ممکنه ده چي رښتيا وايي او که دروغ هم وايي نو د ترخي دوايي څښل څه مشکله خبره ده، نو بيا بنه ياد ساته چي د يو عقلمند په نزد د يو لک او شلوروشت زره پيغمبرانو ويل سوې خبره او د دنيا د ټولو بزرګانو په دې باندې متفق کېدل چي په کومو کي حکيمان عالمان ا اولياء د هر ډول بزرګان شامل دي، د يو نجومي يا تعويذ ليکونکي د خبري څخه د کمي درجې شئ نسي کېدلای څکه چي د دې خلکو په وينا خو لې شان تکليف څکه برداشت کوي چي د يو لوی تکليف څخه خلاص سي او دا صحيح هم ده څکه چي د لږ څوندي تکليف د غتې نقصان او سخت تکليف په پرتله کي څه مرتبه وي، او که څوک حساب وکړي چي د دنيا عمر څومره دي و د دې په مقابله کي به د آخرت عمر تر ابده پوري (چي هيڅ انتهايې نسته) څومره به وي، نو ده ته به پخپله معلومه سي چي دا معمولي تکليف برداشت کول د هغه غتې او ناپايه تکليف په مقابله کي ډېر بنه دي، د کوم په باره کي چي لږ تر لږه د دې خبري خو قائل دي چي ممکنه ده دغه صحيح وايي او واقعي زه په ابدي عذاب کي اخته سم او که داسي وسوه نو بيا به زه څه کوم؟ او د دنيا دا د څو ورڅو راحت کوم چي هلته په تللو سره به تېر سوي وي ما ته به څه فائده را کړي؟
او د ابد معنی دا ده چي که ټول جهان د اېږدنو د دانو څخه ډک سي او يوه مرغه ته وويل سي چي زر زر کلونه وروسته يوه يوه دانه د دې څخه خوره، او په دغه رنګه کولو که په کروړونو او اربونو کاله وروسته دغه ټولي دانې ختمي سي نو په ابد کي به بيا هم څه کمي واقع نسي، نو تر دومره لامتناهي مدې پوري په عذاب کي مبتلا پاته کېدل څنګه برداشت کولای سې؟ هغه که دغه عذاب روحاني وي يا جسماني وي يا خيالي. او د دنيا ژوند د دغه په مقابله کي څه مرتبه لري، او يو عقلمند به داسي نه وي چي په دې حقيقت په غور کولو سره هم پوه نسي چي د احتياط لار اختيارول او د دومره غتې خطري څخه د ځان ساتلو کوشش کول ده ته واجب دي، هغه که په دې کي تکليفجن کيږي ولې نه

او که څه هم دغه د ګمان پر بنیاد ولي نه وي، څکه چي د دنیا خلک د تجارت د پاره د دریاب سفرونه کوي او لیري لیري مقاماتو ته ځي، او بې شماره تکلیفونه تېروي او دا هر څه د ګمان پر بنیاد بللی وي یعني یقین خو نه وي چي په لازمي توګه به په دې تجارت کي نفع وي، لېکن دا کمزوری ګمان دوی کوم کوم ځایونو ته رسوي، نو که ستا د خپل ځان سره څه هم غمخواري وي نو په ګمان او احتمال د شریعت لاري ته راسه، او دا وجه وه چي امیر المؤمنین حضرت علي کرم الله وجهه یوه ورځ د یو ملحد سره مناظره وکړه او ویې ویل: که معامله دغه ډول وي لکه چي ته وایې نو بیا خو به ته هم خوندي (محفوظه) سې او موږ هم، لېکن که داسي وي لکه چي زه وایم نو بیا خو به موږ خوندي سو لېکن ته به په ابدي (تلپاتي) عذاب کي مبتلا سې، او د حضرت علي رضی الله عنه داوېنا د دغه ملحد د ناپوهي پر بنیاد وه څکه چي دغه پخپله په شک او شبهه کي وو (د دوی رضی الله عنه هیڅ شک او شبهه نه وه) هغه پوهیدلو چي د یقین لار پېژندل د ده د ناپوهي د پاره ممکن نه دي، نو په دې سره پوه سه! چي په دې دنیا کي چي څوک د آخرت د توښې څخه ما سوا په نورو مشغلو کي اخته سي دغه انتهائي درجه کم عقله دی، او د ده د کم عقلی سبب د ده غلفت دی یا دغور او فکر د قوّت څخه محرومي ده، په اصل کي ده ته د دنیا د خواهشاتو څخه دومره مهلت نه ورته حاصلیږي چي په دې سلسله کي غور وکړی سي، لېکن اصلیّت دا دی چي دآخرت پر عذاب هغه که د چا پوخ یقین یا غلب ګمان وي یا محض ضعیف ګمان وي د عقل په روی سره پر هر چلواجب ده چي هغه د دې غتي خطرې څخه د ساتولو په خاطر احتیاطًا لار د امن اختیاره کړي لکه چي الله ﷻ فرمایي: وَالسَّلَامُ عَلَىٰ مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَىٰ [طه:۴۷] (سلامتی د داسي سړي د پاره ده چي پر سیده لاره ځي) د اسلام د عنوان اروند بحث ختم سو چي په هغه کي د نفس د پېژندلو، د حق د پېژندلو، د دنیاد پېژندلو، او دآخرت د پېژندلو په اړه بیان وسو، اوس د دې څخه وروسته د اسلام د معاملاتو پر ارکانو بحث شروع کوو، انشاء الله تعالی.

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# د اسلام د معاملاتو ارکان

هر کله چي د مسلماني دعنوان د پېژندلو څخه فارغه سو او تا خپل ځان وپېژندی، الله ﷻ دي وپېژندی، دنیا او آخرت دي وپېژندل نو پکار دي چي اوس ستا توجّه د مسلماني معاملاتو ته راوګرځوو.

دا خو تا ته معلومه ده چي د بنده نېکبختي (سعادت) په دې کي دی چي دی الله ﷻ وپېژني او د هغه په عبادت

کي مشغوله سي، او د تېرو څلور عنوانانو په پېژندو سره تا ته معرفت حاصل سو، اوس د عباداتو وضاحت په دې ارکانو سره کيږي:

(۱) اول دا چي خپل ظاهر په عبادت سره ښايسته کړي او دا رکن عبادات دی.

(۲) دویم دا چي خپل ژوند، خپله هرناسته خپل هر کړی مؤدبه ساتي او دې ته رکن معاملات وايي.

(۳) دریم دا چي خپل زړه د بدو اخلاقو څخه پاک کړي او دې ته رکن مُهلکات وايي.

(۴) څلورم دا چي خپل زړه د ښو او نېکو اخلاقو سره ترلی وساتي او دې ته رکن منجیات وايي.

## اول رکن: د عباداتو په باره کي

چي د هغه لس اصلونه دي: اول اصل د اهل سنتو د عقيدې د صحيح والي په بابه کي، دويم اصل په طلب د علم کي د مشغلېدو په باره کي، دريم اصل د طهارت (پاکي) په باقي ساتلو کي، څلورم اصل په لمانځه کولو کي، پنځم اصل په زکوٰة ادا کولو کي، شپږم اصل په روژه نيولو کي، اووم اصل په حج کولو کي، اتم اصل د قرآن په تلاوت کولو کي، نهم اصل په ذکر او تسبيح کي، لسم اصل په ترتيب د اَورادو او وظائفو او د عبادت په وختونو کي.

## اول اصل: د اهل سنت والجماعت عقيده حاصلول

پوه سه! چي کوم سړی مسلمان سو پر ده دا واجب سو چي د ټولو څخه مخکي کلمه د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ په ژبه سره ادا کړي او کله چي دا کلمه ووايي نو په زړه سره دي په پوه سي او پوره يقين دي پر وکړي تر دې چي په دې کي يوه ذره شک او شبهه پاته نسي او کله چي يې دغسي پوخ يقين راسي او د زړه اطمينان ورته حاصله سي، او قطعاً څه شک او شبهه يې باقي پاته نسي نو دا د اصل مسلماني د پاره کافي گڼل کيږي. او دا په دليل سره ثابت او په ثبوت او استدلال سره پېژندل پر هر مسلمان په لازمي توگه سره فرض نه دي ځکه چي نبي کريم ﷺ اهل عربو ته دا حکم نه وو ورکړی چي هغوی دي په دې سلسله کي دليلونه طلب کړي يا دي د علم الکلام مطالعه ضرور وکړي يا دي شکونه او شبهې تلاش کړي د هغه د جوابونو د پاره دي پيا سر گردانه گرځي، بلکي په ژبه سره تصديق او په زړه يقين کول کافي دي او د عامو خلکو درجه د دې څخه زياته هم نه ده. خو د ځينو داسي افرادو کېدل لازمي او خامخا دي کوم چي په طريقه د خبرو پوهيږي او د دې عقيدې په ثبوت کي دليلونه هم پېش کولای سي، چي که څوک عوامو ته د گمراه کولو د پاره شکونه او شبهې ښيي

نو چې دا خلک د عوامو ترجماني کوي او شکونه او شبهې ليري کولای سي، او دې اهليّت يا صفت ته علم الکلام وايي او په فرض کفايي کي شامل دي، او چې په هر ښار کي د دې يو يا دوه عالمان موجود وي کافي دي، يو عام سړی د عقيدې خاوند وي (کوم چې دی د شک او شبهې څخه خوندي کوي).

ليکن د معرفت د حقيقت لار بله ده او د دې دوارو مقامونو څخه مخکي ده او د دې شروع په رياضت او مجاهده سره کيږي او تر څو چې د مجاهدې او رياضت څخه کار وانه اخيستل سي تر هغه وخته پوري دې درجې ته رسېدل ممکنه نه دي او د دې دعوي او معرفت ناقابل تسليم دي ځکه چې د دې څخه نفع کمه او نقصان زيات وي، او د دې د مُدّعي مثال د داسي سړي دی کوم چې د پرهېز څخه مخکي دوايي وخوري او دژوند اُميد پاته نه وي ځکه چې دوايي په معده کي داسي خرابي پيدا کړي وي او د داسي فاسدي مادې شکل يې اختيار کړی وي چې جوړېدل ځيني محاله سي او د دې بر عکس نقصان زيات سي، او څه چې موږ د مسلماني تر عنوان لاندي بيان کړي دي دغه د حقيقت د معرفت يو خوشبو (عطر) ده او محض د نمونې مصداق دي چې څوک د دې اهل وي هغه يې تلاش کونکی سي، او هيڅ سړی د دې تلاش کونکي نسي کېدای ما سوا د هغه څخه د چا چې د دنيا سره هيڅ تعلق نه وي چې خپل ځان ته يې راکشوي، او ټول عمر سوا د طلب الهي څخه د بل شي طلب نه وي پاته سوی، او دا کار ډېر ګران دی. نو موږ د هغه شي طرف ته اشاره کوو کوم چې د ټول جهان خوراک (غذا) ده، او دغه عقيده د اهلِ سنّت ده، چې هر سړی دي دا عقيده پخپل زړه کي قائمه کړي، چې دا عقيده به د ده د سعادت او خوشبختی تخم ثابت سي.

## عقيده حاصلول

د اهل سنت والجماعت عقيده دا ډول ده چې: ياد لره! چې ته مخلوق يې (يعني پيدا کړی سوی يې) او ستا يو خالق (پيدا کوونکی) سته او صرف ستا نه بلکي د ټولي دنيا پيدا کوونکي هغه دی، په دې دنيا کي چې څه هم دي د هغه دي، هغه يو دي شريک نه لري يو او يکتا دی، بې مثله او بې همسره دی، هغه هميشه او تلپاته دی چې د ده د هستی يو ابتداء نسته، همېشه به وي ځکه چې د ده د وجود انتها نسته، په ازل او ابد کي د ده هستی واجب ده ځکه دفنا او نيستی هغه ته لار نسته. هغه پخپل ذات سره قائم دی ځکه چې هغه د سبب او ذريعې څخه بې نيازه دی، او هيڅ شئ داسي نسته کوم چې هغه ته محتاجه نه وي، ځکه چې هغه پخپل ذات سره قائم او د باقي هر شئ قيام د هغه محتاجه دی،

د ده تنزیه پخپل ذات کي نه جوهر دی نه عرض، هغه په یو جسم کي حلول نه کوي، هغه د یو شیٔ په شان نه دی د هغه هیڅ شکل صورت نسته، ولي، څه رنګه، څنګه، څه شیٔ، څومره، اندازه، دا الفاظ د ده په باره کي نسي استعمالیدای، کوم چي په خیال کي راتلای سي او تر کومه پوري چي د خیال او فکر الوتل کیدای سي ودې کړي لیکن د ده د څرنګوالي او څومره والي تصور هیڅ اندازه هم نسي کولای چي هغه د دې څخه پاک دی ځکه چي دا ټول صفتونه په مخلوق کي پیدا کیږي کوم چي هغه پیدا کړی دي، او هغه د چا پیدا کړی سوی نه دي بلکي په وهم او خیال کي د تیرېدونکي شیانو خالق هم هغه دی، د عقل، بزرګي یا مقدار او نورو الفاظو او اصطلاحاتو پر ده اطلاق نسي کیدای چي دا ټول شیان د دنیوي اجسامو صفتونه دي، او د ده هیڅ جسم نسته، او نه د یوجسم سره د ده رشته (تعلق) یا پیوند سته، هغه پر یو مقام باندي نه دی او په یو ځای کي نه دی (او بیا هم په هر مقام او هر ځای کي موجود دی) بلکي د هغه ذات ځای نیونکي یا مقام قبلوونکي دی نه، او په دې دنیا کي چي څه هم دی د تر عرش لاندي دی، او عرش د ده تر قدرت لاندي دی او مسخّر دی، او د ی پر پر عرش لوړ دی لیکن داسي نه چي جسم یې پر عرش دی ځکه چي د ده جسم خو سته نه، چي عرش پورته کړی وي یا یې پر ځان کېښنولی وي، بلکي څه چي عرش دی او څه چي تر عرش لاندي دي هر شیٔ ټوله د ده لطف او کرم او لاس د قدرت ټینګ کړی دي، او دا شیٔ نن هم هغسي دي ځکه چي په ازل کي وو، او د عرش پیدا کولو څخه مخکي هم موجود وو، او تر ابده پوري به دغسي قائم وي، ځکه چي تغیر او تبدّل یا ګرځون او انقلاب د ده په ذات او صفاتو کي راتلای نسي، ځکه چي که د نقصان رسونکي ګرځون (ګردش) د ده سره تعلق وای نو خدایي به د ده سره نه بنایېدلای، او که د کمال ورکوونکي تغیّر او تبدیل پر ده راتللای نو د دې به دا مطلب وای چي اول دی ناقص وو او د کمال محتاج وو او د یو خالق حاجتمند وو، او ښکاره ده چي په دې صورت کي به هم د خدایي لائق نه وای، او سره د دې چي دغه د مخلوق د ټولو صفتونو څخه منزّه او مبرّا دی په دې جهان کي د پېژندو او په هغه جهان کي د لیدلو قابل دی، او لکه څنګه چي په دې دنیا کي د هغه د بېله څرنګوالي او څنګوالي سره سره هغه پېژندل کیږي، دغه ډول به په هغه جهان کي هغه بېله څرنګوالي او بېله څنګوالي د وصف سره لیدل کیږي، ځکه چي د ده دیدار داسي نه دی څنګه چي په دې دنیا کي وي (یعني لکه څنګه چي مخلوق ته په جسماني یا مادي توګه سره لیدل ورکوي دغسي خالق نسي لیدی، د ده په دیدار کي هغه فرق دی کوم چي په خالق او مخلوق کي دی).

**قدرت**: که څه هم هغه دیو شئ په شان نه دی لیکن پر هر شي قادر دی دومره طاقتور دی چي د هیڅ خبري څخه عاجز نه دی، ده ته د یو شئ تلوان نسي رسیدی او نه څه ضعف او کمزوری پکښي راتلای سي بلکي ده چي څه خوښتل هغه یې وکړه څه چي غواړي هغه کوي، د اوو اسمانونه او مځکي، عرش، کُرسي غرض څه چي هم دي د ده د قدرت په قبضه کي دي، د ده په مخکي مجبوره دي او د ده مسخر دي، د ده څخه ماسوا د بل چا په لاس کي یا په اختیار کي هیڅ هم نسته او د مخلوق په پیدایښت کي ده ته د یو مددګار یا معاون ضرورت نسته (او نه به وسي).

**علم**: هغه عالم دی څه چي پېژندلای سي صرف هغه یې پېژني د ده علم پر هر شئ محیط (احاطه کوونکي) دی، او د عرش څخه تر تحت الثرٰی پوري یوه خبره د هغه د علم څخه دباندي نه ده او د ده څخه بغیر نه یو شئ واقع کېدلای سي، ځکه څه چي کیږي د ده په اراده سره کیږي، او د ده په قدرت سره ښکاره کیږي، بلکي دیبابانو د شګو ذرې د د درختو پاڼې، د زړونو فکرونه او خیالات، د هوا څپې د ده په علم کي داسي ښکاره او ظاهر دي لکه چي د اسمانونو شمار دی (یعني لکه ځنګه چي یوه غټه مشهوره خبره ده چي اسمانونه اووه دي هر چاته معلومه ده، دغه ډول د ذرّو ذرّو شمار د ده د علم معمولي صفت دی).

**اراده**: او څه چي په دې جهان کي دي دا ټول ځکه دي چي ده داسي غوښتل او دغسي وسوه، هر څه د ده په اراده سره وسوه، او د دنیا هر شئ د کوچني څخه واخله تر لوی پوري نېکي، بدي، بندګي، ګناه، کفر او ایمان، نفع نقصان، ډېروالی، لږوالی، غم او راحت، ناجوړي او روغتیا (صحت) تر هغه وخته نسي کېدلای تر څو چي هغه ونه غواړي، هر څه د هغه په حکم د هغه په خوښه او د هغه په رضا سره کیږي که ټول جهان سره یو ځای سي او پیرانان انسانان او فرشتې ټول سره یو ځای سي د دنیا یوه ذرّه ښوروول وغواړي یا یې د یو ځای څخه بل ځای ته کول وغواړي یا کمی زیاتی پکښي کول وغواړي نو تر څو پوري چي د هغه رضا نه وي دا ټول به عاجزه سي او هیڅ کله به داسي ونه کړي، ځکه چي بغیر د هغه د رضا څخه په دنیا کي یو شئ هم په وجود کي نسي راتلای، او کله چي هغه وغواړي چي یو شئ پیدا کړي نو څوک د هغه په لاره کي حائل کېدلای نسي، او څه چي دي او څه چي وو او څه چي کیږي د هغه په تدبیر او تقدیر سره دي، وو، او وي به.

**سمع او بصر**: او لکه ځنګه چي هغه پوه دی او هر څه پېژني دغه ډول هر شئویني او هره خبره اوري هم، هغه داسي بینا (لیدونکي) دی داسي اوریدونکي دی چي د ده لیدو او ریدو ته د لیري والي او نژدې

والې څه پروا نسته، ده ته ليري او نژدې برابر دي، د ده ليدو ته رڼا او تياره يو ډول دي، په تياره شپه کې د تلونکي کوچني ميږي د پښو ږغ (کښهاري) هم دی اوري، ويني، او د ځمکې څخه لاندې په تحت الثرىٰ کې د کوچني څخه د کوچني چينجي رنگ هم د ده د نظر څخه بهر نه دی، د ده ليدل په سترگو نه دي او د ده اوريدل په غوږونو نه دي، دغه ډول د ده پيژندل هم په يو تدبير او فکر سره نه دي او د ده پيدا کول په يو ذريعه نه دي، ځکه چې هغه په يو شئ کې (او پخپل يو کار کې هم) دې آلاتو او اسبابو ته محتاج نه دی.

**کلام**: د ده حکم پر ټول مخلوق واجب دی او د ده ورکړل سوی هر خبر رښتونی دی او د ده کړې ټولې وعدې صحيح دي، او حکم، خبر، او وعدې چې ټول څه دي د ده کلام دی، او دی چې څنگه ژوندی، دانا، بينا، اوريدونکی او توانا دی دغسې گوياکي (خبري کوونکي) هم دی، د موسىٰ ﷺ سره يې سيده په سيده خبري وکړې، او د ده خبري په تالو، ژبه، شونډو او خولې سره نه دي (او د دې مثال هم ورکول کيږي چې واضحه سي يعني) د بنده په زړه کې چې کومې خبري وي دغه د حروفو په صورت کې ليکل سوي خو نه وي او نه په دې کې آواز موجود وي (يعني نه تحريري وي نه تقريري بيا هم خبره وي) نو د الله کلام (بې آوازه او بې حرفه) په دې صفت کې (د انسان څخه) انتهائي پاک او منزه دی، قرآن، تورات، انجيل او زبور غرض پر پيغمبرانو نازل سوی هر کتاب د هغه کلام دی او کلام د هغه صفت دی او د هغه هر صفت قديم دی او د هميشه څخه قائم دی، لکه څنگه چې د ده ذات قديم دی، او د هميشه څخه دی او زموږ زړه ته معلوم او پر ژبه باندې مذکور دی، زموږ علم مخلوق دی، چې معلوم يې قديم دی، زموږ ذکر هم مخلوق دی او مذکور يې قديم دی، او دغه ډول د هغه کلام قديم دی، کوم چې زموږ په زړونو کې محفوظ، پر ژبه جاري، په قرآن کې ليکل سوي دی، او نامخلوق دی، زموږ حافظه مخلوق دی لېکن څه چې ورته ياد دي دغه نامخلوق دی، زموږ ويل مخلوق دی لېکن کوم چې ليکل سوي دي (يعني کوم چې موږ وايو او کلام الهي دي) دغه نامخلوق دی.

**افعال**: دا دنيا او د دې دنيا هر شئ ټول د هغه پيدا کړی سوی دي او څه چې هغه پيدا کړل داسې يې پيدا کړل چې د هغو څخه بهتره او غوره نسې کيدای، او که د ټولې دنيا هوښياران خپل عقلونه يو ځای کړی سوچ وکړي چې دې حکومت الهي ته د دې څخه غوره صورت ورکړی يا د دې څخه غوره تدبير وکړي، يا په دې کې څه اضافه يا کمی وکړي نو هيڅ کله داسې نسې کولای، او د څه سوچ

چې دوی کوي هغه به بالکل غلط وي، او د دې خبرې ثبوت به وي چې دغه د دې د حکمت او مصلحت څخه بالکل بې خبره دی، بلکې د دوی مثال به د هغه ړانده وي کوم چې یو مکان ته داخل سي چې په هغه کې هر شئ په ترتیب او هنر (ذوق) سره ایښوول سوی وي او نابیره دی په هغو کې پر یوه بلندي راغوځار سي او پر ځای د دې چې د خپل ړوندالی اقرار وکړي هغه ته وایي چې دا شئ په لاره کې ولې ایښوول سوی دی؟ حال دا دی چې پر لاره دی پخپله نه وي روان. او تک هم داسې کوي چې لار نه ورته ښکاري، نو هغه چې هغه جوړ کړل او هغه چې څه پیدا کړل، په عدل او حکمت سره یې جوړ کړل او په عدل او حکمت سره یې پیدا کړل. او په بشپړه طریقه یې پیدا کړل. او داسې یې پیدا کړل څنګه چې پکار وو، ځکه چې که د دې څخه زیات بشپړه یا د زیات ښه امکان وای او هغه دا په زیات کمال او ښه والي سره نه وای پیدا کړي نو دا به د هغه عجز وای، یا به یې بُخل وای، او دا دواړه صفتونه د هغه د ذات سره تعلق نه لري (او محال او ناممکنه دي) نو هغه چې څه پیدا کړل هغه که تکلیف، ناجوړي، فقیري، جهل او بې چارګي ولي نه وي ټول عدل او عدل دی، ظلم پخپله د هغه څخه ممکن نه دی، ځکه چې ظلم خو مثلاً دا وي چې د بل چا په ملکیت کې تصرف وکړي او د ده څخه د بل چا په ملکت کې د تصرف کولو سوال نه پیدا کېږي. (ځکه چې هر یو ملکیّت (مُلک) د ده پیدا کړی سوی دي) ځکه چې د ده سره د بل مالک کېدل محاله دي چې هر څه چې دي، او وو، او وي به او کېدای سي ټول مملوک دي، او مالک بس د هغه ذات دی، هغه لاشریکه، بې هم سره، بې نیازه دی.

**آخرت:** لیکن عالَم چې یې پیدا کړی دي نو په دوه ډوله یې پیدا کړی دي یو عالَم اَجسام، بل عالَم اَرواح، او عالَم اجسام یې د بندګانو د روح منزل ګاه جوړه کړه چې په دې عالم کې د آخرت تو ښه حاصله کړي، او د هر چا د پاره یې یوه مُده معینه کړه چې تر دومره وخته پوري دی په دې عالم کې ووسي او د دې مدې آخر کېدلو ته اجل (مرګ) وایي، چې په هغه کې څه کمي یا زیاتوب قطعاً نسي راتلی، او کله چې مرګ راسي نو روح د جسم څخه جلا کړي او د قیامت په ورځ کومه چې ورځ د حساب او ډبلې ده روح به بیا په جسم کې واچوي او دغسې به ټول پورته کړي هلته به هر یو خپل کارونه او عملونه (کوم چې یې په دنیا کې کړي وي) پخپل مخ کې ووینې او یو لیک کوم ته چې عملنامه وایي ده ته خپل ټول کړي (عملونه) وریاد کړي، او ده ته به معلومه سي چې د ده نېکي او بدی څومره دي، او دا ټول به ده ته د یو ترازو په ذریعه سره وښوول سي، او هغه ترازو به د دنیا د ترازو

په شان نه وي؛

او بیا به هر یوه ته پر پُل باندي د تېرېدلو حکم وکړی سي، چي هغه به تر وېښته زیات نری وي او د توري څخه به زیات تېره وي، او څوک چي په دې دنیا کي پر سیده لاره تللی وي پر دې پُل به په آساني سره تېر سي، او څوک چي د سیده لاري څخه اوښتی وي هغه به پر دې پل نسي تېرېدلای، او ښوی به سي دوږخ ته به ور ایله سي، پر دې پل به هر یو دروي، او د ده څخه به د ده د عملونو پوښتنه وسي او د صادقانو څخه به د صدق د معنی پوښتنه وسي، او منافقان او ریا کار به رُسوا کړل سي، ځیني خلک به بغیر د حساب کتاب څخه جنت ته ولېږل سي، د ځیني څخه به په ډېر نرمی او آسانی حساب واخیستل او سي او د ځینو سره به ډېر سخت وي، او آخر ټولو کافران به دوږخ ته واچوي چي د هغه څخه به هیڅکله دوی ته خلاصي ملاؤ نسي، او فرمان برادره مؤمنان به جنت بو تلل سي، او ګناهکاره مسلمانان به دوږخ ته واچول سي، لیکن انبیاء اولیاء او د دین بزرګان چي د کومو شفاعت وکړی هغه به معاف کړی سي او د کومو شفاعت چي ونسي هغوی به په دوږخ کي پاته سي او د دوی د ګناهونو مطابق به دوی ته سزا ملاوېږي او آخر کار به دوی هم جنت ته داخل کړی سي.

پیغمبر: څرنګه چي الله ﷻ د آدم علیه السلام د پیدا کولو په وخت کي د حالاتو او عملونو صورت داسي اېښی دی، چي ځیني یکښي د ده د بدبختی سبب کېږي او ځیني د نېک بختی باعث وي او بنده پخپله دا نه سوه پېژندی چي کوم عمل نېک دي او کوم بد، په دې وجه الله ﷻ پخپل فضل او کرم سره پیغمبران پیدا کړل (دنیا ته یې راولیږل) او دوی ته یې حکم وکړی چي د کومو خلکو د پاره په ازل کي د نېک بختی حکم سوی دي هغوی د دې راز څخه خبر کړئ چي د خلکو لاربښوونه وکړي او د نېک بختی او بدبختی لاري دوی ته په ډاګه کړي چي چا ته بیا پر خدای پاک باندي حجت باقي پاته نسي، او د دې ټولو په آخر کي یې زموږ نبي کریم ﷺ خلکو ته راولیږلو او د دوی نبوّت یې دومره کمال ته ورسولو چي نوره اضافه پکښي ممکنه نه وه او په دې وجه یې دوی خاتم الانبیاء مقرر کړل، او ویې ویل چي د دوی څخه وروسته به یو پیغمبر نه وي، او پیریانو او انسانانو غرض ټول مخلوق ته یې د دوی د متابعت حکم ورکړو او دوی یې د ټولو انبیاؤ سردار جوړ کړو، او د دوی دوستان او صحابه کرام یې د نورو پیغمبرانو د دوستانو او صحابه وو څخه افضل کړل، پر دوی ټولو دي د الله رحمت وي.

## دویم اصل: دعلم د طلب په باره کښې

پوه سه! چې نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: طَلَبُ الْعِلْمِ فَرِيْضَةٌ عَلَىٰ كُلِّ مُسْلِمٍ وَ مُسْلِمَةٍ (د علم حاصلول پر هر مسلمان سړی او ښځه فرض دی) لېکن د علماؤ په دې کې اختلاف راغلی دی چې هغه کوم علم دی چې طلب کول یې فرض دي، متکلمین وایي چې دا علم کلام دی ځکه چې د حق تعالی معرفت په دې علم سره حاصلیږي، فقهاء وایي چې دا علم فقه ده ځکه چې د حلالو او حرامو تمیز په دې سره کیږي، محدثین وایي چې دا د قرآن او حدیث علم دی چې د شریعت بنیاد پر دې دي، د صوفیانو خیال دی چې دا علم د احوالو د زړه دی ځکه چې حق ته د رسېدو د پاره د بنده لار زړه وي، په دوی کې هره فرقه خپل علم قابل تعظیم گڼي، لېکن زموږ په نزد د طلب د علم تعلق د یو خاص علم سره نه دی، او نه داسي ده چې هر یو علم ازده کول پر هر سړي واجب دي لېکن د دې تفصیل لږ داسي واقع سوی دی چې اشکال پکښې پیدا کیږي، خو دا اشکال داسي رفع کیږي چې مثلاً که یو سړی د سهار په وخت کې مسلمان سو یا یو مسلمان د سهار په وخت کې بالغ سو نو دغه وخت د دې تولو عملونو ازده کول پر ده نه دي فرض بلکي دغه وخت محض دومره فرض دي چې د کلمه طیبه معنی وپېژني او دا هغه خبره ده کومه چې د عقیدې د اهلِ سنتو په بحث کې په اول اصل کې بیان سوې ده، او دغه وخت د دلیلونو سره د دې معنی ازده کول پر ده واجب نه دي، واجب دا دی چې دی عقیده قبوله کړي، او پر دې یقین ولري، د دې تولو د تفصیل ځخه خبرداري هم فرض نه ده، خو پر تولو صفتونو د الله، او پر تولو صفتونو د نبي ﷺ، آخرت، جنت، دوږخ او حشر نشر باندې عقیده قائمه کړي، او په دې پوه سي چې د ده یو خدای دی کوم چې د دې صفتونو مالک دی، او د کوم د طرف ځخه چې یې د خپل پیغام معنی د نبي ﷺ په ژبه سره بیان کړې ده، چې که فرمانبرداره سواست نو د مرگ ځخه وروسته به خوشبختي (سعادت) نصیب سي او که په گناهونو کې مبتلا سواست نو بدبختي (شقاوت).

کله چې په دې خبره پوه سي نو د دې ځخه وروسته دي دوه قسمه علم د ځان د پاره واجب گڼي چې د یو علم تعلق د زړه سره دي او د بل د اندامونو سره او کوم علم چې د اندامونو سره متعلق دي د ده پخپله دوه قسمونه دي، یو هغه چې څه کول دي او بل هغه چې څه نه کول دي، او د کولو علم دا دی چې که څوک د سهار په وخت کې مسلمان سو او د ماپښین د لمانځه وخت راسي نو پر ده واجب دي چې د اودسه طریقه ازده کړي او لمونځ کول ازده کړي خو په دومره مقدار سره څومره چې فرض دی او په دې

دوارو کي چي کوم سنت دي د هغه علم هم سنت دی، فرض نه دی، دغه ډول مثلاً د ماښام د لمانځه وخت راسي نو د دغه وخت دا پیژندل پر ده واجب سي چي دا دی ر کعتونه دی د دی څخه زیات پیژندل پر ده واجب نه دي او د روژي مبارکي د میاشي په راتلو پوري د روژي علم واجب سي لېکن دومره چي دی په پوه سي چي نیت کول فرض دي او د سهاره څخه بیا د لمر تر غروبه پوري خوړل چښل، او جماع کول حرام دي، دغه ډول که د ده سره د سروزور شل دینار ه (یعني اووه نیمي تولې) وي نو د زکوٰة علم به پر ده هغه وخت واجب سي کله چي پر دې پوره کال تېر سي او فقط دا پیژندل به پر ده واجب وي چي د دې زکوٰة څومره دی او چا ته ور کول پکار دي او د دې شرطونه څه دي، او دغه ډول د حج علم هم هغه وخت فرض کیږي کله چي دی حج کوي، نو دغه ډول د هر کار علم هغه وخت واجب کیږي کله چي هغه مخ ته راسي، مثلاً کله چي د نکاح وخت راسي نو علم یې واجب کیږي یعني دا به پیژني چي د خاوند پر ښځه څه حقونه دي او د حیض په حالت کي کوروالی کول مباح نه دي او حیض چي کله ختم سي هم چي غسل ونه کړي مباح نه دي، او د دغه ډول کومي خبري چي د دې سره تعلق لري د هغه علم هم پر ده واجب دي، مثلاً که دغه د یو کسب سره متعلق دي نو د دغه کسب په اړه علم پر ده واجب دي، یعني بالفرض که دغه سوداګر وي نو واجب دي چي د سُود متعلق علم ورته معلوم وي بلکي واجب دي چي د بیع په ټولو شرطونو باندي پوه وي چي د بیع باطل څخه خوندي سي، او دغه وجه ده چي حضرت عمر رضی الله عنه به د بازار دکاندارانو په دُرّو وهل د علم حاصلولو د پاره به یې لېږل، فرمایل به یې چي کوم سړي ته د بیعي (خرڅلاو) متعلق فقهي مسئلې معلومي نه وي هغه دي بازار ته نه راځي، ځکه چي په بې علمی کي به دی سود او حرام خوري او خبر به نه وي، او دغسي د هر کسب د پاره علم ستنه مثلاً حجام (ښکر لګوونکی) دی نو ده ته پوهیدل پکار دي چي کوم شئ دي چي د بنده د جسم د پرې کولو لائق دی، کوم غابن د ایستولو قابل دی، او په عمل جراحی کي کومه دوایي څومره مناسبه ده، نو ټول علمونه د هر سړي سره متعلق نه دي، یعني پر کپړه خرڅوونکي باندي واجب نه دي چي د حجام د کسب علم لزده کړي او نه پر حجام واجب دي چي د کپړي خرڅونکي علم لزده کړي، د کولو د کارونو په باره کي علم دغه څه دی کوم چي بیان کړل سو او کوم کارونه چي د نه کولو دي د هغو علم هم واجب دي لېکن د هر سړي د حال مطابق مثلاً یو سړی که د دې اهل نه وي چي ښخملي جامه واغوندي یا داسي ځای وسیږي کوم ځای چي شراب چښل کیږي یا د خنزیر غوښه خوړل کیږي، یا داسي ځای مقیم وي چي هغه ځای

غصب سوی وي یا حرام مال د ځان سره ساتي نو پر علماؤ واجب دي چي ده ته د دې کاروئو علم وبنیي او ده ته وبنیي چي په دې کي کوم کوم شئ حرام دي چي د دغو څخه لاس واخلي، دغه ډول که یو سړی په یو داسې ځای کي وسیږي کوم ځای چي د ښځو سره ګډون راځي، پر ده واجب دي چي دا علم حاصل کړي چي محرم څوک دی او نامحرم څوک؟ او چا ته کتل جائز دي او چا ته جائز نه دي؟ او دا خبره هم د هر سړي د خپل خپل حال مطابق به د عمل قبله وي، ځکه چي کوم سړی د مذکوره کاروئو څخه ما سوا د بل کار سره تعلق لري پر ده د دې کاروئو علم ازده کول فرض نه دي، مثلاً پرښځو واجب نه دي چي دا علم حاصل کړی چي دحیض په حالت کي طلاق ورکول جائز دي یا که نه؟ بلکي دا پر هغه سړي فرض دي چي طلاق ورکول غواړي؛

او کوم کاروئه چي د زړه سره تعلق لري د هغو دوه قسمونه دي یو قسم تعلق د زړه د احوالو سره دی، او دویم د اعتقاداتو سره، او هغه کوم چي د احوالو سره متعلق دی د دوی مثال دا دی چي مسلماناتو ته معلومېدل پکار دي چي ضد، حسد او تکبّر حرام دی، بدګماني حرامه ده، او داسې نور، او دا فرض عین دي او د هر یوه د پاره لازم دي ځکه چي یو سړی د اسي نسته، کوم چي د دې خبرو څخه بیخي خالي وي نو د دې خبرو علم او د دې د علاج علم فرض دی (پر هر یوه) ځکه چي دا ناروغي علمه ده او د دې علاج د علم څخه ما سوا په صحیح توګه سره نسي کیدای، لیکن علم بیعه (د خرڅلاو علم)، سَلَم اجاره او رهن او د داسي نور تعلق د علم فقه سره دی او د دې حاصلول فرض کفایه دي، بیا هم کوم خلک چي د دې ډول کاروبار کوي د دوی د پاره فرض عین هم دی، او ډېر خلک د دې کاروئو څخه خالي نه وي؛

او دویم قسم کوم چي د اعتقاد سره تعلق لري دا دی چي که په دې اعتقاد کي شک او شبهه پیدا سي نو پر ده واجب دي چي دغه شک د زړه څخه لیري کړی، په ځانګړې توګه که د دغه شک تعلق د داسي اعتقاد سره وي کوم چي واجب اعتقاد دی یا داسي اعتقاد په کوم کي چي شک کول جائز نه وي، نو د دې ټولو خبرو څخه معلومه سوه چي طلب د علم پر هر مسلمان باندي فرض دی ځکه چي مسلمان هم د یو قسم علم د ضرورت محتاجه دی او د علم څخه بې نیازه نه دي یعني د علم یو قسم نه دي او نه هر قسم د هر یو په حق کي یو شان دی بلکي د حالاتو او وختونو په اعتبار سره بدلیږي، لیکن د څه نا څه قسم علم حاجت هر چاته په هر حال وي، یعني د هغه شي علم خو په لازمي توګه ازده کول پکار دي د کوم سره چي په عملي توګه د ده ضرورتونه ترلي وي او په دې وجه نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي یو مسلمان داسي نسته چي د علم د طلب فرض پر ده عائد نه وي.

## فصل

هر کله چي دا معلومه سوه چي د هر چا د پاره د علم حاصلولو پابندي تر هغه معاملې پورې محدوده ده د کومې سره چي د ده ذاتي تعلق وي، نو په دې کي د عام سړي د پاره دا خطره همیشه باقي پاته کیږي چي که ده ته یو داسي واقعه راپېښه سي چي تعلق یې د ده د ذاتي معاملې سره نه وي او دی د ناپوهی په وجه هغه وکړي او پوهه نه وي چي په دې کي خطره ده، نو پوه سه! چي که د ده دا کار د شریعت خلاف وي نو دغه د معافی قابل یا معذور نسي تصوّر کېدای، په دې صورت کي پوه سه! چي که د هغه ضرورت غالب ولي نه وي لیکن که نادر او غیر معمولي نه وي نو دی معذور ولي مقرر کړی سي؟ ځکه چي دېري خبري داسي وي چي په ځانګړې توګه که د دغو علم حاصل نسي هم خو دغسي معلومیږي، یا معلومیدل پکار وي، مثلاً یو سړي په حالت د حیض کي پلوروسته د حیض څخه د باقاعده غسل کولو څخه مخکي مباشرت (کوروالی) وکړي او ووایي چي څنګه چي ده ته د دې علم نه وو په دې وجه معذوره دی، او که یوه ښځه د سهار څخه مخکي پاکه سوه او د لمانځه او د ماخوستن د لمونځو قضاء یې راونه ګرځوله چي دې ته دا خبره په علم سره معلومه نه ده (نو دې ته به معذوره نه ویل کیږي) یا یو سړی که ښځي ته د حیض په حالت کي طلاق ورکوي ځکه چي ده ته دا معلومه نه ده چي دا حرام دي نو دغه معذور نسي متصوّر کېدای، او ده ته ویل پکار دي چي تا ته نه وو ویل سوي چي طلب د علم فرض دی؟ نو بیا ته د دې فرضونو څخه لا پروایي ولي وکړه؟ کنې د حرامو مرتکب سوی به نه وای، هو! که واقعه نادره او غیر معمولي وه او پېښېدل یې غیر متوقع وو نو خامخا معذور به ګڼل کیږي.

### فصل : د کومو خلکو د پاره علم ښه دی!

هر کله چي تا ته معلومه سوه چي یو عام سړی یو وخت هم د دا ډول خطرونو څخه خالي نه وي نو د دې څخه معلومیږي چي یو کار هم په کوم کي چي بنده مشغول وسي د علم څخه بهتر یا برتر نسته، او په کوم کسب کي چي هم مشغولیږي د دنیا د طلب د پاره خو وي، او علم د دنیا د پاره ډیرو خلکو ته د نور کسبونو څخه ډېره غوره وي ځکه چي علم حاصلونکي به د څلور حالاتو څخه بهر نه وي یعني هغه به یا داسي سړی وي کوم چي کافي میراث ور ته حاصل سي یا په یو بله وجه د دنیا څخه بې نیازه وي نو علم به د ده د مال حفاظت کوي او په دې دنیا کي به د ده عزت او په آخرت کي د خوشبختی موجب وي، بل دا کېدای چي یو سړی به مال او دولت خو کافي (ډیر) نه لري لیکن په ده

کي به د صبر او قناعت ماده موجوده وي چي څه د ده سره وي دغه به کافي ګڼي او په مسلماني کي به د فقر او درويشۍ قدر او قيمت پيژني او پوه به وي چي فقير به پنځه سوه کاله د مالداره څخه مخکي جنت ته ځي، نو علم د داسي سړي د پاره په دنيا کي د آرام او په آخرت کي د خوشبختئ سبب دی، دريم هغه سړی دي چي علم حاصلوي او تر څو پوري چي د رزق تعلق دی ده ته په حلال صورت کي د بيت المال څخه يا د مسلمانانو په ذريعه سره حاصليږي، او د ده د پاره کافي هم دی او د دې څخه د زيات طلب د طلب حرام مترادف دی، يا ده ته د يو ظالم باچاه څخه د غوښتلو څخه ماسوا چاره نه وي (نو علم به يې د حرامو د طلب څخه او د ظالم باچا څخه د غوښتلو د قباحت څخه خبروي) نو د دا دري قسمه خلکو د پاره د دين علم د دنيا د ټولو کارونو څخه غوره او بهتره دی.

څلورم قسم هغه سړی دي کوم چي خپله کفيل نه وي او د علم حاصلولو څخه د ده مقصد په اصل کي طلب د دنيا وي او حالات داسي وي چي د خپل کفالت د پاره ما سوا د وخت د حاکم څخه د بل څخه د حاصلېدلو توقع نه لري او باچا حرام خور او ظالم وي او د بې ريا خلکو څخه ده ته يو شئ نسي حاصلېدای نو داسي سړي ته او بل داسي سړي ته کوم چي د علم حصول محض د جاه او مال ذريعه جوړول غواړي لازمه ده چي د دا علم د حاصلولو څخه وروسته کوم چي فرض عين دي يو کسب شروع کړي، کنې دی به د انساني شيطانانو څخه يو شيطان سي او د ده په وجه به ډېر خلک تباه او برباد سي ځکه چي هرکله عام خلک وګوري چي دی په حرام کاري کي مشغول دی او د حرام مال حاصلولو د پاره د هر قسم حيله بهانو څخه کار اخلي، نو د دنيا په طلب کي به هغه هم د ده تقليد شروع کړی او ظاهره ده چي د ده په وجه سره به د خلکو د اصلاح پر ځای فتنه او فساد زيات شروع سي، نو داسي د پوهي خاوندان چي څومره کم وي بنه دي، او د هر سړي د پاره غوره دا ده چي دنيا د دنيا په کاروبار سره طلب کړي نه چي د دين په کارونو سره، او که څوک ووايي چي علم ده ته د دنيا د کاروبار څخه مانع جوړېږي لکه چي د يوې ډلي داوينا ده چي " موږ علم د خدای د پاره نه وو لازده کړی لېکن علم موږ پخپله د خدای طرف ته راوستو"، نو د دې جواب دا دی چي هغه علم کوم چي دوی د خدای طرف ته بوتلل، دغه د قرآن او حديث د لاري د آخرت د رازونو او د شريعت د حقيقتو علم وو، اوس په دې صورت کي د غور په نظر سره د دوی باطن ته کتل ضروري کيږي، چي دغو په اصل کي هوا او هوس بد ګڼل او د دين بزرګانو ته به يې کتل چي د دنيا څخه به ليري او سېدل او د دوی آرزو دا وه چي د دغو بزرګانو پېروي وکړي، ګواکي د دې څخه دا حقيقت ښکاره کيږي چي کله علم داسي وو او زمانه هم داسي (يعني ښه وه) نو خلک به د دې خبري اُميد واره وه چي د علم حاصلولو څخه

وروسته به دوی پخپله د علم په رنګ کي رنګ سي، او د علم به پخپل رنګ کي د رنګول کوشش نه کوي (یعني دین به د دنیا د طلب بهانه نه جوړوي).
او د دې شخه وروسته هغو علمونو ته وګوری! کوم چي په نن زمانه کي ویل کیږي مثلاً د مذهب شخه خلاف خبري، د دین سره منافي او ضد کلام، قصې افسانې، اونور فضولیات او داسي نور.....
او دا معلمان کوم چي نن صبا په نظر راځي کومو چي خپل ټول علمونه د دنیا د را جمع کولو جالونه جوړ کړي دي کله د دې قابل دي چي د دوی سره ګډون زیات کړای سي، او د دې خلکو شخه علم حاصلول خلګ د دنیا د لاري شخه کله لیري کولای سي، او که څه هم "شنیده کی بود مانند دیده" (اوریدلي کله د لیدلو برابر کیدای سي)، بیا هم چي غور او فکر وکړل سي نو وبه لیدل سي چي دا نن عالمان د دین عالمان دي که د دنیا؟ او د دوی د حالاتو په لیدلو خلګو ته فائده رسیږي او که نقصان؟
یقین وکړه چي دا خلګ هیڅ کله د دین عالمان نه دي. هو! که یو داسي عالم موجود وي کوم چي متقي او پرهیزګاره وي او د علماء سلفو متبع او فرمانبرداره وي او داسي علمونه وایي چي د دنیا د غرور او مکر او فریب شخه بیرول کوي نو پر داسي عالم سبق ویل خو لا په خبره ده د ده زیارت کول هم ډېر ګټمن دي، تر دې چي د ده سره خالي ملاقات کول د خوشبختی (سعادت) او خیر موجب به وي، یو سړی که هغه علم لزده کړي کوم چي مفید وي نو سبحان الله دا د ټولو کارونو شخه غوره او بهتره دی.
مفید علمونه هغه دي کوم چي د دنیا حقارت او دآخرت عظمت ښیي، او دکوم په ذریعه چي بنده د آخرت د منکراتو او د دنیا داړو په ناپوهی او حماقت باندي پوه سي دارنګه تکبر، ریا، حسد او عجب غوندي ناروغی او د دنیا د محبت آفت او مصیبت معلوم کړي او په علاج باندي یې هم پوه سي، دا علم د دنیا د لالچ کوونکي په حق کي داسي دي لکه د تږي په حق کي اُوبه او د ناجوړي په حق کي دوایي (درمل) دی. هر کله چي د دنیا لالچي فقه او خلاف مذهب علوم، مثلاً منطق، حکمت او داسي نور وواییي یا علم کلام او علم ادب لزده کړي د کومو په ذریعه چي د دنیا حقارت په زړه کي نه راځي نو د ده مثال داسي دی لکه یو مریض چي داسي دوایي وخوري په کومه سره چي ناروغي نوره زیاته سي ځکه چي دا علمونه اکثره او زیاتره، حسد، فخر، ریا، عداوت، خود رایي، مکر او د مرتبې او دولت د تلاش تخم په انساني زړونو کي کري، او څومره چي یې زیات وایي دومره زیات ناخوښه صفتونه په زړه کي پیدا کیږي، که بنده د داسي خلګو سره ملګرتیا (ناسته پاسته) کوي کوم چي د

فقهي کېدلو مُدّعي خو وي لېکن مشغول په داسې علمونو کې وي کوم چې د مذهب خلاف وي نو د دوی حالت داسې دی چې که چیرې توبه کول وخواري نو هم ور ته گرانه ده. الله ﷻ دې پناه را کړي.

## دریم اصل: د طهارت (پاکي) په باره کې

الله ﷻ فرمایي: إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ [البقرة] (الله ﷻ توبه کوونکي خوښوي او پاک صفا وسېدونکي) او نبي کريم ﷺ فرمایلي دي: الطُّهُورُ شَطْرُ الإِيمَانِ (پاک صفا وسېدل نیم ایمان دی) او بیا فرمایي بُنِيَ الدِّينُ عَلَى النَّظَافَةِ (د دین بنیاد پر صفایي او پاکي باندې ایښوول سوی دی) د دې آیتو او حدیثو مطلب دا نه دی چې د صفایي او پاکي تعلق محض د بدن او د کپړو سره دی بلکې په حقیقت کې د دې څلور درجې دي:

اوله درجه خو د ماسوی الله څخه باطن پاکول دي، الله ﷻ فرمایي: قُلِ اللَّهُ ثُمَّ ذَرْهُمْ فِي خَوْضِهِمْ يَلْعَبُونَ (ته ووایه! چې الله تعالی نازل فرمایلي دي، بیا دوی پخپلو عبثونو کې بازي کوونکي پرېږده) د دې څخه مقصود دا دی چې کله زړه د ماسوی الله څخه پاک سي بیا به د الله ﷻ سره مشغول او مستغرق وي، او دا د کلمې طیّبې: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰه تحقیق دی، د صدّیقینو درجه کمال ایمان او تصدیق دی، د ماسوی الله څخه زړه پاکول دایمان نیمه حصه ده، یعني ایمان قالب (بدن) دی او دا روح دی چې کله د ما سوی الله څخه زړه پاک نه وي دی به دالله ﷻ په یادولو سره د ښایسته کېدلو قابل نه وي.

دویمه درجه: د حسد، تکبر، ریا. حرص لالچ (حرص) عداوت او خود نمایي او نورو بدو اخلاقو څخه زړه پاکول دي چې تواضع، قناعت، توبه، صبر، بیره، اُمید محبت او په نورو ښو اخلاقو سره دې ښایسته سي، دا د متقیانو دایمان درجه ده او د بدو اخلاقو څخه زړه پاکول هم نیم ایمان دی.

دریمه درجه: د غیبت، دروغو، حرام خوړلو، خیانت، نامحرمو ته د کتلو او د دې بول گناهونو څخه اندامونه، بندونه یعني لاس پښې اونور پاک ساتل دي چې د ا اندامونه په ټولو کارونو کې په فرمانبرداري او ادب سره ښایسته سي، دا د زاهدانو د ایمان درجه ده، او اندامونه د حرامو شیانو څخه پاک ساتل هم نیم ایمان دی.

څلورمه درجه: جامې او بدن د نجاست څخه پاک ساتل دي چې دوی په رکوع سجده او نورو ارکانو د لمانځه سره ښایسته سي، دا د عامو مسلمانانو د طهارت درجه ده ځکه چې په مسلمان او کافر کې فرق

کوونکی لمونځ دی، او دا طهارت هم نیم ایمان دی نو معلومه سوه چي د ایمان په څلورو دروجو باندي پاکي نیم ایمان دي، او څنګه چي پاکي لوّله نیمه ده په دې وجه سره نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: بُنِيَ الدِّينُ عَلَى النَّظَافَةِ (د دین بنیاد پر صفایی او پاکی باندي ایښوول سوی دي).

نو د بدن او جامو د طهارت او صفایی و طرف ته خو ټول خلک متوجه وي او د دې د پاره کوشش هم کوي حال دا دی چي دا د آخري درجې پاکي ده په دې کي د توجّه او زیات شغل وجه دا ده چي د طهارت د باقي اقسامو څخه دا آسانه دي او په دې سره نفس هم خوشحاله کیږي او آرام هم محسوسوي او دا ظاهري پاکي نور خلک هم ویني او په دې سره د ده د زهد او پرهیزګاري شهرت کیږي، په دې وجه خلکو ته دا آسانه معلومیږي لېکن تر کومه حده پوري چي د حسد، کبر، ریا، دنیاوي محبت څخه د زړه پاکولو او د ګناهونو څخه د بدن پاکولو تعلق دی په دې کي د نفس هیڅ حصه نسته، یعني نفس ته پکښي مزه (خوند) نه راځي، او نه د خلکو نظر پر دې پرېوځي ځکه چي دا خبري خو الله ﷻ ویني، مخلوق یې نه ویني په دې وجه عام خلک د دې و طرف ته نه متوجّه کیږي. ۱

## فصل

بیا هم دا ظاهري طهارت که څه هم د آخري درجې طهارت دی مګر بیا هم د دې خپل فضیلت دی، په دې شرط چي د ده د آدابو اهتمام وکړی، وسوسې او اسراف ته په دې کي دخل ورنه کړي، که دې شیطانو ته په دې کي دخل ورکړي نو طهارت به مکروه سي، او داسي کوونکي به ګناهګاره وي، او دا احتیاطي تدبیرونه کوم چي د صوفیانو عادت دي چي څادر پر سر اچول او د اوبو لوښي د صفایي او نورو داسي خیال ساتل چي څوک پکښي لاس ونه وهي دا ټولي ښې خبري دي څو فقهاء د دې خبرو لحاظ نه ساتي نو دوی ته پر صوفیانو باندي اعتراض نه دي کول پکار دي، هو! که څه معقوله وجه وي نو بیا بېله خبره ده، او صوفیانو ته هم داسي نه دي کول پکار چي په فقهاؤ او نورو خلکو کوم چي دومره احتیاط نه کوي پر دوی خامخا اعتراض کوي. دا احتیاط ډېر ښه دي لېکن د دې شپږ شرطونه دي:

اول شرط یې دا دی چي په دې کي دومره وخت ونه لګیږي چي د هغه په سبب د یو بل ښه کار څخه محرومه سي په دې وجه چي که څوک په طلب د علم کي د مشغوله کېدو استطاعت لري یا په تفکّر او تدبر کي د مشغولېدو قدرت لري کوم چي په کشف کي د زیاتوالی باعث (سبب) وي یا په

داسې کسب کې مصروفه وي کوم چې پخپله د ده او د ده د اهل او عیال د کفالت فریعه وي او د مخلوق
څخه د سوال کولو ضرورت نسي پیدا او د خلکو په مخکې د لاس غځولو څخه محفوظه سي، نو
چې دا قسم کارونه ضائع کوي، په طهارت او پاکي کې احتیاط کول صحیح نه دي، ځکه چې دا
معاملات په طهارت کې د احتیاط کولو څخه زیات اهم دي، په دې وجه صحابه کرام رضوان الله
تعالی علیهم به د دې قسم احتیاط طرف ته ډېر کم متوجه کېدل، بلکې هغوی به په جهاد، کسب
معاش، طلب علم په دا رنګه ضروري کارونو کې مشغولیدل، دوی به پر ځمکه لمونځونه کول پر
خاورو به کښېناستل چې خوراک به یې وخوړو نو د پښو پر تلو پوري به یې لاسونه مږل، دآس اوبښ
او نورو د خولې څخه یې ځان نه ساتلو د زړه د پاکی او طهارت به یې ډېر اهتمام کولو د بدن د صفایې
به یې هم خیال ساتلو لیکن دومره نه، نو ته که هم دغه ډول سړي یې نو صوفیانو ته په دې اعتراض نه
دې کول پکار.

هو! کوم سړي چې د سستی او ناراستی په وجه سره دا احتیاط نه کوي هغه ته پر احتیاط کونکو
باندې اعتراض نه دي کول پکار چې په هر حال احتیاط کول د نه کولو څخه غوره او بهتره دي.
دویم شرط دا دی چې خپل ځان د ریاء او خود نمایي څخه وساتي ځکه چې په عامه توګه داسې
کیږي چې دغه بیا په ژبه سره شور جوړوي (یعني آوازه کږوي) چې زه زاهد یم، خپل ځان داسې
پاک ساتم او ده ته په دې خبرو کې عزت حاصل وي که پر مځکه پښې کښېږدي یا د بل په لوټه
اودس وکړي او بیرېږي چې هسې نه د خلکو په نظر کې ونه لوېږي، ده ته پکار دي چې خپل ځان
وازمايي، د خلکو په مخکې دې پر مځکه پښې کښېږدي مباح (روا) لاره دې اختیاره کړي، پخپل
باطن کې دې د احتیاط تلافي (تدارک) وکړي، که د ده نفس په دې سلسله کې جګړه او جنګ وکړي
نو پوه دې سي چې دریا مصیبت تینګ کړی دی، دغه وخت پر ده لازمیږي چې لڅې پښې ګرځي او
پر ځمکه لمونځ کوي او په احتیاط سره لاسونه پورته کړي ځکه چې ریا حرامه ده او احتیاط سنت
دی، او که د دې سنت سره دی د ریا څخه نه سو ساتل کېدای نو د احتیاط پرېښول پر ده واجب دی
(چې دا احتیاط نه دي بلکې د ریا یوه حصه ده).
دریم شرط دا دی چې کله دی د رخصت لار اختیاروي، نو دا دي فرض کوي نه ځکه چې نبي کریم
ﷺ د یو مشرک په لوښي (لوټه) کې اودس وفرمایي، او حضرت عمر رضی الله عنه د یهودی ښځې
په کوزه اودس وکړی، او په ځمکه به یې زیاتره لمونځ کولو، او کوم خلک چې به بغیر بسترې پر
ځمکه بیده کېدل، دوی به د هغه خلکو ډېر عزت کولو، نو کوم بدبخت چې د دوی د سیرت (خوی،

اخلاق) شخنه ځان ساتي او نابنایسته لاره اختیاره کړي او د ده نفس محض په دې وجه د ده موافقت ونه کړي چې د دې ظاهري احتیاط په وجه دی د خلکو په نظرونو کې شریف او افضله وي نو په دې وجه اهم ترین فرض دا دی چې د دې شخنه لاس واخلي.

څلورم شرط دا دی چې هغه احتیاط په کوم کې چې د مسلمانانو زړه ازاریږي تر ک کړل سي، څکه چې د خلکو زړه خفه کول حرام دي او احتیاط پرېښوول حرام نه دي لکه چې د یو غلام دلاس نیولو ارده وکړي یا معانقه کول وغواړي او د ده په بدن پوري د خولې بدبويي وي او دی ځان څېني لرنغاړي نو دا حرام دي بلکې د خلکو سره کېدون د زړو احتیطاونو څخه غوره او افضل دی، دغه ډول که څوک د چا پر جای نماز (مسله) پښې اینښودل غواړي یا د چا په لوټه سره اودس کول غواړي یا په یو لښې کې اوبه چښل غواړي نو ده ته منع کول او خپل کراهت ښکاره کول مناسب نه دي څکه چې یوار رنبي کریم ﷺ د زمزم اوبه طلب کړې حضرت عباس رضی الله عنه عرض وکړو چې یا رسول الله په دې کې خو ډېرو خلکو لاسونه اچولي دي، لږ صبر وکړئ چې زه خپله ځانګړې بُوکه(کوزه) راوغواړم نو دوی وفرمایل: چې د مسلمانانو د لاسونو برکت زه خوښوم؛ یاتره تعلیم یافته جاهلان په دې خبرو نه پوهیږي او کوم سړی چې احتیاط نه کوي د ده شخنه خپل ځان ساتي او هغه ته تکلیف رسوي، او داسې هم کیږي چې د ده مور او پلار (او ملګري کله د ده لوټه یا کپړه) او نور نیسي نو دی سخت کلامي کوي. دا ټول حرکات حرام دی، او زیاتره داسې کیږي چې کوم خلک دا ډول احتیاط کوي د دوی په دماغ کې تکبر پیدا کیږي او پر خلکو دا احسان اچوي، چې موږ داسې احتیاط کوو، او خپل ځان د خلکو شخنه ساتل هغوی ته رنځ رسول غنیمت شماري او د خپلې پاکۍ حال نورو ته ذکر کوي د فخر اظهار کوي او نور بدنفوی، صحابه کرام رضی الله عنهم چې په کومه آسانه لاره چلیدل هغه نه اختیار وي، کوم سړی چې فقط په لوټو (ډېرو) استنجا کوي دې کار ته کبیره ګناه وایي، دا ټولې خبرې په بدو اخلاق کې شاملې دي او کوم سړی چې داسې کوي ګواکې دی په باطني توګه سره د نجاست شخنه پاک نه دي، حال دا دی چې زړه د داسې مکروه او تکلیفجنو خبرو شخنه ساتل فرض دي، څکه دا کارونه د هلاکت باعث دي، او د دې خبرو شخنه ځان ساتل د هلاکت موجب نه دي.

پنځم شرط دا دی چې د خوراک څښاک په شیانو کې او په خبرو کې د دې خبرې احتیاط ساتي چې دا ډیره ضروري ده، او کله چې ضرور کار ونه کړی نو دا د دې خبر دلیل دي چې په نورو خبرو کې دا احتیاط خو به یاد ځان ښوولو په سبب وي یا دعادت په سبب، لکه یو سړی چې په لږ شان اوبو باندې

خوراک وکړي لیکن د لمونځ کولو څخه مخکي خوله لاسونه مینځل لازمي گڼي، او پوه په دې هم نه وي چي د نجس شئ خوړل حرام دي، نو هر کله چي یې د دغه نجس والي سره بلا ضرورته خوري، نو د دې څخه وروسته د لمانځه د پاره لاس مینځل ولي ضرور گڼي؟ نو که د عامیانو (امیانو) پر مینځل سوي کپړي باندې لمونځ کول جائز نه گڼي نو د اّمي د کور خوراک ولي خوري؟ هر کله چي د دوهی پاکوالی د دې څخه ډېر زیات اهم دي، په داسي خلکو کي ډېر داسي وي چي د بازاري خلکو د کور پوخ سوی خوراک خو په مینه خوري لیکن د دوی پر کپړه لمونځ نه کوي، او دا په طهارت او پاکی کي د صداقت نښه نه ده.

شپږم شرط دا دی چي په منکراتو او منهیاتو کي د احتیاط لحاظ وساتي، مثلاً دا چي اودس دې تر درې وارو څخه زیات نه کوي ځکه چي په اوداسه کي په څلورم واره اوبه اچول د منهیاتو څخه دي، دغه ډول دا هم په منهیاتو کي دي چي یو سړی اودس اوږد کړی او بل سړی د ده په انتظار ولاړ وي ځکه چي دا خبره ښه نه ده.

یا دا چي په اودس کي ډېري اوبه مصرف کړي یا لمونځ د مستحب وخت څخه په تأخیر سره ادا کړي یا د امام کېدلو په صورت کي خلک په انتظار کي لري، یا دا چي د یو مسلمان سره یې وعده کړې وي او بیا په هغه قائم نسي، او دا وعده خلافي د هغه مسلمان د پاره باعث د نقصان ثابت سي او د هغه مال او کوچنیان په تکلیف کي مبتلا سي ځکه چي دا قسم حرکتونه د ده ناجائز احتیاطونه خو جائز کولای نسي، یا مثلاً دا چي په مسجد کي د خپل ځان د پاره څټ جای نماز (مسله) په دې وجه غوړوي چي د نورو کپړې د ده د کپړو سره ونه لګیږي، حال دا دی چي په داسي کولو سره دی د درې ممنوعاتو مرتکب کیږي: اول دا چي د مسجد یوه حصه دی د ځان د پاره غصب کوي، حال دا دی چي د سجدې کولو د پاره د ده حق د نورو څخه زیات نه دي، دویم دا چي دغه ډول به صفونه د یو بل سره پیوست نه وي او سنّت دا دی چي وږه په وږه ودرېږي او د صف سره دې صف یو ځای وي، دویم دا چي د مسلمانانو څخه دغسي لیري والي کول او ځان ژغورل چي گویا دوی د سپو په شان نجس دي انتهائي غیر مناسب دي او دغه ډول دا تعلیم یافته جاهلان د څومره منکراتو مرتکب کیږي او دوی ته علم هم نه وي، (چي دا غلط او ناجائز عمل دی).

## فصل

هر کله چي تا ته معلومه سوه چي ظاهري پاکي او باطني پاکي جلا جلا دی او د باطني پاکی درې

قسمونه دي: داندامونو د ګناهونو څخه پاکول، او د بدو اخلاقو څخه د زړه پاکول، او د غیر الله څخه باطن پاکول. نو یاد ساته چي د ظاهري طهارت هم درې قسمونه دي یو د نجاست څخه لیري اوسېدل، بل د کورولی څخه جلا اوسېدل، او دریم د بدن د زیاتو شیانو څخه احتیاط یعني نوکان وېښته او نور نه اوږدول او خیري لیري کول او نور. اوس د دې تفصیل وګوره.

**اول قسم:** د نجاست څخه پاکېدل. پوه سه! چي الله تعالی په جماداتو کي څه پیدا کړی دي پاک دي، ماسوا د شرابو څخه هغه که لږ وي او که زیات، او په حیوانو کي هم هر حیوان پاک دی ماسوا د سپی او خنزیر څخه، یا د هغه حیوان څخه چي مړ وي، څکه چي دغه ګنده وي، خو په مړو حیوانانو کي هم انسان، ماهی، ملخ او هر هغه شئ چي د بدن څخه یې وینه نه بهېږي لکه مچ، لړم، مچ او هغه چینجی کوم چي په غله کي پیدا کېږي، او هر هغه شئ کوم چي په حیواناتو کي دننه تحلیل کېږي متغیّره سي ګنده دي ما سوا د هغو شیانو څخه کوم چي د حیواناتو اصل دي مثلاً مني، هګی، د وریښمو چینجی او هغه شیان چي متغیر سوی نه وي لکه خوَله او اوښکي او نور (یعني دا پاک دي) او کوم شئ چي ګنده وي د هغه سره لمونځ نه دي ادا کول پکار سوا د پنځو شیانو څخه، کوم چي د تکلیف په وجه قابل د معافی دي.

(۱) د استنجاء اثر کوم چي د دې لوټو استعمالولو څخه وروسته هم باقي وي په دې شرط چي د مقام مخصوص څخه زیات تجاوز نه وي کړی. (۲) د لارې ختې هغه که په یقیني توګه سره معلومه وي چي په دې کي نجاست موجود دی لېکن دومره مقدار چي ځان څیني ساتل ممکن نه دي قابل معافی دي، لېکن که څوک په ختو کي غوځار سو اولت پت سي (ککړ) یا یو حیوان کېږي ورپلیتي کړي قابل معافی نه دي، که څه هم دا شي کله کله راپېښېږي. (۳) پر موزه لګېدلی ګندګی قابل معافی ده، په دې شرط چي د دې څخه احتراز (ځان ساتل) ممکن نه وي لکه څرنګه چي موزې پر ځمکه په مهولو سره لمونځ په کېږي. (۴) د سپوږې یا منګور او نورو وینه هغه که ستا پر کالو (جامو) بلدي وي یا د بل، او لږ وي که ډېره د معافی قابل ده، که څه هم کېږې په کي لندې سوي ولي نه وي. (۵) د کوچنی دانو څخه وتلې وینه چي د هر انسان پوست د دې څخه خالي نه وي او د خارښتي دانو څخه وتلی لوندالی هم د معافی قابل دي، په دې شرط چي دومره زیات نه وي چي نوَونه دباندي څیني رالووځي، څکه چي په دې صورت کي د دې پرېول واجب دي، او که د پرېولو څخه وروسته هم د دې اثر باقي وو، نو اُمید دی چي د دې معافي به هم وي، لېکن که د یو چارګ ووهل سي یا زخمي سي نو د دې پرېول خامخا پکار دي، او که بیا هم د دې اثر باقي پاته سي، او د دې پرېول هم د خطرې څخه

خالي نه وي نو لمونځ قضا کول پکار دي ځکه چي داعذر نادر او کمیابه دی.
هر هغه ځای چي گنده وي په یو وار اوبو اچولو سره پا کیږي لیکن که دغه عین نجاست وو نو تر هغه وخته پوري یې پرېول پکار دي چي تر څو چي دغه بالکل پاک نسي بیا هم که په پرېولو، مُږلو او نوکانو سره د دې په رنگ او بوی کي فرق رانسي نو بیا یې هم پاک گڼل پکار دي، اوهر هغه اوبه کوم چي الله پاکي پیدا کړي دي، پاکي دي او پاکوونکي دي، ماسوا د څلورو قسمو اوبو څخه:
یو هغه اوبه په کوم سره چي یو وار اودس سوی وي چي دغه نه پاکي دي او نه پاکوونکي، دوهم هغه اوبه کوم چي د گندگی لیري کولو د پاره استعمال سوي وي چي دغه پاکي یا پاکوونکي نه دي لېکن که رنگ بوی او خوند یې د نجاست په وجه بدل سوی نه وي نو پاکي دي، دریم هغه اوبه کوم چي په وزن کي د دوه نیم سوه منو څخه کمي وي او گندگی پکښي پرېوځي هغه که متغیره سوي هم نه وي خو گنده دي، بیا هم د امام شافعي رحمه الله د فقه په نزد د دوه نیم سوه منو وزن په صورت کي په نجاست لوېدلو سره نه گنده کیږي په دې شرط چي تغیر پکښي واقع نسي، څلورمي هغه اوبه دي د کومو رنگ بوی او خوند چي په داسي شئ سره بدل سوی وي د کومو څخه چي اوبه ساتل کېدای سي لکه زعفران، صابن او اوړه او نور چي دا اوبه پاکي خو دي لېکن پاکوونکي نه دي لېکن که لږ تبدیلي (بدلون) وي نو دغه پاکوونکي دي.
**دوهم قسم:** د بې اودسی څخه پاکوالی: په دې کي پنځه شیان پېژندل ضرور دي یعني (۱) آداب د قضاء حاجت (۲) آداب د استنجاء (۳) آداب د اوداسه (۴) آداب د غسل او (۵) آداب د تیمم.

## د قضاء حاجت آداب

د قضاء حاجت آداب: که صحراوي نو پکار دي چي د خلکو څخه پناه سي او که کېدای سي نو د یو دېوال شاته دي ولاړ سي او خپل ستر دي نه لڅوي، او خپل مخ دي لمر یا سپوږمی طرف ته نه راولي، او قبلې ته دي نه شا کوي او نه دي ورته مخ کوي مگر که په پاخانه (بیت الخلاء) کي دننه وي ځکه چي په دې صورت کي جائز دي، که څه هم غور دا ده چي قبله د ده څخه راسته یا چپه طرف ته وي، او پر یو ځای دي پاخانه (غایطه مواد) په جمع نه کوي ا، او په ولاړو اوبوکي دي تشي بولي (متیازي) نه کوي، تر مېوه داري درختي لاندي هم، او په هر قسم سیوری (سایه) کي دي پاخانه او متیازي نه کوي، پر سخته ځمکه یا مخالفه هوا کي دي متیازي نه کوي، چي څاڅکي یې ده ته رانسي، په ولاړې دي هم متیازي نه کوي چي یو خاص وجه نه وي، او د غسل یا اودس پر ځای دي

متیازي نه کوي، او په کېښناستو کي دي پر چپه پښه زور کوي، او اودس خلاص ته د تللو په وخت کي دي لول چپه پښه دننه کوي، او دباندي چي راوځي نولول دي راسته پښه راباسي، او يو داسي شئ په کوم چي دالله ﷻ نوم ليکل سوي وي پخپله خوا کي دي نه ايږدي او لڅ سر دي د رفع حاجت د پاره نه ځي او چي دننه سي نو دا دي وايي: أَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنَ الرِّجْسِ النَّجِسِ الْخَبِيْثِ الْمُخْبِثِ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ (زه د ګنده کيدونکي شيطان څخه دالله ﷻ پناه غوارم) او کله چي راووځي نو دا دي وايي: اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي اَذْهَبَ عَنِّيْ مَا يُؤْذِيْنِيْ وَاَبْقٰى فِيْ جَسَدِيْ مَا يَنْفَعُنِيْ (ټوله ثنا او صفت الله ﷻ لره دی کوم چي تکليف ورکوونکي شئ يې زما د بدن څخه وويستلو او نفع ورکونوکي شئ يې زما په بدن کي پرېښوی).

## استنجاء

د استنجاء په باره کي: پکار دي چي درې ډبري يا درې لوټي راواخلي، د رفع حاجت څخه دي مخکي يې د ځان سره کېښيږدي، او چي فارغه سي نو په چپه لاس دې ونيسي لو د ګندګی پر ځای دې داسي راتېري کړي چي ګندګی پاکه کړي خو داسي چي ګندګی پر شاو خوا ونه لګيږي، او دغه ډول درې ډبري يا لوټي دي په کار راولي او که پاک نه سو نو زياتي دي استعمال کړي، لېکن شمار دې همېشه طاق وي (يعني درې پنځه اووه او نور) او په آخر کي دي په يو ډبره يا لوټه د قضيب (د نارينه اندام. ذکر) سر وچ کړي لو چپه لاس دې استعمالوي او په راسته لاس دي اودس نه وچوي، او که پر دې صبر کوي نو هم کافي لېکن غوره دا ده چي د دې سره اوبه هم استعمال کړي، لو د اوبو د استعمال په صورت کي پکار دي چي د دې ځای څخه ليري شي بل ځای کېښني، او په راسته لاس دي اوبه وراچوي او په چپه لاس دې مېږي، تر دې پوري چي پوه سي چي ګندګی پاکه سوه، او بې ضرورته دي ډيري اوبه نه توږوي، او اوبه دي دننه تللو ته نه پرېږدي لېکن د استنجا کولو په وخت کي دي سست کېښني لو کوم ځای ته چي اوبه دننه نه ځي دغه د جسم دننه حصه ده او پر دغه د نجاست اطلاق نه کيږي په دې وجه د دې په باره کي دي ضرور په و سوسه کي نه لوېږي، او دغه ډول د قطرې څڅېدلو په وخت کي دي تر قضيب لاندي لاس تېروي او درې واره دې وڅنډي او درې قدمه دي لاړ سي او درې واره دې وټوخيږي، او د دې څخه زيات دي په تذبذب کي نه لوېږي او وسوسه دي نه کوي او که بيا هم څه لوندوالي وو نو اوبه دي پر اچوي او دغه لوندوالي دي اوبه ګڼي چي نبي کريم ﷺ داسي فرمايلي دي چي وسوسه په دې ډول سره ليري کوئ، او کله چي د استنجاء څخه فارغه سي نو

لاس دي پر څمکه یا دیوال تېروي او بیا دې پرېولي، چې بلبوی پکښې پاته نسي، او د استنجاء په وخت کي دا دعاء وایي: اَللّٰهُمَّ طَهِّرْ قَلبِي من النفاق وحَصِّنْ فرجي منَ الفواحش (اې ربه! زما زړه د نفاق څخه او زما شرمګاه د فحش څخه محفوظه کړې).

## د اودس طریقه او د هر اندام د پاره دعاګاني

هر کله چې د استنجا څخه فارغه سي نو مسواک دې وکړي او شروع دې د راسته طرف څخه کوي اول دې پر لوړو غاښونو بیا دې پر لاندي غاښونو مسواک ووهی او په داخه ترتیب سره دې په دننه طرف مسواک ووهی بیا دې پر ژبه او تالو باندي مسواک ووهی، د مسواک ډېر لوی اهمیت او فضیلت دی، په حدیث شریف کي راغلي دي چې د مسواک سره یو لمونځ کول د اویا ۷۰ لمونځونو بغیر د مسواک څخه غوره دي، او د مسواک کولو په وخت کي نیت داسي کول پکار دي چې د الله د ذکر لار صفا کووم، او چې کله بې اودسه کیږي نو اودس کول دې نه هېروي، (یعني د استنجاء څخه وروسته) چې نبي کریم ﷺ به دغسي کوله، او هر وخت د اودس کولو په وخت کي دې مسواک نه هېروي، او که اودس نه کوي او ده ته معلومه وي چې د خولې د ننه صفا کولو په وجه مي په خوب کي په خوله کي ګند(بلبوبي) جوړېږي یا د بیداری په حالت کي څه بلبوبي جوړېږي نو مسواک کول سنت دي، چې د مسواک څخه فارغه سي پر لوړ ځای دي کښیني مخ دي قبلې ته کړي او دا دعاء دي وایي:

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ اَعُوْذُ بِکَ مِنْ هَمَزَاتِ الشَّيٰطِيْنِ وَاَعُوْذُ بِکَ رَبِّ اَنْ يَّحْضُرُوْن (شروع کووم په نامه د الله ﷻ چې ډېر مهربانه ډېر رحم والا دی اې زما ربه زه د شیطان د وسوسو څخه ستا پناه غواړم او اې زما ربه زه ستا پناه غواړم د دې څخه چې دغه شیطان ماته نژدې هم راسي) او لاسونه به درې واره پرېولي دا دعاء به وغواړي: (اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُکَ الْيُمْنَ وَالْبَرَکَةَ وَاَعُوْذُ مِنَ الشُّؤْمِ وَالْهَلَکَةِ (اې الله زه ستا څخه د برکت طالب یم او د نحوست (ناسیتوب) او هلاکت څخه ستا پناه غواړم) او د لمانځه د صحیح کیدلو او د بې اودسي لېرې کېدلو نیت به وکړی خوله به پرېولي، بیا به درې واره خولې ته اوبه واچوي او غرغره به وکړي که روژه یې نه وي، او وایي به: اَللّٰهُمَّ اَعِنِّيْ عَلٰی ذِکْرِکَ وشُکْرِکَ وَتِلَاوَةِ کِتَابِکَ (اې زما پروردګاره! د خپل ذکر او شکر او ستا د کتاب تلاوت د پاره زما مدد وکړې) بیا به درې واره پزې ته اوبه واچوي او وایي به: اَللّٰهُمَّ اَرِحْنِيْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ وَاَنْتَ عَنِّيْ رَاضٍ) (اې الله ﷻ ما

ته دجنت بوی نصیب کړه او ته زما څخه راضي سه) بیا به دري واره مخ پرېولي او وایي به اَللّٰهُمَّ بَيِّضْ وَجْهِيْ بِنُوْرِکَ يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوْهُ اَوْلِيَاءِکَ (اې الله په کومه ورځ چي ته د خپلو دوستانو مخ سپین کړې زما مخ هم پخپل نور سره سپین کړه) او په مخ چي څومره وېښته وي د هر یوه بیخ ته دې اوبه ورسوي او که ږیره ډېره ګڼه وه نو دلوري خوا دې اوبه پر واچوي او په ګوتو دي د وېښتو مینځ خلال کړي دې ته تخلیل وایي، او دمخ څخه واخله د غوږونو تر سرونو پوري چي کومه حصه ده دا ټوله په مخ کي داخله ده او ګوتې دي د سترګو په ېنخو کي ووهي چي د سترګو ېنخونه د دننه څخه لانده سي او دننه که څه رانجه او نور وي چي هغه را ووځي، د دې څخه وروسته راسته لاس دي تر څنګلو پوري دري واره پرېولي او څومره چي د څنګلو څخه هاخوا پرېولي ډېره به ښه وي، دغه وخت به وایي: اَللّٰهُمَّ اَعْطِنِيْ كِتَابِيْ بِيَمِيْنِيْ وَحَاسِبْنِيْ حِسَابًا يَسِيْرًا (اې زما ربه! زما عملنامه ماته په راسته لاس کي را کړې، او زما حساب آسانه کړې) بیابه دغه ډول چپه لاس پرېولي او که په لاس کي ګوتمې یا داسي نور شئ وي نو هغه به وښوروي چي اوبه ورسي، او دغه وخت به وایي: اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِکَ اَنْ تُعْطِيَنِيْ كِتَابِيْ بِشِمَالِيْ وَلَا مِنْ وَّرَاءِ ظَهْرِيْ (اې الله! زه ستا پناه غوارم د دې څخه چي زما عملنامه ما ته په چپه لاس کي را کړل سي یا د شا د طرف څخه). بیا دي دواړه لاسونه لانده کړي د ګوتو سرونه دي د یو بل سره ملاو (یو ځای) کړي د سر پر مخکي حصه دې کښېږدي او تر څټې پوري دې بوځي او بیا د هغه طرف څخه دې دواړه ورغوي د سر پر داوړو طرفونو ولګوي مخ ته دې راولي او دا به یو ولږ شمار سي دغسي دې دري واره وکړي چي د پوره سر مسح وسي، او په هر وار دې وایي: اَللّٰهُمَّ غَشِّنِيْ بِرَحْمَتِکَ وَاَنْزِلْ عَلَيَّ مِنْ بَرَكَاتِکَ وَاَظِلَّنِيْ تَحْتَ عَرْشِکَ يَوْمَ لَا ظِلَّ اِلَّا ظِلُّکَ (اې زما ربه! ما پخپل رحمت کي پټ کړه او د عرش تر سایې (سیوري) لاندي پر ما خپل برکتونه رانازل کړه په هغه ورځ چي کله ستا د سایې څخه سوا بله سایه نه وي) بیا به دغوږونو مسح داسي وکړي چي مسواکي ګوته (د شهادت ګوته) به په غوږونو کي دننه ووهي او غټه ګوته به پر راوګرځوي، او دا به وایي: اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ الَّذِيْنَ يَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُوْنَ اَحْسَنَهُ (اې زما ربه! ما د هغو خلکو څخه کړې کوم چي خبره اوري او د ښه خبري متابعت کوي) بیا دي د څټ مسحه وکړي وایي به: اَللّٰهُمَّ فُکَّ رَقَبَتِيْ مِنَ النَّارِ وَاَعُوْذُ بِکَ مِنَ السَّلَاسِلِ وَالْاَغْلَالِ (اې زما ربه! ما د دوږخ د اور څخه خلاص کړې او زه ستا په مدد سره د زنځیرنو او قیدونو څخه پناه غوارم).

بیا به راسته پښنه د بجلکي تر نیمایي پوي پرېولي او په ګوتو کي به د چپه لاس په بته ګوته خلال کوي او د راسته پښې د خلال څخه وروسته چپه پښه به دغه ډول پرېولي، او د راسته پښې د پرېولو په وخت کي به وايي: اَللّٰهُمَّ ثَبِّتْ قَدَمِيْ عَلَى الصِّرَاطِ يَوْمَ يَزِلُّ الأَقْدَامُ فِيْ النَّارِ (اې زما ربه! ما پر پُل صراط ثابت قدم ولره کله چي دخلګو قدمونه ښوییږي اُورته لوېږي) او چي چپه پښه پرېولي وايي به: اَللّٰهُمَّ اَعُوْذُ بِکَ اَنْ تَزِلَّ قَدَمِيْ عَلَى الصِّرَاطِ يَوْمَ تَزِلُّ اَقْدَامُ الْمُنَافِقِيْنَ (اې زما ربه! زه ستا پناه غواړم پر پل صراط د قدم ښویېدو څخه کله چي د منافقانو قدمونه ښوییږي) او کله چي د اودس څخه فارغه سي نو دا دعاء ووایه: اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْکَ لَهٗ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ. اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ التَّوَّابِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنْ عِبَادِکَ الصَّالِحِيْنَ (زه ګواهي ورکووم چي د الله ﷻ څخه ما سوا بل معبود نسته هغه یو دی د هغه څوک شریک نسته او زه ګواهي ورکووم چي بې شکه حضرت مُحَمّد ﷺ د خدای بنده دی، او د هغه رسول دی، اې الله ما دتوبه کوونکو څخه کړه او د خپلو پاکو بندګانو او نېکانو څخه مي کړه) او کوم سړی چي په عربي نه پوهیږي هغه دي د دې معنی ازده کړي وايي دې، او په حدیث شریف کي راغلي دي چي کوم سړی اودس کوي او ور سره د خدای ذکر کوي د هغه د بدن د اندامونو ټول ګناهونه او خطاګاني معاف کیږي، لېکن که په اوداسه کي د خدای ذکر نه کوي نو ما سوا د هغه ځای څخه پر کوم چي یې اوبه اچولي دي بل یو اندام هم پاک نه شمارل کیږي.

او پکار دي چي د هر لمانځه د پاره نوی اودس وکړي که څه هم زوړ اودس یې مات سوی نه وي ځکه په حدیث شریف کي دي، چي کوم سړی تازه اودس کوي ده ته دالله د طرف څخه تازه ایمان ور کول کیږي، او کله چي د اودس څخه فارغه سي نو پکار دي چي دا په زړه کي راولي چي (داظاهر اندامونه چي مي پرېول) دا خو فقط خلګو ته د د ښولو پاره دي کنې الله تعالی ته د ښوولو ځای خو زړه دی هر کله چي زړه په توبه سره د بدو صفاتو څخه پاک نه کړای سي تر هغه وخته پوري (د ظاهري اندامونو) د طهارت مثال داسي دي چي لکه یو سړي یو باچاه مېمله کول وغواړي او د خپل کور دروازه خو ښه صفا کړي لېکن کوم ځای چي باچاه کښېنوي هغه دغسي ناپاکه او ګنده پرېږدي.

## د اوداسه مکروهات

په اودس کي شپږ شیان مکروه دي: (۱) خبري کول (۲) پر مخ په زوره اوبه وهل (۳) لاسونه څنډل

(۴) د غرمي او لمر په گرمو سوو لوبو لودس کول (۵) زیاتي اوبه تویول (۶) د دري وارو ځنځه زیاتي اوبه اچول. لیکن مخ په دې شرط سره وچول چي گرز (دوړي او خاورې) نه پورې ومښلي، یا په دې نیت سره یې نه وچول چي د عبادت اثر تر ډېره وخته پورې باقي پاته سي، نو د دې دواړو خبر اجازت سته، او که نیت یې دا وي نو فضیلت د دواړو دی. او د خاورې په کوزه یا لوټه سره اودس کول د آفتابې کوزې او لوټې ځنځه غوره دي، او تواضع ته نژدې دي.

## غسل

د غسل په باره کي: پوه سه! چي کوم سړی چي کوروالی وکړي یا یې په خوب کي منی ووځي یا په ویښه کي منی ووځي (احتلام یې وسي) نو پر ده غسل واجبیږي، او د غسل فرض کېدلو مطلب دا دی چي ټول بدن به پرېولي او د وېښتو بېخو ته به اوبه ورسوي، او د جنابت لیري کېدلو نیت به وکړي، لیکن سنت طریقه دا ده چي اول بسم الله ووایي او دري واره لاسونه پرېولي او بیا د جسم هر هغه حصه کومه چي گنده سوې وي پرېولي، بیا په مخکي ښوول سوې طریقه اودس وکړي او پښې دې د غسل ځنځه وروسته پرېولي، بیا دې دري واره پر سر دري واره پر راسته طرف دري واره پر چپه طرفه اوبه واچوي، او تر کومي اندازې چي یې لاسونه رسیږي نبه دې ځان ومږي، او هغه ځایونه کوم چي په یوبل پورې منښتي وي کوشش دي وکړي چي اوبه ورته ورسي ځکه چي ټول بدن ته اوبه رسول فرض دي.

## تیمم

د تیمم په باره کي: کوم سړي ته چي اوبه نسي حاصلي یا اوبه وي خو د څښلو د مقدار ځنځه زیاتي نه وي او اوبه د داسي ځای ځنځه راوړل غواړي چي په لاره کي درنده (یاد ښمن) وي، یا اوبه د بل چا ملکیت وي او هغه یې په دوچنده قیمت پر ده خرڅوي، یا دی داسي ناجوړه یا زخمي وي چي د اوبو په استعمال سره یې د مرگ خطره وي یا د ناروغی د زیاتېدلو ډېره وي نو داسي سړي ته پکار دي چي کله د لمانځه وخت سي نو پاکي خاورې دي تلاش کړي او خپل دواړه لاسونه دي پر دغو خاورو کښېږدي او بیا دې په دغه لاسونو باندي خپل ټول مخ مسح کړي (خو اول دي د تیمّم او د لمانځه جائز کېدلو نیت وکړي) او که گوتمی یا بل څه یې په لاس وي نو هغه دي اول وکاږي، په دویم واړ دي بیا لاسونه پر خاورو کښېږدي او د چپه لاس د گوتو نس دي د راسته لا د گوتو پر شا کښېږدي او

تر څنګلو پوري دي راتېر کړي بيا دي د هغه غاړې د راسته لاس پر نس دي د چپه لاس ورغوی کښېږدي او ترګوتو پوري دې را کش کړي بيا دي دغسي چپه لاس مسح کړي، او بيا دي دواړو لاسونو ګوتي په يوبل کي ورکړي او را کش دې کړي، چي هر کله داسي تيمم وکړي په دې يو فرض لمونځ، او سنت او نفل چي څومره وي کولای يې سي، لېکن که دويم فرض ادا کوي نو بيا به دو بلره تيمم کوي.

**دريم قسم:** د بدن څخه د زياتو شيانو صفايي: دا طهارت پر دوه قسمه دي يو خيري (چټلتيا) ليري کول، لکه هغه خيره کوم چي د سر يا د ږيري په وېښتيانو او نورو کي وي نو دغه به په لمونځ،اوبو،خاورو، ګرمو اوبو سره ليري کول پکار دي، او نبي کريم ﷺ به په سفر او حضر کي ژمونځ د ځانه څخه نه جلا کوله، او د خيري څخه ځان پا کول سنت دي، او دويم هغه کوم چي د سترګو په بېخونو (ګوټونو) کي چخني او نور وي دغه د اودس په وخت کي په ګوتو صفا کول پکار دي، او کوم خيري چي په غوږونو کي وي دغه د حمام څخه په را وتلو سره صفا کول پکار دي او کوم چي په پزه او غابنونو کي وي دغه د پزې څخه په اوبو اود غابنونو څخه په مسواک يا اوبو اچولو سره ليري کول کيږي، او هغه کوم چي د ګوتو په بندونو کي يا د پښو په پوندو او تلو او نورو کي وي ياد نوکانو په سرونو کي جمع سوي وي د دغو ليري کول سنت دي، او ياد ساته! چي کوم ځای خيري خو وي لېکن دومره نه وي چي پوست ته اوبه د رسېدلو څخه منع کړي نو اودس ور سره کيږي او که داسي وي چي مثلاً تر نوکانو لاندي يا په بل ځای کي په دومره مقدار وي چي اوبه پوست ته د رسېدلو څخه منع کوي بيا ور سره اودس نه کيږي، او دا قسم خيره په ګرمو ابوو او په حمام کي صفا کول سنت دي.

## حمام ته تلل

کوم سړی چي حمام ته ځي پر ده څلور شيان واجب او لس شيان سنت دي، او په واجبو کي د دوو تعلق د ده د شرمګاه سره دی چي د نامه څخه لاندي تر څنګونو پوري پر ده د چا نظر ونه لوېږي، او د ځونکي لاسونو ته دي هم خيال کوي چي دغه ځای ته ونه رسيږي، ځکه چي دلاسونو پردغه ځای لګېدل د کتلو څخه زيات بد دي، دغسي دي خپل نظر هم دبل د شرمګاه څخه ساتي، او که يو څوک خپل عورت لڅ کړي، نو و دي ټوخي او ورېره ترهه دي نه کوي ځکه چي په نه منع کولو کښی به دی پخپله ګناهګاره سي او د حمام څخه به ګناهګاره ووځی.

**قصه**: ویل سوي دي: چې حضرت عمر رضی الله عنه یو لور په حمام کې ناست وو نو خپل مخ یې د
دېوال طرف ته کړی وو او خپلې سترګې یې په یو شئ ترلې وې.
او پر ښځو بلندې هم داسې کول واجب دي بلکې ښځو ته خو حمام ته تلل قطعې منع دي ماسوا د یو
مجبورۍ یا دیو عذر څخه. او سنت دی چې اول داسې نیت وکړي چې دی د ستنو د پاکوالی د پاره
حمام ته ځي چې ځان د لمانځه د پاره ښایسته کړي، نه د دې د پاره چې یو نمائش پر مقصود وي، او د
حمام اُجرت دې حمام والا ته اول ورکړی چې پر ده دلوبو اچولو په وخت د هغه زړه خوشحاله وي، او
کله چې حمام ته داخل سي نو دا دی وایي: بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ أَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الرِّجْسِ
النَّجَسِ الْخَبِیْثِ الْمُخْبِثِ الشَّیْطَانِ الرَّجِیْمِ (شروع کوم په نامه د خدای چې ډېر مهربانه ډېر رحم والا
دی زه پناه غواړم په الله ﷻ سره د نجس څخه او د خبیثانو د خبیث شیطان رټل سوي څخه). ځکه
چې حمام د شیطان ځای دی او کوشش دا کول پکار دي چې خالي حمام ملاوسي یا داسې وخت دې
ځي چې که بالکل خالي نه وي نو چې تر ډېره حده پوري خالي وي او د حمام ګرمې خانې ته دې تر
هغه وخته پوري نه ځي تر څو چې خوَله نه وي پر راغلې او کله چې دننه سي نو په وخت کې دې دننه
دننه اودس وکړي او دودې لمبېږې اوبه دې زیاتې نه توېوي چې حمام والا بد ونه ګڼي، په دننه کېدو
کې دې سلام نه کوي خو که لاس ملاوکړي خیر دي، که بل یو سلام وکړي نو په جواب کې دې
صرف: عَافَاکَ اللهُ وایي، خبرې دې زیاتې نه کوي که قرآن وایي نو پټ دې وایي، لیکن د شیطان
څخه په پناه غوښتولو کې لوړ آواز هم روا دی، د لمر د لوېدلو په وخت او د ماښام او ماخوستن په
مینځ کې دې حمام ته نه ځي، دا د شیطانانو د ښورېدو وخت دی، او کله چې ګرمې خانې ته ولاړ سي
نو د دوږخ اور دې رایاد کړی او د یوې دقیقې د پاره دې هم هلته د ضرورت څخه زیات نه کښېني،
چې ده ته معلومه سي چې د دوږخ په زندان خانه کې کښېناستل څومره ګران دي، بلکې عاقل هغه
دی چې دی هر شئ چېویني د آخرت د حالاتو یاد تازه کوي مثلاً چې تیاره ویني نو د قبر تیاره دې
رایاده کړي چې مار ویني د قبر او دوږخ ماران یاد کړي که بدصورت ویني نو مُنکر نکیر دې یاد کړی
او د دوږخ درباڼان دې یاد کړي که هیبتناک آواز واروي نو د اسرافیل علیه السلام شپېلۍ دې یاده کړي،
که ذلت او عزت ویني نو د قیامت د و رځې ذلت او عزت دې رایاد کړی، شرعي سنت خو دا دی،
لیکن طبیبان وایي چې په هره میاشت کې یو وار چونا استعمالول فائده مند دي، او د حمام څخه د
وتلو په وخت یخې اوبه پر پښو اچول پکار دي چې د نقرس ناروغی څخه محفوظ سي، یعني د سر

درد یې پیدا نسي، او یخي اوبه دي پرسر نه اچوي، او کله چې د ګرمی په موسم کې دحمام څخه وځي نو بیده دې سي چې دا پرخپل ځای دیومشروب او درمل په ډول کتمن اثر لري.

## فصل

لیکن د دویم قسم تعلق د هغه پاکی سره دی کومه چې د بدن څخه د زیاتو شیانو (فضلاتو) په سلسله کې دی، او د دې اووه اقسام دي: (۱) اول د سر ویښته دي، او د دې خریل د تولو څخه غوره دي او پاکي ته زیات نژدې دي، لیکن د شریفانو خلکو د پاره دا لازمي نه دي، او ځیني ویښته خریل، ځیني پاته کول، یا د لښکریانو (فوځیانو) د عادت مطابق یې ګډوډ پرېښول مکروه دي او منع یې سوې ده. (۲) دویم د بریتو ویښته چې د شونډ پر برابر ساتل سنّت دي او لاندي یې راپرېښول منع دي. (۳) د تخر (بغل) د ویښتیانو په هره څلویښتمه ورځ کښل سنت دي، لیکن دا په هغه صورت کې آسانه وي چې د اول څخه یې د کښلو عادت جوړ کړي، او که عادت نه وي نو خریل یې بیا غوره دي چې ځان په تکلیف کې وانه اچوي.

(۴) دا د عورت ویښته دي او د دې خریل یا یې په چونه سره کښل سنت دي او پکار دي چې د څلویښتو ورځو څخه زیات تأخیر پکښې ونسي.

(۵) دا د نوکانو پرېکول دي، چې خیري پکښې جمع نسي، هسې خو دلته په خیري جمع کېدو سره اودس نه باطلیږي ځکه چې نبي ﷺ د ځیني خلکو په نوکانو کې خیر ولیدې او دوی ته یې د نوکانو پرېکولو حکم ضرور ورکړی وو خو د لمانځه د قضا راګرځولویې ورته نه وو فرمایلي، او په حدیث کې راغلي دي چې هر کله نوکان غټ سي نو د شیطان د کښېناستلو ځای جوړ سي، او پکار دي چې (په پرېکولو کې) ابتداء د هغه ګوتي څخه وکړي کومه چې په ټولو کې افضله ده، او لاسونه پر پښو او په لاسونو کې راسته لاس ته پر چپه لاس فضیلت حاصل دی او ګوته د شهادت په ټولو ګوتو کې افضله ده نو ابتداء د دې څخه کول پکار دي او بیا د دې څخه راسته جانب ته دې په مخه پرې کوي چې بیا دې ته راورسیږي، یعني د دواړولاسو ګوتي دي د یوې حلقې په ډول فرض کړي نو د راسته لاس د شهادت د ګوتي څخه دې شروع کړي په راسته طرف دې ځي چې غچی (فچني) ګوتي ته ورسیږي نو د چپه لاس د غچی ګوتي څخه دې بیا شروع کړي، غټي ګوتي ته دې راورسیږي په آخر کې دې د راسته لاس د غټي (بټي) ګوتي څخه پرې کړي. (۶) دا د نوم پرېکول دي، کوم چې د پیدایښت په وخت کې وي. (۷) دا د سرو او ښځو ختنه کول (سنّتول) دي.

## ږیره او د ږیرې لس مکروهات

ږیره چې کله اوږده سي نو روا دي چې د یو موټ په اندازه یې پاته کړي او باقي پرې کړي چې د حد شخه زیاته نسي او ابن عمر رضی الله عنه او د تابعینو یو جماعت پر دې عمل کړی دی، او د یوې ولې وینا ده چې ږیره اوږده پرېښوول پکار دي، او باد ساته چې د ږیرې په باره کې لس شیان مکروه دي.

اول تور خضاب لګول ځکه چې په حدیث شریف کې راغلي دي چې دا د دوږخیانو او کافرانو خضاب دی او د ټولو شخه اول چې دا کوم سړي لګولی وو هغه فرعون وو، او ابن عباس رضی الله عنه روایت کوي چې نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې په آخره زمانه کې به یو قوم داسې وي چې تور خضاب به استعمالوي، او دغو خلکو ته به د جنت بوی هم نصیب نسي، دغه ډول په حدیث کې دي چې تر ټولو بد سپین ږیري هغه دي کوم چې ځانونه د ځوانانو په ډول جوړول غواړي، او ډېر ښه او غوره ځوانان هغه دي کوم چې ځانونه د سپین ږیرو په ډول جوړوي، او په دې وجه د دې شخه ممانعت سوی دی چې دا د فاسدو غرضونو د پاره شیطاني مکر او فریب دی.

دویم سور او ژړ خضاب دی او د دې استعمال که غازي کوي چې کافران یې سپین ږیری ونه ګڼي نو دا سنت دی، او په دې وجه سره ځینو عالمانو تور خضاب هم استعمال کړی دی، لیکن که غرض دا نه وي نو محض مکر او فریب او ناجائز دي.

دریمه خبره دا ده چې ږیره په ګندګو (ګندګ یو ډول سپین مواد دي) سپینه کړي چې خلک وګڼي چې دا سپین ږیری دی او دغسې د ده په عزت او تعظیم کې اضافه وسي، نو دا فقط جهالت دي ځکه چې احترام او تعظیم په علم او عقل سره وي نه چې په سپین ږیروالي سره او په ځواني سره، حضرت انس رضی الله عنه فرمایي چې نبي کریم ﷺ ته هر کله فرمان د اجل راورسیدی (یعني د وفات وخت یې راغلی) نو د دوی په ټوولو ویښتانو کې شل ویښته هم سپین نه وو.

څلورم دا چې د ږیرې شخه سپین ویښته کښل او سپین ږوالی شرم ګڼل، او دا محض جهالت او کم عقلي ده او داسې ده چې دی ګواکي د الله ﷻ وو کړل سوي نور د شرم باعث ګڼي.

پنځم شئ دا دی چې د خواهش او سودا په وجه د اول شخه ویښته په دې غرض و کاږي چې شکل یې بې ږیري ښکاره سي او دا هم جهالت دی ځکه چې د الله فرشتې داسې تسبیح وایي: سُبْحَانَ مَنْ زَيَّنَ الرِّجَالَ بِاللُّحٰى وَالنِّسَاءَ بِالذَّوَائِبِ (پاک دی هغه پروردګار چې خلک یې په ږیرو او ښځې یې په زلفو ښایسته کړي دي).

شپږمه خبره دا ده چي ډېره په نوکانو سره داسي تراشي چي د کوترې د لکۍ په ډول سي چي په لیدلو کي ښځو ته ښایسته ښکاره کیږي او ده ته یې رغبت کیږي.
اوومه دا چي د سر ویښته دژیړې څخه زیات اوږده کړي چي زلفي ځیني جوړي سي دغو ږونو د نرمي څخه لاندي راځړیږي او دا د ښو خلقو عادت هم بولي.
اتم دا چي دږیرې سپینوالی یا تور والی ته د تعجب په نظر سره ګوري، ځکه چي الله ﷻ داسي سړی نه خوښي کوم چي ځان ته د استعجاب په نظر سره ګوري.
نهم دا چي د سنت اداء کولو پر ځای محض خلکو ته د ځان ښوولو د پاره ږیره ږمنځوي.
لسم دا چي ږیره هم دغسي ګډوډه او خرابه پرېږدي چي خلک دا وګني چي دومره د الله ﷻ په یاد کي مشغول دی چي د ږیرې ږمنځولو وخت هم نه لري او پرواه یې نه کوي.

## څلورم اصل: د لمانځه په باره کي

پوه سه! چي لمونځ د اسلام پایه (ستن) او د دین بنیاد دی او د ټولو عبادتونو څخه افضل او سردار دی، کوم سړی چي دا پنځه فرض لمونځونه د ټولو شرطونو سره پر وخت ادا کوي د هغه سره د الله تعالی وعده ده چي د هغه په امان (حفاظت) کي به وي او حمایت به یې کوي، کوم سړی چي د ګناه کبیره څخه ځان وساتي نو د ده صغیره ګناهونه به د لمانځه په صدقه کي معاف سي، او لمونځ د دغو د پاره کفاره جوړیږي؛
نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: چي د پنځو لمنځونو مثال داسي دی لکه دچا د دروازې و مخ ته چي داوبو نهر بهیږي او دی روزانه پنځه واره په دغه کي غسل کوي، بیا یې وفرمایل چي لکه څنګه چي د پنځه واره غسل کولو څخه وروسته څنګه خیري باقي نه پاته کیږي دغه ډول د پنځو لمونځو د کوونکي ګناه معاف کیږي.
دوی ﷺ وفرمایل لمونځ د دین پایه (ستن) ده چا چي دا پرېښوده د ده دین خراب سو، دوی ﷺ څخه پوښتنه وسوه چي په ټولو کارونو کي کوم کار افضل دی؟ دوی ﷺ وفرمایل پر وخت لمونځ کول، او فرمایل به یې چي لمونځ د جنت چابي ده، او فرمایل یې چي الله د توحید څخه وروسته د لمانځه څخه وروسته بل محبوب شئ پر خپلو بندګانو نه دي فرض کړی، که دلمانځه څخه زیات بل شئ ورته محبوب وای نو فرښتې به یې په هغه کي مشغولي کړي وي، او فرښتې همېشه په لمانځه کي مصروفي وي ځیني فرښتې په رکوع کي ځیني په سجده کي ځیني په قیام کي او ځیني په قعده

کي وي، دوی ﷺ فرمایلي دي چا چي یو لمونځ په قصده پرېښوی دی کافر سو، یعني کفر ته قریب سو ځکه چي په دې سره په ایمان کي خلل پرېوځي، دا داسي ده لکه چي خلک وایي چي په ځنګل کي د چا شخه اوبه ضائع سوې، نو دی هلاک سو یعني په خطره کي پرېوتی، دوی ﷺ فرمایلي دي چي په قیامت کي به د ټولو شخه مخکي د لمانځه حساب وي که د شرائطو سره د لمانځه معامله صحیح سوه نو دغه به قبول سي او باقي عملونه به د دې تابع وي، هغه چي هر شنګه وي قبول به کړای سي، او که الله مه کړه لمونځ ناقص سو نو د باقي ټولو عملونو سره به د ده پر مخ ورو غورځول سي.

دوی ﷺ فرمایلي دي کوم سړی چي په ښه ډول اودس وکړي لمونځ کوي او رکوع سجده صحیح کوي او په زړه سره د عاجزی او تواضع مظاهره کوي د ده لمونځ تر هرشه پوري سپین او روښانه وي، او لمونځ کوونکي ته وایي شنګه چي تا زه په احتیاط سره ادا کړم او زما رعایت دي وکړی دغه ډول دي الله ﷻ ستا حفاظت وکړي، او کوم سړی چي پر وخت لمونځ نه کوي او په صحیح طریقه سره اودس نه کوي او په رکوع سجده کي عاجزي او تواضع ونه کړي د ده لمونځ تور سي، اسمان ته ځي، او لمونځ کوونکي ته وایي شنګه چي تا زه ضائع کړم خدای ﷻ دي تا ضائع کړي، تر څو پوري چي الله ته منظوره وي تر هغه وخته پوري به لمونځ دغسي وایي، بیا به د ده لمونځ د زړې کپړې په ډول راونغښتل سي د ده مخ ته به راوېستل سي دوی وفرمایل په ټولو غلو کي نا کاره غل هغه دي چي په لمانځه کي غلا کوي.

## د لمانځه ظاهري طریقه

د لمانځه ظاهري ارکان د کالبوت (بدن) په ډول دي، او د ده حقیقت او راز جلا دی ده ته د لمانځه روح وایي، اول د لمانځه ظاهري حالت بیانیږي؛ بنده چي کله د بدن او کپړو د پاکولو شخه فارغه سي، او عورت پټ کړي نو پر پاک ځای دي ودرېږي قبلې ته دي مخ کړي او د دواړو قدمونو په مینځ کي دي د څلورو ګوتو په قدر خالي ځای پرېږدي، شا دي سیده او برابره لري، سر دي د مخ وطرف ته کښته کړي او د سجدې ځای ته دي ګوري کله چي سیده ودرېږي نو د شیطان د ځان شخه د لیري کولو د پاره دي سورة الناس ووایي چي شیطان د ځان شخه لیري کړی. دغه وخت که دی د چا امام کېدی نو په زوره دي تکبیر وکړي یعني اقامت دي وکړي او که یوازې وو نو خپل پر قیام دي اکتفاو کړي او نیت د لمانځه دي په زړه کي حاضر کړي او په زړه سره دي ووایي: چي زه فلانی لمونځ مثلاً د ماپښین لمونځ د الله د پاره کووم، او کله چي په زړه کي د دې الفاظو معنی راسي نو لاسونه دي پورته

کړي او د ځوړونو برابر ته دې بوځي داسې چې د ګوتو سرونه د ځوړونو سره برابر سي او د بټې ګوتې سر دغوږ د نرمې سره برابر سي او ورغوی د اوږو سره برابر سي، هر کله چې داسې ودرېږي نو اَللّٰهُ اَکْبَر دې ووايي او بيا دې دواړه لاسونه تر سينې لاندې کښېږدي، او راسته لاس دې پر لوړ کړي او د راسته لاس د بټې (غټې) ګوتې او غچې ګوتې څخه دې حلقه جوړه کړي او باقي درې ګوتې دې د چپه لاس پر مروند کښېږدي، او چې د ځوړونو څخه لاسونه کښته راوړي نو چې سينې ته راوړسېږي تر سينې لاندې دې کښېږدي کښته دې نه راځوي، او په دې دوران کي به لاسونو ته نه جټکه ور کوي او نه به يې مخکي وروسته ها دې خواوړي راوړي، او په تکبير کي دې مبالغه نه کوي چې مثلاً د اَللّٰهُ اَکْبَر څخه وروسته دې واو نه پيدا کوي او د اکبر په "ب" کي دې الف نه پيدا کوي، دا ټولې خبرې د اهل وسوسه او جاهلانو دي، بلکي داسې پکار دي چې په عام حالت کي د لماځه څخه بغير څنګه دا کلمات ادا کوي په لماځه کي دې هم دغسې وايي او کله چې لاسونه د تر سينې لاندې وتړي نو وايي دې: اَللّٰهُ اَکْبَر کبيرا والحَمْدُ لله کثيرا وسبحان الله بُکْرَةً وَاصِيْلاً او بيا دې وايي: وَجَّهْتُ وَجْهِي...الخ او د دې څخه وروسته دې وايي: سبحانَکَ اَللّٰهُمَّ وبحمْدِکَ...الخ او بيا دې اَعُوْذُ بِالله او بِسْمِ الله ووايي: الحَمْد شريف دې ووايي، او شدونه دې په پوره توګه ادا کوي او په حرفونو کي دې مبالغه نه کوي د ظ او ض په مينځ کي دې د فرق خيال ساتي، او که داسې يې نه سوه کولی نو هم جائز دي، او کله چې الحَمْد ختم کړی نو آمين دې ووايي ليکن په تسلسل سره نه بلکي د سورت په آخر کي دې لږ ودرېږي تسلسل دې مات کړي،-د دې څخه وروسته دې بل قرآني سورت تر څو پوري چې غواړي وايي، او د سهار ماښام او ماخوستن په اوّلو دوو رکعتونو کي به جهر کوي په دې شرط چې امام وي بيا به د رکوع د پاره تکبير وکړي مګر د تکبير او سورت په مينځ کي دې تسلسل نه وي يعني چې سورت ختم کړی لږ توقف دې وکړي بيا دې تکبير وايي، او په دې تکبير کي به هم لاسونه پورته کړي لکه چې د شروع په تکبير کي يې پورته کړي وو، بيا به رکوع وکړي او د دواړو لاسونو ورغوی به پر ځنګونانو کښېږدي او ګوتې به سيده د قبلې وطرف ته وي او د يو بل څخه به جلاوي او ځنګونان به د يو بل سره نه مښلوي، او شا او سر به سيده برابر لري لکه د تختې په شان او داسې چې په مجموعي توګه د لام شکل جوړ سي، او دواړه ليڅې به د دوو څخه ليري لري، او ښځه به ليڅې د دوو سره مښتې (جُخت) لري،او هر کله چې داسې برابر سي نو درې واره به سبحان ربّي العظيم وبحمْدِه،

ووايي او که امام وو نو لوو واره دې ووايي بلکې لس واره وېل زيات غوره دي بيا د ې درکوع څخه پورته سي سيده به ودرېږي او لاسونه به پورته کړي، وبه وايي سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حمده او په ولاړې به لږ شان آرام وکړي او به وايي ربنا لک الحَمْدُ مِلْاءَ السَّمٰوٰاتِ وَالْاَرْضِ وَمِلْاءَ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدَهُ او د سهار د لمانځه په دوېم رکعت کې به دعاء قنوت ووايي، بيا به تکبير وکړي سجدې ته به ولاړ سي، داسې: چې اول به ځنګونان بيا لاسونه بيا پزه بيا تندی پرځمکه کښېږدي او دواړه لاسونه به د اوږو برابر پر ځمکه لري او ګوتې به خلاصې وي او ځنګلې به پر ځمکه نه اېږدي، چې دليشې دوو، ورنونو او نس په مېنځ کې فراخي وي، (يعني جلا جلاوي) او ښځه به دا ټول اندامونه مښتي لري، بيا به درې واره ووايي: سبحان ربي الاعلی وبحمده او که امام نه وو نو زيات وېل يې غوره دي، بيا به تکبير وکړي، او د سجدې څخه به پورته سي، او پر چپه پښه به کښېني او لاسونه به پر دواړو ورنونو کښېږدي او وايي به: رَبِّ اغْفِرْلِيْ وَارْحَمْنِيْ وَارْزُقْنِيْ وَاهْدِنِيْ وَاَجِرْنِيْ وَاعْفُ عَنِّيْ وَعَافِنِيْ، او بيا به دغه رنګه دوېمه سجده وکړي او دغسې به لږ کښېني، تکبير به ووايي او وبه درېږي او بل رکعت به د اول رکعت په دول وکړي، او د اَلْحَمْدُ څخه مخکې به اَعُوْذُ بِاللّٰهِ ووايي، هرکله چې د دوېم رکعت د سجدې څخه فارغه سي نو د تشهد د پاره به پر چپه پښه دغه رنګه کښېني لکه چې د دوو سجدو په مېنځ کې ناست وو، او دواړه لاسونه به پر ورنو کښېږدي، لېکن لوس به د لاسونو ګوتې سيده نه لري يعني بندې به يې کړي د شهادت د ګوتې څخه ما سوا چې دغه به وېده پرېږدي او د لَا اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰه په وخت کې به په دغه ګوته اشاره وکړي لېکن د لَااِلٰهَ وېلو په خت کې به اشاره نه کوي، او که غټه ګوته هم د شهادت د ګوتې په دول سيده پرېږدي نو روا دي، او په دوېم تشهد کې به هم دغه دول کوي لېکن داوړي پښې به دلاندې څخه راسته طرف ته راباسي او چپه کوناټې به پر ځمکه کښېږدي او په اوّل تشهد کې چې کله اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ ووايي نو سيده به پر پښو ودرېږي او په دوېم تشهد کې به تر آخره پورې ټولو معروفې دعاګانې دردونه ووايي، او بيا به السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته ووايي او مخ به راسته طرف ته وګرځوي داسې چې که څوک د ده شاته وي نو چې د ده نيم مخ هغه ته په نظر راسي، او بيا به دغه رنګه چپه طرف ته سلام وګرځوي او په دې دواړو سلامونو به د لمونځ څخه د فارغه کېدلو نيت وکړي، او په سلام کې به د حاضرينو او فرشتو نيت

وکړي.

## د لمانځه مکروهات

د لمانځه مکروهات: (۱) د لوږي او تندي په حالت کي لمونځ کول (۲) چي متیازي یا لوی بولي ورغلي وي په داسي حال کي لمانځه ته ودرېږي یا داسي کار ور ته پېښ سي چي د هغه د سوچ په وجه په لمانځه کي خشوع(او توجّه او عاجزي) نه راځي (۳) دواړه پښې د یو بل سره یو ځای کول (۴) یو ه پښه د خپل ځای څخه پورته کول (۵) د سجدي په وخت د دواړو پښو پرسرونو کښېناستل یا پر دواړ کوناټیانو کښېناستل (۶) دواړه ورنونه تر سینې پوري راوستل (۷) لاسونه په کپړه پټول (۸) لاسونه څرول (۹) هر طرف ته کتل (۱۰) او د سجدي په وخت کپړې ځان ته راټولول او سره پېچل (۱۱) کمر بند د کپړو څخه لاندي ترل (۱۲) ګوتي هاخوادې خوا کول (۱۶) د سجدې د پاره ځمکه پُوکل (۱۷) ګوتي د یو بل سره یو ځای کول(۱۸) ملا کږول. لنډه دا چي پکار داد ي چي سترګي لاس او ټول اندامونه په ادب سره وي او په صفت د لمانځه باندي قائم وي چي په هر لحاظ سره داسي مکمل وي چي دآخرت تو بنه وبل ور ته مناسب وي، لېکن څه چي موږ ویلي دي په دې کي د فرائضو شمېر د څوارلسو څخه زیات نه دي او هغه دا دی:

(۱)نیت (۲) اولنی تکبیر (۳) قیام (۴) الحَمْد لوستل (۵) رکوع (۶)د رکوع څخه وروسته لږ غوندي آرام (۷) د رکوع څخه پورته کېدل (۸) لږ غوندي وقفه (۹) سجدې (۱۰) لږ غوندي وقفه (۱۱) د داوړه سجدو په مینځ کي کښېناستل (۱۲) تشهد (۱۳) درود پرنبیﷺ ویل (۱۴) او په آخر کي سلام ګرځول.

هر کله چي په دې ډول سره لمونځ وکړي نو صحیح به وي، کنې په قبولیت کي به یې خطره وي او مثال به یې داسي وي لکه چي یو باچاه ته مینځه په هدیه کي بوځي نو دغه مینځه ژوندی خو وي لېکن غوږونه پزه لاسونه پښې یې نه وي نو ښکاره ده چي دغه به بالکل قبوله نه کړي.

## د لمانځه حقیقت اوروح

پوه سه! چي دا څه چي موږ وویل دغه د لمانځه د جسم او صورت سره متعلق وو او د دې صورت یو حقیقت هم دی کوم ته چي روح وایي او د لمانځه په ټولو عملونو کي د هر عمل او په ذکرونو کي د هر ذکر خپل خپل مخصوص روح دی که دغه اصل روح موجود نه وي، نو لمونځ د یو مړی سړي په

وو؛ مړ جسم دی، او که اصل روح موجود وو، لیکن اعمال او آداب یې مکمل نه وو، نو د داسې سړي په ډول دي چې سترګې یې ایستل سوې وي او پزه او غوږونه څیني پرې کړل سوي وي، او که اعمال موجود وو، لیکن روح او حقیقت غائب وو، نو داسې ده لکه چې د یو سړي سترګې خو موجوده وي لیکن د نظر څخه محرومه وي او غوږونه یې وي خو اورېدل نسي په کولای.

او د لمانځه اصل روح خشوع او خضوع ده، په ټوله لمانځه کي د زړه حاضرېدل لازمي دي ځکه په لمانځه کي اصل مقصود دا وي چې زړه د الله سره برابر وي، او د هیبت الهي او تعظیم الهي په وجه د الله ﷻ ذکر هر دم تازه ساتي، لکه چې پخپله الله ﷻ فرمایلي دي: أَقِمِ الصَّلَوٰةَ لِذِكْرِيٓ [طه] (لمونځ زما دیادولو د پاره قائم کړئ (ودروئ)) او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې ډېر لمونځ کوونکي داسې دي چې کومو ته د لمانځه څخه د غم او تکلیف څخه ما سوا هیڅ شئ نه نصیب کیږي، او د دې سبب د ده د زړه غلفت دی چې محض په بدن سره لمونځ کوي زړه یې غافله وي، همدارنګه یې فرمایلي دي؛ چې ډېر لمونځ کوونکي داسې دي چې د لمانځه شپږمه یا لسمه حصه یې لیکل کیږي او بس، یعني دومره اندازه لمونځ یې لیکل کیږي په کوم کي چې حضور د زړه وي، دوی وفرمایل لمونځ داسې کوه! لکه شوک چې تا رخصت کوي (او دا ستا آخري رخصت وي)، یعني په لمانځه کي خپل سوچونه او خواهشات بلکي هر ماسوی الله د زړه څخه رخصت کړه، او خپل ځان بالکلیه په لمانځه کي مصروف کړه.

داوجه ده چې حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمایي چې حضور ﷺ به زما سره په خبر وکي مشغول وو چې د لمانځه وخت به سو نو ته به دوی ﷺ زه پیژندلم نه به ما دوی ﷺ، یعني د لمانځه د وخت په راتلو سره به د الله تعالی عظمت او هیبت پر موږ راغلی، نبي کریم ﷺ فرمایي؛ چې په کوم لمانځه کي د بنده زړه غافله وي الله ﷻ د ده طرف ته کوري هم نه. د حضرت ابراهیم علیه السلام متعلق راغلي چې دوی به کله لمونځ شوع کړی نو زړه به یې داسې جوش کولو لکه دېګ چې پر نغري جوشیږي، او حضر علي رضی الله عنه چې به هر کله د لمانځه اراده وکړه نو بدن به یې رپیدی او رنګ به یې ژړ سو او فرمایل به یې چې د داسې امانت پوره کولو وخت راغلی د کوم بوج او تکلیف چې اسمانونو او ځمکي هم نه دي پوره کړی، حضرت سفیان ثوري رحمه الله فرمایي؛ چې په کوم لمانځه کي خشوع نه وي دغه لمونځ نه دی، او حضرت حسن بصري رحمه الله فرمایي چې په کوم لمانځه کي د زړه حضوري نه وي دغه د الله تعالی عذاب ته ډېر نژدې دی؛ حضرت معاذ بن جبل رضی

الله عنه فرمايي چي کوم سړی په لمانځه کي په اراده سره وګوري چي زما راسته طرف ته څوک ولاړ دي د ده لمونځ نه کيږي، که څه هم حضرت امام ابو حنيفه او امام شافعي او اکثرو علماؤ رحمهم الله اجمعين فرمايي چي که د اول تکبير په وخت کي يې زړه او دماغ حاضر وو، او فارغ وو، نو لمونځ به يې وسي، ليکن ياد لره! چي هغوی دا فتوی ضرورةً ورکړې ده ځکه چي په عامه توګه سره مخلوق د غفلت ښکار دی، او د دوی دا فرمايل چي لمونځ به صحيح سي نو د دې مطلب دا دی چي لمونځ کوونکي خو به د سياست د توري څخه خلاص سي ليکن د آخرت توبنه هغه لمونځ ثابتيږي په کوم کي چي زړه حاضر وي، مقصدا دا دی چي که يو سړی لمونځ خو وکړي ليکن د تکبير تحريمه په وخت کي فقط د ده زړه حاضر وي نو اُميد کېدای سي چي د بالکل لمونځ نه کوونکي په مقابله کي به د قيامت په ورځ د ده حال ښه او بهتره وي، ليکن د دې خبري هم ېېره ده چي د ده حال به بدوي ځکه چي د سستی او غفلت سره پر حاضرېدونکي خو زياته سختي کول کيږي په نسبت د هغه چي حاضر نه وي، په دې وجه حسن بصري رحمه الله فرمايي چي کوم سړی د زړه د حضوري څخه بغير لمونځ کوي هغه د ثواب په مقابله کي عذاب ته نژدې دی، بلکي په حديث شريف کي راغلي چي کوم لمونځ کوونکي خپل لمونځ د بې ځايه خيالاتو څخه محفوظ نه کړي، ده ته به د الله ﷻ څخه ليري والی نصيب سيږ، د دې آيتونو او احاديثو او اقوالو څخه دا معلومه سوه چي په حقيقي معنی کي ښه جاندار (او پوره) لمونځ هغه دی په کوم کي چي د اول څخه تر آخره پوري زړه حاضر وي او په کوم لمانځه کي چي فقط د اول تکبير په وخت کي زړه حاضر وي په دې کي د يو رتی (د ډېر لږ اندازې) څخه زيات روح نسته.

## دلمانځه د ارکانو د روح(راز) او حقيقت بيان

اوس د لمانځه د رازونو ذکر کيږي د ټولو څخه اول کوم آواز چي ستا په غوږونو کي پرېوځي دغه آذان دي کوم وخت چي آذان ستا په غوږ کي پرېوځي نو دا په شوق او ميني سره واوره او په کوم کار کي چي مشغول يې هغه پرېږده د دنيا څخه مخ واړوه، د اولو خلګو دا دستور وو چي د دنيا کار به يې پرېښودی آذان به يې اورېدی، اهنګر(ښن) که به چټک پورته کړی وو په آذانٓ اورېدو سره به يې وغورځوی، څپلی ګنډونکي (موچي) که به ستن په يو چمړه کي جګه کړې وه د آذان اورېدو سره به يې دغه ډول پرېښوده، د آذان په اورېدو به خلګو د قيامت ورځ يادوله او پخپل زړه کي به يې خوشحالي محسوسوله ځکه چي څوک نن دا آواز واوري او ځغلي هغه ته به د قيامت په ورځ

سهولت او آسانیتیا حاصله سي، یاد لره! که ته پخپل زړه کي د دې مُنادي په آواز سره خوشحالي محسوسه کړې نو د قیامت په ورځ به هم تا ته خوشحالي نصیبه سي.

**د اودسه راز**: د اودس راز دا دی چي د کپړو او د بدن پاکوالی دلسي وګنه چي د لباس او بدن پاکي په اصل کي د خلاف (پونس) د پاکی مترادف ده. اود دې طهارت روح د زړه پاکي ده چي مراد ځیني توبه، پښېماني او ندامت او د بدو اخلاقو څخه د زړه لیري کېدل دي، ځکه چي زړه د حق د نظارې ځای دی او زړه د لمانځه د حقیقت مقام دی، او تن د لمانځه د صورت.

**د عورت پټولو راز**: د دې راز دا دی چي کوم اندام ستا په بدن کي باعث د شرم او دعار (پیغور) دي دغه د مخلوق څخه پټ ساته! د دې راز او روح دا دی چي کوم امر ستا په باطن کي بد دی دغه د الله ﷻ څخه پټ ساته او په دې پوه سه! چي ته د الله ﷻ څخه یو شئ پټولای نه سې خو دا ده چي خپل باطن د هغه څخه پاک کړې (یعني د بدو څخه یې پاک کړی) او په تېرو ګناهونو باندي د پښېماني اظهار وکړې د راتلونکي) د پاره دا اراده وکړې چي بیا به پر دې بده لاره نه ځم چي: التَّائِبُ مِنَ الذَّنْبِ كَمَنْ لا ذَنْبَ لَهُ (د ګناهونو څخه توبه کوونکي داسي دی لکه چي ګناه یې بالکل کړې نه وي) توبه ګناهونه نیست و نابود کوي او بالکل یې خرابوي، که ستا څخه دا نه سې کېدای نو لږ تر لږه دا خو کېدای سي چي په ګناهونو د پښېماني، خجالت، بیرې او عجز او شرم پرده واچوې په لمانځه کي د شرمندګی په حالت کي د الله ﷻ په مخکي حاضر سي، لکه یو نافرمانه تښتېدلی غلام چي د غلطی څخه وروسته شرمنده خپل مالک ته واپس راسي او د خپلو شرمناکو غلطیانو احساس ده ته د سر پورته کولو اجازت نه ورکوي.

**د قبلې وطرف ته د مخ کولو راز**: د دې ظاهري معنی دا ده چي خپل ظاهري مخ د هر طرف څخه راو ګرځوه بس یو طرف ته سه، لېکن په دې کي چي کوم راز پټ دی هغه دا دی چي زړه او مخ د دوارو جهانونو د هر شئ څخه راو ګرځوه د الله ﷻ په ذات کي یې مستغرق (ډوب) کړه چي ظاهر او باطن دې پر یوه صفت سي، او لکه څنګه چي ظاهري قبله صرف یوه ده دغه رنګه باطني قبله هم فقط یوه ده او هغه د الله ﷻ ذات دی. او زړه د وسوسو او اندېښنو په بیابان کي سرګردان پاته کول داسي دي لکه مخ چي هاخوا دېخوا ګرځول دي، او لکه څنګه چي مخ په صورت د لمانځه کي هاخودې خوا کول دصورت د لمانځه څخه خلاف دي او دغسي لمونځ نه کیږي دغه رنګه د زړه په هاخوادېخوا فکرونو کي ګرځول د حقیقت او روح دلمانځه څخه خلاف دي، او په دې وجه نبي کریم ﷺ فرمایلي

دي چي: کوم سرى لمانځه ته ودرېدى خپل خواهش خپل مخ او خپل زړه يې په تصوّر الهي کې مشغول کړى نو ده لمونځ ادا کړى او داسي به راپورته کيږي لکه چي ګواکي په دغه ورځ د مور د نس څخه پيدا سوى دي، يعني د ټولو ګناهونو څخه به پاک سي، او دا بالکل حقيقت وګڼه چي لکه څنګه د ظاهري مخ د قبلې څخه په اړولو لمونځ باطليږي دغه ډول زړه او مخ د حق تعالى د تصوّر څخه په اړولو او په نورو انديښنو کي يې غورځول حقيقت او روح دلمانځه باطلوي، بلکي حق خو دا دي چي ظاهر د باطن غلاف (پوښ) خو دى په اصل کي د کار شئ هغه دى کوم چي په غلافکي دننه دى کنې د غلاف بذات خود څه قدر او قيمت سته؟

**د ولاړي (قيام) راز**: د دې ظاهر دا دى چي ته په شخصي توګه د الله ﷻ په مخکي د غلامى په انداز سره کښېنه ولاړ يې او پټ راز دا دي چي زړه د ټولو حرکاتو څخه منع او په انتهائي عاجزى او احترام سره د غلامى او نوکرى د حق د پاره تياروې او پکار دي چي په دې حالت کي خپل هغه وخت راياد کړې چي څنګه به د قيامت په ورځ د حق تعالى په حضور کي ولاړ يم کوم وخت چي زما ټول رازونه بالکل ظاهر کړل سي، او زما به مخکي ښکاره سي او په دې حقيقت پوه سي چي داوخت هم الله تعالى د ده په هر څه پوه دى او د هغه په نزد د ده ټول رازونه داسي ښکاره دي لکه چي د قيامت په ورځ به وي، او څه چي د ده په زړه کي دي يا وو هغه په پوه دى اوويني يې او د ده د ظاهر او باطن څخه خبر دى، ليکن تعجب او حيرانتيا دا ده چي که يو مشر دى دغه وخت په لمانځه کي ويني چي دا دى څنګه لمونځ کوي، نو دى به خپل ټول اندامونه بالکل په ادب کړي او هيڅ يو طرف ته به نه ګوري او د ده څخه به شرم کوي په لمانځه کي به تلواري نه کوي، حال دا دى چي دى ښه پوه دي چي الله ﷻ هم دى ويني ليکن د دې سره سره د هغه څخه شرم نه کوي، او د دې څخه زيات جهالت به څه وي چي د يو کمزوري او نه پيژندونکي څخه چي په لاس کي يې هيڅ اختيار نسته يې وسه او عاجزه دى د هغه څخه خو شرم کوي او په دې خيال کي چي دى يې ويني بالکل په ادب ودريږي، ليکن دمرګ د فرښتې د نظر څخه دى بالکل نه بيريږي او دا معمولي خبره ګڼي، همدا وجه ده چي حضرت ابو هريره رضى وويل: يا رسول الله ﷺ! د حق تعالى څخه شرم څنګه کول پکار دي؟ نو حضور ﷺ وفرمايل داسي لکه څنګه چي ته د خپل کور د يو صالح سړي څخه شرم کوې نو دغسي د هغه څخه هم شرم کوه، او د دې تعظيم ته په کتني سره په صحابه کرامو کي به ځيني په لمانځه کي داسي ساکت (چپ) او جامد ولاړ وو چي مرغانو پر دوى د ډبرو او لرګو ګمان کوي او پر کښېناستل به، او د چا په

زړه کي چي د الله ﷻ عظمت قائم سي نودی پوه وي چي موږ وینې او د ده هر طرف ته ګوري او د ده هراندام د خضوع او خشوع حامل وي، او په دې وجه نبي کریم ﷺ چي به کله څوک په لمانځه کي په ږیره په لاس وهلو ولیدی نو فرمایل به یې چي که د ده په زړه کي خضوع او خشوع وای نو د ده لاس به نه وای ښورېدلی.

**د رکوع او سجدې راز:** د دې ظاهري معنی خو دا ده چي په جسماني توګه د عاجزی او د ځان کموالي اظهار وکړل سي، لیکن اصل مقصد د زړه عاجزي ده او څوک چي په دې راز پوه سي، چي تندی پر ځمکه ایښوول د بدن د ټولو څخه د ډېر عزیز اندام په خاورو کي ایښوول دي د کومو (خاورو) څخه چي زیات خوار بل شئ نسي کېدای نو هغه په دې حقیقت به هم پوه سي چي پخپله د ده اصل هم د خاوري دي او دی به هم بیا یو وار په خاورو کي پټېږي او ملاوېږي، او دا اصلاً یقیناً داسي نه دي چي په ځان تکبّر او ناز وکړل سي لکه څنګه چي دی د خپلي بی کسی او عاجزی د راز څخه خبر سي، نو دغسي په هر کار کي یو پټ راز دی، یو حقیقت پکښي پټ دی چي هر کله انسان د دې څخه غافله سو نو د لمانځه ادا کولو په صورت کي ده ته د ظاهري صورت څخه ماسوا بل یو شئ به حاصله نسي.

## د قراءت حقیقت او د لمانځه د ذکرنو په باره کي

یاد ساته! چي هر هغه کلمه کومه چي په لمانځه کي ویل کېږي د هغې یو حقیقت وي چي دهغې پېژندل پکار دي او پکار دي چي ویونکي پخپله پر دغه صفت وي چي صادق ورته وویل سي، مثلاً د اللهُ کبر معنی دا ده چي الله دومره بزرګ او دومره لوی دي چي په عقل او معرفت سره نسي پېژندل کېدای که لمونځ کوونکي په دې معناګانو نه پوهېږي نو دی جاهل دی او که پوهېږي لیکن په زړه کي یې څه داسي شئ موجود وي چي هغه د حق تعالی څخه ډېر ښت ګڼي نو دی صادق نه دی او ده ته به داوویل سي چي دا خبره رښتوني ده لیکن ته درواغجن یې، او کله چي دی د الله ﷻ څخه زیات د بل شئ حکم منونکي سو نو ګواکي دغه شئ د ده په نزد د الله ﷻ په نسبت زیات بزرګ او ښت دی، نو بیا داسي ووایه! چي د ده معبود او الله دغه شئ سو د کوم چي دی خبره مني، لکه چي الله تعالی فرمایلي دي: أَفَرَأَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ إِلَٰهَهُ هَوَاهُ (نو تا د هغه سړی حالت لیدلی دي چي خپل خدای یې خپل نفساني خواهش جوړ کړی وي؟) او هر کله چي دی ووایي: وَجَّهْتُ وَجْهِيَ نو د دې معنی دا سوه چي ما

د زړه مخ د ټول عالم څخه راواړلو او د الله ﷻ طرف ته مې کړی لوس که د دې ویلو څخه وروسته هم د ده زړه بل شيءَ طرف ته ګوري نو ده چې څه په ژبه سره ویلي دي دغه درواغ دي او هر کله چې د الله ﷻ په مناجات کې اوله خبر درواغ وي نو خطره یې ښکاره ده. او کله چې یې وویل: حَنِيفًا مُسْلِمًا نو ګواکې د خپل مسلمانتوب دعوی یې وکړه. او نبي کریم ﷺ فرمايلي دي چې: مسلمان هغه دی د کوم د لاس او ژبې څخه چې مسلمانان محفوظه وي. نو پکار دي چې دی په دې صفت باندې وي یا اراده وکړي چې داسې به جوړیږي. هر کله چې الحَمْدُ وایي نو لازمه ده چې د الله ﷻ د ټولو نعمتونو یاد پخپل زړه کې تازه کړي. او د ده زړه په بشپړه توګه د شکر صفت جوړ سي ځکه چې دا کلمه د شکر ده او شکر په زړه سره ادا کېدای سي (نه چې په ژبه) د اِيَّاكَ نَعْبُدُ په ویلو سره حقیقت د اخلاص پر زړه تازه کېدل پکار دي. چې اِهْدِنَا وایي نو پکار دي چې د ده زړه ژړېدونکي فریاد کوونکي جوړ سي. ځکه چې په داسې ویلو سره دی د الله ﷻ څخه د هدایت سوال کوونکی جوړ سي. غرض دا چې د تسبیح او تهلیل او قراءت چې هر کله د ژبې څخه راباسي په هغه وخت کې دې دی پخپله هم دغسې جوړیږي په مخه دې ځي لکه څنګه چې دی په پوه دی. او زړه دې د دغه د معنی مطابق جوړوي یعني د دغې د معنی په زیور (ښایست) دې ښایسته کوي. او د دې تفصیل اوږد دی. او که غواړي چې د لمانځه حقیقت در ته نصیب سي نو داسې جوړ سه کنې په بې معنی صورت باندې به قناعت کوې.

## د زړه د حضوری علاج ګول

پوه سه! چې په لمانځه کې د زړه د غافله کېدلو دوې وجهې وي یوه ظاهري او بله باطني. او ظاهري سبب دا دی چې د لمانځه ادا کولو د پاره داسې ځای منتخب او غوره کړل سي کوم ځای چې لمونځ کوونکي یو شيءَ اوري یاوینې او زړه دغه طرف ته مشغولیږي چې زړه آخر دغوېږي او سترګو تابع دی. او د دې علاج دا دی چې په یو خالي ځای کې لمونځ ادا کړی چیرې چې یو قسم آواز، شور او نور ... نه وي. او که په دغه ځای کې تیاره وه نو زیات غوره دي یا دې بیا سترګې بندې کړي. ډېر عابدان ځان د پاره ډیر کوچنی او تیاره عبادت خانې جوړوي. ځکه چې په فراخ او خلاص ځای کې زړه منتشر کیږي. او ابن عمر رضی الله چې به کله لمونځ کوی نو قرآن او توره او نور هر شيءَ چې به د ده سره وو د ځان څخه به یې لیرې کولو چې فکر یې دې ته نسي.

او دریم سبب کوم چي باطني دي دا دی چي د ګلوډ او پرېشانه خیالاتو په وجه زړه دغسي منتشره کیږي او د دې علاج ډېر ګران او مشکل دی، او دا پر دوه قسمه دي: یو خو د یو نیمګړي کار په وجه سره چي د لمونځ شروع کولو په وخت کي لا ختم سوی نه وي، او په لمونځ کي زړه د هغه وطرف ته راګرځي (چي دا نیګمړی کار پوره کړي)، د دې علاج دا دی چي اول دي دغه کار ختم کړي او زړه دي د هغه څخه فارغه کړي، بیا دي په لمانځه کي بوخت سي، او په دې وجه نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي: که د خوراک او لمانځه یو وخت وو نو پکار دي چي خوراک اول وکړي، او دغه ډول که څه خبره کول یا اورېدل وي نو اول دي هغه وکړي، واوري بیا دي لمونځ کوي.

دویم قسم د هغو کاروباري اندېښنو سره متعلق دی کومي چي په دستي (فوراً) نه ختمیږي، یا خیالات عادةً ګلوډ او پرېشانه وي و پر زړه باندي مسلط سوي وي نو د دې علاج دا دی چي په لمانځه کي کوم ذکر او د قرآن آیتونه وایي د هغه پر معناوو باندي دي غور کول شوع کړي چي دا غور او فکر دغه ګلوډ خیالات د ده زړه څخه باسي، لېکن داسي سکون هلته کېدای چي خیالات په سختی سره غالب نه وي او شهوت او خواهش ډېر قوي نه وي، لېکن که خواهش ډېر قوي وو نو په داسي کولو سره به دا تصور لیري نسي، او د دې علاج (مسهل خوړل) دي چي د دې علت ماده د باطن څخه لیري سي او دا مسهل خوړل دا معنی چي هغه شیان د سره پرېښوول سي کوم چي فکرونه پیدا کوي چي دغه خیالات د سره څخه لیري سي او که دا سي نسي کولای نو هیڅکله هم د دغو فکرونو څخه نسي خلاصېدلای او د ده لمونځ به همېشه د نفساني خبرو څخه ډک او ککړ وي، او د ده مثال د داسي سړي دی چي تر یوې درختي لاندي ناست وي او غواړي چي د مرغیانو شور او آواز نه واوري، او بیا دې د پلره په لرګي یا ډېرو ویشتوېي د درختي څخه والوزوي خو هغه بیا دستي راځي او کښېني، حال دا دی چي که دی واقعي دا غواړي چي د دوی څخه خلاص سي نو تدبیر یې دا دی چي دغه درخته د بېخ څخه وکاږي، ځکه چي تر څو پوري دغه درخته وي د مرغیانو د کښېنستلو څخه نسي خلاص کېدای، دغه ډول تر څو پوري چي د یو کار ډېر خواهش د ده پر زړه باندي مسلط وي خیالات به په لازمي توګه سره ګلوډ وي،

یو سړي نبي کریم ﷺ ته یوه ښایسته کپړه په هدیه سره راوړه چي ګلونه په نقش او ښایست سره پر کښل سوي وو، په لمانځه کي د نبي ﷺ نظر پر هغه ولوېدی، نو د لمانځه څخه چي فارغه سو هغه کپړه یې لیري کړه او مالک ته یې واپس ورکړه او هغه پخوانی لباس یې واغوستی، دغه ډول یو وار د دوی په څپلۍ کي نوې تسمه ولګول سوه او په لمانځه کي د دوی ﷺ نظر پر هغه ولوېدی نو ښایسته

ورته معلومه سوه نو ویې فرمایل چې دا تسمه دې لیرې کړل سي او هغه زړه پخوانی تسمه دې پکښې ولګول سي، یو وار یې نوې څپلۍ جوړې کړې او دوی ﷺ ته ډېرې ښه معلومې سوې نو فوراً (سجدلاسه) پر سجده سو او ویې فرمایل چې زه د الله ﷻ په وړاندې عاجزي کوم چې د دې څپلۍ په وجه چې ماته ښه ښکاره سوې ما خپل دښمن جوړ نه کړي، او د باندې راغلو او د ټولو څخه مخکې چې کوم سائل (مسکین) په نظر ورغلی څپلۍ یې هغه ته ورکړې. طلحه رضی الله عنه خپل د خرما په باغ کې لمونځ کولو چې د درختو په مینځ کې یې یوه ښایسته مرغۍ ولیدله چې یوې خوا بلې خوا ته الوتله او د وتلو لار یې نه سوه پیدا کولای، نو د نبي کریم ﷺ په خدمت کې حاضر سو او د خپل زړه شکایت وکړی او بیا یې د کفارې په توګه هغه باغ خیرات کړی، او په تېرو مشرانو کې ډېرو بزرګانو داسې کړي دي او د زړه د حاضرولو علاج د دوی په نزد راغلی دی.

لنډه دا چې تر څو پورې چې د لمانځه د ادا کولو څخه مخکې د الله ﷻ ذکر پر زړه غالبه نه وي زړه په لمانځه کې نسي حاضریدای، او د کوم فکر سره چې په لمانځه کې مشغوله سي دغه برابر په زړه کې موجود وي، او څوک چې په حضور د زړه سره لمونځ ادا کول غواړي ده ته پکار دي چې د لمانځه څخه مخکې د زړه علاج وکړي او زړه خالي کړي،او دا داسې کېدای سي چې د دنیا مشغلې د خپل ځان څخه لیرې کړي او په قدر د ضرورت پر دنیا باندې قناعت کوونکی سي، او په دې سره هم صرف دا مقصد وي چې زړه فارغه وي او د فکرنو څخه خالي وي، او په عبادت کې چې تر څو پورې دا کیفیت موجود نه وي د زړه حاضریدل ممکن نه دي، ما سوا د دې څخه چې کله کله دا حضوري حاصله سي، نو پکار دي چې پر نفلونو زیات زور وکړي او زیاتوب پکښې وکړي او د زړه حاضرولو کوښښ کوي، تر دې چې د څلور رکعتونو په اندازه کې د زړه حضوري راسي چې په نفلو کې په جبري حاضري سره په فرضو کې په کراره کراره حاضري نصیب کېدای سي، ګواکي دا نفلونه د فرضو د حفاظت ذریعه جوړه سي.

## د جماعت سنّت کېدل

نبي ﷺ فرمایلي دي چې یو لمونځ په جماعت سره د هغو اوویشتو ۲۷ لمونځونو برابر دی کوم چې یواځې وکړل سي، او چا چې د ماخوستن لمونځ په جماعت سره ادا کړی ګواکي دی تر نیمې شپې پورې په عبادت کې مشغول سو، او بیا که یې د سهار لمونځ هم په جماعت سره ادا کړی نو ګواکي ده (پاته نیمه شپه په عبادت کې تېره کړه او) پوره ټوله شپه یې عبادت وکړی.

او فرمایل به یې چې: چا څلویښت ورځې پر لیسې په جماعت سره لمونځ ادا کړی، او اول تکبیر ځیني پاته نه سو د ده د پاره به د دوو شیانو څخه خلاصې ولیکل سي، یو د منافقت څخه او دویم د دوږخ څخه. او دا سبب وو چې د اسلافو څخه به د چا څخه تکبیر لولی فوت سو ده به درې ورځې خپل ماتم (غم) کولو. او که دجماعت څخه به پاته سو نو دا تعزیت به تر اووه ورځو پوري جاري وو. او سعید بن مسیب وایي چې: شل کاله وسوه چې مسلسل دآذان اولاز عین په داسي وخت کي زما په غوږونو کي زانګي کله چې دمسجد مخ ته ورسېږم؛او ډیرو عالمانو ویلې دي که دچا سره معقول عذر نه وي او یوازې (بغیر دجماعت څخه) لمونځ یې ادا کړی نو دا صحیح نه دی، نو جماعت لازم ګڼل پکار دي. او د دې سره د امامت او اقتداء دآدابو لحاظ ساتل پکار دي. اول دا چې تر هغه وخته پوري دي امامت نه کوي تر څو پوري چې خلک په رضا رغبت سره دی قبول نه کړي، او که هغوی ځیني د بیزارۍ اظهار کوی، نو د امام جوړېدو څخه دي احتراز کوي، او کله چې یې هغوی د امامت د پاره راوبلي نو بلاعذره دي د هغو دعوت نه ردوي. ځکه چې د امامت فضیلت ډېر زیات دی او دآذان کولو څخه هم ډېر بزرګ (لوړ) دي. او لازمه ده چې دکېږو د پاکوالی دي خیال ساتي او د لمانځه د وخت دي هم خیال ساتي او په اول وخت کي دي لمونځ ورکوي. او دجماعت په انتظار کي د تأخیر (ځنډ) نه کوي. ځکه په اول وخت کي د لمونځ ادا کولو فضیلت د جماعت څخه زیات دي. لک څنګه چې د صحابه کرامو قانون وو چې کله به دوه صحابه جمع سو نو د دریم انتظار به یې نه کوی. او د جنازې په لمانځه کي که به څلور خلک حاضر سو نو د پنځم انتظار به یې نه کوی. او نبي کریم ﷺ یوه ورځ لږ ناوخته تشریف راوړی نو د دوی ﷺ هم انتظار ونه کړی او عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه امام سو. او کله چې نبي کریم ﷺ هلته راورسېدوی نو یو رکعت ځیني فوت سوی وو. کله چې لمونځ وسو نو ټول په ېېره کي سوه چې دا څه وسو؟ نو نبي کریم ﷺ وفرمایل چې: تا سو ښه وکړل همېشه دغسي کوئ.او پکار دي چې امامت محض د الله په خاطر وکړل سي او په پوره اخلاص سره وکړل سي او څه اُجرت (تنخوا) نه پر واخیستل سي. او تر څو پوري چې صفونه برابر سوي نه وي تکبیر نسي کولای او تکبیرونه دي په لوړ آواز سره کوي او دامامت نیت دي کوي چې ثواب ورته ملاو سي، ځکه چې په داسي نه کولو سره جماعت خو به صحیح وي لیکن د جماعت ثواب به حاصل نه وي. او په جهري (سهار، ماښام او ماخوستن) لمانځه کي دي قرات په لوړ آواز سره کوي او درې سکتې به کوي یعنې یوه سکته (وقفه) به هغه وخت کوي چې تکبیر وکړي او وَجَّهتُ وَجْهِي

ووايي، او مقتدی به په سورة فاتحه ويلو کي مشغوله سي، دويمه هغه کله چي سورت فاتحه ووايي، يعني بل سورت به دغسي پرله پسې نه شروع کوي بلکي لږ وقفه به کوي چي په مقتديانو کي که چا فاتحه نه وي ختم کړې چي ختمه يې کړي، او چي سورت ووايي نو لږ به خاموشه سي چي تکبير د دې سورت دآخري الفاظو څخه جلا سي، او مقتدی به د سورت فاتحې څخه ما سوا نور شئ نه وايي، ما سوا هغه سړی څخه کوم چي دامام څخه دومره ليري وي چي د امام آواز نه ورسيږي، او رکوع او سجدې به سپکي کوي يعني د درې وارو څخه زيات تسبيح به نه وايي، او حضرت انس رضی الله عنه فرمايي چي د نبي کريم ﷺ د لمانځه څخه به د هيڅا لمونځ مختصره نه وو، او د دې سبب دا دی چي په مقتديانو کي به څوک ضعيف وي او د چا به څه کار وي، او پکار دي چي مقتدی د امام څخه وروسته (په سجده او رکوع کي) ځي يعني په امام پسې دي وروسته کښېني ولاړېږي، پو ځای دي نه ور سره ځي، تر څو پوري چي دامام تندی ځمکي ته نه وي رسېدلی مقتدی دي سجدې ته نه ځي، او تر څو پوري چي امام رکوع ته نه وي رسېدلای دی دي د رکوع قصد نه کوي، چي متابعت د دې نوم دی، که ارادةً يو مقتدی د امام څخه مخکي ځي نو لمونځ به يې فاسد سي، او کله چي سلام وګرځوی نو دومره وخت اندازه دي کښېني چي دا دعاء ختمه سي: اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ وَاِلَيْكَ يَرْجِعُ السَّلَامُ وَاَدْخِلْنَا دَارَ السَّلَام تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ يَا ذَاالْجَلَالِ وَالْاِكْرَامِ او بيا دي ژر پورته سي مقتديانو ته دي مخ کړي دعاء دي وغواړي، او مقتدی دي د امام څخه مخکي نه ولاړېږي ځکه چي دا مکروه دي.

## د جمعې دلمانځه فضيلت

پوه سه! چي د جمعې ورځ ډېر بزرګه ده او فضيلت يې ډېر زيات دی او د مؤمنانو اختر دی، او نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: چي چا بلاوجه درې جمعې ناغه وکړه (يعني بغير ديو ضرورته څخه يې درې د جمعې لمونځونه قضاء کړه) ده اسلام شا ته وغورځوی او د ده زړه په زنګ ککړ سو، او په حديث شريف کي دي چي: الله تعالی د هري جمعې په ورځ شپږ لکه خلک د دوږخ د اور څخه خلاصوي، دلرنګه فرمايي چي دوږخ روازنه د زوال په وخت کي ګرموي او دغه وخت لمونځ نه دي پکار سوا د جمعې د ورځي څخه چي په دې ورځ دوږخ نه ګرميږي، او فرمايي چي څوک دجمعې په ورځ د دې دنيا څخه رخصت سي (مړ سي) دی به په شهيدانو کي ليکل کيږي او د قبر د عذاب څخه به نجات ورکړل سي.

**د جمعې شرطونه:** پوه سه! چې کوم شرطونه د نورو لمونځو دي هغه دجمعې هم دي لېکن شپږ شرطونه د دې څخه ماسوا دي، کوم چې صرف د جمعې په لمانځه پورې مخصوص دي،
اول شرط وخت دي تر دې چې که مثلاً امام د ماپښين د لمانځه څخه د ورو سته سلام وګرځوی نو جمعه به فوت سي او په دې صورت کې به د ماپښين لمونځ اداکول وي،
دويم شرط ځای دي يعني دا لمونځ په صحرا کې يا په خېمو کې نسي ادا کېدای بلکې پکار دي چې په ښار کې وي يا په داسې کلي کې په کوم کې چې د مقيمو شمېر څلوېښت آزاد بالغ عاقل سړي وي، او که په مسجد کې هم نه وي نو جائز دي.
دريم شرط د شمېر دی يعني چې تر څو پورې چې څلوېښت تنه آزاد مکلف مقيم سړی حاضر نه وي د جمعې لمونځ صحيح نه دي او بنکاره ده چې که په خطبه يا لمانځه کې تعداد د دې څخه کم وو نو صحيح نه دی.
څلورم شرط جماعت دي چې که جلا جلا جمعې لونځ ادا کوي نو صحيح نه دي، لېکن که چا آخري رکعت ونيوی، نو د ده لمونځ به صحيح وي که څه هم په دويم رکعت کې دی يوازې وي، او که دويم رکعت يې د رکوع په حالت کې نه ونيوی نو اقتداء به ضروري کوي خو نيت به د ماپښين د لمانځه کوي.
پنځم شرط دا دی چې د دې جمعې د لمانځه څخه مخکې دا لمونځ نه وي سوی ځکه په يو ښار کې ديو څخه زيات د جمعې لمونځونه نه دي کول پکار. ماسوا د دې صورت څخه چې هغه ښار ډېر غټ وي او ټول لمونځ کوونکي په مسجد کې نه ځايږي، او که د ځای کېدو سره سره په دوو يا زياتو ځايونو کې دجمعې لمونځ يې ادا کړی نو په دوی کې به صحيح هغه وي د کوم تکبير اولیٰ چې اول سوی وي.
شپږم شرط دوې خطبې دي، کومې چې د لمانځه څخه مخکې پکار دي او دواړه فرض دي او د دواړو خطبو په مينځ کې کښېنستل هم فرض دي او په ولاړې يې ويل فرض دي او په اوله خطبه کې څلور شيان فرض دي: (۱) تحميد، صرف الحَمْد لله ويل کافي دي (۲) پر نبي کريم ﷺ درود ويل (۳) د تقوی اهميت پر خلکو واضح کول په دې ضمن کې: أُوصِيكُم بِتَقْوَى اللهِ ويل کافي دي او (۴) د قرآن کريم يو آيت ويل؛ او په دويمه خطبه کې هم دا هر څه فرض دي لېکن محض د قرآن د آيت ويلو پر ځای دعاء لوستل فرض دي، او دا لمونځ پر ښځو غلامانو کوچنيانو او مسافرانو فرض نه دی او

دلرنګه دا هم رلوا دي چي د ختو بلران او د ناروغه د پوښتني په وجه د جمعې لمونځ پريږدي لېکن په دې صورت کي غوره دا ده چي تارک د جمعې د ماپښېن لمونځ داسي وخت ادا کړی چي خلګ د جمعې لمونځ وکړي.

**د جمعې آداب:** پکار دي چي په جمعه کي د لسو آدابو او سنتو خيال وساتي، اول دا چي د پنجشنبې (زيارت) د ورځي شخه دي په ربښتوني زړه سره د جمعې د استقبال تياري شروع کړي، مثلاً سپيني (پرېولي) کپړي تياري کړي او د خپلو کارونو شخه دي فراغت حاصل کړي چي د سهار لمونځ په آرامه سره ادا کړي او د جمعې د لمانځه د پاره په فراغت سره هلته ورسي، او د پنجشنبې (زيارت) د ورځي د ماپښېن د وخت شخه خالي کښېناستل او په تسبيح او استغفار کي مشغولېدل پکار دي چي د دې وخت فضيلت ډېر لوی دي او د دغه وخت د فضيلت برابر دي کوم چي د جمعې په ورځ دغه وخت راځي، او ويل سوي دي چي د جمعې په شپه د خپلې بي بي سره کور والی سنّت دی چي د جمعې د ورځي د پاره پر دواړو غسل لازم سي، دويم دا چي غسل سهار سهار وکړي که مسجد ته ژر تلل مقصود وو، کنې تأخير (ځنډ) بنه دي، نبي کريم ﷺ د جمعې د غسل د پاره تاکيد فرمايلی دي تر دې چي ځيني عالمان دې غسل ته فرض وايي، تر دې چي د مدينې منورې خلګ چي کله چاته سخته خبره کوي نو وايي چي ته خو د دغه سړي شخه هم نا کاره يې کوم چي د جمعې په ورځ غسل نه کوي، د جمعې په ورځ که شوک د جنابت غسل کوي نو هم پکار دي چي د جمعې د غسل په نيت سره زياتي اوبه پر ځان واچوي، دريم دا چي مسجد ته په صفايي او ښايست کي راسي اود صفايي شخه مراد دا دی چي وېښته وخريوي نوکان پرې کړي او که په حمام کي يې دا هر شه کړي وي نو کافي دي، اود ښايست شخه مراد دا دی چي سپيني کپړي واغوندي ځکه چي سپين لباس د الله ﷻ خوښ دی او خوشبو (عطر) دي استعمال کړی او په دې سره دي فرض د مسجد او د لمانځه تعظيم وي او ځکه چي د ده شخه بدبويي نسي ولاړه چي خلګو ته تکليف نه وي، او خلګ خبري پسي ونه کړي، شلورمه خبره دا ده چي سهارسهار جامع مسجد ته ولاړ سي، ځکه چي د دې فضيلت ډېر زيات دي،او پخواني خلګ به د ډېوې (څراغ) په رڼا کي تلل (يعني په تياره کي به تلل) او په لاره کي به داسي ګڼه ګوڼه (رش) وو چي تلل به په لاره کي ستونزمن وو، ابن مسعود رضی الله يوه ورځ سهار وختي جامع مسجد ته ولاړی نو دري کسان يې هلته وليده نو ځان يې ملامت کړی ويل يې چي که ته په شلورمه درجه کي يې نو ستا به شه حال وي؟ او وايي چي لومړی

بدعت کوم چې په اسلام کې لاره پیدا کړه دا وو چې مسلمانانو دا سنت ترک کړی حال دا دی چې یهودیان او نصارٰی د دستور او قانون مطابق د شنبې او یکشنبې په ورځ خپلو عبادت خانو ته سهار وختې ځانونه رسوي، او مسلمانانو پخپله خاص ورځ د جمعې سهار وختې جامع مسجد ته تلل پرېښودل نو آخر د دوی حشر به څه وي؟ او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې کوم سړی د جمعې په ورځ په اول ساعت کې جامع مسجد ته ځي دی د هغه سړي په دول دي کوم چې یو اوبن قرباني کړي او که په دویم ساعت کې ولاړ سي نو ګواکې ده غوا قرباني کړه او که په دریم کې ولاړ سي نو ګواکې ده بزه (وزه) قرباني کړه او په څلورم ساعت کې د چرګ او په پنځم ساعت کې د چرګ د هګۍ ثواب حاصلیږي، او کله چې خطیب د کور څخه راووځي نو دغه فرښتې کومې چې دا ثوابونه لیکي خپل کاغذات را ټول کړي په خطبه اورېدلو مشغولې سي او بیا چې څوک راځي نو ده ته د لمانځه د ثواب څخه ماسوا نور هیڅ نه حاصلیږي؛

پنځم دا چې څوک وروسته راسي هغه دې د خلکو پر اوږو د مخکې تللو د پاره پښې نه اړوي، ځکه په حدیث شریف کې دي چې څوک داسې کوي نو د قیامت په ورځ به د ده څخه پُل جوړ کړای سي چې خلک به پر تیریږي، او نبي کري ﷺ یو واریو څوک په داسې کولو ولیدی نو د لمانځه څخه وروسته یې د هغه څخه پوښتنه وکړه چې فلانیه! تا د جمعې لمونځ ولې ونه کړی؟ هغه وویل یا رسول الله ﷺ زه خو بالکل ستا سو په خوا کې وم، ویې فرمایل: ما خو دا لیدل چې تا د خلکو پر اوږو پښې اړولې، ګواکې که څوک داسې کوي دی د هغه سړي په دول دی چا چې لمونځ د سره کړی نه وي ها! که اول صف خالي وو بیا داسې کولای سي ځکه چې دا ګناه د هغو خلکو ده کومو چې صف خالي پرې ایښیی دی؛

شپږم دا چې د هغه سړي په مخ کې دې دې نه تیریږي کوم چې لمونځ کوي او کله چې کښېني نو پکار دي چې دیوال یا (پایې) پیلر ته نژدې کښېني چې څوک یې په مخ کې تېر نه سي ځکه چې د لمونځ کوونکي په مخ کې د تېرېدلو څخه منع سوې ده او په حدیث کې دي چې د چا د جای نماز (مسلې) په مخکې د تېرېدلو څخه دا غوره دي چې دا تېردونکي خاورې سي او هوا یې هاخوا دیخوا یووسي؛

اووم دا چې د اول صف کوشش دې کوي او که دا ممکنه نه وي نو تر څو پورې چې کېدای سي د نژدې کښېنستو کوشش دې کوي ځکه چې دا زیاته غوره ده، لېکن دا خیال دې کوي چې که په اول صف کې لښکر (پوځ) ناست وي یا هغه خلک کومو چې د ورېښمو کپړې اغوستې وي یا پخپله خطیب

دوربښمو قبا(چپنه) اغوستې وي یا یې توره د سرو زرو وي یا سره زر پکښې لګیدلي وي یا ده غه خلکو سره بل داسې شئ موجود وي کوم چې په منکراتو کې شمارېږي نو په داسې صورت کې چې څومره د دوی څخه لیري وي غوره ده ځکه دکومو خلکو سره چې د منکراتو څخه یو شئ موجود وي ددوی په خوا کې قصداً کښېناستل مناسب نه دي؛

اتم دا چې کله خطیب بهر سو نو څه خبري دې نه کوي او د مؤذن په جواب کې او په خطبه اورېدو کې دې فکر کوي، بلکې که بل څوک خبري کوي نو د دوی د منع کولو د پاره دې هم د اشارې څخه کار اخلي نه چې د ژبې څخه. ځکه چې نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې کوم سړی د خطبې په وخت کې بل چاته په ژبه سره "چپ سه" یا "غوږ کښېږده" ووایي نو د ده دا خبره پرځپل ځای ډېره عبث ده او څوک چې دغه وخت د عبثو مرتکب کېږي د ده د جمعې لمونځ نه کېږي، د خطبې په خت کې که څوک دومره لیري ناست وي چې خطبه نه اوري هم به خاموش ناست وي او داسې ځای دې هم نه کښېني کوم ځای چې خبري کېږي او په داسې صورت کې به سوا د تحیة المسجد څخه بل لمونځ هم نه کوي؛

نهم دا چې کله د لمانځه څخه فارغه سي نو اووه واره به الحمد اووه واره قل هو الله او اووه واره معوذتین به وایي چې په حدیث کې راغلي دي چې دا یو تعویذ دی کوم چې د یوې جمعې څخه تر بلې جمعې پورې د شیطان څخه د پناه کار ورکوي او دا دعاء به وکړي: اَللّٰهُمَّ يَا غَنِيُّ يَاحَمِيْدُ يَامُبْدِئُ يَارَحِيْمُ يَاوَدُوْدُ اَكْفِنِيْ بِحَلَالِكَ عَنْ حَرَامِكَ وَاَغْنِنِيْ بِفَضْلِكَ عَنْ مَّنْ سِوَاكَ. او ویل سوي دي چې کوم سړی دا دعاء همیشه وایي هغه به یوه ورځ داسې ځای ته ورسیږي چې د هغه د مخکې څخه د ده علم نه وو او د خلکو څخه به بالکل بې نیازه وي، او بیا دې شپږ رکعته سنت ادا کړي ځکه چې د نبي کریم ﷺ څخه د داغه مقدار په باره کې ذکر دي؛

لسم دا چې د جمعې د لمانځه څخه وروسته به دومره وخت په مسجد کې وي چې د ماځګیر لمونځ ادا کړي او که تر ماښامه پورې هلته پاته سي نو فضیلت یې زیات دي او وایي چې په ثواب کې د یو حج او عمرې برابر دی، او که کور ته ولاړ سي نو کوشش دې کوي چې د الله ﷻ د ذکر څخه غافله نسي چې هغه ډېر قدردانه او مقبوله ساعت (ګړۍ) کوم چې خاص په جمعه کې د غفلت په حالت کې تېر نسي او دغسې یې دی دفضیلت څخه محرومه نسي.

**د جمعې د ورځې آداب:** پکار دي چې په دې ورځ د اوو فضیلتونو لټون (تلاش) وکړي؛

اول دا چې سهار وختي په يو علمي مجلس کې حاضر سي او د قصو او نورو مجلسونو څخه ليري وسي او ديو داسې سړي په مجلس کې حاضر سي د کوم خبري او سيرت (کړه وړه، اخلاق) چې د دنيا سره د رغبت پر ځای د آخرت طرف ته راغب کوونکي وي او د چا په خبرو کې چې دا تاثير نه وي د هغه مجلس ته علمي مجلس نه ويل کيږي او په حديث شريف کې دي چې داسې مجلس ته حاضري کول د زر رکعته لمانځه څخه زيات ثواب لري، دويم دا چې په دغه ورځ کې يو داسې ساعت هم راځي کوم چې ډېر بزرگ، قدردانه او شريف دی چې د حديث په روی سره په دغه وخت کې کوم حاجت چې وغوښتل سي پوره کيږي، لېکن په دې کې اختلاف دی چې دغه خوره ساعت کوم يو دی؟ يعني معلومه نه چې دلمر راپورته کېدو وخت دی يا د زوال يا د غروب دلمر يا د جمعې د خطبې وخت دی يا د جمعې د آذان يا د خطيب منبر ته د راتلو وخت يا د لمانځه د درېدو وخت يا دماښيگر د لمانځه وخت دی معلومه نه ده چې کوم يو دي او صحيح هم دا ده چې وخت يې معلوم نه دي او د شب قدر په دول په دې کې هم ابهام دی، نو پکار ده چې توله ورځ د دې ساعت په مراقبه کې وي، او په توله ورځ کې يو ساعت هم د ذکر او عبادت څخه خالي پاته نسي، دريم دا چې په دې ورځ پر نبي کريم ﷺ ډېر زيات درود ووايي چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: چې کوم سړی په دې ورځ اتيا واره پر ما درود وايي د ده داتيا کالو گناه به وبخښل سي، او کله چې خلکو پوښتنه وکړه يا رسول الله ﷺ! پر تا به درود څنگه وايي؟ نو ويې فرمايل چې دلوايا ست: اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ صَلٰوةً تَكُوْنُ لَكَ رِضًا وَّلِحَقِّهٖ اَدَاءً وَّاَعْطِهِ الْوَسِيْلَةَ وَالْفَضِيْلَةَ وَالْمَقَامَ الْمَحْمُوْدَ الَّذِيْ وَعَدْتَّهٗ وَاجْزِهٖ عَنَّا مَا هُوَ اَهْلُهٗ وَاجْزِهٖ اَفْضَلَ مَا جَزَيْتَ نَبِيًّا عَنْ اُمَّتِهٖ وَصَلِّ عَلٰى جَمِيْعِ اِخْوَانِهٖ مِنَ النَّبِيِّيْنَ وَالصَّالِحِيْنَ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ وايي چې کوم سړی د جمعې په ورځ اووه واره داوايي ده ته به يقيناً د نبي کريم ﷺ شفاعت نصيب سي، او که د: اَللّٰهُمَّ صل عَلٰى محمدٍ وعَلٰى اٰل مُحَمَّد څخه زيات ونه وايي نو هم کافي ده.

څلورم دا چې په دې ورځ دې د قرآن کريم تلاوت ډير زيات وکړي او په ځانگړې توگه دې سورت الکهف وايي چې د دې فضيلت په حديث کې بيان سوی دي او د پخوانيو بزرگانو او عبادت گذارو دا عادت پاته سوی دي، چې د جمعې په ورځ زر واره قل هو الله احدٌ، زر واره درود، زر واره استغفار، زر واره سبحان الله، زر واره الحمد لله، زر واره لا اله الا الله، او زر واره اَللّٰهُ اَكْبَر ويل پکار دي.

پنځم دا چي په دې ورځ دې لمونځ ډیر کوي ځکه په حدیث کي دي چي کوم سړی جامع مسجد ته ولاړ سي بلا ځنډه څلور رکعته لمونځ ادا کړي او په هر رکعت کي یو واړ الحمد لله او پنځوس واره قل هو الله احد وایي دی به تر هغه پوري د دې دنیا څخه ولاړ نسي تر څو چي د ده ځای په جنت کي ده ته ونه ښوول سي یا د دغه زیری ورته ور نه کړل سي، او مستحب دا دی چي په دغه ورځ په څلور رکعته لمانځه کي څلور سورتونه: سورة الانعام. کهف. طٰهٰ او یٰس تلاوت کړي او که داسي نسي کولای نو سورة سجده، لقمان، دُخان او المُلک دي تلاوت کړي، او ابن عباس رضي الله عنه به دجمعې په ورځ هیڅ کله هم د تسبیح لمونځ نه پرېښوول، کوم چي یو مشهور او معروف لمونځ دی، او ښه دا ده چي تر زواله پوري لمونځ وکړي او بیا د ماپښین د لمانځه پوري په علمي مجلس کي کښېني او د دې څخه وروسته دي تر ماښامه پوري په تسبیح او استغفار کي مشغوله وي.

شپږم دا چي په دې ورځ صدقه او خیرات مه هېروه! هغه که د یوې یوه ټکره ولي نه وي چي په دې ورځ صدقه ورکول زیات ثواب لري او کوم سائل (سوال کوونکی، مسکین) چي دخطبې پر وخت څه وغواړي د ده رټل او بندول پکار دي ځکه چي دغه وخت یو شئ ورکول مکروه دي.

اووم دا چي په ټول اوونۍ (هفته) کي داورځ دآخرت د پاره سالمه او خوندي ساته او د دنیا کاروبار په باقي ورځو کي کوه! ځکه د الله جل جلاله ارشاد دی: فَإِذَا قُضِيَتِ ٱلصَّلَوٰةُ فَٱنتَشِرُواْ فِى ٱلْأَرْضِ وَٱبْتَغُواْ مِن فَضْلِ ٱللَّهِ [الجمعه] (بیا چي کله دجمعې لمونځ وسي نو منتشره (خواره) سئ ځمکي ته او د خدای رزق تلاش کوئ) حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چي د دې څخه مراد اخیستل خرڅول یا کسب معاش نه دي بلکي د دې مطلب طلب دعلم دی او د وروڼو زیارت، د ناروغانو پوښتنه او په جنازه کي شرکت او نور، او نور د دې ډول کارونه مراد دي.نو د لمانځه په باره کي چي کوم لازمي امور وو هغه بیان کړل سو او د نورو مسئلو چي څنګه ضرورت پېش کیږي پوښتنه کول یې پکار دي چي په دې ډول مختصر کتاب کي د دغو تفصیل بیانول ممکن نه دي؛

لېکن په لمانځه کي وسوسې ډیرې پیدا کیږي نو د دغو طرف ته ا شاره سوې ده چي یاد ساته! داوسوسې د هغه سړي په زړه کي تیریږي د کوم په عقل کي چي خرابي یا د سودا په مرض کي مبتلاوي یا د شریعت څخه جاهل او بې خبروه او د نیت د معنی څخه خبر نه وي، ځکه نیت هغه رغبت دی کوم چي تا مغ پر قبله درېدو ته مجبوره کوي، او ته پوره ته کیږې چي د الله جل جلاله حکمونه پر

ځای کړي، لکه مثلاً کنا ته یو څوک ووایي چې فلانی عالم راغلي په دې وجه پورته سه او د هغه احترام وکړه نو دغه وخت ته دا نه وایې چې زه د فلانی سړي په وړینا د فلانی عالم احترام ته پورته کیږم بلکې بغیر د یو څه ویلو څخه ته سمدلاسه پورته سې ځکه چې دا نیت د ځانه څخه ستا په زړه کې پیدا کیږي بغیر د دې څخه چې ته په ژبه یا زړه کې یو څه ووایې، ځکه چې څه ته په زړه کې وا یې دغه ستا د نفس خبره وي نه چې دنیت ځکه نیت خو هغه رغبت دی کوم چې تا پورته کړي.

هو! دا ضروري ده چې تا ته دا علم په هر حال وي چې حکم د چا دی؟ دارنګه تا ته دې معلومه وي چې کوم کوم لمونځ ته ادا کوې، دغه د ماپښین دي که د ماښیګر؟ هر کله چې زړه د دې څخه غافله نه وي بیا اَللّٰهُ اَکْبَر وایه او که غافله وو نو د یادولو کوشش وکړه او داګمان مه کوه چې د ادا کولو د لمانځه، فرض، د ماپښین لمونځ او نور د ټولو معنی په یو وار په پوره ډول په زړه کې جمع کول پکار دي، لیکن کوم چې نژدې وي هغه د یو یل سره جمع کړه چې دغه اندازه نیت کافي دی، ځکه که ستا څخه څوک پوښتنه وکړي چې تا د ماښیګر لمونځ کړی دي نو په جواب کې ته ووایې چې هو! اوس څه وخت چې ته "هو" وایې نو دا ټولي معناګاني ستا په زړه کې سته خو لیکن تفصیلاً نه دي نو خپل ځان ته د یادولو د پاره ستا د خپل ځان څخه پوښتنه کول دغسې دي لکه چې بل سړی ستا څخه پوښتنه کوي چې تا فلانی لمونځ کړی دي، او په یادېدلو ستا اَللّٰهُ اَکْبَر ویل داسې دي لکه چې د چا په جواب کې "هو" ویل، او څوک چې د دې څخه په زیات لټون او تلاش کي مُصر (تاکید کوونکی) دی د هغه زړه او لمونځ د منشتر او خرابېدو نذر کیږي، نو پکار دي چې آسانې اختیار کړای سي، کله چې داسې وکړی نو بیا چې په کوم صفت بلدي و سي لمونځ به صحیح وي، ځکه چې د لمانځه نیت هم د نورو کارونو د نیت په ډول دی او دلوجه وه چې د نبي کریم ﷺ او صحابه کرامو ﷺ په زمانه کې به چا ته د نیت په باره کې وسوسه نه کېده، ځکه چې هغوی د دې امر څخه ښه خبر وو چې دا کار بالکل آسانه دی او کوم سړی چې په دې هم نه پوهیږي هغه جاهل (ناخبره) دی.

## پنځم اصل د زکوٰة ورکولو په باره کې

پوه سه! چې زکوٰة د اسلام د لرګانو څخه دی، نبي ﷺ فرمایلي دي چې د اسلام بنیاد پر پنځو اُصولو بلدي دی یعني: (۱) کلمه: لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ (۲) لمونځ (۳) زکوٰة (۴) روژه (۵) او حج، او په حدیث شریف کې دي چې کوم خلګ سره زر او سپین زر لري او زکوٰة نه ورکوي د دوی

څخه به د هر یوه په سینه کي داسي داغ (زخم) لګول کیږي چي شا ته به څیني وځي او پر شابه ور لګول کیږي چي سینی ته را اوځي او د چا سره چي څاروي (پسونه، میږي، غویان، غواوي، بزې (وزې) او نور.....) وي او زکوة نه ورکوي نود قیامت په ورځ به دا څاروي پر دغو خلکو مسلط کړای سي چي په ښکرونو یې وهي او په پښو کي یې وهي او دغه سي به یو یو راځي دوی به وهي او چي ختمیږي بیا به یې د سره شروع کوي او وهي به یې تر دې چي د ټولو خلکو حساب کتاب پوره سي، او دا حدیث په صحاح کي موجود دی، نو د سرمایه دارنو د پاره د زکوة علم ازده کول فرض دی.

**د زکوٰة قسمونه او شرطونه**: د شپږو قسمونو زکوة واجب دی. اول قسم د څارویانو متعلق دي په کومو کي چي اوښ، غوا، پسه بزه (وزه) شامل دي په اسونو او خرو او نورو حیواناتو کي زکوة نسته، او د دا څارویانو زکوة تر څلورو شرطونو لاندي واجبیږي: (۱) څاروي د کور په وښو بانَدي نه ساتل کیږي بلکي په صحرا کي کتل کیږي، چي خرڅ زیات نه پر راځي ځکه چي که په کور کي یې وا ښه ورکول کیږده، او خرڅ یې د زکوة برابر سو نو زکوٰة پر واجب نه دی (۲) دویم دا چي داسي څاروي پرله پسې تر یوه کاله پوري د مالک په تصرف کي پاته سي، ځکه چي که په کال کي دننه د ده د تصرّف څخه ووځي نو زکوة نسته بانَدي، لیکن د دوی بچیان هغه که د کال په آخره کي پیدا سي په حساب کي به شمارل کیږي، او د اصل مال په تبعیت کي به پر دوی زکوة واجب وي، (۳) دریم دا چي که دې څارویانو په وجه امیر جوړ سوی وي او د ده په تصرف کي وي لیکن د کال په دوران کي که دغه څاروي ورک سي یا یې څیني ظالم غصب کړي نو زکوة به واجب نسي، لیکن که وروسته د امکاني فائدې سره ده ته واپس ملاوسي نو پرده به د تېر کال زکوة هم واجب سي، مګر دا مال که د دومره مالیت وي څومره چي پر ده قرض (پور) دی نو صحیح دا ده چي پر ده زکوة واجب نه دي، ځکه چي په حقیقت کي دی فقیر متصور کیږي. (۴) که مال فقط د نصاب برابر دی او د دې په وجه دی مالدار دی خو په لږ مال سره سرمایه داره کېدای نسي او تر څو پوري چي اوښان پنځه نه وي یو څه څیني ورکول واجب نه دي او که پنځه اوښان وو نو یوه بزه (وزه) یا پسه د زکوة په توګه واجب دي، او په زکوة کي د وو کولو بزه (وزه) به دیو کال څخه کمه نه وي او که پسه وو نو د وو کالو څخه چي کم نه وي او کله چي پنځه ویشت - اوښان سي نو د یوه کال او ښه به په زکوه کي ورکوي او که نه وو نو دوه کلنی اوښان دي ورکړی او د دې څخه وروسته چي د اوښانو شمېر شپږدېرو شو - ته نه وي رسېدلی د دغه څخه زیات څه واجب نه دي، او چي شپږ دېرش سو نو د دوو کالو اوښه ده، او چي شپږ

څلوېښت سي نو د دريو کالو، چي يو شپېته "سي نو څلور کلنی لوښه ده، چي شپږ اويا سي نو دوې داني دوه کلنی لوښي، چي يو نوي" سي نو دوې داني درې کلنی لوښي، چي يو سل يو ويشت "سي نو درې داني دوې کلنی لوښي په زکوٰة کي به ورکوي؛

او د دې څخه وروسته به داسي حساب کوي چي په هرو پنځوسو لوښانو کي يوه درې کلنی لوښه او په هرو څلوېښتو کي يوه دوه کلنی؛

او غواوي چي تر څو پوري دېرشو" ته نه وي رسېدلي زکوٰة نسته پر، او چي دېرش سي نو د يوه کال يوه غوا ده او چي څلوېښت سي نو دوه کلنی غوا ده او چي شپېته سي نو دوې يو کلنی غواوي واجب دي، اوبيا به دغسي حساب کوي چي په هرو څلوېښتو کي دوه کلنی او په هر دېرشو کي يو کلنی غوا ده؛

او د بزې (وزې) په صورت کي دا چي په څلوېښتو بزو کي يوه بزه ده او په يو سل يو ويشت کي دوې دي په دوو سوو يوه "" کي درې دي په څلور سوو کي څلور بزې دي، او د دې څخه وروسته به داسي حساب وي چي په هرو سلو کي به يوه بزه د زکوٰة په طور واجب ده،او دا بزه به ديو کال څخه کمه نه وي، او که پسه وو نو بيا د دوو کالو پکار دي او که دوو کسانو خپلي بزې يو ځای ساتلي وي او دواړه د زکوٰة اهل وو، يعني په دوی کي يو کافر يامکاتب نه وو نو چي د دواړو مشترکي بزې څلوېښتو ته ورسېدې نو نيمه نيمه بزه به پر دواړو واجبه وي او که شپېته وې نو هم په دواړو چي يوه بزه ورکړي کافي ده.

دويم قسم د غلې د زکوٰة سره متعلق دی، نو که د چا سره اته سوه "" منه غنم، اوربشي، خرماوي ياوچکي (منقی) وي يا بل داسي شئ وي کوم چي د خلکو خوراک جوړېدای سي مثلاً: دال، وريجي او لوبيا او نور نو د دې څخه لسمه حصه (عشر) ورکول واجب دي. او کوم چي دخوراک کار نه ورکوي مثلاً: پنبه، تان، مېوه او نور (يعني تازه مېوه) په دې کي عشر واجب نه دی. او که څلور سوه منه غنم او څلور سوه منه وربشي وي نو هم عشر واجب نه دی ځکه چي نصاب پر يو جنس مشتمل دي هلته زکوٰة واجبيږي، د فصل د پاره اوبه که د نهر، ويالي يا باران څخه نه وي حاصلي سوې بلکي په ارهټ (باوړی) او نورو سره حاصلي سوي وي نو هم عشر واجب نه دی، او هيڅ کله مناسب نه ده چي انګور يا لنده خرما په زکوٰة کي ورکړي، بلکي وچکي او وچي خرماوي ورکول پکار دي، هو! که د انګورو څخه وچکي جوړول ممکن نه وو نو انګور ورکول هم جائز دي او پلا

———— ——

ساته چي هر کله انګور پر پخپلو سي او د غنمو وربشو دانې پخې سي نو بیا به هغه هیڅ کله پخپل تصرف کي نه راوړي تر هغه چي داول څخه حساب ولګوي اندازه وکړي چي په دې کي به د فقیرانو حصه دومره جوړېږي، او کله چي د دغې حصې صحیح اندازه وسي نو بیا یې پخپل تصرف کي راوستل جائز دي.

## د زکوة ورکولو طریقه

زکوة ورکوونکي ته د پنځو خبرو خیال ساتل پکار دي:

(۱) د زکوة نیت به وکړي او فرض دې کښي (صرف دي ځان نه بنیبي چي زکوة ورکووم) او که یو بل څوک وکیل مقرر کوي نو د هغه د وکالت نیت دي هم وکړي یادي وکیل ته اجازت ورکړي چي هغه د زکوة ورکولو په وخت کي نیت وکړي، او که ولي د نابالغو بچیانو د مال څخه زکوة ورکوي نو هم دي دې نیت وکړي.

(۲) هر کله چي کال ختم سي نو په زکوة ورکولو کي دي تلوار کوي ځکه بلاعذره تأخیر کول مناسب نه دي، د صدقه فطر په ادا کولو کي داختر د ورځې څخه زیات تأخیر صحیح نه دی، او په رمضان کي تلوار کول روا دي، او د رمضان څخه مخکي روانه دی، او د هر پوره مال د زکوة په سلسله کي په ټول کال کي تلوار کول روا دي، په دې شرط چي کوم فقیر ته زکوة ورکول کیږي، هغه تر ټول کاله پوري ژوندی وي ځکه چي که د کال د آخر کېدو څخه مخکي هغه مړ سي یا پخپله امیر او مالدار سي یا مرتد سي نو زکوة به بیا ورکول غواړي.

(۳) زکوة د هر جنس چي وي د هغه جنسه څخه ورکول پکار دی، که د سرو زرو په بدله کي سپین یا د غنمو په عوض کي اوربشي یا د دې د قیمت برابر یو بل مال ورکړل سي نو د فقه شافعي په نزد به دا صیح نه وي.

(۴) صدقه په هغه ځای کي ورکول پکار دي په کوم ځای کي چي مال وي ځکه چي د دغه ځای د فقیرانو سترګي پر دغه مال وي، (یعني د دغې صدقې امیدواره وي) او که په یو بل ځای کې ورکړي نو صحیح دا ده چي د زکوة اطلاق به پر دغه نه کیږي.

(۵) زکوة په اته قسمه خلکو کي تقسیمول پکار دي او د دغه مقدار مطابق دې تقسیم کړي کوم چي پکار دي، هسي خو په هره پله کي د درې کسانو څخه کم نه دي پکار او ټول شمېر څلورویشت پکار دي، او د فقهي شافعي مطابق که زکوة یو درهم هم وي خو په دې ټولو کي تقسیمول پکار دي

او ټول زکوة به په اته حصو کې تقسیم کړي هرې حصه به په دريیا د دې شخه په زياتو افرادو کې تقسیم کړی څنګه چې يې زکوة ورکوونکې غواړي هغه که برابر وي او که نه وي، او په دې زمانه کې درې قسمه خلک ډېر کم پيدا کيږي، يعني؛ غازي او مؤلفة القلوب او حامل زكوة، لېکن فقير، مسكين مكاتب (يعني قرضدار) پيدا کېدای سي، نو د شافعي په مذهب کې هر چا ته زکوة د پنځلسو خلګو شخه په کم شمار باندي تقسيمول نه دي پکار او د شافعي مذهب په دې دوو اُمورو کې ډېر سخت دې ځکه چې د ده په نزد سره يو خو د يو شئ بدل جائز نه دی او دويم دا چې زکوة به ټولو ته ورکوي، او د خلګو ډېر اکثريت په دې دواړو مسئلو کې د امام ابو حنيفه رحمه الله په مذهب عمل کوي، او زموږ اُميد دی چه په دې سره به د دوی مؤاخذه نه وسي.

**د دې اته ډلو صفات او پېژندنه :** اوله ډله د فقراؤ ده او فقير هغه وي د کوم سره چې يو شئ نه وي او نه د يو کسب قابل وي که د چا سره د پوره ورځې خوراک وي، اوپر بدن يې کالي (جامې) وي نو دغه فقير نه دي هوا که د نيمي ورځې د خوراک شخه يې زيات خوراک نه درلودلو، او د جامويې هم دا حال وي چې قميص يې وي خو لنګوټه يې نه وي او که لنګوټه يې وي نو قميص يې نه وي نو دغه خامخا فقير دی، که يې په يو آله سره يې کار کولای سو لېکن آله يې نه درلودوله نو هم فقير دی او که يو ځوک طالب علم وي او په يو کسب کې مشغولېدل په طلب د علم کې حائل کېدی نو دغه فقير دی او دا ټول فقير ډېر کم پيدا کيږي، لېکن عيال داره (کهول والا) ښکاره ده چې ډېر دي نو تدبير او تلافي دا ممکن دی چې هغه فقير تلاش کړی کوم چې عيالداره وي او د ده بچيان دي فقيران وګڼي، دوې حصې دي پر تقسيم کړي.

په دويم قسم کې مسکينان راځي، او مسکين هغه دی چې د هغه مال او آمدني د هغه د اخراجاتو (خرڅو) شخه کم وي هغه کور، کپړې د ده سره که څه هم موجودې وي لېکن که د يو کال خرڅ د ده سره نه وو او د ده کسب همېشه نه وو نو روا ده چې ده ته دومره اندازه ورکړی چې د ده تر کاله پورې د کفالت د پاره ضروري وي، که د ده په کور کې فرش، لوښي او کتابونه او نور موجود وي لېکن د دې سر سره حاجتمند وي نو دغه مسکين دی، لېکن که د ضرورت شخه زيات شيان د ده سره وي نو بيا مسکين نه دي.

دريم قسم د هغو خلګو دی کوم چې زکوة جمع کوي او مستحقينو ته يې رسوي د دوی مزدوري د دې زکوة شخه ادا کول پکار دي.

څلورم قسم د هغو خلکو دی کومو ته چي مؤلفة القلوب وايي او دا هغه باعزته او دبدبې والا خلک وي چي که دوی ته مال ورکړل سي نو دوی به داسي مسلمانان سي چي د دوی په ليدلو به نور خلک د اسلام وطرف ته راغب سي.
پنځم قسم مکاتب دی او دا هغه غلام يا مينځه ده چي خپل ځان واخلي او خپل قيمت په يوه يا دوو يا زياتو قسطونو کي خپل مالک ته ادا کوي.
په شپږم قسم کي داسي سړي شامل دی کوم چي قرضداره وي لېکن دا قرض يې د يوشئ په عوض کي نه وي حاصل کړی بلکي يو نېک يا اصلاحي مقصد د پاره يې خرڅ کړی وي قرضداره سوی وي نو بيا که دی امير وي او که فقير د زکوة مستحق دی ځکه چي د ده مقصد يو فتنه ختمول دي.
اووم قسم پر هغو غازيانو مشتمل دی کومو ته چي د بيت المال څخه څه نه ملاوېږي دغه که امير ولي نه وي د دې خبري مستحق دي چي د سفر توښه ورته د زکوة څخه ادا سي.
اتم قسم د هغو خلکو دی کوم چي مسافر وي او د سفر توښه نه لري داسي خلک که په سفر کي يا د خپل ښار څخه په سفر روانېدونکي وي نو دلاري توښه او کرايه او نور دوی ته د زکوة څخه ادا کول پکار دي.
او که يو څوک ځان ته فقير يا مسکين وايي نو روا ده چي د دوی خبره ومنل سي که څه هم په ښه توګه سره معلومه نسي چي دی درواغ وايي، لېکن مسافر که په سفر او غازي که جهاد ته روان نسي نو د زکوة مال ځيني اخيستل واپس پکار دي، او نورو اقسامو په باره کي هم پکار دي چي د بلوري خلکو څخه پوښتنه وسي.
**په زکوة ورکولو کي څه راز دی؟** پوه سه! لکه څنګه چي د لمانځه يو صورت وي او يو حقيقت، او دغه حقيقت ته د دې صورت روح وايي، دغه ډول د زکوة هم يو صورت دی او يو روح، او کوم سړی چي د زکوة د اصل راز او حقيقت څخه بې خبره دی د ده زکوة به هم يو بې روحه او بې صورت وي، او د دې رازونه درې دي: (۱) اول دا چي خلک يې د حق تعالی په محبت مأموره کړي دي (يعني حکم يې ورته کړی دی) او يو مسلمان داسي نسته چي د الله ﷻ سره د محبت مدعي نه وي، بلکي مسلمان په دې خبره مأمور دي چي يو شئ د الله څخه زيات دوست او ګران نه لري، لکه چي الله ﷻ فرمايي: قُلْ اِنْ كَانَ اٰبَآؤُكُمْ وَاَبْنَآؤُكُمْ الآية [توبه] (ته ووايه چي که پلار، نيکه، ستاسو اولاد، ستاسو وروڼه، ستاسو خپلوان، ستاسو ښځي، ستاسو هغه مال کوم چي تاسو ګټلی

دي او تجارت د کوم په کوټه کېدلو(او خرابېدلو) چې تاسو ېرېږئ، او هغه کورکوم چې تاسو خوښوئ تاسو ته د الله ﷻ څخه او د هغه د رسول څخه او د هغه په لاره کي دجهاد څخه زيات غوره وي نو تاسو منتظر وسئ تر دې چې الله ﷻ خپل حکم (د سزا او عذاب ) راولېږي او الله نافرمانې کوونکي د دوی مقصد ته نه رسوي) غرض داسي کوم يو مسلمان دی کوم چي دا دعوی نه کوي چي زه الله د ټولو شيانو څخه زيات خوښووم او د هر يوه داخيال دی چي زه څه وايم په واقع کي هم داغه دي، نو دهر يوه د دعوې د پاره د دليل ضرورت وي چي هر څوک په خالي دعوې مغروره نسي، ښکاره خبره ده چي مال انسان ته محبوب (ګران) دی نو الله ﷻ د دې په ذريعه د انسان امتحان کوي او فرمايي: چي که ته زما په دوستی کي رښتونی يې نو خپل دا محبوب شئ پرما قربان کړه چي زما په دوستی کي تا ته د خپلي درجې او رښتنوالي علم وسي، کوم خلک چي په دې راز پوه سوه او د معاملې بيخ ته ورسېدل د هغوی دري درجې دي:

اوله درجه د صديقينو ده چي څه د دوی سره وي ټول قربانوي او وايي چي په دوه سوه درهمه کي پنځه درهمه خرڅ کول څه شئ دي دا خو د بخيلانو کار دی، موږ خو ټول قربانوو، لکه حضرت امير المؤمنين صديق اکبر ﷺ چي د نبي ﷺ په خدمت کي ټول مال حاضر کړی، نو دوی ﷺ پوښتنه وکړه چي د خپل اهل وعيال د پاره دي يو شئ پرېښوی، حضرت صديق ﷺ عرض وکړی فقط الله او د هغه رسول مي پرېښوی، او بعضو نيم مال د الله ﷻ په لاره کي ورکړی لکه امير المؤمنين حضرت عمر ﷺ چي دوی نيم مال پيش کړی، نبي ﷺ پوښتنه ځيني وکړه چي د بچيانو دپاره دي يو شئ پرېښووی؟ هغه ﷺ وفرمايل څومره چي مي دلته راوړی دومره مي په کور کي پاته کړی، نبي ﷺ وفرمايل: ستاسو د دواړو په درجو که هم داسي تفاوت (فرق) دی څنګه چي ستاسو په کار کي تفاوت او فرق دی.

دويمه درجه د صالحينو حضراتو ده کومو چي خپل مال په يو وار خو خرڅ نه کړی چي دا ټول د دوی قدرت نه وو ليکن محفوظ يې وساتلو او د فقيرانو د حاجتونو په سلسله کي د خيرات د ممکنه صورتونو منتظر وو، او خپل ځان يې د فقيرانو په ټول ګڼلو، او فقط په زکوة يې اکتفاء ونه کړه بلکي کوم محتاج چي ده ته راغلی د خپل اهل وعيال په ټول يې وګڼلو او د هغه يې هرممکن خدمت وکړو.

دريمه درجه د هغه افرادو ده کوم چي د دوو سوو درهمو څخه د پنځه درهمه خرڅولو طاقت لري دوی

صرف د فرض ادا کولو لحاظ وکړي او د الله ﷻ حکم یې په خوشحالۍ سره قبول کړي او د ادا کولو اهتمام یې ډېر ژر وکړي او په زکوة ورکولو یې پر فقیرانو احسان ونه کړي. داآخري درجه ده ځکه چې دالله ﷻ په ورکړل سوو دوه سوه درهمو کې چې پنځه درهمه هم ورنه کړي دغه بد نصیبه د الله ﷻ د دوستی څخه محرومه دی او کوم چې د پنځه درهمو څخه زیات نسي ورکولای د ده دوستي ډېره کمزورې ده او دی په ټولو دوستانو کې بخیل دی.

دویم راز د بخل دنجاست څخه خپل زړه پاکول دي دانساني زړونو په مخکې بخل دنجاست په ډول دی لکه څنګه چې ظاهري نجاست انسان د لمانځه ادا کولو قابل نه پاته کوي دغه ډول د بخل نجاست زړه د خدای د نژدېکت قابل نه پاته کوي او د مال خرڅولو څخه ماسوا د بنده زړه د بخل دنجاست څخه نه پاکیږي، په دې سبب سره زکوة د بخل ناپاکی د زړه څخه لیرې کوي، او زکوة د مئو لوپو په ډول دی کوم چې ظاهري نجاست لیرې کوي، داوجه ده چې د زکوة او صدقې مال پر نبي کریم ﷺ او د دوی په اهل او عیال باندې حرام دی، ځکه په چې د دوی پاک منصب د خلګو د خیرو څخه محفوظه ساتل ضروري دي.

دریم راز شکر د نعمت دی ځکه چې مال په دنیا او آخرت کې د مسلمان د راحت سبب دی نو لکه څنګه چې لمونځ روژه او حج د بدن د نعمت د شکر په توګه ادا کول کیږي دغه ډول زکوة د مال د نعمت شکر یه ده چې بنده خپل ځان بې پروا ظاهر کړي اونورو مسلمان رونه کوم چې د ده په ډول دي پاته او عاجزه ویني دا وواییي چې دا هم زما په ډول د خدای بنده دی دالله ﷻ شکر دی چې زه یې د دوی څخه مستثنی کړم او بې پروا یې کړم او دی یې زما محتاج کړی نو ما ته د ده سره ښه سلوک (چلند) پکار دی هسې نه چې دا امتحان وي او که په خاطر او عزت کې قصور او کمي وسي نو هسې نه چې الله ﷻ ما د ده په ډول کړي او دی زما په ډول کړي، پر هر یوه باندې لازم دي چې د زکوة په دې رازونو ځان پوه کړي چې د ده عبادت بې روحه پاته نسي.

**د زکوة ادبونه:** کوم سړی چې دا غواړي چې د ده عبادت مړ او بې روحه نه وي او ثواب دوچنده ورته ملاو سي نو ده ته پکار دي چې د دې اوو آدابو التزام وکړي:

**اول ادب:** دا چې د زکوة په ادا کولو کې د تلواري څخه کار واخلي، د واجبېدو څخه مخکې دي هم کله کله په کال کې ورکوي په دې سره به درې فائدې وي: یوه خو دا چې د عبادت د شوق اثر به ښکاره وي ځکه چې یو شئ کله واجب سي نو ادا کول یې لازم او ضروري سي که وریې نه کړي نو د

عذاب خطره ده په دې وجه په دې حالت کي خو د فرضو ادا کوونکي د عذاب او سزا ډيرې څخه يې ادا کوي، د محبت او دوستی له اندازه په دې کي نه وي او هغه سړی ډېر ناکاره دی کوم چي د ډيري په وجه يو کار خو کوي ليکن د محبت او دوستی لحاظ نه کوي، دريمه فائده به داوي چي د ژر ادا کولو په وجه به فقيران خوشحاله وي او د زړه په خلوص سره به دعاء کوي ځکه چي دوی ته پردې موقع کومه خوشحالي حاصله سوې وي ده دغه به ناڅاپه وي او د فقيرانو دعاء د ده په حق کي د ډېرو آفتونو څخه حصار جوړيږي، دريمه فائده به داوي چي داسي سړی د دنيا د آفتو څخه بې فکره وي ځکه چي په تأخير (ځنډ) کي په زرګونو آفتونه سته ممکنه ده يو امر مانع سي او بنده د دې خير او نيکی څخه محروم سي کله چي د بنده په زړه کي د خير د امر رغبت پيداوي نو دا دی غنيمت وګڼي ځکه چي دا صورت د الله ﷻ د رحمت په نظر سره وي د دې څخه ورووسته د شيطان د حملې خطره وي، لکه چي وايي: "د مؤمن زړه د الله ﷻ د ګوتو څخه په دوو ګوتو کي وي" نو چي د دې څخه ووځی د شيطان په نيوکړه او قبضه کي راځي.

**قصه:** يو بزرګ ته په بيت الخلاء کي دا خيال راغلی چي خپل دا قميص پر يو چا خيرات کړم سمدلاسه يې يو مريد ته آواز وکړی او قميص يې هغه ته حواله کړی او دی د خپلې ارادې څخه خبر کړی، مريد پوښتنه څيني وکړه چي تر راوتولو پوري مو صبر ولې نه کوئ؟ نو ويې فرمايل چي ما سوچ وکړی هسي نه چي په زړه کي مې يو خيال راسي او د دې د خير د کاره څخه محرومه سم.

**دويم آدب** دا چي که زکوة په يو وخت ورکول وي نو د محرم په مياشت کي دې ورکړي چي دا د حرمت مياشت ده او د کال ابتداء هم دد دې څخه کيږي يا دې بيا په رمضان کي ورکوي ځکه چي وخت ځومره زيات شريف وي دومره به ثواب هم څو چنده زيات وي او نبي ﷺ په ټولو خلکو کي زيات سخي وو ځکه چي څه به ور سره وو ور کول به يې او په رمضان کي به يې هيڅ شئ هم د ځان سره نه ساتلو او ټول به يې د خدای په لاره کي خرڅ کول.

**دريم ادب** دا دی چي زکوة دې په پټه ورکوي، او په ښکاره دې نه ښکاره کوي چي د ريا څخه وساتل سي او اخلاص ته نژدې سي، لو په حديث شريف کي دي چي صدقه د الله ﷻ غصه يخوي دارنګه دا چي د قيامت په ورځ به اووه قسمه خلک د الله ﷻ د عرش تر سا يې لاندي وي: (۱) امام عادل (۲) په راسته لاس داسي صدقه ورکوونکی چي چپه لاس څيني خبر نسي، خيال کوه چي د دې خلکو درجه چي څومره لوړه ده چي د امام عادل د درجې سره برابره ده، او په حديث کي دي چي

پټه صدقه ورکول په باطني اعمالو کي شمارېږي، او په ظاهر ورکړې صدقه په ظاهري اعمالو کي لیکل کیږي، او که څوک په ژبه ووایي چي ما فلانی شئ خیرات کړی دي نو ده د ظاهري او د باطني اعمالو څخه یې ختم (خراب) کړي په ریاء کي ولیکل سي؛

او دلوجه وه چي سلفو صالحینو به د صدقې د مال په پټه ورکولو کي دومره مبالغه کوله چي ځیني خو په دوی کي داسي وو چي ړانده به یې تلاش کول او د صدقې مال به یې هغه ته په لاس کي ایښوول، خبري به یې ور سره نه کولې چي اخیستونکي ته معلومات وسي چي صدقه چاورکړه، چا به بیده فقیر لتوی په کپړو پوري به یې ور تړل، او خبري به یې نه کولې چي ویښ نسي یعني معلومه ورته نسي چي چا صدقه ورکړې ده؟ او بعضي داسي هم وو چي فقیر ته به یې په لاره کي ور وغورځول او ځینو به د بل چا په لاس فقیر ته رسول، او د اهر څه به یې په دې غرض سره کوله چي فقیر ته معلومه نسي چي صدقه چاورکړه، او دا ځکه چي که په ښکاره یې ورکړي نو په زړه کي به یې د ریاء جذبه راپورته سي، او دغه دول که بخل مات سي خو دې څخه بد شئ ریاء به پکښې راپیدا سي، او دا ټول صفتونه هلاکت ته اچوونکي دي چي بخل که لږم دی نو ریاء مار دی کوم چي د لړم څخه زیات زوره ور دی، او بیا که لړم مړ کړی په مار یې وخوري نو دا خو بیا زیات خطرناکه ده، او دغه دول که د یو هلاکوونکي شي څخه ځان خلاص کړي نو د ده څخه د بل زیات هلاکوونکي شئ په منګلو کي ومښلي، او د دې صفتونو زخم چي وخوري قبر ته لاړ سي نو ګواکي د ملر اولړم خوړل سوی به وي لکه چي په عنوان د اسلام کي موږ بیان کړي دي، نو په ښکاره ورکول د نفعي څخه زیات نقصان کوي.

**څلورم ادب:** که یو سړی د ریاء څخه بالکل په امن او محفوظ وي او خپل زړه یې د دې څخه پاک کړی وي او دا ګني چي د ده په ښکاره په صدقه ورکولو سره به نور خلګ د ده پیروي کوونکي سي او په صدقه ورکولو کي به یې رغبت پیدا سي نو د داسي سړي په ښکاره ورکول غوره دي ځکه چي دی د هغو خلګو څخه دي کوم ته چي صفت کول او بدویل برابر وي، او په هر کار کي د الله ﷻ علم دوی ته کافي وي.

**پنځم اداب:** دا دی چي صدقه په احسان او منت سره نه ده پکار چي د احسان په کولو سره ضائع نسي دالله ﷻ ارشاد دی: " لَاتُبۡطِلُوۡا صَدَقٰتِكُم بِالۡمَنِّ وَالۡاَذٰی" [ البقرة ] (په احسان کولو او ضرر رسولو خپل خیرات مه بربادوئ) او د اذٰی څخه مراد د فقیر زړه خفه کول دي مثلاً د فقیر سره په تریو

تندي مخلمخ کېدل یا تندي کوت کوت کول یا په غرور خبري ور سره کول دي او دی د فقیر والي یا سوال کولو په وجه ذلیل ګڼل،او په سپک نظر ورته کتل، او دا د جهالت او کم عقلی ثبوت دی، یو خو ځکه چي د ده د لاس څخه مال اخیستل ګران دي، او په دې وجه د نفس تنګي او بدی مظاهره کوي او نا کاره(خرابي) خبري کوي ځکه چي کوم سړی د یوې روپۍ په ورکولو په زور روپو اخیستلو ته تیار نه وي هغه جاهل نه دي نو څه شئ دي، یعني په دې معمولي زکوة ورکولو سره ده ته په فردوس اعلی کي ځای ملاوېږي او رضاء الهي ورته حاصلیږي او د دوږخ څخه د ځان ساتول وسیله په لاس ورځي نو بیا که دی په دې خبرو ایمان لري نو دا شئ بیا پر ده بوج کیږي ولي؟ او بل حماقت یې دا دی چي دی دا ګڼي چي دی پر فقیر ښه دی ځکه چي دی مالداره دي او په دی پوه نه دي چي فقیر به د ده څخه پنځه سوه کاله مخکي جنت ته ځي نو هغه ښه دی یا که دا امیر؟ درجه خو د هغه لوړه سوه نه د دې مالدار، او د الله ﷺ په نزد شرف او فخر خو د درویشی (فقیری) دي، نه د مالداری؟ او د درویش د شرافت او فضلیت ښه او دلیل دا دی چي په دې دنیا کي یې امیر ته د دنیا دملاوېدو په خاطر په غم او محنت کي مشغول کړی دي، او د دې سر دردی سره سره ده ته ملاوېږي هغه شومره چي د ده د ضرورتونو د پاره کافي وي، لېکن د دې سره یې پر ده واجبه کړې ده چي دی به د فقیر د ضرورت مطابق هغه هم ورکوي نو چي غور وسي نو امیر یې ګواکي د فقیر په دې دنیا کي یو ما تحت مزدور مقرر کړی دي (چي د ده د پاره ګټه کوي) او په بله دنیا کي خو د فقیر فضیلت ښکاره دی چي پنځه سوه کاله مخکي جنت تلل یې د ده سره ځانګړي کړي دي.

**شپږم ادب:** دا دی چي چا ته یې ورکوي پر هغه دي احسان نه کوي د احسان سبب جهالت او کم عقلي وي، د احسان صورت دا دی چي انسان داسي وګڼي چي ما د فقیر سره په خپل ملکیت کي نېکي وکړه او ده ته مي دولت ورکړی، په دې وجه به اوس دی زما محتاج او تر لاس لاندي وي داسي ګڼونکی د دې خبري اُمید لرونکي وي چي فقیر به زما زیات خدمت کوي او زما کارونه به په تلوار سره کوي سلام به پر ما مخکي کوي او زما به ډېر احترام کوي، او که چیري د فقیر څخه په دې کارونو کي سستی وسي نو بیا دغه دا مالدار تعجب کوي او وایي چي ما د ده سره شومره نېکي کړې ده او دی داسي بې ادبي کوي، حال دا دی چي دا محض کم عقلي ده نېکي خو د ده سره په اصل کي فقیر کړې ده چي د ده صدقه یې قبوله کړه او دی یې د دوږخ د اور څخه وساتی، او زړه یې د بخل او نجاست څخه پاک کړی که یو حجّام (حجامت کوونکی، رګ وهونکی) دیو چا د رګ څخه وینه وباسي نو د دغه سړي په رګ وهونکي احسان نه وي احسان خو د رګ وهونکي وي چي د ده د بدن څخه یې خرابه

وینه وکښل، کومه چې د ده د هلاکت سبب جوړیدای سوه، نو دغه ټول د فقیر پر امیر احسان دی چې د ده د زړه څخه یې بخل وریستی او د زکوة مال کوم چې د ده په لاس کي وو او د ده د هلاکت او خرابی سبب وو فقیر څیني واخیستی او دی یې د دې دواړو خرابیانو څخه وساتی نو احسان د چا سو؟یقیناً د فقیر سو کوم چې یې دی د دوو آفتونو څخه خلاص کړی دویم دا چې نبي ﷺ فرمایلي دي، چې صدقه اول د الله ﷻ د کرم لا س ته رسیږي او د دې څخه وروسته د فقیر لاس ته رسیږي نو ورکوونکی چې یې هر کله الله ﷻ ته ورکوي او د فقیر حیثیت فقط د نائب دی چې دالله ﷻ دلاس څخه یې اخلي نو ښکاره ده چې احسان د فقیر منل پکار دي نه دا چې پر ده احسان، منّت وکړي، نو هرکله چې دې د زکوة دا درې رازونه معلوم کړل نو د ځانه دا حقیقت واضحه کیږي چې احسان پر کول محض جهالت دی او ځان ساتل څیني لازم دي، لکه څنګه چې سلفو صالحینو به د دې خبري څخه په ځان ساتلو کي ډېره مبالغه او کوشش کوی تر دې چې ډېر په ادب به یې فقیر ته صدقه پېش کړه چې مهرباني وکړي دا قبوله کړي، او د څیني بزرګانو خو دا عادت وو چې خپل لاس به یې د فقیر د لاس څخه لاندي کړی چې د صدقې پر وخت د فقیر لاس لوړ راسي چې لوړ لاس د لاندي لاس څخه غوره دی، او حضرت عائشي صدیقې رضی الله عنها چې به فقیر ته یو شئ لیږی نو وړونکي ته به یې فرمایل چې غوږ ورته ونیسه چې هغه کومه دعاء کوي چې د هغه د دعاء په بدله کي ورته موږ هم دعاء وکړو چې صدقه خالصه او بې معاوضه سي.

**اووم ادب**: دا دی چې په زکوة کي هغه مال ورکړي کوم چې د ده په ټول مال کي غوره وي او زیات حلال وي ځکه په کوم شئ کي چې یو ذره غوندي شک هم وي دغه د قربت د حق لائق نه دی ځکه چې د الله ﷻ ذات پاک دی او پاک شئ قبلوي، لکه څنګه چې فرمایي: وَلَا تَيَمَّمُواْ ٱلْخَبِيثَ مِنْهُ تُنفِقُونَ وَلَسْتُم بِـَٔاخِذِيهِ إِلَّآ أَن تُغْمِضُواْ فِيهِ [البقرة] (دنا کاره خراب شئ نیت مه کوئ چې خرڅ یې کړی حال دا دی چې تاسو د هغه اخیستونکي نه یاست مګر چې سترګي پر پټي کړي) یعني داسي شئ چې د اخیستلو په وخت کي تاسو ته کراهت او نفرت څیني راځي، د الله ﷻ د پاره یې ولي خرڅ کوئ او که د کور نا کاره شئ مېلمه ته په ایښولو بلندي د مېلمه سپکوالی او بې عزتي ده نو دا څنګه روا کېدای سي چې ډېر بد شئ دالله ﷻ په نوم ورکړل سي او غوره ځان ته پرېښوول سي،او نا کاره شئ ورکول د دې امر دلیل دی چې ورکوونکي دغه شئ بدګڼي په دې وجه یې چا ته ورکول غواړي ګواکي څه چې یې ورکړل په کراهت او نا خوښي سره یې ورکړل نه دا چې د زړه په خوښي، او

په صدقه کي که د زړه خوښي شامله نه وي نو د نه قبلېدو خطره یې سته، او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: چي د یو درهم بنه شئ په صدقه کي ورکول د زرو درهمو څخه غوره دی نو لازمه ده چي غوره شئ په صدقه کي ورکړی او د زړه په خوشئ سره یې ورکړی.

**د فقیر د تلاش کولو آداب:** یادساته! چي کوم مسلمان یو فقیر ته زکوة ورکړي، ده خپل فرض اداکړل لیکن څوک چي د آخرت تجارت کوي پر ده باندي لازمه ده چي د ډېر زیات محنت څخه کار واخلي یعني صدقه چي څومره په مناسب ځای او مناسب انداز سره خرڅه سي دومره به ورکوونکي ته ثواب هم زیات ملاو سي (هسي نه چي داسي چا ته یې ورکړی چي هغه یې پر چرسو او بنګو او د ګناه پر شیانو خرڅه کړي) نو پکار دي چي په دا پنځو قسمه فقیرانو کي یو قسم فقیرولټوي او هغه ته یې ورکړي:

اول قسم دا چي پرهېزګاره او متقي وي، نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي " طعام پرهیز ګارانو ته ورکول پکار دي" د دې وجه دا ده چي هغه چي کم څه واخلي نو په اطاعت او عبادت د الله ﷻ کي به یې خپل مددګار جوړ کړي، (یعني د دغه په خوراک به د هغه په بدن کي طاقت پیدا سي عبادت به بنه وکړي) نو د هغه په عبادت کي به د ده هم حصه وسي او د ثواب مستحق به سي ځکه چي د ده اعانت د هغه په عبادت کي شامل سو.

**قصه:** یو دولتمن (سرمایه دار) دا اُصول جوړ کړی وو چي د صوفیانو څخه ما سوا بل چا ته به یې په صدقه کي څه نه ورکول او ویل به یې چي دا هغه خلک دي د کومو چي د الله ﷻ څخه ما سوا د بل شئ سره خیال نه وي او که دوی ته د یو شئ حاجت راپېښ سي نو ظاهره ده چي خیال به یې ګډوډ سي، او هغه زړه کوم چي د الله ﷻ دوست دی پر داسي په سوونو زړونو باندي افضله دی کوم کوم چي د دنیا په خیال کي ګرفتاره وي، د ده دا خبره چي کله حضرت جُنید رحمه الله ته ورښوول سه نو ویې فرمایل: چي د الله ﷻ د اولیاؤ څخه د یو ولي ویل سوې خبره معلومیږي نو اوس داوسوه چي دغه مذکوره سړی د کسب په لحاظ سره سابه (تر کاري، سبزیجات) خرڅوونکي وو، او مفلسه سو وجه داوه چي فقیرانو به د ده څخه یو شئ اخیستولو ده به قیمت ځیني اخیستولو آخر جُنید رحمه الله ده ته مال ورکړی چي دی خپل تجارت جاري وساتي او ور سره یې دا وویل چي ستا په ډول سړي ته په تجارت کي تاوان نه ارځي (یعني د آخرت په تجارت کي).

دویم قسم دا دی چي اهلِ علم وي چي هر کله صدقه یو طالب علم ته ورکړي نو دی په فراغت سره

په علم حاصلولو کي مشغوله سي او ورکوونکي ور سره د علم په ثواب کي شریک سي.
دریم قسم هغه خلک دي چي خپل ضرورت پټ ساتي او خپله فقیري چا ته نه ښکاره کوي بلکي په ښکاره شان وشوکت او عزت سره ژوند تېروي لکه الله ﷻ فرمايي: يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ أَغْنِيَاءَ مِنَ التَّعَفُّفِ [البقره: ۲۷۳] (نا خبره خلک دوی غنیان ګڼي ځکه چي دوی د چا څخه سوال نه کوي) دا هغه خلک دي چا چي پخپله مفلسی د مالداری او ښایست پرده اچولې وي نو دورکونوکي دا فرض دي چي داسي خلک تلاش کړي او هغه فقیرانو ته يې ورنه کړي کومو چي سوال کول خپل کسب جوړ کړي وي، او شرمیږي نه. څلورم قسم دا دي چي داسي خلک تلاش کړی کوم چي عیالداره وي یا ناروغه وي ځکه چي اخیستونکي څومره اندازه محتاجه او بدحاله وي ورکوونکي ته به دومره زيات ثواب او اجر ملاو سي.
پنځم قسم هغه غریب دی کوم چي د ورکوونکي قریب هم وي او داسي خلکو ته ورکول صدقه هم ده او صله رحمي هم او کوم سړی چي که ته سره صرف د خدای د پاره وروورولي ساتي دغه هم د اقرباؤ سره برابر دي.
او که یو حاجتمند د دې ټولو صفتونو حامل وي یا ډېر صفتونه پکښي موجود وي نو داسي سړي ته ورکول د ټولو څخه غوره دي، او که داسي خلکو ته ورکړل سي نو د دغو خلکو نېک خیالات او دعاګاني به د ده د پاره دحصار (قلعې) کار ورکړي، او دا فائده به پر هغه فائدې باندي زياته وي چي د بخل نجاست به د ده څخه لیري سي، او د نعمت شکر به په صحیح معنا کي ادا سي او پکار دي چي زکوة سیدانو یا کافرانو ته ورنه کړی ځکه چي د زکوة مثال دمال د خیري دي نو سیدان (اولاد د علی ﷺ) ته د دې څخه منعه لازمه ده، او کافرانو ته هسي هم دا نه دي ورکول پکار (ځکه چي هغوی د دې قابل هم نه دي چي د مؤمنانو خیري دوی ته ورکړل سي).

**د زکوة اخیستونکي آداب:** زکوة اخیستونکي ته د پنځو آدابو خیال ساتل لازمي دي:
اول دا چي: د دې حقیقت څخه ښه خبر سي چي لکه څنګه چي الله ﷻ ځيني بندګان د مال محتاجه کړي دي نو دا يول يې ځينو بندګانو ته ډېر مال هم ورکړی دي، لیکن محتاج يې هغه جوړ کړی دي پر کومو چي يې لطف او کرم زيات کول مقصود وي چي دوی د دنیا د جنجالونو او د دولت د حفاظت څخه فارغه وي عبادت کوي، او د دنیا داري ټول بوج او محنت او مشقت او د حفاظت ټوله ذمه واري يې پر امیرانو غوړځولې ده او دوی ته يې حکم کړی دي چي دوی دي دې عزیزو بندګانو ته د دوی د

ضرورت مطابق مال رسوي، د دې د پاره چې دغه عزيز بندګان د دنيا د باره (بوجه) څخه آزاده وي او چې په کامله يکسويي کې يې خلل او متشروالي رانسي چې د مالدار نو په معرفت سره د دوی حاجت رلوبې وسي چې د دوی دعاء او برکت د مالدارانو د پاره کفاره جوړه سي، نو فقير ته پکار دي چې څه اخلي پخپل کفايت يې خرڅ کړي چې ده ته په فراغت سره د عبادت موقع په لاس ورسي او د دې نعمت قدر وپېژني چې اميران يې د دوی کار کوونکي جوړ کړي دي چې دوی عبادت کوي، او دا داسې ده چې لکه څنګه چې د دنيا باچاه خپلو هغو خاصو غلامانو ته کوم چې دی پخپل خدمت کې هر وخت حاضر درلودل غواړي د دنيا د کسب څخه يې نيازه کوي، او بزګرانو او بازاريانو ته کوم چې د ده د خاص خدمت لائق نه وي د دغو خاصو غلامانو مزدوران يې جوړوي، او د دوی څخه خراج او ټيکس اخلي خپلو خاصو غلامانو ته يې په تنخاه کې ورکوي نو لکه څنګه چې د باچاهانو مقصد دا وي چې د خپلو خواصو د پاره د عوامو څخه خدمت اخلي دغه ډول د الله ﷻ اراده د ټول مخلوق څخه دا وي چې هغوی د ده په حضور کې اطاعت او بندګي وکړي لکه څنګه چې يې فرمايلي دي: وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ [الذاريات: ۵۶] (ما پيريان او انسانان صرف د دې د پاره پيدا کړي دي چې زما عبادت وکړي) په دې وجه فقير ته پکار دي چې څه اخلي نو چې په دې نيت يې واخلي او په دې بناء سره نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چې: "ورکوونکي ته پر اخيستونکي هيڅ فضيلت حاصل نه دی په دې شرط چې اخيستونکي يې واقعي د يو حاجت د پاره اخلي او داسې سړی هغه وي د کوم اراده چې د دين په خاطر د دنيا څخه فراغت حاصلول وي".

دويم دې دا ګڼي چې څه دی اخلي د الله ﷻ څخه يې اخلي او د هغه څخه يې ويني او مالداران خپل مسخر ګڼي، ګواکي پر دوی يو مؤکل مقرر دی کوم چې د مالدارانو څخه يې ده ته رسوي، او دا مؤکل هغه ايمان دی کوم چې د الله ﷻ د طرف څخه ده ته ورکړل سوی دی، او په دې وجه سره سوی دي چې د ده نجات او سعادت د صدقې سره تړل سوی دي او که دا مؤکل مقرر نه وي نو د هيڅ طرف څخه به يوه دوړه هم ده ته نه ور رارسېدلې، نو احسان د هغه دی چا چې دا مؤکل مقرر کړی نو کوم فقير چې داو ګڼله چې د مالدار لاس خو محض يوه واسطه ياوسيله ده. بلکې مُسخّر دی نو هغه د دې واسطې او وسيلې پيدا کوونکي ته ګوري او د هغه شکر ادا کوي، چا چې د الله د بندګانو شکر يې ادا نه کړ هغه د الله شکر کله ادا کولای سي؟ څنګه چې د دې بندګانو تعريف خو پخپله الله ﷻ کړی دی، حال دا دی چې هغه د ده د عملونو خالق دی، بلکې په يو ډول سره د دوی شکر يې ادا کوي فرمايي: نِعْمَ الْعَبْدُ إِنَّهُ

اَوَّابٌ [ص:۳۰] (ډېر ښه بنده وو د خدای وطرف ته ډېر رجوع کوونکی وو) دارنګه فرمایي: انه کان صِدِّیقًا نبیًّا [مریم:۴۱] (بې شکه هغه ډېر رښتونی پیغمبر وو) او دا مثالونه ځکه ورکړل سوي دي چي الله ﷻ څوک واسطه د خیر او برکت جوړوي هغه معزز او محترم جوړوي، لکه څنګه چي فرمایل سوي دي: طُوبَىٰ لِمَنْ خَلَقْتُهُ لِلْخَيْرِ وَيَسَّرْتُ الْخَيْرَ عَلَىٰ يَدَيْهِ (خوشحالي ده هغه چا ته چي ما پر هغه د نېکی د پاره پیدا کړو او د ده پر لاسو مو نېکي اسانه کړه) نو د الهي عزیزانو قدر پېژندل پکار دي او د شکر معنی دا ده. او پکار دي چي دغه ورکوونکي ته دعاء وکړي او وایي "پاک دي کړي الله ستا زړه د نیکانو د زړه په شان، ستا عملونه دي وګرځوي دنېکانو داعمالو په ډول. او رحمت دي وکړي ستا پر روح د شهیدانو دروح په ډول" او په حدیث شریف کي راغلي دي چي څوک ستاسو سره نېکي وکړي ته هم په بدله کي د ده سره نېکي کوه، او که نه سي یې کولای نو د ده په حق کي دومره قدر دعاء وکړه چي ستایقین وسي چي د هغه بدله دي په پوره ډول سره ادا کړه. او د ټولو څخه غټ شکر دا دی چي د صدقې عیب پټ وساتي یعني که هغه لږ وي نو ته یې لږ مه ګڼه او سپک ور ته مه وایه. دغه ډول ورکوونکي ته پکار دي چي څه ورکوي چي هغه یې سپک وګڼي هغه که ډېر زیات ولي نه وي، او د تعظیم په نظر سره دي ور ته نه ګوري (چي ما ډېر څه مي ورکړل).

**دریمه** خبره دا ده چي څه حلال نه وي هغه دي نه قبلوي او د سود روپۍ او په ظلم سره حاصل سوي شئ دي هم د چا څخه نه اخلي.

**څلورمه** دا چي دومره دي اخلي څومره ته چي د ده حاجت وي د ضرورت څخه سوا دي نه اخلي، که د سفر د پاره یې اخلي نو د سفر د توښې څخه زیاتي دي نه اخلي او که قرضداره (پوروړی) وي او د قرض ادا کولو د پاره یې اخلي نو د قرض د اندازې څخه زیات دي نه اخلي او که بچیانو د کفالت د پاره اخلي نو ضرورت که د لسو روپو وو نو یوولس دي نه اخلي ځکه چي د ضرورت څخه زیاتي یوه روپۍ هم حرامه ده، او که په کور کي څه شیان د اصل ضرورت څخه زیات موجود وي نو هم زکوة اخیستل صحیح نه دي.

**پنځم** دا چي زکوة ورکوونکي که عالم نه وي نو اخیستونکي دي د ده څخه پوښتنه وکړي چي ده ته څه ورکوي دا د مسکینانو حصه ده که د قرضدارانو؟ او بیا که دغه صفت په ده کي په نظر راسي، مثلاً هغه د زکوة اتمه حصه دغه یو فقیر ته ورکوي نو ده ته پکار دي چي قبوله یې نه کړي ځکه چي دامام شافعي په مذهب کي دا روا نه دي چي ټوله حصه یو سړي ته ورکړل سي.

**د صدقې ورکولو فضیلت:** نبي ﷺ فرمایلي دي چې صدقه ضرور ورکړه هغه که یوه خُرماولې نه وي، ځکه چې دا فقیر ژوندی ساتي او ګناه داسې ختموي لکه اوبه چې اور وژني، داړنګه فرمایي چې د دوږخ د اور څخه ځان وساته که څه هم په نیمه خرما سره ولې نه وي او که دا هم ونسي نو خوش کلامي (ښه اخلاق) ښایي، داړنګه فرمایي "یومسلمان داسې نسته چې کوم په حلال مال سره صدقه وکړي او الله ﷻ د ده پالنه پخپل لاس د کرم سره داسې ونه کړي لکه چې تاسو د خپلو څارویانو کوئ" او د هغه پالنه خو په دې درجه وي چې څو خرماوي د اُحد د غره شکل اختیاروي" (یعني ثواب یې) او فرمایي " د قیامت په ورځ به هر څوک د خپلې صدقې تر سایې (سیورې) لاندې وي، تر دې چې دمخلوق په باره کي احکام صادر کړای سي" (یعني د آخري فیصلې څخه وړاندې دېې قراری او پریشانی څخه به یې صدقه محفوظ ساتي، او فرمایي "چې صدقه د شر او فتنو د دروازو څخه اویا دروازې بندوي" کله چې خلکو پوښتنه وکړه چې دکمې صدقې فضیلت زیات دی؟ نو ورېې فرمایل دهغې کومه چې د صحت او روغتیا په حالت کي ورکړل سي یعني کله چې دژوند اُمید وي او دمفلسی یو خطره نه وي، نه داسې چې انتظار کوي کوي، هغه وخت ورکړل سي کله چې روح خولې ته را روانه وي او دغه وخت وروایي چې دا فلاني ته ورکړئ دغه فلاني ته، چې که دغه وخت د فلاني فلاني تخصیص کوی او که نه دغه صدقه به تقسیمیږي، او حضرت عیسی ؈ فرمایلي دي چې "کوم سړی یو سوال ګر (فقیر) د دروازې څخه خالي واستوی فرشتې تر اووه ورځو پوري دغه کورته نژدې نه ورځي" او نبي کریم ﷺ به چیري هم دوه کارونه چا ته نه پرېښوول او پخپلو لاسو به یې کول: یو به یې صدقه همېشه پخپلو لاسو فقیر ته ورکوله او یو دا چې د شپې د اودسه اوبه به یې همیشه پخپلو لاسو ایښودې، او د لوږي خوا څخه به یې پټولې، او فرمایل یې چې چا یو مسلمان ته کپړه د اغوستو دپاره ورکړه، دی به تر هغه وخته پوري د الله ﷻ په امان کي وي تر څو چې د ده اغوستل سوې کپړه د هغه مسلمان پر بدن باندې وي او حضرت عائشې صدیقې رضی الله عنها پنځوس زره درهمه په صدقه کي ورکړل لیکن خپلې پینه سوې کپړې یې هم دغسې پرېښوولې او یو نوی قیمص یې هم ځان ته جوړ نه کړی؛

او ابن مسعود ؓ روایت کوي چې یو سړي اویا کاله په عبادت کي مصروف وو لیکن د دې څخه وروسته یو عظیمه ګناه د ده څخه داسې وسوه چې د ده ټول عبادت ختم سو مګر یوه ورځ د یو فقیر پر خوا تېر سو نو دغه سړي د ډوډۍ یوه ټوټه دغه فقیر ته ورکړه نو الله ﷻ د ده هغه ګناه وبخښله او د ده

لويا کله عبادت هم ده ته واپس ملاوسو، او د حضرت لقمان وصيت هم خپل زوی ته داوو چې: "اې زويه! هر کله چې ستا څخه يو ګناه وسي نو صدقه ورکړه" او عبد الله ابن عمر رضي الله عنه به د صدقې ورکولو په وخت د الله جل جلاله ډېر ډېر شکر ادا کولو او ويل به يې چې د الله جل جلاله ارشاد دی چې: "تاسو به کامل خير هم تر هغه وخته حاصل نه کړای سي تر څو چې خپل د ټولو څخه خوښ شئ د الله جل جلاله په لاره کي خرڅ نه کړی" [آل عمران: ۲۹] او الله تعالی پوه دي چې زه (عبد الله ابن عمر رضي الله عنه) دغه‌ډلی پاک شکر ګران او دوست ګنم" (يعني د الله تعالی شکر کول ما ته ډېر خوښ دي) او شعبي رحمه الله فرمايي چې کوم سړی خپل ځان د صدقې د ثواب د هغه فقير څخه زيات متحاج نه ګڼي کوم چې دغه صدقه اخيستې ده نو د ده دغه صدقه به قبوله نسي، او حسن بصري رضي الله عنه يو غلام خرڅونکي وليدی چې يوه ښايسته مينځه يې خرڅوله. او پوښتنه يې وکړه آيا په دوه درهمه دا خرڅوې؟ نو هغه وويل چې يا، نو ويې ويل چې الله (دوه درهمه څه کوي) په دوو پيسو باندي يعني د دوو پيسو د صدقې په عوض حورعين خرڅوي کوم چې د دې څخه زيات ښايسته ده.

## شپږم اصل: د روژې په باره کي

پوسه! چې روژه د اسلام د ارکانو څخه يو رکن دی، نبي صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي چې الله جل جلاله فرمايي: "زه د يوې نېکۍ بدله د لسو څخه ... تر اوو سوو ... پوري ورکووم لېکن روژه خاص زما د پاره ده او د دې بدله به زه پخپله ورکووم" يعني د دې نېکي اجر دومره اندازه زيات دی چې د دې هيڅ حدّ معين نه دي، لکه څرنګه چې الله جل جلاله فرمايي: إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُم بِغَيْرِ حِسَابٍ [الزّمر: ۱۰] (په صبر کي د استقلال څخه کار اخيستونکي ته به د دې بې شمېر صله (بدله) ملاوېږي" يعني د دې خلکو د اجر او بدلې هيڅ حساب او شمار نسي کېدای، څوک چې د شهواتو او خواهشاتو څخه صبر کوي بلکي دغه د اندازې څخه دباندي وي؛ او فرمايي "صبر نيم ايمان او روژه نيم صبر دي" څرنګه فرمايي: "چې د روژه دار د خولې بوی د الله جل جلاله په نزد د مشکو د بوی څخه ښه دی" او د الله جل جلاله ارشاد دی چې: "زما بنده د خوراک څښاک خواهش او د جماع شهوت زما د پاره ترک کړی دي نو د دې صله به هم زه ورکووم" او نبي صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي چې: د روژه دار خوب عبادت دی د ده ساه اخيستل تسبيح ده او د ده دعاء مستجابه ده" او فرمايي چې: "کله رمضان راسي نو د جنت دراوزې خلاصې سي د دوږخ دروازې بندې سي او شيطانان قيد کړل سي، او آواز کوونکي آواز کوي چې اې د خير وبرکت طلب کوونکي! راسه داوخت ستا دی، او اې د شر طلب کوونکې! بنده ستا د پاره هيڅ ځای نسته" او د

روژې تر ټولو غټ فضیلت خو دا دی چي الله ﷻ په خاصه توګه د دې خپل ځان ته نسبت کړی دی او په وضاحت سره یې فرمایلي دي چي: " روژه زما د پاره ده او د دې بدله به هم زه پخپله ورکووم"، یعني که څه هم چي هر عبادت د خدای د پاره دی لیکن د روژې تخصیص داسې دی لکه چي کعبې ته یې خپل کور ویلي دي حال دا دی چي ټوله دنیا د هغه ده. او د روژه دارو دوه خاصتونه داسې دي کوم چي دی د دې خصوصي نسبت مستحق ګرځوي:

یو خو دا چي د ده حقیقت (خواهش نه کول) دي او دا باطني خصوصیّت دی کوم چي د خلکو د نظرونو څخه پټ دی او په دې کي د یو ډول ریا کاری دخل نسته. او دویم دا چي دالله ﷻ دښمن ابلیس دی او شهوت د ده لښکر دی، او روژه دې لښکر ته شکست (ماته) ورکوي چي د ده حقیقت د شهوت ترک کول دي،او په دې وجه نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي: " شیطان په بنده کي داسې روان وي لکه وینه چي په ده کي روانه وي"، نو پکار دي چي د لوږې په ذریعه د ده لاره تنګه کړای سي دارنګه فرمایي: "روژه ډال دی" کوم چي د ګناهونو د ګذار څخه پناه ورکوي، او حضرت عائشه فرمایي چي "د جنت په دروازه ټکولو کي تأمل مه کوئ" خلکو پوښتنه وکړه چي په څه شئ یې ټکوو؟ ویې فرمایل په لوږه سره " او و دنبي کریم ﷺ فرمان دي چي: "د عبادت دروازه روژه ده"، او دا هر څه ځکه دي چي په عبادت کي حائله کېدونکي شیان شهوتونه دي، او د نس ډ کېدل د شهوتونو مدد ګاره وي او لوږه شهوتونه ختموي.

## دروژې فرائض

په روژه کي شپږ شیان فرض دي: (۱) اول دا چي د روژې مبارکي د میاشتي تلاش کوي، چي معلومه سي چي میاشت پوره د دېرشو ده او که د نه ویشتو - ده. او روا ده چي د یو عادل په خبره اعتماد وکړي، لیکن د اختر د پاره د د وو ګواهانو څخه د کمو ګواهي به نه قبلیږي. او که چا د رمضان د میاشتي په باره کي د یو ربښتوني سړي څخه واورېدل چي میاشت مي لیدلې ده نو روژه پر ده واجب سوه که څه هم د قاضي حکم د ده موافق نه وي، او که په داسې ښار کي میاشت ولیدل سوه کوم چي د یو کلي څخه د شپاړسو کوڅو پر فاصله وو او په دغه کلي کي میاشت نه وي لیدل سوې نو په دغه کلي کي روژه واجب نه ده او که فاصله د دې څخه کمه وه بیا پر فرض ده.

دویم شئ نیت دی: که هره شپه نیت کوي او که دا یاد لري چي دا د رمضان شریف روژه ده او فرض ده. او کوم مسلمان ته چي دا خبره یاده وي چي دا د رمضان روژه ده او فرض ده. د ده زړه د نیت څخه

خالي کېدای نه سي، او که د شک په شپه يې نيت وکړی چي صبا به روژه نيسم په دې شرط که صبا روژه وه نو د ده دا نيت به صحيح نه وي که څه هم په دغه ورځ واقعي د رمضان روژه شروع سي، ترڅو چي د باوري سړي په وينا شک ليري نسي، او د شپې په آخري حصه کي هم نيت کول صحيح دي، که څه هم دغه يې په شک کي کړی وي، ځکه چي د دې اصل دا دی چي رمضان اوس لا باقي دی. او که يو سړی په تياره ځای کي وي او پخپل فکر او اجتهاد سره د وخت تعين کوي او د خپل دې اعتماد پر بناء نيت کوي نو دا صحيح دی، او که د شپې يې نيت کړی وي نو سره د دې چي څه وخوري روژه نه باطليږي، بلکي ښځه که دا خيال وکړي چي حيض به بند سي نو نيت وکړی ليکن وروسته په حقيقت کي بند نسي نو هم روژه به صحيح وي.

دريم دا چي د بهر څخه ارادةً يو شئ دننه نس ته بيول نه دي پکار، مګر په رګ وهلو حجامت جوړولو، رنجو لګولو، په غوږ کي په سلائي اچولو، د ذکر (قضيب) په سوري کي په پنبه اينبودلو سره کوم نقصان نه رسيږي، ځکه د دننه څخه مراد هغه ځای دی کوم چي د يو شئ قرارګاه وي، مثلاً دماغ، نس، معده او مثانه وغيره، او که بلا اراده يو شئ دننه ورسی مثلاً مچ، غوماشه، ګرز (دوړه، خاوره) يا د خولې اچولو اوبه چي که د خولې څخه لاندي حلق ته ورسي، او که په هېره سره يو شئ وخوري نو هيڅ باک نسته. څلورم دا چي د خپلي بي بي سره به کوروالی نه کوي او که د مباشرت دې درجې ته ورسيږي چي غسل لازم سي نو روژه به باطله سي، او که روژه يې هېره وي بيا به باطله نه وي او که د شپې د مباشرت څخه وروسته غسل کوي نو هم روا دي.

پنځم دا چي په هيڅ طريقه سره به هم دا قصد نه کوي چي مني خارج سي تر دې چي که د بي بي سره د محبت او ميني کولو په وخت که د کوروالي قصد يې هم نه وي ليکن انزال يې وسو نو روژه به باطله سي.

شپږم دا چي ارادةً به قی نه کوي او که بې اختياره يې قی وسو نو روژه نه ماتيږي. دغه بول که د زکام يا بل سبب سره يې بلغم د حلق څخه بهر راغلل او هغه تو کړل نو هيڅ قباحت نسته، چي د دې څخه ځان ساتل ګران دي، ليکن که خولې ته راغلل او بيا يې تېر کړل نو روژه به ماته سي.

## د روژې سنتونه

او د روژې سنتونه هم شپږ دي: (۱) پېشلمی ناوخته کول (۲) په روژه مات کولو کي تلوار کول کوم چي په خُرما يا اوبو سره غوره دي د زوال څخه وروسته مسواک نه کول (۴) سخاوت کول،

صدقه ورکول او خوراک تقسیمول (۵) د قرآن تلاوت ډېر کول (۶) په مسجد کي اعتکاف کول خصوصاً دآخرو لسو شپه په وخت کي چي لیلة القدر په دې شپو کي ده. او نبي ﷺ په دې لسو شپو کي به خوب پرېښووی او د عبادت د پاره به یې ملاوتړله. دوی او د دوی اهل به د عبادت څخه لې ګړی هم آرام نه کولو. او لیلة القدر درمضان په یوویشتمه درویشتمه پنځویشتمه یا په اوویشتمه شپو کي په یوه شپه کي دی. او زیاتره امکان یې په اوویشتمه شپه کي دی. بیا هم غوره دا ده چي اعتکاف په دې لسو شپو کي مسلسل جاري وي. او که نیت یې کړی وي چي دا لس شپې به مسلسل معتکف وي نو لازمه ده چي د قضاء حاجت څخه ما سوا د مسجد څخه نه ووځی. او د اودس کولو څخه زیات په کور کي نه وسي او که د ناروغه پوښتنه یا ګواهي یا د اودس نوی کولو د پاره بهر راځلو نو اعتکاف نه ماتیږي او د جنازې په لمانځه هم نه ماتیږي. او په مسجد کي خوب خوراک کول جائز دي. او د رفع حاجت څخه چي راسي نو د اعتکاف نیت دې تازه کوي.

## د روژې حقیقت او راز

پوه سه! چي د روژې درې درجې دي: (۱) د عوامو روژه (۲) د خواصو روژه (۳) د خواص الخاصو روژه.

دعوامو روژه هغه ده دکومې چي لوړ بیان وسو. او د دې انتها دا ده چي د خوراک څښاک او جماع څخه پرهیز وسي او دا د ټولو درجو څخه ادنیٰ درجه ده. لیکن د خواص الخواصو رروژه د لوړي او ختې درجې روژه ده او هغه دا چي زړه د ټولو اندیښنو څخه ما سوا د خیال د الله ﷻ څخه بالکل پاک کړی سي، او خپل ځان په بشپړه توګه هغه ته وسپارل سي، او د هغه څخه ما سو د ظاهر او باطن هر شئ څخه روژه وساتل سي، (یعني غیر الله په بشپړه توګه سره پرېښوول سي) داسي روژه دار د ذکر الهي یا د ذکر الهي سره متعلق د یو شئ څخه ما سوا نور یوه خبره پر ژبه نه راوړی، او که راوړي یې نو روژه ماتیږي او که د یو څه دنیوي غرض په باره کي غور او فکر کوي نو هر څومره که دا مباح دی (صرف د عوامو د روژې په صورت کي کنې) تر کومه چي د روژې د خواص الخاصو تعلق دی دغه باقي نه پاته کیږي. هو! که دغه دنیوي فکر داسي چي په دین کي مددګاره وي نو بیله خبره ده چي دغې ته په حقیقت ک دنیاوي فکر نه ویل کیږي نو په دې جه ویل سوي دي چي داسي روژه دار که د ورځي په وخت کي دا تدبیر کوي چي روژه به په څه شئ سره ماته کړي (یعني په روژه مات کي به څه شئ وخورم) نو دا تدبیر به د ده په ګناهونو کي ولیکل سي ځکه چي دا ثبوت دی د دې خبري چي الله ﷻ

د کوم رزق د ده سره وعده کړې ده پر دې يې پوخ يقين نسته، او دا درجه د انبياؤ او صديقنو ده او هر څوک دې درجې ته نسي رسېدلای.
او د خواصو روژه دا ده چې خپل اندامونه نه داچې صرف د خوراک څښاک او جماع څخه منع کړي بلکې د دې څخه ما سوا يې د نورو نابايسته او نامناسبه أمورو څخه هم منع کړي او د دې روژې بشپړ تيا په شپږ شيانو سره کېږي، يو خو دا چې سترګې د هر داسې شي څخه وساتي کوم چې د غير الله طرف ته رغبت ورکوي، خاص د هغو شيانو څخه چې شهوت راپورته کوي څکه د نبي کريم ﷺ فرمان دی چې؛ نظر د شيطان د زهرجنو غشو څخه يو غشی دی څوک چې د خدای د ويرې څخه د دې څخه ځان ساتي ده ته داسې ايمان په خلعت (انعام) ورکول کېږي چې مزه يې د ده زړه محسوسوي. او د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي پنځه شيان داسې دي چې په هغو روژه ماتيږي يعنې دروغ، چغلي، په بل پسې خبري کول (نکته چيني)، د دروغو قسم او د شهوت نظر.
دويم دا چې ژبه د پالتو (اضافي) خبرو څخه وساتي او په داسې خبر کې يې ولګوي چې دی د عبث بکواس څخه منع ساتي، او د دې طريقه دا ده چې په ذکر الهي او تلاوت د قرآن کې مشغول وي، يا بيا خاموش وي (چې خاموشي هم يو عبادت دی) او په مناظره کې مبتلا يا په بحث او تکرار کې پرېوتل پخپله په نقصاني دول پالتو (اضافي) بکواس کې شامل دي او غيبت او دروغ (خو داسې بدې خبرې دي چې) د بعضو عالمانو په نزد خو په دې سزه صرف د خواصو نه بلکې د عوامو روژه هم باطليږي.
**روايت:** په حديث شريف کې راغلي دي چې دوو ښځو روژه ونيوله او دومره تږې سوې چې د مرګ خطره يې پيدا سوه آخر چې د نبي کريم ﷺ څخه د روژې ماتولو اجازت وغوښتل حضور ﷺ يوه پياله دوی ته وليږل چې په دې کې قی وکړئ (چې قی يې وکړی) نو د دواړو د حلق (ستوني) څخه د جمع سوو وينی ټوټی راووتلې، خلکو په دې تعجب وکړی نو دوی وفرمايل چې دې ښځو د هغه شئ څخه روژه نيولې وه کوم چې الله ﷻ حلال کړی دی او بيا يې په هغه شئ ماته کړل کوم چې هغه حرام کړی وو، يعنې په غيبت کې مشغولې سوې، او دا کوم چې د دوی د ستونې څخه راوتلي دي په اصل کې د انسانانو غوښه ده، کومه چې دوی د روژې په حالت کې خوړلي دي (يعنې غيبت يې کړی دی).
دريمه دا چې غوږونه د داسې خبرو د اورېدو څخه وساتي چې د هغو اورېدل ناجائز وي څکه چې

دکمو خبرو کول چي جائز نه وي د هغو او بدل هم جائز نه دی. او بدونکي د ویونکي سره برابر شریک دي او دغیبت او دروافو په گناه کي د ده سره حصه داره دی؛

څلورم دا چي تول اندامونه د ناروا خبرو او کارونو څخه وساتي ځکه چي څوک د روژې په حالت کي هم د دې حرکاتو څخه نه منع کیږي، د ده مثال د داسي مریض دی کوم چي د میوه خوړو څخه خو پرهیز کوي، لیکن زهر خوري، ځکه چي گناه د زهرو په ډول ده، او میوې خفا ده چي ډېر زیات خوړل یې که څه هم تقصاني دي بیا هم په خپل اصل کي خو دغه زهر نه دي، او په دې وجه حضور ﷺ فرمایلي دي چي ډېر روژه دار داسي دي کومو ته چي په روژه سره د ملسوا د لوږي او تندي څخه نور څه نه حاصلیږي.

پنځم دا چي د روژه مات په وخت کي دي حرام او شکمن شیان نه خوري او خالص حلال دي هم زیات نه خوري ځکه چي که د شپې څخه دا تدبیر وکړي چي د ورځي خو څه خوراک نسته نو د اوس څخه لا د ورځي حصه په نس کي واچوه، نو اصل مقصد به څنگه حاصل سي؟ چي د روژې اصل مقصد خو شهوت کمزوري کول دي او د دوو وختونو خوراک پر یو ځای په نس کي اچول خو شهوت نور زیاتوي، په ځانگړې توگه داسي وخت کله چي هر ډول خوړکونه جمع کړل سي ځکه چي معده خالي نه وي، زړه به څنگه صفا سي بلکي سنت دا دی چي روژه دار د ورځي ډېر خوب هم ونه کړي چي کمزوري او لوږه په ځان کي محسوسه کړي، او د شپې چي لږ ونه خوري او بیده نسي نو د شپې لمونځ به څنگه ادا کړي؟ په دې وجه نبي ﷺ فرمایلي دي چي د الله ﷻ په نزد وک نس څخه زیات دښمن د روژه دار د پاره بل شئ نسته. شپږم دا چي وروسته د روژمات څخه دي په دې بیره او اُمید کي ځان نه ویلي کوي، چي معلومه نه ده روژه به قبوله سوې هم وي او که نه؟

**قصه:** حسن بصري رحمه الله د اختر په ورځ پر ځینو خلکو تېر سو چي هغو خندل او په لوبو او غفلتو کي مشغول وو، دوی وویل الله ﷻ د روژې میاشته د یو میدان په ډول جوړه کړې ده د دې د پاره چي د ده بندگان په عبادتونو او اطاعت کي د یوبل څخه د مخکي کېدو کوشش کوي نو په دې کوشش کي څوک مخکي کیږي او څوک وروسته پاته کیږي، لیکن تعجب دی پر هغو خلکو کوم چي دغه ډول خنداگاني کوي او د خپل حال د حقیقت څخه بې خبره دي، قسم مي دي په الله ﷻ که پرده (حجاب) پورته سي او حقیقت د حال ښکاره سي نو اوس به معلومه سي چي څوک مقبول دي او څوک مردود؟ نو مقبولان د درگاه به په خوشحالی کي وي او مردود به په غم او تکلیف کي غرق

سي، لیکن په خندا کانو او بازیو کي به هیڅ شوک هم وخت ضائع نه کړي؛ نو په دې تولو خبرو سره به ته په دې خبره پوه سوی یې چي کوم سړی د روژې شخه فقط دا مراد اخلي چي بس خوړل چښل پریوتل دي او دا کافي دي نو د ده روژه د یو بې روحه جسم په ډول ده. حال دا دی چي حقیقت د روژې دا دی چي خپل ځان د فرشتو په ډول جوړ کړي، چي په دوی کي شهوت بالکل نه وي او پر ځارویانو شهوت غلبه وي او په دې وجه سره هغه د دې مقام شخه ډېر لیري دي، نو چي پر کوم سړي شهوت غلبه وي هغه د ځارویانو په درجه کي وي، لیکن که دا شهوت مغلوبه کړي نو دی د فرشتو سره مشابهت پیدا کوي، او په دې سبب سره دوی ته زیات نژدې وي په دې وجه داسي انسان هم الله ﷻ ته زیات نژدې کیږي، لیکن کوم سړی چي د هغه تقاضا کوي نو د ده شهوت به زیات مضبوطیږي نه دا چي کمزوری به سي، نو ده ته به د روژې روح شنګه حاصل سي.

## د قضاء او کفارې، فدیې او امساک حقیقت

پوه سه! چي په رمضان شریف کي د روژې په پرېښودلو سره قضا، کفاره یا فدیه واجبیږي لیکن د هر یو خپل خپل محل او مقام دی، او کم شوک چي مکلف یعني بالغ مسلمان په یو عذر سره یا د عذر شخه ماسوی روژه پرېږدي پر ده قضا واجبه ده. او پر حائضه ښځه یا مسافر یا مریض (ښځه او سړی) بلدي هم قضا واجبیږي، او دغه ډول پر مرتد هم، لیکن پر لیوني، نابالغه قضا واجب نه ده. او کفاره د مباشرت (کوروالی) شخه ماسوا یا ارادهٔ د منی د ایستولو شخه نه واجبیږي، او د کفارې صورت دا دی چي یو غلام آزاد کړی او که نه وي نو د وه میاشتي مسلسل دي روژې ونیسي او که نسي یې نیولی نو شپیتو مسکیناتو ته دي شپیته مُده غله ورکړي او مُد په درې حصې کم یو من او یو سېر وي،

د امساک معنی دا ده چي د ورځي په پاته حصه کي د خوراک چښاک او جماع شخه ځان ساتل، او دا پر هغه سړي لازم دي کوم چي بغیر د عذر شخه روژه ماته کړي، او حایضه که په ورځ کي پاکه سي یا مسافر واپس راسي یا ناروغه جوړ سي نو په دوی کي پر یو چا امساک نسته، که د شک په ورځ چا د میاشت لیدلو خبر ورکړی نو چاچي څه خوړلي وي پر ده لازم دي چي د روژه دار په ډول تر ماښامه پوري نور خوراک چښاک ونه کړي، او کوم روژه دار ته چي دورځي سفر ورپېښ سي او روژه ماته نه کړي او د ورځي یو ښار ته ورسیږي نو بیا به یې هم نه ماتوي او د مسافر د پاره روژه نیول ښه دي، او که طاقت یې د روژې نیولو نه وو نو فدیه دي ورکړي او فدیه یو مُد غلّه ده چي مسکین ته به یې ورکوي (خو د احنافو په نزد د فدیه اجازه صرف شیخ فاني یا د ژوند شخه د ناامیده سړي (یعني هغه سړی

چي مرگ ته نژدې وي) د پاره ده)
حاملې ښځې يا کوچنی ته شيدې ورکونکې ښځه که د کوچني د هلاکت د ډېرې څخه روژه ماته کړي نو قضا او فديه دواړه په پر لازم وي، کوم نارو غه چې د خپل هلاکت د ډېرې څخه روژه ماته کړي نو پر ده فديه لازمه نه ده، او شيخ فاني کوم چې د ضعف او کمزورۍ په سبب روژه نسي نيولای، دی به هم فديه ورکوي، که يو سړی په قضا کې دومره ځنډ (تأخير) وکړي چې بل رمضان راسي نو پر ده به د هري روژې په عوض د قضا سره فديه هم لازمه وي.

## فصل: سنت او نفل روژې

په ټوله کال کې چې کومې ورځې مبارکې دي په دغوکې روژه سنت ده، لکه د عرفات ورځ، د عاشورا ورځ د ذو الحجه اولي نهه ورځې او د محرم اولي لس ورځې او د رجب او شعبان، په حديث شريف کې دي چې د رمضان څخه وروسته دمحرم روژې د ټولو څخه افضله دي، او ټوله مياشت د محرم روژه نيول سنت دي او داولو لسو ورځو دپر تاکيد (ټينګار) سته او په حديث کې دي چې د محرم د مياشتې يوه روژه دبلې مياشتې د شلو روژو څخه غوره ده، او د رمضان يوه روژه د محرم د شلو روژو څخه غوره ده، نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چې څوک په محرم کې د پنجشنبې، جمعې او شنبې په ورځ روژه ونيسي د ده په عملنامه کې د اوو سوو کالو د عبادت ثواب ليکل کيږي، څلور مياشتې د حرمت دي: محرم، رجب، ذوالقعده، ذوالحجه، په دې کې څلورمه زياته غوره ده ځکه چې د حج مياشت ده.

او په حديث کې دي چې د الله ﷻ په نزد د يوه وخت عبادت د ذوالحجې د اولو لسو ورځو د عبادت څخه غوره او محبوب نشته او، په دې کې د يوې ورځې روژه د يو کال د روژو برابر ده او د يوې شپې عبادت يې د ليلة القدر د عبادت په ډول دی، خلکو پوښتنه وکړه چې آيا په جهاد کې هم دومره فضيلت نشته دوی وفرمايل نه! هو! د کوم سړی آس چې په جهاد کې مړ سو يا پر ده وينه وبهېده په جهاد کې (نو دی غوره دی).

د صحابه کرامو ﷺ يو ډله دا خبره مکروه ګڼلې ده چې د رجب ټوله مياشت روژې ونيول سي دا ځکه چې د رمضان سره يې مشابهت راسي، په دې وجه يوه ورځ يا زيات دې افطار وکړی، او په حديث کې دي چې کله شعبان نيمې ته ورسيږي نو تر رمضان پورې دې روژې نه نسي چې رمضان د دې څخه جلا سي، او د شعبان په آخر کې د رمضان د استقبال د پاره روژې نيول مکروه دي، هو! که نيت

يې استقبال نه وي بل غرض وي بيا خير دي، په هره مياشت کې دا ايام بيض (د ديارلسمې، څوارلسمې، پنځلسمې) روژې نيول افضله دي، او په هره اونۍ (هفته) کې د دوشنبې پنجشبې او د جمعې د ورځې د ټول کال روژو ته شاملې دي؛

لېکن په کال کې پنځه ورځې داسې دي په کومو کې چې روژه نه نيول ضروري دي، د کوچنی اختر ورځ، د لوی اختر څلور ورځې يعني د ذی الحجې لسم يوولسم دوولسم ديارلسم تاريخونه، پرخپل ځان د افطار ممانعت کول مکروه دي او کوم سړی چې د ايام دهر (يعني ټول کال) روژې نه سی نيولای هغه دې يوه ورځ روژه او يوه ورځ افطار کوي يعني د داؤد ﷺ په ډول دې روژې نيسي، حضرت داؤد ﷺ به داسې روژې نيولې، د دې په حديث کې لوی فضيلت راغلی دي، عبد الله ابن عمر بن العاص ﷺ چې د نبي کريم ﷺ څخه دا پوښته وکړه چې د روژې بهترينه طريقه څنګه ده؟ نو دوی د داؤد ﷺ د روژو لړوند وفرمايل، کله چې ده د دې څخه د بهترينې او نبې طريقې پوښتنه وسوه، نو دوی ﷺ وفرمايل چې د دې څخه غوره طريقه هيڅ نسته، او د دې څخه کمه دا ده چې د پنجشنبې او دوشنبې په ورځ روژې نيسي تر دې چې دکال د دريم سره برابر سي او رمضان د دې څخه ماسوا وي، هر کله چې يو سړی دا وګني چې د روژې مقصد د خواهشاتو بيخ کېښل او د زړه صفايي ده نو ده ته پکار دي چې د خپل زړه حفاظت او ساتنه په دې صورت کې کوي چې کله روژه او کله افطار کوي، نبي کريم ﷺ به کله دومره روژې نيولې چې خلکو به ګمان وکړی چې چيري به افطار نه کوي، او کله به يې دومره افطا کوی چې خلکو به ګمان کولو چې اوس چيري روژه نه کړي، مطلب دا چې د نبي ﷺ د روژو نيولو ترتيب چيري نه وو معلوم سوی.

او علماؤ دا خبر مکروه کړې ده چې د څلورو ورځو څخه زيات مسلسل افطار وکړی سي، او دا عمل د اختر د ورځې د ايام تشريق څخه را اخيستل سوی دي چې دغه څلور ورځې جوړېږي، په دې وجه چې هميشه د روژې په نه نيولو سره د دې خبري يېره پيدا کېږي چې داسې نه چې زړه تورسي او توروالی دومره بانډي غالبه سي چې زړه يې کمزوری سي.

## اووم اصل: د حج کولو په باره کې

پوه سه! چې حج دارکانو د اسلام څخه يو رکن دی، او د ټول عمر عبادت دی، او نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چې کوم سړی مړ سي او ده حج نه وي کړی ده ته ووايه! چې يهودي مړ کېږې او که نصراني، او فرمايلي يې دي چې چا حج وکړی او بيا يې خپل ځان د فسق او فجور څخه پاک

وساتی لوژنه یې د حبشو او نالائقو خبرو څخه وساتله، دی به د ټولو ګناهونو څخه داسې پاک سي لکه چې په هغه ورځ پاک وو، په کومه ورځ چې دی پیدا سو، او ورپې فرمایل چې داسې ډېر ګناهونه دي چې د هغو کفاره په عرفات کې د دریدلو څخه ماسوا نه ادا کیږي او فرمایلي یې دي چې شیطان به په بله ورځ دومره ذلیل او خوار نه وړینې څومره چې دی د عرفات په ورځ ذلیل او خوار وي، هغه چې الله ﷻ پر خپلو بندګانو د رحمت دروازې خلاصې کړي او غټ غټ کبیره ګناهونه بخښي، او فرمایلي یې دي چې کوم سړي د حج په اراده د کوره ووځی او په لاره کې مړ سي نو تر قیامته پورې به هر کال ده ته په عملنامه کې د یو حج او عمرې ثواب لیکل کیږي، او که د چا مرګ په مکه مکرمه یا مدینه منوره کې واقع سي نو ده ته څخه به نه پوښتنه کیږي، او نه به څیني حساب اخیستل کیږي، او فرمایلي یې دي چې یو مبرور حج د دنیا او ما فیها څخه غوره دی او د جنت څخه ماسوا د ده بله جزاء نسته، او فرمایلي یې دي چې یو ګناه د دې څخه زیاته نسته چې کوم سړی په عرفات کې ولاړ وي او دا خیال کوي چې د ده بخښنه نه ده سوې.

**قصه:** علی بن الموفق کوم چې په بزرګانو کې یو بزرګ تېر سوی دي فرمایي چې یو کال ما حج وکړی د عرفات په شپه مې په خوب کې ولیدل چې دوې فرښتې چې شنې کپړې یې اغوستې دي د اسمان څخه راکښته سوې، یوې بلې ته وویل آیا ته پوه یې چې په دې کال څومره خلکو حج وکړی، بلې په جواب کې وویل چې نه!، بلې وویل چې شپږ لکه خلکو حج کړی دي، او بیا دویمې پوښتنه وکړه چې پوهیږې په دوی کې د څومره خلکو حج قبول سوی دي؟ بلې بیا وویل چې نه! نو اولې وویل چې صرف د شپږو خلکو حج قبول سوی دي، نو علی بن الموفق وایي چې د دې په اوریدلو سره زه د ېېري څخه راویښ سوم او په غم او پرېشانۍ کې کښېښستم په زړه کې مې وویل چې زه خو په هیڅ صورت هم په دغو شپږو کې نه سم کېدای، په دې فکر کې ووم چې مزدلفې (مشعر الحرام) ته راغلم او بیا مې په خوب کې دغه دوې فرښتې ولیدې چې یوې د بلې څخه پوښتنه وکړه چې پوه یې چې نن شپه دالله د دربار څخه د خلکو د پاره څه حکم نازل سوی دي؟ بلې فرښتې وویل: چې خبر نه یم نو دې ورته وویل چې د دغو شپږ تنو د خاطره یې د هر یو په خاطر یو یو لک افراد وبخښل یعنې د شپږو په خاطر د شپږ لکو حج قبول کړل سو، په دې خوشحالۍ سره زه د خوبه راویښ سوم او د الله ﷻ په لکو لکو شکرونه مې ادا کړل، او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې الله وعده فرمایلې ده چې هر کال به شپږ لکه بندګان د خدای د حج د پاره د دې کور زیارت کوي او که کله شمار د دې څخه کم سو نو

دومره فرښتې به راولیږل سي چې شمار به په پوره سي.

او د قیامت په ورځ به خانه کعبه د ناوې (ناوکۍ) په ډول ښایسته کړای سي او چا چې د دې حج کړی وي هغه به د دې شال و خوا طواف کوي او په پردو به يې لاسونه لګوي تر دې چې کعبه به جنت ته بوتلل سي او د دې سره به هغه ټول حاجیان هم جنت ته داخل کړای سي.

## د حج شرطونه

پوه سه! چې کوم مسلمان پر صحیح وخت حج وکړي د ده حج به صحیح وي او د حج وخت شوال، ذی القعده او د ذی الحجې نهه ورځې دي د لوی اختر تر لسمې پورې او په دې موقع کې د حج د پاره احرام تړل صحیح دي، او که د دې څخه مخکې يې د حج د پاره نیت وتړی نو دغه به حج نه بلکې عمره وي او کوچنی بچی که پوه او هوښیار وو نو د ده حج صحیح دی او که شیدې خوړونکې وو نو ولي (مشر) ته يې پکار دي چې د هغه د طرف څخه په عرفات کې احرام وتړي او سعی او طواف ور ته وکړي چې د هغه حج هم صحیح سي، نو د وخت پابندي د مسلمان د پاره د حج دا کولو لازمي شرط دی، لیکن د حج اسلام د فریضه ادا کولو د پاره پنځه شرطونه نور هم دي:

(۱) چې مسلمان وي (۲) آزاد وي (۳) بالغ وي (۴) عاقل وي (لیونی او پاګل نه وي) (۵) پر وخت احرام وتړي، او که نابالغ وو نو د احرام تړلو څخه وروسته یا په عرفات کې د دریدو څخه مخکې بالغ سو یا که غلام وو آزاد سو (د احرام تړلو څخه مخکې) نو د حج ادا کولو د پاره دا کافي ده، او د عمرې د پاره هم دا شرطونه دي، چې د عمرې وخت په ټول کال کې هر وخت چې يې کوي کېدلای سي.

لیکن د بل د طرف څخه د نیابت په توګه د حج ادا کولو شرط دا دی چې اول يې خپل فرض د اسلام ادا کړی وي، کنې که د خپل حج څخه مخکې يې د بل د پاره نیت وکړی نو دا به د ده د خپل طرف څخه وي نه چې د بل د طرف څخه، ځکه چې تر تیب به يې داسې چې اول حج د اسلام، بیا قضا بیا نذر بیا نیابت به قبول وي هغه که د دې څخه خلاف ولې نه وي.

د حج د واجبېدو شرطونه دا دي: (۱) اسلام (۲) بلوغت (۳) عقل (۴) آزادي (۵) او استطاعت د حج او د استطاعت زیات نور دوه قسمونه دي: اول دا چې طاقتور وي چې پخپله حج ادا کړی سي او د دې د پاره درې شیان ضروري دي، یعني صحت، محفوظه او خوندي لاره، چې سمندري سفر خطرناکه کېدای سي، یا داسې لاره کېدلای سي په کومه کې چې د دښمنانو د لاسه د ځان یا مال خطره وي، او دریم دا چې دومره مالدار وي چې د تللو راتللو د سفر د خرچه ادا کولو څخه

ماسوا ده تر واپسی پورې د کوچنيانو د پاره خرچه پرېښوول سي، او قرضداره نه وي، او پکار دي چي د سپرلي (سورلي) د پاره د څارويانو کرايه د ځان سره ساتي، چي په پښو حج ته تلل لازمي شرط نه دی.

دويم قسم دا دی چي که طاقتور نه وي، شل، ګوډ وي يا په بله څه وجه سره يې پخپله حج نه سو کولای يا دومره کمزوری سوی وي چي د ښه کېدلو توقع يې نه وه، نو د داسي سړي استطاعت دا دی چي دومره مالدار وي چي څوک د خپل نائب په توګه حج ته لېږلای سي او (د نورو اخراجاتو څخه ماسوا) د هغه اُجرت ادا کولای سي، او که د ده زوی د ده د پاره بغير اُجرت د حج ادا کولو د پاره خوشحالي (رضامندي) ظاهره کړه نو لازمه ده چي ده ته اجازت ورکړي، ځکه چي د پلار خدمت د زوی د پاره د فخر او عزت سبب دی، لېکن که د زوی د طرف څخه دا ورکړه وي چي دی مال ورکولو ته تيار دی چي پلار بل څوک د خپل طرف څخه د حج د پاره وليږي نو په دې صورت کي به د زوی نيابت نه دي پکار ځکه چي دا خو د مال قبلولو په سبب د ده احسانمنده کېدل سو (نو بيا حج څنګه وسو؟) دغه بول که يو غير سړی د ده د طرف څخه موت (مفت) حج کولو ته تيار وو، نو د ده احسانمنده کېدل هم لازم نه دي.

نو هر کله چي د استطاعت لوړ ذکر سوي شرطونه پوره سي نو د حج د پاره تلوار کول پکار دي، هسي خو که تأخير (ځنډوالی) وکړي نو هم صحيح دي چي که توفيق وسو نو بل کال به يې وکړم لېکن که دی د تأخير په دوران کي مړ سو او حج يې ونه کړی نو ګناه ګاره به وي، او په دې صورت کي پکار دي چي د ده د ميراث څخه د ده د طرف څخه حج وکړي هغه که ده وصيت کړی هم نه وي ځکه چي دا پر ده قرض سوی دي، او حضرت عمر ﷺ به فرمايل چي زما اراده ده چي هر ځای ته خطونه وليږم چي په ټولو ښارونو کي څومره استطاعت والا خلک حج نه کوي د هغوی څخه دي جزيه وصول کړل سي.

## د حج ارکان

پوه سه! چي هغه ارکان د حج د کومو څخه چي بغير حج نه صحيح کيږي پنځه دي: (۱) احرام (۲) طواف (۳) سعی (۴) په عرفات کي قيام (۵) ويښته خرول.

او واجبات د حج د کومو په نه کولو سره چي حج نه باطليږي خو بيا هم يوه بزه (وزه) ذبح کول لازميږي، دغه شپږ دي: (۱) د ميقات څخه احرام راتړل او که تېر سو نو دم به واجب سي (۲) شيطان

ویشتل (۳) په عرفات کي تر لمر پرېوتو پورې قیام کول (۴) په مزدلفه کي شپه تېرول (۵) په منی کي قیام کول (۶) طواف وداوع کول، او په دې کي دآخرو څلورو په باره کي یو قول دا هم دی چي که دا ترک کړی سو نو "دم" واجب نه دی بلکي سنت دی.

او د حج ادا کول درې صورتونه کېدای سي: (۱) افراد (۲) قران (۳) تمتع.

او په دوی کي د افراد درجه د ټولو څخه افضله ده او هغه دا ده چي اول حج یوازې وکړي او کله چي حج پوره سي نو د حرم څخه بهر راسي او بیا د عمرې احترام وتړي عمره ادا کړي او په جعرانه کي احرام تړل د تنعیم څخه غوره دي او په تنعیم کي د حدیبیه څخه غوره دي هسي خو په درې سره ځایونو کي احرام تړل سنت دي.

او قران دا دی چي: اَللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ بِحَجَّةٍ وَعُمْرَةٍ ووایي چي د دواړو احرام پر یو ځای وتړي او بیا د حج اعمال پوره کړي نو عمره هم په دې کي شمار سي لکه چي غسل وکړی نو اودس هم په دې کي شامل سي، او څوک چي داسي وکړي نو پر ده دم لازم سو، ماسوا د هغه سړي څخه کوم چي دمکې مکرمې اوسېدونکي وي چي د ده میقات په خپله مکه مکرمه ده اوقران کوونکي که د وقوف عرفات څخه مخکي طواف او سعی وکړي نو د سعی شمار به په حج او عمره کي وي لېکن د طواف اعاده به د وقوف عرفات څخه وروسته هم کوي ځکه چي د دې شرط په حیثیت د حج رکن دا دی چي دوقوف عرفات څخه وروسته وسي.

او د تمتع څخه مراد دا دی چي کله میقات ته ورسیږي نو د عمرې احرام به وتړي او په مکه مکرمه کي به عمره ادا کړي ځان به حلال کړی چي د احرام د قید څخه ووځي، د دې څخه وروسته به د حج پر موقع په مکه مکرمه کي احرام وتړي د حج د پاره، او پر ده به دم واجب وي او که دم ور سره نه وو نو درې ورځي د عرفات تللو څخه اول به درې روژې پرله پسې یا جلا جلاونیسي او اووه روژې چي کورته واپس راسي وبه نیسي، او د قران په صورت کي به هم داسي کوي که دم ور سره نه وي، او د تمتع قرباني په هغه صورت کي لازمیږي چا چي د عمرې احرام په شوال یا ذی القعده یا په لسو ذی الحجه کي تړلی وي چي د حج د پاره هم زحمت وکړي. او د حج احرام یې د خپل میقات څخه نه وي تړلی، نو که د مکې اوسېدونکي دی یا مسافر دی او دحج په وخت میقات ته راغلی وي یا د دې اندازې مسافه (واټن) یې پرېکړې وي راغلی وي نو پر ده دم واجب نه دی.

## محظورات حج (د حج ممنوعات)

یعني هغه شیان کوم چي دحج پر موقع ممنوع دي شپږ دي:
اول کپړې (جامې) اغوستل څکه چي په احرام کي قمیص، پرتوګ، لنګوټه او موزې اغوستل مناسب نه دي، بلکي لنګ څادر (پټو) او څپلی (پیزار) اغوستل پکار دي، دغه ډول که لنګ نه وو نو پرتوګ اغوستی سي او لوړه اندامونه په څادر (پټو) پټول روا دي، لیکن سر نه دي پټول پکار، او ښځي ته د عادت موافق جامې اغوستل روا دي، لیکن پکار دي چي مخ پټ نه کړي، لیکن که په کجاوه کي دننه وي نو دا هم روا ده.
دویم دا چي عطر به نه استعمالوي که عطر استعمال کړی یا یې جامې واغوستې نو دم به پر لازم سو.
دریم ویښته به نه پریکوي او نوکان به نه پرې کوي او که داسي وکړې نو دم به پر لازم وي، لیکن حمام ته تلل، رګ وهل، ویښته کښته داسي را څرول چي ونه څېږي روا دي.
څلورم: جماع به نه کوي او که یې وکړه نو یو اوښ یا غوا یا اوه بزې (وزې) به ذبح کوي، او حج به یې هم فاسد سي او قضا به پر واجب سي، لیکن که یې د اولني تحلّل څخه وروسته وکړه (یعني د اولني احرام څخه آزاد سي او ویې کړي) نو اوښ به واجب وي لیکن حج به یې فاسد نه وي.
پنځم مقدمات د جماع (یعني مسه کول، مچول) جائز نه دي، مطلب دا چي هر هغه حرکت کوم چي د اودس ماتولو باعث وي منع دی کنې یوه بزه (وزه) ذبح کول به لازم وي، او په احرام کي نکاح نه دي کول پکار، که داسي وکړي نو صحیح به نه وي په دې وجه د ښکار وي ذبح کول هم نه لازمیږي.
شپږم: د ښکار کولو اجازت نسته، ما سوا د اوبو د ښکار څخه او که چا ښکار وکړی نو ښکار چي د کوم څاروي سره مشابه وو د هغه ذبح کول به لازم وي لیکن دا مشابهت د زیاتو څخه زیات پکار دی.

## دحج کیفیت او طریقه

پوه سه! چي د حج ټول کارونه د اول څخه تر آخره پوري په ترتیب سره اَزده کول پکار دي، یعني په دې سلسله کي ټول فرائض واجبات سنّت او آداب او نور هر څه یو ځای یادول ضروري دي لکه څنګه چي سنّت طریقه ده او کوم سړی چي عبادت د عادت په توګه نه بلکي د عبادت په توګه یې کوي د ده په نزد سنت آداب او فرض هر شئ برابر وي، څکه مقام د محبت چي چاته حاصل سوی دي په نفلو او سنتو سره حاصل سوی دي لکه چي نبي ﷺ فرمایلي دي چي د الله فرمان دی چي زما بنده ما ته د نژدېکت حاصلولو د پاره د دې څخه زیاته یوه خبره نه کوي چي زما مقرر کړی فرائض ادا کوي، لیکن کوم چي زما (خاص) بنده وي هغه ما ته د

زیاتو نژدې راتللو د پاره د نفلو او سنتو د ادا کولو څخه چیرې په آرام سره نه کښېني تر هغه وخته چې دې درجې ته و رسیږي چې د ده سترګه، پزه، غوږونه، هر څه زه جوړ سم، یعني په ما سره وینې په ما سره اوري، په ما سره نیسي او په ما سره وایي، نو د عبادتونو سنتو او نفلو پر ځای کول ډیر اهم دي او د مقام او محل د آدابو خیال ساتل یې پکار دي.

**اول: د لارې او توښې آداب:** پکار دي چې کله د حج اراده وکړي نو چې اول توبه وکاږي، او د ظلم او زیاتی څخه منع سي او ټولې قرضې ادا کړي او د ښځې بچیان او د چا نفقه چې د ده پر ذمه وي د هغو د نفقې انتظام وکړي، او وصیّت نامه ولیکي او د لارې تو ښه د حلال جمع کړي مال څخه واخلي، او د مشتبه دول مال څخه ځان وساتي، ځکه چې که د شکمني کټي په پیسو حج وکړي نو خطره ده چې قبول نسي، او د لارې د پاره به دومره اندازه خرڅ ضرور اخلي چې په لاره کې د فقیرانو سره هم څه نا څه سلوک (ښه چلند په) وکړي، او د کوره د بهر وتلو څخه مخکې دې د سفر د سلامتی د پاره یو شئ په صدقه کې ضرور ورکړي او ښه او روغ څاروی دې د سپرلې د پاره په کرایه حاصل کړي، او کوم کوم سامان چې د ځان سره وړې هغه دې کرایه اخیستونکي ته وښیې چې بیا هغه ته څه اعتراض نه وي، او د سفر ملګری دې یو صالح سړی جوړ کړي کوم چې د سفر تجربه حاصله کړې وي او د دین په لاره او نورو مصلحتونو باندې ښه پوه وي، او د دوستانو څخه دې رخصت واخلي او د دوی څخه دې د خیر دعاء وغواړي، او د رخصت په وخت دې هر یوه ته دا کلمې وایي: "اَسْتَوْدِعُ اللهَ دِيْنَکَ وَاَمَانَتَکَ وَخَوَاتِيْمَ اَعْمَالِکَ" (ستا دین ستا امانت ستا انجام او ستا عملونه زه الله ته سپارم) او هغه به په جواب کې ورته وایي: فِيْ حِفْظِ اللهِ وَکَنَفِهٖ وَ زَوَّدَکَ اللهُ تَعَالٰی التَّقْوٰی وجنبک تُرَدّٰی وغَفَرَ ذَنْبَکَ وَوَجَّهَکَ لِلْخَيْرِ اَيْنَمَا تَوَجَّهْتَ" (الله جلّ جلاله دې تا پخپله پناه او حفاظت کې وساتي، او د پرهېزګاری توښه دې در کړي او تا دې د هلاکت څخه وساتي او چیرې چې متوجه کیږې تا دې د نیکی طرف ته متوجّه لري" او چې د کوره ووځي نو دوه رکعته نفل دې وکړي په اول رکعت کې د الحَمْدُ څخه وروسته قل یا ایها الکافرون او په بل رکعت کې قل هو الله احد وایي، او بیا به دا دعاء وکړي: اَللّٰهُمَّ اَنْتَ الصاحب فی السفر واَنْتَ الخلیفَة فی الاهل والولد والمال احفظنا وايّا هُمْ من کُلِّ آفةٍ. اَللّٰهُمَّ انا نسئلک فی مسیْرنا هذا البِرَّ والتقْوٰی ومنْ العمل ما ترْضیٰ" (اې الله! ته په سفر کې زما مرسته وکړې او قائمقام را کړې کور والاوو ته او اولاد ته او مال ته او

ما او ډوی د ټولو آفتونو څخه او بلاګانو څخه محفوظه وساتې او اې الله! زه په دې سفر کې ستا د اطاعت او پرهېزګارۍ او هر هغه شئ طالب یم په کوم چې ته راضي سې) او کله چې د کور دروازې ته ورسیږي نو دا دعاء دې وکړي "بِسْمِ الله توکلتُ عَلَی الله لاحول ولا قُوةَ الا بِالله اَللّٰهُمَّ بِکَ اِنْتَشرْتُ وعلیک توکلتُ وبک اِعْتصمْتُ والیک توجَّهْتُ اَللّٰهُمَّ زِدْنی التقْوٰی واغْفِرْلِي ذَنْبِيْ ووجِّهْنِي للخیْرِ اینما توجهتُ "(د الله ﷻ په نوم باندې پر الله ﷻ توکل کووم چې هغه څخه ما سوا چې بل ته پوهه او طاقت حاصل نه دی. یا الله ﷻ ستا د نوم په توکل (د کوره) جلا کیږم او صرف پر تا توکل کووم او صرف پر تا منګلي لګووم اې الله ﷻ ماته د پرهېزګارۍ توښه را کړې او زما ګناهونه وبخښې او کوم طرف ته چې زه مخ کووم ما د نیکی طرف ته ولګوې" او چې سپرلي (سورلي) ته وخیږي او کښېني نو و به وایي: بِسْمِ الله وبِالله اَللهُ اَکْبَر سبحان الَّذِی سَخر لنا هذا وما کُنا له مُقْرِنِیْنَ واِنا الی ربِّنا لمنْقَلِبُوْنَ " (بسم الله وبالله واَللهُ اَکْبَر هغه پاک ذات دی چا چې دا سپرلي زموږ په قبلو کې کړل (کنې) موږ دا سې نه وو چې دا مو قبلو کړې وای او موږ ته د خپل رب طرف ته واپسې ده" او په ټوله لار کې به په ذکرُ الله او تلاوت قرآن کې مشغوله وي چې لوړ ځای په لاره کې راشي نو وایي به: اللهم لک الشرفُ علی کُلِ شرفٍ ولک الحَمْد علی کل حالٍ (اې الله ﷻ تا لره بزرګي (لوړوالی) دې پر ټولو بزرګیو (لوړو) باندې او ستا شکر دې په هر حال کې) او چیرې چې په لاره کې یو بیره محسوسوي نو آیت کرسي او شَهِدَ اللهُ (د سورة البقرې آخرې دوه آیتونه) او معوذتین دې وایي.

## د احرام تړلو او مکې معظمې ته د داخلیدلو آداب

کله چې میقات ته ورسیږي کوم ځای چې قافلې والا احرام تړي نو اول دې غسل وکړي وبنسته او نوکان دې پرې کړي کوم چې مخکې یې بیان سوی دی او ګنډلي جامې دې وکاږي سپین څادر او لنګ دې وتړي او د احرام څخه مخکې دې عطر ولګوي او کله چې د روانېدلو د پاره پورته سي نو اوښ دې د مهار څخه ونیسي او لاري ته دې مخ کړي په ژبه او زړه سره دې د حج نیت وکړي او ودې وایي: لبیک اَللّٰهُمَّ لبیک. لبیک لا شریْک لک لبیک ان الحَمْد والنعْمة والمُلک لا شریْک لک" (زه حاضر یم یا الله زه حاضر یم زه حاضر یم ستا هیڅ شوک شریک نسته زه حاضر یم. بې شکه ټول تعریفونه او نعمت او مُلک تا لره دي او ستا هیڅ شوک شریک نسته) او هر لوړ ځای ته چې خیږي او

هر کښته ځای ته چې کښته کیږي او کوم ځای چې دقافلې سره یو ځای کیږي دافه کلمات دې وایي.

او کله چې مکې مکرمې ته نژدې ورسیږي نو غسل به وکړي او په حج کې په نهو وختونو(موقعو) کې غسل سنت دی: (۱) احرام (۲) او مکې ته د دخول (۳) طواف زیارت (۴) قیام عرفات (۵، ۶، ۷) درې غسلونه د شیطانانو د ویشتلو د پاره. (یعني درې غسلونه په جمرو کې). او (۸) مقام مزدلفه (۹) طواف وداع. لیکن د جمره عقبی د پاره غسل نسته. او کله چې غسل وکړي مکې مکرمې ته داخل سي او نظر پر خانه کعبه پریوځي نو که څه هم تر اوسه د ښار په مینځ کې وي داویل به شروع کړي:لَاْ اِلٰهَ الاَّ اللهُ واَللّٰهُ اَكْبَرِ اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السّلام ومِنْکَ السّلام وَدَارُکَ دارُ السّلام تَبَارَكْتَ يا ذَالجلالِ والاِكرامِ. اَللّٰهُمَّ هذا بيْتُک عَظَّمْتَه وشرَّفْتَهُ وكرَّمْتَه اَللّٰهُمَّ فزدْهُ تعْظِيْمًا وتَشْرِيفًا وتكْرِيْمًا وزدْهُ مَهَابَةً وزدْهُ مَنْ حَجَّه بِرًّا وكرامةً اَللّٰهُمَّ افْتح لِيْ ابْواب رحْمتک واَدْخِلْنِي جنّتک واَعِذْنی منَ الشيطانِ الرَّجيْمِ" (د الله ﷻ څخه ما سوا بل هیڅ شوک د عبادت لائق نسته او الله ﷻ لوی دي، اې الله! ته سلام یې او سلامتیا ستا څخه ده او ستا کور د سلامتیا کور دی، او اې دلویې ما لکه ته برکت والا یې، او ستا کور هم برکت والا دی او تا ده ته تفضیل او شرافت ورکړی دی او دی دې مکرّم کړی دې اې الله ته د ده په عظمت او تعظیم کې زیاتوب وفرمایه او د ده عزت او مرتبه زیاته کړې اوڅوک چې د ده حج کوي، او اې الله د خپل رحمت ناپایه دروازې ما ته خلاصې کړې او پخپل جنت کې مې داخل کړې او د ترټلي شیطان څخه ما پخپله پناه کې وساتې) او په بنی شیبه دروازې سره به بیت الله ته داخل سي او حجر اسود طرف ته به ورسي او مخ به یې کړي او که هلته رسېدل گران وو کنه گونه وه مچولای یې نه سوه، نو په لاسو به ورته اشاره وکړي او به وایي: اَللّٰهُمَّ امانَتِيْ اَدّيْتُهَا وميْثَاقِيْ تَعَاهَدْتُهُ اِشْهَدْ لِيْ بِالْمُوَافَاتِ" (یا الله ﷻ ما خپل امانت (تر خپل وسه پوري) ادا کړی او خپله وعده مې پوره کړه ته زما په حق اد کولو گواه شه). دا به وایي طواف به شروع کړي.

## د کعبې د طواف آداب

پوه سه! چې د کعبې طواف د لمانځه په ډول دي او په دې کې هم لازمي شرط دا دی چې بدن او جامې پاکې وي او عورت پټ وي، لیکن خبرې پکښې جائزدي،او پکار دي چې لول سنت اضطباع ادا

کرای سي، او هغه دا چي د څادر (پټو) مينځوي برخه دي تر راسته لاس لاندې راولي او د څادر دواړه طرفه دي پر چپه اوږه واچوي او د حجر اسود څخه دي طواف شروع کړي، او دا خيال به کوي چي دده او دبيت الله شريف په مينځ کي فاصله د دري قدمونو څخه کمه نسي، او چي د طواف شروع کوي نو دا دعاء به وايي: اَللّٰهُمَّ اِيمانًا بِكَ وتصْدِيقًا بِكِتابِكَ ووفاءً بعهدِكَ واتِّباعاً لسُنّةِ نبيكَ مُحَمَّد ﷺ (اې الله! دا طواف د کعبې پر تا دايمان راوړولو، او ستا پر کتاب د ايمان راوړولو تصديق ستا د عهد د وفا او ستا د نبي ﷺ د سنتو په اتباع کي دی) او کله چي د خانه کعبې دروازې ته ورسيږي نو وايي به: اَللّٰهُمَّ هذا البيتُ بيتُكَ وهذا الحرمُ حرمُكَ وهذا الامنُ امنُكَ وهذا مقامُ العائذِ بكَ منَ النار (اې الله! دا کور ستا کور دی او دا حرم ستا حرم دی او دا امن ستا امن دی او دا مقام پر تا باندې د پناه اخيستونکي دی د اُور څخه) او کله چي رکن عراقي ته ورسيږي نو دا دعاء به وايي: اَللّٰهُمَّ اِنِّي اَعُوذُ بِكَ منَ الشكِ والشركِ والكفرِ والنفاقِ والشقاقِ وسُوْءِ المنظرِ في الاهْلِ والمالِ والولدِ (اې الله! پناه غواړم په تا سره د شک او شرک څخه د کفر او نفاق څخه او د بدو اخلاقو څخه د خپل اهل او عيال او مال په باره کي) او کله چي ميزاب رحمت ته ورسيږي نو وايي به: اَللّٰهُمَّ اظِلَّنِيْ تحتَ عرشِكَ يومَ لاظل الا ظل عرشك اَللّٰهُمَّ اسْقِنِيْ بكاْسِ مُحَمَّد ﷺ شَرْبَةً لا اَظْمَاُ بعدهٔ اَبَدًا (اې الله! ما د عرش تر سايې لاندې کړه کله چي ماسوا د عرش څخه بله سايه (سيوری) نه وي يا الله ماته په کاسه محمّد ﷺ کي داسي شربت راوچيښه چي د هغه د چښلو څخه وروسته زه چيري تنده محسوسه نه کړم) او کله چي رکنِ شامي ته ورسيږي نو وايي به: اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ حَجًّا مبْرُوْرًا وسَعْيًا مَشْكُوْرًا وذَنْبًا مَغْفُوْرًا وتِجَارَةً لَنْ تَبُوْرَ يَا عَزِيْزُ يَا غَفُوْرُ اِغْفِرْ وَارْحَمْ وتَجَاوزْ عَمَّا تَعْلَمُ اِنَّكَ اَنْتَ الاعزُّ الاکْرَمُ (اې الله دا حج قبول کړه او دا سعې مشکوره وفرمايه او زما ګناهونه وبخښه او تجارت چي فاسد او باطل نه وي اې صاحبه د عزّت او بخشش) او کله چي رکن يماني ته ورسيږي نو وايي به: اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْكُفْرِ واَعُوْذُ بِكَ مِنَ الفقْرِ ومِنْ عذابِ القبْرِ ومِنْ فِتْنَةِ المَحْيَا والمَمَاتِ واَعُوْذُ بِكَ مِنَ الخِزْيِ فِي الدُّنْيا والآخِرَةِ (اې الله زه پناه غواړم په تا سره د کفر څخه او پناه غواړم په تا سره د فقر او لوږې څخه او د عذاب د قبر څخه، د ژوندو او مړو د فتنې څخه او په دنيا او په آخرت کي د رُسوا کيدو څخه) د رکن يماني او حجر اسود په مينځ کي به وايي: اَللّٰهُمَّ ربنا آتنا

فی الدنیا حسنةً وفی الاخرة حسنةً وقِنا عذاب القبْرِ وعذاب النار (اې الله ما ته په دنیا کې نېکي را کړې او په آخرت کې نېکي او پخپل رحمت سره موږ د عذاب د قبر او د عذاب د اور څخه محفوظ وساتې).

نو اووه واره به داسې طواف وکړي او په هر وار به دا تولې دعاوې وايي او یو وار را ګرځېدلو ته یو "چکر" وايي، او په اولو درې چکرونو کې به ژر ژر قدمونه اخلي ځي به، او که کعبې ته نژدې ګنه ګوڼه (رش) وو نو لږ پر څنګ به ځي چې د ژر ژر تللو شرط پوره کړي، او په وروسته څلور چکرونو کې به په کراره کراره ځي، او په هر وار به حجر اسود مچوي او لاسونه به پر رکن یماني راکشوي، او که د ګڼې ګوڼې (رش) په وجه یې لاسونه نه سول را کشولای، نو اشاره به کوي او کله چې اووه چکرونه ختم سي نو د خانه کعبې دروازې او حجر اسود د مینځ دېوال (ملتزم) سره به ودرېږي او نس او سینه او راسته اننګی (بارخوګان) به د دېوال سره پیوست کړي او دواړه لاسونه به د سره څخه پورته وغزوي، او دلته دعاګانې قبلیږي او دا دعاء به وايي: اَللّٰهُمَّ یا ربَّ البیت العتیق اِعْتِق رقبتيْ منَ النّار واَعِذْنِيْ منْ كُلِّ سُوْءٍ وَ قَنِّعْنِي بما رزقْتَنِيْ وَبَارِكْ فیما اٰتَیْتَنِي (اې الله اې د لوی کور مالکه زما غاړه د عذاب د دوږخ څخه خلاصه کړه او ما د هرې ګناه څخه وساته او پخپل راکړل سوي رزق قناعت را کړه او پخپلو را کړل سوو شیانو کې برکت را کړه) او بیا به درود او استغفار ووايي او د خپل زړه حاجت به بیان کړي بیا به د مقام ابراهیم په خوا کې دوه رکعت لمونځ وکړي کومو ته چې رکعتونه د طواف وايي، او طواف په دې سره بشپړه کیږي او په اول رکعت کې به الحمد او قل یا ایها الکافرون او په دویم کې الحَمْد او قل هو الله احد وايي، او بیا به دعاء غواړي، او تر څو پورې چې اووه چکرونه ونه کړي طواف نه بشپړه کیږي، او د هرو اوو چکرونو څخه وروسته به دا دوه رکعتونه کوي، او بیا به حجر اسود ته ورسي مچ به یې کړي او طواف به ختم کړي او بیا به په سعی کې مشغول سي.

## د سعی آداب

کله چې د صفا غره ته ورسیږي نو پکار دي چې دومره لوړ وخېژي چې کعبه شریفه ور ته په نظر راسي بیا دې کعبې ته مخ کړي وایي دي: لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِیْکَ لَهٗ لَهُ الْمُلْکُ وَلَهُ الْحَمْد یُحْیِيْ وَیُمِیْتُ وَهُوَ حيٌّ لَا یَمُوْتُ بِیَدِهِ الْخَیْرُ وهُوَ عَلٰی کُلِّ شيْءٍ قَدِیْرٌ لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ وَحْدَهٗ وَصَدَقَ وَعْدَهٗ

ولَصَرَ عَبْدَهٗ وَاَعَزَّ جُنْدَهٗ وَهَزَمَ الاَحْزَابَ وَحْدَهٗ لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُوْنَ "
نسته بل معبود (د عبادت لایق) ماسوا د الله ﷻ شخه چې هغه یو دی شریک نه لري او مُلک (بادشاهي) د هغه ده او ټول صفتونه هغه لره دي هغه ژوند کوي او هغه مړ کوي هغه ژوندی دی مرگ ورته نشته د هغه په لاس کي خیر دي هغه پر هر شئ قادر دی، نو د هغه شخه ماسوا بل معبود نشته الله ﷻ یو دی د هغه وعده رښتوني ده هغه د خپل بنده مدد وکړی او خپل لښکر ته یې عزت ورکړی او ټولو لښکرو ته هغه یوازي شکست ورکړی، د الله ﷻ شخه ماسوا بل معبود نشته خالص کوونکی دي هغه لره دین که شه هم کافران دا خبره بده گني.
بیا به دعاء وکړي او یو حاجت چې وي هغه به وغواړي بیا به د دغه ځای شخه د سعی شروع وکړي تر دې چې مروه ته ورسیږي او په دې دوران کي به اول کرار کرار ځي او دا به وایي: رَبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَتَجَاوَزْ عَمَّا تَعْلَمُ اَنْتَ الاَعَزُّ الاَكْرَمُ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ (اې پروردگاره! وبخښه او رحم وکړه او معافي وکړه د هغه شئ شخه چې کوم ته پېژنې بې شکه ته عزت والا او کریم یې، او اې ربه موږ ته په دنیا کي او په آخرت کي نېکي را کړه او د دوږخ د عذاب شخه مو محفوظ کړه).
اوږ کرار کرار دي ځي، او چې شین رنگي ستنو (پایو) ته ورسیږي او د دغه شخه شپږ لاسه لیري وي نو لږ تېز دي ځي چې دویمو ستنو ته ورسیږي او د دې شخه وروسته به بیا کرار کر تلل شروع کړي تر دې چې مروه ته ورسیږي او لوړ دي وخېژي د صفا طرف ته دي مخ کړي بیا دي دغه دعاء ووایي، او دا یو وار سو او کله چې بیا صفاته راورسیږي نو دا دوه واره سوه، او دغه ډول به اووه واره "چکر" لگوي، کله چې د دې شخه فارغه سي نو طواف قدوم او طوف سعی دي وکړي او دا په حج کي سنت دی لیکن هغه طواف کوم چې د حج رکن دی د وقوف عرفې (وقوف عرفات) شخه وروسته به وي، او په سعی کي طهارت سنت دی او په طواف کي واجب دی، او سعی دغه اندازه کافي ده ځکه چې هغه سعی کومه چې د وقوف شخه وروسته کولای سي شرط نه دی، لیکن پکار ده چې د طواف شخه وروسته وي که شه هم طواف سنت دی.

## د وقوف عرفې آداب

پوه سه! چې قافله که د عرفات په ورځ عرفات ته ورسېده نو طوافِ قدوم نه دي کول پکار، هو! که د

دې شخه مخکې ورسېده نو طواف قدوم دې وکړي او په اتمه ذی الحجه دې د مکې مکرمې شخه ووځی په منی کې دې شپه تېره کړي او په سهار دې په نهمه ورځ عرفات ته روان سي، او د وقوف وخت د عرفات په ورځ د زوال شخه وروسته شروع کیږي او داختر تر سهاره پورې دی لېکن که د سهار شخه وروسته ورسېدی نو د ده حج به فوت سي او د عرفات په ورځ دې غسل وکړی او په دې ورځ دې روژه نه نیسي چې کمزوری نسي او دعاګانې دې ډېرې وغواړي چې دحج اصل راز په دغه مبارک وخت کې دی، او په دغه ورځ د ټولو شخه افضله وظیفه د لااله الاّ الله ده، او پکار دې چې د زوال شخه تر ماښامه پورې په زاری او ژړاګانو توبه او استغفار کې مستغرق وي او مظبوطه توبه وکړي او د تیرو ګناهونو معافی وغواړي، او د دې وخت بې شماره دعاګانې دې چې هر یوه ذکر کول ډېره اوږده خبره ده، او په کتاب احیاء العلوم کې د دې تفصیلي ذکر موږ کړی دی هلته یې یادولی سي، او څومره دعاګانې چې تا ته یادې وي هغه دې وایه او که زباني در ته یادې نه وي نو په کتاب کې یې ووایه یا دې بل وایي ته آمین پر وایه او تر څو پورې چې لمر ډوب سوی نه وي د عرفات د حدونو شخه به د باندې نه وځې.

## د حج د پاته عملونو آداب

د عرفات شخه وروسته به مزدلفې ته راسي او غسل به وکړي چې مزدلفه د حرم شخه ده او د ماښام په لمانځه کې به تأخیر وکړي او د ماخوستن د لمانځه سره به یې یو ځای ادا کړي یعني په یو آذان او اقامت سره او دا شپه به په مزدلفه کې تېره کړي دا ډېره عزتمنده او محبوبه شپه ده او په دې شپه کې دلته دربدل هم په عبادت کې شامل دي او څوک چې دلته قیام ونه کړي یوه بزه (وزه) به ذبح کوي، او د دې ځای شخه به اویا ۷۰ ډبرې واخلي چې په منی به شیطان په ولي، دلته ډبرې ډیر دي، او د شپې په آخره کې به منی ته د تللو قصد وکړي او د سهار لمونځ به په اول وخت کې ادا کړی کله چې د مزدلفې آخر ته ورسیږي کوم ته چې مشعرِ حرام وایي نو د سهار تر ښه رڼا کېدو پورې به هلته ولاړ وي او دعاء به کوي بیا به مخکې روان سي چې "وادی محسّر" ته ورسیږي نو خپله سپرلی (سورلی) به تېزه کړي او که په پښو وي نو تېز تېز به ځي دا سنت طریقه ده او بیا به داختر په سهار تکبیرونه او لبّیک وایي د جمراتو خوا ته به راسي او سیده به جمرة العقبیٰ ته ولاړ سي او چې لمر یوه نېزه رالوړ سي نو په اووه ډبرو به جمرة العقبی وویلي، او په دې عمل کې که مخ پر قبله وي نو ښه ده، او دلته به لبیک بند

کړی تکبیرونه به وایي او په هر وار د ډېرو ویښتو سره به وایي: اَللّٰهُمَّ تَصْدِيْقًا بِكِتَابِكَ وَاتِّبَاعًا لِسُنَّةِ نَبِيِّكَ (ای الله ﷻ! د ډېرو ویښتل ستاد کتاب تصدیق او ستا د نبی ﷺ د متابعت د پاره دی). او کله چې فارغ سي نو لبیک به بند کړي او تکبیرونه به تر څلورمي ورځي پوري د فرض لمانځه څخه وروسته وایي، او بیا به خپل ځای ته واپس راسي دعاء به کوي او که کېدای سوه نو قرباني به وکړي او د ټولو آدابو لحاظ به پکښې ساتي او بیا به سر وخروي او چې د سر خریولو او ډېر ویښتو لو او قرباني څخه فارغه سي نو بیو تحلل به ده ته حاصل سي او د احرام ټول ممنوعات به ده ته حلال سي، ماسوا د جماع او د ښکار څخه بیا به مکې شریفې ته ولاړ سي او طواف رکن به وکړي او د اختر د سهار څخه د ې طواف وخت شروع دي لېکن غوره دا ده چې د اختر په ورځ یې وکړي او آخري وخت یې معین نه دي بلکي تأخیر که هر څو مره وسي دا فوت کېږي نه.

لېکن دویم تحلل به نه حاصلېږي، او جماع به حرامه وي، دا طواف چې کله په داسې طریقه ادا سي لکه چې د طوافِ قدوم په ذکر کي تېر سوي وو نو حج به ختم او جماع او ښکار به هم حلال سي، او که د دې څخه یې مخکي سعی کړې وي نو اوس به یې نه کوي، بلکي رکنِ سعی که یې نه وي کړی نو هم به یې اوس نه کوي څکه چې ډېري وویلي او قرباني وکړي، او سر وخروي او د طواف څخه فارغه سي نو حج مکمل سو او د احرام څخه ووتلو، لېکن په ایام تشریق کي ډېري ویشتل او په منی کي د شپې قیام د احرام د زوال څخه وروسته وي، او کله چې د طواف او سعی څخه فارغه سي نو د اختر په ورځ به بیا منی ته راسي او شپه به هلته وکړي چې دا واجب دي، او په بله ورځ به د ډېر ویشتلو د پاره د زوال څخه مخکي غسل وکړي او اول به اووه ډېري په هغه جمره وولي کومه چې عرفات ته نژدې ده او قبلې ته به مخ کړي د سورتِ بقره په اندازه به دعاء وغواړي او بیا به د مینځ جمره وولي او دعاء به وکړي او د دې څخه وروسته به په اوو ډېر و جمره عقبی وولي او دا شپه به هم په منی کي وکړي او په دریمه ورځ به هم د دې ترتیب موافق په یوویشتو ډېرو مذکوره درې سره جمرې وویلي او پکار دي چې پر دې اکتفاء وکړي او مکې مکرّمې ته روان سي لېکن که تر لمر لوېدلو پوري هلته پاته سو نو بیا به دغه شپه هم په منی کي کول واجب سي او په څلورمه ورځ به بیا یوویشت ډېري په درې سره ود جمرو ویشتل لازمي وي، او دا ولو د حج بشپړه بیان کوم چې وښوول سو.

## عُمره

هر کله چي عمره کول غواړي نو غسل دي وکړي او احرام دي وتړي لکه څنګه چي يې په حج کي کوی، او د مکې مکرمې څخه به د باندي ووځی د عمرې ميقات ته به ولاړ سي کوم چي جعرانه، تنعيم يا حديبيه ده او هلته چي ولاړ سي د عمرې نيت به وکړي او به وايي: لبّيک بِعُمْرَةٍ (زه د عمرې د پاره حاضر يم) او مسجد عائشې رضی الله عنها ته به ولاړ سي دوه رکعتونه به وکړي بيا به مکې مکرمې ته راسي پر لاره به لبَّيْکَ...الخ به وايي او کله چي د طواف د پاره مسجد ته راسي نو لبّيک به بند کړي او طواف او سعی به وکړي څنګه چي د حج په بيان کي ويل سوي دي او بيا به وېښته وخروي نو عمره ختم سوه او دا په ټول کال کي هر وخت کېدای سي او څوک چي په مکه کي وي نو ده ته پکار دي چي څومره عمرې کولای سي وې کړي او که دا نه سوه کېدای نو طوافونه دي کوي او که دا هم نه سوه کېدای نو په ناستي يا ولاړي دي د زيات نو څخه زيات خانه کعبې ته ګوري، او څوک چي خانه کعبې ته داخل سي نو د دوو ستنو په مينځ کي دي لمونځ اداء کړي او ډېر په احترام او عزت، وقار سره دي په لڅو پښو ننته سي، او د زمزم اوبه چي څومر څښلای سي ودې څښي، تردې چي نس يې ډک سي، څکه دا چي په کوم نيت سره وڅښل سي نو شفاور کوي، او دا دي وايي: اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ شِفَاءً مِنْ كُلِّ سُقْمٍ وَارْزُقْنِى الْاِخْلاص وَالْيَقِيْنَ وَالْمُعَافَاتِ فِى الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ (اې الله! دا اوبه ما ته د هر مرض څخه شفاء کړې او ماته رزق را کړې اخلاص او يقين را کړې او په دنيا او آخرت کي صحت را کړې).

## طوافِ وِداع

حاجي چي کله د واپسی اراده وکړي نو اول دي د سفر سامان وتړي او د ټولو کارونو څخه دي فارغه سي بيت الله شريفه ته دي راسي د رُخصت طواف دي وکړي او بيا دي دوه رکعته د طواف وکړي او لکه څنګه چي د طواف په باره کي ويل سوي دي هغه دي وکړي ليکن په دې طواف کي اضطباع او رمل ته ضرورت نسته، بيا دي ملتزم ته ورسي او دعاء دي وکړي او کعبې شريفې ته دي مخ کړي او پر شا دي د کعبې شريفي څخه راووځي، او کعبې ته دي ګوري.

## د مدينې مُنورې زيارت

د دې څخه وروسته دې مدينې منورې ته روان سي چې د نبي کريم ﷺ فرمان دی: چې څوک زما د وفات څخه وروسته زما زيارت وکړي نو داسې ده لکه چې زما په ژوند کي ما ووينې، داړنګه يې فرمايلي دي چې څوک د مدينې منورې قصد وکړي او غرض يې ماسوا د زيارت څخه نور څه نه وي نو د دغه سړي حق ثابت سو چې د الله ﷻ په مخکي ما خپل شفيع جوړ کړي، او کله چې مدينې منورې ته پر لاري وي، نو درود دې ډېر ډېر وايي او چې کله يې نظر د مدينې منورې پر ديوالونو ولګېږي نو وايي دې: اَللّٰهُمَّ هٰذَا حَرَمُ رَسُوْلِكَ فَاجْعَلْهُ لِيْ وِقَايَةً مِنَ النَّارِ وَاَمَانًا مِنَ الْعَذَابِ وَسُوْءِ الْحِسَابِ (ا ستا د رسول حرم دی زما د پاره دې پناه جوړ کړه او د دوږخ او عذاب او حساب د بدۍ څخه پناه را کړه).

اول دې غسل وکړي بيا دې مدينې منورې ته داخل سي او عطر دې استعمال کړي او پاکي صفا سپيني جامې دې واغوندي او د داخلېدو په وخت کي دې په وقار، ادب او عاجزۍ سره ننوځي او وايي دې: اَللّٰهُمَّ اَدْخِلْنِيْ مُدْخَلَ صِدْقٍ وَاَخْرِجْنِيْ مُخْرَجَ صِدْقٍ وَاجْعَلْنِيْ مِنْ لَّدُنْكَ سُلْطَانًا نَّصِيْرًا (اې الله! ما دې حرم ته په ښه والي سره داخل کړې او زما دې ځای څخه ښه تلل هم په ښه والي سره کړې او ما ته داسي غلبه د خپل طرف څخه را کړې چې په هغه کي نصرت (مدد) وي)، نو مسجد نبوي ته دې داخل سي او تر منبر لاندي دې دوه رکعته لمونځ داسي وکړي چې د منبر ستن (پايه) د ده راسته وېږي ته برابره وي چې د نبي کريم ﷺ د ربدل به داسي وو، بيا دې د زيارت قصد وکړي، او هغه داسي چې مخ قبر مبارک ته وي او شا قبلې ته وي او پر ديوال لاس اېښوول او مچول سُنّت نه دي، بلکي لږ بغل ته د ربدل احترام او تعظيم ته زيات نږدې ده او بيا دې ووايي: اَلسَّلَامُ عليک يا رسولَ الله السلامُ عليک يا نبيَّ الله السلامُ عليک يا حبيبَ الله السلامُ عليک يا صفيَّ الله السلامُ عليک يا سيّدَ وَلَدِ آدَمَ السلامُ عليک يا سيّدَ المُرْسَلين وخاتمَ النبيين ورسُولَ ربِّ العٰلمين السلامُ عليک وعلٰى آلک واصحابک الطاهرين وَأزواجك الطاهرات أمهات المؤمنين جَزَاكَ اللّٰهُ عَنَّا أفْضَلَ مَا جَزٰى نَبِيًّا عَنْ قَوْمِهٖ وَرَسُوْلًا عَنْ اُمَّتِهٖ وَصَلَّى عَلَيْكَ كلما ذكرك الذاكرون وكلما غفل عنك الغافلون.

(اې د الله رسوله! پر تا دې سلام وي او اې د الله محبوبه! پر تا دې سلام وي اې د الله غوره کړل سوې! پر تا دې سلام وي او اې سرداره د اولاد د آدم! پر تا دې سلام وي اې د انبياؤ سرداره او خاتم النبيين پر تا دې سلام وي، اې رسوله د پروردګار پر تا دې سلام وي سلام دې پر تا او ستا پر آل او اصحابو او ستا پر پاکو بيبيانو چې د مسلمانانو ميندې دي،

تا ته دې الله زموږ د طرفه څخه جزا در کړي هغه جزا چې د هېڅ يو نبي ته د هغه د امت څخه نه وي ورکړل سوې الله دې پر تا رحمت نازل کړي تر هغه وخته پورې تر کوم وخت چې يادوي تا يادوونکي او تر کوم وخت چې غافله وي ستا دياد څخه غافلان)

که يو چا ورته نبي ﷺ ته د سلام رسولو ويلي وي، نو د هغه د طرف څخه دې داسې ووايي: السلامُ عليک يا رسول الله مِنْ فلانٍ، السلامُ عليک يا رسول الله مِنْ فلان (سلام دې وي پر تا يارسول الله د فلانی د طرف څخه، سلام دې وي پر تا يارسول الله د فلانی د طرف څخه) بيا دې لږ مخکې ولاړ سي پر حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر رضی الله عنهما دې داسې سلام ووايي: السَّلَامُ عَلَيْكُمَا يَاوَزِيرَيْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُعَاوِنَيْنِ لَهُ عَلَى الْقِيَامِ بِالدِّينِ مَا دَامَ حَيًّا وَالْقَائِمَيْنِ فِي أُمَّتِهِ بَعْدَهُ بِأُمُورِ الدِّينِ تَتَّبِعَانِ فِي ذَلِكَ آثَارَهُ وَتَعْمَلَانِ بِسُنَّتِهِ فَجَزَا كُمَا اللهُ خَيْرَ مَا جَزَى وُزَرَاءَ نَبِيٍّ عَلَى دِينِهِ (سلام دې وي پر تاسو اې د رسول الله ﷺ وزيرانو، تاسو د هغه معاونان واست او پر دين قائم واست کله چې هغه ژوندی وو او د هغه څخه وروسته تاسو د هغه د اُمت سره قائم واست او د دين اصلاح کوونکي واست او په دې کار کې تاسو د هغه د کارونو پيروي وکړه او د هغه پر سنتو مو عمل کوی نو الله ﷻ دې تاسو ته نېکه جزا در کړي د هغه شئ څخه کوم چې په توګه د جزا هغه د يو نبی وزيرانو ته ورکړی وي کوم چې د هغه پر دين وو). بيا دې هلته وديږي او چې څومره دعاء کولای سي ودې کړي، بيا دې د باندې راسي او د بقيع هديرې ته به ولاړ سي او د دين د بزرګانو او صحابه کرامو ﷺ زيارت به وکړي او کله چې د مدينې منورې څخه د واپسی اراده وکړی نو بيو واره به بيا د نبی کريم ﷺ زيارت وکړي او رخصت به ځيني واخلي.

## د حج رازونه او باريکی

پوه سه! چې دا کومه تشريح چې وسوه د دې حيثيت د عملونو د صورت وو، ليکن په دې عملونو کې د هر يوه عمل سره يو راز تړل سوی دی، چې د هغه څخه مقصود عبرت او نصيحت او د آخرت د کارونو يادول دي، او د دې اصلي حقيقت دا دی چې بنده داسې پيدا کړل سوی دی چې د خپل سعادت (نېکبختي) کمال ته نسي رسېدلای تر څو چې دی خپل اختيار هغه لوی او پاک ذات ته ونه سپاري چې هغه همېشه باقي پاته کېدونکي دی، او چې د هغه په باره کې چې موږ د "اسلام تر عنوان" لاندې بيان کړی دی، او د خپل نفس پيروي او فرمان برداري د ده د هلاکت سبب دی او تر څو پورې چې دی پخپل اختيار باندې وي تر هغه وخته د ده يو عمل هم د شريعت مطابق نه وي بلکې د نفس په موافقت او متابعت کې وي، او د ده هيڅ معامله د بنده په ډول نه وي ځکه چې د ده سعادت په

طاعت او بندګي کې دي، او دا سبب دی چې تېرو امتونو ته درهبانیت او سیل او سیاحت حکم ورکړل سوی وو تر دې چې د دوی امتې په دخلکو څخه جلا لیرې غرونو ته تلل، او په ریاضت او مجاهده کې به مستغرق وو، او کله چې دنبي کریم ﷺ څخه خلکو پوښتنه وکړه چې زموږ په دین کې سیاحیت او رهبانیت (ولي) نسته؟ نو نبي ﷺ وفرمایل چې زموږ د پاره جهاد د مجاهدې پر ځای دي او د حج حکم د سیاحت په عوض سوی دي نو الله ﷻ د رهبانیت په بدله کې دې امت ته چې د حج حکم ورکړی دي نو ځکه چې په دې سره مقصود مجاهده ده بلکي حېرتونه په دې کې زیات دي او بله خبره کومه چې بالکل ښکاره ده دا ده چې الله ﷻ کعبې شریفې ته چې کوم لوی شرافت، فضیلت ورکړی دي او خپل ځان ته یې د دې نسبت ورکړی دي او د دنیا د باچاهانو د عالي دربار په ډول یې جوړه کړې ده، او د دې اطراف او جانبونه یې قابل احترام مقرر کړي دي، او هلته یې ښکار کول یا درخته پرېکول حرام کړي دي، او د دې د زیات عظمت او حرمت د پاره یې د باچاهانو د دربار د میدانونو په ډول د عرفات میدان د حرم په مخکې جوړ کړی دي چې د ځلور ګُنجه دنیا خلک په ډلو ډلو د خانه کعبې د زیارت قصد کوي، حال دا دی چې دوی ته دا حقیقت هم معلوم دي چې هغه پاک ذات د کور او مکان څخه منزّه ی لیکن د بنده فطرت دی چې پر ده کله د دوست مینه او محبت غالبه سي نو هر هغه شئ د کوم سره چې د دوست نسبت وي ور ته خوږ او پر ګران وي او دغه د ده مقصود او مطلوب جوړ سي نو مسلمانان په دې شوق او آرزو کې خپل اهل و عیال مال او وطن شاته غورځوي، د ځنګلونو او بیابانونو خطرې پر سر اخلي په غلامانه توګه د هغه حضور (دربار) ته د رسېدلو د پاره روانیږي، او په دې عبادت کې دوی ته د داسي کارونو حکم ورکړل سوی دي چې عقل هم هغه ته نه رسیږي مثلاً عقل څه خبر دی چې ډبري ویشتل، او د صفا او مروه په مینځ کې په ځغاسته تلل څه معنی لري؟ او دا ځکه دي چې کومه خبره په عقل کې راتلای سي د هغې سره د نفس برابر تعلق وي، ځکه چې ده ته معلومه وي چې دا عقل څه کوي او د کوم غرض د پاره یې کوي لکه مثلاً ده ته معلومه وي چې زکوة ځکه ورکول کیږي چې د فقیرانو سره ښه سلوک (چلند) وسي، او لمونځ ځکه کول کیږي چې د مالک حقیقي په مخ کې د عاجزي او کمزوري اظهار او څرګندونه وسي او روژه ځکه نیول کیږي چې د شیطان لښکر ته شکست ورکړای سي او ذلیله کړای سي او پکار هم داسي ده چې د ده طبیعت د عقل موافق حرکت وکړي لیکن د بندګی کمال دا دی چې بنده فقط د مالک د حکم مطابق عمل کوي او په دې کې د ده باطني تقاضا هیڅ کله یو عمل دخل نه لري لکه څنګه چې ډبري ویشتل او د صفا مروه سعی کول د دې محض بندګي ژوندی مثال دی چې دا کارونه فقط د بندګی پر

بنیاد کول کیږي، کنې که عقل پکښې کار کولای نو په دلیلونو کې به منښتي وای، په دې وجه نبي ﷺ په خاصه توګه د حج په باره کې فرمایلي دي چې: لَبَّيْكَ بِحَجَّةٍ حَقًّا تَعَبُّدًا وَرِقًّا (زه د الله ﷻ د بندګۍ د حق اداء کولو د پاره د حج د پاره حاضر یم) او دې ته یې بندګي او بزرګي ویلې.

او هغه کوم چې ځینې خلک پر دې د تعجّب او حیرانتیا اظهار کوي چې د حج د عملونو مقصد څه دی؟ او د دې څخه آخر مراد څه شی اخیستل کیږي؟ نو په اصل کې د دوی دا تعجب او حیرانتیا د غفلت په وجه ده یعنې دوی په دې حقیقت نه دي پوه چې بې مقصودې د هغه مقصود او بې غرضي د هغه غرض دی، چې خالصه بندګي د بنده د طرف څخه ظاهره سي او د ده نظر محض د مالک د حکم طرف ته وي (چون وچرا پکښې نه وي) او عقل او طبیعت ته پکښې د وبېنته اندازه هم دخل نه وي، چې دی خپل ځان په بشپړه توګه سره په باقي مطلق کې محوه (ورک) کړی چې د ده سعادت په نیستي او په بې نصیبي کې دی چې ملسوا د حق او فرمان د حق څخه د ده د خپل هیڅ یو شئ، نوم او نښه باقي پاته نسي.

## د حج عبرتونه

او د حج څخه دا عبرتونه حاصلیږي چې دا سفر یې په لحاظ د صورت او جهت د آخرت د سفر په ډول جوړ کړی دي چې د دې سفر څخه مقصود که د خدای کور ته حاضري ده نو د آخرت د سفر څخه مقصود د کور د خاوند په حضور کې حاضري ده نو د دې سفر په مخ ته راتلونکو حالاتو سره د آخرت د سفر حال یادول پکار دي مثلاً کله چې د خپل اهل وعیال او یار ملګري څخه رخصت اخلي نو دا یادول پکار دي چې دا رخصت د هغه رخصت په ډول دي کوم چې به یوه ورځ د مرګ په وخت کې مخ ته راځي، او لکه څنګه چې لازمه ده چې په دې سفر د روانېدلو په وخت د ټولو دنیوي تعلقاتو او کارو څخه ځان فارغه کړي د کوره ووځي دغه ډول دا لازم دي چې دا یاد کړي چې په آخر عمر کې به د هغه سفر د پاره د دې دنیا د هر شئ او هر خواهش څخه ځان پا کول وي کنې د ده د آخرت سفر به خراب وي او لکه څنګه چې د دې حج د سفر د پاره هر ډول توښه تیارول وي، او د هر ډول احتیاط کول وي چې هسې نه چیرې خاص په ځنګل او بیابان کې بې سر او سامانه نسي، دغه ډول په دې هم پوهېدل پکار دي چې د قیامت میدان نور هم زیات غټ او پلن دی، او ډېر هیبتناکه دی او په دغه کې د دنیا د بیابان څخه زیات توښې ته ضرورت دي، او لکه څنګه چې د حج په سفر کې د ځان سره داسې شیان نه وړي کوم چې ژر خرابیږي نو دغه ډول هغه عبادت په کوم کې چې ریاء او ځان ښوونه وي د

آخرت د توښې د پاره لائق نه دي، او کله چي سورلي ته وخېژي نو پکار دي چي خپله جنازه یاده کري چي دی په پوره یقین سره پوه سي چي دغه بول به د آخرت په سفر کي هم سورلی وي، او کېداى سي چي د دې سورلي څخه مخکي په ربښتیا سره د جنازې وخت راسي، او پکار دي چي د ده دا سفر داسي وي چي د دغه سفر د توښې جوړېدلو مناسب وي.

او کله چي د احرام جامې برابري کړي او احرام وتړي کوم چي دوه سپين څادرونه وي نو پکار دي چي کفن یاد کړی چي د هغه سفر لباس به هم د دنیا د سفر څخه جلا د غه رنګه پر دوو څادرونو مشتمل وي.

او کله چي د بیابان خطري او تکلیفونه ووینې نو پکار دي چي د منکر نکیر او قبر ژوند رایاد کړی چي د لحد څخه واخله تر حشره پوري یو عظیم او خوفناک ځنګل به په لاره کي راځي چي خطري او آفتونه پکښي بې شماره دي او لکه څنګه چي د رهبر (لاربښود) څخه بغیر د بیابان د آفتونو څخه په سلامتی سره تېرېدل محاله دي دغه بول د قبر د آفتونو څخه بغیر د لاربښود څخه په سلامتی سره تېرېدل ممکن نه دي او دغه لاربښود دی د الله ﷺ اطاعت. او لکه څنګه چي په ځنګل کي د اهل وعیال او یار ملګري څخه بغیر یواځي تلل وي دغه بول به په قبر کي هم تن تنهاء وي.

او کله چي لبّیک ویل شروع کړي نو داسي دي ګڼي چي د الله ﷺ د آواز جواب ورکوي څکه چي په قیامت کي به دغسي آواز راځي (او په جواب کي به ده ته لبّیک ویل وي) نو پر ځان به دغه بېره راولي (پرخپل دې لبّیک لبّیک ویلو) دي غور وکړي بلکي پکار دي چي د دغه آواز په بېره کي مستغرق پاته سي.

**قصه:** علی بن الحسین ؓ احرام وتړی نو رنګ یې ژړ سواو په رپېدلو سو تر دې پوري چي لبّیک لفظ یې د خولې څخه نه سو ایستلی. خلکو پوښتنه څیني وکړه چي ته خو لبّیک نه وایې؛ نو ویې فرمایل بېرېږم چي که د مخ څخه دا جواب ملاو سي (لکه چي په قیامت کي به ډېرو ته ملاوېږي) چي لَا لبّیک وَلَا سَعْدَیْکَ (یعني ستا لبّیک او سعدیک منظوره نه دي) نو څه به کووم او د دې ویلو سره د اوښ څخه راولوېدی او بې هو ښه سو. او حمد بن ابی الحواري کوم چي د ابو سلیمان دُراني مرید وو یو قصه داسي بیانوي چي:

**قصه:** یو وار ابو سلیمان دُراني لبّیک نه ووایی او تر یو میله پوري هم دغسي روان وو لیکن بیا ناڅاپه بې هو ښه سو کله چي په هوښ کي راغلی نو ویې فرمایل چي حق تعالی موسی ؑ ته دوحي په

ذريعه فرمايلي وو چي د خپل امت ظالمانو ته ووايه چي ما مه يادوئ او زما نوم مه اخلئ ځکه چي څوک ما يادوی زه هغه يادووم او کوم چي ظالمان وي او ما يادوي نو زه هم هغه يادووم خو په لعنت سره. او ويې فرمايل ما اورېدلي دي چي د حج خرڅه که شکمنه (مشکوکه) وي او لبيک ووايې نو په جواب کي ورته داسي ويل کيږي: لَا لَبَّيكَ وَلَا سَعْدَيْكَ حتّٰى تُرَدَّ ما فِى يدَيْكَ (ستا لبيک او سعديک زموږ خوښ نه دي تر څو چي ته واپس نه کړې هغه کوم چي ستا په لاس کي دي).

او د طواف او سعی مثال د هغو ناچارو او مجبور په ډول دي کوم چي د باچاهانو دربارونو ته ولاړ سي هاخوا دېخوا چکر ونه وهي (ګرځي را ګرځي) چي که موقع ملاوسي خپل درخواست پېش کړي او د باچاه د محل مخ ته هاخوا دېخوا ګرځي د سپارښتي تلاش کوي چي د ده په واسطه سره خپل حاجت بيان کړی او د دې سره سره د دې خبري هم اُميدلوره وي چي شايد که په اتفاقي توګه د باچاه نظر پرېړوځي او پر ده مهربانه سي، او د صفا او مروه هم دغه مثال دی.

او په ميدان د عرفات کي د خلکو قيام کول او د اطرافو او شاوخوا ځخه د هر ډول خلکو هلته جمع کېدل او د هر يو د ځان د پاره په دعاء کي مشغولېدل او په مختلفو ژبو کي خپل حال عرض کول، د قيامت د ميدان په ډول دي، کوم ځای چي به ټول مخلوق جمع او هر يو به د نَفْسِىْ نَفْسِىْ په عالَم کي وي او درد او قبول بيره به پر وي. او ډېري ورېشتل په دې مقصد سره وي چي يو خو په طريقه د بندګی د خالصي بندګی اظهار وسي، او دويم دا چي د دې عمل مشابهت د حضرت ابراهيم عليه السلام د فعل سره دی چي دا هغه مقام دی کوم ځای چي ابليس ده ته راغلی وو. او دی يې په شک کي د اچولو د ځلولو کوشش کړی وو او دوی په ډېر ورېشتی، نو که ستا په زړه کي دا اشتباه او شک پيدا وي چي د هغوی په مخکي خو شيطان وو په ډېر يې ورېشتلو لېکن زما په مخکي کم شئ سته چي زه به يې خامخا په ډېرو ولم، نو پوه سه! چي دا شک پخپله د شيطان پيدا کړای سو دی نو په ډېرويې ووېله چي ملا يې ماته سي ځکه چي د ده ملا په دې ډول سره ماتېدای سي، چي يو خو فرمانبرار بنده جوړ سي او ته هغه کوي د کوم چي تا ته حکم سوی دي، او ته خپل تصرف هغه باقی ذات ته وسپارې او داسي وګڼې چي په داسي ډېر ورېشتو واقعي تا شيطان مغلوب کړی دي.

نو د حج د عبرتونو په باره کي دغه اندازه اشارې وسوې چي کوم سړی دا لاره وپېژني هغه به د ډېر شوق او صفايي د ذهن په برکت ټولي معنی واضحه او ښکاره ووېني او په دې کي به د هر شئ ځخه ده ته حصه ملاوسي چي د ده دعبادت روح په دې سره ترلی او متعلق دی او د دې ظاهري صورت ځخه

به ترقی د سعادت د معنی حاصلول زیات آسانه سي.

## اتم اصل: د قرآن مجید د تلاوت په باره کي

پوسه! چي د قرآن مجيد تلاوت په ټولو عبادتونو کي ډیر افضله دی، درجه لري خصوصًا هغه تلاوت کوم چي د لمانځه په حالت کي په ولاړي کیږي. او نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: زما دامت ډیر فضیلت والا عبادت د قرآن تلاوت کول دي، دارنګه فرمايي چي: چي چا ته د قرآن په ډول نعمت ورکړل سوی وي او هغه بیا هم دا ګني چي فلانی سړي ته د ده څخه زیات یو شئ ورکړل سوی دي نو ده هغه شئ سپک کړی کوم چي حق تعالی بزرګ مقرر کړی دي، او فرمايي چي: که قرآن شریف په پوټین کي کښېښول سي نو اور به ورته نژدې ورنسي، او فرمايي چي: د الله ﷻ په نزد د قیامت په ورځ به د پیغمبرانو او فرشتو او نور وګړیانو څخه یو شئ هم د قرآن مجيد څخه زیات شفیع نه وي، او فرمايي چي: کوم سړی په دعاء کي د مشغولېدلو پر ځای په تلاوت د قرآن کي مشغوله وي ده ته به دومره ثواب ورکړل سي څومره چي غټو درجو والا شکر ګذارو ته ورکول کیږي، او فرمايي چي: د اوسپني په ډول زړه هم زنګ نیسي، او کله چي خلکو د دوی څخه پوښتنه وکړه یا رسول الله ﷺ! دا زنګ به څنګه لیري کیږي، نو ویې وفرمايل چي: د قرآن کریم په تلاوت سره او د مرګ په یادولو سره، او فرمايي: چي زه به د دې دنیا څخه رخصت سم خو تاسو ته به دوه وعظ کوونکي پرېږدم کوم چي به تاسو ته همیشه وعظ او نصیحت کوي او په دغو کي یو واعظ ګویانده دی او بل خاموش دی، او ګویانده واعظ قرآن دی او خاموش واعظ مرګ دی،

او ابن مسعود ؓ فرمايي چي: " قرآن وایاست ځکه چي د هر حرف په اجر د لسو نیکیانو په صورت کي ملاویږي، او زه نه وایم چي الٓمٓ یو حرف دی، بلکي الف هم حرف دی، او لام هم او میم هم"

امام احمد بن حنبل فرمايي چي" ما الله ﷻ په خوب کي ولیدی او عرض مي وکړی یا رب! ستا د تقرب (نژدیکت) حاصلولو تر ټولو ښه وسیله کومه یوه ده؟ الله ﷻ وفرمایل زما کلام یعني قرآن شریف ویل، ما وویل: که په معنی یې پوهیږي او که نه؟ ورته یې فرمايل هو! هغه که په معنی پوهیږي او که نه پوهیږي".

### د غافلانو تلاوت

پوه سه! چي چا قرآن شریف ووایی د ده درجه لوړه سوه نو پکار دي چي د قرآن شریف حرمت او

عزت په سترګو کې ولري، او خپل ځان د بدو کارونو څخه وساتي او پخپلو ټولو معاملو او حالاتو کې په ادب سره وسيږي، کنې دا خطره به وي چې قرآن مجيد چيري د ده دښمن نسي، او نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چې زما د امت ډېر منافقان ن به قرآن وايي، او ابو سيلمان دُراني وايي چې د دوږخ فرشتې به مُفسد قرآن ويونکي به د بُت پرستو په نسبت ډېر ژر ونيسي. په تورات کې ذکر سوي دي چې د الله ﷻ فرمان دی چې: 'ای زما بنده! تا ته شرم نه راځي چې که ستا د ورور خط تا ته ملاوسي نو که پر لاري روان يې يو طرف ته به سې نو د هغه يو يو حرف به وايې او غور به پر کوې لېکن زما دا کتاب کوم چې زما دطرف څخه ستا په نوم ليکل سوی دي چې ته دا ووايې غور پر وکړې او بيا د دې مطابق عمل وکړې او ته يې چې د دې څخه د ليرې ليرې اوسېد کوشش کوې او د دې مطابق د عمل کولو کوشش نه کوې او چې کله يې وايې نو غور نه پر کوې چې آخر په دې کې دي څه دي؟

او حسن بصري رحمه الله وايي چې هغه خلک کوم چې ستا سو څخه مخکې وو، هغوی به قرآن د الله ﷻ د طرف څخه راليږل سوي يو خط ګڼی د شپې به يې پر دې غور کولو او د ورځې به يې د دې د احکام مطابق عمل کوی او تاسو ياست چې د دې درس او تدريس مو خپل کسب جوړ کړی دي او د دې د حرفونو په اعراب په جوړولو او صحيح کولو کې خو ډېر هوښيار ياست لېکن پر حکمونې په عمل کولو کې ډېر سُست ياست.

مطلب دا چې د پوهيدو خبره داد چې د قرآن محض ويل اصلي مقصد نه دي بلکې پر دې عمل کول اصلي مقصود دی ځکه چې ويل د يادولو د پاره وي او يادول د عمل کولو د پاره، او څوک چې دا فقط وايي لېکن عمل نه پر کوي نو د ده مثال د هغه غلام په دول دي چې هغه ته د خپل مالک خط ورسيږي چې په دغه کې يې ديو کار ټولو تاکيد ورته کړی وي او دغه غلام بس خط واخلي کښېني او په ښه آواز يې ووايي او د حرفونو په صحيح کولو کې لګياوي لېکن په خط کې ليکل سوو احکامو کې يو هم پر ځای نه کړي نو ظاهره ده چې داسي غلام به شکه چې د سزا او عذاب لائق دی.

## د قرآن د تلاوت آداب

**ظاهري ادبونه:** په ښکاره توګه د شپږو شيانو خيال ساتل پکار دي:

(۱) په احترام او تعظيم سره دې وايي او د تلاوت څخه اول دې اودس وکړي په داب او عاجزي سره دې مخ پر قبله کښېني، لکه په لمانځه کې چې کښېني، حضرت علي رضي الله عنه وايي کوم سړی چې په لمانځه کې په ولاړې قرآن وايي ده ته به پر هر يوه حرف سل نېکی ليکل کيږي او چې په ناستې يې

وایي نو پنځوس نېکی او که دلمانځه څخه دباندې یې په اودسه کي وایي نو پر هر یوه حرف پنځویشت نېکی دده په حساب کي لیکل کیږي او که بغیر داودس څخه یې وایي نو دلسو نېکیو څخه زیاتي نه لیکل کیږي، او دشپې په لمانځه کي چي یې وایي نو فضیلت یې زیات وي ځکه چي دغه وخت زړه فارغه وي.

(۲) په کراره کراره دې وایي او پر معنی دې غور کوي، او په دې خبره دې نه دریږي کیږي چي ژر تر ژره ختم سي، بعضي خلک ځکه تلوار کوي چي هره ورځ ختم وکړای سي، نبي کریم ﷺ فرمایي: کوم سړی چي د دریو ورځو څخه مخکي قرآن مجید ختم کړي، دی د قرآن د پوهي څخه حصه نسي پیدا کولای، او ابن عباس رضي الله عنه فرمایي چي " زما دا زیاته خوښه ده چي په کراره کراره یې وایم هغه که صرف إِذَا زُلْزِلَتِ الارضُ او الْقَارِعَةُ ختم کړم په نسبت ددې چي ژر ژر سورت بقره او آل عمران ختم کړم،او حضرت عائشې رضي الله عنها که یو څوک ولیدی چي ژرژر تلاوت کوي نو فرمایل به یې چي دا سړی خاموش هم نه دی خو په تلاوت کي هم نه دی، او که یو سړی عجمي وي او د قرآن په معنی نه پوهیږي نو ده د پاره په کراره تلاوت کول نور هم زیات ښه دي چي لږ تر لږه د قرآن د حرمت احساس خو لري.

(۳) نبي ﷺ فرمایي: چي قرآن وایاست او ژاړئ! تر دې چي که د ځانه اوښکي نه جاري کیږي نو په کوشش سره خو اوښکي تویول پکار دي، ابن عباس رضي الله عنه فرمایي: چي کله تلاوت کوې کوي او د سُبْحَانَ الَّذِيْ سجدې ته ورسیږي نو په تکلف (په زوره) اوښکي تویوه او تر څو چي ژړانه وي درغلي نو پر سجده تلوار مه کوه او که په کوشش سره هم ستر ګي لندې نسي نو په زړه په هر حال وژاړه،

او نبي ﷺ فرمایلي دي چي قرآن پاک د غم د پاره نازل سوی دی نو چي کله یې وایاست نو ځان غمګین جوړ کړئ، او کوم سړی چي دقرآن د تلاوت په دوران کي په وعد وعید او حکمو کي غور کوي او پر خپله عاجزی او لاچاری نظر اچوي نو خامخا دي غمجن کیږي که غفلت دی بالکل مغلوبه کړی نه وي.

(۴) د هر یو آیت شریف حق دی اداء کوي چي نبي ﷺ به کله د عذاب آیت ته ورسېدی نو استغفار به یې وایی، او کله چه به د رحمت آیت ته ورسېدی نو د الله ﷻ د رحمت طلب به یې کوی، او د تنزیه په آیت به یې تسبیح ویله او شروع یې همېشه د أَعُوْذُ بِاللهِ څخه کوله او په آخر کي به یې داسي ویل:

اَللّٰهُمَّ ارْحَمْنِيْ بِالْقُرْآنِ واجعله لي إمامًا ونورًا وهدیً ورحمةً اللهم ذکرني منه ما نسیت وعلمني منه ما جهلت وارزقني تلاوته آناء اللیل وأطراف النهار واجعله لي حجة یا رب العالمین (اې الله ﷻ د قرآن په برکت پر ما رحمت وفرمایه او زما د پاره دی هادي او لاربنود او نور د لارې جوړ کړه، او رحمت وفرمایه، اې الله څه چې ما په دې کې هیر کړي دي هغه ماته یاد کړه او ماته هغه وښیه د کومو شخه چې زه بې خبره یم او د دې تلاوت زما شپه او ورځ نصیب کړه او دا زما د پاره حجت جوړ کړه یا رب العالمین).

او چې کله د سجدې آیت ته ورسیږي نو تکبیر دې وکړي او سجدې ته دې ولاړ سي او د لمانځه متعلق شرطونه دې پکښې پوره کړي کوم چې طهارت او د عورت پټول دي. او د تشهّد او سلام څخه بغیر صرف تکبیر او سجده کافي دي.

(۵) که د ریاء شبه او بیره وي یا د چا په لمانځه کې خلل او تاوان پرېوتی تلاوت دې کرار کرار کوي ځکه چې په حدیث کې دي چې په کراره قرآن ویونکي پر په زوره قرآن ویونکي داسې فضیلت لري لکه چې په پټه د صدقه ورکوونکي فضیلت پر ښکاره ورکوونکي دي هو! که د ریاء یا د بل په لمانځه کې د خلل لوېدو بیره نه وي نو بیا په آواز سره ویل غوره دي (یعني په لوړ آواز سره یې ویل غوره دي) چې نور یې هم واوري او ثواب یې وسي او دوی هم د قرآن د عملونو څخه خبر سي او د دوی همت سره راخوند سي په شوق کې اضافه وسي، او خوب وتښتي، که دا ټول نیتونه جمع سي نو پر هریوه نیت به جلا جلا ثواب ملاوسي، دارنګه په ناظره ویل غوره دي ځکه چې دغه ډول سترګې هم مصروفې سي، او ویل سوي دي چې قرآن په ناظره سره ویل او یو وار ختمول د زباني اوو واره ختمولو سره برابر دي.

د مصر د فقهاؤ څخه یو فقیه د امام شافعي رحمه الله خواته راغلی، نوچې ګوري هغه په سجده کې پروت دی او قرآن پاک ورته پروت دی نو فقیه وویل: فقه خو ته د قرآن څخه هم لیرې ساتلې یې، زه خو چې د ماخوستن لمونځ وکړم تر سهاره پورې د قرآن کریم تلاوت کووم، او نبي ﷺ یو وار د صدیق اکبر رضی الله عنه پر خوا باندې تېر سو نو هغه د شپې د تهجد لمونځ کوی او قرآن کریم یې ډېر په کرار آواز سره تلاوت کوی، نبي ﷺ ورته وفرمایل، په کرار آواز سره تلاوت ولې کوې؟ هغه وویل: چا ته چې یې وایم هغه یې اوري، د دې څخه وروسته یې حضرت عمر رضی الله عنه ولیدی چې په لوړ آواز یې تلاوت کوی پوښتنه یې ځیني وکړه دومره په لوړ آواز تلاوت ولې کوې؟ ورته وویل: ویده ویښووم او

شیطان زغلوم. نبي ﷺ وفرمایل تاسو دواړه ښه کوی ځکه چي عملونه د نیت تابع دي او څنګه چي نیت د دواړو نیک وو، نو ثواب به هم دواړو ته ملاوېږي.

(۶) کوشش دا پکار دي چي په ښه آواز سره تلاوت وسي، نبی ﷺ فرمایلي دي چي قرآن کریم په ښه آواز (خوش آوازی) سره ښایسته کړی، او نبی ﷺ چي هر کله ابو حذیفه ﷛ په خوش آوازی سره په قرآن ویلو ولیدی نو ویې فرمایل: شکر دی د الله ﷻ چي زما په اُمت کي یې داسي خلک پیدا کړي دي، او وجه د دې داده چي آواز څومره ښه سي دومره د قرآن تاثیر هم په زړه کي زیات وي او سنت په ښه آواز سره ویل دي، خو د سندرو په ډول د کلماتو او حروفو په مینځ کي ګډې بازي کول مکروه دي.

## باطني ادبونه

د قرآن ویلو باطني ادبونه هم شپږ دي:

(۱) اول دا چي د دې کلام عظمت وپېژني، چي دا د الله ﷻ کلام دی او قدیم دی او د هغه صفت دی کوم چي د هغه د ذات سره قائم دی، او څه چي د ژبې څخه ووځي دغه خو د حرفونو مجموعه ده، او لکه څنګه چي په ژبه باندي لور ویل آسانه دي هر څوک یې ویلای سي لېکن د ده اصل طاقت مختلف دی یعني د اصل لور طاقت په هیڅا کي هم نسته او دا حقیقت د دې حرفونو د معنی دی چي په ظاهره خوبې هر څوک اداء کولای سي، خو که دا ښکاره کړل سي نو اسمانونه او ځمکه یې طاقت نسي درلودلای په دې وجه الله ﷻ فرمایي: لَوْ أَنزَلْنَا هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ عَلَىٰ جَبَلٍ لَّرَأَيْتَهُۥ خَٰشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْيَةِ ٱللَّهِ (که موږ دا قرآن پر یوه غره نازل کړي وای نو (اې مُحَمّد ﷺ!) تا به لیدلی وای چي دغه غر به د خدای د بیرې څخه کُښته سوی او ټکړې ټکړې سوی وای [الحشر: ۲۱]. لېکن د قرآن پاک عظمت او جمال یې د حرفونو په جامه کي پټ کړی، ځکه چي په زړو نو او ژبو کي دا طاقت د کومه ځایه وو (چي د دې طاقت یې درلودلی وای، نو د حرفو نو د لباس څخه بغیر د ده وانسانانو ته د رسولو بل یو صورت نه وو. لېکن دا د دې خبرې دلیل نه دی چي د حرفونو څخه ملسوا یو بل شئ په ده کي پټ نسته د دې داسي مثال دي چي کله موږ څاروېانو ته د یو کار د پاره څه ویل غولړو نو د انسانانو په ژبه کي ور ته څه نه سو ویلای ځکه چي په دوی کي دا طاقت نسته چي په پوره سي نو مجبوراً داسي آوازونه او اشارې متعینې سوې کومي چي د څاروېانو د آوازونو سره ملاو دي چي دوی ته په دغو سره آواز وسي او دوی زموږ د خوښې مطابق هغه څه وکړي، حال دا دی چي د دغو

کلرونو د حکمت څخه خبر نه وي مثلاً غوايي واخله چې خاص بول آوازونه کوي هغه يوې چلوې لو څمکه اړوي، مگر ده ته دا معلومه نه ده چې په څمکه اړولو کې آخر څه حکمت دی؟ کوم چې په حقيقت کې دا وي چې هوا په خاورو کې دننه شامله سي او لوبه د خاورې او هوا سره يو ځای سي نو دا درې سره د تخم د پلر غذا سي او د ده پالنه وکړي، دغه بول د قرآن پاک څخه هم دېر خلک د آواز ظاهري معنی څخه ماسوا نور څه نسي حاصلولای ځکه چې هغوی د ده د حکمت او حقيقت څخه نه دي خبر لکه څنگه چې د بعضو په نزد قرآن پاک بس د حرفونو او آوازونو څخه عبارت دی، حال دا چې دا دانتهائي کمي درجې د ضعف او ناپوهی نښه ده؛

او د دې مثال دا دی چې يو سړی دا تصوّر وکړي چې د اُور حقيقت فقط درې حرفونه الف، واو، راء دي، او په دې پوه نسي چې په اُور کې کاغذ واچول سي نو هغه يې سوځي هم او کاغذ يې طاقت نسي درلودلای ليکن دا حروف (ا، و، ر) همېشه پر کاغذ ليکل کيږي خو يوه ذره اثر هم نه پر کوي (ځکه چې دا حرفونه خو د ده ښکاره لباس دی حقيقت نه دی) نو څنگه چې د هر جسم د پاره يو روح وي چې د هغه په وجه دغه جسم قائم وي، دغه بول د حرفونو روح د دوی معنی ده او د حرفونو حيثيت پخپله د جسم دی، او ظاهره ده چې جسم ته ټول شرف د روح په وجه حاصل دی، نو دغه بول د حرفونو ټول فضيلت هم د دوی د معنا په وجه دی، او حقيقت په بشپړه توگه بيانول په دې کتاب کې امکان نه لري.

(۲) د الله ﷻ عظمت چې دا د هغه کلام دی، د قرآن د تلاوت څخه اول به پخپل زړه کې حاضر کړي او د دې امر څخه خبر وسي چې د کوم کلام ويلو ته دی ناست دی څومره عظيم او اهم دی چې د کوم په باره کې چې الله ﷻ فرمايلي دي لَا يَمَسُّهُ الا المُطهرّون (دا قرآن کريم ته د پاکو فرښتو څخه ماسوا بل څوک لاس نسي وروړلای) [واقعه: ۷۹]. اولکه څنگه چې د دې رباني صحيفې ظاهر ته د پاکو لاسونو څخه بغير لاسونه نسي وروړلای دغه بول د دې د معناوو حقيقت بغير د هغه زړه څخه بل څوک نه سي معلومولای کوم چې د بدو اخلاقو د نجاست څخه پاک وي او په نُور د تعظيم سره ښايسته وي او د دې وقار په صحيح معناوو کې پېژندای سي، او داوجه ده چې حضرت عکرمه ؓ به کله قرآن پاک خلاص کړی نو بې هوښي به پر راتلله او په دې حالت کې به د ده د خولې څخه په ولر ولر دا الفاظ اوريدل کېده" دا زما درب کلام دی" او يو سړی هم تر هغه وخته پوري د عظمت د قرآن څخه نسي خبرېدای ترڅو پوري چې دی د عظمتِ الهي سره آشنا نه وي، او د عظمتِ الهي سره

آشنايي تر هغه پوري نه حاصليږي تر څو چي په صفاتو او افعال الهي باندي غور ونه کړای سي، مثلاً عرش، کرسی او وه اسمانونه، ځمکه او څه چي په دې کائناتو کې دي يعني فرشتې، پيريان، انسانان، حيوانان، حشرات، جمادات، نباتات مطلب دا چي د هر قسم مخلوق په باره کي د غور او فکر د پاره زړه حاضر نه کړای سي، ، نو د ې ټولو په باره کي دي زړه حاضر کړي، او پوه دي سي چي دا کلام د هغه عظيم رب دي د کوم په قبضه کي چي دا ټول شيان دي، او هغه په هر شئ باندي قادر دی او که هغه دا ټولو نيست ونابود کول (ختمول) وغواړي نو څوک منع کوونکي يې نسته او د دې سره د ده په کمال کي څه فرق يا نقص نسي پيدا کېدای، چي د دې ټولو شيانو (مخلوق) پيدا کوونکي هغه دي او دوی باقي ساتل (يا نه ساتل) او هر يو ته رزق هم رسول هم د هغه په لاس کي دي، چي دا ټولي خبري په ښه توګه په ذهن کي وي، نو بيا د بڅرکي قدر د خبرداری اثر د ده په زړه کي حاضربدای سي (يعني د دې ټولو سره سره به لږ اندازه خبرداري د ده په زړه کي اثر وکړي).

(۳) د تلاوت کولو په وخت کي دي زړه حاضر ساتي او ديوه ګړي د پاره دې هم غفلت ته نه پرېږدي او د نفس په خبرو کي دي رانسي خيالات دې نه پرېشانه کوي، چي په غفلت کي پرېوتل او نه پرېوتل پوه خبره ده، نو په دې وجه دي په غفلت کي وېل سوی دوهم وار ووايي، ځکه چي د غافل قاري مثال خو د هغه سړي په رقم دی کوم چي باغ ته د سېل د پاره لاړ سي او هلته داسي غافله سي چي د باغ د عجائبو د ليدو څخه بغير دباغ څخه بهر راووځي، نو دا قرآن کريم د مؤمنانود تماشې ځای دي، او د عجائباتو او حکمتونو څخه داسي ډک دی چي که يو سړی غور پر وکړي نو بيا به يې بل څه شئ په خيال کي پاته نه سي، نو کوم سړی چي دقرآن د معنی څخه بې خبره وي، د ده په کم نصيبي کي هيڅ شک نسي کېدای، لېکن دومره خو پکار دي چي د ده عظمت په زړه کي حاضر کړي، چي په تلاوت کي يې خيالات خراب او متنشر نسي.

(۴)د هري کلمې پر معنی دي غور کوي چي په پوه سي او که په يو وار پوه نسي نو دوهم وار دې وايي او بيا دي غور پر وکړي او د غور څخه وروسته که لذت پکښې محسوس سو نو په وار وار دې ووايي، ځکه چي د زياتو ويلو و څخه دا غوره ده (يعني تر بې پوهی د ډېرو ويلو څخه لږ د پوهي سره ويل غوره دي) حضرت ابو ذر ﷺ فرمايي چي يو وار نبي ﷺ توله شپه په لمانځه کي دا يو آيت بار بار ويلو: إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَإِن تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ (المائدة: ۱۱۸) (که ته دوی ته سزاورکوې نو دا ستابندګان دي او که معاف کوې يې نو ته زبردست او حکمت والا يې ) او

شل شل واره به یې صرف د بسم الله اعاده کوله. او سعید بن جبیر ﷺ یو شپه د دې آیت په واورو واورو ویلو کې تېره کړه: وَامْتَازُوا الْيَوْمَ أَيُّهَا الْمُجْرِمُونَ (یس:۵۹) (ای مجرمانو نن د ایماندارانو څخه جلا سئ) او که څوک یو آیت وایي او غور د بل آیت په معنی کې کوي نو ده ګواکې د دې آیت حق ادا نه کړی.

عامر بن عبدالله یو وار د وسوسو شکایت کوی، خلکو ورته وویل چې دنیوي خبري به دې په خیال کې راځي، عامر وویل چې ما ته پر سینه په چاړه وهل آسانه دي لېکن دا قطعي ممکنه نه ده چې په لمانځه کې د دنیا خبري زما په زړه او دماغ کې راسي، زما په زړه کې چې کومه خبره دغه وخت راځي هغه دا ده چې د قیامت په ورځ د الله ﷻ په حضور کې به زه څنګه ودرېږم او د هغه ځای څخه به مې واپسي څنګه وي، نو (وګورئ!) دا تصور (کوم چې د خدای د پېژندو دلیل دی) هغه وسوسه ګڼله (لېکن صحیح یې ویله) څکه چې د ده د دې خطرې بنیاد پر دې حکم وو چې کومه کلمه په لمانځه کې وویل سي، غور صرف د هغې پر معنی باندي کول پکار دي چې داوخت فکر صرف تر دې پوري محدود پکار دي چې بل څه خیال په زړه کې رانسي که څه هم دغه د دین متعلق ولې نه وي، چې د دې شمار په هرحال په وسوسه کې به وي، بلکې پکار دا ده چې کوم آیت وایي د هغه پر مضمون باندي غور وسي مثلاً که داسي وایي چې د الله ﷻ د صفاتو ذکر پکښې وي نو په صفاتو د الله کې دې غور کوي چې د قدّوس څه معنی ده؟ یا د عَزیز مطلب څه دی؟ او د حکیم څخه مراد څه دی؟ یا د جبار تشریح څه ده؟ او د دې د وضاحت د پاره کوم مثالونه پېش کېدای سي؟ او داسي نور...، او که چې داسي آیت وایي کوم چې د رب د افعالو سره متعلق وي: مثلاً خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالارْضَ (پیدا کړي یې دي اسمانونه او ځمکه) [سجده: ۴] نو د مخلوق د عجائبو او غرائبو څخه دې د خالق عظمت وپېژني او د ده علم او د قدرت کمال دي وپېژني چې پوهه او فهم یې دې مقام ته ورسیږي چې څه ویني په هغه کې ذات الهي ویني، او که چې دا آیت شریف وایي: اِنّا خَلَقْنَا الْاِنْسانَ مِنْ نُطْفَةٍ [دهر: ۲] (مونږ انسان دَمخلوطي (ګډي) نطفې څخه پیدا کړی دي) نو د نطفې په عجائبو کې دې غور وکړي چې د یو ډول ابو قطره وي او څنګه څنګه شیان ځیني پیدا کېږي چې اول صرف د غوښې یو ټوټه سي، بیا پکښې هډو کې پوست رګونه او مختلف اندامونه مثلاً سره، لاسونه، پښې، سترګې، ژبه او نور نور جوړېږي، آخر دا څنګه پیدا کېږ، او بیا دي (نور ژوري ته ولاړ سي) د معنی د جوواهرو پر عجائباتو باندي دې غور وکړي چې لیدل اوریدل او ژوند څنګه په دې اندامونو کې راسي؟ په دې

ځلې کې د پوره قرآن شرح او تفسیر خومونږ نه سو بیانولای خو دې مثالونو څخه مقصد دا وو چې لږ فونلدې خبر سي چې د قرآن ویلو د پاره دا خبره ډېره لازمه او اهمه ده چې په معنی کې یې فوروفکر ضرور وسي، درې قسمه خلګ داسې دي کومو ته چې د قرآن د معنی رموز او حکمتونه ښکاره کېدای نسي:

یو خو هغه خلګ دي چې هغو اول ظاهري تفسیر نه وي ویلی او په عربي ژبه نه پوهیږي، دویم هغه خلګ چې د کبیره ګناهونو څخه په یولوی ګناه اخته وي یا یې پر یو بدعت باندې عقیده کړې وي، ځکه چې د داسې خلګو زړونه د ګناهونو په تیارو او د بدعت په تورولو تور سوي وي، دریم هغه کوم چې په علم کلام د عقیدې درلودلو په وجه صرف د دې پر ظاهري معنا باندې متوجه سوي وي او د دغو څخه خلاف چې ورته وایي (که څه هم حقیقت وي) هغه بد پرلګیږي، او د نفرت اظهار ځیني کوي، د داسې خلګو د پاره ممکنه نه ده چې هغوی د دې ظاهري څخول څخه دباندې راووځي.

(۵) پنځم دا چې د تلاوت کوونکي زړه د الله ﷻ د مختلفو صفتونو په ذکر ویلو ویلو سره مختلفو کیفیتونو طرف ته داسې اوښتی وي لکه چې د آیتونو معنی مختلف صورتونه اختیاروي، یعني کله چې دیري آیت ته ورسیږي نو د ده پر زړه بـ ه راسي، ژړا او زلري شروع کړي او کله چې آیت د رحمت ته ورسیږي نو په زړه کې یې خوشحالي پیدا سي، او کله چې د الله ﷻ د صفتونو ذکر واوري نو عاجزي او خاکساري پر راسي او کله چې د کفارو انتهائي نلشوني او ناقابل یقین خرافات واوري چې دا څنګه څنګه خبري دوی د حق تعالی په شان کې کوي، مثلاً چیري یو څوک ور سره شریکوي او چیري ورته څوک زوی جوړوي نو په داسې ځایونو کې یې آواز کرلو او چپ سي او د شرم څخه په ډک آواز سره یې وایي، نو دغه ډول د هر آیت معنی ده او دغه معنی د دې امر تقاضا کوي چې وربونکي د دې صفت مطابق جوړ سي چې د آیتونو حق ادا سي.

(۶) یکار دي چې قرآن پاک داسې لوري چې ګواکي یا (سیده په سیده) یې د الله ﷻ څخه اوري او فرض کړي چې ګواکي واقعي یې د هغه څخه اوري، د یو بزرګ وینا ده چې ما به قرآن تلاوت کوی، لیکن لذت (خوند) به مې نه محسوسوی تر دې چې ما فرض کړه چې د نبي ﷺ څخه یې اورم نو لذت حاصلیدل را ته شروع سو، بیا ما فرض کړه چې د جبرئیل ﷺ څخه یې اورم نو لذت نور هم زیات سو، د دې څخه وروسته زه نور هم مخکې سوم، او عظیم الشانه مرتبې ته ورسېدم یعني لوس یې داسې وایم چې ګواکي د الله ﷻ څخه یې اورم او اوس را ته هغه لذت ملاویږي چې مخکې ما ته نه وو نصیب سوی.

## نهم اصل: د الله ﷻ د ذکر په باره کې

بنه پوه سه! چې د ټولو عبادتونو نڅوړ (خلاصه) او اصل مقصد د الله ﷻ یادول دي، لمونځ چې هغه د اسلام ستن (پایه) ده د دې مقصد هم دا دی چې د الله ﷻ ذکر جاري وي لکه چې الله ﷻ فرمایلي دي:
إِنَّ الصَّلَاةَ تَنْهَىٰ عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنكَرِ وَلَذِكْرُ اللَّهِ أَكْبَرُ [العنکبوت:۴۵] (بې شکه لمونځ د خپلې وضعې په اعتبار سره د بې حیایی او بدو کارونو څخه منع کوي او د الله ﷻ ذکر ډېر لوی شئ دی)او قرآن مجید ویل په ټولو عبادتونو کې افضل دي ځکه چې دا د الله ﷻ خپل کلام دی او د ده د ذکر څخه ډک دی، او څه چې په دې کې ذکر دي د الله ﷻ د ذکر د تازه کولو سبب دي، او د روژې مقصد شهوتونه ماتول دي چې زړه د شهوتونو د زحمت (تکلیف) څخه خلاص سي او پاک صاف او رښانه سي، او د ذکر الهي دشان وړ سي، چې زړه تر څو پورې په شهواتو سره خیرن وي ذکر الهي ځینې ممکن نه دی، او نه د ذکرا لهي څه اثر پر کیږي، او حج چې دخدای د کور د زیارت نوم دی د دې مقصد هم د کور د خاوند ذکر دی چې د ملاقات شوق نور هم زیات سي، نو د ټولو عبادتونو نڅوړ (خلاصه) په اصل کې د الله ﷻ ذکر دی او دا راز په دې ټولو کې پټ دي، بلکې اصل د اسلام کلمه لا اله الا اللهُ ده او دا عین ذکر دی او باقي چې څومره عبادتونه دي د دې په تائید کې دي او د الله ﷻ تاته یادېدل ستا د ذکر ثمره ده او د دې څخه بله غټه ثمره په تصور کې څنګه راتلای سي په دې وجه خوبږ فرمایلي دي: فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ [البقرة] (ما یادوی! چې زه تاسو یاد کړم) او د خدای ﷻ دا یاد همېشه په دوامي (تلپاتې) توګه پکار دي، او که همېشه نسي نو چې اکثر او زیاتره خوبږ خامخا یاد وی چې خلاصون او فلاح په دې کې دي ځکه خو فرمایي: وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ [الجمعه] (الله تعالی ډېر یادوی چې تاسو کامیاب سئ) یعنې که نجات (خلاصون) غواړئ نو یاد ساته چې چابي یې د الله ﷻ ذکر دی او دا ډېر پکار دي، نه چې کله کله لکه څنګه چې فرمان دی: الَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِهِمْ [آل عمران: ۱۹۱] (هغه خلک الله تعالی همیشه یادوي په ولاړې هم په ناستې هم او پر څنګو (پروتې) هم) ګواکې پر هغو خلکوبږ آفرین ویلی دي کوم چې په ناسته او ولاړې غرض په هر حالت کې د الله ﷻ د یادوونې څخه غافله نه وي، دارنګه فرمایي: وَاذْكُر رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ

بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ وَلَا تَكُنْ مِنَ الْغَافِلِينَ (الانفال) (او یادوه رب خپل په زړه کې په عاجزی سره او په ېېره سره او د په زوره آواز نه په کم آواز سره سهار او ماښام (يعني هميشه) او د غافلانو څخه مه کېږه) یعني هغه یادوه! په ژړا او په ېېره سره په پټه په ښکاره سهار اوماښام او یو گړی هم مه ځینې غافله کېږه؛

او د نبي ﷺ څخه خلکو پوښتنه وکړه چې په ټولو کارونو کې غوره کار کوم یو دی؟ ویې فرمایل: دا چې کله ته مړ کېږې نو چې ستا ژبه په ذکر د خدای ﷻ سره لنده وي، او یو وار یې پخپله وفرمایل چې: تاسو خبر ولې نه کړم چې ستاسو په عملونو کې هغه کوم غوره عمل دی کوم چې الله ﷻ ته د ټولو څخه زيات مقبول دی او دکوم په وجه چې تاسو ته تر ټولو افضله درجه حاصلېدای سي، او کوم چې د سرو او سپينو زرو د صدقې څخه هم غټ اجر لري بلکې دکوم فضيلت چې د هغه جهاد څخه هم زيات دی کوم چې تاسو د الله د دښمنانو سره کوئ په کوم کې چې تاسود کافرانو او کافران ستا سو غاړې پرې کوي، خلکو په شوق سره پوښتنه وکړه یا رسول الله ﷺ! هغه څه شئ دي ویې فرمایل: د الله ﷻ ذکر یعنې هروخت الله ﷻ یادول، او فرمایلي یې دي: الله ﷻ فرمايي چې زماه په یاد کې چې د کوم سړي څخه دعاءغوښتل هم هېره سي د ده انعام زما په نزد د دعاء غوښتونکو څخه زیات دی، یعني څوک چې زما په یادولو کې دومره محوه(غرق) سي چې د دعاء غوښتلو هوښ یې هم پاته نسي د ده څه نه غوښتل زمانور هم زیات خوښ دي او ده ته به زه نور هم زیات انعام ورکړم، او فرمايي: د غافلانو په مېنځ کې د الله ﷻ ذاکر داسي دي لکه په مړو کې ژوندی یا په وچو ونو کې شنه درخته یا لکه د جهاد څخه په تېښتېدونکو کې چې غازي وي، او معاذ بن جبل ﷺ وايي چې: د جنتيانو به پر بله یوه خبره افسوس نه وي ماسوا د هغو وختونو څخه کوم چې دوی د الله ﷻ د یادولو څخه بغير تېر کړي وي.

**د ذکر حقيقت او پېژندنه:** پوه سه! چې د ذکر څلور درجې دي: اول دا چې ذکر محض په ژبه سره وي او زړه ځينې غافله وي، د دې اثر ضعيف دی که څه هم د اثر څخه بيخي خالي هم نه دي ځکه هغه ژبه کومه چې په ذکر الهي کې مشغوله وي د هغې ژبې څخه په هر حال زياته غوره ده کومه چې به پالتو (اضافي) بکواس خبرو کې مشغوله وي او یا خاموشه وي؛

دويم ذکر هغه دي چې په زړه کې خوموجودوي لېکن په پوره توگه پکښې ځای سوی نه وي، او د ده موجودگي پر دې امر باندي موقوفه وي چې په تکلف او کوشش سره یې په زړه کې ایښوول وي، او

که په دې کوشش کي لږ غوندي سستي وسي نو زړه بيا خپل طبعي حالت ته واپس کيږي او په خبرو کي راسي، غافله سي.

دريم دا چي ذکر الهي يې په زړه کي ځای کړي وي او پر مسلط سوی وي تر دې چي دبل کار د پاره زړه په ډېر کوشش سره اماده کوي او دا درجه عظيمه ده.

څلورمه درجه هغه ده چه پر زړه د ذکر حق نه بلکي د ذات حق غلبه وسي او ذکر په زړه کي نه وي ځکه چي د چا زړه مذکور (حق تعالی) دوست او گران لري دی د هغه شخه ضوره دي کوم چي ذکر دوست (محبوب) لري، او په دوی کي غټ فرق دي، بلکي کمال دا دی چي د ذکر خيال بالکل د زړه شخه ووځی او مذکور مذکور پاته سي، په دې وجه چي ذکر هغه که په عربي ژبه کي وي يا په فارسي کي د نفس دخبري شخه به خالي نه وي بلکي عين خبره به وي او اصل خبره دا ده چي زړه د هر ډول خبري شخه خالي سي هغه که دغه په عربي کي وي او که په فارسي کي، او په بشپړه توگه سره د هغه بلکي د هغه په ډول سي، او د بل يو شئ په ده کي ځای پاته نسي، او دا د انتهائي درجې محبت نتيجه وي، کوم ته چي عشق وايي او د عاشق ټوله کارونه د معشوق د پاره وقف وي او کله کله خو داسي هم کيږي چي د عاشق زړه د معشوق په تصوّر کي دومره مستغرق سي چي پخپله د معشوق نوم هم ځيني هېر سي او کله چي دی د استغراق دې منزل ته ورسيږي نو د تصوف اولې لاري ته ورسيږي چي دا هغه حالت دي کوم ته چي صوفيانو د فناء او نيستی نوم ورکړی دي يعني څه چي (دی) د هغه په ذکر سره په (نه دی) بدل سي، او پخپله هم نيست سي، يعني د خپل ځان شخه هم بې خبره سي او خپل ځان هم هېر کړی، او لکه شنګه چي د الله ﷻ نور هم ډېر عَالَمونه سته چي موږ ته د هغو قطعًا هيڅ خبر نسته،او دغه زموږ د پاره گواکي هيڅ وجود نه لري ځکه چي زموږ په نزد خو وجود هغه شئ وي کوم چي موږ يې ته خبر وي، دغه ډول دا عالَم د کوم چي موږ ته خبر دی او کوم چي موږ "هست" يعني موجود گڼو کله چي د چا شخه هېر سي نو د هغه د پاره "نيست" يعني غير موجود سي، او کله چي دوی خپل ځان هم هېر کړی نو گواکي پخپل ځان سره هم "نيست" يعني غير موجود سي، او کله چي د الله ﷻ شخه ما سوا يو شئ د ده سره پاته نسي (تر دې چي ځان هم )نو د ده "هست" يعني موجود صرف ذات د حق پاته سو، دغه ډول کله چي ته پر ځمکه او اسمان نظر اچوې او څه چي تا ته په دې کي په نظر راځي نو دا گڼې: (دا چي کوم شيان وينم) د دې شخه زيات يا ماسوا نور هيڅ نسته بس دغه څه دي کوم چي د نظر په مخکي دي، دغه ډول دا سړی (په ذات حق کي فنا سوی) هم ما سوا د الله ﷻ شخه نور څهويني نه، او وايي چي څه دي هم دغه دي د ده ځخه

ملسوا نور هیڅ نسته تر دې چې د ده خپل ځان هم څه وجود نه وي، نو چې دې ځای ته ورسیږي د ده
او د حق تعالی په مینځ کې بېلتون ختم سي او یووالی حاصل سي او دا د توحید او وحدانیت اولنی
عالَم دی چې د بېلتون خبر هم پاتې پاته نسي، ځکه چې ده ته د بېلتوان او لېرې والي احساس هیڅ
قدر پاته نسي، ځکه د بېلتون احساس هغه ته وي کوم چې دوه شیان جلا جلا پېژني، یعني خپل
ځان او د الله ﷻ ذات او د کوم سړي ذکر چې موږ کوو هغه خو پخپل حال کې د ځان څخه هم بې خبره
دی، او ما سو د الله ﷻ د یو ذات څخه بل څوک پېژني نه نو بیا ده ته څه خبر سته چې خدای د کومې
بَلا نوم دی؟ لکه څنګه چې کله هغه دې درجې ته ورسیږي نو د فرشتو صورتونه د ده په مخکې
ښکاره کېدل شروع سي، او روحونه، فرشتې او انبیاء په ښایسته ښایسته شکلونو او صورتونو کې ده
ته مخامخ بې حجابه ښکاره کیږي، او څه چې د الله ﷻ د پار مخصوص دي ده ته ښکاره کېدل شروع
سي او داسې داسې عظیم الشانه احوال او واردات ښکاره کېدل شروع سي چې دغه ته د الفاظو جامه
اغوستل ممکنه نه ده، او کله چې خپل ځان ته واپس راځي نو که څه هم د نورو کارونو څخه خبر
سي، لېکن د دې بېخودۍ د کیفیت اثر په ده کې مسلسل موجود وي، په دې وجه د دغې حالت شوق
پر ده داسې غالبه وي چې دنیا او مافیها ټول ده ته ناخوښه معلومیږي، دی د بدن په اعتبار سره خو وي
لیکن د زړه په اعتبار سره غائب وي، بلکې نورو خلکو ته د تعجب په نظر ګوري چې آخر ولې دا
خلک په دنیا کې دومره ورک دي؟ تر دې چې پر دوی یې رحم راځي، او د رحم په نظر سره ورته
ګوري ځکه چې ده ته معلومه ده چې دې بې چارګانو بې وزلو څومره د لوی نعمت څخه ځان
محرومه کړی دی، او هاخوا (نا خبره) دنیاداره پر ده خاندي چې دی آخر د دنیا په کاروبا کې ولې نه
مشغولیږي؟ او دا خیال کوي چې شاید ی لېونی او سودایي سوی دی (چې د دنیا څخه بالکل خبر نه
دی) نو که یو سړی د فنا او نیستی درجې ته ونه رسیږي او داحالت او مکاشفات ده ته ښکاره هم نسي
لېکن چې الله ﷻ پر ده غالبه سي نو دا هم د کیمیاء د سعات څخه کمه نه ده ځکه چې کله د حق ذکر
غالب سي نو د الله ﷻ سره اُنس او محبت هم د ځانه غالب کیږي او د دې نتیجه دا سي چې دی الله ﷻ
د تولې دنیا څخه او د دنیا د هر شئ څخه زیات عزیز، محبوب ګران لري، او اصل سعادت دا دی چې هر
کله د ده رجوع د الله ﷻ طرف ته وي او د هغه صورت یې هر وخت د نظر په مخکې وي نو خامخا به د
مرګ په وخت د حق د مشاهدې په برکت (د ساه ختولو دتکلیف پرځای) کمال لذت او راحت ده
ته حاصل وي، او دومره به ورته زیات حاصل وي څومره چې د الله ﷻ محبت د ده په زړه کې ځای سو
وي، او هغه سړی کوم چې دنیا خپله محبوبه جوړه کړې وي او ده ته به د دنیا د بېلتون درد او رنځ د

عذاب باعث وي، او د دنیا سره محبت چي څومره زیات وي (د مرګ په وخت به) د دې څخه د بېلتون رنځ، غم دومره سخت وي لکه چي د "مسلمانی په عنوان" کي موږ واضحه کړې ده، نو که یو سړی د الله ﷻ د ډېر زیات ذکر کولو سره سره د دې احوالو او مکاشفاتو څخه محرومه وي کوم چي صوفیانو ته نصیب کیږي نو د دې مطلب دا نه دی چي د الله ﷻ د ذکر څخه دې نفرت کوونکی سي ځکه چي د سعادت انحصار فقط د دې حالاتو په کشف سره نه وی ځکه زړه که په نُور د ذکر سره ښایسته سي نو کمال سعادت یې وګڼه چي حاصل سو، او څه چي په دې دنیا کي ونه لیدل سول د مرګ څخه وروسته به ولیدل سي په دې وجه پکار دي چي د زړه مراقبه همیشه لازمه ونیسي چي زړه د الله ﷻ سره وي او چیري غافله نسي چي د همېشه ذکر هغه چابي (کیلي) ده چي د ملکوت د عجائباتو او د الله ﷻ د حضور دروازې خلاصولای سي، او د نبي ﷺ ارشاد دی چي: کوم سړی د جنت د باغونو سېل کول غواړي هغه ته پکار دي چي د الله ﷻ ذکر ډېر او بې انتلزې کوي.

او دا اشارات کوم چي موږ وکړل په دې سره هم دا هر څه معلومول مقصود دي چي د ټولو عبادتونو نځور (خلاصه) په اصل کي د الله ذکر دی او حقیقي ذکر دا دی چي پخپلو ټولو معاملاتو کي دالله ﷻ یاد ساتي او د ګناهونو څخه ځان په ډډه کړی او د هغه احکام پر ځای راوړي، او که د چا ذکر د دې امورو څخه خالي وي نو دا د دې خبري نښه ده چي د ده ذکر په اصل کي ذکر نه دی بلکي محض د نفس خبري دي د کومو چي د حقیقت سره لیري واسطه هم نسته، او اصل حال خو الله ته معلوم دی.

## د تسبیح، تهلیل، تحمید، درود او استغفار فضیلت

د نبی ﷺ ارشاد دی: انسان چي کومه نېکي هم کوي دغه به د قیامت په ورځ په تله (د ترازو په پله) کي ایښوول کیږي (چي وزن یې څومره دی) لیکن کلمه د لَااِلٰهَ اِلاَّ اللّٰهُ به په تله کي نسي ایښوول کېدای ځکه چي که دا په تله کي کښېښودې نو د دې وزن به د اوو اسمانونو او ځمکي او څه چي د دوی په مینځ کي دي د دې ټولو د وزن څخه هم درنه وي، او فرمایي چي لَااِلٰهَ الاَّ اللّٰهُ ویونکي که دا کلمه په صدق د زړه سره ووایي نو د ده ګناهونه به معاف کړای سي که څه هم په شمار کي دغه د ځمکي د ټولو ذرّو څخه هم زیات وي، او فرمایي چي: چا په اخلاص سر لا الٰهَ اِلاَّ اللّٰه وویل دی جنت ته داخل سو، او فرمایي چي: څوک د ورځي سل واره د لَا اِلٰه اِلَا اللّٰه وَحْدَہٗ لا شَرِیْکَ لَہٗ لَہُ الْمُلْکُ ولہُ الحمد وھو عَلٰی کُلِّ شیْءٍ قَدِیْرٌ وظیفه وکړي نو ده ته به دومره ثواب ملاویږي څومره چي د لسو غلامانو د آزدونکي

د پله مقرر دی، او سل نېکی به دده په حساب کي لیکل کیږي او سل گناهونه به دده د عملنامې څخه ختمیږي، او تر مانښامه پوري دا کلمه دی د شیطان څخه په پناه کي ساتي، او په صحیح حدیث کي راغلي دي چي " د دې کلمې ویلو ثواب د څلمنو د اسماعیل ﷺ څخه د څلورو غلامانو د آزادولو برابر دی ".

**تسبیح او تحمید:** نبي ﷺ فرمایلي دي کوم سړی چي د ورځي سل واره د سُبْحَانَ اللّٰهِ والحَمْد للّٰهِ وظیفه کوي، د ده ټول گناوهونه به وبخښل سي که څه هم چي د ډېر والي په اعتبار سره د دریاب د ځگ برابر وي، او په یوبل حدیث کي فرمایي چي کوم سړی د لمانځه څخه وروسته درودېرش "واړ سبحان الله، درودېرش واره الحَمْد الله، درودېرش واره اَللّٰهُ اَکْبَر ووایي او سلم وار په لَا اِلٰه اِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ لا شَرِیْکَ لَهٗ لَهُ المُلْکُ ولهُ الحمدُ وهو عَلٰی کُلِّ شیْءٍ قَدِیْرٌ ویلو باندي پوره کړي نو د ده ټول گناهونه به معاف کړای سي هغه که په شمېر کي د دریاب د ځگ د ذرّو څخه هم زیات وي.

**روایت د رزق په اړه:** روایت سوی دي چي یو سړی نبي کریم ﷺ ته راغلی او وې ویل دنیا زه پرې ایښی یم او زه بالکل مسکین او مفلس سوی یم او سخت محتاجه یم، اوس تاسو وفرمایی! چي زما د دې درماندگی به څه علاج وي؟ نبي ﷺ وفرمایل: اې فلانیه! ته چیري گرځې آخر ستا هغه لمونځ او صلوۃ ملایکه او تسبیح څه سو په کومو سره چي رزق حاصلول کیږي؟ دې سړي عرض وکړ ی یا رسول الله! هغه څه شئ دي؟ وېې فرمایل: د سهار د لمانځه څخه وروسته سبحان الله وبحمده سبحان الله العظیم وبحمده اَسْتَغْفِرُ الله سل واره وایه چي دنیا در ته مخ کړي، هغه که دې اراده وي او که نه وي د دې څخه ماسوا به الله ﷻ په هره کلمه سره یوه فرښته پیدا کوي کومه چي به تر قیامته پوري تسبیح وایي او ثوب به یې در ته بخښي، او د نبي ﷺ ارشاد دی چي دا کلمات دباقیات الصالحات درجه لري: سبحان الله والحَمْد لله ولا اِلٰهَ الا اللهُ واَللّٰهُ اَکْبَر او فرمایي چي زه د دې کلمو وظیفه کوم، او دا کلمات ما ته د کائناتو د هر هغه شئ څخه زیات عزیزي (گراني) دي کوم چي د لمر تر د گردښ لاندي موجود دي؛ او فرمایي چي دا څلور کلمې دي کومي چي دالله ﷻ په نزد ډېري محبوبي دي یعني: سبحان الله وبحمده او سبحان الله العظیم.

**د فقیرانو صدقه!:** د مدینې فقیرانو یوه ورځ عرض وکړی یا رسول الله ﷺ! دآخرت ټول ثواب خو دولتمندو واخیستی چي کوم عبادت موږ کوو هغه یې هم کوی او هغوی د دې څخه ماسوا صدقې

هم ور کوي چي د هغو طاقت چي په موږ کي نسته، نبي ﷺ وفرمایل: " د فقیری په وجه سره ستاسو هر تسبیح او تهلیل او تکبیر هم صدقه ده، او هر امر معروف او نهی منکر هم ستاسو د طرف څخه صدقه ده او هره هغه ګوله کومه چي تاسو د خپلي ښځي، بچیانو په خولې کي وراچوی دغه هم په صدقه کي شمارل کیږي، او یاد ساته چي د فقیری په حالت کي د تسبیح او تحمید فضیلت ځکه زیات دی چي د فقیر زړه د دنیا په تیارو سره تور نه وي، او د ده ویل سوی یوه کلمه د هغه تخم په شان وي کوم چي په ښه شنه زرغونه ځمکه کي وکرل سي نو د ښه والي او زرغونوالی په وجه ډېره زیاته میوه ورکوي، او په شهوت سره د ککړ زړه د ذکر مثال د هغه تخم په ډول دي کوم چي په وجه خرابه ځمکه کي وکرل سي او د هغه اثر په وجه سره د میوو څخه محرومه وي.

**درود شریف**: روایت سوی دي چي یوه ورځ نبي ﷺ د باندي تشریف راوړی نو د خوشحالی آثار پر ښکاره کېدل، ویې فرمایل چي جبرئیل ﷺ راغلی وو او ویې ویل چي الله ﷻ فرمایلي دي چي آیا ته دا خبره نه خوښوې چي ستا د اُمت څخه کوم سړی یو وار پر تا درود ووایي زه لس واره پر ده درود وایم او که یو وار پر تا سلام ووایي نو زه لس واره سلام پر لېږم، او نبي ﷺ فرمایي چي څوک پر ما درود لیږي تولي فرشتي پر ده درود ورلېږي هغه که دغه لېږونکي زیات ولېږي او که کم، او ماته په نژدې والي کي اولیّت هغه چا ته حاصل دي کوم چي پر ما ډېرو څخه ډېر درود ولېږي، ځکه چي څوک پر ما درود ولېږي لس نیکی د ده په عملنامه کي لیکل کیږي او سل بدی د ده د عملنامی څخه لیري کول کیږي، او فرمایي چي: کوم سړی د یو شي لیکلو په وخت کي (په دغه لیکلو کي) زما د پاره درود ولیکي فرشتي د ده د مغفرت د پاره تر هغه وخته پوري دعاء کوي تر څو چي په دغو لیکلو کي زما نوم دوی ته ښکاره کیږي.

**استغفار**: ابن مسعود ﷺ فرمایي: چي په قرآن کي دوه آیتونه داسي دي چي که یو ګناه ګاره هم د دوی د تلاوت کولو څخه وروسته استغفار ووایي نو د ده یوه ګناه داسي نسته چي نه وبخښل سي، او هغه دوه آیتونه دا دي: (۱) وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللَّهَ فَاسْتَغْفَرُوا لِذُنُوبِهِمْ [آل عمران: ۱۳۵](او هغه خلک کله چي داسي کار وکړي چي زیاتي پکښي وي یا پر خپل ځان ظلم وکړی نو الله یاد کړی او بیا د خپلو ګناهونو معافي غواړي ...الخ) او (۲)وَمَنْ يَعْمَلْ سُوءًا أَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهُ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللَّهَ يَجِدِ اللَّهَ غَفُورًا رَحِيمًا [النساء ۱۱۰] (او کوم سړی چي یو بدي

وکړی یا پر خپل ځان ظلم وکړی بیا د الله څخه معافي وغواړي نو الله ﷻ به لوی مغفرت والا او لوی رحم والا پیدا کړي) او الله ﷻ نبي ﷺ ته وفرمایل چي: " د خپل رب تسبیح او تحمید کوه او ده ته د استغفار درخواست کوه" او په دې وجه به نبي ﷺ دا تسبیح ډېره لوستله: "سُبْحَانَكَ اَللّٰهُمَّ بِحَمْدِكَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ اِنَّكَ اَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ" او فرمايي چي کوم سړی استغفار کوي د ده سره چي کوم غم وي د هغه څخه به آزاد کړای سي، او د هغه پر ځای به ورته خوشحالی او راحت ورکول سي، او د هري تنګی څخه ده ته خلاصي ملاوېږي اود داسي ځای څخه ده ته رزق ورکول کیږي د کوم چي د ده وهم او ګمان هم نه وي.

دراتګه فرمايي چي: زه په ورځ کي اویا- واره توبه او استغفار کووم، نو بیا (خیال وکړه) چي کله د دوی ﷺ دا حال وو نو آیا نورو ته صافه معلومه نه سوه چي دوی ته یووخت هم د دې څخه خالي نه دي پاته کېدل پکار او فرمايي: کوم سړی چي دېیده کېدو په وخت درې واره: أَسْتَغْفِرُ اللهَ الَّذِي لا اله الا هو الحيّ القيوم ووایي د ده ټول ګناهونه به وبخښل سي، هغه که د دریاب د ځګ په اندازه وي او که د بیابان د شګو د زرو، او که د ټولي دنیا د درختو د پاڼو او د جهان د ټولو ورځو برابر که ولي نه وي.

دارنګه فرمايي چي: یو بنده ګناهګار داسي نسي کېدای چي په ښه توګه اودس وکړي دوه رکعته لمونځ ادا کړي او استغفار ووایي او د ده ټول ګناهونه نه بخښل سي.

**د دعاء ادبونه:** پوه سه! چي په ژړا ژړا او عاجزی سره دعاء غوښتل د قربتونو څخه ده (یعني د الله ﷻ ته د نژدې کوونکو شیانو څخه ده) نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: چي دعاء ته د عبادت مغز ویل سوي دي، او دا ځکه چي دعبادت څخه مقصد د بندګی اظهار دی او د بندګی څخه مراد د خپلي کمزوری او بې چارګی او د الله ﷻ د لويي اقرار کول دي او دعاء هغه شئ ده په کومه کي چي دا دواړه شیان سته، او په دې کي چي څومره د عجز او بې وسی خیال وساتل سي دومره غوره ده، او په دعاء کي دا لس ادبونو خیال ساتل پکار دي:

(۱) اوّل دا چي د دې خبري کوشش وکړي چي دعاء په اشرف او فضل وخت کي وسي مثلا په ورځ د عرفات، د روژې مبارکي په میاشت کي، د جمعې په ورځ، د سهار وخت او د نیمی شپې وخت او نور...

(۲) دویم دا چي پر شریفو حالتونو نظر وساتي مثلاً د غازیانو د صفونو برابرولو وخت، د باران وخت،

او دفرض لمانځه وخت ځکه په حدیث شریف کي دي چي دا تول هغه وختونه دي چي د قبولیت د پاره د اسمانونو دروازې خلاصیږي، لکه څنګه چي د لمانځه د آذان وخت، د دربدلو وخت، د روژې وخت یا داسي وخت چي زړه نرم سوی وي ځکه چي د زړه نرمېدل د رحمت د دروازو د خلاصېدو باعث وي.

(۳) دریم دا چي د دعاء د پاره دواړه لاسونه پورته کړي، او د ختمېدو پر وخت یې پر مخ راتېر کړي، په حدیث کي دي چي الله ﷻ دومره کریم دي چي کوم لاسونه د ده طرف ته پورته کړل سي دغه چیري خالي (نامراده) نه واپس کوي، او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي څوک دعاء غواړي هغه د درې شیانو څخه نه سي خالي کېدای (یعني په دریو کي یو خامخا کیږي) (۱) یا خو د ده ګناه بخښل کیږي (۲) یا ده ته څه نه ملاوېږي (۳) یا بیا ده ته څه ورکول کیږي.

(۴) څلورم دا چي دعاء به د تردّد په حالت کي نه کوي یعني دا تصوّر به نه کوي چي قبوله به سي او که ردّ به سي، بلکي پوخ اُمید به یې په زړه کي لري چي ضرور به قبوله سي، د نبي کریم ﷺ ارشاد دی چي دالله ﷻ څخه دعاء په داسي وخت کي غواړه چي د قبولیت یې ستا پوره یقین وي.

(۵) پنځم دا چي دعاء به په خشوع او خضوع (یعني په ډېري عاجزي او ډېر ادب) او ژړا سره کوئ د زړه په حضور سره به یې کوئ، او بار بار به یې راګرځوئ، په حدیث کي دي چي د غافلو زړونو دعاګاني نه قبلیږي.

(۶) شپږم دا چي په دعاء دي کي ژاړي او بار بار یې کوي او د اچیري نه وایي چي ما ډېري دعاګاني کړي دي لېکن یوه نه ده قبوله سوې ځکه چي د وخت د قبولیت او د بل هر مصلحت علم صرف الله ته کېدای سي، او کله چي دعاء قبوله سي نو سنت دي چي دا ووایي: الحَمْدُ الله بنعْمته تتمُّ الصالحات او کله چي یې قبولیت وځنډیږي نو دا دي وایي: الحَمْدُ لله عَلَیٰ کُلِّ حال.

(۷) اووم دا چي د دعاء څخه مخکي دي تسبیح او درود ووایي چي نبي ﷺ به د دعا څخه مخکي داویل: سبحان ربي العليّ الاَعْلَیٰ الوَهَّابِ او فرمایلي یې دي چي څوک دعاء کول غواړي او ل دي پر ما درود ولېږي چي لازماً د ده دعاء قبوله سي او د الله ﷻ د کریمي شان څخه دا ډېر لیري ده چي په دوو دعاګانو یوه قبوله کړي او بله ردّ (یعني درود قبول کړي او دعاء رد کړي)

(۸) اتم دا چي توبه وکاږي او د ظلم او زیاتي څخه بالکل بهر راووځي، او زړه په کلي توګه الله ﷻ ته وسپاري ځکه چي ډېري دعاګاني صرف د زړه د غفلت په وجه یا د ګناهونو د تیارې په وجه ردّ کول کیږي نه قبلیږي.

**قصه:** کعب الاحبار ﷺ وايي چي دبني اسرائيلو په زمانه کي سخته وچکالي راغله او حضرت موسی ﷺ د خپل ټول امت سره د باران د دعاء د پاره ووتلو. لیکن د دري واره تللو سره سره د قبولیت نوبت رانغلی، آخر پر موسیٰ ﷺ باندي ورحي راغلې چي ستاسو په مینځ کي یو چُغل خور (غیبت کر) دی او تر څو چي هغه په تاسو کي موجود وي دعاء به قبوله نه کړم، موسی ﷺ عرض وکړی یا الله! هغه څوک دی؟ چي موږ یې د خپل مینځ څخه وباسو، الله ﷻ وفرمایل چي زه خو د چغل خوري (غیبت) څخه منع کووم، نو پخپله دا څنګه کولای سم، نو موسی ﷺ ټولو امتیانو ته ووېل چي ټول توبه وباسئ چي چیري به دیو چا چُغلي نه وکوو، او چي توبه یې وکړه نو باران وسو.

**قصه:** مالک بن دینار فرمایي چي په بنی اسرائیلو کي یو وار سخته وچکالي (قحط) راغله څو واره د باران د پاره دعاګاني وسوې خو قبولیت حاصل نه سو، آخر د دغې زمانې پر پیغمبر وحي راغلې چي دې خلکو ته ووایه شرم نه درځي چي بهر ووځی د دعاء دپاره او زړه مو ګنده او نس مو د حرام مال څخه ډک او لاسونه مو د مظلومانو په وینو رنګ سوي وي ستاسو په دې شان سره دباندي وتل زما (رحم نه بلکي) قهر او غضب زیاتوي، ځی! او زما څخه لیری سئ.

**مختلف قسم دعاګاني:** پوه سه! چي مأثوره (رانقل سوي) دعاګاني ډېري زیاتي دي کومي چي په نبي کریم ﷺ ویلې، او د دې ټولو د سهار او مابنام د لمانځه څخه وروسته ویل سنت دي، او په مختلفو وختونو کي مختلفي دعاګاني ویل هم سنّت دي او د دوی څخه ډېري دعاګاني موږ په پخپل کتاب "احیاء العلوم" کي لیکلي دي او څو ډېري دلوړې درجې موږ په پخپل کتاب "بدایة الهدایه" کي هم لیکلي دي او څوک چي غواړي نو دغه هلته یادولای سي ځکه چي د دغو ټولو بیان په یو کتاب کي لیکل لوی طوالت غواړي، او هسې هم په هغوی کي ډېري داسې دي چي خاص مشهوري دي، او هر چاته د هغو څه نه څه حصې یادي وي، لیکن یو څو دعاګاني د کومو چي په بعضې احادیثو کي ذکر سوی دي او د خاصو خاصو کارونو په وخت ویل سنت دي، او لږ خلکو ته یادي دي دلته لیکل کیږي چي یادونکی یې یادي کړي معنی یې یاده کړي او پر موقع او محل یې ووایي، چي بنده ته خو د الله ﷻ څخه یو وخت غافله کېدل نه دي پکار او نه د تضرع او زارۍ څخه یو وخت خالي پاته کېدل پکاري دي.

کله چي د کوره ووځی نو وایي دي: بِسْمِ اللهِ رَبِّ اَعُوْذُ بِكَ أَنْ أَضِلَّ أَوْ أُضَلَّ أَوْ أَظْلِمَ أَوْ أُظْلَمَ أَوْ أَجْهَلَ أَوْ يُجْهَلَ عَلَيَّ بسم الله الرحمن الرحیم لا حول ولا قوة الا بالله والتُّکْلَانُ علی اللهِ .

چي مسجد ته داخليږي نو راسته پښه به مسجد ته داخله کړي وايي به: اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ وَّ سَلِّمْ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي وَافْتَحْ لِي اَبْوَابَ رَحْمَتِكَ .

کله چي په داسي مجلس کي کښېني چي واهيات (بکواس) خبري پکښي کيږي نو دا دعاء به د مجلس په آخر کي ووايي چي دا دعاءبه د هغه کفاره سي: سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ اَسْتَغْفِرُكَ وَاَتُوْبُ اِلَيْكَ وَعَمِلْتُ وَظَلَمْتُ نَفْسِيْ سُوْءًا فَاغْفِرْ لِيْ فَاِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ.

اوکله چي بازار ته ولاړسي ووايه: لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الملك وله الحمد يحيي ويميت وهو حيٌّ لايموت بيده الخير وهو على كل شيء قدير .

او چي نوي جامې (کالي) واغوندي: اللهم كسوتني هذا الثوب فلك الحمد أسألك من خيره وخير ما صنع له وأعُوْذُبك من شره وشر ما صنع له .

چي نوې مياشت وويني: اللهم أهلّه علينا بالأمن والإيمان والسلامة والإسلام ربّي وربُّك الله

چي ديو چا د مرگ خبر واوري: سبحان الحيّ الّذِي لايموتُ إنّا للهِ وانّا اليه راجِعُوْنَ.

چي تېزه هوا (تېز باد) راسي: اللهم إني أسألك خير هذه الريح وخير ما فيها وخير ما أَرْسَلْتَ به ونَعُوْذُبك من شرها وشر ما فيها ومن شر ما أَرْسَلتَ بِهِ

چي صدقه ورکوي نو وايه: ربنا تقبل منا انک اَنْتَ السميع العليم.

چي ديو شئ نقصان وسي نو وايه: عسى رَبُنا ان يُبْدِلَنا خَيْرًا مِنْها انّا الى ربنا راغبون.

چي ديو کار شروع کړي: ربناۤ آتنا مِن لّدُنک رحمةً وَّهَيِّئْ لَنَا مِن اَمْرِنَا رَشَدًا.

چي اسمان ته وگوري: رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا سبحانك فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ.

او دا وايه: تَبَارَكَ الَّذِي جَعَلَ فِي السَّمَاءِ بُرُوجًا وَجَعَلَ فِيهَا سِرَاجًا وَقَمَرًا مُّنِيرًا

چي داسمان دربې (تالنده (تنا) واوري: سُبْحَانَ مَنْ يُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهِ وَالْمَلَائِكَةُ مِنْ خِيفَتِهِ. اللّٰهُمَّ لَا تَقْتُلْنَا بِغَضَبِكَ ولا تُهْلِكْنَا بعذابك وَعَافِنَا قبل ذالك.

او چي باران وورېږي وايه: اَللّٰهُمَّ اجعلهُ سُقْيًا وصيّبًا نافِعًا واجعله سبب رحْمَتِک ولا تجعله سبب

علیٰ بِکَ.

او چې غصه در ومسي وایه: اَللّٰهُمَّ اغفر ذنبي وأذهب غيظ قلبي وأجرني من الشيطان الرجيم

دیري په وخت کې وایه: اللهم انا نَعُوذُ بِکَ مِن شُرُوْرِهِم وَنَدْرَأُکَ فِي نُحُوْرِهِمْ.

او چې پر یو ځای درد وي نو لاس پر کښېږده اوؤ واره ووایه: بسم الله الرحمن الرحيم او اووه واره به دا ووایې: اَعُوْذُ بالله وقدرته مِن شَرِ ما اجِدُ وأُحاذِرْ.

او دغم په وخت کې دلوایه: لااله الا اللهُ العليُ العظيم لا اله الا اللهُ ربُّ العرْشِ العظيم لا اله الا الله ربُّ السموات والارض وربُّ العرْشِ الکريم.

او چې د یو کار څخه عاجزه سې نو وایه: اللهم إني عبدك وابن عبدك وابن أمتك ناصيتي بيدك ماض فيّ حکمك عدل فيّ قضاؤك أسالك بکل اسم هو لك سميت به نفسك أو أنزلته في کتابك أو علمته أحداً من خلقك أو استأثرت به في علم الغيب عندك أن تجعل القرآن ربيع قلبي ونور صدري وجلاء غمي وذهاب حزني وهمي.

چې په هینداره کې وګوري وایه: اَلحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِی خَلَقَنِیْ فَاَحْسَنَ خَلْقِیْ وَ صَوَّرَنِیْ فَاَحْسَن صُوَرَنِیْ.

چې غلام واخلې نو د تندي ویښته یې ونیسه وایه: اللهم انی اسئلک خیْرَهُ وخَیْرَ ما جُبِلَ عَلَیْه واَعُوْذُ بِک مِن شَرِّهِ وشَرِّ ما جُبِلَ عَلَیْه.

چې بیده کیږې وایه: ربِّ باسْمِکَ وَضَعْتُ جَنْبِیْ وباسْمِک اَرْفَعُهُ هذه نفْسی تَتَوفِّیْهَا لَک مَحْیَاهَاوَمَمَاتَهَا اِنْ اَمْسَکْتَهَا فَاغْفِرْ لَهَاوانْ اَرْسَلْتَها فَاحْفِظْها بِماتَحْفَظُ بِهِ عِبَادَکَ الصالحیْنَ.

او چې د خوب څخه پورته سې نو وایه: اَلحَمْدُ للهِ الذی احیانا بَعْدَ ما اماتَنا والیه النُّشُوْرُ اَصْبَحْنَاواَصْبَحَ الْمُلْکُ لله والعَظَمَةُ والسُّلْطَانُ لله والعِزَّةُ والقُدْرَةُ اَصْبَحْنا علی فِطْرة الاسلام وکلمة الاخلاص ودِیْنِ مُحَمَّد صلی الله عَلَیْه وسلَّم وَ مِلَّةِ اِبْراهیْمَ حنیْفَاًوَّماکانَ مِنَ الْمُشْرِکِیْنَ.

## لسم اصل: د اوراد (وظائفو) د ترتیب په باره کې

د "اسلام تر عنوان" لاندې چې موږ څه ویلي دي د هغه څخه دا خبره خو واضحه سوې ده چې بنده په

دې عالَم غُربت کې چې د خاورو او اوبو څخه عبارت دی د يو ډول تجارت د پاره رالیږل سوی دی، کنې د ده روح خو په حقیقت کې عُلوی دی کوم چې د هغه (عالَم اعلیٰ علیین) څخه راغلی دی، او هلته به ده ته بیا تلل وي، او په دې تجارت کې د ده (بنده) عُمر د ده سرمایه ده او دا داسې سرمایه ده چې مسلسل په خساره (تلوان) کې وي، او که دی د یوه یوه ساه څخه نفع او فائده حاصله نه کړي نو دا ټوله سرمایه به د نقصان نذر سي او د (سرمایې والا د) هلاکت باعث جوړیږي، لکه څنګه چې د الله ﷻ ارشاد دی چې: وَالْعَصْرِ (۱) إِنَّ الْإِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ (۲) إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ (۳) [العصر] او د ده مثال د هغه سړي سره وړکول کیږي د کوم سرمایه چې واوره (یخی) وي او په ګرمی کې یې خرڅوي او چیغې وهي خلګ رابولي چې د خدای د پاره دا واوره زما څخه واخلئ کنې د ګرمی څخه به ویلې سي او زما نقصان به وسي.

نو دا حال د عمر د سرمایې دی، چې متواتر پرله پسې ویلې کیږي، څکه چې دا خو په شمار څو ساه ګاني (ساهونه) دي چې علم یې صرف الله ﷻ ته دی چې څومره دي، نو کومو خلګو چې د دې کار قدر وپیژندی، دوی د خپل هر هري ساه حفاظت لازمي وګرځولو څکه چې دوی ته معلومه سوه چې زموږ هره یوه ساه هغه ګران قیمته ملغلره ده چې په دې سره هغه همیشه سعادت په دام کې راوستل کیږي او دوی د سرو او سپینو زرو په نسبت دې ملغلرو (ساه ګانو) ته زیات د شفقت په نظر سره وکتل، او د دې شفقت عملي مظاهره یې داسې وکړه چې د شپې او ورځې ټولو وختونه یې د خیر د کارونو د پاره تقسیم کړل، او د هري خبري یې یو خاص وخت مقرر کړی په کومو کې چې یې مختلف ډول وظائف ویل پر ځان لازم کړل او د دې وظائفو د پاره د وخت مقرر کولو وجه داوه چې دوخت یو ګړی هم ضائعه نسي، څکه چې په دې راز پوه سوی وو، چې د آخرت سعادت هغه چا ته حاصلیدای سي د کوم چا چې د دنیا څخه یې رخصتي داسې وي چې د الله ﷻ سره مینه او محبت پر ده غالبه وي او دا د محبت حالت د همیشه ذکر څخه بغیر نسي راتلای، او محبت بغیر د معرفت څخه ممکن نه دی او د معرفت حصول بغیر د تفکر څخه نسي کیدای نو د همیشه ذکر او فکر د سعادت تخم خاص دی او د دنیا پریښوول او شهوت پریښوول او ګناه پریښوول څکه لازمي دي چې د دې بلاګانو څخه فراغت بیا پیدا کړي په ذکر او فکر کې محوه کیدل ورته نصیب سي؛

او د همیشه ذکر دوې طریقې دي: یوه خو دا چې په ژبه نه بلکې په زړه سره همیشه الله الله کوي بلکې په زړه سر ولې؟ څکه چې دا خو پر خپل ځای په حدیثِ نفس (د زړه په خبرو) کې د مبتلو (اخته

کېدلو) خبره ده. په دې وجه پکار دا دی چي همېشه يې په مشاهد کي محوه وي او يوه لمحه (ګړۍ) څيني هم غافله نسي، لېکن دا ډېره ګرانه او مشکله ده. ځکه چي په هر چا کي دا طاقت کم دې چي خپل زړه پر يو صفت او پر يو حال باندي قائم ولري، ځکه چي ډېرو خلګو ته د دې څخه بې حده تکليف محسوسيږي، نو د دې سختی ته په کتني سره مختلفي وظيفې او اوراد متعين کړل سوه. (چي وختونه يې هم مختلف دي) چي د هغو څخه د ځينو ادا کول په جسم سره کيږي، مثلاً: لمونځ او د بعضو د پاره صرف د ژبې څخه کار اخيستل کيږي مثلاً د قرآن کريم تلاوت او تسبيح ويل او نور. او د بعضو تعلق د زړه سره دی مثلاً تفکر چي خفګان پيدا نسي، ځکه چي په يو وخت کي يو فعل وي، او د يو حالت څخه بل حالت ته منتقل کېدل پر خپل ځای خوشحالي راوستونکي وي، او بيا دغه ډول د نورو وختونو فرق هم په ښه شان سره جلا کېدای سي کومو ته چي د دنياوي ضرورتونو د پاره د خرڅ کولو څخه خلاصون نه وي. او حقيقت دا دی چي که ټوله وختونه د آخرت په کارونو کي خرڅ هم نسي نو لږ تر لږه دومره خو پکار دي چي ډېر په دې کي صرف کړای سي چي د نېکياتو تَله (پله) درنه سي ځکه چي که نيم وخت د دين په کار کي ولګوي نو دا خطره کېدای سي چي هسي نه دنياوي تراوزو (تول) درونه سي، ځکه انساني فطرت دا دی چي د کومي خبري تقاضا طبيعت کوي هغه طرف ته زيات مائله وي ځکه چي زړه د دين په کار کي لګول د طبع انساني څخه خلاف دي. او اخلاص پکښې پيدا کول نور هم ګران دي نو چي کوم عمل د خلوص څخه خالي وي هغه قطعي بې فايدې وي، نو په دې وجه د عملونو کثرت او ډېروالی لازمي دی، چي که يو پکښې په خلوص سره سي، نو په دې وجه دا لازمي کيږي چي ډېر وختونه په ديني کارونو کي صرف کړای سي، او دنيوي کارونه د دې تابع جوړ کړای سي، لکه چي د الله ﷻ ارشاد دی: وَمِنۡ آنَآءِ اللَّيۡلِ فَسَبِّحۡ وَأَطۡرَافَ النَّهَارِ لَعَلَّكَ تَرۡضَىٰ(۱۳۰) (د شپې په وختونو کي تسبيح وايه (مثلاً دماښام او ماخوستن لمونځ او د ورځي په اول او آخر کي چي (کوم ثواب تا ته ملاوسي په هغه) خوشحاله سې)

دارنګه فرمايي: وَاذۡكُرِ اسۡمَ رَبِّكَ بُكۡرَةً وَأَصِيلًا. وَمِنَ اللَّيۡلِ فَاسۡجُدۡ لَهُ وَسَبِّحۡهُ لَيۡلًا طَوِيلًا (دهر) (د خپل پروردګار سهار او ماښام ذکر کوه او د شپې په يوه حصه کي هم هغه ته سجده کوه او د شپې په اوږده حصه کي د هغه تسبيح کوه (تهجد ځيني مراد دي) او فرمايي: كَانُوا قَلِيلاً مِنَ اللَّيۡلِ مَا يَهۡجَعُونَ [الذاريات] (هغه خلګ به د شپې ډېر کم بيده کېدل) په دې ټولو آيتونو کي اشاره دې طرف ته ده چي ډېر وختونه دالله تعالی سره په مشغوليت کي صرف کول پکار دي. نو په دې باندي د

عمل کولو دپاره د شپې او ورځې وختونه په مختلفو حصو کې تقسیمول ضروري سو، نو د دې تفصیل وراندې کول ضروري دی.

**دورځې وظائف**: پوه سه! چې د ورځې پنځه وظائف دي: (۱) اولنی وظیفه د سهار څخه تر لمر ختو پورې او دا هغه اشرف وخت دی چې پخپله الله ﷻ په دې قسم خوړلی دی فرمایي: وَالصُّبۡحِ إِذَا تَنَفَّسَ (قسم دي په سهار کله چې ښکاره سي) او قُلۡ أَعُوذُ بِرَبِّ الۡفَلَقِ (ته وو ایه چې پناه غواړم په رب د سهار (صبا)) او فَالِقُ الإِصۡبَاحِ (هغه الله ﷻ د سهار راستونکی دی) په دې آیتونو کې د سهار د وخت د فضیلت په باره کي ارشاد فرمایل سوی دي، نو پکار دي چې د دې مبارک وخت د یوې یوې ثانیې حفاظت وسي؛ لکه څنګه چې د خوب څخه د بیدارېدو سره دې وایي: الحَمۡدُ للهِ الَّذِی أَحۡیَانَا بَعۡدَ مَا أَمَاتَنَا والیه النُّشُورِ، او د دې دعاء د ختمېدو څخه وروسته دې جامې واغوندي (یا بدلې دې کړي) او په دعاء کي مشغول سي او د شرم ګاه د ستر او نورو احکامو تعمیل دې وکړي، دریاء او ځان ښوونې څخه دې ځان ساتي، بیا دې اودس خانې ته ولاړ سي، او چپه پښه به اول دننه کړي بیا به مسواک او اودس وکړي لکه چې مخکې یې بیان سوی دی، بیا به د ټولو دعاګانو او ذکرونو کولو څخه وروسته د سهار سنت په کور کي ادا کړي او بیا به مسجد ته روان سي چې د نبي کریم ﷺ دا معمول (عادت) وو، او د سنتو څخه وروسته به هغه دعاء وایي کومه چې د ابن مسعود ﷺ څخه روایت سوې ده کومه چې زموږ د کتاب "بدایة الهدیة" څخه یادولای سي، او کله چې مسجد ته داخل سي نو په کراره به ځي او رسته پښه به اول دننه کړي او که د سهار سنت یې په کور کي کړی وو، نو تحیة المسجد به دوه رکعتونه ادا کړي او په تسبیح او استغفار کي به مشغول سي او چې فرض لمونځ وکړي نو تر لمر ختور پوري به په مسجد کي کښېني، چې نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې تر لمر ختلو پوري په مسجد کي کښېناستل زما په نزد د ځلورو غلامانو د آزادولو څخه بهتره دي او تر لمر ختلو پوري به په دعاء، تسبیح، د قرآن تلاوت او تفکر کي مصروفه وي، او څنګه چې د لمانځه څخه سلام وګرځوي ابتداء به د دعاء څخه وکړي وایي به: اللهم صل علی مُحَمَّدٍ وعلی آل مُحَمَّدٍ وسلم اللهم أَنۡتَ السلام ومنک السلام والیک یرجعُ السلامُ حَیِّنا ربَنا بالاسلا وأَدۡخِلۡنا دار السلام ومِنۡک السلام؟ تبارکتَ یا ذا الجَلال والا کرامِ، او بیا به د "کتاب الدعوات" څخه ماثوره یادې کړې دعاګاني وایي، او کله چې د دعاء څخه فارغه سي نو په تسبیح او تهلیل دې شروع وکړي او هر

یو دي سل سل واره یا اویا اویا - واره یا لس لس واره وایي او کله چي لس ذکرونه لس لس واره ووایي نو په مجموعی توګه به سل سي، لیکن د دې شخه کم نه دي پکار، او دغه لس ذکرونه د کومو چي په احادیثو کي فضیلت ډېر واره راغلی دی دا دي: لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِیْکَ لَهٗ لَهُ الْمُلْکُ وَلَهُ الْحَمْدُ یُحْیِیْ وَیُمِیْتُ وَهُوَ حَیٌّ لَا یَمُوْتُ اَبَدًا اَبَدًا ذُو الْجَلَالِ وَالْاِکْرَامِ بِیَدِهِ الْخَیْرُ وَهُوَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ. دویم دا دی: لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ الْمَلِکُ الْحَقُّ الْمُبِیْنُ، دریم دا دی: سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ وَاللهُ اَکْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلاَّ بِاللهِ الْعَلِیِّ الْعَظِیْمِ. څلورم دا دی: سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ سُبْحَانَ اللهِ الْعَظِیْمِ وَبِحَمْدِهٖ، پنځم دا دی: سُبُّوْحٌ قُدُّوْسٌ رَبُّ الْمَلٰئِکَةِ وَالرُّوْحِ، شپږم دا دی: اَسْتَغْفِرُ اللهَ الَّذِیْ لَا اِلٰهَ اِلاَّ هُوَ الْحَیُّ الْقَیُّوْمُ وَاَسْئَلُهُ التَّوْبَةَ. اووم دا دی: یَا حَیُّ یَا قَیُّوْمُ بِرَحْمَتِکَ اَسْتَغِیْثُ لَا تَکِلْنِیْ اِلٰی نَفْسِیْ طَرْفَةَ عَیْنٍ وَاَصْلِحْ لِیْ شَاْنِیْ کُلَّهٗ. اتم دا دی: اَللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا اَعْطَیْتَ وَلَا مُعْطِیَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا یَنْفَعُ ذَ الْجَدِّ. نهم دا دی: اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ وَّسَلِّمْ. لسم دا دی: بِسْمِ اللهِ الَّذِیْ لَا یَضُرُّ مَعَ اسْمِهٖ شَیْءٌ فِی الْاَرْضِ وَلَا فِی السَّمَاءِ وَهُوَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ.

دا لس کلمې هره یوه لس لس واره یا څومره چي کېدای سي وایي دي، چي د هري یوې فضیلت پر خپل خپل ځای ثابتدي دی او لذت یې هم جلا جلا دی. او د دې شخه وروسته دي د قرآن پاک په تلاوت کي مشغول سي او که قرآن نسي ویلای نو د قرآن قوارع دي یاد کړی هغه دي وایي، مثلاً آیت الکرسي، او اٰمَنَ الرسول او شَهِدَ اللهُ او قُلِ اللّٰهُمَّ مَالِکَ الْمُلْکِ، او د سورت حدید اوله حصه او د سورت حشر آخري حصه دي یاد کړي او دا دي وایي.

**بیان حضرت خضر**: او که داسي شئ ویل غواړي کوم چي قرآن، دعاء او ذکر ته جامع وي نو هغه بیان دي وایي کوم چي حضرت خضر ﷺ حضرت ابراهیم ﷺ ته په حالت د کشف کي ښوولی وو څکه چي د دغې فضیلت ډېر زیات دی او دې ته سَبْعَاتِ عشر وایي یعني دا لس شیان دي چي هر یو اووه اووه واره لوستل پکار دي: (۱) الحمد لله (۲) قل اعوذ برب الناس (۳) قل اعوذ برب الفلق (۴) قل هو الله (۵) قل یا ایها الکافرون (۶) آیت الکرسي، دا شپږه قرآن شخه سو، باقي څلور اذکار دي: (۱) سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ وَاللهُ اَکْبَرُ (۲) اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ وَّسَلِّمْ

(۳) اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ (۴) اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِيْ وَلِوَالِدَيَّ وَافْعَلْ بِيْ وَبِهِمْ عَاجِلًا وَّاٰجِلًا فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ مَا اَنْتَ لَهٗ اَهْلٌ وَلَا تَفْعَلْ بِنَا يَا مَوْلَانَا مَا نَحْنُ لَهٗ اَهْلٌ اِنَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ.

او د دې په فضيلت کې يوه اوږده قصه هم موجود ده کومه چې موږ پخپل کتاب " احياء العلوم" کې ذکر کړې ده. او کله چې د دې شخصه فارغه سي نو په تفکّر کې دې مشغوله سي، او د تفکّر ډېر اقسام دي کوم چې د کتاب په آخر کې ذکر دي. لېکن د تفکّر د هري ورځي د عمل سره تعلق دی او کوم چې بې انتها ضروري دی، هغه دا چې د مرګ او مرګ ته د نږدې کېدو په باره کې دې تفکّر کوي،او خپل ځان ته دې وايي چې ممکنه ده زما او زما د مرګ په مېنځ کې د يوې ورځي شخه زياته وقفه باقي نه وي، او دا هغه فکر دی د کوم چې فائده ډېره زياته ده، ځکه چې د دنيا د خلګو د دنياوطرف ته ډېر زيات مائل کېدل هم په دې اُميد دي چې دلته به تر ډېر مُدې پوري وي، او کله چې د دې خبري يقين يې وسي چې په مرګي کې يوه مياشت يا ديوه کال وقفه باقي ده نو د دې کارونو شخه بياتېتني په کومو کې چې دې مبتني وي حال دا دی چې دا هم کېدای سي چې يوه ورځ يې پاته وي لېکن تياري دلته د هغو کارونو کېدای سي د کومو د پاره چې راتلونکی لس کلونه هم کافي نه وي لکه څنګه چې الله ﷻ فرمايلي دي: أَوَلَمْ يَنْظُرُوا فِي مَلَكُوتِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا خَلَقَ اللَّهُ مِنْ شَيْءٍ وَأَنْ عَسَىٰ أَنْ يَكُونَ قَدِ اقْتَرَبَ أَجَلُهُمْ [الاعراف: ۱۸۵] (آيا دې خلګو غور نه دی کړی د اسمانو او ځمکي په عالم کې او په نورو شيانو کې کوم چې الله ﷻ پيدا کړی دي او په دې خبره کې چې ممکنه ده د دوی اجل نږدې را رسېدلی وي).

او کله چې د زړه صفايي وسي او د دې خبري فکر په زړه کې ځای سي نو د آخرت د پاره د توښې حاصلولو فکر به پخپله پيدا سي، او پکار دي چې په تفکر کې دې تصوّر قائم کړی چې په دې څو ورځو کې ده ته د شومره نېکيانو توفيق حاصل سوی دي او دغه کوم کوم ګناهونه دي چې آينده (په راروانه کې) ځان ځيني ساتل پکار دي او د کومو تدارک او تلافي لازمي ده، او دا ټول کارونه تدبّر او فکر غواړي، نو که چا ته لار د کشف ښکاره سوي وي نو ده ته پکار دي چې داسمان او ځمکي په عجائباتو باندې غور وکړي او د هغه يو ذات الله ﷻ کارونو ته په نظر د تفکّر وکوري بلکې د الله ﷻ د جلال او جمال مشاهده وکړي (چې څه رازونه پکښې پټ دي) او د فکر دا انداز د ټولو عبادتونو او نورو ټولو فکرونو شخه زيات افضل دی ځکه چې دالله د عظمت ژور نقشونه په زړه کې قائم کړي، او د ده تعظيم او تکريم په زړه کې ځای سي او تعظيم چې تر شوپوري پر زړه غلبه حاصله نه کړي

محبت الهي پر زړه غالب نه راځي، او کمال محبت د کمال سعادت ذریعه جوړیږي، لیکن دا خبره هر چاته نسي حاصلیدای، مګر دا خو کیدای سي چي په زړه سر د الله ﷻ د ورکړل سوو نعمتونو بلدي غور وکړي او د هغو خلګو په رنج، غم او محنت هم غور وکړي کوم چي د دنیا خلګ برداشت کوي، مثلاً ناروغي، مفلسي، او نور، چي د کومو څخه الله ﷻ ده ته پناه ورکړې ده چي د ده دا حس لس وسي چي د الله ﷻ شکر ادا کول د ده دپاره څومره لازم دي؟

او شکر دا دی چي د الله تعالی پر حکمونو په بشپړه توګه عمل وکړي، فرض کوم ساعتونه چي دي په دې تفکر کي ضرور تېر کړی، ځکه چي د سهار څخه وروسته د سهار د دوو رکعتو سنتو او دوو فرضو څخه ما سوا بل لمونځ خو سته نه، تر څو چي لمر نه وي راختلی، نو بنکاره ده چي د دې بدل ذکر او فکر کیدای سي، (چي په دې وقفه کي ذکر او فکر وکړي).

دویمه وظیفه د لمر ختلو څخه د څاښت تر وخته پوري ده، او په دې ضمن کي پکار دي چي که کیدای سي نو صبر دي وکړي چي په مسجد کي ناست وي تر دې چي لمر یوه نېزه راوخېژي او په دې وخت کي دي په تسبیح کي مشغول سي تر دې چي مکروه وخت تېر سي بیا دي دوه رکعت لمونځ وکړي، او کله چي د څاښت وخت فراخه سي یعني د ورځي څلورمه حصه تېره سي نو د څاښت لمونځ دي ادا کړی او غوره ده چي څلور رکعته لمونځ وکړي یا شپږ یا اته رکعته چي د دې هر یو د پاره روایت موجود دی، یا بیا دا هم کیدای سي چي کله لمر را ختل شروع سي نو دوه رکعته د اشراق لمونځ وکړي په داسي نېکو کارونو کي مشغول سي د کومو تعلق چي دخدای د مخلوق سره وي، مثلاً د ناروغانو پوښتنه په جنازه کي شرکت د مسلمانانو حاجتونه پوره کول او په مجلس د عالمانو کي حاضري او نور.

د دریمي وظیفي تعلق د څاښت د وخت سره دی چي دا د ماپښین تر لمانځه پوري وي، او دا وظیفه د مختلفو خلګو د پاره د مختلف قسم ده لیکن په څلورو حالتونو کي د یو حالت سره متعلق خامخاوي: اول حالت دا دی چي دغه سړی به پر علم حاصلولو قدرت لري او د دې څخه زیات افضل یو عبادت نسته، بلکي څوک چي پر دې امر قادره وي د هغه د پاره غوره دا ده چي سهار د فرض لمانځه څخه وروسته د علم په حصول کي مشغول سي، لیکن علم هغه وبل پکار دي کوم چي د آخرت د پاره فائده من وي او دا هغه علم کیدای سي کوم چي د دنیا رغبت (خوښتنه) کمزوري کړي او آخرت ته یې زیاته مینه پیدا کړي او د عملونو عیبونه او نقصانونه او آفتونه بنکاره کړي او اخلاص او خلوص پیدا کړي، لیکن د جنګو، مخالفت، نفرت، غصه او تاریخ او د قصو علمونه کوم چي په

بنایسته عبارتونو قافیه بندی سره بنایسته وي د دنیوي حرص د زیاتولو باعث وي او په انساني زړونو کي د حسد غرور تخم کري، د دې ځخه دې ځان وژغوري، او فائده من علوم په احیاء العلوم، جواهر القرآن او په دې کتاب (کیمیاء سعادت) کي جمع کړی سوي دي د نورو علمونه ځخه مخکي دا علم (د مذکوره کتابونو ځخه) حاصلول پکار دي. دریم حالت دا دی چي پر علم حاصلولو قادر نه وي لیکن په ذکر تسبیح او عبادت کي مشغول پاته کیدای سي، او دا درجه د عابدانو ده او د دې هم لوی مقام دی، خصوصاً په داسي ذکر کي مشغولیدل خو ډیر فضیلت لري کوم چي پر زړه غالبه سي او ځای پکښي ونیسي او دغه ذکر او زړه سره لازم او ملزوم سي. دریم صورت دا دی چي یو داسي مشغولیت اختیار کړي په کوم کي چي د خلګو د راحت سامان تیارول وي، مثلاً د صوفیانو، عالمانو، درویشانو خدمت کول، او د دې فضیلت د نفلي عبادت ځخه زیات دی چي دا د خدمت ځخه خدمت او د عبادت ځخه عبادت دی او د دې سره د مسلمانانو د راحت باعث او د دوی دمدد ذریعه هم ده. او په دې عبادت کي چي د درویشانو دعاګاني شاملي سي نو لوی اثر پکښي پیدا سي. ځلورم حالت دا دی چي پر دې هم قادره نه وي لیکن په یو داسي سبب کي مشغولیدای سي کوم چي د ده او د ده د اهل وعیال پالنه کولای سي اوس که په دې کار دی امانتدار سي او خلګ د ده د لاسو یا ژبې ځخه تنګ نسي یعني د ده دست درازی (ظلم) او زبان درازی د تکلیف ځخه محفوظه وي او د دنیا لالچ (حرص) دی په حرص کي مبتلا نه کړي او د ضرورت مطابق په رزق ګټلو باندي قانع وي نو دی به هم په عابدانو کي شمار وي او درجه د اصحاب الیمین به ده ته هم حاصله وي، که ځه هم ده ته د سابقینو او مقربینو مقام حاصل نه وي، او دا هم صحیح ده چي محضِ د درجې د سلامتی ملازم کیدل د کمي درجې خبره ده (لیکن بیا هم درجه خو ورته ملاو ده) لیکن هغه سړی د کوم وخت چي د دې ځلورو حالتونو ځخه خالي وي، هغه یقیناً د هلاکیدونکو هغه خلګو ځخه به وي کوم چي د شیطان تابع او فرمان بردار وي.

ځلورمه وظیفه د زوال ځخه واخله د ماځیګر تر وخته پوري ده، او پکار دي د زوال ځخه مخکي قیلوله (دغرمې خوب) وکړي (یعني لږ بیده سي یا آرام وکړي) ځکه چي دشپې د لمانځه د پاره د قیلولې هغه حېثیت دی کوم چي د روژې د پاره د پېشلمي دی لیکن که د شپې عبادت نه کوي نو قیلوله مکروه ده ځکه چي زیات بیده کیدل هسي هم مکروه دي، او کله چي د قیلولې ځخه بیداره سي نو اودس دي وکړي او کوشش دي دا کوي چي د لمانځه آذان په مسجد کي واوري او د تحیة المسجد لمونځ ادا کړي او د آذان جواب دي ورکوي او د فرضو ځخه مخکي دي ځلور رکعته لږ اوږده

ادا کړي چې نبي ﷺ به دا څلور رکعتونه اوږده کول. او فرمايل به يې چې دا وخت د اسمان دروازې خلاصې سي او په حديث شريف کې دي چې څوک دا لمونځ په داسې انداز سره کوي، د ده سره اويا زره فرشتې لمونځ کوي او د ده د پاره تر ماښامه پورې د بخښنې دعاء کوي، بيا به د امام سره فرض ادا کړي بيا به دوه رکعته سنت وکړي، او تر ماځيګره پورې به د علم ازده کولو څخه ما سوا يا د مسلمانانو د کومک يا ذکر او تسبيح يا قرآن شريف تلاوت يا حلال رزق ګټلو د حصول او نورو څخه به په بله خبره کې نه مشغوليږي.

پنځمه وظيفه د ماځيګر د لمانځه څخه تر ماښامه پورې ده. او پکار دي چې د لمانځه څخه مخکې مسجد ته راسي او څلور رکعته لمونځ وکړي چې د نبي ارشاد دی چې الله ﷻ پر هغه سړي رحمت کوي کوم چې د ماځيګر د فرضو څخه مخکې څلور رکعته لمونځ کوي او چې فارغه سي نو د هغو خبرو څخه ماسوا به په بل شئ کې نه مشغوليږي د کومو ذکر چې مونږ لوړ کړی دی، بيا دې د ماښام څخه مخکې مسجد ته ولاړ سي او تسبيح او استغفار دې کوي چې د دې وخت فضيلت هم د سهار د وخت په ډول دی لکه چې الله ﷻ فرمايي: وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا [طٰهٰ:۱۳۰] (د الله پاکي بيانوه او ثناوايه مخکې د ختلو د لمر څخه او مخکې د پرېوتلو د لمر څخه) دغه وخت دې دا سورتونه: شمس، ليل، فلق او ناس تلاوت کوي او کله چې لمر پټ سي نو په استغفار کې دې مشغول سي، غرض دا چې د وختونو تقسيمول پکار دي او هر وخت دې هغه کوي د کوم چې تقاضا وي چې داسې په عمر کې برکت راځي او د کوم سړي چې وختونه په ترتيب نه وي د ده عمر عبث تيريږي او دی هيڅ کار نسي کولای.

## دشپې وظائف

د شپې وظيفې درې دي:

اول د ماښام څخه د ماخوستن تر لمانځه پورې دی، د دې دواړو لمونځو په مېنځ کې د بيداره او ويښ وسېدولو ډېر لوی فضيلت دی، په حديث شريف کې دي چې آيت کريمه: تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ (او د دوی بغلونه د بستر څخه جلا (بېل) وي) په دې باره کې نازل سوی دی، غوره دا ده چې د ماخوستن تر لمانځه پورې په لمانځه کې مصروف پاته سي، اولياؤ دا د ورځې د روژې څخه غوره مقرر کړی دي، دوی به په دې وخت کې خوراک هيڅ قدر هم نه خوړلو. او د وترو څخه چې

فارغ سي په لهو لعب او گپو شپو کي دې نه مشغولیږي ځکه چي د تولو اعمالو اوشغلو خاتمه پر دې وترو ده، نو د دې کارونو انجام پر خير بالندې پکار دی.

دریمه وظیفه خوب دی که څه هم دا صحیح ده چي خوب عبادت نه دی لیکن که د آدابو او سنتو خیال یې وساتل سي نو د مجموعي عبادتونو څخه کیدای سي، سنت دا دی چي مخ پر قبله اول پر راسته بغل پرېوځي لکه څنګه چي مړی په قبر کي پرې باسي، خوب دي د مرګ وروړ گڼي او بیداری (ویښیدل) دي د حشر برابر گڼي، دا هم ممکنه ده چي کوم روح په خوب کي قبض سي دغه دوباره ملاو نسي په دې وجه پکار دي چي د آخرت کار برابر کړي چي طریقه یې دا ده چي د خوب څخه اول اودس وکړي او توبه وباسي او د دې خبري اراده وکړي چي؛ که د ویښیدلو نوبت راغلی نو بیا به ګناه نه کووم، او تر خپل بالښت لاندې دي وصیت نامه کښېږدي په تکلف سره دي خوب هم نه راولي او پسته بستره دي هم نه تلاش کوي چي خوب پر غلبه راسي، ځکه چي خوب عمر بې کاره او ضائع کوي، په شپه ورځ کي دا ته کېنتو څخه زیات خوب مناسب نه دی ځکه چي دا د څلورویشتو ګېنتو دریمه حصه ده نو که د ده عمر مثلاً شپېته ۶۰ کاله وي نو شل کاله ځیني د خوب نذر سو او دومره وخت یې په خوب کي ضائع کړی، د دې څخه زیات ضائع کول نه دي پکار، اوبه او مسواک دي ځان ته نژدې کښېږدي چي د شپې یا سهار وخت لمانځه ته پورته کیږي نو چي آرام وي ورته، د شپې د قیام (تهجد) یا د سهار وختي ولاړېدلو اراده کول ضروري دي، که یوسړی داسي اراده وکړه او بیا هم پر ده خوب غالبه سو او د وخت څخه زیات بیده سو نو هم به ثواب حاصل سي، کله چي پرېوځي نو دا الفاظ دي وايي؛ بِاسْمِکَ رَبِّیْ وَضَعْتُ جَنْبِیْ وَبِاسْمِکَ اَرْفَعُه (او د آیت الکرسي، آمن الرسول او فلق او ناس تلاوت دي کوي او د سورت ملک هم) چي د اوداسه او ذکر په وخت کي خوب ورته راسي کوم سړی چي داسي وي د هغه روح عرش ته ورل کیږي، او تر ویښیدلو پوري به د ده شمار په لمونځ کوونکي کي وي.

دریمه وظیفه تهجد دی او دغه د شپې لمونځ دی، په نیمه شپه دي پورته کیږي دا لمونځ دي ادا کوي، ځکه چه په نیمه شپه کي دوه رکعت لمونځ کول د نورو ډېر نفلو لمونځونو څخه غوره دي، ځکه چي دغه وخت زړه صفا وي د دنیا یوه مشغله د ده مخ ته نه وي د الله ﷻ د رحمت دروازې خلاصي وي، د دې لمونځ په فضیلت کي ډېر احادیث دي، په احیاء العلوم کي د دغو ذکر سته.

مطلب دا چي د شپې او ورځي په هر وخت کي څه نا څه مقرر کار کول پکار دي او یو وخت بې کاره

ضائع کول نه دي پکار، یوه ورځ او شپه چې داسې وکړي نو تر آخر عمره پورې دې کوي، که دا ګرانه وي نو د ژوند لوی او اوږده اُمیدونه دې نه کوي بلکې پخپل زړه کې دې دا سوچ کوي چې نن خو داسې کووم شاید چې نن شپه مرګ راسي، او نن شپه توبه وباسم شاید صبا مړ سم، هره ورځ دې دغه کنې او سوچ دې کوي، او که د دې په تواتر او تسلسل سره هم په تکلیف کېدی نو دا تصور دې وکړي چې زه مسافر یم او په حالت د سفر کې یم او آخرت زما وطن دی، او په سفر کې تکلیفونه خامخا وي بیا هم که لار ژر ژر پوره سوه نو وطن ته به ورسېږم آرام او سکون په را ته ملاوسي، او د عمر مقدار دی څومره؟ خصوصًا بیا د هغه همیشه عمر په مقابله کې کوم چې به په آخرت کې حاصل سي او که څوک د لسو کالو د آرام حاصلولو د پاره یو کال تکلیف برداشت کړی نو په دې کې تعجب څه دی؟ دغه بول که څوک سل کاله تکیلف برداشت کړی (او سل کاله عمرد چا دی) او بیا زر کاله آرام بلکې د همېشه راحت ده ته ور په برخه سي نو په دې کې هم د حیرانۍ څه خبره ده؟

د کیمیاء سعادت د عباداتو رکن ختم سو او د دې څخه وروسته د معاملاتو رکن شروع کېږي انشاء الله تعالی.

## دویم رکن: د معاملاتو په باره کې

د دې هم لس اصلونه دي: (۱) اول اصل د خوراک آداب. (۲) دویم اصل د نکاح ادبونه (۳) دریم اصل د کسب او تجارت ادبونه (۴) څلورم اصل د حلالو د طلب په باره کې (۵) پنځم اصل د خلکو سره په مجلس کې د ناستې پاستې په باره کې (۶) شپږم اصل د ګوښه نشیني (خلوت) ادبونه (۷) اووم اصل د سفر ادبونه (۸) اتم اصل د سرود په باره کې (۹) نهم اصل د امرِ معروف او نهی منکر ادبونه (۱۰) لسم اصل د حکومت او حکمرانۍ (واکمنی) ادبونه.

## اول اصل: د خوراک ادبونه

یاد لره! چې د عبادت لار هم پخپله د عبادت یوه حصه ده، لود سفر سامان ته هم سفر ویل کېږي، نو هر هغه شئ چې تعلق یې د دین د لارې سره وي یعني دین ته چې د کوم شئ حاجت وي دغه پخپله د دین یو جزء دی، او ظاهره ده چې دین د خوراک د حاجت څخه بې نیاز (مستغنی) نه دی، ځکه چې د دین پر لار د چلېدونکو اصل مقصد د الله ﷻ دیدار حاصلول دي او د دې تخم علم او عمل دی، او دعلم او عمل همیشوالی د جسم د سلامتی څخه ماسوا ممکن نه دی او دجسم سلامتی بغیر د خوراک څښاک څخه ممکنه نه ده، نوخوړل څښل د دین د لارې په ضرورت کې شامل دي نو معلومه

سوه چي خوړل چنبل د دين شخه دی او په دې وجه الله ﷻ فرمايي: كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا [المؤمنون] پاک شیان خورئ! او نیک عمل کوئ) گواکي د نیک عمل او خوراک ذکر يې يو ځای کړی دی، نو کوم سړی چي خوراک په دې اراده سره خوری چي ده ته د علم او عمل قوّت او د آخرت پر لاره د تللو د پاره طاقت حاصل سي نو د ده خوراک هم عبادت دی او په دې وجه نبي ﷺ فرمايلي دي چي: مؤمن ته پر هر شئ ثواب ملاوېږي تر دې چي دی که پخپله خوله يا د خپل بال بچ (کورنی) په خوله کي ګوله ورکوي دا هم د ده په ثواب کي شامله ده، او د دې ارشاد شخه مراد دا دی چي د مؤمن مقصد په هر شئ سره د آخرت پر لاره تلل وي. او د دين په لاره د تللو د پاره د خوړلو نيه دا ده چي داخوړونکي يې په حرص نه خوري او حلال خوري او په اندازې د ضرورت يې خوري او د خوراک د آدابو خيال ساتي، او په دې ضمن کي پوه سه! چي په خوراک کي هم څو سنتونه سته چي ځيني د خوراک شخه مخکي دي او ځيني وروسته، او بعضي د خوراک په دوران کي دي.

## د خوراک شخه مخکي ادبونه

(۱) خوله او لاس به پرېولي ځکه چي کله خوراک د آخرت د توښې په نيت سره خوري نو دا عبادت دی نو د دې هم ثوب سته، لکه چي د لمانځه شخه مخکي داودس کولو وی او بيا په دې سره د خولې او لاسونو صفايي هم کيږي، او په حديث کي دي چي کوم سړی دخوراک شخه مخکي لاسونه پرېولي دی به د مفلسی او لوږي تندی شخه محفوظه وي.

(۲) او خوراک دې په سترخان باندي خوري د خونچې (پتنوس او ميز) شخه نه، چي نبي ﷺ به داسي کول او دا ځکه چي ستر خوان د سفر ياد تازه کوي، او دنيوي سفر د آخرت د سفر ياد تازه کوي او تواضع ته هم نژدې ده هسي خو پر خونچه (پتنوس، ميز) باندي د خوړلو هم ممانعت نسته، لېکن دا ضروري ده چي د تېرو بزرګانو دا عادت پاته سوی دي چي خوراک به يې پر سترخان باندي کولو او پخپله نبي کريم ﷺ هم داسي خوړلې ده.

(۳) په ښه او غوره انداز دي کښېني يعني راسته ځنګون دي ودروي او پر چپه پنډی دي کښېني، او ډډه وهونکي دي نه کښېني چي د نبي ﷺ ارشاد دی " زه په ډډه وهولو سره خوراک نه کووم ځکه زه بنده يم او د بنده په ډول کښېنم او د بنده په ډول خورم".

(۴) خوراک دي د عبادت په نيت سره خوري نه چي د شهوت او خواهش پوره کولو د پاره. ابراهيم بن شيبان وايي چي اتيا کاله وسو چي ما يو شئ د خواهش دپاره نه دي خوړلای، او د دې نيت د

صحیح کېدلو دلیل دا دی چې اراده یې د لږ خوراک وي ځکه چې زیات خوراک د عبادت الهي څخه منع کوي، د نبي ﷺ ارشا دی چې غوره خبره دا ده چې د ملا سیده ساتلو د پاره په څو کولو قناعت وکړای سي او که په دې قناعت نسي کولای نو دریمه حصه نس دې د خوراک څخه ډک کړي او بله دریمه حصه دې د اوبو څخه او باقي دریمه حصه دې د ساه تلو راتلو دپاره پرېږدي.

(۵) خوراک دې تر هغه پوري نه کوي تر څو چې ښه وږی سوی نه وي او د خوراک څخه مخکې چې د کومو ستنو تابعداری د تولو څخه زیاته غوره ده په هغو کي لوږه د تولو څخه زیاته افضله ده ځکه چې وږی نه وي او خوراک کوي دا مکروه دي او بد دي او کوم سړی چې په لوږه خوراک کوي او وږی ځان پرېږدي دی هیڅ کله ډاکټر (طبیب) ته نه محتاجه کېږي.

(۶) کوم چې حاضرو هغه دې خوري او قناعت دې پر کوي او د ښه ښېلو خوندورو خوراکونو په تکلف کي دې نه پربوځي، ځکه چې دخوراک څخه د مؤمن مقصد د عبادت د پاره قوّت حاصلول دي نه چې ډول ډول خوراکونه لټول. او د ډوډۍ احترام کول هم سنت دی چې د ښه خمیر د دې څخه دی، او د ډوډۍ انتهائي احترام دا دی چې سالن (کتغ) اونور دې په انتظار کي نه ایږدي بلکي د لمانځه په انتظار کي یې هم ایښوول نه دي پکاري، او ځنګه چې ډوډۍ حاضره سي اول دې دا وخوري بیا دې لمونځ کوي.

(۷) خوراک ته دې تر هغه وخته لاسه نه وروړي تر څو چې بل ور سره شامل سوی نه وي یواځې خوراک ښه نه دی، او څومره زیات لاسونه چې خوراک ته ورځي دومره پکښې برکت زیات وي، انس ﷺ فرمایي چې نبي ﷺ به چیري یواځې خوراک نه کولو.

## د خوراک د وخت ادبونه

(۱) اول به: بسم الله وایي او په آخر کي به: الحَمدُ للهِ (۲) ښه طریقه دا ده چې پر اوله ګوله بسم الله او پر دویمه بسم الله الرحمن الرحیم ووایي او په هر وار دې په لوړ آواز سره وایي چې نورو ته هم یاده سي (۳) ابتداء دې د نمکین (مالګین) شئ څخه کوي او په آخر کي دې هم نمکین (مالګین) شئ خوري، لکه چې په حدیث کي راغلي دي چې حرص د اول څخه مات سي (۴) بغیر د خواهش څخه یا د خواهش څخه خلاف دې یوه ګوله هم نه خوري (۵) کوچنۍ ګوله دې اخلي او چې ښه یې ژولې نه وي نه دې تېروي، او چې یوه ګوله یې نه وي تېره کړې بله دې نه په خوله کوي (۶) پر یو خوراک دې هم عیب نه وایي، چې نبي ﷺ چیري په خوراک کي عیب نه وو را

ایستلی چي خوښن به یې سو نو وبه یې خوري کنې نه به یې خوري خو عیب به یې نه پر وایی (۷) د خپل مخ څخه دې خوري لېکن که وچه یا شنه میوه وه بیا یې د پلیټ (غاب) هانخوا دې خوا څخه خوراې سي ځکه چي دغه مختلف بوله وي (۸) ثرید (شوروا) به د لوښي د مینځ څخه نه خوري بلکي د غاړو څخه به شروع کوي (۹) ډوډۍ به د مینځ څخه نه خوري بلکي د یوطرف څخه به یې شروع کوي (۱۰) ډوډۍ دې په چاړه نه پرېکوي لو دغه بول د خوښي نګی (پخه سوې توته) هم (۱۱) لوښی یا یو شئ کوم چي دخوراک نه وي پر ډوډۍ دې لور نه ایږدي (۱۲) لاسونه دي په ډوډۍ نه وچوي (۱۳) د ډوډۍ ټکره یا کوله یا دغوښو نګی که د لاس څخه ولوېږي نو هغه دي راپورته کړي او صفا دې کړي ودې خوري ځکه په حدیث کي دي چي که یې پرېږدي نو ګواکي د شیطان دپاره یې پرېښودی، او اوّل دي ګوتي دی په خولې سره صفا کړي بیا دې پر کپړه باندي ومو‌ږي، کېداسی چي برکت پکښي وي. (۱۴) ګرم خوراک دي په پکولو نه سړوي صبر دي وړته وکړي چي سوړ سي بیا دې وخوري (۱۵) که خُرما، زردالو یا یو بل داسي شئ خوري چي شمېر یې کېدلای سي، نو طاق تعداد دي خوري یعني اووه، یوولس یا یوویشت دانې دي خوري چي د ده د هر کار د الله ﷻ سره نسبت وسي چي هغه طاق یعني یو دی جُفت یعني جوړه یې نسته، او هر یو کار په کوم کي چي په څه نا څه د بول سره د الله تعالی ذکر نه وي باطل او بې فائدې دي، نو طاقو ته پر جفت باندي ځکه فضیلت حاصل دي چي د الله سره یې مناسبت دی، او د خُرما تاکی (مندکي) دي هغه لوښي ته نه وراچوي په کوم کي چي پخپله خُرماوي ایښوول سوي وي او نه دې په لاس کي نیسي دغه بول هر هغه شئ د کوم څخه چي مندکه او نور وغورځول سي د هغه ناخوړلو سره دې نه یوځای کوي (۱۶) د خوراک په دوران کي دي اوبه زیاتي نه چیښي (او نه دې وروسته سملستي چیښې)

## د اوبو چښلو ادبونه

(۱) د اوبو چښلو لوښی دي په راسته لاس نیسي (۲) بسم الله دي وایي (۳) په کراره کراره دې چیښي (۴) په ولاړي یا په پروتي دې نه چیښي (۵) د چښلو څخه مخکي دي لوښي ته ښه وګوري چي یوه خلشه یا یو شئ پکښي ونه چیښې (۶) که د چیښلو په وخت کي وړته اړېږي وړسي نو داوبو لوښی د خولې څخه لیري کړی (۷) که د یوه ولوه څخه زیات چیښل غواړي نو په درې واره دې چیښي او هر وار دي بسم الله وایي او په آخر کي دې الحَمْدُ لله وایي (۸) دې ته هم کتل پکار دي چي داوبو لوښې خو دلاندي څخه څاڅي نه (۹) او د اوبو د بس کولو پر وخت دي الحَمْدُ لله داسي وایي:

الحَمْدُ لله جعله عَذْبًا فُراتًا برحمته ولم يجعلهُ مِلحًا أُجاجًا بِذُنُوبِنا.

## د خوراک څخه وروسته ادبونه

(۱) خوړونکي ته پکار دي چې د نس د ډکېدو څخه مخکي يې بس کړي ګوتي دي په خوله سره صفا کړي بيا دې په توليه، جامې او نورو سره وچې کړي (۲) د دوډۍ ټکړي (اتلمونه) دي راپورته کوي او خوري دې چې په حديث کي دي چې کوم سړی داسي کوي د ده په عيش وعشرت کي به فراخي راځي او د ده بچيان به بې عيبه سلامته او دغه ټکړه به د حُورِ عين مهر وي (۳) د دې څخه وروسته دي خلال وکړي او څه چې په غاښونو او ژبې راووځي هغه دي تېر کړی او کوم چې په خلال راووځی هغه دي وغورځوي (۴) لوښی دي په ګوته صفا کړي (يعني ودې څټي) په حديث کي دي چې کوم سړی لوښی په ګوته سره څټی د ده په حق کي دا لوښی دعاء کوي چې اې خدايه! دا سړی د دوږخ څخه داسي واسته څنګه چې ده زه د شيطان څخه وساتلم، او که دغه لوښی په ابو پرېولي او هغه اوبه وڅيښي نو ده ته به د يو غلام د آزادولو په اندازه ثواب ملاوسي او د خوراک څخه وروسته دي وايي: الحَمْدُ لله الَّذِي اطعمنا وسقانا وكفانا وآوانا وهو سيّدُنا ومَوْلنا. بيا دي قل هو الله احد، لِإيلافِ قُرَيْشٍ ووايي (۵) او که يې حلال رزق نصيب وي، نو شکر دي وکړي او که مشتبه وي نو اوښکي دي توی کړي او غم خفګان دي ښکاره کړي ځکه کوم سړی چې مشتبه خواک خوري ژاړي د هغه سړي څخه مختلف وي کوم چې داسي خوراک خوري او په غفلت او لا پروايي کي خاندي (۶) او چې لاس پرېولي نو په صابن يابل شي دې پرېولي، اول دې د راسته لاس ګوتي بغير صابن څخه پرېولي بيا په صابن، او بيا دې غاښونه، تالو، ژبه، شونډان ښه ومږي او پرېولي او په غاښونو او خوله دي ګوتي ښه ووهی او بيا دې په صابن هم پاکي کړي.

## د ګډ خوراک ادبونه

تر اوسه پوري چې کوم ادبونه ذکر سو دا د يواځې خوراک وو، او د بل سره د خوراک په وخت کي دراړه صورتونه تر نظر لاندي ساتل پکار دي، لېکن کله چې دبل سره خوراک خوري نو اووه ادبونه د دې څخه ملسوا نور به پر زياتوي:

(۱) خوراک ته به تر هغه پوري لاس نه وروړی تر څو پوري چې بل داسي سړی مخکي شروع ونه کړي د کوم حق چې د ده څخه مخکي وي يعني چې په عمر يا علم او فضل يا پرهېزګاري يا په يو بل

څه وخه سره پر ده مخکې وي او چې دی پخپله پر نورو مقدّم وي، نو نور دې په انتظار کې نه ساتي پخپله دې بلا تکلفه شروع کوي.

(۲)د خوراک په وخت کې دې خاموش نه وي ځکه چې دا عادت د اهلِ عجمو دی. بیا هم د دې دامطلب نه دی چې پلتو (اضافي) خبري دې کوي بلکې پاکې او مناسب خبرې دې کوي، مثلاً د نېکانو یو قصه دې کوي یاد پوهې او عقل یو خبره دې اوروي.

(۳)د خپل شریک د خوراک دې خاص خیال ساتي، یعني د هغه څخه دې زیاته نه خوري چې خوراک مشترک وي نو داسې کول حرام دي بلکې پکار دي چې د ایثار او قرباني څخه کار واخلي، او کوم شئ چې په ټول خوراک کې زیات ښه وي دغه دې د هغه مخ ته کښېږدي او ملګرې که په کرار کراره خوراک کوی نو اصرار (ټینګار) دې پر وکړي چې بلا تکلفه یې خوره لېکن د درې وارو څخه زیات دې ورته نه وایي ځکه چې زیات منّت کول تکلف او زیاتي ده، او قسم دې هیڅکله نه ورکوي ځکه چې قسم په هر حال د خوراک څخه معتبر دی.

(۴)داخیال دې ساتي چې د ده ملګری ته د دې خبرې ضرورت پېښ نسي چې ده ته وایي چې خوره یې! ولې نه خورې او خوره یې!، بلکې موافقت دې ور سره کوي او چې څه هغه خوري دی دې ور سره خوري، او د خپل معمول د خوراک څخه دې لږ نه خوري چې دې ته ریاء وایي، دا ټول که یواځې خوراک کوي نو هم د دې ادبونو خیال کوه چې عادت دې جوړ سي او که د ملګري په خاطر د ایثار په نیت سره کمه وخوري نو ښه خبره ده، او که په زیات خوراک نور خلک خوشحاله کېدل نو د هغوی په خاطر داسې کول هم ښه خبره ده.

روایت: ابن مبارک رحمه الله یو وار فقیرانو ته د خرماوو خوړولو دعوت ورکړی او ویې ویل چې چا زیاته وخوړله ده ته به د هري زیاتي دانې په بدله کې یو درهم ورکووم، او دخوراک څخه وروسته یې مندکي (تاکی) شمار کړې، او د چا چې د ټولو څخه زیاتي وې هغه ته یې پر هري زیاتي خُرما یو درهم ورکړی.

(۵) نظر دې مخ ته ساتي او د نورو ګولو ته دې نه ګوري او که خلک ده ته د احترام او عزت په نظر سره ګوري او د ده سره خوراک د ځان د پاره عزت ګني نو پکار دي چې د نورو څخه مخکې د خوراک څخه لاس ونیسي، او که کم خوره وي نو په اول کې دې په کراره کراره خوري چې تر آخره پوري په بې تکلفی سره وخوري، او که داسې یې نه سوه کولای نو خپل عذر دې پېښ کړي چې نور شرمنده نسي چې ده بس کړل او موږ یې لا خورو.

۱

(۶) داسې څه حرکت دې نه کوي په کوم سره چې ملورو په طبیعت کې کراهت او نفرت پیدا کیږي، مثلاً په لوښي کې لاسونه څنډل او خوله لوښي ته داسې نژدې کول چې که څه څیني لوړې نو په لوښي کې لوېږي، او که څه د خولې څخه لوېږي نو مخ دې بل طرف ته اړوي او د تر کارۍ (سالن) ووهۍ دې په سرکه کې نه لړي (یعني په سرکه دې نه لنده کوي) او په خلبونو شکول سوي کوله دې لوښي ته نه وراچوي، او نه دې د داسې شیانو په باره کې خبرې کوي کوم چې خلک بدګڼي او کرکه څیني کوي.

(۷) چې په دوشی (د لاس پرېولو لوښي) کې لاسونه پرېولې نو د خولې اوبه دې د خلکو په مخ کې په دوشی کې نه توکي، او دځان څخه معتبر سړی دې مخکې کوي یعني هغه دې مخکې لاس پرېولې، او که بل داداب د پاره دې مخکې کوي نو مخکې دې سي، او راسته طرف ته دې لاسونه اول پرېولې یعني کوزه دوشی دې راسته طرف ته کرځوي،او چې ټول خلک یکښې لاسونه پرېولې نو پر یو ځای دې اوبه یو طرف ته توی کړي (ویلشي) (د هر سړي د لاسو اوبه دې جلا جلا نه پلشي) او د ټولو څخه غوره خو دا ده چې ټول په یو واره په لوښي کې لاس پرېولي چې دا عاجزي ته هم نژدې ده، او که د خولې څخه اوبه اچوی نو په کراره دې په لوښي کې توکړي چې دلر (د اوبو دار) بل ته ور نسي او نه پر فرش ولګیږي او لاس پرېولونکي که په ولاړې لاسونه پرېولې نو دا د نلستي څخه زیات غوره دی تر دې چې په نلسته یې پرېولي.

د دې ټولو آدابو ذکر په حدیثو کې راغلی دی او دبنده او دځاروی په مینځ کې چې کوم فرق دی د دې آدابو څخه ښکاره کیږي ځکه چې ځاروی د خپل طبیعت مطابق خوراک کوي او دبنه او بد تمیز نه لري ځکه چې دغه تمیز نسي ورښوول کیدای لیکن بنده ته دا تمیز ورکړل سوی دی، نو که دی د دې تمیز څخه کار وانه اخلي او دنعمت د عقل او تمیز حق ادا نه کړي نو د دې څخه ښ د نعمت ناشکري به څه وي؟

### د دوستانو او دیني ورونو سره د خوارک ثواب او فضیلت(چې ډېر ثواب لري)

پوه سه! چې دوست ته دخوراک دعوت ورکول ډېر فضیلت لري، په حدیث کې دي چې درې شیان داسې دي چې د بنده څخه د دغو حساب نه اخیستل کیږي:

(۱) د پیشملي د خوراک (۲) د روژه مات د خوراک (۳) او څه چې د دوستانو سره خوړل سوي وي، او جعفر بن مُحَمّد صادق رحمه الله وایي چې که د دوستانو او ورونو سره پر سترخان کښېني نو ژر

مه ولاړېږه، وخت اړوه څکه چې دغه وخت په عمر کې نه شمارل کیږي یعني د دې حساب به نه وي، او حسن بصري رضي الله عنه وایي چې بنده څه خوري یا پخپل مور او پلار پېخوري نو د دې حساب به وي مګر کوم څه چې په ملګرو دوستانو خوري دغه د حساب څخه مستثنی ده، او په بزرګانو کې دا یو عادت وو چې کله به یې د ورونړاو دوستانو په مخ کې سترخان وغوړی نو د ډول ډول خوراکونو څخه به یې ډک کړی او ویل به یې چې په حدیث شریف کې راغلي دي چې کوم خوراک د دوستانو د خوړل سوي خوراک څخه پاته سي، د هغه حساب نه وي او زه غواړم چې هغه وخورم کوم چې د دوستانو د مخ څخه په لاس راسي،او حضرت علي رضي الله عنه فرمايي چې څه لږ خوراک د دوستانو په مخکې ایښوول زما په نزد د یو غلام آزادولو څخه زیات ښه دی، او په حدیث شریف کې دي چې دقیامت په ورځ به الله جل جلاله وفرمایي چې: " اې دآدم زویه! زه وږی ووم تا ماته خوراک رانه کړی، بنده به وایي اې زما ربه! ته څنګه وږی کېدلای سوې ته خو د ټول عالم مالک او پالونکي یې، او دخوراک حاجت خو هم تا ته نه وو، الله جل جلاله به جواب ورکړی چې ستا ورور وږی سوی وو (تاورته خورک نه وو ورکړی) که تا هغه ته خوراک ورکړی وای نو ګواکې ما ته به دې را کړی وای، د نبي صلی الله علیه وسلم ارشاد دی چې کوم سړی خپل مسلمان ورور ته د خوراک چښاک د پاره څه ورکړي په کوم سره چې هغه موړ سي نو الله جل جلاله دی اووه خندقه د دوږخ څخه لیري کوي، او د یو خندق فاصله د بل څخه د پنځه سوه کالو پر فاصله باندې وي، دارنګه فرمایي چې خَيْرُكُمْ مَنْ أَطْعَمَ الطَّعَامَ (یعني ستاسو څخه بهترین هغه دی چې خوراک ډېر ورکوي)

## د یو بل سره د ملاقات د پاره د تلونکو دوستانو د خوراک ادبونه

پوه سه! چې په دې سلسله کې څلور ادبونه دي:

(۱) اوله خبره خو دا ده چې ارادهٔ دې د چا ځای ته بغیر د رابللو څخه د خوراک پر وخت نه ځي (یعني د سنت او دعوت څخه بغیر دې نه ځي)چې په حدیث کې راغلي دي چې کوم سړی بغیر د دعوت څخه د چا ځای ته دخواک د پاره ځي نو د ده دغه اراده فاسقه ده او د ده دغه خوراک په حرام خوری کې شامل دی، او که اتفاقاً د چا کره د خوراک په وخت کې ورسي نو هم دې بغیر د اجازت څخه نه خوري، بلکې که هغه ووایي هم چې وخوره او دی پوه سي چې د زړه څخه نه وایي بلکې محض د ژبې په سر وایي نو هم دې نه خوري لېکن داسې چې یو عذر دې ورته پېش کړي په ډېره نرمی سره دې

انکار وکړي، لېکن که دیو داسې دوست ځای ته قصد وکړي پر کوم چې یې پوره پوره اعتماد وي او د هغه د زړه څخه هم ښه خبر وي نو روا دي چې په خوراک کې شامل سي بلکې د دوستانو سره بلا تکلفه دغسې خوړل سنت دي، چې نبي کریم ﷺ او حضرت ابوبکر صدّیق ؓ او حضر عمر ؓ د لوږې په حالت کې د ابو ایّوب انصاري ؓ او ابو الهیثم ؓ خوا ته تلل او خوراک یې څیني طلب کړی دي او خوړلی یې دي، او دا خبره د کور د خاوند د پاره ګواکې په خیر او برکت کې مدد کوونکې ده هر کله چې معلومه سوه چې هغه پخپله د دې خبرې خواهش لري (یعني مېلمه ته معلومه سي چې د کور خاوند په دې خوشحاله کېږي نو د داسې د کور خاوند خوا ته تلل ګواکې د ده په خیر او برکت کې اضافه کول دي).

## اقوال، روایتونه او قصّې

په بزرګانو کې د یو بزرګ درې سوه شپېته ۳۶۰ دوستان وو، او هره شپه به هغه په دوی کې د یو خوا ته تلی، او یو بزرګ داسې هم تېر سوی دی د کوم د دوستانو شمار چې دېرش وو او د یوبزرګ اووه دوستان وو، او دا بزرګان به هم روزانه د شپې د خپل یو دوست خوا ته تلل (او خوراک به یې ور سره کوی) او دغسې به دوی د خپلو دوستانو د پاره د کسب او کار او فراغت د عبادت سبب جوړېدلو (یعني دوی به د خپلو دوستانو دخوراک د پاره څه کسب کار کوی او دشپې ورځې مسلسل عبادت څخه به ور ته لېږ فراغت ملاوېدی)، او داوخت ضائع کول هم نه وو، ځکه د هغه مقدار وخت حساب نسته کوم چې د دوستانو (ملګرو) په خوراک کې تېر سي، بلکې ملګری چې کله دیني وي نو روا دي چې یو دوست د بل دوست کره د ده په نه موجودګي کې هم ولاړ سي او خوراک وخوري، نبي ﷺ د حضرت بریده ؓ کره تشریف یووړی او د هغه په غیر موجودګي کې به یې هلته خوراک وخوری، ځکه چې دوی ﷺ پوه وو چې حضرت بریده ؓ به په دې ډېر خوشحاله وي او مُحَمّد ابن واسع کوم چې دلوی مرتبې د پرهېزګارانو څخه تېر سوی دی یوه ورځ د خپلو ملګرو سره د حسن بصري ؓ کور ته ولاړ، او هلته چې کوم خوراک ور ته ملاو سو هغه یې وخوړی، او کله چې حسن بصري رَحِمَهُ الله کور ته راغلی نو دخوشحالۍ څخه باغ باغ سو (چې د ده په نه موجودګی کې یې دلته خوراک کړی دي) دغه ډول د دوستانو یوه ډله د سفیان ثوري رَحِمَهُ الله کور ته ولاړل دغسې یې وکړل (یعني د هغه په غیر حاضري کې یې خوراک وکړی) او کله چې هغه کور ته راغلی نو ویې فرمایل (چې ستاسو شکریه په کومه ژبه ادا کړم چې) تاسو خو زه هغه اخلاقو ته ورسولم کوم چې زموږ په

اسلافو کي ليدل کيږي.

(۲) دويم دا چي د راغلو ميلمنو دوستانو په مخکي دي د هغه خوراک ايږدي کوم چي دغه وخت په کور کي موجود وي، او هيڅ ډول تکلف دي نه کوي او که هيڅ نه وو نو د قرض اخيستلو دومره ضرورت نسته، بلکي که موجود هم وي ليکن دومره چي د بال بچ (کورنۍ) د ضرورت د پاره او د ضرورت څخه ملسوا هيڅ نه وي نو دغه دي بچو ته پريږدي، او يو سړی حضرت علي ﷺ ته د خوراک دعوت وکړی نو هغه وفرمايل زه په دې شرطونو ستا ميلمستوب قبلولای سم: يو دا چي د بازار څخه به څه نه راوړې، دويم دا چي څه په کور کي وي هغه به واپس نه وړې، دريم شرط دا دی چي د خپل بال بچ (کورنۍ) حصه به پوره خوندي ساتې. فضيل وايي چي خلکو د يو بل څخه جلا جلاوسيدل شروع کړي دي، نو دا ځکه چي تکلف دوی د يوبل څخه جلا کړل. که دا تکلف د مينځ څخه ليري سو نو بيا هر سړی بې تکلفه د يو بل سره ملاوېدای سي، کوم چي د دوستۍ (ملګرتيا) اصل بنسټ دی.

په بزرګانو کي يو بزرګ د خپل دوست خواته ولاړی نو هغه د ډېر تکلف څخه کار واخيستی بزرګ ورېل کله چي ته يواځي وې نو د داسي تکلف خوراک به دي نه وای کړی او که زه يواځي وای نو دا تکلف به مي نه وای کړای نو بيا د يوبل سره دملاوېدو په صورت کي دا تکلف ته څه ضرورت دی؟نو ياخو ته ددې تکلف څخه ځان وژغوره يا به زه ستا خواته دراتلو څخه ځان وژغورم.

او حضرت سلمان ﷺ روايت کوي چي نبي کريم ﷺ ما ته وفرمايل: چي تکلف مه کوه! او چي څه حاضر وي د هغه څخه ډېر مه کوه (يعني هغه خوره)، او د صحابه کرامو معمول وو چي د ډوډۍ ټکړې او وچې کجورې به يې يو بل ته کښېښولې، او ويل به يې چي" د هغه سړي څخه ډېر ګناه ګار څوک کېدای سي کوم چي هغه خوراک سپک ګڼي چي هغه پر وخت حاضر او موجود وي او هغه نوررو ته نه رابلسي،يا بيا د هغه سړي څخه (ډېر ګناهګار نسته) کوم چي مَا حَضَرَ(يعني بې تکلفه چي څه حاضر وي هغه )ته سپک ګوري او حضرت يونس ﷺ به د ډوډۍ ټکړې او ساګ(سابه) او نور خلکو ته اېښوول اوفرمايل به يې چي" که الله ﷻ پر تکلف خوښوونکو لعنت نه ليږلی نو ما به هم ضرور تکلف کولای".

**قصه**: يو وار د څو کسانو په مينځ کي پر يو خبره جنګ او دعوه سوه، دوی د حضرت زکريا ﷺ په لټون کي ووتل چي د دوی جنګ او دعوه ختم کړی نو هغه خلک د دوی ﷺ کور ته ولاړل معلومه

سوه چي څوک په کور کي نسته، ليکن يوه ښايسته او ښکلې ښځه يې هلته وليده نول حيران سول چي پيغمبر هم دی او د داسي ښائسته ښځي سره د عيش ژوند تيروي، آخر تلاش يې کوی دوی ﷺ يې وليدی نو دوی ﷺ د مزدور په حيثيت سره کار کوی، او دغه وخت دې ډوډۍ خوړله، هغو ورته خپله قصه کوله او ده ډوډۍ خوړله، ليکن دې خلکو ته يې بالکل هيڅ سَتْ (د ډوډۍ دعوت) ونه کړی بيا د هغه ځای څخه لګي ښځي را ووتلی خلکو د ده په دې درې سروه خبرو باندي تعجب او حيرانتيا وکړه، او آخر چي يې پوښتنه يې څيني وکړه دوی ﷺ وفرمايل چي: " ښايسته ښځه خو ځکه په کور کي ساتم چي دين مي محفوظه سي چي نظر مي بلي ښځته نه ځي او زړه مي بلي ته مائل نسي، او د خوراک مي ځکه تلسو ته ونه ويل چي دغه ماته د مزدوری په اُجرت کي ملاو سوی وو، او ځکه ما ته را کړل سوی وو چي دا وخورم کار ښه وکړم نو که تلسو را سره خوړلی وای نو ماته به څه ملاو سوی وای، نو په کار کي به کمښت او کمي راغلې وای او زما فرض د اوو چي کار پوره پوره او تيز وکړم، او لګي ښځي خو ځکه راغلم چي د دغې محکي دمالکانو په مينځ کي دښمني وه او ما نه غوښتل چي د دغې محکي خاوري زما پر څپلی ومښلي (پيزار) او دبل ځمکي ته ورسيږي، د دې مثالونو څخه ښکاره سوه چي په ټولو کارونو کي د ريښتيا او د :راستی " پر تکلف باندي لوړتيا او برتري حاصله ده.

(۳) دريم دا چي د کور پر خاوند باندي دې هيڅ کله حکم نه چلوي، يعني چي معلومه سي چي ديو ځائګري شئ فرمايښت پوره کول به د کور خاوند ته ګران او ستونزمنه وي، نو په تکلف کي دې نه اچوي او که د کور خاوند ده ته په دووشيانو کي د يوه په ښوولو ووايي نو کوم چي آسانه وي د هغه فرمايښت دي وکړي، چي نبي ﷺ به دا طريقه په هر شئ کي اختياروله.

**قصّه**: يو سړی د حضرت سلمان ؓ مېلمه سو، دوی د اوربشو ډوډۍ او مالګه ده ته پيش کړل. دغه سړي وويل چي که د دې سره د سَعْتَر (نعنا، پودينه) پاڼی وای نو د دې مالګي څخه به ښه وای، د سلمان سره دغه وخت څه نه وو، کوزه يې ګروکړه، د ده فرمايښت يې پوره کړی، دغه سړي خوراک وخوړی او ويې ويل: اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ قَنَّعَنَا بِمَا رَزَقْنَا (يعني د الله ﷻ شکر دی کوم چي ما ته په را کړل سوي رزق باندي قناعت را کړی) سلمان ؓ وويل که ته قانع وای نو ما ته به د کوزې په ګرو ورکولو نوبت نه وی راغلای. ليکن که مېلمه ته معلومه وه چي زما په فرمايښت به د کور خاوند ته څه ګراني او تکلف نه وي، بلکي د ده د خوشحالی سبب به وي نو جائز دي چي د خپل خوښي د شئ

فرمایښت وکړي .

**قصه**: امام شافعي رحمه الله یو واري په بغداد کي د زعفراني مېلمه سو ولزعفراني به روزانه د مختلفو خوراکونو فهرست (لړلیک) اشپز ته حواله کولو. یوه ورځ امام شافعي رحمه الله پخپل لاس سره په دغه فهرست کي د یو خاص ډول خوراک اضافه وکړه زعفراني هغه فهرست د مینځي په لاسي کي ولیدی نو ډومره خوشحاله سو چي په شکرانه کي یې دغه مینځه آزاده کړه.

(۴) څلورم دا چي د کور خاوند ته پکار دي چي د مېلمنو څخه پوښتنه کوي چي هغوی څه شئ خوښوي او خاص خواهش یې څه ته دی په دې شرط چي د ده پوښتنه په رښتوني زړه سره مبني وي، ځکه چي دمېلمنو فرمایښت کول او خپل خواهش بلا تکلف بیانول او د کور د خاوند د هغه پوره کول د ډېر ثواب باعث دي او د نبي ﷺ ارشاد دی چي کوم سړی د خپل مسلمان وروړ خواهش پوره کوي هغه ته د زرو نېکیانو ثواب ملاوېږي، او زر ګناهونه د ده د عملنامې څخه لیري کېږي، او د ده زر درجې پورته کېږي او په دې سره په جنتونو: فردوس، عدن، او خُلد کي ده ته حصه ورکول کېږي لېکن د پوښتني به دا انداز نه وي چي " فلانی شئ راوړم او کنه؟" دا مکروه دي بلکي د منّت (بدوالی) وړ دی، او د دې څخه دا بهتره ده چي کوم حاضر وي مخ ته دې راوړي که مېلمه وخوړی نو بنه کنې واپس به یې یوسي.

## د مېلمستیا فضیلت

پوه سه! چي دا څه لوړ بیان سول د هغو مېلمنو په باره کي وو کوم چي بغیر د بلني څخه د چا د ملاقات د پاره راسي کنې د دعوت کولو احکام د دې څخه مختلف دي او ویل سوي دي که یومېلمه بغیر د بلني راسي نو څه تکلف هیڅ کله مه کوه،لېکن که ته یو څوک پخپله راوبلې نو بیا چي څومره تکلف کولای سې نو ویې کړه او د ضیافت (مېلمستیا) فضیلت ډېر زیات دی، او د هر یو خو دا څانګړی انداز دی چي په سفر کي د یو بل ځای ته بلا تکلفه ځي، ځکه چي د دوی په نزد د مېلمستیا حق ادا کول لوی اهمیت لري او په دې وجه نبي ﷺ فرمایلي دي چي کوم سړی مېلمه پال نه وي په ده کي ګواکي د نېکی ماده سته نه. دا رنګه فرمایي چي دمېلمه دپاره تکلف کوه! چي داسي نه کول ګواکي د ده سره دښمني کول دي، او څوک چي د مېلمه دښمن دی هغه د خدای دښمن دی او څوک چي د خدای دښمن دی خدای د هغه دښمن دی او که مېلمه غریب وو، نو د هغه د پاره قرض اخیستل او تکلف کول هم جائز دي، لېکن د هغو دوستانو د پاره کوم چي روزانه د ملاقات د پاره

ځي راځي هغوی ته د تکلف ضرورت نسته ځکه چي دا د تعلق قطع کېدلو سبب جوړېږي.

**روایت:** د نبي ﷺ غلام ابو رافع ﷺ فرمايي چي نبي ﷺ ما ته وفرمایل چي فلانی یهودي ته ورایه! چي زما مېلمانه راغلی دي ما ته په قرض وړه را کړه د رجب په میاشت کي به یې زه واپس در کړم، یهودي وویل چي تر څو پوري چي یې څه شئ ما ته ګروګرې نه وي، زه وړه نه سم ورکولای ما دا خبره نبي ﷺ ته وویل دوی ﷺ وفرمایل په خدای قسم دي زه خو په اسمان هم امین او پر ځمکه هم امین یم که هغه راکړي وای نو ما به یقیناواپس کړی وای، خیر اوس ته زما هغه زغره یووسه ګروي کړه او اوړه راوړه، څنګه چي ما داسي وکړل وړه مي راوړل.

**روایت:** د حضرت ابراهیم ﷺ عادت وو چي د مېلمه تلاش به یې تر یوه،او دوو میلو پوري کوی، او تر څو چي به میلمه نه وای ملاوسوی خوراک به یې نه خوړی، د ده د صدق په وجه د ده په بنلو کي دا رسم او رواج د مېلمستون تر اوسه پوري جاري دی او یوه شپه داسي نه وي چي دغه ځای دي د میلمه څخه خالي وي، او کله کله خو تر سلو دوو سوو پوري مېلمانه وي لکه څرنګه چي دېرو خلګو د دې د پاره ګڼي (محلې) وقف کړی دي.

## د دعوت کولو او قبلولو ادبونه

د دعوت کولو سنت طریقه دا ده چي د نېکو او پرهېزګارانو خلکو څخه ما سوا بل څوک راونه غواړي ځکه چي خوراک ورکول ګواکي قوّت ورکول دي او فاسق ته قوّت ورکول ګواکي فسق او فجور ته قوّت ورکول دي دارنګه فقیران دي راغواړي دولتمن، سرمایه دار دي نه راغواړي، د نبي ﷺ ارشاد دی چي " تر ټولو بد دعوت هغه د ولیمې دعوت دی په کوم کي چي سرمایه دارن راوبلل سي او فقیران پرېښوول سي" دارنګه فرمايي چي تا سو خلک په دعوت کولو کي هم ګناه کوی چي هغه خلګ رابولی کوم چي نه راځي او کوم چي راځي هغه رابولی نه.

او پکار دي چي دوستانو او خپلو خپلوانو هیڅ کله هېره نه کړي چي دا کار د بیري باعث دی او د دعوت کولو مقصد دا نه دی چي د فخر او غرور او ځان غټ کښلو موقع په لاس راسي، بلکي کوشش دا پکار دی چي د سنت پر ځای کولو موقع په لاس راسي یعني فقیرانو ته راحت ورسول سي، او د کوم سړي په باره کي چي معلومه وي چي دعوت ته راتلل د هغه د پاره ګران دي د هغه را بلل نه دي پکار چي پر دې بلوونکي ته خامخا تکلیف رسیږي، او کوم سړی چي دعوت قبلوي خو په نا زړه او ناخوښي سره هغه دي هم نه رابولي ځکه که هغه را هم سي خو په کراهت سره به خوراک کوي او د ده

دا کارېه د نورو د پاره د کراهت سبب وي.
او په آداېو د قبولیت کي اوله خبره دا ده چي په امیر او غریب کي فرق ونه کړي او د فقیر دعوت ته په حقارت سره ونه ګوري، چي نبي ﷺ به د مسکینانو دعوت قبلوی. حسن بن علي ﷺ یو وار د فقیرانو پر یو جماعت تېر سو نو ویې لیدل چي د ډوډۍ ټکري یې مخ ته ایښي دي او په خوند سره یې خوري او ویې ویل اې د رسول اولاده! زموږ سره موافقت وکړه سمدلاسه د سپرلي څخه را شوه سو او د دوی سره په خوراک کي مشغول سو او ویې فرمایل چي الله ﷻ متکبران خپل دوستان نه جوړوي او د خوراک څخه چي فارغه سو ویې ویل اوس تاسو د صبا د پاره زما دعوت قبول کړی، په صبا یې د هغو د پاره ښه ښه خوراکونه راوغوښتل او د دوی سره یو ځای کښېناستی او ټولو خوراک وکړی.
دویمه خبره دا ده چي مېلمه ته که معلومه وي چي دی په دې دعوت سره پر ما احسان کوي او دا مېلمستوب محض د ځان ښوولو او په رسمي توګه بالندي دی نو څه عذر دې پېش کړی او دعوت دې نه قبلوي، ځکه چي اصل دعوت خو هغه دی چي د کور خاوند د قبلولو په صورت کي د مېلمه احسان مند سي او شکر یې ادا کړی چي مېلمه ګواکي که په دې دعوت قبلولو سره پر ما احسان وکړی.
دغه ډول که دا معلومه وي چي په دې خوراک کي یو شکمن، مشتبه شئ شامل دی، یا په مجلس کي د ممنوعاتو (منع سوي شیانو) څخه یو شئ سته، مثلاً په کور کي د ورېښمو یا بخملو فرش دی یا د سرو او سپینوزرو لوښي استعمالوي، یا پر دېوالونو د جاندارو (ساکښو) تصویرونه دي یا پر چتونو نقش او نګار دی، یا سرودونه (سروز) نغمې د ساز سره پکښي کیږي یا هلته څه مسخرې د لغویاتو او بکواس سره کیږي، یا پر فحش ګویې بالندي هلته څه پابندي نسته، یا ځواني ښځي هلته د سرو سره په آزادانه ملاوېږي، نو څنګه چي دا خبري بدي او د مذمت او بدوالي ور دي، او داسي ځای ته تلل مناسب نه دي په دې وجه د داسي کورېه دعوت قبلول نه دي پکار. دغه ډول که د کور خاوند بدعتي وي، یا فاسق او ظالم وي، یا په دعوت کولو سره د ده مقصد د لاپو وهولو د پاره تسکین وي نو دا دعوت قبلول هم نه دي پکار بلکي که قبول یې هم کړي لېکن چي هلته ولاړ سي او په دې منکراتو کي ګیر سي او د منع کولو څخه قاصر وي نو واجب دا دی چي د هغه ځای څخه بهر راووځي.
دریم دا چي دعوت دي محض پر دې بناء نه رد کوي چي د کورېه کور ډېر لیری دی بلکي تر څو چي د ده په وسه پوره وي او د ده څخه کېدای سي دی دي دا عادت وګني برداشت دې کړي او په تورات کي دي چي د مریض د پوښتني د پاره یو میل زه!، او په جنازه کي د شرکت د پاره دوه میله زه! او د

مېلمستوب د پاره خو که درې مېله تلل وي هم زه ا، او د ديني ورور د زيات د پاره خو تر څلور مېلو پورې هم په خوشحالی سره تلل پکار دي.
څلورم دا چې محض د روژه دار کېدو په وجه سره د چادعوت ردّ کول نه دي پکار بلکي خامخا به ځي، او که د کوربه رضا په دې کي وي چې د روژې په وجه دي بې شکه څه نه خوري خو په خوشبو(عطرو) دې خپل دماغ او په ښو ښو خبرو دې دهغوی زړونه مشغول کړي چې د روژه دار خاطر مدارات هم دا کېدای سي، لېکن که د کور د خاوند(کوربه) د خفه کېدو يېره وي نو بې شکه روژه دې هم ماته کړي ځکه چې د يو مسلمان زړه خوشحاله کول د روژې څخه غوره شئ دي (خو چې روژه فرض نه وي) او نبي ﷺ پر داسي سړي بد ويلي دي کوم چې د کور خاوند د خفه کېدو سره سره د روژې ماتولو څخه انکار وکړي، او فرمايلي يې دي: " ستاورور خو ستا د پاره تکلف کوي او ته يې صرف په دې وينا ردّ کوې چې زما روژه ده". پنځم دا چې دعوت قبلول صرف د نس د کولو دپاره نه دي پکار چې دا خو د څاروېانو کار دی، بلکي د قبلولو په وخت دې نيت دا وي چې دپيغمبر سنت پوره کووم، او انکار دې هم نه کوي چې نبي ﷺ فرمايلي دي چې که سړی دعوت نه قبلوي دی د خدای هم ګناه ګار دی او د خدای د رسول هم؛ په دې وجه يوې ډلي ويلي دي چې دعوت قبلول واجب دي او د مسلمان ورور د عزت پورته کولو په نيت سره يې قبلول پکار دي چې په حديث شريف کي دي چې څوک د خپل مسلمان ورور عزت پورته کړي دی ګواکي د الله ﷻ عزت کوي، او دا نيت دې هم وي چې دعوت د خپل دکوربه ورور زړه خوشحالولو په خاطر کووم، ځکه چې د حديث په روی سره چې کوم سړی مؤمن خوشحاله کوي دا ګواکي الله ﷻ خوشحاله کوي او د کور د کوربه دملاقات نيت دې وکړي ځکه چې د دوستانو او ورونو زيارت دغټو عظيمو درجو څخه دي او د غير حاضری څخه د ځان ساتني نيت دي وکړي هسي نه چې خلک داووايي چې بدمزاجه او متکبر وو ځکه خو رانغلی، دا شپږ نيتونه په دعوت کي د حاضرېدو او د هر يو جلا جلا ثواب دی، او دا هغه نيتونه دي د کومو دکولو پر بناء چې د مباحو شيانو خوراک مسلمان د مقربينو د دربار الهي مرتبې ته رسوي، دلوجه ده چې د بزرګانو همېشه دا کوشش دی چې د دوی د هر کوشش هر حرکت او سکون سره داسي نيت ضرور ترلی وي د کوم چې د دين سره څه نا څه مناسبت وي چې د دوی يوه ساه اخيستل هم ضائع نسي، او ·

## د حاضر بدلو ادبونه

دا دي چي: (۱) کوربه او نور خلک دې په انتظار کې نه لري بلکې ژر تر ژره دې هلته ورسي (۲) په بنه ځای کې دې کښېني خو چې کوربه د کوم ځای اشاره وکړي، او که نور مېلمانه دی د مجلس صدر جوړوي نو عاجزي او انکساري دې کوي (۳) د ښځو خوني ته دې برابر نه کښېني (۴) د کوم طرف څخه چې خوراک راوړل کيږي هغه ته دې ډېر نه ګوري (۵) که د شرع خلاف يو کار ويني نو منع کوي دې او که په منع کول باندې نه کېدل نو پخپله دې ولاړيږي ځي دې، او احمد بن حنبل رحمه الله ويلي دي چي که د سرو زرو سُرمه داني يې وليده نو هلته دربدل نه دي پکار. او واپس راتلل پکار دي.

## د مېزباني (کوربه والي) نور ادبونه

(۱) که مېلمه هلته شپه تېرول غواړي نو د کور خاوند دې ورته د قبلې طرف او د اودس ځای وښيي.
(۲) مېلمنو ته د خواړک ايښوولو ادبونه دا دي چي:
(ا) تلوار دې کوي مېلمانه دې په انتظار کې نه لري او کله چې ټول مېلمانه جمع سي او صرف يو پاته وي نو د حاضرينو حق اولیٰ تر دی، لېکن غير حاضر که يو نقير وو او د ده څخه بغير په خوراک شروع کولو کې د هغه د زړه ماتېدو خطره وه نو په دې خيال سره تأخير کول غوره دي هسې خو په علمه توګه سره تلوار کول ښه دي، څنګه چې حاتم اصم وايي چې تلوار کول د شيطان کار دی ما سوا د پنځه کارونو څخه: (أ) مېلمه ته په خوراک ورکولو کې (ب) د مړي په تجهيز او تکفين کې (ج) د لور په نکاح کولو کي (د) د پور (قرض) په ادا کولو کي (هـ) د ګناه څخه په توبه کولو کې، چې په دې کي تلوار کول ښه دي، او په دې وجه په وليمه کي تلوار کول سنت دي.
(۳) مېوه او نور دې د نورو ټولو خوراکونو څخه اول پېش کړي او سترخان دې د تر کاري (شنه سلّبه) څخه خالي نه پرېږدي، ځکه په حديث شريف کي دي چي تر څو پوري په سترخان باندي شنه سلبه (تر کاري، سبزيجات) موجوده وي فرشتې هلته حاضري وي.
(۴) ښه او خوندور خواړه دې اول مخ ته کښېږدي چي خوړونکي يې ښه په ماړه نس وخوري، او بعضي د کور خاوندان کوم چي پخپله ډير خوړونکي وي د دې شئ عادي وي چي په ثقيل شيانو اول لاس پوري کړی چې مېلمانه زياته ونه خوري او دا مکروه دي او د ځيني د کور د خاوندانو عادت وي

چي تول خوراکونه په يو وخت خواره کړي چي هر څوک د خپلي خپلي خوښي وخوري.
(۵) خوراکونه که د هر ډول څخه وي نو د سترخان دي ژر نه پورته کوي کېدای چي څوک لا اوس موړ نه وي.
(۶) خوراک دي په لږ مقدار کي نه ايږدي چي دا بې مروّتي (بې تنګي) ده. او د ډېر زيات اېښوولو ضرورت هم نسته چي دا په تکلّف سره د تکبر اظهار دی، او که نيت دا وي چي کوم خوراک پاته سي د هغه به حساب نه وي نو بيا شکه زياته هم ايښوولای سي. (لکه څنګه چي مخکي تېر سول)
**قصه**: ابراهيم بن ادهم رحمه الله په يو دعوت کي ټول خوراک د مېلمنو په مخکي راوړی کېښوی نو سفيان ثوري رحمه الله وويل د خدای ﷻ څخه ويېرېږه دا خو بالکل اسراف دی، ابراهيم جواب ورکړی چي په خوراک کي اسراف نه وي (يعني پاته سوی خوراک په حساب کي داخل نه دی).
(۷) د کوروالاوو (کورنۍ) حصه د اول څخه جلا کول پکار دي چي سترګي يې سترخان ته نه وي نيولي ځکه ممکنه ده چي که يو شئ پر سترخان پاته نسي نو د مېلمنو خلاف به خبري کوي او دا د مېلمنو سره خيانت دی.

## دغربيانو مېلمنو په باره کي

دا جائز نه دي چي مېلمه د خپل ځان سره هم يو خوراک يوسي، لکه چي بعضي صوفيانو داسي کول، لېکن که د کور خاوند پخپله ووايي نو جائز دي لېکن شرط دا دی چي د زړه څخه ووايي نه چي د شرم او مروّت په خاطر، لېکن دا ضروري ده چي د نورو شريکو مېلمنو حق ضائع کول پکښې نه وي ځکه چي دا حرام دی دغه ډول که د کور خاوند په ناخوښه وي نو حرام دی بلکي په دې خوراک او د غلا په خوراک کي څه فرق نسته، او دغسي که نور شريک مېلمانه يې ورته د شرم څخه پرېږدي، نه چي د زړه په خوښې سره نو دې ورل هم حرام دي.

## د دعوت(مېلمستيا) څخه د واپس راتلو ادبونه

مېلمه ته پکار دي چي د کور خاوند په اجازت سره دباندي ووځي (۲) کوربه (د کور خاوند)ته پکار دي چي د دروازې پوري د مېلمه سره ولاړ سي، او د نبي ﷺ ارشاد هم دا دی درانګه د مېلمه سره دې بنه بنه خبري کوي، او په فراخه زړه او ورين تندي دي ور سره ملاوېږي(۳) مېلمه ته پکار دي چي که د کور د خاوند څخه يو تقصير کمې سوي وي نو معافي دي ورته وکړي، بلکي د خپلي نېک خويي

پرده دي پرواچوي او د هغه خطا دي پته کړي، چې بنو اخلاقو او ښه خويي ته پر ډېرو تقرّباتو (هغه شيان چې په هغه سره الله ﷻ ته نژدې کيږي) فضيلت حاصل دی.
ښکه چې په دې ضمن کي يوه قصه داسي بيان سوې ده چې يو هلک حضرت جنيد رحمه الله په يو دعوت کي را وغوښتی چې د هغه دعوت تياري د ده پلار د خپلو مېلمنو د پاره کړې وه او ده ته دا معلومه هم نه وه چې د ده زوی حضرت جنيد رحمه الله ته هم دعوت ورکړی دي نو کله چې دی رحمه الله د دې کور دروازې ته راورسېدی نو د دې هلک پلار دی دننه نه پرېښووی نو دوی واپس ولاړی، هلک دو باره دوی رحمه الله راوبلل هغه تشريف راوړی لېکن بيا يې دننه پرې نه ښووی او بياواپس ولاړی، آخر ځلور واره داسي وسوه چې د هلک زړه خوشحاله سي او واپس به تلی چې پلار يې خوشحاله سي، او په دې تلو راتلو کي دوی ته پر ده هيڅ فرق نه پرېوتی، ځکه چې په هر ردّ او قبول کي د دوی د پاره عبرت پټ وو، او د دې پوهه وه چې دا هر څه د خدای د طرفه کيږي.

## دويم اصل د نکاح د آدابو په باره کي

پوه سه! چې نکاح کول هم د دين د کارونو څخه يو کار دی لکه چې خوراک کول د دين د پاره دي لکه څنګه چې د دين د لاري د پاره بنده ته د ژوند او د ده د شخصيت د بقا (پاته کېدو) ضرورت دی، او بغير خوراک، چېناک څخه ژوند ناشونی (ناممکنه) دي دغه ډول د دې د پاره د جنسِ انساني او نسلِ انساني بقاء پکار ده او دا د نکاح د سلسلې څخه ماسوا قائم نسي پاته کېدای نو نکاح د انساني نسل د پاره بيخ او جرړه ده، او طعام (خوراک) دې وجود لره د ژوندي ساتلو د پاره ذريعه ده، او نکاح يې په دې وجه مباح کړې ده چې د انساني نسل باقي پاته سي، نه چې محضِ د شهوت د پاره بلکي شهوت يې ځکه يې پيدا کړی دي چې د نکاح تقاضا وکړي او خلګ په نکاح کولو باندي مجبوره کړي چې سالکان د لاري د دين پيدا کيږي او د دين پر لاره باندي چليږي ځکه چې ټولو خلګ يې د دين د پاره پيدا کړي دي او په دې وجه الله ﷻ فرمايلي دي: وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ (او ما پېريان او انسانان صرف د خپل عبادت د پاره پيدا کړي دي) او څومره چې انسانان زياتيږي دومره به د الله ﷻ د درګاه په بندګانو کي اضافه کيږي،او د نبي ﷺ امت به زياتيږي، په دې وجه نبي ﷺ فرمايلي دي چې: نکاح کوئ! چې تاسو زيات سئ او زه به په قيامت کي فخر کووم او د نورو پيغمبرانو د امتونو په باره کي به ستاسو پر ډېروالی ناز کووم او په هغه کوچني به هم فخر کووم چې د مور د نس څخه نيم کړی پيدا سي. نو د هغه سړي ثواب ډېر زيات دی کوم چې کوشش کوي چې د خدای بندګان

(یعني اولاد یې) زیات سي چي دغه د خدای په بندګي مشغوله سي، او دا وجه ده چي د پلار حق ډېر زیات دی او د استاد حق د ده څخه هم زیات دی چي پلار د کوچنیانو په وجود کي د راتلو سبب دی او استاد د دین په لاره کي د پوه کولو او خبرولو ذریعه ده، او په دې وجه بعضي بزرګانو ویلي دي چي د نفلي عبادت څخه په نکاح کولو کي مشغولېدل زیات ثواب لري، او چي دا معلومه سوه چي نکاح د دین د اُمورو څخه ده، نو د نکاح د ادبونو تشریح ډېره اهمه سوه او د دې په تشریح د پوهېدلو د پاره درې بابونه لیکل کېږي په کومو چي ځان پوه کول ډېر زیات ضروري دي، او هغه دا دي: (۱) اول باب د نکاح د فائدو او ستونزو په باره کي (۲) دویم باب د نکاح د ادبونو سره متعلق دی(۳) دریم باب د نکاح څخه وروسته په آدابِ معیشت کي دی (یعني د کورنی ژوند د آدابو په باره کي دی).

## اول باب: د نکاح فائدې او مصیبتونه

پوه سه!! چي د نکاح فضیلت د دې د فائدو په سبب سره دی او دغه فائدې پنځه دي:

(۱) اوله فائده خو دا ده چي د ده اولاد پیدا سي او د اولاد په پیدا کېدلو سره څلور قسمه ثواب حاصلېږي (أ) یو دا چي د ده به د دې خبري کوشش وي چي کومه خبره د الله ﷻ خو ښه ده یعني د نسلِ انساني بقا (چي په دې سره الله ﷻ د بندګانو نسل باقي پاته کېږي) او کوم سړی چي په حکمت د پیدایښت پوه وي د هغه په دې خبره کي یو ذره شک او شبهه نه وي چي دا (د نسلِ انساني بقا) د الله ﷻ خو ښه او محبوبه ده. مثلاً: که یو مالک د کښت کروندې قابله ځمکه خپل غلام ته ورکړي او ور سره تخم، غوایان، او د ځمکي اړولو نور آلات (سامان) هم ده ته حواله کړي او بیا ور سره یو مؤکل هم ولېږي چي دی د کښت کروندې په کار کي مشغول ساته، نو په غلام کي که لږ غوندي عقل هم وي نو فوراً به پوه سي چي د ده د مالک اصل مقصد د دې عنایت او مهرباني څه دی؟ که څه هم مالک په زباني توګه ده ته څه نه وي ویلي، څنګه چي دغه ډول الله ﷻ (ښځي ته) بچه داني او (سړي ښځي دواړو ته) د مباشرت آلې پیدا کړې او د اولاد تخم یې د سړي په شا او د ښځو په سینه کي پیدا کړو، او شهوت یې پر سړي او ښځي باندي مؤکل کړو، نو بیا دا خبره د یو عاقل شخص پټه نسي پاته کېدای چي د دې ټولو شیانو اصل مقصد څه دی؟ نو که یو سړی تخم ضائع کوي او مؤکل (یعني شهوت) په یوه حیله، بهانه سره د ځان څخه لیري کوي نو دا سي سړی د مقصود د طرف څخه اوښتونکی دی، او دا وجه ده چي صحابه کرامو ﷺ او سلفو صالحینو به دا خبره مکروه ګڼله چي بغر د نکاح کولو څخه مړ سي، څرنګه چي دمعاذ ﷺ دوې بیبیانې د طاعون په وَبا باندي مړې

سوې او پخپله هم د طاعون په وبا اخته وو. لیکن وېې فرمایل چي زما نکاح د یو ښځي سره وکړئ مخکي د دې څخه چي زه مړ سم، ځکه چي زه نه غواړم چي زه دې په بې کوری کي مړ سم.

(۲) دویم ثوب به دا وي چي د نبي ﷺ سره په موافقت کي به زیار ایستونکي وي چي د دوی امت زیاتیږي په کوم چي به نبي ﷺ په قیامت کي فخر کوي. او په دې وجه یې د کونډي ښځي سره نکاح کولو څخه ممانعت فرمایلی دی او فرمایلي یې دي چي د کونډي ښځي څخه خو په کور کي د خرماوو ډنډوری پروت غوره دی، دارنګه فرمایي چي بدشکله ښځه چي کونډه نه وي د هغه ښکلي ښځي څخه چي کونډه وي غوره ده. او په دې سره واضحه کیږي چي نکاح د شهوت آرامولو د پاره نه ده ځکه چي د شهوت د پاره خو ښایسته ښځه ډېر لائقه ده.

(۳) دریم ثواب دادی چي داولاد دعاګاني (مور او پلار ته) حاصلیږي او په حدیث کي راغلي دي چي په ټولو نېکیانو کي د کومي نیکی ثواب چي هیڅ وخت نه مطتقع کیږي په دغو کي یو اولاد دی د کومو دعاګاني چي د مور او پلار د مرګ څخه وروسته همېشه جاري وي او مور او پلار ته رسیږي، په یو بل حدیث کي دي چي دعاګاني د نُور په طباقو (طبقو) کي ایښوول کیږي، او مړکېدونکو ته ښوول کیږي او په لیدلو به یې دوی ته آرام او سکون وي.

(۴) څلورم ثواب داسي حاصلیږي چي اولاد د مور او پلار په مخکي مړ سي او دوی یې د بیلتون غم او تکلیف برداشت کړی نو د قیامت په ورځ به دغه بچی د خپل مور او پلار شفاعت کوي، نبي ﷺ فرمایي چي بچي ته به وویل سي چي زه! جنت ته داخل سه نو هغه به په ژړا سي او به وایي چي: " زه خو د مور او پلار څخه بغیر جنت ته نه ځم او د دې ارشاد په فرمایلو سره نبي ﷺ د یو سړی لمن ونیوله را کش یې کړه او وېې فرمایل چي څنګه زه د دې سړي لمن راکشوم دغسي به دغه بچی د خپل مور او پلار جنت ته د را کشولو کوشش کوي ". او په حدیث شریف کي دي چي بچیان به د جنت په دروازه کي جمع سي ژړا فریاد به کوي شور او ناري به جوړي کړي او د خپلو میندو پلرونو تلاش به شروع کړي، او بیا د الله ﷻ د طرف څخه دوی ته اجازت ورکړل سي چي په خلکو کي ننه ولاړ سئ خپل مور او پلار تلاش کړئ نو دوی به په ګنه ګونه (رش) کي ورننه سي او خپل مور او پلار به د لاسونو څخه ونیسي جنت ته به یې داخل کړي.

**قصه د اولاد په اړه**: یو بزرګ به د نکاح څخه ځان ساتلی تر دې چي یوه شپه په خوب کي وېنې چي د قیامت په میدان کي ولاړ دی او هر طرف ته خلک د تندي څخه بدحاله کیږي او د کوچنیانو

یوه بله وه چي د سرو او سپينو زرو په پيالو کي يې اوبه را اخيستي وې او د تېږو په يوه بله بلندۍ يې اوبه چښلې، ده هم اوبه څښني وڅښتې ليکن کوچني ده ته اوبه ور نه کړې او ورته ويې ويل چي ستا يو بچی هم په موږ کي نشته نو تا ته اوبه ولي در کړو؟! نو دغه بزرګ د خوب څخه راويښ سو سمدلاسه (فوراً) يې نکاح وکړه. بله فائده د نکاح دا وي چي د ده دين خوندي سي، او دی د هغه شهوت څخه وساتل سي کوم چي د شيطان د ټولو څخه غټه وسله ده. او په دې وجه نبي ﷺ فرمايلي دي "چا چي نکاح وکړه د ده نيم دين محفوظه سو، او چا چي ونه کړو د ده د نظر او د زړه د وسوسو څخه خوندي کېدل ګران سو، که څه هم دغه د خپل عورت که هر شومره حفاظت کوي، ليکن نکاح د اولاد په نيت سره کولای سي نه چي د شهوت د پاره ځکه چي کوم شئ الله ﷻ ته محبوب دي د هغه پر ځای کول د هغه د حکم مطابق پکار دي نه چي د مؤکّل د شرلو د پاره، او شهوت پيدا سوی هم د دې د پاره دي چي د نکاح د پاره يې راوپاروي، او د دې تقاضا پوره کولو د پاره بنده په نکاح باندي مجبوره کيږي، که څه هم په دې کي يو بل حکم هم پټ دي او دغه دا دی چي په دې کي يو عظيم لذت اېښودل سوی دي چي په آخرت کي د ملاوېدونکي لذت (خوند) يو نمونه (بېلګه) ده، لکه چي اُور يې د دې د پاره جوړ کړي دي چي د آخرت د عذاب يو نمونه مخ ته راسي، که څه هم د جماع لذت او د اُور تکليف د آخرت د عذاب او د لذت په مقابله کي بالکل معمولي او لږي دی، بيا هم زموږ مقصد دا ويل دي چي د الله ﷻ يو تخليق هم د حکمت څخه خالي نه دي او کېدای سي چي په يو يو شئ کي څو څو حکمتونه موجود وي او زموږ څخه پټ وي او ماسوا د عالمانو او بزرګانو څخه چا ته د دغو علم نه وي، او نبي ﷺ فرمايي چي" هره ښځه چي مخ ته راځي شيطان يې د ځان سره را روان کړی وي (يعني د ښځي په ليد و د سړي پر سر شيطان سپور سي) نو په دې وجه چي پرېښايسته ښځي نظر پرېوځي نو سړي ته پکار دي چي کور ته ولاړ سي د خپلي ښځي سره کوروالی وکړي ځکه چي په دې معنی کي ټولي ښځي سره برابري دي.

دريمه فائده د نکاح څخه دا ده چي د ښځو په ليدو سره د دوی سره اُنس او محبت پيدا کيږي او زړه ته سکون او راحت په يو ځای کښېنستو سره ملاويږي، او د دوی سره په ټوکو ټکالو او خندا خوند او خوشحالي نصيب کيږي، او دا آرام عبادت وطرف ته د رغبت سبب جوړيږي ځکه چي مسلسل او متواتر په عبادت سره تنګي او مَلال والي ارځي او دا آرام او آسودګي د نوی سره عبادت ته قوّت او طاقت پيدا کوي، او حضرت علي ﷺ فرمايي چي راحت او آرام بالکليه د زړه څخه مه ليري کوه چي په دې سره زړه ړوند سي، او په نبي کريم ﷺ به يو وخت داسي راتلو چي د مکاشفاتو په ذريعه به

د عظیمو کارونو وطرف ته دوی ته اشاري ملاوېدې چي د دغه برداشت کول به په جسماني توګه د دوی د پاره ګران وو، نو په دغه وخت کي به يې لاس مبارک پر عائشه ﵂ ولګاوه او ویل: بلنې ایښوده او فرمایل به يې اې عائشې! زما سره خبري کوه او په دې وینا به د دوی ﷺ مقصد داوو چي عائشه ﵂ پخپلو خبرو د دوی سره د وحي د بوج په برداشت کولو کي مدد وکړي،او د دې څخه وروسته چي کله به دوباره دې عالم ته راغلی او دغه بوج به څیني لیري سو نو د دغې وحي مطابق د کار کول شوق به پر دوی غالب سو،او بلال ﷺ ته به يې فرمایل چي اې بلاله! ما ته راحت ورسوه، (یعني آذان وکړه) او بیا به لمانځه ته پورته سو. اوکله به داسي کېده چي دا طاقت به يې په ښوښو عطرونو حاصلوی په دې وجه يې فرمایلي دي چي: " ستاسو د دنیا څخه دا شیان الله ﷻ زما محبوب جوړي کړی دي یعني عطر، ښځه او لمونځ کوم چي زما د سترګو نور دی"، او د لمونځ نوم يې په ځانګړي توګه سره واخیستلو نو د دې څخه دا مقصود ښکاره کول وو چي " زما د سترګو رڼا په اصل کي خو لمونځ دي او عطر او ښځه د بدن د آرام د پاره دي چي په دوی سره قوّت د لمانځه پیدا سي"، او د سترګو هغه رڼا کومه چي په لمانځه کي ده د دې د قوّت څخه حاصل کړم"،او داوجه وه چي کله نبي ﷺ د دنیا او د دنیا د مال دولت جمع کولو څخه منع وفرمایله او حضرت عمر ﷺ عرض وکړی چي دنیا پرېږدو کوم شئ اختیار کړو؟ نو ورې فرمایل درې شیان اختیار کړه یعني (۱) ژبه ذکر کونکې (۲) زړه شکر کوونکی (۳) ښځه پرهېز ګاره. او د ښځي ذکر يې دلته د ذِکر او شُکر سره وکړی (یعني د دې درجه هم د ذکر او شکر څخه کمه نه ده خو په دې شرط چي پرهېزګاره وي).

څلورمه فائده دا ده چي ښځه د کور حفاظت کوي او خوراک تیارول، جامې پرېول، جارو وهل، مطلب د کور دننه د ټولو کرونو د پاره کافي وي چي که سړی په دې کارونو کي مشغول سي نو د علم عمل او عبادت څخه به پاته کېدو ته مجبوره سي، څنګه چي (ښځه سړي د دې کارونو د فکر څخه آزاد کړی نو) دغه ډول ګویا د دین په لاره کي دسړي مددګاره وي، او ابو سلیمان دُرّاني په دې وجه فرمایلي دي چي " نېکه ښځه د دنیا څخه نه بلکي د آخرت څخه ده" یعني تا (د دنیا د فکرونه څخه ) آزاد کړي چي دآخرت په کارونو کي مشغول سې، او حضرت عمر ﷺ فرمایي چي دایمان د نعمت څخه وروسته د ښځي څخه بل خوږ نعمت نسته.

پنځمه فائده دا ده چي د ښځو په اخلاقو د صبر او برداشت(زغم) څخه کار اخیستل او د دوی ضرورتونه پوره کول، او دوی د شریعت پر لاره برابرول پرخپل ځای د یوې مجاهدې او کوشش

مقتضی ده او دا هغه مجاهده ده کومه چي په افضل ترینو عبادتونو کي شامله ده. او په حدیث کي دي چي ښځو بچیانو ته نفقه کټل د صدقې څخه لوی فضیلت لري او بزرګانو ویلي دي چي د ښځو بچیانو د پاره حلال زرق کټل د ابدالو کار دی. او ابن المبارک د بزرګانو د یوې ډلې سره په جهاد کي مصروف وو، چي چا پوښتنه وکړه "آیا څه داسي عمل هم شته کوم چي د دې عمل څخه غوره وي په کوم کي چي موږ لګیا یو؟ " نو ټولو ملګرو بزرګانو وویل: چي د دې څخه د زیات غوره بل څه عمل خو موږ ته معلومات نسته، ابن المبارک رحمه الله وویل ما ته داسي عمل معلوم دی (کوم چي د جهاد څخه غوره دی) او هغه دا دی چي: " د یو سړي ښځه بچیان وي او هغه دوی ته د صالحینو په توګه ژوند کول ښیي او د شپې چي وینې سي او ویني چي بچي لغړ سوي دي نو جامې پر واچوي نو د دې سړي دا کار د دې جهاد څخه زیات افضل دی (په کوم چي موږ مصروفه یو).

بشرحافي رحمه الله یو واریو فرمایل چي: "درې فضیلتونه داسي دي چي احمد بن حنبل رحمه الله ته حاصل دي او زه د هغو څخه محرومه یم او د دغو څخه یو فضیلت دا دی چي هغه د ځان د پاره او د خپل اهل وعیال د پاره حلاله روزي تلاش کوي، او زه یې صرف د ځان د پاره تلاش کووم، او فقط، او د حدیث په روی سره په ټولو ګناهونو کي یوه ګناه داسي هم شته د کومې کفاره چي په هیڅ شان سره نسي ادا کېدای ما سوا د دې څخه چي د ښځي او بچیانو د کفالت بوج برداشت کړای سي.

**قصه**: په لویو بزرګانو کي د یو بزرګ ښځه مړه سوه خلګو ډېر کوشش وکړی او ډیري ښځي یې دوی ته وښوولي چي دو باره نکاح وکړه لېکن هغه په هیڅ شان هم راغب نه سو او دا یې وویل او ویې نه کړه: چي زما زړه په یواځي والي کي هم حاضر وي یعني د زړه حضور مي صحیح دی او زړه مي په آرام دی، تر دې چي یوه شپه یې په خوب کي ولیدل چي دآسمان دروازې خلاصي سوي دي او خلګ یو په بل پسي را روان دي او په هوا کي ځي او څنګه چي ده ده پر خوا بلندې تېرېږي نو یوه وویل دا هغه بدمرغه سړی دی، دویم وویل ها! دا هغه دی، دریم وویل هو! هغه دي او څلورم بیا په تائید کي وویل چي ها! دا هم هغه شوم (بدمرغه) سړی دی، دی دومره ځیني و بیریدی چي پوښتنه یې هم ځیني ونه کړای سوه چي آخر دا ولي وایي؟ په آخر کي یو هلک راغلی بزرګ د هغه څخه پوښتنه وکړه چي دا خلګ بدمرغه چا ته وایي؟ هلک وویل چي تا ته وایي بل چا ته نه؟ ځکه چي د دې څخه مخکي به ستا عملونه به د مجاهدینو د عملونو سره اسمان ته رسول کېدل. اوس یوه اونۍ (هفته) وسوه ستا نوم د مجاهدینو د ډلې څخه ایستل سوی دي معلومه نه ده چي ستا څخه څه داسي ناخو ښه عمل

سوی دي، بزرگ د خوب شخصه د بېلابېلو سره سم نکاح وکړه، او بیا د مجاهدینو په ډله کي شامل سو. دا دي د نکاح فائدي او د دې په وجه نکاح کول پکار دي.

## د نکاح آفتونه

دري دي: اول دا چي کېدای سي چي د حلال رزق په حصول کي ناکامه سي او په ځانګړې توګه د نن مبا په وخت کي، نو ممکنه ده چي دبنځي بچیانو د وجهي شخصه د مشتبه یا حرام مال په چکر کي ولوېږي او دا شئ د ده او د بال بچو (کورنۍ) د تباهی لامل جوړ سي او دا هغه تباهي ده چي یوه نېکي هم د دې شخصه خلاصون نسي ورکولای، څنګه چي په حدیث کي دي چي د قیامت په ورځ به یو داسي سړی د تلی (پلې) خوا ته راولي چي نیک عملونه به یې بې شمېره وي او د هر نېک عملونه خو به یې د غره په بول عظیم الشانه وي لیکن ناڅا په به د ده شخصه دا سوال وکړل سي چي تا خپل اهل او عیال ته نفقه د کوم ځای شخصه را جمع کړې وه؟ او بیا به دی ونیول سي او د ده ټول نېک عملونه به ضائع او عبث ولاړ سي، او فوراً به آواز وکړی سي چي دا هغه سړی دي چي د ده نېک عملونه د ده بال بچیانو (کورنۍ) وخوړل، او دی په عذاب کي ګرفتار پاته سو.

او په آثارو کي مذکور دي چي د قیامت په ورځ به د ټولو شخصه مخکي په انسان پوري د ده اهل او عیال ومښلي او وبه وايي یا الله ﷺ! زموږ انصاف طلب کړه (یعني د ده شخصه زموږ پوښتنه وکړه) چي په موږ یې حرام رزق خوړلی دي، کنې موږ خو ځیني خبر هم نه وو چي دی په موږ حرام خوري، او کومي خبري چي دښوونې وي هغه هم ده موږ ته نه دي ښوولي تر دې چي موږ جاهلان پاته سو نو د چاسره چي حلاله روزي نه وي او د حلال رزق د حاصلېدو امکان هم نه وي نو د ده د پاره مناسب نه دي چي نکاح وکړي، ها! که د ده یقین وي چي د نکاح نه کولو په صورت کي به په زنا اخته سي نو دا بېله خبره ده.

دویم دا چي دبال بچ (کورنۍ) حق پوره نسي ادا کولای تر څو چي د ښوا خلاقو مظاهره ونه کړي او د دوی پر تکالیفو صبر ونه کړي او د تحمّل او بردباری شخصه کار وانخلي او د دوی د معاملو پوره کولو فکر ونه کړي، او دا کار د هر چا په وس کي نه وي په دې وجه خطره وي چي اهل او عیال د ده د لاسه تکلیف برداشت نه کړي که داسي وسوه دی به ګناګاره وي، په حدیث کي دي چي د بال بچ (کورنۍ) شخصه تېښتېدونکي د هغه نافرمانه تېښتېدونکي غلام په بول دی کوم چي د خپل مالک شخصه وتښتي، چي د داسي سړي روژې او لمونځ هم نه قبلیږي، تر څو پوري چي وا پس دوی ته راته

سي، مطلب دا چې نفس خو د هر سړي سره دی او کوم سړی چې د خپل نفس ذمه واري نسي پوره کولای، د ده د پاره غوراه دا ده چې دنورو د نفس ذمه واري وانخلي، او د بشر حافي رحمه الله څخه چې پوښتنه وسوه چې ته واده نه کوې؟ نو جواب یې داوو چې د دې آیت څخه بېرېږم: وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِي عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ (یعني د ښځو پر سړیانو باندي داسې حق دی لکه چې د سړیانو پر دوی دي) او ابراهیم ادهم رحمه الله وایي چې نکاح څنګه وکړم چې هرکله زما دې ته حاجت نسته نو خلمخا یوې ښځې لره دوکه ولي ورکړم.

دریم دا چې نکاح کوونکي کوم ممکنه ده چې په زړه سره د اهل وعیال په تدبیر او فکرونو کي داسي ومبتلي چې د آخرت او ذکر د حق څخه غافله سي او کوم شئ چې تا د الله جل جلاله د ذکر څخه منع کوي دغه یقیناً چې ستا د هلاکت سبب دی او په دې وجه الله جل جلاله فرمایي: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُلْهِكُمْ أَمْوَالُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ [المنافقون: ۹] (اې مؤمنانو! ستاسو مال او اولاد (د دې څخه مراد مجموعه دنیا ده) دې تاسو د الله جل جلاله د ذکر څخه (یعني د مجموعه دین څخه) غافله نه کړي) نو په کوم سړي کي چې دومره طاقت موجود وي چې د عیالداری شغل دی د الله جل جلاله څخه نسي غافله کولای لکه رسول الله چې دې شغل یو ګړی هم د خدای جل جلاله د یاد څخه غافله نه کړای سو، او د کوم سړي چې دا یقین وي چې که نکاح ونه کړي نو هم به (نفس دی ګمراه نه کړي او) برابر به په عبادت او ذکر کي محوه وي او د حرامو څخه به ځان خوندي ساتي نو د داسې سړي د پاره بې شکه نکاح نه کول ښه دي، یعني د کوم سړي چې په زنا کي د اخته کېدلو بېره وي هغه ته نکاح ضرور کول پکار دي، او چا ته چې د دې بېره نه وي هغه ته نکاح نه کول ښه دي، لنډه دا چې کوم سړی په حلال کسب باندي قادره وي او پخپل خوی خصلت اعتماد کولای سي او پوه وي چې نکاح دی د خدای جل جلاله د ذکر څخه نسي منع کولای نو د داسې سړي د پاره ښه ده چې نکاح وکړي، او نور اصل حال الله جل جلاله ته معلوم دی.

## دویم باب: د نکاح کیفیت (څرنګوالی) او ادبونه او د منکوحه ښځې صفتونه

پوه سه! چې د نکاح پنځه شرطونه دي:

(۱) اول شرط دا دی چې د ښځې ولي به خامخا وي څکه چې د ولي څخه ماسوا نکاح نه کیږي، لیکن که د ښځې هیڅ څوک ولي نه وو نو باچاه یې ولي دی. (۲) دویم شرط د ښځې رضامندي (خوښي) ده

لیکن که هغه پیغله وه او دهغې پلار یا د پلار پلار دخوښي اظهار کوي نو دهغې درضا کولو حاجت نشته که څه هم غوره دا ده چي هغه خبره کړي او د خبر څخه وروسته که دا خاموشه پاته سوه نو دا کافي ده. (۳) دریم شرط دا دی چي په نکاح کي دوه عادل گواهان موجود وي، بلکي غوره دا ده چي د پرهېزګارانو یو جماعت هلته موجود وي او صرف پر دوو به اکتفاء نه کوي بیا هم که دوه خلک داسي حاضر وو دکومو فسق وفجور چي چا ته معلوم نه وو بیا هم نکاح صحیح ده. (۴) څلوم شرط دا دی چي لفظ د ایجاب او قبول وکي د خاوند یا یې وکیل په ترتیب او په ژبه واضح سره ووایي او لفظ د نکاح یا تزویج یا د دې هم معنی لفظ په فارسي هم په ترتیب سره په ژبه ووایي، او صحیح سنت طریقه دا ده چي دخطبې د نکاح څخه وروسته ولي داسي ووایي: بِسْمِ اللهِ والحَمْدُ للهِ ما فلانی ښځه تا ته په نکاح کي در کړه په عوض د دومره حق د مهر، او خاوند په جواب کي ووایي بِسْمِ اللهِ والحَمْدُ للهِ ما د دومره حق د مهر په عوض قبوله کړه، او غوره دا ده چي سړی د نکاح څخه مخکي ښځه ووینې او خو ښه یې کړي او بیا نکاح وکړي چي د زیات اُلفت او محبت اُمیدواره سي، دارنګه د نکاح کولو په وخت نیت او اراده دا کول پکار دي چي د دې نکاح مقصد اولاد حاصلول دي او زړه او سترګي دبلو ښځه منع ساتل دي او محض لذت دنفس مقصود نه دی.

پنځم شرط دا دی چي ښځه په داسي حالت کي وي چي نکاح ور سره حلاله وي او شل صفتونه داسي دي د کومو په وجه چي دښځي سره نکاح کول حرام دي، یعني داسي ښځي سره نکاح حرامه ده کومه چي:

(۱) دبل چا په نکاح کي وي، یا (۲) دبل په عدت کي وي (۳) مرتده وي (۴) بُت پرسته وي (۵) زندیقه وي یعني په قیامت، خدای او رسول ایمان نه لري (۶) اباحتي وي یعني دکومې په نزد چي د نامحرمو سره سره ناست ملاسته روا وي (۷) لمونځ نه کوي او وایي چي زما د پاره دا صحیح ده او په قیامت کي به زموږ څخه پوښتنه نه وي او نه به سزاوي (۸) یهودی یا (۹) نصراني وي (۱۰) یا داسي یهودي یانصراني د اولاد څخه وي کوم و چي دنبي ﷺ د رسالت څخه وروسته دغه عیسائیت یا یهودیت اختیار کړی وي (۱۱) مینځه وي (او نکاح کوونکي سړی د دې قابل وي چي دآزادي ښځي حق د مهر ادا کولای سي) (۱۲) دزنا د بیري څخه بې نیازه وي (۱۳) سړي یې د رشتې په اعتبار سره یا د رضاعت په اعتبار سره محرم وي (۱۵) دا خپلوانه(قریبه) وي چي د ده د پاره حرامه سوې وي مثلاً (نکاح کوونکي) سړي د دې څخه مخکي د دې ښځي دلور یا مور یا انا سره نکاح کړې وي او کوروالی یې ور سره کړی وي، یا ښځه د دې سړي د زوی یا پلار په نکاح کي پاته سوې وي (۱۶) د سړي څلور ښځي موجودي وي او دا ښځه یې پنځمه جوړېږي (۱۷) د ښځي خور یا تروري د مخکي ښځه د دې سړي په نکاح کي موجوده وي ځکه چي د دوو خویندو یا تروروو یا

وربرو یا خورزو په مینځ کي جمع کول په نکاح سره جائز نه دي (۱۸) دلسي دوې ښځي په نکاح کي جمع کول هم صحیح نه دي چي که په دوی کي یو سړی او بله ښځه وي نو نکاح به يې نه کېدلای (۱۹) ښځه مخکي هم دديّ سړي په نکاح کي پاته سوې وي او ده درې طلاقه ورکړي وي، یا يې درې واره دا خرڅه کړې وي، ځکه چي په دې صورت کي دا تر هغه وخته پوري نه حلالیږي تر دې چي دده ځخه مخکي ور سره بل سړي نکاح ونه کړي (او دخلوت صحیحه ځخه وروسته) يې هغه طلاقه نه کړي، یا دې دواړو په مینځ کي لعان واقع سوی وي، یا ښځه سړی محرم وي.(۲۰) د حج یا عمرې احرام يې تړلی وي یا ښځه کوچنۍ او یتیمه وي چي دبلوغ ځخه مخکي دیتیمي کوچنۍ نکاح جائز نه ده.

او د دې صفتونو په صورت کي د ښځي سره نکاح باطله مقرر کول کیږي، او دا هغه شرطونه دي دکوم پر بناء چي د نکاح د حلالوالی او حراموالی دارومدار دی.

**د ښځي صفتونه:** او دښځي هغه صفتونه دکومو لیدل چي سنت دي اته دي:

اول صفت خو د دې پرهیزګاري ده او اصل صفت دا دی ځکه چي پرهېزګاره نه وي نو د خاوند په مال کي به خیانت کوونکې وي چي د خاوند سره به بیا تشویش وي، او که پخپل جسم کي خیانت کوي او سړی پر خاموشه کیږي نو بې غیرته به وي او دین به يې هم تباه وي او تور مخی او خنداګانۍ به لا نور پر کیږي، او که خاموش نه پاته کیږي نو عیش آرام او ذهني سکون به يې خرابیږي،او طلاق ورکول ور ته شاید په دې وجه مشکل وي چي دې ښځي د تولو خرابیانو سره سره په زړه سره پر دې مَیَنْ وي (او ېلتون برداشت کولای نسي) ځکه نا پرهیزګاره ښځه که ښایسته وي نو داخو د یو آفت او بلا ځخه کمه نه ده (چي پرېښوولی هم نسي او برداشت يې هم نسي کولای ) لنډه دا چي که دا دسي صورت سره مخامخ سي نو خوره دا ده چي طلاق ورکړل سي، سوا د دې مجبوری ځخه چي که د زړه ځخه پر مَیَنْ وي.

**روایت:** یو سړی نبي ﷺ ته راغلی او د خپلي ښځي د نا پرهیزګاری شکایت يې وکړی دوی ﷺ وفرمایل بیا طلاق ورکړه هغه وویل چي زه پر مین یم، نو وي يې فرمایل بیا طلاق مه ورکوه ځکه چي که طلاق ورکړې نوبیا به ته په فساد کي مبتلا سې، او په حدیث شریف کي دي چي ځوک د یوې ښځي سره محض د ښایست یا مال په غرض سره نکاح کول غواړي دی آخر د دې دواړو ځخه محرومه کیږي، او کوم چي د دین د متابعت (پیروي) په نیت سره نکاح کوي هغه ته مال او جمال دواړه نصیب کیږي.

دویم صفت ښه خوی دي ځکه چي بدخویه او بداخلاقه ښځه ناشکره اوژبوره وي او د بې ځایه

حکمونو چلولو عادي وي،اود اسې ښځه د دنيوي عيش او سکون تباه کولو څخه ملسوا د دين د خرابۍ باعث هم وي. دريم صفت د دې حُسن او جمال دی چې د محبت او اُلفت سبب وي او په دې وجه د نکاح څخه مخکي يې ليدل سنت دي، چې نبي ﷺ فرمايلي دي: " د انصارو د ښځو په سترګو کي يو داسې شئ دی چې په ليدو يې زړه متنفره غونډي کيږي" نو په دې وجه کوم سړی چې په دوی کي د چا سره نکاح کول غواړي نو پکار دي چې اول يې ووينې او ويل کيږي چې کومه نکاح بغير د ليدو څخه وسي د هغې نتيجه تلافي او غم وي او هغه کوم چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چې د ښځې سره نکاح د دين په خاطر کول پکار دي نه چې د حُسن او جمال په خاطر نو د دغه معنی دا ده چې محض حسن او جمال د نکاح غايت (انتهاء) مقرر کول نه دي پکار، داسې نه چې حسن او جمال د سره څخه پکښې موجود نه وي، ها! که د يو سړي مقصد د نکاح کولو څخه محض حصول د اولاد وي او حسن او جمال د ده په نزد واقعي څه اهميت نه لري نو دا د زُهد او پرهېزګاری لوړ مقام دی، احمد بن حنبل رحمه الله ديو سترګي ښځې (يعني يوه سترګه يې ړنده وه) سره نکاح وکړه او د دې خور کومه چې ډېره ښايسته او ښکلې وه ځکه يې په نکاح وانه اخيستله چې دغه يو سترګي ښځې د دې ښايستې څخه زياته عقلمنده او هنر (ذوق) داره وه.

څلورم دا چې حق د مهر يې کم وي، چې نبي ﷺ فرمايلي دي چې په ښځو کې هغه ښځه غوره ده چې مهر يې کم وي او حُسن او ښايست يې زيات وي او ډېر زيات حق د مهر تاکل مکروه هم دي، نبي ﷺ بعضي نکاح ګانې د لسو درهمو د مهر په عوض کي وتړلې، او پخپلو لوڼو کي يې د يوې مهر د څلور سوو درهمو څخه زيات کړی نه دی.

پنځم دا دی چې کونډه نه وي چې نبي ﷺ فرمايلي دي چې د خُرما يو زوړ ونډوری کوم چې دکور په کونج کي پروت وي د کونډې ښځې څخه غوره دی.

شپږم دا چې انجلۍ وي (باکره وي) چې د دې سره خامخا محبت زيات وي ځکه چې کومه ښځه د بل په نکاح کي پاته سوې وي هغه په عام طور سره د دغه اول خاوند خيال په زړه کي راولي (او د زړه سترګي يې د هغه په تلاش کي وي) حضرت جابر رضي الله عنه د يوې داسې ښځې سره نکاح وکړه چې نبي کريم ﷺ وفرمايل: چې دا نجلۍ سره دې نکاح ولې نه کوله چې دواړو د يو بل سره بازي کولای.

اووم دا چې د دې حسب، نسب شريف او محترم وي لږ د دنيا په لحاظ او لږ د دين په لحاظ سره، چې کم اصله ښځه بې ادبه وي او اخلاق يې ښه نه وي، او کېدای سي چې د دې بداخلاق د دې پر اولاد هم اثر وکړي.

اتم دا چي د نژدې خپلوانو شخه نه وي، چي په حديث کي دي چي د د دې شخه کمزوري اولاد پيدا کيږي، شايد په دې وجه چي د قرابت په صورت کي شهوت هم کمزوری وي. دا خو دي د ښځو صفتونه. ليکن ولي (مشر) کوم چي خپله لور چا ته په نکاح ورکوي پر ده هم واجب دي چي دلور په مستقبل باندي نظر وساتي او داسي سړي ته دي ورکوي چي قابل هم وي. يعني داسي سړي ته دي نه ورکوي چي: (۱) بدمزاجه بدشکله وي (۲) د نفقي پيدا کولو شخه عاجزه وي (۳) د دې کُفو نه وي (۴) فاسق وي. چي د نبي ﷺ ارشاد دی: چاچي خپله لور فاسق ته ورکړه د ده رِحم پريکړل سو او فرمايي: چي دا نکاح د (ښځي د پاره) غلامي ده نو ښه دي وگوري چي دی خپله لور د چا په غلامی کي ورکوي.

## دريم باب: د نکاح شخه وروسته بيا تر آخره پوري د ښځو سره ادبونه

پوه سه! چي هر کله معلومه سوه چي د دين د اُصولو شخه نکاح هم يو اصل دی نو ښکاره دي چي په دې ضمن کي د دې اړوند د ديني ادبونو لحاظ هم وساتل سي کنې دانساناتو په نکاح کولو او د څاروياتو په مال کېدو کي به هيڅ فرق نه وي. نو دوولس آداب دي چي په دې سلسله کي تر نظر لاندي ساتل ښکار دي:

(۱) اول شئ وليمه ده کومه چي سنت مؤکده ده. عبدالرحمن بن عوف ﷺ نکاح وکړه نو حضور ﷺ وفرمايل وليمه وکړه! که څه هم پر يوه بزه (وزه) وي. بلکي دا چي که دبزې (وزې) هم توفيق نه وي نو هر شه چي دوستانو ته د خوراک د پاره کېښېږول سي دغه وليمه ده. نبي ﷺ چي هر کله د صفيه رضي الله عنها سره نکاح وکړه نو "ستوان" او خُرماوي د وليمي د پاره موجودي وې نو په دغو سره يې وکړه. نو شومره چي طاقت وي د هغه مطابق دي وکړي (ليکن کول ضروري دي) چي دا د نکاح د تعظيم په خاطر وي او ښکار دي چي د نکاح شخه وروسته په دريو ورځو کي يې دننه دننه وکړي او که تأخير هم وسي نو ديوې اوونى شخه زيات نه دي ښکار او سُنت ده چي دول وغږوي او د نکاح اظهار او اعلان کول هم سنت دي ځکه چي دا هغه د خوشحالى شخه دک حقيقت يادول دي چي پر مخ د مځکي د عزت والا مخلوق د بنده ذات دی او د ده د پيدايش د دروازې خلاصول نکاح دي نو دا خوشحالى هين پر محل او مناسب ده او په دې وجه په داسي وخت سرود او دُفْ په ستنو کي شامل دي. او

روايت: رُبَيّع لور د معوذ روايت کوي چي: " په کومه شپه زه ناوې کړای سوم نو په سهار نبي کريم

ﷺ زما خوا ته تشریف راوړی مینځو دفه وخت سرود وخړوی او سندري یې ویلې چې نبي ﷺ یې ولیدی نو د دوی ﷺ په صفت کې یې شعرونه ویل شروع کړل، نبي ﷺ وفرمایل: هغه وایاست کوم چې مو اوّل ویل او د دې شئ اجازت یې ورنه کړو چې د سرود سره د دوی په صفت کې څه وویل سي ځکه چې صفت د رسول د عیشو شیان سره یو ځای کول ښه خبره نه ده.

(۲) دویم دا چې د ښځو سره به د ښه اخلاق سلوک (چلند، رویه) کوي او د ښه اخلاق څخه مراد د انه دي چې دوی ته به تکلیف نه رسوي بلکې دا چې د دوی تکلیف به برداشت کوي او د دوی د مختو ترخو خبرو او ناشکری او نورو به د صبر څخه کار اخلي، او په حدیث کې دي چې د ښځو تخلیق د ضعف او پټوالي څخه سوی دي د دوی د ضعف علاج خاموشي ده او د پټوالی درمل یې دا دی چې دوی د کور په چاردیواري کې قید وساتل سي،

د نبي ﷺ ارشاد دي چې څوک د خپلې ښځې پر بدخویي د صبر او حلم څخه کار اخلي ده ته دومره ثواب ملاوېږي څومره چې حضرت ایوب ﷺ ته ملاو سوی وو چې دوی خپل مصیبتونه آفتونه او بلاګانې په صبر سره برداشت کولې، او کومه ښځه چې د خپل خاوند بدمزاجی او تُند خویي په صبر سره برداشت کړي، دې ته به د فرعون د ښځې آسیې برابر ثواب ملاوېږي، او آخري الفاظ کوم چې دنبي ﷺ په ژبه مبارکه سره په وخت کې دوفات اوریدل سوي دي هغه دا وو: د درې شیانو همیشه خیال ساتی:

(۱) پرلمانځه باندي په مستقله توګه قائم ووسئ! (۲) د غلامانو مینځو سره ښه سلوک (چلند، رویه) کوئ (۳) په خدای قسم دی د ښځو په معامله کې احتیاط کوئ چې دا ستاسو په لاسو کې قیدیانې دي د دوی سره په ښه طریقه ژوند تېروي، او نبي ﷺ به د ښځو غصې او بد اخلاقیانې په ښه صبر سره زغملې، یوه ورځ د حضرت عمر ﷺ ښځه په غصه کې راغله، حضرت عمر ﷺ ته یې په ګستاخي (بې ادبي) سره جواب ورکړی، حضرت عمر ﷺ وویل چې څومره ګستاخه سوې چې ماسې جواب راکوې!؟ ښځې په جواب کې ورته وویل، هو! ستا څخه نبي کریم ﷺ غوره دی چې د نبي والي سره سره د خپلو بیبیانو جوابونه اوري او صبر کوي، عمر ﷺ وویل که ماسې وې خو بیا پر حفصه رضي الله عنها باندي افسوس دی که هغه هم داسې کوي او د خاکساری څخه کار نه اخلي او د بیا د حفصې (کومه چې د ده لور او دنبي ﷺ بیبي وه) خوا ته ولاړی او ورې ویل، لورې! د نبي کریم ﷺ په مخکې چیري ګستاخي ونه کړې، او ګوره! د حضرت ابوبکر ﷺ پر لور (عائشې رضي الله عنها) د ضد، غبته کولو ضرورت نسته چې هغه دنبي ﷺ خو ښه ده او نازیې وړي، نو دانتهایي صبر څخه کار

اخله.

او یو وار د نبي ﷺ یوې بي بي نبي ﷺ ته پر سینه مبارکه دوې چپلاخې ورکړې، نو مور یې هلته موجوده وه هغې ورته ډېر بد رد وویل؛ چې آخر د نبي کریم ﷺ سره دې داسې ولې وکړل. نبي ﷺ وفرمایل؛ پرېږده چې د دې شخه زیات هم دا کوي او زه همیشه د معافی شخه کار اخلم. دراتګه فرمایي: "په تاسو کې د ټولو شخه غوره هغه دی کوم چې د خپلې بي بي سره ښه وي او زه د ټولو په نسبت د خپلو بیبیانو سره ښه سلوک (چلند، رویه) کووم

دریم دا چې د خپلې بي بي سره دې ټوکې ټکالې خندا او تماشې کوي او د دې شخه دې جلا جلا نه ووسي، او د دې د عقل مطابق دې د دې سره اوسي (پخپل لیاقت او علم سره پر هغې باندې رُعب اچول حماقت اوجهالت دی) د ښځې سره د زړه مشغولتیا او ښو خبرو مظاهره نبي کریم ﷺ داسې فرمایلې ده چې مثال یې په مشکله ملاویدی سي تر دې چې نبي ﷺ به اکثره دعائشې رضي الله عنها سره منډې هم وهلې چې وکورو څوک مخکې کیږي او څوک وروسته پاته کیږي، یو وار نبي ﷺ مخکې سو، نو په بل وار حضرت عائشه رضي الله عنها مخکې سوه، نو نبي ﷺ په ډېره خوشحالی او شفقت وفرمایل: زه اوس موږ دواړه برابر سو (یو وار ماوګټله یو وار تا). دغه رنګه یو وار حبشیانو تماشه ښووله، نبي ﷺ وفرمایل عائشې رضي الله عنها تماشه ګورې؟ هغې وویل هو! او راغله د نبي ﷺ په خوا کې ودریده، نبي ﷺ لاس اوږد کړی او حضرت عائشې رضي الله عنها زنه پر کښېښووله او تر ډېره پورې یې تماشه کتله آخر یې وفرمایل؛ عائشې اوس بس نه دې؟ هغې جواب ورنه کړی، درې واره نبي ﷺ پوښتنه وکړه آخر هغې ومنله او واپس سوه.

او حضرت عمر رضي الله عنه پخپلو ټولو کارونو کې د خپلې روایتې سختی، او قهرماتی سره سره به یې فرمایل سړی ته پکار دي چې د خپلې ښځې سره د بچیانو په ډول ووسي او د خانه داری د کارونو په بلوه کې دې د سړو په ډول ووسي، او ویل سوي دي چې سړی کله کورته داخلیږي نو په خندا سره او چې د باندې ووځی نو په خاموشۍ سره او څه چې د خوراک ملاوسي خوري دې او څه چې ملاؤ نسي دهغې دې ذکر هم نه کوي.

(۴) څلورم دا چې په ټوکو ټکالو او خندا کې دې دومره ژوري ته نه ځي چې خپل رُعب او هیبت ختم کړي، د بې تکلفی دا مطلب نه دی چې سړي دې په باطلو کارنو کې هم د ښځې ملګری سي، بلکې پکار دي چې که د مروّت یا شریعت خلاف یو کار ووینې نو ښځه دې په سختی سره وترټي، ځکه چې که په داسې وخت کې هم معافی وکړي نو بیا خو به د ښځې فرمان بردلره جوړ سي، د

الله ﷻ ارشاد دی: اَلرِّجَالُ قَوّٰامُوْنَ عَلَى النِّسَاءِ (يعني خلكو ته پر ښځو قوي او غالب وسېدل پكار دي) او نبي كريم ﷺ فرمايلي دي چي " كوم سړی د ښځي غلام وی هغه بدبخته دی" ځكه چي پكار دا ده چي ښځه د سړي مينځه وي؛

او بزرگانو ويلي دي چي د ښځو سره مشوره ضرور كول پكار دي لېكن عمل د دغه شخه چپه كول پكار دي، او په حقيقت كي ښځه د انسان د نفس په شان ده كه دې ته واكي (قيض) سسته كړي نو د حدّ شخه وځي، او بيا د دې علاج كول گران سي، لنډه دا چي په ښځه كي يو شئ داسي موجود وي كوم چي د ضعف شخه ما سوا بل شئ ته يې نسبت نه سی كېدلای، او د دې شخه ځان خلاصول د صبر او برداشت شخه ما سوا بل شئ نسته، او كوم كوږوالی چي په دوی كي ليدل كيږي د هغه علاج په هر حال زُورَنه و رټل دي، او سړي ته پكار دي چي د يو طبيب او استاد په شان سي، يعني د استاد په شان ښځي ته ټول كارونه ښيي هم او د يو طبيب په شان د هر علّت علاج هم د موقع په مناسبت سره كوي هسي خو صبر او تحمل دي پر ټولو غالبه ساتي، چي په حديث شريف كي دي چي د ښځي مثال د پُښتی د هډوكي دی چي كه دسيده كولو كوشش يې كوی نو ماتيږي.

(۵) پنځم دا چي د غيرت په معامله كي دي د ميانه روي (مينځلاري) شخه كار اخلي او د كومي خبري شخه چي د فتني او فساد پوره ته كېدو امكان وي د هغې شخه دي ښځه د مخكي شخه منع كړي، څنگه چي تر څو پوري ممكنه وي ښځه دي د كوره شخه د باندي نه پرېږدي بلكي د چت ختو ته دې هم نه پرېږدي چي د نامحرم نظر پر دې ونه لگيږي او نه دي دا دې ته پرېږدي چي په دروازو، كړ كيانو كي سېل كوي، چي ټول آفتونه د ستر گو شخه پيدا كيږي، او د كور د دننه شخه دا نسي كېدلی بلكي د دروازو كړ كيانو او نورو شخه كېدای سي او دا خبره دي دومره آسانه او معمولي نه گني، مگر داسي هم نه چي خامخا بدگماني او شك كوي، او بې په وچه دي لعنت او ملامتيا پر وايي او د غيرت او حياء دومره بوج دي پر هغې نه اچوي (چي برداشت يې نسي كولای) او نه دي د ښځي باطن ته د شكونو او لټون په نظر سره گوري، يوار نبي كريم ﷺ د سفر شخه واپس راتلو چي ملښام سو، دوی وفرمايل چي نن شپه به زموږ شخه يو تن هم خپل كور ته نه ځي (كه څه هم ځای نژدې وي) او تر سهاره پوري به انتظار كوي، دوو خلكو مخالفت وكړی نو چي كور ته ولاړل ناكانتې كارونه يې په كورنو كي وليدل، او حضرت علي رضي الله عنه فرمايي چي په ښځو غيرت د حدّ شخه زيات مه مسلط كوئ چي كه خلكو ته د دې معلومات وسي نو خامخا به خبري جوړوي، او غيرت صرف دغه دي چي د

نامحرمو نظر پر ښځه ونه لګيږي.
او نبي کريم ﷺ د حضرت فاطمې رضي الله عنها څخه پوښتنه وکړه چي د ښځو د پاره کوم شئ زيات غوره دی، هغې ورېل چي څوک پردی سړی يې ونه ويني، او نه دا پردی سړی ووينې، د نبي ﷺ دا خبره ډېره خوښه سوه او په غېږ کي يې ونيول او وې فرمايل (چي ولې نه آخر) ته زما د زړه ټکړه يې، حضرت معاذ رضي الله عنه خپله ښځه په دريچه (کړکۍ) کي په کتلو وليده نو وې وهله، بيا وليدل چي دې د ډوډۍ يو ټکړه پخپله وخوړه يوه يې غلام ته ورکړه پر دې يې بيا ووهله، حضرت عمر رضي الله عنه فرمايلي دي چي ښځو ته ښه جامې مه ورکوئ چي دوی په کورنو کي ناستي وي چي ښې جامې واغوندي نو د دباندي تللو آرزو يې پيدا سي، د نبي کريم ﷺ په زمانه کي ښځو ته مسجد ته د تللو اجازت وو، لېکن په دې شرط چي په شاته صف کي به وي، مشرانو صحابه کرامو رضي الله عنهم پخپل وخت کي دا اجازت واپس واخيستی، حضرت عائشې رضي الله عنها به فرمايل که نبي کريم ﷺ دا حالت ليدلی وای نو دوی ﷺ به مسجد ته يوه هم نه وای پرېښې، اوس مسجد او مجلس ته د تللو څخه او سړو ته د کتلو څخه منع کول ډېر ضروري دي مګر بدی ښه چي زوړ پوړنی (خمار) پر سره کړي تللای سي اکثر د ښځو په حق کي مجلسونه ښايسته کول او نظر بازي د آفت او مصبت باعث جوړيږي کوم ځای چي د فتنې ډېره وي هلته ښځه د تللو څخه منع کول ضروري دي، يو نابينا (ړوند) د نبي کريم ﷺ خو اته حاضر سو نو دوی ﷺ حضرت عائشې رضي الله عنها او نورو بيبيانو رضی الله عنهن ته د دغه ځای څخه د تللو وفرمايل دوی رضی الله عنهن ورېل چي هغه خو ړوند دی، نو وې فرمايل: تاسو خو ړندې نه ياست.
(۶) شپږم دا چي د ښځي د نفقې، او خرڅې په ښه توګه سره انتظار کوي نه خو د اسراف مظاهره کوي او نه تنګي کوي، او دا ګڼي چي د ښځي د نفقې ثواب د خيرات څخه زيات دی، دنبي کريم ﷺ ارشاد دی چي که يو دينار غازي ته د جهاد په وخت کي ورکړل سي او يو دينار داسي غلام ته ورکړل سي کوم چي آزادول کيږي او يو دينار مسکين ته ورکړل سي او يو دينار پرخپل اهل او عيال په نفقه خرڅ کړل سي، نو په لحاظ د ثواب هغه دينار تر ټولو افضل دي او تر ټولو په مناسب ځای کي لګول سوی دي چي د ښځي او بچيانو په نفقه کي خرڅ کړل سوی دي، او پکار ده چي يو ښه خوراک يوائځي نه وخوري او که خوري يې نو پټ دې خوري، او کوم د خوراک شئ چي پيدا کولای نسي د هغې ذکر دې د ښځو په مخکي نه کوي،
او ابن سرين رحمه الله وايي چي په اوونۍ (هفته) کي دې يو وار حلوا يا يو بل خوږ شئ ضرور تيار وي

چي د خوړو شئ شخصه په یو ولړ منع کېدل بې مروّتي ده او که یو مېمله نه وي نو د خپلي بي بي سره دې خوراک خوري چي په آثارو کي راغلي دي چي په کوم کور کي د کور ښځي نر، کوچنیان او ختان یو ځای خوراک خوري پر دوی باندي د خوراک په وخت کي الله ﷻ او د هغه فرښتې سلام لېږي، او اصل اهمیت دې کار ته حاصل دي چي په ښځه بچیانو چي کوم څه خوري د حلالي کټي شخصه دي وي ځکه چي د دې شخصه زیات خیانت اوظلم نسي کېدای چي په حرام مال سره د اهل او عیال پالنه وکړل سي.

(۷) د علم دین چي څومره اندازه د ښځو د پاره ضروري دي یعني د لمونځ اودس او حیض او نورو په باره کي چي کومي کومي خبري د علم دین په روی سره ښځو ته لازمًا معلومول پکار دي د دې تعلیم دوی ته ضرور ورکول پکار دي، نو سړي ته پکار دي چي دا خبري دې ته ضرور وښیي، د نه ښوولو په صورت کي پر ښځي واجب دي چي د باندي ولاړه سي د بل چا شخصه یې معلومه کړي لېکن که سړی یې ورته ښیې بیا ښځي ته نه دي پکار چي د باندي ځي او سړی که دا علم دین ښځي ته ونه ښیي نو دی به گناهکار وي چي د الله ﷻ ارشاد بالکل ښکاره دي چي: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا [التحریم:۶] (اې ایماندارو خپل ځانونه او خپل کور والا د دوږخ د اور شخصه وساتئ!) او ښوول تر دې اندازې پوري پکار دي چي څه کمې باقي پاته نسي مثلاً دا چي که د لمر پرېوتو شخصه مخکي د حیض وینه بنده سوه نو د ماځیگر لمونځ به پر قضا کول واجب وي، او ډېري ښځي د دې حقیقت شخصه بې خبره وي.

(۸) اتم دا چي که د چا دوې بیبیاني وي یا دري یا څلور نو د دوی سره به برابر او په یو اندازه سلوک (چلند، رویه) کوي، چي په حدیث شریف کي دي چي کوم سړی یو طرف ته زیات میلان او رغبت وکړي، دی به د قیامت په ورځ داسي راځي چي بدن به یې کوږ وي او د برابری شخصه مراد دا دي چي دوی ته په څه ورکولو او شپه تېرولو کي د برابری لحاظ وساتل سي، لېکن د دوی سره په محبت او کوروالی کي دا مساوات لازمي نه دي ځکه چي دا کار د چا په اختیار کي نه دي، نبي کریم ﷺ به یوه یوه شپه د یوې یوې بي بي سره تېروله لېکن محبت یې د ټولو شخصه زیات د حضرت عائشې رضي الله عنها سره کولو او فرمایل به یې یا الله! څه چي زما په اختیار کي دي په دغه کي زه په پوره توگه کوشش کووم، لېکن په زړه باندي زما هیڅ اختیار نسته، او که د یو سړي زړه د یوې ښځي شخصه ولوړي او دې ته ور تلل یې زړه نه غواړي نو پکار دي چي دغه ښځي ته طلاق ورکړي او دا دي خلمخا

په خپل قید کې نه ساتي، چې نبي کریم ﷺ حضرت سودې ؓ ته ځکه طلاق ورکول غوښتل چې هغه ډېره سپینسرې سوې وه، که څه هم د دې په ویلو چې: " زه خپل وار په رضا سره حضرت عائشې ؓ ته ورکوم لېکن ما ته طلاق مه راکوه چې زه د قیامت په ورځ ستا د بیبیو په حیثیت راپورته سم"، نو دوی ﷺ هغې ته طلاق ورنه کړل او وار یې حضرت عائشې ؓ ته ورکړی د هغې سره به دوی شپې پاته کېدی او یوه یوه شپه به یې د باقي نورو سره تېروله.

(۹) نهم دا چې که ښځه نافرمانه سي او دخاوند خبره نه مني نو په نرمی او شفقت سره دې دخبرې منلو ته دمائل کول کوشش کوي که په دې ونه سوه نو خفه دې سي ځیني او بستره دې ځیني جلا کړي او دې ته دې شا کوي بیا که خبره ونه مني نو ودې وهي خو پر مخ دې نه وهي،او دومره په سختی دې هم نه وهي چې یو ځای یې مات سي، او که په لمونځ یا بل دیني کار کې کمې کوي نو دغصې په توګه دې څومره چې کېدای سي د دې څخه خفه سي چې نبي کریم ﷺ تر یوې میاشتې پورې د خپلو بیبیانو څخه خفه سوی وو.

(۱۰) لسم دا چې د کوروالي په وخت دې مخ قبلې ته نه کوي، او د کوروالی څخه اول دې په خبرو اترو، لوبولو مچولو په ذریعه دا مشغوله کړي چې داهم تیاره سي، د نبي کړي ﷺ ارشاد دی چې سړی ته د حیوان په ډول پرښځه ورغورځېدل نه دي پکار بلکې اول دې د قاصد څخه کار واخلی، خلکو د قاصد متعلق پوښتنه وکړه نو دوی ﷺ وفرمایل چې مچول دي، چې شروع کوي نو ودې وایي: بِسْمِ اللهِ العَلِيِّ العظيمِ اَللهُ اَكْبَر اَللهُ اَكْبَر، او که سورت اخلاص ووایي نو غوره ده او دا دی هم ووایي: اَللّٰهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيطانَ وَجَنِّبِ الشيطانَ ما رزقْتَنَا، په حدیث کې دي چې کوم سړی دا دعاء ووایي د ده پیدا سوی بچی به د شیطان څخه محفوظه وي د انزال په وخت دې داآیت په خیال کې راولي وایې دې نه: اَلحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي خَلَقَ مِنَ الْمَاءِ بَشَرًا فَجَعَلَهُ نَسَبًا وصِهْرًا[الفرقان: ۵۴] دغه وخت دې صبر وکړي چې د ښځې هم انزال وسي، د نبي کریم ﷺ ارشاد دی چې درې شیان د سړي د عاجزی نښې دي: یو هغه سړی چې داسې څوک ووینې چې هغه ور سره دوستی کول غواړي او دی د نوم پوښتنه نه ځیني وکړي، دویم هغه چې یو ورور د ده عزت وکړي او دی یې ردّ کړی،د ریم هغه چې د مچولو څخه اول کوروالی شروع کړي، او چې دی خلاص سي نو صبر نه کوي چې ښځه هم خلاصه سي.

حضرت علي ؓ ابو هریره ؓ او معاویه ؓ روایت کړی دې چې د میاشتې په اوله، په پنځلسم او آخري شپه دې کوروالی نه کوي دا مکروه دي، ځکه چې په دې شپو کې شیطان موجود وي او په

وخت د حیض کي دي کوروالی نه کوي بیا هم دحائضې ښځې سره هسي په لغړ کېدلو کي څه حرج نسته، لېکن د حیض د غسل څخه مخکي په هر حال کوروالی صحیح نه دی؛

او که د یو وار کوروالی کولو څخه وروسته دو بله کول غواړي نو پکار دي چي عورت پريولي، او په حالت د جنابت کي که څه خوړل غواړي نو پکار دي چي اول اودس وکړی او کله چي بیده کیږي نو هم دي اودس وکړي دا سنت دي او دجنابت دغسل څخه اول دي نوکان او وېښته نه پرېکوي چي په حالت دجنبوالي کي هغه د ده د جسم څخه جلا نسي، او په کوروالي کي غوره دا ده چي مُنی د ښځي رحم ته ورسوي او د باندي یې نه کړي توی، لېکن که عزل وکړي نوهم صحیح دي (یعني دانزال په وخت کي اندام د باندي راوباسي او انزال یې د باندي وسي) ځکه چي یو وار یو سړی د نبي کريم ﷺ څخه پوښتنه وکړه " چي زما یوه مینځه ده ما ته د مزدوری کار کوي او زه دا نه غواړم چي د دې حمل وسي ځکه بیا کار نسي کولای، نبي ﷺ جواب ورکړی چي عزل کوه که په تقدیر کي وي نو بچی به په هر حال پیدا کیږي څه زمانه وروسته هغه سړی بیا حاضر سو او ویې ویل چي بچی پیدا سو، او جابر ﷺ وایي چي دقرآن او وحي د نزول په وخت کي به عزل کېدلو لېکن د دې منع نه ده سوې.

(۱۱) یوولسم دا چي کله بچی پیدا سي نو په راسته غوږ کي دي آذان ووکړي او په چپه کي دي اقامت وکړي، او په حدیث کي دي چي که داسي وسي نو بچی به دکوچنی مرضو څخه خوندي سي، او ده ته دي ښه نوم کښېښول سي او په حدیث کي دي چي د الله ﷻ په نزد د ټولو څخه غوره نوم عبد الله، عبد الرحمن دي یا د دې په ډول نور نومونه، او د بچی که څه هم د نس څخه وغورځیږي یعني د حمل لوېدلو په صورت کي دي هم نوم خامخا پر کښېږدي، او عقیقه سُنت مؤکده ده او د انجلي د پاره یو بزه (وزه) او د هلک د پاره دوې بزې (وزې) ذبح کول پکار دي، او که توفیق یې د یوې وي نو هم اجازت دي، او حضرت عائشه ﷺ فرمایي: چي د عقیقې د بزې هډوکي ماتول نه دي پکار،

او سنت دا دی چي کله بچی پیدا سي نو د ده په خوله کي دي خواږه ور واچوي او په اوومه ورځ دي وېښته ور وخروي، او د وېښتو د وزن برابر دي سره یا سپین زر په صدقه کي ورکړی، او پکار دي چي دانجلي په پیدا کېدلو دي د کراهت اظهار نه کوي او نه دي د هلک په پیداکېدو د حدّ څخه زیاته خوشحالي کوي چي جشن (غټه خوشالي) جوړه کړي، چي چا ته څه معلومه ده چي خیر د کوم یوه په پیدایش کي دی، او دانجلی پیدایش خو ډېر مبارک دی او ثواب یې زیات دی او نبي کريم ﷺ فرمایي چي د کوم سړي درې لوڼي یا درې خوندي وي، او دی د دوی په وجه مشقت او تکلیف

برداشت کړي او پوره پوره پالنه یې وکړي نو د دې په عوض الله ﷻ پر ده رحمت کوي چا پوښتنه وکړه چې یا رسول الله ﷺ! که دوې وي؟ ویې فرمایل بیا هم، بل چا پوښتنه وکړه که یوه وي؟ ویې فرمایل بیا هم (داسې به وي). او فرمایلي یې دي د کوم سړي چې یوه لور وي دی رنځور دی، د چا چې دوې لوڼې وي دی درونډ بار والادی او د چا چې درې وي د ده اې مسلمانانو مدد کوئ چې دی خو به زما سره داسې په جنت کې وي لکه چې دوې ګوتې دي یعنې دی ما سره یواځې دا نه چې په جنت کې دی بلکې ډېر نژدې هم دی، او فرمایې کوم سړی چې د بازار څخه د خپل بال بچ (کورنۍ) دپاره میوه واخلي کورته یې راوړي نو داسې ده لکه څوک چې صدقه کوي، او پکار دي چې انجلۍ ته یې مخکې په تقسیم کې ورکوي او هلک ته وروسته، څکه کوم سړی چې لور خوشحاله کوي هغه داسې دی لکه د خدای د بیرې څخه چې ژاړي، او دخدای د بیرې څخه په ژړیدونکې د دوږخ اُور حرامیږي.

(۱۲) دوولسم دا چې تر څو پورې ممکنه وي طلاق دې نه ورکوي څکه په ټولو مباحاتو (روا شیانو) کې د الله ﷻ په نزد ناخوښه شئ طلاق دی، (او داسې سړی د الله ﷻ دښمن دي او تکلیف رسول خو په غیر ضروري توګه باندې په هیڅ حالت کې هم جائز نه دي) او که خامخا طلاق ورکوي نو د یوه څخه دې زیات نه ورکوي درې طلاقه پر یوه ځای ورکول مکروه دي، او په حالت د حیض کې طلاق حرام دی او په حالت د پاکۍ کې هم که کوروالی سوی وونو هم حرام دی، او پکار دي چې په وخت د طلاق کې په طریقه د لطف او مهربانۍ یو عذر ضرور وکړی او په غصه کې دې طلاق نه ورکوي او طلاق چې ورکړی نو څه تحفه دې هم ورکړی چې د هغې زړه خوشحاله سي او د ښځې راز دې چا ته نه وایي او دا دی هم چاته نه ښکاره کوي چې دکوم عیب په وجه ده طلاق ورکړی دي.

د یو سړي څخه چا پوښتنه وکړه چې ښځې ته طلاق ولې ورکوې؟ هغه وویل د خپلو ښځو عیب ولې ظاهر کړم، او چې طلاقه سوه بیا دغه پوښتنه ځیني وسوه چې تا طلاق ولې ورکړی دی؟ نو ویې ویل چې د نورو د ښځو سره مې څه کار دی چې خبرې یې کوم.

## فصل

دا چې څه وویل سوه د هغو حقونو په باره کې وو کوم چې د ښځو پر سړو باندې وو، لیکن د سړي حق پر ښځه باندې نور هم زیات دی څکه چې ښځه په حقیقت کې د سړي غلامه وي،او په حدیث کې دي چې که غیر الله ته د سجدې کولو اجازت وای، نو ښځو ته به دا حکم ورکړل سوی وای چې

خپلو خاوندانو ته دې سجدې کوي، او د دې تولو حقونو شخه د سري پر ښځه دا حق دی چې ښځه به په کور کي دننه وسوي، او دخاوند د اجازت شخه بغیر به د باندي نه وځي، او په کرکۍ او چت کي به نه ښکاره کیږي او د همسایه گانو سره به ډېر گډون نه کوي، او د دوی سره به زیات خبري نه کوي، اوبغیر ضرورته به د دوی کره نه ځي، او دخاوند په باره کي به ما سوا د ده د ښوونې شخه نور هیڅ نه وایي.

## دریم اصل: د کسب او تجارت ادبونه

پوه سه! چي هرکله دنیا د آخرت د لاري منزل دی او د دې د قطع کولو دپاره انسان ته د خوراک، څښاک او تن د پټولو د پاره د لباس حاجت دی او د دې شیانو حاصلول بغیر د یو کسب (پېشې او کار) شخه ممکن نه دي نو پکار دي چي د کسب ادبونه هم وپېژني چي کوم سري همېشه او همه تن په کسب د دنیا کي مصروفه او لګیاوي هغه بدبخته دی او کوم چي خپل ځان په کُلي توګه د آخرت پر لاري لګېدلی او د حرص پر ځای د توکّل شخه کار اخلي هغه نېک بخته دی، لېکن اعتدال او مېنځلاري دا ده چي انسان د معاش دپاره په کسب کي هم مشغوله وي او آخرت هم په نظر کي لري، لېکن په دې صورت کي هم پکار دي چي اصل مُدعاء او مقصود یې آخرت وي او د دنیوي معاملاتو سمون او اصلاح د آخرت د کامیابی د پاره زینه جوړه کړي د کسب او تجارت په کومو احکامو او ادابو چي پوهېدل ضروري دي د دغو بیان به په پنځو بابونو کي وي.

## اول باب: د کسب (کار) فضیلت او د هغه ثواب

پوه سه! چي خپل ځان او خپل اهل او عیال د دنیا شخه د بې نیازه ساتلو او په حلاله کته سره د دوی پالنه کول هم د دین په لاره کي په جهاد کولو کي شامله ده او تر ډېرو عبادتونو افضله درجه لري، چي روایت دی:

**روایت:** یوه ورځ نبي ﷺ یو ځای ناست وو چي یو تکړه ځوان د دوی پر خوا باندي تېر سو او په بازار کي یو دکان ته دننه ولاړی صحابه کرام ؓ وویل کاش! که د دې سري داسي سهاروختي پورته کېدل د حق په لاره کي وای؟ نبي ﷺ وفرمایل او داسي مه وایاست ځکه که د ده تلل په دې غرض سره وي چي دی خپل ځان او خپل بال بچ (کورنۍ) د دنیا د محتاجي شخه وساتي یا ځکه چي خپل مور او پلار د چا حاجتمن نه کړي نو پوه سئ چي دی په حقه لاره کي ځي، هو! که د ده مقصد فخر او ناز

د لا پو په خاطر او د دولت تلاش کوي نو دی د شیطان پر لاره روان دی، او وبې فرمایل "کوم سړی چي په دنیا کي د حلال رزق په تلاش کي وي چي حاجتمند نسي او دهمسایه گانو سره نیک سلوک (چلند، رویه) کوي او د خپلوانو سره په نرمی دراومدار کوی د ده مخ به د قیامت په ورځ داسي وي لکه د څوارلسم سپوږمی، او فرمایلي یې دي چي: رښتونی سوداګر (تاجر) به د قیامت په ورځ د صدیقانو او شهیدانو سره پورته کول کیږي، او فرمایلي یې دي چي" الله ﷻ هغه مؤمنان دوستان کوي کوم چي یو کسب اختیار کړي رزق ګټي، او فرمایي چي: که په نصیحت عمل وکړي نو د کسب ګر کسب تر ټولو حلال شئ دي، او فرمایي: چي " تجارت کوئ چي په لسو کي نهه حصې رزق په دي پیشه کي دی،او فرمایي: کوم سړي چي پر ځان د سوال یوه دروازه خلاصه کړي الله ﷻ پر ده اویا دروازې د محتاجی خلاصي کړي.

روایت: او عیسی علیه السلام یو سړی ولیدی پوښتنه یې ځیني وکړه چي څه کار کوې؟ هغه وویل عبادت کووم، دوی ویل خوراک د څه نه خورې؟ هغه وویل زما یو ورور دی هغه ما ته خوراک را کوي، اوبې فرمایل: بیا خو ستا ورور ستا څخه زیات عبادت کوونکی دي، او حضرت عمر رضی الله عنه فرمایي چي د کسب د معاش څخه لاس مه اخله! او دا مه وایه! چي الله ﷻ پخپله روزی رسوونکي دی، ځکه چي الله ﷻ د اسمان څخه د سرو او سپینو زرو باران نه وروی (د هغه د رزّاق کیدلو مطلب دا دی چي لاس او پښې وهونکي ته رزق ورکوي).

لقمان حکیم چي خپل زوی ته کوم وصیت وکړی هغه هم داوو چي زویه! د کسب څخه لاس مه اخله ځکه چي څوک داسي فقیري اختیاروي کومه چي دی خلکو ته محتاج کوي د ده دین هم تنګیږي او (د بې کاری په وجه)دده عقل هم کمزوری کیږي او د ده مُروّت،تنګ باطلیږي،او دنیاور ته د نفرت او حقارت په نظر ګوري، او د یوبزرګ څخه پوښتنه وسوه چي د عابد درجه زیاته غوره ده که د امانتدار سوداګر؟ وبې ویل چي امانتدار سوداګر ته فضیلت حاصل دی ځکه چي دی په جهاد کي مصروف وي، او هغه داسي چي شیطان د تول(په تراوزو کي د یو شئ د تللو ) په وخت او په نورو تجارتي لین دین (کاروبارو) کي د ده د ګمراه کولو پوره پوره کوشش کوی او دی د هغه مخالفت کوي، (نو دا هم یو ډول جهاد دی).

حضرت عمر رضی الله عنه فرمایي چي مرګ خو به په څه نا څه مقام کي خامخا راځي، لیکن زما په نزد غوره مرګ دا دی چي په بازار کي د خپلو بال بچو (کورنی) دپاره په تجارت کي د رزق په ګټلو کي مشغول وي او مرګ ورته راسي، او د احمد بن حنبل رحمه الله څخه چا پوښتنه وکړه چي د هغه سړي

په باره کي ته څه فرمايه چي په مجلس کي د عبادت د پاره ناست وي او وايي چي دالله ﷻ به پخپله رزق را کوي، ويې فرمايل چي دا سړی جاهل دی او د شريعت څخه بالکل نا خبره دي چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي الله ﷻ زما رزق زما د نېزې تر سيوری لاندې ايښې دی يعني په جهاد کولو کي (مطلب دا دی چي په محنت او کوشش کي). .

**قصه**: اوزاعي رحمه الله ابراهيم ادهم رحمه الله وليدی چي د خاشو (خشاک) بار ه+ پر سر اخيستی را روان دی وويل ويل: ته به تر څو پوري د دې کسب بار پورته کوي؟ آخر ستا وروڼه (مؤمنان) په دې محنت او مشقت کي ستا مدد کولو ته تيار دي، ابراهيم ادهم رحمه الله وويل چي بس چپ سه! په حديث شريف کي ارشاد سوی دي چي جنت پر هغه سړي واجبيږي کوم چي په خپل محنت او مزدوري باندي قائم وي او د تکليف ذلت برداشت کوي .

او که يو سړی د سوال په توګه د نبي دا ارشاد په حواله کي پيش کړی په کوم کي چي دوی فرمايي چي: ما دانه دي ويلي چي مال جمع کړئ او سوداګر جوړ سئ بلکي دامي ويلي دي چي د خپل خدای تسبيح بيانوئ او په سجده کوونکو کی سئ. نو عبادت کوئ د خپل الله ﷻ تر آخره وخته پوري، بيا پوښتنه وکړی چي آيا د دې حديث شريف په روی سره دا دليل نسي کېدای چي عبادت ته پر تجارت فضيلت حاصل دی؟ نو د دې جواب دا دی: د چا سره د خپل ځان او اهل وعيال د ګذارې مال دولت موجود وي د هغه د پاره واقعي عبادت ته پر کسب فضيلت حاصل دی او په دې کي د رايي د اختلاف ګنجايش نسته ځکه چي دغه کسب کوم چي د حقيقي کفايت څخه زيات دي دې ته څه فضيلت حاصل نه دي بلکي د خسارې او تاون سودا ده او د دنيا سره د زړه تړلو ثبوت دی او دا هغه ګناه ده کوم چي د ټولو ګناهونو سرداره ده؛ او هغه سړی کوم چي مال او دولت نه لري لېکن د ده د کفايت د پاره په صالحو ذريعو او اوقافو او نورو سره حلال مال ور رسول کيږي، نو د ده د پاره زياته غوره دا ده چي دمعاش په کسب کي نه ومبتلي او د دې اطلاق پر څلور قسمه خلګو کېدای سي:

اول هغه سړی کوم چي په داسي علم کي مشغول وي چي خلګو ته څه ديني نفع ځيني حاصليږي، مثلاً د شريعت علم د دين دفائدې دپاره او د طب علم د دنيا د فائدې د پاره. دويم هغه سړی چي د قاضي پر عهده باندي فائز وي يا د اوقافو په بندوبست کي مشغول وي او دغه سړی د خلګو د اصلاح کار کوي

دريم هغه سړی کوم چي په داسي خانقاه کي په اورادو وظائفو کي مشغول وي او ظاهري عبادتونه

کوي کوم چي وقف کړی سوي وي. څلورم هغه سړی د کوم په باطن کي چي د صوفیانه احوالو او مکاشفاتو لاري خلاصي سوي وي (یعني چي دسلوک منزلونه قطع کوي او د تصوف اعلی مقام ته رسېدلی وی) داسي سړي ته د معاش په کسب کي د لوېدلو څه ضرورت نسته، په دې شرط چي د دوی د کفالت ذمه واري نورو خلکو په رضا سره قبوله کړې وي، او زمانه داسي وي چي خلک د داسي خلکو د کفالت د پاره د احسان اچولو څخه بغیر او هغه ورته د سوال د لاسونو اوږدولو څخه ماسوا په دا ډول امداد او کفالت باندي راضي وي او د اسي خلکو ته د رزق رسولو دپاره شوق منده وي کوم چي په خانقاوو کي دخدای په یادولو کي شپه او ورځ مستغرق وي، څنګه چي د یوبزرګ درې سوه شپېته دوستان (یعني مریدان وو) ده به لړاو ډېر تول وخت په عبادت کي تېروی او روزانه به د شپې د یو تن ځای ته ورتلو شپه به یې تېروله او دا ذمه واري قبلول د ده د ملګرو د طرف څخه ګواکي عبادت وو چي دغه بزرګ ته به یې د عبادت د پاره فراغت حاصلولو، او دا هغه شئ دي د کوم په وجه چي دخیر او برکت دروازي دنیا ته خلاصیږي، دغه ډول یو بل صاحب وو د هغه دېرش دوستان وو او د ده معمول دا وو چي د میاشتي یوه یوه ورځ به یې د یوه یوه سره تېروله او په دي ډول به ټول وخت په عبادت کي مشغول وو، لېکن که زمانه داسي وي چي دسوال او د محتاجي د ذلت د زغملو څخه ماسوا د چا د مائل کېدلو امکان او احتمال نه وو (یعني بغیر د غوښتلو څخه او منت احسان اچولو څخه بغیر څه نه ورکوي ) نو بیا کسب غوره دی، چي سوال کول پخپل ځای په فواحشو کي شامل دي، او صرف د انتهائي ضرورت په وخت کي حلا ل دی، لېکن کوم سړی چي دعلم او فضل لوړ مقام ته رسېدلی وي او د کوم علم چي د خلکو دپاره زیات فائده مند وي او خلک فائده ځیني اخلي او په طلب د رزق کي د ده سپکوالی هم نه کېږي نو په دې صورت کي موږ ویلاسو چي کسب نه کول د ده دپاره زیات مناسب دي، لېکن هغه سړی چي د کوم سره د عبادت څخه ما سوا نور هیڅ نه وي (او د سوال ذلت پورته کولو څخه بغیر ده ته دخوراک څه نه ملاوېږي) د ده دپاره لازمه ده چي د کسب مشقت هم برداشت کوي او عبادت هم کوي، لېکن هغه سړی کوم چي دکسب سره سره خپل زړه د الله ﷻ سره مشغول ساتلای سي هغه ته لازماً کسب جاري ساتل پکار دي ځکه چي د ټولو عبادتونو روح خو په اصل کي د الله ﷻ ذکر دی او کوم سړی چي د کسب په مصروفیت کي هم الله ﷻ یاد ساتي دغه ډېر پاک ډوله عابد دی، او د کسب سره خو الله ﷻ یاد ساتل هم بالکل ممکن دي.

## دویم باب: د کسب او تجارت اروند علم حاصلول

پوه سه! چي دا بحث خاص ډېر اوږد دی او د دې پوره ذکر موږ پخپلو د فقهي په کتابونو کي کړی دي بیا هم په دې کتاب کي د څو انتهائي اهمو کارونو وضاحت ضروري معلومیږي، نو د دغو ذکر موږ دلته کوو، د دې د پاره چي کوم سړی څه نا څه د دې سره واقف وي نو هغه د یو مشکل په راپېښېدلو د نورو څخه پوښتنه خو وکړي ځکه چي کوم سړی د دې بنیادي حقیقتونو څخه هم بې خبره وي هغه یقیناً په حرامو کي مبتلا کیږي نو د ده دومره شعور هم نه وي چي د چا څخه مشوره او لارښوونه حاصله کړي

کسب په عامه توګه سره د شپږو معاملاتو سره متعلق وي: (۱) بیع (۲) سُود (۳) سَلَم (۴) اجاره (۵) قرض (۶) شراکت، نو د دې ټولو عقدونو شرطونه دا لاندي دي:

**(۱) بیع:** اول عقد د بیع دی او د دې اړوند علم ازده کول فرض دي چي د دې څخه د خلاصون هیڅ صورت ممکن هم نه دي، په دې وجه به حضرت عمر ﷺ بازار ته تلو هغه خلګ به یې په درو وهل کوم چي به د بیع د علم حاصلو څخه بغیر تاجران جوړ سوي وود دوی وینا وه چي یو سړي ته نه دي پکار چي دکان خلاص کړي کښېني تر څو پوري چي اول یې د بیع متعلق علم نه وي حاصل کړی، دی به په پوه یا په ناپوهي سره په سُود خوري کي مبتلا سي، پوه سه! چي دبیع درې ارکان دي:

(۱) اخیستونکي او خرڅوونکی، دې دواړو ته عاقد وایي، (۲) د تجارت مال مثلاً سره زره او سپین زر (یا بل مال) او نور او دې ته معقود وایي، (۳) او دریم رکن پخپله لفظ د بیع دی.

**اول رکن:** کوم ته چي عاقد(عاقدین) وایي د دې امر مقتضی دي چي د پنځه قسمه خلګو سره معامله ونه کړای سي:

(۱) د نابالغ کوچني سره (۲) د لېوني سره (۳) د مینځي غلام سره (۴) د ړوند سره او (۵) د حرام خور سره، اوس په دوی کي تر څو پوري چي د نابالغ بچي تعلق دی د ده سره بیع د امام شافعي ﷺ په نزد حرامه ده که څه هم د ولي اجازت ده ته حاصل وي او داحال د لېوني د معاملې دي چي که اخیستونکي د دوی څخه څه واخلي دغه که ضائع سي نو تاوان به یې پخپله پر دې اخیستونکي وي لیکن څه چي دی لېوني ته ورکړي دغه که ضائع سي تاوان به یې پر لېوني نه وي، ځکه چي د لېوني سره معامله کول پخپله خپل مال ضائع کول دي، د مینځي او غلام بیع هم تر هغه وخته پوري باطله ده تر څو پوري چي دوی ته د مالک اجازت حاصل نه وي او د قصاب د کاندار، او نانوایي او نورو غلام

او مینځه چي تر څو پوري د دوی اجازت حاصل نه کړي هيڅ معامله به ور سره نه کوي لېکن که یو عادل سړی دا وايي یا هسې هم په بنار کي دا خبره مشهوره وي چي ملکانو بې دوی ته د معاملې اجازت ورکړی دی نو بې شکه معامله ور سره کولای سي لېکن (څنګه چي په دې کي د ملک ذاتي اجازت په هر حال شامل دی په دې وجه) د اخيستلو تاوان به هم پر دوی وي او د ورکولو تاوان هم د دوی څخه تر هغه وخته پوري نسي اخستلای تر څو چي دوی آزاد نسي،

د راتنه معامله هم باطله ده لېکن که هغه یو بينا (يعني جوړ چي ړوند نه وي) خپل وکیل مقرر کړی نو بیا چي څه دی اخلي د تاوان ذمه وار به یې هم وي څکه چي دی مکلف دی او آزاد هم دی، او د حرام خور سره هم معامله جائز نه ده چي په دوی کي په عامه توګه سره غل، ډاکو، ظالم، سود خور، شراب خرڅوونکی، لوټ کوونکی، لاري شکوونکی (ډاکو)، نوحه خوان (يعني پر مړو ژړا کوونکی) ډول وهونکی، دروا غجن ګواه او رشوت خور قسم خلک شامل دي، او د دې ټولو سره معامله کول ناجائز دي، لېکن که یې وکړي او په تحقيق سره معلومه سي چي دغه مال د ده ذاتي ملکيت دی، نو حرام نه دي او که معلومه سوه چي په اصل کي د ده ملکيت نه دی نو معامله باطله ده، او که مشتبه وه او په ډېر تحقيقق سره معلومه سوه چي د مال اکثره حصه حلاله او کمه د حرامو ده نو معامله به صحيح تصور کيږي خو بیا هم د شبهې څخه به ورته خالي نسي ویلای، او که زیات حرام او کمتره حلال وي نو په ښکاره خو دې ته باطل نسي ويل کېدای، لېکن دا شبه داسي ده چي حرامو ته ډېر نژدې رسيږي، او ښکاره ده چي دا ډېره خطره ده، پاته سو یهودي او نصراني نو د دوی سره لين دين (کاروبار) خو جائز دی، بیا هم (د څيني قيدونو او شرطونو سره مثلاً) قرآن پاک او مسلمانه مينځه او غلام پر دوی نسي خرڅولای او که دغه اهل حرب وو نو د جنګ وسله هم پر دوی نه دي خرڅول پکار څکه چي دا معامله د مذهب په روی سره هم باطله ده او خرڅوونکي به ګناه ګاره هم وي، څنګه چي اهلِ اباحت بې دینه دي په دې وجه د دوی سره تجارت هم صحيح نه دی، بلکي د داسي خلکو قتل او د دوی مال اخيستل صحيح دي، دا خلک د هيڅ شئ ملکان نه دي د دوی نکاح صحيح نه ده او د دوی حکم د مرتدينو دي، کوم سړی چي شرابي یا بې لمانځه وي یا د نامحرمو ښځو سره کښېني یا په "عنوان د اسلام" کي د ذکر سوو شک وشبهو کي یوې ته صحيح وايي دغه ته زنديق وايي، د ده سره ديو ډول معاملې او نکاح نه دي کول پکار.

**دويم رکن**: مال دی کوم چي د معاملو ذريعه ده په دې کي د شپږو شرطونو خيال ساتل پکار دي، اول شرط دا دی چي دغه مال نجس نه وي، دسپي، خنزير، او د فيل هډوکي، شراب، دمړدارو غوښه او

ولاړ که د دې ډولو تجارت باطل دی، هو! په پاکو غوړو کې که نجاست ولوېدی نو بيع يې حرامه نه ده دغه ډول کومه جامه چې گنده سي د دې بيع هم صحيح ده، د مشکو، وربښمو، نافې، او د وربښمو د چينجې تجارت صحيح دی ځکه چې دا پاک دی دوېم شرط دا دی چې په مال کې څه فائده وي، چې مقصد خو نفع اخيستل دي، د موږک، مار، لړم او د مچکې د حشراتو بيع باطله ده، د غنمو د يوې دانې يا بل داسي شي چې يو معتدبه فائده ځيني نه وي بيع يې باطله ده، د پيشي، د صسلو د مچمچې، د پړانگ، زمری او شرمښ او نورو چې په ذات يا په څرمن کې يې نفع وي د دې بيع صحيح ده، دغه ډول د طوطي، طاؤس او د ښکلي مرغيانو بيع جائز ده ځکه چې په دوی کې نفع دا ده چې بنده د دې په ليدلو خوشحاله کيږي، د باجه، رباب په ډول شيانو تجارت ځکه باطل دی چې د دوی څخه نفع اخيستل حرام دي او د دوی نفع کالعدم ده، د کوچنيانو د بازۍ د پاره چې د خاورو کومي ناوکياني (د بازۍ شيان) جوړيږي که دغه د حيواناتو په شکل کې وي نو ماتول يې واجب دي او د دوی قيمت حرام دی، ليکن درخته، پايې او نور جوړول صحيح دي، پرکوم لوښي يا جامه چې يو تصوير جوړ سوی وي د هغه تجارت صحيح دی نو د دې جامې څخه بالښت تلتک (برستن) جوړول صحيح دي ليکن اغوستل يې صحيح نه دي.

دريم شرط دا دی چې مال د خرڅوونکي ملک وي ځکه چې که د بل مال بغير د هغه د اجازت څخه خرڅ کړی نو حرام به وي، که څه هم د خاوند يا پلار يا د زوی مال وي او که د خرڅولو څخه وروسته مالک اجازت ورکړی بيا به هم تجارت حرام وي ځکه چې اجازت اوّل پکار دی.

څلورم شرط دا دی چې داسي شئ خرڅ کړی چې د خرڅولو څخه وروسته يې بل ته حواله کولای سي، کومه مينځه، غلام چې تښتېدلی وي، ماهی په اوبو کې، مرغی په هوا کې، کوچنی په نس کې، نطفه د آس په ملا کې، د دې شيانو تجارت نه صحيح کيږي ځکه چې دا شيان اخيستونکي ته نسي سپارلای، کوم مال چې د حيوان پر شا باندې يا شيدې په غولانځه کې وي د هغو تجارت هم نه صحيح کيږي ځکه چې تر څو پورې شيدې خرڅوونکي ته سپارل سوي نه وي نوی شيدې چې کومي پيدا کيږي په دې کې ملاويږي، د گروکوونکي د اجازت څخه بغير د گرو سوي شئ تجارت باطل دی، کومه مينځه چې دهلک مور وي د دې تجارت په دې وجه غلط دی چې دا خريدار ته حواله کول صحيح نه دي، او دا مينځه چې بچی يې کوچنی وي په دوی کې د يو بيع باطله ده ځکه چې د دوی په مينځ کې بيلتون راوستل حرام دي.

پنځم شرط دا دی چې د مال مقدار او صفت يې معلوم وي د مال نه معلومېدل داسي دي لکه چې يو

سړی ووايي چې يوه بزه (وزه) د دې رمې څخه، يا د جامې يو ثان د دې ټولو څخه چې کوم ته غواړې ستا په لاس يې بندووم، د دې ډول تجارت باطل دی بلکې کوم شئ چې د خرڅولو وي هغه دې جلا کړي خرڅ دې کړي، او که څوک داسې ووايي چې د دې څمکې څخه لس گزه ټکره خرڅووم د کوم طرف څخه يې چې ته غواړې واخله يې نو دا هم صحيح نه ده دمقدار پېژندل هلته ضروري دي کوم ځای چې رانيوونکي عين مال په سترګو نسي ليدای مثلاً اخيستونکي يې په خپلو سترګو ونه ويني او خرڅوونکې ووايي چې ما فلانی شئ پر تا په دومره پيسو خرڅ کړی په څومره پيسو چې فلانی سړی خپله جامه خرڅه کړې ده يا مثلاً داسې ووايي چې د فلاني شئ په برابر وزن سپين زر يا سره زر، اومقدار په اصل کې د دې معلوم نه وي نو دا بيع هم صحيح نه ده، لېکن که داسې ووايي چې دا غنم په دې پيمانه د سروزرو يا سپينو زرو په عوض درکووم او رانيونکي پيمانه ويني نو بيا به تجارت صحيح وي، او د صفت پېژندلو مطلب دا دی چې هغه شئ ويني کوم چې مخکې نه وي ليدلی، (حال دا چې سودا يې کړې وي) يالېدلی وي خو ډېره زمانه مخکې تر دې چې په دې دوران کې هغه شئ ډېر بدل سوی وي او د دې په سبب يې بيع باطل سوی وي، دغه ډول په بوري (گونی) کې بنده دوړېښمو جامه او په اوږو کې دننه غنم د دوی بيع باطله ده، که يو سړی يوه مينځه اخيستله نو ده ته پکار دي چې د سر وېښته لاسونه پښې نور هراندام کوم چې غلامان خرڅوونکی يې ښکاره کوي په ښه ډول دې ويني ځکه چې که په دغو کې يې يو شئ هم ونه ليدی نو بيع به باطله وي، که يو مکان يې اخيستی او يوه کمره (خونه) يې هم کتل هېر سول يا يې قصداً ونه کتله نو بيع به باطله وي لېکن جوز، بادام، دمترو پلی، انارلو د چرگ هگۍ او نور که په پوستکي کې دننه وي د دوی بيع جائز ده چې د دې شيانو د مصلحت تقاضا دا ده چې دوی د پوستکي سره رانيول او خرڅول کېږي (ځکه چې دا په ماتولو ضائع کېږي) او تر ضرورت لاندې دا ومو جوزو او غبرگ پوستکي والا مترو بيع هم جائز ده. شپږم دا چې کوم مال واخلي د قبضې کولو څخه مخکې پر بل خرڅول جائز نه دي.

**دريم رکن:** عقد دی او د دې د لفظ په ژبه سره د ويلو څخه ماسوا چاره نسته يعني د خرڅ په وخت کې به په ترتيب په ژبه سره دالفظ وايي چې: دا شئ زه پر تا خرڅووم، او رانيونکي به وايي چې: ما واخيستی، يا مثلاً خرڅونکي به وايي" دا شئ يا هغه شئ ماتا ته درکړی" اخيستونکی به ووايي چې: ما واخيستی، يا دې ووايي، ما قبول کړو، يا بل داسې لفظ به ووايي په کوم چې د بيع مطلب ادا کېږي که څه هم صريح نه وي، نو که په اخيستلو ورکولو کې که لفظ د عقد يا د دې هم معنی بل لفظ په ژبه سره استعمال نه کړای سو نو بيع به صحيح نه وي لکه چې نن صبا عام رواج جوړ سوی دي

(چي خلک د دې شرط بالکل خیال نه کوي) او غوره خو دا ده چي د معمولي شیانو د پاره هم دا جائز ساتي چي د دې رواج ډېر زیات سوی دی او د امام بوحنیفه رحمه الله او فقه شافعي رحمه الله په روی سره د دې اسبابو پر بناء فتوی صادر کول بعیده نه ده:

اول خو ځکه چي د دې حاجت عام سوی دی، دویم ځکه چي غالب گمان دا دی چي د صحابه کرامو په زمانه کي به هم دا عادت پاته سوی وي، ځکه چي که د لفظ د بیع عادت په تکلف کي شامل وي نو پر دوی به گرانه وای او هغو به دغه نقل کولای، پټ به یې نه پرېښودی، دریم دا چي کله عادت سي نو فعل د قول قائمقام کول یو داسي محال هم نه دی لکه چي د هدیه (تحفه) په سلسله کي ظاهره ده چي څه به هم خلکو نبي کریم ﷺ ته وړل نو د دې ایجاب او قبول تکلف به نه وو، او په هره زمانه کي دغسي را روانه ده، او په کوم مقام چي د فعل او عادت په سبب بغیر د ادا کولو د لفظ د ملکیت څخه حاصلیږي، په داسي حال کي چي عوض یې هم نه وي نو دغه بیعي په معامله کي په خپلو کي عوض یا قمیت موجود وي فقط په فعل سره چي دکوم شئ په ملکیت کي راتلل محال نه وي مگر په هدیه کي د کم یا زیات په مینځ کي فرق نه سو کولای مگر د څه داسي شئ په بیع کي کوم چي قیمتي وي د لفظ ویلو رواج راغلی دی، لکه مثلاً کور، مځکه، غلام، مینځه، ځلروی او قیمتي جامه او نور چي که د دې شیانو په بیع کي لفظ د بیع ونه ویل سي نو دا د ډېرو بزرگانو د عادت څخه مخالف وي، او د صحیح ملک حاصلېدو تصور به نه وي، لیکن غوښه، ډوډۍ، مېوه او نور کوم چي نور څه کم قیمته شیان اخلي نو په دې کي د عادت یا ضرورت پر بناء داجازت ورکولو باعث دا وي چي معمولي شئ او قیمتي شئ په درجو کي مختلف وي، او دا پېژندل ضروري وي چي په دوی کي کوم شئ اخیستل سوی دي د ده شمار په معمولي شیانو کي کیږي او که نه، او په دې کي اندازه کول بالکل ممکن نه وي، او کوم عمل چي مشکل سو، د هغه د پاره د احتیاط لار اختیارول پکار دي، او پوه سه! چي یو سړی مثلاً یو بار دغمنو اخلي او بیع نه کوي حال دا دی چي دا د معمولي شیانو څخه ده، نو د بیعي څخه بغیر دا د ده ملکت ته نه راځي، بیا هم د دې خوړل یا یې پخپل تصرف کي راوستل به حرام نه وي، ځکه چي ده ته خو په هر حال حواله سوی دي او په دې بناء ورته اباحت ضرور حاصل دی که څه هم چي ملکیت نه دي حاصل سوی نو که په دې سره دی میلمستیا وکړي ځکه چي د مالک ده ته حواله کول په قرینه د حال سره دلیل دی چي بس دې حواله کولو دا لاره حلاله کړې ده، لیکن په شرط د عوض، یعني د عوضانه شرط پکښي لازمي دي، او که مالک په صفا لفظونو کي ووایي چي زما دا غله پخپلو میلمنو وخوره بیا تلوان را کړه نو داسي به صحیح وي او تلوان

ورکول به واجب وي، او کله چې یې خپل فعل په دې امر دلیل وګرځولونو هغه حاصل سو، نو د لفظ دېیمي نه ویلو اثر دا دی چې دغه غله به داخیستونکي ملکیت نه وي، نو که پر چایې خرڅول غواړي نو نه سي یې خرڅولای، او که مالک غواړي نو دغه مال واپس اخیستی سي مخکي د دې څخه چې دغه اخیستونکي یې لاخوراک نه وي شروع کړي، او پوه سه! چې بیع په دې صورت کي صحیح کیږي چې یو بل شرط ور سره نه وي لګېدلی، مثلاً یو سړی ووایي چې زه دا لرګی په دې شرط باندې اخلم چې دا به زما کورته رسوې، یا دا غنم ستا څخه اخلم په دې شرط چې دا به وړه کوې یلما ته فلانی شئ قرض را کړه یا داسي بل شرط ور سره ولګوي نو دابیع به باطله وي، لیکن شپږ شرطونه داسي هم دي د کومو لګول چې صحیح دي:

یو دا چې په دې شرط یې ور باندې خرڅووم چې فلانی شئ را سره ګرو کړې، یا دا چې فلانی د ګواه په توګه پیش کړې یا فلانی سړی ضامن کړې یا قیمت فوراً او داوخت را کړې ځکه چې دآینده یو وخت تاکل ما ته منظور نه دي، یا دواړه (راتیونکی او خرڅوونکی) دا شرط وکړي چې په دې ورځو کي دننه به د فسخ د بیعي اختیار دواړو ته حاصل وي لیکن د دې ورځو څخه زیات به صحیح نه وي، یا غلام مینځه په دې شرط خرڅه کړی یلواخلي چې لیکل لوستل کولای سي یا په یو بل کسب باندې پوه وي، په دې شرطونو بیع نه باطلیږي.

**دویم عقد:** سود دی کوم چې په نقد او جنس دواړوه کي وي، او د نقدو په بیع کي دوه شیان حرام دي: یو خو په قرض خرڅول ځکه چې د سرو زرو په عوض سره زر او دسپینو زرو په عوض سپین زر خرڅول هغه وخت صحیح نه دي تر څو پوري چې واقعي موجود نه وي او د یو بل د جلا کېدو څخه مخکي قبضه ونه کړي نو دا صحیح نه وي ځکه چې که په دې مجلس کي عملاً قبضه ونه کړي نو بیع به باطله وي، او دویم دا چې که د جنس په عوض جنس خرڅ کړی نو په دې کي زیاتي کول حرام دي (یعني زیات وصولول حرام دي مثلاً لس سېره غنم ورکړی چې مال به پنځلس سېره را کوې) ځکه چې دا صحیح نه دي چې ثابت (روغ) دینار د تکړې سوي دینار په عوض خرڅ کړي (او مقصود ځیني د اصل په مقابله کي زیات وصولول وي) او کره (خالص، اصلي) دینار د کوټه په عوض په زیاته خرڅول حرام دي، ځکه کره (خالص) کوټه او ثابت او تکړي سوی هر څه چې وي برابر برابر یې خرڅول جائز دي، او که جامه د کره (خالص) دینار په عوض واخلي او بیا دغه جامه د دوو ماتو دینارو په عوض خرڅوي نو دا جائز دي او مقصود په حاصلیږي، او د هریوه نوم کلی سره په کومو کي چې د سپینو خلط وي د خالصو سرو زرو یا سپینو زرو په عوض خرڅول نه دي پکار،

بلکي د هريوه به د هريوه په عوض هم نه خرڅوي، او د دې په عوض دي بل څه واخلي هغه دي خرڅ کړي.

**دريم عقد:** دې ته سَلَمْ وايي او په دې کي د لسو شرطونو خيال ساتل لازمي دي:

(۱) د عقد په وخت کي به صاف صاف وايي چي دا سره زر يا سپين زر يا دا جامه، مطلب دا چي هر څه شئ چي وي د ده په باره کي به په ښکاره توګه ووايي چي دا شئ تا ته په توګه د سلم درکوم د غنمو د يوه بار په برابر، او د دې سره به د غنمو خصوصيات بيان کړي داسي چي فريق ثاني ته معلومه سي او هغه دي ووايي: چي ما داسودا قبوله کړه، او که د لفظ د سلم په بدله داسي ووايي چي په فلاني فلاني صفت سره موصوف شئ ما واخيستی بيا هم صحيح ده.

(۲) دويم شرط دا دی چي کوم شئ ورکول وي هغه صرف په اندازه سره وونه کړي بلکي ناپ تول دي وکړي چي که بيا د دغه شئ د اخيستلو ضرورت محسوس سي نو په دې پوه او خبر وي چي ما کوم شئ ورکړی وو، او په کوم مقدار مي ورکړی وو.

(۳) دريم شرط دا دی چي په دغه مجلس کي رأس المال حواله کړي.

(۴) څلورم شرط دا دی چي سلم به د داسي شيانو ورکوي چي په وصف سره د هغه حال ښکاره کيږي، مثلاً: دانې، دوډۍ، وړۍ، وريښم، شيدې، غوښه، او څارويان او نور، ليکن کوم شئ چي د مختلفو شيانو څخه جوړ وي او د دغه مختلفو شيان جلا جلا مقدار معلوم نه وي لکه چي خضاب (نکريزي) مرکب وي د څو شيانو څخه، يا مثلاً لبنده (غشئ) دی، يا لکه پيزار، موزې او تراشل سوی غشئ او نور نور د دې سلم باطل دی، ځکه چي د دې وصف ظاهر نه دی، هسي خو دا صحيح ده چي د دوډۍ سلم صحيح دی حال دا دی چي په دې کي هم د مالګي او اُوبو ګډون وي، ليکن په دې کي د اوبو او مالګي مقدار مقصود بالذاته دي او په دې سره سلم ورکوونکي ته د څه جهالت اظهار نسي کيدای.

(۵) که په وعده بلندي يې اخلي نو دوخت تعين صحيح صحيح پکار دي "چي په فلاني تاريخ يا فلانی ورځ به يې درکووم" داسي دي نه وايي چي دفلانی فصل په پخيدلو به يې در کرم ځکه چي په دې کي فرق کيدای سي، او که ووايي چي په نوروزکي به يې در کړم او نوروز هلته هم مشهور او معروف وي يا ووايي چي "جمادی" ته به يې اداء کړم نو دا به صحيح وي ليکن صرف د جمادی ويلو په صورت کي جمادی الاوّل به متصورّه وي نه چي ثاني.

(۶) سلم دي په داسي شئ کي ورکوي کوم چي د سودا خلاصولو په وخت کي موجود وي او که په

میوه اونورو کي سلم ورکوي کومه چې لا تراوسه تیاره نه وي نو دغه سلم به باطل وي هو! که غالبه دا وه چې فلانی وخت ته به واقعي پخه او تیاره سي نو صحیح دي لکن په دې صورت کي هم دا امکان پاتې پاته کیږي چې که د یو حادثې پر بناء په دې کي تأخیر واقع سي نو په دې حالت کي د رانیونکي (خریدار) خو بنه ده چې که غواړي مهلت دي ورکړي او کنې معامله دي فسخ کړي خپل مال دي واپس واخلي.

(۷) دا خبره دي مخکي وکړي چې مال به رانیونکي ته کوم ځای حواله کوي آیا په ښار کي یا په کلي کي یا په بل ممکن ځای کي، چې وروسته خامخا اختلاف پیدا نسي او څه جګړه راپورته نسي.

(۸) د یو شئ طرف ته به د عینِ اشاره څخه کار نه اخلي چې د دغه باغ انګور یا د دغه مځکي غنم ځکه چې دا باطله ده.

(۹) په داسي شئ کي سلم ورکول نه دي پکار کوم چې په غیر معمولي توګه ډېر ګران، نایابه (نه پیدا کیدونکی) وي او عمومًا ملاوېږي نه، مثلاً دغتي ملغلري دانه چې مثل یې موجود نه وي یا ښایسته ښکلې مینځه یا ډېر ښایسته هلک او نور.

(۱۰) په یوه غله کي به سلم نه ورکوي کله چې یې رأس المال هم غله وي لکه اوربشي، غنم، جواري او نور، لکه څنګه چې د دوی سلم ورکول نه دي پکار.

**څلورم عقد**: دې ته اجاره وایي، د دې دوه رکنه دي: (۱) أجرت (۲) منافع. او د عاقد او عقد څخه مراد هغه څه دي کوم چې موږ په بیع کي ښکاره کړي دي، لېکن مزدوري یا اُجرت معلومول ضروري دي لکه چې موږ یې په بیع کي بیان کړی دي، که یو سړی د کور تعمیر په کرایه ورکړی نو د تعمیر د نامعلومېدلو په وجه به اجاره غلطه وي، او که داسي ووایي چې لس درهمه ولګوه آبادي وکړه، بیا هم صحیح نه ده، ځکه چې تعمیر في نفسه مجهول دی، قصاب ته د بزې پوستولو په اُجرت کي څرمن (پوست) ورکول او د اُوړه کولو په اُجرت کي چوکر ورکول یا لږ غونډي اوړه ورکول صحیح نه دي، کوم شئ چې د مزدور د کار کولو څخه حاصلېږي، په دغه کي مزدوري صحیح نه ده که یو سړی داسي وایي چې دا دکان ما په یوه روپۍ میاشتنۍ کرایه در کړی نو دا معامله به ځکه ناجائزه وي چې په دې کي د اِجارې د ټولې مُدې تعین نسته بلکي داسي ویل پکار دي چې د یو کال یا دوو کالو د پاره مې په اجاره در کړی، یعني د مُلت تعین ضروري دي.

دویم رکن څنګه چې بیان سو منفعت دی، پوه سه! چې کوم امر مباح وي او دا هم معلومه وي چې په دې کي به څه محنت وي او په دې کي به د نیابت ګنجائش وي، نو په دې کي اجاره صحیح ده او په

دې کي د دا پنځوشرائطو خیال ساتل ضروري دي.
(۱)اول شرط دا دی چي په دې عمل کي قدر او قیمت وي رنځ اومحنت وي که د دکان د ښایسته کولو د پاره یې د چاغله دانه یا د جامې وچولو د پاره څه درختي یا محض د بُویلو د پاره یې سبب په اجاره واخیستی نو دا اجاره باطله ده ځکه چي د دې کارنونو څه قدر نسته، او د د دې مثال دا دی لکه د غنم یوه دانه خرڅول. که یو منډی والا عزت او دبدبې والا وي، او د ده په دلالی سره مال خرڅېږي نو دمزدوری تاکل چي د ده په وجه سره مال خرڅ سي نو دا اجاره به باطله او مزدوری به حرامه وي چي په دې کي یو ډول تکلیف اومحنت نسته، بلکي دمنډی والا او دلال مزدوري هغه وخت جائز کیږي، کله چي دا مقرره سي چي دومره خبري به کوي او دومره مقدار به ځي چي د تکلیف او محنت او وخت احساس پکښي وي، لیکن په دې کي به هم د اجرت د مثل څخه زیات واجب نه وي، او دا چي کوم عادت جوړ سوی دي چي مثلاً پنځه روپی په سلو (سل فیصده) کي اخلي او دا معامله او کاروبار پوره کوي (یعني دا معامله فیصله کوي) د مال د مقدار یا قیمت ته په کتني سره چي محنت او مشقت لږه پکښي دخل نه وي نو دا حرام دی، نو په دې طریقه سره د منډی والاوو او دلالانو مال چي کوم په دې طریقه په لاس ورسي حرام دی او دا خلک د دې عذاب څخه په دوو طریقه سره خلاصېدای سي، او ل دا چي څه دوی ته ورکول سي (بغیر د څه حجت او باتو، حیلو څخه یې ) قبول کړي او په بحث او تکرار کي نه پریوځي، او څه چي طلب کوي د خپل محنت او کړني مطابق یې طلب کوي نه دا چي د مال د مقدار او قیمت مطابق چي هغه زیات وي نو دوی هم زیات غواړي، دویم دا چي پیشگی تړون وکړي چي کله دا شئ خرڅ کړم نو دومره به اخلم مثلاً یو دینار به وصولوم او هغه د مال خواند یې ومني چي درکووم به یې، لیکن ونه ووایي چي د خرڅلاو د قیمت څخه به پنځه فیصده وصولوم، ځکه چي دا مجهوله دي چي د خرڅلاود قیمت تعین لا تر اوسه سوی نه دي، نو د ده دا وړنا حرامه ده او د ده د محنت او مشقت څخه د زیاتو اخیستلو څه ضرورت نسته، ځکه چي د ده حق نه دی.
(۲) اجاره په نفع باندي کول پکار دي نه دا چي عین په دې کي داخل کړي مثلاً یو سړی باغ یامیوه داره درخته په اجاره اخلي چي د دې څخه میوه حاصله کړي یا یوه غوا په اجاره اخلي چي شیدې به یې ده ته ملاوېږي یا غوا بل ته حواله کړي چي دې ته گیا (وابنه) ورکوه! او نیمي شیدی یې اخله!، نو دا ټول باطل دي ځکه چي وا بنه، شیدې دواړه غیر واضح اومجهول دي لیکن که بنځه په اجاره واخلي چي دا به کوچني ته شیدې ورکوي نو داجائز دي ځکه چي په دې صورت کي مقصود د

کوچنی حفاظت کول دي او شیدي تابع دي لکه د کاتب سیاهي (رنګ)، او د درزي تار، او په دې قدر سره متابعت د عمل جائز دی.

(۳) د داسي کار اجاره به کوي چي سپارل ورته ممکن وي او مباح وي (یعني چاته چي دغه کار حواله کوي هغه د دې کار مناسب وی) مثلاً یو ضعیف سړي ته داسي مزدوري حواله کړي چي هغه یې کولای نسي نو دا غلطه ده که حائضې ښځي ته اجرت ورکړي چي مسجد جاروکړه نو دا باطله ده ځکه چي دا فعل حرام دی، که په دړواخویې غاښ وایستی او مزدوري یې ورکړه یا د کوچني په غوږکي د سوري کولو اُجرت نو دا احرام دي، دغه ډوله هغه خلک کوم چي په لاسونوکي ستني جګوي نقش او نګار پر جوړي او بیا پکښې رنګ وراچوي د دوی دا عمل او مزدوري دواړه حرام دي، او د هغه خولی (توپی) جوړونکي مزدوري کوم چي د وربښمو ښځه سړو ته خولی (توپی) جوړوي یا هغه درزیان (خیاطان) کوم چي د اطلسو او کمخوابو صدریانې (واسکټونه) او چپنې جوړوي په حرامو کي داخله دي او په دې باندي اجرت هم باطله دي، دغسي که یو سړی په اجرت باندي نوکر (مزدور) کړي چي د بازیګرانو په ډول پر رَسُو (رسیانو) تلل، ټوپونه وهل ورته ازده کړي نو دا حرام دي او کوم سړی چي داسي کوي هغه خپل ځان په خطره کي اچوي او ده ته کتونکي به هم د ده په خون (ګناه) کي شریک وي ځکه چي که دی یې تماشې نه کوي نو هغه به ځان په خطره کي نه اچوي، او کوم سړی چي یو بازیګر ته یو شئ په انعام کي ورکوي دی ګناهکاره دي، دغه ډول مسخره کوونکی سړی، ډم، پر مری ژړا کوونکی، او هجوه (بکواس) ویونکي شاعر ته څه په انعام کي ورکول حرام دي، او قاضي ته د حکم کولو دپاره یا ګواه ته د ګواهی کولو د پاره اجرت ورکول هم حرام دي، لېکن که قاضي یو حکم نامه اویا بل شئ ولیکي او د خپل دې کار اجرت غواړي نو جائز دي ځکه چي د دې لیکل پر ده فرض نه دي، لېکن په دې کي دا شرط ضروري دي چي نور دي د دې تمسّکاتو د لیکلو څخه نه منع کوي، لېکن که دی یې منع کوي او پخپله لیکل غواړي یا د داسي تمسّک د لیکلو لس دیناره طلب کوي کوم چي په یو ساعت کیږي لیکل کیږي نو دا به حرام وي، لېکن که دی نور نه منع کوي لېکن دا شرط ولګوي چي پخپلو لاسو د لیکلی تمسّخ د لسو دینارو څخه به کم نه اخلی، نو دا جائز دي، او که لیکونکی یې بل څوک وو او قاضي ته په دې صرف دستخط (لاسلیک) کول وو، او قاضي د دې دپاره هم څه اخیستل غواړي او وایي چي دا دستخط او مهر لګول پر ما واجب نه دي نو دا حرام دي، ځکه چي صحیح دا ده چي دومره کار کول کوم چي منورو د حقونو د محکم کولو باعث دي پر قاضي واجب دي لېکن د قاضي دو کیل اجرت حلال دی.

په دې شرط چې وکالت د داسې چا څخه نه کوي کوم چې پېژني چې دی غاصب دی، بلکې وکیل ته خو محض محقق کېدل لازم دي یعني د مخکې څخه معلومه که نه وي نو په تحقیق سره دې دا معلومه کړي چې آیامتعلقه سړی غاصب خو نه دی؟ او بیا دا چې د رواځجن نه دی، د فریب او مکارۍ څخه کار نه اخلي، د حق پټولو کوشش نه کوي، بلکې کوشش دا کوي چې باطل لیرې کړي،اوکله چې حق ظاهر سي نو خاموش سي، لېکن د داسې شئ څخه انکار کول صحیح دي د کوم په اقرار سره چې حق باطل کېږي، لېکن هغه سړي کوم چې د دوو فریقینو په مینځ کي د ثالثي (دریمګړي) نرض پوره کوي د ده د پاره دا هیڅ کله جائز نه دي چې د دواړو فریقینو څخه یو څه واخلي، (څکه چې جګړه خو د دوو تنو په مینځ کي وي او فائده به یې خامخا یوه ته رسیږي نو د بل خو هسې هم نقصان وسو نو لاندې به هم څه څیني اخلي؟ دا کوم انصاف دئ) لېکن که د یو فریق د جانب څخه څه ډېر زیار کول ور ته پرېوتل چې محنت او مشقت یې پکښې برداشت کړو چې واقعي څه قدر او قیمت یې وو نو مزدوري به حلاله وي، بیا همدا شرط به خامخاوي چې درواغ ونه وایي کوم چې حرام دي اومکر او فریب ونه کړي او څه چې حق وي هغه په طرفینو کي د چا څخه پټ نه ساتي، او هر یوه ته دې د درواغو دمکیاتي نه ورکوي چې هغوی په دې دمکیاتو کي راسي په زوره صلحې ته راضي سي، حال دا دی چې د حال د حقیقت د ښکاره کېدو په صورت کي د دوی صلحې ته د راضي کېدو سوال لانه وي، (یعني چې په حقیقي حال خبر سي نو دوی بیا صلحې ته ورنژدې کېږي لانه، یعني دامعلومه وي چې یو ظالم او بل مظلوم دی) او د داسې ثالث (دریم ګړي) صلح کولو ته صلح نه ویل کېږي، او که د ثالث غالبه دنده داوي چې د حیلو،درواغو، مکر وفریب څخه خالي نه وي نو د ده اُجرت حرام دی، او که ثالث ته کله دا خبره معلومه سوه چې یو فریق پر حقه او بل پر ناحقه دی، نو د ده د پاره دا جائز نه دي چې اصل حقدار په چالاکي سره دې ته راضي کړي چې هغه د خپلې حصې څخه په کمه راضي کړي صلح وکړي، لېکن که معلومه سوه چې دا یو فریق ظلم کوي نو بې شکه چې په حیلو حوالو پېرولو او دمکیاتو سره یې د ظلم څخه بند کړي نو د دې اجازت ده ته حاصل دی، او کوم سړی چې دیندار وي او په دې حقیقت پوه وي چې د ده د ژبې څخه د وتلې هر هر لفظ او خبرې به د ده سره حساب کېږي چې فلانی خبره دې په څه غرض کړې ده، درواغ دې ویلي وو او که رښتیا او نیت دې صحیح وو که باطل نو د داسې سړه د پاره ممکنه نه ده چې دوکالت یاثالثی فرائض ادا کړي او یو دول فیصله صادره کړي، لېکن د امیرانو او دولتمندانو وکالت کوونکي ته که په دې کار سره یو محنت او تکلیف کول پرېوځي نو اُجرت اخیستلای سي او حلال دي په دې شرط چې په

کار کي واقعي تکلیف او زیار کول وي، او د مرتبې وقار او فخر په عوض دې أجرت نه اخلي، که محض د ظالم د کمیلی د پاره یاد یومیه حرام اجرت د وصولی د پاره، یا د رښتونې ګواهی د پټولو د پاره، یا د حرام کار حلالو د پاره خبري کوي نو دا قطعي حرام دي او داسی سړی ګناهګاره دی، د اجارې مته لق د دې تولو احکام لزده کول ډېر ضروري دي ځکه چې د اخیستونوکي او ورکوونکي دواړو د ګناهګاره کېدو بېره ده، او د دې تفصیل ډېر اوږد دی، لېکن په عامه توګه چې کوم سوال را پیدا کیږي د هغه د پاره دا کافي ده، چې په دې سره عام سړي ته هم دا شعور حاصلیږي چې د فلانی کار په باره کي پوښتنه کول پکار دي.

(۴) دا چې دا کار پر ده واجب نه وي ځکه چې په واجبو کارونو کي نیابت (نائب والی) نسته، ځکه چې که غازی په اجاره واخیستل سي چې دی جهاد وکړی نو دا جائز نه دي ځکه چې غازي کله میدانِ جنګ ته ورسیږي پخپله پر ده واجب سي چې جهاد وکړی، او د قاضي او ګواه د پاره په دې سبب صحیح نه دي، او یو سړي ته په دې غرض سره أجرت ورکول چې د ده د پاره لمونځ وکړي روژه ونیسي جائز نه دي ځکه چې په دې کارونو کي د نیابت اجازت نسته، او د حج د پاره یو چا ته أجرت ورکول د داسي سړي د پاره جائز دي کوم چې شیخ فاني او معذور وي چې د صحیح کېدو اُمید یې پاته نه وي، او د قرآن د تعلیم یا د علم دین ازده کولو په سلسله کي که په أجرت د چاخدمت حاصل کړی سي نو دا جائز دي، دغه ډول قبر کنل (کیندل)، مړي ته غسل ورکول جنازه وړل په أجرت باندې صحیح دي، حال دا دی چې (دا ورسته) فرض کفایه دي لېکن امامت د لمانځه د تراویح د لمانځه یا د آذان د پاره اجرت اخیستل یو اختلافي مسئله ده،لېکن په دې کي هم صحیح خبره دا ده چې دا (أجرت) حرام نه دي او دا اجرت به د هغه محنت عوض کڼل کیږي چې د لمانځه د وخت د خیال کولو د پاره محنت کیږي، او مسجد ته راځي، (د ټولو څخه اول او ورسته ځي) نه دا چې د لمانځه دادا کولو یا اذان ویلو په عوض کي، لېکن بیا هم د کراهت او اِشتباه څخه خالي نه دی.

(۵) پنځم دا چې عمل بالکل واضح او معلوم وي مثلاً که د چا حیوان د سپرلي د پاره په کرایه باندې حاصلوي نو ښه دې وګوري، او په کرایه ورکوونکي دي هم وګوري چې بوج او بار څومره دی، څوک او څه وخت به پر سپریږي، او روزانه به پر ده څومره وخت او تر کوم ځای پوري پر سپریږي، او که په دې سلسله کي یو خاص رواج موجود وو، نو رواجي فاصله یا مسافه به کافي ګڼل کیږي، دغه ډول که ځمکه په اجاره حاصلوي نو دا واضح کول پکار دي چې کوم فصل به پکښې کري ځکه چې د لوربېو په کرولو سره ځمکي ته د غنمو د کرولو په نسبت زیات تاوان رسیږي، ها! که د عادت

په توګه معلومه وي چي فلانی فصل به پکښي کري نو بیله خبره ده، نو دغه پول د هري اجارې په باره کي پوره پوره علم حاصلول پکار دي چي وروسته بیا جنګ نسي پیښ، او د کومي اجارې په باره کي چي فریقین په جهل کي وي او د جنګ پیښیدلو بېره وي نو دغه اجاره به هم حرامه وي.

**پنځم عقدم:** قراض دی او د دې دري رکنه دي: اول رکن سرمایه ده، هغه که نقد (نغدي) وي مثلاً د سرو او سپینو زرو په صورت کي وي، لیکن د جامه او سامان او نورو په صورت کي نه دي پکار او وزن یې معلوم وي او پکار دي چي عامل ته وسپارل سي، او که مالک دا شرط ولګوي چي د ځان سره به یې ساتي نو دا صحیح نه دي. دویم رکن نفع ده او پکار دي چي عامل ته کوم څه ملاویږي دغه معلوم وي مثلاً نیمه یا دریمه او نور، او که ووایي چي لس درهمه به زما وي یا ستا وي او د دې شخصه ماسوا چي څه وي هغه به تقسیمو، نو دا به باطله وي. دریم عمل دی، او لازمه ده چي دا عمل د تجارت وي او د تجارت عمل اخیستلو او خرڅلولو ته وایي، نه چي کسب کولو ته، مثلاً که یو سړی نانوایي (ډوډۍ پخولو والا) ته غنم ورکړي دا ووایي چي د دې شخصه ډوډۍ پخوه او خرڅوه یې او نفعه به سره نیمي وي، نو دا ناجائز دي، دغه پول که تېلو والا ته د شرشمو تخم په دې شرط ورکړي چي تېل ځیني راباسه او خرڅوه یې نو دا جائز نه دي، او که په تجارت کي دا شرط عائد کړي چي د فلانی په لاس به یې خرڅوی او د فلاني شخصه ماسوا د بل چا شخصه به یې نه اخلي، نو دا باطل دي، ځکه چي کوم شرط د تجارت دائره تنګه کړي دغه جائز نه دی، او عقد قراض دا دی چي مالک بل یعني عامل ته ووایي چي ما دا مال تا ته در کړی چي تجارت په کوه او نفع به یې په دوو برابرو حصو کي تقسیمو، او عامل دا ووایي چي ها! ما قبوله کړه او دا شرط ما ته منظور دی او کله چي عقد وسي نو بیا د اخیستلو او خرڅولو په سلسله کي به عامل د ده وکیل وي، او کله چي یې دی فسخ کول غواړي نو فسخ کوالی سي او دا صحیح ده، او که د فسخ اعلان د مالک د طرفه شخصه وي او ټول مال نقد (نغد) وي او نفع پکښي شامله وي نو تقسیمول یې پکار دي لیکن که مال د سامان په شکل کي وو او نفع او نوره پکښي شامله نه وي نو مالک ته به حواله کول وي او د عامل د پلره به د دې خرڅول واجب نه وي بلکي که دی یې په خرڅولو باندي مُصِر وو نو مالک یې منع کولای سي لیکن که عامل یو خریدار کتلی وو چي په نفع سودا کولو ته تیار وو نو په دې صورت کي مالک دی نسي منع کولای، او کله چي مال د سامان په شکل کي وو او نفع پکښي هم شامله وه نو پر عامل باندي واجب دي چي دا خرڅ کړي، لیکن د دومره نقد په عوض چي د اصلي زرو د سره برابر وي نه چي په مختلف قیمت باندي، او کله چي د سرمایې مطابق نقد په لاس راسي نو باقي مال تقسیمول پکار دي، او پر عامل واجب نه دي

چې دغه خرڅ کړي، ځکه چې د يوه کال په پوره کېدلو د دې د ماليت(قيمت) اندازه کول لازمي دي، چې زکوة د دې مطابق ادا کړای سي، او د عامل د حصې زکوة به عامل لره ادا کول وي. او نه دي پکار چې د مالک د اجازت څخه بغير عامل پر سفر ولاړ سي او که داسي وکړي نو د مال تاوان به د ده پر نمه وي او که په اجازت سفر وکړي، نو د سفر خرڅه به هم د قراض د مال څخه ادا کوي لکه چې دوکان بنايسته کول، د بار وړولو کرايه او نور اخراجات د مال قراض څخه ادا کولای سي او دغسي د خوراک څښاک کوزه او نورو اخراجات ادا کولای سي کوم چې ده د سفر په سلسله کي اخيستي وي، او دا ادا کول د قراض د مال څخه وي.

**شپږم عقد:** شرکت دی مال چې کله مشترک وي، نو دې شئ ته شرکت وايي چې په هغه کي يو بل ته د تصرف اجازت وي، که مال برابر وو نو د دې منافع به برابر تقسيموي، ليکن که فرق پکښې وو (د يوه د کم وو او د بل د زيات) بيا به د نفع تقسيم په دغه نسبت سره کوي او بيا به په دې کي د واپس اخيستلو يا د واپس ځيني کېدلو شرط به صحيح نه وي، او که په يو کار کي زيات محنت وو نو د دې کار کوونکي به د زيارت کار په وجه د زياتي نفعي وصول کولو شرط صحيح وي، او دا قراض خو د يو بل سره د شرکت په ضمن کي دی، ليکن د دې څخه ما سوا هم د درې دولو شرکت رواج موجود دی کوم چې ټول باطل دي، د دوی څخه يو شرکت هغه دي چې د مزدورانو او کسب ګرو په مينځ کي کيږي، چې څه وګټي مشترکه به وي او دا ځکه باطل دي چې د هر يو مزدوري د ده ذاتي ملکيت وي، او د ويم شرکت مفاوضه دی په کوم کي چې ويل کيږي چې د چا سره هر څومره مال وي دغه به د کاروبار د پاره ايږدي، او نفع چې څه راځي نيمه به وي دا هم باطله ده (ځکه چې نفع نقصان د مال په مناسبت سره وي نه چې د هر يوه برابر. آيا په زرو روپې خرڅونکي او سل روپې خرڅونکي کي به فرق نه وي ولي؟) او د دريم شرکت صورت دا دی چې د يو سره مال دی او بل صاحب د عزت او مرتبې والا دی او صاحب مال اخيستل خرڅول د صحاب مرتبې په اشاره او حکم سره کوي او نفع مشترکه ګڼي تقسيموي يې، او دا هم باطل دی، ځکه چې مال والا مال هم لګوي او کار هم کوي او مرتبې والا په مفته (موته) کي نفع اخلي.

د معاملاتو په علم کي دومره واقفيت (خبرتيا) حاصلول واجب دي (لکه چې بيان سو) چې د دې په علمه توګه سره ضرورت دی، او د دې څخه ما سوا بله معامله اوّل خو شاذ او نادر پېښيږي، او که پېښه هم سي نو چې دومره څه معلوم وي نو د نا معلومي خبري په باره کي به د چا څخه پوښتنه کول ضروري وي، او چې دا اندازه ورته هم معلومه نه وي نو خامخا به په حرامو کي پرېوځي، او پوه به هم

نه وي چي په حرامو کي اخته دی. او بیا به د ده یو عذر هم نه قبلیږي.

## دریم باب: په معاملاتو کي د عدل او انصاف خیال ساتل

پوه سه! چي دا لوړ چي څه بیان سول دغه د ظاهري شریعت په اعتبار سره د معاملو د صحیح والي او درست والي په باره کي وو، لیکن ډیري معاملې داسي دي د کومو په باره کي چي فتوی ورکول کیږي چي دا صحیح دي حال دا دی چي متعلقه سړی د خدای په لعنت کي بندي وي او دا معاملات هغه دي د کومو په وجه چي مسلمانانو ته تکلیف رسیږي او د دوی د تکلیف باعث وي، او د دې دوو قسمونه دي: یو خاص دی او بل عام دی او کوم چي عام دی د دې بیا دوه قسمونه دي:

اول قسم احتکار دی، او محتکر ملعون دی، محتکر هغه چا ته وایي چي غله اخلي او زخیره کوي یې چي کله گرانه سي نو بیا یې خرڅوي، حال دا دی چي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: چي کوم سړی تر څلوېښتو ورځو پوري غله په دې وجه زخیره کوي چي گرانه سي نو خرڅه به یې کړم نو که دی دغه ټوله غله په صدقه کي ورکړی نو هم د دې بد نیت کفاره نسي ادا کولای، بیا د دې په باره کي فرمایي: چي څوک یې تر څلوېښتو ورځو پوري وساتي حق تعالی د ده څخه بېزاره دی او دغه سړی د الله ﷻ څخه بې زاره دی، او فرمایي چي کوم سړی غله واخلي او بل ښار ته یې یوسي د هغه وخت په رواجي قیمت یې خرڅه کړي نو داسي دي لکه چي ده د غه ټوله غله خیرات کړه، او د یو روایت مطابق لکه چي ده یو غلام آزاد کړی، حضرت علي رضی الله عنه فرمایي کوم سړی چي تر څلوېښتو ورځو پوري غله زخیره ساتي د ده زړه تور سي، څرنگه چي یو وار دوی رضی الله عنه ته د یو غله زخیره کوونکي اطلاع ورکول سوه نو حکم یې وکړی چي دغې غلې ته اور ورو اچوی.

**قصه**: په تېرو مشرانو کي یو بزرگ د خپل وکیل په ذریعه یو څه غله بصرې ته د خرڅولو د پاره ولېږل وکیل چي بصرې ته ورسېدی نو ویې لیدل چي هلته غله ډېره ارزانه ده، ده تر یوې اوونۍ (هفتې) پوري انتظار وکړی او بیا یې په دوچنده قیمت باندي خرڅه کړه، او مالک ته یې ولیکل چي ما داسي کړي دي، بزرگ ورته په جواب کي ولیکل چي موږ په لږ نفع د قناعت اراده کړې وه چي په هغه کي د دین حفاظت وو، نو دا نه وه مناسبه چي ته زما دین د زیاتي دنیوي نفعي په خاطر خرڅ کړی دا تا څه وکړل! تا خو ډېره غټه گناه وکړه؟ اوس دا کېدای سي چي څومره روپۍ حاصلي سوي دي هغه ټول د نفعي سره په صدقه کي ورکړه چي کفاره ادا سي که څه هم بیا همدا ضروري نه ده چي د دې بدبختی څخه موږ ته خلاصون نصیب سي.

او پوه سه! چي د دې حراموالی سبب فقط دا دی چي دا شئ د خلکو د پاره تاوان دی، ځکه چي د بنده دژوند د پاره خوراک لازمي دی او کله چي دا خرڅول کیږي نو بیا هر چاته دا حق دی چي واخلي یې، لېکن چي یو سړی یې واخلي ذخیره یې کړي نو د هر چا لاس بیا دې ته نه رسیږي، او دا داسي ده لکه چي یو سړی مباحي (روا) اوبه بندي کړي چي خلک د تندي د لاسه مجبوره سي په زیات قیمت یې واخلي او دا صریحًا گناه ده، او د غلې په صورت کي دا گناه د هغه غلې په باره کي ده کومه چي په دې نیت واخیستل سي، کنې که د یو زمیندار سره غله وي او د ده خپل ملکیت وي نو دغه خو چي څه وخت وغواړي خرڅولای یې سي پر ده واجب نه دي چي ژر یې خرڅه کړي لېکن غوره دا ده چي دی په خرڅولو کي تأخیر (ځنډ) نه وکړي، او که ده په زړه کي دا نیت کړی وي چي گرانه سي بیا به یې خرڅه کړم نو دا ډېره انتهائي بده خبره ده.

او پوه سه! چي د دوایانو (درملو) او نورو شیانو ذخیره کول کوم چي په خوراکي شیانو کي شامل نه وي، او د دغه حاجت عام نه وي حرام نه دي، لېکن د خوراکي شیانو ذخیره کول خو قطعي حرام دي، او هغه شیان چي دې ته نژدې نژدې وي لکه غوښه، غوړي او داسي نور شیان نو د دوی په باره کي په علماؤ کي اختلاف دی لېکن زیاته صحیح دا ده چي د کراهت څخه خالي نه ده، که څه هم د غلې برابر نه دي، او د غلې په صورت کي هم حرام هغه وخت دي کله چي دغلې سخت قلت (کمښت) پیدا سوی وي کنې که هر چاته ملاوېده (رسېده) نو بیا حرام نه دي، ځکه چي په دې سره چا ته یو ضرر نه رسیږي، او یوې ډلې ویلي دي چي په داسي وخت کي هم حرام دي لېکن زیاته صحیح دا ده چي مکروه خو خامخا دي چي د گرانی په انتظار خو دی، او خلکو ته د تکلیف منتظره دی، نو بد دي، او ډېرو بزرگانو نور هم دوه ډوله تجارت مکروه کړی دي:

یو دا چي خلکو ته د تکلیف په انتظار کي غله جمع کوي او بل دا چي د کفن خرڅېدلو د پاره د خلکو د مرگ په ډېر شوق سره انتظار کوي، او دا دواړه خبري سختي بدي دي، او د کسبو (پېشو) په لحاظ سره هم دوه قسمه تجارت ته بد ویل سوي دي یو د قصابۍ کسب چي په دې سره زړه سختیږي او بل د زرگری کسب چي د دنیا د سینگار سبب دی.

دویم قسم د دې عام تکلیف دا دی چي د معاملې په وخت کوټه سکه (پیسه) چا ته ورکړي او اخیستونکي که یې ونه پېژني نو خرڅوونکي پر ده ظلم وکړی او که ویې پېژني او واپس یې کړي نو دغه به یې بل ته ورکړی، یا یې وروسته وپېژني او بل ته یې ورکړی نو دا صریحًا دوکه ده او د یو څخه وروسته بل ته چي څومره دغه کوټه سکه گرځي راگرځي نو دا سلسله به تر یوزمانې پوري جاري وي

او تول ظلم به د دې سري پر غاړه وي چا چې د دغه دوکه شروع کړې وه. او په دې وجه د يو بزرګ قول دې چې يوه کوټه روپۍ چا ته ورکول د سلو روپو د غلا څخه بده (نا کاره) ده، ځکه د غلا ګناه خو د خاص وخت سره تړل سوې ده او د کوټه شي ګناه به د مرګ څخه وروسته هم جاري وي او بدبخت دی هغه انسان کوم چې پخپله مړ هم سي ليکن ګناه يې نه مړه کيږي او کېدای سي چې تر سلو دوو سوو کلونو پوري جاري وي او دغه سړی د قبر په عذاب کي مبتلاوي ځکه چې شروع يې ده کړې ده. اوس موږ د کوټه سرو او سپينو زرو په باره کي د څلور شيانو ذکر کوو د کومو پېژندل چې ضروري دي؛

(۱) که کوټه سکه د يو ځای څخه د يو چا لاس ته راسي نو پکار دي چې غاړ، شاه ته يې واچوی او بل ته يې ورکول يې مناسب نه دي، او که بل ته يې دغسي ورهم کړي نو دا دې ورته نه وايي چې دا کوټه ده ځکه چې هغه به بل په دوکه کړي (نو مناسب دي چې ور يې نه کړي)

(۲) بازاريانو ته پکار دي چې د کوټه کره (خالص، اصلي نا اصلي) علم ازده کړي چې خرابه سکّه کومه يوه ده د دې د پاره نه چې پخپله يې د يو چا څخه وانه اخلي، بلکي د دې د پاره چې چا ته يې ورنه کړي ځکي د يو مسلمان حق ته نقصان ونه رسيږي، او څوک چې دا علم نه ازده کوي او کوټه سکّې د ده د لاسو څخه نورو ته رسيږي دی ګناهګار دی، ځکه چې د هر داسي معاملې علم ازده کول فرض دي د کومو څخه چې خلکو ته تاوان رسيږي.

(۳) که کوټه سکه د چا څخه ا خلي او نيت يې دا وي د کوم په باره کي چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چې: رحم دي وکړي الله ﷻ پر هر داسي سړي کوم چې د خلکو سره په لين دين (تجارت) کي د اسانی سلوک (چلند، رويه) کوي، ليکن دا اخيستل به په د ې اراده سره وي چې دی يې غار ته واچوي ليکن که دا خيال وکړی چې زه به يې بل ته ورکړم نو دا صحيح نه ده که څه هم هغه ته روايي چې دا کوټه ده.

(۴) کوټه سکّه هغه ده په کومه کي چې سره يا سپين بالکل موجود نه وي ليکن په کومه کي چې لږ ډېر سره سپين موجود وي ليکن وي کوټه نو واجب کيږي نه چې هغه غار ته واچوي بلکي که دغه خرڅه هم کړي نو څه حرج (تاوان) نسته په دې شرط چې د هغو اُمورو خيال وساتي کوم چې واجب دي يعني يو خو دا چې ووايي او حقيت پټ نه کړي، دويم دا چې ور کوي يې نو داسي د اعتماد وړ سړي ته دې ور کړي د کوم په باره کي چې د ده يقين وي چې دی به بل څوک مخکي په دوکه نه کړي او که دا يقين يې نه وي، او معلومه وي چې دی به يې مخکي چلوي نو د دې مثال خو داسي سو لکه

انګور چي پر داسي سړي خرڅ کړي چي ده ته معلومه وي چي دی شراب ځيني جوړوي، يا وسله داسي سړي ته ورکړی چي ده ته معلومه چي دی يې په غلا کي استعمالوي او دا خو حرام دي،او په معاملو کي د دينداری باتي ساتلو ډېر سختی ته په کتني سره بزرګانو ويلي دي چي د ديندار تاجر مرتبه به د عابد زاهد شخصه لوړه وي.

دوېم قسم خاص ظلم دی، او دا داسوا د هغه شخصه د بل چا سره نه کيږي د کوم سره چي معامله کوي، او هره معامله چي د ضرر، تاوان او تکليف سبب وي ظلم دی او حرامه ده او د دې نخښو دا دی چي کوم شئ د ځان د پاره نه خوښوي دغه د بل د پاره هم خوښول نه دي پکار، (يعني هغه خراب شئ چي زمونږ ځان ته نه وي خوښ نو بل ته دې هم نه ورکوو) ځکه چي څوک يو شئ ځان ته نه خوښوي او پر بل مسلمان يې ور اړوي د ده ايمان ناقص دی، د دې تفصيل په څلور شيانو سره وړاندي کيږي:

اول دا چي د مال به دومره تعريف نه کوي کوم چي د اصل قدر او قيمت څخه زيات وي ځکه چي دا که درواغ وي نو دوکه هم ده او په دې وجه ظلم هم دی، بلکي که خريدار (رانيوونکي) ته د مال اصل حيثيت معلوم وي نو ربښتوني صفت به يې هم نه کوي چي هغه په پوه دی نو بلاوجه خبري جوړول بکواس او پالتو (اضافي) خبري جوړول دي، د الله ﷻ فرمان دی: ﴿مَا يَلْفِظُ مِن قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ﴾ [ق:١٨] (دی چي د خولي څخه هره خبره باسي نو د ده سره يو انتظار کونکی په انتظار کي تيار دی) ځکه چي انسان د خولي څخه څه راباسي نو د دغي پوښتنه به ځيني کول کيږي، چي داسي يې ولي وويل، اوس که دغه خبره پالتو او بې هوده وي نو يو عذر به د ده څخه نه قبليږي، ځکه چي دا پر خپل ځای بې ادبي ده، او په حديث شريف کي دي چي " افسوس دی پر هغه سوداګرو کوم چي پر هره خبره باندي قسمونه اخلي، او پر هغه کسب ګرو هم افسوس دی کوم چي د صبا او بلي ورځي په وعده رانيوونکي (ګراکان) ځنډوي" او په حديث شريف کي دي، چي " کوم سړی په الله ﷻ قسم وخوري خپل مال خرڅ کړي الله ﷻ به د قيامت په ورځ د ده طرف ته ونه ګوري".

**قصه:** او د حضرت يونس بن عبيد رحمه الله په باره کي قصه ده چي د وی د ورېښمو کاروبار کوی او د خپل مال تعريف به يې چيري هم نه کوی يوه ورځ يې يو رانيونکي (خريدار) ته ورېښم راوېستل چي يو شاګرد يې وويل يا الله ﷻ! ما ته د جنت لباس راکړې، دوی ورېښم را ايستل بند کړل او څه چي يې را ايستلي وو هغه يې هم خرڅ نه کړل ځکه چي د دوی سره دا ډېره پيدا سوه چي د شاګرد دا خبره د مال په تعريف کي وه. (سبحان الله!)

بله خبره دا ده چه په مال کي يو عيب يانقص وي هغه دي د خريدار څخه نه پټوي بلکي هر څه چي دي صفا صفا دي ورته ووايي چي د پټولو په صورت کي به دوکه باز ګڼل کيږي، نو ظالم او ګناه ګاره به وي او که د جلمي او نورو خرڅولو په وخت کي د دې غوره حصه ښکاره کړي، يا يې ورته په تياره کي وښيي چي ښه ورته ښکاره نسي (او عيب يې ونه ويني) نو دی ظالم او دوکه باز دی.

**روايت:** نبی کريم ﷺ پر يوسړي باندي راغلی چي غنم يې خرڅول، دوی ﷺ په غنمو کي لاس ننته کړو نو ننته لاندي راوو تل (چي د تول پر وخت په وزن کي زيات سي) ورېې فرمايل دا ولي؟ دوکه باز وويل: چي لږ لانده سوي دي، ورېې فرمايل نو دغه دي بيا ښکاره کول ولي نه" او ورېې فرمايل "مَنْ غَشَّ فَلَيْسَ مِنَّا" (څوک چي بل ته دوکه ورکوي هغه زموږ څخه نه دی).

**قصه:** يو سړي يو اوښ چي په پښه کي يې خرابي وه، په درې سوه درهمه پر چا خرڅ کړی، واثله بن الاشفع ﷺ کوم چي صحابي وو هلته موجود وو، لېکن پر عين موقع د اوښ عيب ورته معلوم نه سو لېکن ژر ورته معلومه سوه، نو په خريدار (رانيونکي) پسې ولاړی او ورته يې وويل چي اوښ عيبلره دی هغه واپس راوستی او مالک ته يې ورکړی خپلي درې سوه روپۍ يې څيني واپس واخيستې، خرڅوونکي واثله ﷺ ته وويل چي تا زما معامله ولي خرابه کړه؟ دوی وفرمايل چي ما د نبي ﷺ څخه اورېدلي دي چي دا حلال نه دي چي يو سړی د يو شئ خرڅولو په وخت کي د دغه عيب پټ کړي او نه ليدونکي ته حلال دي چي هغه دا دوکه پخپلو سترګو سره ويني او خريدار خبر نه کړي، او ورېې فرمايل چي نبي ﷺ زموږ ټولو (اصحابو) څخه دا عهد (وعده) اخيستې دی چي مسلمانانو ته دي نصحيت کوو، او پر دوی دي شفقت کوو، او ښکاره ده چي د چا عيب پټ ساتولو ته نصيحت نسي ويل کېدای.

او د پوهېدلو خبره دا ده چي دغه ډول (په ديندارۍ) معامله کول ډېره ګرانه ده او د غتو مُجَاهَدُو څخه ده لېکن دا تکليف او مشکل په دوو خبرو سره اسانه کېدای هم سي:

اول دا چي عيبجن مال دي په خپله نه اخلي او که يې واخلي نو په زړه کي دي قصد وکړي، چي د خرڅلاو په وخت به يې دغه عيب صفا صفا ښکاره کوي، او که د ده سره دوکه سوې وي (يعني داخيستلو څخه وروسته عيب ورته ښکاره سوې وي) نو هم دي داسي ګڼي چي زما خو نقصان وسو لېکن اوس بل ولي په دې تاوان کي اچووم، چي دی پخپله پر دوکه باز لعنت وايي نو بيا پخپله ولي داسي کوي چي خلک پر ده لعنت ووايي. او ښه پوه سه! چي په دوکه بازي سره رزق زياتيږي نه

بلکي په مال کي برکت هم نه پاته کیږي او نفع نسي کولای، او که په چالاکی سره څه په وقتي توګه حاصل هم سي چي یو وخت به داسي راسي چي ټول هر څه به یې فنا سي او د ظلم وبال به یې بیا هم په پر غاړه باقي پاته سي او دده مثال د هغه سړي په ډول دی چي:

**قصه**: په شیدو کي به یې اُوبه اچولې خرڅولې به یې، یوه ورځ داسي سیلاب راغلی چي غوا یې یووړه د دې شیدوخرڅکوونکي زوی ورېل: چي هغه اوبه کومي چي موږ په شیدو کي اچولې جمع کېدلې او بیا یې په یو وار د سیلاب شکل اختیار کړی غوا یې یووړل.

او نبي ﷺ فرمایلي دي چي" کله په لین دین (تجارت) کي خیانت او بې دیني پیدا سي نو برکت د هغه څخه ولاړ سي" او د برکت څخه مراد دا دی چي که د چا سره مال لږ وي خو دهغې څخه فائده ډېره رسیږي او ډېر خیر او برکت ځیني ښکاره کیږي، او یو هغه وي چي مال بې شمېره وي لېکن هغه ډېروالی د دې د هلاکت سبب جوړ سي او دا تباهی په دنیا او آخرت دواړو کي ملاوېږي او د دې څخه چي څه حاصلیږي هغه هم ډېر کم وي نو پکار دي چي طلب کوي د برکت، نه دا چي د زیات، او برکت همیشه په ایمانداری او دینداری کي وي، بلکي کثرت و زیاتوالی هم په ایمانداری کي وي ځکه کوم سړي چي د خپلي ایمانداری په وجه شهرت حاصل کړی ټول خلک د هغه طرف ته راګرځي او دده خرڅ ښه کیږي،او کوم سړی چي د بې دیني په وجه مشهوره سي د ده طرف ته هیڅ څوک مخ کوي نه، (نو مال یې نه خرڅیږي نفع یې کمه وي) او کوم سړی چي په دې حقیقت پوه وي چي د ده طبعي عمر د سلو کالو څخه زیات نسي کیدای او د آخرت ژوندبې انتها دی نو دی به ځنګه دا خبره روا وګڼي چي محض د دې څو ورځو دولت په خاطر هغه همېشه ژوند تباه کړي کوم چي چیري نه ختمیږي،

لهذا چي بنده ته همیشه دا معنی په زړه کي ځای ساتل پکار دي چي دوکه او فریب د ده په زړه کي ځای ونه کړي او دنبي ﷺ ارشاد دی چي" خلک د لا اله الا الله په پناه اخیستلو سره دالله ﷻ د غضب څخه خوندي کېدلای سي لېکن کله چي یو سړی دنیا ته پر دین ترجیح ورکولو سره سره دا کلمه وایي نو الله ﷻ ده ته وایي چي اې دوکه بازه! ته دروغ وایې او ستا په دې وینا کي رښتونوالی نسته،او بیا چي ځنګه په بیع کي دوکه او فریب نه کول فرض دي دغه ډول دا هم فرض دي چي په یو کسب (پیشه) کي دوکه او جعلي کار ونه کړای سي او د کوټه (نا اصلي) لوکره (اصلي) یو ځای کولو کوشش کول هم حرام دي. ها! که پټ یې نه کړي نو بیا بېله خبره ده،

یو چا د احمد بن حنبل څخه پوښتنه وکړه چې د رَبوکولو(جاموکنډلو) په باره کې تاسو څه فرمایاست؟ ویې ویل صحیح نه دي ما سوا د هغه څخه چې د رَبوکولو څخه ورووسته یې پخپله اغوندي نه دا چې پر بل یې خرڅوي، او کوم سړی چې د دوکه ورکولو د پاره رَبوکوي دی ګناهګار دي، او اُجرت یې حرام دي.

(۳) دریم دا چې د وزن او تول په معامله کې چیري فریب نه کوي او سیده تول کوي حق تعالی فرمایي: وَيْلٌ لِلْمُطَفِّفِينَ [المطففين](لویه خرابي ده په ناپ تول کې کمي کوونکو لره) یعني هلاکت دی پر هغو خلکو چې ورکوي کم تول او اخلي زیات تول، او د تېرو بزرګانو دا عادت وو چې ځان ته به یې تول یو دانه کم تللو او بل ته به یې تول یوه دانه زیات تللو، او فرمایل به یې چې دا یوه دانه زموږ او د دوږخ په مینځ کې یوه پرده ده او د دې خبري څخه به زیات ییریدل چې هسي نه صحیح صحیح تول ونه کړي او فرمایل به یې څومره احمق او جاهل دی هغه چې د یوې دانې په بدله دغه جنت خرڅ کړي د کوم چې صرف پلنوالی د اُوو اسمانو او اُوو مځکو برابر دی او جاهل دی هغه سړی چې د یوې دانې په بدله نېکي بدله کړي،او نبي ﷺ چې به کله یو څه اخیستل نو فرمایل به یې چې د قیمت مطابق یې تله او لږ سر کښته تله.

فضیل خپل زوی ته"چې هغه خلکو ته د ورکولو د پاره دینار ټکل او په دینارونو کې به چې دښته خیري، دوړي کندګي او نور لګیدلي ول هغه به یې ځیني پا کول" وفرمایل: " اې زویه! ستا دا کار د دوو حجونو او دوو عمرو څخه زیات ښوره دي" او بزرګانو ویلي دي کوم سړی چې دوې تلې (پلې) ساتي یوه ځان ته د تللو د پاره(چې دروند شئ واخلي) بله بل ته د ټکلو د پاره، (چې سپک شئ ورکړي) دغه د ټولو فاسقانو څخه بد دی، او کوم د جامې دکاندار چې ځان ته د ګز کولو پروخت سست ګز کوي او بل ته کم ګز کوي دی هم د دې فاسقانو څخه دی،او دا حال د هغه قصاب دی کوم چې هغه هډوکي په غوښه کې شاملوي د کوم شاملول چې عادت نه وي، او د کوم سړي په غله کې چې د خرڅ پروخت خاوره اونور ملاو سوي وي د ده شمېرهم په دې بله کې دی چې دا ټولې خبري حرامې دي، او واجب دا دی چې د خلکو سره پوره پوره انصاف وکړل سي او که یو څوک یو داسې خبره واوري کمه چې دی بده ګڼي نو پوه دې سي چې ده به هم په لین دین کې ضرور فرق کړي وي او د دې کراهت څخه خو به هلته نجات حاصل کړای چې په یوه معامله کې هم خپل ځان پر یو مسلمان غوره ونه ګڼي، منم چې دا ډېره ګرانه ده (لیکن نېکي کول آسانه کار چیري دي) او په دې وجه الله ﷻ

فرمايي: ﴿وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا﴾ (مریم: ۷۱) (او په تاسو کې څوک هم داسې نشته چې پر دوږخ به تېر نسي دا ستا د رب په نزد لازمه ده چې ضرور به وي). لېکن کوم چې تقوی داره وي هغه به ژر نجات حاصل کړي.

(۴) د مال په نرخ کې دې هيڅ کله تېرېر نه کوي او صحيح نرخ دې نه پټوي چې د نبي ﷺ ارشاد دی چې داسې دې نه کوي، يعنې منع يې کړې ده، چې بعضې خلک د قافلې څخه مخکې ښار ته داخل سي او اصل نرخ د خلکو څخه پټ کړي او د هغه ځای څخه د خلکو څخه ارزانه شيان واخلي او فرمايلي يې دي چې کله هم څوک داسې وکړي نو مالکانو ته دا حق دی چې هغه بيع فسخ کړي، او نبي ﷺ د دې خبر هم منع کړې ده چې که څوک مسافر ښار ته راسي او د ده سره مال وي کوم چې د دې ښار د نرخ څخه ارزانه وي او د دې ښار يو سړی ده ته ووايي چې مال ما ته پرېږده زه به يې ګران خرڅ کړم دا ناجائز دي، او نبي ﷺ د دې څخه هم منع کړې ده چې يو څوک محض نورو ته د غلط تأثر ورکولو د پاره د چا څخه په ګران قيمت مال واخلي چې نور خلک دې ربښتونې وګڼي او نور خلک د ده څخه بيا مال په زيات قيمت واخلي نو وروسته د دې علم خريدار (رانيونکي) ته وسي نو ده ته حق سته چې بيع فسخ کړي، همدارنګه د بعضې ټګانو خلکو دا عادت وي چې خپل مال په بازار کې کښېږدي، او يو سړی چې په اصل کې خريدار نه وي خو د مال د خاوند سره يې ځان جوړ کړی وي د دې مال قيمت زيات وښيي، دا خبره د شريعت په روی سره بالکل حرامه ده، دغه ډول دا هم جائز نه دي چې يو ساده سړی ته نرخ معلوم نه وي او خپل مال د غسې په ارزانه قيمت خرڅوي او د ده د ناپوهی څخه فائده اخلي دغه مال د ده څخه تر لاسه کوي، دغه ډول که يو ساده سړی د دوکان د قيمت څخه په زياته د يو شئ اخيستلو ته تيار وي نو خرڅونکي ته جائز نه دي چې واقعي دغه زيات قيمت د ده څخه واخلي مال پر خرڅ کړي، که څه هم په ښکاره فتویٰ پر دې ده چې دا بيع صحيح ده لېکن دې ته هم کتل پکار دي چې حقيقت د حال يې د هغه څخه پټ ساتلی دی نو ورکوونکي خامخا ګناه ګاره دی.

**قصه**: يو سړي په بصره کې وسېدی د ده غلام د "سوس" ښاره څخه ده ته خط وليکی چې په دې کال به دلته د شکرو (ګنو) ډېر کمبوت وي اوس مخکې د دې څخه چې بل چا ته معلومه سي تا ته پکار دي چې ډېره شکره واخلې (بيا به يې دلته خرڅه کړې) ده ډېره شکره واخستله چې وخت راغلی خرڅه يې کړه ډېرش زره درهمه يې وګټل، لېکن بيا ده سوچ وکړی چې ما د يو مسلمان (يعنې

د سوس د سوداګر) سره دوکه وکړه چې دی مې د شکري د متوقع کمبوت څخه خبر نه کړی او خبره مې څیني پټه وساتله کنې دا نفع به ده ته رسیدلې وای نو زما د پاره دا نفع جائز کیدای نسي، نو هغه دېرش زره درهم یې رواخیستل او خریدا (رانیونکي) سوداګر ته ولاړی ویې ویل چې واخله دا مال ستا دی هغه وویل چې څنګه؟ ده ورته ټوله قصه وکړه خریدار ټولو قصه واورېده ویې ویل چې زه! دا ما تا ته بخښلی دي هغه واپس ولاړی خو د شپې یې بیا سوچ وکړی نو محسوسه یې کړه چې څه معلومه ده چې د ده شرم د وجهي څخه بخښلي وي او مال پر اندازه حذر هم ونه کړی بله ورځ بیا ولاړی او ډېر اصرار (ټینګار) یې وکړی آخر ده هغه درهم واخیستل.

نو پوه سه! چې کوم څه خریدار ته وایې رشتیا به وایې، چې مکر فریب پکښې بالکل نه وي او که داخیستلو څخه و روسته د خرڅ په وخت کې یو نقص (عیب) په مال کې پیدا سوی وي نو دهغې څخه دي هم خریدا خبر کړي، او که مال یې د سُستی په وجه پخپله ګران اخیستی وي چې خرڅوونکي یې یو دوست یا عزیز وي، نو دا خبره دي هم پوره په پوره وکړي او که یو شئ یې په لس دیناره د یو مال په عوض اخیستی وي او هغه شئ د مال د قیمت څخه د کم قیمت وي نو جائز نه ده چې دخرڅولو په وخت رانیونکي ته هم د لسو دینارو قیمت ووایې، او که داخیستلو په وخت یې نرخ ارزانه وو او اوس یې د خرڅ په وخت نرخ ګران سوی وي نو پکار دي چې دا خبره هم ښکاره کړي، او دا خبره ډېره اوږده ده بازار والا په دې کې غټ خیانت کوي، او خیانت یې ګڼي هم نه، او صل خبره بیا هغه ده چې کوم شئ د ځان د پاره نه خوښوي هغه د نورو د پاره نه دي خوښول پکار، نو خپل معیارلو اصول داسې پکار دی، (ښه پوه سه!) چې کوم سړی پر دې اعتماد یو شئ اخلي چې یو څه واخلي ښه یې وګوري او دومره قیمت ورکړي چې څومره پکار وي نو د خرڅ په وخت کې که یو دوکه په دې کې ښکاره سوه نو زما څخه به بل څوک په اخیستو راضي سي او که سي هم نو زما د پاره به دغه خرڅول په دوکه بازي کې شامل وي (نو نه به دوکه خورم او نه به دوکه ورکوم، دا د امانت معیار دی)

## څلورم باب: په معامله کې د احسان او نېکي کولو په باره کې

یادلره! چې الله ﷻ د احسان حکم کړی دي لکه څنګه چې یې د عدل کړی دي او فرمایي چې: إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ [النحل: ۹۱] (بې شکه الله ﷻ د عدل او احسان حکم کړی دي) او د دې څخه

مخکې چې کوم څه بیان سول تول د عدل په باره کې دي او الله ﷻ فرمايي: إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِينَ (الاعراف) (بې شکه د الله ﷻ رحمت نژدې دي احسان کونکو ته) او کوم سړی چې صرف په عدل باندې اکتفاءکړه ده هم بې شکه چې د دين سرمايه حاصله کړه او تلوان يې ونه کړی ليکن اصل فائده په احسان کې ده، او عاقل هغه دی چې دآخرت فایده په یوه معامله کې هم هیره نه کړي،او احسان هغه نېکې ده چې معامله کوونکي ته په دې کې نفع (گټه) ده که څه هم دغه پر تاواجب نه دي،او درجې داحسان ته رسېدل په شپږو طريقو سره حاصلیږي:

(۱) اول دا چې زياته گټه حاصلول رواونه گڼي که څه هم خريدار (رانيونکي) د خپل ضرورت په وجه زيات قيمت اخا کولو ته راضي ولې نه وي.

**روايت:** سری السقطي رحمه الله په دوکان کولو او هيڅ ځای به يې دا خبره روا نه گڼله چې د پنځه فيصده څخه زياته گټه وکړي، يو وار ده د شپېته دينارو بادام واخيستل او روسته د بادامو نرخ پورته سو دلال د ده څخه د خرڅ د پاره طلب وکړی او ورېې فرمايل دا په شپېته ديناره خرڅ کړه هغه وويل چې د دې نرخ خو نن اتيا ديناره دي، ده وفرمايل: وي به ليکن ما پخپل زړه کې دا غوره کړې ده چې د پنځه فيصده څخه زياته نفع به نه کووم نو د دې خپل قصد څخه مخ شنکه واړوم، دلال وويل چې زه هم ستا دې مال ته د اتيا دينارو څخه په کمه خرڅولو ته تيار نه يم، او واقعي چې نه هغه خرڅ کړل او نه دی (سری السقطي) زيات قيمت اخيستو ته تيار سو، دې ته وايي درجه د احسان.

**روايت:** مُحَمّد بن المنكدر رحمه الله په بزرگانو کې تېر سوی دي، دی دکاندار وو د ده سره د خرڅ د پاره يو څه کپړې وې چې په هغو کې د ځينو قيمت لس ديناره وو د ځينو پنځه يوه ورځ د ده په نشتون کې د ده يو شاګرد د پنځه دينارو جامې پر يو اعرابي په لس ديناره خرڅې کړې کله چې دی راغلی او د حال حقيقت ورته ښکاره سو نو ټوله ورځ يې هغه اعرابي لټولو آخر ملاو سو نو هغه ته يې وويل چې کومه جامه تا اخيستې ده دغه د پنځو دينارو څخه زياته نه ده، اعرابي وويل چې صحيح دي ما خو په خوښه اخيستې ده، دوی وويل چې ته به په رضا اخستې وې، ليکن زه چې کوم شئ د ځان د پاره نه خوښووم هغه د بل د پاره هم نه سم خوښولای، نو ته يا بيع فسخ کړه يا پنځه ديناره زما څخه واپس واخله يا زما سره دکان ته ولاړه سه چې زه تا ته د دې څخه غوره جامه در کړم،اعرابي پنځه ديناره واخيستل او کله چې دوی واپس دکان ته راغلل، نو اعرابي د خلکو څخه پوښتنه وکړه چې دا مرد خُدا څوک دی؟ خلکو وويل چې دا مُحَمّد بن المنكدر رحمه الله دی، اعرابي وويل سبحان

الله! داخو داسې سرې دي چې كه كله وچكالي سي او خلك د باران د پاره لمانځه ته ووځي او صرف د ده نوم واخلي نو باران به وسي.

د تېروېزرګانو دا عادت وو چې نفع به يې كمه اخيستله او معامله به يې ډېره كوله او ګټله به يې چې د زياتي نفع په انتظار كي د كېښېنستلو څخه دا طريقه غوره ده.

حضرت علي ﷺ به د كوفې په بازار كي ګرځېدى ويل به يې: چې اې خلكو! لږ نفع مه رد كوئ چې د ډېري نفع څخه محرومه نسى، او د حضرت عبد الرحمان بن عوف ﷺ څخه خلكو پوښتنه وكړه چې ستا د مالداري اصل سبب څه دى؟ ويې فرمايل چې ما لږ نفع هيڅ وخت نه ده رد كړې، او كه چا زما څخه يو حيوان هم اخيستى دي وركړى مې دي (دا مې نه دي ويلي چې ډېر واخله چې در يې كړم) او يوه ورځ ما زر اوښان خرڅ كړل لېكن د اصل قيمت څخه مې زيات څه وصول نه كړل، لېكن زر رسى (وابنكيان) ضرور په نفع كي ملاو سوه چې په يو يو درهم مې خرڅ كړل، او دغه پول زر درهمه لاس ته راغلل او د يوې ورځي د وبنو (ګياه) د قيمت څخه خلاص سوم يعني وابنه راته فائده (نفع) سول، او دغه سې دوه زره درهمه نفع راته ملاو سوه.

(۲) دويم شرط دا چې د فقيرانو كوم مال اخلي په زيات قيمت دې ځيني اخلي چې هغه خوشحاله سي دغه پول د ګونډو ښځو څخه چې كوم كچه تارونه (سپنسي) اخلي نو په زيات قيمت دې ځيني اخلي، د بچو او فقيرانو هغه مېوه اخيستل كومه چې د دوى څخه پاته سوې وي په زيات قيمت باندي قصداً اخيستل د صدقې څخه هم زيات ثواب لري او كوم سړى چې داسې كوي هغه ته د نبي كريم ﷺ دعا رسيږي چې فرمايي: " الله ﷻ دې پر داسې سړي رحم وكړي كوم چې اخيستل او خرڅول آسانه كوي" لېكن د دولتمن سړي څخه مال په زيات قيمت اخيستل هيڅ پول په ثواب كي شامل نه دى او نه په شكر ګذارى كي شامليږي بلكي صرف مال ضايع كوونكي خبري دي، ځكه چې د ده څخه خو پكار دي چې ارزان واخيستل سي كه څه هم د دې د پاره اصرار (ټينګار) كول (منّت كول) ولي نه پرېوځي، د حسن او حُسين رضى الله عنهما هميشه دا كوشش وو چې څه به يې اخيستل چې ارزانه يې واخلي او ښه تلاش به يې پكښې كولو چې ښه شئ واخلي، خلكو پوښتنه ځيني وكړه چې روزانه خو تاسو په زرګونو روپۍ خيرات وركوئ نو بيا د لږ غونډي شئ په اخيستلو كي دومره كوشش ولي كوئ؟ دوى وويل چې څه مو ږ وركوو د خداى د پاره يې وركوو، او په دې كي چې څومره وركړل سي كم دي، لېكن په اخيستلو خرڅولو كي دوكه كېدل نه صرف مالي نقصان دى بلكي د عقل نقصان هم دى.

(۳) دریم احسان د قیمت په وصولولو کي وي او دا احسان په دري طریقو باندي کیدلی سي:
یو دا چي قیمت کم وصولول، دویم دا چي ماتي او کوټه سکي اخیستل دریم دا چي رانیونکي (خریدلار) ته دقیمت په ادا کولو کي مهلت ورکول، او د نبي کریم ﷺ ارشاد دی چي د الله رحمت دي وي پر هغه سړي کوم چي په لین دین (کاروبار) کي آسانتي پیدا کوي او فرمایي چي کوم سړی په لین دین کي آسانتي کوي الله ﷻ د ده په کارونو کي آسانتي پیدا کوي، او د مهلت ورکولو څخه زیات خو یو احسان کېدلی هم نه سي، خصوصاً چي کله یې فقیرته ورکوي، بلکي د ده سره قیمت نه وي نو ده ته پخپله مهلت ورکول واجب دي او دغه د عدل په تولی کي راځي، او په احسان کي داخل نه دي، لېکن که دغه قیمت ادا کولای سي مګر داسي چي خپل یو شئ په تلوان خرڅ کړي یا داسي یو شئ خرڅ کړي چي د ده ورته پخپله سخت ضرورت وي نو په دې صورت کي ده ته مهلت ورکول په احسان کي داخل دي او د دې شمېر په ډېر غټو صدقو کي دی.
**روایت:** نبي کریم ﷺ فرمایي چي دقیامت په ورځ به یو سړی راوستل سي چي د دین په معامله کي به یې پر خپل ځان ظلم کړی وي او د ده په حساب کي به هیڅ نېکي نه ښکاري، بیا به د د څخه پوښتنه وسي چي تا د سره هیڅ نېکي کړې نه ده، دی به وایي چي ها! ما خو هیڅ نېکي کړې نه ده ما سواد د دې څخه چي ما خپلو شاګردانو ته ویلي وو، چي زما په قرضدارانو کي که څوک غریب او مفلس وي هغوی ته مهلت ورکوئ او په نرمی او مروّت او تنګ سره ور سره مخامخ کیږئ، نو الله ﷻ به وایي: چي اوس نن ته پخپله خالي لاس او بد حاله یې، پر دې مونږ هم دا مناسب ګڼو چي تا ته آسانتي پیدا کړو، او دا سړی به وبخښل سي، او په حدیث کي دي چي کوم سړی چا ته قرض حسن ورکړی نو د قرض تر واپس کولو پوري چي څومره ورځي تېرېږي دې قرض خواه ته د صدقې برابر ثواب ملاوېږي، او چي مهلت تېر سي او بیاورته نور مهلت ورکړی نو د ده ثواب دومره سي چي ګواکي دغه پول ده قرض نه بلکي په صدقه کي ور کړي دي، څنګه چي په تېرو مشرانو کي یو بزرګ به په دې وجه دا نه خوښتله چي د ده قرضداره دي د ده قرضه واپس کړي ځکه چي د دې په بدله کي به ده ته هره ورځ د صدقې ثواب ملاوېږي، او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي ما د جنت پر دروازه لیکلي ولیدل چي د صدقې یوه روپۍ د لسو برابر ده او د قرض حسنه یوه روپۍ د اتلسو روپیو برابره ده او د دې سبب دا دی چي قرض څوک تر هغه پوري نه اخلي تر څو چي احتیاج او ضرورت دی مجبوره نه کړي، لېکن صدقه خو ممکنه ده چي ضرورتمن ته هم ونه رسېږي.
(۴) څلورم احسان د قرض په ادا کولو کي کېدلی سي او هغه دا چي قرض غوښتونکي ته د تقاضا

کولو ضرورت پېښ نسي (یعني هغه په ځان پسي ونه ګرځوي) او ژر په ژر یې ادا کړي او په کړه (خالص) سکو کي یې ادا کړي او پخپل لاس یې ادا کړي او دی دې هم په قرض خوا پسي کور ته ولاړ سي چي هغه ته د یو سړي لېږلو ضرورت پېښ نسي، او په حدیث شریف کي دي چي په تاسو کي غوره (بهترین) سړی هغه دی چي قرضه په حُسن او ښه والي سره ادا کوي، او په حدیث کي دي چي کوم سړی د قرض اخیستلو په وخت په زړه کي اراده کوي چي دا به په ښه ډول سره ادا کووم، د ده د پاره الله ﷻ څو فرښتي په ځانګړې توګه سره مؤکلي کړي چي د ده حفاظت کوي او دعاء کوی چي دی خپل قرض ادا کړی سي.

قرضدار که د دې قابل وي چي قرض ادا کولای سي نو بیا یو ګړی تأخیر نه دي کول پکار ځکه چي که بیا دی د قرض خواه د خوښحالی څخه ماسوا یو ګړی تأخیر وکړي نو ظالم او ګناه ګاره دي، او که په لمانځه کي وي که روژه دار وي، بیده وي او که ویښ، هر وخت د خدای په لعنت کي اخته وي، او دا یو داسي ګناه ده چي د خوب په حالت کي هم د ده سره وي او د قرض د ادا کیدلو د قابل والي څخه صرف دا مراد نه دي چي د ده سره لازماً نغد مال موجود وي بلکي دا چي که د ده سره یو شئ د خرڅولو قابل وي نو هغه دي خرڅ کړي او قرض دي خلاص کړي، او که نه یې خرڅوي نو ګناه ګار دی، او که ادایګي (ادا کول) په خرابو یا ناقصو سکو سره کوي چي هغه قرضخواه نه خوښوي نو هم ګناه ګار دی او تر څو چي هغه خوشحاله نه کړي د ظلم د ګناه څخه نه خلاصیږي، او دا د کبیره ګناهونو څخه دي.

(۵) پنځم دا چي که د چا سره د یو معاملې کولو څخه وروسته ووینې چي هغه ستومانه دی نو بیع دي فسخ کړي، نبي ﷺ فرمایي چي کوم سړی داسي بیع فسخ کوي او ګڼي چي ګواکي بالکل بیع سوې نه ده، نو الله ﷻ هم داسي ګڼي چي ګواکي ده بالکل څه ګناه کړې نه ده. داسي کول واجب خو نه دي لیکن اجریې ډېر زیات دی او دا په احسان کي داخل دي.

(۶) شپږم صورت دا دی چي که پر غریبانو فقیرانو باندي یو شئ په پور (قرض) خرڅوي نو که لوی، کوچنی هر شئ وي په داسي نیت دې خرڅوي چي تر څو پوري د واپسی طاقت د ده نه وي سوی تقاضا به څیني نه کوي او که هغه د دې نیستی په حالت کي مړ سي نو ورته معاف به یې کړي (یعني دا نیت دي کوي)، او په اسلافو کي داسي بزرګان هم تېر سوي دي چي د کومو سره به دوه ډوله یادداشتونه (یادوني) تیار سوي وو (یعني چي په کومو یادداشتو کي د قرضدارانو نومونه لیکل کیدي، دا به د دوی سره دوه ډوله وو)، یو به پکښي صرف پر نا معلومه نومونو باندي مشتمل وو ځکه چي دغه

تول به د فقیرانو نومونه وو، او بعضي بزرګان خو داسي هم وو چي نومونه به يې د سره ليکل نه، چي که قرضدار مړ سي نو چي بيا يې نوم هم چا ته يادنه وي، او دا به هم خوره نه تصور کېده خوره بزرګ به هغه وو چي د ياداشت اندازه به يې هم نه مرتب کول، او نه به يې د يو چا نوم ليکی، بلکي د قرضدار د نوم پوښتنه به يې هم نه کوله، او که چا به ور ته قرضه واپس کوله نو نه به يې ور څخه اخيستله کنې د واپسی طمع به د دوی هيڅ کله نه وه، نو په معاملاتو کي خو د دينداړو خلکو اندازه دا وه، او د دينداړو خلکو د درجې اندازه د دې معاملاتو څخه معلوميږي کوم چي به دوی د دنيا دخلکو سره کولې، او د مختلفو درجو قياس خو د دې خبري څخه وکړه چي کوم سړی د دين په خاطر يو ه مشتبه روپۍ خوړځوی دغه هم په مردانِ دين کي شمارل کيږي.

## پنځم باب: د دنيا په معامله کي پر دين باندي د شفقت کولو په باره کي

هغه سړی کوم چي د دنيا تجارت د دين څخه غافله کړي دغه بدبخته دی، د هغه سړي به څه حال وي کوم چي د سرو زرو کوزه د خاورې په کوزه بدله کړي، د دنيا مثال د خاوري د کوزې دی چي دغه بې کاره هم ده او ژر ماتيږي هم، او د آخرت مثال د سرو زرو د کوزې دی چي ښه هم او هميشه (تلپاتې) هم ده بلکي چيږي هم نه ضائع کيږي د دنيا تجارت د آخرت د تو ښه کېدو قابل نه دي بلکي د دوږخ د لاري څخه د خوندي کېدو د پاره دغې کوشش او زيار ايستولو ضرورت دی، او کومه سرمايه چي دې ته پکار ده هغه صرف دين او آخرت دی نو د دې څخه غافل پاته کېدل نه دي پکار، او دا نه دي پکار چي په تجارت او زراعت کي ټوله وخت او همه تن مشغوله وي او پر دين د شفقت کولو يې بالکل خيال هم نه وي، او پر دين د شفقت حق په دې صورت کي ادا کېدای سي چي د دې اوو احتياطونو (پاملرنو) خيال وساتي.

(۱) اول دا چي روزانه سهار وختي د راويښېدولو سره د نيکو او پاکو ارداو څخه خپل زړه تازه کړي او دا قصد وکړي چي بازار ته به په دې غرض ځم چي د ځان او اهل او عيال د پاره روزي (رزق) وګټم چي چا ته متحاجه نه سم، د خلکو څخه به هيڅ ډول لالچ (حرص) په زړه کي نه پيدا کوم، او بيا هم دومره اندازه روزي او فراغت به حاصلوم چي د خپل رب د عبادت حق هم په پوره توګه سره ادا کړم، چي د آخرت پرلاره روان پاته سم، او دا نيت هم وکړي، چي نن ورځ به د خلکو سره په شفقت نصيحت او يماندارې مخامخ کيږم، او هرهغه عمل به کووم، کوم چي د امر بالمعروف په ټولی کي راځي او د هر هغه عمل څخه به ډډه کووم (ځان ژغورم) د کوم چي ممانعت سوی دی.

دلرنګه د خیانت کونکو شخه به د ناراضه کولو اظهار کووم، او ملګرتیا به یې نه کووم، نو کله چې د دې نېکو نیتونو سره پورته سي، او په دې عمل هم کوي نو دا ټول عملونه به د دین د پاره فائده مند وي، (او دا پر دین شفقت دی) کنې که په دنیا کي لګیاوي او د دنیا یو شئ به په لاس هم ورسي نو په دې کي دنیاوي فائده خو به حاصله سي لېکن پر دین خو دا شفقت نه دی بلکي زیاتی او ظلم به ورته ویل کیږي.

(۲) دویم دا چي دا خبره دي په ښه توګه په ذهن کي کښېنوي چي د ده دژوندیوه ورځ تېرول به هم د ده د پاره ګرانه سي که لږ تر لږه په زرګونو نور خلګ د ده د پاره په مختلفو کارونو کي مشغول نسي، مثلاً نانوایي، زمیندار، جولا (ټوکر ووډونکی)، پنبې (اهنګر) ټول کسب ګر کوم چي د ده په کار کي لګېدلي وي او ده ته د دغو حاجت دی لېکن که دی هغو ته محتاجه دي نو دا څنګه کېدای سي چي خلګ دي د ده کار کوي او د هغو شخه دي ده ته فائده رسیږي او د ده د ذات شخه دي چا ته فائده نه رسیږي؟ (دا خو ډېر خودغرضي او بې حسي ده) نو په دنیا کي د هر سړي حیثیت د مسافر په شان دی او مسافر په دې خبره ښه ښکاري چي (منزل ته د رسېدو د پاره) د یو بل مرستندوی جوړ سي او د یو بل سره امداد کوي، او ده ته دا نیت پکار دی چي بازارته د دې د پاره ځم چي هلته داسي څه کار وکړم چي مسلمانو ته څیني فائده ورسیږي لکه چي د نورو مسلمانانو د کارونو شخه ما ته فائده رسیږي.

ټوله کسبونه د فرض کفایه په درجه کي راځي په دې وجه د دې نیت کول پکار دي چي د دې فرض کفایه کارونو شخه یو فرض زه ولي پر خپله غاړه وانه اخلم او پوره یې کړم، او د دې نیت د واقعي صحیح کېدو دلیل فقط دا کېدای سي چي دی یو داسي کسب ته لاس وروا چوي د کومي سره چي د خلګو ضرورت تړلی وي، تر دې چي د ده د کار په عدم موجودګی کي دې ته د نقصان رسېدلو ېره وي هسي خو د دې شخه مراد زرګري، ښت کاري یا نقاشي او نوره نه سي اخیستل کیږي چي دا خو محض د دنیا د زینت او ښایست د ندې دي او د دې کارونو یو داسي خاص ضرورت سته هم نه، او د دې نه کول د کولو شخه بهتره دي، په دې کي شک نسته چي مباح ضروري دي (حرام نه دي) لېکن خوله دا ده چي دا کارونه وکړای سي او (څیني حرام دي لکه) مثلاً د سړیانو د پاره ورېښمني کپړي ګنډل او د سرو زرو کالي جوړول حرام دي؛ او نه دا کسبونه اختیارول مناسب دي کوم چي د اسلافو په نزد مکروه سوي دي، مثلاً خوراک خرشول، کفنونه خرشول، غو ښه خرشول، او صرافي کول چي دا هغه کسبونه دي چي په هغه باندي په اخته کېدو سره سړی د سودخوری شخه نه ساتل کیږي، او د

حجّام پیشه چي په هغه کي جرّاحي هم راځي، ځکه په دې زمره کي داخله دي چي په جراحت کي دوه ډوله امکان لیدل کیږي یو دا چي کېداي سي چا ته فائده په ورسیږي او کېداى سي چي ونه رسیږي، او خاکروبي (جاروهل) او څرمن (پوست) رنګ کول کمزوري کاروونه دي چي په دې کي د جامو پاک ساتل ناممکنه دي، او بیا د کم همتی علامې هم دي، او سلرواني هم د پیشې په لحاظ په کمه درجه کي شمارل کیږي، دا حکم د دلالی هم دي په کومه کي چي ډېري خبري کول وي، او په حدیث کي دي چي ډېر بنه تجارت جامې خرڅول او بنه پیشه چمیاري (موچي توب) ده، چي په دې کي دڅیانو او نورو ګنډل شامل دي،

او په یو حدیث کي دي چي که په جنت کي تجارت واي نو د جامو به واي، او که په دوږخ کي د تجارت سلسله واي نو صرّافي به واي، د دې څخه ما سوا څلور پیشې خلک سپکي ګڼي یعني جولا ګیري (تږکر ان وودل)، نان فروشي او د معلمی پیشې او د دې سبب دا ښیي چي په دې کي د کوچنیانو او ښځو سره اکثره واسطه پرېوځي چي د هغو کم عقلي مشهوره ده او ښکاره ده چي د دوی سره ناسته پاسته هم اکثره د کم عقلی سبب جوړیږي.

(۳) دریم دا چي د دنیا په بازاره سره دآخرت د بازاره څخه غافله نسي او (په دنیا کي) دآخرت بازار د مسجدونو څخه ما سوا بل کوم کېداى سي الله ﷻ فرمایلي دي: لَّا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَن ذِكْرِ اللَّهِ [النّور] (کوم چي د الله ﷻ د ذکر څخه نه اخیستل په غفلت کي اچوي او نه خرڅول) یعني خبر دارا هسي نه چي د تجارت کاروبار تاسو د الله ﷻ د یادولو څخه غافله نه کړي، چي دا سي به تاسو په تاوان کي پرېوځی،او حضرت عمر ﷺ فرمایي: چي اې تجارت کوونکو! په دنیا کي د ورځي لوله حصه دآخرت د پاره پرېږدي، او وروسته حصه د دې دنیا د پاره کړي او د تېرو بزرګانو به دا خاص عادت وو چي دسهار څخه تر ماښامه پوره به یې دآخرت په کارونو کي ځانونه مشغول ساتل یا به مسجدونه ته تلل د الله ﷻ ذکر به یې کولو، د درود وظیفې به یې ویلې یا به په علمي مجلسونو کي شریک کېدل وخت به یې تېروی، او نمیانو به د دوی د پاره هریسه (د غنمو د اوړو او شیدو څخه پوخ سوی خوراک) او سرونه او پښې پخول او هلته به یې وروړل پر دوی به یې خرڅول، او په حدیث شریف کي دي چي فرشتې کله دبنده دعمل کتاب (یعني هغه کتاب چي د ده عملونه پکښې لیکل کیږي) لوړ اسمان ته وړي نو چي هلته که دا ثابته سي چي ده د ورځي اوله او آخره حصه په نېکي کولو کي صرف کړي ده نو د ورځي د میانځوی وخت ټول ګناهونه د ده معاف کول کیږي، او په حدیث کي دي

چي د شپې فرښتې او د ورځې فرښتې د سهار او ماښام په وخت کې یو ځای کیږي نو الله ﷻ د دوی څخه پوښتنه کوي چې زما بنده تاسو په څه حالت کې ولیدی، دغه فرښتې عرض وکړي چې یا الله! کله چې موږ د هغه څخه راتلو نو هغه په لمانځه کې وو، او کله چې موږ ورغلو، نو هم هغه په لمانځه کې وو، پر دې باندې الله ﷻ وفرمایي چې اې فرښتو تاسو ګواه سئ چې ما دغه خپل بنده وبخښلو.

او پکار دي چې د ورځې په دوران کې څنګه د لمانځه آذان د ده په غوږو کې پریوځي نو هر ځای چې وي هر څه چې کوي او په څه حال کې چې وي هر څه پر هغه ځای پریږدي مسجد ته حاضر سي، او د دې آیت په تفسیر کې چې " کوم خلک چې د الله د ذکر څخه نه اخیستل په غفلت کې اچوي او نه خرڅول". مفسیرنو لیکلي دي: چې دا اشاره هغوکسانوته ده چې په دوی کې یو اهنګر (پښ) وو هغه که به چوټک (مطرقه) پورته کړې وه نو هغه چې به آذان واورېدی نو مخ ته به یې چوټک (مطرقه) نه راپرېښول شا ته به یې وغورځول، او که چا به څرمن ګنډله نو چې ستنه به یې په جګه کړې وه نو د آذان د اورېدو سره به یې هغه پر هغه ځای پرېښوده را ایستل به یې نه، او مسجد ته به یې ځغستله.

(۴) څلورم دا چې د الله ﷻ د ذکر او تسبیح څخه په بازار کې هم غافله نه وي، او تر وسه پورې ژبه او زړه یې کاره نه ساتي، او داسې ګڼي چې کومه فائده د دې غفلت په وجه سره فوت سي ټول جهان دهغې په مقابله کې هیڅ شئ نه دی او دغه ذکر کوم چې د غافلانو په مینځ کې وسي د دې ثواب نور هم زیات وي، د نبي کریم ﷺ ارشاد دی چې د الله ﷻ ذکر کوونکي د غافلانو په مینځ کې داسې دي لکه چې یوه شنه زرغونه درخته چې د وچو پاڼو او درختو په مینځ کې خپل بهار ښیې، یا یو ژوندی د مړو په مینځ کې وي، او فرمایي کوم سړی چې بازار ته ولاړ سي او دا دعاء ووایي: لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِیْکَ لَهٗ لَهُ الْمُلْکُ وَلَهُ الْحَمْدُ یُحْیِیْ وَیُمِیْتُ وَهُوَ حَیٌّ لَا یَمُوْتُ بِیَدِهِ الْخَیْرُ وَهُوَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ د ده په عملنامه کې دوه زره نېکۍ ولیکل سي.

او حضرت جنید رحمه الله یو وار وفرمایل چې په بازار کې د خدای ﷻ داسې داسې بندګانو څه کمی نسته چې که صوفیان د غوږونو څخه ونیسي او پورته یې کړي او پخپله پر هغه ځای کښېني نو د دوی سره بالکل ښه ښکاري، او فرمایل یې چې په بازار کې د یو داسې سړي ما ته علم سته کوم چې روزانه درې سوه رکعتونه لمونځ کوي او درې زره تسبیح د الله ﷻ نوم وایي، او علماؤ پخپله اقرار کړی دی چې دوی د دې خبرې څخه پخپله خپل ځان پېژندلی دی (یعني کومه خبره چې د صوفیانو

په صحبت سره حاصله نه سوه هغه د دې مرد خدا د عادت په لېدلو سره حاصله سوه).

**قصهٔ مختصر:** کوم سړي چي بازار ته په دې غرض سره ځي چي د دين د فراغت په خاطر ده ته يو څه رزق حاصله سي (نو غنيمت دي) دغه داسي سړی دی چي اصل مقصود پرېښوول ده ته په هيڅ ډول قبول نه دي، (او دا په اصل کي مرد خدای دي).

لېکن د چا چي بازار ته تلل وي په دې غرض سره چي د دنيا دولت د زياتو څخه زيات حاصل کړي دغه په دې کار کي نه سي کاميابېدای بلکي که دی مسجد ته هم ولاړ سي او پر لمانځه ودرېږي خو د ده دا غير حاضر زړه د دې لين دين (کاروبار) په فکر او سوچ کي مبتلی وي.

(۵) پنځم دا چي بازار ته ولاړ سي دا کوشش دي نه کوي چي دلته د زياتو څخه زيات وخت تېر کړي لکه چي ځيني دکاندارانو د ټولو څخه مخکي ځي او د ټولو څخه وروسته کور ته راځي (او مقصد يې زياته نفع حاصلول وي) او په دې شغل کي د ليري ليري وطنو سفر اختياروي په کښتيانو، جاړونو کي تکليفونه زغمي، حال دا دی چي دا هر څه د ده د بې پناه حرص او لالچ په وجه وي، په قول دحضرت معاذ رضي الله عنه دابليس يو زوی دي چي "زلنبور" د هغه نوم دی هغه د خپل پلار د نمايندګي د پلاره په بازار کي موجود وي او ابليس ده ته دا سبق ورکوي چي ګوره بچيه! بازار ته ولاړ سه او هلته دکاندارن درواغو، فريب دوکې، حيله بازی او خيانت (درغلي) ته مائل او اماده کوه، او د هغه سړي سره په خاصه توګه وسه کوم چي بازار ته د ټولو څخه اول راځي، او د ټولو څخه وروسته ځي (څکه چي دغه حريص دی) او په حديث شريف کي دي چي په ځايونو کي د ټولو څخه بد ځای بازار دی او په خلکو کي بدترين هغه (دکاندار) دی کوم چي اول راځي او په آخر کي ځي، نو د دکاندار د پلاره واجب دي چي د سهار په وخت کي د علم د مجلس څخه او د وظيفو او د سهار د لمانځه او د ځلښت د لمانځه څخه فارغ نسي تر دغه وخته پوري دي بازار ته نه ځي، او هلته چي ولاړ سي نو چي دومره نفع حاصله سي چي د تولي ورځي د پاره کافي وي نو د بازار څخه دي واپس راسي او مسجد ته دي ولاړ سي هغه رزق دي حاصل کړي، کوم چي دآخرت په عمر کي يې پکار راسي، چي دغه عمر زيات اوږد دی او حاجت يې زيات سخت دی او د دې د بنده سره انتهائي کمي ليدل کيږي، حماد بن سلمه رحمه الله کوم چي دامام ابو حنيفه رحمه الله استاد وو دا هغه نقاب فروش وو چي کله به ورته دوه رتی نفع حاصله سوه نو دوکان به يې بند کړی واپس به راتلی (چي الله الله وکړي).

**قصه:** ابراهيم بن بشار رحمه الله يوه ورځ ابن ادهم رحمه الله ته ووېل چي زه نن د خاورو کار ته ځم،

ویې فرمایل اې ابن بشاره! ته د خاورو په لټون کې یې او ما خوا پخپله خاوري (مرګ) ستا په لټون کې دي، او ښکاره ده چې کوم شئ ستا په لټون کې دی ته د هغه څخه خلاصېدلای نسې، لېکن دا څه ضروري نه ده چې د کوم شئ ته په تلاش کې یې هغه هم ستا څخه خلاص نسي؟ شاید دا خبره به ستا په مشاهده کې نه وي تېره سوې چې حریصانو ته محرومي نصیب کېږي او کاهلان د زرق خاوندان جوړوي، دوی جواب ورکړی چې دلوخت زما سره صرف یو درهم دی او هغه هم د یو سلبه فروش څخه وصولول دي، ابراهیم بن ادهم رحمه الله وویل چې افسوس دي ستا پر مسلمانی چې یو درهم لري او بیا هم د خاورو کار ته ځې.

او په پخوانیو بزرګانو کې داسې خلګ هم وو چې په اوونۍ (هفته) کې به د دوو ورځو څخه زیات دکان ته نه تلل، او ځیني داسې وو چې تلل خو به روزانه لېکن د ماپښېن په وخت کې به واپس راتلل، او څوک به تر ماښیکره پورې په دکان کې وو، لېکن په دوی کې چې کوم یوه ته به د دې ورځې رزق ملاو سو فوراً به یې دکان بند کړی سیده به مسجد ته تلل، (بیا به واپس دکان ته نه تلل).

(۶) شپږم دا چې دشکونو او شبهو څخه ځان وژغوري، ځکه چې که حرام د ده څخه شلوخوا راوګرځي دی به فاسق او ګناه ګاره وي، او په کوم شئ کې چې یې شک وي د دغې په باره کې دې فتوی د خپل زړه څخه اخلي په مفتیانو پسې د تللو ضرورت نسته، په دې شرط چې اهلِ دل وي (یعني زړه ور سره واقعي وي) او دا طریقه غوره ده بیا که د ده زړه یې مکروه وګڼي نو چیرې دې هم نه اخلي، او د ظالمانو او د دوی د متعلقینو سره دې معامله نه کوي او یو ظالم ته دې په پور (قرض) شئ نه ورکوي که مړ سي نو دی به په غم اخته سي،او حال دا دی چې د ظالم په مرګ خفګان نه دي پکاري،او نه دې د ده پر دولتمندي خوشحالېږي او نه دې پر ظالمانو داسې شئ خرڅوي د کوم په باره کې چې معلومات وي چې دغه شئ به د ظلم د پاره استعمالوي، چې دی به پخپله هم پکښې شریک سي، غرض معامله د داسې چا سره کول پکار دي کوم چې یې قابل وي،

وویل سوي دي چې یوه زمانه داسې وه چې کله به یو سړی بازار ته تللو نو پوښتنه به یې کوله چې معامله د چا سره وکړم؟ او ده ته به داویل کېده چې د چا سره دې زړه غواړي کوه یې! دلته هر سړی احتیاط کوي، او بیا داسې دور (زمانه) راغله چې خلګو ویل: د ټولو سره معامله کوه لېکن فلانی فلانی د دې قابل نه دي نو احتیاط ځیني کوه او معامله ور سره مه کوه، او د دې څخه وروسته یوه زمانه داسې ده چې خلګ به وایي معامله د هېچا سره مه کوه او که یې کوې! نو د فلانی فلانی سره کولای سې، او (وایي) خطره ده چې آخر هغه زمانه را نسي چې معامله پکښې بالکل د چا سره هم نسي

کولای،

او دا خبره خو د مخکي وخت د خلکو ده، لیکن کله چي موږ خپلي زمانې ته گورو نو معلومیږي چي شاید اوس خو نوبت دې ته رسیدلی دي چي په معامله کي د هیڅ ډول فرق (د ناقص او کامل) خیال نه ساتل کیږي، او خلک داسي یې باکه سوي دي چي دناقص علم تش په نامه هوښیاران او د ناقص دین تش په نامه عالمانو څخه چي څه واوري دا تصور کوي چي د ټولي دنیا مال بس یو ډول سوی دي کوم چي ټول حرام دی په دې وجه د احتیاط صورت نه پیدا کیږي، حال دا دی دا یو ډېر لوی حماقت دی او په اصل کي داسي څه خبره نسته کومه چي خلکو خامخا فرض کړي ده، موږ به د دې پوره وضاحت انشاء الله د حرامو او حلالو په باب کي وکړو کوم چي د دې څخه وروسته دی.

(۷) اووم دا چي کله د چا سره معامله کوې نو خپل حساب کتاب ور سره بالکل صحیح ساته او څه چي ور ته وایې څه چي کوې او څه چي اخلې او څه چي ور کوې یاد ساته چي دقیامت په ورځ به د دې یوې یوې سره مخامخ کیږې او پوښتنه به در څخه کول کیږي، یوبزرگ یو سوداگر په خوب کي ولیدی پوښتنه یې څیني وکړه چي الله ﷻ ستا سره څه وکړل؟ هغه وویل چي پنځوس زره کاتې (دفترونه) زما په مخ کي کښیښول سول او ما عرض وکړی چي اې خدایه! دا دومره کاتې به دکومو کومو خلکو وي؟ نو الله ﷻ وفرمایل چي دا د هغو پنځوسو زرو خلکو کاتې دي د کومو سره چي تا په ژوند کي معامله کړې وه او دا د هر یوه جلا جلا کاته ده او ما چي هر کله هره یو جلا جلا ولیده نو دا وله څخه تر آخره پورې هره معامله په تفصیل سره پکښې لیکل سوې وه، او لنډه دا چي که دلته ده دچا سره څه دوکه کړې وې نو په هغه جهان کي به دی د هغې بوج پر غاړه وي که څه هم د دغه نقصان مقدار د یوې دانې برابر ولي نه وي، او په دې مؤاخذه کي به د گرفتاری څخه وروسته هیڅ شئ پکار را نسي تر څو چي د هغه سزاوي نه خوري.

نو د تیرو بزرگانو سیرت (کړوه وړه،اخلاق) او د شریعت لار خو دا وه د کومې چي په معاملو کي ډېر خیال ساتل کیدی، لیکن اوس خو دا سنت گواکي یا تللی دی څه معامله او څه علم د معاملې هیڅ هم چا ته یاد پاته نه دی، حال دا دي چي که څوک په دوی کي یو سنت هم پر ځای کړي نو عظیم ثوا ب به حاصل کړي.

او په حدیث شریف کي دي چي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي یو وخت به داسي راسي چي کوم احتیاط نن تاسو کوئ په هغه زمانه کي څوک د دې لسمه حصه هم وکړي نو د هغه د پلره به کافي وي، صحابه وو عرض وکړی چي یا رسول الله! هغه ولي؟ ورې فرمایل تاسو چي کوم پر دومره نېکې

قادره پاتی نو ځکه چي (زما په یول) یار او مددګار در ته حاصل دی په دې وجه تلسو ته دا الار آسانه ده، او هر کله چي هغه خلک به د دې شخصه محرومه وي بې یار او مددګاره به وي او د غافلانو په مینځ کي به ګرفتاره وي، (نو د دوی شخصه د لسمي حصې امید څه کم نه دی) او دا حدیث ځکه دلته بیان سو چي اور پدونکي بالکل مایوسه او ناامیده نسي، او داسي ونه وایي چي دا تولهٔ څنګه وکړی سي، او په دې زمانه کي خو چي څه لږ هم پر ځای کړي غنیمت دی، بلکي (اوس خو دا عَالَم دی چي) که څوک پر دې شئ ایمان لري چي آخرت د دنیا شخصه غوره دی نو موږ به ګنو چي دغه د دې تولو کارونو په راوړو کي کامیابېدای سي، ځکه چي د دې تولو احتیاطونو که نتیجه راووځي نو دا چي د فقر او حتیاج ژوند به تېروي او هغه فقر او احتیاج کوم چي د ابدي باچاهت سبب جوړېدای سي هغه زغمل ګران نه دي ځکه چي خلک د دنیوي مال او دولت د پاره څومره تکلیفونه تېروي او څومره څومره ذلتونه د دې د پاره پورته کوي، حال دا دی چي د مرګ د راتلو سره به دا هر څه ضایع پاته سي او د ده په هیڅ کار به رانسي، نو بیا دا څه داسي لویه خبره ده چي د یوې معاملې په وخت کي که د دې شئ لحاظ وساتل سي چي کومه خبره د ځان د پاره نه خوښوي هغه د بل د پاره خو ښه نه کړي، او اصل حال خو الله ﷻ ته معلوم دی.

## څلورم اصل: د حلا او حرام او مشتبه پېژندل

پوه سه! چي د نبي کریم ﷺ ارشاد دی: طَلَبُ الْحَلَالِ فَرِيْضَةٌ عَلَىٰ كُلِّ مُسْلِمٍ وَمُسْلِمَةٍ (چي طلب د حلالو د هر مسلمان سړي او ښځي د پاره فرض دی) او طلب د حلالو تر هغه وخت پوري ممکن نه دي تر څو پوري چي دا معلومه نه وي چي حلال وایي څه ته؟ او فرمایي چي حلال هم ښکاره دي او حرام هم ښکاره دي او د دواړو په مینځ کي داسي شبهات دي چي مشکل هم دي او پټ هم، او څوک چي د دې شخصه شاوخوا ګرځي د هغه په حرامو کي د مبتلا کېدلو بېره پیدا کیږي، نو پوه سه! چي دا یو وسیع علم دی چي تفصیل یې موږ په خپل کتاب " احیاء العلوم" کي په تشریح او تفصیل سره کړی دي داسي چي په بل کتاب کي نه ملاوېږي، او په دې کتاب کي فقط موږ دومره بیان کوو چي عوام به په پوه سي، او تشریح یې موږ په څلورو بابونو کي وړاندې کوو، انشاء الله تعالی: اول باب د حلالو فضیلت او ثواب یې. دویم باب د حلالو او حرامو په اعتبار سره د پرهیزګاری درجې. دریم باب په حلالو او حرامو کي فرق او د دې اړوند سوالونه. څلورم باب د باچاه شخصه د روزینې (توبنې، تنخا) په اخستلو کي د حلالو طلب او نور.

## اول باب: د حلالو د طلب فضیلت او د دې ثواب

پوه سه! چې الله ﷻ فرمایلي دي: يَا أَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا [المؤمنون: ۵۱] (اې پیغمبرانو! تاسو (او ستاسو امتونه) حلال شیان وخورئ او نیک عملونه کوئ) یعني فرمایي چې اې زما رالیږل سوو رسولانو! څه چې هم خورئ پاک او حلال یې خورئ او څه چې هم کوئ داسې کوئ کوم چې د طاعت او بندګۍ مطابق وي، او په دې وجه نبي کریم ﷺ فرمایي چې د حلالو طلب پر ټولو مسلمانانو فرض دی، او فرمایي چې کوم سړی تر څلوېښتو ورځو پورې حلال خوري داسې حلال چې د حرامو یو ذره اندازه خلط او ګډون پکښې نه وي الله ﷻ د ده زړه د نور څخه ډ کوي، او د حکمت ملغلرې ذ ده د زړه څخه بهیږي، د یو بل روایت مطابق (چې د حدیث آخري نیمه حاصه داسې ده چې) د ده زړه به د دنیا د محبت څخه بې زاره سي.

حضرت سعد ﷺ کوم چې د مشرانو صحابه وو څخه دی یو وار یې نبي ﷺ ته عرض وکړی چې زما په حق کې دعاء وفرمایاست چې زما هره دعاء قبلیږي، نبي ﷺ وفرمایل حلال رزق خوره! چې ستا هره دعاء به قبلیږي، او فرمایي چې ډېر داسې خلک دي چې خوري حرامه، اغوندي حرامه، او د دې سره سره لاسونه پورته کوي دعاګانې غواړي د دوی دعاګانې آخر څنګه قبلیدای سي؟ او فرمایي چې د الله ﷻ یوه فرښته هره شپه په بیت المقدس کې دا آواز کوي چې کوم سړی حرام خوري د هغه نه فرض قبلیږي او نه سنت، او فرمایي که یو سړی په لس درهمه یو جامه واخلي او جامې جوړې کړي لیکن په دې ټولو کې که یو درهم حرام وي نو تر څو چې دغه جامه د ده پر جسم وي د ده لمونځ به قبول نه وي، او فرمایي: په حرامو خوړو چې کومه غوښه د بدن جوړه سوې وي د هغې (د دوږخ) په اور کې سوځیدل غوره دي، او فرمایي چې کوم سړی ته دا پروا نه وي چې مال د کومه راغلی حلال دي او که حرام نو د دغه سړي په باره کې د الله ﷻ هم څه پرواه نه وي چې دی د دوږخ کومې حصې ته ور واچول سي، او فرمایي چې د عبادت په لسو حصو کې نهه حصې د حلالو طلب وي، او فرمایي چې کوم سړی ستړی ستومانه د شپې کور ته واپس راسي او د ده د ستړې کېدلو سبب دا وي چې ټوله ورځ یې د حلالو په طلب کې کوشش کړی وي نو کله چې دی بیده سي نو بخښلی بیده سي، او سهار چې بیدار سي نو د الله ﷻ رضا ده ته حاصله وي، او فرمایي چې د الله ﷻ ارشاد دی چې د حرامو څخه د پرهېزکوونکي سره خو ما ته په حساب کولو هم شرم راځي، او فرمایي چې د یو مسلمان د پاره یوه روپۍ په سود کې اخیستل دېرش واره د زنا کولو څخه ناکاره (خراب) دي، او فرمایي چې د

حرام خور مال په صدقه کي قبلېدای نسي او چي پروت وي نو دوږخ ته د رسېدو پوري د ده لاري تو بنه وي.

**روايتونه او اقوال:** حضرت ابوبکر صديق ﷺ يو وار د غلام د لاسه د شيدو دشربتو پياله وڅښله لېکن معلومه سوه چي هغه حلاله نه وه، نو دغه وخت يې ګوته حلق ته ورکښته کړه او قي يې وکړی چي دومره سخت وو چي د جسم څخه يې د روح وتلو ېېره پيدا سوه، او په وار وار يې ويل چي اې پروردګاره! زه ستا څخه پناه غواړم چي د شربت څه ناڅه حصه خو به زما په رګونو کي پاته سوې وي او د کومي را ايستل چي زما په وس کي نه دي، او د غسي يو وار حضرت عمر ﷺ هم کړي وو چي په دوی د صدقې شيدې څښل سوي وې، او د ابن عمر رحمه الله قول دی چي په لمونځ کولو ملا تيټه سي او په روژه نيولو جسم وچ سي د وبښته په ډول نری سي خو بيا هم د دې تر هغه وخته پوره څه فائده نه سته تر څو چي د حرام خوړلو څخه ځان ونه ژغورل سي چي د حرامخوري سره سره دغه لمونځ، روژه د سره قبول نه دي، د سفيان ثوري ﷺ ارشاد دی چي کوم سړی د حرام مال څخه صدقه خيرات ورکوي دغه ګواکي د ناپاکو جامو په ميتازو د پرېولو کوشش کوي، کومي چي نوري زياتي ناپاکي کيږي، او يحيی بن معاذ ﷺ فرمايي چي اطاعت او بندګي د الله ﷻ خزانه ده چي چابي (کيلي) يې دعاء ده، او د دې چابي غاښونه د حلال رزق څخه جوړيږي.

او سهل بن عبد الله تستري رحمه الله وايي چي د څلورو شيانو د پېژندلو څخه بغير يو سړی هم د ايمان داصل حقيقت څخه نسي خبرېدای:

(١) چي ټول فرائض د سنتو عين مطابق ادا کړي (٢) حلال خوري لکه چي د پرهيزګاری تقاضاده (٣) د ټولو بدو څخه مخ واړوي هغه که د ظاهر سره وي که د باطن سره (٤) تر آخر وخته پوري پر دې کارونو ثابت قدم او برابر وسي، او ويل سوي دي چي کوم سړی څلوېښت ورځي په مُشتبه مال سره نس ډ کوي د ده ز ړه تور سي او زنګ ونيسي، ابن مبارک رحمه الله فرمايي چي زما په نزد د يو لک درهمو په صدقه کي ورکولو څخه دا کار ډېر ښه او غوره دي چي د شک شُبهې يوه روپۍ مالک ته واپس کړي، د سهل تستري قول دي چي د حرام خور ټول اندامونه په ګناه کي مشغوله وي که څه هم دی غواړي او که نه غواړي، او کوم سړی چي حلال خوري د ده ټول اندامونه په عبادت کي وي او دخير توفيق همېشه د ده شاملِ حال وي، لنډه دا چي په دې ضمن کي د آثارو او اقوالو څه کمي نه سته او بې شماره دي او د ا سببَ دی چي زاهدانو او بزګانو په دې سلسله کي د انتهائي ډېر احتياط

شخه کار اخیستی دي.

**قصه:** په دې بزرګانو کې یو بزرګ وهب ابن الورد رحمه الله هم تېر سوی دی د کوم چې دا عادت وو چې تر هغه وخته پورې به یې یو شئ نه خوړی او نه به یې چښلو تر څو چې به یې دا اطمینان نه وو سوی چې دغه شئ ده ته په کومه ذریعه رسېدلی دی، یوه ورځ یې ده ته مور د شیدو یوه پیاله د چښلو د پاره ورکړه دوی پوښتنه وکړه چې دا شیدې د کوم ځای شخه راغلې؟ قیمت یې د کوم ځای شخه ادا سوی دی؟ او د کوم سړي شخه اخیستل سوی دي؟ دا هر شه چې یې معلوم کړل او اطیمان یې وسو نو پوښتنه یې وکړه چې دې بزې (وزې) وابنه دکوم ځای شخه خوړلي وه؟ پر دې باندې معلومه سوه چې بزې د یو داسي چراګاه (څر ځای) شخه وا بنه خوړلي وه چې په هغه کې دمسلمانانو هیڅ دول شه حق نه وو. نو د شیدو چښلو شخه یې انکار وکړی مور ورته وېړ وویل چې څویه! وچیښه الله تعالی به پر تا رحم وکړي. دوی وویل (اې مهربانه موري!) هغه که شه رحیم دي او رحمت کوونکی دی، لېکن زه دا شیدې په هرحال نه چیښم ځکه چې په یو ګناه سره د ککړ کېدلو شخه وروسته چې کوم رحمت ما ته حاصل سي په دې کي به د ګناه ګندګي خامخاوي او دا زما خو بنه نه ده چې رحمت په ګناه ککړ کړم.

او د بشر حافي رحمه الله شخه خلکو پوښتنه وکړه چې ته یې د کوم ځای شخه خورې؟ او ده به په ډېره اندازه احتیاط کولو، ویې فرمایل: د هغه ځای شخه یې خورم د کوم ځای شخه چې یې نور خلک خوري لېکن فرق سته د ده په خوراک کي چې شه خوري او د خدای تعالی د بیري شخه ژاړي چې حرامه ګوله ونه خوري او د خلکو په خوراک کي چې شومره خوري او په یې فکری سره خاندي او پروا نه کوي چې حلال یې وخوړل که حرام او ویې فرمایل: چې که اوږده اوږده لاسونه خوراک ته مخکې نه کړي نو په خوراک کي به خو په دې سره شه کمي واقع نسي چې د حلالو او حرامو د تمیز د دې شخه غوره طریقه هیڅ نسته)

## دویم باب: په حلالو او حرامو کي د پرهیز ګاری درجې

پوه سه! چې د حلالو او حرامو مختلفې درجې دي او د هري یوې خپل خپل نوعیت دی چې هغه د یو بل شخه جلا دي یعني (کوم چې حلال دي په دوی کې) بعضې فقط حلال دي بعضې حلال او پاک او بعضې ډېر پاک (پاک ترین) دي، دغه حال د حرامو دی چې یو خو حرام او سخت وي بل حرام او ګنده وي او بعض د دې شخه هم بد ترین. مثلاً چې د یو مریض د پاره ګرمي نقصاني وي د ده د پاره

چې کوم شئ څومره زیات کرم وي دومره به زیات ضرر رسونکی وي، څکه چې د کرمی پنځله
مختلفي درجې دي مثلاً د عسلو کرمی د کنو د کرمې څخه وي، نو د حرامو هم جلا جلا درجې دي د
کومو څخه چې پرهېز کول دمسلمانانو د پاره لازمي دی، او د دې پرهیز پنځه درجې دي.

اولي درجې ته پرهیزګاري عدولي وايي او دا د عامو مسلمانانو پرهیزګاري ده یعني د هغه شئ څخه
پرهېز کول کوم چې د شریعت په روی سره حرام مقرر سوی وي او دا کمترینه درجه ده کومه چې د
پرهیز په ضمن کې تسلیمیږي، څکه چې که په یو سړي کې دا هم موجوده نه وي نو ده عدالت هم
بالکل باطلیږي، او د ګناهګار او فاسق څخه ما سوا ورته نور هیڅ هم نسي ویل کېدای، او د دې ګناه او
فسق نوري (د بدو څخه بدتري) درجې متعیّني کیږي، مثلاً که یو سړی د بل مال په عقد فاسد سره
حاصل کړي لیکن دا حاصلول د هغه په رضا سره وي نو دې ته فقط حرام وايي مګر کوم سړی چې د
فریق ثاني د رضا او خوښي څخه بغیر دغه غصب کړي نو ده دا اقدام حرام تر دی، او که مال د یتیم یا
فقیر وو نو دغه په انتهائي توګه باندې حرام دی لیکن ښکاره ده چې په حرام او حرام تر کې فرق یقیناً
وي، په دې وجه د عاقبت د پاره د دې خطره هم زیاته وي او د بخښنې اُمید یې د ضعیف څخه
ضعیف تر کیږي، مثلاً یو مریض (د پاره که خواږه شیان زیان رسونکي وي نو دغه مریض) که عسل
وخوري نو ده ته به د کنو په نسبت زیات ضرر رسوي، او بیا پنځله د عسلو د خوړو عمل هم په
مختلفو درجو کې ایښوول سوی دي، یعني څومره چې زیات وخوري په دغه تناسب سره به ده ته
زیات ضرر رسیږي، او د دې خبرې تفصیل چې حرام څه ته وايي او د حلالو څخه څه مراد دی هغه
سړی پېژني کوم چې د تولي علم فقهي مطالعه کړې وي او د تولي فقهي څخه څان خبرول پر هر
چا واجب نه دي، څکه چې د چا رزق نه د مال غنیمت سره تړلی وي او نه یې د ذمیانو د جزیې سره
تعلق وي نو دا پر هغه چیري واجب دي چې کتاب د غنیمتونو یا کتاب د جزیې ووايي؟ حاجت خو
د هغه فقهي علم وي د کوم سره چې سیده په سیده د چا تعلق وي، او چې کله د چا واسطه د تجارت
سره وي نو ده ته د علم بیع سره متعلق علم فقه ویل بې شکه لازمي دي، او که مزدور کسبه وي نو ده ده
د پاره علم د اجارې کافي دی، او علم خو د هري پیشې وي او د پیشو خو څه حساب نسته په دې وجه
د هر سړي د پاره د دغې پیشې علم ازده کول لازمي دي د کومې سره چې ده ده تعلق وي.

دویمه درجه د هغه پرهیز ده کوم ته چې د نېکو مسلمانانو پرهیز ویل کیږي او دې خلکو ته
صالحین وايي، او د دې پرهیز څخه دا مراد دی چې دمفتي فتوی که د یو شئ په حرامېدو کې هم نه
وي لیکن د شبهې څای پکښې وي نو دا خلک د دې څخه هم پرهیز کوي هسې خو شبهات هم پر

دریم قسمه دي: چي د هغو شخه یو خو هغه دی چي د هغه شخه عذر کول واجب وي او دویم هغه دي چي عذر که څیني واجب نه وي نو مستحب ضروري وي او ظاهره ده چي د واجبو شخه د ځان ساتلو درجه لوله ده، او د مستحبو شخه پر دویم نمبر ده، او دریم هغه چي د هغه شخه ځان ساتل (واجب یا مستحب نه وي بلکي) صرف صحیح ورته ویل کیږي ځکه چي دا لاحاصله غوندي خبره وي، مثلاً یو سړی د ښکار خو ښه فقط د دې دپاره نه خوري چي شه معلومه ده که حیوان د چا ذاتي ملکیت وي او د هغه شخه تښتېدلی وي یا چا په شه وجه سره د مالک شخه ځان ته راوړلی وي او د هغه ځای څخه راوتلی وي، یا ممکنه ده چي مړ وي بیا هم د ده د وارث پر ده حق جوړیږي، نو بلا دلیله او بلا نشانه فقط یوه وسوسه ده چي خاص اهمیّت ورته ورکول محض تکلف دی.

دریم یعني د دې شخه لوړ پرهیز د پرهیزګارانو دی کوم ته چي متّقي وایي او د دې شخه مراد دا دی چي شئ نه حرام وي، نه مشتبه وي او حلال مطلق وي نو هم که د دې خبري بیره وي چي هسي نه د دې په وجه سره په اشتباه کي ګرفتاره سي، نو د دې شخه پرهیز وکړی سي ځکه چي د نبي ﷺ ارشاد دی چي بنده تر هغه وخته پوري دمتقي درجي ته رسېدل نسي حاصلاوی تر څو چي دی یو شئ محض د دې بیري پر بناء پرېښودل اړده نه کړي چي هسي نه د دې په وجه سره په حرامو کي مبتلا سي، څنګه چي حضرت عمر ؓ فرمایي چي موږ د حلالو د لسو حصو شخه پر نهو باندي ځکه قناعت وکړی چي هسي نه په حرامو کي مبتلا سو. څنګه چي داوجه وه چي که یو سړی به د بل شخه سل درهمه اخیستل، نو یو کم سل به یې اخیستل په دې بیره چي هسي نه زیات سي.

علي بن معبد رحمه الله خپله یوه واقعه بیانوي چي مایو ځای (مکان) په کرایه واخیستی یوه ورځ مي یو خط چا ته ولیکلی نو غوښتل مي چي د مکان د دېوال په خاوره یې وچ کړم بیا مي سوچ وکړی چي دېوال خو زما ملکیت نه دی نو خاوره څنګه څیني راواخلم بیا خیال راغلی " چي په دې کي نو شه دي" وروسته مي لږ غوندي خاوره راواخیسته پر خط مي واچوله، لیکن په دغه شپه مي په خوب کي ولیدل چي یو سړی وایي څوک چي وایي د دېوال په خاوره کي شه دي ده ته به صبا د قیامت په ورځ معلومه سي چي څومره قیمت پکښې دی ، او کوم خلک چي دې درجي ته رسیدلي وي د هغوی واقعي دا عادت وي چي د لږ او معمولي شئ شخه بیره کوي او ځان څیني ساتي چي هسي نه په دې سره د زیات رغبت او شوق پیدا سي، او د دې شخه هم زیات دا چي د قیامت په ورځ دمتقیانو د درجي شخه محرومه سي،

په دې وجه یو واري حسن بن علي ؓ په کوچنیوالي کي د صدقې یوه خرما خولي ته ور واچوله

چي نبي کريم ﷺ ور ته وويل وغوږځوه، توبې کړه.او خليفه عمر بن عبد العزيز رحمه الله ته يو وار د غنيمت د مال څخه د مشکو نافه وړاند کړای سوه نو فوراً يې پزه بنده کړه ويې فرمايل: د دې خوشبو د دې څخه د نفع اخيستلو يوه برخه ده او دغه صرف زمانه د ټولو مسلمانانو حق دی، يو بزرګ د شپې په وخت کي د يو مريض سر ته ناست وو هغه مريض مړ سو، بزرګ فوراً څراغ مړ کړی او ويې ويل چي دا تېل صرف اوس د دې متوفي (مړ سوي) د وارثانو حق وګرځېدی.

**روايت:** حضرت عمر رضي الله عنه يو وار د مالِ غنيمت مشک په کور کي کېښېښول چي د خپلي بي بي په لاس يې پر مسلمانانو خرځ کړي، يوه ورځ کورته راغلی نو د بيبي د پوړني څخه د مشکو بوی راغلی ويې فرمايل دا د کوم ځای څخه وه "هغې وويل چي د مشکو په وړولو مي خوشبويي په لاسو پوري لګېدلې وه لاسونه مي په پوړني پوري مږلي دي، دوی پوړني فوراً د دې سره څخه ليري کړی او کله يې پر يولی کله يې په خاوري کي مږی او بُويوی به يې تر دې چي د بوی نښه پکښې پاته نه سوه نو بيا يې پوړنی بي بي ته واپس کړی، اوبس که څه هم د بوی دا دومره اندازه خو بالکل معاف وه، ليکن د حضرت عمر رضي الله عنه مقصد د دې دروازې بندول وو کوم چه نن خو محض خوشبو وه صبا بل طرف ته هم تللی سوه، په دې وجه د حرامو په بيره سره د حلالو پرېښوول د متقيانو تقاضا ده چي د متقيانو ثواب بغير د دې څخه نه ملاوېدوی.

او د امام احمد بن حنبل رحمه الله څخه پوښتنه وسوه چي که يو سړی په مسجد کي ناست وي او هلته د باچاه په مال سره خوشبوياني (عطرونه) لګول کيږي (نو دا سړی به څه کوي ؟) ويې ويل چي دی دي بهر ووځی چي د عطرو بوی وانه اخلي ځکه چي دغه بول د خوشبو څخه يو فائده دی حاصله کړي مقصود هم دغه دي، بيا ده څخه پوښتنه وسوه که چا ته د حديث يوه لوېدلې ورقه (پانه) ملاو سي نو د مالک د اجازت څخه ما سوا دغه نقل کول صحيح دي؟ ويې فرمايل نه دي.

حضرت عمر رضي الله عنه خپلې يوې انتهائي ګراني بي بي ته د خلافت ملاوېدلو څخه وروسته په دې جه طلاق ورکړی چي په يو معامله کي را ته سپارښت ونه کړي، د کومو معاملو نتيجه چي د دنيا زينت ښکلا ده. (د دې دا حکم دی) ځکه چي د بنده په معمولي کار کي مشغولېدل د زيانتې سبب جوړيږي، او کوم سړی چي حلال خوراک هم په ماړه نس خوري دی هم د متقيانود درجې څخه خارجيږي ځکه چي نس ډک وي نو په شهوت کي حرکت پيدا کيږي او په دې کي دا يېره وي چي هسې نه ناوړه خيالات په زړه کي را پيدا سي، بلکي د مستی ښکاره کېدلو هم عينِ خطره وي، دغسې د دنيادارو باغونو او مکانونو ته کتل هم د دې قبيلې څخه ګرځول سوي دي چي په دې سره هم د دنيا

په حرص کي حرکت راپيدا کيږي کوم چي بنده د دې په طلب کي مبتلا کوي، او دا بيا آخر دی د حرامو تيارو ته دننه کوي، په دې وجه نبي ﷺ فرمايلي دي چي د دنيا محبت د ټولو ګناهونو سردار دی، دلته د نبي ﷺ ارشاد (حرامي دنيا ته نه ده دغه خو پخپله دګناهونو بار دی بلکي) مباحي (روا) دنيا طرف ته ده، ځکه چي مباحه دنيا دوسته (ملګري) جوړه کړي (نو که څه هم دغه مباحه ده خو) زړه چي کله دې دوست ته حواله کړای سي نو نور زيات دنيا طلب کوونکي يې جوړ کړي او بيا نوبت ګناه ته ورسيږي او په ګناه کي ومښلي، نو بيا چيري ځيني خلاصيدلای سي؟ او آخر زړه د ذکر الهي د تصور څخه هم ليري سي او د دې څخه زياته بدبختي نسي کيدای چي غفلت پر زړه دومره غالبه راسي چي د الله ﷻ څخه يې غافله کړي او دا وجه وه چي يوه ورځ سفيان ثوري رحمه الله ديو امير ديو غټ ښکلي کور د دروازې سره تيريدی چي د ده يو ملګری چي د ده سره وو په غوره سره يې دې محل ته کتل دوی منع کړی او ورېي فرمايل چي که تاسو ورته داسي نه کتلای نو دې خلکو به داسي اسراف نه کولای، نو تاسو هم د دې خلکو سره د اسراف په ظلم کي شريک سواست.

د احمد بن حنبل رحمه الله څخه خلکو پوښتنه وکړه چي د مسجد په ديوالونو او غوولي (صحن) کي د خټ ګاري په باره کي ستاسو څه رايه ده، جواب يې ورکړی چي د غوولي د پاره خو صحيح ده چي خاوري دوړي نه کوي ليکن دا پر ديوالونو خټ ګاري خو زما په نزد مکروه ده ځکه چي دا محض په ښايست کي داخله ده، د بزرګانو وينا ده چي دکوم سړي جامې نرۍ او تنګي وي د ده دين هم تنګ وي، او حاصل د خبري دا دی چي په کومو حلالو سره چي په حرامو کي د پرېوتو ېيره يا احتمال وي د دغو حلالو پرېښوول غوره دي.

(۴) څلورم درجه د صديقينو د پرهيز ده دوی د هغو شيانو څخه هم پرهېز کوي کوم چي نه صرف حلال وي بلکي حرامو ته رجوع اندازه هم نه کوي ليکن د دې د حصول په اسبابو کي څه نا څه سبب داسي وي په کوم کي چي يو ګناه سوې وي او د دې مثال دا دی چي:

**روايتونه او قصې:** بشر حافي رحمه الله به د باچاه د جوړ سوي نهر څخه اوبه نه څښلې، د بزرګانو يوې ډلي به د حج په سفر کي د هغو حوضو نو څخه اوبه نه څښلې کوم چي به باچاهانو جوړ کړي وه، يوې ډلي به د هغه باغ انګور نه خوړل کوم چي به د باچاهانو په نهرونو اوبه کيدل.

د احمد بن حنبل رحمه الله په نزد په مسجد کي درزي توب (خياطي) کول په کراهت کي شمار وه، او نه يوېل کسب په مسجد کي کول صحيح وه، او د دې سوال په جواب کي چي د هليري تر کښتي

لاندي کښېناستل د موچي پخپل کار کي مشغوله کېدل څنګه دي؟ وېې ویل چي مکروه دي ځکه چي هلېره د آخرت سره تعلق لري او پیشه سازي د دنیا سره. یو غلام د باچاه د کور څخه بل کری شراغ راوړی او مالک یې هغه مړ کړی. یو وار د شپې په وخت کي د یو بزرګ د پیزار (څپلی) تسمه خلاصه سوه عین په دغه وخت ځیني خلګو د باچاه مشعلونه (څراغونه) راپورته کړي وو پر دغه طرف راغلل بزرګ تسمه برابروله چي لاسونه بیرته ځیني پورته کړل او مناسب یې ونه ګڼله چي په دې رڼا کي تسمه جوړه کړي. دغه ډول مثال د هغه ښځي دی کومي چي د باچاه د مشعلونو په رڼا کي ملوچ ورېشل (وری تاوول) پرېښوول چي په دي رڼا کي یې ونه وریشي

ذوالنون مصري ﷫ یو وار قید خانې ته واچول سو څو ورځي وږی وو آخر یوې پرهیزګاري ښځي کوم چي د ده مریده هم وه سپنسي به یې وریشل حلال رزق به یې حاصلوی د دغي حلالي ګټي څخه یې طعام (خوراک) دوی ته را ولیږلو. دوی هغه هم ونه خوړی دغه ښځه ډېره غصه سوه وېې ویل چي تا ته خو دا معلومه ده چي زه څه در لیږم دغه به حلال هم وو او ته وږی وې بیا تاولې ونه خوړل؟ وېې ویل ځکه مي ونه خوړل چي ما ته د یو ظالم په طبق (لوښي) کي راغلي وو او د زندان د محافظ په لاس کي وو نو زما عذر پر دې بناء وو چي د دغه حلال زرق ما ته د را رسېدو ذریعه د یو ظالم د لاسو قوّت وو کوم چي په حرام خوړي سره پکښي پیدا سوی وو.

او د پرهېز په دې درجه کي دا د زهد عظیم مقام دی لېکن د دې حقیقت پېژندل لویه ضروري خبره ده کنې په وسوسه کي د پرېوتو بیره ده. یعني مقصد خو دا وي چي د هیڅ فاسق د لاسه څخه شئ ونه خوړل سي او دا فسق محض تر ظالمانو پوري محدود نه دی چي دوی حرام خواره وي په دې وجه د دوی طاقت هم حرام وي، ځکه چي که یو سړی زنا کاره وي نو ده خو قوّت د زنا څخه نه دي حاصل کړی، لېکن د دې سره سره خوراک د ده د لاسه هم حرام دی (نو تحقیق صرف د ظالم کېدو نه بلکي د هر فسقي عمل پکار دی).

سري السقطي ﷫ فرمایي: چي زه یوه ورځ په صحرا کي روان ووم چي د اوبو پر غاړه مي را تول سوي وا ښه ولیدل فکر مي وکړی چي که حلال رزق خوړل غواړم نو دا ولې نه خورم په دې خیال کي ووم چي د غیبو څخه یوې فرشتې آواز را کړی: مګر دا خو ووایه چي کوم قوّت ته تر دې ځایه پوري راوستې دغه د کوم ځای څخه راغلي وو؟ زه ډېر پښېمانه سوم او استغفار کول مي شروع کړی.

نو دا وه هغه درجه کومه ته چي د صدیقینو درجه وایي دغه خلګ د هر احتیاط مغزته کښته کېدونکي وو او څنګه څنګه بلاریکی به یې په دې کي را ایستلې او نن صبا خو دا کیږي چي خلګ د

جامو پربولو د پاره اوپه لتوي احتیاط کوي، حال دا دی چي د دغو (صلیقینو د) د پاره دامشکله نه وه، لڅي پښې به تلل او څنګه اوبه چي به ملاوېدې اوتنس به یې په کولو، لېکن نن ظاهري طهارت (د نن د پرهیزګارانو د پاره ) هر څه دي کوم چې بهرنی نمایش دی، چې ټول عمل دخل پکښې د نفس د تقاضاوو دی چي په څه نا څه بهانه سره خلک ځان ته متوجه کړای سي (چي وایې سبحان الله شومره ښې بزرګ دی) لېکن د کومو بزرګانو ذکر چي مونږ کړی دي، د دوی په نظر کي (ظاهري نه بلکي) باطني ښکلا ښایسته وه کوم چي مخلوق نه بلکي الله ﷻ لیدای سوه او په دې کي د ظاهري ښکلا په نسبت ډېري زیاتي سختیاني وي.

(۵) پنځمه او آخري درجه د مقرّبینو او موحّدینو د پرهیز ده، او د دوی په نزد نه صرف خوراک بلکي خوب، وینه، خبري کول، ګرځیدل هر څه د خدای د پاره وي، او په د وی کي یو شئ هم چي د خدای د پاره نه وي د خپل ځان د پاره یې حرام کښي او د دې ډلې د ټولو بزرګانو یو ډول صفت او یو ډول ارادې وي او د کمال درجې موحّدین که چا ته ویل کیږي نو فقط دا خلک دي.

د یحیی بن معاذ رحمه الله په باره کي یوه قصه بیان سوې ده چي یو وار یې په ناجوړي کي دوایي چښلې وه ښځي ورته ویل پورته سه په دې غوولي (صحن) کي یو څه قدمه وګرځه، ده ویل د دې یو وجه زما په خیال کي نه راځي (چي ولې وګرځم) او دېرش کاله وسوه چي زه خپل حساب ته ګورم چي زما هیڅ حرکت د دین د معاملو څخه بغیر نه دي (او په دوایي پسي ګرځېدل خو به د ځان د پاره وي) نو دې خلکو به تر هغه پوري حرکت هم نه کولو تر څو چي به پکښې یو دیني نیت موجود نه وو، که خوراک به یې کولو نو هم دومره اندازه چي عقل او ژوند قائم په پاته سي، او دا هم ځکه چي دعبادت د پاره قوّت پیدا سي، د دوی خبري به هم د دین د پاره وې، کنې د دې څخه ماسوا هره خبره به یې د ځان د پاره حرامه ګڼله.

نو (اې خوږو ملګرو!) د زهد او پرهیزګاری خو دا درجې دي د دې څخه د کمو درجو هیڅ ځای نسته چي ته یې واورې خپل ځان او خپله ناکسي او لاچاري وپېژنې نو واوره! او د خپل عیب څخه ځان خبر کړه ځکه چي که ته د زهد په اوله درجه بلندي هم (چي عدول د مسلمانی ورته وایي) د دېډلو خواهش کوې چي د فسق اطلاق در بلندي نه وي نو (دومره کم همّته یې چي) د دې څخه هم لیري کېدای نه سې، لېکن چي خبري کوې نو خوله وازه وازه کوې د مځکي او اسمان څخه خبري کوې، او د شریعت واضحه او ښکاره خبري چي کومي دي د هغو څخه پرهیز نه کوې بلکي ستا خواهش دا وي چي هر وخت په لغوه او عبثو خبرو کي مشغول سې په حدیث شریف کي دي چي په

خلکو کي بدترين مخلوق هغه دی کوم چي خپل بدن د الله ﷻ په نعمتونو سره ښايسته ساتي ډول ډول نعمتونه خوري او ډو ډل جامې اغوندي بيا چي خوله پورته کوي نو سيده چپه خبري کوي بکواس او پالتو (اضافي) خبري کوي الله ﷻ دي موږ د دې آفتونو څخه وساتي.

## دريم باب: حلال د حرام څخه جلا کول او لټون پکښي کول

پوه سه! چي يوې ډلې دا خيال ظاهر کړی وو چي د دنيا ټول مال حرام دي او که د ټولو څخه ټول نه وي هم نو زياته حصه خوبې ضرور حرامه ده او بيا دا ډله په درې حصو کي تقسيم سوه، او يوې پر کومه چي د زهد احتياط غالب وو، ويې ويل چي موږ خو د صحراوا ښه، بوټي او نورو او د ماهيانو د غوښې يا ښکار او نورو څخه ما سوا نور څه نه خورو، او پر کومو چي شهوت او کم ظرفي سپره وه، دا مقرر کړل چي د څه تميز او فرق ضرورت نسته او هر څه خوړل پکار دي او دريمه ډله کومه چي اعتدال ته ډېر نژدې وه هغې اعلان وکړی چي په خوراک کي خو هر څه خوړل پکار دي ليکن مقدار يې صرف تر ضرورته پوري محدود پکار دی، دا درې سره ډلې پر غلطي دي او په دوی کي د هر يوه وينا غلطه ده ځکه چي صحيح دا ده چي حلال ښکاره دي نو حرام هم ښکاره دي او مشتبه چي څه دي د دوی په مينځ کي دي، او تر قيامته پوري به دا شيان دغسي روښانه او ښکاره وي، نبي کريم ﷺ فرمايي: چي کوم سړي دا فکر کوي چي د دنيا په مال کي زياتره (اکثره) حرام دي دغه غلطي کوي ځکه چي ډېر خوضروري دي ليکن زيات نه دي ځکه چي د ډيرو او زياتو په مينځ کي لوی فرق دي مثلاً مريض، مسافر او لښکر ډېر خو وي ليکن زيات نه وي، ظالمان ډېر وي او مظلومان زيات، څرنګه چي د دې غلطي په باره کي موږ پخپل کتاب "احياء العلوم" کي په لوی تفصيل بحث کړی دي؛
نو اصل دا دی چي تا ته دا معلومېدل پکار دي چي خلکو ته دانه دي ويل سوي چي صرف هغه شئ خورئ کوم چي د علمِ الهي په روی سره حلال وي ځکه چي د چا د اطاقت سته چي علمِ الهي ته ورسېږي؟ په دې وجه داويل سوي دي چي څه خوري په دې کي داوګوري چي دغه حلال دي او که حرام؟ يعني چي کوم شئ دی حلال ګڼي او يا په کوم کي چي حراموالی ښکاره نه وي هغه دي خوري، او دا خبره په اسانی سره معلومولای سي او د دې په ثبوت کي دا دليل راوړای سي چي نبي ﷺ د يو مشرک په کوزه (لوټه) اودس کړی دي، او حضرت عمر رضی الله عنه د يوې يهودي ښځې په لوښي اودس کړی دي او که دوی تږي وای نو دغه اُوبه به يې څښلې هم وای، او ښکاره ده چي د پليتو اوبو څښل حرام دي، په علمه توګه سره داسي دي چي څوک شراب څښي يا مرادره خوري نو د هغه لاسونه

پلیت وي، او دغه وخت د هغو دغه پلیتي دوی ته معلومه نه وه په دې وجه یې د دوی دغه اوبه پاکي وګڼلې، او صحابه کرام ﷺ به نورو ښارو نو ته تلل هلته به یې طعام هم اخیستلو معاملې به یې هم کولې حال دا دی چې په هغه زمانه کې به په عامه توګه غله، سود خواره شرابیان خلک وو. د دې سره سره به دوی د دنیا د مال څخه لاسونه نه راخښتل او ټول به یې برابر ګڼل او د ضرورت مطابق یې قناعت کولو، نو ستا د پوه کېدو د پاره دا خبره ده چې ستلواسطه د شپږ قسمه خلکو سره کېدای سي، او د دوی په باره کي تا ته علم پکار دی:

(۱) اول بنده خو هغه کېدای سي چې ستا د پاره ناآشنا وي او د هغه د نیک او بد تا ته څه علم نه وي، مثلاً که ته یو ښار ته ولاړ سې نو روا ده چې د یو چا څخه دې زړه وغواړي دوړی واخلې او د چا څخه چې دې زړه وغواړي معامله ور سره وکړې، ځکه چې په دې صورت کې به ته مطلوبه شئ صرف د هغه په لاسو کې لیدلای سې او سوا د دې څخه بله اندازه نه سې لګولای چې دغه دې د هغه ملکیت وي په دې وجه ستا د پاره دا دلیل کافي دی ځکه چې تر څو پوري یو داسي نښه نه ښکاري په کومه سره چې دهغې حرامولی ښکاره کېږي تر هغه وخته دې ته باطل نه ویل کېږي، (او نه معاملې ته حرام ویلای سې) هو! دا ضرور ده چې که یو سړی لږ صبر وکړي او د تلاش څخه وروسته بل څوک داسي سړي پیدا کړي چې د نېک کېدو یې ده ته بذاتِ خود علم وي نو دا په تقوی(پرهیزګاری) کي داخله ده که څه هم واجب نه ده.

(۲) دویم قسم هغه سړی کېدای سي کوم چې صالح وي او تا ته معلومه هم وي چې دغه صالح دی او ته د ده څخه مال، طعام اخلې خوړې یې هم، لیکن د دې سره سره په دې فکر او سوچ کې یې چې معلومه نه ده دا مال به حلال وي او که نه نو دې ته تقوی نسي ویل کېدای، بلکي دې ته وسوسه وایي، او که بیا ستا دغه توقف د دغه سړي د خفګان باعث هم وي نو دا خبره ستا د پاره د معصیت(ګناه) څخه کمه نه ده ځکه چې د صالحینو خلاف بدګماني کول په خپله ګناه ده.

(۳) دریم هغه سړی دې د کوم په باره کي چې تا ته معلومه وي چې دغه ظالم دی یا ته دی ظالم ګڼې، مثلاً هغه ټُرک دي یا شاهي نوکر یا تا ته معلوم دی چې د ده اکثره مال حرام دی نو د ده د مال څخه ځان ساتل واجب دي، لیکن که تا ته معلومه وي چې (د دې سړي د ذاتي بدیانو سره سره) د ده مال د حلال ځای څخه وصول سوی دی او د نښو او دلائلو څخه هم حلال معلومیږي او غلبه دا وي چې دغه مال د چا څخه غصب سوی نه دی نو د دې څخه ځان ساتل واجب نه دي.

(۴) څلورم هغه سرى چي تا ته معلومه وي چي د ده مال زيات حلال خو دى ليکن د حرامو څخه بالکليه خالي نه دي مثلاً د يو بزګر مال داسي دي چي دى د بزګرۍ سره سره دباچاه عامل هم دى، يا د يو سوداګر مال چي د شاهي تعلقدارنو سره هم کاروبار (لين دين) ساتي نو د دوى مال به حلال وي او جائز دى چي د دوى سره اکثره معامله وسي ځکه چي حلال وي، ليکن د تقوى تقاضا دا ده چي د دوى څخه ليري وسي؛

د عبد الله ابن مبارک وکيل د بصري څخه دوى ته خبر ورکړى چي زه د داسي خلکو سره معامله کووم د کومو چي د شاهي تعلقدارانو سره هم لين دين سته، دوى ورته په جواب کي وليکل چي که دغه معامله د شاهي تعلقدارانو پوري محدوده وي نو تا ته د دوى سره معامله کول نه دي پکار، ليکن که دوى د نورو سره هم لين دين ساتي نو بيا ور سره معامله کوه.

(۵) پنځم هغه سرى دى چي تا ته د ده د ظالم کېدو يا د ده د مال د حرامېدو په باره کي څه خبر نه وي ليکن د ظلم آثار د ده د مخ يا لباس اوضع قطع (شکل او حالت) څخه ښکاره وي مثلاً چپنه(قبا) اولنګوټه يې وي يا د لښکريانو په ډول وضع قطع (شکل او حالت) يې جوړ کړى وي نو دا خبري علامت (د ده د فاسق يا ظالم کېدو) دي، په دې وجه د داسي سړي سره د معاملې کولو څخه ځان ساتل پکار دي، تر دې چي تا ته په ښه ښان سره معلومه سي چي کوم مال دى در کوي چي دا يې څنګه او د کوم ځاى څخه حاصل کړى دي؟

(۶) شپږم هغه سرى دي چي په ده کي د ظلم يو نښه خو نه ليدل کېږي ليکن د فسق آثار د ده د شخصيت څخه ښکاره وي، مثلاً وريښمي جامې يې اغوستي وي يا يې طلائي زيورات اغوستي وي، يا تا ته معلومه سي چي دى شراب چښي يا نامحرمو ښځو ته ګوري نو صحيح دا ده چي د ده د مال څخه ځان ساتل واجب نه دي ځکه چي په داسي کارونو مال حرامېږي نه،او د ده په باره کي د زياتو څخه زيات داويل کېږي چي د دې سړي په حلال مال کي ممکنه ده چي د حرامو څخه يې هم پرهېز نه وي کړى، ليکن د دې اټکل پر بناء د ده مال ته حرام نسي ويل کېداى چي د ګناه څخه آخر

څوک پاک او معصوم دى؟ څومره خلک دي چي ظلم زياتوب که نه کوي خو د ګناه څخه هم ځانه نه ساتي، او د حرامو په تميز کي د دې قاعدې خيال ساتل لازمي دي، چي که د دې خيال وساتل سي نو په نا پوهي کي که بيا يو حرام شئ وخوري هم نو مؤاخذه به پر نه وي، لکه لمونځ چي د نجاست سره جائز نه دى ليکن هغه نجاست د کوم چي علم نه وي د هغې سره لمونځ ناجائز نه دى بلکي که د لمانځه څخه وروسته هم د دغه نجاست علم وسو نو د يو قول مطابق پر ده قضا نه واجبېږي ځکه چي نبي کريم ﷺ په عين لمانځه کي پېزار

(څپلی) وکښلې خولمونځ يې دوباره شروع نه کړی، او ويې فرمايل چي جبرئيل ﷺ ما ته خبر را کړی چي دا پليتي (گنده) سوی دي.

او پوه سه! چي دغه کوم چي موږ ويلي دي چي متقيانو ته د دې څخه پرهيز ضروري دی يعني که څه هم واجب نه وي بيا هم پوښتنه کول پکار دي چي مال د کوم ځای څخه حاصل کړای سوی دي؟ نو په دې صورت کي شرط دا دی چي په دې سوال سره د بل زړه خفه نسي ځکه چي که دا سوال د خفگان باعث وو نو بيا دا سوال پخپله حرام دی په دې وجه چي په پرهيزگاری کي اصل خبره خو احتياط دی او که په احتياط نه کولو سره چا ته خفگان ورسيږي نو دا حرام دي، نو په دې صورت کي ښه دا ده چي د لوی شفقت، مهرباني او نرمی مظاهره وکړي او د نه خوړلو د پاره يو بهانه جوړه کړي لېکن که په دې کي کامياب نه سو نو بيا خوړل يې غوره دي ځکه چي د هغه سړي زړه خفه نسي، بلکي که د بل څخه يې معلومول غواړي او بيا د دغه متعلق سړی د خبرېدو امکان وي نو هم حرام دي، او د بل څخه دي پوښتنه نه کوي ځکه چي دا په تجسّس غيبت او بدگماني کي شامله ده او دا دري سره شيان حرام دي، او صرف د احتياط په نوم دې ته مباح نه ويل کيږي، ځکه نبي کريم ﷺ چي به کله د يو چا ميلمه سو نو دا پوښتنه به يې نه کوله چي خوراک د کوم ځای څخه را اخيستل سوی دي؟ او نه به يې د يو تحفې (ډالۍ) قبلولو په وخت داسي پوښتنه کول، ما سوا د دې صورت څخه چي شُبه به بالکل ښکاره او واضحه وه. مثلاً هر کله چي دوی اول وار مديني منوّري ته تشريف يووړی نو هلته چي به هر سړي هم څه شئ راوړی حاضرېدی به نو پوښتنه به يې څيني کوله چي دا هديه ده او که صدقه؟ ځکه چي هغه ځای د شک وو، او د چا د خفه کېدو هم سوال نه وو. او پوه سه! چي که په بازار کي د باچا مال د خرڅلاو د پاره راوړل سي او دا معلومه وي، چي د دې په وجه سره بازار د حرام مال څخه ډکيږي، نو هلته دې څوک نه اخلي او صفا صفا پوښتنه دي کوي چي مال څنگه دی؟ او که په معلومولو باندي معلومه سي چي د مال زياته برخه حرامه نه ده نو بيا يې په اخيستلو کي څه حرج نسته، لېکن د پرهيزگاری (تقوی) له مخي پوښتنه کول بې اندازې اهمه ده.

**خلورم باب، د باچاه څخه روزينه (تنخا) حاصلول، او سلام ورته کول او د مال څخه يې د حلال مال اخيستلو بيان**

پوه سه! چي په نن زمانه کي د بادشاهانو سره کوم مال د مسلمانانو څخه د خراج اخيستلو يا جرمانو جمع کولو يا په توگه د رشوت اخيستلو سره جمع کيږي ټول حرام دی، هسي خو د دوی سره دري قسمه مال حلال هم وي (يا کېدای سي):

(۱) هغه مال چي په توګه دغنيمت په لاس راغلی وي (۲) هغه جرمانه کومه چي د شرعي شرطونو په روی سره د ذمياتو څخه وصول سوي وي (۳) يا د يو داسي سړي ميراث کوم چي مړ وي او شرعي وارث يې نه وي، او دا مال د ټولو مسلمانانو وي، ليکن څرنګه چي زمانه داسي راغلې ده چي حلال مال ډېر کم ليدل کيږي، په دې وجه د خراج مال د بادشاهانو څخه بلا تحقيقه اخيستل نه دي ښکار چي په دې کي زياته حصه د جرمانو وي نو د دې څخه ځان خبرول لازمي دي چي دا مال د حلالي وجهي دي يا دغنيمت دي يا جزيه وصول سوي ده يا د لاوارث د ميراث څخه حاصل سوی دی.

د باشاه د پاره خو آخر دا هم جائز ده چي دی ځمکه د زراعت په کار راولي آباده يې کړي، او د دې څخه محصول واخلي، که څه هم په دې کي هم کار د بيګاره په توګه دی نو حاصل سوی مال به د شُبه څخه خالي نه وي حال دا دی چي حرام نه دی، دغه ډول جائز دا هم ده چي دی د ذمياتو څخه د زراعت قابله ځمکه واخلي او دغه د ده ذاتي ملکيت هم متصور وي ليکن د دې قيمت که د حرام مال څخه اداء کړي نومشتبه به دغه هم سي، نو کوم سړي چي د بادشاه څخه روزينه(تنخا) اخلي نو پوه سه! چي که د دې ادائيګي د بادشاه د ذاتي ملکيت څخه کيږي نو صحيح به هم وي او جائز هم ليکن که د مال د مصالحو څخه و ، نو حلاله نه ده د تر دې چي تنخا اخيستونکي يو داسي سړي نه وي چي د مسلمانانو مصالحت د ده سره تړلی وي، مثلاً مفتي، قاضي، متولي داوقافو، طبيب او هغه ټول خلک کوم چي په داسي عهدو (وظيفو) مقرر وي کومي چي د عامو مسلمانانود خير د پاره قائمي کړای سوي وي، او د علم دين طالب علم هم په دې کي شامل دی او هغه سړی کوم چي د روزي ګټلو څخه معذوره وي يا فقير وي نو د ده حق هم بلا شکه په دې مال کي کيدای سي ليکن د دې خلکو حق په يو ډول سره مشروط دي او هغه شرط دا دی چي دغه خلک شاهي ملازمين يا د بادشاه څه رعايت په ديني معاملاتو کي هيڅ کله نه کوي، او نه په باطلو او حرامو کارو نوکي د ده موافقت کوي، او دوی ظلم او زياتي ته نه راپاروي، بلکي نژدې هم نه ورځي او که ورځي نو د شرعي شرطونو مطابقت په نظر کي لري، چي ذکر يې دا لاندي دی.

## فصل: د بادشاهانو سره د عالمانو تعلق

پوه سه! چي د اهلِ علمو او غير اهلِ علمو تعلق د بادشاهانو او د حکومت د عاملانو سره پر درې قسمه دی:

(۱) اول صورت دا دی چي نه دوی هغو ته و رځي او نه هغوی دوی ته راځي د دين سلامتي په دی

کې ده (۲)دویم دا چې دوی بادشاهانو ته ورځي یا سلام ورته کوي دا مذموم کار دی مګر دا چې مجبوري وي یو وار نبي کریم ﷺ د ظالمو امیرانو صفتونه بیانول دوی وفرمایل چې کوم سړی د دوی څخه پرهېز کوي دغه به خوندي سي او کوم چې دوی سره د دنیا په حرص کې پرېوځي د دغه شمار به په دوی کې وي، دوی وفرمایل چې زما څخه وروسته به ظالم بادشاهان پیدا سي کوم سړي ته چې د دوی د ظلم او دروغو احساس نه وي بلکې خوښوي یې د ده زما د امت سره هیڅ تعلق نسته، او دی به د قیامت په ورځ زما د حوض وطرف ته لار و نه مومي، او ویې فرمایل چې هغه علماء د الله ﷻ دښمنان دي کوم چې د امیرانو خوا ته ځي او بهترین امراء هغه دي کوم چې د عالمانو په خدمت کې حاضر وي، او ویې فرمایل چې علماء د انبیاء علیهم السلام د مقدسو امانتونو واراثان دي تر څو چې د بادشاهانو سره خلط (ګډون) نه ساتي او کله چې یې ور سره خلط وکړی نو په امانتو کې یې خیانت وکړی نو تاسو د دې کار څخه لیري وسئ.

حضرت ابو ذر غفاري ﷺ حضرت سلمه ﷺ ته وویل چې د بادشاهانو د دروازې څخه لیري وسه ځکه چې دوی څومره د دنیا څخه حاصلوي د دې څخه زیات دین ضایع کوي، او ویې وفرمایل چې په جهنم کې یوه کنده ده چې هغې ته به صرف هغه علماء ځي کوم چې د بادشاهانو څنګ ته ځي، حضرت عباده بن صامت ﷺ فرمایي چې د مالدارو خلکو سره د عالمانو او زاهدانو دوستی دد وی د ریاء نښه ده، حضرت ابن مسعود ﷺ فرمایي چې تقوی دار سړی کله بادشاه ته ځي نو دی د هغې څخه بې دینه راوځي، خلکو د دې وضاحت وغوښتلو نو ویې ویل چې هلته کله دی ولاړ سي دی دیو داسي کار دپاره د بادشاه د رضا کولو طالب سي کوم چې د الله ﷻ د ناخوښۍ سبب وي، او فضیل ﷫ وایي چې یو عالم چې څومره څومره بادشاه ته نژدې کیږي دومره دومره د الله ﷻ څخه لیري کیږي د وهب بن منبه ﷫ وینا داه چې د جوار ګرو (خمار کونکو) وجود دومره د خلکو د پاره ضرر رسونکی نه دی څومره چې بادشاهانو ته د تلونکو عالمانو دی، محمد بن سلمه ﷺ وایي چې په پلیتي (ګندګي) باندي ناست مچ د هغه عالم څخه غوره دی کوم چې د بادشاه پر دروازه ناست وي.

## فصل

او یاد ساته چې د دې سخت اقدام وجه دا ده چې کوم سړي باچا ته ځي د هغه د ګناهګار کیدلو یره وي او دا ګناه د ده په عمل، خبرو، خاموشي او اعتقاد څخه پرېوه یوه باندي خامخا اثر هم کوي مثلاً ګناه د عمل دا ده چې د بادشاهانو پر کور غضب نازل وي په دې وجه دوی ته ور تلل خو دغسي مناسب

نه دي او که د کوز شخصه دبلندي یې په صحرا کي خیمه وهلې وي نو دغه خیمې او ټول اسباب او سامان حرام دی او نه دې پکار چي دغې ته ور داخل سي یا صرف پنبه هم پر کښېنېږدي، بلکي که هغه په مباحه ځمکه بلندي بغیر د خیمې او فرش شخصه ناست وي نو هم د ده په مخکي سر کښته کول اوپستې رحمجني خبري کول او چاپلوسي او خوشلمندي کول د یو ظالم په مخکي د عاجزی او بندګي اظهار کول دي کوم چي ناجائز دي او مسلمان سري ته دا نه ښایي،

په حدیث شریف کي دي چي کوم سړی د یو دولمتند په مخکي عجز ښکاره کوي صرف په دې وجه چي دغه دولمتند دی نو که دغه دولتمند ظالم وي او که نه وي لیکن دا خوشلمند د خپل دین یوه حصه پنځیلو لاسو بربادوي، نو سوا د سلام شخصه بل څه شئ د دوی سره مباح نه دي، لیکن د سلام کولو په وخت هم لاسونه مچول ملاَ کښته کول سر کښته کول روا نه دي، ما سوا د هغه شخصه چي دا هر څه د یو داسي چا د پاره وسي چي بادشاه عادل وي یا باعمله عالم دین وي یا څوک داسي سړي وي کوم چي واقعي د دې تواضع مستحق وي او د تېرو بزرګانو څېنو خو په دې باره کي د مبالغې شخصه کار اخیستی دي تر دې چي د ظالمانو د سلام جواب یې هم نه دي ورکړی چي ظالم پرخپل ظلم شرمنده سي.

او په خبرو کي خو داسي ګناهګاره کېدای سي چي بادشاه ظالم وي او تلونکي د ده په حق کي دعاء غواړي مثلاً دا چي د الله ﷻ دي ستا عمر زیات کړي، او د ده داسي ویل چیري صحیح نه دي، ځکه د نبي ﷺ فرمان دي چي کوم سړي د ظالم په حق کي دعاء کوي، او د ده اوږد عمر غواړي دی ګواکي دا خبره خوښوي چي داسي ظالم دي همېشه پر دنیا مسلطه وي کوم چي د الله ﷻ نافرمانه وي، نو د ده د پاره هیڅ دعاء صحیح نه ده او که کوي یې نو دا دعاء دي کوي: زما دعاء ده چي الله ﷻ تا ته نېک صلاحیتونه در کړي د خیر او ښېګڼې توفیق دي در کړي،او پخپل اطاعت کي دي ستا عمر اوږد کړي، بیا چي کله بنده د دعاء او سلام شخصه فارغه سي نو عموماً د شوق د ملاقات په باره کي څه داسي جملې وایي چي زه خو همېشه په خدمت کي د حاضرېدو شوق لرم، اوس که دا شوق په حقیقت کي د ده په زړه کي نه وي (او محض چاپلوسي کوي) نو دروغ وایي او بې وجهې د منافقت طریقه اختیاروي او که رښتیا دی مشتاق (شوقي) وي نو (لعنتي دی) کوم زړه چي د ظالمانو زیارت د پاره بې آرامه وي په هغه کي د اسلام نُور چیري راځي پکار خو دا ده چي د الله ﷻ د نافرمانه شخصه داسي نفرت وسي لکه څنګه چي د خپل دښمن شخصه کیږي، او کله چي د ا خبري وسي نو بیا دا سړی د دغې ظالم د عدل او انصاف تعریفونه شروع کړي او دا خبره هم د دروغو او نفاق شخصه خالي نه ده او په

دې سره که نور څه نه وي نو دا هم څه کمه نه ده چې په داسې خبرو دیو ظالم د زړه خوشحاله کولو ګناه خوښې وکړه، چې دا ناجائز نه دې نو څه دي؟! او بیا چې دا چاپلوسه (غوړه مال) دومره څه وواییې نو کېدای سي چې دغه ظالم څه محاله خبره وکړي چې دی خو به (په درواغو یا رښتیا) سرّ خلمخا پر وښوروي او د ده د تصدیق کولو څخه به یې بغیر چاره نه وي، نو دا خبره صرف د خپل ځان د ګناهګاره کولو ده.

او د خاموشي ګناه داسې کوي، چې د ده مکان ته ځي نو هلته به ورته ورېښمي فرشونه، پر دیوالو نو تصویرونه په نظر راځي د هغه بخملي جامي (کالي) به ویني، د سرو زرو ګوتمې او د سپینو زرو لوښي به ورته ښکاره کیږي، اوبل خوا به غالباً دغه ظالم درواغ او فحش خبري هم غالباً کوي او دی به یې اوري، دا ټولي خبر داسې دي چې پر دې خاموش پاته کېدل جائز نه دي بلکې د احتساب د پاره ژبه پورته کول فرض دي لېکن دا یې چاره د احتساب طاقت او جرأت د کومه څخه راوړي؟ مجبوراً پر هرشئ باندي به خاموشه وي لېکن سوال دا دی چې دا حتساب څخه خو معذوره دی نو په بلا ضرورته تللو خو مجبوره هم نه دی؟آخر دا کله جائز دي چې بلا ضرورته دي بنده داسې ځای ته ځي کوم ځای چې د خلاف شریعت کارونو په لیدو سره سره احتساب نسي کولای.

او د زړه او عقیدې په ګناه کې داسې ګرفتاره کیږي چې د ده طرف ته میلان او رغبت کوي، دی دوست ګڼي د ده د تواضع په توګه اعتقاد کوي او د ده دولت ته ګوري، نوکرار کرار به د دنیا رغبت د ده په زړه کې پیدا کیږي، نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې د دنیا دارو خواته مه ځئ ځکه چې کوم رزق الله ﷻ تاسو ته در کړی دی د هغه څخه به بېزاره سي، (او دا د زړه ګناه ده).

د حضرت عیسی ؑ ارشاد دی چې د دنیادارو مال ته ستر ګې هم مه پورته کوئ ځکه چې د دوی د دنیا ظاهري ښایست د زړه څخه د ایمان خوږوالی لیري کوي، د دې ټولو خبرو څخه دا ښه په ډاګه معلومه سوه چې په یو حال کې هم د یو ظالم خوا ته د تللو اجازت نسته، لېکن صرف دوه حالتونه داسې دي د کومو په وجه چې هلته د تللو اجازت کېدای سي:

یو خو دا چې د باچا حکم او د دې خبري بیره وي چې که حکم و نه مني نو بادشاه به ورته نقصان ورسوي، یا دا چې د حکومت رُعب او دبدبې ته به نقصان ورسیږي، چې په دې سره به رعیت بې باکه او ګستاخه سي (چې افراتفري او انتشار به پیدا سي) دویم دا چې خپل یو حاجت یا د یو مسلمان سپارښت مطلوب وي، د دې دوو خبرو د پاره هم تلل خو جائز دي لېکن شرط دا دی چې د درواغو څخه کار وانه اخلي او د درواغو تعریف ونه کړي، په نصیحت کو کولي چې څومره سختې پکار وي

د دې شخه منع نسي، او که په ېيره کي وي نو په نرمي دې وکړي خو نصيحت دې وکړي خامخا، او که خيال يې دا وي چي سپاربنت يا نصيحت به قبول نسي نو بيا هم د دروافو او تعريف شخه دې ځان ساتي، او که په دې گمان او ناز سره ځي چي که سپاربنت وکرم نو قبليږي به ولي نه، او وسي داسي چي دغه د کار د ده پر ځای د بل په سپاربنت سره وسي يا د ده پر ځای بل ته شرف د قبوليت حاصل سي، نو که په دې باندي دی پرېشانه او خفه سي نو دا به نښه د دې خبري وي چي د ده هلته تلل په ضرورت سره نه وو، بلکي دی خو د مرتبې لټوونکي وو.

دريم حالت دا دی چي دی خو پخپل بادشاهانو ته نه ځي خو بادشاهان ده ته راځي او په دې کي شرط دا دی چي کله دی سلام وکړي نو د سلام جواب دې ورکړی بلکي که احترام يې وکړي او د تعظيم د پاره يې ولاړ سي نو هم صحيح ده ځکه چي د بادشاه د ده خواته راتلل په اصل کي د ده د علم په احترام کي وي او د دې نېکی په بدله کي هغه د عزت او احترام حقداره دی، خاص دغه ډول لکه څنګه چي د ظالم کېدو په صورت کي د سپکاوي او رسوايي حقداره دی، دغسي خو که ولاړ هم نسي او د دنيا شخه د خپل حقارت په ډاګه مظاهره وکړي نو دا نوره هم غوره ده لېکن دا خيال دې کوي چي په داسي کولو سره نه خو ده ته پخپله د يو ډول تکليف ېيره وي او نه دا خبره د رعيّت د زړونو شخه د بادشاه د وقار، دبدبې ختمولو باعث کيږي، او کله چي د ده سره کښېني نو درې ډوله نصيحت ورته کول پر ده واجب دي:

(۱) اول دا چي که بادشاه يو داسي عمل کوي کوم چي حرام وي لېکن دی ځيني خبر نه وي چي دغه حرام دي نو عالم ته پکار دي چي بادشاه د حرامو د تعريف شخه خبر کړي (چي دا کار حرام دی) دويم دا چي که بادشاه يو داسي کار کوي چي حرام دی او ده ته معلوم هم ده چي دا حرام دی مثلاً: ظلم، فسق او ناروا، نو په سختي سره دې ورته نصيحت وکړي او ور ودې نبيي چي د دنيا لذت يو داسي قدر او مرتبه والا نه دي چي د ده په خاطر د آخرت د بادشاه نقصان قبول کړای سي، او دغه ډول نور نصيحتونه دې وکړي، دريم دا چي که څه داسي خبره د ده په ذهن کي موجوده وي چي د کومي په کېدو سره د دنيا مخلوق ته فائده رسېدای سي او بادشاه ځيني غافله وي نو ده ته پکاره دي چي بادشاه د دې شخه خامخا خبر کړي په دې شرط که دا اُميد وو چي باچا به يې ومني، او دا درې سره نصيحتونه کول پر هغه هم واجب دي کوم چي بادشاه ته ځي (که د قبوليّت اُميد يې وي)، او دا يوه يقيني خبره ده چي کوم عالم باعمله وي د ده خبره خامخا قبليږي لېکن که د دنيا لالچ په زړه کي موجوده وو نو د ده چپ وسېدل غوره دي ځکه ماسوا د د دې شخه چي خلګ وربوري وخاندي د ده د

خبرو څخه نور څه نه حاصلیږي.

## د بادشاهانو سره د علماؤ د مجلس اړوند قصې

**قصه:** مقاتل بن صالح رحمه الله وايي چې زه يو وار د حماد بن سلمه رحمه الله سره ناست ووم د ده د کور ټول اسباب او سامان يو بوری (گونی) يو څرمن، يو نسخه د قرآن پاک او يوه لوټه وو، او بس!، په دې کي چا دروازه وټکوله ويې فرملي څوک دی؟ د بهر څخه جواب راغلی چې دوخت خليفه مُحَمّد بن سليمان دی، په اجازت دننه راغلی او کښېناستی، او ويې ويل: آخر څه وجه ده چې څنگه زه تاووينم زما ټول بدن ديږي او هيبت څخه وريږيږي او په لړزان سي، ويې فرمايل د نبي ﷺ ارشاد دي چې هغه عالم د کوم د علم مقصود او مطلوب چې صرف د الله ﷻ ذات وي د هغه څخه خلک ييريږي، لېکن کله چې مقصود د علم يې دنيا وي نو پخپله دغه عالم د هر چا څخه ييريږي خليفه څلور زره درهمه د دوی په مخکي کښېښول اويې ويل چې دا په يو مصرف کي راوله ويې فرمايل: څه! دا چې د چا دي هغه ته يې ورکره، خليفه وويل چې زه قسم خورم چې دا ما د حلالي ميراث څخه حاصل کړي دي، ويې فرمايل: خو بيا هم ما ته د دې ضرورت نسته خليفه وويل چې پر مستحقو خلکويې تقسيم کره، ويې فرمايل چې که زه په انصاف سره تقيسيم هم وکرم لېکن که يو سړی دا ووايي چې انصاف دي ونه کړی نو د دې بدگمانی په وجه به دغه سړی گناه گاره سي نو زما دا خوښه نه ده چې زما په وجه هغه گناره گاره سي نو دغه درهم يې د خليفه څخه وانه اخيستل، نو دا وو هغه انداز کوم چې تيرو عالمانو به د بادشاهانو سره د ملاقات په وخت اختيارولو، او که چيري به ورتلل نو په داسي طريقه سره به ورتلل لکه چې حضرت طاوس رحمه الله د خليفه هشام بن عبد الملک مخي ته ورغلی وو او هغه داسي چې:

**قصه:** خليفه هشام بن عبد الملک چې هر کله مدينې منورې ته ورسېدی نو ويې ويل چې د اصحابو رضي الله عنهم يو څوک ما ته حاضر کړی خلکو وويل چې هغه خو ټول د الله ﷻ طرف ته تللي دي، هغه وويل چې بيا که په تابعينو کي څوک وي؟ خلکو حضرت طاوس رحمه الله هلته راوستی دوی چې کله دننه تنوتل نو پيزار (څپلی) يې وکښلې ويې ويل: السلام عليک اې هشام! وايه څنگه يې؟ هشام په دې خبره دومره غصه سو چې د ده د قتل کولو اراده يې وکره، خلکو وويل چې دا خو د نبي ﷺ حرم مبارک دی، او دا بزرگ خو د دين د مشرانو عالمانو څخه دی، دا اراده تا ته نه دې کول پکار، خليفه پوښتنه وکره چې اې طاوس رحمه الله! تا آخر دومره زره او بې باکي ولي وکره؟ دوی وويل ما څه چل

وکړی ؟ د خلیفه غصه په دې خبره نوره هم زياته سوه او د غضب په حالت کي یې وویل: چي تا ځلور ادبونه پرېښوول، او بیا وایې چي ما څه چل کړی دی؟ يو خو دا چي تا څپلی زما د فرش په خوا کي وکښلې، دا طريقه د ده په نزد بده وه ځکه چي ده به د يو سړي د مؤدب کېدو نښه دا ګڼله چي د ده مخي ته د څپلی سره پر فرش راسي (او دا ادب تر اوسه په خلفاؤ کي سته) دويم دا چي تا ماته امیر المؤمنين ونه ويل، دريم دا چي زما نوم دي واخستی، په کُنيت سره دي ونه بللم (او دا خبره د عربو په نزد ښه نه ده)، څلورم دا چي ته زما د اجازت حاصلولو څخه بغیر کښېنستې او زما لاس دي مچ هم نه کړی، طاؤس وويل واوره! چي ماستا په مخکي څپلی وکښلې، نو دا څه غضب وسو هر کله چي د الله ﷻ په حضور کي د حاضرېدو په وخت کي د ورځي پنځه واره څپلی کاږم، او زما رب په دې نه خفه کيږي، او تا ته مي په امير المؤمنين سره خطاب ځکه ونه کړی چي ټول خلک ستا په امير راضي کله دي؟ په دې وجه زه د الله ﷻ څخه ويرېدم چي که دروغ ووايم نو بيا به څه کووم؟! او ماته په نوم سره ځکه وبللې کنيت مي در ته یاد نه کړو (په دې ته خوشحاله سه) چي الله ﷻ خپل دوستان په په نوم سره بللی دي مثلاً يا داؤدُ يا يحی يا عيسی لېکن دښمنان يې په کنيت سره ياد کړي دي لکه: د ابو لهب لاس دي مات سي (اللهب) او نور، او دا خبره چي ما ستا لاس ولي مچ نه کړی نو د دې وجه داوه چي ما د حضرت علي ﷺ څخه اورېدلي وو چي د چا لاسونه مچول جائز نه دي ما سوا د ښځي د لاسو څخه او هغه هم د شهوت په وخت کي بيا د زوی لاسونه د پلار والی دشفقت په وجه سره، پاته سوه دا خبره چي زه ستا په مخ کي کښېناستم ولي؟ نو په دې باره کي هم د حضرت علي ﷺ دا قول ما ته ياد دی چي که تاسو د دوږخيانو څخه يو سړی په دې دنيا کي ليدل غواړئ نو داسي سړي ووينئ چي پخپله خو ناست وي او خلک د ده په مخکي ولاړ وي د هشام دا خبري خوښي سوي او ويې ويل اې طاؤس رَحِمَهُ اللهُ! ماته يو نصيحت وفرمايه، هغه وويل ما اورېدلي دي چي په دوږخ کي ماران دي چي دغرونو په شان غټ غټ دي او لرمان دي چي د لوښتو په اندازه دي او ټول د داسي امير په انتظا کي دي کوم چي د خپل رعيت سره انصاف نه کوي، نو دا يې وويل او ولاړ سو روان سو.

**قصه**: سليمان بن عبد الملک خليفه وو چي هر کله مديني منورې ته ورسيدی نو ابو حازم رَحِمَهُ اللهُ يې ځان ته راوغوښتی چي يو ډېر لوی عالم وو، او پوښتنه يې ځيني وکړه: چي آخر دا څه خبره ده چي زموږ مرګ ډېر ناخوښه دی؟ ابو حازم رَحِمَهُ اللهُ وويل چي ځکه چي تاسو دنيا په مينه او رغبت سره

آباده کړي ده او آخرت مو په غفلت او سستۍ سره برباد کړی دي او کوم سړی چي د آبادۍ څخه ویران ځای ته ځي هغه چیري خوښحاله وي، بیا خلیفه پوښتنه وکړه: کله چي خلک د الله ﷻ حضور ته ځي نو د دوی به څه حال وي؟ ویې ویل چي دنېکو خلکو تلل خو به هلته داسي وي لکه د سفر د واپس راتلونکي چي خپلوانو ته راتلل وي او بد کاره سړی به هلته داسي وي لکه تښتېدلي غلام چي په زور ونیسي او مالک ته یې راولي، خلیفه وویل اې کاش! ما ته خپل حال معلوم وای چي زما به څه حال وای ویې ویل قرآن مجید وګوره چي تا ته معلومه سي چي د الله ﷻ ارشاد شومره ښکاره دي چي: ان الابرار لفي نعیم وان الفجار لفي جحیم (نېک خلک به بې شکه په آرام کي وي او بد کاره خلک به بې شکه په دوږخ کي وي)[الانفطار] خلیفه بیا پوښتنه وکړه چي د الله ﷻ رحمت چیري وي؟ ویې ویل چي: اِنَّ رحمت الله قریبٌ منَ المحسنین (بې شکه د الله رحمت نږدې دی نېک کارکوونکو ته)[الاعراف].

نو دا وه اندازه د خبرو د دین د عالمانو کوم چي به دوی د بادشاهانو سره مخامخ اختیاروله.

او راسه! اوس زموږ د زمانې عالمان د دنیا دي نه چي د دین، د کومو خبري چي وي هم نو د بادشاهانو دعاګانې او صفتونه وي او هر وخت د موقع په انتظار کي وي چي یو داسي خبره د کولو د پاره ملاو سي چي د ده خوشحالي په حاصله سي، او بیا دې د پاره څنګه حیلي بهانې تلاش کوی چي هر څنګه وي چي بادشاه پخپل مراد کي کامیاب سي (چي د دوی پکښي هم آرزوګانې پوره کیږي)، او که نصیحت کوي نو په دې کي یې هم د جاه طلبی څخه ما سوا نور هیڅ نه وي، او د دې ثبوت دا دی چي که ځوږي ځو دغسي نصیحت بل سړی وکړي نو دی د حسد څخه سوځي.

په هر حال د ظالمانو نه لیدل د هر څه څخه غوره خبره ده او که څه هم کله نا کله لیدل راتله، خو دوستي ور سره هیڅ کله نه دي کول پکار، بلکي کوم خلک چي د دوی دوستان وي د هغو د دوستۍ څخه هم لیري وسېدل پکار دي، او که یو عالم دومره مجبوره سي چي د خلوت څخه بغیر او د نورو ټولو خلکو څخه هم د قطع تعلق کولو څخه بغیر د دوی د دوستۍ په ترک کولو قادره نه وي نو ده ته ګوښه نشیني (خلوت) اختیارول پکار دي او د نورو خلکو څخه هم تعلقات پرېکول پکار دي څکه چي د نبي کریم ﷺ ارشاد دی چي: " تر څو پوري علماء د الله د امرونو او حکمونو موافقت کوي زما امت به د الله د پناه او حمایت څخه چیري محرومه نه وي" او دا دواړه شیان به د دوی ته همېشه حاصل وي.

مختصره قصه دا چي د رعیت د فساد باعث د بادشاهانو او امیرانو فساد وي او د بادشاهانو او امیرانو د فساد سبب د علماؤ فساد وي چي پخپله د خرابیدو په وجه سره د بادشاهونو اصلاح نه کوي بلکي د هغوی د یو ارتکاب شخه بلکِ خود د انکار جرأت هم په دوی کي موجود نه وي.

## فصل

که یو بادشاه یو عالم ته رقم (روپی) ولیږي چي دا پر فقیرانو خیرات کړه نو که دې عالم ته د دې مال مالک معلوم وي نو خیرات کوي دې نه بلکي واپس دې کړي چي دا مال مالک ته واپس کړه، او که مالک یې معلوم نه وي بیا هم د عالمانو یوې ډلې د دې داخیستلو او تقسیمولو شخه منع کړې ده، او زما په نزد غوره دا ده چي عالم دې داسي مال د ظالمانو امیرانو شخه واخلي خیرات دې کړی چي د ده سره خو پاته نسي او د یوې بلې ګناه باعث جوړ نسي او د ظلم او فسق په کارونو کي صرف نسي او فقیرانو ته راحت په ورسیږي داسي مال دې په دریو شرطونو سره پر فقیرانو تقسیم کړی:

(۱) اول شرط دا دی چي د دې په اخستلو بادشاه دا خیال ونه کړي چي دا حلال مال دی او داونه ګني چي که حرام وای نو دې عالم به نه وای اخیستی ځکه چي په دې ډول سربه دی د حرام مال په جمع کولو کي بې باکه سي نو په دې صورت کي د خیرات د خیر شخه شر زیات دی.

(۲) دویم شرط دا دی چي د دغه عالم خپل حالت داسي خراب نه وي چي خلک داګمان پر وکړي چي د ده دغه مال د ځان د پاره اخیستی دی او دا یې یاد نه وي چي دغه مال یې پر فقیرانو تقسیم کړی دی، لکه چي ځیني خلکو پر امام شافعي رحمه الله دا الزام د ځانه جوړ کړی وو چي امام شافعي رحمه الله به د خلیفه ګانو شخه مال اخیستلو او مخکي یې دا الفاظ زیاتول هېر کړل چي: "دغه مال به یې تقسیمولو".

**قصه**: وهب بن منبه رحمه الله او طاؤس رحمه الله د حجاج بن یوسف د ورور خواته ولاړل طاوس رحمه الله ده ته نصیحت کوی د سهار وخت وو، او موسم ښه یخ وو نو د امیر په حکم نوکرانو د طاوس رحمه الله پر اوږو باندې شادر (پټو) واچوی، نو طاوس په مخه خبري کولې او ور سره به یې ځان ښوروولو چي شادر یې د اوږو شخه لاندې مځکي ته شوه سو، د حجاج ورور په دې سخت غصه سو، نو هر کله چي دواړه حضرات واپس پر لاره راتلل، وهب رحمه الله وویل چي غوره دا وه چي تا شادر را اخیستی وای نو پخپله که دې نه پر سر کولای یو فقیر ته به دې ور کړی وای چي خامخا دی خو غصه کېدای نه، طاؤس رحمه الله وویل زما پخپله هم دا خیال وو لېکن بیا به د دې خلکو دا خیال راغلی وای چي دا خو

به يې په ياد ولې چې ما ديو امير مال اخيستی وو، ليکن دا به يې هېر وای چې اخيستی مې وو خو يو فقير ته مې ورکړی وو.

(۳) دريم دا چې د ظالم دوستي دې صرف په دې وجه نه کوي چې ده د تقسيمولو د پاره مال ده ته ورلېږلی دی، ځکه چې د ظالمانو سره دوستي د ډېرو ګناهونو سبب جوړيږي او چاپلوسي ته يې مائله کوي تر دې چې د ظالم په مرګ بيا دی خفګان کوي، او د ده دا شان وشوکت او دولت او حکومت ترقي او خوشحالي د ده د پاره (يعني د عالم د پاره) دخوشحالي باعث جوړيږي، او په دې وجه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: اې الله! يو ظالم ته زما سره د نېکي کولو توفيق مه ورکوې، هسې نه چې زما زړه د ده طرف ته راوګرځي، او په دې ارشاد کې دا اشاره پټه ده چې د خپل محسن طرف ته دانسان زړه راګرځي، الله ﷻ فرمايي: چې: " ولا تركنوا الى الذين ظلموا (او د ظالمانو و طرف ته مه کږيږي) [هود].

**قصه**: يو خليفه مالک بن دينار رحمه الله ته لس زره درهمه ولېږل دوی ټوله خيرات کړل ځان ته يې يو درهم پرې نښودی، حضرت محمد واسع رحمه الله ده ته ويل چې ربښتيا وايه د دې درهمونو په سبب ستا په زړه کې د خليفه محبت به څه زيات سوي وي هغه وويل هو! زيات سوي دي او ويې ويل زه د دې خبري څخه ېړېدم آخر د مال نحوست خپل کار ښکاره کړی.

**قصه**: په بصره کې يو بزرګ وو چې د بادشاه څخه به يې مال اخيستي او خيرات کوي به يې خلګو ده ته وويل چې ستا سره د دې خبري ېړه نسته چې په دې وجه سره به د بادشاه محبت ستا په زړه کې پيدا سي دوی وفرمايل: چې که څوک زما لاس د يو داسي سړي په لاس کې ورکړي چې هغه ما جنت ته بوځي او بيا ګناه کوي نو زه به دی هم دښمن ګڼم او هغه سړی هم کوم چې زما لاس د ده په لاس کې ورکړي جنت ته يې بوتلم، هر کله چې يو سړی ته خپل پر زړه دومره قدرت حاصل وي نو د ده د پاره د بادشاهانو څخه مال اخيستل او تقسيمول جائز دي.

## پنځم اصل: د الله ﷻ د مخلوق د حق ادا کول د قريبانو ګاونډيانو مينځو غلامانو او فقيرانو حق ادا کول

الله ﷻ ته د رسېدو چې کومه لاره ده دنيا د دې يو منزل دی او ټول خلک د دې منزل مسافران دي ځنګه چې د ټولو مسافرانو مقصد د سفر يو دی، په دې وجه ضروري ده چې په دوی کې محبت او اتحاد او د

یو بل سره تعلق وي او دوی د یو بل د حقونو خیال وساتي په راتلونکو درې بابونو کې د دې حقونو بیان کیږي.

## اول باب: د هغه دوستی او وروګلوي په باره کې کومه چې صرف د الله ﷻ د پاره وي

د یو چا سره د الله ﷻ د پاره دوستي او وروګلوي ساتل بهترین عبادت او د لوړې درجې کار دی، نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: چې الله ﷻ چې د چا خیر غواړي ده ته ښه دوست ورکړی د دې دپاره چې که دی الله هېر کړی نو دغه دوست به یې ور ته رایادوي او که دی د الله په یاد کې همیشه مصروفه وي نو دغه دوست به د ده یار او مددګاره وي، او فرمایي چې کله دوه مخلص مؤمنان د یو بل سره ملاویږي نو یو بل ته ځینې ضروري فائده رسیږي، او فرمایي چې کوم سړی یو څوک د الله ﷻ په لاره کې خپل ورور جوړ کړی ده ته به په جنت کې داسي لوړه درجه ملاویږي کومه چې په بل یو کار سره نسي حاصلیدای.

حضرت ابو ادریس خولاني رحمه الله حضرت معاذ رضي الله عنه ته وویل چې زه تا د الله دپاره دوست ګڼوم هغه وویل تا ته دي زیری وي ځکه چې ما د نبي کریم ﷺ څخه اوریدلي دي چې د قیامت په ورځ به د عرش څخه شلوخوا کرسی خوږې کړای سي پر دغه چې کوم خلک کښیني د هغه مخونه به د څوارلسم د سپوږمي په دول ځلیږي. پاته خلک به په بیره کې وي، لیکن دا پر کرسیانو ناست به مطمئن وي د الله ﷻ د دې دوستانو سره به نه بیره وي او نه غم، خلکو عرض وکړی چې دا به کوم خلک وي؟ ورېې فرمایل: د الله ﷻ د پاره د یو بل سره دوستي کوونکي" او فرمایي چې: کوم دوه خلک پخپلو کې د الله ﷻ د پاره محبت ساتي په دوی کې د خدای زیاته مینه هغه ته نصیب وي کوم چې د خپل دوست سره زیاته مینه کوي، او فرمایي چې د الله ارشاد دی چې هغه خلک زما د دوستی حقدار دي کوم چې صرف زما د پاره د یو بل سره ملاقات کوي او زما په خاطر د یو بل سره دوستي کوي او زما د پاره په مال کې د یو بل سره آساني کوي او د یو بل مدد کوي، او فرمایي: چې د قیامت په ورځ به الله وفرمایي چې هغه خلک کوم ځای دي کومو چې زما د پاره د یو بل سره محبت کولو چې نن ورځ زه هغو ته د خپل عرش تر سیایې لاندي ځای ورکړم.

نبي کریم ﷺ فرمایي چې: " دقیامت په ورځ کله چې هیچا ته سایه (سیوری)نه ملاویږي نو اووه کسان به د الله د عرش تر سیوري لاندي وي، یو به عادل بادشاه وي، دویم هغه ځوان کم چې د ځوانی د

ابتلاء شخه د الله ﷻ په عبادت کي وخت تېر کړی وي، دریم هغه سړی چي دی د مسجد څخه ووځي خو زړه یې د مسجد سره لګېدلی وي څلورم هغه دوه خلک کوم چي د الله ﷻ د پاره دوستي سره کوي او د هغه په خاطر سره یو ځای کیږي، او د هغه په خاطر جلا کیږي، پنځم هغه سړی چي په تنهایي کي الله ﷻ یادوي او ژاړي، شپږم هغه سړي چي یوه ښایسته او مالداره ښځه یې ځان ته راوبولي او دی وایي چي زه خو د الله ﷻ څخه بېرېږم، اووم هغه سړی کوم چي پخپل راسته لاس سره داسي خیرات ورکړی چي د ده چپه لاس ځیني هم خبر نسي؛

او فرمایي " کوم سړی چي د خدای د پاره د خپل ورو ملاقات ته ځي په ده پسي وروسته د الله ﷻ یو ه فرشته آواز کوي روا نه وي چي اې تا ته دي د الله ﷻ د جنت مبارک وي، او فرمایي: چي یو سړی د خپل دوست د ملاقات د پاره تلی، د الله ﷻ په حکم سره ده ته په لاره کي یوه فرشته ملاو سوه د ده څخه یې پوښتنه وکړه چي ته چیري ځې؟ ده وویل د خپل فلاني ورو سره د ملاقات د پاره ځم فرشتې پوښتنه وکړه چه هغه ستا سره یو ښېګڼه کړې ده؟ ده وویل چي نه! فرشتې وویل چي د تللو آخر وجه څه ده؟ ده وویل چي زه یې خپل دوست ګڼم او د الله د پاره د ده خوا ته ځم، فرشتې وویل: چي الله ﷻ زه تا ته رالېږلی یم چي تا ته خوشخبري(زیری) در کړم چي الله ﷻ تا دوست ګڼي او ستا د پاره یې د جنت لازمي فیصله کړې ده. نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي د ایمان په باره کي د ټولو څخه ټینګ مضبوط ترین سند هغه دوستي او دښمني ده کومه چي د الله ﷻ د پاره وي، الله ﷻ پر خپل یو نبي باندي وحي را نازلې کړې چي تا کوم زهد اختیار کړی دی د دې څخه په راحت حاصلولو کي تا تلوار وکړی چي د دنیا او د دې د غم څخه محفوظ سوې او زما په عبادت کي د مشغولېدلو په وجه تا عزت حاصل کړی لیکن ګوره آیا تا کله زما د دوستانو سره دوستي او د دښمنانو سره دښمني ساتلې ده؟

او په حضرت عیسی ؑ باندي وحي رانازلې سوې چي که د ځمکي او اسمان خلک ټول عبادتونه پر ځای راوړي او په دې عبادتونو کي د چا سره دوستي او دښمني زما د پاره نه وي نو دغه عبادتونه بې فائدې دي، حضرت عیسی ؑ فرمایلي دي چي د الله د مجرمانو سره دښمني وکړئ خپل ځانونه د الله ﷻ خوښ جوړ کړئ او د دوی څخه لیري وسئ ځان هغه ته نژدې کړئ او دوی ته غصه کوئ د ځان د پاره د الله ﷻ رضا تلاش کړئ خلکو عرض وکړی چي اې روح الله! موږ د چا سره ناسته کوو، وېې فرمایل د داسي سړي سره د کوم په لیدو سره چي تاسو ته خدای یادیږي، او د کوم خبري چي ستاسو د علم زیاتولو ذریعه جوړه سي، او د کوم عمل چي تاسو آخرت طرف ته مائله کړي،

الله ﷻ حضرت داؤد ﷺ ته وحی راولېږلې چي اې داؤده! ته د خلکو څخه تېښتې، جلاوتې نلست يې؟ وېې ويل اې الله! ستا یادولو د مخلوق یاد زما د زړه څخه هېر کړو او زه د ټولو څخه نفرت کوونکي سوم، وېې فرمايل اې داؤده! هوښيار وسه! او د ځان د پاره دوستان پيدا کړه، او کوم چي د دين په لاره کي ستا کومک(مدد) کوونکي نه وي د دوی څخه خامخا لېري وسه! چي دغه به ستا د زړه د توروولو سبب جوړېږي او زما څخه به تا لېري کړي، نبي کريم ﷺ فرمايي چي د الله ﷻ يو فرشته داسي ده چي نيمه د واوري او نيمه د اُور څخه جوړه ده هغه عرض کوي چي يا الله څنګه چي تا واوره او اُور د يو بل سره پيوست کړل دغه ډول د خپلو بندګانو په زړونو کي د يو بل سره محبت پيدا کړه، او فرمايي چي کوم خلک د الله ﷻ د پاره د يو بل سره دوستي ساتي د دوی د پاره به د سرو ياقوتو يو ستون(پايه) ودرول سي چي په سر کي به يې اويازره دريچې(کړکيانې) وي، د دغو څخه به دوی جنتيانو ته راکښته کيږي تماشه به يې کوي او د دوی دمخونو نُور به پر جنتيانو داسي پرېوځي لکه څنګه چي د لمر رڼا پر جهان پرېوځي، جنتيان به ووايي راځي چي تماشه يې وکړو د دغو خلکو پر بدن به د شنو وربښمو لباس وي او د دوی پر تندی به ليکل سوي وي: الْمُتَحَابُّوْنَ فِي اللهِ (د الله ﷻ د پاره د يو بل سره دوستي کوونکي).

ابن سماک رحمه الله د مرګ په وخت د الله ﷻ په پاک درباکي عرض وکړی چي ته پوه يې چي ما به د ګناه کولو په وخت کي ستا فرمانبرداره بندګان دوستان لرل. يا الله زما په حق کي دا عمل زما د ګناهونو کفاره جوړه کړې، حضرت مجاهد رحمه الله فرمايلي دي چي د الله د پاره دوستي کوونکي چي کله يو بل ويني او خوشحاله سي نو د دوی ګناهونه داسي رژېږي لکه د درختي څخه چي پاڼي رژېږي.

## هغه دوستي کومه چي د الله ﷻ په لاره کي کول کيږي

هغه دوستي کومه چي د مکتب، سفر، مدرسې يا په يوه کلي(محله) کي په يو ځای وسېدلو سره کيږي، دا دوستي د دې قبيلې څخه نه ده يعني د الله ﷻ په لاره کي نه ده. او که ته د چا سره ځکه دوستي کوې چي دی ښايسته دی يا يې خبري خوږې دي، نو دا دوستي هم د الله ﷻ د پاره نه ده. او که ته د چاسره په دې وجه دوستي جوړوې چي د ده په وجه تا ته عزت او شهرت حاصل سي يا په دې ډول دي بل څه اُميد ور سره تړلی وی نو دا دوستي هم د دې سلسلې څخه ده، ځکه چي داسي هره دوستي د داسي خلکو په مينځ کي پيدا کيږي د کومو چي په خدای او آخرت څه عقيده د سره نه وي، او هغه دوستي کومي ته چي د خدای د لاري دوستي وايي دغه بغير د ايمان څخه نسي

حاصلیدلی، او دې دوستي دوې درجې دي:
اوله درجه: دا ده چې څوک محض د دې د پاره دوست جوړ کړل سي چې د ده سره یو دیني غرض تړلی وي، کوم چې صرف د الله ﷻ د ذات د پاره وي مثلاً ته خپل استاد ځکه خپل دوست لرې چې دی تا د علم په دولت سره مالامال کوي او علم ته د آخرت د پاره حاصلوې چې ستا آخرت برابر سي، د دې د پاره نه چې د مرتبې او مال لا رې درته خلاصې سي نو دا دوستي د الله ﷻ د پاره ده، لیکن که په علم سره ستا منفعت د دنیا مقصد وي نو دا دواستي د الله ﷻ د پاره نه وي، دغه ډول که ستا شاګرد ته د علم ښوولو څخه مطلب دا وي چې ستا په دې تعلیم سره ده ته د الله رضا حاصله سي او په دې وجه دی دوست لرې نو دا دوستي به هم د الله د پاره وي، لیکن که ته شاګرد د دې د پاره دوست لرې چې دی د لوړ خاندان څخه دی او ستا د جاه وحشمت وسیله به جوړه سي نو دا دوستي به هم د الله په لاره کي نه وي، دغه ډول که څوک صدقه ورکوي داسي سړي دوست جوړ کړي کوم چې د شرعي شرطونو موافق دغه صدقه فقیرانو ته رسوي او د فقیرانو مېلمستیا کوي یا داسي سړي سره دوستي کوي چې فقیرانو ته ښه خواړ تیاروي، بلکي د داسي سړي سره تعلق کوم چې په عبادت کي د خاطر جمعي په غرض سره د ده کفالت کوي نو دا تعلق به هم د الله ﷻ د پاره وي، ډېرو علماوو او زاهدانو د امیرانو سره دوستي په دې غرض سره جوړه کړې وي او دا دواړه فریقه د الله ﷻ په دوستانو کي شمارېږي، بلکي که یو سړی د خپلي بي بي سره د دې د پاره دوستي کوي چې هغه دی د بدي څخه ساتي، او د ده د اولاد د پیدایښت سبب ده کوم چې به د ده په حق کي دعاء کوي، نو دا دوستي به هم دیني دوستي وي او دې ته چې کومه نفقه ورکوي دغه به د صدقې په حکم کي وي، او که یو سړي د خپل ما تحت سره په دې دوو وجهو دوستي کوي چې هغه د ده خدمت کوي او د ده د پاره عبادت ته د فراغت سبب جوړېږي نو دا دوستي هم د الله ﷻ د پاره ده او پر دې به ده ته ثواب ملاوېږي.
دویمه درجه کومه چې د اولې درجې څخه زیاته ده هغه دا ده چې څوک صرف د الله ﷻ د پاره دوست جوړوي په فریقینو کي د یو هم یو غرض نه وي نه لږ ده کول نه ښوول نه د عبادت فرصت مقصود وي بلکي دوستي په دې وجه وي چې دی د الله ﷻ فرمان بردار دی، یا یې محض دا خیال وي چې د الله بنده او د هغه د مخلوق څخه دي نو دا دوستي به د الله ﷻ د پاره وي او پر دې به ډېر زیات ثواب نصیب کېږي ځکه چې دا شئ د الله تعالی سره د کمال محبت په سبب پیدا کېږي کوم ته چې د عشق درجه ویل پکار دي، مثلاً که چې یو سړی د چا سره عشق کوي نو د معشوق کوڅې او محلې هر څه دوست ګڼي او د معشوق د کور د دَر او دېوال سره مینه کوي بلکي کوم سپی چې د معشوق کوڅې ته ځي

هغه یې د نورو سپیلنو شخه زیات خوښ وي نو څوک چې د ده معشوق دوست لري، دی او د معشوق فرمانبرداره، نوکر، مزدور او نور ټوله دوستان لري ځکه چې کوم شئ د معشوق سره څه نا څه نسبت لري د هغه دوستي د عاشق په زړه کې ځای کوي او عشق چې څومره زيات وي دومره د ده تاثير او سرايت هم د نورو په مقابله کې زيات وي نو د کوم سړي په زړه کې چې د الله ﷻ دوستي د عشق درجې ته ورسيږي هغه په عامه توګه سره د ده بندګان دوستان لري، په ځانګړې توګه د ده دوستانو د ده ټولو مخلوقاتو د دوست درلودلو سبب دا وي چې کوم شئ پيدا سوی وي دغه د محبوب د قدرت او صنعت علامه ده او عاشق د خپل معشوق خط او د ده صنعت هم دوست لري، دنبي کريم ﷺ په خلعت کې چې به کله خلکو نوې ميوه حاضره کړه نو دوی به د دې ميوې تعظيم وفرمايي او د خپلو سترګو سره به يې ولګوله او فرمايل به يې چې د دې زمانه د الله ﷻ سره ډيره قريبه ده يعني د صانع حقيقي تازه صفت دی.

د الله ﷻ دوستي پر دوه قسمه ده يوه هغه دوستي ده کومه چې د دنيا او آخرت د نعمت په واسطه وي دويمه هغه چې محض د الله ﷻ د پاره وي او په دې کې د بل يو شئ دخل نه وي د دې درجه ډيره لوړه ده او اصل محبت کوم چې په څلورم رکن کې دی په دې کې به د دې بيان راسي.

غرض دا چې د الله ﷻ د محبت قوّت د ايمان د قوّت موافق وي څومره چې ايمان قوي وي دومره به محبت هم قوي وي، او بيا دا دوستي د دې شخه وروسته د الله ﷻ په دوستانو او مقبولو بندګانو کې سرايت کوي، او که دا دوستي د فائدې شخه خالي وي نو د فوت سوو پيغمبرانو او اولياؤ دوستي به يقينيا فنا سوې وای حال دا دی چې د دوی د هر يو دوستي د هر مؤمن په زړه کې باقي ده، نو څوک چې د هو بنياړانو صوفيانو پرهيزګارانو د دوی د غلامانو او دوستانو دوستي لري نو ځکه چې دغه الله ﷻ دوست لري، ليکن دا دوستي څومره ده او تر کوم حده پوري ده؟ د دې اندازه د مرتبې او مال د قربانۍ شخه کېدای سي، مثلاً د يو سړي ايمان او دوستي دومره قوي وي چې هغه خپل ټول مال د الله ﷻ په لاره کې قربانوي لکه صديق اکبر ؓ او بعضې داسي وي چې نيم مال قربانوي لکه فاروق اعظم ؓ او ځيني داسي وي چې لږ مال ورکولای سي زيات نسي، په هر حال د يو مؤمن زړه د اصل دوستي شخه خالي نه وي دا بله خبره ده چې د نورو په نسبت به کمه وي.

## د الله ﷻ په لاره کې د ښمنی څه ته وايي؟

کوم سړي چې د الله ﷻ د نېکو او تابعدارو بندګانو سره د الله ﷻ د پاره دوستي ساتي، دی به د

کافرانو فاسقانو، ظالمانو او گناه گارانو سره خامخا دښمني ساتي په دې وجه چې کله څوک د چا سره دوستي ساتي نو بیا د هغه د دوستانو سره دوستي او د دښمنانو سره دښمني به هم ساتي او ښکاره ده چې الله ﷻ د کافرانو او نورو سره دښمني ساتي نو که یو مسلمان فاسق وي نو د ده د اسلام په خاطر خو د ده سره دوستي پکار ده او د ده د فسق په وجه د ده څخه ناراضه کېدل پکار دي گویا دوستي او دښمني د یو بل سره مخلوطه پکار ده، هر کله چې څوک د چا یو زوی ته خو نوې بنایسته جامه ور واغوندي او پر بل ظلم و کړي نو دی به په یوه وجه سره دوست او په بله دښمن لري، او دا خبره محاله نه ده ځکه چې که د یو سړي دري زامن وي یو هوښیار او فرمانبرداره وي بل احمق او نافرمانه وي او دریم احمق او فرمانبرداره وي نو دی به اول زوی دوست دریم دښمن او دریم په یوه وجه سره دوست او په بله وجه دښمن او د دې تاثیر په معاملاتو کې ښکاره کیږي چې د یو عزت د بل سپکاوی کوي او د دریم سره بَیْنَ بَیْنَ وي، غرض دا چې څوک د الله نافرمانه دي، دی داسې گڼه لکه چې ستا نافرمانه دي او د مخالفت تر حده پوري د ده سره دښمني ساته. او د اطاعت او فرمانبرداری تر اندازې پوري دوستي، د دې اثر د یو بل سره په معامله کولو صحبت اختیارولو او خبرو کې ظاهرول پکار دي، تر دې چې د مجرم سره ستا طبیعت انکار او په سختو خبرو کولو ور سره مخاطب سې، او د چا فسق چې ډېر زیات وي د هغه څخه دې انکار هم زیات وي او کله چې معامله د حد څخه واوړي نو بیا دې ځیني بالکل مخ واړوي، دظالم په معامله کې د فاسق څخه زیاته مبالغه او سختي پکار ده لیکن چا چې محض ستا په حق کې ظلم کړی وي د ده سره د عفوي معافي څخه کار اخیستل زیات غوره دي.

په دې معامله کې د ډېرو مشرانو عادتونه مختلف وو. بعضو خو به د دین د مضبوطي او د شرعي سیاست په سبب به یې ډېره سختي کوله. حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله د حارث محاسبي رحمه الله څخه خفه سو چې دوی په علم الکلام کې یو کتاب تصنیف کړی وو پر معتزلو یې رَدّ کړی وو او وې فرمایل چې په دې کتاب کې تا مخکې د معتزله وو شبهات لیکلي دي بیا دې د هغو جواب ورکړی دي، ممکنه ده چې څوک دا شبهات ووایي او د هغه زړه ته پر پوځي، او کله چې یحی بن معین وویل چې زه د چا څخه څه غواړم نو که بادشاه ما ته څه را کړي نو اخلم نو دوی رحمه الله د ده څخه هم ناراضه سو او سلسله د کلام یې منقطع کړه، پردې ابن معین معذرت وغوښتی او عرض یې وکړی چې گپه (مذاق) مي کوله. دوی وفرمایل چې حلال رزق خوړل د دیني کارونو څخه دی او په دین کې مذاق صحیح نه دی.

لیکن بعضي بزرګانو ټولو ته په نظر د رحمت سره کتلي دي، او اصل دا دی چې د دې مدار پر نیت باندې دی ځکه چې د چا نظر پر توحید وي هغه دالله ﷻ په قبضه د قهر کي ټوله يې وسه او مجبوره ويني او د دوی پر دې اضطراب باندي نظر کوي دوی ته درحم په نظر سره ګوري او دا د دوی د درجې د لوړوالی ثبوت دی، لیکن په دې کي د احمقانو (جاهلانو) د دوکه کېدلو بېره ده، مثلاً د يو سړي په زړه کي سُستي وي او هغه په دې ګمان کي وي چي دا توحید دي حال دا دی چې د توحيد د نبي پوښتنه چي وکړې نو هغه دا ده چي که دی ووهي او وټکوي مال ځيني واخلي سپکوالی يې وکړي نو هم ده ته غصه نه ورځي، او په دې توحيد کي غرقاب هميشه ده ته د شفقت په نظر سره ګوري، لکه د حضور غلبنونه مبارک چي کافرانو شهید کړل، او ويني پر رواني وې مخ مبارک يې لت پت سو او په دې حال يې پر ژبه مبارکه دا الفاظ وو " رَبِّ اِهْدِ قَوْمِيْ فَاِنَّهُمْ لَایَعْلَمُوْنَ " (اې زما ربه! زما قوم ته هدايت وکړې ځکه چي دوی نه پوهيږي ) لیکن کوم سړی چي د ځان د پاره خو جنګ ته تيار وي لیکن د الله ﷻ د پاره خو خاموش وي نو دا سستي منافقت او حماقت دی خامخا، لیکن توحيد هيڅ کله نه دی نو پر چا چي د توحيد غلبه دومره اندازه نه وي، او د فاسق فسق د ده زړه پر دې خبره مجبور نه کړي چي دی خپل دښمن وګڼي نو دا دليل د دې خبري دی چي د ده ايمان کمزوری دی، او دی د فاسق دوست دی لکه مثلاً که يو سړی ستا په مخکي ستا دوست ته بد رد وايي او ته څه پروا نه په کوې، نو دا دې امر ثبوت دی چي ستا دوستي په اصل کي هيڅ نسته او صرف زباني جمع ګویي ده.

## د الله ﷻ د مخالفينو مختلفي درجې او د دې اړوند مسئلې

پوه سه! چي د الله ﷻ د مخالفينو مختلفي درجې دي او هره يوه درجه د جلا جلا سختئ او تشدد حقداره ده، څنګه چي اوله درجه د کافرانو ده، او دا خلک که اهلِ حرب وي يعني مسلح او جګړالو وي نو د دوی سره دښمني فرض ده او د دوی سره معامله بله څه کيدای سي چي دوی قتل کړای سي يا غلامان کړای سي.

په دويمه درجه کي نميان دي د دوی سره هم دښمني ساتل فرض دي،او په معاملاتو کي دوی سپک او ذليل ګڼل د دوی بې عزتي کول پکار دي تر دې چي په تللو کي د دوی لار تنګول هم نا مناسب نه دي، او د دوی سره دوستي کول ډېر مکروه ده بلکي حرام ورته ويل پکار دي، د الله ﷻ ارشاد دی: لَا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ يُوَآدُّوْنَ مَنْ حَآدَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ (کوم خلک چي په الله او په ورځي

د قیامت یقین لري دوی به چیري د داسي خلکو سره په دوستي کولو ونه وینې کوم چي د الله او رسول خلاف وي)[المجادله:۲۲] او د دې خلکو قبلل او معتمد گڼل یا دوي غلامان او حاکمان مقرر کول پر مسلمانانو یې مسلّط کول اسلام ذلیله او رسوا کول دي، او په کبیره گناه کي داخله دي.

دریمه درجه د بدعتیانو ده کوم چي خلکو ته د بدعت بلنه ورکوي، د داسي خلکو سره د دښمنې اظهار کول ډېر ضروري دي، چي خلک د دوی څخه نفرت کوونکي سي، او ژبانه بنه دا ده چي د دوی سره عَلیک سَلیک (سلام کول) نه ساتي او صرف دانه چي پخپله ورته سلام نه کوي بلکي د دوی د سلام جواب دي هم هیڅ اندازه نه ورکوي، ځکه چي د دوی بلل هم د شر او فساد خورولو موجب وي، هو! که داسي سری دمعمولي درجې او د خلکو د بدعت وطرف ته په بللو کي زیات کتر (مخلص) نه وي نو ده کار به آسانه وي یعني کمه سختي به ور سره کیږي.

څلورم قسم درجه دهغو خلکو ده د کومو د گناهونو څخه چي خلکو ته تکیف رسیږي، مثلا د دروا‌غو گواهي ورکوونکي، درواغجن، دوکه باز، په عدل کي طرفداري کوونکي، بکواس او هجوه گو شاعران او په خلکو کي تفریق اچوونکي د داسي خلکو څخه ځان ساتل او په سختي سره ورته په مخ کي راتلل ډېر ښه خبره ده، او د دوی سره دوستي کول ډېره مکروه خبره ده، بیا هم د حرامو په درجه کي نه ده ځکه چي دظاهري شریعت په روی سره د دې شمار په حرامو کي نه دي سوی.

په پنځمه درجه کي هغه گناهکاران راځي د کومو د بدو عملونو څخه چي خلکو ته تکلیف یا نقصان نه رسي، مثلاً شرابي او په فسق فجور کي مبتلا او نور... د دې خلکو معامله آسانه وي دوی ته په شفقت او نرمی اومهرباني سره نصیحت کول پکار دي لیکن په داسي صورت کي چي پر ده باندي د اثر کولو اُمید وي کنې د نصیحت پر ځای د ده څخه لیري وسېدل غوره دي، لیکن دوی ته دسلام جواب ضرور ورکول پکاردي، او د لعنت کولو هم ضرورت نسته، د نبي ﷺ په و خت کي یو سړی څو واره شراب وچیښل نو په صحابه کرامو کي یو تن پر ده لعنت کوی او عرض یې وکړی چي دا فتنه به تر کومه زغمل کیږي، نبي ﷺ منع کړی او ورېې فرمایل چي د ده د پاره د شیطان دښمني خو څه کمه نه ده؟ بیا تا ته د شیطان مدد گاره جوړېدل نه دي پکار.

## دویم باب: د صحبت (ملگرتیا) حقونه او اړوند شرطونه

## (او باید د کوم چا سره دوستي وکړای سي)

یاد ساته! چي هر سړی د دې قابل نه دی چي د ده سره صحبت او دوستي وکړل سي ځکه د دوستي

لاتې هغه سړي وي په کوم کي چې درې صفتونه موجود وي:

(۱) اول دا چې عاقل او با شعوره وي ځکه چې د احمق دوستي بالکل بې کاره ده او آخر د دې شخه وحشت پيدا کيږي، ځکه چې احمق که ستا سره نېکي کول هم غواړي خو د حماقت په وجه ممکنه ده يو داسي حرکت وکړي چې د فائدې پر ځای څيني نقصان جوړ سي، په دې وجه ويل سوي دي چې د کم عقلو (جاهلانو) شخه ليري وسېدل بنه دي بلکې د ده شخه جلاوسېدل ثواب او په ملاو بدولو سره گناه ده. او د احمق شخه مراد هغه سړی دی چې د حال د حقيقت شخه بې خبره وي يعني د پوهي صلاحيت پکښي نه وي او که د پوه کولو کوشش يې هم وکړې خو پوه کيږي نه.

(۲) دويم دا چې ښو اخلاقو والا نېک خويه وي ځکه چې د بدخويه شخه د نېکی او سلامتيا اُميد نسي کېدای، او د ده بدخويي (بداخلاقي) چې کله په حرکت کي راشي نو د دې پروا نه کوي چې د چا حق تر پښو لاندي سي.

(۳) دريم دا چې صالح وي، ځکه کوم سړی چې په معصيت او نافرماني کي گير وي د ده سره د خدای بيره نه وي او په چا کي چې د خدای بيره نه وي پر هغه اعتماد نسي کېدای ځکه چې ارشاد دی: وَلَا تُطِعْ مَنْ أَغْفَلْنَا قَلْبَهُ عَنْ ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوَاهُ [ا لکهف:۲۸] (د داسي سړي خبره مه منه د کوم زړه چې موږ د خپل ياد شخه غافله کړی دي او دی د خپل نفس پر خواهش (خوښتني) چليږي). او که بدعتي وو نو د ده شخه ليري وسېدل پکار دي، ځکه چې د ده بدعت پر نورو باندي هم اثر کوي او د ده نحوست د نورو د عملونو نحوست او بدنصيبي جوړيږي، او نن صبا چې دکوم بدعت دور او زمانه ده، د دې شخه غټ بدعت خو په يوه زمانه کي موجود سوی نه دی، او هغه دا دی چې بدعتي بدعت هم خوروي او ور سره دا هم وايي چې په وعظ او نصيحت کي څه دي او شوک دفسق فجور شخه دمنع کولو څه ضرورت دی، ځکه چې نه خو موږ دخلکو دښمنان يو (چې دوی گمراه کړو او نه پر دوی حاکمان يو (چې زموږ د حکم په منلو مجبوره وي) او دا د اباحت هغه تخم دی د کوم شخه چې د زندقه درخته پيدا کيږي او په دې وجه دا ډيره بد دوله بدعت دی، نو د داسي ډول خلکو سره يو قسم واسطه نه دي ساتل پکار، چې دا اقدام د سختي او موافقت بين بين دي، کنې د داسي خلکو په مدد سره د شيطان دا عقيده په زړه کي ځای کول بالکل آسانيږي او بيا په صريح اباحت کي او زړه کي څه فاصله باقي نه پاته کيږي.

او د جعفر صادق ؓ قول دی چې د پنځه قسمه خلکو شخه هميشه پرهېز کول کول پکار دي:

(۱) د دروا غجن سړي شخصه چې د ده شخصه هیمشه د فریب خوړلو احتمال وي.
(۲) د احمق (جاهل) شخصه چې که دی تا ته فائده هم رسوي خو عملاً به څيني تا ته نقصان رسیږي.
(۳) د بخیل شخصه چې په عین وخت به ستا ملګرتیا پریږدي.
(۴) د بې زړه (بزدل) شخصه چې په عین وخت به در شخصه مخ واړوي.
(۵) د فاسق شخصه چې هغه به په یوه ګوله یا د دې شخصه هم په کمه تا خرڅه کړي، خلکو پوښتنه وکړه چې د ګولې شخصه په کمه څه مطلب دی؟ نو وې فرمایل چې د دې طمع یعني ګوله ملاو سوې نه وي خو طمع يې وي. حضرت جنید رحمه الله فرمایلي دي چې هغه عالم کوم چې بدخویه وي د ده دوستي د داسي فاسق شخصه نا کلوه (خراب) ده کوم چې نیک خویه وي. څنګه چې دا خصلتونه په ډېرو کومو خلکو کي جمع کیږي په دې وجه تا ته پکار دي چې د دوستی او ملګرتیا په غرض باندي ستا نظر ساتل پکار دي که مقصد محض اُنس او محبت وي نو د ښو اخلاقو فکر کول پکار دي او که دین مقصود وي نو د علم او عمل تلاش پکار دي او کله چې دنیا مطلب وي نو په سخاوت او کرم باندي نظر کول پکار دي.
یاد ساته! چې مخلوق پر درې قسمه دی:
بعضي خو د خوراک په ډول وي چې د دوی شخصه بغیر چاره نه وي، او څیني د دوايي په ډول وي او ښکاره ده چې د دوی سره کله کله واسطه پرېوځي، او څیني د مرض (ناروغي) په ډول وي چې دوی ته کله هم احیتاج نه پرېوځي لیکن بنده پکښي مبتلي، او بیا د خلاصون فکر څیني کوي، غرض دا چې دوستي د داسي سره کول پکار دي چې یا تا ته دیني فائده څیني رسي یا ستا شخصه هغه ته.

## د دوستی او ملګرۍ حقونه

پوه سه! چې د دوستی او ورورولی غوټه کله وتړل سي نو د دې مثال د نکاح د عقد (غوټي) په ډول دی چې د دې خپل حقونه دي، نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې ددوو ورونو مثال د دوو لاسونو دی چې یو بل سره پرېولي او دا حقونه پر لس قسمه دي:
(۱) د اول قسم تعلق د مال سره دی او په دې کي لوړه درجه دا ده چې د دوست حق پر خپل حق باندي مقدم ساتي لکه چې د انصارو رضي الله عنهم په حق کي الله جل جلاله فرمايي: وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ [الحشر:۹] (او پر خپل ځان یې مقدم کني (یعني مهاجرین) که څه هم پخپله دوی وږي وي)

دریم دا چي دی د خپل ځان په شان یې ګڼي او خپل مال مشترک مال تصور کوي، او د ټولو څخه کمه درجه دا ده چي دی د خپل غلام یا خادم په شان ګڼي او څه شئ چي د خپل ضرورت څخه زیات وي هغه ته یې حواله کوي لیکن چي دا حوله کول هم یې خوښتني وي، ځکه چي کله خوښتلو ته نوبت ورسیږي نو د دوستی د دائرې څخه بهر ووځی، ځکه چي دا دلیل د دې امر دی چي د ده د زړه څخه د دوستي یاوروړ ګلوی احساس رخصت سوی دي او دا ټول حمیّت او مروّت محض رسمي شئ دي، د کوم چي هیڅ اهمیت نسته، عتبه بن الغلام رحمه الله خپل یو دوست ته وویل چي ما ته د څلورو زرو درهمو ضرورت پېښ سوی دي هغه وویل راسه! دوه زره درهمه زه در کوم، عتبه مخ ځیني واړوی، او ویې ویل شرمیږې نه! چي دعوی کوې د خدایي دوستي او ترجیح ورکوي پر دې باندي دنیا ته.

**قصّه**: بعضي فساد کونکو خلکو یو وار د څو صوفیانو خلاف خلیفه ته شرارت وکړی آخر د خلیفه په حکم سره د هغو د قتل د پاره توري راپورته سوې او د ټولو د قتل وخت راغلی حضرت ابو الحسن نوري رحمه الله هم په دغه کي شامل وو (د ده د قتل نمبر وروسته وو خو) دی د ټولو څخه را مخکي سو خپل ځان یې جلاد ته مخامخ کړو، خلیفه وویل چي تا ځان ولې د ټولو څخه مخکي کړی؟ ویې ویل چي دا ټول زما دوستان او ورونه دي ما فکر وکړی چي لږ وخت مخکي پر دوی خپل ځان ولې قربان نه کړم؟ بادشاه وویل سبحان الله! په کومو خلکو کي چي داسي مروّت وي دهغوی قتل کول مناسب نه دي او ټول یې آزاد کړل. حضرت فتح موصلي قدس سره د خپل یو دوست خوا ته ولاړی اتفاقاً هغه موجود نه وو، د هغه مینځي ته یې وویل چي د هغه د روپو صندوق راوړه هغې راوړی نو چي د دوی څومره پکار وې هغه یې ځیني واخیستې کله چي هغه دوست راغلی نو مینځه ورته قصه وکړه نو ده چي واورېدل دومره خوشحاله سو چي مینځه یې آزاده کړه. یو سړی حضرت ابو هریره رضي الله عنه ته راغلی او ویې ویل چي زه ستا سره دوستي کول غواړم، ده وفرمایل تا ته یې حق معلوم دی؟ هغه وویل چي نه، نو دوی وفرمایل: چي د دوستی حق دا دی چي ته د خپل مال په تصرف کي ما د ځان څخه زیات حقدار وګڼې، هغه وویل چي زه لا تر اوسه دې مرتبې ته نه یم رسېدلی دوی وفرمایل: بیا ستا څخه دا کار نسي کېدای، حضرت عمر رضي الله عنه فرمایي: چي یو صحابي ته چا پوخ سوی سَرّ ور ولېږی، ده وویل زما فلانی دوست زیات محتاج دی نو په دې وجه ده هغه ته ولېږی، هغه دا وویل بل ته یې ولېږی، غرض دغسي د یو څخه بل ته او بیا بل ته ګرځېدلو آخر دا چي دې اوّلني ته بیا راورسېدی. حضرت مسروق رحمه الله او خشیمه رحمه الله د یو بل دوستان وو، او دواړه قرضدار وو،

او دوارو دیو بل قرض داسي ادا کړو چي بل ځیني خبر هم نه سو. حضرت علي ﷺ فرمايي چي هغه شل درهمه کوم چي زه پرخپل یو دوست خرڅ کړم د هغو سلو درهمونو په مقابله کي ما ته زیات خوره دي کوم چي زه فقیر ته ورکړم.

نبي کریم ﷺ ځنګل ته تشریف یو وړو هلته یې دوه مسواکونه تیار کړل چي یو پکښي سیده او بل کوږ وو. د دوی سره چي کوم صحابي وو سیده یې هغه ته ورکړی او کوږ یې د ځان سره کښېښوی هغه عرض وکړی یا رسول الله! دا سیده تاسو واخلئ. دوی وفرمایل: چي کله څوک د چا سره یو ګړی ملګرتیا(دوستي) وکړي نود قیامت په ورځ به د ده څخه پوښتنه کیږي چي تا د ملګرتیا حق ادا کړی او که ضائع دي کړی؛ په دې کي اشاره ودې طرف ته ده چي بنده به خپل خوره شئ بل ته ورکوي، او دوی ﷺ وفرمایل چي دوه سړي کوم چي د یو بل سره تعلق او دوستي کوي په دوی کي د الله ﷻ په نزد زیات خوره هغه دی کوم چي د بل په حق کي زیات شفیق او مهربانه وي.

(۲) دویم قسم هغه دی چي په ټولو کارونو کي د دوست د خواهش او غوښتني څخه مخکي د هغه مدد وکړی په خپ زړه او فراخي سره د دوست خدمت وکړی د اسلافو عادت داوو چي هره ورځ به د دوستانو دروازو ته ورتلل او د کورنۍ څخه به یې د حالاتو پوښتنه کول د خاشاکو، اوړو، تیلو او مالګي او نورو پوښتنه به یې کول او د خپلو دوستانو د ضرورتونو به یې د خپلو ضرورتونو څخه زیات خیال ساتلو او خوند خو به داوو چي کار به یې هم ورکولو او احسان به یې هم د هغو منلو. چي د خدمت موقع یې راته ملاو سوه. حضرت حسن بصري رحمه الله فرمايي چي دیني وروړ ما ته د خپل بچیانو څخه زیات خوښ دی په دې وجه چي دی د دین را یادولو ذریعه جوړیږي او بچیان د دنیا یادولو ذریعه.

حضرت عطاء رحمه الله فرمايي: چي دري دري ورځي وروسته په خپلو دوستانو خامخا ځان خبروه، چي که هغه ناجوړه وي نو پوښتنه یې کوه که په یو کار کي وي نو مرسته ور سره کوه او که د هغه هېر سوي وي نو ور یادوه یې. جعفر بن محمّد فرمايي چي زما دا حال دی چي زه تر دښمن پوري دحاجت پوره کولو خیال ځکه کووم چي په فراغت سره د دوست د حقونو په باره کي سوچ وکړم چي آخر د ده د پاره څه وکړم؟

د اسلافو څخه یو بزرګ وو کوم چي د خپل دوست د وفات څخه وروسته تر څلوېښتو کالو پوري د ملګرتیا حق داسي ادا کړی چي د هغه د ښځي بچیانو کفالت یې کولو.

(۳) دریم شئ ژبه ده چي د خپلو ورنو (دوستانو) په حق کي دي ښه خبره کوي او د دوی عیبونه دي

پټوي، که څوک د دوی په شا پسې ذکر وکړي يعنې عيب جوئي وکړي نو چې ته يې جواب ورکړې او داسې ګڼې چې ګواکې دوست د دوي شاته ولاړ دې دا خبرې اوري، لکه څنګه چې د خپل ځان په باره کې د خپلې خير موجودګي په وخت د هغه شخصه اُميد کوې چې دغسې مظاهره ته پخپله هم وکړې، او د بد زبانې شخصه ځان ساتې او څه چې دوست وايي تکرار ور سره نه کوې او د هغه راز په راز کې ساتې، که څه هم تعلقات دې ور سره قطع سوي وي ځکه چې دا ډېره نا کاره بد اخلاقي ده، دغه ډول د هغه داهل او عيال او دوستانو هم غيبت مه کوه، که چا د دوی شخصه شکايت وکړی نو دوی ته يې مه وايه! ځکه چې خفه به سي، لوکه خلک د ده تعريف کوي نو دا پټوه مه ځکه چې دا د حسد دليل دې که څه هم د ده شخصه تقصير وسي نو معاف يې کړه او خپل هغه قصوروونه راياد کړه کوم چې دخداى په عبادت کې در شخصه کيږي، دغسې به در ته د بل قصور سپک معلوم سي او دا هم خيال کوه چې د بې خطا او بې عيبه سړي تلاش مشکل دې، او دغسې به د مخلوق سره صحبت بالکل ترک سي، په حديث کې دې چې مؤمن هميشه عذر تلاش کوي، او منافق د عيبونو په تلاش کې وي، تر دې چې ديوې نېکي په بدله لس عيبونه پټوي.

نبي ﷺ فرمايلي دي: چې د نا کاره (خراب) دوسته شخصه پناه غوښتل پکار دي، ځکه چې دی کله بدی ويني نو ښکاره کوي يې او چې نېکي ويني نو پټوي يې، هرکله چې يو قصور د معذرت لائق وي نو معاف کول يې او نېک ګمان کول پکار دي ځکه چې بدګماني حرامه ده د نبي کريم ﷺ فرمان دي چې الله تعالى د مؤمن څلور شيان پر نورو حرام کړي دي؛ (۱) مال (۲) وينه (خون) (۳) غيبت (۴) بدګماني.

حضرت عيسى عليه السلام فرمايي: چې تاسو د هغه سړي متعلق څه خيال دي کوم چې خپل ورور ويده ويني او شرې (برستن) څيني پورته کړي چې دی لغړ سي، خلګو عرض وکړی چې داسې څوک کولای سي؟ دوی وفرمايل چې تاسو، ځکه چې تاسو د خپلو ورڼو عيب ښکاره کوی چې خلک څيني خبر سي، د مشرانو قول دي چې کله تاسو د چا سره دوستي کول غواړئ نو اول هغه ته غصه وکړئ بيا يو څوک هغه ته ولېږئ چې ستاسو ذکر د هغه په مخکې وکړي که هغه ستاسو راز ښکاره کړی نو پوه سه چې دغه د دوستۍ لائق نه دی، دغه ډول بزرګانو ويلي دي چې دوستي د هغه چا سره کوه چې هغه ته ستا حال داسې معلوم وي لکه چې الله جل جلاله ته معلوم دی او داسې يې پټوه لکه الله چې يې پټوي، يو سړي يو دوست ته د راز خبره وکړه د هغه شخصه يې پوښتنه وکړه چې دا خبره تا ته ياده سوه هغه وويل چې نه زما شخصه خو هېره سوې ده،

د بزرګانو وینا ده چي پر څلورو قسمو بندي سړي ستا څخه جلا کېدونکي ملګري د دوستۍ قابل نه دي:
(۱) د خوشحالۍ په وخت (چي دی ستا خوشحالۍ لیدلی نسي) (۲) د غصې په وخت کي (ستا له غصه نسي زغملای) (۳) د طمع په وخت (یعني د خپلي طمع په وخت ستا ملګرتیا پرېږدي) (۴) د شهوت او خواهش په وخت (یعني په دې حالت کي ستا د دوستۍ پروا نه کوي) ځکه چي د دوستۍ تقاضا دا ده چي په هیڅ حالت کي هم ستا ملګرتیا پري نږدي.
حضرت عباس ﷺ خپل زوی حضرت عبد الله ﷺ ته وفرمایل: چي امیر المؤمنین حضرت عمر ﷺ ته خپل مقرّب جوړ کړی یې پر مشراتوبې تا ته ترجیح در کړې ده، نو د پنځو خبرو خیال ساته:
(۱) یو دا چي د هغه راز چا ته ښکاره نه کړې (۲) دویم دا چي د هغه په مخکي د چا غیبت ونه کړې (۳) دریم دا چي د هغه په مخکي چیري دروغ ونه وایې (۴) څلورم دا چي د ده دحکم خلاف وزري ونه کړې (۵) پنځم دا چي چیري خیانت ونه کړې.
او په دنیا کي د دوستۍ بربادولو د پاره د دې څخه زیات بل شئ نه وي چي د دوست سره پر خبره خبره تکرار او مناظرې کوي، ځکه چي د دوست د خبري د ردّ کولو مطلب په نورو لفظونو کي دا وي چي ګواکي دی جاهل او احمق ګڼې او خپل ځان عالم فاضل ګڼې، او په متکبّرانه انداز کي هغه ته سپک کتل دي او دا خبري د دښمنۍ باعث دي د دوستۍ د دې سره هیڅ تعلق نسته، د نبي کریم ﷺ ارشاد دي چي ته د خپل ورور د خبري څخه اختلاف مه کوه، پسخند او مسخرې مه باندي کوه او د هغه سره وعده خلافي مه کوه، بزرګانو ویلي دي چي که تا خپل ورور (دوست) ته وویل چي را زه! چي ځو او هغه وویل چي تر کومه ځایه پوري نو دی د دوستۍ قابل نه دی بلکي ده ته پکار دي چي فوراً پورته سي او پوښتنه نه کوي.
حضرت ابو سلیمان درانی رحمه الله فرمایي چي زما یو دوست وو چي ما به د ده څخه څه غوښتل نو را کول به یې یو ولار ورته ماوویل چي فلانی شئ پکار دي هغه وویل څومره اندازه په دې خبره د هغه د دوستۍ خوند زما د زړه څخه رخصت سو، پوه سه! چي محبت فقط په موافقت سره باقي پاته کېدای سي.
(۴) څلورم قسم دا دی چي د ژبې څخه شفقت او محبت ظاهر کړې، د نبي ﷺ ارشاد دي: "چي کله د چا سره دوستي کوی نو پکار دي چي هغه خبر کړی، دا یې ځکه وفرمایل چي د هغه په زړه کي هم د محبت جذبه پیدا سي، او دغسي به دا محبت دوچنده سي، د هغه د حالاتو پوښتنه کول، د هغه په

تکلیف او راحت کي شریک کېدل او د هغه رنځ او راحت خپل رنځ او راحت ګڼل پکار دي. چي را بولې يې نو په ښه نوم سره يې را بوله يعني که د هغه يو عرف کنیت یا تخلص او نور وي نو په هغه يې را بوله چي د هغه خوښ وي، حضرت عمر ﷺ فرمايي: چي دوستي په درې شيانو مضبوطيږي: يو په ښه نوم په بللو سره، دويم په سلام کي په مخکي کېدلو سره، دريم دا چي دی په ناسته کي په مخکي کولو سره. او دا هم ده چي د شا د خوا په هغه پسي تعريف کوي، دغه ډول د هغه اهل او عيال او متعلقين په ښو سره يادوي، دا هغه کارونه دي په کومو سره چي دوستي مضبوطيږي، داړنګه دا چي هغه احسان وکړي نو چي شکر يې ادا کړي، حضرت علي ﷺ فرمايي: چي کوم سړی د خپل ورور په نېک نيتی شکر نه کوي هغه په نېک کار باندي هم شکر نه اداء کوي. انسان ته پکار دي چي د خپل دوست په شا پسي د هغه مدد وکړي، يعني چي څوک يې بد وايي دی يې ترديد کوي او دوست د خپل ځان په ډول ګڼي، که د ده په مخکي د ده دوست بدي بيانوي او دی خاموش وي نو دا داسي ده لکه چي د ده په مخکي د ده دوست وهل کيږي او دی يې مدد نه کوي، حقيقت دا دی چي د ژبې زخم دوهلو څخه زيات دی، د چا خبره ده: چي کله يو څوک زما په دوست پسي د شا د خوا خبري وکړي، نو ما فرض کړه چي زما دوست موجود دی او اوري نو ما هم دغسي جواب ور کړی چي ګواکي هغه واوريدی، حضرت ابو الدرداء ﷺ دوه ځوانان وليدل چي ترلي وو نو چي يو به پورته سو بل به هم پورته سو چي دا يې وليدل نو بې اختياره په ژړا سو ويې فرمايل چي ديني ورونه هم داسي وي چي په دريدلو او ګرځېدلو کي د يو بل متابعت (پيروي) کوي.

(۵) پنځم قسم دا دی چي څومره د ديني علم ده ته ضرورت وي هغه ده ته وښيي ځکه چي د خپل ورور دوږخ د اور څخه د ساتلو په نسبت دا زياته غوره ده چي که د علم از ده کولو څخه وروسته په دې عمل ونه کړي نو ده ته دې نصيحت وکړي او د الله ﷻ څخه ويرېږي ليکن نصيحت په يوازوالی (تنهايي) کي پکار دي چي فائده وکړي په ښکاره نصيحت کي ډېر واره د رسوايي خطره وي کومه خبره چي ور ته کول وي په نرمي سره دې کوي، نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: المؤمنُ مِرْآةُ المؤمنُ (يو مسلمان د بل مسلمان د پاره د هينداري په ډول دي) د دې مقصد دا دی چي د يو بل په ذريعه خپل عيب او نقصان معلوم کړي، هرکله چي ستاوورو په تنهايي کي ستا عيب پر تا ښکاره کړي نو د ده احسان مند کېدل پکار دي او خفګان نه دي کول پکار. د دې مثال داسي دی لکه چي يو سړی تا خبر کړي چي ستا په جامو کي دننه مار يا لړم دی نو په دې خو به چيري خفه نه سې بلکي

احسان به یې ومني بدخُویونه(صفتونه) په سړي کي د مار لړم په ډول دي لیکن د دوی زخم به په قبر کي معلومیږي او په دې به روح متاثره کیږي هغه د دې جهان د مار لړم څخه زیات ازار رسوونکي دي ځکه چي د دوی زخم پر بدن وي (او د هغو د پر روح).

او حضرت عمر ﷺ به فرمایل: چي پر هغه سړي دي د الله ﷻ رحمت وي کوم چي زما عیب زما په مخکي ښکاره کړي، حضرت سلمان فارسي ﷺ د حضرت عمر ﷺ په خدمت کي راغلی نو حضرت عمر ﷺ وفرمایل: سلمان ﷺ! زما په حالاتو کي چي کومه بده خبره تالیدلي یا اورېدلي وي ما ته یې په ربښتیا سره بیان کړه، دوی چي هر څومره معذرت وکړی لیکن حضرت عمر ﷺ پرله پسې اصرار (ټینګار) کولو نو حضرت سلمان ﷺ وفرمایل: چي ما اورېدلي دي چي په یو وخت کي ستا په سترخان(سرخان) دوه ډوله خوراکونه وي او ستا قمیصونه دوه دي یو د ورځي او یو د شپې، دوی وفرمایل چي دا دواړه خبري خو شکر دي چي غلطي دي بیا یې وفرمایل چي بله څه خبره دي اورېدلي ده؟ نو ویې فرمایل چي نا!.

**روایت:** حضرت حذیفه مرعسي رحمه الله حضرت یوسف اسباط رحمه الله ته خط ولیکی چي ما اورېدلي دي چي تا خپل دین د دوو روپو په عوض خرڅ کړی یعني تا په بازار کي یو شئ واخیستی د هغه شئ مالک وویل چي دا شئ مثلاً په څلور روپی دي او تا ورته وویل چي په دوې روپی یې را کړه هغه ته پېژندې په دې وجه یې تا ته در کړی، نو ځنګه چي هغه رعایت ستا د دینداری او پرهیزګاری په وجه سره کړی دی په دې وجه د غفلت څادر (پټو) د سره څخه کښته کړه او د غفلت د خوب څخه بیدار سه!.

کوم سړی چي د قرآن او علم حاصلولو څخه وروسته د دنیا لالچ (حرص) وکړی نو زما یېره ده چي دی د الله په آیتونو سره خندا کوي نو دین ته د رغبت علامه دا ده چي بنده ناصح احسان منـد وي، الله ﷻ د دروا غجنو خلکو متعلق فرمایلي دي: ولکن لا تحبون الناصحين [الاعراف] (او لېکن تاسو خلک خیر خواهان (نصیحت کوونکي) نه خوښوی).

او کوم سړی چي نصیحت کوونکي دوست نه ګڼي نو تکبر او غرور د ده پر دین او عقل بالندي غالب راسي، دا ټولي خبري په هغه ځای کي وي کوم ځای چي بنده پخپل عیب پوهیږي نه، او که پوه وي نو په اشاره او کنایه سره نصیحت کول پکار دي په ډاګه او وضاحت سره نه، او که داسي قصور وي چي تعلق یې ستا د ذات سره وي نو دغه پټ ساتل او ځان په نا خبره کول غوره دي په دې شرط که د

دوستی څخه زړه نه لیري کېږي، او که د دې خطره وه نو د تعلق قطع کولو څخه غصه غوره ده چې څه کرځ او کړکېچ ووځي، لېکن د ځیګر او ژوورتیا څخه محبت قطع کول غوره دي، د انسان د دوستی څخه مقصد دا پکار دي چې د خپلو ورنو په خبرو سره د برداشت او تحمل مظاهره وکړي خپل اخلاق برابر کړي دا نه چې د دوی څخه د ښېګڼې اُمید ولري. ابوبکر کتاني رحمه الله وايي زما یو دوست وو د کوم په وجه چې زما پر زړه باندې بوج او تکلیف وو، ما په دې نیت سره هغه ته څه ورکړه چې زما دا کراني (بوج او بار) لیري سي لېکن بیا هم لیري نه سو نو ما دی تر لاس ونیوی خپل کور ته مې راوستی او ده ته مې وویل چې د خپلې پښې خپړه زما پر مخ کښېږده هغه په سختۍ سره انکار وکړی نو ما هم اصرار (ټینګار) وکړی تر دې چې هغه خپله خپړه یې زما پرمخ کښېښوده چې په دې سره هغه بوج او ستونزه لیري سوه.

**قصه:** ابو علي رباط رحمه الله وايي چې عبدالله رازي زما سره په سفر کي ملګری وو هغه وویل چې په لاره به امیر زه یم او که ته؟ ما وویل چې ته به یې هغه وویل چې ښه دی نو زه چې څه وایم ته به زما خبره منې، ما وویل چې ضرور به یې منم نو ده وویل چې یوه بوری (ګونی) راوړه، ما راوړه نو د سفر ټول سامان یې پکښې واچولو پر خپله شا یې راواخیستی، او روان سو ما ډېر اصرار (ټینګار) وکړی چې ما ته یې را کړه لېکن هغه ونه منله او ویې ویل چې تا زما امارت تسلیم کړی دي او س ستا د حکم چلولو حق نسته یوه شپه باران وو نو کمبل یې توله شپه پر ما نیولی وه ولاړ وو، کله چې به ما څه ویل نو ویل به یې چې زه امیر یم تا ته خو حکم منل دي، نو ما په زړه کي ویل چې کاش! ما دی خپل امیر نه وای جوړ کړای.

(۶) شپږم قسم دا دی چې که یوه هېره یا غلطي وسي نو معاف کول یې پکار دي، بزرګانو ویلي دي چې که دیو وورو څخه یو غلطي وسي نو تا ته د خپل طرف څخه اویا۷۰ واره عذر او معذرت کول پکار دي که بیا هم ستا زړه یې نه مني نو خپل زړه ملامت کړه چې ته خو ډېر بدخواه او بد ذات یې چې ستا وورو خو اویا واره عذر وکړی او ته بیا هم نه منې، او که دغه قصور داسي وي چې په هغه کي ګناه وي نو په نرمۍ سره نصیحت کول ضروري دي چې هغه ځیني منع سي، او که هغه اصرار (ټینګار) نه کولو نو قصداً ځیني ځان ناخبره کول پکار دي، لېکن که هغه پر دغه باندي اصرار (ټینګار) کولو نو پوه کول یې ضروري دي، لېکن دا پوه کول او نصیحت که اثر نه کوي نو بیا څه کول پکار دي؟ په دې کي د اصحابو رضي الله عنهم په مینځ کي اختلاف دی، مثلاً:

**اقوال او نظریات:** دابو ذر ﷺ مذهب دا دی چي کله هغه نصیحت قبول نه کړی نو بالکل دوستي ختمول پکار دي، او فرمایي چي څوک یې دالله ﷻ د پاره دوست جوړ کړی وو هغه (په دې صورت کې) دالله ﷻ د پاره خپل دښمن وګڼه، د صحابه کرامو ﷺ د یوې ډلې په نزد چي ابو الدرداء ﷺ پکښې هم دي وایي: په دې صورت کي ور سره دوستي قطع کول نه دي پکار، ځکه چي دده د ګناه ښخه د راګرځېدو توقع په دې صورت کې کېدای سي چي دوستي ور سره ختمه نه کړای سي، احتیاط دا پکار دي چي په ابتداء کي داسي خلک دوست جوړ نه کړای سي لېکن که جوړ کړای سو نو بیا یې پرېښول مناسب نه دي، دابراهیم نخعي رحمه الله قول هم دې نظریې ته زیات نژدې دی، چي که ستا دوست یو ګناه وکړي، نو ده ښخه جلا کېږه مه، چي نن که د ګناه کړې ده نو کېدای سي چي دی یې صبا پاته هم کړي، په حدیث شریف کي دي چي د عالم په خطاء معافي کول غوره دي او دده ښخه په قطع تعلق کولو کي تلوار کول نه دي پکار، ځکه چي د ده ښخه د ګناه پرېښولو توقع نسبتاً زیاته وي، ښنګه چي:

**قصه:** ده چي دوو تنو د یو بل سره ملګرتیاوه یو د زړه د لاسه مجبوره سو او عاشوق سو او خپل دوست ته یې وویل چي زما زړه خو ناروغه سو او س ستا خو ښه ده که غواړې نو زما سره ملګرتیا قطع کړه، بل وویل توبه دا کله کېدای سي زه ستا د یو ګناه په وجه ستا سره تعلقات ښنګه پرېکړم، او بیا ده پخپل زړه کي کلکه اراده وکړه چي تر څو پوري الله ﷻ زما دا دوست د عشق د د دې بلا ښخه خلاص نه کړي تر هغه وخته پوره به زه خوراک چښاک ونه کړم، څلوېښت ورځي، ده دغه دول په لوږه تنده تېري کړي او بیا یې د خپل دوست ښخه په دې حال کي پوښتنه وکړه و هغه وویل ښنګه چي وږم هغسي یم، بیا هم دی بې همته نه سو د لوږې ښخه ویچ کلک سو (خو دعاء به یې کوله) آخر یوه ورځ ناڅا په یې دغه عاشق دوست راغلی ورېې ویل چي الله ﷻ پخپل فضل او کرم سره زما زړه د عشق ښخه خلاص کړی او بیا دی ولاړی خوراک چښاک یې وکړی.

**قصه:** یو سړي ته خلکو وویل چي ستا دوست بې دینه سوی دی او په ګناهونو کي ډوب دی نو ته ور سره دوستي ولي نه پرېکوې؟ هغه وویل بیا خو هغه ته اوس د دوستی زیات ضرورت دی، ځکه چي د هغه خو کارا وران (خراب) سو نو د دې تباهی په وخت زه هغه ښنګه پرېږدم؟ ما ته خو پکار دي چي د هغه پوره پوره مدد وکړم، او هر ښنګه چي وي پوه یې کړم چي د دوږخ د اور ښخه خوندي سي.

**قصه:** په بني اسرائیلو کي دوه دوستان په یو غره کي اوسیدل او په عبادت کي به مشغول وو. یوه ورځ په دوی کي یو دوست د یو شي اخیستلو د پاره ښار ته راغلی د هغه نظر پر یوه ښځه پرېوتی چي په شراب خانه کي وه. او پر عاشق سو او پر هغه ځای پاته سو. څو ورځي وروسته د ده هغه دوست د ده په تلاش کي ده ته راورسېدی هغه د شرم څخه (ځان نا خبره کړو) ورېي ویل. ته څوک یې؟ زه خو تا نه پېژنم. هغه وویل بېړېږه مه! کوم محبت چي ستا د پاره نن زما په زړه کي دی دغه د دې څخه مخکي چیري هم نه وو. دا یې وویل لاسونه یې څېنې په را وګرځول او مچ یې کړی. هغه چي دا شفقت ولیدی نو مطمئن سو چي شکر دي زما عزت خو د ده په نظر کي نه دي کم سوی. توبه یې وکښله او پور ته سو د هغه سره ولاړی.

نو د ابو ذر ﷺ طریقه د دین ستلامتیا ته زیاته نژدې ده. لېکن د ابو درداء ﷺ طریقه پاکه او د فقهي طریقې حامله ده ځکه چي د لطف او مهرباني دا انداز آخر تو بې ته انسان راګرځوي. او بنده ته د عاجزی او درماندګی په وخت د دیني ورونو زیات ضرورت وي نو دی به څه نګه پرېښول سي د فقهي وجه دا ده چي دو دوستي کوم تعلق وتړل سو دغه د خپلولی حکم لري نو د ګناه په سبب صله رحمي قطع کول صحیح نه دي. د الله تعالی فرمان دی: فَإِنْ عَصَوْكَ فَقُلْ إِنِّي بَرِيءٌ مِّمَّا تَعْمَلُونَ (الشعراء) (که دا خلګ ستا خبره نه مني نو ته ورته ووایه چي زه ستاسو د کارونو څخه بې زاره یم) یعني که ستا خپلوان او دوستان ستا خبره ونه مني (ګناه ګارسي) نو ته ور ته ووایه چي زه ستاسو د عملوونو څخه بېزاره یم لېکن دا نه چي ستاسو څخه بېزاره یم. حضرت ابو درداء ﷺ ته خلګو وویل چي ستا دیني ورور په ګناهونو کي غرق مبتلا دي ته ور سره دښمني ولي نه کوې؟ دوی وویل چي زه خو د ده د ګناه دښمن ضروریم لېکن ورور خو بهر حال زما ورور دی. هو! داسي پکار ده چي په ابتداء کي داسي سړی سره تعلق جوړ نه کړي ځکه داسي کول خیانت نه دي لېکن ترک د تعلق خیانت دي او هغه حق پرېښول دي کوم چي د مخکي څخه ثابت سو. تول علماء وايي چي که ستاورور ستا په حق کي کمي کوتاهي وکړي نو د هغه بخل غوره دی او که هغه عذر وغواړي نو که څه هم ته پوه یې چي درواغ وایي مګر بیا هم عذر قبلوه.

د نبي کریم ﷺ فرمان دی چي کوم سړی د خپل ورو عذر قبول نه کړي نو دی د هغه سړي په بول دی کوم چي لاره شکوونکی (ډاکو) جوړ سي د مسلمانانو څخه خوراج وصولوي. او فرمایي چي مسلمان ژر خفه کېږي او ژر خوشحاله کېږي هم. ابو سلیمان درانی رحمه الله خپل یو مرید ته وویل

چي که ستاسو دوست ستا سره زياتي وکړي نو ته ده ته غصه او زياته خبره مه کوه ممکنه ده چي د دې شخه وروسته په غصه کي ته داسي خبره څيني واورې کومه چي د دې زياتي شخه هم سخته وي، مريد وويل چي ما دا خبره و ازمايله نو هم دغسي مي وليده.

(۷) اووم قسم دا دی چي خپل دوست به هميشه په ژوند کي او د مرګ شخه وروسته په دعاء کي يادوې، او لکه څنګه چي د خپل اهل او عيال د پاره دعاء کوې دغسي د هغه اهل او عيال ته دعاء کوه او داسي دعاء په حقيقت کي د خپل ځان د پاره وي، نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: چي څوک خپل په وروړ پسي دعاء کوي نو فرشته ده په جواب کي وايي چي خدای دي تا ته هم داسي در کړي او په يو روايت کي دي چي الله ﷻ پخپله فرمايي چي مخکي به ستا مراد پوره کړم، نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي د دوستانو هغه دعاء کومه چي يو بل پسي وي دغه الله ﷻ نه رد کوي، حضرت ابو درداء ﷺ فرمايلي دي چي زه په سجده کي داويا ۷۰ دوستانو د پاره نوم په نوم دعاء کوم،

د مشرانو وينا ده چي وروړ هغه دی کوم چي ستا د مرګ شخه وروسته هغه وخت تا ته دعاء کوي کله چي وارثان په مال اخيستو کي مصروفه وي، او د ده سره دا فکر وي چي الله ﷻ به در سره څه سلوک فرمايي، نبي کريم ﷺ فرمايي چي د مړي مثال د هغه سړي په شان دی کوم چي په اوبو کي غرقيږي او کومک (پريو شئ لاس لګېدل) تلاش کوي، مړی هم د ښځي او بچيانو او دوستانو شخه د دعاء په انتظار کي وي، او د ژوندو خلکو دعاء د نور د غرونو په شان سي قبرونو ته رسيږي، او فرمايي چي دعاګاني د نور په پلېټونو (غابونو) کي مړو ته وړاندي کيږي او ورته ويل کيږي چي دا د فلاني سړي ډالۍ (تحفه) ده، نو مړی داسي خوشحاليږي لکه چي ژوندی سړی چي په ډالۍ خوشحاليږي.

(۸) اتم قسم دا دي چي په دوستي کي وفا کوي، د وفاداري يو مطلب خو دا دی چي د دوست د مرګ شخه وروسته د ده د ښځي بچيانو او تعلقدرانو شخه غافله نه وي،

يوه سپينسرې ښځه د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضره سوه، دوی ېې تعظيم وفرمايلو، خلک په تعجب کي سوه، نو دوی ﷺ وفرمايل چي دا سپينسرې به د حضرت خديجې رضي الله عنها په زمانه کي زموږ کور ته راتلله، او د دوستی قائم لرل په ايمان کي داخله دي، وفاداري دا ده چي چا د يو چا سره د دوستي تعلق وي نو د ده د بچيانو او ټول تعلقدارانو او نورو سره د شفقت او محبت سلوک (چلند، رويه) کوي او په مهرباني ور سره مخي ته راځي، او پخپل زړه کي د دوی د پاره د ترحم هغه جذبات محسوسوي کوم چي د خپل دوست متعلق محسوسوي، او د وفاداری يو مفهوم دا هم دی چي که چيري تا ته يو عهده (وظيفه) يا دولت ملاؤ سي نو د دوستانو سره د مخکي شخه زيات متوضع او

دارومدار کوونکي سي د خپلو دووستانو په معامله کي فکرونه کوي، او د دې یو مفهوم داهم دی چي دوستي همېشه ساتي او په یو سبب سره تعلق قطع نه کړي ځکه چي د شیطان لوی کار دا دی چي د دوستانو په تعلقاتو کي تفرقه واچوي، د الله ﷻ ارشاد دی: إِنَّ الشَّيْطَانَ يَنزَغُ بَيْنَهُمْ لبني اسرائيل، ۵۳(شیطان په خلکو کي فساد اچوي) او د حضرت یوسف ؑ ارشاد دی: مِنْ بَعْدِ أَنْ نَزَغَ الشَّيْطَانُ بَيْنِي وَبَيْنَ إِخْوَتِي [ یوسف، ۱۰۰] (د دې شخه ورروسته چي شیطان زما او زما د ورنو په مینځ کي فساد واچوی) او د وفا نوم دا هم دی چي که د دوست په حق کي شوک ده ته غصه ورولي نو دی یې پرواه نه کوي، او د ده په خبرو کي نه راځي، بلکي د دوست په مقابله کي تول دروا‌غجن ګني. او دا مطلب یې هم دی چي د دوست د دښمن سره دوستي نه کوي بلکي د ده دښمن هم خپل دښمن ګني، ځکه چي کوم سړی د یو چا دوست او د هغه د دښمن هم دوست نو دا دوستي کمزوري وي.

(۹) نهم قسم دا دی چي د تکلف مظاهره نه کوي شنګه چي پخپله یوازي ژوند تېروي دغه ډول د دوست سره ووسي، که تکلف کوي نو د دې مطلب دا دی چي دوستي ناقصه ده. حضرت علي ؓ فرمايي چي هغه دوست د ټولو شخه ډېر بد دی د کوم سره چي معذرت او تکلف کول پرېوځي، حضرت جُنید رحمه الله فرمايي: چي ما ډېر دوستان لیدلي دي لیکن داسي دوست مي چيري نه دي لیدلی په کومو کي چي د دوستی سره سره د تکلف حشمت موجود وي، مګر دا چي په یوه کي یو څه عیب وي، د مشرانو وینا ده چي د دنیا د خلکو سره خو په ادب سره وسه! او د آخرت د خلکو سره د علمي شخصیت مظاهره کوه؛ او د اهلِ معرفت معامله دا ده چي د دوی سره دي شنګه زړه غواړي وسه!، د ځیني صوفیانو د تعلقاتو نوعیت داسي وو چي هغوی به په دې شرط سره د دوستی مظاهره کول، چي که چا به همیشه روژه نیوله یا به یې همېشه خوراک کولو یا به یې ټوله شپه قیام کولو یا به بیده کېدلو. نو دوی به ځیني پوښتنه نه کول چي داسي ولي کوې؟ نو غرض دا دی چي د الله ﷻ د پاره د دوستی معنی دا ده چي په تعلقاتو کي یو شان والی وي، او ښکاره ده چي په یو شان والي کي تکلف نه وي.

(۱۰) لسم قسم دا دی چي خپل ځان د ټولو دوستانو شخه کم ګني او د ده شخه د یو خبري اُمید او طمع نه لري او هیڅ رعایت یې نه پتوي، او ټول حقونه ادا کوي، د حضرت جنید رحمه الله په مخکي یو سړي وویل چي په د دې زمانه کي رښتوني دوستان ډېر کم دي او دا خبره ده په تکراره او بیا بیا وکړه، حضرت جنید رحمه الله جواب ورکړی چي که ته داسي سړی غواړې چي ستا خدمت او غم

خواري کوي نو داسي سړی یقیناً کمیاب دي او که داسي سړی خوارۍ چي ته یې خدمت وکړي او غم خواري یې وکړي نو خامخا داسي خلک ډېر ملاوېږي، مشرانو ویلي دي چي کوم سړی خپل ځان د دوستانو څخه غوره شماري، دی به پخپله ګناه ګاره وي، او د ده دوستان به هم د ده په حق کي ګناه ګاره کېږي، او که خپل ځان د هغوی سره برابر ګڼي نو پخپله به هم پرېشانه وي او د ده په وجه به یې دوستان هم پرېشانه وي، او که خپل ځان د دوی څخه کم ګڼي نو دا خبره به د دواړو په حق کي د راحت او آرام سبب وي، حضرت ابو معاویه الاسود رحمه الله به ویل چي زما ټول دوستان زما څخه غوره دي چي ما په هره معامله کي مخکي نوي او زما د مشری خیال ساتي.

## دریم باب: د مسلمانانو قریبانو، همسایه ګانو او غلامانو د حقونو بیان

پوه سه! چي د هر چا حق د ده د قرابت (خپلولی) او تعلق پر بناء دی شومره چي د خپلولی درجې وي په دغه اندازه حقونه دي، او کوم تعلق چي د الله ﷻ د پاره وي د دې څخه زیاته بله هیڅ رابطه نسته، د دې حقونو ذکر وسو، د کوم سړي سره چي دوستي نه وي، محض دیني خپلولی وي د هغه هم څو حقونه دي:

(۱) اول حق دا دی چي بنده کوم شئ د ځان د پاره نه خوښوي هغه به د یو مسلمان د پاره هم نه خوښوي، نبي کریم ﷺ فرمایي چي د مسلمانانو مثال د یو جسم په ډول دی چي په یو اندام کي تکلیف راسي نو ټول اندامونه تکلیف محسوسوي او فرمایي: چي کوم سړی د دوږخ څخه د نجات (خلاصون) خواهشمند وي ده ته پکار دي چي د ایمان پر کلمه مړ سي، او کوم شئ چي دی نه خوښوي چي خلک دې د ده سره وکړي نو دغه دي دی د خلګو سره نه کوي، حضرت موسی علیه السلام د الله ﷻ څخه پوښتنه وکړه چي اې الله! ستا په بندګانو کي لوی عادل شوک دی؟ ورته فرمایل: چي هغه سړی کوم چي ستا سره انصاف وکړي.

(۲) دویم حق دا دی چي یو مسلمان ته د ده د لاسه او د ده د ژبي څخه تکلیف ونه رسیږي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي تاسو ته معلومه ده چي مسلمان شوک دی؟ خلګو عرض وکړی چي الله ﷻ او د هغه رسول ښه په خبر دی، دوی ﷺ وفرمایل چي مسلمان هغه دی چي د هغه د لاس او ژبي څخه بل مسلمان خوندي او سلامت وي خلګو عرض وکړی چي اې د الله رسوله! مؤمن شوک دی؟ دوی و فرمایل چي مؤمن هغه دی د کوم څخه چي دبل مؤمن ځان او مال په امن وي، بیا اصحابو رضي الله عنهم پوښتنه وکړه چي مهاجر شوک دی؟ دوی ﷺ وفرمایل چي مهاجر هغه دی چي بد کارونه پرېږدي، دوی ﷺ

وفرمایل: چې د يو مسلمان د پاره دا خبره صحيح نه ده چې دی په خپلو سترګو سره داسې اشاره وکړي په کومه چې بل مسلمان ته تکليف ورسيږي، او دا هم حلال نه دي چې يو مسلمان داسې کار وکړی په کوم سره چې بل مسلمان و بيريږي، حضرت مجاهد رحمه الله فرمايلي دي: چې الله ﷻ به دوږخيان د خارښت په ناروغي کې مبتلا کړي چې دوی به دومره ځان وګروي چې هډوکي به يې ښکاره سي ښوک به څيني پوښتنه وکړي چې تکليف څومره دی؟ دوی به ووايي چې ډېر سخت او نسې زغمل کيدلای، نو به ورته ووايي: چې د دې چې سبب دا دی چې تاسو به په دنيا کې مسلمانان ازاورل، نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چې ما يو سړی په جنت کې وليدی چې چيري به يې غوښتل پر هغه خوا به تللو سېل او منظره به يې کوله دا خوشحالي ده ته ځکه نصيب سوې وه چې ده د لارې څخه يوه داسې درخته پرې کړې وه کومه چې به مسلمانانو ته تکليف رسولو.

(۳) دريم حق دا دی چې د چا سره دې تکبر نه کوي ځکه چې الله ﷻ د متکبرينو سره دښمني ساتي، نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چې پر ما وحي نازلې سوې چې اې خلګو! عاجزي اختيار کړئ او څوک دې پر چا فخر نه کوي ځکه چې نبي ﷺ به د کونډو ښځو او مسکينانو حاجتونه پوره کول، او انسان لره دا مناسب نه دي چې خلګو ته په سپک نظر سره ګوري ممکنه ده چې دغه د الله ﷻ غوره بنده وي، او دی څيني خبر نه وي، ځکه چې الله ﷻ خپل دوستان پټ ساتي، چې څوک دوی ونه پيژني.

(۴) څلورم حق دا دی چې د يو مسلمان په حق کې دی د چغل خور (غيبت ګر) خبره نه اوري ځکه چې خبره د صالح او نېک سړي اوريدل پکار دي او چغل خور فاسق دی، په حديث شريف کې دي چې يو چغل خور به جنت ته نه ځي، دارنګه پوه سه! چې کوم سړی د بل خبره ستا مخ ته راوړي هغه به ستا خبره د نورو مخې ته هم وړي، د داسې سړي څخه ځان ليرې ساتل پکار دي او د ده د خبره رښتيا نه ګڼل پکار دي.

(۵) پنځم حق دا دی چې د يو دوست سره د دريو ورځو څخه زيات د خبرو بندول نه دي پکار، ځکه چې د دې خبري څخه نبي کريم ﷺ منع فرمايلې ده او فرمايلي يې دي چې غوره سړی هغه دی کوم چې مخکې سلام وکړي حضرت عکرمه رضي الله عنه فرمايلي دي چې الله ﷻ حضرت يوسف عليه السلام ته وفرمايل چې ما ستا نوم او مرتبه ځکه لوړه کړه چې تا د خپلو ورنو خطاګانې معاف کړې، او په حديث شريف کې دي چې که تاسو د خپل ورو مسلمان قصور (کمي، او کوتاهي) معاف کړی نو الله ﷻ به ستاسو عزت زيات کړي.

(۶) شپږم حق دا دی چې تر وسه پوري د هر چا سره ښېګڼه کوي که نېک وي او بد وي، په حديث

کي دي چي د چا سره ممکنه وي نېکي کوه که څه هم هغه يې ور نه وي دا سوچ کوه چي ته خوپې قابل يې، دلرنگه په حديث کي دي چي دايمان څخه وروسته دعقل کار دا دی چي بنده دمخلوق سره دوستيز (دوستانه) تعلقات ساتي او د هر نېک او بد سره د احسان او مروّت سلوک (چلند، رويه) کوي، حضرت ابو هريره ﷺ فرمايي: چي که يو سړی به د خبرو کولو د پاره د نبي کريم ﷺ لاس ونيوی نو تر څو چي به هغه نه وو پرې ايښی دوی به کوشش نه کوی چي لاس ځيني خلاص کړي،او د خبرو په دوران کي به يې هغه ته پوره توجّه ورکوله او د هغه تر خبرو ختمولو پوري به يې صبر کوی.

(۷) اووم حق دا دی چي د سپينږرو تعظيم دي کوي او پر بچيانو دي شفقت کوي نبي کريم ﷺ فرمايي: چي کوم سړی د سپينږرو عزت نه کوي او د بچيانو سره شفقت نه کوي هغه زما د امت څخه نه دی، دوی ﷺ فرمايلي دي چي د سپينو وېښتانو تعظيم د الله ﷻ تعظيم دی، او فرمايي: چي کوم ځوان د سپينږرو عزت او تکريم کوي الله ﷻ به د ده په سپينږروالی کي ځوانانو ته د ده دتعظيم توفيق ورکړی، د سپينږرو تعظيم کول د کوچنيانو د پاره دعمر د اوږدوالی دليل دي،

نبي کريم ﷺ چي به کله د سفر څخه وروسته تشريف راوړی نو خلکو به د برکت او مبارکوالی د پاره خپل کوچنيان دوی ته وړاندي کول نو دوی به پر سپرلي باندي سپرول څوک به يې مخه ته کښېنول او څوک شا ته، کوچنيانو به د يو بل سره فخريه ويل چي زه يې مخ ته کښېنولم او ته شاته، يو کوچني بچی د دوی خلعت ته راوړی سو چي نوم پر کښېښودي او دعاء ور ته وکړي دوی به په غېږ کي واخيستی، او داسي به هم کېدله چي يو بچی به متيازي وکړې، خلکو به شور جوړ کړی چي ځيني وايې اخلی، ليکن دوی ﷺ به فرمايل چي پرېږدئ چي پوره متيازي وکړي، او تر دې چي دوی به د بچی د پلار اوور اونورو په مخ کي هغه جامې هم نه پرېولې چي دوی به خفه سي، کله چي به د باندي ولاړی نو بيا به يې پرېولې.

(۸) اتم حق دا دی چي د ټولو مسلمانانو سره په ورون تندي وروسي، نبي ﷺ فرمايلي دي چي الله ﷻ هغه سړی دوست لري کوم چي خنده رويه او آسانې کوونکي وي، دلرنگه فرمايي چي پخپل مينځ کي خنده رويې او آسانې او خوږ ژبانې د مغفرت سبب دی، حضرت انس ﷺ فرمايي: چي يوې غريبې ښځي د نبي کريم ﷺ لار ونيومه ودربده او عرض يې وکړی چي زما ستا سره کار دی دوی هغې ته په کو څه کي د کښېښستو حکم وکړی او ورته فرمايل: چي زه کښېنم، بيا چي تر څو پوري هغې خپله خبره نه وه خلاصه کړې دوی ور سره هلته ناست وو.

(۹) نهم حق دا دی چي د یو مسلمان سره به وعده خلافي نه کوي، په حدیث کي دي چي په کوم سړي کي درې شیان ولیدل سي دغه منافق دی که څه هم لمونځ کوي او روژې هم نیسي؛ یو خو دا چي دروغ وایي، دویم وعده خلافي کوي او دریم په امانت کي خیانت کوي.

(۱۰) لسم حق دا دی چي د هر چا د هغه د مقام او مرتبې مطابق د هغه تعظیم کوي کوم سړی چي په خلکو کي معزز منل کیږي، د هغه زیات تعظیم دي کوي هر کله چي یو سړی په فخرجن لباس کي وي او پر آس سپور وي نو پوه سه چي دا معزز سړی دی.

حضرت عائشه رضي الله عنها په یو سفر کي وو ستر خان (سرخان) وخوړېدی نو یو فقیر راغلی دی وېې فرمایل چي ده ته بوډی ورکړئ، په دي وخت کي یو پر آس سپور راغلی دې هغه راوغوښتی خلکو پوښتنه وکړه چي تا فقیر پرېښودی امیر دي راوبللو نودې وېې فرمایل چي الله ﷻ چا ته څومره مرتبه ورکړې ده، موږ ته د هغه قدر کول پکار دي فقیر په یوه بوډی خوشحاله کېدی، او دی په دې نه خوشحاله کېدی، په دې وجه د ده سره هغه رویه اختیارول پکار دي په کومه چي دی خوشحالیږي، په حدیث کي دي چي کله د یو قوم معزز سړی تا سو ته راسي نو تعظیم یې کوئ، ځیني داسي خلک هم وو چي نبي کریم ﷺ به ورته خپل څادر (پټو) غوړولو یوه سپینسرې کومي چي دوی ﷺ ته یې تی ورکړی وو، دوی ته راغله نو دوی ورته څادر وغوړی، او وېې فرمایل اې زما مورې! ستا تشریف راوړل باعث د برکت وي، څه چي ته غواړې وغواړه زه به یې ستا په مخکي پیش کړم، دمال غنیمت څخه چي کومه حصه دوی ته ملاؤ سوې وه هغه یې ورته ورکړه دغه نېک بختې بي بي دغه مال په لس لکه درهمه پر حضرت عثمان رضي الله عنه باندي خرڅ کړی.

(۱۱) یولسم حق دا دی چي کله دوه مسلمانان د یو بل څخه ناراضه وي نو د دوی په مینځ کي د صلح کوشش کول پکار دي نبي کریم ﷺ فرمایل دي چي زه تاسو ته هغه شئ ونه ښایم چي هغه د لمانځه، روژې، او صدقې څخه غوره وي خلکو وویل چي ولي نه! یا رسول الله ﷺ! نو دوی وفرمایل چي په مسلمانانو کي صلح کول، حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چي نبي کریم ﷺ یوه ورځ په نلستي نلستي مُسکی (په خندا) سو حضرت عمر رضي الله عنه عرض وکړی چي زما مور او پلار دي پر تاسو قربان وي د مُسکی کېدو وجه څه ده؟ وېې فرمایل چي ما د قیامت ورځ ولیدل دوه کسان د الله ﷻ په مخکي پر ځنګونانو کښېنستل، یو یکښې وویل چي یا الله! زما انصاف د ده څخه واخله ده پر ما ظلم کړی دی، الله ﷻ حکم وکړی چي د ده حق ادا کړه هغه وویل اې پروردګاره! زما سره هیڅ نه دي پاته سوي زما نېکي خو ټولي ده ځني وړي دي، الله ﷻ دا غوښتونکي ته وویل چي اوس څه وایې د ده سره خو هیڅ

نسته، هغه وویل یا الله! زما ګناه پر ده ور واچه څنګه چي یې ګناه پر واچوله بیا هم معامله برابره نه سوه د دې وینا سره د نبي ﷺ د سترګو څخه اوښکي ولاړې او ویې فرمایل: څومره عظیمه ورځ ده چي هر سړی د خپل ګناه د بوج څخه ستړی دي او چیري یې یو ځای د ځورځولو خواهش کوي، بیا یې وفرمایل چي اوس الله ﷻ دا د غوښتونکي ته وایي په فلاني شئ کي وګوره! چي څه دي؟ هغه چي وګوري نو وایي چي دا خو غټ ښکلی ښار دي په کوم چي کي د سرو او سپینو زرو محلونه جوړ سوي دي او په ملغلرو او جواهراتو ښایسته دي چي یا الله ﷻ دا د کومو پیغمبرانو یا شهیدانو یا صدیقانو د پاره جوړ سوی دي الله ﷻ ورته وایي چي دا د هغه سړي دي کوم چي د دې قیمت ادا کړي هغه عرض وکړے چي اې پروردګاره د دې قیمت به څوک ادا کړای سي؟ الله ﷻ فرمایي ته یې هم ادا کولای سې، هغه وایي یا الله زما څه مجال دی زه دومره قیمت د کوم ځای څخه ادا کولای سم؟ الله ﷻ فرمایي واوره ته خپل دا ورور معاف کړه اوس هغه سړی د خوشحالي څخه وایي یا الله ما معاف کړی دي، اوس یې د الله په وینا د هغه بل لاس نیولی دي دواړه جنت ته ځي، د دې څخه وروسته یې وفرمایل چي د الله ﷻ څخه ویریږئ، او د خلګو سره پر صلح ووسئ ځکه چي الله ﷻ به د قیامت په ورځ د مؤمنانو په مینځ کي صلح کوي.

(۱۲) دولسم شئ دا دی چي د مسلمانانو پر عیبونو او بدو باندي پرده اچوي کوم چي دوی په پټه باندي کوي، په حدیث کي دي چي کوم سړی په دې دنیا کي د مسلمانانو پرده پټوي نو د قیامت په ورځ به الله ﷻ د ده پر ګناهونو باندي پرده واچوي، حضرت ابو بکر صدیق رضي الله عنه فرمایي چي زه څوک ونیسم هغه که غل وي که شرابي زما دا خواهش وي چي الله ﷻ د ده ګناهونه پټ کړي، نبي ﷺ فرمایي اې خلګو! چي په ژبه د ایمان راوړلو سره سره د کومو زړه تر اوسه پوري ایمان نه دي راوړای واورئ چي د چا غیبت مه کوئ، د خلګو د بدو په لټون پسي مه ورپسې کېږئ څوک چي د چا د بدنامولو د پاره د هغه عیبونه ښکاره کوي الله ﷻ به د ده عیبونه ښکاره کړي چي دی رُسوا سي، که څه هم په کور کي دننه ولي نه وي،

ابن مسعود فرمایي: چي ما ته یاد دي چي اول اول کله یو غل د لاس پرې کولو د پاره د نبي ﷺ په مخکي پیش کړای سو نو د دوی ﷺ رنګ بدل سو اصحابو عرض وکړی یا رسول الله! آیا تاسو ته د ده څخه کرکه محسوسیږي؟ دوی ﷺ وفرمایل چي ولي به نه وي، زه ولي د ده سره د شیطان مددګاره سم د خپلو مسلمانانو ورونو سره دښمني وکړم؟ نو که د الله ﷻ څخه د خپلو ګناهونو معافي غواړئ، ویې غواړئ! چي هغه ستاسو ګناهونه پټ کړي او تاسو وبخښي، نو تاسو هم د خلګو ګناهونه پټ کړی

ځکه چي کله دوی بادشاهانو ته پېش کړای سي نو د دوی د پاره د شرعي حد قائمولو ځنځه ما سوا بله چاره نه وي،

حضرت عمر ﷺ یوه شپه ګښت کوی چي د یو کور ځنځه د سروز (سرود) آواز راغلی دوی چت ته ور وختل غولي (صحن) ته و رشوه سول، نو وېږ لیدل چي یو سړی د یوې ښځي سره په شرابو چېنلو کي مشغول دی، وېږ فرمایل: اې د خدای دښمنه! تا دا ګڼله چي الله ﷻ به ستا داسي ګناه هم پټه کړي؟ هغه وویل اې امیر المؤمنین! تلوار مه کوئ دا صحیح ده چي ما خو یو سنده ویله، لیکن دري ګناهونه خو تاسو هم وکړل، ځکه چي الله ﷻ فرمایي: ولا تجسسوا (لټون مه کوئ) او تا لټون خو وکړی، او الله ﷻ فرمایي: وَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَابِهَا (کورونو ته په دروازو داخلیږئ) او ته د چت پر طرف راغلې، او د الله ﷻ فرمان دي: لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهَا (د خپلو کورونو ځنځه ما سوا نورو کورونو ته مه داخلیږئ تر څو چي اجازت وانه اخلئ او اوسیدونکو د کور ته سلام ونه کړئ)

لیکن تا صرف دا نه چي سلام دي ونه کړی بلکي بغیر اجازت ځنځه راغلې، وېږ فرمایل: چي ښه نو که زه اوس تا معاف کړم نو ته به توبه وکاږې؟ هغه وویل خامخا به توبه وکاږم، بلکي چیري به هم دې کار ته بیا نژدې نه سم، ځنګه چي دوی معاف کړی او هغه تائب سو، او د نبي ﷺ ارشاد دی چي کوم سړی د نورو پټو خبرو ته غوږ ږدي اوري یې د قیامت په ورځ به د ده په غوږنو کي ویلي سوي سرپ (یو ډول فلز دی) ور واچول سي.

(۱۳) دیارلسم شئ دا دی چي تهمت او الزام دي نه لګوي چي د بدګماني ځنځه خوندي سي او د چغلي ځنځه به ځان ساتي ځکه چي د یو ګناه سبب جوړیدل پخپله په دغه ګناه کي شریکیدل دي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي خپل مور او پلار ته ښکنځل مه کوئ، خلکو عرض وکړی داسي به هم څوک کوي، ؟ وېږ فرمایل څوک چي د چا مور وپلار ته ښکنځل کوي هغه به د ده مور او پلار ته کوي نو دا ګواکي د خپل مور او پلار ښکنځل دي.

حضرت عمر ﷺ فرمایي: چي کوم سړی د تهمت پر ځای کښېني نو په دې وجه چي څوک پر ده بدګماني کوي د ده حق نسته چي هغه ملامت کړي، د رمضان په آخري ورځو کي نبي کریم ﷺ په مسجد کي د حضرت صفیه ﷺ سره خبري کوي لې، دوه تنه پر هغه طرف تېر سو نبي ﷺ آواز ورکړو چي دا زما سره صفیه ﷺ ده، هغو وویل یا رسول الله داسي بدبخت به څوک چي پر تاسو به د

بدگماني ئې تصور هم وكړي؟ ويې فرمايل: شيطان د بنده په رګونو کي داسي روان وي لکه وينه چي پکښي روانه وي، حضرت عمر ﷺ يو سړي وليدی چي پر لاري يې د يوې ښځې سره خبري کولې روان وو، نو يوه دُرّه يې ووهلو هغه وويل يا امير المؤمنين دا خو زما ښځه ده ويې فرمايل ښځه ده نو داسي ځاى د خبرو د پاره نه ملاوېږي چي کوم ځاى څوک نه درته ګوري؟.

(۱۴) که دوست مرتبه او عزت حاصل وي نو تر څومره پوري چي کېداى سي د سپارښت څخه دي ډډه نه کوي نبي ﷺ اصحابو ﷺ ته وفرمايل چي ما ته خپل حاجتونه بيانوی او زما زړه هيمشه ستاسو د حاجت پوره کولو د پاره تيار وي، لېکن ځيني وخت چي په دې کي کوم تأخير (ځند)کووم، نو ځکه چي ستاسو د شفاعت(سپارښت) منتظر يم يعني چي په تاسو کي څوک شفاعت وکړي او په دې حاجت پوره کولو کي اجر ده ته هم ملاوړ سي، نو شفاعت کوئ چي ثواب حاصل کړئ، او ويې فرمايل: چي د ژبي د صدقې څخه غوره صدقه بله نسي کېداى، صحابه وو ﷺ عرض وکړی چي هغه څنګه؟ ويې فرمايل هغه کوشش په کوم سره چي د چا ځان خوندي سي، يا چا ته څه فائده په ورسيږي، يا چا ته د تکليف څخه تحفظ په حاصل سي (نو د شفاعت دغه الفاظ د ژبي صدقه وي)

(۱۵) پنځلسم حق داسي کيږي چي څنګه دا خبره واوري چي فلاني سړی د يو مسلمان سره ژبان درازي (ژبورتيا) کوي يا د هغه د جان او مال په باره کي بده اراده لري او هغه غير حاضر دی نو فوراً دي د هغه نائب جوړ سي جواب دي ورکړي او د دغي ظالم د ظلم څخه دي دی بچ کړي، د نبي ﷺ ارشاد دی چي که د يو مسلمان خلاف بدي ردي خبري کېدې يا يې بې عزتي کېده او يو مسلمان ورور د ده مدد ته ورسي او مدد يې وكړي، نو د دې امداد کوونکي به الله ﷻ په داسي وخت کي امداد وکړی کله چي ده ته د مدد حاجت وي او کوم مسلمان چي د خپل ورور مدد په داسي وخت کي هم ونه کړي کله چي دی رُسوا کيږي، نو الله ﷻ به په داسي وخت کي دی برباده کېدلو او ذليله کېدلو ته پرېږدي کله چي دی د مدد په انتهايي توګه محتاجه وي.

(۱۶) شپاړسم حق دا دی چي که يو مسلمان په بد صحبت کي ګير سوی وي نو د ده سره دي تر هغه وخته مدارات جاري ساتي چي هغه پښېمانه سي او پخپله يې پرېږدي او سختي دي ور سره په تنهايي کي نه کوي، د ابن عباس ﷺ په نزد د الله ﷻ د دې ارشاد: وَيَدْرَءُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ مطلب دا دی چي د فحش مقابله په سلام او مدارت سره کوي، حضرت عائشه ﷺ فرمايي: چي يو

سړی د نبي کریم ﷺ په خدمت کي د حاضرېدو اجازت وغوښتی، دوی ﷺ وفرمایل چي اجازت ورته ورکړئ څکه چي دی د خپل قوم د بدو خلکو څخه دی چي کله هغه دننه راغلی نو نبي ﷺ يې ډېر قدر وکړی چي هغه ولاړی، نو ماوویل: یا رسول الله ﷺ تاسو فرمایلي وو چي دا بنه سړی نه دی لیکن تاسو يې ډېر مدارات وکړو، ویې فرمایل اې عائشې رضي الله عنها! د قیامت په ورځ به د حق تعالی په نزد ډېر بد سړی هغه وي د کوم د شر او فساد د ډېري څخه چي په دې دنیا کي خلکو د ده مراعات کړی وي، په حدیث شریف کي دي چي هر هغه شئ په صدقه کي داخل دی د کوم په وجه چي ته خپل ځان د بدزبانو (ژبورو) څخه محفوظ کړی سې، ابو الدرداء فرمايي چي ډېر خلک داسي هم دي چي په ظاهره د دوی په مخ کي موږ خاندو لیکن په زړه کي پر هغو لعنت وایو.

(۱۷) اوولسم حق دا دی: چي ناسته پاسته او تلل راتلل د فقیرانو سره پکار دي د دولتمنو د مجلس ـ څخه لیري وسېدل مناسب دي، نبي ﷺ فرمایلي دي چي د مړو سره محبت مه کوئ! اصحابو عرض وکړی چي دغه کوم خلک دي؟ ویې فرمایل: دولتمند خلک، او حضرت سلیمان ﷺ چي به چیري مسکین ولیدی نو د ده سره به کښېنستی، او فرمایل به يې: مسکین د مسکین سره ناست دی، او حضرت عیسی ﷺ ته به د مسکین ویلو څخه زیات څه شئ خوښ نه وو، نبي ﷺ فرمایلي دي چي اې ربه! ما ته په ژوند کي مسکیني را کړې د مسکیني مرګ را کړې او زما حشر هم د مکسینانو سره کړې، حضرت موسی ﷺ وویل چي اې خدایه! تا کوم ځای تلاش کړم؟ ارشاد وسو چي: د ماتو زړو سره.

(۱۸) اتلسم حق دا دی چي د مسلمانانو د زړه خوشحاله کولو هر ممکن کوشش کوئ! او د دوی د حاجتونو پوره کولو د پاره ځان تیاروی، نبي ﷺ فرمایلي دي چي د یو مسلمان حاجت پوره کول ټول عمر د الله ﷻ په عبادت کي د تېرولو برابر دی، او فرمایلي يې دي چي د یو مسلمان سترګي روښانه کوونکي ته به الله ﷻ د قیامت په ورځ د ده سترګي روښانه کړي، او فرمایلي يې دي د شپې ورځي په څلورېشتو ګینټو (ساعتونو) کي د یوې ګینټې د پاره د یو مسلمان حاجت روایي ته (د حاجت پوره کولو د پاره) تلل په مسجد کي د دوو میاشتو د اعتکاف څخه زیات غوره دي که څه هم د هغه حاجت پوره سي او که نه، او فرمایلي يې دي: چي د غمجن خوشحاله کوونکي یا د مظلوم خلاصوونکي ته به د الله ﷻ د طرف څخه درواویا ۷۳ مغفرتونه ورکول کیږي، او فرمايي د مسلمان ورور مدد وکړئ هغه که ظالم وي او که مظلوم صحابه وو عرض وکړی چي د ظالم مدد څنګه کول کیږي؟ ویې فرمایل چي دی د ظلم څخه منع کول د ده مدد کول دي،او فرمایلي يې دي چي دوه

خصلتونه داسې دي چې هیڅ ګناه د هغوی څخه زیاته نسته بلکې د دوی برابره هم نسته یعنې: شرک او د خلکو زړونه ازارول، او دوه خصلتونه داسې دي چې هیڅ نېکي دوی ته نسي رسېدلای یعنې د الله ﷻ پر دین ایمان او د خلکو دلجوئي (زړه پالنه) او فرمایلي یې دي د چا زړه چې د مسلمانانو د غم څخه خالي وي دغه زموږ څخه نه دی. د فضیل رحمه الله څخه د ده د ژړا په باره کې پوښتنه وسوه نو ویې ویل د هغه بې چاره مسلمانانو د پاره ژاړم کومو چې پر ما باندې ظلم کړی دی، خلکو وویل ولې؟ نو ویې فرمایل ځکه چې د قیامت په ورځ به د دوی څخه پوښتنه کیږي او دوی به یو عذر یا دلیل پېش نه کړای سي او خامخا به دوی رُسوا سي،

حضرت معروف کرخي رحمه الله فرمایي چې د هغه سړي نوم په ابدالو کې لیکل کیږي کوم چې روزانه درې واره دا دعاء کوي: یا الله د مُحَمّد ﷺ امت نېکان کړې، یا الله د مُحَمّد ﷺ پر اُمّت رحم وکړې، او د محمد ﷺ اُمت خوشحاله کړې.

(١٩) نولسم حق دا دی چې د چا سره ملاویږې و - خبرو شروع دې د سلام څخه کوه او لاسونه ور سره ملاووه، نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې کوم سړی چې د سلام کولو څخه بغیر خبرې شروع کړي د ده د خبرې جواب مه ورکوه تر څو چې سلام ونه کړي، یو سړی د نبي ﷺ په خدمت کې حاضر سو او سلام یې ونه کړی دوی ﷺ وفرمایل چې د باندې ووځه بیا راسه او سلام وکړه، حضرت انس رضی الله عنه وایي چې زما اته کاله د نبي ﷺ په خدمت کې په تلو را تلو وسوه، یوه ورځ یې وفرمایل: ای انس رضی الله عنه! (١) اودس په ښه ډول کوه چې عمر دې اوږد سي، (٢) د چا خواته چې ورسې هغه ته سلام کوه چې ستا نېکي زیاتي سی، (٣) کور ته چې ور سې نو کور والاو ته سلام وکړه چې په کور کې دې برکت وي،

یو سړی د نبي ﷺ په خدمت کې حاضر سو او: السلامُ علیکم یې ووایی دوی ﷺ وفرمایل چې د ده په عملونو کې لس نېکی ولیکل سوې، بل سړی راغلی :السلام علیکم ورحمة الله یې ووایی. ویې فرمایل ده ته شل نېکی ولیکل سوې، بیا یو بل راغلی او : السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته یې ووایی ویې فرمایل ده ته به دېرش نېکی ملاؤ سي، او ویې فرمایل چې کور ته ولاړ سې نو سلام کوه او چې د کوره وځې نو سلام کوه لو یاد ساته چې اول سلام ته پر دویم ترجیح حاصله نه ده. او فرمایلي یې دي چې کله دوه مسلمانان لاس ملاووي نو لو یا ٧٠ نېکی پر دواړو داسې تقسیمیږي چې ٦٩ نېکی هغه ته ملاویږي کوم چې زیات په ورین تندي سره او په زیاته خوشحالي سره مصافحه کوي، او فرمایلي یې دي چې کله دوه مسلمانان د یو بل سره د ملاقات په وخت کې سلام کوي، نو سل رحمتونه پر

دوی نازلیږي او د مصافحې کولو په وخت د دوی لاسونه مچول سنت دي، حضرت ابو عبیده ﷺ د حضرت عمر ﷺ لاسونه مچ کړی وو، او د انس ﷺ څخه روایت دی دی وایي چي ما د نبي ﷺ څخه پوښتنه وکړه:

(١) چي کله موږ د یو بل سره ملاوېږو نو ملا به کښته کوو؟ ویې فرمایل چي نه! (نه به یې کښته کوی) (٢) آیا د بل لاس مچولی سو؟ ویې فرمایل چي نه! (یعني د هر چا ماسوا د بزرګانو د دین څخه) (٣) آیا مصافحه کوو؟ ویې فرمایل چي هو! (لاس خلمخا ملاووی) او کله چي د سفر څخه واپس راسي نو مخ مچول او غاړه غاړی (روغبړ) کول سنت دي، لېکن د نبي کریم ﷺ دا خبره قطعي خو بنه نه وه چي څوک د چا په مخ کي سیله ودرېږي، څنګه چي انس ﷺ وایي چي د نبي ﷺ څخه زیات څوک معزز کېدای سي لېکن د دې سره سره موږ د دوی په حضور کي هم سیله نه یو درېدلي، ځکه چي موږ ته بنه معلومه وه چي د دوی دا خو بنه نه ده که څوک پوره ته کیږي او د تعظیم هادي سوي وي نو د چا په راتلو احترامًا پورته کېدای سي بیا هم د چا په مخ کي درېدل ګناه ده، او فرمایي چي کوم سړی د دې خبري آرزو لري چي خلګ دي د ده په مخ کي ولاړ وي او دی دي ناست وي ده ته ووایه چي ستا ځای جهنم دی.

(٢٠) شلم حق دا دی چي که پرنجي (پرچی، انتوسی) ورسي نو الحَمْدُ لله دي ووایي، او چي د ده دا الفاظ بل واوري یرحمُکَ الله دي ووایي او د ده په جواب کي دې پرنجي والا: یغفِرُ الله لِي ولکم ووایي، لېکن کوم سړی چي الحَمْدُ لله ونه وایي نو دا حق یې نسته چي د بل څخه یرحمک الله واوري، نبي ﷺ چي ته به کله پرنجي راتلو، نو آواز به یې ډېر کښته کړی او مخ ته به یې لاس نیولو. که د قضاء حاجت په وخت پرنجي ورسي نو دڅېي پر ځای دي په زړه کي الحَمْدُ لله ووایي، او د ابراهیم نخعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد خو په ژبه ویلو کي هم څه باک نسته.

حضرت موسی ﷺ عرض وکړی یا پروردګاره! ته کوم ځای یې که ته نژدې یې نو چي کرار دي بولم او که لیري یې نو چي په زوره دي بولم؟ ویې فرمایل څوک چي ما بولي زه د هغه څخه چیري لیري نه یم دی به همیشه ما نژدې مومي، عرض یې وکړی پروردګاره! پر ماخو مختلف حالاتونه راځي مثلاً که زه په جنابت کي یم کله حاجت ته ناست یم نو آیا په داسي وختونو کي به ستا یادول بې ادبي او بې باکي نه وي؟ ویې فرمایل په کوم حالت کي چي یې ما یادوه په دې کي د ذکر هیڅ خبره نسته.

(٢١) یوویشتم حق دا دی چي د ناروغه پوښتني ته به ضرور ځې که څه هم هسې آشنا وي دوست نه

وي نبي کريم ﷺ فرمايي څوک چي د ناروغه پوښتني ته ځي دی به جنت ته بیول سي او کله چي دی پوښتنه وکړي کورته واپس راځي نو اویازره فرښتې د ده مؤکلي جوړي کړل سي چي د ده د پاره تر ماښامه پاري د مغفرت دعاء کوي، او د ناروغه د پوښتني سنت طريقه دا ده چي د ناروغه په لاس کي لاس کښیږدی یا پر تندی یې لاس را تېر کړي او پوښتنه ځيني وکړي چي طبيعت دي څنګه دی ؟

او دا دعاء دي وکړي: أُعِيذُکَ بِاللّٰهِ الأَحَدِ اللّٰهِ الصَّمَدِ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ مِنْ شَرِّ مَا أَجِدُ، اوکله چي دناروغه شخصه د حال پوښتنه کوي نو د شکايت او ګیلو الفاظ دي نه وايي، په حدیث کي دي چي کله یو سړی مریض سي نو الله ﷻ د دوو فرښتو پر ده د دې د پاره مقرري کړي چي ګوري دی د پوښتني کوونکي په مخکي شکر ادا کوي او که ګیلې شکايتونه کوي او کوم مريض چي شکر کوي او الحمد لله وايي نو الله تعالی فرمايي چي اوس پرماواجب دي چي که دده د دنيا څخه تلل وي نو چي د خپل رحمت په سايه (سيوری)کي يې جنت ته داخل کړم او که شفاورکووم نو چي ور سره يې ګناهونه هم معاف کړم، او د مخکي څخه يې ښه مضبوط کړم، او حضرت علي رضي الله عنه فرمايي چي که د چا پر نس درد وي نو د خپلې بي بي د حق مهر څخه دي یو څه روپۍ (پيسې) واخلي او ګبين (عسل) دي په راوغواړي او دباران په اوبو کي دې ملاو کړي او ودې چيښي، نو ښه به سي ځکه چي الله ﷻ باران ته رحمت او عسلو ته شفاويلي ده او د ښځي مهر ته يې هَنِيْئًا مَّرِيْئًا خوندور اوژر هضمېدونکي ويلی دي او کوم ځای چي دا درې شيان يو ځای سي شفا به خامخا حاصله وي، مريض ته په مرض کي د دې ادبونو خيال ساتل پکار دي، ګيله او شکايت دي نه کوي، دآه او فرياد څخه دي ځان ساتي، بلکي د دې خبري اُميد دي کوي چي مرض به د ده د ګناهونو کفاره وي، او د دوايي خوړولو پر وخت دي اعتماد او بروسه او توکل پر الله ﷻ ساتي نه دا چي پر دوايي باندي.

او د عيادت (د مريض د پوښتني) ادبونه دا دي:

(١) ډېر زيات دي د مريض سره نه کيښېني (٢) په وار وار دي د حال پوښتنه نه ځيني کوي (٣) د ده د صحت د پاره دي دعاء کوي (۴) د مريض په مخکي دي په ضمجن انداز سره ووسي (۵) په کور کي دننه دي ها خو دې خوا دروازو دېوالونو ته نه ګوري (۶) د مريض کور ته چي ور سي په دروازه کي دي اجازت وغواړي او دروازې ته دي مخامخ نه درېږي بلکي يو طرف ته دي ودرېږي، (۷) په دروازه کي دي په کراره آواز وکړي چغي دي نه وهي او کله چي د دننه څخه پوښتنه وسي چي څوک

یې نو داسې دې نه وایي چې زه یم، او داې مزدوره(نوکره)! پر ځای دې الحَمْدُ لله، سبحان الله وایي.
(۲۲) دوویشتم حق دا دی چې په جنازه پسې دې خلمخا ځي، نبي ﷺ فرمایي چې په جنازه پسې تلونکي ته یو قیراط ثواب ملاوېږي او چې تر دفن کولو پورې ولاړ او په انتظار کې وي، نو دوه قیرطه او یو قیراط به د اُحد د غره برابر وي، او په جنازه کې د شمولیت آداب دا دي چې: خاموش دې وي، خندا پسخند (ملنډې) دې نه کوي، بلکې عبرت دې حاصل کړي او خپل مرګ دې را یاد کړي، حضرت اعمش رحمه الله وایي چې موږ به د جنازې سره تللو نو دا پېژندل به را ته ستونزمه وو چې د تعزیت اظهار چاته وکړو ځکه چې هر یو به دبل شخه زیا ت غمجن او مرې والا ښکاره کېدو،
یو بزرګ شو کسان پر مرې غمجن او پرېشانه ولیدل ورې ویل چې اوس د ځان غم کوئ ځکه چې دا مړې خو د درې غمونو شخه خلاصون تر لاسه کړی: یعني د مرګ د فرشتې مخ یې ولیدو، د مرګ تریخوالی یې وچښلو او د ژوند د ختمېدو د بیرې شخه خلاص سو، نبي ﷺ فرمایلي دي چې د مړي شخه وروسته درې شیان وي: مال، اهل او عمل، په دې کې اهل او مال د قبر شخه واپس راځي، او عمل د ده سره پاته کېږي.
(۲۳) درویشتم حق دا دی چې د قبرونو زیارت ته دې ځي او دعاء دې کوي او په لیدو دې یې عبرت حاصلوي، او داسې دې کښې چې دوی مخکې تللی دي او موږ وروسته یو او دې ځای ته به را رسېږو کوم ځای ته چې دوی را رسېدلي دي، سفیان ثوري رحمه الله وایي چې شوک قبر اکثره یادوي د مرګ شخه وروسته به دی خپل قبر د جنت په باغونو کې ویني، او دچا چې قبر په خیال کې نه راځي نو دی به خپل قبر د دوږخ په خوفناکو غارونو کې ویني.

## د همسایه (ګاونډي) حقونه

نبي کریم ﷺ فرمایي چې یو همسایه هغه دی چې د ده یو حق دی او دا کافر همسایه دی، اوبل هغه دی چې د ده دوه حقونه دي او دا مسلمان همسایه دی، او بل هغه دی چې د ده درې حقونه دي او دا خپلوان (قریب) همسایه دی، او فرمایي چې جبریل ﷺ ما ته د همسایه د حقوو په باره کې دومره اوږد وصیت وکړی چې زما به دا ګمان راتلی چې شاید په میراث کې به یې را سره هم حق شامل سي، او فرمایي چې هغو خلکو ته وواياست کوم چې پرخدای او آخرت ایمان لري؛ چې د همسایه ګانو احترام کوئ، او فرمایي چې که چا د همسایه سپی په ډبره ووېشتی نو ده همسایه ازار کړی، اصحابو عرض وکړی چې یا رسول الله! د فلانی ښځه همیشه د ورځې روژه وي او توله شپه عبادت کوي

لیکن همسایه ته تکلیف رسوي نو ورپسې فرمایل چي ځای یې دوږخ دی،

او فرمايي چي تر څلوېښتو کورونو پوري شاوخوا ټول ګاونډيان(همسايه ګان) دي، لزهري رَحِمَهُ اللهُ وایي چي هر طرف ته څلوېښت څلوېښت کورونه ځیني مراد دي، او فرمايي چي د همسايه حق صرف تر دې پوري نه دی چي ده ته به تکليف نه رسوي بلکې د ده سره دې نیکي کوي، په حديث شريف کي دي چي د قيامت په ورځ به نقير همسايه امير همسايه تر ګريوان ونيسي او خدای ته به فرياد کوي چي اې پروردګاره! د ده څخه زما بدله واخله چي ده زما سره نېکي و لي نه کوله او د ده د کور درروازه به ما ته همېشه ولي بنده وه؟ يو بزرګ به د مږګانو څخه ډېر پرېشانه وو چاورته وويل چي ته پيشي ولې نه ساتې؟ بزرګ جواب ورکړی چي پيشي ځکه نه ساتم چي که د دې څخه ويېرېږي او د همسايه ګانو کره ولاړ سي نو مطلب به يې دا سي چي کوم شئ زه د ځان د پاره نه خوښوم د همسايه ګانو د پاره يې خوښوم نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي د همسايه ګانو حقونه دا دي چي:

(۱) که د مدد ور ته ضرورت وي نو مدد يې وکړه (۲) که قرض غواړي نو ور يې کړه (۳) که غريب وي نو حاجت يې پوره کړه (۴) که مريض وي نو پوښتنه يې وکړه که مړ سو نو د جنازې سره يې زه (۵) که يو خوشحالي ور ته نصيب سي نو په خوشحالي کي يې شريک سه مبارکي ورکړه، او که يو مصيبت پر راسي نو په غم کي يې شريک سه (۶) د خپل کور ديوال دومره مه جګوه چي هغه ته هوا بنده سي (۷) که يوه مېوه او تر کاری(سابه) ځان ته راوړې نو هغه ته يې ولېږه او که دا سي نسې کولای نو بيا يې ځيني پټ ساته (۸) خپلو بچيانو ته د دې خبري اجازت مه ورکوه چي د همسايه دروازې ته ولاړ سي او د هغه بچي تنګوي (پر دې د مشرانو په مينځ کي خفګان پيدا کيږي) (۹) چي ستا د اشپزخاني دود د همسايه ګانو د تنګولو باعث جوړ نسي، او که دوی ته هم د خوراک يو شئ لېږی نو بيا بېله خبره ده.

او فرمايي پوهېږئ چي د همسايه ګانو پر تاسو څومره حق دی؟ قسم دي په هغه الله چي په قبضه کي يې زما روح دي چي د همسايه حق هغه سړی ادا کولای سي پر کوم چي د الله جَلَّ جَلَالُهُ رحمت وي، لکن څنګه چي دا کارونه هم د همسايه په حقونو کي شامل دي:

(۱) د خپل کور د يو حصي څخه به د هغه کور ته نه ګوري (ب) که لرګي ستا پر ديوال ايږدي نو نه به يې منع کوې (ج) ناوه نه ور بندوې (د) که هغه خاوره او نور ستا د دروازې سره واچوي نو جنګ به نه ور سره کوې (ه) که د هغه يو راز در ته معلوم هم سي نو په راز کي به يې ساتې (و) د ده د زنانه وو خوني (کمرې) ته به نه ګورې او مينځو ته به يې هم په غور سره نه ګورې (ز) د ده سره به داسي خبري

نه کوي چي زړه يې په لزار سي، دا حقونه د هغو څخه ما سوا دي کوم چي د خاصو مسلمانانو د پاره مخکي ذکر سوي دي، او هغه په ذهن کي ساتل ضروري دي، د حضرت ابو ذر ﷺ څخه روایت دی چي زما دوست حضرت نبي کریم ﷺ ما ته وصیت وکړی چي که ستا په باروچي خانه (اشپزخانه) کي يو شئ پخيږي نو اوبه پکښي زياتي اچوه او همسايه ته ضرور څه ځيني ليږه.

**قصه**: يو سړي عبد الله بن مبارک ﷺ ته وويل چي زما همسايه زما د غلام څخه شکايت کوي او س که بلاوجه غلام وهم نو گناه گار بېږم او که چپ پاته کېږم نو د همسايه د تکليف سبب جوړېږم نو څه وکړم؟ دوی وفرمايل لږ انتظار وکړه چي د غلام څخه څه داسي کار وسي چي د سزا قابل وي او بيا په دغه سزا کي لږ صبر وکړه چي همسايه بيا د هغه څخه شکايت وکړي بيا ور ته سزا ورکړه نو د دواړو حقونو اداء کولو فرض به پوره سي.

## د قريبانو حقونه

د نبي ﷺ ارشاد دی چي: الله جل جلاله فرمايلي دي چي زه رحمان يم او خپلولي (قرابت) رحم دي گواکي دا نوم ما د خپل نوم څخه را ايستلی دی نو چي کوم سړی د خپلوانو سره خپلولي ساتي زه د هغه سره پيوست ووسم او څوک چي د خپلوانو څخه رشته پرېکوي زه هم د هغه څخه تعلق پرېکوم، او فرمايي کوم سړی چي د اوږد عمر او ډېر رزق او مال آرزومند وي هغه ته ووايه چي د خپلوانو سره نېک سلوک (چلند، رويه) کوي، او فرمايي چي د صله رحمي څخه زيات فضيلت او ثواب د يو عبادت څخه نسي حاصلېدای، ځکه چي داسي خلک هم وي چي همېشه په فسق فجور کي مشغول وي لېکن د صله رحمي څخه کار اخلي په دې وجه د دې په برکت سره يې چيري په مال او اولاد کي بې برکتي نه وي، او فرمايي چي د دې څخه لوي صدقه بله نسي کېدای چي ته د خپلو هغو خپلوانو سره ښه سلوک کوې کوم چي ستا سره دښمني کوي، او پوه سه! چي د صله رحمي ساتلو مطلب دا دی چي که ستا رشته دار ستا څخه تعلقات پرې کوي هم، خو ته يې د هغو سره نه پرېکوې، او د نبي کريم ﷺ ارشاد دی چي په ټولو فضيلتونو کي د ټولو څخه ښه فضيلت دا دی چي که يو سړی ستا څخه تعلقات پرې کوي خو ته يې ور سره نه قطع کوي، او څوک چي تا ستا د حقونو څخه محرومه کوي ته ور ته انعامونه او اکرامونه ورکوې او څوک چي در باندي ظلم کوي ته ور ته معافي کوې.

## د مور او پلار حقونه

پوه سه! چې د دوی حقونه نور هم زيات دي ځکه چې د دوی سره خپلولي د ټولو څخه زياته وي، او نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چې د مور او پلار حقونه د هيڅ شخص نسي ادا کېدلای، تر دې چې که په دوی کي يو د يو چا د غلامی څخه هم آزاد کړي بيا هم د دوی حق ادا نه سي. او فرمايي چي کوم فضيلت د مور او پلار په خدمت او د دوی سره په نېکي کولو حاصليږي دغه په لمونځ روژه عمره حج جهاد سره هم نه حاصليږي، او فرمايي چي د جنت خوشبويي به د پنځه سوه کالو په مسافت سره محسوسيږي، لېکن د مور او پلار نافرمانان او د صلّه رحمی پرېکونکي به يې بوی نه کړي، حضرت موسی ﷺ ته الله ﷻ وحی وکړې چې کوم سړی د مور او پلار نافرمانه وي هغه که زما احکام پر ځای کوی هم خو په نافرمانو کي يې شمارم، او کوم چي د مور او پلار فرمانبرداره وي دغه که زما په احکامو کي کمي هم وکړي خو زما په نزد تابعداره دی، نبي کريم ﷺ فرمايي چي د هغه سړي څه خرابيږي چي صدقه د مور او پلار په نوم ورکوي چي دوی ته ثواب حاصل سي او د ده په خپل ثواب کي خو بنکاره ده چي په دې سره څه کمي نه راځي، يو سړي عرض وکړی يا رسول الله! زما مور او پلار وفات سوي دي آيا اوس هم د دوی پر ما باندي يو حق باقي دی؟ ځکه چي که يو حق يې پاته سوی وي نو چي ادا يې کړم، ويې فرمايل: د دوی د پاره لمونځ کوه د بخښني دعاء غواړه د دوی په عهد او وصيّت باندي عمل وکړه د دوی د دوستانو احترام کوه او د دوی د رشته دارانو سره نېک سلوک (ښه چلند) کوه، دارنګه فرمايي چي د مور حق د پلار څخه دوچنده دی.

## د اولاد حقونه

يو سړي د نبي ﷺ په خدمت کي عرض وکړی يا رسول الله! نېکی د چا سره کوو؟ ويې فرمايل د خپل مور او پلار سره هغه ورېل چي هغه خو وفات سوي دي، ويې فرمايل بيا د اولاد سره ځکه چي څنګه د مور او پلار حقونه دي دغه بول د اولاد هم حقونه دي؛

او د اولاد په حقونو کي يو دا دی چي د ده د بدخويي په وجه سره دا ضروري نه ده چي دی عاق کړای سي، او ويې فرمايل چي خدای دي رحمت وکړي پر هغه پلار کوم چي خپل زوی د نافرمانی لاري ته نه پرېږدي، د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي:

(۱) کله چي بچی د يوې اوونی (هفتې) سي نو عقيقه يې وکړه او نوم پر کښېږده او پاک يې کړه، او (۲) چي د شپږو کالو سي نو د ادبونو تعليم ورته ورکړه. او (۳) چي د نهو کالو سي نو بستره ور جلا

کړه او (۴) چي د دیارلسو کالو سي نو پر لمونځ نه کولوېي وهه او (۵) چي د شپاړسو کالو سي واده ور وکړه نو لوس د ده لاس ونیسه ورتهووایه: چي زه زویه ما ته وپاللې ادب او تعلیم مي در کړی د کومو شیانو تعلیم چي لازمي وو هغه مي درازده کړه او لوس مي ستا نکاح وکړه نو د دنن شخه په دې دنیا کي ستا د فتنې شخه او په آخرت کي ستا د عذاب شخه په الله ﷻ سره پناه غواړم او د اولاد په حقونو کي د دې خبري خیال ساتل پکار دي چي دوی ته د شه ورکولو په وخت یا میني (محبت) کولو په وخت کي یا د بل شه سلوک کولو په وخت کي په برابري او مساوات کي شه فرق را نه ولي، یعني د هر یو سره دي یو ډول مینه کوي او کوم بچی چي کوچنی وي د هغه مچول سنت دي، نبي کریم ﷺ به حضرت حسن ؓ مچولو. یوه ورځ اقرع بن حابس ؓ عرض وکړی چي زما خو لس بچي دي لیکن ما په دوی کي یو هم نه دي مچ کړی ویې فرمایل چي شوک پر دوی رحم نه کوي پخپله به په ده هم رحم ونه کړای سي.

یو وار دوی ﷺ پر منبر باندي وو چي حضرت حسن ؓ پرمخې رالولېدی، دوی فوراً د منبر شخه راکښته سو دی یې په غېږ کي را پورته کړو او دا آیت یې وواییې: إِنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ [التغابن](ستاسو مال او اولاد ستاسو د پاره فتنه ده) یعني ازمایښت دي.

روایت: یو وار نبي ﷺ لمونځ کوی سجدې ته ولاړی نو حضرت حسین ؓ د دوی ﷺ پر اوږو کښېنستی، په سجده کی دوی ﷺ دومره حصار سو چي صحابه ؓ وو وګڼله چي وحي نازلیږي د لمانځه شخه چي فارغه سو نو اصحابو پوښتنه وکړه چي یا رسول الله! وحي راغلي دي که شه وجه وه؟ ویې فرمایل چي نه! حسین ؓ اوښ را شخه جوړ کړی وو او ما دا ښه نه ګڼله چي دی د ځان شخه جلا کړم. هسې خو د مور او پلار د حق د اولاد د حق شخه زیات تأکید راغلی دې ځکه چي د مور او پلار تعظیم کول پر اولاد فرض مقرر سوی دي، بلکي د والدینو تعظیم ته الله ﷻ خپل تعظیم ویلي دي، د الله ﷻ ارشاد دی: وَقَضَىٰ رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا [بني اسرائیل: ۲۳](ستا د رب حکم دی چي د هغه شخه ما سوا د بل چا عبادت به نه کوې او د خپل مور او پلار سره به احسان کوې)، او د دوی د حقونو د دې عظمت په وجه دوه کارونه واجبیږي:

یو کار پر کوم چي د علماؤ اتفاق دی چي د مور او پلار اطاعت تر دې حده پوري پکار دی چي که پلار د یو مشتبه شئ د خوړلو حکم وکړي نو هم به یې خوري ځکه چي د شُبه شخه د پرهیز په نسبت د مور او پلار خوشحاله کول زیات ضروري دي، دویم دا چي د والدینو د اجازت شخه ما سوا په سفر

تلل نه دي پکار ما سوا د داسي سفر څخه چي د شرعي امورو د علم حاصلولو د پاره سفر وي لیکن په دې کي دا شرط دی چي که هلته یو فقهي عالم نه وو، او د حج اسلام په سفر د والدینو د اجازت څخه ماسوا نسي تللی که څه هم دا شرعي فریضه ده خو وروسته کولای یې سي، یو سړی د نبي ﷺ څخه په جهاد کي د شرکت اجازت وغوښتی، نبي ﷺ وفرمایل چي ستا مور ژوندي ده ؟ هغه وویل چي هو!، ورېې فرمایل چي زه د هغې خدمت کوه! ستا جنت د هغې په قدمونو کي دی، د یَمَنْ څخه یو سړی د نبي ﷺ په خدمت کي حاضر سو چي ما ته د جهاد اجازت را کړه، نبي ﷺ وفرمایل چي ستا مور او پلار ژوندي دي؟ هغه وویل چي هو!، دوی ﷺ وفرمایل ولاړ سه! او د هغوی څخه اجازت واخله بیا راسه ما څخه اجازت واخله، که هغوی یې ونه مني نو د هغوی حکم منه ځکه چي د توحید څخه وروسته د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد د والدینو د اطاعت څخه زیات یو شئ د قربت ذریعه نسي جوړیدای، او د مشر ورور حق د پلار په ډول وي ځکه په حدیث کي دي چي دمشر ورو حق پر کشر ورو باندي د پلار په ډول دی.

## شپږم اصل: د گو ښه نشیني (خلوت) د آدابو بیان

په دې باب کي د علماؤ اختلاف دی چي گو ښه نشیني (په کونج کي کښناستل) غوره دي او که د خلکو سره گډ وسېدل، د سفیان ثوري رَحِمَهُ اللهُ ابراهیم ادهم رَحِمَهُ اللهُ داؤد طائي رَحِمَهُ اللهُ فضیل عیاض رَحِمَهُ اللهُ، ابراهیم خوّاص رَحِمَهُ اللهُ یوسف اسباط رَحِمَهُ اللهُ حذیفه مرعشي رَحِمَهُ اللهُ او بشر حافي رَحِمَهُ اللهُ او اکثر و بزرگانو رایه دا ده چي گو ښه نشیني (گو ښه کېدنه، خلوت) غوره دی، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چي په گوښه نشیني کي د خپلي حصې خیال ساته، او د ابن سیرین رَحِمَهُ اللهُ په نزد گوښه نشیني پر خپل ځای یو عبادت دي، او داؤد طائي رَحِمَهُ اللهُ ته یو سړی وویل ما ته نصیحت وکړه نو ورېې فرمایل د دنیا څخه روژه ونیسه او تر مرگه پوري یې مه ماتوه او د خلکو څخه داسي لیري وسه لکه د زمري څخه چي تښتې، او حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ وایي چي په تورات کي راغلي دي چا چي قناعت وکړی دغه بې نیازه سو او چا چي خلوت اختیار کړی ده ته سلامتي (حفاظت) ملاؤ سوه، او چا چي شهوت مغلوبه کړی، دغه آزاد سو او چا چي د حسد څخه لاس واخیستی د ده مروّت ښکاره سو، او چا چي صبر څو ورځې خپل کړی ده ته همیشه مراد حاصل سو، وهب بن الورد رَحِمَهُ اللهُ وایي حکمتونه لس دي چي نهه په خاموشي کي دي او لسم حکمت گو ښه نیشیني پنځپله ده، او ربیع بن خشیم رَحِمَهُ اللهُ او ابراهیم نخعي رَحِمَهُ اللهُ دواړه وایي چي علم حاصل

کړه او د خلکو څخه جلا يوازي وسه!، مالک بن انس رحمه الله د خپلو ورڼو سره د ملاقات کولو د مريضانو د پوښتنې او په جنازه کې د شرکت کولو په ترتيب سره د تللو عادي وو لیکن د يوې يوې خبرې څخه کناره کش کېښنستی، فضيل رحمه الله به ويل چې زه هغه څوک عظیم سړی گڼم کوم چې زما پر خوا تېر سي او سلام ونه کړي او چې مريض سم او پوښتنې ته را نسي، سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه او سعيد بن زيد رضي الله عنه په مشرانو صحابه وو کې دي، دوی د مدينې منوّرې په خوا کې په يو کور کې وسېدل کوم ته چې به يې عقيق ويل او د هيڅ کار د پاره به چيرې ښار ته نه راتلل، تر دې چې په گوشه نشيني کې وفات سول،يو امير سړی د حاتم اصم رحمه الله خوا ته ولاړی او ورته يې وويل چې تا ته يو ضرورت سته؟ هغه جواب ورکړی چې هو! سته، هغه وويل څه دی، ويې ويل فقط دا چې زه تا ته په نظر را نسم او ته ما ونه وينې، سهل تستري رحمه الله ته يو سړي خواهش ښکاره کړی چې زه ستا سره وسېدل غواړم هغه وويل چې کله په موږ دواړو کې يو تن مړ سي نو بيا به هغه د چا سره ووسي؟ هغه وويل د خدای سره، نو ويې فرمايل بيا دا اوس څخه ولې د خدای سره نه ووسو؟

او دا خبره د ذکر قابله ده چه په دې مسئله کې هم داسې اختلاف ليدل کيږي لکه د نکاح په باره کې چې دی چې نکاح کول غوره دي او که مجرد اوسېدل،؟ او حقيقت دا دی چې دا په حالاتو پورې تړل سوي دي چې د يو سړي حالات داسې وي چې گو ښه نشيني (خلوت) ور ته غوره وي، او د بل حالات داسې وي چې هغه ته د خلکو سره گډون غوره وي، او په دې خبره پوهېدل تر هغه پورې ممکن نه دي تر څو پورې چې د گو ښه نشينی پر فائدو او نقصانانو رڼاوانه چول سي.

## د گو ښه نشينی(خلوت) فايدې

په گوښه نشيني کې شپږ فائدې دي:

(۱) اوله خو دا ده چې د ذکر او فکر د پاره مکمل فراغت وسي کوم چې د ټولو څخه غټ عبادت دی، ځکه چې دغور او فکر په ذريعه بنده د الله جل جلاله په عجيبه او ناآشنا کارونو کې غور او فکر کولای سي، د اسمانونو او مځکې په حکمتونو پوه سي او د دنيا او آخرت متعلق د الله جل جلاله رازونه وپېژني، بلکې په دې کې د ټولو څخه عظيمه خبره دا ده چې خپل ځان په بشپړه توگه په ذکر الهي کې محوه کړي، تر دې چې د غير الله څخه بېخي نا خبره سي او د الله جل جلاله څخه ما سوا د ده د پاره گواکې د يو شئ وجود پاته نسي، او ښکاره ده چې دا شئ دخلوت څخه بغير نسي حاصلېدای، ځکه چې د الله جل جلاله څخه ماسوا هر څه چې دی دانسان زړه او فکر د ځان وطرف ته متوجّه کوي او دخدای څخه يې غافله کوي،

نو کوم سړي چي د خلکو سره د تعلقاتو ساتلو سره سره د الله ﷻ سره په دمتوجه زړه مشغولېدلی نسي د هغه د پاره کو بنه نشيني لازمه ده، ځکه داشرف خو انبياؤ ته حاصل دئ چي په دنيا کي ووسي او د خلدای سره وي او دلوجه وه چي نبي کريم ﷺ په اوله کي په غار حرآ کي کو بنه نشيني اختيار کړې وه، تر دې چي دنبوت نور قوي سو او دوی دې مقام ته ورسېدل چي په ښکاره به د خلکو سره وو ليکن باطن به يې د الله ﷻ سره مشغول وو، او فرمايل به يې که په دغه وخت کي ما څوک دوست جوړولای نو هغه به ابو بکر ﷺ وای، ليکن په زړه کي يې د الله ﷻ دوستي د بل دوست د پاره ځای نه وو پرې ايشی، حال دا دی چي خلکو به دغه وخت هم دا تصور کوی چي دی د هر چا دوست دی او څه عيجبه نه ده چي د اوليا و رسېدل هم دې مقام ته ممکن کېدلی سي، ځکه چي سهل تستري ﷺ فرمايي چي دېرش کاله وسو چي زه کومه خبره کوم نو د الله ﷻ سره يې کوم او خلک گني چي دا موږ ته وايي، او دا محاله گڼل نه دي پکاره، ځکه چي په دنيا کي داسي خلک هم سته چي پر چا عاشق سي نو په خلکو کي ووسي هم خو د چا شخه خبر نه وي، نه د چا خبره اوري او نه د محبوب شخه ما سوا د چا سره خبري کول غواړي او زړه يې په محبوب کي داسي ورک وي چي د هغه شخه ملسوا چاته گوري هم نه (نو چي انسان دانسان په عشق کي د دنيا او ما فيها شخه بې نيازه کېدای سي نو د الله ﷻ په عشق کي کو بنه نشين کېدل شه د تعجب خبره ده) ليکن دا د هر چا د وس خبره نه ده، ځکه چي اکثر او زياتره خو داسي وي چي په خلکو کي د وسېدلو په سبب د الله ﷻ د دربار شخه مردود (تر تل سوي) وي، يو سړی د يو کو بنه نشين شخه پوښتنه وکړه چي د يوازې وسيلو د پاره ډېر صبر او زغم پکار دی، هغه ورته وويل ته يې يواځې ولي گڼې؟ د الله ﷻ سره همنشين ته څوک يواځي ويل کېږي؟ زما خو چي کله زړه وغواړي چي د هغه سره د رزا او نياز خبري وکړم نو لمونځ شروع کړم او کله چي زه غواړم چي هغه را سره خبري وکړي نو د قرآن کريم تلاوت شروع کړم،

د يو بزرگ شخه پوښتنه وسوه چي د دې کو بنه نشيني شخه آخر حاصلېږي شه؟ ويې ويل د الله ﷻ سره اُلفت او محبت، حسن بصري رحمه الله ته خلکو وويل چي دلته يو سړی اکثر د پايې (پيلر) شا ته ناست وي، ويې ويل هغه هر وخت راسي ما خبر کړی! شنگه چي خبر کړای سو، نو دی ولاړی ورسره کښېناستی ويې ويل چي ته هميشه يواځي ناست يې د خلکو سره گډون ولي نه کوې؟ هغه وويل خبره دا ده چي ما ته يو داسي کار را پيښ سوی دی چي دخلکو ښد بُد يې را نه هېر کړی دی، ويې ويل نو بيا د حسن رحمه الله خوا ته ولي نه ځې او د هغه سره خبري ولي نه کوې؟ هغه وويل حسن ﷺ وي او که بل، دا کار زه د هر چا شخه منع کړی يم دوی وويل هغه کار شه دی؟ هغه وويل چي هر

وخت پر ما د الله ﷻ د انعاماتو باران وريږي، په داسې حال کې چې زما هر کړی په ګناه کې تيريږي نو کار زما دا دی چې هر وخت يا خو د الله ﷻ د انعاماتو شکر ادا کووم يا د ګناهونو څخه په توبه کې مشغوله يم، نو په داسې حالت کې چې يو ساعت مې فارغ نه دی د حسن رحمه الله سره ما ته خبري کول يا د خلکو سره د ګډون فرصت ما ته کېدای سي؟ حسن رحمه الله وويل بس صحيح ده ته چې کوم ځای کېنېنې هلته کېنېنه ستا فقهي علم د حسن څخه ډېر زيات دی. هرم بن حيان رحمه الله يوه ورځ د اويس قرني رحمه الله خوا ته ولاړی، هغه ورېل څنګه راغلې؟ هرم ووېل ستا څخه د آرام حاصلولو د پاره، ويې فرمايل داسې سړی خو ما تر ننه پوري نه دي ليدلی چې خدای پېژني او د دې سره سره د آرام حاصلولو د پاره د انسان خوا ته ځي؟ فضيل رحمه الله به فرمايل چې کله د شپې تياره را خوريږي، زما زړه باغ باغ کيږي او زه سوچ کوم چې اوس به په مزه سره تر سهاره پوري د الله ﷻ په خلوت کې هم نشين يم، او کله چې د ورځې رڼا را ښکاره کيږي نو زړه مې په غم او خفګان کې ډوبيږي او دا تصور مې زړه وېلې کوي چې اوس به خلک ما الله ﷻ ته څنګه پرېږدي؟

او د مالک بن دينار قول دی چې کوم سړی په لمانځه کې د الله ﷻ سره د خبرو کولو پر ځای هغه خبري خوښوي کومې چې دی د خلکو سره شپه او ورځ کوي، د دې سړي علم يقيناً د نامه د پاره دی د ده زړه ړوند دی، او دی يقيناً چې علم بربادوي، او يو هوښيار ويلي دي چې کوم سړی همېشه دې ته کوري چې څوک يې په نظر راسي او دی ور سره کېنېني او مجلس ګرم کړي دغه په تاوان کې وي، ځکه چې د ده زړه د هغه خواهش څخه محروم دی کوم چې په اصل کې د چا په زړه کې پکار دی (يعني د الله ﷻ سره مشغوليدل) او کوم زړه چې د دې اصل خبري څخه خالي وي او د دباندې څخه د مدد طالب وي ده ته د مفلسې څخه ماسوا نور هيڅ په لاس نسي ورځي، نو د دې خبرو څخه دا شئ په ذهن کې اېښوول پکار دي چې که چا ته دا قدرت حاصل وي چې په همېشه ذکر کولو د الله ﷻ سره الفت پيدا کړي يا د پرله پسې غور او فکر په ذريعه علم او معرفت حاصل کړي او د الله ﷻ د جلال او جمال مشاهده وکړای سي نو دا د ټولو څخه غټ عبادت دی کوم چې د انسان سره تعلق لري، او د ده د پاره د ټولو څخه لوی دی چې د ټولو سعادتونو غرض او انتها خاص دا ده: چې انسان کله هغه جهان ته ځي نو چې د الله ﷻ اُنس او محبت پر ده غالبه وي يعني د محبت په نشه سره مست وي، او د الله ﷻ د الفت د پاره همېشه ذکر او د معرفت د الله د پاره د الله ﷻ معيّت لازمي او لابدي دی، او د معرفت حصول بغير د دايمي فکر څخه ممکن نه دی، او دا دواړه شيان يعني ذکر او فکر خلوت او ګوښه نشيني غواړي.

(۲) دویمه فایده دا ده چي کو بنه نشیني (خلوت) د ډېرو ګناهونو څخه د نجات باعث وي، او په ځانګړي توګه څلور ګناهونه خو داسي دي چي د یو بل سره په ګډون کي د دې څخه ځان ساتل ګران دي: (ا) چغلي کول یا اوربدل کوم چي د بربادی لامل دي (ب) د امر بالمعروف او نهی عن المنکر څخه په عهده خلاصیدلو کي سختي، ځکه چي که په بده خبره چپ پاته کیږي نو ګناهګاره کیږي او که ژبه خلاصوي نو دښمني او جنګ به ورته جوړیږي (ج) ریاء او منافقت خو د خلط او ګډون یوه حصه ده ځکه که د خاطر مدارات څخه کار نه اخلي نو خلګ به ورته ازار رسوي، او د خاطر مدارت په صورت کي په ریاء کاري کي پرېتول یو لازمي خبره ده چي ریاء او د مساوي سلوک (چلند) دعوی د یوبل څخه جلا کول بې حده ګران دي مثلاً د دوو داسي خلګو سره ملاو سي چي د یو بل دښمنان وي نو که د دواړو سره ملګرتیا کوي نو دواړه به یې دښمنان سي ځکه چي بنکاره دوه رُخي ده، او تر څومره پوري چي دمنافقت تعلق دی نو که زبات نه وي نو لږ تر لږه دا خبره خو به د دواړو سره کوي چي پخیر پخیر زه خو همېشه ستا د ملاقات آرزو لرم، او غالبه دا ده چي د ده دا خبره خو ه بنکاره دروغ وي، او که د دا ډول ظاهر داری څخه کار نه اخلي نو دنیا به ور څخه نفرت کوي، نو د دې منافقت اظهار خو به خامخا کوي، او یوه خبره کومه چي ډېر ه معمولي ګڼل کیږي دا وي چي د هر یوه د حال پوښتنه به کوي او په عامه توګه سره به دا الفاظ ویل وي، څنګه یې مزاج دی څنګه دی؟ او ها! بچیان او خپلوان دي څنګه دي، حال دا دی چي په زړه کي به یې چیري دا خیال هم نه وي راغلی، او د دې خبر سره به د ده قطعاً څه شوق او دلچسپي نه وي لیکن د منافقت او ریاء کاري په وجه به داسي وا یې.

ابن مسعود ﷺ وایي چي بعضې د غرض غلامان داسي وي چي د چا سره یې څه کار وي نو د خپل مطلب د پاره د ده په مخکي د صفتونو یو پُل وتړي او دومره تعریف او صفتونه یې وکړي چي کله کور ته واپس راسي نو د منافقت په وجه یې دین پرې اېښي وي، او بعضې وخت خوبې هغه دنیوي غرض هم پوره نسي او د الله ﷻ قهر او غضب بلاوجه پر سر واخلي، سري السقطي رحمه الله فرمایي چي که زما وورور هم ما ته راسي نو پخپله ږېره چي د برابرولو د پاره لاس وهم، بېرېږم چي هسي نه نوم مي د منافقانو په فهرست (لړلیک) کي رانسي؟ فضیل رحمه الله یو ځای ناست وو چي یو سړی هلته راغلی دوی ځیني پوښتنه وکړه څه کار دي دی؟ هغه وویل بس ستا په زیارت سره د ستر ګو یخولو او ستا سره د الفت زیاتولو د پاره راغلی یم، د وی وویل په خدای قسم دي ستا دا الفاظ سخته ږېره پیداکوونکي دي ځکه چي ستا دلته د راتلو څخه ما سوا د دې څخه بل څه مقصد نسته چي زما په دروغو تعریف وکړي او زه هم ستا سره شریک سم څه دروغ ستا څخه واورم څه در ته زه ووایم، او

چه ته د دې ځاى شخه پورته کيږي نو د يوه يا دواړو نوم به په منافقانو کي ليکل سوى وي، او که يو سړي ته دا قدرت حاصل وي چي دى د بکواس او پالتو(اضافي)خبرو شخه او د منافقت شخه پرهېز کولاى سي نو که د خلکو سره ملاوېږي ده ته هيڅ نقصان نه رسيږي، او د مشرانو خو دا اُصول وو چي د ملاقات پر وخت به يې د دنيا د خبرو پوښتنه هم نه کوله بلکي صرف د دين خبري به يې کولې، شنګه چي حاتم اصم رحمه الله د حامد الفاف رحمه الله شخه پوښتنه وکړه چي شنګه يې؟ حامد وويل، سلامت يم او په عافيت سره يم، حاتم وويل، د خير او سلامتيا خو به هلته معلومات وسي چي د پُل صراط شخه تېر سو او عافيت به هلته معلوم سي چي جنت ته داخل سو؟ د حضرت عيسى عليه السلام شخه به چا د حال پوښتنه وکړه نو فرمايل به يې چي کوم شئ زما د فايدې دى هغه زما په اختيار کي نه دى او په کوم شئ کي چي زما نقصان دى د هغه شخه د خوندي کېدو طاقت هم په ما کي نسته نو زما شخه زيات فقير بې چاره او بې وسه بل څوک کېداى سي چي د خپل کار شخه شلوخوا ګرځي او د دې واګي د بل په لاس کي وي،

او د ربيع بن خشيم رحمه الله شخه چي به کله دا پوښتنه وسوه چي ته شنګه يې؟ نو فرمايل به يې چي ضيعف او ګناهګار يم د خپل حلال رزق شخه يې خورم او د خپل مرګ په انتظار يم، او ابو دردا رضي الله عنه ته چه به چا وويل مزاج دې شنګه دى؟ نو جواب به يې ورکړى چي که د دوږخ شخه خوندي سوم نو پوه سه! چي په خيريت سره يم او دا اويس قرني رحمه الله شخه چي به د حال پوښتنه وسوه نو فرمايل به يې چي د هغه سړي شخه به شه د حال پوښتنه کوې چي د سهار په وخت ورته دا معلومه نه وي چي تر ماښامه پوري به ژوندى پاته سم او که نه او چي ماښام سي نو معلومه نه وي چي د سهار مخ به وونيم او که نه. د مالک بن دينار رحمه الله شخه چي کله به پوښتنه وسوه چي شنګه يې، نو ويل به يې چي د هغه د حال به شه پوښتنه کوې چي عُمر يې کميږي او ګناهونه يې زياتيږي، د يو هوښيار شخه يو چا د ده د حال پوښتنه وکړه نو ويې ويل چي بس رزق خداى را کوي هغه خورم او حکم د هغه د دښمن شيطان منم،

د محمد بن واسع رحمه الله شخه خلکو پوښتنه وکړه چي شه حال دي دى؟ نو ويې فرمايل تاسو ووايئ: چي د هغه سړي به شه حال وي کوم چي هره ورځ خپل مرګ ته يو منزل نژدې کيږي، د حامد الفاف رحمه الله شخه پوښتنه وسوه چي مزاج دې شنګه دى؟ ويې ويل بس دغه آرزو ده چي کاش! يوه ورځ عافيت حاصل سوى واى، خلکو پوښتنه وکړه چي ولي داوخت تاسو په عافيت سره نه ياست؟ ويې ويل په عافيت سره هغه وي کوم چي دګناهنو شخه خوندي ووسي، او د يو بزرګ

شخه دمرگ په وخت پوښتنه وسوه چې څه حال دی؟ نو هغه وویل تاسو فکر وکړئ چې د هغه سړي به څه حال وي چې په یو لیري او اوږد سفر روان وي او د سفر سامان او توښه د لارې ور سره نه وي، یا مثلاً: تک تور قبر ته روان وي او یو غمخور او همدرد ور سره نه وي، یا مثلاً یو عادل باچا ته (په یو جرم کې نیولی ورتلل کیږي او دلیل او وکیل ور سره نه وي). او د حسان بن سنان رحمه الله شخه پوښتنه وسوه چې حال دې څه دی؟ نو ویې ویل چې د هغه سړي د حال به څه پوښتنه کوې چې هغه ته لازماً اول مر کېدل وي بیا پورته کېدل وي او د حساب د پاره پیش کېدل وي، او ابن سیرین رحمه الله د یو سړي شخه پوښتنه وکړه چې څه حال دې دی؟ هغه وویل څه حال به وي بس دغه چې پنځه سوره درهمه قرضدار یم په کور کې بنځه بچیان مانه ژاړي او ما سره یوه کنجکه (پلولی) هم نه سته، ابن سیرین رحمه الله وایي چې زه فوراً کور ته ولاړم او زر درهمه مې راوړل هغه ته مې حواله کړل چې دا واخله پنځه سوه په قرضه کې ورکړه او پنځه سوه پر خپل اهل او عیال خرڅې کړه او بیا ما خپل په زړه کې دا عهد وکړی چې په راتلونکې کې به د هیچا شخه د حال پوښتنه ونه کړم، او ابن سیرین رحمه الله دا خبره شکه وکړه چې د چا شخه د حال د پوښتنې کولو شخه وروسته د هغه په کار نه راتلل منافقت دی (یعنې د حال په پوښتنه که معلومه سي چې ده د فلانی شئ ضرورت دی نو مدد یې هم کول پکار دي کنې پوښتنه ولې کوي) او بزرګانو ویلي دي زموږ د نظر شخه داسې خلک هم تېر سوي دي چې یو بل ته به یې سلام نه کولو لیکن د یو بل فرمائش بلکې حکم به یې نه رد کولو او چې څه به ممکن وو ضرور به یې حاضرول، لیکن اوس هغه زمانه راغلې ده چې خلکو خو د ملاقات په وخت کې غټ محبت او ګرمي ښکاره کوي په یو بل پوري سینه په سینه منبلي، تر چرګانو پوري لا پوښتنې کوي لیکن که په دوی کې د یو طرف شخه د یوې روپۍ اندازې خوښتنه وسي نو د بل طرف شخه د صاف انکار شخه ماسوا هیڅ نه وي؛ او دا خبري به چیري هم نه وای که زړونه د منافقت شخه ډک نه وای، د خلکو اوس دا عادت جوړ سوی دی چې د چا سره ګډون ساتل مقصود وي نو لازمه ده چې د دې دروا خو ښکاره کول، په دروا خو د حالاتو پوښتنه او منافقانه خبرو اترو شخه کار اخلي په دې طریقه سره به موافقت جوړیږي کنې که د دې شخه خلاف چلیږي نو تول به یې دښمنان کیږي او شپه ورځ به یې غیبتونه کیږي او د یو بل په وجه به د دواړو دین خرابیږي (۵) څلورمه خبره دا ده چې د یو بل سره د یو ځای کښېښستلو لازمي نتیجه دلوي چې شوک د چا سره ناسته پاسته اختیاروي د هغه خویونه او خصلتونه په ده کې راځي او دا داسې چې چا ته به معلومه هم نسي، نو که ته د چا سره کښېښې پټ په پټه به د هغه خویونه په تا کې راسي او ته به په پوه هم نه سې او کله چې دا ناسته

پلسته د غافلانو سره وي نو د ډېرو ډېرو بلیانو تخم په زړه کي کرل کیږي، ځکه څوک چي سرمایه دار او دنیا دارو ته گوري دهغوی حرص او لالچ ویني نو په کراره کراره حرص او لالچ دده په زړه کي ځای کوي او څوک چي فاسقانو ته گوري هغه په فسق کي اخته کیږي ځکه چي آخر دغه خبري ده ته معمولي ښکاره کېدل شروع سي، دغه ډول هره یوه گناه هره یوه بدي چي ډېر ډېر وو ته گوري آخر رنگ راوړي، او سړی پخپله په دې کي اخته کیږي، دلوجه ده چي که څوک یو عالم په وریښمي جامو کي ووینې نو د ده د عالم منلو څخه به انکار کوي، خو که ټوله ورځ دغه عالم په غیبت کي مشغول ویني نو هیڅ وخت انکار نه ځیني کوي، حال دا دی چي غیبت کول د وریښمي لباس څخه زیات بد دی بلکي د زنا څخه هم ډېر بد دی، لیکن دا خبره هر وخت لیدل کیږي په دې وجه احساس یې هم په زړه کي نه وي، او د دې حقیقت څخه هم نا خبره سي چي غیبت او ورېدل بلنات خود نقصان دی، داسې لکه څنگه چي د اصحابو ﷺ او بزرگانو د دین حالات اورېدل فائده و رکوي چي د ذکر په وخت یې د الله تعالی رحمت وریږي، په حدیث کي دي چي: کله دنیکو خلکو ذکر کول کیږي نو د الله ﷻ رحمت نازلیږي، او دا ځکه چي په دې سره د دین رغبت زیاتیږي او د دنیا رغبت کمیږي او دغه ډول کله چي د غافلانو ذکر او خبري کیږي نو د الله ﷻ لعنت وریږي ځکه چي په دې سره غفلت او د دنیا مینه زیاتیږي، کوم چي پخپله لعنت دی او د کومو خلکو ذکر چي د لعنت سبب وي نو دهغوی لیدل خو ښکاره ده چي د دې څخه هم ښه لعنت به وي،

او په دې وجه نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي: د نا کاره (خراب) سړي مثال د اهنگر (پښ) دی چي ود سره کښېني نو که جامي دي د سو ځولو څخه خوندي هم سي خو دود به خامخا در ورسیږي او دنېک سړی مثال د عطار (عطرونو والا) دی چي که عطر درهم نه کړي دماغ به دي خوشبویه سي، نو د بدانو سره د کښېنستو پر ځای تنهایي غوره ده او د تنهایي په مقابله کي د نیکو خلکو سره کښېنستل غوره دي لکه چي په حدیث کي دي: چي کوم سړی د دنیا رغبت د زړه څخه کموي دی گویا تا د الله ﷻ طرف ته رابولي او د داسې سړي سره کښېنستل ډېرلوی غنیمت دي، او د کوم سره کښېنستل چي د دنیا رغبت زیاتوي د هغه څخه لیري وسه خصوصاً د هغه عالم څخه ډېر لیري وسه کوم چي د دنیا په حرص کي اخته وي او د کوم عمل چي د ده د قول او وینا څخه مختلف وي ځکه د ده سره ناسته د زهرو قاتلو څخه کمه نه ده ځکه چي د دې بې عمله عالم په لیدو سره د اسلام احترام د زړه څخه ختمیږي او بنده په خپل زړه کي سوچ کوي چي که د اسلام واقعي څه حقیقت وای نو پخپله به دا عالم د حرص او خواهشاتو څخه لیري ولی نه وای.

(۳) دریمه فائده دا ده چي اَلماشاء الله زمانه داسي ده چي یو بناړ د جنګونو او تعصب څخه خالي نه دي پاته، نو دفتنې څخه هغه سړی خوندي کېدای چي ګوښه نشین سي کنې د خلګو سره ناسته پاسته خو دین په خطره کي اچوي، د عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ څخه روایت دی چي نبي ﷺ وفرمایل چي کله تا ته خلګ د کورونو څخه لاس په لاس کي اچولی د باندي راو تونکي ښکاره سي نو تا ته پکار دي چي په کورکي کښېنې او ژبه په قابو کي کړې او د خپل علم مطابق عمل کوې، او د کوم شئ چي تا ته علم نه وي هغه پرېږدې او پخپل مخصوص کار کي مشغوله سې او د نورو د کارونو سره کار نه لرې،

عبدالله ابن مسعود ﷺ روایت کوي چي نبي ﷺ فرمایلي دي پر خلګو به داسي زمانه راسي چي د بنده دین به سلامت پاته نسي او هاخودېخوا به داسي تښتي لکه ګیدړه چي د خلګو څخه دېتښلو د پاره یوه غره او بل غره ته او یو غار او بل غار ته د ځان ساتلو د پاره تښتي منډي وهي، خلګو عرض وکړی یا رسول الله! داسي وخت به کله راځي؟ ورېې فرمایل چي کله د معاش (روزي) حاصلول بغیر د ګناه څخه ممکن نه وي، او دا به هغه وخت وي چي د خلګو څخه جلاوسېد به حلا ل وي، عرض یې وکړی، یا رسول الله ! دا څنګه کېدای سي حال دا دی چي تا موږ ته د نکاح حکم کړی دي، ورېې فرمایل دغه وخت به داسي وي چي د بنده هلاکت به د مور او پلار د لاسه وي، او که مور او پلار یې مړه وي نو د ښځې او بچیانو د لاسه به وي، او که دغه هم نه وي نو د خپلو خپلوانو دوستانو د لاسه به وي، بیا یې عرض وکړی، یا رسول الله! دا به څنګه وي ورېې فرمایل چي داسي چي دی به پر مفلسی او فقیری ملامتوي او داسي شیان به غوښتني غواړي چي حاصلول به یې د ده په وس کي نه وي، او د دوی غوښتل به مسلسل وي تر دې چي هلاک به سي او دا حدیث که څه هم د خلګو څخه د لیري وسېدلو په باره کي دی بیا هم په دې کي د ګوشه نشیني طرف ته هم اشاره ده، او د کومي زمانې خبر چي نبي کریم ﷺ په دې حدیث کي ورکړی دی دهغې شروع خو زموږ د دې زمانې څخه مخکي هم سوې ده، څکه چي سفیان ثوري رحمه الله به (کوم چي زموږ څخه مخکي وو) پخپله زمانه کي فرمایل چي په خدای قسم دي اوس خو د خلګو څخه لیري وسېدل حلال سوي دي.

(۴) څلورمه فائده دا ده چي د خلګو شر فساد څخه خوندي وي او په آرام وسي څکه چي په خلګو کي ووسي نو د دوی دبدګمانیو او غیبت څخه ځان ساتل به ډېر ګران وي، او د محال طمع څخه خلاصون تر لاسه کول ممکن نه وي، او دا امکان هم سته چي خلګ په ده کي یو خاص خبره ووېني چي د دوی د پوهي څخه لوړه وي نو زبان درازي کول شروع کړي (او په ده کي خبري کوي) او بیا که

دی په غم او ښادي کې مبارکبادي او مهمان نوازي د خلګو سره کوي نوبس په دې کارو به بوخت وي او د خپل کار د پاره به ورته وخت نه ملاویږي، او بیا به دی د خپلو کارونو د پاره د وخت رایستلو په خاطر د چا سره یو ډول سلوک (چلند، رویه) او د چا سره بل ډول سلوک (یعني د چا سره کم د چا سره زیات) شروع کړي، نو نور به ځیني وحشت ډول محسوس کوي او د ده په آزار به ور پسې سي، لیکن که دی د دې هر څه څخه ګوښه نشین سي نو د دې ټولو علتونو څخه پر یو ځای آرام بیا مومي، او د هر چا خوشحالول به ورته څه ګران نه وي، او یو بزرګ وو چې همېشه به په هدیره کې یا په بل یو یو ځای کې ناست وو او کتاب به حتمًا ورسره وو، چا پوښتنه ځیني وکړه چې داسي ولي کوې، ویې ویل چې د تنهایي (ګوښه نشیني) څخه زیاته سلامتي او د هدیرې څخه زیات وعظ ما یو هم نه ولیدلو، او نه د کتاب څخه علاوه بل غوره ملګری ما ته ملاؤ سو، ثابت بناني رحمه الله حضرت حسن بصري رحمه الله ته په یو خط کې ولیکل چې ما اورېدلي دي ته د حج په سفر روانیږې که دا صحیح وي نو ما هم د ځان سره بوزه، زه ستاسو د صحبت آرزومند یم، حضرت حسن رحمه الله جواب ورکړی چې ما معذور وګڼی چې دواړه پر خپل خپل ځای د حق تعالی سره ژوند تېروو، ځکه چې کېدای سي که چیري موږ په یو ځای کې کښېناستو او دیو بل داسي شیان ووینو چې په هغه سره دیو بل دښمنان سو، او د ګوښه نشیني دا فائده دا هم ده چې دیوبل سره محبت قائم وي او دیو بل څخه رازونه پټ وي، کنې د هم نشیني په صورت کې به داسي کمی ظاهر سي چې دیو بل څخه یې نه وي لیدلې، او نه یې د چا څخه اورېدلې وي.

پنځمه فائده دا ده چې د خلوت څخه د ده یو لالچ (حرص) نه وي او د خلګو د ده څخه هم څه طمع نه کیږي او د طمعي دا دوطرفه سلسله د ډېرو ګناهونو او خفګانونو باعث جوړیږي، ځکه چې طمع د اهل دنیا په لیدلو سره پیدا کیږي او طمع د حرص تابع وي او ذلت او خواري د طمع تابع وي لکه چې د الله ﷻ ارشاد دی: وَلَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا بِهِ أَزْوَاجًا مِّنْهُمْ [۱۳۱](او هیڅ کله ته د هغو شیانو وطرف ته مه ګوره کوم چې موږ د کفارو مختلفو ډلو ته د دوی د ازمایش د پاره ورکړه دي چې دا محض د دنیوي ژوند رڼا ده او ستا د رب ورکړه (کوم چې په آخرت کې ده) په ډېرو درجو غوره او همېشه ده) او نبي فرمایلي دي چې د دوی د دنیا څخه منکر سئ ځکه چې د دې دا سینګار د دوی په حق کې فتنه ده، او فرمایي چې کوم سړی په دنیوي خیال ستاسو څخه لوړ وي د هغه طرف ته کتل نه دي پکار چې په دې سره به د خدای د درکړي نعمت قدر ستاسو په نظر کې باقي پاته نسي، او کوم

سري چي د دولتمندو نعمتونو ته ګوري هغه که د دې په تلاش کي سرګردانه سي نو ده ته به هيڅ په لاس ورنسي او عاقبت به يې خراب سي، او که د طلب څخه يې لاس واخلي نو دا هم يوه مجاهده او صبر دی که څه هم خاصاً ګران دی.

(۶) شپږمه فائده دا ده چي د سستو او احمقانو خلګو د ليدو څخه به منع سي، د اعمش رحمة الله عليه څخه خلګو پوښتنه وکړه چي ستا سترګي ولي خرابي دي؟ ويې ويل چي د سُستو خلګو په ليدلو؛ د جالينوس قول دی چي لکه څنګه چي د جسم د پاره تبه وي دغسي د روح تبه هم وي او دغه د کاهلانو (سُستو) خلګو ليدل دي، د شافعي رحمة الله عليه قول دی چي ما ترته پوري داسي کاهل ونه ليدی چي د هغه سره په ناسته کي زما د بدن هغه برخه درنه سوې نه وي کومه چي ده ته ورنژدې ده. او دا فائده که څه هم دنيوي ده لېکن د دين متعلق هم ځکه ده ځکه کله چي مړه يو سړي ته په ناخوښه سره ګورو نو ګويا په زړه زړه کي مړه ده غيبت کوو. او په ګوښه نشيني کي د دې مصيبت څخه هم خلاصي ملاويږي. نو دا هغه فائدې وي کومي چي په ګوښه نشيني سره حاصليږي.

**د ګوښه نشيني آفتونه او نقصانونه:** پوه سه! چي په ديني او دنيوي مقصودنو کي ځيني داسي هم وي چي د نورو څخه بغير نسي حاصليدلای او د ګوښه نشيني په صورت کي د هغو فوت کېدل لازمي وي، او دا د ګوښه نشيني يو غټ آفت دی، چي په مجموعي توګه سره د دې نقصانونه هم شپږ دي:

(۱) اول آفت او نقصان يې دا دی چي د علم ازده کولو يا ښوولو موقع نه ملاويږي او کوم سړی چي هغه علم هم حاصل نه کړي د کوم ازده کول چي ده لره فرض وي نو ګوښه نشيني قطعي حرامه ده، او که د لازمي علم ازده کولو څخه وروسته دی نور علمونه نه سي ازده کولای يا ورته ستونزمن وي او د عبادت آرزومند وي نو بيا دی ګوښه نشيني کولای سي، لېکن که د شريعت د علم ذهانت او قدرت لري نو ګوښه نشين کېدل ورله زياته خساره ده، ځکه چي د علم د ښيپړتيا او تکميل څخه بغير د ګوښه نشيني زيات وخت خو په خوب او بېکاری کي تېرېږي يا په پرېشانه خيالاتو کي ضايع کيږي، او که بالفرض وخت نه ضايع کوي او ټول وخت په عبادت کي تېروي بيا هم د پوره علم څخه بغير به عبادت د غرور او تکبر څخه خالي نه وي او غلط فکرونه به پر مسلّط وي او عقيده به يې هم صحيح نه وي او د الله جل جلاله په شان کي داسي داسي غلطي کلمې د ده د ژبي څخه وتلای سي يا داسي کارونه ځيني کيدای سي چي په کفريا بدعت کي شامل وي او د کم علمي په وجه به ځيني دی خبر هم نه وي، غرض ګوښه نشيني او تنهايي د علماؤ سره ښه ښکاري، نه چي د عوامو سره چي مثلاً عام سړی که مريض سي نو ده ته کله دا مناسب دي چي د طبيب څخه وتښتي او خپل علاج پخپله وکړي دا

دول به ژر هلاک سي، د دې پر عکس خلکو ته علم ازده کول فرض فضیلت دی، حضرت عیسی ﷺ فرمایي چې کوم سړی د علم څخه خبر دی او د دې مطابق عمل کوي او نورو ته یې ښیي، ده ته اسماني مخلوق عظیم انسان وایي، او ښکاره ده چې د تعلیم کولو یاور کولو د پاره کو ښه نشیني سمه نه وي، نو د تعلیم حاصلولو او تعلیم ورکولو درجه د کو ښه نشینی څخه ډېره لوړه ده. په دې شرط چې د معلم او طالب د دواړو نیت د حصول د علم څخه حصول د دین وي نه چې حصول د مال او دولت او مرتبې، معلم ته پکار دي چې تعلیم ورکوي نو داسې چې د دین د پاره مفید وي، او د کومو خبرو علم چې زیات اهم وي هغه مخکې کړي، مثلاً د اودس بیان شروع کړي نو دا خبره ښکاره کړي چې د جسم او جامو د پاکوالي حال څه داسې اوږد او فراخه نه دی دا خو په لنډه سره بیانول کیږي او اصل مقصد د طهارت خو یو بل دی او دغه طهارت دي د سترګو، غوږونو، ژبې او نور ټولو اندامونو چې دوی د ګناه څخه منع کړل سي، او بیا یې تفصیل بیان کړي او د کوولو او نه کوولو کارونه واضحه کړي، او که ووینې چې طالب علم دې ته توجه نه ورکوي او د بل علم مطالبه کوي نو پوه سه چې د ده مقصد حصول د علم نه دی بلکې حصول د مرتبې او مال دی، او چې د دې طهارت سبق ختم سي نو ورته ودې وایې چې اصل د دې څخه مراد د زړه طهارت دی چې د دنیا د محبت څخه یې پاکول دي او د ماسوی الله څخه د زړه خالي کول دي، دا طهارت د کلمې د: لا اله الا الله حقیقت دی، چې مطلب یې دا دی چې د الله ﷻ څخه ما سوا بل څوک معبود نه مني، او څوک چې د نفس په خواهشاتو کې ګیر وي د ده معبود خو د نفس خواهش سو نه چې الله او دی د حقیقت د لا اله الا الله څخه ناخبره دی، او داسې سړی د خواهشاتو څخه د نجات طریقه تر هغه وخته پوري نسي پېژاندی تر څو چې د هغه تفصیل مطالعه ونه کړي کوم چې موږ د مهلکاتو او منجیاتو تر عنوان لاندي لیکلی دي، او دا د ټولو خلکو د پاره فرض عین دي، او د دې علم څخه د فارغېدو څخه بغیر که یو شاګرد د حیض، طلاق، خراج، فتوی او د جنګونو وغیره په باره کې د معلوماتو حاصلولو د پاره بې قراره وي یا د مذهب څخه د خلاف علمونو د پاره بې قراره وي یا د علم الکلام او بحث مناظره کې د مهارت حاصلولو آرزومند وي، یا د معتزله او کرامیه سره د جنګونو تعلیم اخیستل غواړي پوه سه ! چې دغه د جاه او مال طالب دی نه چې د علم دین، او د داسې سړي څخه ډېره کول پکار دي ځکه چې د ده شر ډېر لوی دي، کوم سړی چې د شیطان سره مناظره نه کوي چې هغه ده ته د هلاکت دعوت ورکوي، او د نفس سره جګړه نه کوي چې د ده ډېر بد دښمن دی لیکن د امام ابو حنیفه رحمه الله شافعي رحمه الله او معتزلو سره د ده د

جنګ شوق دی نو دا دې حقیقت ښکاره ثبوت دی چې شیطان پر ده غالبه سوی دی، بلکې شیطان خو پخپله پر ده خندلاوی کوی(چې ښه ښکارمې په لاس راغلی دی) یعنې دا سړی خو د حسد، تکبر، ریاء د دنیا د محبت او نورو څخه خو ځان نه خوندي کوي کوم چې خالص شیطاني صفتونه دي، او د دینلار بنده د هلاکت او تبهی موجب دي، لیکن دا شغل د ده پر سر سپور دی چې په دې فتاوی کې چې کوم د نکاح، طلاق، سَلَم او اجاره وغیره سره متعلق ده کومه یوه فتوی زیاته صحیح ده؟ حال دا دی چې د دې اهمیت د دې څخه ما سوا هیڅ نسته چې که په دې کې د چا څخه په اجتهاد کې څه سهو سوې وي نو د دوو پر ځای به د یوې نیکی ثواب ده ته ملاوېږي، چې د نبي ﷺ ارشاد دی چې چا صحیح اجتهاد وکړی ده ته دوه اجره ملاوېږي او که غلط سو نو یو اجر، نو که څوک د امام ابو حنیفه رحمه الله مذهب اختیار کړی او که څوک د شافعي رحمه الله ، فائده به د دې څخه زیاته هیڅ نه وي، لیکن بدصفتونه که لیری نه کړي نو خطره د ده د دین د هلاکت ده، او د زماني فضا څه داسې ډول جوړه سوې ده چې دلوبو څخه په لوی ښار کې به هم یو سړی سړی داسې ملاوېږي کوم چې به د علم په دې نقطهٔ نظر سره د حاصلولو خواهشمند وي، او پر دې بناء خو د معلم د پاره خلوت نشین کېدل بهتره دي ځکه چې علم که داسې سړي ته وښوول سي چې مُدعا او مقصود یې طلب د دنیا وي نو داسې ده لکه توره چې پر داسې سړي خرڅه کړای سي چې مقصد یې په دې سره ډاکه او غلاوې، او دا خیال چې کېدای سي علم به آخر دی د دین طرف ته مائله کړي نو د دې مثال بیا هغه دی چې شاید غل یوه ورځ توبه وکړي په جهاد کې مشغوله سي، او که دا وویل سي چې توره کله انسان توبې ته مائله کوي؟ او علم خو د توبې طرف ته د معاملات، نحو، لغت یا علم کلام څخه کوم یو علم دی چې د الله طرف ته بلنه ورکوي، ځکه چې د دین د ترغیب او تحریص سامان خو په دوی کې سته نه بلکې په دې کې هر یو علم د حسد، تکبر، ځان ښوولو او تعصّب تخم په زړه کې کري (نو دا علمونه هم د توري څخه کم نه دي ) او اوریدل کله دلیدلو سره برابر کېدای سي، په دې وجه پخپلو سترګو سره وګورئ چې کومو خلګو هم د دې علمونو مرسته اخیستې ده او په دې کې مشغول پاته سوی دي هغوی د یو قسم نه وو؟ څه پر تېر سو او په څنګه مرګ مړه سو؟ لیکن علم حدیث او علم تفسیر بې شکه داسې علم دی چې آخرت طرف ته بلنه ورکوي او د دنیا څخه منع کوي، او د دې ذکر هم موږ د مهلکاتو او منجیاتو په باب کې کړی دي، او معلم ته خامخا خپله توجّه او د طالب علم توجّه دې طرف ته راګرځول پکار دي، چې اثر یې پر هر چا لازماً کېږي ما سوا د هغو څخه چې انتهایي سخت زړه والا وي لیکن کوم سړی چې د دې شرطونو د خیال ساتلو سره علم حاصلوي یا بل ته یې ښیي، نو

د داسې سړي د پاره په يو گوښه کې کېښېنستل د ډېرو ختو گناهونو څخه دي. او که يو سړی په حديث تفسير او نورو اهمو د دين علمونو باندې عبور حاصلوي لېکن دمرتبې طلب پر ځان غالبه گڼي نو ده ته پکار دي چې نورو ته دي تعليم نه ورکوي. ځکه د نورو د پاره د ده تعليم که هر څومره گټمند ولي نه وي مگر د ده د خپل ذات د پاره به هلاکت وي. او د ده په قسمت کې به يې نورو ته ويل ليکلي وي او دا به هغه خبره وي چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چې الله ﷻ د خپل دين مدد په داسې خلکو هم کوي چې د کومو پکښې پخپله څه نصيب نه وي او مثال يې د هغه ډېوې په شان دی چې دکور ډګ او دېوار خوبې روښانه کړي وي لېکن پخپله سوځي او ويلې کيږي. او داوجه وه چې بشر حافي رحمه الله د علم حديثو کوم اووه دفتره د بزرگانو څخه اورېدلي وه د ځان سره يې خاورو ته يووړه او د حديثو راوي جوړ نه سو. او ويل به يې چې راوي ځکه نه جوړېږم چې دروايت کولو خواهش پخپل ځان کې وينم، که دا خواهش نه وای نو ضرور به مې روايت کولای. او د بزرگانو وينا ده چې د حديث راوي کېدل هم د دنيا يو باب دی. او کوم سړی چې د حديثو راوي کيږي د ده مقصد دا وي چې ما پر لوړ ځای کښينوئ. او حضرت علي ؓ يو سړی وليدی چې په مجلس کې پر کرسی ناست وو. دوی وويل دا سړی په اصل کې چغې وهي چې اې خلکو! ما وپېژنئ (يعني د شهرت وږی دي) يو سړی حضرت عمر ؓ ته عرض وکړی چې که اجازت وي نو د سهار دلمانځه څخه وروسته به خلکو ته وعظ کووم. دوی ځيني انکار وکړی. نو هغه سړي وويل چې ته د نصيحت کولو څخه هم خلک منع کوي؟ ورېې فرمايل هو! منع کووم يې ځکه زما ېېره ده چې د غرور او ځان ښوولو هوا چيري ي تا اسمان ته ونه رسوي. رابعي عدوي رحمه الله سفيان ثوري رحمه الله ته وويل چې ته به څومره ښه سړی وای که دنيا ستا خو ښه نه وای. دوی وويل دا تا څنگه ويل چې زه دنيا خوښوم؟ رابعي رحمه الله وويل ځکه چې د حديثو روايت کول ستا ډېر خوښ دي. ابو سليمان خطابي رحمه الله وايي چې په دې زمانه کې که يو سړی غواړي چې ستا سره يې ناسته پاسته وي او ستا څخه علم ازده کړي نو ته د هغه څخه ځان ساته چې په دې خلکو کې خير څه دي؟ په لاس کې مال نسته، په مخ کې جمال نسته، په ښکاره دوست په باطن کې دښمنان دي مخامخ صفت کوي او تر شا غيبت، بس ټول منافقان. نکته چين، مکار او فريب ورکوونکي دي. د دوی مقصد فقط دا وي چې خپلو فاسدو او مکروهو غرضو نو ته د رسېدو د پاره ستا څخه زينه جوړه کړي يا ستا څخه يو داسې خر جوړ کړي چې د دوی خواهشات دننه په ښار کښېي او د ښار څخه دباندې بار کړي او گرځوي يې، او د دې سره سره د خپل ځان تا ته راتلل لوی شئ گڼي او پر تا يې احسان کوي. او محض د دې خبرې په عوض چې دوی تا

ته راځي غواړي چې ته خپل ځان او مال، عزت او آبرو هر څه پر دوی قربان کړې او د دوی نه بلکې د دوی تر قربانو لو متعلقینو پورې په حقونو ادا کولو کې لګیاوسې، او د دوی په لاس کې بې وقوف (احمق) جوړ سې، تر دې چې د دوی د دښمنانو سره دښمني هم په سر واخلې، لوکه په یو خبره کې لږ غوندې غلطي در څخه وسي نوبیا ګوره چې ستا او ستاد علم څه حشر کیږي او د دوی منافقت څنګه ښکاره کیږي، او په دې زمانه کې که ربښتیا پوښته کوې نو هم دغه څه کیږي کوم چې ابو سلیمان خطابي رحمه الله بیان کړي دي، چې نن صبا یو شاګرد داسي نسته چې استاد بلا مطلبه قبول کړي لوّل خو د هر شاګرد دا خواهش وي چې د ده وظیفه [1] جاري وي، او استاد بې چاره به یو طرف ته خو مجبوراً شاګرد پرېښودی نه سو چې د خلکو په نظر کې به د ده وقار په شاګردانو قائم وو، دویم ملي حالت به یې دومره مضبوط نه وو چې د شاګردانو وظیفه د ظالمانو د منّت او احسان څخه بغیر جاري وساتي څنګه چې دا هم کوي او د دې شاګردانو په خاطر خپل دین او ایمان هم تباه کوي، نو که څوک د معلّم جوړېدو صلاحیت او قابلیت لري او دې آفتونو څخه پر خوندي کېدلو هم قادره وي نو د ده د پاره د کونج نشیني څخه تعلیم ورکول زیات غوره دي.

او اوس عوامو ته هم پکار دي چې د خپل شرط څخه خبر سي، او هغه دا چې هر عالم د کوم چې خپل درس وي او تعلیم خلکو ته ورکوي او دی یې وریني نو بدګماني دي نه پر کوي او دا دي نه وايي چې دې عالم د مال او مرتبې د پاره دا سلسله د تدریس جوړه کړې ده، بلکې نیک ګمان دي پر کوي داسي دي ګڼي چې دی یې د الله ﷻ د پاره کوي څکه چې دا د ده فرض دي چې علم دین خلکو ته وښیي، بدګماني هغه سړی کوي د کوم چې باطن ناپاک وي او د نېکو خیالاتو ځای پکښې نه وي او ده ته هر سړی د خپل ځان په ډول ښکاري یعني چې څه په ده کې وي هغه په نورو کې هم ویني، نو دا خبري ابو سلیمان خطابي رحمه الله په دې غرض سره کړي دي چې یو طرف ته خو عالمان د خپلو شرطونو څخه خبر سي بل طرف ته عوام محض د خپل حماقت په وجه د بدګمانی ښکار نسي د علماؤ احترام ترک نه کړي چې بدګماني به پخپله د دوی د هلاکت موجب وي.

(۲) دویم نقصان دا دی چې کو ښه نشین پخپله هم فائده نسي حاصلولای او بل ته هم فائده نسي رسولای او نفع خو په کسب سره حاصلیږي او کسب بغیر د ګډون څخه کېدای نسي او کوم سړی چې عیالداره وي او کسب نه کوي بلکې ګوشه نشین کیږي نو دا بالکل غلطي کوي چې د ښځو او

[1] د دې څخه معلومیږي چه په دغه زمانه کي به استاد شاګرد ته د خپل جیب څخه خرڅه ورکوله.

بچيانو دغسي تلف کول گناه کبيره ده، هو! که د ده د کفايت د پاره مال موجود وي يا د اهل او عيال سلسله يې نه وي نو بيا خلوت غوره دی، ليکن بيا هم چا ته فائده رسول گويا صدقه ورکول دي او د مسلمانانو د حقوقو د حفاظت برابر دي او که په خلوت کي د کېنېستلو څخه مقصود محض ظاهري عبادت وي نو د دې په نسبت خو حلال کسب غوره دی، او که د ده په باطن کي د حق دمعرفت لاري خلاصي سوي وي او زړه يې د الله د مناجات سره مانوس سوی وي نو د دې فضيلت د ټولو صدقو څخه زيات دي چي د ټولو عبادتونو مقصود همدا معرفت او اُنس دی.

(۳) دريم نقصان دا دی چي هغه مجاهده او رياضت کوم چي د خلکو په بدو اخلاقو باندي په صبر کولو سره حاصلول کيږي گو ښه نشين د دې څخه محرومه وي، حال دا دی چي کوم سړی چي د رياضت تکميل نه وي کړی د هغه د پاره د دې مجاهدې او رياضت لوی اهميت دی ځکه چي د ښه اخلاق څخه غټ عبادت نسته. او دا د گلون څخه بغير ممکن نه وي، چي د ښه اخلاق مطلب دا دی چي ښله د خلکو خبري برداشت کړی. او د صوفيانو خادم او مُريد د عامو خلکو سره ځکه خلط او ملاقات کوي چي د دوی څخه په سوال کولو چي په جواب د کوم رَعُونت او تکبّر سره د دوی ملاقات کول وي د دغې د برداشت کولو عاديان سي او د دوی خپل رَعُونت او تکبر آخر بالکل ختم سي، او دريم دا چي د صوفيانو خدمت کوي هغه بخل او تنگ نظري ليري کړي کومه چي د نورو د خادم کېدلو په وجه په زړه کي موجوده وي چي د بدخويي نوم نښه پکښي پاته نسي، او د دوی په خدمت سره دعاء او برکت حاصل کړي،او په تېره زمانه کي د صوفيانو دا عادت وو که څه هم نن صبا داسي نسته، او د خلکو په خيالاتو کي غټه تبديلي پيدا سوې ده ځکه چي اوس خو ځوک خدمت کوي نه او که کوي يې نو د دعاء او برکت د پاره نه بلکي محض د جاه او مال د پاره. نو که چا دا رياضت د مخکي څخه حاصل کړی وي نو د ده د پاره گو ښه نشيني (خلوت) غوره دی ځکه د رياضت مطلب دا نه دی چي هميشه د ږر رنځ او مشقت زغمي لکه د دوايي مطلب دا نه وي چي دغه دي سخته ترخه وي بلکي د دې د پاره خوړل کيږي چي مرض ليري سي، ليکن د مرض په ليري کېدلو د دوايي د تريخوالی برداشت ضروري نه دي (چي هميشه دې خوري) څرنگه چي د رياضت څخه مراد هم په اصل کي بل څه دی، او هغه دی د الله ﷻ سره د اُلفت حصول د کوم د پاره چي (د رياضت څخه ما سوا) د ذکر الهي ضرورت دی او د رياضت مطلب دا دی چي د هغو مشغلو څخه د خلاصېدلو مشقت برداشت کړای سي کوم چي د ذکرِ الهي په لاره کي حائل دی چي دغه ليري کړی په ذکر الهي کي مشغوله سي،او د پوهېدلو خبره دا ده چي څنگه پخپله رياضت کول لازمي دی دغه بول نورو ته د

ریاضت تعلیم ورکول ادب ورته ښوول هم د ارکانو د دین څخه دي او د دې د پاره گو ښه نشیني (خلوت) پکار نه راځي، او د شیخ د پاره دا ضروري ده چې دمریدانو سره گډون لري ځکه چې په گو ښه نشیني کې د مریدانو سره یو تعلق نه وي، لېکن څنگه چې عالمانو ته د مرتبې او عزت څخه پرهېز لازمي دی دغه ډول د مُرشد هم د دې آفت څخه خوندي کېدل نهایت ضروري دي، او که گډون په مذکوره شرطونو کې دننه وي نو درجه یې د گو ښه نشیني څخه لوړه ده.

(۴) څلورم نقصان په زړه کې د وسوسو پیدا کېدل دي، چې زړه د یاد الهي څخه ستړی کېږي د دې ستړی کېدو علاج د خلکو سره گډون او ملاوېدل دي، حضرت ابن عبَاس رضي الله عنه فرمایي چې که زما د وسوسو ېړه نه وای نو د خلکو سره به قطعاً نه وای کښېنستی، حضرت علي رضي الله عنه فرمایي: چې خلکو! د زړه په راحت کې خلل مه اچوئ په دې وجه چې کله پر زړه ناځاپیز (نابیره) جبر وکړی نو دی به ړوند سي په دې وجه پکار دي چې بنده یو گړی د ده دوستانو په مجلس کې کښېني او د دوی څخه دي راحت او د زړه خوشحالي حاصله کړي، لېکن دوست داسي پکار دي چې دینداره وي او د دین د کارونو متعلق خلک د ده سره مشورې کوي، پاته سو غافل نو د ده سره یو کړی کښېستل هم د نقصان باعث وي او هغه طهارت او پاکي کومه چې د ټولي ورځي په محنت سره حاصله سوې وي په یوه گړی کې فنا سي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: چې هر سړی د خپل دوست بر عادت او طریقه باندي وي، نو په دې وجه په دوستی کې د نېکی خیال ساتل ضروري دي.

(۵) پنځم نقصان دا دی چې د گو ښه نشیني په وجه سره د مریض پوښتنه، د جنازې شرکت په دعوت کې شرکت او نور حقونه ضائع کېږي، د دې کارانو سره متعلق هم ډېر آفتونه دي، نفاق او تکلّف په عامه توگه سره په دې کارونو کې داخلېږي، که څوک داسي وي چې د دې آفتونو څخه ځان نسي خوندي کولای، چې د دې پر شرطونو قائم پاته سي نو بیا گو ښه نشیني (گوښه کېدنه) غوره ده، او د مشرانو څخه زیاترو خلکو داسي کړي دي او دا کارونه یې پرې ایښي دي چې خوندي پاته کېدل په دې کې وو.

(۶) شپږم نقصان دا دی چې د خلکو سره په ملاوېدو او گډون کې یو ډول فروتني (ځان کښته کښل) دي او په گو ښه نشیني کې یو ډول تکبر دی، ممکنه ده په دې کې دا جذبه هم وي چې موږ د خلکو خواته ولي ولاړ سو خلک موږ ته ولي نه راځي.

**قصّه**: په نبی اسرائیلو کې یو حکیم وو چې پر حکمت یې ۳۶۰ کتابونه لیکلي وو، تر دې چې د ده

خیال دا وو چي د الله ﷻ په نزد زما ډېره لویه درجه ده، د دغه زماني په پر نبي وحي راغلې چي دغه حکیم ته ووایه چي تا پر تولو څمکه خپل نوم او شهرت حاصل کړی دی او ستا ډېره آوازه ده. حال دا دی چي ستا دا نوم او شهرت زما خوښ نه دی، حکیم و ېرېدی او په تنهایي کي کېښېنستی او ویې ویل چي الله ﷻ به راضي سوی وي بیا پر نبي وحي راغلې چي لوس هم نه دی راضي، څنګه چي دی بازار ته ووتلو او د خلګو سره یې ګډون شروع کړی، د خلګو سره ناسته پاسته خوراک څښاک یې شروع کړل، نو وحي راغلې چي اوس ده زما رضا حاصله کړه. نو یو سړی خو داسي وي چي د تکبر په وجه تنهایي اختیاروي څکه چي دی خیال کوي چي په محفلونو او مجلسونو کي خلک زما عزت نه کوي یا بېرېږي چي په علم او عمل کي به زما د کمزوریانو څخه خلک خبر سي، او دا خلوت نشیني د خپلو عیبونو او نقصانونو پرده جوړوي، او همیشه په دې آرزو کي وي چي خلک زما زیارت ته راتللای او زما لاسونه یې مچولای او زما څخه یې دعاګاني اخیستلای، دا ګوښه نشیني (ګوښه کېښنه) بالکل نفاق سو. هغه تنهایي کومه چي دالله ﷻ د پاره وي د هغه دوې علامې دي: یوه خو دا چي بنده په خلوت کي بیکاره نه وي ناست یا په ذکر فکر کي مشغوله وي یا په علم او عبادت کي، دویم دا چي دا خبره نه خوښوي چي خلک دې د ده زیارت ته راسي مګر دا چي دیني فائده وي، د طوسي خواجه ګانو څخه مشهور بزرګ حضرت ابو الحسن ماتمي رحمه الله د شیخ ابو القسم ګرګاني رحمه الله د ملاقات د پاره ولاړی نو معذرت یې وغوښتی چي زه ستاسو په خدمت کي ډېر کم حاضرېږم، هغوی وفرمایل چي د معذرت ضرورت نسته، څکه چي نور خلک په راتللو احسانمنده کېږي او زه په نه راتللو څکه چي د مَلَکُ الموت په وجه زما د چا پرواه نسته صرف د هغه د راتلو په انتظار کي یم د بل چا د راتلو را سره زما څه خیال نسته، یو امیر سړی د حضرت حاتم اصم رحمه الله په خدمت کي حاضر سو او عرض یې وکړی چي که څه حاجت وي؟ هغوی وفرمایل زما خواهش دا دی چي دو باره نه ته ما ووینې نه زه تاووینم، نو پوه سه! چي په دې خیال سره ګوښه نشین کېدل چي خلک زما زیارت ته راسي او تعظیم کوي محضِ جهالت دی څکه چي ادنیٰ درجه ګوښه نشیني دا ده چي ځان د خلګو څخه بالکل بې نیازه کړي او خپل هیڅ تعلق ور سره پاته نه کړي، او یاد ساته چي که ته په غرونو کي هم پټ سې نو نکتهٔ چین به وایي چي دا منافقت کوي، او د دې پر خلاف که شراب خانې ته هم ولاړ سې نو مریدان او دوستان به دې وایي چي دی څکه راغلی دی چي خلک ملامت پر ووایي، او دا د ده خو بنه ده چي د خلګو د سپکاوي په وجه پخپل ولایت مغروره نسي، نو

په هر حالت کې چې وي يوه بله به هميشه پر مخالفت او بله به په حق کې وي، نو بيا زړه دين ته راغب کول پکار دي خلکو ته نه.

حضرت سهل تستري رحمه الله خپل يو مريد ته د يو کار وويل هغه جواب ورکړی چې د خلکو د لعنت او پيغور په وجه زه دا کار نه سم کولای، حضرت سهل خپلو دوستانو ته متوجه سو ويې فرمايل؛ بنده چې تر څو پورې په دوو صفتونو کې يو حاصل نه کړي تر هغه . ختهٔ دهٔ کار حقيقت ته نسي رسيدای، يو دا چې يا خو خلک د ده د نظر څخه داسي وغورځيږي چې د خپل خالق څخه ما سوا بل څوک د سره ورنې نه، يا د ده نفس د ده د نظر څخه داسي وغورځيږي چې مخلوق د ده متعلق چې هر څه وايي دی يې پرواه نه کوي. حضرت حسن بصري رحمه الله ته خلکو وويل چې ځيني خلک ستا مجلس ته محض د خبرو جوړولو د پاره راځي او په دې تلاش کې وي چې د نکته چينی او عيب جوئي يو موقع په لاس ورسي او اوعتراض وکړي، ده وفرمايل زه پخپل نفس باندي داسي نظر ساتم چې اوس زما که کوم خواهش دي نو د جنت او د الله تعالی سره د مجاورت دی چې دا مي نصيب سي، او د خلکو څخه د سلامتی طمع مي د سره نسته، ځکه چې د دوی خالق د دوی د ژبو څخه خوندي نه سو نو زما څه حقيقت دي؟ نو په دې تفصيل سره د گو بنه نشيني فائدې او نقصانات معلوم سو اوس هر سړي ته د خپلو حالاتو مطابق عمل کول پکار دي چې کوم شئ د ده د پاره غوره دي.

**د گو بنه نشيني ادبونه:** کله چې يو سړی گو بنه نشيني (گو بنه کېدنه، خلوت) اختيار کړي نو ده ته دا نيت کول پکار دي چې د خلکو د شر څخه مي د خپل ځان د خوندي کولو د پاره دا کار کړی دی او چې په فراغت سره راته د الله ﷻ د عبادت موقع په لاس راسي، ده ته هيڅ وخت عبث تېرول نه دي پکار، هر وخت په ذکر او فکر کې ور ته مشغولېدل پکار دي، خلک دې ځان ته نه پرېږدي نه دي د بنار د خبرونو څخه ځان خبروي، په خلوت کې چې کومې خبرې ته زيات اهميت حاصل دی هغه دا ده چې د نفس خبره دي نه اوري، چې ذکرِ الهي خالص او پاک صاف وي، او د خلکو خبرې په اصل کې د نفس د پاره د خبرو تخم کري نو ذکر خالص نه پاته کيږي او چې د نفس په خبرو خيرن سي نو پاک به څنگه سي، او په دې حالت کې د جامو او خوارک په سلسله کې صبر لازمي دی (چې د ډېرو جامو او ډېر خوراک فکر ور سره نه وي) کنې بيا به مجبوراً د خلکو سره خاص گډون ساتي، او که د همسايه څخه ور ته يو تکليف ورسيږي نو صبر دي کوي او د هغه پر بدو او خبرو دي هيڅ پروا نه

کوي چي د ده گوښه نشيني ته خلک منافقت او ريا کاري وايي، يا ورته خلوص او عاجزي وايي، يلورته تکبّر او دوکه باز وايي په دې خبرو پسې دې ځوږ نه وړي چې په خبرو سره خو محض وخت ضائع کيږي، ولې چې د گوښه نشيني مطلب دا وي چې د آخرت سره کاره ' ـ سي او هم په دې کي مشغول او مستغرق سي.

## اووم اصل: د سفر د ادبونو په باره کي

پوه سه! چي سفرونه دوه دي؛ يو ظاهري سفر بل باطني سفر، د باطني سفر څخه مراد سفر د زړه دی يعني د زړه د اسمانونو او د ځمکي په ملکوت کي او د الله ﷻ په صنائعو او عجائباتو او د دين د لاري په منزلونو کي قدم ايښودل. او دا سفر د مردانِ خُدا سفر دی چي جسم په دې دنيوي کور کي وي او زړه په بهشت برين کي چي پلنوالی او غتوالی يې د ټولو اسمانونو او ځمکي څخه ډېر زيات دی ځکه چي عالَمِ ملکوت د عارفانو جنت دی او جنت هغه مقام دی ک. ا ځای چي يو ډول ممانعت مخالفت يا مزاحمت دې ته د تلونکو د پاره نه وي، او دا هغه مقام دی کوم ته چي الله ﷻ دعوت ورکوي، څنګه چي د الله ﷻ ارشاد دی: أَوَلَمْ يَنْظُرُوا فِي مَلَكُوتِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا خَلَقَ اللَّهُ مِنْ شَيْءٍ [الاعراف:۱۸۵] (آيا دې خلګو غور نه دی کړی د اسمانونو او ځمکي په عالم کي او دارنګه په نورو شيانو کي کوم چي الله ﷻ پيدا کړي دي) او کوم سړی چي د دې سفر څخه عاجزه سو ده ته پکار دي چي د ظاهري سفر څخه خو عاجزه نسي او هر ځای ته ولاړ سي د فائدې اخيستلو کوشش وکړي که څه هم د دې مثال داسي دی لکه څوک چي تر کعبې پوري ولاړ سي ليکن فقط د دې د ظاهري ليدلو د پاره، او د اوّل الذ کر مثال د هغه سړی دی کوم چي چيري هم ناست وي او کعبه پخپله د ده خوا ته راځي د ده طواف کوي او د خپلو رازونو او اشارو څخه دی خبروي، او په دې دواړو کي ښه فرق دی، او دا هغه راز دی کوم چي شيخ ابو سعيد رحمه الله په دې الفاظو کي بيان کړی دی چي: " تناکي د نامردانو پر پښو باندي وي او د مردانو پر کوناټو باندي " (يعني د هغو په تللو تللو پښې تناکي سي او د دوی په ناستي ناستي کوناټې) موږ د ظاهري سفر آداب بيانوو کوم چي پر دوو بابونو تقسيم سوي دي، ځکه چي د باطن بيان ډېر باريک او ګران دی دلته يې ځای نسته.

## اول باب: د سفر نیت او د دې قسمونه او ادبونه

**د سفر قسمونه:** پوه سه! چې سفر پر پنځه قسمه دی: (۱) اول قسم سفر هغه دی کوم چې د علم حاصلولو په خاطر کول کیږي، او دا سفر داسې فرض دی لکه څنګه چې علم حاصلول فرض دي، او دا سنت دی، د علم د طلب د پاره سفر کول پخپله پر درې قسمونو باندې مشتمل دی: (ا) یو دا چې د شریعت علم حاصل کړای سي، او په حدیث شریف کي دي چې کوم سړی د علم په تلاش کي د کوره ووځي د ده د تللو او راتللو دواړو طرفو ته سفر دا الله ﷻ په لاره کي وي، او فرمايي چې فرښتې د طالب علم په لاره کي خپلي وزري غوړوي، په تېرو بزرګانو کي يو بزرګ داسې هم تېر سوی دی چې صرف د يو حديث د حاصلولو په خاطر يې اوږد سفر کړی دی، او د شعبي رحمه الله وينا ده چې د شام څخه تر يمنه پوري که محض د يوې کلمې اوريدو د پاره سفر کول وي نو هم څيني منع مه کوه، ځکه چې د دين په لاره کي سُودمند(ګټمن) سوې، نو پوه سه! چې سفر ضائع نه سو، نو سفر د داسې علم د پاره کول پکار دي کوم چې دآخرت تو بنه جوړه سي او د هغه مُرده علم حاصلولو د پاره د نقصان برداشت کولو دومره ضرورت نسته کوم چې دآخرت تو بنه جوړه نه سي او دآخرت طرف ته بلنه نه کوي او د کوم په حصول چې د حرص کولو او د قناعت دعوت نه ورکوي، کوم چې د ريا کارۍ څخه خلاصون نه ورکوي د اخلاص دنيا ته بيول نه کوي، او په کوم کي چې دا تاثير نه وي چې انسان د دنيا او د دنيا د خلکو د ډيرې څخه بې نيازه نه کړي د خدای څخه د ډيرې لار نه ور وښيي.

(ب) د دې مقصد د پاره سفر کوي چې ځان وپيژني او د خپلو اخلاقو بنايسته (صحيح) کولو قابل جوړ سي چې د خپلو کمزوريانو او خاميانو علاج وکړای سي، او دا خبره په اهم ترينو کارونو کي څکه شمارل کيږي چې بنده تر څو پوري په کور کي دننه پروت وي، او د ده هر کار د ده دخوښې مطابق کيږي او دی په دې ګمان کي مبتلاوي چې زه بالکل نېک يم زما ټول کارونه ښه دي، هر کله چې د باندې ووځي او سفر اختيار کړي نو پر باطني اخلاقو باندې ټولي پردې يوه يوه پورته سي، او د داسې اخلاقو او عادتونو سره مخامخ سي چې د خپلو اخلاقو کمزورۍ بدخويي او د نفس د لاسه د بې وسی ټول رازونه ښکاره سي، نو ده ته د خپلو کمزوريانو احساس وسي، او کله چې دی وويني چې زه خو په علت کي نيول سوی يم نو بيا دی د خپلې هرې بدي علاج شروع کړي، او کوم سړي چې سفر نه وي کړی د ده څخه د مردانه ګی (نرتوب) توقع عبث ده، څنګه چې بشر حافي رحمه الله به ويل: چې اې د دين عالمانو! سفر وکړئ چې پاک سئ څکه چې که اوبه پر ځای ولاړي وي نو ګنده

کیږي.
(ج) په دې غرض سره سفر کوي چي په وچو او دریابونو، ځنګلونو او بیابانونو او ښارونو او ویرانو کي د الله ﷻ په زرګونو نمونې د قدرت پرتې دي دغه پخپلو سترګو سره ویني او بیا هر ډول مخلوقات چي حیوانات نباتات او جمادات پکښې شامل دي ویني او وپېژني چي په دوی کي هر شئ د خپل خالق او صانع په تسبیح کي مشغول دی، او پر وحدانیت یې ګواه دی او د کوم سري سترګي چي داسي خلاصي سي چي د جماداتو په خبرو پوه سي د کومو چي نه حرفونه وي او نه آوازونه او خط الهي ووایي کوم چي د ټولو موجوداتو پر مخونو لیک (لیکل سوی) دی حال دا چي دغه د عبارتونو او حرفونو په صورت کي نه دی، او بیا د دغې په مدد سره د حکمت پر مځکې شاوخو طواف وکړي ځکه چي دی مُلک السمٰوات شپه او ورځ د ځانه ځنځه چاپېره په طواف ویني او ده ته صفا ښکاره کیږي چي هر شئ خپل عجائبات د ده په مخکې بې نقابه او خپل ټول رازونه د ده په مخکې ښکاره کړي دي او په چغه چغه بانګي د الله ﷻ دا ارشاد اوري: وَكَأَيِّنْ مِنْ آيَةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يَمُرُّونَ عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُونَ [یوسف:۱۰۵](او ډېري نښې دي په اسمانونو او ځمکه کي چي دوی پر تېرېږي او د دې طرف ته هیڅ توجّه نه کوي)، بلکي که یو سړی د خپلو اندامونو او جوړونو په پیدا کولو کي غور او فکر وکړي نو خپل ځان به د تماشو او عجائباتو یو مقام وګني ټول عمر به د دې په لیدلو کي صرف کړي، خو که دی دا ظاهري سترګي بندي کړي او د باطن په سترګو ځان ته وګوري نو د قدرت عجائبات به ورته په نظر راسي.
(۲) د سفر دویم قسم هغه دي کوم چي دعبادت په غرض سره کول کیږي مثلاً د حج عمرې د پاره تلل، جهاد ته تلل، د انبیاؤ اولیاؤ صحابه کرامو تابعینو د قبرونو د زیارت د پاره تلل او نور. بلکي د دین دعالمانو او بزرګانو په خدمت کي حاضرېدل او د دوی مخونو ته کل هم د عبادت ځنځه کم نه دي او د دوی په دعاء کي لوی برکتونه وي.
(۳) دریم د هغو اسبابو ځنځه د تېښتي په وجه سفر کول کوم چي د دین د پاره د تشویش سبب وي، مثلاً د جاه او مال او د دنیا د شغلونو او نورو ځنځه د ځان ساتلو د پاره سفر اختیارول. او دا سفر د داسي سړي د پاره د فرضو حیثیت لري د کوم د پاره چي د دنیا د مشغلو سره د دین پر لاره چلېدل ګران وي چي د دین پر لاري په فراغت سره وچلېږي که څه هم دا خو ممکنه نه ده چي بنده د ژوند د ضرورتونو ځنځه بالکل فراغت حاصل کړي، بیا هم تر یو اندازي پوري خو به بوج سپک سي چي د وَقَدْ نَجَا

الْمُخَفِّفُوْنَ (کوم چي سپک بار والا سو هغه خلاصون تر لاسه کړی) مصداق جوړ به جوړ سي، که څه هم بار یې بالکل ختمیږي نه.

(۴) څلوم سفر هغه دي کوم چي د تجارت په غرض سره کول کیږي او مقصد خو د دې ظاهر دی چي د دنیا طلب وي بیا هم دا سفر مباح دی، او که نیت دا وي چي خپل ځان او خپل اهل او عیال د خلکو د محتاجی څخه محفوظ وساتي نو دا بیا په عبادت کي شامل دی لیکن مراد که ضرف د دُنیا شان او شوکت حاصلول وي نو دا سفر د شیطان په لاره کي دی بلکي دا سفر به صرف دغم او تکیف سفر وي او عمر به یې په دې کي ختم سي.

(۵) پنځم سفر هغه دي چي د سېل او منظرو او تماشو د پاره کول کیږي، او که دا کله کله او لږ لږ وکړل سي نو مباح او روا دي لیکن که د چا د کرځېدلو عادت پرېوځي او د دې څخه ما سوا بل یو کار کوي نه خو بس نوي نوي ښارونو ته د نوي نوي خلکو د لیدو د پاره ګرځي، نو په دې کي د علماؤ اختلاف دی یوه ډله وایي چي دا په زوره د ځان پریشانه کولو خبره ده او بالکل بېکاره شئ دي او نه دي کول پکار، لیکن زموږ په نزد صحیح دا ده چي دا حرام خو نه دي ځکه چي سېل او نظاره په هر حال د غرض څخه خو خالي نه وي، دا جلا خبره ده چي دغه غرض د ادنیٰ قسم وي او د هغه سړي د پاره جائز ده چي طاقت یې لري او داسي خلک پخپله هم د ادنی درجې وي او دا غرض د ده د حال سره عین مناسب وي.

## دویم باب: د مسافر ادبونه

**ظاهري ادبونه:** د سفر د شروع څخه واخله د سفر تر آخره پوري اته ادبونه دي چي خیال ساتل یې د مسافر د پاره ضروري دي؛ (۱) اول ادب دا دی چي د ظلم څخه لاس واخلي د مالکانو امانت مالکانو ته ورسوي، او د کومو خلکو نفقه چي پر ده واجب ده دغه نفقه هغو ته ورکړي، د حلال مال څخه د سفر خرڅ د پاره انتظام وکړي، او دومره مال دځان سره واخلي چي د سفر د ملګرو سره پکښې یو څه سلوک (ښه چلند) وکړای سي ځکه چي دغو ته خوراک ورکول او ښې خبري ور سره کول او د کرایه د سپرلي کوونکو سره په ښه خوی چلند کول غټ اخلاقي خصوصیات دي. (۲) دویم دا چي د سفر ملګری دي داسي منتخب کړي چي د دین په لاره کي هم د ده مددګاره وي، نبي ﷺ فرمایلي دي چي یواځې سفر نه دي کول پکار او دا یې هم فرمایلي دي چي که د سفر ملګري درې وي نو یو دي ځان ته امیر منتخب کړي ځکه چي په سفر کي مختلف واقات ارځي چي رایې پکښې مختلفي وي او کوم

کار چي په یو تن پوري ونه تړل سي هغه خرابیږي چي د دنیا نظام که د دوو خدایانو په لاس کي وای نو لازماً به خراب وای، نو داسي سړي ته امیر مقرر کول پکار دي چي نېک او د ښو اخلاقو ملګ وي، او ډېر سفرونه یې کړي وي تجربه ور ته حاصله وي. (۳) دریم ادب دا دی چي د سفر ملګرو ته دي د رخصت په وخت دا دعاء کوي: أَسْتَوْدِعُ اللهَ دِيْنَكَ وَ أَمَانَتَكَ وَخَوَاتِيْمَ أَعْمَالِكَ (زه ستا دین ستا امانت او ستا انجام الله ته حواله کووم)

او د نبي ﷺ شخه چي به څوک په سفر روانېدلو نو دا دعاء به یې ور ته کوله، زَادَكَ اللهُ التَّقْوٰى وَغَفَرَ ذَنْبَكَ وَ وَجَّهَ لَكَ الْخَيْرَ حَيْثُ مَا تَوَجَّهْتَ (الله ﷻ دي تا ته پرهیزګاري در کړي ستا ګناه دي وبخښي او کوم طرف ته چي ته مخ کوې ستا خیر دي تا ته مخامخ کیږي) دا دعاء د مقیم د طرف شخه مسافر ته کول پکار دي.

**قصه:** حضرت عمر ﷺ یوه ورځ خیرات تقسیمولو یو سړی د خپل بچي سره هلته راغلی حضرت عمر ﷺ وفرمایل سبحان الله! د دې هلک شکل او صورت څومره چي ستا سره مشابهت لري دومره ما تر ته ورځې پوري نه دي لیدلی هغه عرض وکړی چي د ده قصه هم ډېره عجیبه ده که اجازت وي نو زه به یې بیان کړم، ویې ویل چي زه په سفر تلم نو د ده مور پر ده باندي حامله وه هغې وویل چي ته ما پر دې حال باندي پرېږدې او ته ځې؟ ما وویل: أَسْتَوْدِعُ اللهَ مَا فِيْ بَطْنِكَ یعني ستا په نس کي چي دا څه دي دا زه الله ﷻ ته سپارم، چي زه واپس سوم نو مور یې مړه وه زه یو شپه ناست وم خبري مي کولې چي یو اُور مي ولیدی د لیري شخه، نو د خلکو شخه مي پوښتنه وکړه. خلکو وویل چي دا ستا د ښځې د قبر شخه رڼا راپور ته کیږي، چي هغه مړه روزانه وینو، ما وویل چي هغه خو د لمانځه روږي پابنده وه، او زه ولاړم قبر مي خلاص کړی نو ومي لیدل چي ډېوه (څراغ) بلیږي او دا بچی ور سره لوبي کوي، ما ته آواز راغلی چي فلانیه! دا بچی تا موږ ته حواله کړی وو، اوس دی واخله موږ یې تا ته حواله کوو، که تا د ده مور هم موږ ته حواله کړې وی نو اوس به هغه هم موږ تا ته حواله کړې وای.

(۴) څلورم ادب دا دی چي یو به د سفر شخه مخکي استخاره وکړي د استخارې لمونځ او دعاء د فقه په کتابونو کي مشهوره ده (هلته یې وګوره) دوېم دا چي د دباندي وتلو پر وخت به څلور رکعته لمونځ وکړي څکه چي د حضرت انس ﷺ شخه روایت دی چي یو سړی د نبي کریم ﷺ په خدمت

کي حاضر سو عرض یې وکړی چي زما د سفر اراده ده ما یوه وصیّت نامه لیکلې ده هغه پلار ته حواله کړم که زوی ته؟ او که وروړ ته؟ ویې فرمایل چي په سفر د تلونکي د پاره د الله ﷻ په نزد د هغو څلور رکعتونو څخه غوره خلیفه نسته کوم چي دی د روانېدلو په وخت کي وې چي د سفر سامان وتړي نو دغه لمونځ دې وکړي او په دې کي د سورت فاتحې او قل هو الله سره سره دا دعاء ووایي: اَللّٰهُمَّ اِنِّیۡ اَتَقَرَّبُ بِهِنَّ اِلَیۡکَ فَاخۡلُفۡنِیۡ بِهِنَّ فِیۡ اَهۡلِیۡ وَمَالِیۡ (زه د دې رکعتونو په ذریعه یا الله ﷻ ستا قرب حاصلوم یا الله نو دا زما خلیفه ګڼل کړه زما په اهل او مال کي) نو دغه خلیفه جوړ سي د ده په اهل او مال کي تر هغه وخته پوري چي دی واپس نه وي راغلای.

(۵) پنځم ادب دا دی چي کله د کور د دروازې څخه د باندي قدم کیښېږدي نو دا دعاء دي ووایي: وَبِاللّٰهِ تَوَکَّلۡتُ عَلَی اللّٰهِ لَاحَوۡلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ رَبِّ اَعُوۡذُ بِکَ اَنۡ اَضِلَّ اَوۡ اُضَلَّ اَوۡ اَظۡلِمَ اَوۡ اُظۡلَمَ اَوۡ اَجۡهَلَ اَوۡ یُجۡهَلَ عَلَیَّ (د الله په نامه سره شروع کووم او د هغه پر ذات بروسه کوم د هغه څخه ماسوا هیڅ څوک د طاقت او قوّت مالک نسته، ای زما ربه زه ستا پناه غواړم د دې څخه چي زه ګمراه سم یا ګمراه کړای سم یا زه پر چا ظلم وکړم یا څوک پر ما ظلم وکړي یا زه د جهالت کار وکړم یا زما سره جهالت وسي) او چي پر سپرلي (سورلي) سپرېږي نو دا دعاء دي ووایي: سُبۡحَانَ الَّذِیۡ سَخَّرَ لَنَا هٰذَا وَمَا کُنَّا لَهٗ مُقۡرِنِیۡنَ وَاِنَّا اِلٰی رَبِّنَا لَمُنۡقَلِبُوۡنَ (پاکي ده هغه ذات لره کوم چي زموږ د پاره یې دا سپرلی مسخره او تابع کړه موږ د ځانه پر دې قادر نه وو یقیناً موږ د خپل پروردګار وطرف ته واپس کېدونکي یو).

(۶) شپږم ادب دادی چي د جمعرات په سهار دې د سفر کوشش کوي چي نبي کریم ﷺ به داسي کول. حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمایي چي د سفر ارداه کوونکي ته پکار دي چي سهار وختي سفر کوي، نبي کریم ﷺ دعاء فرمایلې ده: اَللّٰهُمَّ بَارِکۡ لِاُمَّتِیۡ فِیۡ بُکُوۡرِهَا یَوۡمَ السَّبۡتِ (یا الله زما امت ته د شنبې د ورځو په سهار کي برکت واچوې) او دا دعاء یې هم غوښتلې ده چي په هغه کي د یوم السبت پر ځای یوم الخمیس دي یعني د جمعرات (پنجشنبې) ورځ، نو ګویا د دې دواړو ورځو سهار وختي مبارک سو.

(۷) اووم ادب دا دی چي پر څاروي دې بوج کم اچوي د ده پر شا دي دربېږي نه، او د بیده کېدلو څخه دې ځان ساتي پر مخ دي څاروی نه وهي او سهار ماښام دي یو وخت پیاده هم ځي چي بدن یې هم

تازه وي او سپرلي ته هم یو کړی آرام ملاؤ سي، دغه ډول د سپرلي مالک به هم خوشحاله وي، مشرانو به پر دې شرط سپرلي اخیستله چې نه به ځیني کښته کیږي. بیا به هم کښته کیدله، چې دا کښته کیدل د ځاروي د پاره صدقه سي، که یې کوم ځاروی بغیر د یو وجهې ځغځه ووهلو یا یې درونډ بوج (بار) پر کښېښولو نو د قیامت په ورځ به ور سره جنګ کوي، د حضرت ابو الدرداء اوښ مړ سو نو دوی وفرمایل چې اې اوښه! الله ﷻ ته به زما شکایت نه کوې ځکه چې ته پوه یې چې ما ستا د طاقت ځخه زیات بوج پر تاه نه دي اچولی، دارنګه دا ضروري ده چې د بوج او بار د مقدار ځخه د ځاروي مالک خبر کړي چې د هغه رضا ور سره شامله سي او د معاهدې ځخه زیات سامان دې نه پر باروي، حضرت ابن مبارک ﷺ پر اوښ باندې سپور وو چا ورته یو خط ورکړی چې دا به فلاني ته ورکړې هغه معذرت ښکاره کړی چې ما د اوښ دمالک سره دا شرط نه دی تړلی حال دا چې د دې خو هیڅ وزن نه وو، لیکن د تقوی په اعتبار سره دا غټه خبره وه، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي: چې نبي کریم ﷺ به کله سفر ته تشریف وړلو نو پنځ، هینداره، مسواک او رانجه به یې د ځان سره وړل په یو روایت کي ناخن ګر (ناخنکاټ) هم یکښې شامل دی، او صوفیانو د رسی او سلواغې اضافه هم ور سره کړې ده، د تېرو مشرانو دا عادت نه وو چې چیري به تلل نو په تیمم به یې اکتفا کوله او محض د ښار ځخه به یې استنجاء کوله او کومې اوبه چې به یې پاکي ګڼلې په هغه به یې اودس کولو، چې د تېرو مشرانو دا عادت نه وو لیکن د دې خلکو په حق کي دا غوره ده چې داسې سفر نه کوي، احتیاط غوره دی، د تېرو خلکو سفر به د جهاد او نور غټو کارونو د پاره وو او هغوی په داسې احتیاطونو کي نه پرېوتل.

(۸) اتم ادب دا دی چې نبي کریم ﷺ به د سفر ځخه واپس تشریف راوړوی او پر مدینه منوره به یې نظر پرېوتی فرمایل به یې: اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ لَنَا بِهَا قَرَارًا وَرِزْقًا حَسَنًا (یا الله ته دا زموږ د پاره ښه د قرار ځای جوړ کړه او د پاک رزق ذریعه). بیا به یې ځوک د خبرولو د پاره ولېږلو، دوی به د دې خبرې ځخه منع کوله چې ځوک ناڅا په کور ته راسي، یو وار دوو تنو د حکم نافرماني وکړه نو پخپلو کورونو کي یې داسې حالت ولیدی چې د دوی د خفګان باعث سو، د سفر ځخه په واپسی به د دوی ﷺ عادت په مسجد کي د دوو رکعتو د لمانځه وو، او چې کور ته به یې تشریف وړوی نو فرمایل به یې: تَوْبًا تَوْبًا لِرَبِّنَا أَوْبًا لَا يُغَادِرُ عَلَيْنَا حَوْبًا (زه خپل کور ته د الله ﷻ په حضور کي توبه کوونکي راغلم ما داسې توبه وکړه کومه چې یوه ګناه باقي نه پاته کوي) د کورني (کور والاوو) د پاره تحفې

سنت مؤکده دي په حدیث کې دي چې که د سړي سره څه نه وي نو یوه ډبره دې په تېلۍ کې واچوي.

**د سفر باطني ادبونه:** د دې قسم خلک چې تر څو پورې په دې پوه نه وي چې د دوی د دین د ترقی مدا به سفر کې دی تر هغه وخته دې سفر نه کوي، او د سفر په وخت کې چې کله یو نقصان ووینې واپس ... ي سي، د دوی نیت داسې پکار دي چې کوم ښار ته ځي د نېکو او صالحو خلکو پر قبرونو به حاضري ورکوي د خدایي خلکو تلاش به کوي ملاقات به ور سره کوي او د هر یو شخصه به استفاده ... د اهلُ الله (خدایي خلکو) د تلاش مقصدا دا نه دی چې د خلکو په مخکې به د دې بنلوره (اوازه) کوي بلکې مقصد به دا وي چې داهلُ الله سره ملاو سي د دوی عادت (نقش قدم) خپل کړي، دا بول خلک په یو ښار کې زیاتې ورځې نه پاته کېږي، او که د یو نېک سړي سره ملاقات کول مقصود وي، یا دغسې د یو ورور سره د ملاقات پر تلونکي بانلې لازم دي چې د درې ورځو څخه دې زیات نه پاته کېږي ځکه چې د میلمستیا آخري حد دا دی، او که د کور خاوند (میزبان) پر زیاتو پاته کېدو اصرار (ټینګار) کوي نو بله خبره ده. او که د یو بزرګ خوا ته محض د زیارت د پاره ولاړ سي نو د یوې ورځې او شپې څخه دې زیات نه پاته کېږي، که د یو چا سره د ملاوېدو د پاره ولاړ سي نو دروازه دې نه ټکوي د یو چا د بناندې راوتلو انتظار دې کوي، او تر څو چې د ده سره ملاقات ونسي په بل کار کې دې نه مشغولیږي، د خپل طرف څخه دې سلام کلام نه شروع کوي، د څومره خبرې چې کوربه(د کور خاوند) پوښتنه کوي د هغې څخه زیاته دې نه وایي او که د ده څخه یو خبره معلومول غواړي نو اول دې اجازت طلب کړي، بل ځای ته تلل په عیش عشرت کې مشغولیدل نه دي پکار چې په دې سره به خلوص متأثره سي پر لارې دي د الله جل جلاله تسبیح او د هغه په یاد کې مشغول ووسي، یا دې په پټه قرآن شریف وایي، چې څوک ور سره خبره کوي نو تسبیح دې بندوي هغه ته دې جواب ورکوي، کوم شئ چې زړه غواړي او دغه په وطن کې وي، نو د سفر څخه دې ځان ساتې کنې په کفران نعمت کې به راسي.

## دویم باب: د سفر سره اړوند مسئلې

پر سفر کوونکي لازم دي چې شارع ﷺ د سفر سره اړوند په کوموکارونو کې اجازت او رخصت ورکړی دی، هغه په ښه شان سره لزده کړي که د هغه کارونو سره یې څه مقصد نه وي هم ازده کول یې ضروري دي، ممکنه ده چې څه وخت ور ته ضرورت پېښ سي په سفر کې د قبلې او د لمانځه د

وخت تفصیلات پېژندل ضروري دي، تر څو پوري چې داودس تعلق دی نو په سفر کې په دې کې دوه اجازتونه دي یو خو پر موزو مسح کول دویم تیمم، دغه ډول په لمانځه کې هم دوه رخصتونه دي یو قصر کول بل جمع بین الصلوتین کول، تر څو پرې چې د نفل لمانځه تعلق دی نو د دغه خو په سفر کې پر سپرلي او پیاده تللو سره هم د کولو اجازت سته، پاته سوه روژه نو په دې کې د افطار رخصت دی داسې ټول اووه قسمه رخصتونه دي.

د اول قسم رخصت تعلق د موزو د مسح سره دی کوم مسافر چې د مکمل اودس څخه وروسته موزې اغوستي وي، نو تر درې شپو او ورځو پوري پر موزو مسح کولای سي، او د مقیم په حالت کې د یوې شپې ورځې اجازت دی، او د مسح خپل پنځه شرطونه دي اول دا چې موزې په مکمل اودس واغوندي که یو سړی د یوې پښې د پرېولو څخه وروسته یوه موزه په پښو کړه او بله پښه یې بیا وروسته پرېوله نو دامام شافعي د مذهب مطابق د مسح اجازت نسته، تر هغه وخته پوري چې د مکمل اودس څخه وروسته موزې په پښو نه کړي، دویم شرط دا دی چې موزه داسې پکار ده چې په پښو یې کړي نو د لرغوندي تللو عادت وي یعني گنجایش ور سره د پیاده تللو وي، د چمړې موزې که نه وي نو مسح نه ده پر صحیح، دریم شرط دا دی چې د څومره مقدار پښو پرېول فرض دي دومره مقدار پښه پکښې پټه وي، که په دومره مقدار کې لږ سوری وو یا پښه ښکاره کېدله نو د امام شافعي رحمه الله په نزد مسح صحیح نه ده (د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد د دې مقدار درې خچنې گوتې دی) د امام مالک په نزد چې د شیرې موزې سره تګ کېدای سو مسح پر صحیح ده، د امام شافعي رحمه الله څخه دا قول منقول دی، او زموږ په نزد دا زیاته غوره ده څکه چې په لاره کې اکثره موزې شیرېږي او هر وخت د دې گنډل ممکنه نه وي، څلورم شرط دا دی چې مسح یې وکړه نو موزه به نه کاږي کله چې یې وکښله نو د نوي سره به اودس کوي، او که صرف په پښو پرېولو یې اکتفاوکړه نو صحیح ده، پنځم شرط دا دی چې مسح به پر پنډی نه کوي بلکې د پښو پر شا به مسح کوي گویا چې په یوه گوته مسح صحیح ده خو زیات غوره په درې گوتو ده، (د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد په درې گوتو لازمه ده) مسح یو وار کول پکار دي بار بار نه، که یو چا د سفر د لودې څخه مخکې مسح شروع کړه نو په یوه شپه ورځ به اکتفا کوي، د موزو د اغوستلو څخه اول د دې څنډل پکار دي، یو وار نبي کریم ﷺ موزې په پښو کولې، یوه یې په پښو کړه بله یې پورته کړه او بیا یې کښته وڅنډله، نو مار څیني راووتلو نو دوی وفرمایل چې کوم سړی په الله ﷻ او ورځ د قیامت ایمان لري ده ته وواياست چې موزې بغیر د څنډولو څخه نه په پښو کوي.

په سفر کي دویم رخصت د تیمّم متعلق دی، د اوداسه په باب کي د دې بیان سته، دلته د دې بیانولو ضرورت نسته، دریم رخصت د لماتځه متعلق دي چي کوم فرض لمونځ څلور رکعته دي هغه به دوه رکعته کوي، لیکن د څلورو شرطونو خیال به ساتي: یو دا چي که وقتي (د خپل وخت) لمونځ ادا کوي نو قصر به کوي او که قضائي کوي نو پوره به یې کوي (د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد د قصر قضا هم قصر دی) دویم دا چي د قصر نیت به کوي که د پوره نیت یې وکړی یا یې شک سو چي د پوره نیت مي کړی دي او که د قصر نو پوره به کوي (لیکن د احنافو په نزد پوره لمونځ کول ګناه ده) دریم شرط دا دی چي که یې د مقیم اقتداء یې کوله نو پوره لمونځ به کوي که ګمان یې د امام د مقیم کېدلو وو هم به پوره لمونځ کوي او که یقین یې وو چي امام هم مسافر دی بیا به قصر کوي، ځکه چي دنیت معامله پټه ده، ښکاره نه ده.

څلورم شرط دا دی چي شرعي سفر[1] وي او مباح وي، کوم غلام مینځه چي تښتي یا هغه سړی چي د غلا، ډاکه زني (لاري شکولو) د پاره ځي یا د حرام مال د پاره تلونکي وي یا د مور او پلار د اجازت څخه بغیر تلونکي وي دا ټول حرام سفرونه دي په دې کي رخصت صحیح نه دی، دغه ډول هغه سړی کوم چي د قرض خواه (قرض غوښتونکي) څخه تښتي سره د دې چي د قرض د ادا کولو طاقت یې وي ده ته رخصت نسته، د شرعي سفر څخه مراد شپاړس فرسخه یعني اته څلوېښت میله دي چي د دې څخه په کم کي رخصت نسته. (د احنافو په نزد سفر که د تګه وي او که د ثواب رخصت او قصر پکښې سته) د سفر ابتداء هلته کیږي چي سړی د ښار د آبادۍ څخه ووځی، د باغونو او نورو اعتبار پکښې نسته، په دې کي د آبادۍ اعتبار دی، او د سفرانتها دا ده چي د خپل ښار ابادۍ ته واپس راسي، یا بل داسي کلي ته ورسي چي د درې ورځو د اقامت اراده پکښې وي (د احنافو په نزد پنځلس ورځي دي) که چا د پاته کېدلو اراده نه وه کړې او په کارونو کي مښتی وو او هره ورځ یې دا اراده وه چي نن به فارغ سم نو د صحیح قول مطابق به قصر کوي ځکه چي دی مسافر دی چي ده اراده د پاته کېدلو نه ده کړې، مجبوري جلا شئ ده.

(۴) څلورم رخصت د جمع بین الصلوٰتین سره متعلق دی چي سفر شرعي او مباح وي نو دا خبره صحیح ده چي بنده د ماپښین لمونځ وروسته کړي او د ماځیګر لمونځ په اول وخت کي وکړي یا د ماځیګر لمونځ رامخکي کړي د ماپښین د لماتځه سره یې وکړي دماښام او ماخوستن د لماتځه هم دا

---

[1] د احنافو په نزد شرعي سفر ۴۸ میله او ۸ فرلانګه وي.

حکم دی، د ماپښین او ماښیګر لمونځونه که یو ځای کوي نو اول به د ماپښین لمونځ وکړي بیا د ماښیګر، سنت که ور سره هم وکړي نو غوره دي چې دبرکت څخه یې محرومه نسي، او که غواړي نو سنت پر سپرلي دځاروي پر شا هم کولای سي او په پیاده تللو کي یې هم کولای سي.
(٥) پنځم رخصت دا دی چې سنت او نفل د سپرتیا په حالت کي دځاروي پر شا صحیح دي او که قبلې ته مخ نه وي هم خیر دی، لېکن که سپرلي مخ پر قبله روانه وه نو په مخ بدلولو سره به یې لومنځ فاسد سي، هو! که په هېره یې د سپرلي مخ را واګرځولو، یا ځاروي په ځغ (وابنه خوړلو اخته) سو نو بیا څه حرج (خبره) نسته، رکوع او سجده به په دې صورت کي په اشاره سره کوي په رکوع کي به ملا لږ کښېته کوي او په سجده کي زیاته.
(٦) شپږم رخصت دا دی چې په پیاده تللو کي هم سنت او نوافل اداء کولای سي، د تکبیر تحریمه په وخت کي مخ پر قبله کېدل ضروري دي، او د سپرلي په صورت کي داسي ضروري نه دي، ځکه چې په پیاده تللو کي داسي کول آسانه دي او په سپرتیا کي مشکل دي، رکوع او سجده به په اشاره سره کوي او التحیات به په روانه کي وایي، دا احتیاط دي کوي چې پښې یې پر نجاست ونه لګېږي، که نجاست په لاره کي وو نو بیا تکلف او سختی ته ضروروت نسته، کوم سړی چې د دښمن په مقابله کي وي یا د جنګ په میدان کي وي یا د سیلاب او ښرمښ څخه په بېړه کي وي نو که هغه د ځاروي پر شا یا په پیاده تلو کي که فرض لمونځ ادا کړي نو خیر دي.
(٧) اووم رخصت د روژې سره متعلق دی کوم سړی چې په سفر کي وي او د روژې نیت یې کړی وي دده د پاره اجازت دی چې روژه ماته کړي که د سهار څخه وروسته د ښار څخه ووتی نو بیا یې ماتول صحیح نه دي، که مسافرروژه ماته کړه یو ښار ته داخل سو نو دورځې به ورته د خواراک اجازت وي او که روژه یې وه او ښار ته ورسېدی نو بیا به یې نه ماتوي، د پوره لمانځه څخه قصر غوره دي چې د اختلاف په شُبه کي پرې نه وځي ځکه چې دا مام ابو حنیفه رحمه الله په نزد خو د پوره لمونځ کول صحیح نه دي لېکن د افطار څخه روژه غوره ده چې د قضا د مشقت څخه خوندي سي، لېکن کلهٔ چې د روژې طاقت یې نه وي نو بیا ورته افطار غوره دی، په دې اوو رخصتونو کي د دریو یعني قصر، افطار، او پر موزو د مسح تعلق د شرعي سفر سره دی، او درې رخصتونه په لږ سفر کي هم جائز دي یعني د ځاروي پر شا او پیاده تللو کي سنت او نفل کول، د جمعې لمونځ نه کول او تیمم د ضرورت په وخت کي،او تر څو پوري چې د جمع بین الصلوتین تعلق دی په دې کي اختلاف دی زیاته صحیح خبره دا ده چې په کم سفر کي دي داسي نه کوي.

هر کله چي په سفر کي د چا څخه مسائل لزده کولای سي نو بیا صحیح ده کنې د سفر څخه اول لزده کول پکار دي، په لاره کي که داسي کلی (محله) نه وو چي د مسجد او محراب معلومات کېدل پکښي مشکل وو، نو د مخکي څخه دقبلې دپېژندلو او لمانځه د وختونو پېژندلو علم ضروري دي چي د ماپښېن په وخت کي لمر پر کوم ځای وي د لمر پرېوتو او ختلو د وخت کوم حالت وي، قطب کوم طرف ته وي او که په لاره کي غرونه نو دا پېژندل چي دقبلې راسته طرف ته دی که چپه ته ضروري دي.

## اتم اصل: د سماع او وَجْد ادبونه او د سماع حکم

په دې ضمن کي چي کوم مسائل دي دغه به انشاء الله په دوو بابونو کي بیانول کېږي، اول باب د سماع د مباح کېدلو په بیان کي دی، او دارنګه په دې کي به دا ذکر وي چي کوم شئ پکښي حلال او کوم حرام دی، دویم باب د سماع متعلق په آثارو او ادبونو کي دی.

## اول باب: د سماع مباحوالی او په دې کي حلال او حرام

پوه سه! چي د الله ﷻ یو راز دی کوم چي د بنده په زړه کي داسي پټ دي لکه څنګه چي په اوسپنه او ډبره کي اُور پټ دی، نو لکه څنګه چي په ډبره باندي د اوسپني ګذار کیږي هغه پټ اُور ښکاره کیږي او په صحرا کي خورېږي، دغه ډول ښه او مناسب آواز په هر زړه کي حرکت پیدا کوي، او په ده کي یو کیفیت ښکاره کیږي کوم چي بالکل بې اختیاره او بنده ته پر دې څه اختیار نه وي، او د هغه مناسبت په سبب سره کوم چي په هر بنده کي د عَالَمِ عُلوی سره وي کوم ته چي عالَمِ ارواح وایي (دا کیفیت په ښکاره کي راځي) چي عالم علوي (په حقیقت کي) عالَم حُسن او جمال دی، او حُسن او ښایست نوم دی د تناسب او موزونیت، او هر هغه شئ کوم چي په صفت د تناسب سره مزیّن وي په هغه کي د دې عالَم جمال څرک وي ځکه چي په دې دنیا کي چي کوم حسن او تناسب دی هغه د دې عالم د حسن او جمال ثمره وي، نو ښه او مناسب آواز هم د دغه عَالَم د عجائبآتو سره مشابهت لري او په د ې سبب سره په زړه کي د حرکت پیدا کولو او شوق او اشتیاق ذریعه جوړېږي، دا خبره په هغه زړه کي پیدا کیږي کوم چي ساده وي او دعشق او شوق څخه خالي وي لیکن که زړه خالي نه وي او د یو شئ سره مشغول وي نو د کوم شئ سره چي مشغول وي په ښه آواز اوریدلو سره هغه شئ دغسي په حرکت کي راځي څنګه چي په پُوکولو سره اُور تازه کیږي په کوم زړه کي چي د عشق الهي اُور

وي د هغه د پاره سماع ضروري ده، چي دغه اُورزيات تازه سي او کوم زړه چي د غلط بول محبت ښکارو وي د ده د پاره سماع حرامه او زهرِ قاتل دى؛

په دې کي اختلاف دى چي سماع حلاله ده او که حرامه؟ کومو عالمانو چي ورته حرام ويلي دي چي دغه د اهلِ ظاهر سره تعلق لري ځکه چي دوى ته دا راز لا تر اوسه نه دى ښکاره سوى چي د الله ﷻ محبت د بندہ په زړه کي نزول فرمايي، د دوى خيال دا دى چي د بنده دوستي د خپل هم جنس سره کيږي کوم شئ چي د ده د جنس څخه نه وي او نه يو شئ د ده په بول وي د هغه ره دبنده دوستي به څنګه وسي؟ د داسي علماؤ په نزد د مخلوق د عشق څخه ماسوا د عشق بل هيڅ صورت ممکن نه دى، که د الله ﷻ عشق په زړه کي ځاى هم وکړي نو د خيالاتو په سبب د دوى په نزد به دغه باطل وي، په دې وجه دوى وايي چي سماع يا خو بازي دي يا د مخلوق د عشق په وجه سره دي، او دا دواړه خبري په ديني اعتبار سره مذمومي دي، او کله چي د دوى څخه پوښتنه وسي چي د الله محبت او دوستي کومه چي پر مخلوق لازمه ده د دغي څه مطلب دى؟ نو دوى وايي چي د دې مطلب عبادت او فرمان برداري ده د دې خلکو دا يوه زبردسته (غټه) غلطي او ناپوهي ده، د منجياتو په بحث کي به موږ د دې ذکر وکړو، بيا هم دلته دا خبره ضرور ښيوو چي د سماع متعلق فتوىٰ د خپل زړه څخه اخيستل پکار دي، ځکه چي کوم شئ په زړه کي نه وي سماع هغه نسي راپيدا کولاى بلکي سماع خو هغه شئ په حرکت کي راولي کوم چي په زړه کي وي نو د کوم سړي په زړه کي چي داسي شئ وي کوم چي شرعًا ښه وي او د ده قوي کېدل يې مطلوب وي نو کله چي سماع دا قوي کوي نو اورېدونکي ته به لازمًا ثواب ملاوېږي، او د کوم په زړه کي چي هغه شئ وي چي شرعًا مذموم اوبد وي نو اورېدونکي ته به عذاب وي، او کوم زړه چي د دواړو څخه خالي وي او محض د لوبو او تماشو په توګه يې اوري او صرف طبعي لذت (خوند) حاصلوي نو د ده د پاره سماع مباح ده.

**فصل:** دلته د سماع د مباح کېدلو چي کوم ذکر راغلى د دې هم پنځه اسباب داسي دي د کومو د خيال نه ساتلو په سبب چي دغه حراميږي د دغو اسبابو تفصيل دا دى:

**اول سبب** خو دا دى چي سماع د ښځي يا بې ږيري هلک څخه اوري ځکه چي دا دواړه د شهوت باعث وي نو سماع به حرامه وي که څه هم د اورېدونکي زړه د الله ﷻ په ياد کي مستغرق وي ځکه چي شهوت او جذبات فطري شيان دي او څنګه چي ښه صورت په نظر راسي شيطان متحرک کيږي، او سماع د شهوت او حيواني جذباتو تابع سي، لېکن داسي بې ږيري هلک چي د شهوت سبب نه وي د

ده شخه به سماع مباحه وي، لیکن ښځه که بد شکله هم وي خو سماع به یې مباح نه وي، ځکه چې
ښځه که هر څنګه ولې نه وي دې ته کتل حرام دي. لیکن که د پردې شخه هاخوا یې اوري او په دې
کې هم د عشق او زنا بېره وي نو حرامه به وي کنې مباح، د دې دلیل دا دی چې د ام المؤمنین حضرت
عائشې رضي الله عنها په کور کې دوې مینځې وې چې د هغو آواز به نبي کریم ﷺ اورېدو. ځکه چې د
مینځو آواز عورت نه دی لکه د مینځو مخ چې عورت نه دی یعني لکه څنګه چې پر مینځو خپل مخ
پټول فرض نه دي او خلګو لره دې ته کتل حرام نه دي دغه ډول د مینځو خپل آواز بند ساتل فرض نه
دي او د خلګو د پاره د دوی آواز حرام نه دي، لیکن مینځو ته د شهوت په نظر سره کتل د لواطت د
فتنې په بېره سره حرام دی دغه ډول د ښځې آواز د فتنې د عشق او د زنا په سبب حرام دی د دې حکم
تعلق د حالاتو سره دی ځکه چې بعضې خلګ خو د خپل ذات په معامله کې مطمئن او په امن وي او
د بعضو حال داسې نه وي، دا داسې خبره ده لکه په روژه کې خپله ښځه مچول چې د دې هغه چا ته ا
جازت دی کوم چې د شهوت شخه مطمئن وي، لیکن چا ته چې د مباشرت کولو خطره وي د ده د پاره
حرام دي یا که محض په مچولو سره د انزال خطر وه، بیا منع دی.

**دویم سبب** دا دی چې د سرود (سروز) سره رباب، باجه او عراقي شپیلی وي دا ټول آلات مزامیر دي
په دې وجه د دې شخه منع سوې ده، د دې سبب دا نه دی چې دا خوش نظره او مناسب سازونه دي
ځکه چې آلات د مزامیر که خوش نظره او مناسب نه وي بیا هم منع دي او حرام دي د دې یو سبب دا
هم دی چې د شراب خورو په عادت کې شامل دي او د دوی طبیعت ته په کتنې سره دا حرام مقرر
سوي دي ځکه چې دا شراب رایادوی او د ترغیب ذریعه یې جوړېږي او تر کومه چې د نغارې (ډول)
شاهین او دُف (تنبل) تعلق دی دغه حرام نه دي ځکه چې د دې متعلق یو حکم نه دی راغلی او نه دا د
شرا بیانو شعار دی بلکې دف (تنبل) خو د نبي کریم ﷺ په مخکې خلګو غږولی دی او په
خوشحالی، واده او نورو کې یې د دې اجازت ورکړی دی نو په دف کې د جلاجل (پازیب) په
زیاتولو سره دغه حرامیږي نه، او د حاجیانو او غازیانو نغاره (ډول) غږول پر خپل ځای یو رسم دی
لیکن د مخنثانو (نرښځیانو) ډمامې وهل حرام دي چې دا د دوی شعار دی دا ډمامې اوږدې وي مینځ
یې نری وي او د اطرافو شخه پټې وي او تر کومه پورې چې د شاهین تعلق دي دغه که هر شان وي
حرام نه دي (یعني شپلی) ځکه چې دا د شپنو عادت وه، موجوده بانسری په قول د امام شافعي
رحمه الله د دې د حلالېدو دا دلیل ورکوي چې د دې آواز د نبي کریم ﷺ په غوږ کې پرېوتی نو دوی په
غوږونو کې ګوتې کېښودې لیکن حضرت عمر رضي الله عنه ته یې وفرمایل چې ته ورته غوږ کېښېږده او

کله چي آواز بند سي نو ماته ووایه، یو صحابي ته اجازت ورکول د دې د مباح کېدو دلیل دی، او تر څو پوري چي د دوی ﷺ تعلق دي چي دوی په خوږوونو کي ګوتي کېښودې نو اندازه داسي معلومیږي چي دغه وخت به دوی په یو اهم حالت کي وو او د دوی دا خیال سو چي دا آواز به ما د دې حالت څخه منع کړي، په دې وجه د حضرت حق (د الله) محبت او شوق په حرکت کي په راوستلو کي سماع لره ښه دخل دی ځکه چي دخدای څخه لیري خلک نژدې کړای سي او دا خبره د هغه بې چاره وو په حق کي لویه اثر کوونکې ده کوم چي د دې حال څخه محرومه دي، لېکن کوم سړی چي وي عین په حالت د استغراق کي او هر وخت په یادِ الهي کي ورک وي نو ممکنه ده چي سماع د ده پاره مانع وي او د ده په حق کي د نقصان ذریعه جوړه سي، ځکه چي شاهین نه اوریدل د دې د حرمت دلیل نه دی بلکي د دوی ﷺ معامله د دوی د هغه کیفیتونو او حالاتو څخه ده کوم ته چي دنورو رسېدل نسته.

**دریم سبب** دا دی چي په سروز (سرود) کي فحش ګویي یا هجوه (بکواس) وي، یا دین په معامله کي طعن، لکه د صحابه ورضی الله عنهم متعلق د رافضیانو اشعار، یا د یوې معروفي ښځي تعریف چي د سړو په مخکي د دې اجازت نسته، او د داسي اشعارو ویل او اوریدل حرام دي، لېکن داسي اشعار په کومو کي چي د زلفو خالونو او صورت او جمال تعریف وي او د وصال او فراق ذکر وي لکه چي د عاشقانو عادت وي نو د داسي اشعارو ویل او اوریدل حرم نه دي، هو! که چیرته د رندی (دهلمه ښځي) یا پردی ښځي په دې کي خیال وي نو بیا به حرام وي، لېکن که رجحان یې د خپلي ښځي طرف ته وي نو بیا صحیح دي، صوفیان او داسي خلک کوم چي د الله په محبت کي مستغرق وي او په دې سلسله کي سماع کوي د دوی د پاره داسي اشعار د نقصان موجب نه دي ځکه چي دا خلک د هر لفظ څخه د خپل ذوق مطابق مفهوم او معاني مراد اخلي، ممکنه ده چي دوی د زلفو څخه د کفر تیاره او د مخ د ځلا څخه د ایمان نور مراد اخلي، او دا هم کېدای سي چي د زلفو څخه د دوی مراد هغه اشکالات (اعتراضات) وي د کومو تعلق چي د حضرتِ حق سره وي لکه چي یو شاعر وایي:

گفتم بشمارم سر یک حلقۀ زلفش | تا بو که بتفصیل سبر جمله برآرم
خندید بمن بر سر زلفینک مشکین | یک پیچ بپیچید وغلط کرد شمارم

(ماوویل چي د مشعوقي د زلفو ګونه به شمار کړم چي د زلفو د ګونو تفصیل راته معلوم سي چي څومره دي خو ویې خندل او مشکینو زلفو ته یې یو بل وکړ ورکړی زما ټول شمار یې راغلط کړی) اوس دلته کېدای

سي چي صوفیان د زلفو څخه سلسله د مشکلاتو مراد اخلي او د دې مفهوم دا مقرر کوي چي که څوک د عقل په مدد سره وغواړي چي د الله ﷻ دعجائباتو څخه د يو وړينته اندازه ځان خبر کړي نو په يوه څوته راټلو سره به ټول شمار غلط سي، (يعني چي يو معمولي مشکل ورته را مخکي سي هر څه به ځيني هېر کړي) او ټول عقلونه به بېکاره او بې هو بنه سي (او هيڅ به يې په خيال کي رانسي) او که په شعر کي د شرابو مضمون وي نو هم يې دوی په ظاهري مضمون پسې نه ځي او د خپل حال مطابق معنی ځيني مراد اخلي، مثلاً شاعر که ووايي چي:

گر می در هزار رطل بر پیمائی  تا می نه خوری نبا شدت شیدائی

(که په زرگونو پيالې د شرابو پيمانه کوې آروې را اړوې يې، نو په دې هيڅ نه کيږي تر دې چي شراب ونه چښې نشه به نشي) د دې څخه دا مراد اخلي چي محض په خبرو او تعليم سره د دين کار صحيح کيږي نه بلکي په دې کي ذوق او شوق غواړي، ځکه چي د عشق او محبت، زهد او توکل که په زرگونو قصې بيان کړې کتابونه وليکې خو هيڅ فائده به ځيني نه وي تر څو پوري چي يې عملاً خپل نه کړې، چي د خرابات متعلق اشعار مخي ته راسي نو يو بل مراد ځيني اخلي، لکه دا شعر:

هر که بخرابات نشد بیدین است  زیراکه خرابات اصول دین است

د دې خرابات څخه خرابي د اخلاقو مراد اخلي، چي د دين اصول دا دی چي دبداخلاقی کوم صفت په انسان کي موجود دی دا خراب سي او د دې پر ځای د خوش اخلاقی صفت پيدا سي.

دصوفيانو د فهم د تفصيل قصه اوږده ده ځکه چي د هر چا پوهه د خپل نظر موافق وي دلته چي دا دومره څه بيان سول دا ځکه چي داهلِ بدعت او جاهلانو يوه ډله پر صوفيانو باندي لعن طعن (لعنت او پېغور) ځکه کوي چي دوی د صنم (بت)، زلفو، خالونو او مستی او شرابو د مضامينو اشعار وايي او اوري کوم چي حرام دي او په دې وړنا سره دا ګڼي چي دا څه چي دوی وايي دا صرف طعن نه بلکي يو زبردست حجت هم دی حال دا دی چي دا منکرين د صوفيانو دحالاتو څخه نا خبره دي، بلکي دا هم عينِ ممکنه ده چي د دوی په سماع سره بې خوده کېدل د اشعارو د معنی په وجه نه وي فقط د آواز په و جه سره وي، چي د شپېلی آواز څه معنی نه لري بلکي په سماع کي شامل دي، داوجه ده چي ځيني خلک نه په عربي پوهيږي نه د عربي په اشعارو، په وجد کي ارځي او دا جاهلان پوري خاندي چي په خبره پوهيږي نه نو په وجد کي څنګه راځي، او دې د عقل ړندو ته معلومه نه وي چي

اوبلن کله د عربي ژبې فاضل دی چې د عربي اشعار (حدي) اوري نو درونه بوج پورته کوي او تېز تېز ځي او په حالت د وجد او سماع کې داسې طاقت پکښې پیدا سي چې د بوج احساس ورته هم نه وي او تر دې چې منزل ته ورسېږي او کله چې اشعار (حدي) ختمه سي نو دا بې چاره سُست سي او کله خو مړ هم سي، نو بیا دې جاهلانو ته دې څوک ووایي چې ورسئ! او د دغو اوښانو سره بحث او مناظره وکړئ چې تاسو ته خو عربي نه درځي نو په کومه خوشحالی کې دا حرکت کوئ؟ او کېدای سي چې صوفیان د عربي اشعارو څخه هم هغه مفهوم مراد کوي کوم چې د دغه اصل مفهوم په ظاهري توګه سره نه وي، بلکي د خپل خیال او احوال مطابق مفهوم مراد ځیني اخلي ځکه چې دد وی کار د اشعارو تشریح کول خو نه وي، لکه څنګه چې یو وار چا دا مصرع ووېله: مَا زَارَنِيْ فِي النَّوْمِ اِلَّا خِيَالُكُمْ (یعني ستا د خیال څخه ماسو هیچا په خوب کې زما زیارت ونه کړی) نو پر یو صوفي باندي حالت د وجد راغلی او بې خوده سو، یو چا بیا پوښتنه ځیني وکړه چې ته خو نه په پوهېدې چې دا څه وایي نو پر تا وجد په څه ورځه راغلی؟ صوفي ووېل څوک وایي چې زه یې په مطلب نه یم پوه سوی، هغه خو داوېل کنه:" چې موږ او تاسو ټول کمزوري او ناچاره یو، او دا خو هغه صحیح وېل چې موږ ټول کمزوري او ناچاره او په خطرو کې ګرفتاره یو"، نو دا وي د دغو خلکو د وجد او سماع کیفیت چې کومه خبره یې پر زړه غالبه وي که څوک هر څه وایي خو دوی هم هغه خپله خبره اوري او هم هغهویني، لېکن څوک چې په عشق حقیقي یا لږ تر لږه په عشق مجازي اخته سوی نه وي د هغه په ټول کې هیڅ نه لوېږي.

(۴) او څلورم سبب د سماع د حرامېدو دا کېدای سي چې اورېدونکي ځوان وي او خواهشاتو او شهوتونو مغلوب کړی وي او د الله ﷻ د محبت ور ته د سره علم نه وي چې څه دی؟ په داسې صورت کي غالب امکان دا وي چې کله دی د زلفو او خالونو او بنایسته مخونو په باره کې اشعار واوري نو بنایست او عشق به یې په زړه کې په جوش راسي او چې د عاشقانو کوم حال واوري نو دغه آرزو ګانې به دی د بنایسته مخونو طرف ته مائله کړي تر دې چې د عاشقی انداز به اختیار کړي، او څومره بنځي اوسري دي چې د صوفیانو په جامه کې په دې دنده لګیا دي، او که څوک پوښتنه ځیني وکړي نو څومره حیلې او بهانې به وکړي چې فلانی سړی کوم چې سودائي سوی دی او دغه د فلانې په عشق کې مبتلا سوی دی، نو په اصل کې دا عشق خو دام الهي دی، او خدای پخپله دی په محبت کي ګرفتار کړی دی، او کله به وایي چې دا څه کمه خبره ده، ده خو زړه بالکل په قلبو کې ساتلی دی

او په دې خبره قادر دی چې خپل معشوق ته په غټو سترگو وگوري، څومره لویه خبره ده دا ؟ او د دوی دا عبث گویي او بې هوده گویي (بکواس گویي) د ظریفانه نیک خویي په نوم یادوي، او د دوی فسق او فجور بلکې د ساده گانو سره غیر فطري عمل د دوی په نزد شوریدگي او د عشق جنون ورته وایي او بیا د عذر وړاندې کولو عام انداز یې دا وي چې گوره! ایا فلانی پیر د فلانی سپین مخی هلک په عشق کې اخته نه وو څه ؟ او داسې خبرې ته نه وینې! چې بزرگانو ته را پېښیږي سوي دي نو صاحبه! دې ته لواطت څنگه ویل کیږي دا خو شاهد بازي ده (یعنې صرف د ښایستو هلکانو سره صحبت دی)، آخر د معشوق دیدار هم روحاني غذا ده، غرض دا ټول عبث او بې سر او پښو خبرې بیلتوي پخپل ذلت او بدې باندې پرده اچوي، اوس که د دې سره سره یو سړی د دوی د حرام کارۍ لو فسق فجور قائل نه وي نو دغه پخپله اباحتي (نا روا مباح کوونکی) دی او د ده قتل کول جائز او حلال دي؛

او د غه د پیرانو په باره کې چې کومې قصې جوړې سوې دي چې هغوی به سپین مخو (ښایستو هلکانو) ته کتل نو اول خو دغه درواغ دي خپل عذر په خلکو منل مقصود دي، او که دوی کتلې هم وي نو د شهوت په نظر به نه وي بلکې په دې انداز به وي لکه سره سیبانو او گل ته چې گوري، او که دیو پیر څخه داسې سوي هم وي یعنې خطاء څینې سوې وي نو دا مثال کېدای نسي څکه چې د هر پیر معصوم والی خو هم لازمي امر نه دی (هغه به هم دغه ټول یو بدبختي وو) کومه گناه چې د پیر څخه وسي هغه گناه مباح کېدای نسي، څنگه چې الله ﷻ په قرآن کریم کې د حضرت داؤد ﷺ قصه بیان کړې ده چې ته دا ونه گڼې چې د دې صغیره گناهونو څخه څوک محفوظ کېدای هم سي که څه هم هغه هرڅومره بزرگ ولې نه وي، او دحضرت داؤد ﷺ اوښکې تویول او ژړا کول او توبه کول یې هم څکه بیان کړي شي چې ته د ځان د پاره دا دلیل جوړ کړې او د گناه څخه خوندي سې.

(۵) پنځم سبب دا کېدای سي چې عام خلک کوم چې د عادت په توگه د عیش او مستی د پاره دغسې سماع اوري، د دغو دا طریقه مباح خو ده لیکن هله چې پېشه (کسب) یې جوړ نه کړي او دې ته ځان حواله نه کړي، څکه چې بعضي صغیره گناهوې په تواتر او زیاتي سره کبیره گناهوې جوړې سي، دغسې بعض شغلونه چې کم کم او کله کله وي نو مباح وي کنې حرام، څنگه چې هغه کومه تماشه چې حبیشانو په مسجد کې وښووله او نبي ﷺ منع نه کړه نو څکه چې دغو صرف یو وار دغه تماشه ښوولې وه کنې که هغو د مسجد څخه تماشگاه جوړه کړې وای نو نبي ﷺ به یقیناً منع کړې

وای، او حضرت عائشې رضی الله عنها به یې هم د دې د کتلو څخه منع کړې وی که چیرې بلا بلا وای، ځکه ناجائز دا دی چې انسان یې خپله مستقل مشغله جوړه کړي، دغه ډول که کله کله دمزاح (ټوکو، مسخرو) څخه کار واخلي نو غلط نه دې لیکن که مزاح خپله مشغله (کسب)جوړ کړي نو بیا ښه خبره نه ده.

## دویم باب: د سماع آثار اوادبونه

پوه سه! چې د سماع درې مقامونه دي: (۱) پوهه (۲) وجد (۳) حرکت کول، او دهریو په باره کي دېر څه ویل سوي دي خو په لنډه داسي ویل کیږي:

**اول مقام:** په سماع باندي د پوهېدلو متعلق دی، نو په دې لحاظ سره یو سړي خو هغه وي چې طبعًا په غفلت اوجهالت کي د مبتلا کېدلو په سبب یا داخسي پر خلکو د رُعب اچولو د پاره سماع اوري، او دا داسي ناقصه سړی وي چې د دې قابل هم نه وي چې د ده د پوهې او حال په باره کي دي څه وویل سي، او دویم هغه سړی دي چې د دین اُلفت او محبت الهي پر غالب وي، او دا خلک په دوو درجو کي تقسیمیږي، یوه درجه خو د مرید ده چې ده ته دسلوک او معرفت په لاره کي د ګوړمره حالاتو او وارداتو سره مخامخ کېدل وي، که چیرې قبض او بسط وی نو چیرې آساني او سختي، که چیرې د قبولیت آثار وي نو چیرې د دربار څخه د شړل کېدلو آثار وي، غرض د تنګی او فراخی د مختلفو حالاتو سره د ده د زړه نیول کېدل څه د تعجب خبره نه ده، او په دې حالت کي چې کله داسي خبره (په صورت دسرود) د ده په غوږ کي پرېوځي په کومه کي چې د عتاب او قبول، هجر او وصال، د نژدې والي او لیري والي، د اُمید او نا اُمیدی، د بیري او رضا، د وفا او بې وفایی، د خوشحالی، د وصال او غم د بېلتون اونورو ذکر سوی وي، نو دی دغه ټول حالتونه او کیفیتونه د خپل حالت او کیفیت په رڼا کي ویني او د ده په باطن کي پټ بخر کي لمبه کوي او دننه دننه څه څه حالات رابر سیره کیږي، او مختلف خیالات او فکرونه د خپل خپل تسلط قائمولو کوشش کوي، او په لیري لیري فکرنوکي بندي پاته کیږي، اوس په داسي وخت کي که د ده عقیده، علم او اعتقاد محکم او صحیح نه وي نو عین ممکنه ده چې دی سماع په داسي قسم فکرونو کي واچوي چې په کفر کي داخل وي او په سماع کي دی د الله ﷻ په باره کي یو څه واروي او وګني بل هه، یعني یو داسي شئ واوري چې د ده پوهه د دغې څخه څه بل مطلب واخلي. کوم چې د الله ﷻ د شان خلاف وي او په محل کار کي داخل وي مثلاً هغه دا شعر واوري:

زاوّل بنشت میل بود آن میل کجاست    وامروز ملول گشتن از بهر چرا است

او دا پر ځان قیاس کوي وېني چي په ابتداء د حال کي خو په ده کي ډېره تېزي او رواني لیدل کېږي لېکن اوس هغه په سست روېې اوضعف کي بدله سوه. او بیا د دې شخص دا نتیجه راوباسي چي په ابتداء دحال کي دالله ﷻ د ده سره مینه وه او د ده په حال یې کرم او مهرباني وه لېکن اوس هغه د ده څخه وګرځېدو. ګواکي دی د تغیّر لفظ د الله ﷻ په شان کي استعمالوي کوم چي کفر دی حال دا دی چي ده ته دا پېژندل پکار وو چي تغیّر په ذاتِ باري تعالی کي نسي راتلای ځکه چي هغه مُغیّر (بدلوونکی) دی او متغیّر (بدلېدونکی) نه دی بلکي ده ته کښل پکار دي چي تغیر که سوی دی نو ځکه چي د ده خپل صفت به بدل سوی وي او په دې وجه چي کومه معنی ده ته ښکاره سوې وې بیا د ده د نظر څخه پناه سوې وي ځکه چي دهغې د طرف څخه څه بندیز یا پرده یا خفګان نسته. او هغه دربار اوس هم خلاص دی (دالله درحمت دروازې بندیږي نه) او د دې مثال داسي دی چي د لمر رڼا خو روښانه او ښکاره وي. مګر د هغه سري څخه به څه وايې کوم چي د دېوال څخه ها خواولاړ وي چي دغه خو به خامخا د لمر څخه په پرده کي وي. لېکن دلته خبره دا ده چي دا تغیر د ده په خپل ځان کي راغلی دی نه چي په لمر کي نو پکار ده چي داسي ووایې:

خورشید برآمد اے نگارین ور است    بربنده اگر نتابد از او بیر است

(یعني ای محبوبه! لمر خو ډېر وختي راختلی دی خو که ورانګي یې پر مانه پرېوځي نو ځکه چي زه پر تیک (سم) ځای ولاړ نه یم). او پکار دي چي د حجاب حواله خپلي بدبختي او سیاه کاری ته وکړي کوم چي د ده خپل فعل (کار) دی. نه دا چي الله ﷻ ته یې نسبت وکړي. او دلته د دې مثال د وراندي کولو څخه مقصود دا دی چي کوم ناقص صفتونه او تغیرات ښکاره سوي وي د دې ذمه وار دی خپل او خپل نفس وګرځوي او د کوم شی تعلق چي دجمال الهي او جلال د‌ .ود سره وي هغه دي الله ﷻ ته منسوب کړي او که دعلم دا سرمایه د ده سره نه وي نو ډېر ژر به د کمر په تیاره کي ورک سي او پته به یې هم معلومه نسي (چي کوم ځای ته ورسېدی) دا سبب دی چي د الله ﷻ په دوستی کي سماع او بدل د ډېرو خطراتو حامله وي.

او د دې شخص لوړه درجه د هغه خلکو وي چي دمریدانو د درجې شخص پوره ته تللي وي او حالات اومقامات یې وروسته پرې ایښي وي او د دې حال انتها ته رسېدلي وي چي کوم شئ ته د غیر الله نسبت وي هغه ته نیستي اوفناوایې او د الله سره چي نسبت ورکوي نو یو والی او توحید ورته وایې، او د

داسي خلکو سماع د معنی او مفهوم محتاجه نه وي بلکي د سماع د آواز په څرپهونو کي د پرېوتو سره د نیستي او یو والی کیفیت په دوی کي تازه سي، او دوی په کلي توګه سره د خپل ځان څخه ورک سي او د دې عالم خبر هیڅ اندازه ورته بیا هم نه وي، او کېداى سي که دوی ور واچول هم سي نو دوی لږ هم نه ځیني خبرېږي، لکه چي د ابو الحسن نوري رحمه الله په سماع کي داحال سوی وو او په دې کیفیت کي یې ځغستل د کنو په پېخوېږ پښې سوری سوری سوې او دی لږ لا هم نه سو په خبر، او دا ده هغه سماع کومي ته چي بشپړه سماع ویل کېږي. لېکن د مریدانو په سماع کي دبشري صفتونو خلط وي، یعني دځان څخه بې خبره خو دوی هم وي لکه څنګه چي د مصر ښځو د یوسف علیه السلام په لیدو باندي خپل ځانونه هېر کړل، او خپل لاسونه یې (د ترنجانو پر ځای) پرې کړي وو. ګویا د دې نسیتي څخه هم انکار نه دئ کول پکار لېکن دا هم ویل نه دي پکار چي زه خو هغه د سترګو په مخکي وینم بیا هغه پناه څنګه سو؟ بلکي ګڼل داسي پکار دي چي هغه هغه نه دی کوم چي ته وینې! چي دغه خو سری دي که مړ سي نو ته یې بیا هم لیدی سې فرق به صرف دا وي چي دغه نیست سوی وي نو د دې حقیت خو دهغې لطیفې معنی حامل دی کوم چي په محل د معرفت کي وي،او کله چي د ټولو شیانو معرفت د ده څخه پټ سو نو پوه سه! چي د ده په حق کي نیست سو او کله چي د خپل ځان څخه بې خبره سي نو ګویا د خپل ځان څخه تېر سو، او کله چي د غیر الله او ذکر د غیر الله څخه هیڅ باقې پاته نه سو نو څه چي فاني وو هغه هم ختم سو او څه چي باقي وو هغه باقي دي (یعني دباري تعالی ذات) نو د دې باقي سره دغه باقي پاته سو او د توحید دا معنی وي چي کله دالله جل جلاله څخه ماسوا نور هیڅ په نظر را نه سي نو وایي چي څه دي دغه پخپله دي او زه " نیست" یم یا داسي وایي چي زه پخپله هغه یم، لیکن یوې ډلي دلته د اصل حقیقت په پېژندلو کي غټ ټکر خوړلی دي، او د دې معنی څخه یې مراد حُلول اخیستی دي، او یوې بلې ډلې دا په اتحاد سره تعبیر کړی دي او د دوی وینا ده چي دا خبره څه داسي ده چي مثلاً یو سړی چیري هینداره نه وي لیدلې او ناڅاپه یې نظر پر پربوځي خپل ځان پکښې ووینې او دی وګڼي چي دی پخپله په هینداره کي ور ننه سوی دي (ورغلی دي) او داخیال وکړي چي دغه صورت په خپله هینداره ده نو چي دی داسي ګڼي چي دی په هینداره کي ورغلی دي دا حلول دي او که داخیال کوي چي هینداره پخپله د ده صورت دي نو دا اتحاد دی، او دواړه غلط دي ځکه چي هینداه هیڅ کله د ده صورت نسي کېداى بلکي صرف دغسي ښکاري او دا خیال د یو داسي سړي کېداى سي کوم چي دحقیقت د حال څخه بالکل نا خبره وي او په دې موضع باندي بحث کول په دې مختصر کتاب کي ډېر ګران دی، او هسي هم د دې تفصیل موږ پخپل

کتاب احیاء العلوم کي ذکر کړی دی.

**دویم مقام:** د هغه ځای څخه شروع کیږي کله چي د پوهي څخه فراغت حاصل کړای سي یعني چي د مقام د فهم څخه تېر سي نو دمقام دحال ظهور وسي، کوم ته چي وجد ویل کیږي او د وجد څخه مراد موندل (پیدا کول) دي، او تشریحي معنی یې دا ده چي یو داسي حالت حاصلیدل کوم چي د دې څخه مخکي حاصل نه وو، او د دې حالت د حقیقت په باره کي ډېري خبري سوي دي چي آخر دغه حقیقت دی څه ؟ په هر حال صحیح دا ده چي دا حالت د یو خاص قسم نوم نه دی بلکي د دې مختلف قسمونه دي، لیکن دا ضروري ده چي په دوی کي د هر یو تعلق د دوو جنسونو څخه د یو جنس سره وي په کومو کي چي یو جنس د حالاتو دی او دویم د مکاشفاتو، او د حالاتو حقیقت دا سي بیان سوی دي چي یو صفت پر ده داسي غالب سي چي دی بېخي مست او بې خوده جوړ کړي، او دا کله د شوق صورت اختیار کړي، کله د ده ظهور د بیري په شکل کي وي، اوکله د اُور د عشق په صورت کي، او کله د طلب او لټون په رنګه تي، کله دغم نا اُمیدی او افسوس په شکل کي ښکاره کیږي، او د دې څخه ماسوا یې نور هم ډېر صورتونه ممکن کېدای سي مثلاً کله چي د عشق د اُور غلبه وي نو دود یې دماغ ته ورسیږي د ده پر هوا او حواسو مسلط سي او بیا د یو داسي سړي په ډول کوم چي بیده وي چي نه ورته څه ښکاري او نه څه اوري یعني د څه لیدلو یا اورېدلو څخه بالکل غائب سي لکه د یو مست په ډول جوړ سي.

دویم جنس دمکاشفاتو دي چي داسي شیان ورته ښکاره کیږي لکه چي صوفیانو ته ښکاره کیږي او په کومو کي چي ځیني خو په لباس د تمثیل کي وي او بعضي واضح او ښکاره، او پر دې حالت اثر د سماع په دې وجه کیږي چي زړه صاف کړي، لکه په هینداره باندي لوېدلی ګرز (خاوري) چي صفا کړای سي.نو مخ پکي صفا ښکاره کیږي، دا حقیقت که د الفاظو او عبارتونو په جامه کي ښکاره کوي نودې ته به د علم، قیاس یا تمثیل نوم خو ورکولای سي، لیکن په حقیقت باندي خبرتیا خو هغه چا ته کېدای سي کوم چي دې مقام ته رسېدلی وي او بیا یې هر سړي د خپل مقام او مرتبې په حیثیت سره مطابق په تصرف کي راوستی سي، او قیاس خو پخپله د علم احسان مند دي نه چي د ذوق؟ او دا څه چي هم موږ ویلي دي نو صرف ځکه چي کوم خلګ د دې مذاق څخه لیري او د دې ذوق څخه محروم دي یو وار خو یقین وکړي اومنکر خو نسي چي په دې انکار کي پخپله د دوی نقصان دی او هغه سړی خو ډېر جاهل دی کوم چي دا ګڼي چي کوم څه د ده په خزانه کي نسته دغه د باچاتو په خزانه کي هم نسته،او د ده څخه هم زيات جاهل هغه دی کوم چي په خپله لږ مال سره ځان

باچشاه گڼي، او وايي چې زه خو هري مرتبې ته رسېدلی یم څه چې دي زما سره دي او څه چې زما سره نه وي د هغه وجود نشته. او دا تول انکار په اصل کې د دې دوو جهلونو په سبب کیږي، او دا هم یاد ساتل پکار دي چې کېدای سي یو سړی په تکلف سره وجد کوي کوم چې عین منافقت دی ځکه چې پکار دا ده چې په تکلف سر اسباب د وجد په زړه کي را پیدا کړي چې عجیبه نه ده چې حقیقت به په دې کي ښکاره سي (داسي نه چې په درواغه د وجد ښکاروړې ځړوي) لکه څرنګه چې په حدیث شریف کي راغلی دي چې که قرآن اورۍ نو ژړا کوئ! او که ژړا نه درځي نو د ژړا د پاره تکلف کوئ (بیا به پخپله ژړا درسي) مطلب دا دی چې په تکلف سره د غم او خفګان اسباب په زړه کي پیدا کړئ کېدای سي په دې توګه سره وشتیار زړه را ډک سي او ژړا درسي.

**سوال:** که یو سړی اعتراض وکړي چې: کله د صوفیانو سماع حق ده نو پکار دا وو چې قرآن ویونکو (قرآن خوانانو) ته یې په مجلس کي دعوت ورکولای چې قرآن یې ورته اورولای، نه دا چې قوالان راغوښتي او د هغو څخه سرود (سروز) اوري، ځکه چې قرآن کلام حق دی، او ښکاره ده چې د قرآن سماع زیاته غوره ده؟

**جواب:** دا دی چې د قرآن د آیتونو سماع ډېره ده او په دې سره وجد هم ډېر لږځي او ډېر خلک داسي هم دي چې د قرآن په سماع سره بې هو ښه کیږي بلکي داسي خلک هم تېر سوي دي چې د قرآن په سماع یې روحونه ورکړي دي او د دوی په قصو بیاتولو به کتاب اوږد سي او په کتاب "احیاء العلوم" کي موږ د دې تفصیل ذکر کړی دی.

لیکن صوفیان چې کوم د قرآن په مقابله کي قوالي اوري نو د دې پنځه وجهي دي: اول دا چې د قرآن آیتونه ټول د عاشقانو د حال موافق نه دي ځکه چې په دې کي د کافرانو قصې د دنیادارو معاملې او د نورو ډېرو خبرو ذکر دی، په دې وجه قرآن پاک د ټولو قسمونو خلکو د پاره شفا او علاج ورکوي. او قاري چې کله مثلاً د وراثت او ترکې متعلق آیتونه وايي چې مور ته په میراث کي شپږمه حصه رسیږي او خور ته نیمه رسیږي یا دا چې د خاوند په مړه کېدلو بانډي ښځي ته څلور میاشتي لس ورځي عدّت تېرول پکار دي او دغه ډول د نورو خبرو په ویلو د عشق اور نه تازه کیږي ما سوا د داسي سړي څخه چې د هغه عشق انتها ته رسېدلی وي چې هر څه چې اوري که د مقصد سره یې برابر وي او که نه خو په وجد کي راځي، او ښکاره ده چې داسي خلک نادر او کمیاب دي.

(۲) دویم دا چې ډېرو خلکو ته قرآن یاد وي او لوستونکي یې ډېر دي، او کوم چې ډېر لوستل کیږي،

د دې په اورېدلو سره زړه ته خاص خبرداری نه حاصلیږي، بلکې دا یو بدیهي امر دی چې کوم شی ته په اول واري کوم کیفیت چې پر زړه راځي په بل وار اورېدلو سره دغه کیفیت نه پیدا کیږي، او قرآن مجید په هر وار نوی نه وي، او سندره (گانا) په هر وار نوي تازه کېدای سي او وي هم، نو کیفیت هم په هر وار نوی کیدای اسي، په خپله د نبي ﷺ په زمانه کي چې به کله عرب خلک د دوی ﷺ خوا ته راتلل او تازه تازه نازل سوي آیتونه به یې دقرآن اورېدل نو ډېر به یې ژړل او د حال کیفیت به پر دوی راتلو، او حضرت ابو بکر صدیق ﷺ به ویل چې زموږ حالت به هم داسي کېدلو لکه چې اوس ستاسو کیږي، لیکن اوس عادي سوي یو، اوس موږ زړونه سخت سوي دي یعني موږ ته د قرآن په اورېدلو قرار حاصلیږي او د دې سره موږ عادت سوي یو، نو کوم شئ چې تازه وي د هغه اثر زیات وي، څنګه چې حضرت عمر ﷺ به حاجیانو ته د حج څخه وروسته ژر ژر خپلو خپلو ښارونو ته پر واپس کېدلو باندې زور ورکوی، او فرمایل به یې: زه بیرېږم چې که دا خلک د زیاتو پاته کېدلو په وجه د کعبې سره عادت سي نو د دې احترام به یې د زړونو څخه پورته سي.

(۳)دریم سبب دا دی چې ډېر زړونه داسي وي چې د ښه او مناسب آوز څخه ماسوا په دوی کي حرکت نه راپورته کیږي، داوجه ده چې محض په خبرو سره وَجْد نه راځي بلکې په خوږ او مناسب آوا ز باندې راځي چې په دې کي تاثیر وي، او د قرآن د لوستلو په باره کي دا مناسب نه دي چې دسندرې په ډول تلاوت سي او په دې کي د تصرف جسارت وکړای سي او کله چې بغیر د وزن څخه وي نو ښکاره ده چې مجرد کلام به وي، او په دې سره به د عشق هغه اُور تازه کیږي کوم چې د مخکي څخه بَلْ وي.

(۴) څلورمه وجه دا ده چې آوا ز که خواه هر څومره سوزناک وي خو دنورو آوازونو مددګاره وي چې د دې اثر نور زیات سي، مثلاً شپېلی، دف، طبل او شاهین وغیره، او دا ټول شیان یعني سازونه په هزل کي هم شامل دي او قرآن پاک د هزل عینِ ضد دی په دې وجه قرآن د هزل څخه جلا ساتل پکار دي څکه چې داسي شئ د قرآن سره څنګه ملاوېدای سي کوم چې دعوامو په نظر کي د هزل په درجه کي وي، څرنګه چې یوار نبي ﷺ د ربیع بنت معوذ کورته تشریف یووړی نو دغه وخت د هغې مینځو دف وغولو سندرې یې ور سره ویلې او چې نبي ﷺ یې ولیدی نو د سندرو پر ځای د دوی په صفت کي یې اشعار شروع کړل، نو دوی وفرمایل چپ سئ! (ثنا مه وایاست) هغه څه وایاست کوم چې تاسو مخکي ویل، او د نبي ﷺ دا ارشاد ځکه وو چې د دوی صفت د دف سره ضد وو ځکه چې په دف

کي هزل وو، او دا هیڅ کله صحیح نه ده چي د هزل سره د دوی ﷺ ثنا یو ځای سي.

(۵) پنځمه وجه دا ده چي د اشعارو خوښول د هر یو جلا جلاوي چي متعلقه افرادو ته خوند پر حاصلیږي او که دغه ا شعار د یو چا د حال سره موافق نه وي نو هغه ځیني د بیزاری اظهار کوي او بعضي وخت خو دا وایي هم چي دا مه وایه بلکي فلانی شعر، غزل یا نعت وایه!، او د قرآن پاک پر داسي موقع لوستل نه دي پکار چي بل ځیني د بې زاری او کراهت اظهار کوي چي ممکنه ده یو آیت د چا د حال موافق نه وي، او شعر که د چا موافق نه وي نو د داسي معنی جامه ور واغوندي چي د ده دحال موافق سي ځکه چي د شاعر د تخیّل پابندي د ده د پاره لازمه نه وي لېکن د قرآن پاک د پاره دا خبره بلکل جائز نه ده، نو مشائخو چي کومه قوالي اختیار کړې ده نو د دي اسبابو پر بناء ده د کومو چي لوړ ذکر وسو او د دې معنی حاصل د دوو خبرو طرف ته راجع کیږي یعني یو خو د اوریدونکي کمزوري دویم حرمت د قرآن پاک بزرگ گڼل، چي فکر او خیال ته په دې کي تصرف حاصل نه دی.

دریم مقام په سماع کي د حرکت کولو او جامو څیرلو دی او دا خبري که د چا څخه بلا قصده او بې اختیاره ښکاره سي نو داسي سړي قابل د مؤاخذې نه دی لیکن څوک چي خپل ځان ته د اصحابِ حال ویلو په شوق کي قصداً داسي کوي نو د ده دا فعل حرام دی او عینِ منافقت او ریا کاری ده.

رقص: مګر که یو سړی خپل حالت ښکاره نه کړي خو رقص شروع کړي یا په تکلف سره خپل ځان دژړا طرف ته راولي نو روا دي ځکه چي رقص مباح دی چي حبشیانو په مسجد کي کړی وو او حضرت عائشي رضي الله عنها ولیدلو. دغه ډول د نبي ﷺ دا الفاظ چي یې واوریدل چي: اې علي رضي الله عنه ته زما څخه یې او زه ستا څخه. نو حضرت علي رضي الله عنه بې اختیاره په رقص شروع سو او څوَواره یې ځکي ته پښې راپرېښولې لکه چي د واده او خوشحالی پر موقع د عربو عادت دی. او دغه ډول چي کله یې حضرت جعفر رضي الله عنه ته وفرمایل: ته په خوی کي زما په ډول یې، نو جعفر رضي الله عنه هم د خوشحالی څخه رقص وکړو. او زید بن حارث رضي الله عنه ته یې وفرمایل چي؛ ته زما ورور یې، نو زید بن حارث رضي الله عنه د ډیري خوشحالی څخه رقص وکړی، نو څوک چي وایي چي رقص حرام دی، نو غلطي کوی بلکي اتڼ او ټوپونه کوم چي د رقص انتهایي شکل دی دغه هم حرام نه دي او که د رقص کولو څخه د چا دا مقصد وي چي د ده د زړه حالت مضبوط او محکم سي نو دا رقص پر خپل ځای د ستاینې وړي دی، لېکن جامې په اراده او قصداً څیرل ښه نه دي چي مال بلاوجه ضائع کول دي، بیا هم که مغلوب الحال وونو دا هم صحیح دي ځکه چي په دې حالت کي کوم اضطراب او بې قراري

وي دغه که غواړي هم چې جامې څيري نه کړي خو بيا يې هم پخپل ځان څه اختيار نه وي، لکه په
ژړا فرياد که څه هم انسان ته اختيار حاصل دی ليکن د ناروغی په حالت کي که هغه کوشش هم کوي
خو ضبط نسي کولای، ليکن کوم شئ چي پخپله اراده او اختيار سره کوي د دې څخه خو هر وخت
ځان ساتلای سي، ليکن کوم چي مغلوب الحال وي نو ماخوذ نه دي. بيا هم دغه کوم چي ځيني
صوفيان په اختياري توګه سره کوي چي جامې څيري او بيا دغه پر مريدانو تقسيموي نو پر دې يوې
ډلې اعتراض کړی دی چي دا صحيح نه دي او داسي نه دي کول پکار، ليکن دا اعتراض هم غلط دی
ځکه چي اول خو د دوی مقصد دا وي چي دغه د و ټاره وګنډي او که داسي نه وي هم ليکن دا ټکړې
عبث نه ښورځوي.

**د سماع ادبونه:** پوه سه! چي په سماع کي د درې ادبونو خيال ساتل پکار دي: اول د وخت دريم د
مکان او دريم د حاضرينو د مجلس، ځکه چي وخت که دلمانځه وو يا د خوراک يا داسي وخت وو
چي زړه په يوبل کارکي مشغول وونو سماع به بيکاره وي، دغه ډول ځای د سماع که د تلو راتلو پر
لاره واقع وو يا يو داسي ځای وو چي تياره يا ناخوښه وو يا ديو ظالم کور وو نو په دې صورت کي هم
به پيرېشاني وي دغه ډول حاضرين (اوريدونکي) که داسي وو چي اهل د سماع وو ځکه که اهل د
تکبر يا دنياداره يا منکران د سماع په نمايشي توګه رقص کوونکي وي چي هر کړی اتنونه کوي، يا
اهلِ غفلت هلته راسي کښېني چي د دوی په نزد سماع د باطلو خيالاتو مجموعه وي يا دغه په لهوه او
واهياتو خبرو کي مشغول وي، يا په هاغوا دې خوا خبرو کي مشغول وي او د سماع داحترام تصوّر
هم د ددوی په ذهن کي نه وي، نو داسي سماع د هيڅ کار نه ده او دا معنی د حضرت جنيد رحمه الله د
قول څخه راوځي په کوم کي چي دوی ويلي دي چي په سماع کي د زمان، مکان او حاضرينو درنو
شرط لازمي دي.

او رښتيا حقيقت هم دا دی چي داسی ځای کښېنستل کوم ځای چي ځواني ښځي د نظربازی د پاره
راغلي وي او ځوانان سري هلته موجود وي او غافله هم وي او د شهوت څخه مغلوبه هم وي، نو دا
سماع حرامه ده ځکه چي په داسي ماحول(چاپيريال) کي سماع به د طرفينو د شهوت اُور ضرور
تېزوی او کېدای سي چي شهوت د نظر بازی څخه تېر سي د دوی په زړونو کي ځای وکړي او د فسق
او فجور داسي تخم وکري چي آخر د فتنی او فساد باعث سي او داسي سماع خو هيڅ وخت هم نه ده
پکار.

## نهم اصل: د امرِ معروف او نهی منکر د ادبونو بیان

امر بالمعروف او نهی عن المنکر په اصل کي د دین د مهمو اصولو څخه هغه عظیم الشان اصول دی چي ټول انبیاء علیهم السلام د دې د پاره رالیږل سوي دي چي دې اُصولو ته د زیاتو څخه زیات تقویه ورسوي، او دا هغه شئ دي چي که د خلګو د مینځ څخه پورته کړای سي نو د شریعت ټول احکام به باطل پاته سي موږ دا علم په درې بابونو کي بیانوو: اول باب: د دې اصولو په وجوب کي دی یعني چي دلولي واجب کړی سوي دي. دویم باب: د دې د شرطونو د احتساب سره متعلق کیږي.
په دریم باب: کي به دهغو منکراتو بحث وي کوم چي د عادت په توګه د دین په لاره کي پیدا کیږي.

## اول باب: د وجوب د امرِ معروف او نهی منکر په باره کي

پوه سه! چي امر کول په ښکو او منع کول د بدو څخه واجب دي او کوم سړی چي دا بلا عذره پرېږدي هغه ګناه ګار دی، د الله ﷻ فرمان دی: وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ [آل عمران: ۱۰۴] (په تاسو کي دي یوه ډله داسي ضرور وي چي دوی خلګو ته د ښکی بلنه ورکوي کوم چي د ښکو کارونو حکم کوی او دبدو کارونو څخه منع کوي)، په دې آیت کي د دې د فرضیت علم دی، لیکن فرض کفایه څکه دی چي هرکله څیني خلګ دا کار کوي نو کافي به وي لیکن که هیڅ څوک یې هم نه کوي نو ټول به مجرمان وي، د الله ﷻ ارشاد دی: الَّذِينَ إِن مَّكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنكَرِ [الحج: ۴۱] (هغه خلګ که ځای ورکړو موږ دوی ته په ځمکه کي نو قائم به کړي لمونځ او ورېه کړي زکوٰة او امر به کوي د ښکو او منع کول به کوي د بدو څخه) په دې آیت کي یې دا د لمونځ کولو او زکوٰة ورکولو سره ذکر کړو او د دې سره یې د دینډارو (ښکو خلګو) صفت هم وفرمایي، نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي امر بالمعروف کوئ کنې الله ﷻ به پر تاسو داسي سړی مسلط کړی کوم چي به ستاسو ټولو څخه بد وي، په دغه وخت کي به د هغه چا دعاء هم نه قبلیږي کوم چي په تاسو کي د ټولو څخه غوره وي، د حضرت صدیق اکبر ؓ څخه روایت دی چي نبي کریم ﷺ ارشاد فرمایلی دي چي په کوم قوم کي ګناه رواج سي او خلک هغه بده نه ګني نو الله ﷻ به ژر عذاب نازل کړي چي ټول به پکښي مبتلا سي

او فرمایي چي د جهاد په باره کي ستاسو نور نیک کارونه داسي دي لکه په ضخ دریاب کي یوه قطره او د امر بالمعروف او نهی عن المنکر په باره کي جهاد داسي دي لکه دضخ دریاب په پرتله کي یوه قطره. او ارشاد یې فرمایلی دی چي بنده کومه خبره کوي دغه ده ته نقصان رسوي هو! امر بالمعروف او نهی عن المنکر او د الله ﷻ ذکر داسي شیان دي کوم چي فائده رسوي، او فرمایي: چي دالله ﷻ خاص بندګان کوم چي بې ګناه وي د عوامو په سبب سره الله ﷻ پر دوی عذاب نه رلولي هو! هغه خاص بندګان کله چي بد کار ویني او د منع کولو سره سره یې منع نه کړي نو بیا به معامله بل غوندي وي (یعني عذاب پر نازلوي) او فرمایي چي که یو ځای پر چا ظلم کیږي او دی وهل کیږي او یو سړی هلته ولاړ وي دا هر څه ویني او سره د طاقته یې منع نه کوي نو پر ده د لعنت باران وریږي، او فرمایي داسي ځای کښېنستل نه دي پکار کوم ځای چي بدي خبري کیږي او په تاسو کي دومره همّت نه وي چي منع یې کړي، خصوصاً په داسي حالت کي چي د دې مداخلت څخه نه ستاسو د مرګ خطره وي او نه ستاسو د رزق د کمېدو امکان وي، او دا دلیل د دې خبري دی چي د ګناهګارانو په کور کي یا دداسي خلکو په ځای کي کوم ځای چي مُنکرات جاري وي او د دوی سره احتساب کول هم ممکن نه وي بلا ضرورته هیڅ کله نه دي تلل پکار، او دلوجه وه چي د تېرو مشرانو څخه ډېر خلکو ګوښه نشیني خپل شعار جوړی کړی وو څکه چي بازارونه او لاري کوڅې به هم دوی د منکراتو څخه خالي نه لیدلې.

اونبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي که د یو سړي په مخکي ګناه کېدله او ده پر هغه د کراهت او خفګان اظهار وکړی نو د ده په حق کي داسي ده چي لکه ګویا ده ګناه کېدل لیدلي نه دي، د دې برخلاف که څوک د دغي ګناه په وخت موجود نه وو لېکن ذکر یې ورارېدی او دی راضي وو نو داسي دي چي لکه دی پکي پخپله شریک وو.

او فرمایي: یو پېغمبر داسي نه دي تېر سوی کوم ته چي حواریان (ملګري) نه وي ملاؤ سوي کومو چي د ده څخه وروسته دخدای کتاب او د هغه سنت جاري ساتلی دي او د دې احکامو تبلیغ یې کړی دي او بیا د دوی څخه وروسته داسي خلک پیدا سوي دي چي منبتر ته خو ختلي دي د نېکی تلقین یې کړی دي او ښې ښې خبري یې کړي دي لېکن عملاً په معاملو کي کوته وو، او بد کارونه یې کول، نو د هر مؤمن حق دي او فرض یې هم دي چي د داسي خلکو خلاف جهاد وکړی، او که په لاسو جهاد ممکن نه وي نو په ژبه سره او که دا ممکنه نه وي نو لږ تر لږه دې په زړه کي دې بدګنې چې د دې څخه په کمه کي خو مسلماني نسته. او فرمایلي دي چي الله ﷻ یوه فرښته را ولېږله چي ولاړه

سه! فلانی بنار تباه کړه! دې فرښتې عرض وکړی چې خدایه! فلانی سړی هم په دې بنار کې وسیږي چې هغه خو یوه ذره گناه هم نه ده کړې، الله ﷻ وفرمایل: چې د ده هم تباه کړه چې نو دېږ په گناه کې لیدل خو صرف مخ یې هم نه دی تریو کړی، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي: چې نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې الله ﷻ په یو داسې بنار باندې عذاب نازل کړې په کوم کې چې اتلس زره انسانان داسې وو چې د پیغمبرانو په صفتو ښائسته وو، صحابه ﷺ وو عرض وکړی یا رسول الله! داولې؟ ویې فرمایل چې څکه چې دوی د الله ﷻ په خاطر دنورو څخه نه خفه کېدل او پوښتنه یې هم نه څیني کوله.

ابو عبیده ﷺ فرمایي چې د نبي کریم ﷺ څخه خلکو پوښتنه وکړه چې په شهیدانو کې دېر افضله درجه د کوم شهید ده؟ ویې فرمایل د هغه کوم چې د ظالم بادشاه څخه پوښتنه وکړي او په دې کوشش کې شهید سي، یا که بادشاه دی هلاک نه کړي او باقي تول عمر هغه که هرڅومره اوږد ولې نه وي د ظلم نوم نه اخلي، او په حدیث کې دي چې الله ﷻ حضرت نون ﷺ ته وحي ولیږله چې ستا د قوم څخه یو لک خلک هلاکووم، چې په هغه کې به څلوښت زره نېکان او شپېته زره بدان وي، دوی عرض وکړی یا الله! دغه نېکان ولې هلا کیږي؟ ویې فرمایل څکه چې دوی دبدانو سره دښمني اختیار نه کړه، او د دوی سره یې د خوراک څښاک او نلستې پاستې څخه ځان ونه ساتی.

## دویم باب: د احتساب شرطونه

پوه سه! چې احتساب پر تولو مسلمانانو باندې فرض دی نو د احتساب علم او شرطونه د احتساب پېژندل هم فرض سو څکه چې د کومي فریضې د شرطونو علم نه وي دهغې اداء کول ممکن نه وي، نو د احتساب څلور شرطونه دي:

اول رکن ته محتسب وایې یعني بازپرس (د بل څخه پوښتنه ) کوونکی، دویم رکن په کوم چې باز پرس کول کیږي، دریم رکن هغه گناه د کوم په وجه چې باز پرس کول کیږي، څلوم رکن احتساب به ولې او څنگه کول کیږي.

**اول رکن:** یعني محتسب: او د ده بنیادي شرط د دې څخه زیات نور هیڅ نه دي چې مکلف مسلمان او پوخ دیندار وي څکه چې احتساب کول د دین حق اداء کول دي او په دې لحاظ سره هر هغه سړی چې اهل دین وي اهل احتساب هم دی البته په دې امر کې رأیې مختلفې دي چې د محتسب د پاره عدالت او د حکمرانٍ اجازت حاصلول شرط دي یا که نه دي؟ او زموږ په نزد صحیح دا

ده چي دا شرط نه دی ځکه چي عدالت او پارسايي (فقيري) شرط څنګه مقررول کيږي؟ ځکه چي که د احتساب اختيار صرف دا سي سړي ته ورکړل سي کوم چي چيري ګناه نه وي کړې نو بيا خو احتساب ونه سو بلکي د دې تصور به هم نسي کېدای، ځکه چي داسي سړی به د کومه پيدا کول کيږي کوم چي معصوم وي،

د سعيد بن جبير رضي الله عنه وينا ده چي: که موږ صرف په دې صورت کي د احتساب قابل کېدای سو چي پخپله چيري زموږ څخه ګناه نه وي سوې نو د دې مطلب دا دی چي احتساب به هم چيري ونه کړل سي.

حسن بصري رحمه الله ته خلکو وويل چي فلانی سړی وايي چي خلکو ته تر هغه پوري د امر بالمعروف دعوت مه ورکوئ! تر څو چي تاسو پخپله بالکل پاک نه سئ، ويې فرمايل د شيطان د دې څخه غټه بله آرزو نسته چي دا ډول خبري زموږ په زړونو کي بنايسته کړي چي د احتساب دروازه بنده سي، او انصاف په دې مسئله کي دا دی چي تا ته دا معلومه وي چي احتساب پر دوه قسمه دی:

او په دې کي اوله طريقه د وعظ او نصيحت ده لېکن ديو داسي سړي وعظ کوم چي پخپله يو کار کوي او نورو ته نصيحت کوي چي دا مه کوئ! بالکل بېکاره او بې اثره وي او ما سوا د دې چي په اوريدو يې خلک وخاندي نور هيڅ نه سي حاصليدی، ديو فاسق واعظ او محتسب جوړېدل بالکل بيکاره او صحيح نه دي بلکي دغسي خو دی ديو بلي ګناه مرتکب کيږي، يعني دی وعظ ولي کوي چي ده ته معلومه وي چي خلک يې نه اوري او که واوري يې نو پر ده به خندا کوي، او د شريعت تعظيم به هم د خلکو د زړونو څخه پورته سي، او داوجه ده چي د داسي پوهانو وعظ چي خپل فسق او فجور يې څه پټه خبره نه وي کوم ځای چي دخلکو د پاره باعث د نقصان جوړيږي هلته پخپله هم دغه واعظان زيات ګناهګاره جوړوي، او دې حقيقت ته په اشاره کولو سره نبي ﷺ فرمايلي دي چي:

په کومه شپه زه معراج ته بو تلل سوم ملوليدل چي د ځينو خلکو شونډي په غچيانو پر پکول کيږي ما پوښتنه ځيني وکړه چي تاسو کوم خلک ياست؟ ويې ويل چي موږ هغه يو چي خلکو ته به مو د نېک کار کولو ويل او پخپله به مو نه کول او د بدو څخه به مو هغوی منع کول او پخپله به نه منع کېدو. په حضرت عيسی عليه السلام باندي وحي را نازلي سوې چي اې د مريم زويه! که نصيحت کوې نو اول يې خپل ځان ته وکړه نو چي ته يې پخپله قبول کړې بيا يې نورو ته کوه کنې زما څخه شرم وکړه.

دويمه طريقه د احتساب دا ده چي د لاسو څخه کار وا خيستل سي يعني طاقت استعمال کړای سي

او په جبري توګه د بلو شخه منع کړای سي مثلاً شراب وويني نو تويې کړي، د رباب آواز واري نو مات يې کړي، که څوک فساد کوي نو په طاقت سره هغه منع کړي، او دا کار د فاسق د پاره هم جائز دی ځکه چي پر هر سړي دوې خبري واجب دي يعني يو خو دا چي بد کار پخپله نه کوي او بله دا چي څوک يې کولو ته هم نه پرېږدي اوس که د دې شخه يوه دی ترک کوي نو دا څه ضروري ده چي د بلې شخه دي هم لاس واخلي.

دلته که يو سړی دا ووايي چي دا څومره بده خبر. ده چي يو سړی پخپله خو ورېښمني جامې اغوستې وي او په نورو پسې ګرځي او ځيني کاږي يې، يا څوک پخپله شرابي وي او د نورو شراب تويوي، نو د دې جواب دا دی چي د يو شي بدوالی بله خبره ده او باطل والی يې بله خبره ده، اوس د ده دافعل په دې نظر سره خو بد دی چي ده زيات ضروري عمل پخپله تر کړی دي (يعني پخپله يې شراب وڅښل) نه د دې د پاره چي د ده دافعل (دشرابو شخه منع کول) صحيح نه دي! نو که يو سړی روژه نيسي او لمونځ نه کوي نو ده چي کومه بدي وکړه هغه دا چي يومهم فرض يې پرېښووی نه دا چي روژه نيول يې باطل دي، بلکي دا چي لمونځ ډېر مهم دی او دا پرېښول نه وو پکار.او دغه ډول د هر عمل په سلسله کي ويل کيږي چي کول محض د وينا په نسبت زيات اهم دي، ليکن واجب دواړه خبري دي او يوه د بلې شرط نسي مقررولای، چي اول دې کوي بيا دې منع کوي، يعني د شرابو څښلو شخه منع هغه څوک کولای سي چي پخپله يې نه څښي، د دې مطلب خو دا سو چي د يو واجب مخالفت ده پخپله وکړی او د بل د ځيني پخپله پورته سوه، او دا محاله ده (مطلب دا چي شراب نه څښل يو فرض دي او نور منع کول بل فرض نو که يې وڅښل د يو فرض مخالفت يې وکړی ليکن دنورو په منع کولو سره خو بل فرض ادا کوي).

دويم شرط کوم چي د بادشاه شخه د اجازت اخيستلو دی د احتساب د پاره نو لکه چي مخکي ويل سوي دي په اصل کي دا يو شرط نه دي، ځکه چي تېرو مشرانو خو پخپله د بادشاهانو او خلفاؤ شخه باز پرس کړی دي، او که د دوی قصې بيانوو نو خبره اوږديږي، نو که د دې مسئلې حقيت معلومول غواړې نو په دې پوه سه! چي داحتساب درجې څو دي نو لازده کړه چي د احتساب څلور درجې دي:

اوله خو نصيحت کول او د الله ﷻ شخه بيرول دي او دا پر ټولو مسلمانانو فرض ده په دې کي داجازت هيڅ ضرورت نسته.بلکي دا خو يوافضلٌ ترين عبادت دی خلک خو خلک دي بادشاهانو ته هم نصيحت پکار دي او د خدای شخه بيرول.

دويمه طريقه دا ده چي په سختو سختو ويلو سره او ترخه ژبه پوه کړل سي مثلاً داسي ويل: فلسقه!

ظالمه! جاهله! ویل یا اې جاهله! ته دخدای څخه نه ویرېږې؟ چي داسي کار کوې؟ او دا ډول خبري د فاسق په باره کي بالکل صحیح او درست دي او د رشتیاویلو او صحیح خبري دپاره د چا څخه داجازت غوښتلو څه حاجت نسته. دریمه طریقه په لاسو سره د منع کولو ده مثلاً د شرابي شراب تویول. د سرود گر (سروز والا) رباب شپېلی ماتول د وربښمنو جامو اغوستونکو څخه وربښمي جامې کښل او نور. نو دا کارونه داسي واجب دي لکه عبادت چي واجب دی اولکه څنګه چي په اول باب کي د مختلفو کارونو د ذکر سره موږ لیکلي دي چي هر هغه سړی کوم ته چي مؤمن وایي ده ته شریعت د دې کارونو اختیار ورکړی دي او دغه د بادشاه د اجازت څخه بغیر دی کولای سي.

څلورمه طریقه وهل ټکول. دمکي ورکول دي او په دې کي دا امکان وي چي مخالف فریق (فاسق فاجر) که مقابلې ته جوړ سي نو اوس به ده ته دمدد ضرورت وي او خلګ به ورته هم راجمع سي او کېدای سي چي د بادشاه د اجازت څخه بغیر دا فتنه د فساد شکل اختیار کړي نو په دې صورت کي به غوره داوي چي احتساب د بادشاه د اجازت څخه بغیر ونه کړای سي، او د احتساب په درجو کي پر تبلیغي بانديي هم د حیرت او تعجب اظهار نه دي کول پکار. مثلاً که زوی د پلار سره احتساب کوي نو (ښکاره ده چي د آخري درې طریقو څخه ځان ساتل لازم دي او په اوله طریقه یعني نصیحت کولو کي به) د نرمۍ څخه کار اخلي او زیاتیږي به نه. حسن بصري رحمه الله وایي پلار ته نصیحیت کوه! خو چي هغه غصّه سي نو ته چپ سه. داسي نه چي د جاهل احمق وغیره الفاظ ویل ورته شروع کړې ځکه چي د پلار په شان کي دا الفاظ ویل بنه نه ښکاري او نه دي ځکه کول پکار دي او نه یې وهل ټکول صحیح دي او پلار وژل خو هیڅ کله جائز نه دي. لېکن غوره دا ده چي که کېدای سوه نو چي شراب ځیني توی کړي، وربښمي جامې ځیني وتښتوي او کوم شیان چي ده په حرامه ذریعه حاصل کړي وي هغه خپلو مالکانو ته واپس کړي، پر دېوالو تصویرونه نقشونه ځیني خراب کړي، چي دا کارونه جائز دي هغه که پلار په غصه ولي نسي ځکه چي د زوی داسي کول حق دي او د پلار غصّه باطله ده. او نه د ښکنځلو او وهلو په ډول دا د پلار پر نفس باندي تصرف اوزیاتي مقرر کول کیږي، ولي چي دا صحیح دي، که دلته څوک دا اعتراض وکړي چي د پلار د خفه کېدلو په وجه زوی ته داسي کول نه دي پکار ځکه چي حسن بصري رحمه الله وویل چي کله پلار غصّه سي نو زوی دي چپ سي نو پوه سه! چي د زوی پلار ته نصیحت کول داسي دي لکه د غلام مالک ته. د ښځي خاوند ته. رعیت بادشاه ته چي د دې ټولو حقونه مؤکّد دي او ډېر اهم دي او د شاګرد استاد ته نصیحت کول خو نور هم آسانه دي ځکه چي دا د دین د حرمت په وجه وي ځکه چي کله د استاد څخه لږ ده سوی

علم ناقابل عمل وي نو دې مطلب دا دی چې عالم پخپله په خپل علم عمل ونه کړي خپل احترام او وقار يې پخپله تاوانی کړی (نو د شاګرد ده سره احتساب کول ګستاخي نه ده).

**دویم رکن:** (د باب په شروع کې دا رکن پر دریم نمبر دی او دلته په ترجمه کې دا پر دویم نمبر راغلی نو په موضوع کې څه فرق نه راځي لیکن په ترتیب کې فرق راغلی نو ځکه اشاره ورته وکړل سوه)

دویم رکن هغه شئ یا ګناه ده پکوم کې چې احتساب کول کیږي نو پوه سه! چې کوم کار بد وي او په وخت د احتساب کې موجود وي او محتسب يې د تلاش او لټون بغیر ووینې او بدوالی يې ده ته په یقیني توګه معلوم وي نو جائز دي چې محاسبه يې وکړي، او په دې ضمن کې څلور شرطونه پېژندل ضروري دي: (۱) اول شرط دا چې دغه فعل بد خو وي لیکن ګناه نه وي یا که ګناه وي هم نو صغیره وي مثلاً محتسب که یو لېونی یا کوچنی ووینې چې د یو څاروي سره کوروالی کوي (بدفعلي کوي) نو لازمه ده چې منع يې کړي که څه هم دې ته ګناه نسي ویل کېدای ځکه چې دا دواړه مکلف نه دي لیکن دا فعل پرخپل ځای په شرعي اعتبار سره نا کاره دی او یقیناً فحش دی، دغه ډول که لېونی پر شرابو چښلو ووینې یا هلک د چا پر مال تلف کولو ووینې نو پکار دې چې منع يې کړي، او تر څو پوري چې د ګناه تعلق دی دغه که څه هم صغیره دي خو لائق د احتساب دي مثلاً په حمام کې د خلکو په مخکې خپل شرمګاه ښکاره کول یا الغرو ښځو ته په پټه کتل، یاورته خپل شرمګاه ښکاره کول، په خلوت کې د ښځو په مینځ کې درېدل، د سروزرو ګوتمی یا ورېښمني جامې اغوستل، د سپینو زرو په کوزه کې اوبه چیښل او دغسې پر ټولو صغیره ګناهونو محاسبه کول ضروري دي.

(۲) دویم شرط دا دی چې د ګناه سبب موجود وي لیکن د دې کونکي مثلاً شرابي شراب چیښلي وي نو د دې څخه وروسته ماسوا د نصیحت کولو څخه د محتسب نور ده زیات تنګول پکارنه دي ځکه چې پر ده شرعي حد لګول د حاکم وخت کار دی دغه ډول که یو سړی اراده وکړي چې نن شپه به شراب چیښم نو ده ته هم ما سوا د نصیحت کولو څخه نور يې خفه کول او تکلیف ورته رسول صحیح نه دي ځکه چې نه ده معلومه چې چیښي يې او که نه، او که وایي چې نه به يې چښم نو پر ده بدګماني نه دي کول پکار، لیکن که سړی د ښځې سره په خلوت کې ناست وي نو محاسبه روا ده و د دې انتظار نه دي کول پکار چې دواړه یو ځای سي (نو وبه يې نیسم) ځکه چې نفس خلوت ګناه ده، بلکې په دې ضمن کې خو د هغه سړي سره هم احتساب لازم دي کوم چې د ښځو د حمام په دروازه کې په دې خیال ولاړ وي چې دوی راووځي او وګورم ورته چې داسې هر بدل پخپله ګناه ده.

(۳) دریم شرط دا دی چي که د محتسب د لېتون شخه ماسوا گناه ښکاره وي نو په دې کي د زیات لټون شخه ضرورت نشته، او که دغه سړي د کور دروازه بنده کړې وي دننه ناست وي نو دا صحیح نه ده چي دننه ورشي دا معلومول چي دی څه کوي او نه دا صحیح ده چي د دروازې یا د کوټې شخه یې سېل کوي چي معلومه سي چي په کور کي دننه څه واوري او بیا ور سره محاسبه وکړي، ځکه کوم شئ چي الله ﷻ پټ کړی وي هغه پټ ساتل پکار دي، لېکن که د مستو آوازونو د پاندي اوربدل کېدل نو جائز دي چي بغیر اجازت شخه مکان ته داخل سي محاسبه وکړي، بیا هم که یو فاسق یو شئ پټوي هغه که شراب ولي نه وي دا ویل صحیح نه دي چي دغه ښکاره کړه چي زه یې وونیم چي دا دي څه شي پټ کړل؟ ځکه چي دا په تجسّس کي شامله ده، ځکه ممکنه ده چي دغه شراب نه وي او دتجسُس سره سره شُبه غلطه سي، هو! که بوی یې د شرابو کولو نو بیا جائز دي چي د دغه سره محاسبه وکړای سي، او که باجه غټه وه چي ښکارېده د پټولو سره سره معلومېده چي باجه وغیره دي نو جائزد ي چي ماته یې کړي، لېکن که نه ښکارېده نو بیا دې ځان نا خبره کړي، او د حضرت عمر ﷺ هغه قصه چي د چت شخه د یو سړي کور ته داخل سو او ویې لیدل چي د یوې ښځي سره ناست دي شراب چښې کومه چي مخکي په دې کتاب کي تېره سوې ده خاصاً مشهوره ده، او یوه ورځ حضرت عمر ﷺ پر منبر ناست وو داصحابو شخه یې پوښتنه وکړه چي د دې مسئلې په باره کي تاسو څه فرمایې؟ چي بادشاه د وخت که یو سړی په خپلو سترگو وویني چي گناه کوي نو پر ده شرعي حد لگېدای سي او که نه؟ بعضو وویل چي حد دي پر ولگېږي، لېکن حضرت علي ﷺ وویل چي دا حد لگول داسي دي چي الله ﷻ د دوو عادلو گواهانو سره مربوط وي نو په یو سړي پوره نه سي موقوف کولای، گوایا د حضرت علي ﷺ په نزد د حاکم د محض ذاتي علم په سبب سره حد لگول جائز نه دي بلکي پټول یې واجب دي.

څلورم شرط دا دی چي د یو شئ بد کېدل په حقیت سره معلوم وي په گمان او په اجتهاد باندي انحصار نسي کولای مثلاً که یو سړی شافعي مذهبه وي نو ده ته جائز نه دي چي په حنفیانو باندي اعتراض وکړي، مثلاً یو حنفي که د ولي شخه بغیر نکاح کوي یا بل داسي څه عمل کوي چي د فقه حنفي په روی سره جائز وي نو شافعي ته د اعتراض کولو هیڅ حق نشته، هو! که یو شافعي بل شافعي بغیر د ولي شخه په نکاح کولو ووینی یا د نبیذ په چښلو یې ووینی نو اعتراض پر کول کېږي ځکه چي د مذهب شخه خلاف څه کول جائز نه دي، او د یوې ډلي وېناد ده چي په شرابو چښلو زنا کولو یا بل داسي شئ باندي احتساب کول جائز دي د کوم حرام والی چي د ټولو په نزد په اتفاق وي،

نه چې اجتهاد ته محتاجه وي، او دلته دا ویل صحیح نه دي چې د فلاني اجتهاد دا وايي او د فلاني دا،
او نه دلته د چا داجتهاد څخه په مخالفت سره د ګناه ګاره کېدلو سوال پیدا کیږي، ځکه چې دا کارونه
په حقیقت سره حرام دي.

او څوک چې دا وايي چې هر سړی د کوم امام مذهب چې اختیارول غواړي اختیارولای یې سي دا
خبره ځکه پالتو او ناقابل اعتماد ده چې هر سړی خامخا د دې شیٔ پابند نه دی چې یې سوچه او یې
فکره دي د یو امام مذهب اختیار کړي، بلکې په دې سلسله کې چې کوم امر لازمي دی هغه دا دی چې
هر سړی دې د خپل ګمان مطابق عمل کوي مثلاً که د ده ګمان دا وو چې د امام شافعي مذهب غوره دي
نو سوا د ده د نفساني خواهش څخه بل یو شیٔ د ده د ګمان مخالفت نسي کولای، لېکن یو بدعتي کوم
چې دا وايي چې خدای هم جسم دی یا وايي چې قرآن مخلوق دی یا د دیدلو الهي څخه منکر دی یا
داسي غلطي واهیات خبري کوي نو پر ده احتساب ضرور کول پکار دي که څه هم په مالکي او حنفي
مذهب کي به یې نه کوي، ځکه چې په فقه کي خطاء په قطعیت سره معلومیدای نسي، او د بدعتي
خطا قطعي وي لېکن د بدعتي سره محاسبه په یو داسي ښار کي کول پکار دي کوم ځای چې دی
یوازې وي او د ډېرو خلکو مذهب د اهلِ سنت والجماعت وي، لېکن که هلته دوی دلي وي چې که ته
د بدعتي سره احتساب کوې نو د هغوی څخه یوه ډله ستا سره جنګ ته جوړیږي او دغه ډول د یوې
فتني راپورته کېدلو عینِ امکان وي نو احتساب نه دي کول پکار تر څو چې د بادشاه مدد او اجازت
حاصل نه وي.

دریم رکن: هغه دی پر کوم چې احتساب کیږي، د دې د پاره شرط دا دی چې مکلف وي او د ده
دغه فعل ګناه وي او د ده بزرګي (لویي) په احتساب کي مانع نه وي لکه پلار چې د ده بزرګي د تنبیه
تأدب او اهانت څخه مانع ده، لېکن محتسب لېونی او کوچنی د خواهش څخه منع کولای سي لکه
چې تېر سوي دي، لېکن د ده د منع کولو نوم به احتساب نه وي، بلکې که یو څاروی مویږ د مسلمانانو
په فصل خوړولو وربنو نو د مسلمانانو د مال د حفاظت په واسطه به هغه شړو، لېکن دا واجب نه دي،
لېکن که دا کار آسانه وو او یو نقصان پکښې نه وو نو د اسلامي حق په وجه سره واجب دي، لکه چې د
یو مسلمان مال ضائع کیږي او دی پکښې ګواه وي او لاره لیري نه وي نو ګواهي ورکول واجب دی
لېکن که یو عاقل د چا مال ضائع کولو نو دا ظلم دی او ګناه ده او په دې کي که تکلیف هم وي خو
احتساب به ضرور کوي، ځکه چې د ګناه څخه لاس اخیستل یا د ګناه څخه منع کول د تکلیف څخه
بغیر کله ممکن دي؟ او لازمي ده چې دا تکلیف به زغملای سي ما سوا د دې څخه چې کوم تکلیف

برداشت کول د ده د طاقت څخه بهر وي، لېکن د دې عاجزي سره سره که د احتساب څخه مقصود د اسلام د شعائرو ښکاره کول وو نو بیا به خامخا دغه تکلیف برداشت کول وي، چي دا په هر حال واجب دي، مثلاً که یو ځای شراب په دومره مقدار کي پراته وي چي د دې په تویلو کي ډېر تکلیف وي نو هم به داسي کول واجب وي او که ډېري کوډي بزې (وزې) دیو چا فصل (کښت) خوري او په شړولو یې دی ډېر ستړي کیږي او وخت ضائع کیږي چي مثلاً دی یې شړي او هغه بیا راځي، نو په دې کي په مخه لګیا کېدل واجب نه دي ځکه چي د خپل حق حفاظت خو هم لکه د نورو د حق په دول کول پکار دي نو پر ده دا وخت لازمه نه ده چي دنورو د حق د پاره خپل وخت ضایع کړي، لېکن د دین په خاطر خپل وخت ضائع کول هم واجب دي ځکه چي د ګناه منع کول واجب دي، دغسي د احتساب په خاطر هم د هر دول تکلیف برداشت کول فرض نه دي، بلکي د دې هم خاص تفصیل دی، او هغه دا چي که دی یې متحمل کېدای نه سو او عاجزه وو ځیني نو ښکاره ده چي دی معذور دی او په دې صورت کي ما سوا د زړه د بدګڼلو څخه به نور څه واجب نه وي او که عاجزه نه وو لېکن پېره وه ور سره چي دی به ووهي یا ده ته معلومه وي چي په وینا سره به څه فائده نه وي نو د دې هم څلور صورتونه دي، یو دا چي پوه وي چي وبه یې وهي هم او د ګناه څخه به منع هم نسي په دې صورت کي پر ده احتساب واجب نه دی، لېکن په ژبه یا لاسو سره احتساب کول مباح ضرور دی او ځان پر خوږول او صبر کول لوی اجر او ثواب دی چي په حدیث کي دي، د هغه شهید څخه ښځ شهید نسته چي د ظالم حاکم سره احتساب کوي او وژل کیږي.

دویم دا چي پوه وي چي د ګناه څخه یې منع کولای سي او څه خطره هم نه وي نو احتساب لازم دی کنې ګناه ګار به وي، دریم دا چي دغه خلک د ګناه څخه هم نه منع کیږي او دی وهي هم نه نو په دې صورت کي په ژبه محاسبه کول واجب دي چي د شریعت احترام پر ځای پاته سي ځکه چي که په زړه سره د انکار کولو څخه عاجزه نه دی نو په دې حالت کي په ژبه سره دمنع کولو څخه څنګه عاجزه دی، څلورم دا چي ګناه خو ختمولای سي لېکن دی به ووهي وتکوي، مثلاً د شرابو لوښی مات کړي شراب ځیني وبهیږي د هغو دچښلو څخه خو وځي لېکن دی ووهي، یا رباب ځیني مات خو کړي لېکن دی پکښې وهل وخوري نو په دې صورت کي احتساب هم واجب نه دي هو! که دا کار وکړي او پر خپلو وهلو صبر وکړي نو زیاته غوره ده، او که څوک ووایي چي د الله ﷻ ارشاد خو دا دی چي:

ولاتُلقُوا بِاَیدِیکُمْ اِلَی التَّهلُکَةِ (په خپلو لاسو ځان هلاکت ته مه ور اچوئ!) نو جواب یې ابن

عباس ﷺ داسي ور کړی دي چې د دې ارشاد معنی دا ده چې د خدای په لاره کې مال خرڅ کړئ! چې د هلاکت ښخه خوندي سی، او د براء بن عازب ﷺ په نزد د دې معنی دا ده چې ګناه وکړي او بیاولوایي چې زما توبه نه قبلیږي (نو د ګناه ښخه ولې منع سم نو دا ګویا ځان په هلاکت کې اچول دي). او ابو عبیده ﷺ د دې دا مطلب اخلي چې د ګناه ښخه وروسته نېکي نه کول خپل ځان هلاکت ته اچول دي، غرض دا بالکل روا دي چې یو مسلمان یوازې پر کافرانو حمله وکړي او تر هغه وجنګیږي چې شهید سي، که څه هم دا خپل ځان صریحًا په هلاکت کې اچول دي لېکن د فائدې ښخه خالي نه دي ځکه ممکنه ده چې دی هم یو څو ک مړ کړي او د کفارو جمعیت ته نقصان ورسیږي او دا احساس ورته وسي چې ټول مسلمانان داسي تنګیالي او بهادر دي نو جنګ ور سره نسي کېدای نو په دې کار کې به ثواب هم وي، لېکن که یو روند ګوډ د کفارو پر صف حمله وکړي نو صحیح به نه وي ځکه چې د دې هیڅ فائده نسته او دا بلاوجه خپل ځان هلا کول دي دغه ډول که داسي موقع وي چې که احتساب کوي نو خلک به دی مړ کړی یا به ورته تکلیف ورسوي او د ګناه ښخه به کرار نسي، او د دین په معامله کې چې کومه سختئ کوي په دغې سره کافر څه اثر نه قبلوي او د یو شئ رغبت یې نه سوا کیږي نو داسي احتساب هم نه دي کول پکار، ځکه چې د بې فائدې نقصان پورته کولو ښخه څه فائده ده.

**څلورم رکن د احتساب کیفیت:** داحتساب اته درجې دي: (۱) د حالاتو پېژندل (۲) بیا هغه سړی په بلو بانديې خبرول (۳) بیا نصیحت کول (۴) بیا په سختو سختو خبرو سره زجر ورکول (۵) بیا په لاسو د ده اصلاح کول (۶) د زخمي کولو دمکي ورکول (۷) بیاوهل (۸) بیا د ده پر خلاف توره را ایستل او د مددګاراتو طلب کول، اوس یې تفصیل واوره:

**اوله درجه:** د حالاتو تحقیق دا دی چې محتسب ته په یقیني توګه سره د حالاتو تحقیق کول پکار دي چې د تجسس ښخه ځان ساتل او پر چت کېښېنستل خبري یې اوریدل او د همسایه ګانو ښخه معلومول صحیح نه دي، که چا په لمنه یا بل شي کې یو شئ پټ کړی وي نو هغه په لاسو معلومول صحیح نه دي، هو! که د تجسس ښخه بغیر د ساز (سرود) آواز واوري یا د شرابو په بوی پوه سي نو بیا احتساب صحیح دي، دغه ډول دوه ګواهان که د چا خبر ور کړي نوهم صحیح دي، د دوو عادلو ګواهانو په وینا سره بغیر دا جازت ښخه کور ته ورننوتل صحیح دي لېکن د یو ګواه په خبره داسي نه دي کول پکار ځکه کورکوم چې د ده ملکیت دی د یو عادل ګواه په قول سره د ده ملکیت نه

باطلیږي، په روایتونو کي دي چي دلقمان حکیم په ګوتمی کي دا خط وو چي: د ظاهري بدی پټول د ګمان پر خبره درسوا کولو څخه زیاته غوره ده.

**دویمه درجه**: دا ده چي د دغه کار بدي بیان کړه ممکنه ده چي دی کوم کار کوي د دغي د بدوالي څخه نا خبره وي، لکه یو سړی چي په مسجد کي لمونځ کوي او رکوع او سجده نه پوره کوي په پیزار(څپلیو) پوري یې ګنده ګی وي داسي سړي ته ښوونه کول او دی پوه کول ضروري دي لېکن په ښوونه کي به د نرمی او آساني خیال ساتي، چي هغه بد ونه ګڼي ځکه چي یو سړی بلا ضرورته ناراضه کول نه دي پکار، چا ته د څه ښوولو معنی دا ده چي هغه ناپوه او بې علمه دی او دی د عیب څخه خبرول کیږي، او دا داسي زخم دی چي بغیر د مرهمو څخه ښه کېدای نسي او د دې مرهم دا دی چي په معقول عذر سره و رته خبره وکړای سي، مثلاً داسي ووایي چي د مور په نس کي هیڅوا پوهه نه وي حاصله کړې او د ناپوهي وجه ستا مور او پلار او استاذان دي چي هغو پوره توجه در نه کړه او شاید ستا په همسایګانو کي به څوک داسي عالم نه وي چي تا ته دا خبري وښیي، الغرض په داسي خبرو سره د ده زړه خوشحاله کول پکار دي او څوک چي داسي خبري نه کوي یا په ناخوښه وي نو د ده مثال داسي دی لکه یو سړی چي په وینو ککړه جامه په متیازو پرېولي یعني یوه نېکي کوی او بله ګناه پر سر اخلي.

**دویمه درجه**: دا ده چي په پند او نصیحت کي به نرمی کوي او د سختي څخه به ځان ساتي ځکه چي کوونکي که په دې پوه وي چي دا کار حرام دی نو د سختی څه فائده ده؟ نو د نرمی څخه به کار اخلي داسي چي مثلاً څوک په غیبت کي مشغول وي نو داسي دي وایي چي په موږ کي څوک دي چي دی د عیبونو څخه پاک دی، نو پر خپلو عیبونو نظر ساتل زیات غوره دي، یا د غیبت د آخرت د سزا ذکر دي وکړي، دلته یو غټ مصیبت دا دی د کوم څخه چي خوندي کېدل بغیر د الله ﷻ د توفیق څخه ممکن نه دي ځکه چي په نصیحت کي نفس ته دوه ډوله بدي حاصلیږي یو خو د خپل علم او زُهد لوبي ښکاره کیږي دویمه د حکمت لویي او فوقیت، او دا دواړه خبري د حُبِ جاه څخه حاصلیږي د بنده طبعي تقاضا دا وي او اکثر دی دا ګڼي چي زه وعظ، نصیحت کووم او د شریعت چینه یم لېکن په حقیقت کي دی د حبّ جاه ښکار کیږي په دې وجه د ده دا ګناه به د نورو د ګناهونو څخه ډېره بده وي، په دې صورت کي پخپل زړه کي سوچ کول پکار دي چي که دا سړی خپل پخپله د دې ګناه څخه توبه ګار سي نو آیا د دې څخه غوره نه ده چي زه خلمخا ده ته نصیحت وکړم

خفه یې کړم؟ یا زما په نسبت د بل نصیحت پر ده زیات کارګر ثابتېدای سي نو آیا دا زیاته خوږه نه ده چي بل ته یې پرېږدم ؟ یا دا چي که دی زما دا نصیحت بدګڼي نو ما ته زما نصیحت کول نه ښایي، لېکن که د دې ټولو امکاناتو سره سره دی په دې خبروه اصرار (ټینګار) کوي چي دی دي توبه بس زما په لاس وکړي نو ده ته د الله ﷻ څخه بیرېدل پکار دي ځکه چي په داسي نصیحت کولو سره خو دی خپل طرف ته دعورت ورکوي نه چي د الله ﷻ وطرف ته.

**څلورمه درجه:** د سختي خبري د ویلو ده لېکن په دې کي د دوو خبرو خیال ساتل پکار دي: یو خو دا چي تر څو پوري په نرمی او مهرباني سره خبره کولای سي نو پر دې دي اکتفاء کوي سختي دي نه کوي، دویم دا چي په ژبه دي فحش خبره نه راولي او ربښتوني خبره ویل ضروري ده مثلاً د ظالم فاسق، جاهل او احمق په دول الفاظو څخه زیات دي څه نه وایي ځکه چي کوم سړی ګناه کوي دغه احمق دی نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي عقلمند هغه دی کوم چي خپل احتساب پخپله کوي او په مرګ باندي نظر ساتي، او احمق هغه دی چي د نفس د خواهش پیروي کوي او د غرور مظاهره کوي او دا خیال کوي چي الله ﷻ به ما معاف کړي، دلرنګه سخته خبره هغه وخت صحیح ده چي کله دا اُمید وي چي دا به مفیده وي او کله چي دی پوهېږي چي مفیده به نه وي نو په تریو مخ دي ورته ګوري او مخ دي ځیني واړوي.

**پنځمه درجه:** په لاسو د اصلاح کولو ده، لېکن د دوو شرطونو سره اول دا چي تر ممکنه اندازې پوري دي په ژبه د اصلاح کولو کوشش کوي، مثلاً د ورېښمي جامو کاږلو، د بل د ځمکي او مکان خالي کولو، د شرابو ضائع کولو، په جنابت کي مسجد ته د نه ننه کېدلو دي ورته تلقین ورکوي، دویم شرط دا دی چي که په ژبه ویل کافي نه وو نو تر لاس دې ونیسي لږ زُورنه دي ورکړي بیا دي په اسبابو کي د دې خبري خیال ساتي چي که په لږ کار سره یوه خبره جوړېږي نو د زیاتو څخه دي ځان ساتي مثلاً په لاس نیولو سره ممکنه وي نو دږېي د نیولو څخه یا د پښې د نیولو څخه دي ځان ساتي، که د ساز ماتولو څخه لاپُلتي وي نو رېزه رېزه کوي دې نه، ورېښمي جامې دي داسي نه راکاږي چي بیکاره سي که شراب تویول وي نو لوښي دي خوندي کوي هو! که د هغه په لاس کي نه وو نو ماتول به یې صحیح وي او په دې کي به تاوان لازم وي، او که د لوښي خوله تنګه وه په تویولو کي یې وخت لګېدی او په دغه وخت کي د جوابي حملې بېره وه نو لوښی دي مات کړي وځي دي، کله چي شراب حرام سول نو په ابتداء کي دا حکم وو چي په کوم شیٔ کي شراب وي هغه ماتوئ لېکن بیا دا حکم

منسوخ سو د بعضي علماؤ رائې ده چې دغه د شرابو خاص لوښي وو په دې وجه لوس بلا عذره يې ماتول صحيح نه دي، که بلاعذره يې مات کړي نو جرمانه به پر لازمه سي.

**شپږمه درجه:** زور ورسره کول (ژوړنه) او بېرول دي مثلاً داسي دي ورته ووايي چې شراب توی کړه کنې ستا سر به مات کړم يا به دې ذليله کړم که په کراره سره کار نه کېدی نو بيا داسي ويل صحيح دي، په دې کي هم د دوو خبرو خيال ضروري دی يو خو دا چې په داسي شئ کي به ژوړنه نه کوي کوم چې صحيح نه وي مثلاً دا ويل چې جلمې به دې شيري کړم يا به دې کور ونړوم او اهل او عيال به دې آزار کړم، دويم دا چې په ژوړنه کي دي داسي خبره کوي کومه چې د ده په وس کي وي هسي نه چې دروغ سي، مثلاً داسي ويل چې سر به در شخه پرې کړم يا به دې پانسي ته وځړوم، ليکن په اراده سره زياته مبالغه په دې وجه سره کول چې دی وبېرېږي دغه کار پرېږدي نو بيا دا مبالغه ضروري ده، لکه د دوو تنو په مينځ کي د صلح کولو د پاره دروغ چې مصلحت پکښې وي صحيح دي.

**اوومه درجه:** په لاسو لغتو يا لکړه (لرګي) وهلو ده، دا خبره د ضرورت په وخت د ضرورت تر اندازې پوري صحيح ده، د ضرورت تعريف دا دی چې انسان د وهلو شخه ماسوا ګناه نه پرېږدي او کله چې ګناه پرېږدي نو وهل به يې صحيح نه وي ځکه چې د ګناه شخه وروسته سزار ورکولو ته تعزير او حدّ وايي د تعزير او حد اجراء د حکومت کار دی، په وهلو کي به هم د دې خبري خيال ساتي چې کله په لاسونو سره کار کېږي په لرګي دې نه وهي، لومړ دي په خاصه توګه سره ساتي که دا کافي نه وي نو توره دي راوکاږي بېره دي ورکړي، که يو سړی د بنځي غاړي ته لاس ورواچوي او د توري ښولو شخه بغير يې نه پرېږدي نو بيا به د توري ښوول ضروره وي، که د محتسب او مجرم په مينځ کي وياله (واله) او نور حال وي نو په لينده (قوس) کي دي غشئ کښېږدي هغه ته دي آواز وکړي چې که نه کرار کېږي نو ولم دي، که هغه نه منع کېدو نو په غشي ويشتل يې صحيح دي، ليکن ورون، پنډی او نور دي ولي او نازک مقامونه دي ساتي.

**اتمه درجه:** دا ده چې که محتسب يوازې کافي نه وي نو خلګ دي را جمع کړي باقاعده جنګ دي وکړي، ممکنه ده چې فاسق هم خپل ملګري جمع کړي او د مقابلې نوبت راسي، په دې صورت کي د بعضو عالمانو قول دی چې د بادشاه د اجازت شخه ماسوا دي دا اقدام نه کوي، ځکه چې په دې سره به فتنه جوړه سي او د بعضي عالمانو رايه دا ده چې شنګه د کافرانو سره د جهاد د پاره د بادشاه د اجازت ضرورت نسته دغه ډول د فاسقانو سره جنګ هم صحيح دی، او که محتسب مړ سو نو شهيد به وي.

**د محتسب آداب:** په محتسب کي د دري خبرو کېدل ضروري دي: علم، زهد، او ښه اخلاق، ځکه چي که علم پکښي نه وي نو د ښه او بدو تميز به څنګه کوي؟ که زهد نه وي نو که څه هم تميز د ښه او بد به وکړي ليکن کار به يې د نفسانيت څخه خالي نه وي، او که حُسنِ اخلاق پکښي نه وي نو چي خلک کله ده ته ازار ورسوي نو دغصّې په وجه به خداى هير کړي او قدم به يې د حق د ځاى څخه بېرون سي بيا چي دى کوم کار کوي نفسانيت به پکښي وي، په دې صورت کې به د ده احتساب د معصيت سبب جوړيږي.

**روايت:** يو وار حضرت علي ﷺ يو کافر پر ځمکه په ډېر زور راغورځار کړى نږدې وو چي قتل يې کړي ليکن هغه کافر د ده پر مخ لاړې (ناوړي) تو کړې نو دوى پرېښودى او ورېي فرمايل چي ستا په دې حرکت ماته غصه راغله نو زه ويېرېدم چي اوس به قتل کول د الله ﷻ د پاره نه وي بلکي د ځان د پاره به وي. دغسي يو وار حضرت عمر ﷺ يو سړى په دُرو وهلو هغه بدبخت ورته بنکنځل وکړل نو هغوى دُرې وهل بس کړل او د خلکو په پوښتنه کولوېي وفرمايل چي ما دى د خداى د پاره وهلو نو چي ده بنکنځل وکړل نو ما ته غصّه راغله په دې وجه که اوس مي وهلاى نو زما د غصي دخل به پکښي واى، نو ځکه ما وهل موقوف کړل. په دې وجه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي احتساب دي هغه سړى کوي کوم چي عالم وي بردباره وي او په ده کي نرمي وي، حضرت حسن بصري رحمه الله فرمايي ته چي د کوم کار حکم کول غواړي اول تا ته پخپله په دغه عمل کول پکار دي، دا ادب خو دى، ليکن شرط نه دى ځکه چي د نبي کريم ﷺ څخه پوښتنه وکړل سوه چي کله موږ پخپله عمل نه کوو تر هغه وخته پوري به امر بالمعروف او نهي عن المنکر نه کوو؟ دوى ﷺ وفرمايل چي داسي نه ده د ټولو حکمونو پر ځاى کول د احتساب د پاره شرط نه دي، دارنګه محتسب ته پکار دي چي د صبر او استقامت څخه کار واخلي ځکه چي د الله ﷻ ارشاد دى: وَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ وَانْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا أَصَابَكَ (د نيکي حکم کوه او د بدى څخه منع کوه او په دې وجه چي کوم مصيبت راځي پر هغه صبر کوه) نو کوم سړى چي پر تکليف صبر نسي کولاى دى احتساب نسي کولاى او يو ادب دا هم دى چي د محتسب تعلقات دى کم وي او په ده کي دي طمع هم نه وي ځکه چي کله کوم ځاى طمع راسي هلته احتساب باطل سي، يو بزرګ به د قصاب څخه پيشي ته وازدي (وازګي) راوړې يوه ورځ يې د قصاب څخه څه بدحرکت وليدى نو اول کورته راغلى پيشي يې د کوره ليري کړه بيا لاړى د قصاب سره يې احتساب وکړى هغه ورته وويل چي ښه دي! بيا به وازدي (وازګي

)غواړي، بزرگ وويل چي اول مي پيښي دکوره ليري کړه بيا هله احتساب ته راغلم، دغه وول دکوم سړي چي دا خواهش وي چي خلگ زما سره محبت وکړي زما صفت وکړي او زما څخه راضي وي نو دغه سړي به احتساب ونه کړای سي، حضرت کعب الاحبار رحمه الله د حضرت ابو مسلم خولاني رحمه الله څخه پوښتنه وکړه چي ستا په قوم کي ستا څه حال دی؟ هغه وويل چي ډېر ښه دی نو دوی وويل چي په تورات کي ليکلي دي چي کوم سړی احتساب کوي د ده حال په قوم کي ښه نه وي دوی وويل چي په تورات کي رښتيا ليکلي دي ابو مسلم دروغجن دی، داحتساب روح دا دی چي د محتسب په زړه کي زړه سواندي پکار ده او مجرم ته د شفقت په نظر سره کتل پکار دي او دی په داسي طريقه منع کول پکار دي لکه څنگه چي خپل بچی منع کوي، يو محتسب د خليفه مأمون د احتساب په وخت کي سختي خبري وکړې نو مأمون وويل چي ستا څخه د زيات غوره سړي زما څخه د ډېر بد سړي خوا ته دليږلو په وخت کي الله ﷻ ورته د نرمو خبرو کولو حکم فرمايلي وو يعني حضرت موسی او هارون عليهما السلام يې فرعون ته وليږل ويې فرمايل: فَقُوْلَا لَهٗ قَوْلًا لَّيِّنًا (يعني خبره په نرمی سره کوه! کيدای سي فرعون يې قبوله کړي) بلکي پکار دي چي په دې معامله کي د نبي ﷺ پيروي وسي چي يو ځوان د دوی په خدمت کي راغلی چي ما ته د زنا اجازت را کړئ! صحابه کرام په دې باندي غضبناک سول او د ده وهل يې وغوښتل ليکن دوی ﷺ منع کړل او دی يې ځان ته رانژدې کړی او د خپلو ځنگونو سره يې د ده ځنگونان ملاو کړل او پوښتنه يې څيني وکړه، چي ته دا خبره خوښوې چي څوک ستا د مور سره داسي فعل وکړي، ده عرض وکړی چي نه! دوی ﷺ وفرمايل چي نور هم دا غواړي چي د دوی د مور سره دي دا بد کار وسي څه ؟ بيا دوی ﷺ پوښتنه وکړه چي ته د خپلي خور يا ترور په باره کي داسي خبره خوښوې؟ تر دې چي دوی د ټول خپلوانو ښځو څخه د هري يوې متعلق پوښتنه وکړه ده هري يوې په باره کي نه او ويل، نو دوی ﷺ وفرمايل چي د نورو هم دا خواهش دی، بيا يې د ده پر سينه لاس را تير کړی ويې فرمايل اې الله ! د ده زړه پاک کړې، د ده د شرمگاه حفاظت وفرمايې! او د ده گناه وبخښې! نو هغه ځوان د دوی د خوا څخه روان سو او ټول عمر هغه بيا د زنا څخه ډيره بده گناه نه گڼله، حضرت فضيل عياض رحمه الله ته خلگو وويل چي حضرت سفيان بن عيينه رحمه الله د بادشاه څخه خلعت (انعام،هديه او تحفه) اخلي، دوی وفرمايل چي په بيت المال کي د ده حق د دې څخه زيات دی بيا حضرت فضيل رحمه الله حضرت سفيان رحمه الله ته په غصه کي وکتل اوېې رټلو، سفيان رحمه الله وويل چي اې ابو علي که څه هم زه

په صالحینو کي شامل نه یم لیکن زما د صلاحینو سره ضرور محبت دی.
صلت بن ایشم رحمه الله د خپلو شاګردانو سره ناست وو، د هاخوا څخه یو سړی تېر سو چي لنګ یې د متکبر په ډول پر ځمکه راسکښدی او ښکاره ده چي دا خبره شرعًا غلطه ده. شاګردانو د دغه سړي سره سختي کول غوښتل دوی شاګردان منع کړل چي تاسو چپ سئ! د ده د اصلاح زه تدبیر کوم. بیا یې هغه ځان ته نژدې راوغوښتی ویې فرمایل ای وروه! زما ستا سره کار دی هغه پوښتنه وکړه څه؟ ویې فرمایل چي خپل لنګ پورته کړه، هغه وویل ډېره ښه دی، دوی شاګردانو ته وفرمایل که ما سختي کولای نو ده نه منله بلکي کېدا سي چي ښکنځل یې کړي وای.
یو سړي یوه ښځه ونیوله چاړه یې راوکښه ښځي عاجزي چغي وهلې لیکن د چا د نژدې ور تللو همت نه وو، حضرت بشر حافي رحمه الله نژدې ورغلی او د ده د اوږې سره یې اوږه ملاوکړه هغه سړی بې هو ښه سو او را پرېوتی او چاړه یې د لاسه څخه شوه سوه او د بدن څخه یې خولې بهېدلې، چي په هوښ کي راغلی نو خلکو پوښتنه ځیني وکړه، هغه وویل بس ما ته صرف دومره معلومه ده چي یو سړی ما ته رانژدې سو ویې ویل چي وروه! خدای پاک دې ویني دا ته څه کوې! په دې خبره پرما هیبت راغلی او زه غوځار سوم، خلکو ورته وویل چي هغه خو بشر حافي وو هغه وویل آه! اوس د دې ندامت سره د هغه زیارت څنګه وکړم، دغه وخت پر دغه سړي تبه راغله او یو اوونۍ (هفته) وروسته وفات سو.

## دریم باب: هغه منکرات کوم چي نن عادتاً رواج دي

پوه سه! چي نن دنیا د منکراتو څخه ډکه سوې ده او د خلکو د حالاتو د صحیح کېدو اُمید نه دي پاته سوی، ځکه چي پر ټولو منکراتو لیري کولو قادر نه دي او پر کومو چي قادر دي د هغو څخه یې هم لاس اخیستی دی، اصلاح یې نه کوي، او دا حالت هم د هغو خلکو دې کومو ته چي اهلِ دین وایي کنې د غافلانو خو بالکل پوښتنه مه کوه چي هغوی خو په دې خوشحاله دي، لېکن مونږ د ښدارو خلکو او اهلِ دین ته وایو چي د کوم پر اصلاح تاسو قادر یاست یا د کومو څخه چي تاسو مغلوب نه یاست پر هغو خو خاموش مه پاته کېږئ، مونږ دلته د دغو منکراتو څخه د هر جنس طرف ته صرف اشاره کوو، ځکه چي تفصیل یې ممکن نه دی، او په دغو کي ځیني منکرات په مسجدو کي ځیني په بازارو کي بعضي په لارو، حمامو او کورونو کي کیږي او لیدل کیږي.
**د مسجدونو منکرات:** (۱) په لمانځه کي رکوع او سجده پوره نه کول (۲) په تلاوت کي د

سندرو په ډول راګونه ویل (۳) په آذان کې د آذان کوونکی آوازونه زیات اوږدول حال دا چې دا د دې منع راغلې او د حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ او حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ په وخت کې ټول بدن د قبلې څخه اړول او دا منع دی، صرف مخ به اړوي نه چې ټول بدن (۴) خطیب به توري ورېښمي جامې اغوستي وي یا به یې د زرو (سرو زرو) توره غاړې ته اچولې وي دا حرام دي (۵) کوچني بچي، لېوني، مست او مجنون به مسجد ته راځي او شور به جوړوي خلک به پرېشانه کوي، لېکن کوم کوچنی چې خاموش وي یا کوم لېونی چې خلګو ته تکلیف نه رسوي او په مسجد کې کنده ګې نه خوروي مسجد ته یې راتلل روا دي، دغه ډول که یو بچی کله کله د بازۍ (لوبې) د پاره مسجد ته راځي نو ایستل یې لازمي نه دي، ځکه چې حبشیانو یو وار په مسجدکې کې بازۍ کړې وې او حضرت عائشې رضي الله عنها ور ته کتلي وه، لېکن دمسجد څخه د بازۍ ځای جوړول نه دي پکار (۶) په مسجد کې څرخه کول کتابت کول چې خلګو ته پرېشاني نه وي باندي نو جائز دي لېکن د مسجد څخه مستقل دکان جوړول جائز نه دي، دغه ډول په مسجد کې هر هغه کار کول چې خلک ور ته جمع کیږي نه دي کول پکار، مثلاً په مسجد کې حکمراني کول، عارضي لیکل ښه نه دي، لېکن که کله کله وي بیا خیر دی، ځکه چې نبي ﷺ هم کله کله داسي کړي دي، لېکن نبي ﷺ دحکمرانی د پاره هیڅ وخت هم په مسجد کې کښېنستی نه دي (۷) د دوبي (کالو پرېولو والا) په مسجد کې جامې وچول، د رنګساز جامې رنګول یاوچول دا ټول منع دي (۸) په مسجد کې د مجلس د پاره کښېنستل، قصې کول داسي قصې چې دمعتبرو احادیثو د کتابونو څخه د باندي وي، داسي خلک د مسجدونو څخه ایستل پکار دي چې تیرو مشرانو به ایستل (۹) او هغه خلک کوم چې مسجد ته راسي ډول ډول سنګار یې کړی وي او شهوت د دوی پر سرونو سپور وي او په مسجّع (موزون) عبارتونو کې خبري کوي، بدلي (ګاني) او ځواني ښځې د دوی په محفلونو کې وي نو د دوی دا فعل مسجد خو لا څه کوې چې د باندي هم ګناه کبیره ده او حرام دي، په مسجد کې واعظ داسي سړی پکار دی چې په ښکاره هم صالح وي او په وضع قطع (شکل او حالت) سره هم دیندار معلومیږي او د باعزته او باوقاره شخصیت مالک وي (۱۰) او په یو حالت کې هم د ځوانو ښځو د سړو سره په مجلس کې کښېنستل صحیح نه دي بلکي د دې هم اجازت نسته چې په مینځ کې پرده وځوري کښېني، حضرت عائشې رضي الله عنها په خپله زمانه کې ښځې د مسجد د راتلو څخه منع کړې وې او د نبي ﷺ په وخت کې چې کوم ممانعت نه وو د دې په باره کې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایې چې که نبي ﷺ په دې زمانه کې وای چې اوس د

بڼځو څه حالت دی نو یقیناً پخپله به یې د دې ممانعت فرمایلی وای (۱۱) دغه ډول په مسجد کي کچاري (عدالت) کول. حساب کتاب کول. د زمینداراتو مقدمې فیصله کول او حسابونه صحیح کول. او نور هم د منکراتو څخه دي (۱۲) په مسجد کي داخسي پرېوتل. تماشه ګاه ځیني جوړول. واهیات خبري کول. په خرافاتو او بې هوده (پلتو (اضافي) کارونو کي مشغولېدل هم ممنوع دي او د مسجد د حرمت او تعظیم منافي دي.

**د بازار منکرات:** (۱) رانیونکي (خریدار) ته درواغ ویل (۲) د مال نقصان پټول (۳) ناپ تول صحیح نه کول (۴) په مال کي دوکه کول (۵) د اختر پر موقع د بچیانو د پاره رباب او د حیواناتو تصویرونه جوړول خرڅول. یا د نوروز[1] پر موقع د لرګي توري او ډال اونور خرڅول. یا د سدې[2] پرموقع دختو څخه جوړ ممنوع سامان او نور خرڅول یا د خلکو دپاره ورېښمي قباوي (چپني) او زریني خولی (ټوپی) خرڅول. یا په عامه توګه سره جالی. جالی جامي یا زري پرېول سوي جامې خرڅول او دا بنکاره کول چي دا نوي دي. او دغه ډول نور شیان د رانیونکي (ګراک) پر سر ورغوړځول او دوکه کول یې. یا د سرو او سپینو زرو لوښي. انګښتې او نور سامانونه خرڅول. چي په دوی کي ځیني خو حرام دي او ځیني مکروه او د حیواناتو تصویرونه حرام دي او د نوروز د پاره چي کوم شیان خرڅول کیږي دغه که فی نفسه حرام نه دي لیکن په دې کي د آتش پرستو سره مشابهت دی په دې وجه منع دي. دغه ډول د دې ورځي د پاره یو خاص شئ جوړول یا بازارونه بنایسته کول. خوږي او مټایاني ورکول او تکلفات کول ټول ممنوع دي ځکه چي د مسلمان کار د دې رسمونو او رواجونو خرابول او ختمول دي. پکار دي چي نوم یې هم وانه اخلي تر دې چي بعضو علماؤ ویلي دي چي په دې ورځ روژه مسلمان ته نیول پکار دي چي د مټایي او نورو څخه خوندي سي. دارنګه د شپې د رڼاګانو څخه دي حتی الوسع ځان ساتي. او ځیني عالمان وایي چي په دغه ورځ روژه نیول هم یو ډول دا ورځ یادول دي نو دا هم نه دي مناسب بلکي د عامو ورځو په ډول دې یوه ورځ ګڼي او خاموش دي ووسي.

**د لارو منکرات:** (۱) په لاره کي ستن او زیاتمن شئ غورځول. یا پیلار (کمبه) درول (۲) دکان په لاره کي غوړول چي لاره تنګه سي (۳) درخته په لاره کي را شنه کول (۴) په لارو کوڅو کي

---

[1] د پارسیانو نوی کال ته نوروز ویل کیږي.

[2] دپارسیانو داختر ورځ.

ځاروي ترل چي لاره بنده سي، دا تولي خبري صحیح نه دي، لیکن دسخت ضرورت په وخت که سخت ناچاره داسي وکړي نو په داسي صورت کي به صرف داسي وخت صحیح وي چي د ځاروي ځخه بوج (بار) او نور کښته کړي فوراً یې کور ته دننه کړي (۶) د څتو لرګو، وچو ازغنو بوټو بارونه دي په تنګو کوڅوکي نه راولي، لیکن که بله لاره نه وي نو صحیح دي خو چي په لاره کي بوټي او لرګي ونه لوېږي (۷) پر ځاروي دي د ده د طاقت ځخه زیات بوج (بار) نه وړي (۸) قصاب ته په لاره کي ځاروی ذبح کول نه دي پکار چي د خلګو جامې ګنده نه کړي، پکار دي چي په د کان کي دننه ځای ور جوړ کړي (۹) په بازار او لاور کي د هندوانې، ختکي او کېلو اونور و پوستکي غورځول نه دي پکاري، یا دومره اوبه تیول چي ختې جوړي سي روا نه دي.

**د حمام منکرات**: دنامه ځخه تر ځنګونانو پوري برخه پټه نه ساتل (۲) ورون د خلګو په مخ کي لځول (۳) د لنګ دننه د خلګو په مخکي لاس ور دننه کول او لاس پر وهل (۴) د حمام پر دېوالانو د حیوانانو تصویرونه جوړول دغه دي خرابوي یا دي د باندي وځي (۵) د امام شافعي په نزد ګنده(پلیت) لاس یا ګنده لوښی په لږو اوبو کي وهل منع دي که څه هم د امام مالک په نزد جائز دي (د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد هم، دغسي ده، د ده په نزد د زیاتو اوبو مقدار لس په لسه کي دي یعني دومره غټ حوض چي په څلور سره طرفه لس لس ګزه وي یا کومي اوبه چي د جاري اوبو په حکم کي وي، مترجم) زیاتي اوبه بیول هم صحیح نه دي، د نورو منکراتو بحث دطهارت په باب کي سوی دي.

**د مبلمستیا منکرات**: (۱) وربښمي فرش، د سپینو زرو انګېټي، د سپینو زرو ګلابدان او عطردان او نور د منکراتو ځخه دي (۲) تصویرو والا پردې جائز نه دي، لیکن که پر فرش او بالښت وي بیا خیر دی، لیکن د حیوانانو د شکل انګېټي جائز نه ده (۳) د سازونو سره نغمې او بدلي (ګانې) روا نه دي (۴) د ځوانو ښځو د ځوانانو سره کښېنستل پخپل ځای ډیري فتنې را پورته کوي او د احتساب وړ دي، دا ټول کارونه ممنوع دي که احتساب کول ممکن نه وو بیا د هغه ځای ځخه راوتل پکار دي. څنګه چي احمد بن حنبل رحمه الله صرف د سپینو زرو سرمه داني (رانجه دان) په یو محفل کي ولیدی دباندي راووتلی (۵) په محفل کي که یو چا وربښمي کالي یا د زرو ګوتمې په ګوته کړې وي نو هلته هم کښېنستل نه دي پکار، بلکي که کوچني ته یې هم د امتیاز د پاره وربښمي جامې اغوستي وي نو صحیح نه دي، او د اُمت پر خلګو خو وربښمي جامې یا د زرو کالي داسي حرام دي لکه شراب

او کوچني هلکان، په دې وجه حرام دي چي عادت به يې جوړ سي او په کوچنيوالي کي هم مکروه خامخا دي، ليکن په هغه صورت کي چي د حرامبلو علم ورته نه وي (۶) د مسلمانو په محفل کي يو داسي مسخري ممنوع دي په کومو کي چي فحش يا دروغ، لطيفې د خلګو خندولو دپاره وي. په داسي محفل کي ديندارو ته کښېنستل نه دي پکار، د منکراتو تفصيل ډېر اوږد دی نو که ته په دې ذکر سوو منکراتو پوه سوی يې نو نوري پاتلي قياس کوه کومي چي په مدرسه، خانقاه، د حکم په مجلس، کچاري (عدالت) او شاهي دربار او نورو... کي کول کيږي چي د هغو ټخه ځان ساتل او محاسبه يې لازمي ده، او اصل حال خو الله ﷻ ته معلوم دی.

## لسم اصل: د رعيّت ساتلو او حکمرانی په باره کي

پوه سه! چي بادشاهي کول يو ډېر لوی کار دی چي پر ځمکه د الله ﷻ د خليفه کېدلو دويم نوم دی په دې شرط چي په عدل وي کنې که د عدل اوانصاف څخه خالي وي نو دې ته به خلافت د ابليس وويل سي، ځکه چي د حکومت د والي د فساد څخه زيات غټ اثر په بل يو فساد کي نه وي او د واکمنی (حکمرانی) اصل علم او عمل دی، او علم ولايت لويه اوږده خبره ده خو صرف د عنوان په توګه به داسي وويل سي چي والي ته پوهېدل پکاردي چي دې عالَم (دنيا) ته د څه د پاره را استول سوی دی؟ د ده اصل قرارګاه کوم ځای دی ځکه تر څو پوري چي د دې دنيا تعلق دی دا خو محض يو منزل ګاه ده قرارګاه نه ده، او دی د يو مسافر په ډول دی چي د سفر شروع يې د مور د بچه دانۍ څخه شروع ده او آخر به يې پر قبر باندي ختميږي، او وطن خو د دغه څخه هم مخکي دی، او دلته چي د ده د عمر کومي ورځې مياشتي او کلونه تيريږي د دې اوږد منزل يوه مرحله ده چي دی خپل قرارګاه ته په مخه نژدې کوي، او کوم سړی چي پر پُل تېرېږي او خپل وخت د پُل په عمارت کي تېروي د خپل قرارګاه څخه بې خبره وي د ده څخه غټ احمق څوک کېدای سي، بلکي عاقل هغه دی چي د دنيا د دې منزل څخه ماسوا د توښې د آخرت څخه نور څه طلب نه کړي او نه په بل شئ کي مشغول سي او د دنيا څخه صرف د حاجت په مطابق باندي کفايت وکړي چي د دې څخه ماسوا زيات زهرِ قاتل دي ځکه چي د مرګ په وخت به دا ټولي خزانې د خاورو سره خاوري سي، بلکي د مرګ په وخت کي به غواړي چي کاشکي! دا هر څه د خاورو کوړي (انبار) وای سره زر او سپين زر نه وای، او څومره چي بنده ډېره جمع کړي وي دومره به د ساه ختلو پر وخت زيات خفه وي، ځکه چي دلته خو چي د څومره ضرورت هغومره خرچ کيږي (مصرفيږي) نور باقي پاته کيږي او دا خفګان به هم په هغه صورت

کي وي چي دا جمع کړی مال حلال وي او دا که حرام وي نو پر دې سر بېره به د آخرت عذاب د دې شخه هم سخت وي.

د دنيا دخواهشاتو څخه خو صبر کول آسانه دی لېکن په دې خبره ايمان راوړل خو دومره گران نه دی چي دا د دنيا لذت د شور ورځو دی او د دې په وجه به د آخرت لذت بربادېږي چي د کوم د بادشاهی چي څه انتها نسته او ختمېږي نه او کدورت پکي راتلی هم نسي، نو يو څو ورځي صبر کول څه دومره مشکله خبره نه ده، مثال يې دا دی چي فرض کړه ديو سړي معشوقه ده اوس که ده ته وويل سي چي که ته نن شپه د دې سره ملاو سوې نو آينده (را روانه) به بيا دا چيري ونه ليدل سي لېکن که نن دي صبر وکړي نو د زرگونو شپو د پاره به بيا دا تا ته حواله سي او هغه هم داسي چي چيري به در سره بيا د بېلتون او بې خونده کېدو بېره نه وي نو ښکاره ده که د ده ور سره هر څومره عشق ولي نه وي لو څومره پسي بې قراره ولي نه وي مگر په دې اُميد يوه شپه صبر کول به ده ته دومره مشکل نه وي چي د زرگونو شپو وصال يقني سي، اوبيا د دنيا مُده خو د آخرت په بلزه کي زوېموحصه هم نه ده بلکي د دوی په مينځ کي خو هيڅ نسبت نسي قائمېدای ځکه چي دآخرت مدې خو څه انتها نسته او د اوږدوالي اندازه يې په وهم او خيال کي نسي راتلای مثلاً فرض کړه چي په اووه ځمکو او اووه اسمانونو باندي مشتمل يو گودام دی چي دا ډېرنو د دانو څخه ډک دی او زر، زر کاله وروسته يو مارغه ارځي او يوه دانه ځيني پورته کوي تر دې چي دغه گودام خالي سي لېکن د دې بې اندازې مُدې په تېرېدو به هم دآخرت په مُده کي څه کمی رانسي، نو بيا که دلته چا ته سل کاله عمر هم نصيب سي او د مشرق څخه تر مغرب پوري د ټولي مځکي بادشاهت هم ده ته حواله کړای سي په کوم کي چي هر طرف ته امن او آمان وي او د چا سره څه جنگ هم را پېښ نسي، لېکن دا خو خيال وکړه چي د آخرت په مقابله کي د دې څه وقعت او مرتبه ده چي انتها يې معلومېدای نسي، نو هر کله چي هر چاته په دې دنيا کي لړلړ ملاوېږي او هغه هم دغم او د خفگان سره او وروسته د ډېري خرابی څخه نو کله واجب ده چي دغه د همېشه بادشاهت د دې معمولي شئ په مقابله کي خرڅ کړای سي؟ نو د دې حقيقتونو په رڼا کي که حاکم دی او که محکوم هر يوه ته د ځان څخه دا پوښتنه کول پکار دي (چي ته په دنيا پسې سوی يې که په آخرت پسې) چي دا فکر هر وخت د ده په زړه کي تازه وي او د دې څو ورځو په ژوند کي د خواهشاتو څخه صبر کول د ده د پاره آسانه سي او پر رعيّت د شفقت کولو او د خدای د بند گانو سره دنېکي کولو آرزو د ده په زړه کي بر قراره پاته وي،او په دې کارونو د پوهېدو څخه وروسته په حکمراني کي مشغولېدل به ښه هم ښکاره کيږي، چي په داسي شان سره يې وکړي ځنگه چي

الله ﷻ فرمایلي دي. نه داسي چي څکه د ده زړه غواړي یا د کوم مشوره چي د ده دنیاداری ده ته ورکړي، څکه چي یو عبادت د الله ﷻ په نزد د هغې حکمرانی څخه لوړه درجه نه لري کومه چي په عدل او انصاف سره کیږي او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي د بادشاه یوه ورځ په عدل او انصاف ف حکمرانی کول د شپیته کالو عبادت څخه غوره ده او په حدیث کي دي چي د قیامت په ورځ کوم اووه قسمه خلک به د الله ﷻ د عرش تر سا یې لاندي وي اوله درجه به پکښې د عادل بادشاه وي، دارنګه فرمایي چي عادل بادشاه ته هره ورځ د شپېتو سړیتانو د عبادت ثواب ملاویږي، او د ده عملونه اسمان ته ورل کیږي، او فرمایي: عادل بادشاه د الله ﷻ عزیز ترین (ډیر ګران) دوست او مقرّب وي، او ظالم باچاه د الله ﷻ بدترین (ډیر بد) دښمن وي، او په بدترین عذاب کي به مبتلا کیږي، او فرمایي: قسم دی په هغه خدای د کوم په لاس کي چي د مُحَمّد ﷺ روح دی چي روزانه د عادل بادشاه په عملونو کي دومره عملونه لیکل کیږي څومره چي په دغه ورځ د ده رعیّت په مجموعي توګه سره کړي وي (نیک عمولنه څیني مراد دي) دارنګه فرمایي چي د عادل بادشاه یو لمونځ د اویازره لمونځونو سره برابرر وي، نو چي داسي ده نو د دې څخه زیات مال غنیمت نور څه کېدای سي، چي الله ﷻ چا ته منصب د حکومت ورکړي د ده یو ساعت دنورو د ټول عمر برابر وي، او کوم بادشاه چي د دې نعمت قدر ونه پېژني او د خپلو خواهشاتو غلام جوړ سي نو پوه دي سي چي د سخت ترین (ډیر سخت) عذاب مستحق به سي.

**قصّه**: هارون الرشید یو وار د خپل خاص مصاحب (ملګري) عباس سره د حضرت فضیل عیاض رحمه الله خوا ته ولاړ، چي دروازې ته یې ورسېدی نو هغه د قرآن پاک تلاوت کوی او دغه وخت دې آیت ته رسېدلی وو: أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ اجْتَرَحُوا السَّيِّئَاتِ أَنْ نَجْعَلَهُمْ كَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَوَاءً مَحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ (الجاثية) (دا خلک کوم چي بد کارونه کوي آیا دا خیال کوي چي موږ به دوی د هغو خلکو سره برابر کړو کومو چي ایمان او نیک عمل اختیار کړی چي د دې ټولو ژوند او مرګ به یو ډول سي دا خو بد حکم کوي) هارون الرشید وویل چي موږ د نصیحت حاصلول غوارو، نو دا یو آیت پوره دی (کفایت کوي) بیا یې هم عباس ته د دروازې ټکولو وویل عباس دروازه وټکوله چي دامیر المؤمنین د پاره دروازه خلاصه کړئ، وریې فرمایل: امیر المؤمنین به دلته راسي څه به وکړي؟ عباس وویل دامیر المؤنین اطاعت وفرمایلست، په دې باندي ده دروازه خو خلاصه کړه لیکن شپه وه او څراغ یې مړ کړی، خلیفه په تیاره کي لاس ها خوا دې خوا

ښوري چي د دوی لاس په لاس کي راغلی، فضیل وفرمایل: آه صد آه که دا لاس د دومره قدر نرم والی سره سره د دوږخ د عذاب څخه خوندي نسي! او بیا یې وفرمایل اې امیر المؤمنین! د الله ﷻ په مخکي د جواب ورکولو تیاري کوه! چي د قیامت په ورځ به تا دیوه یوه مسلمان سره پېش کوي او د هر یو انصاف به ستا څخه غواړي خلیفه په ژړا سو، او عباس وویل اې فضیل خاموش سه! تا خو امیر المؤمنین مړ کړی ویې فرمایل: اې هامان! تا او ستا د قوم خلکو مړ خو دی پخپله کړی، او الزام پر ما لګوې چي تا مړ کړی، هارون وویل عباس! ګوره نه چي تا ته یې هامان وویل ما ته فرعون ونه وایي. نو زر دیناره یې د فضیل په مخکي کېښښول یې وفرمایل دا قبول کړه دا حلال دي دا زما د مور د حق مهر څخه دي، ویې فرمایل: زه تا ته وایم چي دا څه ستا سره دي د دې څخه لاس واخله او څوک چي یې مالک دی هغه ته یې ورسوه، او ته یې ما ته حواله کوې، خلیفه پور ته سو او د باندي ولاړی.

**قصه**: خلیفه عمر بن عبد العزیز رحمه الله یو وار د محمد بن کعب القرظی رحمه الله څخه پوښتنه وکړه چي عدل څه ته وایي؟ ده وویل عدل دا دی چي کوم مسلمان ستا څخه کوچنی دي پر هغه د پلار په ډول شفقت کوه او کوم چي ستا څخه لوی (غټ) دي نو د هغه سره د ځوی په ډول مخامخ کېږه او کوم چي ستا همزولی وي د وروړ په ډول یې ګڼه او سزا د جرم مطابق دومره ورکوه چي هغه یې برداشت کولای سي او په غصّه کي څوک په چلاخه هیڅ وخت مه وهه کنې ستا ځای به دوږخ وي.

**قصه**: ابو جعفر خلیفه ویو وار ده د یو زنا کار د قتل حکم وکړی، مبارک بن فضاله هم هلته موجود وو، خلیفه ته یې وویل: اې امیر المؤمنین! مخکي تر دې چي په دې حکم عمل وسي د نبي کریم ﷺ د ارشاداتو څخه هم څه واورئ!، خلیفه وویل: روایه! ده وویل: حسن بصري رحمه الله روایت کوي چي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي د قیامت په ورځ چي کله ټول مخلوق په یو صحرا کي جمع کړای سي آواز کوونکي به آواز وکړي چي که د چا د الله ﷻ مخ ته د ورانډي کېدلو همّت وي ودي دریږي او دا همت به هغه چا ته نصیب سي چا چي په دنیا کي د معافي او بخښني څخه کار اخیستی وي، چي دا یې واورېدل نو خلیفه د هغه سړي د آزادولو حکم جاري کړی چي دی پرېږدئ ما دی معاف کړی.

او د باچاهانو د غصې په وجه اکثر دا سي کېږي چي ځیني ژبور خلک د نورو خلګو خلاف د بادشاه غوږ ته څه خبري ورسوي او په دا سي انداز سره چي بادشاه د غو خلګو د وینو په تویلو کي دریغ نه کوي، په دغه وخت کي پکار دي چي د حضرت عیسی علیه السلام هغه خبره یاده کړای سي کومه چي دوی

حضرت یحی ﷺ ته کړې وه چې که یو سړی ستا څه ووایي او ر ښتیا ووایي نو شکر یې اداکړه او که دروغ ووایي نو ډېر زیات شکر یې اداکړه چې ستا په عمل نامه کي د نېکیو اضافه وسوه او په مفته کي (بېله قیمته) وسوه یعنې د هغه د نېکیو عملونو اندارج هم ستا په عملنامه کي وسو. او د حضرت عمر رضی الله عنه قول دی چې په خلکو کي پر هیچا هم تر هغه وخته پوري اعتماد نه دي کول پکار تر څو چې د ده غصه ونه ازمایل سي، او د چا پر دین اعتماد نه سي کېدای تر څو چې دی د طمع په وخت ونه لیدل سي.

دا ټول احادیث، قصې او اقوال چې کوم بیان سول د حاکمانو او والیانو (واکمنانو) د پاره کافي دي او که د ایمان بڅرکی هم د دوی په زړه کي باقي وي نو د دې خبرو، اقوالو خاطر خواه اثر پر کېدل پکار دي، او که په دې سره څه اثر قبول نه کړي نو دا د دې خبري واضح دلیل دي چې د دوی زړه د ایمان څخه بالکل خالي دی او د زباني خبرو څخه علاوه د دوی سره هیڅ نسته په خپل زړه کي د ایمان د موجودگی دعوی کول بله خبره ده، لېکن اصل ایمان یو مختلف شئ دي او زه نه سم وېلای چې د دې حکمران په زړه کي په حقیت کي د ایمان څه کیفیت دی کوم چې په لکونو په زرگونو دیناره په حرامو طریقه سره حاصل کړي وي او هغه هم نورو ته د ورکولو د پاره چې هغه د دې ضامن جوړ سي حال دا دی چې د قیامت په ورځ به هر څه پنځپله د ده څخه اخیستل کیږي، دکومو څخه چې نفع نور اخیستې وه، او دا هر څه د ده د انتهائي غفلت په وجه سوي دي د کومو سره چې د مسلمانی یو لیري واسطه هم نه وه، او اصل حقیقت خو صرف الله ﷻ ته معلوم دی.

د الله ﷻ په مرسته او توفیق سره د کېمیاء سعادت اوله حصه ختمه سو

وَالحَمْدُ للهِ رَبِّ العَالَمِيْنَ وَصلَّى اللهُ عَلَى مُحَمَّدٍ وَّآلِهِ وَأَصْحَابِهِ أَجْمَعِيْنَ

# دویمه حصه

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

## دریم رکن

## ددین دلاري د عقباتو په باره کي چي مهلکات ور ته وایي

دغه څه شئ دی؟ تعداد یې څومره دی؟ او علاج یې څنګه ممکن دی؟ دارکن پر لسو اصلو باندي مشتمل دی (١) اول اصل: د نفس ریاضت، د بد اخلاقی علاج او د ښه اخلاقو طریقې او تدبیرونه، (٢) دویم اصل د عورت او نس خواهشات او د دې د فساد څخه د محفوظ کېدلو تدبیرونه، (٣) دریم اصل د خبرو د فسادونو علاج، او دژبې څخه د پیداکېدونکو آفتونو تفصیل (٤) څلورم اصل دغصې او حسد آفتونه او علاج یې (٥) پنځم اصل: د دنیا سره د دوستی او محبت علاج، او داحقیقت چي ټول ګناهونه د دې دوستی او محبت په وجه د انسان څخه کیږي (٦) شپږم اصل: د مال دولت محبت او د دې د آفتونو کیفیت (٧) اووم اصل: د مرتبې او دبدبې سره مینه او د دې څخه پیدا شُده آفتونه (٨) اتم اصل: په عبادتونو کي د ریا کاری او منافقت علاج، او دا ذکر چي خلګ څنګه په درواغو د پارسایي او فقیری دعوٰی کوي، (٩) نهم اصل د کبر او غرور په باره کي (١٠) لسم اصل: دغرور او غفلت حال.

دا دي هغه ټولي خبري کومي چي د نا کاره او بدوصفتنو بېخونه دي او د دې بېخو څخه د بدیو د درختي نور ښاخونه او غوټی راوځي، او دا هغه لس غونډی(غرونه) دی چي څوک پر دې باندي وختی او پر تېر سو هغه د بدو اخلاقو څخه خلاصون ومونډی، او د باطن پاکي ده ته حاصله سوه او د

ده زړه د بدخويي او بد اخلاقۍ د ګندګۍ څخه پاک سو داسې پربولل سو چې د الله ﷻ معرفت او محبت او د الله ﷻ توحيد او قناعت په ده کې ښکاره سو.

## اول اصل: د نفس رياضت او د بداخلاقۍ څخه پاکېدل

په دې اصل کې اول موږ د ښه اخلاق (نېک خويي) پر فضيلت باندې رڼا اچوو بيا به دا حقيقت ظاهر کړو چې دغه څه دي؟ بيا پر دې خبره بحث کوو چې آيا په رياضت د نفس سره د ښه اخلاقو حصول ممکن دی؟ او بيا به د دې طريقه بيانوو، چې دغه څه کېدای سي؟ بيا به دا ذکر وي چې خپل عيبونه څنګه پېژندل کېږي؟ د دې څخه وروسته به وښوول سي چې د نېک خويي نښې (علامې) څه دي؟ د دې څخه وروسته به د بچيانو د پالنې (تربيت) او دوی ته به د ادب ښوولو طريقه وليکل سي، او په آخر کې به د مجاهدې او رياضت و هغو لارو ته اشاره وسي د کومو تعلق چې د مريدانو د ابتدائي منزل سره وي، يعني د مجاهدو په ابتداء کې دې ته ضرورت وي.

## د نېک خويي (ښه اخلاق) فضيلت او د دې ثواب

پوه سه! چې الله ﷻ د نبي کريم ﷺ د ښه اخلاق (نېک خويي) تعريف کوي فرمايي: چې: إِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ (بې شکه ته پر اعلی (او ښتو) اخلاقو باندې پيدا سوی يې) او نبي ﷺ خپل ارشاد هم دا دی چې: زه د ښو اخلاقو د بشپړتيا د پاره را لېږل سوی يم، او فرمايي: بهترين شئ کوم چې د عدل د پلې (تلې) زينت جوړېږي هغه به نېک خُلقي وي، يو سړی د نبي کريم ﷺ په خلمت کې حاضر سو پوښتنه يې وکړه چې دين څه شئ دي؟ وې فرمايل چې نېک خويي هغه د راسته طرف څخه بيا راغلی دا پوښتنه يې وکړه نبي ﷺ بيا دغه جواب ورکړی د چپه طرف څخه بيا راغلی او بيا به کله د يو طرف څخه او کله د بل طرف څخه راتلی او دا پوښتنه به يې کوله او نبي ﷺ به هم دغه جواب ورکولو او په آخر کې يې وويل چې آيا ستا په فکر کې نه راځي چې دين دا دی چې تا ته غصه رانسي (او ما ته ګوري چې ستا په وار وار پوښتنونو نه غصه کېږم) يو وار د نبي ﷺ څخه پوښتنه وسوه چې ډېره افضله عمل کوم يو دی؟ دوی جوراب ورکړی چې: ښه خويي (ښه اخلاق)، يو سړي عرض وکړی چې يا رسول الله! ما ته نصيحت وفرمايه!، دوی ﷺ وفرمايل د هري بدی څخه وروسته نېکي خامخا کوه چې دغه بدي خرابه کړي، هغه وويل څه نور ارشاد راته وفرمايه!، وې فرمايل ته چې کوم ځای او په کوم حالت کې هم يې د الله ﷻ څخه وېره کوه، او وې فرمايل کوم سړی چې په

ښو اخلاقو سره ښایسته کړي هغه د دوږخ د لور خوراک نه جوړوي، صحابه کرامو ﷺ یو وار عرض وکړی چي یا رسول الله ﷺ! فلانی ښځه د ورځي روژه نیسي او ټوله شپه عبادت کوي لیکن ډیره بدخویه ده او همسایه ګان پخپله بدي ژبي سره تنګوي، ورته فرمایل د دې مقام د دوږخ ځخه ماسوا بل ځای نسته، او ورته فرمایل: بدخویي د عبادت داسي ښمنه ده لکه سرکه چي د عسلو (شاتو) دښمنه ده، دوی ﷺ به اکثره دعاء کوله چي اې خدایه! تا زما صورت ښه جوړ کړی دي زما سیرت (کړه وړه، اخلاق) هم ښه کړه!، او فرمایل به یې اې خدایه! صحت عافیت او نیک خویي را کړې!، خلګو پوښتنه وکړه چي د الله ﷻ په مهربانیو کي د بندګانو په حق کي بهترین شئ کوم یو دی نو دوی جواب ورکړی چي نیک اخلاق او ورته فرمایل چي نیک اخلاق ګناهونه داسي ختموي لکه لمر چي واوره ختموي.

حضرت کتاني رحمه الله فرمایي چي نیک خویي صوفي پن (صوفیزم) دي، څوک چي ستا ځخه زیات نیک خویه (اخلاقمند) وي هغه زیات صوفي دی، حضرت فضیل بن عیاض رحمه الله فرمایي: چي د نیک خویه فاسق مجلس زما د بد خویه عالم ځخه خوښ دی حضرت یحیی بن معاذ فرمایي چي بد اخلاق دومره بد دي چي یو عبادت هم دې سري ته فائده نه رسوي، او دا چي نیکو اخلاقو والا ته یو ګناه نقصان نه سي رسولای.

## د ښه اخلاق (نیک خویي) حقیقت او پېژندنه

د اخلاق حسنه حقیقت او ماهیت علماؤ په څو قسمه سره بیان کړی دي ګواکي څه چي د چا په ذهن کي راغلي دي هغه یې ویلي دي لیکن پوره حال یې نه دي بیان کړی، نو د چا په نزد خو د دې حقیقت روڼ تندی دي د چا په نزد د نورو تکلیفونه پر ځان زغمل او د چا په نزد بیا د دښمن ځخه بدله نه اخیستل دي دغه ډول نور اقوال دي، لیکن په حقیقت کي دا شیان د اخلاق حسنه ښاخونه دي اصل حقیقت یې نه دی، موږ دلته د دې مکمّل حقیقت په تفصیل سره ښکاره کوو.

دا خبره خو ښکاره ده چي الله ﷻ انسان د دوو شیانو ځخه پیدا کړی: یو جسم چي په ظاهري سترګو سره لیدل کیږي، دویم روح کوم چي د عقل په سترګو سره پېژندل کیږي، د دې دواړو ځخه د هر یوه د پاره که ښه والی ستر بدي هم سته یعني د هر یو دوه دوه اړخونه دي یو دبدی بل د نیکی، په نورو الفاظو کي جسم ته حُسنِ خَلق او روح ته حُسنِ خُلق وایي، یعني د حُسنِ خُلق ځخه مراد صورت د باطن دی او د حُسنِ خَلق ځخه مراد صورت د ظاهر دی او لکه چي ظاهري صورت ته صرف د سترګو

په ښایستوالي سره ښایسته نه ویل کیږي، مثلاً د خولې په ښایست سره پوره جسم یا مخ ته ښایسته نسي ویل کېدلای بلکي ښایسته صرف هغه ته وایي د کوم چي سترګي خوله پزه غرض ټول اندامونه ښایسته وي او د یو بل سره په صحیح تناسب سره وي، دغه ډول باطني صورت ته هم تر هغه وخته پوري ښایسته نسي ویل کېدی تر څو چي په ده کي څلور قوتونه په ښه صورت او متناسب اندازکي نسي پیدا، یعني (۱) قوّت د علم (پوهې(۲) قوّت د غصې (۳) قوّت د شهوت (خواهشاتو) (۴) او قوّت د عدل، یعني اعتدال چي د دې منځکي درې سره وو په میانځ کي هم لازمي دی.

(۱) **قوّت د علم:** د دې څخه مراد موږ پوهه او هوښیارتیا اخلو، او د دې حُسن دا دی چي په آساني سره په رښتیا او درواغو کي فرق کولای سي او د یو بل څخه یې جلا کولای سي او په خبرو کي دا شعور پکار کي راوستی سي او نېکی او بدی دیو بل څخه جلا کړي او په کردار سره د دې عملي نمونه پېش کړي، او د اعتقاداتو په معامله کي په حق او باطل کي فرق (تمیز) وکړای سي، کله چي بنده ته دا کمال حاصل سي نو د بنده په زړه کي د حکمت ظهور کېدای سي کوم چي د ټولو سعادتونو سرچینه ده لکه چي الله ﷻ فرمایلي دي: وَمَن يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا [البقرة: ۲۶۹](او چا ته چي د دېن پوهه حاصله سو ده ته د غټ خیر شیٔ ملاؤ سو).

(۲)**قوّت غصّه(خښم):** د دې قوّت ښه والي دا دی چي دحکمت او شریعت تابع او فرمان برداره ووسي او د ده ناسته پاسته د دې مطابق وي.

(۳) **قوّت شهوت:** د ده ښه والي دا دی چي سرکښي اختیار نه کړي بلکي دعقل او شرع دومره پابنده سي چي د دوی اطاعت ور ته بالکل آسان ښکاري.

(۴) **قوّت عدل:** د ده ښه والی دا دی چي دی غصّه او شهوت په قابوکي کړي چي د عقل او دین تابعداره سي.

**وضاحت:** په اصل کي د خښم یا غضب مثال د ښکاري سپي دي او د شهوت مثال د یو آس او د عقل مثال د سپور دی او د آس عادت دا دی کله دی سرکښه سي او که بالکل فرمان برداره (تابع) سي، دا حال د سپي دی چي کله خو هغه کوي کوم چي ده ته ښوول سوی وي او کله خپله خوښه کوي او دا سپی چي تر څو پوري ښه اموخته کړی سوی نه وي او آس چي تر څو پوري ښایسته نه وي تر هغه وخته پوري سپور ته دا اُمید نه دي کول پکار چي ښکار دي په لاس ورسي، بلکي خطره ده چي د ی پخپله د هلاکت ښکار نسي یعني سپی پر ده حمله وکړي او آس یې مځکي ته را وغورځوي، دغه ډول د

عدل دا کار دی چي دواړه (غصّه او شهوت) د عقل او دین تابعداره ساتي، کله شهوت پر غصّه مسلط کوي چي سرکښي کوي نو دی یې سر کښته کوي او کله غصه پر شهوت مسلطه کوي چي هَوَس یې مات کړي او دا څلور شیان که دا صفت اختیار کړي نو دا مُطلق نېک خویي ده (یعني پوره اخلاق دی)، او که د دې څخه صرف یو څو ښېګڼي وي (او بعضي نه وي) نو دې ته مطلق نېک خویي نسي ویل کېدای، لکه مثلاً د یو سړي خوله ښکلې وي خو سترګي یې ښکلي نه وي، یا یې سترګي ښکلي وي پزه یې نا کاره وي نو ده ته مطلقًا ښایسته نسي ویل کېدای، او پوه سه! چي په دوی کي کوم یو هم بد وي هغه به بد کارونه او بدي خبري پیدا کوي او په دې وجه به ځیني بدی پیدا کیږي او د هري یوې بدی به دوه اړخونه وي یعني یا خوبه دغه بې ځایه زیاتي او د حدّ څخه په تېریدلو پیدا سوی وي یا به په یو کار کي د حدّ څخه په زیاتی کولو سره ښکاره سوی وي او ناقص به یې کړي؛

او قوّت د علم کله چي د حدّ د اعتدال څخه زیات سي او د بدی د پاره استعمال سي نو د دې څخه مکاری عیّاری او نور بدخصلتونه پیدا کیږي، او که پخپله ناقص سي نو نتیجیه به یې د حماقت او بې وقوفي په شکل کي ظاهره وي، او که په اعتدال باندي وي نو خوش تدبیري نېک خیالي، صحیح رائي والا کېدل، ښه فکر او ښه پوه پیدا کیږي، او دغه ډول کله چي د غصّه قوّت د حد څخه زیات سي نو بهادري ورته وایي او که د حد څخه کم سي نو بزدلي او بې همتي ورته وایي، او که متعدل وي نو شجاعت ورته ویل کیږي، او د شجاعت څخه لطف او کرم، لوړ همتي، جرأت او حلم، نرمی او د غصې د زغملو په ډول خصلتونه ښکاره کیږي، او د بهادری څخه کبر، غرور، ځان ښوول، لافي وهل، پهلواني، لوی لوی بارونه پورته کول او خطرو ته د ورځغستلو په ډول خصلتونه ښکاره کیږي او د بزدلی څخه د ځان خوار او ذلیل ګڼلو بې چاره، بې وسه، او فریاد کوونکي، خوشامد او چاپلوسي، ذلّت او رسوایي په ډول شیان پیدا کیږي، او قوّت د شهوت چي د حد څخه زیات سي نو دې ته هوس وایي او د ده څخه شوخي، پلیتي (ګندګي) او بې مروّتي، حسد، د دولت منډو د لاسه ذلت پورته کولو او د غریبانو د سپک ګڼلو په ډول بدی پیدا کیږي او کله چي دی د حد څخه کم سي نو د دې څخه سستی، نامردي، بې آرامي، او نور پیدا کیږي او کله چي دا قوّت پر حدّ اعتدال وي و دې ته عفّت وایي او د ده څخه شرم، حیا، قناعت، صبر، د نورو کارونه آسانه کول، تحمّل، برداشت، هم آهنګي او موافقت پیدا کیږي، غرض د دې ټولو قوّتونو دوه اړخونه کېدای سي، او دواړه مذموم او بد دی او د دوی په مینځ مینځ کي وسېدل ښه او غوره دي ګویا د دې دوو اړخونو مینځ اعتدال (عدل) دی، او عینِ مینځ ښکاره ده چي د وېښته څخه زیات باریک دی، او دا عینِ وسط یعني عدل یا اعتدال

ته صراط مستیقم وایي او دا هغه دنیوي صراط مستیقم دی کوم چي دآخرت پُلِ صراط دی، او څوک چي نن پر دې صراط مستقیم سیده چلیږي هغه به صبا په آخرت کي پر دغه پُلِ صراط هم تېرسي او بالکل محفوظ به وي، او داوجه ده چي الله ﷻ د هر خَلق په سلسله کي د میانځ روي حکم کړی دی او د دې دواړو اړخونو څخه یې منع فرمایلې ده، فرمایلي یې دي: وَالَّذِينَ إِذَا أَنْفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا وَكَانَ بَيْنَ ذَٰلِكَ قَوَامًا [الفرقان: ٦٧] (د الله ﷻ بندګان هغه دي چي کوم خرڅ کوي نو نه اسراف کوي او نه تنګي بلکي په مینځ مینځ کي چلیږي) یعني هغه خلک د تعریف قابل دي چي په نفقه کي نه اسراف کوي او نه د تنګی څخه کار اخلي بلکي په مینځ کي ولاړ وي، بل ځای نبي کریم ﷺ ته خطاب فرمایي: وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُولَةً إِلَىٰ عُنُقِكَ وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ فَتَقْعُدَ مَلُومًا مَحْسُورًا [بني اسرائیل: ۲۹](مه خپل لاسونه د څټ سره بند تړه (چي هیڅ نه خرڅ کوې) او مه یې بالکل خلاصوه (چي هر څه خرڅ کړې)) نو پوه سه! چي د ښه خوئي څخه مراد د ټولو قوتونو معتدل کېدل دي، لکه چي دمطلق ښایست والي څخه مراد دا دی چي ټول اندامونه متناسب او ښایسته وي او په دې اعتبار سره خلق په څلورو ډلو (ګروپونو) کي تقسیمیږي:

(۱) اوله ډله هغه ده یکومه کي چي دا صفتونه د ښه والي په روی سره په درجه د کمال موجود وي، چي ټول خلک د ده پیروي کوي او دا مقام ما سوا د نبي ﷺ څخه بل چا ته حاصل نه دی ځنګه چي په مطلق ښایست دا دارجه یوسف ﷺ ته حاصله وه. (۲) دویمه ډله هغه ده چي په کومو کي دا ټول صفتونه د بدی په اعتبار سره د لنتهایي درجې پوري موجود وي او مطلق بدخویي ورته وایي او دا خلک د خلګو د مینځ څخه خارجول پکاردي چي دا خلک شیطان ته ډېر نژدې دي، ځکه چي دبدی انتها په ده کي پیدا کیږي او د شیطان بدي د باطن بدي ده او شیطان د بدو اخلاقو مجسمه ده (۳) دریمه ډله هغه ده چي دمذکوره دواړو ډلو په مینځ کي وي، لیکن نېکي طرف ته زیات او بدی طرف ته کم وي (۴) څلورمه ډله هم د دې دواړو د مینځ وي لیکن زیات نژدې بدی ته وي، مثلاً په ظاهر حُسن کي انتهائي ښکلی او په حُسنِ باطن کي ډېر کم یا د حُسنِ ظاهر څخه محروم او حُسنِ باطن کي خاصًا لړ وي او نور نور..... او د ډېرو خلقو تعلق د دې څلورمي ډلي سره دي.

نو هر چا ته کوشش دا پکار دي چي که په نېک خویي (ښه اخلاق) کي درجې دکمال ته رسائي حاصله نه کړي نو لږ تر لږه چي نژدې خو ورسي، یعني که ټول خوېونه یې ښه نه وي نو چي زیاتره خو یې نېک سي، او لکه ځنګه چي د ښایست والي او بد صورتی په مینځ کي د فرق څه حد نه

مقررېږي دغه ټول د خلکو په زړونو کي د ښکې او بدی حدّ بندي محاله ده.
نو دا ده د ښک خويي پوره پوره معنی، او دا سلسله پر يو شيْ باندي مبنی نه ده او پر لسو شلو يا سلو او پنځوشتو مشتمله نه ده، بلکي د دې څخه ډېره زياته ده، هو! دا چي د دې اصل قوّت د علم، قوّت د غضب، قوّت د شهوت او قوّت د عدل دی او باقي چي څه دي د دې مختلفي شعبې دي.

## آیا ښه اخلاق پيد کول (جوړول) امکان لري؟

ځيني خلکو ويلي دي چي ظاهري صورت چي څنګه الله ﷻ پيدا کړی دي ښه اخلاق هم په دغه ډول وي بدليږي نه مثلاً په يو طريقه سره کوچنی قد جګ سي يا جګ قد کوچنی سي يا بدښکله ښايسته يا ښايسته بدښکله سي ممکنه نه ده، دغه ډول انساني اخلاق کوم چي د باطن تصويرونه دي دغه هم نه بدليږي. لېکن د اخلاقو په معامله کي دا مقوله صحيح نه ده ځکه چي که داسي وي نو چا ته ادب ښوول، پر چا محنت کول نصيحت کول ټول به فضول وای، حال دا دی چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: ح حَسِّنُو اَخْلاَقَكُم (خپل عادتونه ښايسته کړئ).
دا خبره ځکه محاله نه ده چي بنده خو په محنت سره حيوانان هم داسي په عادت کوي چي هغه سرکښي او خود سري پرېږدي تابعدار سي او د وحشي څخه وحشي درنده هم داسي آرام او اموخته سي، نو بيا پر خلکو خو د دې قياس او اطلاق بالکل غلط دی، ځکه چي د انسان کاروبار پر دوه قسمه دی بعضي داسي کارونه دي چي د انسان د اختيار څخه بهر دي مثلاً د خورما د تاکی څخه سبب نسي راشنه کېدلای، لېکن په صحيح طريقه کرلو او مناسب ساتني سره د خُرما د درختي څخه ښه او زياتي خُرماوي حاصليږي، څنګه چي غصّه او شهوت خو د بېخ څخه ايستل د بنده په وس کي نه دي لېکن په رياضت او کوشش سره يې اعتدال ته راوستل د بنده په وس کي دي او د دې نتيجې په تجربه سره حاصلي سوي هم دي، ها! دا ضرور ممکنه ده چي د بعضي خلکو په معامله کي د دې حصول نسبتًا ګران وي (خو نامکنه نه وي) او دا ګرانوالی په دوو وجهو سره راپيښېږي يو خو دا چي د ده په فطرت کي د غصې او شهوت بېخ ډېر مضبوط وي، او دويم په دې وجه چي بنده تر يوې اوږدې مُدې پوري د دوی غلام راغلی وي او پخپلو لاسويې د دې بېخ مضبوط کړی وي،او په دې اعتبار سره د خلکو څلور درجې دي: (۱) يو خو ساده زړي خلک وي چي ښک او بد ورته معلوم نه وي او د ښو او بدو کارونو تجربه نه لري لېکن د دوی رجحان (ميلان) اولنی فطرت طرف ته زيات وي يعني اصلاح قبلوي لېکن د دې محتاجه وي چي څوک ورته تعليم ورکړی او شعور پکي پيدا کړي چي د ښکې

لار کومه ده او دبلی دا کومه ده؟

ځکه چي بچی په بنسټيز توګه د دې فطر حامل وي، لیکن د ده مور او پلار دی پر داسي لار وغورځوي، چي د دنیا حرص د دوی زړونو ته ننه سي، او والدین یې پر خپل حال پرېږدي چي ځکه غواړي ژوند دي تېروي، حال دا دی چي د دین او شریعت د تحفظ جذبه په دوی کي بیدارول د مور او پلار فرض دي او په دې وجه د الله ﷻ ارشاد دی: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا [التحریم:۶] (اې مؤمنانو تاسو خپل ځانونه او خپل اهل او عیال د اور څخه وساتئ)

(۲) دویمه ډله هغه ده چي بدي عقیدې خو دوی خپل شعار نه وي جوړ کړی لیکن یوه مُده د غضب او شهوت د تابعدار کېدلو په وجه ورسره عادت سوی وي لیکن دا خیال کوی چي دا کارونه د نه کولو دي، د داسي خلګو اصلاح که څه هم ګران کار دی ځکه چي دوی ته دوو کارونو ضرورت را پېښ سوی دی یو فاسد اخلاق ځیني لیري کول دي او بل پکښي د نېک خویی (ښه اخلاق) تخم کرل دي، لیکن که په دوی کي د ذاتي کوشش ماده پیدا سي نو ډېره ژر به یې اصلاح وسي او د بدو عادتونو پرېښودلو ته به تیار سي.

دریمه ډله د هغه خلګو وي چي د بدی سره عادت سوي وي او د دې امکان څخه هم غافله وي چي دا کارونه د نه کولو دي، بلکي د دوی په نظر کي دغه بدی ډېره غوره وي، او د داسي خلګو اصلاح شاذ او نادره لیدل سوې ده.

په څلورمه ډله کي هغه خلک راځي چي په بدو عملونو باندي فخر کوي حال دا دی چي داور ته هم معلومه وي چي دا دوی څه کوي دغه ښه نه دي او دا هغه خلک دي چي فخر ناز او لافي وهي چي مونږ دومره مرګونه کړي دي یا داسي وایي: چي مونږ خو دومره شراب په یو وار څښلي دي، او د داسي خلګو اصلاح حو د آسماني سعادت او تائید الهي څخه سوا ممکنه نه ده.

## د بد اخلاقي علاج

پوه سه! چي کوم سړی د بدخویي (بدو اخلاقو) پرېښودلو خواهشمند وي نو د ده صرف دا یوه طریقه ممکنه ده. او هغه یوه طریقه دا ده چي دغه بدخویي چي دی د کوم شئ و طرف ته آماده کول غواړي دی دي همیشه د هغه چپه (برعکس) عمل کوي ځکه چي د شهوت ماتول (تور) صرف دا دی چي د ده مخالفت وسي، او هر شئ د هغه په ضد سره مات سي، ځنګه چي هغه مرض کوم چي د

گرمی شخه پیدا سوی وي دیخو شیانو په استعمال سره کول کیږي، دغه ډول هر هغه اخلاقي مرض کوم چي د غصي شخه پیدا وي د دې علاج په تحمّل او حلم سره کیدای سي، او کوم علت چي د تکبر شخه پیداوي د هغه تلافي په عاجزي او په ځان کښتنه گڼلو سره کیدای سي او کوم علت چي د بخل شخه پیدا وي د هغه علاج سخاوت دی، او ټول عادتونه او خصلتونه په دې شان دي یعني څوک چي نېک کارونه عادت جوړوي د هغه اخلاق هم نېک کیږي، او شریعت چي د کومو نېکو کارونو حکم کړی دي په دغو کي هم دا راز پټ دی چي د زړونو شخه بد صفتونه ختمیږي او نیک صفتونه د دې ځای اخلي، او عادتونه که څه هم په تکلف سره اختیار کول کیږي خو آخر د طبیعت یوه حصه جوړه سي، لکه څنګه ...ي بچي په اوّل اوّل کي مدرسې ته د تلو شخه تر هیږي (بیرېږي) لېکن هر کله چي واستول سي نو کرار کرار دی د هغه سره عادت سي، بلکي څومره چي دی غتیږي د ده ټول لذتونه د علم سره تړل کیږي، او د مطالعې شخه بغیر ده ته بیا صبر نه راځي، نو کوم خلګ چي د کوتر بازۍ، شطرنج بازۍ یا قمار بازۍ سره عادي دي نو کرار کرار دغه عادتونه د دوی د طبیعت جُزء جوړ سي چي بغیر د دې شخه بیا په بل څه کي ورته راحت نه راځي، او څه چي ور سره وي ټول پر دې خرڅ کوي،اوبیا هم د دې شخه منع کیږي نه، بلکي خلاف فطرت خبري هم چي کله د عادت شکل اختیار کړي نوبیا خلګ د فخر اظهار پر کوي، مثلاً چي دغلا عادت جوړ سي نو بیا غل د لښتو خوړلو لاس پرې کېدلو باندي نه صرف صبر بلکي فخر کوي، او مخنثانو ته وګوره چي پر خپل پیشې باندي څومره ناز کوي، بلکي نایانو (حمامیانو) جاروکښانو، موچیانو ته که وګورې ... پخپلو پیشو باندي څومران ناز که ونکي دي، لکه یو عالم چي پخپل علم یا بادشاه پخپل حکومت ناز کوي، او دا ټوله ثمره وي د عد... بلکي که یو سړی په خاورو خوړلو عادت سي نو د دې شخه بغیر به د د... صبر نه کیږي، او که په هر څومره خطرناکه مرض کي مبتلا کیږي خو پرواه یې نه کوي، غرض که یو شیځ خلاف طبع وي خو په عادت کېدلو باندي د طبیعت بالکل موافق سي، او دا ټول د عاد... کرامت دی، تر څومره پوري چي د طبعي تقاضاوو تعلق دی معرفت الهي، عبادت خدواندي، او غصب، او شهوت د خپل حکم لاندي ساتل هم د انسا ن د طبیعت تقاضا ده ځکه چي په انسان کي جوهرملکوتي هم ایښول سوی دي، او په اصل کي خو دا صفتونه د ده صحیح صفتونه دي او د کومو رُجحان ي د دې پر خلاف وي د دې مثال د مریض دی چي د ده خوراک پر ده بد لګیږي، او په ناروغي کي چي څنګه مریض ته د طعام شخه نفرت او کراهت غوندي وي، او هغه شیان ور ته ښه معلومیږي کوم چي ده ته بد وي د نقصان بېره ځیني وي، دغه ډول هغه سړی د کوم چي د طاعت ... ي او معرفت

خلواندی پر ځای د نورو شيانو سره مينه وي هغه د يو مريض زړه مالک دی لکه چي الله ﷻ فرمايي:
فِیْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ (د دوی په زړونو کي لوی مرض دی) داړنګه فرمايي: اِلَّا مَنْ اَتَی اللّٰهَ بِقَلْبٍ سَلِیْمٍ (مګر نجات به هغه حاصل کړي چي الله ته د کفر اوشرک څخه پاک زړه راوړي) [الشعراء] او لکه څنګه چي ناروغه جسم ته په دې دنيا کي د هلاکت خطره وي دغه ډول د ناروغ زړه د پاره په آخرت کي د هلاکت خطره وي او لکه څنګه چي د ناروغه د پاره د روغوالی اُميد تر هغه وخته پوري نسي کېدای تر څو چي دی د طبيب د وينا مطابق او د خپل طبيعت خلاف ترخه دوايي ونه چيښي، دغه ډول د ناروغ زړه د شفاء حاصلېدل تر هغه وخته پوري امکان نه وي تر څو چي د خپل نفس مخالفت او د صاحب شريعت د حکم مطابق هغه عمل اختيار نه کړي د کوم چي هغه تقاضا کوي ځکه چي د خلګو د زړونو طبيب صاحبِ شريعت دی، غرض د بدن د طب او د زړه د طب لاره يوه ده او لکه څنګه چي د ګرمی علاج په يخ سره او د يخ ده په ګرمی سره کوي، دغه ډول د متکبر سړي علاج دا دی عاجزي او انکساري اختيار کړي، که عاجزي د حد څخه زياته سي ذلّت او رسوايي ته ورسيږي نو په تکلف سره مغروره کېدل د دې علاج دی.

**فصل**: پوه سه! چي د ظاهري اندامونو څخه د عملونو ظهور کيږي لېکن قصد يې د زړه (روح) په حرکت سره وي، ځکه چي هغه عالَم ته سفر کول په زړه سره دی نو د زړه باجماله او باکماله کېدل پکار دي کوم چي د حضورِ الهي سره لائق دي او دا زړه د هينداري په ډول صفا او روښانه کېدل پکار دي چي په دې کي ملکوتي صورتونه ښکاره سي، او هغه جمالِ حيقي په نظرکي ساتي چي دغه جنت هم دهغې په مقابله کي بې وقته سي د کوم چي دومره تعريف ده او ېدلی وي، که څه هم په هغه دنيا کي د انساني جسم حصه هم ده، لېکن اصل شئ خو په هرحال زړه دی، او جسم محض د ده تابع او غلام دی، او په دې خو پوه يې چي زړه بل شئ دي او جسم بل، ځکه چي زړه د عالمِ ملکوت څخه دی او بدن د عالَم شهادت څخه، او دا مخکي ښوول سوی دي، لېکن بدن که د زړه څخه جلا سي لېکن د زړه ور سره تعلق ضروري دی، چي هر نېک عمل کوم چي په بدن سره کيږي د هغه د نېکی نوم په زړه کي پيوست کيږي، دغه ډول د جسم د هر بد عمل تياره زړه ته رسيږي، او دغه دواړه په زړه کي خپل تخم کړي، او د دې زړه او بدن د تعلق قائمولو د پاره بدن دې دنيا ته را استول سوی دی، چي زړه دا جسم آله او دام جوړ کړي په نېکو صفتونو کي درجه د کمال حاصله کړي.

**وضاحت**: مثلاً کتابت يو فن دی او دا صفت په اصل کي د زړه دی لېکن په ښکاره د دې تعلق د

ګوتو سره دی یعني د دې کار ظهور په ګوتو سره کیږي، نو که یو سړی غواړي چې د ده خط دې ښکلی سي نو تدبیر یې دا دی چې کوښښ دې کوي ښکلی او ښائسته خط دې لیکي، مشق دې کوي چې د خوشخطی نقش د ده پر زړه قائم سي، او هر کله چې دا نقش پر زړه قائم سي نو په ښکاره کار که څه هم بیا هم ګوتي کوي، لیکن اشاره پکښې د زړه وي یعني د حرفونو کوم صورت چې په زړه کي پوخ سوی وي ګوتي بیا هغه صورت پر کاغذ جوړوي او لیکي یې، دغه ډول د ښکو کارونو په کولو کولو سره زړه د ښکی عادي کیږي، او کله چې دا نیکي د زړه خوی او عادت جوړ سي نو بیا د دې څخه چې کوم عملونه ظاهرېږي د دغه خوی اوصفت مطابق وي، نو د ټولو سعادتونو شروع خو په تکلف سره د ښک عمل کولو څخه کیږي لیکن ثمره یې دا وي چې زړه سر تر پایه ښک صفته سي بیا د ده نُور د دننه څخه د باندي ته ظهور کوي او هغه ښک کارونه کوم چې اول په تکلف او کوشش سره نصیب کېدل اوس خپل پخپله ظاهرېږي، او د دې راز په هغه تعلق کي پټ دی کوم چې د زړه او بدن په مینځ کي پیدا کیږي چې دی پر هغه اثر کوي او هغه پر ده، داوجه ده چې کوم کار تر غفلت لاندي کول کیږي دغه فضول، لغوه او پالتو (اضافي) وي ځکه چې زړه د دې څخه غافله وي، (او کار هغه دی چې د زړه او جسم پخپل مینځوي ربط سره وسي).

**فصل**: ریاضت (مشق) کول ډېر ستونزمن کار او مشکله خبره ده بلکي داسي ویل پکار دي چې د روح ویلي کول دي لیکن که ښه طبیب او ښه دوایي په لاس ورسي نو آسانېږي او د طبیب یعني مرشد کمال دا دی چې مرید په اوله موقع باندي د حقیقت وطرف ته نه را وبولي ځکه چې هغه د دې طاقت نه لري ځکه چې که یو سړی بچي ته وو ایي چې ته مدرسې ته زه! چې تا ته د تعلیم څخه وروسته حکومت ملاو سي نو هغه به خاوري پوه سي چې حکومت څه دی، بلکي ده ته داسي ویل پکار دي چې مدرسې ته زه ماښام به تا ته ګین (فټبال) یا روپۍ یا طوطي به در ته ملاو سي نو د دې شیانو په لالچ (حرص) کي به هغه ضرور مدرسې ته ځي، که چیري لږ لوی سي بیا ورته د ښو جامو او ښایست ترغیب ورکول پکار دي چې د لوبو څخه منع سي کله چې نور لوی سي بیا د سرداری او ریاست وعده ورکول پکار دي او د وریښمي جامو څخه یې منع کول پکار دي چې دا د ښځو جامې دي، بیا که د دې څخه هم لوی سي نو بیا ورته ښوول دا پکار دي چې سرداري او ریاست ټول بې اصله شئ دی په مرګ سره به دا ټول فناسي په دې وجه ده ته د دائمي بادشاهي وطرف ته دعوت ورکول پکار دي دغه ډول د مرید معامله ده ممکنه ده چې دی په ابتداء کي پر کمالِ خلوص قادر نه وي نو ده

ته دا اجازت ورکول پکار دي چي وروه! ریاضت کوه چي خلک در ته بنه وایي دغه ټول به د ریاء په آرزو کي د نس او مال لالچ (حرص) د ده څخه ختم سي کله چي د دې څخه لږ فارغه سي او په ده کي څه غرور پیدا سي نو د غرور لالچ داسي څیني لیري کول پکار دي چي ده ته وواییي زه په بازارونو کي ګرځه! سوال کوه او خپله ګناه پر کوه چي کله یې د هغه سره زړه ولګیږي نو د دې څخه دې منع کړي او په رذیلو کارونو کي مثلاً د پاخانه (ګنده ګی) اود نورو صاف کولو پکار دې ولګوي ګویا دغــې به یې کرار کرار علاج کوي د ټولو شیانو حکم دي پر یو ځای نه ورته کوي، چي دی یې بیا طاقت ونه لري او د نیک نامی په لالچ (حرص) کي به ټول محنت او تکلیف د ده د پاره آسانه سي، د دې ټولو صفتونو مثال د مار او لړم په ټول دی او د ریاء مثال دا یي مار (اژدها) دی چي دا هر څه خوري او د ټولو بدو صفتونو څخه وروسته چي کوم صفت د صدیقینو څخه دفع کیږي هغه ریاء ده.

## د نفس د عیبونو او د زړه د مرضونو د پېژندلو تدبیر

روغتیا (صحت) او دلاسو پښو سترګو اونورو صحت د دې څخه معلومیږي چي کوم کوم اعضاء د کوم مقصد د پاره پیدا سوي دي هغه دغه مقصد په ښه ټول سره کولای سي مثلاً سترګي ښه کتل کوي پښې ښه تلل کوي دغه ټول د زړه صحت او روغتیاپه دې سره معلومیږي چي د ده کوم خاصیت دی او دی د څه د پاره پیدا سوی دي هغه ده ته آسانه وي او په اصلي خلقت کي چي د زړه کوم طبیعت دی دغه دوست او خوښ لري او دا خبره د دوو شیانو څخه ښکاره کیږي یوه خو د ارادت څخه او بله د قدرت څخه، ارادت خو دا دی چي یو شئ دالله ﷻ څخه زیات دوست نه لري، ځکه چي دالله ﷻ معرفت د زړه غذاء ده لکه خوراک چي دبنده غذا ده او د کوم بدن څخه چي د خوراک خواهش ولاړ سي یا کم سي، نو دغه مریض دی دغه ټول د کوم زړه څخه چي د الله ﷻ معرفت او محبت بالکل ولاړ سي یا کم سي هغه زړه هم مریض دی د الله ﷻ ارشاد دی: قُلْ اِنْ کَانَ آبَاؤُکُم وَاَبْنَآؤُکُم [توبه] مطلب دا دی چي که مور او پلار، اولاد، وروڼه، ښځه، خاندان، مال، تجارت او مانۍ او نور د الله ﷻ او د هغه د رسول اود هغه په لاره کي دجنګ (جهاد) څخه زیات ګران او عزیز ګڼئ! نو د الله ﷻ د حکم انتظار کوئ، او قدرت دا دی چي د الله ﷻ فرمان برداري پر ده اسانه سوې وي پخپل ځان په جبر کولو سره د هغه اطاعت نه کوي بلکي د دې لذّت او ذوق پیدا سوی وي، لکه چي د نبي کریم ﷺ ارشاد دی: جُعِلَتْ قُرَّةُ عینِي فِی الصَّلٰوة (زما د سترګو یخوالی په لمانځه کي دی) کله چي یو سری پخپل ځان

نافرماني کي د ده خواهش مه پوره کوه چي صبا به د قیامت په ورځ ستا سره جنګ کوي او پر تا به لعنت وایي، تر دې چي ستا اندامونه به پر یو بل لعنت کوي، حضرت حسن بصري رحمه الله فرمایي چي نفس ته د واګي سستولو څخه خوره دا ده چي یو غټ او طاقتور ځاروی ته واګي سستي سي، حضرت سری سقطي رحمه الله فرمایي چي د څلوېښتو کالو څخه زما نفس زما څخه په عسلو لړل سوي جوز خوړل غواړي (یعني د څلوېښتو کالو څخه مي د دې خواهش دی چي شات او جوز ګډ سره وخورم) خو لا تر اوسه یې ما دا خواهش نه پوره کړی، حضرت ابراهیم خواص رحمه الله فرمایي چي زه په "لګام" غر کي روان ووم هلته انار ډېر زیات وو، په زړه کي مي د انارو خوړولو خواهش پیدا سو، نو یو انار مي وشکوی لېکن هغه ډېر تریو وو هغه مي وغورځولو روان سوم، نا څاپه مي یو سړی ولیدی چي پروت دی او د هر طرف څخه مچمچی پر راټولي دي چیچي یې، ملور ته سلام وکړی هغه زما نوم واخیستی او د سلام جواب یې را کړی، نوما پوښتنه ځیني وکړه چي ما څنګه پېژني هغه وویل څوک چي الله پېژني د هغه څخه یو شئ پټ نه وي، ما وویل چي معلومه سوه چي تا ته دا لله ﷻ سره کمال نسبت حاصل دی، نو ته سوال ولي نه کوي چي د دې مچمچی د چیچلو څخه خلاص سي؟ ویې فرمایل چي دا نسبت خو تا ته هم حاصل دی، بیا تا ولي دا آرزو نه کوله چي الله ﷻ تا د انار د خواهش څخه لیري وساتي، ځکه چي د انارو د خواهش زخم به په بل جهان کي تکلیف ور کوي او د مچمچی زخم خو به دلته وي، اوس پوه سه! چي انار حلال دی لېکن د اهلِ احتیاط نظر به دا وي چي که خواهش د حلال وي او که د حرام په هر حال خواهش خو وي نو که د ضرورت مطابق د حلال شئ د ملاوېدو څخه وروسته د خواهش دروازه بنده نه کړای سي نو بیا دغه حرامېږي په دې وجه هغوی د حلالو شیانو خواهش هم نه ساتي، چي خواهش د سره ختم سي، او داسي بیا خامخا د حرام و څخه نجات ملاوېږي، لکه چي حضرت عمر رضي الله عنه فرمایلي دي چي اویا ۷۰ واره داسي وسوه چي ما د حلال شئ څخه هم لاس واخیستی ځکه دا بېره وه چي حلال خو ډېر دي که د هر حلال شئ خواهش کووم، نو آخر به د حرامو خواهش هم په زړه کي پیدا سي، دویمه دا چي کله د نفس عادت جوړ سي چي کوم شئ حلال وي دا خوره نو په دنیا کي خو داسي حلال نعمتونه ډېر دي او نفس به بیا د دغو په تلاش کي سي نو دا دنیا به د ده د پاره یو جنت جوړ سي او مرګ به بیا ګویا د ده خوښ نه وي، او غفلت به په زړه کي کور جوړ کړي بیا به په ذکرِ الهي او مناجات کي او عبادتونو کي څه خوند، لذت پاته نسي، او کله چي د حلالو شیانو د خواهش څخه دی منع سي نو سخت په تکلیف او زړه یې ماتیږي، لېکن دا کوشش چي جاري وساتل سي نو کرار کرار د دې دنیا څخه نفرت پیدا سي، او د

کي دا خبره ونه ويني نو دی دي پوه سي چي د ده زړه مريض (ناروغه) دی، په دې وجه ده ته په علاج کي مشغولېدل پکار دي ممکنه ده چي دی دا خبره ورپېژني چي زه د بدو عادتونو ښکار سوی يم او داسي هم ممکنه ده چي ورېې نه پېژني ځکه چي د خپل عيب په اعتبار سره ښده روند وي، بنده خپل عيب په څلورو طريقو سره پېژندلای سي، يو دا چي د کامل مرشد په خلمت کي کښېني چي هغه د ده عيبونه ورښيي ده ته يې ورښيي، دا خبره په دې دور کي نادره او مشکله ده، دويمه طريقه دا ده چي خپل يو مهربان دوست پر ځان نگهبان (محافظ) مقرر کړي کوم چي د ده عيبونه نه پټوي، او نه يې د حسد په سبب سره زياتوي، بلکي کوم چي حقيقت وي هغه بيان کړي، دا خبره هم په دې دور کي کمه ده، حضرت داود طائي رحمه الله ته خلکو وويل چي ته د خلکو سره ولي نه کښېني؟ ورېې فرمايل چي زه د داسي خلکو سره کښېنم نو څه به وکړم کوم چي زما عيب ما ته ښکاره نه کړي، دريمه طريقه دا ده چي پخپل حق کي د دښمن خبره واوري ځکه چي د هغه نظر هميشه پر عيب وي که څه هم د دښمنی په سبب به مبالغه کوي لېکن په دې کي رشتيا تلاش کېدای سي، څلورمه طريقه دا ده چي پر خلکو نظر ساتي په چا کي چي کوم عيب ويني د هغه څخه دي ځان ساتي او پر خپل ځان دي دا گمان کوي چي زه همد اسي يم، د حضرت عيسیٰ عليه السلام څخه خلکو پوښتنه وکړه چي تا ته ادب چا درونښووی؟ هغه وفرمايل هيچا نه لېکن ما چي کومه بده خبره په چا کي وليده د هغې څخه مې ځان وساتلو.

ياد لره! کوم سړی چي ډېر احمق (جاهل، بې وقوف) وي هغه پخپل حق کي ډېر نېک گمان لري او عقلمند پر خپل ځان بدگمانه وي، حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي نبي کريم ﷺ منافقانو راز تاسو ته ذکر کړی وو آيا ته په ما کي د نفاق يو نښه وينې! (الله الله د صحابه وو عاجزي چي د خپل ځان سره يې څومره فکر وو!) اصل خبره دا ده چي هر چا ته پر خپلو عيبونو فکر کول پکار دي، ځکه چي کوم سړی مرض نه پېژني علاج به څنگه وکړي او ټول علاج د شهوت په مخالفت سره کېدای سي لکه چي دالله جل جلاله ارشاد دی: وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوَىٰ (٤٠) فَإِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَأْوَىٰ (النازعات: ٤١) (چا چي نفس د خواهشاتو څخه منع کړی د ده ځای جنت دی) نبي کريم ﷺ د جهاد څخه تشريف راوړی نو صحابه کرامو رضي الله عنهم ته ورېې وفرمايل: موږ د کوچني جهاد څخه لوی جهاد ته راستون (واپس) سو، صحابه وو پوښتنه وکړه چي غټ جهاد څه دی؟ ورېې فرمايل: جهاد بالنفس، او ورېې فرمايل خپل تکليف رنځ د خپل نفس څخه ليري ساته او د خدای په

آخرت د نعمتونو شوق په زړه کي پیدا سي، او دغم او زړه ماتېدو په حالت کي دي وولړ تسبیح اثر دومره وي چي د خوشحالی او نعمتونو په حالت کي د سل واره تسبیح ویلو سره هم نه نصیب کېږي.

او د نفس مثال د باز دی چي د ده تربیه (پالنه) داسي کول کېږي چي کوړ ته یې راولي نو سترګي یې وړ وګنډي چي بغیر د لیدلو دکوړ د شیانو سره عادت سي، بیا ورته لږ لږ غوښه ورکوي چي د باز والا سره د ده مینه پیدا سي، او آخر کار فرمان بردراه سي، دا حال د انسان د نفس دی چي تر هغه پوري د الله ﷻ سره نه مانوس کېږي تر څو چي ټول عادتونه ځیني لیري نه کړای سي او دسترکو غوږونو او ژبي او نورو ټولي لاري یې بندي نه کړای سي، او په خلوت، لوږه خاموشي او بې خوبي او نور هر ډول ریاضتونو کي دی وانه اچول سي، او دا خبري به په ابتداء کي پر ده ګراني وي (خو بیا به کرار ور سره عادت سي) لکه بچی چي د تی څخه د پرېږ کولو په وخت کي پر ده ډېره سخته وي لېکن آخر چي کله ځیني پرېږ کړل سي نوبیا که ور ته په زور تی ورکوې هم یې نه اخلي، نو د هر سړي د پاره د مجاهدې او ریاضت طریقه دا ده چي کوم شئ د ده ډېر خوښ وي د دغې د پرېښولو د طرف ته زیاته توجه وکړل سي او آخر یې پرېږدي او کوم خواهش چي دی مغلوبه کړي وي د هغې مخالفت ته ملا وتړي مثلاً یو سړی دي چي مرتبه او جاه او جلال یې خوښ دی نو ده ته پکار دي چي جاه او جلال پرېږدي، او د کوم سړي چي په مال او دولت جمع کولو زړه خوشحالېږي هغه دمال جمع کولو پر ځای مال خرڅ کول شروع کړي، او د الله د محبت څخه ما سوا چي کوم شئ د ده د پاره راحت او خوشحالي وي هغه په تکلف سره د ځانه څخه جلا کړي، او د الله ﷻ غلامي اختیار کړي،او آخر چي په مرګ سره خو به د ده څخه دا هر شئ جلا کېږي نو د مرګ څخه مخکي یې ولي د ځان څخه جلا نه کړي، چي همېشه د ده سره پاته کېدونکي خو ذات د الله ﷻ دی، کوم چي په وحی سره حضرت داود علیه السلام ته ویلي وو، اې داود! ستا سره به زه یم نو ته زما ملګری سه، نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي جبرئیل علیه السلام ما ته په غوږ کي وویل د دنیا هر شئ چي ته غواړې خپل دوست یې کړه لېکن آخر خو به هر شئ ستا څخه جلا کېږي.

## د ښه اخلاقو (نېک خویې) د علامو (نښو) په باره کي

پوه سه! چي دنېک خویی(ښه اخلاقو) علامې هغه دي کومي چي الله ﷻ په قرآن مجید کي فرمایلي دي: څنګه چي دمؤمنانو په صفت کي ارشاد دی: قدافلح المؤمنون الّذین.... الآیة (بې

شکه هغه مؤمنان(په آخرت کي) کامیاب سو چي پخپل لمونځونو کي خشوع کوي (٢) او د لغوه خبرو څخه ډډه کوي (٣) او کوم چي خپل عملونه او اخلاق پا کوي (٤)او کوم چي خپل عورتونه د حرامو څخه ساتي (٥) لېکن د خپلو بيبيانو مينځو څخه نه ځکه چي په دې کي پر د وی څه الزام نسته (٦) ها! څوک چي د دې څخه ماسوا (شهوت) پوره کوي دامي خلک د حد شرعي څخه وتونکي دي، (٧) او کوم چي د خپلو امانتو اوعهدونو خيال ساتي (٨) او کوم چي پرخپلولمونځونو پابندي کوي (٩) دامي خلک وارثان دي چي جنت الفردوس به په ميراث کي اخلي (المؤمنون).

او د دې څخه ماسوا بل ځای ارشاد دی: (١٠) چي دغه خلک کوم چي د ګناهونو څخه توبه کوونکي دي[التوبه] او بل ځای فرمايي: د رحمان خاص بندګان هغه دي کوم چي په ځمکه په عاجي سره چليږي[الفرقان] نو په دې ټولو کي دمؤمنانو پر صفتونو رڼا اچول سوې ده، او کوم ځای چي د منافقانو حال بيان سوی دي دغه د بدخويي(بدو اخلاقو)علامې دي لکه چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي؛ چي د مؤمن همت دا دی چي دی په لمونځ روژه او عبادتونو کي مشغول وي او د منافق همت دا دی چي د حيوانانو په ډول په خوراک چښاک کي لګيا وي، حاتم اصم رحمه الله وايي چي د مؤمن د مشغوليت تعلق د فکر او عبرت سره دی او د منافق ټول وخت د حرص اولالچ نذر سي، او د مؤمن سره ماسواد حق تعالی څخه د بل چا بېره نه وي او د منافق د هر چا څخه بېره وي ماسوا د الله ﷻ څخه،او د مؤمن ماسوا د الله ﷻ څخه د بل چا څخه څه اُميد نه وي، او د منافق اُميدونه د هر چا څخه وي او که د چا څخه نااُميده وي نو هغه دالله ﷻ ذات وی، او مؤمن خپل مال د دين په لاره کي خرڅ کوي او منافق خپل دين د مال په خاطر خرڅوي، مؤمن اطاعت کوي اوژاړي اومنافق ګناه کوي او خاندي، مؤمن په تنهايي(يوانځوالي) او خلوت کي خوښاله وي او منافق په ګڼه (رش) او اختلاط کي خوشحاله وي. مؤمن کرل کوي او بيا هم بېرېږي چي معلومه نه ده رېبل به مي نصيب سي او که نه؟ او منافق هيڅ نه کري بيا هم د رېبلو په لالچ (حرص) کي وي.

او دبزرګانورڼا ده چي نېک اخلاق ته هغه سړی وي کوم چي شرم والاوي، خبري کمي کوي، فوراً نه غصه کېږي، رشتياوايي صلاح خوښونکي وي، ډېر اطاعت کوونکي وي په هره خبره نه ستړی کېږي، فضول کار نه کوي، د هر چا خير غواړي، باعزته مشفق وي، صابراو شاکر، بردبار، نرم ژبه والا، رفيق او مدد کوونکی وي، د لالچ (حرص) څخه ليري وي، تنګ زړی، ژر خفه کېدونکي نه وي، د لوخلکو سره دوستي ساتي، پر چا لعنت کول، بښکنځل کول، نکته چيني، غيبت کول د ده

عادت نه وي، فحش خبري او تلوار يې عادت نه وي، حسد او کينه يې خويش نه وي، خنده رويه او خوږژبی وي، د ده دوستي او دښمني چې دچا سره وي د حق د پاره وي.
او پوه سه! چې د ښه خوی ظهور اکثره او زياتره د تحمل او برد باری په وجه وي مثلاً نبي کريم ﷺ ته کافرانو څه څه تکليفونه رسول، تر دې چې غاښونه مبارک يې ورشهيد کړل، لېکن نبي ﷺ صرف دا وفرمايل: اې الله! پردوی رحم وکړه دوی نه پوهيږي.
**قصه**: يو وار ابراهيم ادهم رحمه الله په ځنګل کې روان وو يو فوجي (لښکري) د ده پر خوا تېر سو پوښتنه يې ځيني وکړه آيا ته انسان يې؟ ده جواب ورکړی هاوروه! زه بنده يم، ته د کوم ځای لوسېدنکي يې؟ ده د هديرې طرف ته اشاره وکړه، هغه ورېل زه پوښتنه دا کووم چې په کوم کلي کي وسيږې، ورېې فرمايل: زما په نزد خو آبادي دې (هديرې) ته وايي، لښکري لکړه پورته کړه او دی پر سر ووهلو دی په وينو کې لت پت سو، بيا هغه ونيوی ښار ته يې بوتلی، کله چې د ده ملګرو دی وليدی نو لښکري ته يې ورېل چې (اې بدبخته!) دا خو د زمانې زاهد او عابد حضرت ابراهيم ادهم رحمه الله دی، لښکري فوراً دآس څخه راکښته سو او د ده پښې يې مچ کړې، ورېې ورېل حضرت داسې ولې وفرمايل چې زه بنده (يعني غلام) يم؟ ورېې فرمايل ځکه چې زه د الله بنده يم، لښکري ورېل ما معاف کړې، ورېې فرمايل زه! ما معاف کړی يې، بلکې ما خو هغه وخت هم تا ته دعاء وکړه کله چې تا زما سر مات کړی، مريدانو پوښتنه وکړه حضرت داولې؟ ورېې فرمايل ځکه چې ما ته معلومه وه چې په دعاء به ما ته ثواب ملاوسي، او زما داخو ښه نه وه چې ما ته خو به د دې په وجه ثواب حاصل سي او دا عاجز به زما په وجه په خپله عمل نامه کې د يوې بدۍ اضافه وکړي.
دابو عثمان حَيَری رحمه الله په باره کې قصه ده چې (١) يو سړي دی ځان ته راوغوښتی او مقصود يې داوو چې د ده نېک خوئي (ښه اخلاق) و ازمايي، نو کله چې دی دروازې ته راو رسېدی نو دی د دروازې څخه بند کړی چې بس! هر څه اوس ختم دي، دی واپس ولاړی، لېکن يو ګړی وروروسته يې بيا راوبللو، او کله چې دی دروازې ته راورسېدی نو بيا يې واپس کړی او ورېې ورېل چې هر څه اوس ختم دي، دغه ډول يې څو واره راوبلی چې دوی به راغلل نو واپس به يې کړی په آخر کې ورته هغه سړي ورېل ما خو صرف هسې په تاسو آزموده کوله خو واقعي چې تاسو انتهائي نېک خويه ياست، دوی وفرمايل په دې کې څه دي تا چې په ما کې څه وليدل، دا خو محض د يو سپي خوی دی، چې کله يې رابولې نو راځي او چې شړې يې نو ځي، نو د دې څه حقيقت خو نسته (چې ته دومره زما

تعریف کوي)

(۲) یوه ورځ دوی روان وو چي د چت شخه یو چا دایرو یوه ډکه ټوکري راوغورځوله، دوی خپلي جامي وڅنډلي د هغه په حق کي یې دخیر دعاء وکړه، او شکر یې ځیني اداء کړه، خلګو ویل چي دا دشکر خبره ده؟ ویې فرمایل چي کوم سړی په اُور کي داچولو مستحق وي پر ده چي ایرې واچول سي نو آیا دامقام د شکر نه دی؟

## د هلکانو د پالني او تربیې په باره کي

پوه سه! چي زوی یو امانت ـ ی د الله ﷻ د طرف شخه مور او پلار ته حواله کول کیږي د ده معصوم زړه د یوې صفا او روښانې ملغلرې په شان وی چي د داغونو او تورو ټکو شخه پاک او د هر قسم نقش شخه بالکل خالي وي، لیکن د شمعي په شان نرم وی چي د هر ډول نقش قبلولو صلاحیت لري دغه د یوې پاکي خالصي مځکي په ډول وي چي کوم تخم پکښې اچوې را شنه کیږي به، که د ښکی تخم پکښې کري نو د دین او دنیا سعادتونه به د الله ﷻ د طرف شخه ده ته ور کړل سي او په ثواب کي به ور سره مور او پلار او استاذ هم شامل وي، او که د دې خلاف ـ ري نو بدبختي به نه صرف د ده په حصه کي راځي، بلکي دغه ټول به ور سره پکښې برخمن وي او څه چي پر ده تیریږي دغه حشر به زیات او کم د دوی هم وي، د الله ﷻ ارشاد دی: خپل ځان او خپل اهل او عیال د دوږخ د اور شخ شخه وژغورئ [التحریم: ۶] او زوی د دنیا د اُور په نسبت د آخرت د اُور شخه د خوندي کولو زیات ضروري دی، او دا به داسي ممکنه وي چي دی د ادب په زیور سره ښایسته کړای سي او د ښکو اخلاقو تعلیم ورکړل سي د بد صحبت شخه لیري وساتل سي د دین د ټولو بدیو وجه په اصل کي بد صحبت دی، دی دي آرام خوښونکي او د ښه جامو سره نه عادت کوي ځکه چي بیا به ځیني صبرېدای نسي او د دې شیانو په حصول کي به ټولو عمر ضائع کړي، په ابتدء کي دا کوشش پکار دی چي کومه ښځه بچی ته تی ورکوي هغه نیک خویه، صالحه او حلال خوره وي ځکه چي د دائي عادتونه په بچي کي سرایت کوي، او کومي شیدې چي په حرامو سوي وي هغه ناپاک او پلیته (ګنده) وي هر کله چي د بچي هډو کي او غوښه په دې سره تغذیه سي د هغه په طبیعت کي به د دې سره مناسبت پیدا کیږي، او دغه مناسبت به د ځوانی شخه وروسته ښکاره کیږي کله چي چبی د خبرو سي نو پکار دي چي اول د الله ﷻ نوم واخلي لیکن دا خبره به په ازده کولو سره وي، او که هلک د بعضي شیانو شخه شرمیږي نو دا خوشخبري (زیری) دی او د دې خبري دلیل دی چي نُور د عقل ده ته نصیب سوی دي او عقل

محافظ (نگران) دی پر ده شرم متعین کوي کوم چي په بدو خبرو ده ته شرم او عار مخکي کوي هر کله چي په هلک کي د خوراک خواهش پیدا سي نو د خوراک ادب دی ورته وښيي چي بسم الله وایه! په راسته لاس خوراک کوه او ژر ژر يې مه خوره گوله ښه ژویه د نورو گولو ته مه گوره د خپل مخ څخه يې خوره او چي يوه گوله دي نه وي تېره کړي بله مه پورته کوه، چي دا د حرص دليل دي، خپلي جامي د سالن (کتغ) ښوروا او نورو څخه ساته. همدارنگه کله کله د سالن څخه بغير ډوډی په خوره چي د سالن عادي جوړ نسي، دارنگه د ډېر خوراک بدوالی په ذهن کي ورته کښېنوه او پوه کوه، يې چي ډېر خوراک د څارويانو او احمقانو کار دی او څوک چي ډېر خوري د هغو قباحت دي ورته وښيي، د با ادبه هلکانو صفتونه دي ورته په مخکي کښېږدي، چي د ده هم شوق پیدا سي او ښه عملونه کوي، د سپينو جامو محبت دي د ده په زړه کي واچوي او د ورېښمي او رنگينو جامو څخه دي نفرت په زړه کي ور واچوي، او دا دي ورته ووېل سي چي دا ډول جامې اغوستل د رنډيانو او لونډه گانو کار دی او د خپل ځان سنگار کول د نرښځيانو (مخنثانو) کار دی، او کوم هلک چي ښه غذا خوړولو والا او ښه جامې اغوستولو والاوي د هغوی دوستي مضره ده بلکي هغو ته دي گوري هم نه، ځکه چي د دې د خرابي پیدا کیږي او د ده په زړه کي به هم د داسي شیانو آرزو پیدا سي، پر مور او پلار دا هم لازم دي چي د بد صحبت څخه دې خوندي کوي کوم بچي چي د بد صحبت سره عادت سي هغه شوخ، بې حیا، غل، درواغجن او بې باکه سي، او بیا تر ټوله عمر دا خبري پرېښوول نه سي، کله يې چي مدرسې ته واستوي نو اول شروع دي د قرآن څخه وکړي بايد د صالحو او پرهيزگارانو خلگو قصې او د صحابه وو او تېر مشرانو په عادتونو کي مشغول کړای سي،د عشقيه اشعارو اوښځو د تعریف او نورو څخه دي په سختي سره منع کړای سي تر دې چي داسي معلم او اديب څخه هم منع کړای سي کوم چي دا شیان د زنده دلی (ژوندي زړه ) او د ذهانت د تېزی سبب ښيي، ځکه چي دغه معلم او اديب نه دي بلکي شیطان دی چي پخپله بد دی او د بدی تخم د بچي په زړه کي اچوي، ځکه چي هلک نېک کار کوي او نېک عادت پکښي پیدا سي نو تعریف دي يې کوي او په کوم شئ سره چي هغه خوشحاله وي هغه دي ورته تیاروي، بلکي کله کله دي د خلگو په مخکي د ده تعریف هم کوي که کله کله څيني څه خطاء وسي نو يو دوه واره دي ځان په ناخبره (ناگاره) کړي چي هغه د بنکنځلو او ناکاره خبرو اوربدو عادي نسي، په ځانگړې توگه کله چي هغه په پټه يو غلطی وکړي، ځکه چي په مسلسل خبرو سره د ده په بدی باندي د زړه ورکېدلو بېره ده، او که په ښکاره خطا کوي نو په پټه دي ورته سزا ورکړي او ورته ودي وایي خبردار! چي بیا داسي ونه کړې چي دا غلطي دي

چیري څوک ونه ویني کنې بیا به د خلکو په مخکي څومره رسوا سې، او خلک به دي سپک کني. د پلار خو دا فرض دی چي د خپل عظمت خیال ساتي او دمور دا فرض دی چې د پلار څخه یې وبېروي، د ورځي دې خوب ته نه پرېږدي چي په دې سره سستي او کهالي پیدا کیږي او د شپې دې پر زیاتو نرمو بسترو نه پرې بلسي چي بدن یې مظبوط او قوي وي، د ورځي دي ورته په کور کي دیو ساعت دپاره د لوبو مهلت ورکوي چي مضبوط او چسپ وي، او خفه او زړه تنګی نسي، چي په دي سره به د بې دلی (بزدلی) ښکار سي، او زړه به یې مړ سي، د هر چا په مخکي په عاجزي او فروتني سره دراتللو او د نورو په مخکي د فخر او لافو وهولو څخه دي منع کړل سي، ده ته دي نصیحت کوي چي د هلکانو څخه به یو شئ نه اخلي بلکي خدمت به یې کوی دا خبره دي ورته په ذهن کي کښېنوي چي دنورو څه اخیستل د فقیرانو او بې همته خلکو کار دی، د چا څخه د نقد یا جنس د اخیستلو د خواهش څخه دې په سختي سره منع کوي چي په دې سره به خراب سي او په بد کارونو کې د پرېوتو احتمال دی، دا هدایت دي ورته هم وښیي چي د خلکو په مخکي لاړي (ناوړي) تو کل یا پزه سونل مناسب نه دي دارنګه د نورو پر شا کښېنستل هم منابسب نه دي په کښېنستلو کي د ادب او احترام خیال ساتل ضروري دی، تر زني لاندي د لاس اینولو او کښېنستلو څه دې منع کوي، چي دا د سستی علامه ده، د زیاتو خبرو او قسم خوړلو څخه دې منع کوي، د ځانه خبره کول مناسب نه دي ها! که څوک پوښتنه وکړي نو مناسب او معقول جواب دي ورکړي، د مشرانو احترام دي کوي او د دوی څخه مخکي دي نه ځي، د فحش خبرو او لعنت څخه دي ځان ساتي، د استاد په وهلو دي شور نه کوي، او نه دي استاذ ته سپارښتونه راوړي د صبر او تحمّل عادت دي جوړ کړي چي دا د مردانو (نرانو) کار دی، د لونډه هلکانو او ښځو کار چغې .رمل دي، چي د اوو کالو سي نو په نرمي او محبت سره دي ورته د اودس او لمانځه تلقین ورکوي، او چي د لسو کالو سي او قصور وکړي نو د ادب ښوولو په خاطر یې وهل هم جائز دي د غلا درواغو او حرام خوری قباحت دي پر ښکاره کړي او د دې شیانو بدوالی دي د ده په ذهن کي کښېنوي په دې انداز سره چې د ده تربیه (پالنه) وسي. نو د ځواني په عمر کي د دې انداز تربیت رازونه دي ده ته ښکاره کړل سي چي زیات اثر قبول کړي بیا دې ده ته وښوول سي چي د خوراک څښاک څخه مقصد دا دی چي بنده به د الله ﷻ عبادت د پاره قوت حاصل سي، او د دنیا څخه محض دآخرت د پاره ر توښه حاصله کړي، ځکه چي دنیا د چا ملګرتیا نه کوي او مرګ ناڅاپه راځي عقل مند هغه دی کوم چي د دنیا څخه دآخرت توښه حاصله کړي چي دجنت مستحق سي او الله ﷻ د ده څخه خوشحاله سي، دغه ډول دي د دوږخ کیفیت ده ته وښوول سي او د

ښو کارونو ثواب او د بدو کارونو عذاب دي ده ته ښکاره کړل سي، کله چي یې د ابتداء څخه دغـې تربیه (پالنه) وسي نو دا خبري به د ډېري کړ ښه سي او که دی پر خپل حال پرېښوول سي نو دا خبري به داسي وي لکه د دېوال څخه چي خاوري رژېږي.

حضرت سهل تستري رحمه الله فرمایي چي زه د دري کالو ووم زما "ماما" مُحَمّد بن سوار رحمه الله چي به لمونځ کولو ما به ورته کتل یو واري یې ما ته وویل زویه! کوم رب چي ته پیدا کړي یې هغه نه یادوې ماور ته وویل ماما! څنگه یې یاد کړم؟ هغه وویل کله چي د شپې په بستره کي پرېوځي نو دري واره په زړه کي وایه! چي الله زما سره دي هغه ما ته گوري کله چي دېري شپې په دې ډول تېري سوې نو بیا یې د اووه ... ره را ته وویلو او بیا یې دیوولسو وارو تر دې چي د دې خوند او مزه په ماکي پیدا سوه، کله چي یو کال تېر سو نو هغه وفرمایل: ما چي تا ته څه ویلي دي دغه ډول عمر یاد ساته دا شغل به په دواړو جهانو کي ستا مرستندوی وي. څو کاله دا سلسله چلیده تر دې چي مزه یې زما په دماغ کي پیدا سوه، بیا را ته یوه ورځ ماما ... وویل چي الله ﷻ د چا سره وي او څوک وېني هغه سړی دي د الله ﷻ نافرماني نه کوي خبردار! چي ته چیري د هغه نافرماني ونه کړې، بیا یې زه اُستاذ ته ولېږلم، زما زړه و بېرېدی ماوویل چي ما د لږ وخت د پاره لېږه زیات نه، تر دې چي ما قرآن مجید وویلو دغه وخت زما عمر اووه ۷ کاله وو، او کله چي د لسو کالو سوم نو مسلسل روژې مي نیولې او د اوربشو ډوډۍ مي خوړل، تر دې چي د دولسو کالو سوم، په دیارلسم کال یوه مسئله زما په زړه کي راغله نو ما وویل چي ما بصرې ته ولېږه چي زه هلته د مسئلې پوښتنه وکړم غرض دا چي هلته ولاړم د ټولو عالمانو څخه مي پوښتنه وکړه چا را ته مسئله ونه ښووله او د یو عابد ادرس یې را کړو، زه هلته ولاړم هغوی دغه مسئله حل کړه او یوه مُده د هغه په خدمت کي پاته سوم د دې څخه وروسته خپل وطن " تستر " ته واپس راغلم، د یوې روپۍ اوربشي مي واخیستې د هغو څخه به مي وچه ډوډۍ خوړله روژه به مي په ماتوله، دال، سالن (کتغ) څه ور سره نه وو د یوې روپۍ اوربشي د ټول کال د پاره پوره کېدلې تر دې چي ما اراده وکړه چي شپه او ورځ به هیڅ نه خورم نو پر دې مي هم طاقت نصیب سو دا سلسله په اول کي پنځه ورځي بیا اووه ورځي تر دې چي پنځویشتو ورځو ته ورسېده او ما پنځویشت پنځویشت ورځي هیڅ ونه خوړل، او شل کاله پر داغه حالت تېر سو او د الله ﷻ په توفیق سره به ټول شپه په عبادت کي مشغول ووم. د دې قصې مقصد دا دی چي د بچیانو په زړه کي یه اول کي کوم تخم د نېکی وکرل سي هغه ضرور رنگ راوړي.

## د مجاهدې په ابتداء کې د مرید د پاره شرطونه او د دین په لاره کې د ریاضت بیان

کوم سری چې الله ﷻ ته ونه رسیږي د دې سبب دا وي چې دغه پر حقیقي لاره نه وي روان او پر حقیقي لاره د نه تللو سبب دا وي چې د ده طلب صادق نه وي او د طلب نه صادق کېدلو وجه عدمِ علم (دعلم نشتوالی) وي او دا د دې خبري دلیل دی چې ده ته د ایمان حقیقي مزه نه ده حاصله.

کوم سری چې په دې پوهه وي چې دنیا داسې خلل پذیره (نقصان قبلونکې) ده او څور ورځې ده او د دې په مقابله کې آخرت حقیقي ژوند او همېشه پاته کېدونکې دی، دآخرت تو بنه طلب کول څکه گران نه دي چې د یو حقیر شئ (دنیا) په بدل کې یو عمده شئ (آخرت) ملاؤ سي نو څوک به یې نه اخلي نن یو سری د خاورو پیاله په دې وجه پرېږدي چې صبا به د سروزرو لوښی ملاؤ سي نو څوک به دا سودا نه خوښوي، او د دې پر خلاف سبب د ایمان کمزوري ده او د دې وجه دا ده چې صحیح لاربنوونکي نسته، څکه چې د دین قائد (لاربنوونکي) خو عالمان دي نو هغه ختم سوي دي، او کله چې لاربنوونکي نسته نو پر لاره تلونکي د کومه راسې او چې رهبر او پر لارتلونکي پاته نه سو نو لاري ختمې سوې او خلک د خپلو سعادتونو څخه محرومه کېږي، چې د علماؤ څخه کوم خلک خال خال پاته دي، پر هغوی د دنیا محبت غالبه سوی دی او هر کله چې دوی پخپله د دنیا غلامان جوړ سو نو خلکو ته به څنگه د آخرت وطرف ته دعوت ورکړي، چې د دنیا او آخرت لاري د یوبل څخه جلا دي او په دوی کي دومره لیري والي دی څومره چې د مشرق او مغرب په مینځ کې دی چې یوه ته نژدې کېږي نو د بل څخه دغومره لیري کېږي، نو د چا په زړه کې چې د الله ﷻ ارادت پیدا لره سي نو دغه بالکل د لمغرخو لکو څخه دی، د کومو په باره کې چې ارشاد دی: وَمَنْ أَرَادَ الْآخِرَةَ وَسَعَىٰ لَهَا سَعْيَهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَأُولَٰئِكَ كَانَ سَعْيُهُم مَّشْكُورًا (بنی اسرائیل: ١٩) (کوم څوک چې آخرت غواړي او د دې د پاره په حالت د ایمان کې محنت او سعی هم کوي نو د داسې خلکو کوشش قبلیږي) الله ﷻ چې دلته د کومې سعی ذکر کړی دی دا څه شئ دي؟ د دې څخه دلته بحث مقصود دی، نو پوه سه! چې د سعی څخه مراد پر لاره تلل دي او د لاري قطع کولو د پاره په اوله مرتبه کې څو شرطونه دي د دې شرطونو پر ځای کول ضروري دي، د دې څخه وروسته یو سند (دستاویز) دی کوم چې په مضبوطې سره نیول ضروري دي بیا یو قلعه ده چې پناه په اخیستل کېږي.

اول شرط خو دا دی چې دځان او د الله د مینځ څخه پرده پوره ته کړي، چې په هغه قوم کي شامل نسي د کوم متعلق چې الله ﷻ فرمایي: وَجَعَلْنَا مِن بَيْنِ أَيْدِيهِمْ سَدًّا وَمِنْ خَلْفِهِمْ سَدًّا

[یس: ۹](او موږ د دوی مخ ته او شا ته یوه پرده کړې ده)

دا پردې څلور دي: (۱) مال (۲) مرتبه (۳) تقلید (۴) او گناه. مال په دې وجه پرده ده چې زړه په دې کې مبتلی وي تر څو چې زړه فارغ نه وي بنده به چیري پر سیده لار ولاړ سي؟ نو په دې وجه ضروري ده چې د ضرورت څخه زیات مال د ځان څخه لیري کړي، که یو سړی داسي وي چې د ځان سره څه نه ساتي او د الله ﷻ د پاره محنت کوي نو دی به ژر لار قطع کړي، او د مرتبې او حشمت پرده داسي پورته کېداى سي چې بنده په ځغاسته داسي ځای ته ولاړ سي کوم ځای چې څوک دی نه پېژني. ځکه چې هر کله شهرت او تعارف وي نو د مخلوق په تعلق او قبول کې به لذت خوند حاصلوي او په دې کې به مشغول سي او څوک چې په مخلوق کې مشغول سو، دی رب ته نسي رسېدلای، او تقلید په دې وجه حجاب دی چې بنده کله یوه طریقه خپله کړي نو بیا د بل هیڅا خبري اورېدو ته تیار نه وي، نو پکار دي چې دا ټولي خبري هیري کړي د لااله الاّ الله پر معنا ایمان راوړي او پر دې په ښه ډول سره مضبوط سي، او په زړه سره تحقیق کوي چې حقیقت یې دا دی چې د الله ﷻ څخه ما سوا بل معبود نسته او هغه د عبادت مستحق دی، پر کوم سړي چې هوا او هوس غالبه وي نو هغه هوا او هوس د دغه سړي خدای او معبود جوړېږي، کله چې دا مضمون په ذهن کې کښېني نو اوس دی د مجاهدې او کشف پر لاره ځي، او د بحث مباحثې څخه دي ځان ساتي، او تر څو پوري چې د معصیت (گناه) تعلق دی نو دغه په یو ډول سره د ټولو څخه غټه پرده ده ځکه چې کوم سړی پر گناه اصرار (ټینگار) کوي د ده زړه تور سي نو بیا به پر ده د حق تجلی څنگه ښکاره سي خصوصاً د حرامو رزق، ځکه چې حلال رزق د زړه په روښانه کولو کې کوم اثر کوي بل شئ یې نسي کولای، اصل خبره دا ده چې بنده د حرامو د خوراک څخه خوندي سي او حلال رزق خپل معمول وگرځوي، کوم سړی چې په ظاهري شریعت باندي عمل کوي او د ټولو شرعي معاملو پر ځای کولو څخه مخکي د دین او شریعت د رازونو فکر وکړي د دې مثال داسي دی لکه څوک چې د عربي ژبې ازده کولو څخه مخکي د قرآن تفسیر لوستل غواړي، کله چې بنده د دې ټولو حجاباتو څخه پاک سو، نو بیا دی د هغه سړي په ډول سو کوم چې بالکل صاف سي د لمانځه قابل سي، اوس ده ته د امام حاجت وي چې د ده په اقتداء کې لمونځ وکړي، دغه پیر او مرشد دی ځکه چې بغیر د ده څخه پر لاره تلل ډېر مشکله دي، ځکه چې لاره پټه ده او شیطاني لاري د رښتوني لاري سره خلط ملط او گډي دي، حقیقت دا دی چې رښتونې لار یوه ده او باطلي لاري په زرگونو دي نو د رهبر او لارښوونکي څخه ما سوا به څنگه پر

صحیح لاره ولاړ سي؟ هر کله چي صحیح لاربښوونکي ملاو سي نو مرید ته پکار دي چي خپل ټول کار ده ته وسپاري او د دې خبري یقین وکړي چي د خپلي صحیح لاري په مقابله کي د پیر په خطاء کي (کومه چي په ښکاره خطاء ښکاري) فائده ده.

بمی سجاده رنگین کن گرت پیر مغان گوید که سالک بے خبر نبوده زراه ورسم منزلها

(جای نماز (مسله) په شرابو رنګینه کړه که د میخانې پیر درته وایي ځکه چي سالک د لاري او طریقي د منزلونو څخه نا خبره نه وي) د مرشد که داسي خبره مخي ته راسي چي معلومه نه وي نو د حضرت خضر او موسی ﷺ قصه دي رایاده کړه چي دغه د پیر او مرید د پاره ده. مشائخو ته الله ﷻ داسي ډیر خبري ښکاره کړي دي چي د مرید عقل دا راز نه سي معلومولای، د حکیم جالینوس په زمانه کي د یو سړي پر راسته ګوته درد سو، نیمچه (یعني لږ علم والا او نیمی) حاکمانو پر ګوته پټی ور وتړله، لیکن فائده نه ور سره کېدله جالینوس پر چپه اوږه بانډي پټی ور وتړه، نو نیمچه حاکمانو ور ته بې وقوفي او جهل وویل، او ویل یې چي درد په ګوته کي دی او دوایي پر اوږه؟ څه فائده به وکړي، لیکن ګوته جوړه سوه، په اصل کي جالینوس پوه سوی وو چي د ده په پله کي خلل دی او پلې د دماغ او د شا څخه راځي او کومې پلې چي چپه طرف ته ځي دغه د راسته طرف څخه راځي او کومي چي د راسته طرف څخه راځي دغه راسته طرف ته ځي. په دې مثال سره دابښوول مقصود دي چي مرید ته پخپل باطن کي تصرف نه دي کول پکار، د خواجه علي فارمدي رحمه الله څخه ما (امام غزالي رحمه الله) اورېدلي دي چي ما شیخ ابو القسم ګرګاني ته خپل یو خوب بیان کړی دوی دومره غصه وکړه چي زه پوه نه سوم چي آخر څه وجه ده؟ آخر یوه ورځ یې پخپله وفرمایل چي تا د خوب بیانوولو په وخت کي دا خبره کړې وه چي: ته شیخ یې او تا ما ته په خوب کي یوه خبره وکړه او د دې په جواب کي ما دا وویل چي ولي؟ (یعني د ولي لفظ ستا د خولې څخه وتلی وو او سره د دې چي ته ما ته شیخ هم وایې) نو زه وایم چي که ستا په باطن کي د لفظ د "ولي" ځای نه وای (او نه دي پکار) نو په خوب کي به هم ستا پر ژبه نه سوی راتلای، غرض کله چي مرید په پوره توګه خپل کار پیر ته وسپاري نو پیر ته پکار دي چي اول دی په خپل حصار کي بند کړي چي د ټولو آفتونو څخه د ده په پناه کي راسي، او د دې حصار (قلعې) څلور دیوالونه دي: (۱) خلوت (۲) خاموشي (۳) لوږه (۴) بې خوابي، په دې کي لوږه هغه دېوال دی چي د شیطان لاره بندوي، بې خوبي هغه دېوال دی چي زړه په نوراني کیږي، خاموشي هغه دېوال

دی چي د پرېشان خیالی څخه یې خوندي کوي، خلوت هغه دېوال دی کوم چي د مرید او د خلګو د ظلمت په مینځ کي حائل کیږي، ګویا د سترګو او غوږونو تولي لاري بندي سي، سهل تستري رحمه الله فرمایي چي څومره ابدالانو مرتبې د ابدالی ته رسائي حاصله کړې ده صرف د خلوت، لوږي، خاموشي او د شپې د ژوندي ساتلو (یعني د شپې د روڼولو) په وجه یې حاصله کړې ده، او د تولو شغلونو د لاري څخه په دېه کولوبې حاصله کړې ده، غرض کله چي داوسوه (یعني د تول شغلونو څخه خلاصون حاصل سو) نو بیا دي پر لاري تلل شروع کړي او په دې کي دي اول خو دا وکړي چي د لاري غونډی (غرونه) دي صفا کړي دلته د غونډیانو (عقباتو) څخه مراد هغه مذموم خیالات دي کوم چي په زړه کي راځي، د کومو کارونو څخه چي تېښته ضروري ده دا مذموم صفتونه د هغو بیخونه دي لکه د جاه او مال حرص د بنه خوراک جامې لالچ (حرص) او تکبر او ریاء او نور...، چي دغه د شغلونو مادې د باطن څخه جلا کړي او زړه خالي سي، او دا هم ممکنه ده چي یو سړی د دې تولو خبرونه څخه پاک وي او یو بد صفت پکښې موجودوي، نو د دې صفت د پرېښودلو دپاره دي هم هغه طریقه اختیار کړي کومه چي پیر مرشد مناسبه ګڼي، او د دې لائق یې وګڼي ځکه چي دحالاتو په کتني سره علاج بدلیږي اوس چي کله مځکه خالي سوه نو تخم دي پکښې کړي، تخم دا الله جل جلاله ذکر دی، کله چي د ماسوی الله څخه قطع تعلق وسي نو دتنهایي په کونج کي دي کښېني، همېشه دي په ژبه، زړه سره الله کوي تر دي چي ژبه چپه (خاموشه) سي او زړه جاري سي بیا یو داسي وخت راسي چي زړه به هم ودرېږي لیکن د دې کلمې معنی او مفهوم به پر زړه غالب راسي، دغه معنی بې حرفه ده نه عربي ده نه فارسي ځکه چي د زړه وینا خو هم خبره ده هر کله چي خبره د دې تخم غلاف او پوستکی دي عین تخم نه دی، بیا د معنی په زړه کي داسي ځای کول او نقش کول پکار دي چي د ده سره په زړه ترلو کي تکلف کول نه پرېوځي بلکي داسي عاشق سي چي تکلف یې هم د زړه څخه نسي لیري کولای حضرت شبلي رحمه الله خپل مرید ته ورېل چي که ته د یوې جمعې څخه تر بلي جمعې پوري راغلې او داسي چي د ماسوی الله خطره ستا په زړه کي تېره سي نو ستا به ما ته راتلل حرام وي.

کله چي زړه د دنیوي وسوسو څخه پاک کړی او د ذکر الهي تخم پکي وکړي نو بیا هیڅ شئ باقي پاته نسي چي پخپل اختیار سره ور سره تعلق وساتي، اختیار تر دې اندازې پوري وي د دې څخه وروسته به منتظر وسي چي څه تېرېږي او څه ښکاره کیږي، او غالب ګمان دا دی چي دا تخم به ضایع

نه وي ځکه چي الله ﷻ ارشاد فرمايي: مَنْ كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الْآخِرَةِ نَزِدْ لَهُ فِي حَرْثِهِ [الشوری: ٢٠] (کوم سړی چي دآخرت د فصل طلبګار وي موږ به د ده په فصل کي اضافه کوو) يعني کوم سړی چي دآخرت په کار کي مشغوليږي او تخم کري نو په دې کي ورته موږ زيات نصيب کوو. پر دې مقام د مريدانو حالات مختلف وي چا ته د دې کلمې په معنی کي اشکال پيدا کيږي او باطل خيالات په مخکي ورته ارځي او شوک د دې څخه خو نجات ترلاسه کري ليکن دفرشتو اصل او د انبياء عليهم السلام پاک روحونه ده ته په ښو ښو صورتونو کي ښکاره کيږي، په خوب کي ورته په نظر راسي يا په غر ېدلو سترګو يې ويني د دې څخه وروسته حالات نور سي، د دې تفصيل اوږد دی چي د بيان يې څه فائده نسته، ځکه چي په دې بيان کي دلاري تللو ذکر دی دلاري نه دی. او هر چا ته جلا جلا لاري مخې ته راځي، او کوم سړی چي پر دې لاره ځي نو ده ته دا لار اوږول نه دي پکار چي د دې شئ په انتظار کي به د ده زړه مشغوليږي او حجاب به جوړ سي، د علم د تصرف چي څومره دخل دی هغه تر دې پوري دی اومقصود دا دی چي د دې خبري ايمان پيدا سي ځکه چي اکثره علماء د دې څخه منکر دي، او د رسمي علومو څخه چي کوم شئ ماوراء وي پر دغه هغوی باور نه کوي، والله تعالی اعلم.

## دويم اصل: د نس او شرمګاه د شهوت علاج

معده د بدن حوض دی او رګونه د نهرونو (ويالو) په ډول دي، معده د ټولو شهتونو چينه ده،او پر بني آدم د ټولو څخه زيات غالب شهوت وي،. د حضرت آدم ﷺ د جنت څخه وتل په دې سبب سره سو، په حقيقت کي دا شهوت د ټولو شهوتونو بيخ دی يعني د معدې شهوت، په دې وجه چي څنګه نس موړ سي نو د نکاح شهوت يې پرېشانه کوي او بنده د نس او شرمګاه شهوت بغير د مال څخه نسي پوره کولای نو د مال لالچ (حرص) پيدا سي، مال بغير د جاه او منصب څخه په عامه توګه په مشکله پيدا کيږي نو د مرتبې حرص راپورته سي او د مرتبې انحصار د خلګو سره په جنګېدلو باندي دی د کوم څخه چي حسد عداوت، تکبر او بغض پيدا کيږي، په دې وجه معده د دې پر حال پرېښوول د ټولو ګناهونو بيخ دی،او دا تر لاس د لاندي ساتلو او د لوږي ساتلو عادت جوړولو د نېکيو بيخ دی، موږ به مخکي د لوږي فضيلت بيانوو، بيا به د دې فائدې، بيا په لږ خوارک کي درياضت طريقه او په آخر کي د هغو خلګو ثواب او فضيلت کوم چي د شهوت څخه ځان ساتي.

**د لوږي فضيلت**: نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي په لوږ اوتنده جهاد کوئ چي د دې ثواب د

کافرانو سره د جهاد په شان دی، او بل یو کار د الله ﷻ په نزد د لوړي او تندي څخه زیات غوره نسته. او فرمایي چي څوک یې په ماړه نس خوري ده ته به د اسمان د لوړ والي (بلندي) وطرف ته لاره نسي نصیب کېدای، د دوی ﷺ څخه خلګو پوښتنه وکړه چي زیات فضیلت والا څوک دی؟ نو ویې فرمایل کم خوړونکی او خندا کوونکی او د ستر عورت په مقدار په جامه اکتفاء کوونکی، او فرمایلي یې دي چي لوږه د ټولو کارونو سرداره ده، دوی ﷺ فرمایلي دي: زړه جامه استعمالوه! او په نیم نس خوره چي دا کار د نبوت یو جزء دی، دوی ﷺ فرمایلي دي چي دالله ﷻ په مخلوق کي تفکر نیم عبادت او کم خوراک پوره عبادت دی، او فرمایي هغه سړی دالله ﷻ په نزد د ټولو څخه زیات افضل دی کوم چي ډېر تفکر کوي او ډېر وږي وسېږي او هغه سړی د الله ﷻ غټ دښمن دی کوم چي ډېر خوراک او ډېر خوب کوي، او فرمایي د کم خوراک په سبب الله ﷻ په فرشتو فخر کوي او فرمایي ګورئ! ده محض زما په خاطر د طعام د شهوت څخه لاس ایسته کړی، اې فرشتو! تاسو ګواه وسئ چي څومره ګولې ده پرې ایښي دي په دغو کي د هري یوې په عوض ما د ده په جنت کي یوه درجه زیاته کړه، او فرمایي په ډېر خوراک چښناک خپل زړه مړ مه جوړوئ ځکه چي زړه د مځکي په ډول دی په زیاتو اوبو سره فصل هم مړ کیږي، او فرمایي چي د نس څخه زیات بد تر بل شئ نسته کله چي یې بنده ډک کړي، حال دا دی چي د بنده د پاره یو څو ګولې کافي دي کومي چي د ده ملا د سیده لرلو د پاره باعث جوړیږي، که چاره نه وي نو د نس دریمه حصه د خوراک د پاره دریمه د اوبو د پاره او دریمه د ساه د پاره، او په یو روایت کي دي چي دریمه حصه د ذکر د پاره ده، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي: چي نبي کریم ﷺ چیري په موړ نس نه دوه نه خوړلې تر دې چي دلوږي په وجه به زما پر دوی رحم راغلی او ما به د دوی پر نس مبارک لاس راتېر کړی عرض به مي وکړی چي زما روح دي پر تاسو قربان سي که تاسو لږ تر لږه دومره وخورئ چي د لوږي احساس خو درته نه وي نو څه جرم دی؟ دوی ﷺ به فرمایل: اې عائشې رضي الله عنها! زما نبیان ورونه کوم چي مخکي تېر سوي دي دوی په دربار د الله ﷻ کي قرب حاصل کړو په لوږه سره نو زما سره بېره ده چي که زه تن پروري (په ډک نس خوړل) وکړم نو زما درجه به د دوی څخه کمه سي، څو ورځي لږ شان صبر کول د دې په مقابله کي بهتر دي د دې څخه چي په آخرت کي زما حصه کمه سي، او د دې څخه زیات یو شئ ماته محبوب نه دی چي زه د خپل ورونو خواته ورسم، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي په خدای قسم دی چي د دې فرمایلو څخه وروسته دوی د یوې شنبې څخه زیات په دنیا کي پاته نه سو، حضرت فاطمې رضي الله عنها د ډوډۍ یوه ټکره راوړه د دوی ﷺ خواته راغله دوی وفرمایل دا څه دي؟ هغې عرض وکړی

چي ما ډوډۍ پخه کړې ده زما زړه نه غوښتل چي ستاسو څخه بغير يې وخورم، ويې فرمايل د دې ورځې وروسته به دا اولنی خوراک وي چي ستا د پلار خولې ته به ولاړ سي، ابو هريره ﷺ وايي چي د نبي ﷺ په کور کي د ځنمو ډوډۍ درې ورځې پرله پسې چا نه ده خوړلې، ابو سيلمان دراني رحمه الله وايي چي زما په نزد د شپې د خوراک څخه يوه ګوله کمه خوړل د ټولې شپې د عبادت څخه زيات غوره دي، فضيل رحمه الله به خپل ځان ته ويل چي ته پر وږي پاته کېدلو ولي ويرېږې؟ افسوس دی چي کله الله ﷻ لوږه نبي ﷺ ته د دوی صحابه وو ﷺ ته ورکړې وه نو بيا ستا په شان د خلکو څخه به يې ولي منع کوي، کهمس يو وار وويل اې الله! تا ماته لوږه او تنده را کړل او د شپې دي د ځان سره په خلوت کي وساتلم دا لوړه مرتبه دي زما په ډول سړي ته څنګه را کړه؟ چي دا خو هغه سلوک دی کوم چي ته دا ؤليا ؤ سره کوې، مالک بن دينار رحمه الله به فرمايل: تر او تازه دي وسي هغه سړی د کوم سره چي دومره غله موجوده وي چي بل چا ته د حاجت بيانولو د ذلت څخه خلاص وي، مُحَمّد بن واسع رحمه الله وېلي دي داسي نه بلکي داسي وايه! تر او تازه والی دي د هغه سړي د پاره کوم چي سهار او ماښام وږی وي او د دې سره سره د الله ﷻ څخه خوشحاله وي، عبد الواحد بن زيد وايي چي الله ﷻ څوک دوست نه دي جوړ کړی ما سوا د هغه څخه چي وږی وسيږي او بل يو سړی پر ابو سرېږه نه دی تللی ما سوا د هغه څخه چي وږی وسيږي، او يو سړي ځمکه نه ده قطع کړې ما سوا د هغه څخه چي وږی وسيږي، او په حديث کي دي چي هغه څلوريښت ورځې د کومو په دوران کي چي حضرت موسی ﷺ د الله ﷻ سره هم کلام وو، وږی وو.

## د لوږي فائدې او د موړوالی تاوانونه (آفتونه)

دلوږي د فضيلت سبب دا نه دی چي په دې کي تکليف وي څنګه چي د دوايي فضيلت په دې وجه سره نه دی چي دا ترخه وي، بلکي د لوږي لس فائدې دي:

**اوله فائده:** دا ده چي په دې سره د زړه صفايي کيږي او روښانه کيږي، حال دا دی چي په ماړه نس خوراک سره بالکل روند او خرسي، او دمعدې بخارات پورته ځي دماغ ته رسيږي بنده کُند ذهن (بې ذهينه) کوي، چي په خيالاتو کي انتشار او پراګندګي پيدا کيږي په دې وجه د نبي ﷺ ارشاد دی چي کمه خورئ او زړه ژوندی ساتئ، او دا ژوندی زړه په لوږه همېشه صافوئ چي صاف او نرم وي، او فرمايي چي کوم سړی ځان لوږی ساتی د هغه زړه هوښيار او زيرک وي او د ده قوّت خيال لوړ وی، شبلي رحمه الله وايي چي ما په کمه ورځ هم د الله ﷻ د پاره لوږه برداشت کړه زما زړه د حکمت او عبرت

شخصه ډک سو، او نبي ﷺ فرمایي: چي په ډک نس مه خوري هسي نه چي ستاسو په زړه کي د معرفت نورختم سي، نو هرکله چي د جنت لاره معرفت دی او دمعرفت درگاه لوږه ده نو ښکاره ده چي په لوږې سره د جنت دروازه ټکول کیږي لکه چي نبي ﷺ فرمایلي دي: په لوږه دجنت دروازه وټکوئ.

**دویمه فائده**: د لوږې شخصه په زړه کي نرمي راځي او په ذکراو مناجات او عباداتو کي ده ته یو ډول لذت حاصلیږي حال دادی چي په ډېر خوراک سره په زړه کي سختي پیدا کیږي او د ذکر او مناجات سلسله محض رسمي جمع خرڅ جوړه سي، او زړه ته څه لذت نه حاصلیږي.

**دریمه فائده**: غفلت اولافی وهل د دوږخ د روازې دي او درمانده او کمزوری کېدل د جنت دروازې دي او غلفت او غرور پیدا کوونکی شئ موړوالی دي او د عاجزی او درمانده گی ظهور په لوږه کي دی او تر څو چي بنده خپل ځان بیخي عاجزه او بې چاره تصور نه کړي، او دا عادت ترک نه کړي چي د نوی گولې کمي پر ده دنیا تنگه او تیاره جوړوي تر هغه وخته د الله ﷻ لویي او قدرت پېژندل د ده دپاره ممکن کېدای نسي، په دې وجه الله ﷻ د ټولي دنیا د خزانو چابیاني (کلیاني) د نبي ﷺ په مخکي کښېښودې نو دوی ﷺ وویل چي یا الله ﷻ دې ته زما ضرورت نسته ما ته د دې په نسبت دا خبره زیاته محبوبه ده چي یوه ورځ وږی یم او یوه ورځ خورم، او په کمه ورځ چي وږی یم صبر کووم او په کمه ورځي چي یې خورم شکر ادا کوم.

**څلورمه فائده**: د کوم سري نس چي ډک وي د هغه د نورو لوږه هېره وي او د الله ﷻ پر مخلوق یې شفقت کول هم هېر وي، او په دې وجه یې دآخرت عذا ب هم یاد نه وي، او کوم سری چي پخپله وږی وي د دوږخیانو لوږه ده ته رایادیږي او د تندي په سختی سره د قیامت تنده رایادوي، او دآخرت یېره او دخدای پر مخلوق شفقت دواړه د جنت دروازې دي،او دا وجه وه چي هر کله د حضرت یوسف ؑ شخصه پوښتنه وسوه چي د ټولي دنیا پر خزانو د قبضې سره سره ته وږی ولي وسیږې؟ ورېې فرمایل چي دا یېره راباندي غالبه ده چي د خپل نس په ډکولو چیري د فقیرانولوږه هېره نه کړم.

**پنځمه فائده**: په ټولو سعادتونو کي اول نمبر سعادت دا دی چي بنده خپل نفس د ځان غلام جوړ کړی، او ډېره بده بدبختي دا ده چي پخپله د نفس غلام جوړ سي او لکه څنگه چي سرکښه او خود سره ځاروی تر هغه وخته په قابو کولای نسي تر څو چي دی وږی نه کړي دغه ډول انساني نفس هم د دې شخصه بغیر نسي قابو کېدای او دا یوه هغه فائده ده کومي ته چي د فائدو کیمیاء ویل کیږي، ځکه چي د ټول گناهونو بنیاد شهوت دی او شهوت پخپله د ډېر خوراک شخصه پیدا کیږي،

او د لوږې دا فائده خو بالکل ښکاره او لازمي ده چې شهوت د عورت بالکل کميږي او د زياتو خبرو خواهش هم نه پاته کيږي، لکه دا چې کوم سړی چې په ماړه نس خوري دی خبرې هم زياتې کوي، او داعبث گويي دی د يو عيب نه يو عيب طرف ته بيايي، او د فرج د شهوت غلبه خو د دې ادنی نښه ده ځکه چې د شرمگاه په پټ ساتلو خوسترگې نسي پټېدای او که سترگې پټې کړي نو زړه به کوم ځای پټوي، او لوږه هغه شئ دی کومه چې په دوي کې هر شئ په قابو کې ساتي، او په دې وجه ويل سوي دي: چې لوږه د الله ﷻ د خزانو څخه هغه ملغلره ده کومه چې هر چا ته نه نصيب کيږي بلکې هغه ته ورانديږي کيږي څوک چې پر گران وي، د يو هوښيار قول دی چې کوم مريد تر يو کاله پورې په وچه ډوډۍ سره د لوږې تسکين کوي او هغه هم داسې چې معمولي غونډي وي او په نيمه هم قناعت کوي نو الله ﷻ د ده د زړه څخه د ښځو خيال بالکل ورکوي،

**شپږمه فائده**: وږې سړي ته خوب ډېر کم راځي، او کم بيده کېدل د عبادت او مناجات بنياد دی، په ځانگړې توگه کوم سړی چې د شپې ډېر خوري پر ده د خوب غلبه لازمي ده نو بيا دی لکه د مړه په شان پروت وي او عزيز عمر ضائع کوي، د يوه پير معمول وو چې هره شپه به يې پر سرخان آواز کولو چې اې مريدانو! ډېره مه خورئ ځکه بيا به اوبه ډېر څښئ او خوب به در باندې غالبه سي او که خوب مو زيات وکړی نو د قيامت په ورځ به افسوس کوئ. د اويا ۷۰ صديقانو پر دې خبره اتفاق دی چې په زياتو اوبو څښلو سره زيات خوب ورځي، ځنگه چې د بنده اصل سرمايه عمر عزيز دی د کوم چې هره يوه ساه يو گران قيمته ملغلره ده کوم چې په آخرت کې د سعادت حاصلولو د پاره مرستندوی ثابتېدای سي او بل خوا خوب د عمر مُده کموي يعني څومره ساهونه چې په خوب کې ضائع سي، نو بيا دې شئ څخه غوره کوم شئ کېدای سي کوم چې خوب د سړي څخه لېرې کړي، او که يو سړی د موروالی سره سره تجهد ادا کړي نو هغه لذت او خوند ده ته په هر حال نسي نصيب کېدای کوم چې په مناجات او ذکر کې وي ځکه چې خوب به پر ده غلبه کړې وي او کېدای سي چې شيطان غسل پر واروي او د شپې غسل کول بيا ممکن نه وي او د عبادت څخه بالکل محرومه پاته سي.

**اوومه فائده**: د وږې وسېدلو په وجه سره د بنده زمانه (وقت) فراخه کيږي يعني ډېر وخت ور ته په لاس ورځي او په علم او عمل کې د مشغوليت د پاره مهلت او فراغت ور ته حاصليږي، ځکه چې زيات خوراک کوونکي ته دخوراک، خوب، اخيستلو او د سامان د انتظار کولو د پاره وخت پکار وي بيا بار بار پاخانې ته تلل او دس کول نو ډېر وخت د دې کارونو نذر سي او د ساه په ډول قيمتي پاتکه

بې ضرورته خرڅ کول حماقت دی. حضرت سري سقطي رحمه الله وايي چې ما حضرت علي جرجاني رحمه الله وليدی چې ستوان يې خوړل ماوويل ته ولې؟ ولې نه خوري هغه وويل چې د دې په ژبرولو او د دې وهلو په ژبرولو کې د اويا ۷۰ تسبيحو د زمانې فرق دی په دې وجه سره د څلوېښتو کالو څخه ما ډوډۍ ونه خوړه ځکه چې په ډوډۍ باندې د شخوند وهلو په سبب د وخت ضائع کول مناسب نه دي، او همدا ډول د لوږې په عادت روژه آسانېږي په مسجد کې اعتکاف او پاک وسېدل آسانه وي.

**اتمه فائده:** دا ده چې کم خور (کم خوړونکی) روغ او جوړ وي، د ناروغی تکليف، د دوايي خرڅه د طبيب او د ترخو دوايانو څښل او د نورو تکليفونو د برداشت کولو څخه بنده محفوظه وي، حکيمانو او طبيبانو پر دې اتفاق کړی دی چې د کم خوراک څخه ماسوا داسې بل يو شئ نسته چې بالکل نفعمند وي او د يو ډول ضرر او نقصان پکې نه وي، د يو حکيم په قول انار بهترين او ګټور دي او وچه غوښه بدترين شئ دی، په لږ مقدار کې د وچې غوښې د خوړلو په مقابله کې په زيات مقدار انار خوړل غوره دي، په حديث کې راغلي چې روژه نيسئ چې جوړ او روغ ياست.

**نهمه فائده:** دا ده چې د کم خور خرڅ هم کم وي او ده ته د زيات مال حاجت او ضرورت نه وي، ځکه چې ټول آفتونه، ګناه او د زړه مشغولي د زيات مال د حاجت او خواهش او حرص په سبب وي، کوم سړی چې روزانه د ښو شيانو په زيات مقدار کې د خوړو په فکر کې وي دی په حرامو او مشتبه شيانو کې هم اخته کېږي د يو عقلمند وېنا ده چې زما اکثره خواهشات داسې پوره سي چې زه ځيني لاس واخلم او دا معامله پر ما آسانه سوې ده، بل وېلي دي چې د چا څخه د قرض غوښتلو پر ځای د خپل نس څخه قرض اخيستل غوره دي چې دا وړې وساتل سي، حضرت ابراهيم ادهم رحمه الله به د مختلفو شيانو نرخ معلومولو نو خلکو به وېل چې ډېر ګران دي نو فرمايل به يې چې پاته يې کړئ خپل پخپله به ارزانه سي.

**لسمه فائده:** دا ده چې پر خپل نس چا ته قدرت حاصل سي نو په صدقه ورکولو، په خلکو د خرڅ کولو او د خلکو سره پر شفقت قادره سي ځکه چې کوم شئ په نس کې وي د دې ځای خو پاخانه (بيت الخلاء) ده او څه چې په صدقه کې ورکړي نو دغه د الله جل جلاله د رحمت په لاس کې ولاړ سي، نبي ﷺ يو نسور (ګېډور) وليدی نو ورپې فرمايل چې د نس ډکولو پر ځای که ده صدقه کولای نو غوره به وای.

د کم خوراکه او د خوراک د وخت په باره کې د مرید اندونه

د خوراک په باره کې بنیادي شرط دا دی چې حلال وي او بیا مرید ته دري احتیاطونه کول پکار دي،
اول احتیاط دا دی چې لږ خوري او پر یوه ځای خوراک نه دي کمول مناسب ځکه چې دابه ده ته تاوان
وکړي، نو پکار دي چې په خوراک کې دي کرار کرار کمي کوي مثلاً که د معمول څخه یوه برخه
کمول غواړي نو په اوله ورځ دي یوه گوله کمه کړي په دویمه دوه او په دریمه دري گولې تر دې چې
په یوه میاشت کې یوه برخه کمه سي، دا به آسانه هم وي او د نقصان بېره به هم نه وي، او بیا دي په
مطلوبه مقدار قائم سي او د دې څلور درجې دي:
اوله درجه کومه چې د صدیقانو ده دا ده چه چې د ضرورت په اندازه په خوراک قناعت وکړي او دا
هغه درجه ده کومه چې سهل تستري رحمه الله خپله کړې وه، هغه به ویل د ژوند انحصار پر عقل او
قوّت دی نو تر څو چې په قوّت کې کمی نه وي راغلی طعام مه خوره ځکه چې د لوږي په وجه د
کمزوری سوي سړي په ناسته لمونځ کول تر ولاړي د لمونځ کوونکي څخه غوره دی چې په ډک نس
وي، ها! کله چې د لوږي د لاسه ژوند ته خطره پېښه سي یا عقل ته د نقصان رسېدلو بېره وي بیا
خوراک کول ضروري دي ځکه چې د عقل څخه بغیر هم عبادت ممکن نه دی، او ژوند خو د انسان
اصل دی، یو وار د دوی څخه پوښتنه وسوه چې ستاسو د خوراک طریقه څه وه؟ دوی وفرمایل زما
کلییز (سالانه) خوراک درې درهمه وو چې د هغه څخه د یوه درهم اوړه او وریجې د یوه درهم حسل
او د یوه درهم تېل به مې واخیستل او دا شیان به مې سره گډ کړل او درې سوه شپېته لډوگان غونډي به
مې څیني جوړ کړل په یو لډو به مې روزانه روژه ماتوله، خلکو پوښتنه وکړه چې اوس ستاسو
دخوراک څه انداز دی؟ وېې فرمایل چې څنګه موقع را ته ملاوسي هغه ډول کووم، په راهبانو کې د
اسې خلک هم لیدل سوي دي چې په یوه شپه او ورځ کې به یې دیو درهم د وزن څخه زیات خوراک
نه کوی او دا عادت دوی په تدریج خپل کړی وو.
دویمه درجه د هغو خلکو ده چې په نیم مُد باندې صبر کولای سي او د یوې برخې دریمه حصه هم
ډېره گڼي، د نبي ﷺ ارشاد دی چې یو څو گولې هم د بنده د پاره کافي دي، او برخې عموماً دلسو
گولو برابره وي او د حضرت عمر رضي الله عنه معمول وو چې د اوو یا نهو گولو څخه زیاته به یې نه خوړله.
دریمه درجه د هغوه خلکو ده کوم چې په یو مُد به یې اکتفاء کوله او په داسي خلکو کې زیاتره هغه
وي چې د دریمې حصې د نس د کولو پر ځای نیمه حصه د کوي.
څلورمه درجه د هغو مریدانو ده کوم چې دیو مُد څخه هم زیاته خوري اکتفاء پر کوي او عین ممکنه

ده چي د يو مُد څخه د زيات خوراک خوړل په اسراف کي وي، يعني داخلګ به په دې آيت شريف کي په مذکوره خلګو کي شامل وي دکومو په باره کي چي ارشاد دی: كُلُوا واشْرَبُوا ولَا تُسْرِفُوا إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ (الاعراف:٣١) (خورئ چيښئ او دحد څخه مه وځئ بې شکه هغه اسراف کوونکي نه خوښوي)

لېکن دا شئ د کار او د جسم په نوعيت کي په تبديلي سره بدلېږي، په هر حال په مجموعي توګه سره لازمه ده چي خوراک دې داسي وخت بس کوي چي لاتوره خوړی سي. لېکن په دې سلسله کي يوې دلې د يو مقدار تعين نه دی کړی، بلکي صرف د دې کوشش تأکيد يې کړی دی چي تر څو پوري بنه نه وي وږی سوی تر هغه پوري دې نه خوري او بيا هم چي وږه لاباقي وي نو بس دې کړي او د لوږي نښه دا ده چي بغير د سالن (کتغ) څخه ډوډی ته هم زړه بې قراره وي او د اوربشو يا جوارو ډوډۍ هم په مينه سره خوړی سي، که د سالن (کتغ) په تلاش کي وي نو پوه سه! چي لا بنه وږی نه دي، او د اکثرو اصحابو کرامو معمول وو چي د نيم مُد څخه زياته به يې نه خوړه، او يوه ډله په اصحابو کي داسي هم وه چي په اوونۍ (هفته) کي به يې د يو صاع څخه ماسوا يې نه خوړل اوبو صاع څلور مُده وي، او که دا طعام به دکجورو په صورت کي وو نومقدار به يې يو نيم صاع کولو ځکه چي په دې کي به تاکی (مندکي) وې، نو به د تاکيو څخه ماسوا يو صاع پاته سو، او حضرت ابو ذر ﷺ وايي چي دنبي کريم ﷺ په زمانه کي زما خوراک به د يوې جمعې څخه تر بلې جمعې پوري پر يوصاع باندي مشتمل وود اوربشو، او په خدای قسم دی دامعمول به تر هغه پوري ترک نه کړم تر څو چي (د دې دنيا څخه ) د هغه خواته ور نسم (يعني مړ نسم)، او بيا ابو ذر ﷺ خلګ ملامتوي وايي چي اې خلګو! تاسو هغه معمول پرېښوی، حال دا دی چي د نبي ﷺ ارشاد وو چي زما دوست او مقرب به هغه وي کوم چي دا انداز تر آخره پوري خپل کړي پر کوم چي نن عمل کوي، او بيا يې ووېل، اې خلګو! تاسو د دې څخه واپس سوي ياست بلکي د اوربشو اوړه هم چاڼ کوی او ډوډۍ هم نرۍ نرۍ پخوی او دوه ډوله سالنونه (کتغونه) پخوی، او دشپې او دورځي د پاره جلاجلا جامي جوړوی حال دا دی چي د نبي ﷺ په وخت کي دا حالت نه وو او د اهل صُفّه وو څخه به دوو تنو په شريکه هم د يومُد څخه زياتي خُرماوي نه خوړلې او د دې څخه به تاکی (مندکي) هم وتلې.

سهل تستري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چي که ټوله دنيا وينه وينه سي (يعني په ټوله دنيا کي صرف وينه او حرام خوراک وي) خو هم به زما خوراک د حلالو څخه وي، مطلب دا دی چي د ضروت څخه زيات

نه خورم او هغه مطلب نه دی کوم چې یې اباحتي خلک اخلي چې هر شئ هغه که حرام وي خو چې په لاس راسي حلالیږي، ځکه چې دصدقې یوه خُرما هم نبي ﷺ دځان د پاره حلاله نه ده مقرر کړې، حال دا دی چې لاس ته به ددوی هم راتله، لېکن دوی به نه قبلوله.

د دویم احتیاط تعلق د طعام د وخت سره دی، او د دې درې درجې دي، د ټولو څخه لویه درجه دا ده چې خوراک لږ تر لږه د درې ورځو په و قفه سره وخوړل سي، او هسې خو داسې بزرګان هم تېر سوي دي چې تر اوو اوو او لسو لسو او دولسو دولسو ورځو پوري به یې یوه ګوله خولې ته نه اچوله، او دتابعینو څخه یو بزرګ خو دې درجې ته رسېدلی وو چې تر څلوېښتو څلوېښتو ورځو پور به یې بغیر دخوراک څخه ګذاره کوله، حضرت صدیق اکبر ﷺ به اکثر تر شپږو شپږو ورځو پوري په خالي نس وسېدی، دابراهیم ادهم رحمه الله او سفیان ثوري رحمه الله عادت دا وو چې د درې ورځو څخه مخکې به یې هیڅ نه خوړل، او دا هم ویلي سوي دي چې کوم سړی څلوېښت ورځې څه ونه خوري پر ده به دآسمان د ملکوتو څخه څه ناڅه ضرور ښکاره کیږي.

**قصّه**: یوه صوفي د یو راهب سره بحث کولو د هغه څخه یې پوښتنه وکړه چې ته آخر پر نبي ﷺ ایمان ولې نه راوړې؟ هغه وویل ځکه چې عیسیٰ ﷺ تر څلوېښتو ورځو پوري څه نه وو خوړلي او دا د هغه د رښتونې نبي کېدلو دلیل دی او حال دا چې ستاسو پیغمبر داسې نه دي کړي، دې صوفي وویل: زه د خپل پیغمبر صرف یو عام اُمتي یم که څلوېښت ورځې زه څه ونه خورم نو آیا ته به آیمان راوړې؟ هغه وویل هو! را به یې ورم هغه صوفي پنځوس ورځې بغیر د څه خوراک څخه هلته ناست وو، او ویې ویل که غواړې نو نور هم صبر کولای سم هغه وویل ډېره خوره ده نو هغه تر شپېته ورځو پوري پر دغه ځای ناست وو، او څه یې نه وخوړل او هغه راهب ایمان راوړی، او دا درجه انتهائي عظیم الشانه ده او دې ته رسېدل د هر چا د پاره ممکن نه دي او صرف هغه سړی دې ته رسېدای سي چې هغه ته داسې حقیقتونه ښکاره سي کوم چې د ده د برداشت قوّت قائم لري او دی یې په مشاهده کې داسې محوه (غرق) سي چې د دې جهان څخه بالکل خبر نه وي.

دویمه درجه د هغو خلکو وي کوم چې دوه دوه درې درې ورځې بغیر خوراک څخه پاته کېدای سي او داسې خلک هم په خاص تعداد کې دي.

دریمه درجه د هغو خلکو ده کوم چې روزانه خوري لېکن صرف یو واري او دا کمترینه درجه ده او کله چې دوه واره خوراک ته نوبت ورسیږي نو پوه سه! چې سرحد د اسراف ته ورسېدی ګویا یو وخت

هم وبېږي پاته کېدل نه خوښوي، نبي ﷺ که به سهار وخوړله نو ماښام به يې نه خوړله او که د شپې به يې وخوړله نو سهار به يې نه خوړله او دوی ﷺ حضرت عائشې ﷞ ته وفرمايل چې د ورځې د دوه واره خوراک يعنې اسراف شخه همېشه ځان ساته. ځکه چې د ورځې دوه واره خوراک اسراف دی، او کله چې ديوه وار عادت سي نوغوره دا ده چې سهار يې خوري چې شپې ته يې د عبادت د پاره بدن سپک او زړه صفا وي، او که د شپې خوراک خامخا غواړي نو بيا پکار دي چې يوه بوږی دماښام او يوه د سهار خوري.

## دلوږې د رياضت رازونه او په دې کي د پير او مريد د مختلفو احکامو ذکر

پوه سه! چې د لوږې دبرداشت کولو شخه مقصود دا وي چې نفس مغلوبه کړي،او مؤدّب يې جوړ کړی کله چې دنفس کوږوالي ليري سي نو دی پخپله د دې بند شخه آزاد سي، او زيات حاجت يې پاته نسي، او داوجه ده چې پيرهميشه مريد ته د دې خبرو حکم ورکوي او پخپله د دې حاجت نه وي چې دی دي داسي کوي ځکه اصل مقصد محض فاقه کشي (ځان وږي کول) نه دي بلکي مراد دا دی چې دومره وخوري چې معده په درنه نسي او نه يې دلوږې احساس باقي پاته سي چې د گرانی شکايت او د لوږې احساس دواړه په مشاغلو کي شامل دی چې بنده پکښې مشغول سي بيا عبادت نسي کولای او دواړه په دې لاره کي حائل کيږي او د انسانيت کمال دادی چې دملائکو صفت ته و رسيږي، او فرشتې نه د لوږې تکليف پرېشانه کوي او نه د موړوالي گراني محسوسوي؛ لېکن نفس د اعتدال پر لاري کله راځي؟ تر څو چې په ابتداء کي پر ده سختي او جبر ونسي، څنگه چې دبزرگانو يوه ډله داسي ده چې کومو د همېشه د پاره خپل نفس ته دبدگماني په نظر سره کتلي او داحتياط لار اختيارول يې لازمي گڼلي او د نفس پوره نگراني يې کړې ده، او کوم چې زيات کامل وو هغوی پر حدّ د اعتدال باندي قائم پاته کېدل خپل شعار جوړ کړی،او د دې دليل دا دی چې نبي کريم ﷺ کله خو به يې روژې نيولې او دومره به يې نيولې چې خلکو به داوگڼله چې اوس به چيري د ږوژی موقع رانه سي اوکه به يې ږوژه وه نو داسي چې خلکو به ويل بس اوس به روژه چيري ونه نيسي، د کور شخه په طلب کولو که به څه شئ ملاوسونو به يې خوړی او که نه به وو نو ويل به يې بس اوس زما روژه ده، عسل او غو ښه به يې ډېر خوښ وو، معروف کرخي ﷫ ته چې به چيري ښه خوراک راغلی نو خوړی به يې لېکن بشرحافي ﷫ به نه خوړی، څرنگه چې يو وار د معروف کرخي ﷫ شخه دا پوښتنه وسوه نو ويې فرمايل چې زماورور بشرحافي د زهداوپرهېزگاری لاره اختياره کړې ده او

ماته يې د معرفت الهي فراخي را کړې ده، زه د خپل مولا په کور کې مېلمه يم کله چې هغه را کوي نو دخوراک څخه د انکار سوال نه پيدا کيږي او کله چې يې نه را کوي نو د صبر څخه ماسوا بله چاره نه وي، ځکه ماته نه څه اختيار حاصل دی او نه د اعتراض څه گنجائش باقي پاته سوی دی، اوس په دې زمانه کم عقلو خلکو دا د غرور او رياء يوه حيله جوړه کړې ده، يعني چا ته چې د نفس د مخالفت توفيق نه وي هغه وايي موږ خو دمعروف کرخي رحمه الله په ډول عارفان يو.

نو د مجاهدې او رياضت څخه څوک لاس اخيستی سي ما سوا د دوه قسمه خلکو څخه: يو ته خو صدّيق وايي چې پر سيده لاره روان وي صحيح مقام ته رسېدلی وي (لکه معروف کرخي رحمه الله او نور) دويم هغه احمقان وي کوم چې خامخا په دې مغالطه کې لوېدلي وي چې د دوی معامله هم گويا صحيح سوې ده، حال دا دی چې معروف کرخي رحمه الله (هغه لوړ مقام ته رسېدلی وو چې ده) ته پخپل ذات کې څه تصور او اختيار باقي نه وو پاته سوی (هر څه يې د الله جل جلاله سوي وو) نو که دوی ته به چا څه بښکنځل هم وکړل نو د دوی دلاسو ژبې سترگو څخه به د يو ډول غصې اظهار نه کېدلو، چې دوی به دغه هم د الله جل جلاله د جانب څخه خيال کولو، او س که د اسې سړی دا خبره وکړي نو د ده سره به هم ښکاري، هر کله چې بشرحافي رحمه الله سری السقطي رحمه الله او مالک بن دينار رحمه الله او د دوی د پايې نور بزرگان د خپلو نفسونو څخه محفوظ پاته نه سو او د رياضت او مجاهدې څخه فارغ نه سو نو د بل د پاره په خپل باره کې داسې گمان کول قطعي ناممکنه دي(په ځانگړې توگه دنن صبا درياکارانو د پاره).

## د شهوتونو د پرېښوولو نقصانونه

د شهوتو په ترک کولو سره پرخپل ځای دوه آفتونه پيدا کيږي: يو خو دا چې بنده په آسانۍ سره د شهوتونو (لذتونو) پر پرېښولو قادره نه وي، نو په خلوت کې يې خوري چيښي او د خلکو په مخکې ځکه نه خوري چې دوی يې د راز څخه خبر نه سي، او دا عين منافقت دی او د داسې منافق دمغروره کولو د پاره خو شيطان هم موجود وي، يعني دا خبره ورته په ذهن کې اچوي چې دا ته چې څه کوې (منافقت نه دي بلکې) د نورو د پاره دتقليد باعث دی ځکه چې دمؤمنانو مصلحت په دې کې دی (چې په ښکاره يې نه خوري) او دا عين غرور دی ځکه چې د اسې بنده خو ډېر کم ملاوېږي. کوم چې د خپلې خوښې شئ دنورو په مخکې اخلي، لېکن کورته چې ولاړ سي پر فقيرانو يې تقسيموي، چې د صدق و صفا دا عمل د صديقانو څخه ممکن کېدلی سي او بې حده گران وي. که

څه هم شرط دا اخلاق دا دي چي دا ګران عمل هم بالکل آسانه ښکاره سي ځکه چي دګران محسوسېدو مطلب به داوي چي په زړه کي لا تر اوسه د نفاق او ریاء یو اندازه باقي ده او دا اطاعت به د ریاء د پاره وي نه چي د الله ﷻ د پاره. او کوم سړی چي د طعام د شهوت څخه صرف په دې وجه تښتي چي خلک یې واقعي تښتېدونکي وګڼي (او په پټه یې خوري) نو دغه ګویا په شهوت د ریاء کي مبتلا دی او د ده مثال د یو داسي سړي دی چي دبلاران څخه د خوندي کېدلو د پاره تر ناوې لاندي ودرېږي، او کله چي نفس د دا ډول ریاء ښکار سي نو د داسي سړي د پاره غوره دا ده چي د خپل خواهش مطابق شئ دي د خلکو په مخکي خوري خو ټول دي نه خوري بلکي څه دي پرېږدي هم چي خواهش هم تر یو حده پوري مات سي او د ریاء زور هم څه اندازه کم سي.

## د فرج د شهوت د آفتونو په باره کي

پوه سه! چي د جماع شهوت په بنده کي ځکه ایښول سوی دي چي دا خواهش د ده څخه د تخم غورځولو تقاضا کوي چي سلسله د نسل منقطع نسي، او بیا دجنت د لذّت یو رنګا غوندي ښوول هم مقصود وو (چي په جماع کي د جنت د لذّتونو څخه لږ غوندي لذت سته.ژباړن) لېکن د دې شهوت آفتونه هم ډېر لوی دي، ابلیس حضرت موسی ؑ ته وویل چي د ښځي سره په خلوت کي مه کښېنه ځکه یو سړی داسي نسي کېدای چي په خلوت کي د ښځي سره ناست وي او زما خدمتونه ورته حاصل نه وي، ځکه چي داسي سړي لره د شهوت په آفت کي د مبتلا کولو موقع زه د لاس څخه نه باسم.

سعید مسیب رحمه الله وایي چي د الله ﷻ د پیغمبرانو څخه یو پیغمبر داسي نه دی تېر سوی کوم چي د ښځو په معامله کي یې ابلیس مایوسه کړی نه وي، او زه پخپل باره کي چي څومره په دې ضمن کي بېرېږم دومره د بل شئ څخه نه بیرېږم تر دې چي اول خو پخپل کور کي یم یا د زیاتو څخه زیلت د خپلي لور کور ته کله کله ځم.

او پوه سه! چي دحدّ څخه زیاتوب او کمی او متوسطه درجه په دې شهوت کي هم موجوده ده. دحد څخه زیاتوب (افراط) دا دی چي بنده داسي سي چي د فحش خبرو څخه او د غلیظو حرکتونو څخه ده ته شرم او حیاته محسوسېږي او خپل ځان په بشپړه توګه د بې حیائی دغي کندي ته واچوي او کله چي د شهوت بُت دغسي پر ده سپور سي نو د ده د زور ماتولو د پاره پر ده لازمه ده چي روژې ونیسي او که دا نسي کولای بیا دي نکاح وکړي، او کمښت (تفریط) دا دی چي د جماع خواهش یې

باقي پاته نسي چي دا پخپل ځای یو نقص دی او باعث د نقصان دی. او اعتدال دا دی چي خواهش یې وي لېکن تر وس یې لاندي او فرمان برداره وي. بعضي خلک داسي وي چي د شهوت زیاتولو د پاره دوایاني خوري او دا صرف جهالت دی که زیاتوي یې نو د خیر قوت ولي نه زیاتوي، د داسي سړي مثال خو د هغه سړي په ډول دی چي د مچمچیو بنور ته قصداً لاس وروړي، چي په ده پسي راوپارېږي لېکن که یو سړی نکاح کړې وي او د ده مقصد دا وي چي د خپلې بي بي حفاظت وکړای سي نو په دې کي هیڅ باک نسته ځکه چي سړی د ښځو قلعه (حصار) دی. او په بعضي غریبو احادیثو کي مذکور دي چي نبي کریم ﷺ یو وار په ځان کي د شهوت کمزوري ولیده نو جبریل ؑ ور ته د هریسه (یو ډول خوراک دی) خوړولو وویل. او د دې سبب داوو چي د دوی نهه ببیاني وې او پر ټوله دنیا دوی حرامي سوي وې او د ټولې دنیا ښځه د دوی اُمید قطع سوی وو. او د دې شهوت د آفتونو ښځه یو زبردست آفت د عشق دی کوم چي د بې شماره ګناهونو سبب جوړېږي. او که په شروع شروع کي پر دې قابو ونه لیدل سي نو خبره د خپل وس څخه بهر کېږي او د دې احتیاط دا دی چي سترګي په قابو کي وساتل سي یعني که اتفاقي نظر پر چا پرېوځي نو چي د دو باره کتلو څخه منع کړای سي، لېکن که یې پر خپل حال یې پرېږدي نو بیا به یې بندول په کوشش سره هم ګران وي، او په دې معامله کي د نفس مثال د یو حیوان په ډول دی چي کله یو طرف ته د تللو قصد وکړي نو په اوّل کي یې واګي رانیول او راګرځول آسانه وي لېکن که واګي ور ته سستي کړې نو بیا که یې ته لکۍ را کښوې او تر پښو یې نیسي، کوشش کوې خو کامیابي به ګرانه وي. نو اصل خبره دا ده چي: سترګو حفاظت وسي (چي فتنه د سر څخه پیدا نه سي).

سعد بن جُبیر رحمه الله وایي چي د حضرت داؤد ؑ په فتنه کي مبتلا کونکي شئ سترګي وې او په دې وجه یې د دې وصیت خپل زوی ته دا کړی وو چي زویه په زمري او شرمښ پسي ورپسې کېدل دومره خطرناک نه دي، څومره چي په یوه ښځه پسي ورپسې کېدل دي. د یحی ؑ څخه پوښتنه وسوه چي د زنا ابتداء د کوم ځای څخه کېږي؟ نو ویې فرمایل د سترګو څخه. او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي د نظر غشی د ابلیس د لښنده هغه غشی دی کوم چي په زهرو ککړ سوی دی. نو کوم سړي چي د خدای د بیرې څخه خپلې سترګي خوندي ساتي الله ﷻ دی د ایمان په دولت سره پوره کوي چي خوند یې د ده زړه محسوسوي او ویې فرمایل ماسوی د ښځو څخه بله یو فتنه د خپل امت د پاره تر ځان وروسته پرې نښودہ. او ویې فرمایل: سترګي هم د نفسي زنا کوي څنګه چي عورت زنا کوي او د سترګو زنا د ښځي طرف ته کتل دي نو کوم سړی چي د سترګو د خوندي ساتلو څخه

قاصره سو، ده ته پکار دي چي شهوت د رياضت او مجاهدې په مشقت کي واچوي او د دې غوره طريقه روژه نيول دي او که دا هم ممکنه نه وه نو نکاح کول ضروري دي او بدترين آفت دا دی چي يو سړی په بنايسته مينځو باندي د نظراچولو څخه منع نسي ځکه چي دا خو حلال فعل جوړول هم قطعي نا ممکنه دي، (يعني نکاح ورسره نه سي کيدای) او کوم سړي چي د شهوت تحريک د سپين مخو په ليدلو باندي مجبوره کړي چي په ليدو سره يې لذت او راحت حاصل کړي نو داخواهش هم حرام او په داسي شهوت پرستو مينځو نظر اچول هم حرام دي، ها! که د ساده مخو په ليدلو سره يو داسي قسم لذت او خوند محسوسوي لکه چي د شنو ګلونو يا نقش او نګار په نظاره سره حاصليږي نو په دې کي څه باک نسته، او د دې نښه دا ده چي نظر کوونکي ته فقط راحت خوندي محسوس سي نه دا چي د مچولو او په بغل کي نيولو آرزو په زړه کي راپورته سي، ځکه چي دګلونو او خوتيو په بنايست د نظاره کوونکي زړه دا نه غواړي چي دی ور سره په بوس او کنار مشغوله سي، ځرنګه چي د سپين مخو مينځو په ليدلو که دا تقاضا پيدا سي نو دا دشهوت علامه ده او د لواطت طرف ته اول قدم دی، په مشائخو کي د يو شيخ ارشاد دی چي پر مريد که يو غصه سوی زمری حمله وکړي نو زما دومره بېره نه ده څومره چي يې ديو بنايسته ښکلي سپين مخی هلک سره ناست ووينم.

## د شهوت څخه د مخالفت کوونکي ثواب

شهوت چي څومره غالبه وي دومره به يې مخالفت کوونکي ته ثواب ملاوېږي او يو شهوت دومره سخت او مغلوب کوونکي نه دی څومره چي د فرج شهوت دی او غټ او لوی مقصد هم د دې شهوت وي، او د دې شهوت په نه سرولو (ساکن کولو) کي زيات هغه خلګ وي چي يا خو ځيني عاجزه وي يا د شرم او بيري په وجه په دوی کي د دې همت نه وي يا د دې خبري څخه بيرېږي چي که خبره ښکاره سي نو په خلګو کي به رسوا سي، او کوم سړی چي د دې وجوهاتو پرېناء د شهوت د فرج څخه پرهيز کوي دوی ته هيڅ ثواب نه ملاوېږي ځکه چي دا اطاعت د دنيا دی نه چي د شرع؟ خو بيا هم د اسبابو د ګناه څخه عُجز سعادت دی هغه که په هر صورت کي چي وي لېکن داسي بنده چي خپل ځان د ګناه څخه خوندي کوي د عذاب څخه هم محفوظ کيږي لېکن کوم سړی چي پر دې حرام کار قادره وي او څه بنديز هم د ده په لاره کي نه وي لېکن بيا هم دی دالله ﷻ د پاره د دې د کولو څخه ځان ساتي نو د ده د پاره چي کوم ثواب دی هغه ډېر عظيم دی، او د ده شمار به په هغو اووه قسمه خلګو کي وي کوم چي به د قيامت په ورځ د خدای په سيوري کي په آرام وي، او په دې لحاظ سره به د ده

درجه د حضرت یوسف ﷺ د درجې برابره وي، ځکه چې د دې سختې خوندې ځخه د اوښتونکو امام او پیشوا حضرت یوسف ﷺ وو.

**قصه**: سلیمان بن بشار رحمه الله بې حده ښایسته وو یوې ښځې دی ځان ته راوبلی، نو دی د هغه ځای ځخه وتښتیدی، دی وایي چې په دغه شپه مې په خوب کې حضرت یوسف ﷺ ولیدی او پوښتنه مې وکړه چې تا سو یوسف ﷺ یاست ویې ویل ها! زه هغه یوسف ﷺ یم کوم چې قصد کړی وو (خو پاک لمنی پاته سو) او ته هغه سلیمان یې چې قصد دې هم ونه کړی، او دا اشاره د دې آیت و طرف ته وه: ولقد همّت به وهمّ بها [یوسف] (او دې ښځې د ده قصد وکړی او ده د دې قصد به هم کړی وای که د خپل رب دلیل یې نه وای لیدلی) او دا سلیمان فرمایي چې:

**قصه**: زه د حج په سفر روان ووم د مدینې منورې ځخه دباندې ووتم نو هغه ځای ته ورسېدم کوم ته چې "ابواء" وایي زما دوستان (ملګري) د خوراک چښاک او د ځه سامان اخیستولو د پاره ولاړل او زه هلته پاته سوم په دې کې یو حسینه ښځه ما ته نژدې راغله او ویې ویل، ما ته را کړه. زما خیال سو چې شاید دوډۍ غواړي ماورته وویل لمن ونیسه، هغې وویل زه دا نه غواړم بلکې هغه غواړم کوم چې یې ښځې د سړو ځخه غواړي ما سر کښته کړی او په زار زار په ژړا سوم چې زما ژړا یې ولیده نو ښځه روانه سوه ولاړه، زما ملګري چې راغلل نو زما ځخه یې د ژړا پوښتنه وکړه ما وویل بس دغسې د بچیانو خیال را ته راغلی او ومې ژړل هغوی وویل چې خبره دا نه ده خامخا به حال وایې یقیناً چې ځه خاص خبره در پېښه سوې ده مونږ ته به خامخا وایې، ماورته ټوله قصه وکړه نو هغوی هم وژړل، ماورته وویل تاسو ولې ژاړئ؟ دوی وویل ځکه چې که دامونږ وای نو برداشت به را ځخه نه وای سوی ستا پر دې لوی همت ژړا راغله، چې مکې مکرمې ته ورسېدلو د طواف او سعي ځخه فارغه سو یوې حجرې ته ورغلو او تښښتو ما ته خوب راغلی بیده سوم په خوب کې مې یو سړی ولیدی چې نهایت ښایسته وو او د ده په راتلو سره عطر او ښه بوی خور سو ما پوښتنه وکړه ته څوک یې؟ هغه وفرمایل زه یوسف ﷺ یم، ماوویل ښه! یوسف صدّیق؟ ویې فرمایل هو! ماوویل د عزیز دمصر د ښځې سره ستاواقعه څومره عجیبه ده؟ ویې فرمایل ها! لیکن د اعرابي ښځې سره ستا قصه زما د قصې ځخه زیاته عجیبه ده.

## د نظر بازۍ (بد نظرۍ) مصیبتونه او د حرام نظر بیان

پوه سه! چې دا خبره ډېره کمه لیدل کیږي چې پر یو شي د قدرت پیدا کولو ځخه وروسته یو سړی

واقعي د هغه څخه ځان محفوظ کړای سي نو پکار دي چي دعين ابتداء څخه پوره احتياط وکړای سي، او د هر شئ ابتدا د ستر گو څخه کيږي، څنګه چي علاء بن زياد رحمه الله وايي چي د يوې ښځي پوړني ته لا هم مه گوره چي په زړه کي په دې سره هم شهوت پيدا کيږي، او اصل واجب هم دا دی چي د ښځو د جامو و طرف ته هم نه دي کتل پکار، او د دوی څخه راغلي خوشبو بوبول هم نه دي پکار، او د دوی آواز اورېدل هم نه دي پکار، تر دې چي دوی ته پيغام لېږل يا د دوی پيغام اورېدل، بلکي د داسي ځای سره تېرېدل هم نه دي پکار په کوم ځای کي چي د دوی آواز خوړونو ته رسيږي، يا تا ووينې که څه هم چي ته يې ونه وينې، چي حسن او جمال چي کوم ځای هم وي په زړه کي د شهوت تخم کري، او زړه د بدو فکرونو ښکار سي، او دغه ډول ښځي ته هم د ښايسته سړي څخه هميشه ځان ساتل پکار دي، او د طرفينو که په يو بل ارادةً نظر پرېوځي نو دا حرام دی، لېکن که اتفاقًا پرېوځي نو حرام نه دي لېکن که يې دو باره وکتل بيا حرام ادي، نبي کريم ﷺ فرمايي چي اولنی نظر ستا دی او دويم پر تا دی يعني پر تا به يې گناه وي، دارنګه فرمايي که يو سړی پر چا عاشق سي او بيا پرخپل ځان نظر ساتي او د عشق راز هم پټ ساتي او په دې درد او غم کي مړ سي نو شهيد دی، او پر خپل ځان د نظر ساتلو څخه مراد دا دی چي اولنی نظر اتفاقي پرېوتی وي اوس بل نظر نه اچوي او سنبال يې ساتي او بيا هاخوا نه گوري او نه د يار لټون کوي او دا راز پخپل زړه کي پټ ساتي.

اوياد ساته! چي د فساد تخم د دې څخه زيات نسته چي سړي د ښځو سره کښېني يا ښځه د سړو سره يا په دعوتونو او ضيافتونو کي په آزادي يو بل ته گوري، د ښځو صرف نقاب او پوړنی پر سر کول کافي نه دي، بلکي که پوړني سپين وو او نقاب پُر تکلف (تنګ) وو نو د شهوت تحريک زياتيږي، او عين ممکنه ده چي ښځه په داسي جامه کي دښکاره مخ په نسبت نوره زياته پُر کشش (جاذبه) ښکاره سي، او که د سپين څادر او پُرتکلف نقاب څخه واقعي دا څه مقصود وي نو دا حرام دي، او کومه ښځه چي داسي کوي هغه گناهګاره ده، او د دې پلار، ورور او خاوند (او څوک چي يې وارث وي، دا ټوله گناهګاره دي)

که پخپله دوی د دې اجازت ورکړي نو دوی به ور سره هم په گناه کي برابر شريک وي، چي د دوی رضا په گناه رضا ده، او يو سړي ته جائز نه دي چي دشهوت د تسکين په خيال سره د ښځو کښل سوي جامي د خپل جسم سره لګوي يا يې په عطرو زړه خوشحاله کوي، يا د دوی د پاره دا ډول زېور يا يو شئ راوړي يا پخپله د دوی څخه اخلي په کوم سره چي د ملاطفت موقع ملاوېږي ياور سره نلست وي خبري ور سره کوي، دغه ډول ښځي ته هم جائز نه دي چي د غير محرمو خلګو سره خبري

کوي، او که اتفاقاً څه داسي موقع راسي نو سختي خبري دي کوي او په نا کاره لهجه دي خبري کوي، لکه چي الله ﷻ فرمايي: إِنِ اتَّقَيْتُنَّ فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِي فِي قَلْبِهِ مَرَضٌ وَقُلْنَ قَوْلًا مَعْرُوفًا (الاحزاب: ۳۲) (که تاسو تقوى اختياروئ نو د نامحرمو سره په خبرو کي نزاکت (نرموالى) مه کوئ د داسي سړي فاسد خيال پيدا کيږي د کوم په زړه کي چي خرابي وي او د قاعدي د عفت مطابق خبره کوئ) په کومه کوزه کي چي ښځي اوبه چښلي وي هين د کوزي په هغه ځاى باندي خوله لګول د سړي اوبه چښل حرام دي، او که پر يوه ميوه يا بل شئ باندي ښځي په خوله سره چک پر لګولى وي بيا يې پرې ايښي وي سړي ته د هغې خوړل هم منع دي. حکيمى رحمه الله وايي چي د ابو ايوب انصاري ښځي او بچيانو به په هر هغه لوښي کي کوم چي به د نبي ﷺ د مخي څخه راوړل سوى وو پر هغو ځايونو ګوتي لګولې پر کومو چي به د نبي ﷺ خوله مبارکه لګېدلې وه او د دوى ﷺ د ګوتو نښي به باندي وې، او دا خبره باعث د ثواب وه، لېکن که د غير محرم ښځي پسخورده د لذت او مزي د پاره خوري نو دا ګناه ده او سخت عذاب به يې وي او د يو شئ څخه دومره ځان ساتل لازمي نه دي څومره چي د هغو شيانو څخه لازمي دي د کومو تعلق چي د ښځو سره وي.

يا د ساتل پکار دي چي په لاره کي د تللو پر وخت چي کله يوه ښځه يا ښکلى هلک مخ ته راسي نو شيطان فوراً تقاضا کوي چي لږ خو ورته وګوره څومره ښايسته دي دغه وخت بنده ته پکار دي چي د شيطان سره مناظره وکړي چي زما څه دى چي ورته وګورم؟ که بدشکله وي نو زه به بيا خفه يم او ګناه به جلاوي څکه چي که ور ته وګورم نو نيت او آرزو به مي دا وي چي کاش! ښه صورت مي ليدلى واى، او که ښکلى وي نو بيا هم ورته کتل حلال نه دي بلکي ګناه ده او خفګان به مي هم وي چي افسوس دا زما واى! او که پسي ور پسي کيږي، نو ګويا خپل دين او عمر به د دې نذر کړم او بيا هم څه معلومه ده چي خپل مراد حاصل کړم او که نه. د نبي ﷺ نظر په لاره کي پر يوه ښکلې ښځه پرېوتى واپس يې کور ته تشريف راوړى او د خپلي بي بي سره يې صحبت وکړى او بيا يې دغه وخت غسل وفرمايى د باندي ولاړ سو. او ويې فرمايل چي که بنده پر لاري روان وي ښځه ووينې او شيطان ور ته شهوت راپورته کړى نو ده ته پکار دي چي فوراً کور ته راسي د خپلي بي بي سره صحبت وکړي څکه چي کوم شئ د پردى ښځي سره دى هغه ستا د بى بى سره خو هم دى، والله تعالى اعلم.

## دريم اصل: د ژبي آفت او د ډېرو خبرو کولو د عادت علاج

ژبه د الله ﷻ د صنعتونو څخه يو عجيبه او نادر صنعت دى چي په ليدلو کي خو دغوښي يوه ټکره ده

لېکن په اصل کي د دنيا په هر شئ دې ته تصرف حاصل دی او دنيا لا څه کوي چي د عدم پر هر شئ هم د دې تصرف يوه ظاهري خبره ده ځکه چي د دنيا سره سره د عدم په باره کي هم چي څه بيان سوي دي د ژبي په برکت سوي دي، بلکي د عقل نائبه هم ژبه ده ځکه چي د عقل د احاطې څخه خو په هر حال څه شئ دباندي نه وي، که څه هم پخپله چي په عقل او خيال کي څه راځي دغه د الفاظو او عبارت په صورت کي ښکاره کول د ژبي کار دی، او دا ملکه د جسم بل يو اندام ته حاصله نه ده. مثلاً د سترګو ولايت تر شکلونو او رنګونو پوري محدود دی د غوږونو مملکت د آواز تر اندازې پوري دی او دغه ډول د ټولو اندامونو ولايت او حکومت د جسم پر يو حصه باندي مشتمل وی، لېکن ژبه پر ټول جسم داسي حکمرانه (واکمنه) ده لکه چي د زړه تصرف په پوره جسم باندي دی، او بيا د زړه سره د دې دوچنده تعلق داسي دی چي يو طرف ته د زړه صفتونه او کيفيتونه را اخلي دالفاظو جامې ور اغوندي بل طرف ته د مختلفو صورتونو نقشونه او آثار ده ته هم رسوي او د دې په هر بيان سره زړه د هر يو څخه يو صفت حاصلوي مثلاً ژبه چي په آه او زاری کي لګياوي نو د دغه نوحه ګري په صورت کي چي کوم دردناکه الفاظ د دې څخه ووځی نو په زړه کي يو داسي کيفيت پيدا کيږي کوم ته چي رِقت، غم او درد او سوز وايي او د زړه د اُور بخارات پورته کيږي دماغ ته رسيږي او بيا د اوښکو په صورت کي د سترګو په لاره را بهيږي. دغه ډول کله چي د ژبي څخه دخوشحالی الفاظ ووځي نو د دې موافق په زړه کي د نشاط او خوشحالی سمندر په څپو کيږي علی هذا القياس کومه کلمه چي پر ژبه راځي د هغې موافق په زړه کي يو صفت پيدا کيږي، تر دې چي که بده خبره وايي نو زړه تاريک کيږي او که حق خبره وايي نو زړه روښانه کيږي او کله چي درواغ او کږه خبره کوي نو لکه څنګه چي هينداره ناهمواره وي او هرشئ پکښي نا همواره ښکاره کيږي دغسي په زړه کي هم د کج روي (کوږوالی) کيفيت پيدا کيږي، په دې وجه د شاعرانو او درواغجنو خلکو خوب چيري رشتيا نه وي ځکه چي د درواغو په وجه د دوی زړه کوږ او نا هموار سوی وي، او د رشتيا ويونکو خوب رشتيا وي او صحيح ثابتيږي، او د درواغجنو چي څنګه خوب درواغجن وي دغه ډول هغه جهان ته چي ولاړ سي د الله ﷻ د دربار سيده ليدل به ورته هم نصيب نه وي او دوی ته به د الله ﷻ په دربار کي هم هر څه کاږه ښکاري او دغسي به د بې مثاله لذت څخه محرومه وي، کوم چي د دغه بارګاه خصوصيت دی بلکي لکه څنګه چي په کږه هينداره کي صورت هم بدښکاري او لکه څنګه چي د توري په پلنوالی (برّ) کي ځان ته په کتلو سره حُسن او جمال يو بدشکله شئ معلوميږي دغه ډول د

زړه د کوږوالی په وجه به د هغه دنیا حقیقت او د الله ﷻ دکارونو حقیقتونه دوی ته په صحیح صورت باندې لیدل نصیب نه وي، نو د زړه د روغوالی (جوړوالي) یا کوږوالی انحصار د ژبې په روغوالی یا کوږوالی وي، او ځکه نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې تر څو پورې زړه صحیح نه وي تر هغه وخته پورې ایمان هم برابرېدای نسي او د زړه د برابرېدلو انحصار د ژبې پر برابرېدلو دی نو د ژبې د فتنو د آفتونو او شر او فساد څخه ځان محفوظه ساتل د دین د اهم ترینو کارونو څخه دی، نو په دې اصل کې موږ د ټولو څخه مخکې د خاموشۍ په فضیلتونو رڼا اچوو، بیا د ډېرو خبرو کولو او فضول ګویي آفتونه بیانوو او په آخر کې به درواغ، غیبت، عیب جوئي، دوړوخي (دوه مخي)، هجوه ګوئي (بکواس ګوئي) او مدح سرائي او نور بیانوو.

**د خاموشۍ ثواب**: پوه سه! چې هر کله د ژبې آفتونه بې انتہاء دي او د دې څخه ځان ساتل هم ډېر ګران دي نو بیا د دې څخه د نجات او خلاصون د دې څخه ما سوابل څه تدبیر کېدای سي چې خاموشي اختیار کړای سي او څومره چې ممکنه وي د ژبې د بندولو کوشش وکړای سي او په قدر د ضرورت د خبرو کولو عادت جوړ کړای سي، د بزرګانو وینا ده چې د عامو خلکو په پټو خبرو کې خیر نه وي، ها! مګر کله چې خلک داسې وي چې د خیرات یا بل نېک کار یارانو دوستانو ته ترغیب ورکوي صلاح مشوره کوي [نساء] یعني خبرې په پټه کول هم بنې نه دي سوا د دې څخه چې په دې پټه خبره کې د صدقه ورکولو حکم کول وي او یا د یو نېکی او پاکې مشورې کولو دپاره وسي، او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: چې څوک چپ سو نجات یې وموندلو، او فرمایلي دي: الله ﷻ چې چاته د نس، فرج او د ژبې دفتنې څخه نجات ورکړی ده ته ګویا د ټولو ګناهونو څخه تحفظ حاصل سو، حضرت معاذ ﷛ پوښتنه وکړه چې یا رسول الله! په ټولو عملونو کې ډېر افضل عمل کوم یوی دي؟ په جواب کې نبي ﷺ پر ژبه ګوته کښېښوده اشاره یې وکړه چې دا بنده کړه، یعني خاموشي، حضرت عمر ﷛ فرمایي چې یوه ورځ ماولیدل چې حضرت ابو بکر صدیق ﷛ خپله ژبه په ګوتو سره راکاږي او په زور زور سره یې مږي، ما پوښتنه وکړه اې د رسول الله خلیفه! دا څه کوې؟ ورته فرمایل دې زه په بې شماره کارونو کې اخته کړی یم، او نبي ﷺ به فرمایل چې د بنده د زیاتو خطاګانو ذمه وره دا ژبه وي، او فرمایلي یې دي چې خاموشي او نېک خویې د ټولو څخه آسانه نېکی دي، او فرمایلي یې دي څوک چې پر الله ﷻ دایمان د لرلو دعوی کوي هغه ته ووایه چې که خبرې کوې نوښې او غوره خبرې کوه کنې خاموشي اختیار کړه، حضرت عیسی ﷵ ته خلکو درخواست وکړی چې موږ ته څه داسې خبره وښیه چې موږ جنت ته په داخل سو، ورته فرمایل خاموش اوسئ! او خبرې بالکل مه کوئ! هغوی وویل چې داسې

خوزموږ د پاره ممکنه نه ده، ویې فرمایل نو بیا ماسوا د ښو خبرو څخه هیڅ بله خبره د خولې څخه مه راباسئ، دنبي ﷺ ارشاد دی که کله څوک باوقاره او خاموشه مؤمن وويني نو د ده و طرف ته ضرور ځئ ځکه چي دغه به یقیناً صاحب حکمت وي، او عیسی ؑ فرمایلي دي چي د عبادتونو ټول شمار لس ۱۰ دی په کومو کي چي د نهو تعلق د خاموشئ سره دي او لسم دا ده چي دخلګو څخه ليري ووسي، او نبي کريم ﷺ فرمایلي دي چي کوم سړی زیاتي خبري کوي هغه اکثره او زیاتره غلطي وايي، او کوم سړی چي زیات غلط گوي دی گناه گاره هم زيات وي او څوک چي څومره زيات گناه گاره وي دومره د دوږخ دأور زیات حقداره وي، او داوجه وه چي حضرت ابو بکر صدیق ؓ په خوله کي د ډبري ټکره ایښوله چي د خبري موقع راته ملاو نه سي، ابن مسعود ؓ وايي چي د ژبي څخه زیات بل یو شئ په قید (بند) کي د ساتلو لائق نه دی،

او یونس بن عبید رحمه الله وايي چي ما څومره هم خاموش خلک ولیده همیشه نیکی کوونکي مي ولیده، يو وار د حضرت معاويه ؓ په مجلس کي خلکو خبري کولې چي احنف ؓ چُپ چاپ (خاموشه) ناست وو، معاويه ؓ پوښتنه ځیني وکړه چي ته خو هیڅ خبري نه کوې ویې فرمایل که درواغ وایم نو د الله ﷻ څخه بیریږم او که رشتیاوایم نو ستا څخه بیریږم.

یادساته چي خاموشئ ته دا ټو فضیلتونه ځکه حاصل دي چي د ژبي آفتونه بې شماره دي، او د ژبي د سر څخه وتلې خبري اکثره او زیاتره خبري بې هوده او بکواس او لغوه وي چي د هغه وینا نه بالکل آسانه وي بلکي ډېر ښه معلومیږي لیکن د ښې او بدي تمیز دې ژبي ته کله وي، صرف خاموشي هغه شئ دي چي د دې آفت څخه بې خوندي کولای سي او د همت او زړه مجتمع کېدل د دې په برکت سره حاصلیږي، او دا دلجمعي هغه شئ دي چي په هغه سره په ذکر او فکر کي د مشغولیت موقع نصیب کېدای سي.

اوس دا معلومول پکار دي چي خبري پر څلور قسمه دي: (۱) هغه خبري چي په ویلو کي یې بالکل نقصان او تاوان وي (۲) هغه خبري چي نفع هم پکښې وي او تاوان هم (۳) هغه خبري چي د نفع او نقصان دواړو څخه خالي او دا بالکل پالتو (اضافي)، فضول او وواهیات وي (۴) هغه خبري چي بالکل د فائدې وي، گویا په څلورو کي درې خبري داسي دي چي نه ویل یې غوره او ښه دي، او یو په څلورو کي داسي دي چي په ژبه ویل یې صحیح دي او د ویلو قابلي دي او دا هغه نکته ده چي هغه په دي آیت کي ذکر ده: إِلَّا مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوْفٍ [النساء: ۱۱۴] (ها! مگر کوم خلګ چي داسي وي

چي دخیرات یا دبل نېک کار یاد خلکو په مینځ د یو بل د اصلاح کولو ترغیب ورکوي، او کوم سړی چي دا کار کوي د الله ﷻ د رضا حاصلولو د پاره نو موږ به ده ته ډېر ژر لوی اجر ورکړو)،

او د نبي ﷺ د دې ارشاد حقیقت ته رسېدل چي: "څوک چپ سو هغه کامیابه سو". تر هغه وخته ممکن نه دی تر څو چي دژبي څخه د پیدا کېدونکو آفتونو څخه کما حقّه خبرداري حاصله نسي، او موږ به دلته انشاء الله هر یوه جلا په تفصیل سره بیان کړو.

**اولنۍ آفت**: دا دی چي د داسي خبري څخه منع نسي د کومي چي نه څه ضرورت وي او نه ځیني په منع کېدلو د یو دیني یا دنیوي تاوان ببره وي، او د داسي خبري په کولو سره به سوا د دې څخه نور هیڅ حاصل نه سي چي د "حُسنِ اسلام" د دائرې څخه به خارج سي، ځکه چي د نبي کریم ارشاد دی چي غیر ضروري خبري ترک کول هم حُسنِ اسلام دی، او د دې ټول بې فائدې خبرو مثال دا دی چي مثلاً ته په یو مجلس کي ناست یې د خپل یو سفر قصه کوې او د هغو ټولو غرونو، باغونو، سیندونو، ځونډیالو قصې او نقشې بیانوې کومي چي دسفر په دوران کي ستا تر نظر تېر سوي وي او دا تفصیل ته بغیر د یو څه کمي، زیاتي څخه بیانوې نو دا ټول به بالکل بې سوده او بې گټي وي هیڅ ضرورت یې نه وو، او که دا یې نه وای ویلي نو د چا هیڅ نه په خرابېدل. دغسي که د چا سره په خبرو کي د ده څخه د داسي خبرو په باره کي سوالونه وپوښتي په کومو کي چي څه فائده نه وي نه ده پوښتني والا او نه د ښوونکي نو نه پوښتل یې غوره دي، او دا خو د هغو خبرو ذکر دی په کومو کي چي یو آفت نه ستله، لیکن که ته د چاه څخه دا پوښتنه وکړې چي آیا ستا روژه ده؟ نو که په جواب کي هغه هو! وواییي نو دا خو دعبادت ښدوره ده او که دروا‌غ وواییي نو گناهگاره به سي او دا هر څه ستا په وجه سره وسول، او همه واري به یې پر تا وي، او دغسي که د چا څخه پوښتنه وکړې چي د کوم ځای څخه راغلې؟ یا څه کوې؟ نو کېدای سي چي هغه د صحیح جواب څخه ډډه کوي په غلطه بیاني باندي مجبوره سي او دا حرمه ده، او په فضول خبره کي که یوه ذرّه باطل هم نه وي خو بیاهم فضول خو وي.

**حدیث**: په اُحد کي یو ځوان شهید سو چي پر نس یې د لوږي څخه ډبري ترلي وې، مور یې مخ د خاورو څخه وپاکولو او ویل یې: جنّته مبارک سه، نبي ﷺ وفرمایل ته څه خبر یې کېدای سي، ده داسي بخیلي کړې وي کومه چي د ده په یو کار هم نه وي راغلې یا یې بې ضرورته خبره کړې وي، او دنبي ﷺ د دې ارشاد مطلب دا دی چي (دشهادت سره سره) دفضولو خبرو جواب به ورکوي، او خوش زبانه سړی هغه دی چي د خبري کولو غم یې نه وي او د فضول گويي د پاره یې د حساب ورر

کولو خطره نه وي.

یوه ورځ نبي کریم ﷺ وفرمایل: هغو وګورئ د جنتیانو څخه یو سړی په دروازه را ننه کیږي، خلګو چي وکتل نو عبدالله بن سلام ؓ وو، یوښتنه یې ځیني وکړه چي نبي ﷺ کوم دا الفاظ ستا په باره کي استعمال کړل، نو دا کوم عمل دي چي د هغه په وجه نبي ﷺ داسي وفرمایل؟ دوی ورېل دا څه داسي اوږد او غټ عمل نه دی یو لنډه غوندي خبره ده چي د کوم شئ سره زما تعلق نه وي د هغه لټون نه کووم او د خلګو د بدخواهي خیال هم چیري په زړه کي نه راولم (یعني هیڅکله نه غواړم چي خلګو ته بد ور ورسیږي). نو پوه سه! چي کومه خبره په یوه جمله کي کیدای سي که هغه ته په دوو جملو کي وکړې نو دویمه به فضول وي، یو صحابي فرمایي: چي که یوسړی ما ته یو خبره وکړي او دهغې داسي جواب ما سره موجود وي لکه د تږي د پاره یخې اوبه، خو بیا هم د فضول کېدو د بیري څخه زه جواب نه ور کووم،

حضرت مطرف بن عبد الله رحمه الله فرمایي چي دالله جلال او لوئي ستا په زړه کي دومره پکار ده چي په هره خبره کي ته د هغه نوم نه اخلې، لکه چي حیوان یا پیشي ته وایې چي الله ﷻ دي تا داسي کړي، (یعني حیواناتو او نور ته چي خلګ وایي چي خدای دي ستا بیړه غرقه کړي، خدای دي تباه کړه او نور نو دا دالله ﷻ د نوم بې ادبي ده داسي نه دي ویل پکار).

نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي: تر او تازه دي وي هغه سړي کوم چي زیاتي خبري پرېږدي او زیات مال ورکوي، یعني د تیلي غوړه خلاصه کړي ژبه په غوټه کړي، او فرمایي چي که داسي وای چي فرشتو مُفت (بلا قیمته) نه لیکلی بلکي دانسان څخه یې قیمت اخیستلای لیکلی یې، نو د فضولو خبرو غوندی چي یې لیدلی په لسو کي به یې یوه لیکلي ځکه چي د زیاتو خبرو په لیکلو سره د زیات اُجرت حاصلولو څخه دا غوره ده چي وخت زیات ضایع نسي (یعني د وخت قیمت د اُجرت په نسبت زیات دی).

**دویم آفت**: د باطل او معصیت خبري کول دي، د باطلو څخه مراد دبدعت خبري دي او د معصیت مطلب دا دی چي د خپل فسق او فجور خبري کوي فخر په کوي او نورو ته هم هغه خبري اوروی کومي چي د ده خوښي وي، او کومي چي د فسق او فجور او فساد څخه ډ کي وي، یا د شراب او کباب ذکر د ده پر ژبه وي یا دیو مباحثي او مناظرې ذکر کوي چي په هغه کي د دوو خلګو په مینځ کي د ښکنځلو او فحش کلامی ذکر وي، یاد اسي د تهذیب څخه خلاف او ناسمي قصې او لطیفې کوي چي د هغو په اورېدلو خلګ خاندي بغل پر بغل کیږي، دا ټولي لغوه خبري د اولني آفت په ډول په

گناه کي شامل دي، لېکن د اول آفت سره متعلق خبري خو صرف په درجاتو کي د کمښت باعث دي، او دا دوېم آفت خبري خالص گناه او معصيت دي، او د نبي ﷺ ارشاد دی چي: يو سړی هغه وي چي خبره کوي او په پوره بې باکی سره يې کوي، لېکن دغه خبره دی د دوږخ بېخ ته رسوي او يو هغه سړی دي چي خبره کوي او په پوره بې باکي سره يې کوي او دغه خبره دی سيله جنت ته رسوي.

**دوېم آفت**: په خبره کي اختلاف کول او جنګ، جنجال ته تيارېدل، يعني يو سړی داسي وي چي د بل سړي د هري خبري د ردّ کولو عادي وي، او که بل خبره هم وکړي خو د ده بس يو جواب وي چي نه! داسي نه ده، چي مطلب يې په نورو لفظونو کي دا وي چي: ته بې وقوف او جاهل او ناپوه بلکي درواغجن هم يې او زه چي څه وايم بس صحيح دا ده، چي ذهين او عقلمند خو زه يم او رشتيا ويل زما کار دی او دغسي دی په يوه خبره سره دوو هلاکوونکو صفتوته د تقويت ورکولو ذمه واره کيږي، چي په هغو کي يو تکبّر دي او بل سبعيّت يعني درنده توب، نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي: کوم سړی په خبرو کي خامخا مخالفت ته نه تياريږي او د جنګ‌څخه د خوندي کېدو د پاره درواغ نه وايي د ده د پاره په جنت کي کور جوړيږي، که د زيات احتياط د پاره دحقي خبري ويلو څخه هم صبر وکړي نو د ده د پاره په فردوسِ اعلی کي کور جوړيږي، او ده ته ډېر زيات ثواب ملاويږي چي په محال او باطل باندي د صبر څخه کار اخيستل ډېر گران وي، او فرمايلي يې دي: د خلکو ايمان نسي مکمل کېدای تر څو چي دوی د خلاف او مخالفت څخه لاس وانه اخلي خواه دوی پر حق باندي ولي نه وي، او په دې ضمن کي دا هم ياد ساتل پکار دي چي د اختلاف او مخالفت څخه دده صرف تر مذهبي اُمورو پوري محدوده نه ده بلکي که يو سړی وايي: چي آنار خوږ دی او ته وا يې چي نه! ترښوی دی، يا مثلاً څوک وايي چي فلانکی ځای به د دې ځای څخه د يو ميل پر فاصله وي او ته اصرار (ټينګار) کوې چي نه! دوه ميله خامخا دی نو دا بحث بالکل قابلِ مذمت دی او نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي که ته د چا سره جنګ وکړې نو د دې کفاره اداء کول لازمي دي چي دوه رکعت نفل وکړې.

او په مذهبي اُمورو کي مخالفت کولو ته جَدَلْ وايي او دا هم مذموم دی، لېکن که د نصيحت او مشورې په توګه په تنهايي کي د حقيقت څخه خبر کړای سي نو څه باک نسته لېکن دا هم په دې صورت کي صحيح دي کله چي د بل د خوشحاله کېدو توقع وي کنې خاموشي زياته غوره ده، د نبي ﷺ ارشاد دی چي هر هغه قوم کوم چي ګمراه سو صرف په دې وجه سو چي د جدل مذموم عادت پر دوی غلبه وکړه.

د لقمان وصیت خپل زوی ته داوو چي زویه! د علماؤ سره جلل مه کوه کنې هغوی به ستا دښمنان سي.

اوپوه سه! چي یو شئ د دې څخه زیات د قوّت او پوهی طلب نه دی څومره چي پر محال او باطل په صبر کولو خاموش سې، او دا شئ پخپل ځای د مجاهداتو څخه دی کومو ته چي غټ فضیلت حاصل دی.

**څلورم آفت**: د مال په باب کي جنګ راپورته کول دي خواه د قاضي په عدالت کي وي او که په یو بل د انصاف په ځای کي، او دا هم ډېر لوی آفت دی، د نبي ﷺ ارشاد دی چي یو بې علمه او جاهل سړی چي کله د چا سره تکرار کوي نو تر څو چي هغه د دې جنګ څخه خاموش سوی نه وي الله ﷻ د ده څخه ناراضه وي، د بزرګانو وینا ده چي د مال د پاره په جنګ کي د مبتلو څخه بد تر بل یو شئ نسي کېدای ځکه چي دا په غټه اندازه سره زړه په انتشار او اضطراب کي اچوي، او عیش او سکون بربادوي، او مروّت، تنګ د دین ضائع کوي، او په جګړه کي که نور هیڅ نه وي نو د مخالف فریق سره په بنه خبرو مخ ته راتلل خو ډېر مشکله وي او د بنو خبر د فضیلت څخه محروم کېدل خو څه یو کوچنی بدنصیبي نه ده؟ نو که د جګړې څخه په ډډه کېدل د یو نا کاره مخالف فریق په وجه ناممکن وي، نو پکار دي چي کومه خبره کوي هغه په حق او صداقت مبنی وي او دبل خفه کول هیڅ کله مقصود نه وي او د بدو خبرو او فحش ګویی څخه لازماً لیري وسېدل پکار دي چي دا ټول کارونه د هلاکت د دین سامان دی او بس.

**پنځم آفت**: بدزباني (ژبورتیا) او فحش کلامي ده، نبي ﷺ فرمایلي دي چي پر هغه سړي باندي جنت حرام دی کوم چي فحش خبري کوي، او فرمایي چي ځیني خلک به داسي وي چي دوږخ ته به بیول سي او د خُولو څخه به یې داسي سخت بوی په دوږخ کي خور سي چي پخپله دوږخیان به هم چغي وهي پوښتنه به وکړي چي دا کوم خلک دي دوی ته به وویل سي چي دا هغه بدبختان دي کومو چي به فحش خبري کولې او داسي ځایونو ته به د تلو د پاره مشتاق وو کوم ځای چي به فحش ګویي کېدله، ابراهیم بن میسره ؓ وایي چي فحش خبري کوونکي به د قیامت په ورځ د سپي په شکل راځي، او پوه سه! چي د فحش ګویي شوقي زیاتره هغه خلک دي کوم چي د مباشرت او جماع ډېري ګنده او پلیتي، شرمناکي خبري په ډېره مزه، خوند او شوق سره کوي لکه چي د اهلِ فساد عادت دی، او ښکنځل هغه وي کوم چي د چا خور مور ته د دغو غلیظو خبرو نسبت وکړای سي.

**شپږم آفت:** لعنت کول دي، او پوه سه! چي لعنت کول ډېر د مذمّت او د بدي وړ دي هغه که پر انسان وي او که پر حیوان، د نبي ﷺ ارشاد دی چي مؤمن پر چا لعنت نه کوي، روایت دی چي یو واریو ښځه د نبي ﷺ د سفر په ملګرو کي شامله وه، دې په لاره کي پر یو اوښ باندي لعنت وکړی نبي ﷺ حکم وکړی چي د دې اوښ څخه سامان او نور کښته کړئ د قافلې څخه یې وباسئ ځکه چي دغه لعنتي دی، تر یوې مُدې پوري هغه اوښ داغسی ګرځېدی او څوک ورته نژدې هم نه ورتلل، ابو الدرداء ﷺ وایي چي کوم سړی پر ځمکه یا پر یو شئ لعنت کوي نو هغه شئ په جواب کي وایي چي لعنت دي وي پر هغه چا کوم چي د الله ﷻ په نزد زموږ څخه زیات ګناه ګاره دي.

**روایت:** دی چي یو وار ابو بکر صدّیق ﷺ پر یو شئ لعنت وکړی نو نبي ﷺ وفرمایل ابو بکر ﷺ! ته خو صدّیق یې او تا لعنت وکړی او قسم دي په رب د کعبې چي دا ستا سره ښه نه ښکاري، اودرې واره یې داسي وفرمایل نو حضرت ابو بکر ﷺ توبه وکړه او په کفاره کي یې یو غلام آزاد کړی، او پوه سه! چي پر انسانانو باندي لعنت کول نه دي پکار ما سوا د هغو خلکو څخه چي لائق د مذمّت وي، لېکن هغه به هم داسي وایي چي مثلاً پر ظالمانو دي لعنت وي پر کافرانو، فاسقانو او بدعتیانو، لېکن داسي ویل چي مثلاً پر معتزله وو دي لعنت وي یا پر کرامتیانو او نورو... چي دا دخطرې څخه خالي نه ده او د فساد پوره ته کېدلو خطره ده نو نه دي ویل پکار، ما سوا د هغو څخه چي پر هغو شریعت لعنت کړی وي او د حدیث په روی سره لعنت پر صحیح وي، لیکن په انفرادي توګه به صرف پر هغه سړي لعنت صحیح وي کوم چي تر آخره پوري پر کفر پاته سوی وي او پر دغه حالت مړ وي، مثلاً فرعون، او ابو جهل او نور،

او که څوک دا ووایي چي پر یزید لعنت کول صحیح دي؟ نو موږ به ووایو چي صرف دومره ویل به جائز وي چي د حسین ﷺ پر قاتل دي لعنت وي که هغه د توبه کولو څخه مخکي مړ وي، ځکه چي قتل کول د کفر څخه زیات نه دي او کله چي توبه وکړی نو بیا به لعنت کول پر صحیح نه وي، مثلاً "وحشي" حضرت حمزه ﷺ شهید کړی لېکن بیا مسلمان سو نو لعنت هم د ده څخه لیري سو، ځکه چي بیا خو پر ده لعنت کول پر مسلمان لعنت کول سو، او د یزید په باره کي خو داهم معلومه نه ده چي حضرت حسین ﷺ ده قتل کړی وو، د یوې ډلې وینا ده چي د قتل حکم یزید کړی وو او بله ډله وایي چي حکم یې نه وو کړی لېکن راضي یې په قتل ضرور وو، او دا هیڅ کله جائز نه دي چي صرف د تهمت پر بناء د ګناه نسبت ور ته وکړي، ځکه چي دا بیا جلا خیانت دی او زموږ په

دې خپله زمانه کې شومره بزرګان قتل سول. خو چاته اصل حقیقت معلوم نه دی چې د دوی د قتل حکم ورکوونکي شوک وو. نو بیا شلور سوه کاله وروسته دا حقیقت شنګه معلوم سو. او الله ﷻ خلګ د دې فضول بحث او خطرې شخه مستغني کړي دي. یعني که یو سړی په ټول عمر کې یو واره هم پر ابلیس لعنت ونه کړي نو په قیامت کې به د ده شخه دا پوښتنه نه کیږي چې تا پرا بلیس لعنت ولې نه دی کړی، لیکن که پر یو سړي باندي لعنت وسي نو د دې پوښتنه به خامخا کیږي چې ولې دي کړی وو؟ د بزرګانو شخ دیوه وینا ده د قیامت په ورځ به زما په عملنامه کې دوه شیان راوو شي یا خو به کلمه د لا اله الا الله یا پر چا لعنت! او زه دا خوښووم چې لا اله الا الله پکښې راوو شي.

**اووم آفت**: شعر او شاعري ده او موږ په باب دسماع کې ویلي دي چې دا حرامه نه ده شکه چې اشعار پخپله د نبي ﷺ په مخکې ویل سوي دي، بلکې حسان ؓ ته یې وفرمایل چې د کافرانو په هجوه کې اشعار ووایه! چې د دوی د هجوي جواب وسي، لیکن کوم اشعار چې پر درواغو بناء وي یا د مسلمان په مذمت کې وي یا د چا په مدح کې وي، او درواغ او مبالغه پکښې زیاته وي نو دا جائز نه دي، بیا هم کوم شعر چې د تشبیه په توګه ویل سوی صحي دی شکه چې تشبیه د شاعرانو شانګړی انداز دی کوم چې په ښکاره دواغ ولې نه وي لیکن حرام نه دی، شکه چې د دې شخه مقصود خلګو ته د دې ښکاره معنی ښوول نه وي (خبره ښکاره کول وي) او دغه رنګه اشعار دنبي ﷺ په مخکې ویل سوي دي.

**اتم آفت**: مزاح (ټوکي ټکالي) او نبي ﷺ توله خلګ د مزاح شخه منع کړي دي لیکن کله کله او لږلږ روا دي بلکې د نېک خوئي (ښه اخلاقو) یو جزء دی، لیکن شرط دا دی چې د عادت په توګه یا کسب یې اختیار نه کړي، همدارنګه مزاح سره د مزاح کېدو د حق او صداقت شخه خالي نه دي پکار، شکه چې اول خو په دې کې وخت کافي ضایع کیږي او بیا په دې سره خندا ډیره راشي، او د زیات خندا کونکي زړه تور سي او د داسي سړي وقار او دبدبه هم کمیږي، او په دې صورت کې بالکل ممکنه ده چې یو وحشت غوندي پیدا سي کوم چې آخر د خپل مینځوي تکلیف او خرابی شکل اختیار کړي.

نبي ﷺ فرمایي چې زه مزاح ضرور کوم لیکن دحق د وینا شخه یې نه اوړم. فرمایي د ځینو خلګو خواهش وي چې خلګ د ده په مزاحیه خبرو باندي وخاندي، لیکن په دې سره د خپل مقام شخه کمیږي، بلکې کوم سړی چې زیات خاندي دی لائق د مذمت دی شکه چې خندا د مُسکی کېدو

شخه زیاته نه ده پکار، دارنګه فرمایي څه چي ما ته معلوم دي که تاسو ته معلوم سي نو تاسو به ډېر لږ خاندئ بلکي د خندا پر ځای به ژړا کوئ. یو بزرګ د یل سړي څخه پوښتنه وکړه چي آیا تا ته علم نسته چي پر دوږخ بانلدي به لازماً تېرېدل وي ځکه چي دالله ﷻ ارشاد دی: وَإِنْ مِنْكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَقْضِيًّا (مریم:۷۱) (په تاسو کي به هر یو پر دوږخ تیرېږي دا خبره د الله ﷻ په نزد مقرره سوې ده) نو هغه سړي ورېل ها! ماته د ې علم دی، بزرګ ورېل، او دا معلومه ده چي د دې څخه به وتل وي؟ هغه ورېل دا خو راته نه ده معلومه، ورېی ورېل بیا خندا پر څه شئ ده او پر کومه خبره ده؟ عطاء سلمی رحمه الله تر څلوېښتو کالو پوري مسکی سوی هم نه دی، وهب ابن الورد رحمه الله وایي چي ما ځیني درویشان ولیدل چي صرف د کوچني اختر پر موقع به د دوی شونډي د خندا سره آشنا کېدې.

د ابن عباس رضي الله عنه وینا ده چي کوم سړی ګناه وکړي او بیا خندا هم وکړي نو د ده د ځای صرف او صرف دوږخ دی چي هلته به دی دومره وژړول سي.

مُحَمّد بن واسع رحمه الله یو وار ورېل، دا به څومره د تعجب خبره وي چي یو سړی جنت ته ځي او ژاړي، :خلکو ورېل ها! دا خو به ډېره د تعجب خبره وي! ورېی فرمایل لیکن یوه خبره د دې څخه زیاته د تعجب خبره ده.او هغه دا چي یو سړی په دنیا کي خاندي او د دې حقیقت څخه بې خبره وي چي د ده مقام په جنت کي دی او که په دوږخ کي؟

او په حدیث شریف کي دي چي یو اعرابي پر اوښ سپور وو یو ځای تلی چي په مخکي یې نبي ﷺ ولیدی، نو اراده یې وکړه چي د اوښ څخه را شوه سي او د نبي ﷺ څخه پوښتنه وکړي، ده د اوښ کښېنولو و ډېر کوشش وکړی خو اوښ د مخ پر پښو د کښېنستلو پر ځای د شاپر پښو کښېنستی او اصحابو دا منظره لیدله خندل یې تر دې چي اوښ دی د خپلي شا څه لیري وغورځوی او دی مړ سو، اصحابو رضي الله عنهم د واقعه د نبي ﷺ په مخکي پیش کړه دوی وفرمایل چي ها! هغه مړ سو خو په وینو یې ستاسو خولې سرې دي، یعني تاسو پوري خندل.حضرت عمر ابن عبدالعزیز رحمه الله فرمایي چي په یوېل پوري پسخند (ملنډي) وهل مسخرې کول مه کوئ چي په دې خنداګانو سره په زړه کي خروالي راځي،او د بدو کارنوو بنیادونه په زړونو کي پیدا کیږي، کله چي د یو بل سره کښېنئ نو د خندا او مسخرو پر ځای د قرآن شریف په باره کي خبري کوئ لو که دا نه سي کېدای نو د نورو خلګو ښې او غوره خبري کوئ، حضرت عمر رضي الله عنه فرمایي چي کوم سړی پر چا مسخري کوي هغه د ده په

سترګو کي خوار او ذلیله سي.

نبي ﷺ په ټول عمر کي د دوو درېو وارو څخه زیات مزاح نه دی کړی: یوه خو هغه موقع وه کله چي نبي ﷺ یوې سپېسرې ته وفرمایل: بلې (سپینسرې) ښځه به جنت ته نه ځي، نو دا په ژړا سوه، نو وېې فرمایل اې بُډۍ! زړه مه نااُمیده کوه چي اول به ته ځوانه سې بیا به جنت ته داخله سې، او یو واري د دې اتفاق داسي وسو چي یوې ښځي نبي ﷺ ته وویل زما خاوند تاسو غواړي (بولي) دوی وفرمایل ستا خاوند هغه دی کوم چي په سترګه کي یې سپینوالی دي؟ هغې وویل زما د خاوند سترګه خو سپینه نه ده، نو وېې فرمایل چي هغه به څنګه انسان وي چي په سترګه کي یې سپینوالی نه وي (یعني عام سپینوالی کوم چي په هره سترګه کي وي). یوې ښځي نبي ﷺ ته وویل ما پر اوښ سپره کړه نو وېې فرمایل چي زه به تا داوښ پر بچي سپره کړم، هغې وویل زه د اوښ پر بچي نه سپرېږم، ما به وغورځوي، وېې فرمایل هغه به څنګه اوښ وي چي د اوښ بچی نه وي؟

د ابو طلحه رضي الله عنه یو بچي چي نوم یې عُمَیر وو، د ده سره د مرغی یو بچی وو لوبې به یې په کولې، اتفاقاً هغه مړ سو نو ابوعُمیر په ژړاسو نبي ﷺ چي ولیدی نو وېې فرمایل اې ابو عمیر! نُغیر څه سو (نغیر د مرغی چیچی ته وایي نو د عُمیر او نُغیر قافیه یوه ده) نو دغه رنګه کوچنی کوچنی مسخرې (مزاحیه) جملې به دوی د ښځو او بچیانو سره کولې، چي د دوی زړه په خوشحاله کیږي، او د دوی ﷺ څخه خوشحاله وي او د دوی د هیبت څخه دهغو په زړه کي وحشت او نفرت پیدا نسي او د خپلو پاکو بیبیانو سره به یې هم کله کله دغه رنګه کلمې فرمایلې چي د دوی رضی الله عنهن زړه خوشحاله سي.

ضحاک بن سفیان رضي الله عنه ډېر بد رنګه سړی وو یو وار د نبي ﷺ په خدمت کي حاضر سو او وېې ویل یا رسول الله! زما دوې ښځي دي او دومره ښایسته دي چي د حضرت عائشي څخه زیاتي دي، که نبي ﷺ غواړي نو زه به طلاق ورکړم او تاسو به ور سره نکاح وکړی هسي دا خبره یې د مسخرو په توګه کړې وه ځکه چي حضرت عائشه رضي الله عنها هم اورېدل، نو هغې رضي الله عنها د دوی څخه پوښتنه وکړه چي زه نو دا خو را ته ووایه چي هغه ښځي ستا څخه زیاتي ښایسته دي څه؟ هغه وویل نه! زه د هغو څخه زیات ښایسته یم، څنګه چي دی بې اندازې بدرنګه وو نو په دې وجه نبي ﷺ د عائشي رضي الله عنها پر دې سوال او جواب بې اختیاره وخندل. داواقعه د هغه وخت ده چي د ستر "پردې" آیاتونه لانه وو نازل سوي.

حضرت صهیب ﷺ یو ورځ خرما خوړل نو نبي وفرمایل څه په خوند سره یې خوري او حال دا دی چي سترګه دي خوږه ده، عرض یې وکړی یا رسول الله ﷺ په بله جامه یې خورم. (او دوی وخندل).

دخوات بن جبیر ﷺ د ښځو سره ښه شوق او دلچسپي وه یوه ورځ دمکې مکرمې په لاره کي دښځو په مینځ کي ولاړ وو چي نبي ﷺ تشریف راوړی هغه چي دوی ﷺ ولیدل نو ډېر شرمنده سو، دوی ﷺ وفرمایل دا څه مشغله ده؟ او دلته څه کوې؟ عرض یې وکړي نبي ﷺ! زما اوښ ډیره سرکښي کوي زه په دې ښځو د هغه د پاره یو رسۍ جوړوم، نبي ﷺ ولاړی او بله ورځ یې بیا خوات ولیدی نو ویې فرمایل څنګه جبیر! د اوښ سرکښي دي څنګه سوه؟ جبیر وایي زه ډېر نادم سوم او د دې څخه وروسته چي به نبي ﷺ کله زه لیدم نو دا سوال به یې کولو، یو ورځ دوی ﷺ پر خر سپور وو، دواړي پښي یې یو طرف ته زړولي وې را روان وو چي زه یې ولیدم ویې فرمایل اوهو ته یې جناب جبیر! وایه کنه ستا د سرکښه اوښ څه حال دی؟ ماعرض وکړی په هغه خدای قسم دي چاچي تاسو ته نبوت در کړی دي د کله څخه چي په اسلام مشرف سوی یم هغه د سرکشی څخه بالکل واپس سوی دي ویې فرمایل: اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُمَّ اهْدِ اَبَا عَبْدِ الله.

دا د مزاح او ټوقو (ټوکو ټکالو) څو واقعات دي کوم چي د دوی ﷺ د ټول ژوند په باره کي بیان سوي دي او په دې کي د باطل یا مبالغې شک لا هم نسته او دا هغه مزاح دي چي څوک په خفه کېدای هم نه سي، اونه په دې سره د صاحب مزاح وقار او هیبت ته د نقصان رسېدلو هیڅ اړخ ښکاره کیږي، او دا هغه مزاح دي که کله کله وي نو سنت دي، لېکن عادت ځیني جوړول نه دي پکار.

**نهم آفت:** مسخره دي، یعني د چا پر خبرو خندل دي او د ده د کارونو او حرکتونو نقل کول چي نور خلګ پوري وخاندي، او که دا د چا د ناراضګی باعث وي نو حرام دي، د الله ﷻ ارشاد دی: لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِنْ قَوْمٍ عَسَىٰ أَنْ يَكُونُوا خَيْرًا مِنْهُمْ [الحجرات:۱۱] (د چا د سپکوالي په وجه ور پوري مسخرې مه کوئ کېداسي چي هغه ستا سو څخه غوره وي،) نبي ﷺ فرمایي چي کوم سړی که د بل غیبت په هغه ګناه کي کوي د کوم څخه چي هغه توبه کښلې وي نو دی به پخپله په دغه عیب کي مبتلا مړ کیږي، دارنګه فرمایي چي د چا پر داسي فعل پوري خندا نه ده پکار په کوم کي چي دی پخپله هم مبتلا کېدای سي (یعني د ده څخه هم کیږي لکه باد وتل او نور) او فرمایي چي کوم خلګ پر نورو باندي په مسخرو کولو سره عادیان وي او پر هره خبره په بل پوري خاندي د قیامت په ورځ (به دا ډول په ده پوري خندا کوي چي) د جنت یوه دروازه به خلاصه سي ده ته به وویل سي چي راځه!

په دې د روازه داخل سه او چې څنګه دی داخليږي نو منع به کړای سي، اوبله دروازه به خلاصه کړای سي چې راسه! په دې داخل سه! چې دی هغې ته ورسې نو د هغې څخه به هم منع کړای سي او په دې رنځ او تکليف او نا اُميدی کي به دی نتوتلو ته کړيږي ليکن د داخليدو اجازت به ورته نه ملاوېږي بيا به د ده ملوبوسېږي دې اندازې ته ورسيږي چې په وار وار بللو به هم دی د هغې وطرف ته نه مخ کوي او پوه به سي چې دی هسې نا اُميد او بې عزته کيږي، او په داسي بللو صرف د ده سپکوالي او رسوا کول مقصود دي (او هغه مسخرې به ورته يادي سي کومي چې به ده د نورو سره کولې) البته دا ده چې د مسخرې په خبره پوري خندل يا په داسي سړي پوري خندل کوم چې په دې خندا سره خفه کيږي نه حرام نه دي، بلکي دا په مزاح کي شامليږي او حرام به هلته وي چې متعلقه سړی يې بد ګڼي او خفه کيږي.

**لسم آفت**: هغه د دروغو وعده ده، د نبي کريم ﷺ ارشاد دی چې درې خبري داسي دي چې يوه په يو چا کي وليدل سوه نو دغه منافق دی هغه که لمونځ کوونکي او روژه نيونکي ولي نه وي: (١) چې خبره کوي نو دروغ وايي (٢) چې وعده کوي نو نه يې پوره کوي (٣) چې امانت ور سره کښېږدي نو خيانت پکښي کوي، او فرمايي وعده يو ډول قرض وي چې مخالفت يې هيڅ کله نه دي کول پکار.

الله ﷻ په دې باره کي د حضرت اسماعيل ﷺ تعريف کوي فرمايي: انه كان صادِق الوَعْدِ [مريم] (بې شکه هغه د وعدې ډېر ربښتونی وو) روايت دی چې حضرت اسماعيل ﷺ د يو سړي سره وعده کړه وه چې پر فلانکی مقام به ملاقات سره کوو، او بيا يې پوره شل ورځې پرهغه ځای د هغه سړي انتظار کوی چې وعده خلافي ونه سي، دغه ډول نبي ﷺ د يو سړي څخه بيعت واخيستی او هغه ووېل چې فلانی ځای ته تشريف راوړئ زه به هم هلته راسم، لېکن د هغه سړي وعده هېره سوه او نبي ﷺ تر درې ورځو پوري پر هغه ځای د هغه انتظار کوی، په دريمه ورځ چې کله هغه سړی هلته راغلی نو نبي ﷺ صرف دومره ووېل چې فلانيه زه خو د درې ورځو څخه دلته ستا په انتظار کي يم.

دغه ډول د يو سړي سره نبي ﷺ وعده وکړه چې آينده کله ته زما سره په کوم ځای کي ملاو سوې نو چې څه غواړې دربه يې کړم، نو کله چې نبي ﷺ د خيبر د غنيمت مال تقسيموی هغه سړی راغلی او نبي ﷺ ته يې د هغوی وعده وریاده کړه، ويې فرمايل وايه! څه غواړې؟ ده ويل اتيا بزې را کړئ، نبي ﷺ ورته بزې (وزې) ورکړې، ويې فرمايل چې تا خو هيڅ هم ونه غوښتل بلکي د هغې ښځې څخه دې هم کم وغوښتل کومي چې دموسی ﷺ څخه د يوې داسي وعدې په عوض کي ډېر کم

غوښتلي وو، او بیا یې هغه واقعه داسې بیان وفرمایله چې حضرت موسی علیه السلام یوې ښځې ته وویلي وو چې که تا ما ته د حضرت یوسف علیه السلام قبر وښیې، نو څه چې غواړې دربه یې کړم کله چې ورته هغې وښووی نو دوی وویل چې غواړه! څه غواړې؟ هغې وویل زه دا غواړم چې زما ځواني ماته واپس ملاو سي او په جنت کي زما داخله ستا سره وي، نو هغه سړی په عربو کي ضرب المثل (متل) سو یعني خلګو به (د نرم مزاج سړي په باره کي) ویل چې ووره! د فلانی به څه وایې هغه دا تیا بزو والا ښځه هم نرم او آساني کوونکی دي، او دا یاد ساته! چې تر څو پوري کېدای سي د چا سره حتمًا وعده مه کوه چې دنبي ﷺ ارشاد دی چې کېدای سي دا ډول وعده خو به زه پوره کړم لیکن ستا د پاره به ګرانه وي، بیا هم چې وکړې نو تر څو پوري چې کېدای سي مخالفت یې هیڅ کله مه کوه، ما سوا د دې ښځه چې یو خاص مجبوري په لاره کي حائله سي، او کله چې چا ته پر یو ځای او نورو د ملاقات کولو د پاره ووایې نو په ځانګړې توګه یې احتیاط لازم دی، ځکه چې د علماؤ وینا ده چې که د لمانځه وخت هم سي خو دې مقام ته رسېدل ضروري دي.

**یوولسم آفت**: د درواغو خبري جوړول او په درواغه قسمونه پر خوړل هغه آفت دی چې شمار یې په کبیره ګناه کي کېږي نبي ﷺ فرمایي چې درواغ هم په اصل کي دمنافقت یوه حصه ده، او فرمایي چې بنده چې هر درواغ وایي نو هاخوا د ده نوم د دروغجنو په ډله کي لیکل کېږي، او فرمایي درواغ د رزق دښمن دی، او فرمایي تاجران فاجران او ناکاره وي، خلګو پوښتنه وکړه یا رسول الله ﷺ! هغه ځنګه؟ ولي بیعه حرامه ده؟ وېې فرمایل حرامه نه ده خو دا خلګ په درواغو قسمونه خوري او ګناهګاره کېږي، او پر هره خبر د غلط بیان ښځه کار اخلي.

**روایت**: ما یو عجیبه شئ ولیدی یعني یوې فرشتې ما ته د پورته کېدلو وویل زه پورته سوم مخامخ مې دوه سړي ولیدل چې یو ناست او بل ولاړ دي ولاړ د ناست په خوله کي د اوسپني یو کړه وسله ور اچوي د ده ستونی راکاږي تر دې چې دغه وسله د ده د اوښکو سره پیوست سي (وموښلي)، او بیا ور ته دغه بل طرف ته ستوني راکاږي، او بیا خپل ځای ته واپس سي نو دغه سړی بار بار ده ته دا تکلیف رسوي، آخر ما پوښتنه وکړه چې دا څه معامله ده؟ نو ما ته وویل سوه چې دا سړی د درواغو عادي وو او دا ور ته د هغه عذاب ورکول کېږي، او دا سلسله به دقبر ښځه واخله تر قیامته پوري جاري وي.

عبد الله بن جراد رضي الله عنه وایي چې ما یو وار عرض وکړی یا رسول الله ﷺ! آیا مؤمن زنا کولای سي، وېې

فرمایل ها! د دې امکان کېدای سي، بیا ما پوښتنه وکړه آیا مؤمن درواغ ویلای سي ؟ ویې فرمایل هیڅ کله نه او دا آیت یې تلاوت وفرمایه! انما یفتري الکذب الذین لایؤمنون [النحل] (نو درواغ جوړوونکي هغه خلک دي کوم چې د الله ﷻ پر آیتونو ایمان نه لري) یعني درواغجن هغه وي کوم چې بې ایمانه وي، عبد الله بن عامر ﷺ وایي چې یو کوچنی بچی د بازۍ کولو د پاره تلی، ماورته وویل راسه! چې تا ته څه در کړم، نبي ﷺ دغه وخت زموږ په کور کي تشریف فرماوو زما څخه یې پوښتنه وکړه څه ورکوې؟ ماوویل خُرماور کووم، ویې فرمایل که دې نه ور کولای، نو یو درواغ به ستا په عملنامه کي لیکل سوي وای.

او فرمایي چې کوم سړی درواغ وایي د ده د درواغو د بدبویي څخه په میلومیلو فرشتې تښتي، او ویل سوي دي چې که د خبري پر وخت پرنچی (پرچی، انتوسی) راسي نو دا دخبري کوونکي په رښتونوالی دلالت کوي ځکه د نبي ﷺ ارشاد دی چې پرنچی د فرشتې دطرف څخه او اربمی د شیطان د طرف څخه وي که دغه خبره درواغ وي نو نه به فرشته حاضره وای اونه به پرنجی (پرچی، انتوسی) راغلی وی، او فرمایي چې کوم سړی د بل درواغ بیانوي نو د ده دا خبره پخپل ځای په درواغوا کي داخله ده، او فرمایي کوم سی چې درواغ ووایي او د چا مال واخلي د قیامت په ورځ به دا الله ﷻ د قهر او غضب سره مخامخ سي،

میمون بن ابی شبیب ﷺ وایي چې ماخط ولیکی او په لیکلو لیکلو کي داسي کلمه رایاده سوه چې که دغه مي هلته لیکلې وی نو خط به ډیر په ښایسته سوی وای، لیکن هغه درواغ وه، نو چې کله ما اراده وکړه چې نه یې لیکم نو دا آوز زما په غوږونو کي وسو : يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ [ابراهیم :۲۷] (الله ﷻ مؤمنان په پخې (ثابتې) خبري (یعني د کلمهٔ طیبه په برکت) سره په دنیا او آخرت کي مضبوط ساتي) حضرت ابن سماک رحمه الله وایي چې ماته به د درواغو څخه د ځان خوندي کېدلو خاص اجر ملاوېږي ځکه چې زما درواغ نه ویل د دغې سخت نفرت په وجه سره دي کوم چې طبعًا زما په زړه کي د دې خلاف پیدا کېږي.

## فصل : درواغ ولي حرام سوي دي

پوه سه! چې درواغ ویل ځکه حرام دي چې پر زړه اثر کوي او د زړه اصلي شکل مسخ کوي او دی بالکل تنګ او تور جوړوي که دیو مصلحت په خاطر د درواغو څخه ناچاره وو خو بیا هم په زړه سره دوی بد ګڼل پکار دي چې دغسي به دا حرام نه وي، ځکه چې زړه یې بد خوګښي نو بیا به اثر هم نه

قبلوي، اوخرابيږي به نه، دغه ډول ښکي او فلاح په خاطر که درواغ وويل سي نو په دې سره د زړه د تور ښدلو بيره به نه وي او بې شکه که يو مسلمان د يو ظالم د زور او ظلم څخه بيرېږي او تښتي نو په داسي صورت کي رشتيانه ويل غوره دي، او په رشتيا سره (دې ظالم ته) د دې ښوولو ضرورت نسته چي ستا څخه تښتېدلي دی په فلاني ځای کي دی،

نبي ﷺ په درې صورتونو کي د درواغو ويلو اجازت ورکړی دي، يو د جنګ په صورت کي چي دښمن ته د خپل قصد او ارادې په باره کي صحيح خبر ورنه کړای سي، دويم هغه وخت کله چي يو مسلمان د دوو مسلمانانو په مينځ کي صلح کوي نو پکار دي چي يوه ته د بل د طرف څخه خومره چي کېدای سي ښې خبري وکړي که څه هم هغه نه وي کړي، دريم په دې صورت کي چي د چا دوې ښځې وي او دی هري يوې ته دا وايي چي زما زياته مينه ستا سره ده.

نو پوه سه! چي که يو ظالم د چا د مال په باره کي پوښتنه وکړي نو ده ته ښوول نه دي پکار، او دغه ډول که هغه د چا د راز معلومولو کوشش وکړي نو هم نه دي ښوول پکار، او که هغه د چا د عيب او ګناه په لټون کي پوښتنه وکړي نو جواب نه دي ورکول پکار، ځکه چي د شريعت دا حکم دی چي د نورو پر بديو پرده اچول پکار دي، او که ښځه تر هغه وخته پوري د يو خبري منلو ته تياره نه وي تر دې چي د دې سره د دې د يو فرمائش پوره کولو وعده ونه کړل سي، نو خاوند ته جائز دي چي د دې سره وعده وکړي که څه هم دغه د ده په وس کي نه وي، او دغه ډول په نورو حالاتونو کي درواغ ويل حرام نه دي، او حقيقت خو دا دی چي درواغ ويل که څه هم نه دي پکار، لېکن که داسي صورت پېښ سي چي هلته په رشتيا ويلو سره داسي خبره ښکاره کيږي کومه چي په خپل ځای دممنوعاتو څخه وي نو بيا اندازه دي وکړي چي آيا د دې کار ښکاره کېدل غوره دي او که درواغ ويل، نو بيا که د دغه شئ ښکاره کېدل ښه نه وو نو په درواغو کي څه باک نسته، مثلاً د ښځي خاوند په مينځ کي جنګ، دمال ضائع کېدل، يا د دووتنو په مينځ کي شخړه يا د يوچا څه خطرناک راز ښکاره کېدلو يا دګناه کولو د راز په ښکاره کېدلو باندي د ذلت او رسوايي اونورو بيره وه نو دغه وخت درواغ ويل مباح دي چي د دې کارونو فساد د درواغو ويلو د فساد څخه ډېر زيات خطرناک ثابتېدای سي،او دا عينِ داسي معامله ده لکه د ځان خوندي کولو د پاره مردار شئ هم حلاليږي ځکه چي شريعت په روی سره د روح حفاظت کول د مرداري خوړو په نسبت زيات اهم دی، لېکن که معامله د زيات ناقص ډول نه وي نو درواغ ويل هيڅ کله روا نه دي يعني کله چي خبره د دې څخه ماسوا نوره هيڅ نه وي چي په درواغو ويلو سره په مال او مرتبه کي اضافه کيږي يا د ځان ساتني موقع په لاس ورځي نو درواغ ويل مطلق حرام دي.

**فصل**: او بیا په دې خبره باندې هم پوه سه! چې بزرګانو به کله هم د درواغو ضرورت محسوس کړی، نو همیشه به یې د یوې حیلې یا بهانې په ډول صورت جوړ کړی او خبره به یې په یو داسې ډول دوو معناوو سره وکړه چې اورېدونکي به دغه بالکل رښتیا ګڼله حال دا دی چې د وینونکي مقصد به د دې څخه یو بل څه وو او دې ته عارض وېل سوي دي، لکه د مثال په توګه مطرف رحمه الله یو وار د یو امیر خواته ولاړ نو هغه پوښتنه وکړه چې ته ډېر کم ولې دلته راځې! نو ده ووېل چې کله به هم تا ته راتلم نو د ځمکې څخه به مې ډډه (بغل) نه سوه پورته کېدای ماسوا د دې څخه چې الله جل جلاله به قوت را کړی، نو امیر دا وګڼله چې دی به ناجوړه وو حال دا دی چې دی ناجوړه نه وو لېکن کومه خبره چې یې وکړه دغه رښتیا هم وه.

په شعبي رحمه الله پسې چې به کله څوک د بلنې د پاره راغلی نو ده به مینځې ته ووېل چې ورسه په دراوزه کې یوه دائره جوړه کړه ګوته پر کښېږده او ورته ووایه چې دلته نسته. یا ورته ووایه چې په مسجد کې یې وګوره. او مسجد د ده په کور کې دننه هم وو. حضرت معاذ رضی الله عنه چې کله د عامل د عهدې(وظیفې) څخه لیرې (فارغه) سو کورته چې واپس راغلی نو ښځې ځینې پوښتنه وکړه چې دومره ورځې ته د حضرت عمر رضی الله عنه د طرف څخه عامل وې نو زما د پاره دې څه راوړل؟ دوی ورته ووېلو زما سره یو محافظ(نګران) وو په دې وجه مې څه رانه وړای سو، د نګران څخه د دوی اصل مقصد الله جل جلاله ذات وو لېکن د ده بي بي داوګڼله چې شاید حضرت عمر رضی الله عنه به د ده سره یو څوک د مال حفاظت کوونکي لیږلی وي (او مال به د هغه سره وو) څنګه چې دا د حضرت عمر رضی الله عنه خوا ته ولاړه او سخته ګیله یې وکړه چې یا امیر المؤمنین! حضرت معاذ رضی الله عنه ته خو نبي صلی الله علیه وسلم او حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه همېشه امین ویلی دی او امین یې جوړ کړی دی بیا تاسو د ده سره د حفاظت (نګراني) کوونکي د لېږلو څه ضرورت محسوس کړی؟ فاروق اعظم رضی الله عنه حضرت معاذ طلب کړی او ټوله قصه یې معلومه کړه، حضرت معاذ چې کله بیان وکړی نو حضرت عمر رضی الله عنه وخندل او یو شئ یې ورته ورکړی چې دا خپلې بي بي ته یووسه! لېکن پوه سه! چې دا شئ هم تر هغه وخته پورې جائز دی تر څو چې څه خاص ضرورت د دې سره تړلی وي، کنې بلا ضرورته څوک په مغالطه(غلطۍ) کې اچول جائز نه دي، که څه هم الفاظ بالکل سیده ساده او صحیح ولې نه وي.

**دوولسم آفت**: غیبت دی او دې ته هم پر عامو ژبو غلبه حاصله ده او یو سړی الا ما شاء الله دد نې

شخه خالي په نظر نه راځي حال دا دی چې دا هغه عظیم وبال دی چې مثال يې الله ﷻ په قرآن کې د ورور د غوښو په خوړلو سره ورکړی دی، نبي ﷺ فرمایلي دي: دغیبت شخه ځان ساتئ چې د دې گناه د زنا شخه هم زیاته ده ځکه چې دزنا کار توبه قبلیږي لیکن دغیبت کوونکي ده نه قبلیږي، او د دې معافي صرف په یوه صورت کې کیدای سي چې پخپله يې هغه سړی معاف کړي د چا چې يې غیبت کړی وي، او فرمایي د معراج په شپه زه پر یو داسي ډله راغلم چې پخپلو نوکانويې د خپلو مخونو غوښې راشکولې، ما پوښتنه وکړه چې دا څوک دي؟ نو راته ويې ویل چې دا غیبت کوونکي دي.

حضرت سلیمان بن جابر رضی الله عنه روایت کوي چې یو ولر ما عرض وکړی یا رسول لله ﷺ! ما ته څه نصیحت وفرمایه چې ما ته په کار راسي، ويې فرمایل د خیر خبره هیڅکله سپکه مه گڼه هغه که څومره معمولي ولي نه وي تر دې چې که د خپلي کوزې شخه چا ته په پیاله کې اوبه ورکوې یا دغه پیاله دبل چا په لاس کې ورکوې، او د مسلمان ورو سره په ورین تندي ملاوېږه، اوکله چې هغه ستا شخه ولاړسي نو د شا د خوا غیبت مه پسې کوه،

الله ﷻ موسی علیه السلام ته دوحي په ذریعه خبر ورکړی چې کوم سړی د غیبت شخه توبه وکړي مړ سي دی به د ټولو شخه وروسته جنت ته ځي او که د توبې شخه بغیر مړ سو نو د ټولو شخه اوّل به دوږخ ته ځي.

حضرت جابر رضی الله عنه وایي چې یو وار زه د نبي ﷺ سره پر سفر ووم په لاره کې دوه قبرونه راغلل ويې فرمایل دا دواړه په عذاب کې دي یو به غیبت کولو او بل به دمتیازو (بولو) د څاڅکو شخه ځان نه ساتلو، دا يې وفرمایل او شنه لښته (ښاخ) يې د درختي شخه پرېکړی دوه ځایه يې کړی او هره ټکره يې پر دواړو قبرو ودرول او ويې فرمایل: چې تر څو پوري دا لښتي شنې وي پر دوی به عذاب کم وي، ځرنگه چې یو سړي د زنا اقرار وکړی نو نبي ﷺ د هغه د سنگسارولو حکم وکړی، نو یوه صحابي و یو بل ته وویل: دی داسي کښېنوئ لکه سپی چې کښېنول کیږي، بیا نبي ﷺ د یوې مرداري پر خوا تېر سو ويې فرمایل د دې مرداري غوښې وخورئ هغو وویل مرداره ځنگه وخورو، ويې فرمایل هغه چې اوس د ورور غوښه موخوړله، هغه خو د دې شخه لږ گنده (پلیته) نه ده، او نبي ﷺ دغیبت کوونکي سره غیبت اورېدونکي هم برابر کړی دي، او فرمایي چې دکوونکي سره اورېدونکي هم برابر په گناه کې شریک دی، صحابه کرام به همیشه د یو بل سره په ورین تندي ملاوېدل، او چیري به يې د یو بل غیبت نه کولو او د دوی په نزد دا د افضل ترینو عبادتونو شخه گویا یو عبادت وو،

او د دې خلاف کول د دوی په نزد په منافقت کې شمار وو، علي ابن حسین یو سړی پر غیبت کولو ولیدی نو ورته یې ووېل چپ سه! چې دا د دوږخ د سپیانو خوراک دی.

**فصل (د غیبت معنی)**: پوه سه! چې دغیبت مطلب دا دی چې د یو سړي په باره کې د هغه په غیر حاضری(نشتون) کې داسې خبره وکړل سي چې که هغه موجوده وای نو بده به یې ګڼلای، خواه دغه خبره رشتیاولې نه وي، او که دغه خبره درواغ وي نو بیا به ورته بهتان او تهمت وایي. او کومه خبره چې دیوچا دیو څه نقص یا عیب طرف ته اشاره کوي، هغه په غیبت کې شامله ده که څه هم د دغه تعلق د ده د حسب نسب، جامو، لباس، مال څاروېانو یا کور یا کردار او ګفتار سره وي مثلاً د یو چا د بدن په باره کې ووېل سي چې هغه څومره جګ چنار دی، څومره تور دی، څومره ژړ رنګی دی، سترګې یې د پیشي په ډول دي، هغه کوڼ دی او نور، یا د نسب په باره کې وایي: هغه غلام زاده دی، هغه نائي (حمامي) دي، هغه جلاد دی او نور، یا داخلاقو په باره کې یې وایي: بدخویه دي، مغروره متکبر دی، ژبور دی، بزدله بې غیرته او بېکاره دی او نور، یا د کاروو په باره کې یې ووایي: چې هغه بې دینه، بې لمانځه دی، رکوع او سجده هم پوره نه کوي، قرآن نسي ویلای، هغه خیرنو جامو والا دی، هغه زکوٰة هم نه ور کوي، هغه حرام خوره دي، هغه ګېډور دی، هغه خوبجن دی، هغه د نلستي په چم هم نه پوهیږي، هغه خپله مرتبه نه پېژني او نور، یا د لباس جامو په باره کې یې ووایي هغه د ارتو(پراخو) لستونو شوق کوي، د هغه لمن اوږده ده او نور، غرض د نبي ﷺ په نزد هر هغه خبره په غیبت کې داخله ده چې هغه سړی یې واوري نو بده یې وګڼي که څه هم رښتیا ولې نه وي.

**فصل: د غیبت صرف تر ژبې پوري خانګړې نه دی**: او پوه سه! چې د غیبت تعلق صرف د ژبې سره نه دی بلکې دا په سترګو، دلاسو په اشاره او په لیکلو سره هم کېدای سي، او په هر صورت کې حرام دی، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چې ما کومې ښځې ته چیته (لنډی) ویلي وو نو په اصل کې په اشاره سره مې ویلي وو او نبي ﷺ ورته غیبت ووېل، نو د یو سړي د ذکر په وخت ګوډ ګوډ تلل، سترګه کږول خبري یې کول (چې کوږ دی) دا هر څه په غیبت کې شامل دی، ها! که د چا نوم په خاصه توګه وانه اخیستل سي او دغه رنګه د عام کیفیت د اظهار به توګه ووېل سي چې چا داسې کړي وي، نو دا به غیبت نه وي، لېکن که اورېدونکي په اشاره باندي پوه سي چې دفلانکي خبري کوي نو دا به هم حرام وي، ځکه چې مقصود خو دا دی چې د چا ذکر په داسې انداز سره ونسي چې خلګ د هغه د ذات څخه خبر سي اوس دا چې په هر ډول وي غیبت دی، بعضې خاص تعلیم یافته او

تقوی داره خلک په غیبت کې مبتلي او ګڼي چې دا غیبت نه دی، مثلاً د چا ذکر د ده په مخکې وسي نو وایي د الله ﷻ په لکو لکو شکر دی چې موږ د ده د مجلس شخه خونديي يو. اوس د دې شخه مقصود دا ښکاره کول دي چې د ده صحبت (مجلس) بد دی. یا پخپله د چا ذکر کوي نو په دې انداز چې هغه خو ډیر ښه سړی دی لیکن په دنیاداری کې زموږ په ډول مبتلی دی. ګورو چې د دنیا د دې آفت او مال د مصیبت شخه به کله آزادیږي، ګویا داسې یې خپل رسمي ډول او د بل یې باقاعده مذمت وکړی، او که دا انداز اختیاروي چې شوک دبل په غیبت کې ووینې نو بې اختیاره ووایي الله الله! څومره عجیبه خبره ده، او مقصد یې دا وي چې غیبت کونکی خوشحاله سي او چې چانه وي او رېدلې هغه یې واوري، او کله وایي: چې په دې اوریدلو زه ډیر خفه سوم، چې پر فلانکي سړي فلانی واقعه تېره سو الله ﷻ دې دی معاف کړي، او په دې یې مطلب دا وي چې نور خلک په خبر سي کله چې شه خبره و اوري وایي: الله ﷻ دې موږ د دغه شخه وساتي او زموږ توبه دې قبوله کړي او غرض یې دا وي چې د بل ګناه نورو ته معلومه سي، دا ټولي خبري په غیبت کې شاملي دي او منافقت هم دی ځکه د خپلې پرهېزګاری ښوول منافقت دی.

**روایت:** یوه ورځ حضرت ابو بکر رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه یو ځای روان وو، نو په دوی کې یوه وویل چې فلانکی ډیر خوب کوي، د دې شخه وروسته یې د نبي ﷺ شخه د سالن (کتغ) طلب وکړی (د ډوډۍ د پاره) نبي ﷺ وفرمایل چې سالن خو تاسو وخوړی هغوی حیران سول چې موږ کله خوړلی دی ورېې فرمایل تاسو دواړو چې د خپل ورور غوښه وخوړه، او دواړو یې د نیوکړي وړ وګرځول، ځکه چې یوه ویلي وو او بل اورېدلي وو، که اورېدونکي بد ګڼلای نو په ستر ګو بالاسو به یې د چپوالي اشاره خو کړې وای، که څه هم دا هم ناکافي ده ځکه چې منع په صفا توګه په ژبه سره کول پکار دي چې د غائب په حق کې قاصره نسي.

او فرمایي: که د یو مسلمان ورور غیبت کیږي او دی د کراهت او نفرت څرګندونه ونه کړي او معاف یې کړي نو الله ﷻ به هم په داسې وخت کې دی معاف کړی چې دی د معافی محتاجه وي.

**فصل: غیبت په زړه سره هم حرام دی:** پوه سه! چې غیبت ځنګه په ژبه سره حرام دی هلته په زړه سره هم حرام دی یعني لکه ځنګه چې یې په ژبه ذکر حرام دی دغه رنګه یې په زړه کې خیال راوستل هم ښه نه دي او د دې شخه مراد دا دی چې تر څو پوري د چاعیب په خپلو سترګو سره ونه وینې یا لږ تر لږه وانه وري تر هغه وخته پوري دې په زړه کې بدګمانه کیږي نه او یقین دې نه پر کوي، د نبي ﷺ ارشاد دی چې د مسلمان وینه، مال او د ده په حق کې بدګماني درې سره حرام دي. او بیا بدګمانه که د

یقین قول او عدل شخصه هم لیرې وي نو دا صرف شیطاني کاروایي ده کومه چي ده قبله کړې وي، الله ﷻ فرمایي: إِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا [الحجرات](که یو شریر سړی تاسو ته یو خبر راوړی نو بیا تحقیق یې کوئ) مطلب دا چي د فاسق پر خبره یقین مه کوئ او د شیطان شخصه زبات فاسق څوک کېدی سي او حرامه خبره دا ده چي ته یې پخپل زړه سره ومنې لېکن کومه خطره چي په زړه کي بلاقصده او بلا اراده پیدا وي او زړه یې بده هم ګڼې نو دا به قابل مؤاخذه نه وي، د نبي ﷺ ارشاد دی چي تر څو پوري د بدګماني تعلق دی د مؤمن زړه هم د دې شخصه بالکل خالي کېدای نسي لېکن د ده سره د سلامتیا لاره دا ده چي تر څو خبره محض د امکان او احتمال تر اندازې پوري وي تر هغه دې د هغې په لټون پسي نه ورپسې کیږي بلکي تر دغه پوري دا متعلقه سړي په صحیح او نېکه لاري تصور کوي، او د تحقیق نښه دا ده چي صاحبِ تحقیق د متعلقه سړي په باره کي دبد ګمانه کېدلو شخصه وروسته څه دروند (او پرېشانه) غوندي ښکاري او د مخکي په ډول ګرمجوشي پکښي پاته نسي، لېکن که په زړه ژبه او عمل سره د ده سلوک (چلند) هغه وي کوم چي مخکي وو نو دا دلیل د دې خبري دي چي ده تحقیق کړی نه دي که ګواهي د عادل سړي وي نو که څه هم دي توقف ضرور ور کړي، لېکن دا عادل دي هم نه درواغجن کوي، ځکه چي دا بدګمان به د دې عادل سړي خلاف وي، حال دا دی چي بدګماني دفاسق په حق کي هم صحیح نه ده، نو چي خبره واوري او دی وایي چي د دغه سړي حال زما شخصه خو لکه څنګه چي اوس پټ دی دغه رنګه اول هم وو، او پخپله د دې بنوونکی حال خو هم زما شخصه پټ دی، نو غور دي وکړي چي آیا د دې عادل سړي خو د غائب سړي سره څه دښمني خو نسته او که وي نو توقف کول نور هم لازم دي، او که غائب د ده په نزد ډېر عادل وونو د دې طرف ته زبات راغب کېدل پکار دي، او عادل سړی هم که رښتیا عادل وو نو ده ته دي هم زبات نژدې سي چي د شیطان منصوبه ناکامه سي، او ګمان او بدګماني کمه سي، او آخر چي کله خبره یقین او ثبوت ته ورسیږي نو بیا دي غیبت نه کوي بلکي د نصیحت او خیرخواهي شخصه دي کار اخلي او هغه هم دي د نورو په مخکي ذلیله او نه خوار کوي، بلکي یواځي دې پوه کړي او په پوره دلسوزي سره دي ورته نصیحت وکړي چي پخپله غمګین ښکاره سي او دغه رنګه دي دوچنده ثواب حاصل کړي، چي مسلمان ورور ته یې نصیحت هم وکړی او د ده په خاطر غمجن هم سو.

**فصل (د غیبت علاج)**: پوه سه! چي په غیبت باندي حریص کېدل هم د زړه د مرضونو شخصه یو مرض دی چي علاج کول یې فرض دي، او د دې علاج په دوه ډوله سره کېدای سي، اول علاج خو

علمي دي او د دې نور پوه پوله دي اول دا چي هغه احاديث نبويه وو ته بنه توجه وکړي کوم چي دغيبت په باره کي دي، او بنه پوه سي چي که دی د چاغيبت وکړي نو د ده خپلي ټولي نېکي به د هغه سړي په عملنامه کي منتقلي سي د چا چي ده غيبت کړی وي تر دې چي دی به بالکل دنېکيو څخه مفلسه سي،او دنبي ﷺ ارشاد دی چي غيبت د بنده نېکانې داسي ختموي لکه څنګه چي اُور وچ لرګي ختموي، او عجيبه نه ده چي د ده تر ګناهونو د ده يو نېکي زياته وي او په غيبت کولو سره د ده د ګناه تول دروند سي، اودی صرف دغيبت په وجه دوږخ ته ولاړ سي.

دويم داسي چي دبل په غيبت کولو لږ خپل ځان ته هم وګوري او که دغه عيب په ده کي هم وي نو بيا دي داسي وګڼي چي دغه بول بل هم معذور او مجبوره کېدای سي لکه چي دی دی، او که ده ته ذاتي عيب ښکاره نسي نو بيا دي دا وګڼي چي د خپل عيب څخه بې خبره کېدل خو د ټولو څخه غټ عيب دی، نو که رشتيا وايي نو دمرداري د خوړو څخه زيات بل کوم عيب په تصور کي راتلای سي؟ نو بيا صرف دغيبت پر بناء د ځان دعيبداره جوړولو وجه څه ده؟ بلکي د خپل ځان پر بې عيبه کېدو د الله ﷻ شکر پر ځای کول پکار دي، او د بل په باره کي دي داسوچ کوي چي بالفرض که ده کړی هم وي نو هغه کوم بنده دی چي دګناه څخه پاک وي، اوکله چي پخپله د شرعي حدودو د پابندی څخه په صحيح توګه قاصره وي، نو پکار دي چي د ده خپله ګناه که صغيره ولي نه وي، نو ګويا دی خو پخپل ځان هم پوره نه سو، نو په دې صورت کي د وروړ پر عيب باندي د حيرانتيا يا نفرت اظهار کول چيري صحيح کېدای سی، او کېدای سي چي دغه عيب د هغه په فطرت کي شامل وي نو په دې صورت کي خو به غيبت پخپله د پيدا کوونکي عيب ګيري وي، او کوم شئ چي د هغه په اختيار کي نه وي پر هغه ملامتول څه معنی ده؟

**دويم علاج**: تفصيلي علاج دی او هغه دا چي د غيبت په اسبابو او وجهو باندي غور وکړي يعني دامعلومه کړي چي آخر دی پر غيبت کولو مجبور ولي دی؟ او د دې اته سببونه کېدای سي؛

**اول سبب**: خو دا کېدای سي چي چا ته يې غصه راسي، نو غيبت يې شروع کړي، په دغه وخت کي دا ياده کړي چي صرف د غصې په سبب ځان دوږخ ته اچول څه ضروري دي! چي دا خو د خپل ځان سره جنګ کول سو، (د هغه به هيڅ ونه سي خپله عملنامه به توره کړي) د نبي کريم ﷺ ارشاد دی چي چا دغصې په حالت کي بل چاته معافي وکړه نو دقيامت په ورځ به الله ﷻ د ده څخه په ښکاره پوښتنه وکړي چي ووايه! دجنت په ټولو حورو کي ستا کومه حوره خو ښه ده هغه واخله.

**دویم سبب:** دا وي چي دغیبت په ذریعه دبل سړي یا خلګو موفقت او حمایت حاصلول مقصود وي، او ددې علاج دا دی چي ددې حقیقت څخه خبر سي چي دنورو په رضا کولو کي د الله ﷻ ناراضي ده، او دا سخت جهالت او حماقت دی، چي یو سړی دبل په رضا لټولو کي کوښښ کوي چي رضا یې حاصله کړي، نو د الله ﷻ رضا ولي نه حاصلوي، او که پر دې د خلګو د غصې او مخالفت سره مخامخ سي هم دي پروا نه کوي.

**دریم سبب:** دا کېدای سي چي څوک د خیانت او دوکه بازۍ په جرم کي ونیول سي او دی د خپل ځان خلاصولو د پاره الزام او تهمت پر نورو ولګوي، نو ددې علاج دا دی چي د الله ﷻ د قهر بلا چي کله نازلېږي څوک یې نسي بندولای، او کومه بلا چي دی د نورو پر سر ور تپي، دغه مشکوکه ده، نو که د دې بلا څخه د خوندي کېدلو کوشش کوي نو ودې کړي لېکن داسي نه چي پر نورو یې وروغورځوي، او نه پخپل زړه کي چیري دا سوچ کول پکار دي چي حرام خوړ یوائحي زه نه یم فلانی فلانی هم حرام خوړه دي، دا بالکل حماقت او جهل دی، ځکه چي که یوسړی ګناه ګوي نو د ده په تقلید کي پخپله ګناه کول خو واجب نه دي، او داسي وربل بالکل بې فائدې دي، او که یو سړی اُور ته غورځول کېږي نو د ده پر ضد په خپله اُور ته ورغورځېدل کومه هوښیاره دي؟ نو په ګناه کي موافقت کول بس داسي خبره ده، او دا عذر قطعي باطل دی بلکي دا خو یو پر بېږده دوه ګناهونه کول دي (یو یې خپل جرم بل غیبت).

**څلورم سبب:** دا سي چي مثلاً یو سړی دا خواهش کوي چي خپل صفت وکړي خو نه یې سي کولای نو دا عجیبه طریقه راوباسي چي دنورو عیبونه شمارل شروع کړي چي شاید په دې ډول د ده لویي او عظمت په خلګو کي پیدا سي، مثلاً داسي وایي چي فلانی په هیڅ نه پوهیږي (مطلب دا چي زه پوه یم) یا دا چي هغه د ریاکاري څخه پرهېز نه سي کولای، یعني زه یې کولای سم، نو داسي سړي دي پوه سي، چي عقلمند انسان په دې متاثره کېدای نسي بلکي پخپله به دی فاسق او جاهل ګڼي، د ده د پرهېزګاري او فضیلت ډنډوره په دې نسي قائمیدای، لېکن ممکنه ده چي یو کم عقل د ده معتقد سي، لېکن په دې څه کېږي؟ او که د ده په خیال څه وسي هم دومره فکر دي وکړي چي خپل ځان د الله ﷻ په نزد ناقص او ګناهګار جوړولو او یو احمق خپل متعقد جوړولو کي فائده څه ده؟ چي بنده خو پخپله عاجزه او بې چاره دی د ده څه اهمیت دی.

**پنځم سبب:** رشک (غبته) او حسد وي، یعني د یو سړي سره علم او فضل هم وي مرتبه او جاه هم او

مال او دولت هم موجود وي، او خلک د ده په باره کي ښه رايه لري، او حاسد دې شئ ته کتلای نسي، او د ده عيبونه او خامياتي تلاش کوي چي څوک ور سره ومنبلي او څه جګړه راپورته سي، او دی نه ګني چي دا خو په حقيقت کي دی د خپل ځان سره جګړه کوي چي په دې دنيا کي د حسد په عذاب کي مبتلاء دی او په هغه جهان د غيبت د عذاب تياري کوي، او دغه رنګه د خپله لاسه د دوارو جهانو د نعمتونو څخه محرومه کيږي، بلکي دی په دې هم پوه نه دی چي مال دولت او مرتبه خو دالله ﷻ ورکړه ده چي چا ته يې غواړي ور کوي يې په دې کي په حسد سره نور اضافه کيږي.

**شپږم سبب:** مسخري کول وي يعني پر يو چاخندا مسخري کول او هغه ذليله کول دي، لېکن کوم سړی چي پر چا خندا کوي رسوا کوي يې، دی دا هيروي چي هغه خو به په خلکو کي رُسوا سي او دی به دالله ﷻ په نزد رُسوا سي، اوس که دی سوچ وکړي چي دقيامت په ورځ کله دغه سړی د خپلو ګناهونو بوج (بار) د ده په سر ور واړوي، او لکه د خره په رقم يې راکشوي دوږخ ته يې بوځي او څومره څومره خواري به پر وي او خلک به ور پوري څومره خاندي، نو په ده کي به پر نورو د خندا کولو خيال هم پيدا نه سي، په دې شرط که په ده کي د عقل لږ ذره هم وي.

**اووم سبب:** دا کېدای سي چي يو سړی ګناه وکړي او دی د هغه سړي د پاره بيا غمجن وي لکه چي د دينداړو عادت وي، او د ده دا غم او خفګان هم واقعي د زړه څخه وي لېکن د همدردی د اظهار سره دی د هغه نوم هم اخلي او دا خبره هېره کړي چي دا نوم اخيستل خو په غيبت کي داخل دي، او ابليس د حسد په وجه دانوم د ده پر خولې راوستی دی ځکه چي کله ده وليدل چي پر مخلصانه خفګان به ده ته ثواب ملاؤ سي نو په غيبت سره يې بدل ولي نه کړم چي ثواب خوبې ضائع سي.

**اتم سبب:** دا وي چي مثلاً ديوسړي پر ګناه کولو ده ته سخته غصّه راسي، يا د ګناه په کېدلو دی سخت ځيني متعجبه سي او بيا تر دې سختی غصې يا تعجب لاندي د ده نوم اخلي ځني وهي چي وګوره دا څه غضب يې کړي دی چي که چاته معلومه نه وي نو چي معلومه سي ور ته. حال دا دي چي په داسي کولو سره به د ده د ګناه څخه د نفرت ثواب زائل سي، په داسي موقع د نوم اخيستلو پر ځای د تعجب يا غصې ځرګندتيا کافي ده.

## هغه عذرونه چي د هغو په وجه غيبت کول مباح(روا) دي

پوه سه! چي غيبت کول حرام دي داسي لکه چي درواغ ويل لېکن د ضرورت په وخت غيبت هم مباح کيږي، او د دې شپږ عذرونه داسي دي کوم چي د منلو وړ (قابل) دي:

**اول عذر:** فریاد دی د هغه چا کوم چي د عدل غوښتولو د پاره قاضي یا حاکم ته مخامخ کیږي چي دا بالکل صحیح دی. دا فریاد یو داسي سړي ته هم کېداسی د کوم څخه چي د څه امداد (مرستي) توقع کېدای سي، لېکن دمظلوم دپاره دا مناسب نه دي چي یو داسي سړي ته د ظالم قصې بیانوي چي د څه فائدې توقع ځیني نه وي، یو چا ابن سیرین ﷺ ته د حجّاج ظلم او زیاتوب قصې شروع کړي نو دوی وفرمایل: چي الله ﷻ خو به د حجّاج څخه د ده د ظلمونو بدله واخلي کوم چي ده پر خلکو کړي دي لېکن د دې خلکو څخه به د حجّاج انصاف هم طلب کړي کوم چي د ده په غیبت کولو نه ستړي کیږي.

**دویم عذر:** دا دی چي یو ځای فساد کیږي او یو سړی یو داسي سړي ته خبره کوي کوم چي د دې پر بندولو قادره وي چي دغه فساد منع کړي، مثلاً حضرت عمر رضی الله عنه یو وار په حضرت عثمان ﷺ یا شاید پر ابوطلحه ﷺ واغلی او سلام یې وکړی لېکن څه جواب یې ورنه کړی نو دوی حضرت ابو بکر رضی الله عنه ته وویل او شکایت یې وکړی نو حضرت ابو بکر ﷺ د دغو دواړو حضراتو څخه د حضرت عمر ﷺ رضی الله عنه د سلام د جواب نه ورکولو په باره کي پوښتنه وکړه او د حضرت عمر ﷺ شکایت یې غیبت ونه گرځولو.

**دریم عذر:** دیو کار په باره کي فتویٰ طلب کول دي مثلاً (دمفتي څخه) دا پوښتنه کول چي فلانی ښځه یا زما پلار یا فلانی سړی په فلاني معامله کي زما سره دا سلوک (چلند) کوي، لېکن د دې پوښتني غوره صورت به دا وي چي سوال په داسي انداز سره وسي مثلاً داسي ووایي چي: که څوک داسي سلوک (چلند) کوي نو په دې کي ستا سو څه رایه ده؟ بیا هم که نوم واخلي نو باک نسته. ځکه چي ممکنه ده فتویٰ ورکوونکي ته به د پوره قصې معلومېدلو په رڼا کي په فتویٰ ورکولو کي آساني وي،.

**روایت:** دی چي هندې دنبي کریم ﷺ په خدمت کي عرض وکړی چي ابو سفیان ﷺ ډېر بخیل سړی دي تر دې چي زما او زما دبچیانو خرڅ پوره نه را کوي که زه د ده څخه په غلا یو شئ اخلم نو آیا دا به جائز وي؟ نبي ﷺ وفرمایل چي په انصاف سره که په قدر د ضرورت اخلې نو روا دي، اوس دلته د بخیلی او دښځي د بچیانو سره د نا انصافی چي کومه تذکره سوې ده دا په غیبت کي داخله ده لېکن نبي ﷺ دفتویٰ د عذر پر بناء د نیو کړي ورنه وگرځوله.

**څلورم عذر:** دا دی چي دیو چا د شر څخه بېره کول مقصود وي مثل یو سړی بدعتي دی یا غل دی

او بل ناخبره سړي د ده څخه مينځه يا غلام اخلي (او دی يې عيبونه نه ښکاره کوي ) او دی نه ځيني خبر وي نو ده ته پکار دي چې رانيونکي ته اصل حقيقت ښکاره کړي چې د هغه نقصان ونسي، پر داسي موقع عيب پټول صحيح نه دي بلکې ښکاره کول يې ډېر غوره دي، چې پټول يې دوکه ورکول دي او ښکاره کول يې د مسلمان سره شفقت او همدردي کول دي، بلکې په دې صورت کې دګواهي پلمشورې ورکولو په وخت کې د طمن څخه هم کار اخيستل روا دي، د نبي ﷺ فرمان دی چې په فاسق کې کوم فسق او فجور وي د هغې د ښوولو څخه به ډډه نه کوئ چې د خدای ﷻ مخلوق ته معلومه سي او هغوی ځان ځيني وساتي، ليکن د دې اطلاق پر هغه موقع روا دی کوم ځای چې د يو آفت بېره په مخکې وي کنې بلاعذره ښدوره غړول صحيح نه دي او ويل سوي دي چې د دې خلګو شکايت کول په غيبت کې شمار نه دي: (۱) د ظالم بادشاه شکايت کول (۲) د بدعتي بدعت ښکاره کول (۳) په ښکاره د فسق کوونکي شکايت کول. او دا خبره ځکه په غيبت کې نه ده شامله چې دا خلګ پخپله د خپلو بديو د پټولو کوشش نه کوي

**پنځم عذر**: دا دی چې يو سړی په داسي نوم سره وبلل سي يا ياد کړل سي کوم چې د معيوب کېدلو سره سره ډېر مشهور وي، مثلاً شبکور يا ګوډ ويل ځکه چې کله په عام عرف کې دغه نوم مشهور دی نو دی په دغه بد هم نه ګڼي، ليکن بيا هم غوره خبره دا ده چې په يو بل غوره نوم سره ياد سي مثلاً د ړانده پر ځای پټ سترګی او نور وويل سي.

**شپږم عذر**: دا دی چې د يو داسي سړي د فسق فجور ذکر وکړي کوم چې په ښکاره دغه کار کوي او عيب يې نه ګڼي، مثلاً شرابي يا مخنث او نور چې د دوی ذکر کول روا دي.

**دغيبت کفاره**: پوه سه! چې دغيبت کفاره داسي اداء کوالای سي چې توبه وکړي د پښېمانی څرګند تياو کړي چې الله ﷻ يې د دې د وبال څخه وساتي او د چا چې يې غيبت کړی وي د هغه څخه هم معافي وغواړي چې د ده د وبال څخه هم خلاص سي، نبي ﷺ فرمايلي دي چې وبال کوونکي ته لازم دي چې د مال عزت يا هر څه شئ وبال تعلق چې د ده سره وي معافي ضرور طلب کړي داسي نه چې هغه ورځ راسي چې نه هلته مال وي نه نقد (نغدي) ما سوا د دې څخه چې د ده نېکی هغه ته ورکړل سي او که د ده سره نېکی هم نه وي نو د هغه ګناهونه به پر بار سي، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې ما د يوې ښځي په باره کې وويل چې ژبوره ده نو نبي ﷺ وفرمايل چې تا غيبت وکړی ورسه امعافي ځيني وغواړه، په حديث شريف کې دي چې د چا غيبت وسي نو (د معافي څخه ماسوا

دي) د هغه د پاره د خير دعاء کوي، يوه ډله کوم چې دا وايي: چې د خير دعاء ورته کافي ده معافي غوښتل ځيني ضروري نه دي نو دا خيال صحيح نه دي بلکې غلط دی ځکه چې د يو بل حديث په روی سره استغفار هلته لازم دی کوم ځای چې هغه سړی ژوندی نه وي، او دمعافی غوښتلو څخه مراد دا دی چې په انتهائي عاجزی اوفروتني او تلافي سره دي د هغه غائب خوا ته ولاړ سي او په ژبه سره دي اقرار وکړي چې زما څخه خطا سوې ده او څه چې ماويلي دي هغه غلط وو، او زه د هغې معافي غواړم که يې نه معاف کوي نو مدح او ستاينه دې وکړي چې زړه يې خوشحاله سي اومعافي وکړي، لېکن که بيا يې هم نه کوله، نو هغه ته اختيار دی لېکن ده ته به خامخا د هغه دخوشامندي او ستايني ثواب ملاوېږي او دا به د ده په نېکيو کي شمارل کيږي او څه عجيبه ده چې د قيامت په ورځ به ده ته معاوضه ملاو سي.

هسې خو د غائب د پاره داغوره ده چې معاف يې کړي که څه هم په مشرانو کي ځيني بزرګانو معافي نه ده کړې، لېکن دهغو وينا دا وه چې زموږ په عملنامه کي د دې څخه غوره نېکي سته نه. بيالهم غوره دا ده چې معاف کړل سي، يوسړی د حسن بصري ﷺ غيبت وکړی هغه د خُرما يو تال هغه سړي ته ولېږلو او ويې ويل چې ما ته معلومه سوې ده چې تا خپل ټول عبادتونه ما ته هديه کړي دي په دې وجه ما هم مناسب وګڼله چې تا ته د هديه په بدل کي هديه در کړم لېکن ما معاف کړه ځکه چې ما د بدلې حق پوره اداء نه کړای سو، او پوه سه! چې معافي هغه صحيح ده چې په ژبه وويل سي چې: ستا پر فلاني خبره ما ته معاف کړې، دمجهول او مبهم شئ د پاره دبېزاری اظهار صحيح نه دی.

**دیارلسم آفت**: چغلي او غمازي ده (چې د يوه خبره بل ته وړي)، الله ﷻ فرمايي: هَمَّازٍ مَشَّاءٍ بِنَمِيمٍ (د داسې سړي خبره نه دې منل پکار کوم چې طعنې لګونکی چغلي کوونکي وي) دارنګه فرمايي: وَيْلٌ لِكُلِّ هُمَزَةٍ (ډېره خرابي ده هغه سړي ته چې عيبونه لټوي ) دارنګه فرمايي: حَمَّالَةَ الْحَطَبِ (او د هغه ښځې هم کومه چې خاشاک(لرګي) راوړي)، په دې ټولو آيتونو کي د چغل خورو ذکر سوی دي،او نبي کريم ﷺ فرمايي چې چغل خور به چيري هم جنت ته ولاړ نسي، او فرمايي زه تاسو ته يو خبر اوروم چې په تاسو کي ډېر بد سړی کوم يو دی ؟ يادلرئ ډېر بد هغه دی کوم چې درواغ او رشتيا سره يوځای کوي او نشر کوي يې او د خلکو پر يوبل د بدګمانه کولو او ديو بل څخه په خفه کولو کي کوشش کوي، او فرمايي: الله ﷻ چې کله جنت پيدا کړی، نو ورېي فرمايل وايه ! څه وايې ؟ جنت ويل نېک بخت دي هغه کوم چې ماته داخل سو، الله ﷻ وفرمايل: زما پخپل عزت او جلال

قسم دی چي زه به اته ډوله خلک تا ته راپرې نږدم (۱) شرابي (۲) زنا کار چي زنا عادت جوړه کړي (۳) چغل خور (غیبت گر) (۴) دیُوث (دووس چي ښځو ته خلک راولي) (۵) سختي کوونکي حکمران (بادشاه) (۶) مخنث (۷) قطع رحمي کوونکي (۸) هغه چي وایي ما د خدای سره وعده کړې ده چي داسي به نه کوم اوبیا یې کوي.

په حدیث شریف کي دي چي په بنی اسرائیلو کي یو وار سخت قحط (وچکالي) راغله حضرت موسی ﷺ څو وار د باران د دعاء د پاره ووتلو لېکن باران ونه سو، آخر ور ته وحي وسوې چي ستا دعاء ځکه نه قبلیږي چي په تاسو کي یو چغل خور سته، عرض یې وکړی اې خدایه! هغه څوک دی چي لیري یې کړو، ویې فرمایل زه چي هرکله چغلخوري دومره بده گڼم نو چغلخوري پخپله څنګه وکړم؟ حضرت موسی ﷺ ټولو ته د توبې حکم وکړی ټولو توبه وکړه او باران هم وسو.

یو سړی په داسي هوښیار پسي گرځیدی چي د ده د اُووْ سوالونو جواب ورکړی آخر د اوو سوو میلو فاصلې قطع کولو څخه وروسته یې د یو داسي هوښیار سره ملاقات وسو او ده پوښتنه ځیني وکړه چي: (۱) د اسمان څخه زیات فراخه او اَرت کوم شئ دي؟ (۲) د ځمکي څخه زیات وزني کوم شئ دي؟ (۳) داسي شئ سته چي د ډبري څخه زیات سخت وي؟ (۴) کوم شئ دي چي د اور څخه زیات گرم دی؟ (۵) د زمهیریر څخه زیات یَخ کوم شئ دی؟ (۶) د سمندر (دریاب) څخه زیات تونگر (مالدار) څه شئ دی؟ (۷) هغه څه شئ دی کوم چي د یتیم څخه زیات خوار وي.

هوشیار سړي چي کوم جوابونه ورکړل هغه په ترتیب سره دا دي:

(۱) دالله جَلّ ذات د اسمان څخه زیات فراخ دی (۲) پر بې گناه باندي تهمت لگول د ځمکي څخه دروند دی (۳) دکافر زړه د ډبري څخه سخت دی (۴) د حسد سوځلي (سوخت) د اور څخه زیات گرم دی (۵) د خپلوانو حاجتونه نه پوره کوونکی د زمهریر څخه زیات یخ دی (۶) د صابر زړه د دریاب څخه زیات تونگر دی (۷) چغلخور د یتیم څخه زیات خوار دی.

**خوارلسم آفت**: دوه مخي (دوه رُخي) ده یعني د دوو دوستانو په مینځ کي دوه مخي کول او هر یوه ته بس خپل ځان صرف د ده ښکاره کول، او داسي خبره کول کومه چي د ده خو ښه وي او ده ته د ده او هغه ته د هغه خبري کول او دواړو ته دا ښکاره کول چي که دوست یم خو ستا یم داحرکت د چغل خوري څخه هم زیات ذلیل او بد دی، نبي ﷺ فرمایي چي کوم سړی په دې دنیا کي دوه مخی وي د ده به په هغه جهان کي دوې ژبې وي، او فرمایي ډېر بد انسان هغه دی کوم چي دوکه باز وي، حضرت

ابن عمرؓ ته بعضي خلکو ووېل: موږ چي کله د امیرانو مجلس ته ځو نو ځیني داسي خبري مو هم د خولي څخه ووځي چي که دباندي راسو نو بیا دغه زموږ دپاره ممکني نه وي، ويې فرمایل: موږ خو به داسي خبري د نبي ﷺ په زمانه کي پر منافقت باندي محمول کولې، او کوم سړي چي د بادشاهانو او امیرانو خوا ته ولاړ سي داسي خبري کوي کومي چي د دوی په غیر حاضري کي کول نه خوښوي نو دغه یقیناً منافق او دوغله دی، ها! که چیري ضرورت وي نو مجبوراً جائز هم دي.

**پنځلسم آفت**: د خلکو مدح ستاینې او قصیدي ویل دي او د چا په فضیلتونو او خصلتونو بیانولو کي د حدّ څخه زیات مبالغه کول، او د دې نور شپږ آفتونه دي، دکومو څخه چي د څلورو تعلق د مدح کوونکي سره دی او د دوو تعلق په خپله د مدح اورېدونکي سره دی، د مدح کوونکي آول آفت دا دی چي په تعریف کي د حد څخه زیات سي، او د دروا‌غو حدته و رسیږي، په حدیث شریف کي دي چي کوم سړی د بل په تعریف کي دحد څخه زیات سي د قیامت په ورځ به د ده ژبه د حد څخه زیاته غټه سي او دومره به اوږده سي چي په ځان پسې به یې راښکوي د پښو څخه به یې لاندي کیږي، دویم آفت یې دا چي په تعریف کي د منافقت څخه کار واخلي یعني وایي چي زه ستا دوست او خیر خواه یم لیکن په زړه کي بل ډول وي، دریم آفت دا دی چي یو داسي خبره وکړي د کومي په باره کي چي څه علم نه لري مثلاً ووایي چي زما ممدوح غټ پرهیز کاره او عالم اوفاضل دی (او هغه نه وي) د نبي ﷺ په مخکي یو سړی د بل سړي صفت شروع کړی ویې فرمایل: پر تا افسوس دی چي تا دغه عاجز هلاک کړی!، که څوک د یو چا تعریف کوي نو داسي دي وایي چي زما خیال دی، لیکن زه په دې پوه نه یم چي د خدای په نزد به هم د عیب څخه بري وي نو که مدح کوونکي پخپل علم کي رښتونی وي نو حساب یې د الله جلّ په لاس کي دي. څلورم آفت دا دی چي د چا مدح کوي هغه ظالم وي او په دې خبرو خوشحالیږي حال دا دی چي ظالم خوشحاله کول پرخپل ځای ظلم دی،

او د چا چي مدح کوي هغه (ممدوح) په دوه قسمه نقصان کي وي: یو خو دا چي خپل صفت واوري په غرور او تکبر کي مبتلا سي، دویم دا ! چي خپل تعریف واوري چي په علم او صلاح کي زما مناسب نسته نو سست به سي او مطمئن به سي چي زما څخه به څه وایي، زه خو کمال ته رسېدلی یم، او دا وجه وه چي کله خلکو دیوسړي تعریف د حد څخه زیات وکړی، نو نبي ﷺ وفرمایل: تاسو د ده غاړه پرېکړه، هغه چي یې اوري نو د آینده د پاره به د سعی او کوشش څخه لاس واخلي. د نبي ﷺ ارشاد دی چي په یو چا پسې تېره چاره وړل او تلل د دې څخه غوره دي چي د ده په مخکي د ده تعریف شروع سي، د زیاد بن اسلم قول دی چي کوم سړی خپل صفت اوري شیطان دی د خپل ځای

شخه پورته کوي (یعني خپل د اصلاح حالت ځیني هېر کړي) لېکن مؤمن خپل ځان پېژني او دی دنور زیات عجز او نیازمندی اظهار کوي، نو کوم ځای چې د اشېږ آفتونه نه وي هلته که تعریف کوي نو ښه خبره ده، نبي ﷺ د بعضې اصحابو په حق کې داسې تعریف پخپله فرمایلي دی، مثلا حضرت عمر رضی الله عنه ته یې وفرمایل: که زه الله ﷻ پیغمبر نه وای رالېږلای نو ته به یې رالېږلی وای، او فرمایلي یې دي چې که د ټولې دنیا ایمان په یوه تله کې او د ابو بکر رضی الله عنه په بله تله کې واچول سي نو د ده ایمان به درونډ وي نو دوی ﷺ د دې ډول تعریفونه کړي دي نو ځکه چې دوی ته معلومه وه چې په د ې سره ځوک نه خرابیږي، مګر خپل صفت کول د مذمت وړی دي او الله ﷻ د دې شخه منع فرمایلې ده، ارشاد دی: فلا تُزَكُّوا اَنفُسَكم (تاسو خپل ځان پاک مه ګڼئ) [النجم] ها! که ځوک د خلکو مشر او لارښوونکي وي او د خپل حال په ښولو سره د ده مقصد صرف دا وي چې خلکو ته د پېروي تلقین وکړي نو دا روا دي، لکه چې نبي ﷺ فرمایلي دي: زما فخر پردې سرداری نه دی بلکې د دې سرداري پر راکوونکي دی، او دا ارشاد ځکه وو چې خلک د دوی اقتداء وکړي، او حضرت یوسف علیه السلام فرمایلي وو: اِنِّیْ حَفِیْظٌ عَلِیْمٌ [یوسف] (پر مُلکي خزانو ماوټاکه زه به یې حفاظت کووم او ښه پوه یم).

**فصل**: د کوم سړي چې تعریف کول کیږي ده ته پکار دي چې په دې سره مغروره کیږي نه او د خاتمې خطره په رایاده کړي ځکه چې چا ته هم د ده اداصل حال علم نه سته، او یاد ساته! ځوک چې د دوږخ شخه خوندي نه سو دغه د سپي او دخنزیر شخه هم زیات ناکاره (خراب) دی او ځوک دا نسې ویلای چې دی به د دوږخ شخه خوندي سي او داخیال دي هم کوي چې تعریف کوونکي که زما د اصل حال شخه واقف سو نو چیري به د دومره مدح او صفت ونه کړي، نو د الله ﷻ شکر دي اداء کړي چې ده زما د باطن شخه دا مدح کوونکی نا خبره کړی، او پکار دي چې خپل تعریف واوري خوښ یې نه کړي بلکې د کراهت اظهار دي وکړي او په زړه کې دي هم دکراهت داصفت پیدا کړي، یو سړي دخلکو شخه خپل تعریف واورېدی او ویې ویل: یا الله! داخلک زما د عیبونو او نقصانونو شخه نا خبره دي او صرف ته یې چې زما د اصل حال شخه خبر یې، او د دې خلکو تعریف د هغه شئ پر بنیاد دی کوم چې زما خوښ نه دی نو زه تا ګواه کووم چې زه د دې ناخوښي مدح شخه دنفرت په وجه سره ستا د قربت او حضوري آرزو مند یم، خلکو د حضرت علي رضی الله عنه تعریف وکړی نو دوی رضی الله عنه وویل: اې خدایه! دا خلک چې څه وایي ما په دې مه نیسه او دوی هم معاف کړه چې دوی ته د هري خبري

علم چیري سته، او ما زما د دې اوسني حالت څخه زیات بنه کړې، یو سړی کوم چي یې په رښتیا (په زړه) سره حضرت علي ﷺ نه خوښولو، یو وار یې په منافقانه انداز سره د دوی ﷺ مدح وکړه دوی ﷺ وویل اې ناپوه! څه چي ته په ژبه وایې د دې څخه زه ډېر کم یم او څه چي ستا په زړه کي دي د هغه څخه زیات یم.

## خلورم اصل: غصه، حسد، کینه او د دې علاج

پوه سه! چي غصه کله غالبه سي نو سخت د مذمت وړ او بد شئ وي او د دې اصل اُور دی چي زخم یې پر زړه محسوسیږي، او د دې نسبت د شیطان سره دی لکه چي ارشاد سوی دی: خَلَقْتَنِي مِن نَّارٍ وَخَلَقْتَهُ مِن طِينٍ (الاعراف:١٢) (شیطان وویل تازه د اُور څخه پیدا کړی یم او آدم دي د خاورو څخه پیدا کړی دی) او د اُور کار متحرک کېدل دي او د قرار او آرام څخه لیري کېدل دي، او د خاوري کار په آرام سره د پرېوتو دی، او کله چي پر چا غصه سپره سي، نو دغه وخت د ده نسبت د آدم ﷺ سره کم او د شیطان سره زیات سي، داو جه ده چي ابن عمر ﷺ کله عرض وکړی چي یا رسول الله ﷺ! هغه کوم شئ دي چي ما د الله ﷻ د قهر او غضب څخه وساتي؟ نو نبي ﷺ وفرمایل چي: غصه کیږه مه، بیا یې عرض وکړی یا رسول الله! ما ته یو داسي مختصر کار وښیه په کوم چي زما د نېک انجام (او خاتمه بالخیر) اُمید وتړل سي، نو ویې فرمایل: غصه مه کوه، او څو واره چي ابن عمر رضی الله عنه پوښتنه وکړه نبي ﷺ د هر سوال دا یو جواب ورکړی: غصه مه کوه، او ویې فرمایل غصه ایمان داسي خرابوي لکه سرکه چي عسل خرابوي،

او فرمایي: د دوږخ یوه دروازه د هغو خلکو د پاره خاص کړل سوې ده کوم چي دغصې په وجه د شرع مخالفت کوي، او فرمایي: غړپ خو هر سړی چیښي، لېکن د الله ﷻ په نزد ډېر مقبول غړپ هغه دی کوم ته چي دغصې غړپ وایي چي هغه وچیښل سي، او کوم سړی چي پر غصه د صبر او تحمّل څخه کار اخلي الله ﷻ د ده زړه د ایمان د نور څخه آبادوي، فضیل بن عیاض رحمه الله، سفیان ثوري رحمه الله او نورو ډېرو بزرګانو د دین دا خبره په اتفاق سره تسلیم کړې ده چي دغصې په وخت کي د تحمل او بردباری او د طمعي په وخت کي د صبر او قناعت څخه کار اخیستل ډېر افضل عمل دی.

**روایت:** یو سړي خلیفه عمر بن عبد العزیز رحمه الله ته بد ردّ (پیچ پاش) وویل، دوی سر کښته کړی، ویې فرمایل چي تا خو دا کوشش کړی وو چي زه غصه سم او د شیطان څخه مغلوبه سم،

پخپل ځان پوه نه سم او پر تا خپله غصه سره کړم او صبا د قیامت په ورځ ته زما لمن ونیسې، لېکن ما ته د داسي کولو څه نقصان وسو؟ دا یې وویل چپ سو.

**د ذوالکفل قصه:** په انبیاؤ کي یو نبی ﷺ وفرمایل: چي (اې خلکو!) په تاسو کي څوک دی څوم چي زما دا دعوت قبول کړی او بیا عملاً د دې کفالت وکړي چي غصه به چیري نه کوي او بیا زما څخه وروسته خلیفه سي او بیا په جنت کي زما سره یو ځای سي، یوسړي عرض وکړی چي ما دا قبوله کړه او کفالت به کووم، پیغمبر مکرر دغه الفاظ ویل او ده بیاعرض وکړی چي زه دا قبلووم نو پیغمبر د هغه څخه د وفاداری قسم واخیستی او دی یې خپل خلیفه کړی، او بیا دغه بزرګ د نبي خلیفه جوړ سو نو په خلکو کي په ذوالکفل مشهور سو ځکه چي ده د دعوت قبلولو سره کفالت هم وکړی.

**روایتونه:** یو سړي حضرت سلمان ﷺ ته ښکنځل وکړل دوی وفرمایل: چي که دقیامت په ورځ زما د ګناهونو تول دروند سو نو څه چي ته وا یې زه به د دې څخه هم ډېر بد یم لېکن که دغه تول سپک سو نو ستا په دې وینا زما هیڅ پرواه نسته، دغه ډول ربیع بن خشیم ﷺ ته چا ښکنځل وکړه، نو ورته وې ویل چي زه خو پر هغه غونډۍ د ختلو په کوشش کي مشغوله یم کومه چي زما او دجنت په مینځ کي حائله ده که زه کامیاب سوم نو ستا دخبري څخه نه بیرېږم اوکه ناکام سوم نو څه چي تاوویل دغه هم ډېر کم دي، او دا دواړه بزرګان به دآخرت په غم کي داسي مستغرق (ډوب) وو چي په ښکنځلو به ورته غصه نه راتله، یو چا حضرت ابو بکر ﷺ ته ښکنځل وکړل، نو ویې وفرمایل: څه چي زما په باره کي ستا څخه پټ دي هغه ستا د دې ویلو څخه ډېر زیات دي نو ده ته غصه رانغله، مالک بن دینار ته یوې سپینسري ښځي ریاکار وویل نو دوی وویل چي بس تازه ښه وپېژندم.

## حسد (ضد) او د دې د آفتونو په باره کي

پوه سه! چي دغصې څخه کینه پیدا کیږي او د کیني څخه حسد چي دا په مهلکاتو کي لوړ مقام لري، نبي ﷺ فرمایي چي حسد نېکیاني داسي خوري لکه اُور چي وچ خاشاک ایره کوي، او فرمایي دري خبري داسي دي چي یو انسان د دې څخه خالي نه وي یعني: (۱) بدګماني (۲) حسد (۳) بدفالي، او زه تاسو ته ښیم چي د دې علاج څنګه امکان لري، داسي چي کله بدګماني پیدا سي نو په زړه کي د دې په باره کي لټون مه کوه، اوکه د بدفالي سره مخامخ سې نو اعتماد مه پر کوه، او کله چي حسد پیدا سي نو ژبه په قابو کي ساته، او په لاسو سره دا نتقام کار مه کوه، او فرمایي اې مسلمانانو! دا

خیال ساتئ چي په تاسو کي هغه شئ پیدا نسي د کوم په وجه چي ستاسو څخه مخکي ډېر قومونه هلاک سوي دي، او هغه شئ حسد او دښمني ده، او قسم دی زما په هغه خدای د کوم په لاس کي چي زما روح دی چي تاسو به تر هغه وخته پوري جنت ته داخل نه سی، تر څو پوري چي د یو بل سره دوستي او محبت ونه ساتی،او راسئ زه تاسو ته دا هم ښیم چي د محبت جذبه څنګ پیدا کیږي؟ بس د دې آسانه طریقه دا ده چي کله هم د یو بل سره مخامخ سئ نو په ښکاره یو بل ته سلام کوئ. موسی ﷺ یو سړي ولیدی چي د عرش تر سایې لاندي ولاړ دی، دوی ﷺ هم دې درجې ته د رسېدو آرزومند سول او ویې ویل چي دا څوک دی چي دومره لوړ مقام ورته حاصل دی او نوم یې څه دی؟ نوم خوبې ده ته ونه ښوول سو لېکن دا ارشاد ورته وسو چي دې سړي چیري هم د چا سره ضد(حسد) نه دی کړی، دمور او پلار نافرماني یې نه ده کړې او نه یې دچا چغلي کړې ده، حضرت زکریا ﷺ فرمایي چي د الله ﷻ ارشاد دی چي کوم سړی د چا سره حسد کوي هغه د نعمت دښمن دی ځکه چي حسد د یو چا پر نعمت د سوځیدلو نتیجه وي، او د ده دا حسد په حقیقت کي زما خلاف د غصې مظاهره کول دي ګویا زما هغه تقسیم کوم چي ما دخپلو بندګانو په مینځ کي کړی دي، د ده په نزد ناخوښه دی، نبي ﷺ فرمایي شپږ. ډلي داسي دي چي د خپلو ګناهونو په وجه به بغیر د حساب څخه دوږخ ته واچول سي: (۱) هغه امیر چي ظالم وي(۲) هغه غریب چي دنورو خلاف پخپل زړه کي تعصب لري (۳) هغه مالدار چي په مال تکبر کوي (۴) هغه سوداګر چي په تجارت کي بې ایماني کوي (۵) هغه دهقان (بزګر) چي په ناداني او جاهلیت کي مبتلاوي (۶) هغه عالمان چي حاسدان وي.

**قصه**: حضرت انس ﷺ وایي چي زه یوه ورځ د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سوم چي دوی ﷺ وفرمایل: هغه وګورئ د جنتیانو څخه یو تن را روان دی خلکو چي ولیدی نو دانصارو څخه یو سړی راغلی پېزار (څپلی) یې په لاسو کي نیولي وې، دابو قطرې یې د ږیري څخه څاڅي، بله ورځ بیا نبي ﷺ داسي وفرمایل او هم هغه سړی په دغه حالت کي راغلی، چي په دریمه ورځ بیا داسي وسو نو عبد الله بن عمروبن العاص ﷺ د دې حال معلومولو د پاره چي آیا څه وجه ده چي نبي ﷺ هر واري دی د جنتیانو څخه ښیي، نو د ده خوا ر‌ته ورغلی چي زه د خپل پلار څخه خفه سوی یم نو غواړم چي درې ورځي ستا سره پاته سم هغه وویل ډېره ښه ده. نو په اوله شپه ده ټوله شپه غور کولو خو ما سوا د دې څخه بله خبره یې ونه لیدله چي کله به هم د ده سترګي غړېدلې نو دالله ﷻ نوم به یې اخیستی، آخر ده ورته صفا وویل چي زما د پلار څخه هیڅ خفګان نسته بلکي زه صرف د نبي ﷺ د

دې الفاظو څخه متاثر سوم ستا خواته راغلم او ستا د دې خاص عمل څخه مې ځان خبرول غوښتل، هغه وویل بس دا عمل دې کوم چې تا ولیدی چې دی څیني روان سو نو هغه ورته آواز وکړی ویې ویل: یوه خبره بله هم ده چې د هغې څخه تاخبرول غواړم او هغه دا ده چې زه چیرې د حسد په نظر سره چا ته نه ګورم، حضرت عبدالله وویل: صحیح ده ځکه خو تا دا مرتبه ترلاسه کړې ده، عون بن عبدالله یو بادشاه ته نصیحت کوی چې د تکبر څخه لیرې وسه ځکه اوله کومه ګناه چې د الله ﷻ په حضور کې سوې ده هغه تکبّرو چې ابلیس د کبر په وجه د سجدې څخه انکار وکړی، او د حرص او هوا څخه لیرې وسه چې دې آدم ﷺ د جنت څخه راوېستی او د حسد څخه لیرې وسه چې دټولو څخه اول د انسان وینه د انسان په لاسو دحسد په وجه بهېدلې ده چې د آدم ﷺ یو زوی بل زوی د آدم مړ کړی او کله چې د صحابه کرامو ﷺ خبره چلیږي نو چپ وسه چې د الله ﷻ د صفاتو بیان وي نو هم چپ وسه او چې د علم نجوم اونورو ذکر چلیږي نو هم چپ وسه او په دې درې سره صورتونو کې ژبه په قابو کې ساته (هسې نه چې غلطه خبره دې د خولې څخه ووځي).

**د حسد حقیقت:** د حسد مطلب دا دی چې الله ﷻ چا ته نعمت ورکړی وي او ته په سوځې، او د ده د نعمت زوال غواړې او دا شئ د حدیث په روی سره هم حرام دی او د دلیل په روی سره هم حرام دی چې دا په حقیقت کې د الله ﷻ حکمونه بدګڼل دي، او په دې سره د باطن خیانت ظاهرېږي، چې کوم شئ تا ته حاصل نه دی د هغه بل ته حاصلېدل تا ته بد ښکاري، نو دې ته د باطن د خباثت څخه ماسوا بل څه نسي ویل کېدای، لېکن که ته دځان د پاره هم داسې نعمت غواړې او د بل د نعمت زوال هم نه غواړې نو د دې ممانعت نسته.او دې خواهش ته غبطه (برابري، رشک) وایي او منافست (دیوبل څخه زیاتیدل) ورته هم وایي، او دا آرزو که د دیني معاملې متعلق وي نو نه دا چې صرف مبارکه بلکې واجب هم وي، چې دالله ﷻ ارشا دی: وَفِي ذَالِكَ فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنَافِسُوْن (تاسو د یو بل څخه د مخکې کېدلو کوشش کوئ) او نبي ﷺ فرمایلي دي حسد ما سوا د دوو شیانو څخه په نور څه کې نسته: (۱) یو دا چې الله ﷻ چا ته مال، دولت او علم ورکړی وي او دغه سړی خپل مال دعلم مطابق صرف کوي او بل خو د یو سړي سره علم خو وي لېکن مال نه وي او دی آرزو کوي چې کاش! که زما سره مال وای نو ما به هم دغه رنګه د علم په رڼا کې خرڅ کولای نو په دې صورت کې دا دواړه خلک پر خپل خپل ځای د ثواب مستحق دي، او د دواړو درجه برابره ده، (۲) او دویم صورت دا کېدای سي چې دیو سړي سره مال وي او دی یې په فسق فجور کې خرڅ کوي، او دبل سړي سره مال نه وي او دی

خواهش کوي چي که زما سر وای نو ما به هم دغه رنګه مزې کولای نو په دي صورت کي دا دواړه خلک پر خپل ځای ګناه ګاره دي او په دواړو صورتونو کي حسد دې خو مکروه نه دی ځکه د یو بل د نعمت سره صرف برابري غواړي، او کراهت د بل پر مال هیڅکله نه دي کول پکار ماسوا د دې شخه چي صاحبِ مال ظالم وي او فاسق هم وي او دغه مال د ده په فسق کي داضافې او زیات ظلم باعث وي، چي د داسي سړي د نعمت زوال غوښتل صحیح دي ځکه چي دا په حقیقت کي د ده د نعمت زوال غوښتل نه دي بلکي د ده د ظلم او فسق زوال غوښتل دي، او نښه یې دا ده چي که د نعمت دزوال شخه وروسته دغه ظالم او فاسق توبه وکړي نو د ده زوال غوښتونکي بیا دی بد نه ګنې، په د ې ځای کي یوه باریکه نکته ده چي د توجّه وړ ده هغه دا: چي فرض کړه یو سړي ته الله ﷻ نعمت ورکړی دي او بل سړي د ده په ډول منعم جوړېدل غواړي (چي ما ته هم الله ﷻ دغسي دنیا راکړي) او جوړ نسي نو کېدای سي چي په دې فرق بیا دی د کراهت اظهار کوي او بیا د دغه اولني پر نعمت زوال راسي او د دې فرق ختمېدلو په وجه د دغه بل زړه سپک سي لېکن دا ډېره بیا هم پاته وي چي دمال او نعمت د خواهش شخه یې زړه بیا هم خالي نسي، لېکن د دي سره که کراهت بیا هم پاته وي نو دا صحیح نه ده، ها! که داسي وي چي د دغه اولني سړي کار د بل په قبضه او قدرت کي ورسي او هغه د ده د نعمت اخیستلو آرزومند نه وي نو په دومره کراهت به ونه نیول سي.

**دحسد علاج**: حسد د زړه د پاره یوه ډېره غټه ناجوړي ده او د دې علاج شخه هم دامراد دی چي حاسد دا حقیقت وپېژني چي دی دنیا څه کوي او په آخرت کي څه، حسد خو د ده د خپل ځان د پاره نقصاني دی (هم په آخرت کي او هم په دنیا کي) او په چا چي یې حسد کیږي، د هغه د پاره بالکل نفع ده په دنیا کي هم او په آخرت کي هم، او د حاسد دنیوي نقصان دا دی چي همېشه په غم تکلیف پرېشاني او اضطراب اوعذاب کي اخته وي او د یو ساعت د پار هم د دې غم او عذاب شخه نه خلاصیږي ځکه چي هر وخت د قدرت د طرف شخه څه نا څه مال اونعمت د یو چا شخه بل چا ته حاصلیږي او نتیجه دا وي چي په کوم غم او عذاب کي دی دغه خلک لیدل غواړي، پخپله ځان په دغه عذاب کي مبتلاوېني، او د حسد غم داسي غم دی چي د دې شخه زیات بل غم نسته نو څومره د جهل خبره ده چي خپل ځان د دښمن د پاره په عذاب کي مبتلاساتي، خصوصًا په داسي حال کي چي د دښمن هیڅ هم نه خرابیږي، الله ﷻ چي چا ته یو نعمت ورکړی وي نو هغه تر خاص وخته پوري وي چي د دې شخه مخکي د تبدیلی هیڅ تصور نسي کېدی ځکه چي د نعمت وجود او

وجوب دالله ﷻ احسان وي (نه چي دانسان) ځيني خلګ دا دستور (قانون) په برکت او سعادت سره هم تعبير کوي بياهم (که تقدير ازلي ورته وايي او که دستور او برکت) په دي خبره په هرحال د ټولو اتفاق دی چي په دې کي د يو ډول تغيّر او تبديلی امکان نسته، او دا سبب وو چي دانبياؤ ځنې يو نبي ﷺ په دي خبره ډېر خفه وو چي د حکومت واګي د يوې ښځي په لاس کي وې او الله ﷻ ته يې ګيله وکړه چي دا څه خبره سوې ده؟ وحی ورته وسوې چي د دې د حکومت ځنې چيري وتښته تر دې چي د دې د حکومت ميعاد پوره سي ځه چي د روز ازل ځخه د دې کوم معياد مقرر سوی دی په هغې کي کمی نسي کيدای، دغه ډول يو پيغمبر ﷺ په يوه سخته بلا کي ګرفتا سو ډېره ژړا اوفرياد يې وکړی په خشوع او خضوع سره يې دعاء وغوښته، لېکن وحی نازلي سوې دا يې ورته وښووله چي په روز ازل کي مونږ کوم داسمان او ځمکي تقدير مقرر کړی دي نو ستا په حصه کي دامقدر سوي وو، آيا اوس ستا داخيال دی چي صرف ستا په خاطر پوره تقسيم د نوي سره وکړو؟ نو حاسد که دا غواړي چي د يو چا نعمت دي زائل سي نو خامخا د خپل نعمت ځخه به بې شکه چي لاسونه پرېولي بلکي د کافرانو په نعمت حسد کوونکي خو به د دولت د ايمان ځخه هم محرومه سي، د الله ﷻ ارشاد دی:

وَدَّتْ طَّائِفَةٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَوْ يُضِلُّونَكُمْ [آل عمران] (بعضي اهل کتاب غواړي چي کاش تاسو ګمراه کړي ؟!) نو حسد د حاسد د پاره خو في الحال د تکليف او عذاب باعث دی او دآخرت نقصان يې جلا دی په دې وجه چي د احکم الحاکمين په تقدير او حکم ګويا ناراضه دی او د ده تقدير بد ګڼل دي، کوم چي حکم علي الاطلاق په پوره حکمت سره مقرر کړی دي، او ځوک يې د دې د راز ځخه نه دي خبر کړی، نو په حسد کي د دې ځخه زياته نوره څه بدنصيبي ده؟ بيا په دې کي د مسلمانانو په حق کي د نامهرباني جذبه هم ده چي د دوی بدخواهي ده پکښي او په داسي کولو سره انسان د ابليس ملګری کيږي چي دی اول اول بدخواه (او حاسد) وو، او ښکاره ده چي د دې ځخه غټه بدبختي نسته، پاته سو هغه ځوک چي حسد يې په کيږي (يعني محسود چي حسد ور سره کيږي) نو ده ته په دنيا کي دا فائده ده چي دی د دې ځخه ماسوا نور څه غواړي چي حاسد يې هميشه په رنځ او عذاب کي وي، د حسد ځخه زيات يو عذاب نسته چي په ښکاره مظلوم وي لېکن په اصل کي ظالم او د حاسد خو د مرګ خبره هم د محسود د پاره خوشحالي نه وي ځکه چي دی خو غواړي دا چي حاسد هميشه په رنځ او عذاب کي متبلاوي او د ده نعمت ورته عذاب جوړوي، او په ديني اعتبار سره محسود ته دا فائده وي چي په اصل کي دی مظلوم وي او عين ممکنه ده چي حاسد د حسد په جوش

کي په ژبه او عمل سره واقعي پر ده څه ظلم هم وکړي او په دې وجه د حاسد نېکي دمحسود په حساب کي ولیکل سي او د محسود بدي حاسد ته منتقله کړل سي، ګویا د حاسد غرض خو دا وو چي د محسود څخه د دنیا نعمتونه واخیستل سي لېکن په دې خواهش کي حاسد دی د دنیا د نعمتونو څخه څه خو محرومه نه کړی بلکي د آخرت نعمتونه یې هم هغه ته حواله کړل، او پخپله یې په دنیا کي تکلیف او عذاب اخیستی وو د آخرت عذا ب یې هم پر خپل سر واخیستی، نو د ده خیال خو دا وو چي د خپل ځان خیرخواه او دمحسود دښمن یم لېکن عملاً چي غور وسي نو خپل دښمن او د محسود دوست دی چي پخپلو لاسو یې ځان په عذاب کي مبتلا کړی دي او که خوشحاله کوي یې نو صرف ابلیس خوشحاله کوي، کوم چي نه صرف د ده بلکي د ټولو مسلمانانو دښمن دی او دابلیس عادت دا دی چي کله څوک د علم، پرهیزګاری او مرتبې او مال څخه محرومه ووېني نو دې تصور څخه لړزېږي هسي نه دا سړي صابر او شاکر جوړ نه سي او دغسي د آخرت ثواب حاصل نه کړي، نو دی کوشش کوي چي دا د دنیا څخه محروم دی نو د آخرت څخه محروم ولي نسي، او حاسد د ده خبره ومني د ده دا کوشش هم کامیاب کړي، ځکه چي کوم سړی اهلِ علم او اهلِ دین دوست جوړوي او د دوی په مرتبه او حشمت راضي وي هغه به صبا د قیامت په ورځ د دوی سره وي، ځکه چي وېل سوي دي چي ثواب خو د هغو دي کوم چي عالم وي یا طالبِ علم وي یا لږ تر لږ د عالمانو دوست وي، او څنګه چي د حاسد په دوی کي د یوې ډلي سره تعلق نه وي په دې وجه دی د ثواب څخه بالکل محروم او په خالي لاسو وي، په اصل کي د حاسد مثال خو د هغه سړي په ډول دی چي د غصې څخه مغلوبه سي دښمن په ډبرو ووېلي او هغه خطاء سي ډبره بیرته پر ده ولګېږي او د ده سترګه په ړنده سي، او بیا زیات غصه سي بله ډبره را پورته کړي او ګذار پر وکړي خو هغه بیا پر ده ولګېږي بله سترګه ور ړنده کړي، اوبیا بله ډبره راپورته کړي او خپل سر مات کړي تر دې چي خپل ځان تباه او برباد کړي، او دښمن صحیح سلامت په خوند سره ولاړ وي، او د دې څخه ملګو او دښمنان هم د ده دا تماشه ګوري، او د خندا څخه بغل پر بغل رغړي، نو دا حال د حاسد دی چي شیطان ټوکي او ملنډي په وهي، نو دا دي د حسد آفتونه، او که خبره د دې څخه هم زیاته سي، او د حسد سره سره په لاسو او ژبه سره غیبت هم شروع کړي او په دروغو ویلو سره د حق او صداقت څخه هم منکر سي نو د دې وبال نور هم زیات سو نو کوم سړی چي دا حقیقت وپېژني چي حسد صرف زهرِ قاتل دی نو د عقل څخه دي کار واخلي په دا ډول د حسد د عظیمي بلا څخه خلاصي موندلای سي.

او عملي علاج یې دا دی چي په مجاهده او ریاضت سره دي د حسد اسباب د زړه څخه داسي

لیري کړي لکه يو شئ چي د ښځ ښخه کاږي او د حسد په اسبابو کي تکبر، غرور، دښمني، کینه، دمال او مرتبي محبت شامل دي لکه چي دغصې په باب کي ښوول سوي دي او د دې شیانو د ښخ ښخه ایستل د دې علاج دي او دا د دې دم دی چي دحسد نوم او علامه باقي پاته نسي، او بیا هم که چیري حسد پیدا کیږي نو د دې علاج دي کوي، یعني حسد چي کومه مشوره ورکوي د هغې خلاف دي کوي او عملاً دي هغه څه کوي کوم چي د حسد د خواهش خلاف وي، مثلاً حسد وایي چي پر محسود لعنت وکړه بد ردّ ورته ووایه نو د ده پر خلاف د ده صفت او ستاینه شروع کړه او که وایي چي غرور او تکبر وکړه نو د دې پرخلاف یې کوه، یعني د عاجزی او فروتنی ښخه کار اخله، او که خواهش دا وي چي د ده د نعمت زائله کولو کوشش کوه او دښمني ور سره کوه نو د دې پرخلاف محبت او دوستي ور سره کوه، او د دې ښخه بهتر به یې بل يو علاج نه وي چي په نشتون کي یې تعریف کوه او کار او عمل ته یې لوړه درجه ورکوه ستاینه یې کوه چي هغه یې واوري او خوشحاله سي، او دغه ډول به د عداوت او نفرت سلسه د ځان ښخه ختمه سي لکه چي ارشاد دی ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ فَإِذَا الَّذِي بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ عَدَاوَةٌ كَأَنَّهُ وَلِيٌّ حَمِيمٌ (حم السجدة:۳۴) (ته بدي په نېکي سره منع کړه بیا به ستا او د هغه سړي په مینځ کي چي دښمني ده د زړه دوست به دي جوړ سي) او دا هغه موقع وي چي کله شیطان د ده د راپارولو کوشش کوي وایي ورته چي که ته د ده په مخکي عاجزي او فروتني وکړې او د ده ستاینه او صفت وکړې نو بزدله او کمزوري به دي وګڼي، نوای مخاطبه! اوس ستا اختیار دی چي که غواړې نو د خدای حکمونه ومنه او که غواړې نو دشیطان غلامي قبوله کړه، او پر دې حقیقت هم نظر لره چي دوايي بې حده مفیده او ګټمنه ده لیکن لړترخه ده او په صبر سره د دې چیښل ګران خلمخا دي، مګر که د علم قوّت حاصل وي نو دا تریخوالی هم زغملای سې او دا په ښه ډول سره په ذهن کي کښېنو ل پکار دي چي د دین او دنیا نجات د دې تریخوالي په برداشت کولو کي دی، حال دا چي په حسد کي د دنیا د هلاکت او د دین د تباهی ښخه ما سوار نو ر هیڅ هم نسته،او بیا هغه کومه دوايي ده چي تریخوالي پکښي نه وي؟ او چي بې تکلیفه استعمالیږي ؟ نو د دې خبري خو توقع نه دي کول پکار چي دوايي به ترخه نه وي، چي مرض کله راځي نو هغه هم د ځان سره تکلیف او درد راوړي او د دې چي علاج کیږي نو څکه چي د شفا اُمید وي، کنې بغیر د علاج ښخه بیا مرض دهلاکت سبب جوړیږي او ښکاره ده چي د مرګ تکلیف د تریخوالي د تکلیف ښخه ډېر زیات وي.

## د دنيا د محبت علاج او د دې وضاحت چې د دنيا محبت د ګناهونو بېخ (جرړه) ده

چي رشتيا پوښتنه کوې نو دنيا د ټولو فتنو او فسادونو بېخ دی، د دې دوستي د ټولو ګناهونو نمه واره وي او د دې څخه به زيات منحوس او ذليله شئ کوم وي چي هغه د الله ﷻ دښمن، د حق (تعالی) د دوستانو دښمن بلکي د دې څخه زيات د خدای دښمنانو هم دښمن وي، د الله ﷻ خو ځکه دښمنه ده چي دالله ﷻ پر لاره د تلونکو بندګانو د حق د پاره پر دې لاره تلل محاله (ناشونې) کوي چي الله ﷻ ته يې رسائي حاصله نسي، او د حق د دوستانو د پاره د دې د ښمني انداز دا وي چي پخپلو دلفريبو (په فريب کي اچوونکو) مخانو سره دوی ځان ته راکشوي او د ځان و طرف ته يې مائله کوي، په داسي ډول سينګار سره د دوی مخ ته راځي، چي هغوی د دې په خاطر ټولي سختي او هر ډول تکليفونه په صبر سره برداشت کوي، او دخدای د دښمنانو سره دښمني داسي کوي چي په مکر اوريا او حيلو بهانو سره دوی د خپلي دوستي او وفا قائله کړي، او کله چي د فريب په دې دام کي ومښلي او صرف د دې سي، نو دوی په زخمي زړه پرېږدي او د دوی د دښمنانو غېږي ته ولاړه سي، او د دې دا عمل د يوې بد کاري فاحشي ښځي په ډول جاري وي چي د يو څخه ورروسته دبل او دبل څخه ورروسته د دريم اوبيا دځلورم غېږي ته ځي، غرض د بې شماره خلکو د عشق غېږي ګرموي، تر دې چي شوک د دې د حصول د پاره بې قراره وي شوک يې د وصال دمزې د پاره پرېشانه وي او شوک يې د فراق په غم کي دحسرت اوآرامانو د لاسه کرېږي تر دې چي دالله ﷻ په عذاب کي ګرفتاره سي، او د دې عذاب څخه خلاصون نا ممکنه دی، ما سوا د دې څخه چي انسان په ابتداء کي د دې حقيقت وپېژني د دې د آفتونو څخه خبر سي او ځان ليري ځيني ساتي، او داسي ځان ځيني ساتي لکه د جادوګرانو څخه چي ځان ساتل پکار وي، چي د نبي کريم ﷺ ارشاد دی چي د دنيا څخه خبرداره سئ چي د دې جادو د هاروت ماروت څخه هم ډېر سخت دی، او موږ د دنيا د حقيقت او د دې دآفتونو اومصيبتونو ذکر د کتاب په اول کي تر د ريم عنوان لاندي کړی دي او دلته هغه احاديث وراندي کول کيږي کوم چي د دنيا په مذمت (بدې) کي راغلي دي، او په قرآن مجيد کي هم پر دې موضوع د آيتونو تعداد ډېر زيات دی، بلکي دقرآن کريم او نورو اسماني صحيفو شان نزول هم دا دی چي مخلوق ته د دې دنيا څخه دآخرت دعوت ورکول سي، او دوی د دې د مصيبتونو او آفتونو څخه خبر کړای سي چي د دې د دې څخه ډډه وکړي او ځان ځيني وساتي.

## د دنیا مذمت په احادیثو کې

نبي ﷺ یو وار د مړې بزې (وزې) پر خوا را تېر سو، او ویې فرمایل چي: وګورئ دا غریبه څومره په ذلت او خوارۍ سره پرته ده چي څوک ورته ګوري هم نه، او قسم دی په هغه خدای د چا په لاس کي چي د مُحَمَّد ﷺ روح دی چي دا دنیا دالله ﷻ په نزد د دې مرداري بزې څخه زیاته ذلیله او خواره ده، او که دالله ﷻ په نزد د دې دنیا مرتبه د غوماشي د وزر برابره هم وای نو هیڅ وجه نه وه چي کافر ته یو غړپ اوبه هم نصیب سوي وای، او فرمایي: دا دنیا او د دې هر شئ د لعنت وړ دی ما سوا د هغې څخه کوم چي د الله دپاره وي، او فرمایي د دنیا محبت د ټولو ګناهونو بیخ او بنیاد دی، او فرمایي کوم سړی چي د دنیا سره محبت کوي دی دآخرت سره دښمني کوي او څوک چي دآخرت سره محبت کوي دی په دنیوي نقصان برداشت کولو کي هیڅ فکر نه کوي،او کوم شئ چي فاني وي د دې د پرېښولو او د باقي حاصلولو کوشش ولي نه کوي، نو دنیا پرېښوول آخرت اختیارول غوره دي.

او نبي ﷺ فرمایلي دي چي د الله ﷻ ارشاد دی چي هغه چي کوم څه پیدا کړي دي په دې کي ډېره ذلیل شئ دنیا ده کومه چي د ده دښمنه ده تر دې چي دکله څخه یې دا پیدا کړې ده د دې طرف ته یې کتلي هم نه دي خوښ کړي، او فرمایي: پر چا چي دسهار درا پورته کېدلو سره سره د دنیا شغل سپور وي د هغه شمار په مردانِ خدا کي نسي کېدای ځکه چي د ده مقام دوږخ دی او په دې دنیا کي هم دڅلورو بدبختیو غلام دي: (۱) د همېشه رنځ او تکلیف چي دخلاصون ځیني هیڅ صورت نه وي (۲) یوه داسي د تکلیف مشغله چي چیري ځیني فرصت نه وي (۳) مفلسي او غریبي چي مالدار ته یې د رسېدلو څه امکان نه وي (۴) داسي لامتناهي اُمید چي د حاصلېدو یې سوال هم نه پیدا کېږي.

**د دنیا په اړه یو عجیبه روایت:** ابو هریره رضی الله عنه روایت کوي چي یوه ورځ نبي کریم ﷺ ما ته وویل چي آیا تاته ټوله دنیا په یو وار نه در وښیم؟ دا یې وویل او زما لاس یې ونیولو او د انبارو او ګندګیو یوې غټې کوړي (خوري) ته یې بوتلم چي هلته هلوکي او د انسانانو کوپړی او ټوټې او نورپراته وو، ویې فرمایل اې ابو هریره ﷺ! دا سرونه به هم چیري یوه ورځ ستاسو په ډول د حرص او هوا څخه ډک وو نن بغیر له غوښو صرف د هلوکو یوه مجموعه ده،او ډېر ژر به دا نښه هم خرابه سي او بالکل خاوري به سي،او دا د ګندګی او پلیتی کومي کوړي چي ته وینې دا ډول ډول خوراکونه دي د کومو د حصول د پاره چي یې روح او ځان، څون او څوکه یې یوکړي وو، او اوس نه صرف لیري غورځول سوي دي بلکي نژدې ور ته ورتلل هم نه خوښوي او هر څوک ځیني لیري تښتي، او دا

کومي توتې چي هاخوا دې خوا الوځي دا هغه ښکلي جامې او زرق برق لباسونه دي، او دا هلوکي د هغه حيواناتو دي کوم چي دسپرلي د پاره استعمالېدل. او پر کومو چي به سپر بېدل د دنيا منظرې به يې کولې، نو دا ده تېوله دنيا کومه چي تا ته وښوول سوه، نو که څوک پر دې ژاړي نو ژاړي دي هغه دژړا قابل دی، نو څومره خلک چي هلته موجودول ټوله په ژړا سول.

**روايت:** اوفرمايي: الله ﷻ چي کله دنيا جوړه کړې ده، دا د ځمکي او اسمان په مېنځ کي راځړېږي، الله ﷻ چيري هم د دې طرف ته نه دي کتلي، دقيامت په ورځ به دنيا د الله ﷻ په حضور کي عرض وکړي اې پروردګاره! ماخپلو هغو بندګانو ته حواله کړه کوم چي ستا کمترين بندګان دي الله ﷻ به جواب ورکړي چي بس چپ وسه! اې نا کاره (خراب) شيه! چي په دنيا کي زما خو ښه نه وه چي زمايو بنده دي تا حاصله کړي نو نن دا څنګه روا کېداى سي.

يوه ورځ نبي ﷺ د باندي تشريف راوړی او صحابه کرامو ؓ ته يې وفرمايل په تاسو کي څوک دی چي روند وي او غواړي چي ده ته سترګي ملاؤ سي؟ او بيا يې پخپله وفرمايل: چي ياد لرئ! څوک چي د دنيا سره مينه لري او د دې سره يې اوږده اوږده اُميدونه تړلي وي الله ﷻ په دغه اندازه د ده زړه ړندوي، او کوم سړی چي په دې دنيا کي د زهد او د پرهېزګاری طرف ته مائل وي او د ده اُميدونه هم مختصره وي، ده ته د چاد تربيې (پالنې) او لارښووني څخه بغير د الله ﷻ د طرف څخه داسي علم ورکول کېږي چي د ده د لارښووني او رهبری د پاره د لاري دليل وي.

يوه ورځ نبي ﷺ د باندي تشريف راوړی او دا هغه ورځ وه چي ابو عبيده بن جراح د "بحرين" څخه څه مال دوی ته راليږلی وو. او انصاوو ته په دې باره کي معلومه سوې وه. او د سهار په لمانځه کي ډېر رش (ګڼه ګونه) جوړه سوې وه څنګه چي نبي ﷺ سلام وګرځوی نو خلک پر را وګرځېدل. نبي ﷺ د تبسم په ډول کي پوښتنه وکړه، کېداى سي تاسو به اورېدلي وي چي مال راغلی دي هغو ټولو ووېل چي ها! دوی ﷺ وفرمايل تاسو ته دي مبارک وي آئنده به داسي کاروايي کېږي چي ستاسو دخوشحالی سبب به جوړېږي زما ستاسو په محتاجه کېدلو دومره ډېره نسته څومره چي د دې خبرې ډېره ده چي هسي نه الله ﷻ تاسو ته د دنيا مال دومره در کړی لکه چي هغو خلکو ته يې ورکړی وو کوم چي ستاسو څخه مخکي وو، او بيا تاسو هم نور لالچيان (حارصان) سئ او د الله ﷻ سره منافسه (مقابله) کول شروع کړئ لکه چي هغو خلکو وکړه. او وېې فرمايل: د دنيا په ياد کي په هيڅ صورت کي هم مشغلوېدل نه دي پکار. نو هر کله چي دوی د دنيا د ذکر څخه لږ اندازه هم منع فرمايلې ده نو د دې سره د محبت او طلب سوال کله پيدا کېږي.

دنبي ﷺ د يوې اُوښې نوم "عضبا" وه، او په څغستا کي يوه اوښ د دې مقابله نه سوه کولای، يوه ورځ يو اعرابي خپل اوښ راوستی او د عضبا څخه يې په څغستا کي وګټل، مسلمانان په دې خبره خفه سول، دوی ﷺ وفرمايل: الله ﷻ حق دي ده په دنيا کي داسي شئ نه دي پيدا کړی چي سرفراز کړی يې دي بيا يې رسوا او خوار کړی نه دي، تاسو به ووينې چي دنيا به ستاسو طرف ته داسي رجوع وکړي چي ستاسو دين به دغه رنګه وخوري لکه اُور چي خاشاک خوري، او حضرت عيسی ﷺ فرمايلي دي چي دنيا خدای ونه ګڼئ چي تاسو خپل بنده جوړنه کړي، بلکي يو داسي خزانه تياره کړئ چي دهغې څخه د نفع فکر وي، او بيا هغه خزانه د داسي سړي سره کښېږدئ چي هغه يې ضائعه نه کړي ځکه چي د دنيا خزانه خو د بلا او آفت څخه خالي نه وي، دا شرافت صرف د حق (حق تعالی) و خزانې ته حاصل دی چي همېشه محفوظه وي.

**د بزرګانو آثار او اقوال:** علی بن ابی طالب ﷺ وايي چا چي شپږ کارونه پر ځای کړل ده دجنت د طلب او د دوږخ څخه د تېښتي سامان بشپړ کړی: (١) خدای يې وپېژندی او د ده د احکامو تعميل يې وکړی (٢) شيطان يې وپېژندی او د ده مخالفت يې وکړی (٣) حقيقت يې معلوم کړی او بيا يې عمل پر وکړی (۴) د باطل پته يې ولګوله او لاس يې ځيني واخيستی (٥) دنيا يې وپېژنده او پر يې ښووله (۶) آخرت يې وپېژندی او په طلب کي يې راپورته سو. ديو هوښيار وينا ده چي تا ته الله ﷻ څه در کړي دي دا يې ستا څخه مخکي خلګو ته هم ورکړي وو، او ستا څخه وروسته به يې هم ورکوي نو بيا ور سره زړه لګول څه معنی لري؟ ستا اصل نصيب د سهار مانښام دخوراک څخه ما سوا نو رهيڅ هم نسته، نو د دې لپاره غونډي شئ د پاره ته ځان ولي هلاکوې غوره دا ده چي په دې دنيا کي داسي روژه ونيسې چي د ماتولو قصد يې په آخرت کي وکړې چي په دې دنيا کي د کوم شئ په حرص کي ته هلا کېږې دغه صرف دنيوي مال او دولت دی چي عوض که يې په آخرت کي تا ته ملاو بدای سي نو فقط د دوږخ اور دی.

ابو حازم رحمه الله ته يو سړي وويل چي د دنيا محبت زما څخه لېونی جوړ کړی دي هغه کوم عمل دی چي دا محبت او مينه د زړه څخه په وېستل سي؟ دوی جواب ورکړی چي تا ته پکار دي چي څه ګټې نو په حلاله طريقه يې ګټه او بيا دغه حلاله ګټه په صحيح توګه خرڅ کوه، د دې څخه وروسته که د دنيا محبت وي نو وي دي، دا تا ته نقصان نسي در کولای، او په دې نصيحت کي دا راز پټ دی چي په د اسي کولو به د دنيا څخه پخپله د ده زړه پورته سي او خو ښه به يې نه وي.د يحی بن

معاذ رحمه الله ورپناه ده چي دنيا د شيطان دکان دی چي د دې څخه هر څه شئ اخيستل نه دي پکار کنې شيطان به تا خپل ګراک وګڼي در پسې به سي.

فضيل بن عياض رحمه الله وايي چي که د نيا د سرو زرو وي لېکن بيا به هم فاني ده اوکه آخرت د خلورو وي خو بيا هم باقي دی، نو دعقل تقاضا داده چي باقي پاته کېدونکی د فاني سروزرو پر ځای دوست ولرل سي دا څه خبره ده چي تا فاني خاوري پر باقي زرو باندي غوره کړي دي؟ ابو حازم رحمه الله ويلي دي چي د دنياڅخه ځان ساته چي دا هغه شئ دي چي کوم چا دا خپله کړه، دقيامت په ورځ به د ده پر سر دا آواز کوي چي دا هغه سړی دي چا چي دنيا بزرګه (غټه) ګڼلې وه کومه چي الله ﷻ سپکه کړې وه.

دابو امامه باهلي رحمه الله قول دی چي کله نبي کريم ﷺ دنيا ته دخلکو د پاره راوليږل سو نو د شيطان لښکر د شيطان خوا ته ولاړی او ويې ويل چي يو داسي پيغمبر دنيا ته راليږل سوی دي نو موږ به اوس څه کوو؟ ابليس وويل آيا امتيان يې دنيا دوسته (ملګرې)لري؟ (يعني تارک الدنيا خو نه دي؟)لښکريانويې وويل ها! دنياداره خو دي، ابليس وويل بيا تاسو ته بېره نه ده پکار هغوی که بُت پرسته نه وي نو نه دي وي زه به دوی د دنيا په محبت کي داسي مبتلا کړم(١) چي څه اخلي د حق د پاره به يې نه اخلي او (٢) چي څه ورکوي د حق د پاره به يې نه ورکوي او (٣) دکوم شئ څخه چي ځان ساتي د حق د پاره به يې نه ساتي (يعني هر څه به يې د نا حقی وي) چي تولي فتنې اوفسادونه د دې درې کارونو تابع دي،فضيل رحمه الله وايي چي که ټوله دنيامات حواله کړل سي او هغه هم په طريقه د حلالو اوبغير د حساب څخه نو هم به زه د دې څخه داسي نفرت کووم لکه تاسو خلک چي يې دمرداري څخه کوئ، حضرت ابو عبيده بن جراح رضی الله عنه د شام امير وو يو وار حضرت عمر رضی الله عنه د دوی خواته ولاړی نو ويې ليدل چي د دوی په کورکي يوه توره يو ډال او د يوې کجاوې (رحل) څخه ماسوا نور هيڅ نه وو،ويې فرمايل ته لږ، ډېر سامان ولي نه جمع کوې، عرض يې وکړی چي کوم ځای ته زما تلل دي دهغې د پاره دا څه کافي دي، مطلب دا چي قبر ته به ځم نو د سامان ضرورت څه دی.

او په آثارو کي منقول دي چي تعجب دی پر هغه چا چي خبر وي چي مرګ حق دی او بيا هم خوشحاله ګرځي او تعجب دی پر هغه سړي چي پوه وي چي دوږخ حق دی او بيا هم خاندي،او تعجب دی پر هغه سړي چي پوه وي چي دنيا د چاسره وفا نه کوي او بيا يې هم زړه د دې سره لګولی وي، او تعجب دي پر هغه سړي چي پوه وي چي تقدير حق دی او بيا هم د رزق د پاره در په دره ګرځي.

## د مذمومي دنیا حقیقت

تاسو ته به یاد وي چي د دې څخه مخکي موږ پر دې موضوع یو فصل دمعرفت ددنیا تر عنوان لاندي لیکلی دی، او س به دلته صرف دا پوه کېدل کافي وي چي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي دا دنیا او د دې دنیا هر شئ د لعنت قابل (ور) دی ما سوا د هغه شئ څخه کوم چي د الله ﷻ دپاره وي، نو د پوهېدلو خبره دا سوه چي هغه کوم شئ دی؟ چي صرف دالله ﷻ د پاره دی او دلعنت قابل نه دی؟ او باقي چي کوم شیان دي هغه څنګه ملعون دي او ولي د دغو محبت د ټولو ګناهونو بیخ مقرر سوی دی، نو په دې سلسله کي پوه سه! چي په دنیا کي چي څه شئ دي دغه پر درې قسمونو تقسیم دي:

(۱) یو قسم هغه دي چي ظاهر او باطن یې ددنیا څخه دی او دا کېدای نسي چي دغو ته د خدای دپاره وویل سي څکه چي دغه بالکل ګناه او ګناه ده او نه په لحاظ دنیت او نه په لحاظ د ارادي د خدای د پاره ورته ویل کیږي، بلکي جائز نعمتونه هم د دې تبیلې څخه دي چي دغه په هرحال صرف دنیوي دي، او دغفلت تخم کرل او د ټول ګناهونو پیدا کول د دوی کار وي. (۲) دویم قسم په ظاهري توګه خو د خدای د پاره ښکاري لیکن بالکل ممکنه ده چي نیت دغه هم دنیوي جوړ کړي او دا پر درې قسمه کېدای سي یعني: (۱) په فکر سره (۲) په ذکر سره (۳) د شهوتونو په مخالفت سره، چي که په دې درې سره وو کارونو عمل کول د حق تعالی دپاره وي، لیکن که د فکر څخه مراد حصول د علم وي چي په دې سره شُهرت او قبول عام او د مرتبې او حشمت حصول آسانه سي او د ذکر څخه مقصود دا وي چي په خلکو کي د خپل زُهد او پارسایي سکّه کښېښول سي، او د ترک د شهواتو ښدوره په دې غرض سره غږوي چي په خلکو د خپلي پاکۍ او پاکبازۍ سکّه کښېږدي، نو دا شیان به د دنیا په مذمومو شیانو کي شمارېږي که څه هم په ښکاره دا دخدای د پاره ښکاري خوملعون دي (۳) دریم قسم هغه دي چي په ظاهره خو خالص دنیوي بلکي بالکل دنفس د لذّت سره متعلق ښکاري لیکن ممکنه کېدای سي چي په نیت او اراده سره د خدای د پاره جوړ سي او شمار یې په مذمومه دنیا کي پاته نسي مثلاً طعام واخله چي که د خوراک څخه مقصد صرف دا وي چي عبادت کولو ته طاقت پیداسي، یا نکاح صرف د اولاد دپاره وکړای سي یالږ غوندي حلال مال طلب کړای سي چي په فراغت سره په عبادت کي مشغول سي نو دا ټول د خدای دپاره به وي، چي د نبي ﷺ ارشاد دی چي د کوم سړي غرض په دنیا حاصلولو سره لافي وهل یا فخر او غرور کول وي دی به د قهر الهي سره مخامخ سي، او که د مال په طلب سره یې مقصود دا وي چي د خلکو څخه سوال ونه کړم او بې پوره

(بې قرضه) زه ژوند تېر کړم نو دقیامت په ورځ به د داسي سړي مخ داسي برېښي لکه د څوارلسم سپوږمی، نو دمذمومي دنیا څخه مراد د نفس لذت دی چي دآخرت سره یې هیڅ تعلق نسته، لیکن هغه شئ دکوم چي آخرت ته حاجت دی که واقعي دآخرت د پاره وکړای سي نو دغه به دمذمومي دنیا څخه نه وي، تر دې چي حج ته د تللو په وخت کي د سپرلي د څاروي ګیاه (وابنه) به د حج په زاد راه کي شمار وي، او کوم ته چي موږ مذمومه دنیا وایو د دې د پاره الله ﷻ لفظ د "هوی" یعني حرص او لالچ استعمال کړی دی څنګه چي ارشاد دی: وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوَىٰ ﴿٤٠﴾ فَإِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَأْوَىٰ ‹النازعات:٤١› (چا چي نفس د خواهشاتو څخه وساتی د ده ځای به جنت وي) او په یو بل آیت کي یې دا ټوله په پنځه شیانو کي بو ځای کړي دي ارشاد دی: إِنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَلَهْوٌ وَزِينَةٌ وَتَفَاخُرٌ بَيْنَكُمْ وَتَكَاثُرٌ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ [الحدید: ٢٠] (د دنیا ژوند لوبي بازي او زینت او پر یوه بل فخر او د مال او اولاد په معامله کي د زیاتوب د خواهش څخه ماسوا نور څه نه دی) دغه ټول دا پنځه شیان یې په بل آیت کي داسي جمع کړي دي: زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَاءِ وَالْبَنِينَ وَالْقَنَاطِيرِ الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالْأَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ذَٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ‹آل عمران:١٤› (یعني د مخلوق په زړه کي د دې شیانو محبت ښایسته کړل سوی دي: ښځي، بچیان، د سرو او سپینو زرو کوړي، آسونه، څاروي او فصلونه. دا صرف د دنیا سامان دی) په دې ټولو کي چي کوم شئ دآخرت د کار د پاره دی هغه هم دآخرت په حکم کي دی، د ضرورت څخه زیات د دنیوي سامان اهتمام دآخرت څخه نه دی، بلکي داسي ویل پکار دي چي د دنیا درې درجې دي: د ضرورت مطابق خوړل چښل او مکان، د دې څخه چي کوم زیات وي هغه په ښایست، عیش او عشرت کي شامل دي، چا چي د ضرورت تر اندازې پوري قناعت وکړی هغه سیده جنت ته ولاړی، او څوک چي د دې څخه زیات سو هغه به د دوږخ خاشاک جوړ سي کوم سړی چي پر ضروري حاجتونو باندي اکتفا وکړه هغه د خطرې څخه خالي نه دي څکه چي د ضرورت دوه اړخونه دي یو ضرورت ته نژدې دی او بل تنعّم ته نژدې دی، د دې دواړو په مینځ کي دوه اړخونه نور دي کوم چي په کوشش سره حاصلیږي، ممکنه ده چي انسان ته د کوم شئ حاجت نه وي هغه په حاجت کي شمار کړي او د حساب د ورځي په خطره کي ځان واچوي، احتیاط کوونکو په دې وجه پر ضرورت باندي قناعت کړی دی. په دې قناعت کي اویس قرني رَحِمَهُ اللهُ د ټولو خلکو امام او پېشوا دی چي دوی د دنیا څخه

داسي کناره کشي کړي وه چي خلګو به ده ته لېونی ویلو او کال کال دوه دوه کاله به د دوی شکل چا نه لیدی د سهار د آذان پر وخت به د باندي تلو او د ماخوستن څخه وروسته به واپس راتلو، په لاري به یې د خورما تاکی ټولولې او خوړلې به یې که د ضرورت مطابق به خورماوي ملاو سوي وای نو بیا، کنې په تاکی به یې روژه ماتوله، زړې ټوټې به یې را ټولولې صفا کولې به یې جامې به یې ځیني جوړولې هلکانو به په ډبرو ویشتی چي دا لېونی دی نو فرمایل به یې چي په کوچنی ډبرو مي ولئ چي داودس او لمانځه څخه معذوره نه سم، دا سبب وو چي نبي کریم ﷺ د دوی د نه لیدلو سره د دوی تعریف فرمایلي وو، او حضرت عمر رضی الله عنه ته یې د ده متعلق وصیت وکړی، نو یو وار حضرت عمر رضی الله عنه پر منبر ودرېدی اهلِ عراق یې ټول سره جمع ولیدل نو ویې فرمایل اې خلګو! په تاسوکي چي څوک د عراق وي هغوی دي ودرېږي په دې کي هغوی ټول ودرېدل بیا یې وفرمایل په تاسوکي چي څوک د کوفې نه وي هغه دي کښېني، نو ټول کښېنستل بیا یې وفرمایل کوم چي قرنی نه وي هغوی دي کښېني نو ټول کښېنستل صرف یو سړی ولاړ پاته سو، د هغه څخه یې پوښته وکړه ته د "قرن" اوسېدونکی یې؟ هغه وویل هو! نو پوښتنه یې ځیني وکړه ته اویس قرني رحمه الله پېژنې؟ هغه وویل چي پېژنم یې لېکن هغه خو بې اندازې سپک سړی دي او د دې قابل نه دی چي تاسو یې پوښتنه وکړی د هغه څخه خو غټ احمق او پاګل (لېونی) او فضول سړی بل کېدای نسي، حضرت عمر رضی الله عنه چي واورېدل نو ویې ژړل او ویې فرمایل: چي زه خو د هغه په تلاش کي یم چي نبي ﷺ د دغه لېوني په باره کي فرمایلي وو: چي د ربیع او د مضر قبیلو د افرادو د مجموعي تعداد په برابر به دخدای بندګان صرف د اویس قرني رحمه الله په شفاعت سره جنت ته داخل سي او دا هغه قبیلې دي چي د دوی د شمېر اندازه تر ننه پوري نه ده سوې.

**د اویس قرني رحمه الله عجیبه قصه**: (تر دې عنوان دي مخکي عبارت هم وکتل سي نو پوره قصه په ذهن کي راسي) هرم بن حیان رضی الله عنه وایي چي څنګه ما دا خبره واورېده کوفې ته روان سوم او اُویس قرني مي تلاش کوی آخر د فرات د دریاب پر غاړه مي ولیدی چي اودس یې کوی اوجامې یې پرېولې، ما سلام وکړی هغوی جواب را کړی نو زما زړه وغوښتل چي لاس ور سره ملاؤکړم خو دوی لاس را ونه څغوی ما وویل اویسه! الله ﷻ دي پر تا رحم وکړي، وایه څنګه یې؟ او بې اختیاره ژړا راغله ځکه چي یو خو زما زړه د دوی د محبت څخه ډک وو بل د دوی پر کمزوری رحم راغلی، د دوی د سترګو څخه هم اوښکي رواني سوې ویې فرمایل الله ﷻ دي پر تا رحم وکړي اې هرم بن

حیانؒ : ته وایه ستا څه حال دی؟ او ته چا دې ځای ته راورسولې؟ ما پوښتنه وکړه چي تا ته زما او زما د پلار نوم څنګه معلوم سو او بیا زه دي وپېژندم څنګه چي د دې څخه مخکي خو تازه لیدلی نه یم؟ وې فرمایل چي ماته د دې خبر را رسوونکی هغه علیم خبیر ذات دی چي یو شئ د هغه دعلم څخه د باندي نه دی او بیا زما روح خو ستا روح پېژندلو ځکه چي د مؤمنانو روحونه کله دیو بل څخه ناخبره وي؟ که یو بل یې لیدلي نه وي خو د یو بل څخه خبرداره وي بلکي د یو بل سره یې دوستی او محبت وي، ما درخواست وکړی چي د نبي کریم ﷺ یو حدیث شریف ما ته بیان کړی زما د پاره به یو یادګار وي وېې فرمایل زما تن او بدن دي پر نبي کریم ﷺ قربان وي ما هغوی پخپلو سترګو نه لیدلی سو، صرف د هغوی خبري مي دنورو څخه زباني اورېدلي دي او زه نه غوارم چي دحدیثو راوي دي سم چي زما څخه محدث، ذاکر، یامفتری جوړېدل نه دي، ماته پخپله یو داسي شغل په مخ کي دي چي د دې شیانو څخه خلاصېدل زما دوس خبره نه ده، ما عرض وکړی نو بیا د قرآن کریم یو آیت ما ته واوروئ چي ستاسو د ژبي څخه یې اورېدل به زما د پاره نېک بختي وي او ما ته دعاء هم وکړئ او څه نصیحت راته وکړئ چي پر هغه عمل وکړم ځکه چي زما زړه ستاسو د محبت څخه ډک سوی دي او دا محبت او دوستی صرف د الله ﷻ په خاطر ده نو زما لاس یې ونیوی د فرات د دریاب پر غاړه ودرېدی او وې فرمایل: أَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيطٰنِ الرَّجِيمِ او په ژړا سو بیا یې وفرمایل چي زما خدای خو ما ته داوایي او ته پوه یې چي د هغه فرمان ډېر حق او ډېر رشتیا (حق ترین او راست ترین) دی چي: وَمَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لٰعِبِينَ (۳۸) مَا خَلَقْنٰهُمَآ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ (۳۹) إِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ مِيقٰتُهُمْ أَجْمَعِينَ (۴۰) يَوْمَ لَا يُغْنِي مَوْلًى عَنْ مَّوْلًى شَيْئًا وَلَا هُمْ يُنْصَرُونَ (۴۱) إِلَّا مَنْ رَّحِمَ اللهُ إِنَّهُ هُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ (الدخان: ۴۲) (او موږ اسمانونه او ځمکي او څه چي د دواړو په مینځ کي دي په دې توګه نه دي جوړ کړي چي موږ یو عبث کارکوونکي وو موږ دا دواړه نه دي جوړ کړي مګر په پوره حکمت سره لېکن زیاتره خلک په دوی کي نه پوهېږي یقیناً د فیصلې والاورځ د دې ټولو د وعدې ورځ ده په کومه ورځ چي به څوک خپل د چا یو زره پکار رانسي او نه به یې مدد وسي مګر پر چا چي الله ﷻ رحم وکړي بې شکه هغه ډېر زبردست او لوی مهربانه دی) [کشف الرحمان] د دې آیت د لوستلو سره یې داسي چغه ووهله او ماوویل چي ګوندي بې هو ښه سو، او وېې فرمایل ابن حیان ستا پلار مړ سو ته به هم نژدې مړ سې د دې څخه وروسته به جنت ته ځې یا دوږخ ته ستا نېکه آدم ؑ د دنیا څخه

تللی دي حضرت حواء علیها السلام مړه ده، حضرت ابراهیم خلیل الله حضرت موسی کلیم الله حضرت داوٗد خلیفة الله او حضرت مُحَمّد رسول الله علیهم السلام هم د د دنیا څخه رخصت سو، د نبي ﷺ ځای ناستی حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه د دنیا څخه رخصت سو زماورور او دوست عمر فاروق رضی الله عنه ولاړ، واعمراه واعمراه، ماوویل اې اویس! الله جل جلاله دي پر تا رحم وکړي عمر رضی الله عنه خو ژوندی دي، ویې ویل زما رب ما ته خبر را کړی چي حضرت عمر رضی الله عنه ولاړی د دې دنیا څخه بیا یې وفرمایل چي زما او ستا انجام هم دا دی، بیا یې پر نبي ﷺ درود وواییی او دعاء یې وکړه او ویې فرمایل چي نصیحت دا دی چي د کتاب الله او د صالحانو دامت لاره اختیاره کړه او یو ګړی هم د مرګه څخه مه غافله کیږه، خپل قوم ته ولاړ سه نو هغو ته نصیحت کوه او د الله جل جلاله مخلوق ته نصیحت کول مه پرېږده او د جماعت د موافقت څخه قدم هاخوا دې خوا مه اړوه کنې بې دینه به سې او ته به خبر هم نه یې او د دې انجام به دوږخ وي، او ویې ویل اې ابن حیّان بیا نه ته ما لیدلای سې نه به زه تا ووینم، ته ما په دعاء کي یادوه زه به تا په دعاء کي یادوم ته ها خوا ته ولاړ سه!، زه دې خواته ځم ما یو ګړی ورسره تلل غوښتل لیکن ونه سول، هغه پخپله هم ژړل او زه یې هم په ژړا کړم، ما د شا د خوا ورته کتل تر دي چي په یوه کوڅه کي پناه سو، بیا یې زه د حال څخه خبر نه سوم.

اې ورورہ! چا چي د دنیا نقصانونه (او تاوانونه) پېژندلي وي، د هغوی سیرت (کړه وړه، اخلاق) داسي وي (لکه د اویس قرني) او د انبیاوٗ او اولیاوٗ د لاري ده، داخلګ احتیاط کوونکي او عافیت اندیش (سلامتیا پېژندونکي) وي که داسي تا ته ممکنه نه وي نو د حاجت پر اندازې باندې په اکتفاء کولو عادت جوړ کړه او د عیش او عشرت او تنعّم څخه بالکل لیري وسه چي په خطره کي پرې نه وځې، د دنیا دومره بیان کافي دی نور بیان سوی دي.

## شپږم اصل: د مال د محبت (میني) علاج
## او د بُخل او حرص آفتونه او د سخاوت مدح او ستاینه

پوه سه! چي د دنیا بې شماره ښاخونه دي یو ښاخ د مال او نعمت دی او یو ښاخ د جاه او حشمت دی، لیکن تر ټولو پوري چي د مال تعلق دی نو د هغه د ختي فتنې لامل دی، د الله جل جلاله فرمان دی: فَلَا اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ (۱۱) وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْعَقَبَةُ (۱۲) فَكُّ رَقَبَةٍ (۱۳) أَوْ إِطْعَامٌ فِي يَوْمٍ ذِي مَسْغَبَةٍ (البلد: ۱۴) (نو هغه سړی د دین پر غونډی نه وختی او تا ته معلومه ده چي د غونډی څخه څه مراد دی دغه د چا غاړه دغلامی

شخصه ازادول دي یا خوراک ورکول دي دلوږي په ورځ قریب (رشته دار) ته) او یوه خونډی د دې شخصه مشکله او ډېره ستونزمنه نسته ځکه چي دمال شخصه بغیر چاره نسته، چي دا سره د دې چي د شهوت او عیش وعشرت سبب دی، دآخرت هم توښه کیږي، یعني د خوراک، چښاک، اغوستلو، وسېدلو د ځای شخصه ما سوا څه چاره نه وي او دا ټول شیان پوره مال دی او په مال سره په لاس ارځي، او د دې پر نه ملاوېدو صبر نسي کېدای، لیکن د دې پیدا کول هم د سلامتیا په خطره کي د اچولو شخصه بغیر ممکن نه وي او که دانه وي نو د مفلسی په سبب شخصه د کفر خطره راپېښیږي، او که وي نو دمالداری په وجه د تکبر او ځان ښوولو بېره وي، فقیر به د دوو حالونو شخصه خالي نه وي یا به حریص وي یا قناعت خوښوونکي، قناعت ښه صفت دی، او د حرص دوه شکلونه دي: د خلکو شخصه طمع ساتل یا په خپل لاس کار کول، او دا دویم شکل محمود دی اول مذموم، او همدغه ډول به مالدار سړی یا بخیل وي یا سخي، بخل په هر حال کي بد دی، او په سخا کښي د اسراف او د مینځلاري دوه شکلونه کېدای سي د کومو شخصه چي یو خو په هر حال بد دی لیکن د دواړو د یو بل سره ژور تعلق دی په دې وجه د دوی پېژندل او امتیاز ضروري دی، لنډه دا چي د مال نقصانونه هم سته او فائدې هم، په دې وجه د دواړو پېژندل ضروري دي چي خلک یې د نقصانونو شخصه خوندي سي او فائدې یې حاصلې کړي.

**د مال د محبت بدوالی:** د الله ﷻ ارشاد دی: لَا تُلْهِكُمْ أَمْوَالُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ (المنافقون:۹) (غافل دي نه کړي تاسو مال ستاسو او نه اولاد ستاسو دخدای د یادولو شخصه او څوک چي دا کار وکړي نو دغه په تاوان کي دی) او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: چي د مال او مرتبې محبت په زړه کي نفاق داسي را شین کوي لکه اوبه چي وابښه (گیاه) راشنه کوي، او فرمایي چي دوه وږي شرمښان د پسو په رمه کي داسي تباهي نسي پیدا کولای ځنګه چي د مال او مرتبې محبت د انسان دین تباه کوي، او فرمایي: چي زما شخصه وروسته به یو قوم پیدا سي چي ډول ډول مزیداره خوراکونه به خوري او ډول ډول ښه جامې به اغوندي او د ښکلو ښځو په لټون کي به وي او د ګران قیمتو سپرلو (آسونو، (چي زموږ په زمانه کي موټران دي) اهتمام به کوي، په لږ شئ به د دوی نس نه ډکیږي په ډېره به هم قناعت نه کوي، د دوی ټول کوشش به د دنیا په طلب کي وي، دنیا به معبوده جوړه کړي او هر څه به د دې دپاره کوي، زه چي مُحَمّد ﷺ یم او د الله رسول یم زما تاسو ته د احکم دی چي تاسو او یا ستاسو په اولاد کي که څوک د داسي سړي سره ملاقړ سو نو نه دی ورته سلام

کوي او نه دې د مرض پوښتنه کوي نه دې په جنازه کي شريکيږي نه دې د دوی د مشرانو احترام کوي چاچي داسي وکړل نو د دين په بربادی کي به د دوی سره برابر شريک وي او د دوی يار اومددګار به وي، او فرمايي دنيا دنيا دارو ته پرېږدئ، چا چي دکفايت څخه زيات مال د دنيا حاصل کړی دی پخپله د دې مال دلاسه هلاک سو، او خوند دا دی چي دی به خبر هم نه وي، او فرمايي: بنده هميشه مال مال کوي (يعني مال خوښوي او د مال لفظ يې هر وخت پر خوله وي) لېکن دا سوچ نه کوي چي کوم ته دی "زما مال وايي" فخر پر کوي په دې کي په حقيقت کي ده ته هيڅ نه ملاويږي ما سوا د هغه شئ څخه چي کوم خوري او د (فُضلې په صورت کي) يې ضائع کوي، يا د هغو جامو څخه چي اغوندي او څيري يې، يا هغه صدقه چي ورکوي يې او دغه د همېشه د پاره ساتلې لري، يو سړی عرض وکړی يا رسول الله ﷺ دا څه وجه ده چي ما ته دمرګ د پاره د ځان سره يو سامان هم په نظر نه راځي؟ وېې فرمايل: آيا ستا سره د ژوند څه مال او اسباب موجود دی عرض يې وکړی هو! هغه خو سته، وېې فرمايل بيا دغه د ځان څخه مخکي مخکي ولېږه يعني صدقه يې کړه، ځکه چي انسان په مال کي لګېدلی وي او هم د دې سره پاته کېدل غواړي، که دغه مال په دنيا کي پاته سي نو دی هم په دنيا کي پاته کېدل غواړي او که مخکي آخرت ته ولاړ سي نو بيا پخپله هم پسې په تللو کي د ده بېړه نه وي، او فرمايي چي بنده کله د دې دنيا څخه رخصتيږي نو خلک پوښتنه کوي چي وروسته يې څه پرې اينبي دي او فرښتې دا ګوري چي مخکي يې څه لېږلي دي (چي هلته يې پکار سي) د حضرت عيسی ؑ حواريانو د دوی څخه پوښتنه وکړه چي دا څه خبره ده چي ته پر اُبو سربېره (لوړ) تللای سي او موږ نه سو تللای؟ وېې فرمايل تاسو په خپلو زړونو کي مال او زر څنګه ګڼئ؟ دغو وويل موږ يې ډېر ښه ګڼو، وېې ويل زما په نظر کي د دې مرتبه د خاورو څخه زيات نه ده،

**قصّه**: يو سړي حضرت ابو درداء ؓ ته ډېر تکليف ورسوی او ډېر يې آزار کړی، دوی د ده په حق کي وويل: اې خدايه! داسړي ته روغتيا او زيات عمر ورکړې د دنيا ډېر مال دولت يې نصيب کړې دا دعاء د دوی په نزد ډېره بده دعاء وه ځکه چي کله دا هر څه حاصل سي نو خامخا به په غرور او تکبر او تساهل او تغافل سره د فکرِ آخرت څخه بې فکره سي او دا د هلاکت اصل سامان دی. حضرت علي ؓ يو وار درهم په لاس کې ونيول وېې ويل ته هغه شئ يې چي زما د لاس څخه ما ته فائده نسې را کولای. د حسن بصري ؓ قول دی چي کوم چا د سرو او سپينو سره محبت وکړی الله دی خوار کړی.

**قصه**: سلمه بن عبدالملک رحمه الله د خلیفه عمر بن عبد العزیز رحمه الله د مرگ په وخت دوی ته وویل اې امیر المؤمنین! تا خو عجیبه کار وکړی چې نه چیرې لیدل سوی دي نه اوریدل سوی یعني دیارلس ځامن دې وروسته پرېښول لیکن یوه پوله دې د دوی د پاره پرې نښوول. ویې فرمایل مال مې راپور ته کړه کښېینوه مې چې کښېښولو یې نو ویې ویل: خوړ را دې خوا کړه، واوره ما د دوی مال خو نورو ته نه دی ور کړی، بیا د نورو مال دوی ته څنګه حواله کړم؟ او زما زوی خو یه یا نیک بخته وي او د الله ﷻ اطاعت گذاره به وي یا به نالائقه او غافلغ وي نو که اولنی وي نو الله ﷻ ورته کافي دی، او که نالائق وي نو په هر حال کې چې وي زما وره سره هیڅ فکر نسته.

مُحَمّد بن کعب القرضي رحمه الله ته ډېر مال یو وار په لاس ورغلی، خلګو ورته وویل: اوس دا د خپل اولاد د پاره خوندي کړه، دوی جواب ورکړی چې دا مال زه د ځان د پاره الله ﷻ ته لیږم (خیرات کوم یې) او خپل اولاد د الله ﷻ ته ولې نه پرېږدم. دیحی بن معاذ رحمه الله قول دی چې مالدار سړي ته د مرگ په وخت کې دوه آفتونه مخکې وي کوم چې نورو ته نه وي یعني یو خو ټول مال د ده څخه واخیستل سي دویم د ټول مال حساب ورکول وي (چې حرام وو که حلال او که حلال وو نو خرڅ دې ولې نه کړی).

**فصل**: او پوه سه! چې د مال هر څومره مذمت چې سوی دی لیکن په ځینې وجوهو سره دا خوښ (او ممدوح) هم مقرر کړای سوی دی ځکه چې په دې کې که چیرې د بدی او شر اړخ لیدل کیږي نو هلته د خیر او ثواب اړخ پکښې هم موجود دی، پخپله الله ﷻ مال دخیر او شر د دواړو حامل مقرر کړی دی ارشاد دی: إِنْ تَرَكَ خَيْرًا الْوَصِيَّةُ...الخ [البقرة] (که یو مال یې په ترکه کې پرې ایښی وو، نو د خپل مور او پلار او خپلوانو د پاره دې صیت وکړي...الخ) او نبي ﷺ فرمایلي دي چې بنده بنه وي نو مال هم بنه شئ وي چې په مفلسي کې هم د کفر خبرې په زړه کې راګرځي، او هغه داسې چې بنده محتاجه وي او د پوډی ټکره ور سره نه وي او ښځه بچیان یې د لوږې څخه کمزوری کیږي حال دا چې دنیا د نعمتنو څخه ډکه وي نو چې دی بدحاله وویني شیطان یې په غولولو شروع سي، چې دا څه عدل دی او ستا سره د الله ﷻ انصاف دا دی؟ آخر د قسمت او نصیب دا ناهمواري تر یو حکمت لاندې ده چې فاسقانو او ظالمانو ته خوښې دومره ورکړې ده چې پخپله هغوی ته هم اندازه نسته چې د دوی سره څومره مال دولت او څومره نعمتونه دي، او بل طرف ته ستا په پول بې چاره د لوږې څخه هلا کیږي او یوه روپې در سره نسته، که خدای ته ستا د دې حاجت علم نسته نو د دې مطلب خو دا سو

چي د هغه علم ناقص دى او كه معلومه وي ورته خو ستا د حاجت پوره كولو شخه معذور دى نو په قدرت كي يې نقص دى او كه خبر هم وي او قادر هم او بيا يې هم نه دركوي نو په رحمت كي يې نقص دى، او كه ستا د محرومي سبب دا وي چي تا ته به د دې ثواب په آخرت كي دركول كيږي، نو حال دا دى چي د لوړي د تكليف دركولو شخه بغير هم كه هغه وغواړي نو ثواب دركولاى سي نو ولي يې نه دركوي ؟ او كه دا قدرت ورته حاصل نه وي، نو بيا خوبې قدرت ته كامل نسي ويل كېداى، نو بيا دا عقيده شنگه د تقسيم قابل كېداى سي چي هغه رحيم هم دى، سخي او كريم هم دى ليكن د دې شخه به هيڅ هم ملاؤ نسي ما سوا د رنځ او غم شخه. د هغه خزانې خو د كي دي ليكن د دې شخه خو چا ته شه نسي ملاوېداى، او د دې متضادو شيانو يو ځاى كېدل خو صريحاً گران دي، نو دلته شيطان ته موقع ملاؤ سي چي انسان په وسوسه كي مبتلا كړي چي په مسئله د تقدير كي ومنبلي چي د دې راز هيچا ته ظاهر سوى نه دى او په دې كړكيچ او پرېشاني كي غصه پر ده غالبه سي او اسمان او زمانې ته بنكنځل شروع كړي او وايي چي د اسمان دماغ خراب سوي دي او زمانه چپه چليږي چي پر نا اهلو باندي خو د نعمتونو باران دى(او حقداره په بلا كي گرفتار دى) اوس د داسي سړى كه شوك پوه كول هم وغواړي چي دا اسمان او زمانه د الله ﷻ دحكم تابع دي نو گوره چي ده ته شه وايي، او د غصې په وجه ځيني انكار هم وكړي او كافر سي او كه يې ومني هم نو بالواسطه پخپله الله ﷻ ته د ظالم او جفا كاره ويلو نمه وار سي، او دا پر خپل ځاى كفر دى، او په دې وجه صاحب شريعت فرمايلي دي چي زمانې ته بد مه واياست چي زمانه خداى دي يعني كوم شئ ته چي تاسو د خپلو كارونو حواله كولو نسبت كوئ او بيا ورته زمانه واياست دغه په اصل كي د الله ﷻ ذات دى نو د مفلسى شخه د كفر بوى راځي، ما سوا د هغو مفلسانو شخه دكومو چي عقيده او ايمان پوخ وي او كوم چي په مفلسى كي هم راضي وي، بلكي دا تصوركوي چي د دوى خير او عافيت هم په دې مفلسى كي دى ليكن دا درجه عوامو ته حاصله نه وي، نو غوره دا ده چي د ضرورت د اندازې پر مال باندي اكتفاء وكړي، نو په دې اعتبار سر مال يو بد شئ نه دي بلكي بنه دى، او بل په دې اعتبار سره هم دا بنه شئ دي چي د دين تولو بزرگانو همېشه د آخرت سعادت مقصود دين مقرر كړى دي، او د دې حصول د درې نعمتونو شخه بغير ممكن نه دى، يو خو په نفس كي دننه وي يعني علم او نېك اخلاق دويم په بدن كي دي چي صحت او سلامتيا وي، او دريم د بدن شخه د باندي دي او دغه د ضرورت په اندازې د كفايت د دنيا مال دى، او په دې نعمتونو كي ډېر ذليله نعمت هغه دى كوم چي د بدن شخه دباندي دى يعني مال او دولت، او په مال دولت كي ډېر بد شئ سره او سپين زر دى چي في نفسه د دې

څخه انسان ته آخر څه حاصليږي؟ ليکن په دې کې دوه، او جامه د کار شئ دي او دغه د جسم د پاره وي او جسم د دې دپاره وي چې حواس برقراره وي، بيا د حواسو مقصد د عقل دام خورول دي، او عقل ځکه ضروري دي چې د زړه څراغ په دې سره رڼا حاصلوي چې په دې رڼا کې د حضرت الهي ديدار وکړای سي، او دا معرفت الهي د سعادت تخم دی نو د هر شئ اصل غرض او غايت د الله ﷻ ذات دی دغه اول دی او دغه آخر او د ټولو شيانو هستی د ده په هستی سره قائمه ده کوم چې دلاري د حق د پاره کافي وي، او باقي ټول مال به د ده په نظر کې زهر قاتل وي، نو که بنده پخپله بنه وي نو د ده مال به بنه وي او په دې وجه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چې: يا الله! آل مُحَمّد ﷺ ته خو د کفايت په اندازه مال ورکړه، او دا دعاء يې ځکه وکړه چې دوی ﷺ د دې څخه خبر وو چې د کفايت د اندازې څخه چې څه زيات وي هغه به د هلاکت سامان ثابتيږي، او څه چې د حاجت څخه کم وي په دې کې به دکفر د بوی خطره وي، او دا هم د هلاکت سامان دی، نو څوک چې په دې پوه سو هغه چيري هم مل د دوستی ور نه کړي، ځکه څوک چې يو شئ د کوم غرض د پاره طلب کوي هغه د دغه غرض طلب وي نه د دغه شئ، نو کوم سړی چې مال دولت ګران لري دی ګويا دغه پخپل نفس کې منعکس وړني او د دې حقيت څخه ناخبره وي (چې دا د هلاکت سبب دی) ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي چې درهم او دينار سر کښته غلامان دي، او کوم سړی چې د يو شئ په غلامی کې بند وي دغه شئ ګواکي د ده خدای دی، او ځکه حضرت ابراهيم ﷺ دعاء کړې وه: وَاجْنُبْنِي وَبَنِيَّ أَنْ نَعْبُدَ الْأَصْنَامَ (ابراهيم:۳۵) (اې الله ما او زما اولاد د بتانو دعبادت څخه وساتې) او بزرګانو د دې آيت په وضاحت کې ويلي دي چې دلته د بُت څخه مراد سره او سپين زر دي چې ټول مخلوق خو په دې بُت پسې لګيا دي، کنې دپيغمبرانو درجه خو د دې څخه ډېره لوړه وي چې د بت پرستی څخه بيريږي.

## د مال د فائدو او نقصانونو تفصيل

ياد لره چې دمال مثال د مار په ډول دی چې د زهرو سره سره پکښې ترياق (فائده) هم سته، او تر څو چې زهر د ترياقو څخه او ترياق د زهرو څخه جلا نسي، تر هغه وخته پوري د دې په رازونو پوهېدل نسي کيدلای نو موږ پر هريوه جلا جلا رڼا اچوو، او آفتونه يې بنيو، د مال فائدي پر دوه قسمه دي: يو دنياوي دي او د دې وضاحت ته ضرورت نسته دا هر چاته معلومي وي او نوري ديني دي، د دې درې قسمونه دي:

(۱) اول دا چې مال پر ځان خرڅ کړی د عبادت په توګه يا د پاره د عبادت، په عبادت کې د خرڅ کولو

شخه مراد حج او جهاد اونور په کول دي چي دا عينِ عبادت دی، او د سامان د عبادت د خرڅ کولو شخه مراد دا دی چي ډوډی جامې او د نورو ضرورتونو د پاره د کفايت په اندازه خرڅ کرای سي، څکه چي دا هغه شیان دي چي که د ضرورت په اندازه حاصل سي نو انسان د عبادت کولو قابل کېدای سي، او په فراغت سره عبادت کولای سي، او دا هغه دي کوم چي عبادت ته په رسېدلو کي مددګار ثابتیږي دغه عينِ عبادت دی، چا ته چي د کفايت په اندازه دا شیان حاصل نه وي هغه به د دې په طلب کي سرګردانه وي او د عبادت شخه به محرومه وي، نو د کفايت په اندازه که مال حاصل سي او مقصود د دې شخه د عبادت د پاره فراغت وي نو دا پر خپل ځای عين عبادت دی، او په ديني فائدو کي شامل دی په دنيوي فائدو کي نسي شمارل کېدای او په دې کي دنيت او فکر او خيال مطابق تغير او تبدّل هم ممکن وي او د دې انحصار د زړه پر قبله باندي دی چي د زړه قبله يې څه ده؟ که دغه دآخرت دلاري د پاره فراغت حاصلول وي نو دا د کفايت په اندازه مال د لاري توښه به هم وي او لار به هم وي، د شيخ ابو القاسم ګرګاني سره حلاله لږ غوندي ځمکه وه چي د ضرورت په اندازه روزي به څيني دوی ته حاصلېده، او ما دا بو علي فارمدي رحمه الله شخه واورېدل چي يوه ورځ يې د دې شخه غلّه راوړل او موږ يې څيني ډک کړی وربې ويل چي دا د ټولو توکل کوونکو د توکل په عوض کي ورکولو ته تيار نه يم، او د دې رمز بيخ ته هغه څوک رسېدای سي کوم چي د زړه په مراقبه کي ډوب وي او خبر وي چي فراغت د معاش د لاري د دين د پاره څومره مددګار ثابتيږي.

(۲) دويم قسم دا دی چي خلکو ته يې ورکړي او دا ورکړه پر څلور قسمه ده: اول شئ صدقه ده او د دې ثواب په دين او دنيا کي ډېر زيات دي او په دې کي د فقيرانو د دعاء شخه ماسوا د دوی خوشحالي هم شامله وي، چي ډېر لوی شئ دي، لېکن دا ثواب هغه ته حاصليږي چي د چا سره مال وي (او صدقه يې کړي) دويم شئ مروّت دی چي انسان يې پخپلو دوستانو او قريبانو باندي وخوري، خواه دغه خلک پخپله مالدار ولي نه وي چي نېکي خو په هر حال نېکي ده که څه هم دمالدار سره وسي، هديه او تحفې ورکول همدردي کول او د خلکو حقونه اداء کول هم په مروّت کي شامل دي، بلکي د عامو رسمونو په اداء کولو کي هم څه باک نسته که څه هم د مالدرانو سره ولي نه وي، او د سخاوت صفت د دې شخه پيدا کيږي چي غټ اخلاقي ښه والی دي او لکه چي تعريف يې بيان سوی دي، دريم شئ تحفّظ د ناموس دی، يعني خپل عزت په ذريعه د مال محفوظ کول. او هغه دا چي مثلاً د څيني شاعرانو او لالچي خلکو عادت وي چي دمالدارنو پر مال نظر ساتي او د خپل حرص او لالچ اور د دوی په مال سره د مړه کولو آرزومند وي، او که دوی ته څه ورنه کړل سي نو ژبوړتيا او چغل

خوري کوي او د فحش ويلو څخه هم نه منع کيږي، او دنبي ﷺ ارشاد دي چي کوم مال ژبورو او چغل خورو ته د خپل عزت د خوندي کولو د پاره ورکړل سي دغه هم صدقه وي چي د فحش کوبي او غيبت لاره ده ته بنده سي ځکه چي که داسي ونسي نو کيداى سي چي هغه خلک دبدلې اخيستلو قصد وکړي او نوبت دبنمنى ته ورسيږي او دغه ډول دا سلسله اوږده سي نو د دوى خوله بندول پکار دي لېکن که مال نه وي نو د دې آفت څخه به خلاصون (نجات) څنګه پيدا کړي، څلورم شئ دا دی چي د حق خدمت اداء کړل سي يعني هغو خلکو ته ورکړل سي کوم چي خدمت کوي، ځکه کوم سړی چي نوکر (مزدور، خدمتګار) نه لري او ټول کارونه پخپلو لاسو کوي مثلاً پرپولل، بازار ته تلل راتلل، اخيستل، خرڅول او نور نو ټول وخت به يې د دې کارو نذر سي او پر هر سړي چي کوم فرض عبادت دی دغه خو بل څوک نسي داء کولای، او په ذکر فکر کي خو څوک خپل نائب نسي جوړولای، نو که ټول وخت په ناروا کارنوو کي صرف سي نو د دې فرضو ادا کولو ته به وخت دکومي خوا رسني، په ځانګړې توګه په داسي حال کي چي عمر کوتاه او مختصر دی او مرګ د نژدې څخه نژدې را روان دی، او دآخرت سفر ډېر اوږد منزل دی نو د دې د پاره ډېره توښه هم پکار ده او يوه يوه ساه هم قيمتي ده، نو د کوم شغل څخه چي نجات (خلاصون) ممکنه وي ځان دي ځيني خلاص کړي چي د زياتو څخه زيات وخت په عبادت کي تېر سي، او دا بغير د مال څخه کېداى نسي يعني چي مال وي نو د خادمانو، نوکرانو ته به يې ورکړي نور کارونه به په هغو کوي، او په دې کي شک نسته چي خپل کار پخپلو لاسو کول کي هم ثواب دی لېکن دا درجه د هغو خلکو وي د کومو عبادت چي دبدن سره وي نه چي د زړه سره، لېکن د کوم سړي معامله چي د زړه سره وي او دی د آخرت د کار علم هم حاصلوي د ذکر او فکر د اهميت څخه خبر وي د ده کار په نورو کول پکار دي چي فراغت ورته حاصل سي کوم چي د دغو دنيوي کارونو څخه ډېر اهم او عزيز دی کوم چي په جسماني توګه سره ادا کيږي.

(۳) دريم قسم دا دی چي يو خاص سړي ته خيرات نه ورکوي بلکي عام خيراتي کار کوي مثلاً پل جوړ کړي، مسجد جوړ کړي، سراى جوړ کړي، شفاخانه (هسپتال) جوړ کړي يا دغريبانو د پاره يو جائيداد وقف کړي او نور، چي دې ته عام خيرات وايي کوم چي تر ډيري مُدې پوري قائم هم وي، بلکي دمرګ څخه وروسته يې ده ته فائده رسيږي او خلک ځيني هم فائده حاصلوي، او دا خبره هم د مال څخه بغير ممکنه نه ده. نو دا دي هغه فايدې کومي چي د مال په وجه دين ته رسيږي،او د دې دنيوي فائدې خو د چا څخه پټي نه دي، چي همدا مال او دولت دی چي بنده د دنيا په نظرونو کي

باعزته او محترم جوړوي، دا هغه خلگ دي چي دنیا دوی ته محتاجه وي او دوی پخپله د دنیا څخه بې نیازه وي، دا هغه شئ دي چي وي نو د دوستانو، ورنو کمی نه وي په دي سره بنده په خلگو کي محبوب او مقبول وي او د هیڅ مجال هم نه وي چي ده ته په سپک نظر سره وګوري او داسي بې شماره فائدې د مال په وجه ملاویږي.

## د مال آفتونه

د مال آفتونه پر دوه قسمه دي: دیني، دونیوي، دیني آفتونه یې درې دي: (۱) یو خو دا دی چي کله په خوته (صندوخ) کي مال وي نو بنده ګویا پر فسق فجور باندي قادره وي او انساني خواهشات د ګناه تقاضا کوي، او دا خو صرف عاجزي او مسکیني ده چي د پاکۍ اسباب پیدا کوي کنې کله چي مال او دولت راسي دا قدرت حاصل سي نو بیا خو بالکل مصیبت دی چي که ګناه کوي نو هلا کیږي او که صبر کوي نو دا ډیر سخت او بد معلومیږي، ځکه بنده چي کله د یوې خبري پر کولو قدرت لري نو صبر ځیني کول د ده د پاره ګران وي (۲) دویم آفت دا دی چي فرض کړه دی په دیني کارونو کي ډېر راسخ او پوخ دی او د ګناهونو څخه هم ځان ساتي، لیکن د جائزو او مباحو شیانو په وجه په عیش او عشرت کي دنه پرېوتلو څه بروسه سته؟ آخر هغه څوک دی چي د مال دولت سره سره د اوربشو پر ډوډۍ او زړو جامو اکتفاء کولای سي؟ هر سړی د حضرت سلیمان ﷺ په ډول خو نسي کېدای چي د دمره لوی حکومت سره سره یې په وچه سره ګزاره کول، او بیا چي بنده په عیش وعشرت کي یو وار پرېوځي نو بدن یې عادي سي او تن آساني یې بیا صبر کولو ته نه پرېږدي، نو دنیا د ده جنت جوړ سي او د مرګ د نامه څخه ده ته کرکه راځي، او بیا دا هم څه ضروري ده چي دعیش وعشرت د پاره ټول سامان په حلاله طریقه ورکوي، نو د شبه د مال پر خوړو هم باک نه کوي، او دغه ډول مال د بادشاهانو د مدد څخه بغیر چیري په لاس راتلای سي، نو خبره خوشامدي (چاپلوسي) ته ورسیږي، او د دې لوازمات دروغ او منافقت بیا لازمي سي ځکه چي هروخت ور سره د هغه د خوشحاله کولو خیال وي، او بیا دا تقرب دنورو د پاره د غبطې (رشک) او حسد باعث هم وي، حاسدان یې دبنمني ته تیار سي او ده په آزار وربسې سي او د دې لازمي نتیجه دا وي چي د ده د طرفه هم دبدل اخیستلو جذبه به بیداره سي، او د دبنمنی او حسد غلبه د ده په زړه کي پیدا سي، او س دا ټول بد صفتونه د ګناه سبب جوړیږي بلکي پخپله د دې سبب چي دروغ، غیبت، بدخواهي، غرض د زړه او ژبې متعلق د ټول ګناهونو ظهور د دې په وجه کیږي او لکه چي وایي د دنیا محبت د ټولو ګناهونو سرچینه ده. د دې دا

مطلب خو دا دی چي دګناه ټول ښاخونه د دې شخه راوځي او د دې د آفتونو شمار تر یوه، دوو، لسو، شلو، پنځوسو پوري محدودنه دي بلکي د آفتونو یو ډېر غټ تعداد وي چي بنده راګیر کړي، چي رښیتا پوښتنه کوې نو دا یو داسي غاردی چي دژوروالي یې څه اندازه نسي کېدی، نو د دوږخ غار یې وګڼه چي دژوروالي شمار یې ناممکن دی، او کوم چي د داسي خلکو د پاره جوړ سوی دي.

(۳) دریم آفت داسي دی چي د الله ﷻ د توفیق څخه ماسوا د دې څخه خوندي کېدل په تصور کي هم نسي راتلای، او هغه دا دی چي فرض کړه یو سړی ګناه نه کوي په عیش او عشرت کي هم نه پرېوځي بلکي مشتبه مال هم نه خوري، او واقعي پرهیزګار دی، حلال مال حاصلوي او د خدای په لاره کي یې په خلاص زړه سره ورکوي، لېکن د دې مال تعلق د زړه سره وي او دا تعلق ده ته فراغت کله ورکوي چي په جلال الهي او عظمت خداوندي کي غور او فکر وکړي، چي د ټولو عبادتونو نڅوړ (خلاصه) آخر دا وي چي دالله ﷻ ذکر دانسان پر زړه غالبه سي، او د الله ﷻ سره یې پوره اُنس او محبت پیدا سي، چي دی د ماسوی الله څخه بالکل بې نیازه کړي، او د دې د پاره د فارغ زړه ضرورت دی چي بل طرف ته مشغوله نه وي او د مالدار زړه داسي نه وي، ځکه د مالدار سره که ځمکه وي نو د آبادولو په فکر کي یې وي یا به د حصه دارانو په جنګو کي مبتلی وي او یو ځای به د آبیانې او مالیې خبري وي او یو ځای به د ساهو کارنو سره حساب کتاب او یو ځای به د آباد کارانو سره لین دین، غرض ډېر وخت به یې په دې کي صرف کیږي، دغه ډول که دی تاجر وي نو د شریکانو سره جنګونه، د یو بل پر تقصیر باندي نظر، د سفر تدبیرونه د ګټمندي سودا تلاش او دغه رنګه نور شغلونه، او دغه رنګه دا شغلونه او مصروفیتونه خو په هغه سړي پسي هم ورپسې وي د کوم سره چي څه خزانه موجوده وي او ده تر ځمکي لاندي پټه کړې وي او د ضرورت په اندازه څیني را اخلي، ځکه چي د دې هم حفاظت خو په هر حال کي ضرور وي، ځکه چي دا خطره خو په دې صورت کي هم وي چي شوک څیني خبر نسي او شوک یې را ونه باسي، نو په دې فکر کي به ده ته فراغت کله حاصل وي؟ غرض د دنیادارو د اندېښنو او فکرونو میدان ډېر لوی او فراخ دی چي انتهاء یې نسته، او که شوک غواړي چي دنیا هم ور ته حاصله سي او فراغت هم، نو دی د هغه سړي په ډول دی چي دا غواړي چي په ابو وکي دي هم وي او لمن دي هم لنده نه وي.

نو دا دی د مال فائدې او نقصانونه کوم چي عاقلانو د ډېر غور او فکر څخه وروسته بیان کړي دي او چي پر دې غور وسي نو پوه به سي چي د ضرورت په اندازې مال تریاق (ډېر ګټمن) دی او زیات یې زهر، او نبي ﷺ په دې وجه د خپلو اهلِ بیتو د پاره د کفایت په اندازې دمال دعاء کړې وه، او په لنډه

يې د دې خبرې وضاحت فرمايلی وو چې د خپل اصلي حاجت څخه د زيات مال د پاره لاس او پښې وهل (او هلې ځلې کول) د خپل هلاکت او بربادۍ تياري کول دي، لېکن دا انتهائي اقدام هم صحيح نه دي چې ټول مال پر يوه ځاى او په يوه وخت کې ليرې کړي تر دې چې د ضرورت په اندازې هم پاته نسي، او بيا زړه د دغه په خيال کې وي چې دا خبر هم په شرعي اعتبار سره مکروه ده لکه چې دالله ﷻ ارشاد دی: وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ فَتَقْعُدَ مَلُومًا مَّحْسُورًا (او نه خپل لاس د ښت سره ترل پکار دي (او نه بالکل فراخه کول پکار دي کنې الزام خوروده او تش لاس به پاته سې (بنی اسرائيل).

## د طمع او حرص نقصانونه او د قناعت برکتونه

ياد لره! چې د طمع شمار هم په بدواخلاقو کې دی چې د ذلت او رسوايی سبب دي د دې ابتداء هم د ذلت څخه کيږي او آخر انجام يې هم شرمندګي او تلافي وي طمع چې کله يو وار پيدا سي نو نوري ډېري بدی پيدا کوي ځکه چې کله څوک د چا څخه د يو شئ لالچ او طمع لري نو خامخا د هغه په خوشامندي (چاپلوسي) اوږ راشه درشه مجبوره وي او دغه ډول په ريا کاری او منافقت کې ګرفتاره سي او عبادتونه يې هم متأثره سي، لالچي د متعلقه سړي سپک سلوک هم په پټه برداشت کوي، د ده پر غلطيانو او ناجائزو خبرو باندي خاموش پاته کيږي، د بنده تخليق د حرص او لالچ څخه سوی دي يعني دی فطرتًا حريص پيدا سوی دي، او څه چې ور سره وي پر هغه صبر کول ده ته نه ورځي، او دا حرص داسي شئ دی چې د قناعت څخه ماسوا بل شئ د ده علاج نه دی، دنبي ﷺ ارشاد دی چې که بنده ته د سرو زرو دوه ميدانونه هم ملاؤ سي نو د دريم خواهش به کوي نو د قبر خاوري دي چې صرف بنده مطمئن کولای سي، ها! که څوک توبه وکړي نو الله ﷻ د ده توبه قبلوي، او فرمايي چې بنده زړېږي او د ده هر شئ خو دوه شيان داسي دي چې هغه نه زړېږي يو دا اُميد چې ژوند نور زيات سي او د دويم د مال محبت، او فرمايي تر وتازه دي لري خدای هغه سړی چې اسلام هغه ته د ضرورت په اندازه د مال د قانع کېدو لاره وروښوولي، او دی يې قبوله کړي، او فرمايي روح القدس دا خبره زما زړه ته را ورسوله چې بنده تر هغه وخته د د نيا څخه نه رخصتيږي تر څو چې د ده رزق ختم نه سي، نو د الله ﷻ څخه بېره کوئ او د د نيا په طلب کې آرام اختيار کړئ يعني په حرص کې مبالغه او زياتې مه کوئ، او په حرص او طمع کې د حد څخه تجاوز مه کوئ.

عووف بن مالک اشجعي رضي الله عنه وايي چې موږ اووه اته يا شايد نهه خلک به وو چې يو وار دنبي ﷺ په خدمت کې حاضر وو، چې دوی ﷺ وويل د الله د رسول سره بيعت وکړئ نو موږ ټولو لاس ور

مخکي کړی او پوښتنه مو وکړه چي وفرمایاست! په څه خبره بیعت وکړو؟ ورپې فرمایل د الله ﷻ عبادت کوئ، پنځه وخته لمونځ کوئ، او دالله ﷻ د احکامو په غور د اوریدو څخه وروسته پر دغو عمل کوئ بیا یې په کراره وفرمایل دچا په مخکي د سوال د پاره لاسونه مه وړدوئ، د نبي ﷺ د ارشاداتو څخه وروسته زموږ دا حالت جوړ سو چي که کروړه به مو د لاس څخه ایله سول، نو چا ته به مونه ویل چي وروره دا راپورته کړه بلکي پخپله به کښښستلو راپورته به موکړه چي سوال پکښي را نسي.

حضرت موسی ﷺ فرمایي چي ما الله ﷻ ته عرض وکړی اي پروردګاره! ستا په مخلوق کي ډېر امیر څوک دی؟ ورپې فرمایل کوم چي زما په ورکړه صابر وي، بیا ما عرض وکړی چي عادل څوک دی؟ ورپې فرمایل کوم چي د ځانه څخه انصاف کوي (د چا په دباؤ اوسفارش نه )مُحَمّد بن واسع رحمه الله وچه ډوډۍ په اوبو کي ډوبولوه خوړله یې او ور سره به یې ویل چي څوک پر دې قناعت کوي هغه دخلکو څخه بې نیازه وي.

ابن مسعود ﷺ وایي چي یوه فرشته هره ورځ په چغه وایي چي اې دآدم اولاده! هغه د کفایت مال تر دې زیات څخه ډېر غوره دي کوم چي دزیات غفلت او بیا په آخر کي د زیاتي پښېماني سبب وي.

سمیط بن عجلان وایي چي ستاخېټه خویوه لوېشته ده نو دا بیا تا دوږخ ته ولي بیایي؟او په حدیث شریف کي دي چي الله ﷻ فرمایي اې دآدم زویه! توله دنیا که په پوره توګه تا ته حواله سي نو هم به ځیني ته دومره حاصله کړي چي ستاخېټه په ډکه سي نو که تا ته صرف دغه اندازه در کړل سي او د زیات حساب کتاب جنګ نوروته پرېښودل سي نو د دې څخه زیاته مهرباني ستا سره نوره څه کېدای سي.

دیو هوښیار (دانا) ویلا ده چي د لالچي څخه زیات هیڅوک هم په غم او رنځ کي مبتلا نسته، او دصابر څخه زیات عیش او سکون چا ته هم حاصل نه دی او دحاسد څخه زیات غم او درد برداشت کونکی څوک هم نسته او د تارک الدنیا څخه زیات سپک باری (چي بوج یې سپک وي) هیڅوک هم نسته او د بدکردار عالم څخه زیات پښېمانه هیڅوک نسته.

**د لالچ په اړه یوه قصه**: شعبي ﷺ وایي چي یو ښکاري یوه مرغی ونیوله، مرغی وویل زما څخه څه غواړې؟ ښکاري وویل تا به ذبح کړم او په خوند سره به دې وخورم، مرغي وویل زما په خوراک به تاته څه ملاو سي، تا ته درې داسي خبروي ولي ونه ښېم که ملوخوړې نو د دې درې سره خبرو څخه به

محرومه سي او دغه د کار خبري دي ستا پکار به راسي، لېکن په دغو درې خبرو کي به يوه خبره درته اوس وښيم چي ته زما د پرېښوولو وعده وکړې، او دويم هلته چي ته ماپرېږدې او زه پر درخته کښېنم، او دريمه هلته چي دغره سر ته وخېژم، ښکاري وويل ښه اوله خبره کوه مرغی وويل: چي څه ستا دلاس څخه څه ولاړل د هغه غم مه کوه، دښکاري دا پرېښووله ولاړه پردرخته کښېنستله، نوښکاري وويل چي اوس بله خبره وکړه، مرغی وويل پر نا ممکنه خبره يقين مه کوه، بيا دغره پر څوکه کښېښستل ويې ويل! اې بدبخته که تا زه واقعي ذبح کړی وای نو يوخټ امير به در څخه جوړ سوی وای ځکه چي زما په نس کي شل شل مثقاله دوې ملغلري دي او ښکاره ده چي دغه د چا سره وي هغه چيري هم غريب کېدای نسي، اوس ښکاري گوتي چيچلې او ويې ويل: افسوس چي دا ما څه وکړل آه افسوس! نو مرغی ته يې وويل چي ښه اوس دريمه خبره هم راته وښيه مرغي وويل چي تااولي دواړي خبري هېري کړي که دريمه واورې څه به په وکړې، په هر حال واوره! ما تا ته ويلي وو چي دلاس څخه ولاړ سي غم مه پسي کوه، او بيا مي وويل چي پر محاله خبره يقين مه کوه، او تا زه په لاس کي نيولې ووم د هډوکو او غوښو سره زماوزن لس مثقاله نه سی کېدای نو دا څنګه ممکن کېدای چي زما په نس کي دي شل مثقاله وزني ملغلري پرتې وي،؟ دا يې وويل او د هغه ځای څخه والوته، دا قصه دلته ځکه بيان سوه چي د دې حقيقت وضاحت وسي چي کله طمع پيدا سي نو لالچي انسان د محال څخه پر محال خبره يقين کوي.

**د حرص او طمع علاج:** پوه سه! چي دحرص او طمع (لالچ) علاج چي په کومو دواياتو (درملنو) سره کول کيږي د هغو په اجزاؤ کي د صبر تريخوالی دعلم خوږوالی او د عمل سختي شامله ده، او د زړه دهري ناروغی علاج د دې شيانو په مرکب سره کول کېدای سي، او د دې علاج حاصل پنځه شيان دي: اول شئ خو عمل دی او د دې څخه مراد دا دی چي بنده خرڅونه د کم څخه کم وکړي يعني په معمولي جامو او وچه سره دوډۍ قناعت وکړي او سالن (کټغ)کله کله استعمالوي ځکه چي دغه رنګه دوډۍ جامه د حرص او طمع څخه بغير په لاس راتلای سي، لېکن که په شان وشوکت او تجمّل کي پرېوځي او بې ځايه خرڅونه شروع کړي نو صبر کول به ګران سي، او دنبي ﷺ ارشاد دی چي کوم سړی په خرڅ کي اعتدال ساتي هغه به چيري د چا محتاج نسي، او فرمايي د بنده خلاصون (نجات) په درې شيانو کي دی: اول دا چي په پټه او ښکاره الله ﷻ هميشه يادوي او ييريږي څيني، دويم دا چي که اميري وي او که فقيري په خرڅ کي هميشه مينځلاري کوي،

او دریم دا چي غم وي او که خوشحالي په هر صورت کي انصاف د لاس څخه نه غورځوي، یو سړي ولیدل چي ابو الدارداء ﷺ د خورماوو تاکی (مندکي) راټولولی تعجب یې وکړی نو هغوی وفرمایل چي پر معیشت نظر لرونکي یقیناً فقیه وي، او نبي ﷺ فرمایلي دي کوم سړی چي په خرڅ کي مینځ روي اختیاروي الله ﷻ به دی د دنیا څخه بې نیازه ساتي، او څوک چي ډېر اَند دُند (بې اندازې) خرڅ کوي دی دنورو محتاجه کوي یعني مفلس کوي یې او څوک چي خدای یادوي خدای دی یادوي، او فرمایي: د خرڅ کولو په وخت کي د تدبیر او آرام څخه کار اخلئ چي دا پخپله د نیم رزق حیثیت لري، دریم شئ دا دی چي که ډیوې ورځي دپاره په قدر د کفایت مال په لاس درسي نو دبلي ورځي دپاره په تشویش کي د پرېتو ضرورت نسته. ځکه چي دا شیطان وي کوم چي بنده ته دا مشوره ورکوي چي صبا به څه کوې او څه به خورې؟ نو د صباد پاره نن کوشش وکړه چي څه حاصل کړې او تر څو چي دي نه وي حاصل کړي په آرامه مه کښېنه او د کوم ځای څخه چي څه جمع کولای سې جمع کوه یې، الله ﷻ فرمایي چي: شیطان تا د صبا د مفلسی څخه بېروي نن دي په پرېشاني کي مبتلا کوي او خندا در پوري کوي چي وګوره څومره احمق دی د صبا څه معلومات سته چي صبانی ورځه ده ته نصیب کیږي او که نه؟ او که صبانی ورځ ده ته نصیب هم سي نو د هغې تکلیف خو دې تکلف څخه نسي زیاتېدای په کوم کي چي ده نن ځان مبتلا کړی دي، او ددې څخه نجات په دې صورت کي ملاوېدای سي چي بنده د دې حقیقت څخه خبر سي چي روزي حاصلېدل په حرص او طمع باندي منحصره نه دي بلکي د مخکي څخه مقدره سوې ده چي هغه به خامخا ده ته ملاوېږي، او کوم رزق چي ستا په تقدیر کي لیکل سوی دي هغه به تا ته رسیږي، او دا خبره هم په ذهن کي د اېښوولو ده چي انسان ته رزق زیاتره د داسي ځای څخه ملاوېږي د کوم ځای چي تصور هم د ده په ذهن کي نه وي، پخپله الله ﷻ فرمایي چي پرهېزګارانو ته روزي د هغه ځای څخه رسیږي د کوم ځای چي د ده فکر هم نه وي، دابو سفیان ﷺ قول دی چي پرهېزګاره سړی چیري هم د لوږي څخه نه مر کیږي، د دې مطلب دادی چي الله ﷻ مخلوق پر ده مهربانه کړي چي بغیر د غوښتلو څخه ده ته دولت رسیږي، حضرت ابن حازم رحمه الله فرمایي: چي کوم څه دي هغه پر دوه قسمه دي: کوم څه چي زما روزي ده هغه به بغیر د تعجیل څخه ما ته ملاوېږي او څه چي دنورو په تقدیر کي ده هغه د مځکي او اسمان د اوسېدنکو ټولو په کوشش سره ما ته نسي ملاوېدای په دې وجه زما بې قراري وزېسي بیکاره ده، دریم شئ دا دی چي بنده په دې پوه سي چي طمع دي نه کوي او د صبر څخه دي کار اخلي نو په تکلیف کي خو به وي لیکن ذلیله او خوار به نه وي، او که طمع کوي او صبر نه کوي

نو د رنځ او تکلیف څخه ماسوا به ذلیله او خوار هم وي او خلک به یې ملامتوي هم او د آخرت د عذاب بېره هم ده، او د صبر په وجه به د ثواب مستحق هم وي او خلک به پر آفرین هم وایي، نوکوم شئ چي دثواب، عزت او احترام حامل وي هغه ښه دی یا هغه تکلیف ښه دی کوم چي د ذلت او عذاب حامل وي؟

نبي ﷺ فرمایلي دي چي د مسلمان شان دا دی چي دی به دخلکو څخه بې نیازه وي (محتاج به نه وي).

حضرت علي ﷺ فرمایي چي دچا په مخکي ستامحتاجي د هغه سري دغلامي قبلولو په ډول ده، او کوم سړي چي ستامحتاج وي ته د هغه حکمران (واکمن) یې، او دچا څخه چي ته بې نیازه یې ته د هغه برابر او هم مثل یې.

څلورم شئ دا دی چي پر دې خبره غور وکړي چي د ده دا حرص او طمع آخر د څه د پاره ده؟ که د خوراک څښاک په خاطر وي نو غوایي او خر او نور خو د ده څخه زیات خوراک کوي، او که شوکت، دبدبه، تجمّل او ښه لباس غواړي نو څومره یهودیان آتش پرست د ده څخه شاوخوا ښکاري چي په دې ضمن کي ډېر پر مخ تللي دي، لېکن که دطمع څخه لاس واخلي او په لږ صبر وکړي نو ده ته به خپل مثال په انبیاوُ اولیاوُ کي ښکاره سي، او ښکاره ده چي د دې غټو شخصیتونو په ډول کېدلو او د دغو ذلیلو شیانو او انسانانو په ډول کېدلو کي د ځمکي او اسمان فرق دی.

پنځم شئ دا دی چي دا سوچ خو هم وکړي چي مال څومره غټ مصیبت او جنجال دی او د دې زیاتوب چي څنګه په دنیا کي د تشویش او پرېشاني موجب وي هلته په آخرت کي هم ور پسې وي، ځکه چي د فقیرانو څخه به پنځه سوه کاله وروسته په جنت کي قدم ایښول نصیب سي، نو بنده ته همیشه د ځان څخه د کمي درجي خلکو ته کتل پکار دي چي طبعیت یې شکر کولو ته مائله وي، امیرانو طرف ته یې د کتلو ضرورت نسته، کنې الله ﷻ چي څه بنده ته ورکړي وي د دغو هیڅ قدر او قیمت به د ده په نظر کي باقي پاته نسي او دا ناشکري ده. نبي ﷺ فرمایلي دي چي همیشه داسي خلکو ته ګوره چي ستا څخه دکمي درجې وي ځکه چي ابلیس همیشه د دې پلرولو په کوشش کوي چي وګوره فلانی فلانی ستا څخه څومره دولتمند دي؟ دا د قناعت دپاره ته راغلی یې؟ اوکله چي انسان د پرهېزګاري طرف ته رجوع کوي نو شیطان یې داسې پاروي چي لږ فلانی فلانی عالم ته خو وګوره هغه خو حرام هم کوي نو بیا په تا څه سوي دي؟ لنډه دا چي د شیطان خو کار دا دی چي په دنیوي کارونو کي به همیشه هغه خلک تا ته رامخ ته کوي کوم چي ستا څخه د

لوړي درجې مالکان وي، او په ديني امورو کي به در ته هغه خلک را مخ ته کوي کوم چي ستا څخه هم ښکاره وي، او حال دا دی چي اصل معامله د دې څخه بالکل مخالف ده يعني پکار دا ده چي ته په ديني کارونو کي د دين بزرګانو ته وګورې چي ستا څخه يې مرتبې لوړي دي چي تا ته خپل نقصانونه او کمزوری معلومه سي، او په دنيوي اعتبار سره فقيرانو او غريبانو ته وګورې چي خپل ځان در ته امير ښکاره سي (او دالله شکر ادا کړې).

## د سخاوت فضيلتونه اجر، او ثواب

پوه سه! چي د چا سره مال نه وي نو د دې دامطلب نه دی چي په حرص، طمع او لالچ کي دي پرېوځي بلکي پکار دي چي صبر او قناعت اختيار کړي، او د چا سره چي مال وي ده ته بُخل نه دی پکار بلکي سخاوت پکار دی، د نبي کريم ﷺ ارشاد دی: چي سخاوت د جنت يوه درخته ده چي ښاخونه يې په دنياکي خواره سوي او کوم سړی چي سخاوت کوي د دې يو ښاخ نيسي، کوم چي به دی لوړ راپورته کوي جنت به يې رسوي، او بخل د دوږخ يوه درخته ده او د دې ښاخونه هم دنيا ته را شوه سوي دي او څوک چي بخل کوي د دې يو ښاخ نيسي او دغه به يې دوږخ ته راپورته کوي، او فرمايې: دوه اخلاقه دي کوم چي د الله ﷻ ډېر خوښ دي چي يو سخاوت او بل نېک خويي (ښه اخلاق)، او دوه اخلاقه بيا داسي دي چي د الله ﷻ سخت ناخوښه دي چي يو بُخل دی او بله بدخويي (بد اخلاقي)، او فرمايي الله ﷻ داسي يو ولي نه دي پيدا کړی چي سخي او نېک خويه نه وي، او فرمايي چي د سخي خطاګاني معاف کول پکار دي، ځکه چي الله ﷻ دی په تکليف او پرېشانه وربني پخپله د ده په دست ګيري (مدد کولو) خوشحاله کيږي.

يو وار په جهاد کي پر نيول سوو څو قيديانو باندي نبي کريم ﷺ د قتل کولو حکم وکړی لېکن يوېې معاف کړی، حضرت علي ﷛ عرض وکړی يا رسول الله ﷺ! دين يو، خدای يو، او د ټولو ګناه يوه ده او بيا د ټولو قتلول او يو د قتل څخه ولي وساتل سو؟ ويې فرمايل: اوس جبرائيل ﷵ راغلی او راته يې ورېل چي دا سړی مه قتلوه دی سخي دی، او فرمايي د سخي خوراک دوايي ده او د بخيل د ناروغي ده، او فرمايي سخی خدای ته نژدې جنت ته نژدې او خلکو ته نژدې وي لېکن د دوږخ څخه ليري وي، او بخيل د خدای څخه ليري د جنت څخه ليري د خلکو څخه ليري وي لېکن دوږخ ته نژدې وي، د الله ﷻ په نزد سخي که جاهل هم وي خو دی يې خوښ وي او بخيل که عابد او زاهد هم وي خو د الله ﷻ خوښ نه وي، او فرمايي د ټولو ناروغيانو څخه بده ناروغي بخل دی، او فرمايي زما د

امت ابدال کوم چي جنت ته رسېدلي دي نو په دې وجه نه دي رسېدلي چي دلمونځ او روژې پابند وو، بلکي په دې وجه چي دوی سخیان وو، او پاکو زړونو والا ، نصیحت کوونکي، مشفقه او غمخواره وو، او په حدیث شریف کي دي چي الله ﷻ موسی ﷺ ته د وحی په ذریعه سره خبر ورکړی چي سامري مه قتلوه دی سخي دي، په دې سلسله کي د بزرګانو اقوال او آثار او روایتونه اوس واورئ!.

د حضرت علي ﷺ قول دی چي کله ته په خلګو کي مقبول یې نو خرڅ کوه (سخاوت کوه) چي خلک در ته راځي او که خلک در څخه ډډه کوي نوهم خرڅ کوه چي دوی راوګرځي.

یو سړی حسین بن علي ﷺ ته خط ولیکی او پخپله یې ور ته راوړی هغوی کاغذ د دغه سړي څخه واخیستی او ویې ویل ستا حاجت پوره سو (یعني څه چي غواړې در به کړای سي هغه وویل چي تا خو خط ونه لوستی ویې فرمایل ځکه چي زما سره دا بېره سوه چي که دومره وخت دا سړی زما په مخکي عاجز او بې چاره ودرېدی نو الله ﷻ زما څخه د ده پوښتنه کوي، حضرت المنکدر ﷺ وایي چي د حضرت عائشي ﷺ د خادمي امّ ذره ﷺ څخه روایت دی چي یو وار حضرت زبیر ﷺ دوه تولې سپین زر او یو لک اتیا زره درهم د حضرت عائشي ﷺ په خدمت کي ولېږل دې ﷺ دا هر څه پر غریبانو تقسیم کړل، چي ماښام سو نو د روژې ماتولو د پاره یې خوراک طلب کړی ما د زیتون د تېلو سره ډوډۍ وروړه ځکه چي غوښنه نه وه، ام ذره ﷺ وایي چي ما عرض وکړی تا هر څه تقسیم کړل چي یو درهم یا نیم دي موږ ته د غوښو اخیستلو د پاره را کړی وی نو څه به سوی وای؟ ویې فرمایل که هغه وخت تا را یاد کړی وای نو ما به راغوښتلي وای، حضرت امیر معاویه ﷺ چي کله د مدینې منورې څخه تلی، نو حضرت حسین ﷺ او حضرت حسن ﷺ ته وویل چي ده ته سلام مه کوه کله چي معاویه ﷺ دباندی ووتی نو حسن ﷺ وویل چي موږ مقروض یو او په ده پسې وروسته وروسته تلو او د خپلي قرضداری حال مو ور ته بیانولو، یو اوښ د تولو څخه وروسته وو معاویه ﷺ پوښتنه وکړه چي دا اوښ څنګه دی؟ خلګو وویل چي پر ده نغد اونوري بار دي او دغه وخت ټول اتیا زره دیناره پر هغه بار وو، ویې فرمایل: حسن ﷺ ته یې ورکړئ چي دی خپله قرضه خلاصه کړي، ابو الحسن مُداینې ﷺ وایي چي حضرت حسین ﷺ حضرت حسن ﷺ او عبدالله ابن جعفر ﷺ د حج پر سفر روان سو د سفر په دوران کي یو ځای هغه اوښ چیري وروسته پاته سو پر کوم چي د سفر تو ښه بار وه، دوی ټول د لوږي تندي څخه بدحاله سول یوې اعرابۍ ښځي ته راغلل او ور ته ویې ویل ستا سره د چښلو څه سته؟ هغې ویل ها! سته، د دې سره یوه بزه (وزه) وه دهغې شیدې یې ولوښلې او په دوی یې

وچښلې، دوی پوښتنه وکړې دخوراک در سره هم څه سته؟ هغې وویل نور هیڅ نسته لیکن دا بزه (وزه) خو په هر حال ستاسو ده دا ذبح کړئ او ویې خورئ، دوی بزه (وزه) ذبح کړه ویې خوړل، او په تلو کې یې دې ښځې ته وویل چې موږ قریش یو کله چې د سفر څخه واپس راسو نو ته موږ ته راسه موږ به ستا سره نیکي وکړو، د دوی د تللو څخه وروسته چې دغه سپینسرې د خاوند کور ته راغله نو خاوند یې ډېر خفه سو او ویې ویل: چې تا په مفته (موته) کې بزه (وزه) پر خلکو باندې ضائعه کړه دکومو په باره کې چې تا ته معلومات هم نسته چې دغه وو څوک؟ اتفاقًا پر دوی داسې حال راغلی چې سخت غریبان سول او په دې غربت او مفلسی کې مدینې منورې ته ورسېدل هلته به یې د اوښانو بچې تولول خرڅول به یې او گزاره به یې په کوله یوه ورځ دغه ښځه پر یوه کو څه راغله هلته د یو کور مخ ته حضرت حسن ﷺ ناست وو، او دا ښځه یې وپېژندله او پوښتنه یې څیني وکړه اې سپینسرې! تا زه وپېژندم؟ هغې وویل نه!، حضرت حسن رضی الله عنه وویل زه ستا هغه میلمه یم چې په فلانی وخت موږ ستا سره خوراک خوړلی وو، هغې وویل چې ته هغه یې، ویې ویل چې ها! هغه یم، او بیا یې حکم وکړی چې یو زر بزې (وزې) د زر دینارو سره دې ته حواله کړئ او د خپل یو غلام سره یې دا حضرت حسین ﷺ ته ولېږل، هغه څیني پوښتنه وکړه چې زماورور څه در کړل، دې وویل زر بزې (وزې) او زر دیناره، نو دوی هم زر بزې (وزې) او زر دیناره ورکړل، او دخپل یوغلام سره یې حضرت عبد الله ابن جعفر ﷺ ته ولېږله هغه پوښتنه څیني وکړه چې هغوی څه در کړل، دې وویل دوه زره بزې (وزې) او دوه زره دیناره، هغه هم دوه زره بزې (وزې) او دوه زره دیناره دې ته حواله کړل ویې ویل چې که تا دوی ته تکلیف نه وی ورکړی او سیده ما ته راغلې وې نو ما به تا ته دومره څه در کړي وای چې هغو به نه سوی در کولای، هغې سپینسرې څلور زره دینار او څلور زره بزې (وزې) روانې کړې د خپل خاوند خواته ولاړه او ویې ویل دا دهغو خلکو ښه سلوک (چلند) دی کوم چې ما پېژندل هم نه او بزه (وزه) مې ور ته ورکړې وه.

نو د سخاوت په باره کې پر دې خبرو متعجب او حیرانېدل نه دي پکار ځکه چې دا امرِ واقعه دی چې تر مرگ وروسته هم د دې دا خصوصیت ژوندی او پاته وي او په خوب کې هم د دوی دخیر د کارونو مظاهره کیږي، څنگه چې د حضرت ابراهیم ﷺ مېلمستیا عادت وه، او د دوی مزار شریف تر نه پورې د دې برکتونو په نور سره منوّر (روښانه) ښکاره کیږي، او ربیع بن سلیمان رحمه الله وایي چې امام شافعي رحمه الله یو واري مکې مکرمې ته ورسېدی د دوی سره دوه زره دیناره وو دوی د مکې مکرمې څخه دباندې خیمه ووهله او څوک چې به را تلو روغبړ به یې ور سره کولو نو یو موټ دینار به یې ور ته

حواله کول تر دې چې تر ماپښینه پورې یو دینار هم پاتـه نه سو.

یو وار حضرت علي رضی الله عنه په ژړا ولیدل سو د ژړا پوښتنه ځیني وسوه ویې فرمایل: یوه اوونۍ (هفته) وسوه چې یو میلمه هم ما ته رانغلی، یو سړی د خپل ملګري خوا ته ولاړی ور ته ویې ویل چې څلور سوه درهمه مقروض یم، دوست څلور سوه درهمه ده ته حواله کړل او ژړا یې شروع کړه، ښځې ور ته وویل چې ژاړې نو مرسته دې ولې ور سره کوله؟ هغې وویل اې نېک بختې زه په دې وجه ژاړم چې زه دومره سنګدله یم چې هغه پخپله د خپل حاجت د پاره راغلی او زه ځیني ناخبره وم، زما فرض داوو چې بې غوښتولو مې مرسته ور سره کړې وای.

**د بُخل مذمّت**: د الله ﷻ ارشاد دی: وَمَنْ يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ (الحشر: ۹) (چا چې ځان د بخل څخه وساتی ده کامیابی حاصله کړه) بل ځای فرمایي: لَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ هُوَ خَيْرًا لَهُمْ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَهُمْ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُوا بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ [آل عمران: ۱۸۰] (هغه خلک کوم چې د الله ﷻ په ورکړې مال کې بخل کوي دا خیال دې نه کوي چې دا خبره د دوی په حق کې غوره ده بلکې دا شئ د دوی په حق کې انتهائي بد دی په کوم مال کې چې دوی بخل کوي دغه به طوق سي د قیامت په ورځ به د دوی غاړې ته واچول سي).

او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې د بخل څخه ځان ساتئ ځکه چې ستاسو څخه مخکې قومونه د دې په سبب هلاک سوي دي، او بخل دوی پر قتل او حرام په حلال بللو ته وپارول، او فرمایي چې: درې شیان هلاکوونکي دي: یو بخل کله چې تاسو دا خپل کړی حال دا چې د دې مخالفت ضروري دی، دویم خواهش چې اتباع یې وسي، دریم عُجب (ځان خوښوونه)

حضرت ابو سعید خدري رضی الله عنه وایي چې د نبي ﷺ په خدمت کې دوه خلک راغلل او د یو اوښ د قیمت مطالبه یې وکړه دوی ﷺ ورکړل چې کله دباندی راغلل نو د حضرت عمر رضی الله عنه په مخکې یې شکریه اداء کړه، حضرت عمر رضی الله عنه د دې کیفیت پوښتنه وکړه او ویې ویل چې فلانکي خو د دې څخه ډیر یووړل او شکریه یې ادا نه کړه، اوبیې فرمایل چې په تاسو کې کوم سړی په ژړا ژړا زما څخه شه غواړي دغه اُور دی حضرت عمر رضی الله عنه وویل چې که داسې وي نو ته یې ور کوې ولې؟ ویې فرمایل: چې هغوی فریاد کوی او زه نه غواړم چې بخل وکړم ځکه چې الله ﷻ بخل نه خوښوي، او فرمایي تلسوایاست چې بخیل د ظالم په نسبت زیات معذوره دی لیکن د الله ﷻ په نزد د بخیل څخه زیات شوک ظالم کېدای سي چې د کوم په باره کې الله ﷻ پخپل عزت او عظمت قسم خوري فرمایي چې

بخیل به جنت ته داخل نه کړل سي (معاذ الله)، یوه ورځ نبي ﷺ دخانه کعبې طواف کوی چي یو سړی یې ولیدی چي د کعبې حلقه یې نیولې ده ولاړ دی او وایي، اې الله! د دې کور دحرمت او عزت په خاطر زما ګناه وبخښه. نبي ﷺ پوښتنه وکړه ستا ګناه څه ده؟ هغه ورېل دومره غټه ګناه ده چي زه یې پخپلو الفاظو کي نه سم بیانولای، ورېې فرمایل ستا ګناه غټه ده که ځمکه؟ هغه ورېل زما ګناه، ورېې فرمایل ستا ګناه لوی ده که اسمان؟ هغه ورېل زماګناه، ورېې فرمایل ستا ګناه لوی ده که عرش؟ هغه ورېل زماګناه ورېې فرمایل ستا ګناه لوی ده که الله ﷻ؟ هغه ورېل الله ﷻ ډېرلوی دي، ورېې فرمایل ستا ګناه څه ده؟ هغه ورېل زما سره مال دولت ډېر زیات دی لېکن څنګه چي یو سوال ګر (فقیر) د لیري څخه ورېنم ما ته داسي معلومېږي چي اُور را روان دی او ما به اوس ایره کړي، نبي ﷺ وفرمایل زما څخه لیري سه! ستا اور چیري ماونه سوځي، قسم دی زما په هغه رب چي زه یې د سیده لاري ښوولو د پاره رالیږلی یم که ته د رکن یماني او مقام ابراهیم په مینځ کي زرکاله لمونځ وکړې او دومره وژاړې چي د اوښکو واله دي وبهیږي او ځمکله په زرغونه سي لېکن ستا مرګ په دې حالت د بُخل کي وي نو ستا ځای به صرف او صرف دوږخ وي، تا دا هم سوچ ونه کړی چي بخل کفر دی او دکفر ماده اُور ده.

تا دا هم ونه اورېدل چي الله ﷻ څه فرمایي: وَمَنْ يَبْخَلْ فَإِنَّمَا يَبْخَلُ عَنْ نَفْسِهِ[مُحَمَّد: ۳۸] (بخیل د ځان سره بخل کوي)، او دا چي: وَمَنْ يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ (الحشر: ۹) (څوک چي د بخل څخه خوندي سو دی کامیاب سو) او حضرت کعب ﷺ فرمایي چي د هر سړي د پاره هره ورځ دوې فرښتې مقرري وي، کوم چي دا آواز کوي یا الله! کوم سړی چي مال زخیره کوي د هغه مال تباه او برباد کړه او کوم چي یې خرڅ کوي هغه ته زیات ورکړه، د امام ابو حنیفه ﷺ ارشاد دی چي زه بخیل عادل نه منم او نه د ده ګواهي منم ځکه چي د ده بخل همېشه وي، دی د خپل حق څخه د زیاتو اخیستلو تقاضا کوي، حضرت یحی ﷺ ابلیس ولیدی او پوښتنه یې ځیني وکړه چي ته څوک خپل دښمن ګڼې او څوک زیات دوست ګڼې؟ ابلیس ورېل چي بخیل زاهد زما ډېر خوښ وي ځکه چي دی په عبادت کي خپل ځان ستړی کوي خو د ده بخل د ده عبادت ضائع کوي، او فاسق سخي زما دښمن دی چي دی مزې کوي او په آرام ژوند تېروې لېکن زما بېره وي چي د سخاوت په سبب الله چیري د توبې توفیق ور نه کړي او د سخاوت په وجه ونه بخښل سي.

**د ایثار (یعني بل تر خپل ځان مخکې کولو او خوښولو) ثواب:** پوه سه! چي د ایثار درجه د سخاوت څخه هم لوړه ده ځکه سخي هغه وي چي داسي شئ خلکو ته ورکوي کوم ته چي یې پخپله ضرورت نه وي،

لېکن ایثار کوونکي داسي وي چي هغه شئ بل ته حواله کوي کوم ته چي يې پخپله ضرورت وي، څنګه چي دسخاوت کمال دا دی چي کوم شئ ته پخپله محتاج وي هغه بل ته ورکړي دغه ډول دبخل کمال دا دی چي کوم شئ ته يې پخپله حاجت وي هغه پر ځان هم خرڅ نه کړي، تر دې چي بخيل سړی که مريض سي نو صرف دوايي اخيستل ورته ګرانه وي او دی په دې آرزو کي وي چي که چيري بل څوک د ده دعلاج خرڅ برداشت کړی چي د ده مال خرڅ نه سي،

او د ايثار فضيلت ډېر لوی دي، تر دې چي الله ﷻ د انصارو د دې ښه والي په باعث ډېر صفت کړی دي: وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ [الحشر:۹] (د خپلو ځانو څخه (مهاجرين) مخکي کوي که څه هم پخپله دوی وږي وي) او نبي ﷺ فرمايي: کوم سړی چي هغه شئ چي د ده پخپله ورته ضرورت وي بل ته يې ورکړي الله ﷻ به دی وبخښي، او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چي د نبي ﷺ په کور کي موږ هيڅکله هم پرله پسې درې ورځي په ماړه نسه خوارک نه دی کړي، حال دا دی چي خوړی مو سو لېکن ايثار به مو کولو.

**قصه**: يو سړی دنبي ﷺ مېلمه سو، د انصارو څخه يو سړي دی خپل کور ته بوتلی هلته خوراک لږ وو (چي ديوه تن د پاره کافي وو) نو هغه ډېوه (څراغ) مړه کړه خوراک يې مېلمه ته کېښېښوی پخپله يې هسي لاسونه خوله ښوورول چي ګويا دی پخپله هم خوري حال دا چي پخپله يې نه خوړل خو مقصود يې داوو چي مېلمه دغه خوراک وخوري او داوګڼي چي دی يې پخپله هم را سره خوري، په بله ورځ د دغه انصاري ﷺ ملاقات د نبي سره وسو نو ورته يې وفرمايل: پرون چي تا دمېلمه سره د کوم ايثار مظاهره کړې ده پر دغه الله ﷻ د تعجب اظهار کړی دي دا آيت يې نازل فرمايلی دي: يُؤْثِرُونَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ [الحشر:۹] (حضرت موسیٰ عليه السلام الله ﷻ ته درخواست وکړی چي خدايه! د خپل آخري نبي حضرت مُحَمّد ﷺ دشان يو څه څرک خو را ته وښيه! الله ﷻ وفرمايل اې موسیٰ! ته به يې طاقت ونه لرلې، په هر حال د مُحَمّد ﷺ د لوړو درجو څخه ديوې درجې نقط د څرک ښوندي تا ته ښيو لېکن دا ياد ساته چي په ليدلو به يې ته بې هو ښه سې، موسیٰ عليه السلام عرض وکړی يا الله! دا عظيمه درجه دوی ته حاصله څنګه سوه؟ ارشاد وسو چي د ايثار په برکت او بيا يې وفرمايل اې موسیٰ! يو سړی داسي نسته چي که هغه په ټول عمر کي يو وار هم ايثار وکړي نو زه د هغه سره د حساب کولو څخه شرمېږم، چي د ده مقام جنت دی او د دې جت په کوم مقام کي چي دی وسېدل غواړي وسېدلای سي)

**سخي څوک او بخیل څوک دی؟**: دا خبره په عامه توګه معلومه ده چي په دې دنیا کي هر سړي ځان ته سخي وایي، حال دا دی چي ممکنه ده چي خلک ده ته شوم او بخیل وایي، نو لازمه سوه چي د دې حقیقت پېژندل پکار دی، ځکه دا یو غټ مرض دی چي زیات او لږ هر سړی پکښې مبتلا دی. نو علاج یې هم معلومول پکار دي، شاید چي داسي خپلو سړی به وي چي څه ځیني وغوښتل سي ور یې کړي، لېکن د دنیا د آزمائش معیار یو داسي عجیبه ډول دی چي تقاضا یې دا ده چي څوک د یو چا څخه یو شئ یو وخت وغواړي هغه ورکول پکار دي، کنې پرده دبخل الزام لګول کیږي، که د بخل دا معیار ومنل سي، نوبیا به د دنیا هر سړي ته بخیل وایي نو په دې ضمن کي مختلفو خلکو مختلف اقوال وړاندي کړي دي: مثلاً د اکثرو خو دا نظریه ده چي د کوم شئ پر چا باندي د شریعت په روی سره بل ته ورکول واجب وي د دغه د ورکولو څخه انکار کول بخل دی لېکن زموږ په خیال کي دا خبره څه داسي مناسب او غوره نه ده ځکه چي زموږ په نزد د دې غوره صورت دا دی چي کوم سړی د نانبائي څخه ډوډۍ واخلي واپس یې کړي دی بخیل دی، د قصاب څخه غوښه واخلي واپس یې کړي دغه بخیل دی، کوم سړی چي ښځو او بچیانو ته فقط دومره ورکول برداشت کوي چي څومره د ده په خیال کي د هغوی د پاره وي، او زیاتوب د یوې ګولې په اندازه ورکول هم نه خوښوي دغه بخیل دی او کوم سړی چي پر سرخان نلست وي د لیري څخه فقیر ووینې خوراک د هغه څخه پټول بخل دی، ځکه چي د شریعت په نزد بخیلانو ته خو دومره تقدیر ورکول سوی دي چي دی د خپل خوراک څخه ماسوا یې په بل هم وخوري، دالله ﷻ ارشاد دی: إِنْ يَسْأَلْكُمُوهَا فَيُحْفِكُمْ تَبْخَلُوا وَيُخْرِجْ أَضْغَانَكُمْ (محمد:۳۷) (که ستاسو څخه ستا سو مال وغوښتل سي بیا په سوال کي مبالغه وکړي نو تاسو به بخل اختیار کړی او ستاسو بخل به ستاسو کینه (حسد) ښکاره کړی)

نو صحیح خبره دا ده چي بخیل هغه دی کوم چي د ورکولو شئ هم ورنه کړي، حال دا دی چي مال تر خاص حکمت لاندي پیدا کړل سوی دي د کوم چي تقاضا ده چي ورکړل هم سي، او د ورکولو د شیانو څخه مراد هغه شئ دي د کوم د ورکولو حکم چي شریعت کړی دي، یا چي مروّت د کوم د ورکولو تقاضا وکړي، او د شریعت په روی سره چي د کومو شیانو ورکول فرض دي هغه خو هر چاته معلوم دي، لېکن د مروّت په روی سره چي څه ورکول غواړي د دې انحصار د مال په مقدار باندي دی او هر سړی د خپل وس او خپلو حالاتو مطابق په دې کي تغیر او تبدّل هم کولای سي او ډېر شیان داسي دي چي د سرمایه دارنو څخه د عادت په توګه بد معلومیږي لېکن د فقیرانو څخه بد نه

معلومیږي،او بعضي داسي دي چي د ښځي بچیانو په معامله کي ښکاره کیږي لیکن که د نورو سره وي نو روا دي، او بعض د دوستانو دپاره نامناسب وي او د غیر د پاره نامناسب نه وي، د بعضو په مېلمستو ب کي استعمال بد ښکاري خو په عامو معاملاتو کي صحیح وي، بعضي د سپینږرو په معامله کي بد وي نه چي د ځوانانو په معامله کي، بعضي داسي دي چي د سړو سره یې روا درلودل ناروا دي دښځو سره نه دي، نو د دې حد داى چي دمال ساتل مقصود وي لیکن کله چي یې د ساتلو څخه زیات اهم خرڅ کول وي یعني د یو اهم غرض د پاره یې ورکول ښه وي نو دغه وخت یې نه ورکول صریحًا بخل دی، ځکه چي پر اهم ضرورت باندي بچت ته ترجیح ورکول ښه خبره نه ده، بلکي بخل دی دغه ډول چي دمال اېښوول زیات اهم او مناسب وي نو دغه وخت خامخا خرڅ کول فضول خرڅي (بدخرڅي) ده، او دا دواړه صورتونه مذموم دي، نو د مېلمستون څخه په دې وجه ډېره کول چي ما زکوٰة ورکړی دي ډېره بده خبره ده،او په بخل کي شامله ده، دغه ډول که همسایه وږی وي او د چا سره د ضرورت څخه زیات خوراک وي نو د ده فرض دي چي په هغه یې وخوري کنې دی ته به بخیل وویل سي او د شریعت اومروّت د تقاضاوو پوره کولو څخه وروسته که د چا سره ډېر لږ مال وي نو د صدقې او خیرات په ذریعه ثواب گټل ډېر ضرور دي، بیا هم که د زمانې گردش ته په کتني سره (احتیاطًا) مال محفوظ کړي نو دا هم څه کمه ضروري نه ده، لیکن د بزرگانو خیال دی چي که په دې صورت کي هم د خیر یو کار صرف پر دې فکر قربان کړای سي نو دا بخل دی که څه هم د عوامو په نزد دې ته بخل نه ویل کیږي ځکه چي د عامو نظر پر دنیا وي هسي خو په دوی کي هم د هر یو عمل د ده د ذاتي حالاتو مطابق بدلیږي نو که چیري چا صرف د شریعت او مروّت اعتبار وکړی دی به صرف دبخل څخه خوندي سي د سخاوت درجه به ده ته هلته نصیب کیږي چي نور هم خرڅ کړي نو په دې تناسب به ورته سخي او سخي تر (ډېر سخي) ویل کیږي، لیکن پوه سه! چي په دې صورت کي هم که د ده نظر پر اجر او ثواب وي نو (ثواب به ورته ملاو وي خو) سخي به ورته نه ویل کیږي، ځکه سخي هغه وي چي بې غرضه یې ورکړي، نو په تکلف ورکول هم سخاوت نه دي، د ثنا صفت او شکر په غرض ورکول هم سخاوت نه دی بلکي صرف بلاغرض ورکولو ته سخاوت ویل کیږي،او دا کار د بنده د پاره سخت گران دی چي دا د الله ﷻ صفت دی او بنده که د آخرت د ثواب او نېک نامی په خاطر څه ورکوي نو په مجازي معنا کي ورته سخي ویل کیږي چي في الفور څه معاوضه نه غواړي نو گواکي دنیوي سخاوت د دې نوم دی لیکن په دیني نقطهٔ نظر سره د سخاوت مفهوم دا دی چي بنده د

الله ﷺ پر نامه تر روح او ځان پوري د ورکولو څخه هم منع نه کوي، بلکي د آخرت داجراو ثواب خواهشمند نه وي او صرف او صرف پر حق قربانېدل د ده مقصد. تمنّا او غرض وي، ځکه چي د يو شئ اُميدواره کېدل خو د معاوضي اُميدواره کېدل دي بيا سخاوت چيري سو؟

**د بخل علاج څنګه کېدای سي؟**: پوه سه! چي د دې علاج هم د علم او عمل په درمل سره کېدای سي، او دلته د علم څخه د امراد دي چي اول دبخل اسباب او وجهې معلومي کړي چي تر څو د مرض وجه معلومه نه وي علاج به يې څنګه وسي، او د دې سب دا دی چي د شهواتو او خواهشاتو محبت بنده ته دبخل رغبت ورکوي، ځکه چي مال حاصلول محرّک د خواهش او آرزو وي او د دې سره د اوږد عمر اُميد هم د دې ذمه واره وي که د ژوند په باره کي معلومه سي چي يوه ورځ يا يو کال پاته دي نو دمال خرڅ کول آسانيږي که څه هم په دې صورت کي که اولاد او نور موجود وي نو بخل به نور هم زيات مضبوط سي ځکه چي د اولاد ژوند هم خپل ژوند معلوميږي، او په دې وجه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي اولاد د بخل، بزدلی او جهالت سبب وي، او کله چي مال موجود وي نو داسي هم کيږي چي بدخواهشات د انسان په باطن کي پيدا کيږي، بلکي ډېر واره خو داسي هم کيږي چي د نفس خواهش دمال د محبت سبب کيږي نه، بلکي مال پر خپل ځای د ده معشوق جوړيږي، او ډېر واره داسي هم کيږي چي مال خو پوره په پوره پروت وي او د دې آمدني د ده او د ده د بچيانو د ګذارې دپاره کافي وي او د ده خواهش وي چي تر قيامته پوري دا سلسله جاري وي او د مذکوري آمدني څخه زياته يوه پيسه هم خرڅه نسي، بلکي داسي بخيل خو پخپل مرض باندي دوائي لا هم نه غواړي او نه زکوٰة اداء کوي او د ده د غمو څخه غټه آرزو دا وي چي نقد او زر ټول تر مځکي لاندي دفن کړي، حال دا دی چي هغه د دې ځای څخه بې خبره نه وي چي د ده د مرګ څخه وروسته دښمن پر دې قبضه کولای سي، ليکن بخل ده ته د خرڅ کول حوصله نه ورکوي، او دا يوه غټه ناجوړي ده او د دې علاج هم ډېر لږ امکان لري، ها! اوس چي تا ته د دې اصل سبب معلوم سي نو په قناعت سره د دې علاج خامخا کولای سې، يعني په شهوت او خواهشاتو د صبر او تحمل څخه کار واخلې، پر ترک کولو بې قادر بدای سي چي د مال څخه بې نيازه سې او تر څو چي د عمر د اُميدونو تعلق دی د دې علاج داسي کېدای سي چي د مرګ بېره اکثره او زياته پخپل ذهن کي لري او دا خبره ياده ساتي چي څنګه د ده ملګري دوستان په ليدو ليدو او په ناخبری کي د دې دنيا څخه ولاړل د حسرت او آرمان څخه ملسوا څخه يې نور هيڅ د خپل ځان سره يو نه وړل او دښمناتو د دوی ټول ساز او سامان پخپل

مینځ کي تقسیم کړل، او تر څو پوري چي د اولاد د پاره د مرستي او محتاج کېدو تعلق دی د دې علاج دي په دې فکر سره وکړي چي په خدای بروسه پخپله هم وکړي او دوی ته یې هم وښیي چي کوم خالق او رازق دوی پیدا کړي دي هغه به دوی ته رزق هم ورکوي، او که د دوی په تقدیر کي محتاجي اومفلسي مقدره وي نو د ده بُخل دوی نسي دولمتند کولای او د مال سره سره به هم دوی په فضول خرڅي سره والوزوي اومفلسان کېدای سي، او که قسمت یې مدد وکړي نو دمفلسی څخه مالداره کېدل هم څه لیري خبره نه ده، او دا دعامي مشاهدې خبره ده چي بعضي خلکو ته هیڅ میراث نه دي پاته سوی لېکن ا میران جوړ سوي دي او څومره خلک ووچي لوی لوی جائیدادونه ورته په میراث کي پاته سو او اوس د یوې روپی محتاجه دي، او پر دې خبره پخه عقیده ولري چي که د ده اولاد د الله د حکمونو تعمیل وکړي نو الله ﷻ به د دوی ضرورتونه پوره کړي کنې (که نافرمانه سول د خدای ﷻ څخه ) نو د دوی محتاجه او مفلس کېدل غوره دي چي مال اودولت دوی په گناه کي مبتلا نه کړي یعني په نا کاره کارونو کي یې خرڅ نه کړی گناهگاره جوړ نسي، او د هغو احادیثو دي په غور سره مطالعه وکړي په کومو کي چي د سخاوت صفت سوی دي او د بخل بدي بیان سوې ده، او سوچ دي وکړي چي د دې بخل څخه څه مطلب کوم چي د ده دوږخ ته د بېولو موجب سي، او د ده عبادت او زهد هم د بخیلی نذر سي، او د خپل ځان څخه دي پوښتنه وکړي چي آیا دمال دولت دا فائده ده چي دی ما دوږخ ته ورسوي؟ او د الله ﷻ د خفه کولو او ناراضه کولو سبب جوړ سي؟ بیا دي دې خبري ته هم خیال وکړي چي بخیلان په دنیا کي څومره خوار او ذلیله کیږي خلک ور ته څومره د نفرت او حقارت په نظر سره گوري بلکي دوی دانسانیت دښمنان مقرر کوي او هر ځای پردوی بد ویل کیږي، او بیا دي خپل ځان په دې حالت کي واچوي نظر دي وکړي چي که بخیل جوړ سوم نو دا حالت به مي وي دغه رنگه به ماخلک ذلیله او کم اصله (بد ذاته) گڼي نفرت به را څخه کوي او سپک به راته گوري، دا دې علمي علاج دی او که دا کار وکړي یعني دبخل جراثیم په دې مره سول او په زړه کي د مال خرڅ کولو مینه او علامې ښکاره سوې نو فوراً عمل طرف ته متوجه کېدل پکار دي او بلا ځنډه دي خرڅ کول شروع کړي.

**د مال او دولت د زهرو علاج:** پوه سه! چي دمال مثال دمار دی چي په دې کي زهر هم سته لېکن تریاق(گټه) هم، لکه چي مخکي موږ ویلي دي او کوم سړی چي د مار د منتر څخه نا خبره وي او مار ته لاس وروړي نو د ده هلاکت یقیني دی، داوجه ده چي په روایتونوکي د ځیني صحابه وو

مالداره کېدل هم ثابت دي، مثلاً حضرت عبد الرحمن بن عوف ﷺ ډېر مالداره وو، نو په مالدارېدو کي څه بدي نسته (بدوالی يې په حاصلولو يا خرڅ کولو کي دي) او د دې مثال داسي دی چي فرض کړه يو هلک ملنګ ووينې چي مار په لاس کي نيسي او په ټوکرۍ کي يې بندوي، او په دې سره دا هلک دا خيال په زړه کي وکړي چي ملنګ مار ځکه په لاس کي نيسي چي ډېر نرم او پوست دی او په لاس کي ډېر ښه معلومېږي خوند کوي، او بيا په دې خيال سره پخپله هم مار په لاس کي ونيسي او د روح څخه لاس پرېولي، نو دغه رنګه دمال د زهرو پنځه منتره دي:

(۱) اول دا چي په دې خبره پوه سی چي مال جوړ د څه د پاره دی؟ او دا موږ ښوولې ده: خوراک، جامې اومکان دمال بنستيز غرضونه دي چي دا شيان د تن د پاره ضروري دي، دکوم چي په معرفت الهي سره ښايسته کول د انسان غرض او غايت دی، او کله چي په دې حقيقت پوه سي نو زړه دي د ضرورت د اندازې پر مال قانع پاته کېدلو عادي جوړ کړي اومقصود دمال فقط دغه مقرر کړي چي دا په پوره حکمت سره په نېکو کارنوو کي صرف کول دي، (۲) دويم دا چي د آمدني او حصول پر نريعو نظر ساتي چي مشکوک يا حرام مال په لاس را نه سي، دارنګه دغه مال په داسي طريقه هم نه وي حاصل سوی کومي چي د ننګ اومروت خلاف وي، مثلاً رشوت، فقيري او اُجرت د حجامت او نور...

(۳) دريم دا چي پر مقدار دې نظر ساتي چي د ضرورت څخه زيات مال جمع نسي نو کوم مال چي د دين دلاري د ضرورتونو څخه زيات په نظر راسي نو غور دي وکړي چي د دې د صحيح حاجتمند شوک کيداى سي او بيا چي ورته حاجتمند په نظر راسي نو هغه ته دې په حواله کولو کي هانخوا دې خوا نه کوي، اوبغير د تأمل څخه دې ورته حواله کړي، او که د ايثار توفيق يې نه وي هم نو لږ تر لږه دي د ضرورت په ځای کي خو ضرور صرف کړي.

(۴) څلورم دا چي د خرڅ صحيح اندازه دي کوي چي فضول خرڅي ونه کړي بلکي د ضرورت په اندازه پر اصولو دي کار بند وسي پر لږ دي صبر کوي او پر حقه دې خرڅ کوي ځکه چي ناحقه خرڅ کول د ناجائزي ګټي په ډول دي(۵) پنځم دا چي دمال د آمدني، خرڅ او جمع په سلسله کي دي د خپل نيت جائزه اخلي چي آيا دغه په هر لحاظ سره صحيح هم دي، او دا خبره دي په ذهن کي ساتي چي د دې مال حصول فقط په دې غرض سره دی چي د عبادت د پاره فراغت حاصله سي او څه چي په لاس کي دي دغه د دې فراغت باقي ساتلو د پاره دي او د کوم شئ څخه چي لاس اخلي دغه هم د زُهد او تقوی په خاطر او دنيا ته د حقارت په نظر سره د کتلو د پاره دي چي زړه د دې دخيال او اندېښنې

شخه پاک سي چي ذکر الهي د دې شخه بغیر ممکن نه دی او کوم مال چي يې خوندي کړی اینبی دي هغه په دې خیال سره دي چي په ضروري کارونو کي يې خرڅ کړي کوم چي د دین د لاري سره متعلق وي او د زړه د فراغت د پاره وي، او کله چې پر یو حاجت باندي خرڅ کړي نو دبل حاجت انتظار دي کوي، او که په دې خبرو عمل وسي نو دمال موجودګي به نقصان نه رسوي او د ده د حصې مال به د ده د پاره زهر نه بلکي تریاق (مفید درمل) ثابت سي، په دې وجه حضرت علي ﷺ ویلي دي چي که یو سړی د ټولي ځمکي مال جمع کړي لیکن خرڅ يې کړي د الله ﷻ د پاره نو د دغه سرمایه داري سره زاهد هم دی، او که یو سړی ټوله دنیا پرېږدي لیکن دا پرېښوول د الله ﷻ د پاره نه وي نو دغه ته زاهد نه ویل کیږي، نو کوم شئ چي ضروري دی هغه دا دی چي د زړه قبله صرف د الله ﷻ عبادت او توجه د آخرت طرف ته پکار ده چي په دې حالت کي به د ده هر حرکت عبادت او صرف عبادت وي که څه هم دی خوراک خوري او که د رفع حاجت د پاره ځي، او د ده د هر عمل به ده ته جلا جلا ثواب او اجر ملاوېږي ځکه چي د دین تعلق د ټولو امورو سره دی لیکن خبره د نیت پر صحیح والي منحصره ده او څنګه چي زیاتره خلک په دې باندي وس نه لري او دا متروونه او ارادې نه پېژني او که پېژني يې هم نو کار نه ځیني اخلي نو ډیر غوره صورت دا دی چي دزیات مال شخه دي ځان ساتي او دوس مطابق دي د دې شخه لیري ووسي چي د مال زیاتوب که څه هم د تکبر او غفلت سبب جوړ نسي خو بیا هم دآخرت درجې لازمًا کموي، او د دې شخه زیاته نقصاني خبره کومه کېدای سي (چي دآخرت شخه بنده محرومه سي).

**قصّه:** حضرت عبد الرحمن بن عوف ﷺ وفات سو نو بې شماره مال او دولت يې پرېښوی، او ځیني اصحابو ﷺ وویل چي موږ د ده د هغه مال په وجه بېرېږو کوم چي ده وروسته پرې اینبی دي، کعب الاحبار ﷺ وویل سبحان الله! د هغه د بیري به څه وایاست! آیا ستاسو هېر دي چي هغوی دا مال حلال حاصل کړی وو او همیشه به يې د حق په لاره کي په حقه خرڅ کولو، اوس هغه چي کوم پرې اینبي دي د دې شخه بېره د څه ده؟ دا خبره ابو ذر ﷺ ته ورسېده هغه په غصه سو د کاره راووتی د اوښ هډوکي يې په لاس کي واخیستل، کعب الاحبار ﷺ يې لټولو لیکن هغه ځیني وتښتیدی ولاړی د حضرت عثمان ﷺ شا ته پټ سو، او ابو ذر ﷺ هلته پسي ورسېدی ورته يې وویل اې د یهودي بچیه! ته دا وایې چي عبد الرحمن ﷺ څه پرې اینبي دي په دې کي څه بېره نسته؟ حال دا دی چي زه یو وار د نبي ﷺ سره د اُحد د غره پر خوا تېر سوم چي دوی ﷺ وفرمایل: ابو ذره ﷺ! ما عرض وکړی یا

رسول الله زه حاضریم، ورېږ فرمایل د قیامت په ورځ به مالدارانو ته ډېره کمه درجه حاصله وي ټر دې چي دوی به د ټولو څخه آخر وي، ما سوا دهغو مالدارانو څخه چي راسته چپه مخ شا هر طرف ته مال غورځوي روان وي، او خرڅ کوي یې، او اې ابو ذره ﷺ! ما سره که دڅو غرونو په اندازه سره زر وي نو ما به نه وای خو بښ کړي چي زما څخه وروسته دي د دې څخه د دوو رتی په اندازه پاته سي، نو هر کله چي په دې باره کي نبي ﷺ دا ارشاد فرمایلی دي نو اې د یهودي بچیه! ته داسي خبره څنگه کوې؟ ستاوینا بالکل درواغ ده ابو ذرﷺ دا خبري وکړې او چا جواب ور نه کړی.

**قصه**: یو وار د عبد الرحمن بن عوف ﷺ د اوښانو قافله د یمن د تجارت څخه واپس راغله نو په مدینه کي یو شوق جوړ سو، حضرت عائشې رضي الله عنها پوښتنه وکړه چي دا شور د څه شئ دي؟ خلگو ورته وویل چي د عبد الرحمن بن عوف ﷺ قطار قطار اوښان را روان دي، ورېږ فرمایل: نبي کریم ﷺ رشتیا فرمایلي وو: دا خبره عبد الرحمان ﷺ ته ورسېدله نو د هغه زړه په دې جمله کي غرق سو، فوراً هلته راغلی او عرض یې وکړی اې عائشې رضي الله عنها! نبي ﷺ څه فرمایلي وو؟ جواب یې ورکړی، عبدالرحمان! نبي ﷺ فرمایلي وو چي ماته دجنت نمونه وښوول وسوه نوملولیدل چي زما په اصحابو کي چي کوم فقیران ووهغوی په څغاسته څغاسته روان وو جنت ته تلل لېکن په امیرانو کي د عبدالرحمان ﷺ څخه ماسوا بل څوک ماونه لیدی لېکن دی هم آزاد نه سو تللی په ډېره مشکله په غورځېدلو پرېوتو د جنت دروازې ته په رسېدلو کي کامیاب سو، عبد الرحمان ﷺ چي داواورېدل ورېږ ویل ما دا ټول اوښان سره دمال او اسباب د الله ﷻ په لاره کي وبخښل او دغه ټول غلامان (کوم چي ور سره دي) ماآزاد کړل. کیدای سي چي زه هم په څغاسته تلونکو اصحابو کي شامل سم.

**اووم اصل: د مرتبې او دحشمت (دبدبې) محبت، آفتونه او علاج یې**

پوه سه! چي په دې دنیاکي ګومره خلک وو صرف د دې دپاره هلاک سو چي دمرتبې او حشمت تلاش کوونکي وو، او د شان او شوکت طالبان او دخلګو څخه دخپلو صفتونو اورېدلو په آرزو کي وو، او کله چي دا عادت په دوی کي کلک سو نو د دین د لاري څخه غلط سو منافقان سو او خرابو اخلاقوبې زړونه ګمراه کړل، او عمل یې په بداخلاقی سره تباه سو، او ریاء او د خپل مینځوي عداوتونو او جنګو سر راپورته کړی او ټول ژوند یې د بدی او ګناه بدترینه نمونه جوړه سوه، نبي ﷺ فرمایي چي دمال او مرتبې اوحشمت محبت کله په زړه کي ځای وکړي نو منافقت پکښې داسي پیدا سي لکه د اوبو په ځای کي چي بې اندازې زیاته سبزه (وابښه) را پیدا سي، او فرمایي دوه وږي

شرمښان چي د پسو رمې ته ور ننوځي دومره تباهي نسي کولای څومره چي د مرتبې او مال محبت د انسان زړه تباه کوي، او نبي ﷺ حضرت علي ؓ ته وفرمايل چي دخلکو د هلاکت سبب دوه شيان دي: يو په خواهشاتو پسي ورپسې کېدل او دويم خپل تعريف اورېدل خوښول، او د دې آفت څخه خلاصون صرف هغه سړي ته ملاوېږي څوک چي د تعريف او تحسين تلاش کوونکي نه سو اوه په ګمنامي (عدم شهرت) باندې صابره سو، دا الله ﷻ ارشاد دی: تِلْكَ الدَّارُ الْآخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِينَ لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِي الْأَرْضِ وَلَا فَسَادًا [القصص:٨٣] (او آخرت موږ د هغو خلکو د پاره جوړ کړی دی کوم چي په ځمکه کي لويي نه غواړي او نه فساد کوي) او نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: چي جنت د هغو خلکو د پاره دی کوم چي په خاور کي لت پت وي، چي د هغو وېښتان منتشر او جامې خيرني وي څوک د دوی خبري ته اهميت نه ورکوي د دولتمندو پر دربارو قدم ايښوول د دوی د پاره ممنوع وي څوک د خپلي لور لاس د دوی په لاس کي ورکولو ته تيار نه وي، که خبره کوي څوک ور ته غوږ نه ږدي د دوی آرزوګاني د دوی په سينو کي پاته کيږي، لېکن دا هغه خلک دي چي که د قيامت په ورځ د دوی نُور پر ټوله مخلوق تقسيم کړل سي نو څوک به محروم پاته نسي، او فرمايي چي څومره په خاور کي د ککړو مخانو او جامو والا د خدای بندګان داسي دي چي که په الله ﷻ قسم وخوري جنت وغواړي نو ملاو به سي لېکن د دنيامعمولي شئ که وغواړي ملاؤ به نسي، او فرمايي: زما په امت کي د داسي خلکو هم څه کمی نسته چي د دنيا څخه يوه روپۍ يا يوه پيسه هم و غواړي نو دنيا به انکار وکړي لېکن که د الله ﷻ څخه جنت وغواړي نو فوراً به يې بيا تر لاسه کوي، او د دنيا څخه څه نه ملاوېدل د دوی د ذلت او خواری سبب نه وي.

حضرت عمر ؓ مسجد ته ولاړی نو معاذ ؓ يې په ژړاوليدی، د ژړا پوښتنه يې ځيني وکړه نو معاذ ؓ وويل چي ما د نبي ﷺ څخه دا اورېدلي دي چي رياء که يوه ذرّه هم وي نو په شرک کي داخله ده، او د الله ﷻ په نزد غوره او پرهېزګاره هغه دی کوم چي پټه او ګمنامه وي تر دې چي که دی بالکل په نظر رانسي نو څوک يې پوښتنه هم نه کوي چي چيري دی؟ او که مخامخ وي نو څوک يې نه پېژني چي دا څوک دی؟ حال دا چي د ده زړه دسيده لاري يوه روښانه ډېوه (څراغ) وي او د ده سينه د خواهشاتو دغشو څخه پاکه وي.

**د بزرګانو اقوال:** دابراهيم ادهم رحمه الله قول دی چي کوم سړی پر شهرت او مقبوليت مين وي، دی په حق دين کي صادقه نه دی، د حضرت ايوب عليه السلام ارشاد دی چي د صدق او صفاء علامه دا ده

چي په زړه کي دا خواهش هم نه وي چي خلک دي دی په یو ځای کي وپېژني.
اُبی بن کعب ﷛ د شاګردانو د یوې ډلې څخه مخکي مخکي روان وو چي حضرت عمر ﷛ په دُرّه ووهلو، ابن کعب ووېل یا امیر المؤنین دا څه کوې؟ وېې فرمایل ستا د دوی څخه مخکي مخکي تلل دتکبّر نښه ده او د دوی په تاپسي وروسته وروسته تلل د دوی د ذلت نښه ده. د حسن بصري قول دی چي هغه احمق کوم چي خلک په ځان پسي په وروسته تلولو باندي وېني او خوشحالیږي دا ځکه وي چي د ده زړه پر خپل ځای نه وي، حضرت ایوب ﷺ په سفر کي وو چي دخلګو یوه ډله په دوی پسي وروسته روانه وه، وېې فرمایل: چي الله ﷻ ته معلومه ده چي زه دا خبره بده ګڼم کنې زه به د دې د بیري څخه لړزېدلای وای. سفیان ثوري ﷬ فرمایي چي د تېرو بزرګانو په نزد به داسي جامې اغوستل مکروه وې کومي چي به یا ډېر نوي یا ډېر زړې وې چي فوراً د لیدونکو د نظر مرکز جوړېدې ځکه چي لباس داسي پکار دي چي چا ته دخبري کولو موقع یا ضرورت پېښ نه سي. دبشر حافي ﷬ قول دی چي ما ته خو تر اوسه یو داسي سړی معلوم سوی نه دي چي شهرت او مقبولیت یې خوښ وي او آخر رُسوا او ذلیله سوی نه وي او دین یې تباه وبرباد سوی نه وي.

**د مرتبې حقیقت او پېژندنه**: پوه سه! چي څنګه د مالداری مطلب دا دی چي مال ودولت ور سره وي او د ده په قبضه او تصرف کي وي دغه ډول د صاحب جاه او حشمت دا مطلب دی چي دخلګو زړونه د ده فرمان برداره وي او د دوی ځانونه د ده په قبضه او تصرف کي وي او کله چي د چا زړ د ده مطیع او فرمان برداره سي نو د ده مال او تن هم خپله فرمان بردار سي، او زړه تر هغه وخته پوري د چا تابع نه وي تر څو چي یې پر ده عقیده پخه نسي او د ده عظمت په زړه کي نه کښېني، او دا اعتقاد او عظمت همیشه د یو کمال په وجه سره په زړه کي ښکاره کیږي کوم چي د دغه صاحب جاه (صاحب مرتبې) په شخصیت کي لیدل کیږي، مثلاً څوک د کامل علم په وجه سره او څوک د کامل زهد او عبادت پر بناء باندي څوک د پوره ښه اخلاق په وجه او څوک د یو بل وصف په سبب سره صاحبِ کمال جوړیږي، نو خلک د ده د عظمت معتقد سي او دا اعتقاد دخلګو د زړونو د مسخر کولو ذریعه جوړه سي، نو خلک په رضا او رغبت سره د ده فرمان برداره سي بلکي د ده په اطاعت کي یو خوشحالي محسوسوي پر ژبه د ده صفتونه شروع کړي، او په تن و بدن د ده خلمتونو ته ته تیار سي تر دې چي خپل مال هم پر ده قربانوي او منع کوي یې نه. لکه څنګه چي غلام د خپل مالک تابعداري کوي دغه ډول دغه معتقدین د دې صاحب د مرتبې بې پیسو غلامان او قربانیان او دوستان

سي، بلکي دغلام غلامي خو په زبردستي وي او دا مريد اومعتقد په رضا او رغبت سره د ده مسخره سي، نو د مال مقصود يو شئ خپل ملکيت جوړول دي، او د جاه (مرتبي) مقصد زړونه خپل ملکيت جوړول دي. او په دې کي درې خبري خو داسي دي چي دکومو په وجه سره مرتبه (جاه) دېر خلک دمال څخه هم زياته غواړي، اول ځکه چي مال په دې وجه محبوب وي چي په دې سره هر ډول حاجت هر وخت پوره کېدای سي، او په مرتبه کي هم دغه خصوصيت ليدل کيږي بلکي چي مرتبه حاصله سي نو دمال حصول هم بيا زيات آسانه سي، او دمرتبې څخه محروم مالدار سړی که مال خرڅ کوي مرتبه حاصلول غواړي نو گرانه ده چي کامياب سي، بل په دې سبب سره چي دمال په وجه ډېري خطرې مخ ته رځي کله مال ضائع کيږي کله غلا کيږي او کله ور سره د خپل ځان خطره هم پيدا سي لېکن په مرتبه کي دا ډول هيڅ خطره نسته، دريم په دې سبب سره چي مال د تجارت کاروبار د تکليفونو څخه بغير لاس ته نه راځي او نه پکښي بېله تکليفه اضافه کېدای سي حال دا چي جاه او مرتبه په خپله په زړونو کي ننوځي او دځانه پکښي اضافه کيږي ځکه چي دکوم سړي زړه ستا په دام کي راسي هغه چي چيري ځي ستا صفتونه به کوي چي نور خلک هم نالېدلي پر تامين سي او تا ته راسي، او دغه ډول چي صاحبِ جاه څومره مشهوريږي په مرتبه کي يې اضافه کيږي او د ده د تابعينو شمار زياتيږي، نو د اصل مطلوب څخه صرف جاه او نه صرف مال وي بلکي جاه او مال دواړه مطلوب وي چي د ټولو حاجتونو د پوره کېدلو وسيله کيږي، لېکن بنده د طبعًا جاه (مرتبه) زياته خوښوي او په ليري ليري ښارنوو کي د خپل نوم د شهرت خواهشمنده وي د کومو په باره کي چي ده ته معلومه وي چي چيري ور ته هم نه سي رسېدای او دا غواړي چي ټول جهان د ده ملکيت سي په دې آرزو کي يو زبردست راز پټ دی او هغه دا چي بنده د فرشتو د جوهر څخه دی او ټوله کارونه يې د الهي څخه دي لکه چي ارشاد دی: قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّيْ بنی اسرائيل] (ووايه چي روح زما درب امر دی) نو د دې نسبت پرنباء کوم چي ده ته د حضرتِ ربوبيت سره دی، د ربوبيّت (حاکميت او ملکيت) طالب کېدل د ده په خمير کي داخل دي، تر دي چي فرعون ويلي وو: أَنَاْ رَبُّكُمُ الاَعْلٰى [النازعات] (زه ستاسو اعلی رب يم)نو دهر سړي د ربوبيت سره محبت وي، او دربوبيت مطلب دا دی چي هر څه دي وي،او د ده څخه ما سوا هيڅ نه وي ځکه چي کله دبل شئ وجود هم وي نو په کمال کي نقص واقع کيږي، لکه چي د لمر کمال په دې کي دي چي يو دی او هر شئ نُور د ده څخه اخلي که دغه رنګه بل لمرهم وای نو دا کمال به باقي نه وای پاته 'ر دا کمال: چي څه وي بس دی دي وی خاصيت د الهيت

دی ځکه چي په حقیقت کي هست (یعني موجود) خو هغه دی او د هغه الله ﷻ څخه ماسوا هیڅ موجود نسته، او دا څه چي په نظر راځي د هغه د قدرت نور دی او د هغه تابع دي د هغه سره شریک نه دي لکه نور د لمر د لمر تابع دی او د لمر په مقابله کي د ده خپل څه وجود نسته او نه دا د لمر ملکري یا شریک دی ځکه چي که دوه والی ظاهره سي نو دا خویه د ده د ناقصوالي سبب وي، او دا شئ د بنده په فطرت کي لیدل کیږي چي دی دا غواړي نو څه چي وي زه دي یم، او کله چي عملاً د دې څخه عاجزه سي نوغواړي چي زه داسي نه غواړم (چي هر څه دي زه یم) لېکن دا خو ده چي څه دي زما نه دي، یعني بیا دی دا خواهش کوي چي څه دي د ده په ملکیت کي دي وي د ده په تصرف کي دي وي او د ده دارادې او قصد تابع دي وي، لېکن عملاً دي د دې څخه هم عاجزه سي، ځکه چي د موجوداتو دوه قسمونه دي، او د دې څخه یو قسم خو داسي دي پر کومو چي بنده غلبه او تصرف نسي حاصلولای، مثلاً لمر سپوږمی ستوري آسمان جواهر د ملائکو، پیریان، شیطانان، او نور، دارنګه هغه شیان کوم چي ترځمکي لاندي دي او د دریابونو په بېخ کي دي او د غرونو پر سرونو دي نو انسان غواړي چي لږتر لږه دا ټول شیان په ذریعه دعلم د ده په تصرف کي راسي، نوغواړي چي ده ته دملکوت آسماني او وچي او لندې ټولو عجائباتو علم حاصل وي، مثلاً که دی د شطرنج د لوبي څخه نا خبره وي نو غواړي چي د دې متعلق معلومات دي ولري ځکه چي دا هم دغلبې او تصرف د قبیلې څخه ده، او دویم قسم خو پر هغو اشیاؤ مشتمل دی کوم چي بنده پخپله قبضه او تصرف کي راوستی سي چي دغه هغه اشیاء دي کوم چي د ځمکي پر سر موجوده دی مثلاً نباتات، جمادات او حیوانات اونور کوم چي بنده په بشپړه توګه سره پخپل تصرف کي راوستل غواړي چي د دې موجوداتو پر هر شئ ورته قبضه حاصله سي او پرټولو شیانو په بشپړه توګه قابض سي او د ده درجه په دې کي لوړه سي او د ځمکي پر مخ عزیز ترین متاع او ګران قیمته شئ پخپله د بنده زړه دی، په دې وجه زړونه مسخر کول د ده خپ خواهش وي د دې د پاره چي دغه زړه (پر کوم چي د ده قبضه ده) همیشه د ده ذکر او شهرت کوي نو د مرتبې (جاه) معنی دا ده کومه چي بیان سوه او بنده په فطري توګه ربوبیت خوښوي چي نسبت یې آخر د رب سره دی او د ده د حضور څخه بنده ته راځي، او د ربوبیت معنی دا ده چي کمال ټول او ټول هغه ته حاصل وي، او په دې سلسله کي همیشه غلبه او تسلط پکار وي او دا سبب د هغه دوستی دی کومه دوستی چي بنده دمال او مرتبې سره وي.

**د مرتبې سره د محبت علاج:** یاد ساته! چي د مرتبې محبت او دوستي که پر زړه باندي غالبه

سي نو دا د زړه د مریض کېدلو دلیل دی، او د دې علاج کول ډېر ضروري دي ځکه چي څرنګه د مال محبت انسان په منافقت، ریا کاري، درواغو، مکر او فریب، عداوت، دښمني حسرت او جنګ جګړو کي مبتلا کوي دغه رنګه دمرتبې محبت یې هم په دې بدیانو کي مبتلا کوي، بلکي دمرتبې محبت د مال د محبت څخه ډېر بد وي، ځکه چي دا پر زړونو زیات غالبه وي، دکوم سړي په زړه کي چي دمال او مرتبې طلب په قدر د کفایت موجود وي چي مقصد یې ځیني صرف سلامتي د دین وي او زیات طلب یې په زړه کي موجود نه وي نو داسي زړه ته مریض نسي ویل کېدای، ځکه چي فی نفسه د ده دوستی دمال او جاه سره نه ده بلکي د دین د پاره د فراغت په غرض سره وي، لېکن داسي خلګ هم وي د کومو چي دمرتبې سره دومره محبت وي چي د ده دغور او فکر ټول صلاحیتونه د خلګو په خیالاتو معلومولو باندي صرف کېږي، او دی په دې شغل کي مستغرق وي چي څنګه به ده ته دا معلومه سي چي خلګ ده ته په کوم نظر سره ګوري، او د ده په باره کي د دوی رایه څه ده او د ده سره یې څومره عقیدت دی؟ او دا فکر د ده پر ذهن داسي مسلطه وي چي دی په هر کار کي چي مشغول وي خو زړه یې په دې تصور کي ډوب وي چي دخلګو به د ده په باره کي څه خیال وي؟ نو د کوم سړي چي دا کیفیت وي، د ده زړه ناروغه (مریض) دی او ده ته د دې ناروغي علاج خامخا کول پکار دي او دا علاج پر ده فرض دی، او دا علاج هم د علم او عمل څخه مرکب وي، نو علمي علاج یې دا دی چي د مرتبې څخه پر پیدا سوو آفتونو غور وکړي کوم چي د دې په وجه سره په دې دنیا کي راپیدا کیږي او عمومًا د دې کیفیت او نوعیت دا وي چي دمرتبې د طلب مریض همیشه د امکاني ذلت او رسوایي د خلګو د زړونو رعایت او خوښو په معلومولو کي مستغرق وي او که په حصول دمرتبې کي ناکام سي نو خپل پخپله ذلیله او خوار سي او که کامیاب هم سي نو د حاسدانو حسد را بیداره سي او هغه یې په آزار ورپسې سي نو نوي نوي مصیبتونه ورته راپیښیږي چي دخلګو د دښمنیانو اومخالفتونو څخه تحفظ څنګه وکړي ؟ او د دوی د شرارتونو څخه محفوظ کېدل ډېر ګران دي، نتیجه دا وي چي که د دښمنانو څخه د مقابلې او مدافعت په کوشش کي ناکامه سي نو ذلت او رسوایي یو لازمي امر دی لېکن که پر غالب راسي هم نو څه دي؟ چي داغلبه او جاه خو پخپله باقي نسي پاته کېدای، ځکه چي دجاه تعلق خو د خلګو د زړونو سره وي کوم چي همیشه ژر واپس کیږي او د دریاب د څپو په ډول کله یوې خوا او کله بلې خوا ته مخ کوي او د دې عزت او جاه څخه زیات ناپائیداره شئ به څه کېدای سي چي د هغه بنیاد د یوځو بدبختانو پر زړونو باندي وي چي که نوی خیال یې په زړونو کي پیدا سي نو د عزت او جاه رُخ به هم تبدیل سي (د دوی زړونه خو نن ورځ د "الف" صبا د "ب" او بله ورځ د

"ج" د سرداری سندري وايي) په ځانګړې توګه د هغه سړي مرتبه او عزت خو ډېر کمزوری وي کوم چې ده ته د حکومت په سبب حاصل سوی وي ځکه چې د ده د معزوله کېدلو خطره خو يوه مسلسله خطر ده او دغه رنګه هر وخت د معزوله کېدلو په وجه دی خوار او ذليله کېدای سي او دغه ډول د مرتبې طالب په دې دنيا کي هم په ذهني عذاب کي مبتلاوي او دآخرت عذاب خو ورته ماسوا وي، او په دې خبره خو د ناقص او کمزوري عقل خلک نه پوهيږي ليکن هغه سړی چا ته چې مکمل بصيرت حاصل وي په دې حقيقت پوه وي چې که د دنيا ټول حکومتونه ده ته ملاو سي او د مشرق څخه تر مغربه پوري سرداري ده ته حاصله سي تر دې چې خلک ده ته سجدې کوي نو هم په دې کي د خوشحاله کېدلو قطعاً څه خبره نسته، ځکه چې څنګه ده ته مرګ راسي دا هر څه به د هغه نذر سي، نه به دی پاته سي نه به يې جاه او حشمت او نه به هغه سجده کوونکي (بلکي د دغو تنديان به اوس د بل پر درشل پراته وي) او د ده به هغه انجام سي کوم چې د ده څخه د مخکي بادشاهانو را روان دی چې څوک به يې د نوم قدر لا هم نه اخلي، او په هېره به يې هم څوک نوم نه اخلي، بلکي کوم سړی چې د مرتبې د طلب مريض وي دی دآخرت ابدي سلطنت پر دې فاني عارضي سلطنت قربانوي، د مرتبې سره چې چا هم دوستي کړې ده د الله ﷻ دوستي د ده د زړه څخه رخصت سوې ده او کوم سړی چې د دې دنيا څخه د رخصتېدو په وخت د الله ﷻ د محبت څخه ماسوا بل شئ د خپل ځان سره يووسي د ده د عذاب داوږدوالي اندازه کول هم محاله دي نو د علمي علاج تفصيل يې دا دی چې بيان سو.

اوس پاته سو عملي علاج نو د دې دوه صورتونه دي يو خو دا چې کوم ځای ده ته جاه او حشمت حاصل وي دغه ځای دي پرېږدي او يو داسي ځای ته دي ولاړ سي چې څوک يې نه پېژني او دا پرخپل ځای کامل علاج دی ځکه چې د مرتبې پرېښودلو سره سره که دی ځای بدل نه کړي او پخپل ښار کي پاته سي ګوښه نشين سي نو ده ته به د غم رسيدلو خطره وي، ځکه په خلکو کي به داسي هم وي چې وايي به دا ګوښه نشيني (خلوت) نه دی منافقت دی نو ښکاره ده چې په دې سره به دی خفه وي، يا به څوک ته تهمتونه پر لګوي چې پر خپل فلاني جرم د پردې اچولو د پاره يې اوس د ګوښه نشينۍ ډول وړغولو او ده ته به عذر معذرت کول وي چې داسي نه چې دا خلک د ده څخه بدګمانه سي، او دا هر څه د دې خبري دليل هم دي چې د مرتبې د محبت نقشونه به لا اوس هم د ده د زړه څخه خراب سوي نه وي،

دويم علاج يې د ملامتيا لاره اختيارول دي يعني سره د پوهي داسي کارونه کول چې د خلکو په نظر کي بې وقعته او رسوا سي او د چا په زړه کي د ده عزت پاقي پاته نسي، د دې مطلب دا هيڅ کله نه

دي چي حرام کاري یا حرام خوري ته دي ملاوتړي لکه چي داحمقانو یوې ډلې نن صبا فساد راپورته کړی دی او د دې نوم یې ملامت ایښی دي، یعني ځان ته په اهل ملامت ویلو باندي اصرار (ټینګار) کوي، بلکي یو داسي قسم کار کول ښکار دي لکه چي یو زاهد کړی وو.

**قصه**: هغه دا چي د ښار حاکم و ده ته د سلام کولو د پاره ولاړی چي فیض او برکت ځیني حاصل کړي لېکن زاهد چي دلیري شخه دی په راتلو ولیدی نو ډوډۍ او سالن یې راوغوښتی او داسي په بدتمیزي یې خوراک شروع کړی چي غټي غټي ګولې به یې پرلپسي په خوله داسي خوړلې چي یوه به تېره نه وه بله به یې وخوړله، حاکم چي دا حال ولیدی نو زړه یې ځیني بد سو او نادیده حریص (لالچي) یې وګڼی ځیني بدګمانه سو او واپس ولاړی، او نور خلک هم ځیني بدګمانه سو، نو دې شخه وروسته یو بل عابد د خلکو د نظر منظر جوړ سو هغه چي کله دخلکو په نظر کي خپل قبول والی ولیدی نو یوه ورځ حمام ته ولاړی او هلته یې خپلي زړې جامي پرېښودې، د بل قیمتي او ښه جامې یې راوغوښتې او وا یې غوستلې او یو ځای ته ولاړی ودرېدی، په دې کي د جامو مالک خپلي جامې لټولې چي ده ته راغلی نو ویې نیوی او خلک پر را ټول سوه ښه یې ووهی جامې ځیني واخیستې او ویې ویل چي دا خو هم یو ټګ راغلی دي، دغه ډول یو بل بزرګ د ملامت د لاري اختیارولو د پاره دا بهانه جوړه کړې وه چي پیاله به یې د شرابو په رنګ د سرکې شخه ډکه کړې وه د شرابیانو په انداز به یې څښله چي خلک وواییي چي دا شرابي دی، نو د حرص او خواهش د مرتبې د ماتولو علاج دا هم دی، او د دې ډېري طریقي کېدای سي، الله ﷻ په اصل خبر دی.

## د خلکو شخه د خپل تعریف (صفت) اورېدلو شوق اود شکایت بد ګڼلو علاج

په دې خبره د پوهېدلو کوشش کول ښکار دي چي آخر څه وجه ده چي یو سړی دخلکو شخه د خپل تعریف اورېدلو د حرص تر اندازې پوري شوقي وي، او همېشه د شهرت او نېکنامي خواهش د ده پر سر سپور وي هغه که د شریعت د خلاف کارونو په عوض ولي نه وي او خپل د مذمت او بد بیان ډېر بد پر لګېږي، هغه که د ده دا فعل د شریعت پوره مطابق ولي نه وي او خلک خامخا د ده مذمت کوي (نو په دې صورت کي خو ده ته پر دې ناراضه کېدل نه دي ښکار، خو دی د حق پرېښودلو ته تیار وي خو خپله بدو اورېدلو ته تیار نه وي) نو دا هم یقیناً د زړه مرض دی لېکن د دې علاج تر هغه وخته پوري نسي معلومېدای تر څو چي هغه اسباب معلوم نسي تر کوم لاندي چي دی په صفت خوشحاله او په مذمت خفه کیږي، نو پوه سه! چي د خپل صفت په اورېدلو د خوشحاله کېدلو سببونه څلور دي:

(١) اول دا کوم چي موږ مخکي ویلي دي چي بنده د ته د خپل کمال سره محبت وي او خپل نقص ده ته خپل دښمن معلومیږي او صفت همیشه دلیل د کمال ګڼل کیږي او بعضي وخت دا هم کیږي چي بنده ته پخپل کمال کي یو شبه غوندي وي او لذت یې نا مکمله وي، دغه وخت که څوک د ده د کمال تعریف شروع کړي نو د ده یقین راسي چي د شبهي څه خبره نسته او زړه یې راحت حاصل کړي او بې قراري یې لیري سي، او د خپل تعریف په اوریدو سره په ده کي د ربوبیت احساس رابیداره سي، او د ربوبیت سره د ده طبعًا محبت او رغبت وي، او کله چي بدوالی د چا څخه اوري نو د خپل نقص څخه خبریږي او د ده په دې احساس سره ربوبیت ته نقصان رسیږي او دی خفه سي نو که خپل بدوالی یا ښه والی دیو داسي سړي څخه واوري چي هوښیار وي لافي وهونکي درواغجن نه وي لکه استاد یا مصنف یا عالم او نور وي نو خامخا ده ته اګاهي هم زیاته وسي او رنځ یا راحت ورته هم دومره زیات محسوسیږي، او صفت یا مذمت کوونکي که جاهل ناپوه وي نو په صفت سره داسي لذت نه محسوسیږي ځکه چي د ده پر خبره یې یقین نه وي.

(٢) دویم دا چي تعریف د دې خبري دلیل دی چي تعریف کوونکي د ده معتقد دی او د ده زړه د دې سړي مسخر دی او د ده ملکیت دی او دا چي دمداح په زړه کي د ده لوی قدر او مرتبه لیدل کیږي، او مرتبه خو محبوبه وي نو که مدّاح (صفت کوونکی) پخپله لوی سړی وي نو بیا خو د ممدوح د لذت او خوشحالي څه ځای نسته، ځکه چي د داسي سړي زړه که په قبضه کي راسي نو د ممدوح پر خلګو د نورو قدرت حاصلیدل عینِ امکان وي، او که مداح یو کم اصله (بد ذاته) او بیکاره سړی وي نو هغومره لذت ورته نه حاصلیږي.

(٣) دریم دا چي مدح او ثنا د خپل ځان سره دا خوشخبري (زیری) هم راوړي چي د ده د صفت په اوریدو به نور خلګ هم د ده په دام کي راسي او کله چي پر ډیرو زړونو د ده قبضه وي نو ډیر خلګ به د ده معتقد کیږي او د یوه څخه یوه ته او د بل څخه بل ته به د ده شهرت خوریږي، نو که تعریف په ښکاره وي او د داسي سړي د ژبي څخه وي چي خلګ یې پر خبره یقین کوي نو دومره به یې لذت زیات وي او که دا سړی یې بد وایي نو بیا به ذهني پریشاني و تکلیف دومره زیات وي.

(٤) څلورم دا چي تعریف کول د دې خبري هم دلیل دی چي مداح د ده د حشمت قائل دی بلکي مقهور دی او حشمت بنده ته ډیر عزیز وي هغه که قهري ولي نه وي، تر دې چي که دی پوه هم سي چي مدّاح څه وایي دا د زړه څخه نه دي لیکن حاجت مندي د ده پر مدح مجبوره کړی دي خو بیا هم دی لذت محسوسوي ځکه چي په دې صورت کي جذبه د فخر د ده په زړه کي راپورته کیږي چي

وګوره دا زما د قدرت کمال دی چې دی په زړه سره زما معتقد نه دی بيا هم زما تعريف کوي، ځکه چې ما ته محتاج دی او زه د ده حاجت پوره کولای شم، لېکن که تعريف په داسي انداز سره وکړي چې ممدوح پوه سي چې مداح څه وايي دانه صرف دا چې دروغ دي ځوک يې تسليمولو ته تيار هم نه دي او نه دا چې په زړه سره وايي بلکي صرف په مسخرو (ملنډو) او په ده پوري مذاق کوي وايي نو ممدوح ته به په دې کي هيڅ لذت محسوس نسي، ځکه چې د لذت ټول اسباب تللي دي.

اوس د اسبابو علم خو تا ته وسو د دې ځخه وروسته د دې علاج پېژندل هم آسانه سو او که ته کوشش وکړې نو د دې علاج هم کيږي، ځکه چې اولنی سبب خو دا دی چې دمدح کوونکي خبري ته وارډې نو د خپل کمال قائل او معتقد به سي نو تا ته غور پکار دي چې کومي ښېګڼي او صفتونه ده بيان کړل دغه صحيح هم دي او په تا کي موجودي هم دي؟ مثلاً ده تا ته پرهيزګاره او عالم ويلي دي نو آيا ته رشتيا داسي يې ؟ او که يې! نو خوشحالي پر هغه صفت پکار ده (چې موجود وي) او سبب يې الله کړل پکار دي کوم چې دا صفت در کړی دي نه دا چې د صفت کوونکي صفت ستا د خوشحالی سبب جوړ سي، ځکه چې د ده په صفت دغه نه زياتيږي او نه کميږي دغه ټول که د ده د مدح بنياد ستا پر مالداری وي يا خواجګي او سرداري تا ته حاصله وي يا نور دنيوي اسباب تا ته حاصل وي نو په دې کي خو د خوشحالی څه خبره نسته، او که ستا په نزد وي هم نو د خوشحالی سبب خو هغه دولتمندي او خواجګي ده، نه چې د صفت کوونکي صفت؟ بلکي عالم هم که د خپل علم او ورع څخه خبر وي نو ده ته به خوشحالي د لږ څخه لږ هيڅ کله نه وي ځکه چې د خاتمې بېره به ور سره وي، چې د ته به يې معلومات هم نه وي چې کله او څنګه به واقع کيږي؟ او د کوم شئ چې معلومات نه وي دهغې په ضايع کېدو کي څه شبه کېدای سي؟ نو د چا چې ځای دوږخ وي هغه ته خوشحالي د څه خبري ده؟ او که دغه صفت په ده کي موجود نه وي او پوه هم وي چې په ده کي نسته مثلاً مدّاح ور ته عالم او پرهيزګاره وايي او ممدوح ته معلومه وي چې دی دروغ وايي لېکن بيا هم خوشحاليږي نو دا صرف حماقت (جهالت) دی او د ده مثال د هغه سړي په ډول دی چې مداح ووايي زما د ممدوح څخه به څه وايې هغه خو داسي پاک انسان دی چې کولمی يې د عطرو او مشکو څخه ډکي دي حال دا دي چې ښه معلومه ده چې هغه خو د ګندګيو څخه ډکي دي او که ممدوح په دې هم خوشحاله کيږي نو دا بالکل لېونتوب دی، دغه ټول نور اسباب چې مَاحَصَلَ يې د مرتبې او دبدبې محبت وي د دوی علاج هم بيان سوی دي، نو که يو سړی ستا مذمت کوي نو په دې خفه کېدل يا د غصې او غضب اظهار کول هم صرف جهالت او حماقت دی چې که هغه رشيتا وايي نوفرشته ده او که د رواغ

وايي او په پوه وي نو شيطان دی او که په پوه وي چي دا دروغ دي نو خر او جاهل دی، او که الله ﷻ څوک مسخ کړي وي خر او احمق يې ځيني جوړ کړی وي نو ستا په دې کي د خفګان څه دي؟ دغه ډول که هغه يو څوک شيطان يا فرشته جوړ کړي نو ستا د خفه کېدلو او په قهر کېدلو څه ضرورت دی؟ بلکي پکاره ده چي که هغه رشتيا وايي نو تا ته پر دي خپل نقص خفه کېدل پکار دي کوم چي په تا کي دی، او د دې په اصلاح توجه کول پکار دي، نه چي بدګنل، او که ده څه داسي نقص بيان کړی دي چي د دين متعلق دي نو د ده په وړنا سره نه دي، او که د دنيا سره متعلق دي نو هم د ده په وړنا سره واقع سوی نه دي، او د اهل دينو په نزد د ده داوړنا نه عيب دی او نه هنر دی، او دويمه دا چي په دې خبره غور وکړي چي څه چاوويل دا به د درې حالتونو څخه خالي نه وي: (۱) که ده رشتيا ويلي وي او د شفقت په توګه يې ويلي وي نو احسانمند کېدل يې پکار دی، ځکه چي که يو سړی تا خبر کړي چي ستا په جامو کي مار دی او د ده دا خبره په دې غرض سره وي چي ته ځيني خوندي سي نو دا خو يو احسان دي (نه چي دښمني؟) نو تا ته يې شکريه ادا کول پکار دي، او کوم عيب چي د دين متعلق وي هغه خو د مار څخه بد تر وي چي په آخرت کي به ستا د هلاکت باعث وي،او پخپله په دې دنيا کي هم، مثلاً که ته بادشاه ته روان يې او يو سړی تا ته ووايي چي اې پليتو جامو والا! هلته د تلو څخه مخکي خو خپلي جامې صافي کړه او ته وينې چي واقعي ستا په جامو پوري پليتي ده او په دې جامو کي بادشاه ته تلل تا د سزا په خطره کي اچوي، او هغه دا خبره وکړه ته يې د خطري څخه خوندي کړې نو يقيناً تا ته پکار دي چي شکريه يې ادا کړې او که هغه دا خبره دغصي او د نفرت څخه هم ويلې وي خو بيا هم تا ته يې په هر حال فائده ورسوله ځکه چي ده څه وويل رښتيا خو وو، پاته سو دغصي سوال نو دا خو يو خيانت دی چي هغه پخپل دين کي وکړی (ستا په دين کي نه دي) تا ته خويې فائده ورسوله او نقصان خو هغه ته ورسېدی، تا ته غصه نه ده پکار، او که ده دروغ ويلي وي نو هم تا ته سوچ پکار دی چي که ته د عيب څخه پاک يې نو څه وسول؟ د دې څخه ماسوا نور چي شومره عيبونه په تا کي موجود دي چي ده ته نه دي ښکاره، په دې وجه سره په دې صورت کي هم تا ته شکر کول پکار دي چي الله ﷻ ستا پرده وساتله او ستا واقعي عيبونه يې ده ته ښکاره نه کړل، او بيا دا خو هم ده چي دې سړي که ستا عيب جوئي وکړه خو خپلي ټولي نېکي يې ګويا تا ته په هديه کي در کړې، او دا حيقت هم ياد ساتل پکار دي چي ده ستا په دروغه که تعريف کړي وای نو دا به ستا د قتل مترادف وای نو بيا ته پخپل قتل خوشحاله کېدی سوې؟ او خفګان دي صرف پر دې دی چي هغه تا ته خپلي نېکي په هديه کي در کړې؟ دا خبره خو صرف هغه سړی کوالای سي کوم چي د

اعمالو او افعالو صرف په ظاهري صورت باندې نظر ساتي او د معنی او حقیقت سره يې څه کار نه وي او دا هغه انداز فکر دی کوم چې عاقل د احمق څخه جلا کوي، او دا هغه فرق دی په کوم سره چې په دانا او احمق کې فرق راځي، چې عقلمند خو د هر شئ د حقیقت پېژندلو کوشش کوي او د صورت او ظاهر سره د ده فکر نه وي او خلاصه د بحث دا ده چې تر څو پوري د خلکو د طمع اُمید ختم نه کړل سي د دې مرض د زړه څخه دلیري کېدو اُمید ممکن نه دی.

## په مدح او ذم کې د خلکو د درجو تفاوت

خلک د خپل مدح (صفت) او مذمت (بد) په اورېدلو کې پر څلورو درجو تقسیمیږي:
اوله درجه د عوامو ده چې په صفت سره خوشحاله او په بد ویلو سره ناخوښه وي او بدله اخیستو ته تیار وي دا ډېره بده درجه ده، دویمه درجه د فقیرانو خلکو ده چې په صفت سره خوشحاله او په بد ویلو سره ناراضه وي لېکن په معامله کې اظهار نه کوي دواړو ته په ظاهر برابر لېکن په حقیقت کې یو ته په زړه کې بد او بل ښه ګڼي، دریمه درجه د متقیانو ده چې دوی دواړه برابر ساتي په ژبه سره هم او په زړه سره هم تعریف کوونکي دوست نه ګڼي او پر بد ویونکي د دښمن خیال نه کوي ځکه چې دوی نه په تعریف سره خوشحاله کیږي او نه په بدویلو سره ناراضه کیږي او بعضي عابدان دا خیال کوي چې موږ دې درجې ته ورسېدو حال دا دی چې دوی غلطي کوي دې درجې ته د رسېدو نښه دا ده چې که بد ویونکی د دوی سره وي نو د تعریف کوونکي په نسبت د ده پر زړه ګران نه لګیږي، او که دی په یو کار کې معاونت وغواړي نو د تعریف کوونکي په مقابله کې په آساني او خوښي سره د ده معاونت کوي که دی د ملاقات کولو خواهشمند وي نو د تعریف کوونکي په پول د ده سره ملاقات کوي که مر سي نو د ده په تعزیت او تعریف کې کمی نه کوي، مذمت کوونکي که څوک آزار کړي نو دومره په خفه کیږي لکه په تعریف کوونکي چې خفه کیږي که تعریف کوونکي څه غلطي وکړي نو هغه ورته سپکه نه معلومیږي، دا خبري ډېر ګراني دي او ممکنه ده چې عابد دا ووايي چې زما بد ویونکي ته زه ځکه غصه کووم چې دی ځان ګناه ګاره کوي دا په اصل کې د شیطان فریب دی ځکه چې داسي ډېر خلک دي چې ګناه کبیره کوونکو او د خلکو بدویونکو ته د خفګان اظهار نه کوي دا خبره د دې شئ دلیل ده چې د دې غصې سبب نفسانیت دی دینداري نه ده جاهل عابد په داسي باریکیو په مشکله سره پوهېدای سي. څلورمه درجه د صدیقینو ده کوم چې تعریف کوونکي دښمن او بدویونکي دوست ګڼي ځکه چې په دې سره دوی ته دږې فائدې رسیږي، یوه خو دا چې په

دې سره ورته خپل عیب معلوم سي (اصلاح یې آسانه وي)، دویم دا چي ده ته خپلي نېکي په تحفه کي ورکړي او دریم دا چي ده د نقص اوعیب څخه د پاکېدلو ترکیب ورکړي، نبي کریم ﷺ فرمایي افسوس دی! پر هغه روژه دار او تهجد گزاره کوم چي زړې او خرابي جامې اغوندي مگر د دنیا څخه قطع تعلق نه کوي او صفت کوونکی خپل دښمن او بد ویونکی خپل دوست نه گڼي، او دا حدیث که صحیح وي نو کار نور زیات مشکل کیږي چي دې درجې ته رسېدل خو انتهائي گران دي، بلکي د سختیانو دویمه درجه هم څه لږ سخته نه ده په کومه کي چي صرف په ښکاره توگه مدح او ذم برابر گڼل پکار وي، ځکه چي غالبه دا وي چي کله هم کار وسي نو د انسان رجحان او د طبع میلان تعریف کوونکي طرف ته وي، او په معاملاتو کي هم دا رغبت نمایان (ښکاره) وي او دې آخري درجې ته خو څوک رسېدی هم نسي، ما سوا د هغه سړي څخه کوم چي د خپل نفس دومره دښمن سوی وي چي پخپله د خپل ذات هم بیا دښمن وي او کله چي د ده په باره کي د ده عیب د چا څخه واوري نو خوشحاله سي ځیني، بلکي د دغه عیب لټوونکي د ذهانت او عقلمندي معتقد سي، لکه خلک چي د خپل دښمن عیب واوري خوشحاله سي او دا خبره په دې دنیا کي انتهائي نادره او نایابه ده بلکي ټول عمر که په دې کوشش کي تېر کړي انسان په مشکله دې درجې ته رسېدای سي چي مدح او ذم کوونکي برابر وگڼي، او دې آخري درجې ته رسېدل خو د دې څخه زیاته گرانه ده، او پوه سه! چي په دې کي وجه دخطرې دا وي چي کله بنده ته په مدح او ذم کي فرق معلوم سي نو په دواړو کي چي کوم شئ پر زړه غلبه حاصلوي هغه مدح وي او بنده د دې د پاره حیلې او بهانې سوچ کوي، او بالکل ممکنه وي چي د ده عبادت په ریا کاري سره ککړ سي تر دې چي که د تعریف اورېدلو د پاره د گناه مرتکب سي نو شاید چي د دې څخه هم ډډه ونه کړي، څنگه چي نبي ﷺ ارشاد دی: افسوس دی پر هغه روژه داره او تهجد کوونکي چي د دنیا څخه قطع تعلق ونه کړي، شاید تر دې خیال لاندي دا ارشاد وي چي تر څو پوري دا شئ د بیخ څخه نه وي کښېنل سوی تر هغه وخته انسان په پوره توگه گناه ته راغب کېدل جاري وي، لېکن خپل ذم مکروه گڼل او تعریف ښه گڼل في نفسه حرام نه دي په دې شرط چي د مدحي اوذم کوونکي په نیت کي فساد نه وي (او نه ځیني اورېدونکي په فتنه او شر کي مبتلا کیږي) او دا ډېره مشکله ده چي شر او فساد پکښې مطلق نه وي ځکه چي په خلکو کي د گناهونو جذبه اکثره د مدح او ذم په نتیجه کي پیدا کیږي، او ټول خلک دا تصور کوي چي څه هم کوي، خلکو ته د ځان ښوولو د پاره وسي یعني چي برداشت او خوښ یې کړي، او کله چي دا شئ غلبه حاصله کړي نو بیا بنده داسي داسي کارونه کوي کوم چي د پاکۍ څخه ډېر لیري وي، کې

دخلکو زړه ساتل یا ور سره مروت اونک کول خو حرام نه دي په دې شرط چي صرف د ریا کارۍ پر بُنیاد نه وي، او اصل حال خو الله ﷻ ته معلوم دی.

## اتم اصل: په عبادتونو کي د ریا کارۍ علاج

پوه سه! چي د الله ﷻ په عبادت کي ریا کاري گناه کبیره او شرک ته نژدې ده او د عبادت کونکو زړه چي په کومه ناروغي سره زیات مغلوبه کیږي هغه ریاء ده یعني عبادت کوي خو خواهش یې دا وي چي خلک د ده د عبادت څخه خبر سي او د ده د پارسائی او پرهېزگارۍ قائله سي، او د کوم عبادت مقصد چي خلک خپل معتقد جوړول وي دغه به په عبادت کي څنګه شمار کړل سي چي دا خو د الله ﷻ د عبادت نه سو د خلکو سو او په کوم عبادت کي چي د الله ﷻ د پرستش سره د خلکو پرستش هم وي دغه شرک دی د الله ﷻ ارشاد دی: فَمَنْ كَانَ يَرْجُو لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا (الكهف:۱۱۰) (کوم سړی چي د خپل رب د ملاقات اُمید لري هغه ته نېک عمل کول پکار دي او دخپل رب په عبادت کي دي څوک نه شریک کوي) او فرمایي: فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّينَ (۴) الَّذِينَ هُمْ عَن صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ (۵) الَّذِينَ هُمْ يُرَاءُونَ (الماعون: ۶) (هلاکت دی د هغو لمونځ کوونکو د پاره چي لمونځونه په غفلت سره کوي او خلکو ته ځان ښیي) نو افسوس دی پر داسي خلکو چي لمونځ یې په سهوه سره د ریا کارۍ لمونځ وي، یو سړی د نبي ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي نجات په کومه خبره کي دی؟ ویې فرمایل په دې کي چي ته دخدای عبادت وکړې لېکن خلکو ته یې دښوولو د پاره نه کوې یعني د ریا کارۍ دخل پکښي نه وي، او فرمایي چي د قیامت په ورځ به یو سړی حاضر کړل سي پوښتنه به ځیني وسي چي تا څه عبادت کړی دی؟ وبه وایي چي ما خپل ځان د الله ﷻ په لار کي قربان کړی او په جهاد کي شهید سوم د الله ﷻ د طرف څخه به ارشاد وسي چي ته درواغجن یې ځکه چي ستا جهاد ته تلل په دې غرض سره وو چي خلک تا ته بهادره وو ایي، او دی به دوږخ ته واچول سي، بیا به یو بل سړی راوستل سي او دغه پوښتنه به ځیني وسي چي تا څه عبادت کړی دی؟ دی به وو ایي چي زما سره څه وو هغه ما د خدای په لاره کي صدقه کړل، ارشاد به وسي ته درواغ وا یې ستا مقصد دا وو چي خلک ما ته سخي وو ایي او دی به هم دوږخ ته واچول سي، بیا به بل سړی راپېښ سي د هغه څخه به هم دغه پوښتنه وسي نو هغه به وو ایي چي ما د قرآن علم حاصل کړی او په دې حاصلولو کي مي ډېر ریاضتونه او مجاهدې وکړې، ارشاد به وسي چي ته درواغ وا یې ځکه د دې علم څخه ستا مقصد دا وو چي خلک ستا معتقد سي او تا ته غټ عالم وو ایي، او بیا به دی هم دوږخ

ته واچوي، او فرمايي ما ته زما د امت په باره کي د هيڅ شي دومره زيات ته ېره نسته څومره چي د هغه کوچني شرک ده کوم ته چي ريا کاري وايي، او فرمايي د قيامت په ورځ به الله ﷻ وفرمايي: اې ريا کارو! ځئ! په هغه خلکو پسي د کومو د پاره چي تاسو عبادت کولو اوس ځئ د هغو څخه خپل اجر طلب کړئ، او فرمايي د: جُبّ الحزن: يعني د غم د غار څخه د الله ﷻ پناه غواړئ خلکو عرض وکړی يا رسول الله! دا څه شئ دي؟ ورې فرمايل: يوه کنده ده په ځانګړې توګه د ريا کارانو د پاره جوړه کړل سوې ده، او فرمايي د الله ﷻ ارشاد دی: کوم سړی چي زما په عبادت کي بل زما شريک جوړ کړی هغه دي پوه سي چي زه د شريک څخه بې نيازه يم نو د ده عبادت به هغه ته ورکړم څوک چي ده زما سره شريک کړی دي، فرمايي د الله ﷻ په نزد هغه عبادت د قبلولو ور نه دی په کوم کي چي د رياء شائبه موجوده وي، حضرت معاذ ﷺ يې په ژړا وليدی حضرت عمر ﷺ پوښتنه ځيني وکړه نو هغه ورېل ما دنبي کريم ﷺ څخه اورېدلي دي چي رياء که څه هم يوه ذره ولي نه وي بيا هم په شريک کي داخله ده، او فرمايي د قيامت په ورځ به ريا کار ته يو داسي خطاب وفرمايي: اې نابکاره، ريا کاره، اې غدّار مکار! واوره ستا عملونه بېکاره او ضائع کړل سو او ستا اجر باطل سو، اوس ته صرف د هغه سړي څخه خپل اجر طلب کړه د کوم د پاره چي تا عمل کوی.

خليفه عمر بن عبد العزيز رحمه الله فرمايي چي د قضاء الهي څخه چي څه پر ما تېر سوي دي ما شکر پر ايستلی دي کله مي دا خواهش نه دي کړی چي کاش داسي نه وای سوي، او زما خوښي په دې کي وه چي هغه دي وي کوم چي زما په تقدير کي وي، لېکن دا ټولي خبري د هغو بزرګانو دي کومو ته چي اهلِ قوّت وايي، هرکس او ناکس ته داسي خبري ښې نه دي اونه ور سره ښې ښکاري او دا خبره هم هميشه ياده ساتل پکار ده چي د الله ﷻ ډېر کارونه داسي هم دي چي ښخ ته يې رسېدل ګران دي بلکي د هر يوه شرّ په ښخ کي هم څه نا څه مصلحت پټ وي کوم ته چي زموږ ذهن رسېدای نسي تر دې چي بعضي وخت په رياء کي هم د خلکو د پاره د خير او مصلحت اړخ موجود وي، او د دې سره متعلقه ريا کار که څه هم پخپله په هلاکت او تباهي کي مبتلا کېږي، ځکه چي ډېر خلک دی مخلص وګڼي د ده پېروي کوي، مثلاً:

**قصّه**: ده چي په بصره کي په يوه زمانه کي دا حالت وو چي د ښار په لارو کوڅو کي چي به هر طرف ته تلل وو، د هر طرف څخه به د تلاوت ذکر او تسبيح آواز پورته کېدلو او هر څوک به د دې وطرف ته مائل او راغب کېدلو، يو سړی عينِ په دغو ورځو کي يو کتاب د "دقائقِ ريا" (د رياء باريکی) په نوم

سره ولیکی، په دې باندې خلګو د ذکر او تسبیح او تلاوت قرآن هغه سلسله ترک کړه او دې تصنیف د دوی په رغبت او تقلید کې خلل راپورته کړی، نو خلګو به ویل چې ای کاش! دا کتاب لیکل سوی نه وای، نو ریا کار بعضې وخت پر خلګو باندې قربانیږي هم یعنې پخپله خو هلاک سي خونورو ته د نجات لار وښیي.

**د ګناه پټې ساتلو اجازت:** پوه سه! چې کوم ځای اظهار د عبادت په ریا کارۍ کې داخل دی هلته د ګناه پټ ساتل هر وخت جائز او روا دي، او د دې د پاره اووه عذرونه د منلو وړ مقرر سوي دي:

(۱) اول عذر خو دا دی چې د فسق فجور پټولو تاکید پخپله الله ﷻ فرمایلی دی، او د نبي ﷺ ارشاد دی چې کوم سړی ګناه وکړي نو بیا دې داسې وکړي چې دالله ﷻ په پرده د کرم کې دې د پټولو کوشش وکړي.

(۲) عذر دا دی چې که د ده ګناه پټه پاته سي، نو ګویا دا خوش خبري د دې خبرې هم ده چې څه عجیبه ده چې په بل جهان کې هم پټه پاته سي (او وبخښل سي).

(۳) دریم عذر دا دی چې د خلګو ملامت کول به دی پرېشانه کړي او د عبادت په مشغولیت کې به خلل واقع سي او زړه به یې منتشره او پرېشانه سي.

(۴) څلورم عذر دا دی چې د خلګو ملامت او مذمت به دغه رنګه د زړه د پرېشانۍ او خفګان باعث وي چې دا د بنده طبعي خاصه ده چې په ملامت سره بې حده رنځور او مات زړی کیږي، په دې وجه دخفګان څخه ځان ایستل نه دي حرام کړل سوي پاته سوه دا خبره چې انسان مدح او ذم برابر ولې نه ګني، نو خبره دا ده چې دا درجه د توحید پرستۍ انتهائي منزل ته رسېدونکو ته نصیب کېدای سي هر سړي دې لوړې مرتبې ته کله رسېدای سي؟ لېکن د مذمت د بېرې څخه عبادت کول جائز نه دي، ځکه په عبادت کې په بنیادي توګه د اخلاص ضرورت وي، ها! دا صحیح ده چې د مدح او ستاینې په نه کېدلو باندې صبر کول آسانه وي لېکن پر مذمت او ملامت صبر کول بې حده ګران وي.

(۵) پنځم عذر دا دی چې که د دې خبرې بېره وي چې دګناه په ښکاره کېدلو به خلک د ده په آزار ور پسې سي نو شریعت د دې د پټولو اجازت کړی دی که څه هم دغه ګناه که هر څومره سنګینه وي او شرعي حد ولې نه پر لازمیږي، نو د نورو د شر څخه بېره کول روا دي، لېکن دا شرط ضرور دی چې توبه ځینې وکړي (داسې نه چې د پټولو د اجازت په حرص کې نوي نوي ګناهونه په مخه کوي).

(۶) شپږم عذر دا دی چې د خلګو څه دې شرم کوي چې شرم ته ډېره غوره او د تعریف وړ ویل سوي

دي او عینِ ایمان تصوّر سوی دي، ها! په شرم او ریاء کي د ځمکي او اسمان فرق دی (شرم دي ضروري کوي).

(۷) اووم عذر دا دی چي د گناه پټولو محرّک دا جذبه وي چي هسي نه نوریې ووینې او هغوی هم بې باکه سي گناهونه کوي په دې صورت کي گناه پټوونکي به معذوره وي (یعني جائز دي). لېکن که د پټولو څخه یې مقصد خپله پرهېزگاري ښوول وي نو دا ریاء ده او حرام دي او که ظاهر او باطن یې یو وي نو دا درجه دصدّیقینو ده، او دا ځکه چي دغه خلک په باطن کي چیري گناه نه کوي لېکن که یو سړی څه گناه وکړي او بیا دا وواېي ظاهرېږي کړی چي کوم شئ الله ﷻ ته معلوم وي د خلکو څخه یې د پټولو څه ضرورت دی؟ نو دا صرف د ده جهالت دی او په هیڅ شان د ده سره نه ښائي او منع دي، بلکي واجب دا دی چي د الله ﷻ د کرم د پردې په وجه د خپل گناه څخه ماسوا د نورو گناهونه هم پټ کړي.

## د ریاء د ېېري څخه په کوم ځای کي د عبادت پرېښول جائز دي؟

د اطاعت درې قسمونه دي یو هغه چي د مخلوق سره یې هیڅ تعلق نسته لکه لمونځ روژه او نور، دویم هغه چي تعلق یې بالکل د مخلوق سره وي لکه خلافت، قضاء، حکومت، دریم قسم هغه دی چي په مخلوق کي هم اثر کوي او په عمل کوونکي کي هم لکه وعظ او نصیحت.

د اول قسم څخه د ریا په وجه لاس اخیستل بالکل جائز نه دي، لېکن که د ریا خطره په ابتداء یا میانځ کي راسي نو د دفعه کولو کوشش یې ضرور کول پکار دي او د عبادت نیت تازه کول پکار دي د مخلوق په لیدلو سره دعبادت زیاتول یا کمول صحیح نه دي ها! کوم ځای چي دا مشکل راسي چي د عبادت مطلق نیت پاته نسي او ټوله ریاء سي نو هلته عبادت څه دی؟ ها! اصل نیت چي تر څو پوري باقي وي نو د عبادت څخه لاس اخیستل صحیح نه دي، حضرت فضیل رحمه الله فرمایي چي د مخلوق د لیدلو د ېېري څخه عبادت پرېښوول ریاء ده او مخلوق ته د ښوولو د پاره عبادت کول شرک دی، شیطان دا غواړي چي ته عبادت ونه کړې کله چي د دې څخه عاجزه سې نو تا ته وایي چي خلک ديویني او دا ریاء ده اطاعت نه دی، چي دا فریب در کړي او تا د عبادت څخه منع کړي، که ته دې ته وگورې او مثلاً د خلکو څخه وتښتې او ځمکي ته لاندې ولاړسې نوهم به هغه وایي چي دخلکو خیال دی چي ته ځکه راتښتېدلی یې چي ته زاهد یې نو دا خو زهد نه سو، نو د دې جواب داسي ورکول پکار دی چي که دمخلوق په خیال کولو سره عبادت ترک کوې نو دا هم ریاء ده بلکي د مخلوق لیدل او نه لیدل برابر دی زما چي څنگه عادت دی زه هغسي کووم او گنم چي مخلوق ما نه

وینی ځکه چې دمخلوق د ډیري څخه عبادت نه کول داسي دي چې یو سړی خپل غلام ته د پاکولو دپاره غنم ورکړي چې دا پاک کړه، او هغه یې پاک نه کړي او عذر دا ووایي زما ډېره وه چې زه به یې صحیح صفا او پاک نه کړای سم نو ښکاره ده چې مالک به ووایي چې بې وقوفه تا خو اصل کار نه دي کړی (څه خو به دي کړي وای ؟) نو الله ﷻ بندګانو ته د اخلاص حکم کړی دي او بنده چې کله دعمل څخه لاس واخلي نو داخلاص څخه خو یې اول لاس واخیستی ځکه چې اخلاص خو په عمل کي وي (او عمل ده ونه کړی) او هغه کوم چې د ابراهیم نخعي رحمه الله په باره کي روایت دی چې یوملاقاتي به راغلی نو قرآن به یې بند کړی تلاوت به یې بس کړی، او راتلونکي ته به یې ویل چې دا څه قصه ده چې کله هم څوک راسي ما پر تلاوت ووینی ؟ دا خبره به دوی غالباً ځکه کړې وي چې دوی ته دا هم علم وو چې کله څوک کور ته د ملاوېدلو د پاره راسي نو د هغه سره خبري کول ضرور پکار دي، تر دې چې تلاوت هم تر څه وخته پوري بند کړي نو څه باک نسته، نو په دې طریقه سره به دوی د تلاوت د شهرت څخه د خوندي کېدلو د پاره د دې پټ ستل به مناسب ګڼلې وي، حسن بصري رحمه الله وایي چې یو سړي ته به کله ژړا راغله نو پر خوله به یې لاس کېښېښوی چې خلګو ته د ده د ژړا علم ونـسي ځکه چې په پټه ژړا تر ښکاره ژړا او فریاد په ډېرو درجو غوره ده، په هر حال به عبادت هم نه وو چې پټوي یې او د عبادت څخه منع سي، او وایي چې یو سړي پر لاري روان وو نو یو داسي شئ ور ته پر ځمکه پروت مخ ته راغلی چې خلګو ته ځیني تکلیف وو، نو پکار وه چې ده پورته کړی وای خو صرف په دې غرض یې پورته نه کړی، چې خلګ به ده ته پرهېزګاره ووایي او دغه رنګه به د ده په نورو عبادتو کي لذت راسي، لیکن دا حال د یو ضعیف کېدای سي کوم چې د خپل ځان څخه بیرېږي، او دا خیال وکړي چې خلګ به د ده د پرهېزګاری څخه خبر سي، او چې نور عبادتونه به د ده د پاره بې خونده سي، ځکه چې د ریاء د بیري څخه د داسي کارونو څخه ځان ساتل ښه خبره نه ده بلکي په داسي موقع خو که د ریاء خواهش پیدا هم سي نو پیدا دي سي، لیکن دا چې مغلوبه ځیني نسـي، چې آخر کار دفعیه یې وکړي پرېږدي یې، لیکن که څوک دومره ضعیفه وي چې په ځان ساتلو کي خپل مصلحت ګڼي نو د دې څخه به ده ته نقصان رسیږي.

(۲) دویم قسم هغه دی چې تعلق یې د مخلوق سره دی لکه ولایت، حکومت، قضاء او خلافت او نور، نو د دې درجه د عباداتو څخه هم لوړه ده په دې شرط چې په عدل سر ښایسته وي کنې د بې عدلی په صورت کي ګناه ده او د کوم سړي چې پر خپل ځان د عدل اعتماد نه وي نو د ده د پاره د دې قبلول حرام دی چې په دې سره آفت ډېر غټ وي، دا لمونځ روژه نه ده چې د دې په عین عمل کي څه خوند

نه وي بلکي (درياء په صورت کي) په هغه حالت کي وي چي خلک یې ويني (او پرهېزګار ورته وايي) لېکن په ولايت او حکمرانی کي خو عظیم لذت دی او د نفس د پالني ټول سامان پکښې وي، او دا د هغو خلکو سره ښه ښکاري د کومو چي پخپل ځان پوره پوره اعتماد وي تر دې چي يو سرى خپل ازمايښت هم کړي وي او د ولايت د حاصلېدو څخه مخکي یې د امانتداری فرائض هم پوره کړي وي او د نورو کارونو تجربه هم لري لېکن بيا هم بېربېږي چي حکمران (واکمن) جوړ نسي، نو په دې کي د علماؤ اختلاف دی د يوې ډلي خيال دی چي حکومت دي قبول کړي ځکه داوخت د ده دغه ګمان محضِ ګمان دی او څنګه چي ده ازمايلي هم دي نو زياته توقع دا ده چي کامياب به وي نو ده ته پر ځان اعتماد کول پکار دي، او زموږ په نزد صحي دا ده چي قبلول ورته نه دي پکار، ځکه چي د نفس په دې حالت کي وعده کول چي پر عدل به قائم وي صرف يو فريب هم ثابتېدای سي يعني د حکومت ملاوېدو څخه وروسته که د عدل څخه راوګرځي نو څه ليري نه ده؟ خصوصًا چي د مخکي څخه هم په ترڼد کي ګرفتاره وي، نو اغلبه دا ده چي دی به د دې وعدې څخه وګرځي، نو ځان ساتل به ځيني ښه وي، چي د حکمرانی آخر د اهلِ قوّت څخه ماسوا څوک د چلولو صلاحيت نه لري، حضرت ابو بکر ﷺ جناب رافع ﷺ ته وويل چي خلافت به چيري هم نه قبلوې که څه هم پر دوو کسانو باندي ولي نه وي،او کله چي صديق اکبر ﷺ پخپله پر دې غټه عهده باندي فائز سو نو رافع ﷺ وويل چي آيا تا زه د دې د قبلولو څخه منع کړی نه ووم نو پخپله دي څنګه قبوله کړه؟ ورې فرمايل تا اوس هم زه منع کووم ځکه لعنت دي دخدای پر هغه سړي باندي کوم چي عدل ونه کړای سي،او د داسي ضعيف اعتراض مثال داسي دی چي مثلاً يو سړی خپل زوی د درياب د غاړي وتلو ته هم نه پرېږدي او حال دا وي چي پخپله ورځي او ور شوه کيږي، ځکه چي دی پخپله په لامبو (اوبازي) پوهيږي او هلک نه پوهيږي، او بيا هم که درياب ته ور کښته سي نو هلاکت یې يقيني دی، او کله چي بادشاه ظالم وي او قاضي عدل او انصاف نسي کولای بغير د خوشامندي (چاپلوسی) څخه نو د قضا يابله عهده قبلول نه دي پکار، کنې د قبلولو څخه وروسته د معزولی خطرې ته د خوشامد په توګه د عذر پيش کول به د قبلولو قابل نه وي، په دې صورت کي هم بهتره دا ده چي د پوره عدل او انصاف څخه کار واخلي چي بادشاه واقعي دی معزوله کړي او که د ده قضاء اوحاکميت دالله ﷻ د پاره وي نو پر دې معزولي به دی خوشحاله وي (نه دا چي افسوس به کوي).

(۳) دريم قسم وعظ نصيحت او فتویٰ ورکول دي او درس و تدريس او روايت د حديثو دی، په دې

کي هم لوی خوند او خوشحالي حاصلیږي او د لمونځ روژې په نسبت په دې کي د ریا کاری زیات گنجائش دی، دا حکومت ته نژدې دی فرق دومره دی چي وعظ نصیحت او حدیث چي څنګه اوریدونکو ته فائده ور کوي دغه ډول ویونکي ته هم فائده ور کوي او دین ته د بللو ذریعه جوړیږي او د ریاء څخه یې ساتي، او حکومت داسي نه دی، که ریاء مخ ته راسي نو په وعظ او نصیحت ترک کولو کي اختلاف دی بعضو عالمانو ځان څیني ساتلی دی، د اصحابو ﷺ څخه به خلکو فتواوي طلب کولې نو نورو ته به یې سپارل، حضرت بشر حافي رحمه الله دحدیثو څو کتابونه په ځمکه کي دفن کړل او ویې وفرمایل: چي زه په ځان کي د محدثی خواهش وینیم که داسي نه وای نو ضرور به مي حدیثونه روایت کولای، د تېرو بزرګانو یناده چي حَدَّثَنَا (حدیث بیانول) د دنیا د بابونو څخه یو باب دی او کوم سړی چي حَدَّثَنَا وایي دی ګویا داسي وایي چي ما صدرنشین جوړی کړئ او پر مسند مي کښېنوئ، دحضرت عمر ﷺ څخه یوسړي د سهار په وخت خلکو ته د وعظ نصیحت اجازت وغوښتی نو دوی منع کړی ویې فرمایل چي زما دې څخه بېره ده چي ستا خېټه به د هوا دکه سي او ته به والوزې ثریا ته به ورسیږې، یعني ستا دماغ به اسمان ته ورسیږي. حضرت ابراهیم تیمي رحمه الله وایي چي کله یو سړی پخپل زړه کي دخبري کولو خواهش محسوس کړي نو دته چُپ پاته کېدل پکار دي، او کله چي د چُپ پاته کېدلو جذبه په کي پیدا سي نوخبري کول ور ته پکار دي، زموږ په نزد بهتره خبره دا ده چي نصیحت کوونکي او حدیث بیانوونکي دې خپل زړه ته نظر وکړي که د ریاء سره سره یې د اطاعت هم نیت وي نو لاس څیني اخیستل ور ته نه دي پکار او خبره ور ته جاري ساتل پکار دي او د اطاعت نیت دې په خپل زړه کي پیدا کوي چي پکښې قوي سي، د دې وعظ او نصیحت حکم د سنتو او نفلو په شان دی، چي تر څو پخپل زړه کي اصل نیت ویني تر هغه دې د ریاء د خطرې په وجه لاس نه څیني اخلي، په خلاف د حکومت څخه چي که په دې کي خطره محسوسه کړي نو تېښته څیني اولیٰ ده، ځکه چي باطل نیت ژر غالبه کیږي، داوجه وه چي امام اعظم رحمه الله د قضاء عهده قبوله نه کړه حال دا دی چي دا دوی ته ملاوېدله لیکن دوی وفرمایل چي زه دې قابل نه یم، چي د سبب او وجهي پوښتنه څیني وسوه نو ویې فرمایل: چي که زه رشتیاوایم نو واقعي قابل یې نه یم او که درواغ وایم نو درواغجن کله د قضاء قابل کېدای سي حال دا دی چي امام صاحب رحمه الله د تعلیم او تعلّم څخه تېښته اختیار نه کړله، لیکن که په زړه کي یې هیڅ هم د خیر اراده نه وي او د وعظ نصیحت څخه صرف ریاء او د مرتبې طلب مقصود وي نو دست بردار کېدل

ځیني (لاس ځیني اخیستل) پر بنده فرض دي لیکن که زموږ ځخه پوښته کوي چي زه به څه کووم نو موږ به ګورو چي که د دغي خبري ځخه مخلوق ته فائده نه وي لکه د غه سړي د کوم خبري چي مسجّع مقفی وي (یعني په ترتیب او انداز سره وي) یا بې هوده خبري وي او ګپ شپ او لطیفې وي، یا د رحمت وعدې ورکوي خلک پر نافرماني زړور کوي یا د جنګونو اختلافاتو اومناظرو تعلیم ورکوي نو دا سړی به موږ منع کوو، ځکه چي دا خبري د حسد او دیو بل په مینځ کي د فخر او مباهات تخم په زړه کي کري، او دا سړي د داسي کارونو ځخه نه منع کول په خپله د ده په حق کي دخیر باعث دی، او که د ده خبري د مخلوق د پاره نفع مندي او د شریعت مطابقي وي او خلک دی مخلص ګني او د ده خبري په دیني علمونو کي د نفع ذریعه وي نو ده ته دا اجازت نسو ورکولای چي دی دي د دې خبرو ځخه دست برداه سي ځکه چي په دې کي د دېرو نقصان دی، لیکن چي په وینا کي صرف د ده نقصان دی نو د خلګو دنجات او خیر خیال ساتل د یو سړي د خیال ساتلو ځخه په هر حال غوره دی، دا یو تن به پر دېرو قربان کړو، ځکه چي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي الله ﷻ به د دې دین مدد د داسي خلګو په واسطه سره کوي د کوم چي پخپله په دې دین کي هیڅ حصه نه وي، د دې ځخه همداسي خلګ مراد دي، ده ته به موږ صرف دا انداره ووایو چي صاحبه! د دې د خیر د کار سره سره د ریاء لیري کولو او د خپل نیت صحیح کولو فکر هم وکړه او وعظ نصیحت پخپله هم قبول کړه اول پخپله وبیرېږه بیا نور وبېروه.

**سوال:** که څوک ووایي چي موږ ته به څنګه معلومه سي چي د واعظ نیت صحي دی او که غلط دی؟ او د دې نښه څه ده؟

**جواب:** دا دی چي دنیت پاکي او صحیح والی دا دی چي واعظ دا غواړي چي خلک د دنیالاره پرېږدي د الله ﷻ لاره اختیاره کړي د دې مقصود سبب به هغه شفقت وي کوم چي د ده پر مخلوق دی او که یوبل واعظ داسي مخ ته راسي چي د هغه وعظ دېر نفعمند وي او خلک د هغه خبري ته زیات خیال کوي نواولنی واعظ ته خوشحاله کېدل پکار دي، ځکه چي که یو سړی غار (یا څاه) ته ولوېږي او د غار پر خوله دېره پرته وي او یو سړی د شفقت په وجه د ده رایستل غواړي او بل راسي دېره لیري کړي او دی د دېري د تکلیف ځخه وساتي نو ده ته پر دې خبره خوشحاله کېدل پکار دي، که دغه اولنی واعظ خوشحاله نه سو او په زړه کي یې حسد محسوس کړی نو دا د دې خبري دلیل دی چي د ده مقصد د خلګو ځخه همدردي خاصلول دي د دوی لله ﷻ طرف ته رابلل نه دي، یو بله نښه دا

ده چي که یو حاکم یا دیندار سړی د وعظ په دوارن کي راسي نو د ده رنګ بدل نسي بلکي په روان اسلوب تقریري جاري وساتي د وعظ موضوع بدله نه کړي، بله دا چي د ده په څه خبره که خلګ خامخا بې آرامي او ژړا ته جوړ سي حال دا دی هغه خبره یو خاص خبره نه وي نو ده ته پکار دي چي دغه خبره پرېږدي بله د کار خبره شروع کړي، لېکن د دې د فضول کېدلو احساس ده ته هغه وخت کېدای سي چي دی پخپل زړه کي کراهت محسوس کړی، او که دی کراهت محسوس نه کړي نو دی یو زبردست او مکمّل ریا کار دی او که لږغوندي هم کراهت محسوس کړي نو پوه سه! چي په ده کي د ریاء سره دغه بل نیت هم موجود دی او بیا دي کوشش کوي چي دغه نیت پکښې کلک سي او پر بدنیت غالبه سي.

## نهم اصل: د تکبّر او ځان غټ ګڼلو علاج

پوه سه! چي تکبر او ځان غټ ګڼل یو نا کاره او مذموم خصلت دی، او په حقیقت کي دا د الله ﷻ سره دښمني کول دي ځکه چي لويي او غټوالی خو د هغه سره ښایي او په دې وجه په قرآن کریم کي دجبار او متکبّر سړي مذمت سوی دي: كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ قَلْبِ مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ (مؤمن:۳۵) (دغه ډول الله ﷻ مهر وهي پر هر متکبر او جبر کوونکي زړه) وَخَابَ كُلُّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ [ابراهیم] (تاواني سو هر جبر کوونکي عنادګر دښمن) او فرمائي: إِنِّي عُذْتُ بِرَبِّي وَرَبِّكُم مِّن كُلِّ مُتَكَبِّرٍ لَّا يُؤْمِنُ بِيَوْمِ الْحِسَابِ(۲۷) (زه پناه غواړم پخپل او ستاسو پروردګار سره د هر متکبّر شخصه چي یقین نه کوي په ورځ د قیامت) او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي د چا په زړه کي چي د ذرې په اندازه تکبر وي دی به جنت ته ولاړ نسي، او فرمايي چي کوم سړی د ځان غټ ګڼلو عادت جوړ کړي د ده نوم د متکبرانو په فهرست کي ولیکل سي او د متکبرانو د پاره چي کوم عذاب وي هغه ده ته مقرر کړل سي، په حدیث کي راغلي دي چي حضرت سلیمان ﷺ پیرانانو، مرغانو او انسانانو ټولو ته حکم وکړی چي دباندی راووځی په دې حکم سره دوه لکه انسانان او دوه لکه پیرانان سره را جمع سول او هوا دوی پورته کړل، اسمان ته یې ورسول هلته دوی د ملائکو تسبیح واورېدل بیا یې راکښته کړل د دریاب بیخ ته یې ورسول نو د اسمان څخه یو آواز راغلی چي که د حضرت سلیمان ﷺ په زړه کي د ذرې په اندازه تکبر وای نو آسمان ته د پورته کولو څخه مخکي به موږ دوی په ځمکه کي ننه کړي وای، نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي د متکبر حشر به په قیامت کي د مېږي په شکل وي، د الله ﷻ په نزد چي کوم ذلت ده ته حاصل وي د هغه په سبب به خلګ پر ده پښې ږدي، او فرمایي چي په دوږخ کي د " هب

هب " په نامه یو غار دی متکبران او ځان غټ ګڼونکي به هغه ته اچول کیږي.
او حضرت سلیمان ﷺ فرمایي چي د کومي ګناه سره عبادت فائده نه کوي هغه تکبّر دی، نبي کریم ﷺ فرمایي چي کوم سړي د فخر اوغرور په وجه جامه پرځمکه را ځړولې وي، ده ته به الله ﷻ د رحمت په نظر سره ونه ګوري، او فرمایي چي یو سړی په ناز او نخرو سره تللو ښایسته جامې یې اغوستي وي او ځان ته یې په ډېر غرور سره کتل الله ﷻ په ځمکه کي دننه کړی او تر اوسه ننوځي روان دی او تر قیامته به دغه رنګه وي، او فرمایي خپل ځان غټ ګڼلو والا او په چال چلند کي ناز ونخرې کوونکی الله پر ځان باندي غصّه کوي، مُحَمّد بن واسع رحمه الله خپل زوی په نازو نخرو تللو باندي ولیدی نو آواز یې ورته وکړی ویې فرمایل: چي تا ته معلومه ده چي ته څوک یې ما ستامور په دوه سوه درهمه اخیستې وه او ستا پلار داسي دی چي د ده په ډول خلګ چي په مسلمانانو کي څومره کم وي نو غوره ده، حضرت مطرف رحمه الله ملهب لره په ناز سره تلونکی ولیدی، ویې فرمایل: ای د خدای بنده! داسي چال د الله ﷻ ډېر ناخو ښه دی، هغه وویل ته ما نه پېژنې؟ مطرف رحمه الله وویل: ولي نه! ته په اول کي د پلیتو اُبو څاڅکی وې په آخر کي به مرداره یې او په دې مینځ کي د ګندګۍ یو شئ یې چي ګرځې.

**د تواضع فضیلت:** نبي کریم ﷺ فرمایي: څوک چي عاجزي کوي الله ﷻ د ده عزت زیاتوي، او فرمایي د هر سړي پر سر دوې فرښتې واګي (قیضې) په لاس ولاړي دی کله چي دی تواضع کوي هغه فرښتې دغه واګي راپورته کوي وایي: یا الله! دی ذلیله کړې، او فرمایي مبارک دي هغه رښتونی بنده کوم چي د عاجزی اظهار کوي حال دا دی چي دی بې چاره او عاجزه نه وي او پر خلکو هغه مال خرڅوي کوم چي ده په ناجائزه او حرامه نه وي جمع کړی، او پر بي اسرې خلکو رحم کوي، او د عالمانو او پوهانو سره ناسته پاسته کوي، ابو سلمه رحمه الله د خپل نیکه څخه روایت کوي چي یوه ورځ نبي ﷺ د دوی مېلمه وو او روژه یې نیولې وه د دوی ﷺ د روژه ماتي د پاره موږ د شیدو پیاله راوړه چي عسل ور سره ګډ وو، دوی وڅښل خواږه پر ولګېدل ویې فرمایل دا څه دي؟ موږ عرض وکړی یا رسول الله! موږ په شیدو کي لږ عسل ملاوکړی دي دوی پیاله کښېښوه دویې نه څښل، ویې فرمایل: زه نه وایم چي دا حرام دی لېکن خبره دا ده چي کوم سړی د الله ﷻ سره تواضع کوي الله ﷻ هغه سر فرازه کوي او پورته کوي یې، او څوک چي تکبّر کوي الله ﷻ هغه سپکوي، څوک چي په قدر د ضرورت خرچ کوي الله ﷻ هغه دوست لري او څوک چي اسراف کوي هغه په مفلسی کي

متبلا کوي او څوک چې هغه ډېر یاد وي (یعني د هغه ذکر ډېر کوي) هغه محبوب لري، یو وار یو بد حاله فقیر چې جامې یې څیرې وې د نبي ﷺ د حجرې دروازې ته راغلی او د نبي ﷺ څخه یې سوال وکړی، دوی ﷺ خوارک ته ناست وو او هغه یې دننه راوبللی په حاضرینو کې هر سړی ځان راټول کړی د ده (فقیر) څخه د ځان لیرې کېدلو کوشش یې کوی، نبي ﷺ دی پرخپل وروڼ کښېنوی او ورېه فرمایل چې خوره! په قریشو کې یو سړي ده ته زیات په حقارت اوکراهت سره وکتل او آخر د مرګ څخه مخکې پخپله په دغه ناروغي کې مبتلا سو او په دغه حال کې مړ سو، او نبي ﷺ فرمایي چې الله ﷻ ما ته اختیار راکړی وېه فرمایل: چې رسول او بنده جوړېدل غواړې که رسول او بادشاه؟ ما لږ صبر وکړی زما دوست جبرئیل ﷺ هلته موجود وو، هغه چې ځان ته په کتو ولیدلم را ته یې وویل عاجزي اختیار کړه نو ما عرض وکړی یا الله رسول او بنده جوړېدل غواړم.

**د عاجزۍ په باره کې اقوال او آثار**: حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چې تاسو خلګو په عبادتونوکې د ټولو څخه افضل عبادت هېر کړی دی کوم ته چې عاجزي وایي، حضرت فضیل رحمه الله فرمایي چې د عاجزۍ حق هلته اداء کېږي چې تاسو حق خبره ومنئ که څه هم د هغې وېونکې یو کوچنی وي یا د قوم یو غټ جاهل سړی وي، د حضرت ابن المبارک رحمه الله قول دی چې د عاجزۍ تقاضا دا ده چې کوم سړی د دنیوي مرتبې په لحاظ سره ستاسو څخه کم وي تاسو خپل ځان د هغه څخه هم کم کنئ، چې ده ته دا احساس وسي چې ستاسو په نزد د دنیوي مرتبې هیڅ وقعت نسته، او کوم سړی چې په مرتبه کې ستاسو څخه لوړ وي د هغه څخه ځان ډېر لوړ ښکاره کوئ چې ده ته معلومه سي چې د دنیوي دولت او مرتبې ستاسو په نظرونو کې څه قدر او مرتبه نسته، الله تعالی و حضرت عیسیٰ ﷺ ته وحي وکړې چې زه کوم نعمت هم تاسو ته درکووم که تاسو په عاجزۍ سره پر هغه شکر وکړی نو زه به ټول نعمتونه پر تاسو مکمل کړم. ابن سماک رحمه الله خلیفه هارون الرشید ته وویل چې یا امیر المؤمنین! ستاسو د شرف او بزرګۍ په موجودګۍ کې ستاسو دا عاجزي د دې څخه هم زیاته شریفه او بزرګه معلومېږي خلیفه وویل تا څومره ښه خبره وکړه، نو دوی رحمه الله وویل یا امیر المؤمنین! الله ﷻ چې چا ته مال، جمال او مرتبه او حشمت ورکړي دغه سړی که په دې مال سره د نورو غمخوري کوي او په جمال د پرهېزګاری حُسن نمایان ساتي او په مرتبه او حشمت کې عاجزي کوي نو د الله ﷻ په نزد د ده نوم د خاصانو د حق په فهرست کې ولیکل سي، خلیفه قلم او رنګ طلب کړل دا قول یې ولیکلی او د ځان سره یې کښېښودی.

حضرت سلیمان ﷺ به سهار سهار د مالدارانو سره لږ وخت تېر کړی بیا به د محتاجو او مسکینانو خلکو مجلس ته ولاړی وبه یې فرمایل:یو مسکین د نورو مسکینانو سره ناست دی، د حضرت حسن بصري رحمه الله قول دی چې د عاجزی مطلب دا دی چې ته د باندې څوک وویني د خپل ځان څخه یې غوره وګڼې، مالک بن دینار رحمه الله فرمايي: چې که یو سړی دمسجد په دروازه ودرېږي آواز وکړي چې په تاسو کې کوم دېر بد سړی دی هغه دې د باندې راووځي، نو زه به د ټولو څخه مخکې د باندې راووځم او یوسړی به زما څخه مخکي را ونه وځي، ما سوا د هغې څخه چې څوک ماونیسي وروسته مې کړي دا خبره چې کله ابن مبارک رحمه الله ته ورسېدله نو هغه وویل چې: د مالک رحمه الله د عظمت راز په دې کې دی، یو سړی حضرت شبلي رحمه الله ته راغلی نو شبلي رحمه الله د عادت مطابق د ده څخه پوښتنه وکړه ته څه یې (دا یې ونه ویل چې ته څوک یې؟) هغه سړي وویل چې زه هغه نقطه (ټکی) یم کومه چې د یاء تر حرف لاندې وي یعني چې لاندې ځیني هیڅ هم نه وي، دوی وویل خدای دې تا دې څخه هم مخکې کړی چې تا خپل ځان د ټولو څخه آخر کړی.

**د تکبّر حقیقت او خرابي:** پوه سه! چې تکبر د بد اخلاقی (بد خویی) دویم نوم دی، ټول اخلاق که څه هم د صفت په اعتبار سره د زړه دننه شیان دي لېکن اثر یې په ظاهر کې ښکاره کیږي او د تکبر ظهور په هغه صورت کې کیږي چې بنده خپل ځان د نورو څخه لوړ مخلوق تصور کوي،یوه عجیبه هوا ده په دماغ کې دکه سي او دی پکښې داسې مست سي چې بیا په جامو کې نه ځائیږي، نبي ﷺ فرمایلي دي: زه د تکبر او د غرور د هوا څخه د الله ﷻ پناه غوارم، دا هغه زهرناکه هوا ده چې په بنده کې پیدا سي هغه دنیا او جهان د ځان په مخکې ذلیل او کمتره ګڼي او پر چا چې د ده نظر پرېوځي پر هغه د خپل سپک خادم خیال کوي بلکې د دې قابل یې هم نه ګڼي چې د ده خادم ورته وویل سي، او په سپکاوي ورته وایي څه! ستا څه شان دی چې زما په خادمانو کې شمارسې لکه باچاهان چې هر چا ته خپل د دربار د راتلو ته اجازت نه ورکوي او نه هر یو پخپلو خادمانو کې شماري، نو لوی لوی خلک د ده خدمت ته ولاړ وي او دا د تکبرانتها ده چې انسان په لویې کې د الله ﷻ څخه هم دمخکې کېدلو کوشش وکړي، ځکه چې الله خو پر خپلو بندګانو داسې یو پابندي نه ده لګولې او د هر چا سجده او بندګي قبلوي نو تکبر والا چې دې درجې ته ورسیږي نو بیا د دې خبري طالب وي چې کښیني به هم د ټولو څخه لوړ او چې مخ ته څوک ور ته راځي نو ادب او احترام به غواړي، دوی ته که نصیحت کیږي نو سپک یې ګڼي او هیڅ کله یې نه مني او دوی که چا ته

نصیحت کوی نو په هغه به یې خاخامني، او که د پوه کولو کوشش یې کوي نو د غصې څخه یې أور پورته کیږي، او خلکو ته داسي ګوري چي ګویا دا بالکل انسانان نه دي حیوانان دي چي ده ته را جمع سوي دي، نبي ﷺ ته خلکو عرض وکړی یا رسول الله ﷺ! تکبر څه شئ دی؟ وېې فرمایل تکبر دا دی چي بنده د الله ﷻ په مخکي څخ کېښته نه کړي او خلکو ته سپک ګوري حال دا دی چي دا دواړه خبري د الله ﷻ او انسان په مېنځ کي د ټولو څخه غټ حجابونه دي او باقي ټول بداخلاق د دې څخه پیدا کیږي او بنده د بنو اخلاقو څخه بالکل محرومه سي کوم سړی چي د خپلي لویي او خودبیني څخه مغلوبه سوی وي د ده چي کوم شئ د ځان د پاره خوښ وي بل مسلمان د هغه حقدار نه ګني، او دا د ایمان د اولني شرط څخه خلاف دی، نه داسي سړي د چا سره په عاجزي مخي ته راتلای سي، او دا د مقتیانو د عادت خلاف ده، داسي سړي ته پر کینه، حسد، قهر او غضب قابو کېدل محاله وي، د ده ژبه د غیبت څخه هم محفوظه نه وي د ده زړه د خیري او کرز څخه ډک وي او نه ځیني خالي کیږي، او که د ده په تعظیم کي د چا څخه کمی وسي نو زړه یې هغه ته صفا نه وي او د تکبر د کمو څخه کم اظهار د ده د طرف څخه داسي کېدای سي چي ټوله ورځ د خودپرستی او د خپلي بالاتشینئ په خبرو کي مست وي او د خپلي لویی په دعوو کي مبتلاوي، د مکر او فریب او درواغو منافقت څخه ده ته فرصت نه وي، او حقیقیت دا دی چي بنده د اسلام بوی تر هغه وخته نسي بویولای تر څو چي دی خپل ځان هېر نه کړي بلکي د دنیا راحت هم په صحیح معنیٰ سره د دې ځان هېرلو څخه بغیر نه سي حاصلېدای.

دیو بزرګ وینا ده چي که ته د جنت د بوی بویولو شوق لرې نو خپل ځان د ټولو څخه دکمي درجې وګڼه چي بغیر د دې څخه بوی تا ته نه سي رسېدای، الله ﷻ چي چا ته ستر ګي د لیدلو ورکړي وي هغه که دوه متکبران د یو بل سره د ملاقات په وخت کي ووېني نو داسي به محسوسوي چي کوم نجاست، ګندګي او خراب بوی د دوی په زړونو کي لیدل کیږي هغه د هر ذلیله سړي په زړه کي نسي لیدل کېدای، ځکه چي د دې متکبرانو باطن د سپو په ډول وي دا خلګ د بنځو په ډول خپل ظاهري سینګار کوي او د هغه اُنس او محبت څخه خالي وي کوم چي د مسلمانانو سره د همنشیني امتیازي نښه وي متکبر د دې څخه محرومه وي، ته به د چا په لیدلو راحت هلته محسوس کړې چي خپل ځان په هغه کي فنا کړې او د هغه داسي تعظیم وکړې چي د دُوئي (دوه والي) تصور ختم سي او یووالی پیدا سي هغه وي خو ته باقي پاته نه سې یا هغه په تا کي راسي او ته باقي پاته سې هغه نه وي یا دواړه

ذاتونه په حق کې فنا سي او خپل ځان ته بالکل خيال نه کوي، اصل کمال دا دی او د دې کمال وَحدت او يووالی ځخه حقيقي راحت نصيب کيږي الغرض چي څوئي (دواه والي) ختمه نسي راحت نه نصيب کيږي ځکه چي راحت په يووالي او خدمت کي دی په تکبر کي نسته.

**د تکبّر درجې**: د تکبّر ځيني شکلونه ډېر قبيح او بد وي او پر چا چي تکبر کول کيږي د هغه په فرق سره په تکبر کي هم تفاوت راځي، تکبريا د الله ﷻ په مقابله کي وي يا د رسول په مقابله کي او يا د بندګانو په معامله کي، اوله درجه د هغه تکبر ده کوم چي د الله ﷻ په مقابله کي وي لکه د فرعون، نمرود او ابليس تکبر، دويم د هغه خلکو تکبر دی کومو چي د اُلوهيت دعویٰ وکړه او د الله ﷻ د بندګی ځخه يې عار محسوس کړی، د الله ﷻ ارشاد دی: لَنْ يَسْتَنْكِفَ الْمَسِيحُ أَنْ يَكُونَ عَبْدًا لِلَّهِ وَلَا الْمَلَائِكَةُ الْمُقَرَّبُونَ [النساء: ۱۷۲](عيسی ﷺ او مقرّبي ملائکي د دې خبري ځخه عار نه محسوسوي چي دوی د الله ﷻ بندګي وکړي (بلکي دا خو عينِ مقصد د ژوند دی) دويمه درجه پر رسول د تکبر ده لکه دقريشو کافرانو چي وکړی او ويې ويل چي موږ دځان په ډول د سړي خبره نه سو منلای، الله ﷻ موږ ته فرشته ولي رسول نه راليږلو او چي انسان يې راليږلو نو بيا يې يو غټ سړی ولي نه راليږلو د يو يتيم انتخاب يې څنګه وکړی؟: وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ هَذَا الْقُرْآنُ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيمٍ (الزخرف: ۳۱) (دوی وويل چي ولي يې نه نازلولو دا قرآن د دې دوو محلو (مکې او طائف) پر لوی خلکو باندي ) دا ډول کافران پر دوو طبقو باندي مشتمل وو، د يوې طبقې تکبر د دوی په حق کي حجاب جوړ سو تر دې چي دوی د تفکّر او تدبّر ځخه کار وانه اخيستی او نبوت يې ونه پېژندی: سَأَصْرِفُ عَنْ آيَاتِيَ الَّذِينَ يَتَكَبَّرُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ [الاعراف:۱۴۶](هغه خلک چي په ځمکه کي تکبر کوي دوی د الله ﷻ د آيتونو د ليدلو ځخه منع کيږي) او دويمه طبقه پوهېدله او بيا يې انکار کولو د تکبر په سبب په دوی کي د اقرار طاقت نه وو لکه چي الله ﷻ فرمايلي دي: وَجَحَدُوا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَا أَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا وَعُلُوًّا [النمل: ۱۴](دې تولو د الله ﷻ د آيتونو ځخه دظلم او لويي په سبب انکار وکړی حال دا دی چي د دوی زړونو د دې يقين کړی وو) دريمه درجه دا ده چي بنده د خپل جنس د خلکو په معامله کي تکبر کوي او دوی ته په سپک نظر سره ګوري، حقه خبره نه تبلوي او خپل ځان د دوی ځخه غوره ګڼي دا درجه د هغو دوو درجو ځخه کمه ده لېکن بده په هر حال ده او د دې دوه سببه دي يو خو دا لويي او غرور د الله سره ښه ښکاري بنده خو عاجز او ضعيفه دی هيڅ کار د ده په

اختیار کي نسته د لویي دعویٰ د ده سره ښه نه ښکاري چي دی ځان یو څه ګڼي او کله چي دی خپل ځان یو څه وګڼي نو ګواکي د الله ﷻ سره یې جګړه پیدا کړه، د دې متکبر مثال داسی دی لکه یو غلام چي د باچا تاج پر خپل سر کښیږدي پر تخت کښېني نو تاسو اوس اندازه وکړئ چي باچا به ده ته څومره غصه وکړي، په دې وجه حدیث قدسي دی چي الله ﷻ فرمایي: چي عظمت او لویي په خاصه توګه زما سره مخصوص دي نو په دې دواړو صفتونو کي که څوک زما سره جګړه کوي نو زه به دی هلاک کړم، دا خو هغه خبره سوه چي یو سړی د باچا خاصو غلامانو ته یو داسي حکم وکړي چي دغه حکم دوی ته د باچا څخه ماسوا بل څوک نه سي کولای (نو چي دغه به د څومره غټي سزا لائق وي؟)، دویم سبب دا دی چي دا کبر د حق په قبلولو کي هم مانع دی یعني د نورو حقه خبره هم د متکبرانو د پاره قابلِ قبول نه وي تر دې چي کوم خلک د دې صفت حامل وي هغوی په دیني معاملاتو کي جګړي را پورته کوي او کله چي د حق کلمه د چا د خولې څخه ووځی نو د دوی تکبر یو دېوال جوړ سي په مخ کي حائل سي او د قبلولو څخه یې انکار وکړي، او دا اخلاق د کافرانو او منافقانو سره مخصوص دي، لکه چي ارشاد دی: لَا تَسْمَعُوا لِهَٰذَا الْقُرْآنِ وَالْغَوْا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُونَ (حم فصلت:۲۶) (دا قرآن مه اورئ او د دې د ویلو په وخت کي شور کوئ!) او بل ځای ارشاد دی: وَإِذَا قِيلَ لَهُ اتَّقِ اللَّهَ أَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ بِالْإِثْمِ [البقره: ۲۰۶] (او کله چي دوی ته وویل سي چي د الله څخه و بېرېږئ نو د خپل ځان لوی ګڼل دوی ګناه ته راوپاروي)، حضرت ابن مسعود رضی الله عنه وایي چي د دې څخه غټه ګناه به بل څه وي چي که چا ته وویل سي چي د خدای څخه وبیرېږه او دی ووایي چي ته خپل کار کوه! زما سره دی څه دي؟، نبي کریم ﷺ یو سړي ته وویل چي په راسته لاس خوراک کوه، هغه وویل چي په دغه لاس یې نسم خوړلای (د تکبر څخه یې وویل) نو نبي ﷺ وفرمایل مه سه یې خوړلای، او د ده لاس بیا د دې څخه وروسته ښوربدی هم نه سو، او د ابلیس قصه چي په قرآن کي راغلې ده نو د قصې په توګه نه ده بلکي د دې څخه دا مقصود دی چي تا ته معلومه سي چي تکبر بنده کوم ځای ته رسوي، تر دې چي ابلیس د الله ﷻ په حضور کي په څومره بې باکي سره وویل: خَلَقْتَنِي مِن نَّارٍ وَخَلَقْتَهُ مِن طِينٍ (الاعراف:۱۲) (زه آدم ته سجده ځکه نه سم کوالی چي زه دي د اور څخه پیدا کړی یم او دی دي د خاورو څخه) او واقعي سجده یې ونه کړه، د همیشه د پاره ملعون سو.

**د تکبر اسباب او علاج یې:** کوم سړی چي تکبر کوي نو ځکه یې کوي چي دی په ځان کي

داسي صفت ويني کوم چي په بل کي نه وي او دا صفت هميشه صفت د کمال دی او د دې اووه اسباب دي:

**(۱) اول سبب:** علم دی، يعني کله چي يو عالم خپل ځان په علم ښايسته ويني نو د نورو حيثيت ده ته پخپله پرتله کي د حيواناتو په ډول معلوميږي او دا تکبر پر ده ورځ په ورځ غالبه کيږي. او د دې علامه دا ده چي دی د خلکو څخه توقع ساتي چي د ده غير معمولي تعظيم او تکريم وکړي، او که هغوی يې نه کوي نو په حيرت سره ورته ګوري، او که څوک يې دعوت ته راوبولي نو د ده دعوت قبلول په دعوت کوونکي باندي يو غټ احسان وي، بلکي د ده په خيال کي خو د ده عالم کېدل پر دنيا باندي احسان وي دی هميشه دا خبره کوي چي دآخرت په کارونو کي دی الله ته ډېر نژدې دی او دا نور ځيني ډېر ليري دي او دا چي د ده نجات خو يقيني دي او د نورو د پاره بې حده خطره ده او دا احسان هم کوي چي هر څوک د ده دعاء او برکت محتاجه دي، کنې د دوږخ څخه نجات حاصلول د دوی د پاره ممکن کېدای نسي، ځکه خو نبي ﷺ فرمايلي دي چي: ځان بزرګ کڼل د علم د پاره غټ آفت دی، او رښتيا خو دا ده چي د اسي سړي ته د عالم پر ځای جاهل ويل زيات مناسب دي، ځکه چي حقيقي عالم خو هغه دی کوم چي دآخرت د خطرو علم لري او د پلِ صراط د باريکی څخه خبر وي، چا چي دا وپېژندل هميشه به هغه ځان د داسي خبرو څخه ليري ساتي، دی به دآخرت د بيري څخه په داسي لغوه خبره کي نسي مشغولېدای، او دی به د دې بيري څخه چي علم به پر ده حجّت وي دغرور او تکبر نسي ښکار کېدای، لکه چي ابو الدرداء ﷺ فرمايي: چي علم څومره زياتيږي مصيبت دومره ليري کيږي، او خلک په دوو وجهو سره په تکبر کي مبتلا کيږي: يو دا چي دوی د دين علم نه وي حاصل کړی او خپل ځان بغير د حقيقي علم څخه کوم چي فرض دی نسي پېژندای د دې په وجه د حق د لاري او د دين د لاري د پېژندو څخه ماسوا د الله ﷻ او د ده په مينځ کي چي کوم حجاب وي د هغې پېژندل ممکن کېدای سي، او په دې سره په دردمندی اوعاجزی کي اضافه کېدل پکار دي، نه چي په تکبر او ځان ښوولو کي، لېکن کله چي د علم د حصول صرف تر علمِ طب، حساب، نجوم،لغت، جدل اوخلاف پوري محدود کړل سي نو د دې څخه په تکبر ځان ښولو کي د اضافې څخه ما سوا نور څه کېدای سي، په دې ضمن کي قريب ترين علم علمِ فتاویٰ کېدای سي او دا علم د خلکو د اصلاح ذريعه ده او د دنياوي علم کېدو سره سره دين ته هم د دې حاجت سته، او په دې سره بيره هم نه پيدا کيږي بلکي که پر دې اکتفاء وکړي او نور علوم ترک کړي نو زړه به تاريک سي او د تکبر څخه به

مغلوبه سي، د دې اندازه د ظاهري عالمانو د حالت څخه ښه لګېدای سي، دغه حال د زاکرانو او واعظانو د علم دی چې مسجّع او واهیات خبري د دوی ټول کائنات دی یا بیا دا ډول خبري کول او خبري جوړول چې په اورېدونې خلک نعرې ووهي او شور شغرب راپورته کړي یا بیا داسي جملې وایي چې په مذهب کي تعصّب داسي مدغم کړل سی چې خلک دا د دین لاره وګڼي، حال دا دی چې دا ټولي خبري د تعصب، تکبر، حسد او په زړونو کي د دښمنۍ د تخم کرلو څخه ماسوا په بل کار نه راځي نو بیا به د دې څخه زهد او زړه سوزي (دلسوزي) څنګه پیدا سي، لېکن غرور او تکبر به زیات پیدا سي، دویم اړخ د دې دا دی چې ممکنه ده یو سړی کټمن علم هم حاصل کړی، مثلاً تفسیر د قرآن، علمِ حدیث، د دین د بزرګانو سیرت یا د دې ډول نورو علومو د کومو ذکر چې په دې کتاب (کیمیاء سعادت) او (احیاء العلوم) کي موږ کړی دی لېکن د دې سره سره دی په تکبر او ځان ښودلو کي ګرفتاره وي نو د دې سبب فقط یو وي او هغه دا چې په اصل کي د ده باطن خبیث وي او بد اخلاقي د ده اخلاق جوړ سوی وي او د علم حاصلولو څخه د ده مقصود صرف دا وي، چې څه از ده کړي د خلکو په مخکي یې بیان کړي، دوی پخپل علمیت سره مرعوب کړي کنې په دې عمل کول د دوی مقصد نه وي او علم چې هر کله د داسي سړي په باطن کي داخل سي نو د ده د باطن شکل اختیار کړي لکه هغه دوایي (دواء) چې معدې ته لاره سي او د ګندګیو سره ملاؤ سي د هغو په صفت سي یا لکه هغه اوبه کومي چې د اسمان څخه پاکي شفافي ورېږي پر کوم شئ چې ورېږي د هغه صفت زیاتوي یعني که هغه ترخې وي نو زیات تریخ سي او که خوږې نو زیات خوږ سي.

**(۲) دویم سبب**: په زهد او عبادت کي تکبّر کول دي، ځکه چې عابد زاهد چې څوک هم وي د کبر څخه خالي نه وي، او په دوی کي اکثره او زیاتره هغه دي چې خپل زیارت د نورو د پاره د دوی د نجات سبب ګڼي، ګویا د دوی عابد کېدل د نورو پر سر یو احسان دی، دوی نور خلک هلاکېدونکي ګڼي، د خپل ځان په باره کي د دوی ګویا یقین وي چې دوی خو بخښل سوی دي، که څوک د دوی تنګ کړي او اتفاقاً بیا پر هغه یو مصیبت راسي نو دی فوراً دا پرخپل کرامت باندي محمول کوي، او په فخر سره اعلان کوي، چې زموږ سره د بې ادبی کونکو دا انجام دی، حال دا دی چې د نبي ﷺ ارشاد دی چې کوم سړی د خلکو د پاره د هلاکت لفظ استعمال کړی، دی به پخپله په هلاکت کي واچول سي، او فرمایي دا یو عظیمه ګناه ده چې یو سړی خپل مسلمان ورو ته سپک وګوري، ځکه چې لوی فرق دی په هغه سړي کي کوم چې نور سپک ګڼي، او په هغه سړي کي کوم چې د مسلمان ورو څخه د برکت طلب کوي، دی د ځان څخه غوره ګڼي، او صرف د الله ﷻ د پاره ور سره دوستي کوي، او

عین ممکنه ده د داسي متکبر زاهد درجه د ده څخه واخلي هغه سړي ته یې ورکړي د کوم څخه چې دې زاهد نفرت کړی وي، او دی د زهد د برکتونو څخه بیخي محرومه کړي.

**قصه**: په بني اسرائیلو کې یو سړی د خپلې زمانې غټ عابد وو او یو بل سړی د خپل زمانې بدترین فاسق وو، یوه ورځ دې فاسق ولیدل چې دغه عابد په لمر کې ناست دی او د وریځې یوه ټکړه پر ده سایه کړې ده، د فاسق خیال راغلی چې ورسم د دې عابد سره کښېنم که د ده په برکت سره الله ﷻ زه وبخښلم، نو دی ولاړی او د هغه سره کښېناستی، هغه عابد وویل چې واه! ناپکاره ولې زما سره کښېناستې د ده په اندازه فاسق خو په دې زمانه کې بل نسي لیدل کېدای، او دی یې د هغه ځای څخه لیري کړی، چې هغه ولاړی نو د عابد د سر څخه هغه وریځ هم ولاړه او د هغه فاسق پر سر یې سایه وکړه، او د دغه وخت پر پیغمبر وحي راغلې چې دې دواړو ته ووایه چې خپل خپل عملونه د نوي سره شروع کړي، ځکه فاسق چې څه وکړل موږ دغه د ده د ایمان نېکي مقرره کړه، دی مو وبخښلو، او د عابد عبادت د ده د تکبر په وجه باطل کړل سو، دغه ډول یو سړی د یو عابد پر سر پښه کښېښوول نو عابد فوراً وویل پښه پورته کړه کنې په خدای قسم دی ته به دا الله ﷻ د رحمت څخه محرومه کړل سې، او د دغه وخت پر پیغمبر وحي راغلې چې د یو قسم خوړلو په بدله کې ته پر موږ حکم چلوونکي شوک یې؟ چې ستا په وینا به دی نه بخښم؟ واوره! چې موږ به تاونه بخښو، او عموماً داسي کیږي چې که څوک یو عابد تنګ کړي یا ازار کړي نو دغه عابد داسي ګڼي چې الله ﷻ به دې سړي ته ضرور او ازار ورسوي او دی به د خپل رحمت څخه محرومه کړي، او څه عجیبه ده چې تر دې پوري ووایي: ګوره ده ته به خامخا ازار رسیږي، او بیا که اتفاقاً هغه سړي ته یو تکلیف ورسیږي نو دی وایي تاسو ولیدل چې د ده څه حشر سو؟ دا چې څه وسول ټول زما د کرامت په وجه وسول، لېکن که د دې احمق څخه څوک پوښتنه وکړي چې تا ته د دې سوچ کولو توفیق ونه سو چې کفارو نبي ﷺ ته څومره څومره ازارونه رسولي وو؟ لېکن الله ﷻ خو د هغوی څخه صرف بدله هم وانه اخیستله، بلکي اکثرو ته خو د ایمان توفیق هم وسو نو آیا نَعُوذُ بِاللهِ د دې احمق درجه د فخرِ انبیاء او سرورِ کائنات ﷺ څخه هم زیاته سوه؟ چې الله ﷻ به خامخا د ده بدله اخلي.

نو دا خو د جاهلو عابدانو یو خاص انداز دی، بلکي په راز پوه عابدان خو پر مخلوق د نازل سوو بلاګانو نتیجه خپله بدبختي ګڼي او وایي چې دخلکو څه قصور دی دا خو زما د خطاګانو او منافقت نحوست دی کوم چې ټوله خلک یې په بلا کې ګرفتاره کړي دي، څرنګه چې د خپل بې مثاله صدق

او اخلاص سره سره حضرت عمر ﷺ دحضرت حذیفه ﷺ شخه په تشویشناک انداز کي پوښتنه وکړه، اې حذیفه ﷺ! رشتیا ووایه چې په ما کي تا ته د نفاق کومه علامه ښکاره کیږي؟نو مسلمان خو د پرهیزګاری سره سره بیریږي او د خدای د بیري شخه لړزیږي، او احمق او جاهله عابدان په ښکاره عمل کوي په باطن کي د تکبر او ځان ښولو په ګندګی سره ځان ګنده کوي او د دې شخه د هیڅ ډول کراهت یا بېره دوی نه محسوسوي، او حقیقت دا دی چې کوم سړی خپل ځان د نورو شخه غوره وګڼی ده پخپله بې وقوفي سره خپل عبادت عبث کړی، ځکه چې دجهالت شخه غټه ګناه نسته، اصحابو ﷺ یوه ورځ د یو سړي ډېر تعریف کوی اتفاقاً دغه وخت هغه پخپله هلته راغلی، اصحابو عرض وکړی یا رسول الله ﷺ! دا هغه سړی دي چې اوس یې موږ تعریف کوی، دوی ﷺ وفرمایل: ما ته خو په ده کي د منافقت نښي ښکاره کیږي، ټولو په دې ارشاد سخت تعجب وکړی، نبي ﷺ وفرمایل: اې سړیه! ستا دي په خدای قسم وي رشتیا ووایه! چې ستادا خیال نه دی راغلی چې ته د دې قوم بهترین سړی یې؟ هغه وویل رشتیا خو دا ده چې ما ته دا خیال راځي، نبي ﷺ دنبوت نُور په رڼا کي د ده باطني خباثت لیدلی وو.

او دا هغه آفت دی په کوم کي چې عالمان عابدان اکثره ګیر دي، په دې لحاظ سره دوی په درې درجو کي تقسیمیږي: یو هغه چې خپل باطن د دې شخه نسي پا کولای لېکن په ظاهره په تکلف او کوشش سره د تواضع او عاجزی اظهار کوي او خپل عملونه د هغه سړي د عملونو سره مشابه کوي کوم چې خپله برتري او لويي پر خلګو نه اضافه کوي، تر دې چې د ده دقول او فعل شخه قطعًا د تکبر اظهار نه کیږي، د داسي سړه په باره کي ویل کیږي چې دی د تکبر د درختي جرړي(بیخ) د خپل زړه شخه نسي ایستلی، لېکن ښاخونه یې ښورېدلو ته نه پرېږدي، دویمه درجه د هغه سړي ده چې خپله ژبه په قابو کي لري چې د تکبّر اظهار ځیني ونسي، لېکن عملاً د ده د افعالو شخه د ده د قول تصدیق نه کیږي او داسي کارونه ځیني کیږي چې د باطن تکبر یې ځیني ښکاره کیږي مثلاً چې کوم ځای ته ځي هلته د بالانشیني متلاشي وي او په ټلو کي د خلګو شخه مخکي تلل غواړي، او که عالم وي نو څټ به یې کوږ نیولی وي په ټلو کي چې دا ځیني ظاهره سي چې دی د نورو سره په ټللو کي عار محسوسوي، او که عابد وي نو پزه یې تروه کړې وي، او تندی یې تریو کړی وي چې معلومه سي چې د دې خلګو سره په ټلو کي خوشحاله نه دی، لېکن دې دواړو احمقانو ته دا شعور نه وي چې نه علم د دې نښه ده چې څټ دي کوږ کړي او نه د زهد دا تقاضا ده چې تندی دي تریو کړي، بلکي د دې دواړو تعلق د زړه سره دی او په ښکاره عاجزي او شفقت او ورین تندی د دې نښه وي د نبي ﷺ شخه زیات

متقي او عالم په ټول مخلوق کي څوک وو؟ او بیا د دوی څخه د زیات تواضع او ورونې تندي نمونه څوک وړاندي کولای سي؟ چي د هر چا سره به په ورونې تندي او خندا سره ملاوېدی، او د الله ﷻ د طرف څخه دوی ﷺ ته تاکید هم دا وو: وَاخْفِضْ جَنَاحَکَ لِمَنِ اتَّبَعَکَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ [ الحجر ] (خپلو ایماندارو متبعینو ته وزرې کښته کړه) او بیا فرمایي: فَبِمَا رَحْمَةٍ مِنَ اللّٰهِ لِنْتَ لَهُمْ وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لَانْفَضُّوا مِنْ حَوْلِكَ [آل عمران: ۱۵۹] (د الله ﷻ د رحمتونو څخه یو دا هم رحمت دی چي ستا رویه (چلند او سلوک) د خلکو سره د نرمی ده که ته تند خویه او سخت مزاجه وای نو دا خلک به ستا څخه خواره سوي وای) او دویم قسم هغه سړی دي کوم چي پر ژبه هم قابو نه ورنني او په خبرو کي هم تکبر کوي داسي سړی د فخر او ځان ستاینې عادي وي د خپل صاحبِ حال او صاحبِ کرامت هر وخت دعویٰ کوي، (چي زه د کرامت او حال خاوند یم) که عابد وي نو وایي فلانکی زما سره مقابله نه سي کولای په عبادت کي، که عبادت ګورئ نو زما عبادت ته ګورئ همیشه روژه داره او ټوله شپه ولاړ یم، او روزانه قرآن ختموم داوجه ده چي څوک مي ازار کړی نو د مال او اولاد څخه لاس پرېولي، څه لیري نه ده چي داسي سړی جګړې ته تیار سي، که څوک د تهجد لمونځ کوي نو دی یې ځیني په ډېر زور شور سره کوي او که څوک روژه نیسي نو بیا تر ډېره وخته پوري وږی تږی ووسي، که عالم وي نو وایي زما سره د علم او فضل چي کومه سرمایه ده د دې په مقابله کي د فلانی څه حیثیت دی د هغه اُستاد خو هم زما په مخکي جاهل دی، په مناظره کي یې هم دا کوشش وي چي مخالف فریق ته شکست ورکړي که څه هم دی پر باطله باندي ولي نه وي داسي مسجّع عبارتونه به یادوي چي په مجلس کي یې واوروي پر خلکو خپله برتري ثابته کړي، بعضي وخت خو داسي نا آشنا او غریب الفاظ یاد کړي او د حدیثو څو عبارتونه زباني یاد کړي او بیا یې د خلکو په مخکي ځای او بې ځایه د دغو حوالې ورکوي د نورو خبره درواغجنه کوي او دا یې معمول وي، او کوم عالم او عابد داسی دی چي د دې خبرو څخه خالي وي؟، لږه وي او که ډېره خو دا خبره په هر یوه کي ضرور سته، لېکن کوم سړی چي د نبي ﷺ د دې ارشاد څخه واقف وي چي که د چا په زړه کي یو ذرّه کبر وي جنت پر ده حرام دی نو دی به دخدای د بیري څخه د دردمندی صفت خپلوي او تکبر ته به نه نژدې کیږي او د الله ﷻ د ارشاد په معنی به پوه وي چي: اې بنده زما په نزد ستا ډېر قدر دی په دې شرط چي ته خپل ځان بې قدره تصور کړې لېکن که ته په خپل ځان باندي ناز کوي نو زمونږ په نزد به ذلیل او رسوا یې، او کوم سړی چي د دین په دې حقیقتونو پوه نه وي هغه عالم نه دی جاهل دی.

(۳) دریم سبب دا وي چي بنده پخپل حسب اونسب فخر کوي مثلاً کوم سړی چي علوي یا سید وي هغه نور خلک دځان په مقابله کي هیڅ نه ګڼي، که څه هم هغوی د ده څخه زیات پرهیزګاره ولي نه وي او دی که څه هم د دې تکبر په ښکاره اظهار نه کوي لیکن په باطن کي یې هر وخت موجوده وي،او د دې مظاهره هغه وخت کیږي کله چي دی د غصې او خفګان په صورت کي وي چي دغه وخت دی فوراً د قابو څخه بهر کیږي او بیا د ژبې او عمل څخه یې تکبر ځاځي او مخاطب ته د ده د خولې څخه داسي کلمې ووځی چي ستا حیثیت څه دی ته څوک یې ؟ خپل اصلیت دي هېر دی چي زما په مخ کي لوېږې؟ لنډه دا چي دا ډول بې کاره خبري د ده د خولې څخه وځي. ابو ذر ﷺ یوه ورځ یو سړی ته د جنګ په وخت کي د حبشي ځوی وویل (یعني ویې ویل چي اې د حبشي ځویه!)، نو نبي ﷺ وفرمایل: اې ابو ذره! ولي بې قابو کیږې؟ د سپین بچي ته آخر د تور پر بچي په کومه خبره فضیلت حاصل دی؟ ابو ذر ﷺ چي دا واورېدل پر هغه ځای پر ځمکه پرېوتی هغه سړي ته یې وویل: چي زما پر مخ پښه کښېږده. نو فکر وکړئ چي دوی ته د یوې کلمې د تکبر علم وسو نو دوی په څه طریقه سره د تکبر ماتولو د پاره عاجزي اختیار کړه.

د نبي ﷺ په مخکي د دوو خلکو د خپل خپل خاندان ذکر په ډېر فخر سره کولو یوه وویل زه خو فلانی ځوی یم ته څوک یې ؟ چي په حسب نسب کي زما مقابله کوې؟ نو نبي ﷺ وفرمایل: د موسی ﷺ په مخکي د دوو خلکو دغه ډول جنګ وو، او یو پکښې دغه ډول خپل ځان فلانی ځوی د فلانی ښوولی وو خپل نهه پښتونه یې شمار کړي وو، دغه وخت الله تعالی د وحي په ذریعه سره حضرت موسی ﷺ ته ویلي وو چي دې متکبر ته ووایه چي دغه نهه پښتونه ټول په دوږخ کي سوځي بوریناکه کیږي، او ته یې لسم یې (چي دوږخ دي په انتظار کي دی) او د دې څخه وروسته نبي ﷺ وفرمایل: چي کوم خلک په دوږخ کي سوځي پر هغو فخر او ناز د څه د پاره دی؟ نو په دغو فخر مه کوئ کنې د الله په نزد به ستاسو درجه د ګونګټ[1] څخه زیاته بده وي کوم چي د انسان ګندګي بُویوي او خوري یې.

(۴) څلورم سبب دا دی چي ښایسته او ښکلی وي او دا تکبر په عامه توګه سره په ښځو کي وي، حضرت عائشي رضي الله عنها یوې ښځي ته چیته وویل نو نبي ﷺ وفرمایل چي تا غیبت وکړی دا ګویا پر خپل قد باندي د تکبر اظهاروو، که دا هم چیته وای نو داسي به یې نه وای ویلي.

---

[1] یو ډول توره خزدکه چي د انسانانو ګندګي خوري، او بعضي خلک مرغتانی او غوزاړی ورته وایي. (ملمني)

(۵) پنځم سبب د مال او دولت وي چي په دې کي يو سړی بل ته وايي چي ما سره خو د مال او دولت کمی نسته او داسي داسي نعمتونه را ته حاصل دي او ته څه شئ يې! وږی تږی يې! زه خو تا خيراتي ګڼم ستا په ډول مسکينان خو زه په پيسو اخيستلای سم دا او داسي نوري کلمې د متکبرانو دخولې څخه ووځي، او په سورت کهف کي چي د دوو ورونو کومه قصّه بيان سوې ده هغه د همدې قبيلې څخه ده په کومه کي چي يوه ورو بل ته وايي: أَنَا أَكْثَرُ مِنكَ مَالًا وَأَعَزُّ نَفَرًا (الکهف:۳۴) (زه ستا څخه زيات مالداره يم او په نفرو کي هم ستا څخه زبردست يم).

(۶) شپږم سبب جسماني زور او قوّت دی او دا هغه تکبر دی کوم چي طاقتور خلک پر کمزورو او ضعيفانو خلکو کوي.

(۷) اووم سبب د تکبر کېدلو دا دی چي بنده پخپلو مريدانو، شاګردانو، غلامانو، نوکرانو باندي خپله برتري او سرداري اچوي (او خپل ځان ګويا د دوی رازق ګڼي).

لنډه دا چي کوم شئ هم د بنده په نزد د نعمت درجه لري هغه شئ د ده د پاره د تکبر باعث جوړيږي، که څه هم دغه شئ په حقيقت کي نعمت هم نه وي، تر دې چي مخنث هم د مخنثتيا د اسبابو او لوازماتو ذکر کوي پر نورو مخنثانو خپله برتري اضافه کوي، دا وو هغه اسباب کوم چي د تکبر او ځان ښودلو نمه واره دي،او دا هم واضحه سوه چي د تکبراظهار هميشه دعداوت او حسد په سبب وي يعني کله چي د يو سړي د بل سړي سره دښمني پيدا سي نو د ده دا خواهش وي چي فخر او ناز وکړي د ده په لاندي ښکاره کولو کي کامياب سي، ريا کاري پرخپل ځای هم کله کله د تکبر سبب جوړيږي يعني خپله لويي ځکه کوي چي خلک د ده څخه مرعوب سي عزت او احترام يې وکړي، مثلاً د چا سره مناظره کوي او خبر وي چي فريق ثاني په علم او فضل کي د ده څخه د ډېري لوړي مرتبې مالک دی نو په ښکاره به ځان نېغ نېغ کوي چي داونه ګڼي چي فريق ثاني واقعي د ده څخه افضل دی، نو د اسبابو د تکبر څخه چي خبر سوې اوس پکار دي چي د علاج څخه يې هم خبر سې چي د هر شئ علاج داسي کيږي چي اسباب يې زائل سي.

**د تکبّر علاج:** پوه سه! چي د سعادت په لاره کي حائل کېدونکی هرعلّت هغه که يوه ذرّه ولي نه وي او د جنت د لاري دسترګو څخه پناه کوونکی هر شي هغه که څومره سپک ولي نه وي علاج کول يې فرضِ عين دی او تکبّر يوه داسي ناروغي ده چي د دې څخه يو سړی هم خالي نه ښکاري د دې علاج په دوه ډوله سره کېدای سي: (۱) علاج مُجمل (۲) علاج مُفصل، مُجمل علاج ته خو يو

معجون (درمل) وبل کیږي چې اجزاء ترکیبي یې علم او عمل دی، او بیا په دې کې چې کوم علمي علاج دی هغه دا دی چې انسان الله ﷻ وپېژني چې ده ته دا حقیقت ښکاره سي چې لویي او غتوالي ما سوا د هغه شخه دبل چا سره ښه نه ښکاري د دې شخه وروسته به ده ته خپل حقیقت ښکاره سي، چې د ده شخه زیات ذلیله اوعاجزه او خوار بل نسي کېدلای، نو دا یو جار (مسهل) دي چې د باطن شخه د تکبر بیخ را باسي، که شوک یې پوره علاج کول غواړي نو دا آیت ور ته کافي دی: قُتِلَ الْإِنسَانُ مَا أَكْفَرَهُ (۱۷) مِنْ أَيِّ شَيْءٍ خَلَقَهُ (۱۸) مِن نُّطْفَةٍ خَلَقَهُ فَقَدَّرَهُ (۱۹) ثُمَّ السَّبِيلَ يَسَّرَهُ (۲۰) ثُمَّ أَمَاتَهُ فَأَقْبَرَهُ (۲۱) ثُمَّ إِذَا شَاءَ أَنشَرَهُ (عبس:۲۲) (انسان دي هلاک سي دی شومره ناشکره دی د شه شي شخه پیدا سوی دي د نطفې شخه پیدا سوی دي بیا یې د ده اندازه وکړه بیا یې د ده لار آسانه کړه بیا یې مړ کړی بیا یې په قبر کې ښخ کړی بیا چې الله ﷻ کله وغواړي ژوندی به یې را پورته کړي) الله ﷻ انسان پخپل قدرت سره روښانه کړو د انسان ابتداء اوانتها او مینځوی کړی یې بیان کړې چې ته شوک یې په دې وجه انسان ته پکار دي چې دی په دې خبره پوه سي چې د "نِشت" شخه زیات یو شئ بې قدره نسته، او بنده (نشت) وو شکه چې د ده نوم او نښه هیڅ نه وه، او د ازل شخه د پیدا کیدو تر وخته پوري په پرده کې پټ وو، د الله ﷻ ارشاد دی: هَلْ أَتَىٰ عَلَى الْإِنسَانِ حِينٌ مِّنَ الدَّهْرِ لَمْ يَكُن شَيْئًا مَّذْكُورًا (الدهر:۱) (پر هر انسان یوه مُده داسي راغلې ده چې دی د ذکر شه شئ نه وو) نو الله ﷻ (د ده د پیدا کولو د پاره) خاوره پیدا کړه بیا یې نطفه او علقه پیدا کړه چې حقیقت یې اوبه او وینه ده او دغه هم ناپاکه، او بنده ته یې د دې (نشت) شخه (شته) کړی، او د ده اصل یې د ناچیزه خاوري گنده اوبواو گنده وینې شخه جوړ کړی، د دې شخه وروسته انسان د غوښې ټکړه وه لېکن داسي چې په ده کې د اورېدو، لیدو، خبرو کولو او حرکت کولو طاقت نه وو گویا یوه مړه وه چې د شان خبر ور ته هم نه وو، الله ﷻ په ده کې د اورېدو، لیدو، ذوق، خبرو کولو قدرت او قوّت، لاس او پښې او نور پیدا کړل، کوم چې ده ته پخپل شان کې په نظر راشي او د کومو په باره کې چې دی پخپله غور کولای سي چې د دوی شخه کوم یو شئ وو چې په دغو حقیرو خاورو کې وو یا په گنده وینه او پلیته نطفه کې وو، او اوس چې شومره عجیب او غریب شیان د اندامونو په شکل کې د ده سره دي، نو آیا په دې سره د الله ﷻ د لویي راز د ده په پوهه کې نسي راتلای؟ او آیا پر دې سربېره د تکبر کولو شه امکان ده ته ښکاري؟ آیا دا ټول شیان د ده د ذاتي کوشش په وجه دي؟ او که نه دي نو بیا تکبر د شه شئ دي،

ارشاد دی: وَمِنْ آيَاتِهِ أَنْ خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ إِذَا أَنْتُمْ بَشَرٌ تَنْتَشِرُونَ (الروم: ۲۰) (او د الله ﷻ د نښو څخه دا دی چي تاسوې د خاورو څخه پیدا کړاست بیا لړې ورځې وروسته تاسو انسانان سوئ ګرځئ) نو پر دې خبره خو غور کول د بنده اول فرض سو، اوس دې سوچ وکړي چي دا د تکبر او ځان ښوونې مقام دی او که د شرم او مرکېدلو؟ په دې فخر کول پکار دي او که شرمنده کېدل پکار دي؟ او په مینځوی مُده کي چي یې کوم کار الله تعالیٰ د ده د پاره وکړی هغه دا وو چي دی یې دې دنیا ته راوستوی تر یوې مُدې پوري یې دلته پاته کړی، څنګه څنګه قوّتونه ده ته ورکړل سول په څنګه څنګه انعاماتو سره ولمانځل سو، لېکن که الله ﷻ دا کار هم پر داغه ځای پرې ایښی وای (یعني ده ته یې صرف قوت او انعامات ورکړي وای او په نورو عوارضو کي یې مبتلا کړی نه وای) نو ممکنه وه چي دی غلط سوی وای، او په دې مغالطه کي به پرېوتي وای چي زه شاید واقعي یو شئ یم نو لوږه تنده، ناروغي، یخني، ګرمي، درد قولنج او نوري بلاګاني یې د ده پر سر ور وتپلې، چي د یو وخت د پار هم دی ځان په امن تصوّر نه کړي، دمرګ ېېره د رنډېدلو ېېره، د ناروغي ېېره، په جنون کي د مبتلا کېدلو او د لوږې تندي څخه د مرګ ېېره، مرضونه یې ورکړل، نو د علاج د پاره یې ترخې دوایاني مقرري کړې چي که فائده اخلې نو اول به تکلیف تېر کړې، او د دې نقصان یې په ښو شیانو کي پټ کښېښوی چي که د څه وخت د پاره لذت واخلې نو وروسته به تکلیف هم برداشت کوې، د ده چي څومره کارونه دي یو پکښې هم د ده په قدرت او وس کي نسته، تر دې چي که په یو شي د پوهېدلو خواهش لري، نو دا خواهش یې اکثر پوره نسي او هغه شئ ونه پېژني، او کوم چي هېرول غواړي هغه هېرولای نسي، بلکي د کوم شئ د تصوّر څخه چي هم رپېږي او پرېښودل یې غواړي هغه د دې پر خلاف پر زړه مسلّط سي او پاته سي، او کوم شئ چي په خیال کي راوستل غواړي هغه د ده د خیال څخه لیري لیري تښتي، او بیا د دې ټولو عجیبه صنعتونو سره سره او د دې ښایسته ښایسته شیانو چي کمی یې د ده په خوا او شا کي نسته دی یې دومره عاجزه بې وسه او لاچاره جوړ کړی چي د ده څخه بدبخته درمانده او عاجزه ناتوانه په کائناتو کي بل یو شئ نسته.

پاته سو د ده آخر نو دغه مرګ دی چي دکوم په راتللو سره به نه د ده قوّت د اورېدلو پاته سي نه د لیدلو، نه ښایست،نه بدن، نه اندامونه بلکي داسي سخته ګنده اومرداره به جوړه سي چي هر سړی به ځیني وحشت کوي پزه به بندوي او بیا به د خاورو سره ملاو سي خاوري به سي او ذلیل او خوارېدل به یې آخري انجام سي، بلکي خبره که پر دې ځای ختمېدای چي خاوري کېدای او بس نو هم به ډېره

بنه وای چي څه که نور څه نه وي نو د حيواناتو په ډول خو سو، دلته خو دا خبره هم نصيب نه ده ځکه چي آخر به دی د حشر ميدان ته ځي، او دی به په يو خوفناک او هيبتناک مقام کي ساتل کيږي، تر دې چي اسمان به د ده په مخکي څيري سي ستوري به د ده په مخکي مات سي راوغورځيږي لمر سپوږمۍ به د رڼا څخه محرومه سي غرونه به د پنبه وو په رقم والوزي خس خس به سي د مځکي ګلونه کبلل او صورت بدلبدل به د ده د سترګو په مخکي وي فرښتې به د ده په مخ کي تناونه غورځونکي وي، دوږخ به مخامخ سي فرښتې به هر چاته عملنامې په لاسو کي ورکوي، غرض د ټول عمر کړي کارونه به يې د يو عالَم په مخکي ښکاره سي د هر سړي عملنامه به فرداً فرداً ولوستل سي، فرښتې به جواب طلب کړي چي: دا دي ولي وکړل؟، ستافلاني ځای ته تلل، کتل، کښېناستل ولي وو؟ فلانی خيال تا ته ولي راغلی وو؟ او نور نور او بيا چي کله د دې جوابونه ورنه کړل سي، نو دی به په را کشولو دوږخ ته بو تلل سي بيا به څوک په افسوس او حسرت سره وايي چي اې کاش! زه خنزير وای اې کاش! زه سپی وای چي خاوري سوي خو وای ځکه چي دغه خاوري سوی د عذاب څخه خو خوندي سي نو خيال وکړه چي د کوم سړي حالت د سپي او خنزير څخه هم نا کاره وي د هغه د پاره تکبر څه پکار دي؟ چي د ده پر مصيبت او بلا خو که د ځمکي او اسمان هر شئ او هره ذرّه هم په جمع سره ماتم او افسوس وکړي نو کم دی، او که د ده د عملنامو رسوايانې لوستل وغواړي نو د لوستلو څخه به يې عاجزه سي، تا به شايد هغه قيدي ليدلي وي چي د باچا په حکم سره په قيدخانه کي اچول سوی وي او د ده د پاره د پانسئ حکم کېدونکي وي، او دغه قيدي د دې ټولو خبرو څخه بې فکره په فخر تکبر کي مشغوله وي نو ده ته به څوک عاقل او هوښيار وايي؟ نو پوه سه! چي ته هم د دغه باچا د عالَم په قيد خانه کي يې، او ته په ډېرو جرمونو، الزامونو او ګناهونو کي ګير او نيول سوی يې، او د انجام د کار څخه بيخي ناخبره يې، نو دا مقام د (بيري او هيبت دی او که د) څه دی؟ او د هر څه چي دی دا خو بالکل واضحه ده چي لږ تر لږه د فخر او غرور خو پکښې هيڅ خبره نسته.نو کوم سړي چي خپل دا حقيقت وپېژني نو د ده د پاره دا پېژندل د جاړو (مسهل) کار کوي او د ده د باطن څخه به د تکبر ماده وباسي نو ده ته به د ځان څخه کم بيا هيڅ څوک نه ښکاري بلکي د ده تمنا که څه هم وي نو فقط دا چي اې کاش! زه ډېره وای؟ مرغی وای يا يوبل مرغه وای نو د دې مصيبت څخه خو به خلاص وای.

عملي علاج يې دا دی چي په کوم حالت او کيفيت کي وي نو د ده په قول او فعل کي دي د عاجزانو او مسکيناتو انداز ښکاره وي، او صرف هغه لار اختيارول پکار دي کومه چي تواضع کوونکو همېشه

اختیار کړې ده. نبي کریم ﷺ به د خوراک په وخت چیري هم ډډه نه وهله او همیشه به یې دا فرمایل: زه بنده یم بس خوراک هم د بندګانو په ډول کووم، د حضرت سلیمان ﷺ څخه چا پوښتنه کړې وه چې ته نوی لباس ولې نه اغوندې؟ نو جواب یې دا وو چې: په دې وخت کې زه غلام یم کله چې آزاد سم آخرت ته ورسم نوې جامې به واغوندم.

او پوه سه! چې د لمانځه په رازونو کې یو راز تواضع هم ده چې اظهار یې په تواضع سره کیږي چې دانسان مغ د ټولو اندامونو سردرار دی او معزز ترین اندام دی دغه پر خاورو ایښوول کیږي کومې چې په ټولو شیانو کې زیاتي خواري او ذلیله دي دعربو په مزاج کې دا شئ ښکاره وو چې دوی خو سجده لا څه کوې فقط ملا چا ته کښته کول هم خپل سپکاوی ګڼی، نو سجده د دوی د پاره د یو مصیبت څخه کمه نه وه، نو بنده ته پکار دي چې کبر ده ته د څه شئ حکم هم کوي دی یې مخالفت وکړي، او د کبر اظهار نه دا چې صرف په صورت د لباس بلکې په ژبه، سترګو، ناستې پاستې غرض هر حرکت او سکون کې ممکن وي، نو په کوشش او تکلف سره د دې لیرې کول لازمي دي، چې په څه ډول سره هم دا شئ باقي پاته نسي او تواضع د ده فطرت جوړ سي، د تکبّر صفتونه ډیر دي، مثلاً دمتکبریو خاص انداز دا وي چې کله ور سره څوک تلوونکي نه وي دی چیري ځي نه، ګویا یواځې تلل د ده د پاره سپکوالی دي، د دې څخه ځان ساتل لازمي دي، د حضرت حسن بصري رَحِمَهُ الله سره چې که به څوک (د مذکوره خیال مطابق) تلو ته روان سو نو ده به منع کوله او ویل به یې چې دغسې زړه متکبر کیږي، د ابو الدرداء رضي الله عنه قول دی چې څومره زیات خلق د تلو په وخت کې پر تا شاوخوا را تلل وي دومره زیاته فاصله به ستا او د الله ﷻ په مینځ کې پیدا کیږي، نبي ﷺ چې به د خلګو سره تلو نو اکثره خلګ به یې د ځان څخه مخکې کول دمتکبریو نښه دا هم وي چې خلګ دي د ده په مخکې په اداب سره ولاړ ي (او دی دي ناست وي) نبي ﷺ به دا خبره ډیره بده ګڼله چې یو سړي دي پورته سي د ده تعظیم دي وکړي، یوه نښه دا هم ده چې دوږخي د چاملاقات ته نه ځي، حضرت سفیان ثوري رَحِمَهُ الله چې کله مکې معظمې ته راغلی نو ابراهیم ادهم رَحِمَهُ الله دوی راوبلل چې راشه ما ته حدیث بیان کړه، چې دوی رَحِمَهُ الله راغلل نو ابراهیم ادهم رَحِمَهُ الله وویل چې ما صرف ستا عاجزي او فروتني ازمایله، یوه نښه دا وي چې متکبر ته دیو درویش یا فقیر د خپل ځان سره کښېنستل خوښ نه وي، لیکن نبي ﷺ چې به کله د فقیر په لاس کې خپل لاس ورکړی نو تر هغې به یې نه ځیني راخلاصوی تر څو چې به هغوی نه وو پرې ایښی، د مریضانو، او بدحالو سره به نبي ﷺ یو ځای خوراک کولو د کومو څخه چې نور خلګو ځان ساتی، یوه نښه د تکبر کوونکوي دا وي چې د کوره

ووځي نو اعلیٰ جامې به اغوندي حال دا دی چې حضرت عمر کله امیر المؤمنین وو چې بهر به راوتلو نو داسي جامې به یې اغوستي وې چې پیوندونه (پینې) به پکښې لګېدلي وو، چې ځیني پیوندونه به پکښې د څرمې هم وو، د حضرت علي جامې به همېشه مختصري او لنډي وې او فرمایل به یې چې په دې ډول سره زړه د خشوع او خضوع او عاجزۍ طرف ته مائل وي، د نورو ورته هم رغبت کیږي او تقلید یې کوي او د فقیرانو زړه په دې سره خوشحالیږي، طاؤس رحمه الله وایي چې کله زه پر بولي جامې هم واغوندم نو زما زړه تر هغه وخته په آرام کیږي نه تر څو چې هغه بیا خیرني نه سي، ځکه چې ما ته په دغو کي د تکبر اثر ښکاره کیږي، حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله د خلافت څخه مخکي د ځان د پاره داسي جامې جوړې کړې چې زر دیناره پر خرڅ سوه لېکن بیا یې هم وویل چې: خیر! بدي خو نه دي لېکن که د دې څخه هم زیاتي نرمي او پستې وای نو ښې به وای، او دغه عمر بن عبدالعزیز رحمه الله چې کله امیر المؤمنین سو نو د ده د جامو مجموعي قیمت د پنځه درهمو څخه زیات نه وو، او پر دې به یې هم فرمایل چې ښه خو ډیري دي لېکن که لږ نوري هم زړې او شیري وای نو ښه به وای.

حضرت طاؤس رحمه الله یو وار یو سړی په ناز او نخرو تلونکی ولیدی ویې ویل: داسي چال به د هغه سړي څخه ښکه ولیدل سي چې معلومه وي ورته چې د ده په ګېډه کي څه دي؟ او لږ دي یوه ورځ دوې ونه لمبیږي او ودې ګوري چې خر او حیوان خو به د ده څخه پا ک وي ځکه چې د څاروېانو اوحیواناتو دننه چې کوم غلاظت وي د بدبویې او ګنده والي په لحاظ سره د بنده د ګندګی څخه کم وي، د دې څخه ماسوا حسن او جمال چې هم دی دا د ده ذاتي تخلیق نه دی چې فخر په وکړل سي او دغه ډول بل که بدصورته دی نو دغه هم د ده ذاتي ذمه واري نه ده چې پر ده بانډي عیب ولګول سي، او د ده خپل حسن هم قابل اعتماد نه دی په یو مرض او ناروغي کي دا حسن او جمال تباه اوبرباد کېدلای سي په ځانګړې ې توګه د شري (کوچنی دانی) ناروغي که پر راسي نو صورت به یې داسي مسخ سي چې ګویا د حسن اوجمال څه واسطه ور سره هم نه ده پاته سوې او د ده په ډول بدصورته به بیا ښوک هم نه وي.

دغه ډول که تکبر پر دې خبره وي چې دی ډیر طاقتور دی نو سوچ دي وکړي چې که د ده په یو رګ یا پله کي درد راسي نو د ده څخه زیات کمزوری او ناطاقته به ښوک نه وي، په دې حالت کي که د ده څخه شئ واخیستل هم سي نو دی به عاجزه وي، دغه ډول د انسان په پزه کي که غوماشه ننوځي یا

مېږی په غوږ کي ننوځي نوبالکل بې وسه به وي بلکي مړ کېدای هم سي، او که په پښه کي يې ازغی هم ولاړ سي نو پر ځای ولاړ به پاته سي، او که ډېر طاقتور وي نو څه ؟چي خر، غوايی، اوښ او فيل خو د ده څخه زيات طاقتور دي، نوبيا په داسي شئ څه فخر او غرور کېدای سي کوم چي په خرو او غوايانو کي د ده څخه زيات دی؟

او که تکبر پر خپل امارت او دولت باندي دی يا پردې خبره چي د ده سره مال اسباب نوکران مزدوران مينځي غلامان ډېر دي يا دا چي دی صاحبِ ولايت او سلطنت دی نو دا هغه شيان دي چي تعلق يې د ده سره په خارجي توګه دی او د ده د ذات څخه بهر دی چي مثلاً مال او زر که غلاسي نو د ده سره به څه پاته سي، او منصب او عهده که ځيني باچاه واخلي نو د ده ځای به څه وي؟ نو د تکبر څه معنی ؟ او که دا هر څه ور سره هم وي نو؟ څومره يهوديان او کافران دي چي د ده څخه په څو واره زيات د مال او دولت مالکان دي، دغه ډول تر څو پوري چي د حکومت او ولايت تعلق دی نو ډېر تُرک، کُردان او نور داسي دي چي لس لس چنده غټ حکمو تونه ور سره دي، حال دا دی چي د هنر څخه خالي او د عقل څخه راندہ دي، او بيا د ټولو څخه غټه خبره دا ده چي کوم شئ ستا نه دی دغه ستاکېدای هم نسي او کوم شئ چي ستا خپل نه وي پر دغه فخر او غرور څومره بده خبره ده، او دا ټول شيان صرف عارضي او تلونکي راتلونکي دي، او يو شئ داسي نه دی چي ته ورته د خپل ووايې نو غرور پر څه کوې.

او په علم او عبادت کي هم تکبر کېدای سي او دا د تکبر هغه قسم دی چي علاج يې ډېر ګران دی، ځکه چي د دې تعلق د کمال سره دی او علم پخپله د الله ﷻ په نزد هم عزيز او عظيم دی او د ده د ذاتي صفتونو څخه دی او د عالم د پاره ډېره ګرانه وي چي خپل ځان ته نه ګوري يعني د تکبر او فخر څخه منع سي، خو د دې څخه په د وو طريقوو سره نجات امکان لري: اول خو دي دا په ذهن کي کښېږدي چي پر عالم حجّت ډېر زيات دي يعني دحساب په وخت به جاهل ته خو څه ډيل هم ورکول کيږي (يعني يو څه ښه به ور سره کيږي) لېکن د عالم څخه خو به د يوې يوې نقطې او خبري حساب اخيستل کيږي، او هيڅ ډول رعايت به ور سره نسي کېدای، نو عالم ته چي کومه خطره مخ ته ده هغه نورو ته نه ده، په حديث کي چي د علماؤ په باره کي کوم روايتونه مذکور دي چي غور پر وسي نو صفا ځيني ښکاره کيږي چي د هغه عالم په باره کي کوم چي پخپل علم صحيح عمل ونه کړل سي دهغه خر سره يې مشابه کړی دي د کوم پر شا چي د کتابونو بار وي فرمايي: د ده مثال د هغه خره په ډول دی چي کتابونه پر بار وي [الجمعه]. د ده حالت د سپي په ډول دی چي که ته حمله پر کوې نو هم غپا کوي او که يې پرېږدی نو هم غپا کوي [الاعراف] يعني که پوهيږي او که نه خو خپل خوی نه

خپل عبادت په خیال کې پر عالم تکبر نه کوي خواه دغه عابد وي هم نه بلکې دا دي وایي کېدای سي چې د ده علم د ده د شفاعت ذریعه جوړه سي او د ده بد دیانتي به په خپله لمنه کې پټه کړي، او نبي ﷺ فرمایلي دي چې د عالم فضیلت پر عابد داسي دی لکه چې پر یو صحابي باندي زما دی، عابد که یو جاهل ووینې نو دا دي وایي چې دا کله لازمه ده چې دغه عابد هم نه وي د دننه حال یې زما څخه پټ دی او عین ممکنه ده چې دغه په حقیقت کې زما څخه زیات عبادت ګزاره وي خو د خپل ځان مشهورولو څخه یې ډډه کړې وي او که یو فاسق او فاسد د ده د نظر څخه تېر سي نو وایي دي چې ځومره ګناهونه دي چې د بنده پر زړه تیرېږي، او بعضي وسوسې او شکونه پرخپل ځای داسي وي چې په زړه کې تېر سي نو د فسق او فجور څخه بدتره وي، نو عین ممکنه ده چې د ده صرف ظاهر د فاسق په ډول وي، او د ده په مقابله کې به زما باطن په یو داسي ګناه کې ګرفتاره وي چې ما ته د هغې معلومات نه وي او زما ظاهري عملونه د دغه په وجه سره عبث سوي وي او د ده په باطن کې به یو داسي نېک خویې موجوده وي چې د ده د ټولو ګناهونو کفاره کېدای سي، او که نه وي نو دا خو په هرحال ممکنه ده چې دی توبه وکاږي، او دغه رنګه د ده انجام پر خیر سي او زما څخه یو داسي ګناه سوې وي چې دمرګ په وخت کې زما ایمان ته خطره سي، غرض کله چې د دې خبري امکان وي چې د ده نوم د الله ﷻ په نزد شقي او خطار کارانو کې شمار وي نو تکبّر کول عین حماقت نه دی نو څه دی؟ نو دا هغه راز دی چې دې ته په کتني سره عالمانو او مشائخو تواضع همیشه خپل شعار جوړ کړی دی.

**عُجب او د دې آفتونه**: پوه سه! چې عُجب یعني ځان خوښول او ځان ښوول د بدو اخلاقو څخه دی، او د نبي ﷺ ارشاد دی چې درې شیان د هلاکت سبب دي: (۱) بُخل (۲) حرص (۳) عجب (ځان ښوول او خوښول).

او فرمایي که تاسو د ګناه څخه ځان هم وساتئ نو په یو داسي شئ کې د مبتلا کېدو خطره بیا هم سته کوم چې فی نفسه د ګناه څخه ډېر بد دی او د دې نوم ځان خوښونه او ځان ښوونه ده (یعني عُجب)، د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه خلکو پوښتنه وکړه چې بنده ته بدکرادره په کومه وجه ویل کېږي؟ وې فرمایل هغه وخت کله چې دی دا ګڼي چې زه نېک کرادار او خوش اخلاقه یم حال دا دی چې د ده دا زعم او اراده صرف پر عجب او ځان خوښوني باندي بناء ده، ابن مسعود رضي الله عنه وایي چې هلاکت په دوو شیانو کې مضمر دی او دغه ته (۱) ځان خوښونه او (۲) نا اُمیدی (مایوسي) وایي، او په دې وجه ویل سوي دي چې د یو نا اُمیده او مایوس سړی په طلب کې سُستي ښکاره کېږي، لېکن

پرېږدي، اوس وګوره چې د خره او سپي شخه کوم شئ زیات ذلیله او خسیسه دی او حقیقت هم دا دی ځکه چې عالم که په آخرت کې نجات ونه مومي نو د ده شخه خو خر او سپی لاڅه چې جمادات هم غوره دي (چې دوږخ ته به نه ځي) دغه وجه ده چې د صحابه کرامو شخه یوبزرګ به ویل چې کاش زه مرغی وای!، او یوه به ویل کاش زه ګوبه بزه (وزه) وای چې ذبح سوې اوخوړل سوې وای! دغه ډول یو بزرګ ویلي وو چې کاش زه وابنه وای!. نو د چا په زړه کې چې د آخرت بېره موجوده وي هغه تکبر ته نژدې هم نه ورځي، دغه خو که د ځانه شوک جاهل ویني نو وایي چې ځرنګه چې دی د فلانی خبري شخه خبر نه دی په دې وجه په ګناه کې قلبل د معذرت دی نو زما شخه خو غوره دی، او که د ځان شخه زیات عالم ویني نو وایي ده ته خو د داسي داسي خبرو علم دی کومي چې زما په خواب او خیال کې نه راځي، یعني په هغو خبرو پوه دی کومي چې ما ته نه دي معلومي، نو زما شخه په ډېرو درجو غوره دی بلکي که یو هلک ویني نو وایي چې ما خو بې شماره ګناهونه کړي دي او دی لا تر اوسه د ګناهګاری عمر ته نه دی رسېدلای، نو زما شخه ډېر غوره دی، او که کافر ویني نو دا خیال کوي کېدای سي چې دی مسلمان سي او آخر یې برابر سي او زما خاتمه چېري پر کفر نسي ځکه چې ډېر داسي مسلمانان وو چې د حضرت عمر ﷺ د اسلام شخه مخکي یې پر هغوی تکبر کولو (چې موږ مسلمانان یو او دی مسلمان نه دی نو زموږ انجام به د ده شخه ښه وي) لېکن ولیدل سوه چې دغه تکبر د الله ﷻ په نزد خطاء وه. نوهر کله چې د بنده دبزرګي او سعادت دارومدار صرف په آخرت کې د نجات پر حاصلولو دی نو تکبر په خیال کې هم نسي راتلای، ځکه چې د هغه ځای علم چا ته سته چې شه به کېږي؟

لېکن که د دې بېره په زړه کې وي نو تکبر نسي پیدا کېدای، چې کبر او فخر پر خپل ذات که شوک کولای سي نو هغه صرف الله ﷻ دی د کوم سره چې دا ښه ښکاري او انسان هم که دا اختیار کړي نو دا د خدای سره ښځ په ښځه جګړه کول دي او ښکاره ده چې الله ﷻ به دی خپل دښمن ګڼي خصوصاً د دې حکم الهي په رڼا کې خو دا خبره بالکل واضحه کېږي چې فرمایي: زما په نزد د قدر او منزلې حاصلولو خو دا یوه طریقه ده او هغه دا چې ته خپل قدر او منزله پخپل نظر کې پخپله قائمه نه کړې، یعني د الله ﷻ په نزد هغه قدردان دی چې خپل ځان بالکل بې قدره تصور کړي، بلکي پکار دا ده چې که د خپل نېک عاقبت شخه واقف وي نو هم دي د حکم الهي پیش نظر پر دې فخر نه کوي تکبر دي نه کوي، دغه وجه وه چې انبیاؑ کرامو همیشه عاجزي او تواضع خپل شعار جوړ کړی وو، ځکه چې دوی د دې حقیقت شخه پوره باخبره وو چې تکبر کول د خدای دښمني ده، او عابد ته لازمه ده چې د

یو خودپسند انسان په دې زعم کې متبلاوي چې ده ته د طلب حاجت نسته. او مطرف رحمه الله وايي که زه ټوله شپه خوب وکړم او سهار پرېشانه او بدحاله راپورته سم نو هم دا د دې څخه غوره ده چې ټوله شپه په لمانځه کې یم او سهار درا پورته کېلو سره په عجب کې مبتلا سم.

او پوه سه! چې عُجب هغه بلا ده چې ډېر آفتونه د دې څخه پیدا کیږي او د دغو څخه یو زبردست آفت د ځان خوښوني دی او په دې کې د مبتلا سړي عادت وي چې خپل ځان تر نورو خلکو غوره او افضله گڼي، دويم دا چې دی خپل گناه نه یادوي، او که ورته یاده هم سي نو د هغې د علاج وطرف ته فکر نه کوي او دا گڼي چې بس دي خو بخښل سوي دي، په عبادتونو کې شکر گذاري د ده په نزد غیر ضرري شئ ده چې دی خپل ځان د دې محتاجه نه گڼي، نه ده ته دا معلومه ده چې په عبادتونو کې لوی آفتونه هم سته، نه دی د دې خبري خواهشمند وي چې د دې آفتونونو څخه خبر تیا ده ته حاصله سي، ځکه چې د ده خیال دا وي چې دی نه په یو آفت کې اخته دی او نه کیدای سي نو دی خو د آفتونو څخه بالکل محفوظه دی دغه ډول د الله ﷻ بېره ذده په زړه کې باقي نه پاته کیږي او دی ځان قطعي د دې څخه محفوظه گڼي، بلکي داسي گڼي چې پر الله ﷻ د ده حق دی، ده ته دا انداز هم نه وي معلومه چې د ده عابد کېدل هم یو خاصه مهرباني ده کومه چې الله ﷻ د ده پر حال کړې ده لېکن چې دی دا خپل حق وگڼي او چپه خپل تعریف کوي، ده ته د نفس د تزکیې فکر نه وي او د دې جهالت سره سره چونکي د عُجب په طلسم کې گرفتاریږي په د ې وجه د چا څخه پوښتنه کول هم خپل سپکاوی گڼي، او که یوه خبره د ده د رایي خلاف وي نو دی یې اورېدلو ته تیار نه وي، او د چا نصیحت ته غوږ نه ږدي او دغه ډول دی ناقص او د ده علم ناتمام پاته سي.

**د عُجب او ناز حقیقت او پېژندنه:** کوم سړي ته چې الله ﷻ یو نعمت ورکړی وي مثلاً نعمت د علم یا توفیق د عبادت یا داسي بل نعمت " او دغه سړي په بېره کې وي چې هسي نه دا نعمت د ده څخه واخیستل سي نو داسي سړي عُجب والا او ځان خوښوونکی نه دی" .

او که په بېره کې نه وو او په دې وجه خوشحاله وو، چې دا د خدای ورکړه ده او زما په دې کې هیڅ کمال یو صفت نسته نو داسي سړي ته هم خود پسند نسي ویل کېدلای.

لېکن که خوشحاله هم وو او په دې خیال سره خوشحاله وو چې دا نعمت د ده خپل کمال دی او د دې حقیقت څخه غافله وو چې دا صرف د الله ﷻ د عنایت نتیجه ده. او دغه رنگه د د په په زړه کې بېره تر هغه پاته نسي نو ده ته به ځان خوښوونکي ویل کیږي، او که دا خپل یو لازمي حق هم تصور کوي

(چي دا خو نو زما حق دی) چي الله ﷻ ما ته د عبادت په عوض کي راکوي او دا نعمت د عبادت عوض وګڼي نو دې ته ناز وایي یعني داسي به وېل کیږي چي دی پخپل عبادت ناز کوونکی دی، حال دا دی چي د نبي ﷺ ارشاد دی چي کوم سړی پخپل لمونځ باندي ناز کوي د ده لمونځ د ده د سره څخه پورته نه ځي، او فرمایي که ته په خندا کي هم د خپل تقصیر اقرار وکړې نو دا د دې په نسبت ښه ده چي اوښکي تویوې خو بیا هم خپل تقصیر یو کارنامه ګڼې.

**د عُجب او ځان خوښوني علاج:** پوه سه! چي عُجب هغه مرض دی چي د دې سبب صرف جهالت دی نو صافه ښکاره ده چي د دې علاج هم صرف په معرفت سره کېدای سي، په دې وجه که یو سړی شپه او ورځ د علم په حصول کي مصروف او په عبادت کي مشغول وي نو موږ دا سوال ځیني کوو، چي: آیا ستا د ناز کولو سبب دا دی چي دا څه پر تا تیریږي ځکه تیریږي چي په دې کي ستا څه دخل نسته بلکي ستا حیثیت صرف د یو راه ګُذر په ډول دی؟(یعني پر لاري د یو تلونکي سړي په ډول دی) یا: ځکه چي څه کیږي ته پخپله د دې په وجود کي د راوړلو باعث یې او هغه ډول قوّت ستا څخه حاصلوي؟ اوس که د ده صحیح صورت دا وی چي ته صرف د الله ﷻ په فضل سره روان یې او ته فقط د راه ګذر حیثیت لرې، نو راه ګذرته د ناز کولو هیڅ حق نسته ځکه چي دی خو مسخر دی یعني د حکم په تعمیل کولو مجبور دی او کار د ده پخپل اختیار کي نه دی، نو د ده په میانځ کي راتلل څنګه صحیح کېدای سي؟ او که ته وایې چي زه یې پخپله کووم او د اهر څه زما د قدرت او قوّت په سبب کیږي، نو آیا تا ته څه خبر هم سته چي دا قدرت قوّت او اندامونه او اراده او عزم کوم چي د دې عمل ذمه واره دي، هغه د کوم ځای څخه راغلل او د دوی راوستونکي څوک دی؟ او که ته دا جواب ورکړې چي دا زما خپله غوښتنه او خوښه وه کوم چي د دې عمل آرزو وکړه نو بیا دا سوال پیدا کیږي چي پر ده خو یو مؤکل ضرور مقرر کول کیږي چي دی د هغه مخالفت نسي کولای او ښکاره ده چي د ستا د دې خبري او داعیې منبع ستا ذات یا ستا خیال نسي کېدلای چي ته یې په زوره پر کار مصروفه کړی یې نو دا هر څه د الله ﷻ خاص انعام دی او ستا عجب صرف ستا د جهالت په وجه سره دی چي ستا په لاس کي نو څه دي؟ تا ته که تعجب کول وي نو د الله ﷻ پر دې خاص فضل او کرم باندي کول پکار دي، کوم چي بې شمېره مخلوق یې غافله پرېښودی او په بدو خیالاتو کي مبتلا سول، او پر تا یې خاص عنایت او فضل وکړی د نېکو کارونو داعیه یې پر تا مسلطه کړه او د زور او زبردستی په ځنځیرونو کي یې ونیولې پخپل حضور کي یې د حاضري شرف درته وبخښلی.

د دې مثال داسې دی لکه چې يو باچا پر خپلو غلامانو يو سرسري نظر واچوی صرف يوه ته پکښې ښه يو وجهي خلعت (انعام) ورکړي، حال دا دی چې ده يو خاص خلعت نه وي کړی نو دې غلام ته تعجب د باچا پر دې خاصي مهرباني پکار دی د کوم په وجه چې ده ته بلا مشقته خلعت ورکړل سو چې په خاصه توگه يې دی مستحق هم نه وو يعني د ځانه يې ده ته انعام ورکړی، لېکن که دغه غلام دا وواييي چې باچا په دې پوه دی چې هغه يې تر ټو مستحق نه گڼلو نه يې ورکولو لېکن اوس يې زه د دې حقدار وگڼلم نو وا يې کړو زما ښېگڼه يې وليده او انعام يې را کړی نو آيا خلگو ته د دې پوښتنه کولو حق نسته چې دا صفت د استحقاق په تا کي د کومه راغلی؟ او که دا شاهانه عطاء صرف د حق معامله وي نو دا حق تا ته چا در کړی؟ نو تا ته د عُجب کولو هيڅ حق نسته، چې دا خو هغه خبره سوه چې که باچا تا ته آس در کړي لېکن ته د عجب اظهار ونه کړې، لېکن د دې ځخه ورسته که يو غلام هم تا ته در کړي نو ته به د عُجب مظاهره وکړې او داسې به وايې چې غلام ما ته ځکه را کړل سو چې زما سره آس وو او د نورو سره چونکي نه وو نو دوی ته ځنگه ملاوېدلای سو؟ لېکن ته دا هېروې چې باچا دا دواړه شيان په يو وار هم در کولای سو نو په دې کي د عُجب څه ځای دی؟

دغه ډول که ته ووا يې چې: ما ته د عبادت توفيق ځکه را کړل سوی دي چې زه د الله ﷻ محبوب او خوښ يم، نو موږ وايو چې د دې دوستي او محبت پيدا کوونکي څوک دی؟ که ته بيا دا ووا يې چې ما هغه محبوب ودرلودی او د هغه دمعرفت په حاصلولو کي زه کامياب سوم او د هغه د جمال مشاهده ما ته حاصله سول، ځکه چې ما هغه وپېژندی، نو موږ به پوښتنه کوو چې د دې معرفت او جمال الهي د ديدار عطاکوونکي څوک وو؟ نو پوه سه! چې هر څه د هغه د طرف ځخه دي نو د عجب پکښې څه دي؟ دا هر څه هغه ته منسوب کېږي او هر شئ د هغه پر بروسه توکل عنايت او کرم محمول کېږي چې هغه ته پيدا کړې او دا صفتونه يې هم په تا کي پيدا کړل، په قدرت او اراده سره يې ته سرفرازه کړې کنې په ميانځ کي ته څه او ستا بساط څه؟ ته هيڅ هم نه يې، او نه ته د يو شئ سبب يا ذريعه يې، ته ملسوا د دې ځخه نور هيڅ نه يې چې د قدرت الهي يو راه گذر يې او بس. **سوال:** که يو سړی دلته دا سوال راپورته کړي چې پخپله زه څه کولای نه سم او څه چې کوي هغه يې کوي نو د ثواب اُميد بيا څه معنی لري او آرزو به يې د چا ځخه وکړل سي؟ په ځانگړې توگه کله چې په دې کي څه شک نسته چې موږ ته کوم ثواب ملاوېږي نو زموږ په عملونو خوملاوېږي کوم چې زموږ د خپل اختيار سره تعلّق لري؟ **جواب:** په اصل کي د دې جواب دا دی چې (اې بنده!) ته پخپله فقط د

الله ﷻ دقدرت ګزرګاه یې او بس د دې څخه ماسوا ته هیڅ هم نه یې، د الله ﷻ واضح ارشاد دی: وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ [الانفال:١٧] (څه چې تا وویشتل دغه تا نه بلکې الله ﷻ وویشتل) لیکن څنګه چې د حرکت ظهور د علم، قدرت او ازادې څخه وروسته وسو نو په دې سره انسان وګڼله چې " کول" پخپله د ده صفت دي، نو دا راز ډېر ژور او سخت دی چې په پوهېدل ستا د پاره ډېر ګران دي، او کېدای سي چې د توکّل او توحید په باب کي د دې په باره کي څه اشارهٔ وویل سي، په هر حال اوس به ستا د فهم مطابق څه ووایو، نو داسې پوه سه! چې عمل ستا د قدرت سره متعلق دی لیکن ستا عمل بغیر د قدرت، بغیر د علم او بغیر د ارادې څخه ممکن نه دی، نو ستا د عمل چابي (کیلي) دا درې شیان دي او دا درې سره د رب ورکړه او عطیه ده، د مثال د پاره فرض کړه چې یوه خزانه ده ډېره مضبوطه ډېره محکمه او د نعمتونو او دولتونو څخه ډکه ده لیکن ته د دې د حاصلولو څخه بیخي عاجزه او بې وسه یې، څکه چې د دې چابي ستا سره نه سته، او س که خزانچي د دې خزانې چابي تا ته وسپاري او ته ور دننه سي لاس ورواچوې او مال دولت د دې څخه راوباسې نو دغه نعمت او دولت به آیا ته هغه چاته حواله کړې کوم چې دغه چابي تا ته در کړې وه یا به خپل لاس د دې حقدار ګڼې په کومو سره چې دغه دولت تاراوایستلو؟ حال دا دی چې ساده غوندي خبره دا ده چې کله هغه چابي تا ته در کړه نو بیا ستاد پاره لاس وراچول څه ګرانه خبره ده، خبره خو دغه ده او د هغه سړي ده کوم چې چابي تا ته در کړه چې نعمت او دولت د هغه د طرف څخه وو، نو ستا قدرت کوم چې ستاد اعمالو چابي ده، دا عطاء د الله ﷻ ده، نو په دې وجه تعجب د هغه پر بې اندازه فضل کول پکار دي چې هغه د عبادت د خزانې کنجي (چابي) ستا په لاس کي درکړه او ټول فاسقان یې د دې څخه محروم کړل، بلکي د ګناهونو چابیاني یې دوی ته حواله کړې دعبادت دروازې یې پر دوی بندي کړي او دا هم نه ده چې د دوی څخه څه قصور سوی دي بلکې د خپل عدل مطابق یې وکړل او تا ته چې یې څه در کړل دغه هم ستا د خدمت صله نه وه، بلکي تر خاص کرم لاندي یې ته ولمانځلې.

نو کوم سړی چې توحید د خپل اصل حقیقت په رنګ کي وپېژني دغه د عُجب ښکار کیږي نه، او دا چې کوم بعضي وخت مثلاً یو غریب عاقل په دې خبره تعجب وکړي چې جاهل ته خوږې دومره مال ورکړی دي اوزه د خپل عقل او پوهي سره سره د دې څخه محرومه یم، لیکن دا عاقل دا حقیقت نظر انداز کوي چې د عقل څخه غوره خو یو نعمت نسته او هغه ده ته حاصل دی او دغه هم خدای ورکړی دي، اوس که دا دواړه شیان (عقل او دولت) صرف ده ته ورکړي او بل د دواړو څخه محرومه

کړي نو دې ته خو عدل نه ویل کیږي، مهرباني او لطف دا دی چي شکایت کوونکی که دې عاقل ته ووایي چي زه ته د خپل د عقل د ده مال سره تبادله وکړه نو شاید هغه به په دې باندي رضامند نه وي، دغه ډول که یوه ښایسته ښځه یوه بدصورته اوبدشکله ښځه په ښه لباس او سینګار کي ووینې او ووایي چي دا څه حکمت دی چي نعمت خو بدشکلي ته ورکول سي چي دا خو صحیح نه ده. او دومره د ځان پوه کولو زحمت هم ونه کړي چي دا حسن او جمال چي کوم دې ته ورکول سوی دي د دغو کالو او جامو څخه په ډېرو درجو غوره دی، او دا دواړه شیان (حسن او سامان د زینت) که یواځي دې ته ورکړل سوی وي نو دې تقسیم ته به یې د عدل څخه لیري ویلای، او دا داسي خبره ده چي یو باچا خپل یو مصاحب (ملګري) ته آس ورکړی او بل ته غلام، اوآس والا په دې تعجب وکړی چي آس یې ماته را کړی نو غلام یې ولي دې بل ته ورکړی، نو دې ته به د ده د جهالت څخه ماسوا بل څه نه ویل کیږي، او داوجه ده چي کله حضرت داؤد ﷺ وویل اې خدایه! یوه شپه داسي نه راځي چي په هغې کي دعابنام څخه تر سهار هیڅوري د اولاد د داؤد څخه څوک په عبادت کي نه تېروي، او هغه کومه ورځ ده چي د اولاد داؤد څخه پکښې څوک روژه دار نه وي؟ فوراً وحي راغلې چي: اې داؤده! دې خلګو ته د دې اعمالو توفیق ورکوونکي څوک دی؟ ښه نو اوس د لږ وخت د پاره مونږ تا پرېږدو چي ته د خپل رایې مطابق پخپله خو ښه څه عمل کوې او کله چي یې دوی خپل حال ته پرېښودل نو د داؤد ﷺ څخه هغه غلطي وسوه چي ټول عمر یې بیا افسوس او تلافي پر کوله (تفصیل یې په سورت ص کي دی)

**فصل:** یوه سه! چي د ځیني خلګو جهالت دې اندازې ته رسېدلی وي چي هغوی په داسي خبرو مغروره او نازکوونکي وي کومي چي د ده په وجه سره په وجود کي نه وي راغلي او نه د ده په قدرت کي وي، مثلاً په خپل قوّت او طاقت، حسن او جمال، خاندانی نسب او نورو باندي عُجب کوي، او دا لوی جهالت او ناپوهي ده، اوس که یو عالم دا ووایي چي علم ما حاصل کړی، یا عابد ووایي چي عبادت زه کووم نو د دوی دا خیال صرف حماقت دی او په دې عُجب کي چي کوم خلک په خپلو ظالمو او جابرو حکمرانانو او حاکمانو پلارانو او نیکه ګانو باندي فخر کوي که کله دوی په دوږخ کي پر سوځېدلو او تپېدلو ووینې چي پر دوی څه تېرېږي او د قیامت په ورځ به لا د دوی نور څه حشر وي نو په دوی فخر کول خو پرېږده صرف نوم اخیستل به یې هم خوښ نه کړي، او که د نسب خبره وي نو د نبي کریم ﷺ څخه اشرف او عظیم نسب د چا کېدای سي، لېکن تر کومه پوري چي د فخر او

ناز تعلق دی دغه خو پر دوی باندې هم نسي کیدای چي دا باطل دي، د دې سره سره د ځیني خلکو د فخر او غرور دې اندازې ته رسیږي چي د دوی په نزد گناه او نافرماني د دوی هیڅ نسي خرابولای او د دې کچه خیال په وجه یې چي څه په زړه کي راځي کوي یې، او دا خبره هم نه ورمعلومیږي چي کله دوی د خپل پلار نیکه د طرز او طریقې څخه خلاف چلیږي نو رشته یې ور سره څنګه باقي پاته سوه څکه چي د معنوی شرافت او بزرګي خو دتقوی او تواضع په وجه وه نه چي د نسب اونسل پر بنیاد. او د دوی د نسب دېر خلک داسي دي چي په دوږخ کي پراته دي سوځي، او نبي ﷺ په واضح انداز کي په نسب د فخر کولو څخه منع فرمایلې ده. او ارشاد وسو چي: ټول د نسب څخه آزاد دي او ټول انسانان دي کوم چي دخاورو څخه جوړ سوي دي. او د بلال ﷺ په مؤذن کېدلو باندي چي کله د قریشو بعضو سردارانو وویل چي دا تور غلام څه حق لري چي په خصوصي توګه دي دا د عزت منصب ده ته ورکړل سي، نو د الله ﷻ د طرف څخه ارشاد وسو: إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ [الحجرات:١٣] (په تاسو کي عزتمند دالله ﷻ په نزد په تاسو کي زیات پرهېزګاره دي) او بیا چي دا آیت نازل سو: وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ (الشعراء:٢١٤) (خپل نژدې قریبان ویېروه) نو نبي ﷺ حضرت فاطمې رضي الله عنها ته وفرمایل چي اې د مُحَمّد ﷺ لوري! خپل تدبیر پخپله کوه چي زه به تا ته فائده ونه رسولای سم، او صفیه رضي الله عنها ته یې وفرمایل چي اې ترور د مُحَمّد ﷺ! پخپلو عملونو کي مشغوله سه! چي زه به ستا لاس ونه نیولای سم، نو که د نبي ﷺ عزیزانو او قریبانو ته د دوی ﷺ قرابت فائده رسولای نو پکار وه چي نبي ﷺ خپله خوږه لور د ریاضت او عبادت دمشقت او تکلیف څخه آزاده کړې وای، او ښه په آرام به یې خپل ژوند تېروی، بلکي دوی ته به یې دواړه جهانه ورکړي وای، په دې کي شک نسته چي په مجموعي نقطه نظر سره د قریبانو د پاره د شفاعت اُمید زیات دی لېکن ګناه چي داسي وي چي د شفاعت قابله وي، الله ﷻ فرمایلي دي چي د شفاعت په اعتبار سره خود اختیاري کوونکي داسي دی لکه چي یو مریض سړی دا ووایي بدپرهېزي کوئ او هر څه خورئ! چي زما پرهیز ته څه حاجت دي زما پلار خو غټ طبیب دی، دې مریض ته داویل ضروري دي چي ځیني مرضونه داسي دي چي علاج یې نسي کېدلای، او هلته د طبیب کمال او هنر هیڅ نسي کولای، نو آیا دې ته کتل غواړې چي آیا مزاج داسي دي چي د طبیب مدد ور ته فائده نسي رسولای، دا مثال د هغه سړي په باره کي دی کوم چي باچاهانو ته دېر نژدې او قریب وي او خاص ملګری یې وي او په هره معامله کي د سپارښت قابل وي لېکن کوم سړی چي باچا خپل دښمن مقرر کړي د هغه په حق کي

که دی ډېر ډېر سپارښتونه کوي باچا به يې قبول کړي، او په ګناهونو کي خو يوه ګناه هم داسي نسته کوم چي د الله ﷻ د غصې او خفګان قابله نه وي ځکه چي د الله ﷻ غصه خو پټه په ګناه او نافرماني کي وي. او عين ممکنه ده چي ستا په نزد يوه ګناه بالکل د کومي درجې وي لېکن د الله ﷻ په نزد هغه ګناه کبيره وي او د هغه د ناراضه کولو سبب جوړ سي، نوارشاد وسو چي: کوم تاسو آسانه ګڼئ د الله ﷻ په نزد هغه ګران او لوی وي نو څه به کوئ! د شفاعت اُميد داره کېدل ټول مسلمانان کېدای سي او دي، لېکن په دې اُميد عقلمند بېره د زړه څخه نه ليري کوي، او کوم ځای چي بېره وي هلته فخر ناز او تکبّر نه وي، (چي بېره او غرور نسي يو ځای کېدای) والله اعلم.

## لسم اصل: د غفلت، ګمراهئ او غرور علاج

په دې خبره ځان ښه پوه کړه چي کوم سړی د آخرت دسعادت څخه محرومه سو نو ځکه چي دی د آخرت پر لاري نه ولاړی او څوک چي نه پر ولاړی نو ځکه چي (١) آخرت يې نه پېژندی يې نه (٢) د تللو قابل نه وو، او کوم چي د تللو قابل نه سو ځکه چي د شهوت غلام وو او د ده د قيد څخه نه سوتلای، او چا چي نه پېژندی نو ځکه چي دی په غفلت کي وو، او د بې خبری ښکار سو، يا ځکه چي لاره يې ورکه کړه، او د لاري په تلو کي يې په غلطه اندازه لګولو سره لار ورکه کړ، اوس په دوی کي چي دنه تلولو په وجه کوم شقاوت ښکاره کيږي د هغه تشريح او تفصيل موږ بيان کړی دی، نو اوس موږ د هغه شقاوت ذکر کوو کوم چي دناداني او بې وقوفي څخه پيدا کيږي، او هغه کوم چي دناتواني اوکمزوري په وجه شاته پاته سو، د هغه مثال د داسي سړي په ډول دي چي دی يو ځای ځي او په لاره کي جګی جګی غونډی وي او دی دومره کمزوری وي چي پر دغو نسي ورختی (نو ښکاره ده چي دی به شاته پاته کيږي) او د دين د لاري په منزل کي، شهوت، جاه او حشم، خواهش د فرج اوحرص د نس څومره ګراني غونډی دي او پر دې ډير واره يو مسافر پر يوه باندي واوړي نو ستړي سي او بلي ته رسيدای هم نسي، څوک په دويمه هم ور واوړي اوپه دريمه کي پاته سي، غرض پر ټولو غونډيانو ور اوښتل د هرچا د پاره ګرانه وي، لېکن منزل ته د رسېدلو د پاره په هر صورت پر دغو پوړي وتل ضروري دي، کنې خپل مقصد ته نسي رسېدای.

او هغه شقاوت کوم چي دناداني څخه پيدا کيږي د دې درې قسمونه دي: (١) غفلت او بې خبري چي ناداني (ناپوهي) د دې نوم دی، او د داسي سړي مثال د هغه چا سره ورکول کيږي چي خاص په لاره کي بيده وي او قافله يې پر خوا را روانه وي اوس که دی زاوېښ نه کړل سي نو کېدا سي چي مر

سي. (٢)ضلالت يعني گمراهيَ او د داسي سړي مثال د هغه مسافر سره ورکول کيږي چي ځي د مشرق وطرف ته او روان د مغرب وطرف ته وي، او بيا په مخه روان وي او د منزل څخه ليري کيږي، او دې ته: ضلال بعيد يعني ليري گمراهي ويل کيږي لېکن که راسته طرف ته گرځي هم او نيغ پر غلط لاره روان هم نه وي نو گمراه دی هم دي لېکن ضلال بعيد به ور ته نه وايي. (٣) دريم شئ غرور دی او دې ته پندار (غلط گمان کول) وايي، او په دې کي دَ مبتلا کېدونکي سړي مثال داسي دی چي مثلاً: حج ته ځي، او په ځنگل (بيابان) کي د خالصو سروزرو حاجت ور ته لاحق سي دی بازار ته ولاړ سي او څه چي ور سره وي تول ورکړي سره زر واخلي لېکن کوم سره زر چي ده ته ور کړل سي هغه خالص نه وي بلکي کوټه او کم اصل وي، او دی کښي چي په لاره کي به په دې د سفر سامان واخلم لېکن کله چي دی داخيستلو د پاره هغه سره زر وړاندي کړي نو څوک ور ته گوري هم نه، نو دی د افسوس څخه د هر يو مخ ته گوري او لاسونه مروړي، نو دا هغه خلگ دي د کومو په باره کي چي الله ﷻ فرمايلي دي: د قيامت په ورځ به دغه خلک د ټولو څخه زيات په خساره (تاوان) کي وي کوم چي د خپل خيال مطابق يې غټي مجاهدې او رياضتونه کړي وي او په دې خوش فهمي کي وي چي د دوی عملونه نېک او پاک دي لېکن هلته په حساب کتاب کي به ټول دَالله ﷻ د احکامو څخه خلاف ووېني.

نو داسي خلگو اصل تقصير دا وي چي د دې څخه غافله وي چي اول د صرافی علم حاصلول وي او بيا هلته زر اخيستل کيږي چي د کره (خالص) او کوټه د پېژندو په وجه په نقصان کي پرې نه وځي که پخپله يې نسي پېژندلای نويل ته به يې ښودلي وای که دا هم نه وای نو مشين (کسوټی) به يې په لاس کي نيولې وای چي په کره کولای يې، لېکن چي هيڅ يې ونه کړل نو دو که کېدی به خامخا، او د صرّاف مثال د دين په لاره کي د پير او مرشد سره ورکول کيږي، او بنده ته پکار دي چي اول خو پخپله د پير مرشد درجې ته رسېدلی وي کنې ديو پير صحبت دي اختيار کړي او خپل مقصد او مُدعاء دي هغه ته وړاندي کړي،اوکه دا دواړه کارونه ممکن نه وو نو د کسوټي په حاصلول کي دي غفلت نه کوي، او په دې ضمن کي د ده کسوټي د ده خپل شهوت وي چي شهوت کوم طرف ته رغبت ورکړي نو فوراً دی پوه سي چي دا شئ باطل دی، په دې کي د غلطئ امکان هم کېدای سي، لېکن په زياتره حالاتو کي دا ترکيب کارگر ثابتيږي، نو د ده اول اصل خو ثابت سو چي ناداني ده،او د دې پخپله درې قسمه دي، او په دوی کي په هريوه پوهېدل او علاج يې کول عينِ فرض دي، په دوی کي اول شئ خو د لاري پېژندل دي، دويم شئ پر لاره روانېدل دي او دا دواړه چي حاصل سي

نوبیا څه باقي نه پاته کیږي، په دې وجه حضرت ابوبکر ﷺ فرمایلي دي چي: یاالله! ما ته حق وښیه او پر دغه د چلېدلو توفیق را کړه، نو پر دې لنډه دعاء دوی اکتفاء وکړه او ځکه چي دا کافي وه، نو موږ چي لوړ څه بیان کړل دغه د: (پر لاري د نه تللو) د علاج په باره کي وو، اوس موږ د (نه پېژندلو) علاج بیانوو:

**د غفلت او ناپوهی علاج**: پوه سه! چي په دنیا کي ډېر خلک د غفلت په وجه په ګمراهی او ناپوهی کي مبتلاء دي او په سلو کي یو کوم سل خلک (بل کي اوس خو سل فیصده) په دې تغافل کي ګرفتار ښکاري، او د غفلت څخه مراد دلته دا دی چي د آخرت د خطرو څخه بې خبره دي، کنې که خبرداره وای نو داسي به غافله نه وای، او په ګناه کي به نه پرېتولای ځکه چي د بنده تخلیق داسي سوی دي چي کوم ځای هم یوه خطره وینې د خوندي کېدلو کوشش ځیني پخپله کوي، هغه که څومره تکلیف او مصیبت پکښې ولي نه وي، او دا د آخرت خطره د نبوّت د نُور په ذریعه سره پېژندای او لیدای سي، یا بیا د مُنادي د نبوّت په ذریعه کوم چي نورو ته رسېدلې وي یا بیا د دین د عالمانو د وعظ او نصیحت څخه کوم چي دانبیاؤ وارثان دي، کوم سړی چي د لاري په مینځ کي بیده وي د ده علاج د دې څخه ماسوا څه کېدای سي چي یو مشفق او مهربانه راسي او دی راویښ کړي او دا راویښوونکی او بیداره کوونکی مشفق پیغمبر ﷺ کېدای سي یا د دوی نائب او ځای ناستی کوم چي صرف د دین عالمان دي کېدای سي او انبیاء دنیا ته رالېږل سوي د دې غرض د پاره دي چي دوی خلک د غلفت د خوب څخه را بیداره کړي، لکه چي د الله ﷻ ارشاد دی: اې مُحَمّد ﷺ! ته را لېږل سوی د دې د پاره یې چي زما مخلوق د غفلت د خوب څخه راویښ کړې او دې تولو ته ووایه! چي په تاسو کي هر یو د دوږخ پر غاره ولاړ دي (او ځان خوندي کول ځیني ستاسو فرض دي) او دا هم ووایه چي کوم سړی هم دنیا طرف ته مخ کړی یعني د دې په حرص او هوا کي ګرفتار سي نو پوه سه! چي دی دوږخ ته وغورځېدو، چي د ده د حرص او لالچ مثال د هغه فرش په ډول دی کوم چي یې پر دوږخ غوړولی وي او څوک چي پر دې د لوړ تېرېدلو کوشش کوي د هغه دوږخ ته غورځېدل لازمي دي، او چا چي د خپل شهوت او خواهش مخالفت وکړی دی یقیناً جنت ته ولاړی، د شهوت مثال د هغې غونډۍ دي کومه چي د جنت په لاره کي واقع وي چي څوک پردې پوري وځي خامخا به جنت ته داخل سي، په دې وجه نبي ﷺ فرمایلي دي: دوږخ د خواهشاتو په مینځ کي دی او جنت د مکروهاتو (سختیاتو)، (چي څوک په خواهشاتو ورپسې سو دوږخ ته به پرېږ وځي او چا چي دجنت څخه د

چاپیره (شاوخوا) شیانو ځنځه ځان وساتلو او پر سیده لاره روان سو جنت ته به ورسیږي) په دې وجه چي کوم خلک په ځنګلونو اوبیابانونو کي وسیږي لکه د عربو بَدوان، کُردان، تُرکان او نور یا د دې ډول نور خلک چي په دوی کي عالمان نه وسیږي نو داسي خلګ د غفلت په خوب کي پراته وي چي د دوی څوک وربښوونکي نه وي او پخپله دوی دآخرت د خطرې ځنځه بې خبره وي نو په دې وجه دوی په دې لاره روان نه وي او کوم خلک چي په صحرا او ښو کي وسیږي په دوی کي هم علماء شاید چیري به وي نو د دوی حالت هم د قبرستان (هدیرې) ځنځه ځه مختلف نه وي، په حدیث شریف کي ارشاد دی چي: "د صحرا او باڼو وسېدونکي ګویا په قبرونو کي وسېدونکي دي". بلکي په ښارونو کي هم که عالم واعظ پر منبر د وعظ او تلقین د پاره موجود نه وو یاوو خو په دنیاداري کي مشغول وو، او د دین د مصیبتونو ورته احساس نه وو نو د ښارونو وسېدونکي هم په غفلت کي پاته سو چي د دوی عالمان پخپله هم په غفلت کي مبتلا دي او څوک چي پخپله بیده وي هغه به بل ځنګه وربښ کړي، او که عالم منبر ته وخېږي وعظ کوي هم لیکن اندازې هغه وي کوم چي عموماً د غلطو واعظانو وي، یعني منبر ته وخېژي لغوه واهیات بې هوده او بېکاره خوندي خبري دوی ته اوروي بې فائدې لوی لوی خبري او مسجّع عبارتونه وایي، د الله ﷻ د رحمت غلط مطلب وړاندي کوي خلګو دته د نصیحت پرځای فریب ورکوي، او خلګ په دې غلط فهمي کي مبتلا سي چي دوی که هر ځنګه وي او هر څه چي کوي د الله ﷻ رحمت به په هر حال د دوی ساتنه کوي او رحمت به دوی ته حاصلیږي، نو د دغه قوم حال د غافلانو د حال ځنځه هم ډېر بد دی او د دوی مثال د هغه سړي دی چي د لاري په مینځ کي بیده وي او څوک راسي دوی رابیداره کړي خو د بیدارولو سره ورته د نشې یو شئ ورکړي چي دوی په هغه سره مست او بې هوښه سي او دغه رنګه د دوی حالت د مخکي ځنځه هم بدل سي، ځکه چي اول خو بیا هم اُمید کېدای سو چي د یو چا په آواز خو لږ تر لږه راوېښ سي لیکن اوس خو دغه غفلت پر ده داسي غالبه سو چي پنځوس لغتي هم پر سر ورکړې خو خبر به هم نسي چي دی خو اوس په خود کي نه دی.

نو د دې ټول بحث ځنځه دا خو معلومه سوه چي په خلګو کي یو کم زر کسان داسي دي چي د غفلت په پردو کي دي او دآخرت ځنځه بې خبره دي او غفلت هغه مرض دی چي د دې علاج د مریض پخپل لاس کي خو نه وي او بیا چي کله غافل ته د خپل غفلت معلومات هم نه وي نو بل ته به د علاج د پاره رجوع هم نسي کولای نو د داسي غافلانو علاج د دین د عالمانو په لاس کي وي لکه چي کوچنیان چي کله غټ او د هوښ اندازې ته ورسیږي نو د مور او پلار او معلم په کوشش سره غافلېدلو ته نه

پرېښول کېږي، دغه ډول د واعظانو وعظ خلک د غافله کېدلو څخه خوندي کوي او دوی بیداره ساتي، لېکن په دې دنیا کې اوس داسې واعظان نادر او کمیابه دي، په دې وجه دغفلت مرض زیات خور سوی دي او خلک د غفلت په پردو کې پټ سوي دي، دنن واعظ که دې غافلانو ته څه وایي هم نو د دوی خبرې صرف پر ژبه وي او د دوی باطن د دې بیرې د خطرې څخه بې خبره وي په دې وجه د دوی په وعظ کې نه څه تاثیر وي او نه فائده.

**د گمراهي حقیقت او علاج**: پوه سه! چې یوه بله د هغو خلکو هم ده کوم چې د آخرت څخه بې خبره خو نه وي لېکن عقیدې یې د ښتوني لاري څخه دوی دومره لیري کړي وي چې په غلطو لارو کې سرگردانه گرځي او دغه گمراهي د دوی د پاره پرده سوې وي، د دې خبرې وضاحت موږ په پنځه مثالونو سره کوو:

## د آخرت څخه انکار او د هغه علاج

**اول مثال**: د هغو خلکو دی چې د آخرت د وجود څخه انکار کوي او گڼي چې کله بنده مړ سي نو نیست ونابود سي لکه وابنه (گیا) چې وچه سي په هوا کې خوره سي یا لکه څراغ چې مړ سي نو د دې کچه خیال په وجه تقوی ترک کړي او په عیش و عشرت کې پرېوځي، د دوی خیال دی چې دا پیغمبران چې څه وایي دا صرف په سرسري توگه د اصلاح د پاره وایي، یا داسې وایي چې د انبیاؑ مقصد مرتبه او حشمت او خلک خپل تابع کول وي، او ځیني خو تر دې پوري په ډاگه وایي چې دا دوږخ خو هسې یو فرضي قصّه ده لکه بچې ته چې د ډېرولو د پاره وایي چې که ته مدرسې ته نه ځې نو د موږکانو په سوري کې به دې واچوم، لېکن که دوی پخپله پر دې خپلو مثالونو غور وکړي نو دوی ته به معلومه سي چې بچې ته دمدرسې نه تلولو په صورت کې کومه بدبختي مخې ته راځي هغه د موږکانو په سوري کې د وراچولو څخه به هم بده وي لکه چې دعقل خاوندانو ویلي دي چې د الله ﷻ څخه په حجاب کې وسېدل د دوږخ د عذاب څخه هم بد دي، د دې خلک د غلط خیالی سبب په اصل کې د هوا هوس غلامي ده، لېکن دا انکار د دوی ځکه خوښ دی چې د دوی د شهوت پرستی عینِ موافق دی او د دې شهوت څخه دوی مغلوبه سوي دي،او په آخري زمانه کې به د دې بدا عتقادی غلبه د ډیرو خلکو پر باطن باندې وي که څه هم په ژبه سره د دې اقرار نه کوي، بلکې کېدای سي چې دوی دا د ځانه هم پټه ساتي، لېکن د دوی عملونه پخپله د دې خبرې واضح دلیل دی، کنې تر څو پوري چې د متفکر او خائف کېدلو تعلق دی، دا خلک د دنیا رنځ شپه او ورځ برداشت کوي بلکې

کومه خطره چي لا تر اوسه پوري لیري ده دهغې څخه هم بېرېږي، نو د عاقبت بهره په اصل کي ځکه نه وي چي پر دې يې اعتقاد نه وي که عقیده يې وای نو دغه رنګه مذاق او مسخرې به يې نه ګڼلای، او د دې علاج دا دی چي دآخرت په حقیقت پوه سي او د دې درې طریقې دي:

اول دا چي د جنت او دوږخ د هغو مشاهداتو حال معلوم کړي کوم چي انبیاؤ او اولیاؤ ته حاصل سوی دي او د دې څخه ماسوا دوی ته معلومه سي چي د اطاعت ګذارو او ګناه ګارو څه حال وي؟ دا نظراو بصیرت خو صرف اولیاؤ، انبیاؤ ته حاصل دي او د دوی سره مخصوص دی ځکه چي دا خلک که څه هم په دنیا کي وي، لېکن تر هغه حالت لاندي وي کوم چي پر دوی راځي او کوم ته چي فنا او بې خودي ویل کیږي، دوی ته د هغه جهان مشاهده هم حاصله وي، او دوی يې پخپلو سترګو سره ویني، ځکه چي د دې مشاهدې د پاره چې کوم حجاب جوړېږي هغه د حواسو مشغولیت دی کوم چي انسان د دې څخه لیري ساتي (او د دې خلکو په شهواتو او حواسو بشپړ کنټرول وي نو د لاري حجاب يې نه جوړېږي) او ښکاره ده چي دا (قوّت د مشاهدې) بې حده نادر او نایاب شئ دی، او کوم سړی چي دآخرت قائل نه وي هغه به پر دې څنګه ایمان راوړي؟ او په ده کي د طلب هغه بې قراري او تر اندازې زیات خواهش کله راتلای سي، او که بالفرض طلب يې کوي هم نو دې حد ته دی کله رسېدای سي؟ او دویمه طریقه دا ده چي په دلیل سره د پېژندلو کوشش وکړي چي بنده څه دی او د ده روح څه دی؟ چي دا اصلیت پر ده ښکاره سي چي دغه يوجوهر دی کوم چي في نفسه قائم دی او د دې قالبي جسم څخه بې نیازه دی او د دې جسم حیثیت که څه دی هم نو فقط دا ځکه چي د روح سپرلی دی (یعني روح صرف پر سپور دی) یاآله ده نه چي توأم (یعني د ځبر ګولیانو کوچنیانو خیال دي نه پر کوي ځکه چي روح جوهر قائم بالذات دی او بدن فاني دی) او د جسم د نیست ونابود کېدلو سره روح او حقیقت نه فنا کیږي، او د دې حقیقت څخه د خبرتیا یوه طریقه که وي نو وي به، خو ډېره ګرانه ده، بلکي دې ته هم نادره ویل پکار دي، ځکه چي زموږ اشاره د علماء راسخونو وطرف ته ده چي دا طریقه د هغوی سره مخصوصه ده (لېکن افسوس چي نن داسي علماء هم نادر دي) هسي خو د دې ذکر هم د کتاب په عنوان کي سوی دي.

دریمه طریقه د عامو خلکو ده او هغه دا ده چي د دې معرفت نُور په نورو کي سرایت کوي د انبیاؤ څخه یا د اولیاؤ څخه یا بیا د راسخو عالمانو څخه یعني خلګ يې د دوی څخه حاصلوي دوی ته وګوري یا د دوی سره کښېني، او دې ته معرفت د ایمان وایي (یعني ایمان څوک لېدی نسي بلکي د صاحبِ مشاهده خلکو پر بیان یقین کول ایمان دی) او چا ته چي د کامل پیر یا راسخ عالم صحبت نصیب نه

سي دغه شقي پاته سي، او پير يا عالم چي څومره کامل وي او عظيم وي دومره به د ده څخه د ایمان د نُور سرایت هم زیات وي، او دا وجه وه چي د دې ایمان نُور د ټولو څخه زیات د نبي ﷺ په صحابه وو کي وو ځکه چي دوی د نبي ﷺ څخه حاصل کړی وو، د دې څخه وروسته د تابعينو درجه ده چي دوی د اصحابو ﷺ څخه حاصل کړی وو، لکه د نبي ﷺ ارشاد دی زما زمانه (یعني د اصحابو زمانه) د ټولو څخه غوره ده او بیا به هغه بنه وي چي د دوی سره نژدې وي (یعني تابعین).

**دویم مثال**: یوه ډله د دې خلکو څخه هغه ده چي د آخرت څخه منکر نه وي او د آخرت په نیست کېدلو باندي اصرار (ټینګار) نه کوي لېکن د حیرانۍ په چکرو کي مبتلي وي او دا وایي چي د دې په حقیقت پوه نه یُو او شیطان فوراً د دې دلیل مرسته دوی ته وړاندي کوي چي: دنیا خو یقیناً ستة، آخرت یو مشتبه شئ دی نو بیا یقیني شئ پر مشتبه شئ څنګه قربان کړو، نو دا خبره د دې خلکو باطله ده ځکه چي د اهل یقینو په نزد آخرت یقني دی، د دې حیرانېدونکو علاج دا دی چي د دوی څخه څوک پوښتنه وکړي چي د دوایي تریخوالی خو یقیني دی لیکن شفاء خو مشکوکه ده، په دریاب کي دکښتۍ سفر یقیناً خطرناک دی او په تجارت کي نفع مشتبه وي، او که ته سخت تږی سې او ته اوبه چښې او څوک درته ووایي چي دا مه چیښه په دې کي مار خوله وهلې ده، اوس د اوبو فائده خو یقني ده او د ماردې ته خوله اچول مشتبه دي، لېکن د دې سره سره ولي د دې څخه لاس اخلې؟ او که د دې په جواب کي ته وواېې چي دا یقین که وکړل سي نو د دې څخه چي کوم نقصان رسېدای سي هغه قابل برداشت دی یعني تنده که وي نو وي دي، لږ وروسته به مړ سې، لېکن که یقین ونه کړل سي او مار والا خبره رشتیا سي نو په دې کو خو د مرګ خطره ده نو د اوبو د پاره صبر هم کېدای سي خو پر ساه ورکولو به څوک صبر سي؟ نو موږ وایو چي د لذت د دنیا هم دا حقیقت دی چي د زیاتو څخه زیات د سلو کالو پوري چلیږي او کله چي دا ژوند ختم سي نو د خوب او خیال څخه زیات هیڅ نه وي، او چي آخرت دائمي او همېشه دی، په دې وجه د دې سلو کالو په بدله کي دائمي تکلیف او غم نسي برداشت کولای، او که دا درواغ وي نو داسي ولي نه وایي چي زموږ خو د دې څخه صاف انکار دی چي دې دنیا ته راغلي یو، نه دې دنیاته راغلي یو نه دلته څو ورځي اوسېدلي یو، لکه چي په ازل کي نه وو دغه رنګه به په ابد کي هم نه یو، او که دا رشتیا وي نو په ایمان راوړلو خو به د ابدي عذاب څخه خلاصون وموندل سي، داوجه وه چي حضرت علي ﷺ یو ملحد ته وویل: چي که ته داسي یې لکه چي ته وا یې نو خو د ټولو د پاره خلاصون او خلاصون دی چي موږ به پکښې هم شامل یو لېکن که داسي ونه سوه نو بیا خو به موږ خلاصو سو او ته به ونیول سې.

**دریم مثال**: یوه ډله د هغو خلکو ده چې آخرت مني هم، لېکن بیا دا خبره کوي اوعمل نه کوي چې آخرت پور (قرض) دی او دنیا نقده (نغده) ده اونقد د پور (قرض) څخه غوره دی لېکن دې خلکو ته دومره نه ده معلومه چې نقد ته پرپور (قرض) ترجیح په هغه وخت کې وي چې دواړه برابر وي لېکن که پور (قرض) زر روپۍ وي اونقد صرف یوه وي، نوبیا نقد غوره سو که پور (قرض)؟ او دا خو په دنیوي معاملاتو کې هم روزانه لیدل کیږي چې د دنیا په کاروبار کې هم د دې څخه څوک انکار نسي کولای نو دا فکر هم صریحًا ګمراهي ده چې په دومره خبره هم پوه نسي.

**څلورم مثال**: یوه ډله د هغو خلکو ده، چې په آخرت ایمان لري لېکن په دې دنیا کې ټول کارونه د دوی د خواهش مطابق کیږي او ډول ډول نعمتونه دوی ته حاصل دي، په دې وجه په مزه سره وایي چې دلته د نعمتونو کمی نسته نوهلته به څنګه نه وي، ځکه چې کوم نعمتونه الله ﷻ موږ ته دلته را کړي دي نو دا ځکه چې موږ یې خوښ یو، نو هلته به هم موږ دغه رنګه ساتي، هغه وروڼه چې قصه یې په سورت کهف کې راغلې ده چې په دغو کې کوم یو مالداره وو، هغه وویل چې که زه د خپل رب خوا ته ورسېدم نو د دې څخه ښه ځای به ما ته هلته ملاؤ سي [الکهف]، او بل وویل که زه خپل رب ته ورسېدم نو ما ته هم د هغه سره غوره ځای دی [السجده] او د دې علاج دا دی چې د داسي سړي څخه څوک پوښتنه وکړي چې فرض کړه د یو سړي یو زوی دی او یو یې غلام دی زوی یې ډېر خوښ دی او غلام ته بالکل ذلیله او خوار وایي، نو زوی (د مستقبل ښه کېدلو د پاره) ټوله ورځ په مدرسه کې بندي (قید) ساتي چې هلته د استاذ ډنډې هم خوري او غلام ټوله ورځ آزاد ګرځوي او څه چې یې په زړه کې راځي کوي یې ځکه چې د ده د ذلت او خواري د ده سره هیڅ فکر نسته، اوس که دا غلام دا خیال وکړي چې دا هر څه ځکه کیږي چې د مالک زه خوښ یم او څومره مینه چې دمالک زما سره ده، دومره یې د خپل زوی سره نسته نو دا به د ده عین حماقت وي، دغه رنګه د الله ﷻ سنّت دا دی چې خپل دوستان د دنیا څخه لیري ساتي او خپل دښمنانو ته د دنیا نعمتونه ورکوي، لیکن د داسي سړي حالت (کوم چې په دنیاکي خوشحاله دی) د آخرت په باره کې داسي دي چې یو سړی د سُستۍ او غفلت په وجه څه ونه کړي او اُمید دربېلوساتي، نو دی به آخر څه ورېبي؟

**پنځم مثال**: یوه ډله د هغوخلکوده چې بس دا وایي خدای رحیم او کریم دی، څوک د جنت د تللو څخه نه منع کوي، لېکن دا احمق په دې نه پوهیږي چې د دې څخه لوی کرم اوغټ رحمت به نور څه وي چې هغه د دې رحم او کرم څخه د فائدو اخیستولو ذریعې او اسباب پیدا کړي دي، مثلاً چې یوه

دانه په ځمکه کي وکري نود ده دعمل په عوض اووه سوه دانې حاصلي کړي، دغه ټول د لږ عبادت په بدل کي ابدي باچاهت ده ته ورکوي چي هيڅ انتها يې نسته، که د هغه د رحمت او کرم ځخه دا مراد اخلي (چي بې عمله به جنت ته ولاړسي) نو په زراعت کي د ځان ځخه خوله ولي وباسي، د تجارت د پاره ولي مندي وهي او د معاش د کسب د پاره ولي در په دره ګرځي، په صبر سره ولي نه کښېني؟ آخر خدای کريم دی بغير تخم کرلو به فصل در کړي لکه نور شنه بوټي چي بغير د تخم کرلو ځخه پيدا کوي، هر کله چي ستا پر دې ټول کرم او رحم کولو يقين نسته، نو د آخرت د پاره دې ځنګه پر هغه يقين کړی دي، آخر د دې ځای د پاره خو هم الله ﷻ فرمايلي دي: وَمَا مِن دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا [هود: ٦] (يو پر ځمکه تلونکي رزق خوړونکی حيوان (ساکښ) داسي نسته چي رزق يې دالله ﷻ پر ذمّه نه وي) او د هغه ځای د پاره ته بې فکره يې حال دا دی چي واضح ارشاد دی: وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ (النجم: ٣٩) (انسان ته به دايمان په باره کي صرف د خپل عمل ثمره ملاوېږي) نو دا د ګمراهی انتها ده.

**مغروره خلک د دوی درجې او د دوی علاج:** پوه سه! چي اهلِ غُرور هغه خلک دي چي د خپل ځان او د خپلو عملونو په باره کي په لويه خوش فهمي (او ښه فکر) کي مبتلاوي دا شعور نه لري چي خالص او اصلي زر د کوټه زرو ځخه جلا کړي، ځکه چي د صرّافي علم يې په پوره توګه سره نه وي حاصل کړی په دې وجه په ښکاره صورت بانديي دوکه خوري په دوی کي چي کوم په علم او عمل کي مصروفه دي او د ګمراهي د پردو ځخه د باندي هم راغلي دي نو هغوی هم د فريب غرور ځخه بالکل آزاد نه دي بلکي په زرو کي يو کم زر په دې دوکه کي ګرفتاره دي د نبي ﷺ ارشاد دی چي: الله ﷻ به دقيامت په ورځ آدم ﷺ ته ووايي چي د خپل اولاد ځخه دوږخيان په خپلو لاسو جلا کړه، دی به عرض وکړي اي خدايه! په کوم نسبت او تناسب سره يې جلا کړم؟ نو الله ﷻ به وفرمايي چي په زرو کي يو کم زر دوږخيان دي دغه ځيني جلا کړه دا خلک که څه هم د همېشه د پاره به په دوږخ کي نه پاته کيږي لېکن د دوږخ مزه به دوی ته خامخا ځکل وي ځکه چي په دوی کي به ځيني غافله وي ځيني ګمراه ځيني مغروره او ځيني هغه چي د عاجزئ سره سره به د خواهشاتو غلامان وي او خپل ځانونه به يې بې قصوره ګڼلي وي او د اهل غرور خو به يو شمېر او حساب هم نه وي، او د ټولو ځخه غټ اکثريت به د دوی وي بيا هم د درجو په لحاظ سره دوی پر څلو درجو تقسيمېږي: (١) مغروره عالم (٢) مغروره عابد (٣) مغروره صوفي، او (٤) مغروره دولتمن.

د دوی ځنخه اوله ډله کومه چې د عالمانو ده نو دا هغه خلګ دي کوموچي ځيني وخت ټول عمر په حصول د علم کي لګولی وي او واقعي ډېر علم يې حاصل کړی هم وي لېکن په عمل او معاملو کي يې پکار نه وي راوستی او د ده ستر ګي، ژبه فرج غرض ټول اندامونه په ګناه ککړ او خيرن وي او دی يې د ژغورولو ځنخه قاصره وي د ده خيال وي چي علم دی دې درجې ته رسولی دي چي اوس د ده په عذاب کي دمبتلا کېدلو سوال نه پيدا کيږي، او نه پر يو عمل باندي د ده مؤاخذه کېدلای سي، دی خو لا څه کوي چي د ټول مخلوق نجات به د ده په شفاعت سره کيږي، د داسي عالمانو مثال د هغه ناروغه په ډول دی کوم چي د خپلي ناروغی علم په پوره توګه سره حاصل کړي اوبيا په ډېر غور او فکر سره يو ډېره ښه نسخه هم تياره کړي د دوايي تاثير او د مرض وروسته طريقهٔ علاج ښه وپېژني او بيا دا دوايي په عملي توګه سر استعمال نه کړي او د دې تريخوالي برداشت کول د ده د پاره ګران سي،اوس داسي سړی که د دوايي د خاصيت مطالعه په وار وار کوي نو په دې سره به مرض ته څه فائده ورسيږي، الله ﷻ فرمايلي دي: نجات به هغه خلګ تر لاسه کوي کوم چي پاک صاف وسيږي نه هغه چي صرف د پاکي او صفايي علم حاصل کړي، او فرمايي: جنت ته به هغه ځي کوم چي د نفس د خواهش مخالفت وکړي، نه هغه چي فقط دا يې ويلي وي چي د خواهش مخالفت کول پکار دي،د دې خلګو د مغروره کېدلو او غلط فهمی بنسټ که پر هغو احاديثو وي په کومو کي چي د علم فضيلت بيان سوی دي نو د دوی نظر پر هغو احاديثو ولي نه پرېوځي په کومو کي چي د بې عملو عالمانو ذکردی، او په کلامِ الهي کي يې د دوی مثال د خره سره ورکړی دي کوم چي پرخپله شا د کتابونو بار اخيستی روان وي، او په يو لحاظ سره د دوی مثال د خر سره ورکړل سوی دي او د نبي ﷺ ارشاد دی چي: بې عمله عالم به دوږخ ته داسي ورغورځول سي چي د ده د ځټ او د ملا د تير هډوکي به مات سي او د اُور دائره به د ده ځنخه چاپيره (شاوخوا) راوګرځي، او ټول دوږخيان به ده ته را جمع سي او پوښتنه به ځيني کوي چي ته څوک يې او دا ناآشناعذاب تا ته ولي در کول سو؟ هغه به ووايي چي زه هغه عالم يم چي نورو ته به مي دعمل کولو ويل او پخپله مي نه کولو په يوبل حديث کي دي چي د ټولو ځنخه زيات عذاب به د بې عمله عالم وي، ابو الدرداء ﷺو ايي چي پر جاهل يو وار افسوس دی او پر عالم اووه واره افسوس دی ځکه چي د ده عمل به د ده د علم په رڼا کي کتل کيږي، او ده ته به ويل کيږي چي تا د پوهي سره داسي عمل ولي کوی؟.

بعضي عالمان هغه دي چي د علم سره سره په عمل کي هم تقصير نه کوي لېکن د دوی عمل صرف ظاهري عمل وي د زړه د طهارت ځنخه غفلت کوي اوباطن يې هميشه د بدو اخلاقو مرکز وي، تکبر،

ریا، حسد او طلب د جاه د دوی خاص انداز وي او د نورو عالمانو پر مصیبت خوشحاله کېدل او د دوی پر سکون اواطمینان د ده زړه خفه کیږي، او بیا د نبي ﷺ ارشاداتو ته عالمان ولي نه ګوري چې په واضحه توګه پکښې فرمایل سوي دي چې د چا په زړه کي د ریاء لږ غوندي هم وي جنت ته به داخل نه سي، او دنبي ﷺ دا ارشاد آیا دې خلګونه دي ریلای؟ چي: حسد ایمان داسي تباه کوي لکه اُور چي وچ وا بنه ایره کوي، دارنګه فرمایي: الله ﷻ صورت ته نه بلکي ستاسو زړه او باطن ته ګوري، د دې خلګو مثال خو د هغه سړي په ډول دی چا چي فصل (کښت) کرلی وي او په هغه کي پالتو وابنه را شنه سوي وي نو لازمه ده چي دغه وا بنه ځیني وباسي چي فصل ته طاقت ورسیږي لېکن که فصل والا صرف د سر سر وا بنه پرې کړي او بېخونه یې په ځمکه کي پرېږدي نو که د لوري خوا ځخه یې دی هر څومره صفائي کوي خو هغه به بیابیا راخېژي (او فصل به کمزوری وي) دغه ډول د بدوعملو تخم بداخلاق دي نو د دې بیخ کښل ضروري او لازمي دي، بلکي هغه سړی د کوم چي باطن ګنده اوظاهر ښایسته وي د هغه غسل خانې (حمام) په ډول دی کومي ته چي د دباندي خوا رنګ او ښایست ورکول سوی وي او دننه د ګنده ګی ځخه ډکه وي، یاور ته د قبر مشابه ووایي چي د بهر ځخه ښایسته وي او دننه ډېر بوی ناک وي.

حضرت عیسی ؑ د بد عالم مثال دغلبېل سره ورکړی دي د کوم ځخه چي اوړه لاندي تویېږي او بُس پکښې دننه پاته کیږي او دا مثال یې ووایی: بدو عالمانو ته یې خطاب وفرمایی چي: تاسو هم د حکمت اوعلم خبري خو ډېري کوئ لېکن ځان ته صرف هغه خبري پاته کوئ کومي چي بدي وي.

یوه ډله دهغو علماؤ ده د کومو ټوله توجّه چي دوعظ پر علم باندي مرکوزه وي او د ده ټول کائنات هم دغه وي چي په هره خبره کي د سجع اظهار په هره جمله کي نکته سنجي په هر عبارت کي فضول مهمل او بې معنی خبري جوړوي، څه داسي رنګین او مسجّع عبارتونه یادوي، چي خلګ یې اوري او سرونه ښوروي ځکه چي د ده مقصد د دې پن د خطابت ځخه دا وي چي خلګ واه واه پر وکړي او شلبلشی پر ووایي (او د ده نفس په غبّ سي) او دا هم نه ګڼي چي دوعظ او ذکر اصل مقصد خو دا وي چي په زړه کي غم د مصیبت پیدا سي یعني چي د ده علم د اورېدونکو په زړه او تن، بدن کي د آخرت د غم اُور داسي ولګوی چي هغه د دې سوځت او تکلیف ځخه بې تابه سي چیغي ووهي او دې چغو، ژړا، اوفریاد ته وعظ وایي، لېکن په کومه نوحه (ژړا) کي چي د مصیبت د اُور ګرمي نه وي، د هغه مثال به د هغه شئ په ډول وي کوم چي د چا ځخه په قرض (پور) واخیستل سي نو په دې کي به تاثیر د کومه راسي؟ او په دې ډله کي هم دا هلِ غرور کمی نه وي، او د دې تفصیل ذکر هم دلته نسي

کیدای څکه چي خبره به دېره اوږده سي.

دویمه طبقه د عابدانو او زاهدانو ده او په دوی کي هم د اهلِ غرور شمېر ډېر زیات دی. بعضي خو په دوی کي د دې غرور په وجه د داسي درواغجن فضیلت په گمان کي مبتلاوي چي د فرائضو ادائیگي هم په صحیح توگه سره نه کوي مثلاً که د طهارت په باره کي یې څه شبه پیدا سي نو داسي اهتمام کوي چي لمونځ هم پر وخت نه اداء کوي او خپلو دوستانو بلکي مور او پلار ته هم بد رد وایي، د اُوبو د پلیت والي په باره کي که د لیري حه شبه وي نو په هر حال فوراً په شک کي پرېوځي چي خامخا دا اوبه پلیتي دي حال دا چي دا حضرت پا کدامن چي کله خوراک ته کښېني نو هر شئ پر ده حلال سي، او عینِ ممکنه ده چي د مطلق حرام څخه هم پرهېز ونه کړي، او دغه رنگه دا (اهلِ غرور) چي د څپلی څخه بغیر پښه اینښېدلو ته حرام وایي کله چي خوراک ته راسي نو حرام تولہ راوڅټي، دغه وخت ور ته د صحابه کرامو سیرت هم یاد نه وي،

حضرت عمر ﷺ فرمایي: چي ما اویا واره حلال شیان صرف په دې خیال پرېښودل چي هسي نه په حرامو کي پرې نه وځم، خو د دې سره سره یې د یوې آتش پرستي ښځي په کوزه اودس وکړی نو دې مغروره خلکو د احتیاط د گولې پر ځای احتیاط د کوزې ته د اسلام نوم ورکړی دی، د دوی په خیال کي د ډوبي د لاس پرېولي جامه اغوستل گناه کبیره ده،حال دا دی چي نبي ﷺ به داسي جامې هم زیب تن فرمایلي کومي چي به د کفرانو د لاسه د هدیه په توگه وصول کېدلې، او دغه ډول د کفرانو کومي جامې چي به په مالِ غنیمت کي راتلې صحابه کرامو ﷺ به بلا تکلف استعمالولې او چیري یې دا خبره موضوع د بحث هم نه ده جوړه کړې او نه څه داسي روایت یا قصه په اورېدلو کي راغلې ده چي اول به یې پخپله پرېولي بیا به یې واغوستې، بلکي هغوی خو به دکفرانو وسله هم په ملا پوري ترله، او لمونځ به یې ور سره هم کولو او چیري دا سوال هم چا نه دی راپورته کړی چي د اوسپني وسله کومه چي تاسو غاړي ته اچولې ده، او هغه لاک کوم چي موتې او نور ځیني دک سوي دي یا څرمن کومه چي پر راپېچل سوې ده شاید دغه ناپاکه وي، نو کوم سړی چي د نس، ژبي، لاس او پښو او نورو په باره کي خو احتیاط نه کوي، اوکه کوي یې نو صرف د طهارت په باره کي دغه د شیطان مسخرې او ټوکي دي، بلکي که سړی د هر ډول احتیاط وکړي او په اوبو تویولو کي یې اسراف وکړي یا په اول وخت کي لمونځ ونه کړي نو دا هم مغروره دی، د دې احتیاط شرط د طهارت په بیان کي تېر سوی دي، بعضي عابدان داسي دي چي د لمانځه په نیت کي یې وسواس غالبه وي تر دې چي دنیت کولو په وخت کي آواز بلسي لاسونو ته جټکه ورکوي او په دې چکر کي ممکنه ده چي اول رکعت

ځیني فوت سي دوی دومره نه پوهیږي چي لکه څنګه د قرض ادا کولو نیت دی یا د زکوٰة ورکولو نیت دی دغه رنګه د لمانځه نیت دی او د دې خلکو څخه په نیت کي د وسواس په سبب خو نه دوباره قرض اداء کوي او نه دوباره زکوٰة اداء کوي، د بعضي خلکو په سورت فاتحه لوستلو کي وسواس وي تر دې چي حروف د مخارجو څخه اداء کوي او په لمانځه کي همه تَن په دې کي مشغوله وي، چي بس حرفونه دمخارجو څخه ووځي، حال دا دی چي دلمونځ کوونکي زړه د قرآن په معنی کي لګول پکار دي چي د الحَمْد ویلو په وخت سر تر پایه شکر جوړ سي او د: ایاک نعبد..الخ ویلو په وخت کي یې بالکل د توحید او عجز کیفیت وسي، د اهدنا ویلو په وخت یې زړه په تضرع او زاری کي ډوب سي، لیکن کوم سړی چي دمخارجو په فکر کي ډوب وي د ده د دې ټولو حالاتو او کیفیاتو سره څه واسطه ده؟ د ده مثال خو داسي دي لکه چي یو سړی د باچا په وړاندي د حال عرض کولو د پاره حاضر سي او: یا ایها الامیر ووایي مخاطب یې کړی اوصرف د دې خبري طرف ته خیال کوي چي د: اَیُّها لفظ په ژبه سره صحیح صحیح اداء سي او لفظ دامیر چي وایي نو خیال کوي چي آیا میم په صحیح توګه سره اداء کیږي او که نه؟ اوس داسي سړی د باچا څخه دحاجت روایي توقع څنګه کولای سي؟ لیکن دعتاب مورد به خامخا سي او (بلکي چپه به نقصان وکړي).

بعضي هغه دي کوم چي روزانه یو قرآن ختموي نو ښکاره ده چي د حد څخه زیات په تېزي سره به یې وایي، د ده زړه قطعي غیرحاضر او غافل وي او ټول همت او طاقت یې په دې کي ختم سي چي د یو قرآن ختم د ده په حق کي شمار سي چي خلکو ته په فخر سره ووایي چي موږ خو دومره قرآن ختم کړو، کله وایي چي نن مي د اُوومنزلو څخه دومره منزلونه وویل، دې تلوار کوونکو ته دا خبر هم نسته چي د قرآن مجید هر یو آیت په اصل کي یو پیغام دی کوم چي د الله ﷻ د طرف څخه خپلو بندګانو ته دي او په دې کي امر، نهي، وعده، وعید، مثل، نصیحت، بېرول، لنډه دا هر څه راځي، په دې وجه د تلاوت کوونکي فرض دی چي د وعید پر موقع د بېري څخه ډک سي او چي د وعدې آیت ته ورسیږي نو خوښحاله سي د مثل په مقام سره بالکل د اعتبار کوونکي سي، چي د وعظ مقام وي نو چي سرتر پایه غوږ ور ته ونیسي چي د بېري مضمون راسي نو بېره پرغالبه سي، دا ټول حالتونه خاص د زړه سره تعلق لري، کنې هسي ژبه ښوروول څه فائده کوي، د داسي سړي مثال د هغه چا په ډول دی چي د باچا فرمان ور ته ورسیږي او دی هغه زباني یاد کړی او د عبارت مطلب او معنی ته توجّه نه کوي

او دا ور ته معلومه نه وي چې په دې کي یې څه لیکلي دي؟

دریمه طبقه د صوفیانو ده او د غرور او عُجب ډیروالی چي څومره په دې طبقه کي سته دومره په بله یوه طبقه کي نسته. ځکه چي لار څومره تنګه او باریکه وي او مقصد څومره عزیز او عظیم وي دومره شبهات او غرور زیاتیږي. د تصوف د لاري پر اول منزل د منزل د مشتاق او شوقي پر دې درجو قادرېدل لازمي وي یو خو دا چي د ده نفس د ده غلام او قیدي لیدل پکار دي چي د هغه څخه د خواهش او غصې جرړي ایستل سوي وي، بلکي داسي چي نفس دومره مغلوب سوی وي چي ما سوا د تعمیل د حکم څخه د ده بله چاره نه وي او خپل تصرف یې بالکل ختم وي لکه چي کله یو قلعه فتح کړل سي نو د قلعه خلګ وژني نه بلکي تابع فرمان یې کړي دغه ډول د صوفي سینه کومه چي د نفس قلعه وي د شریعت د باچا په لاس فتح کول پکار دي، دویمه خبره دا چي هغه جهان او دا جهان د ده په وړاندي ورک سي چي معنی یې دا ده چي دی د عالَم محسوسات او عالَم خیالات څخه وړاندي تېر سوی وي، ځکه چي کوم شئ په حس او خیال کي راځي په دې کي خو وحوش او حیوانان د ده سره شریک دي ځکه چي د سترګو، نَس، فرج د شهوت څه حصه کېدای سي، او جنّت هم د عالم حس او خیال څخه خارج نه دی ځکه چي کوم شئ هم جهت پذیر وي او د خیال د ده سره څه تعلق وي هغه د ده په نزد داسي سوی وي لکه چي څه هم نه وي، ده ته د خاشو، ګیاه(وښو) او بادامي حلوه یا سورکړی چرګ په مینځ کي هیڅ فرق نه معلومیږي، ځکه چي کوم شئ په خیال کي راسي هغه بې قدره او بې وقعته وي او د احمقانو حصه وي او جنتي خلګ زیاتره ساده وي، دریمه دا چي صوفیان ټول د جلالِ الهي او جمالِ الهي په مینځ کي ګیر وي او د دې مطلب دا دی چي د جهت، مکان، حس او خیال سره د دوی څه کار نه وي پاته. بلکي د خیال او حس علم کوم چي د دې داوړو (حس او خیال) څخه پیدا وي د دې تعلق هم د صوفي سره داسي پکار دی لکه چي د سترګو د آواز سره یا د غوږونو د رنګونو سره وي، یعني په لازمي توګه سره ده ته د دې څخه بې خبره کېدل پکار دي، او کله چي دې درجې ته ورسیږي نو چیري داوېل کیږي چي دی د تصوف د کوڅې سر ته راغلی دي، او د دې څخه مخکي ده ته د څومره حالاتو او مقاماتو څخه تېرېدل وي کوم چي د الله ﷻ حضورته د رسېدلو د پاره ده ته پکار وي، لېکن ده ته د دې د بیانولو طاقت نه وي، تر دې چي بعضو د دې نوم اتحاد (یووالی) ایښی دی، او د اتحاد لفظ د دې د پاره استعمالوي او بعضي د دې حال څخه هم مخکي تللي دي او دا کیفیت په حلول سره تعبیر کوي اوظاهره ده چي د کوم سړي علم پوخ نه وي او هغه په دې کېفیت سره اخته سي نو د دې بیانول د ده د پاره ممکن کېدای څنګه سي؟ په دې

وجه هغه چي څه وايي صاف كفر معلوميږي حال دا دی چي په حقيقت كي هغه حق وي، او كمی صرف د اظهار او بيان وي، نو دا خو د ده د لاري د تصوّف ابتدائي ښکاره کېدل او صرف نمود وي، اوس په دې سره قياس كړه او نظر وكړه نو صافه به ښکاره سي چي د دې خلكو غرور دوی د كوم ځای څخه كوم ځای ته رسولي دي، دا بې چاره خو فقط په جای نماز (مسله، مصلّی) او تسپو كي ورک سوي دي او د بې معنی كلمو او سخن سنجۍ څخه ماسوا يې څه حاصل نه كړل او پر دې يې اكتفاء وكړه، د صوفيانو په جامو، وضع قطع (شكل او حالت) او ظاهري سيرت (كړه وړه،اخلاق) اختيارولو كي خو كامياب سو او د دوی په ټول پر مصلّی هم كښېناستل او په سرښورولو يې گويا د وجد او حال(مصنوعي) كيفيت هم پر ځان راوستی، بلكي د دوی سر ښورول او ځنگېدل هم په اصل كي د دې وسوسو او باطلو خيالاتو په سبب وي كوم چي هر وخت د دوی پر زړه او ذهن باندي را خواره وي او صرف دوی دي چي په دې نازېږي او گڼي چي تصوّف دا دی او د سلوک لاره هم دا ده، د دې خلكو حالت د هغي ښځې (سپين سري) په ټول دی كومه چي بالكل عاجزه او كمزورې وي او پر سر خولۍ (ټوپۍ)او پر بدن ځغواچوي او وسله پر ملا را تاوكړي او دا هم ازده كړي چي په ميدانِ جنگ كي د لښكريانو د راپارولو اشعار څنگه ويل كيږي او بيا د باچا مخي ته ولاړه سي چي خپل نوم هم په رجسټر كي وليكل سي او باچا داسي وي چي د صورت او لباس قائله نه وي بلكي د دليل او ثبوت طالب وي نو هغه يې برېنډه كړي ياورته د بل سره د مقابله كولو حكم وركړي او د دې ښځې راز ښکاره سي، او باچا حكم وكړي چي د فيل په پښو كي يې واچوئ چي تر پښويې لاندي كړي چي بيا بل څوک داسي ونه كړي، او په دوی كي خو بعضي داسي وي چي د صوفيانو ظاهري لباس يې هم نه وي اغوستی بلكي د عامو خلكو په ټول زيات قيمتي لباس يې اغوستی وي او دا گڼي چي په رنگينو جامو اغوستلو سره د تصوّف ټول منزلونه گويا پوره سو، او په دې پوه نه وي چي صوفيانو چي به كوم رنگونه جامو ته وركول نو وجه به يې دا وه چي وار وار د پرېولو ضرورت يې نه راځي، او شين رنگ به په ځانگړې توگه سره ځكه اختياروی چي كېدای سي چي دوی به د دين د لاري په مصيبت كي گرفتاره وو، او د شين رنگ د دې سره خاص مناسبت دی، اوس دا مصنوعي سالک او نقلي صوفي نه په داسي څه منزل كي وي چي د جامو (كالو) پرېول د ده د پاره گران وي او نه په يو مصيبت كي گرفتاره وي چي د هغي په نسبت سره (شين) ماتمي جامې اختيارول د ده د پاره لازمي وي، او نه داسي څه وجه وي چي جامې يې څيري سي نو د ضرورت مطابق ورته پينې وگنډي، (صندوق يې ډک وي) نو دا څه كوي چي نوي جامې قصداً څيري، چي په زود يې په گودړی بدله

کړي او دغه رنګه په ظاهري صورت او حال کي د صوفیانو دموافقت څخه په میلونو لیري وي.
څلورمه طبقه: د مالدارو خلکو ده چي په دوی کي د دوکې، فریب او ناپوهی والا ډېر دي څکه چي بعضي مالدار پخپلو مالونو باندي مسجد، پُل او سرای او نور جوړوي او ممکنه ده چي دغه مال په حرامه پیدا سوي وي، په اصل کي پردوی فرض دا وو چي دغه مال یې مالک ته واپس کړی وای خو دوی دغه مال په تعمیر کي خرڅ کړو خپله ګناه یې زیاته کړه، او دا ګڼي چي موږ د ثواب کار وکړی، او بعضي خلک خلکو ته د دوود (رواج) د پاره مال خرڅ کوي، یو دینار خرڅ کړي دا غواړي چي زما نوم په ګټه ولیکل سي که ده ته وویل سي چي د خپل نوم پرځای د بل نوم ولیکه څکه چي الله خو په غیبو پوه دی نو داسي نه کوي د دې ریاء نښه دا ده چي د ده خپلوان او همسایه ګان محتاجه وي په یوه ټکره ډوډۍ پسي کرېږي نو مال خو دوی ته ورکول زیات غوره دي لېکن داسي نه کوي څکه چي دوی ته یې ورکړي نو دا عبادت د دوی پر تندي باندي لیکل مشکله دي چي: دې ته فلاني شیخ خیرات ورکړی الله ﷻ دي عمر ور اوږد کړي، او بعضي سرمایه دار په اخلاص سره خو مال خرڅ کوي مګر د مسجد په نقش او نګار کي یې صرف کوي او ګڼي چي دا ډېر نېک کار دی حال دا دی چي د دې څخه دوې بدی پیدا کېږي یوه په لمانځه کي د خلکو زړه په نقش او نګار کي مشغولېدل او د خشوع او خضوع څخه محرومه کېدل دویم دا چي د دغه رنګه نقش او نګار پخپلو کورونو کي یې د جوړولو آرزو پیدا کېږي، نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي کله تاسو په مسجد کي نقش او نګار او قرآن په زرو دلیکلو کار شروع کړئ نو پر تاسو افسوس دی د مسجد دآبادی سبب هغه زړه دی کوم چي په دولت د خشوع سره ښایسته وي او د دنیا څخه په نفرت سره ښایسته وي او کوم شئ چي د خلکو د زړونو څخه د زړه حضور او خشوع لیري کوي او دنیاوړ ته ښایسته ښکاره کوي دغه د مسجد د ویرانی سبب دی، دې کم بختۀ نقش او نګار وکړی مسجد یې ویران کړی، او دا ګڼي چي ما ډېر ښه کار کړی دي، او بعضي امیران پرخپله دروازه دفقیرانو جمع کېدل خوښوي چي په ښار کي د ده شهرت وسي یا داسي فقیرانو ته صدقه ورکوي کوم چي ژبور او نامور وي یا یې د حاجیانو پر قافله خرڅ کوي یا د خانقاه نشینو خدمت کوي چي د خرڅ خبره ډېره خوره سي او د خلکو د احسانمندی باعث جوړ سي که دوی ته وویل سي چي صاحبه! په پټه یې مسکینانانو ته ورکړه چي دا شئ د الله ﷻ په لاره کي د خرڅ کولو څخه افضل دی نو داسي چیري هم نه کوي څکه چي دوی ته د خلکو څخه پخپل تعریف کي خوند او مزه ورځي، او دی یې خیر ګڼي.

# خلورم رکن: منجیات

د کیمیاء سعادت دا رکن د منجیاتو (نجات ورکونکو شیانو) په باره کي دی، او دا هم پر لسو اصلونو مشتمل دی:

اول اصل: د توبې په باره کي دی، دویم اصل: د صبر او شکر په بیان کي دی، دریم اصل: د بیري او اُمید په باره کي دی، څلورم اصل: د فقر او زهد په تشریح کي دی، پنځم اصل: د نیت خلوص او صدق په وضاحت کي دی، شپږم اصل: د محاسبې او مراقبې سره تعلق لري، اووم اصل: د تفکر د تشریح په باره کي دی، اتم اصل: د تحمید او توکّل په باره کي دی، نهم اصل: د محبت او شوق په بیان کي دی، لسم اصل: د هغو معاملو په بیان کي دی چي د مرگ څخه وروسته دي.

## اول اصل: د توبې په باره کي

پوه سه! چي توبه کول او الله ﷻ ته رجوع کول د حق د مریدانو او د الهي بندگانو اولني الهي قدم دی، او دا هغه مقام دی د کوم څخه چي د سالکانو د لاري د سلوک ابتداء کیږي او یو بنده ته هم د دې څخه ماسوا بله چاره نسته ځکه چي د ازل څخه واخله تر ابده پوري د گناهونو څخه پاک پاته کېدل خو صرف د فرشتو کار دی، او ټول عمر په گناه کي غرق پاته کېدل او مخالفت ته چمتو وسېدل د شیطان کسب دی او گناهونه پرېښول، تائب کېدل او د الله ﷻ و طرف ته رجوع کول د آدم ؑ او د آدم ؑ د اولاد خوی دی، او رښتیا خو دا ده چي کوم سړي توبه وکړه د تېرو گناهونو په تدارک او تلافي کي یې کوشش وکړی، ده گویا د (خپل نیکه) آدم ؑ سره خپل نسبت صحیح او درست کړی، او چا چي تر آخره عمره پوري پر گناه او معصیت اصرار (ټینگار) وکړی، ده گویا د شیطان سره خپله رشته (قرابت) برابر کړی، او د دې قرابت په مضبوطولو کي ولگېدی، لیکن ټول عمر په عبادت کي وسېدل د بنده د پاره ممکن هم نه دي ځکه چي ناقص او بې عقله کېدل د ده په تخلیق او پیدایښت کي شامل دي، د ټولو څخه اول خو شهوت یعني خواهش واخله چي خالصه شیطاني آله ده او پر انسان مسلطه سوې ده او هغه عقل کوم چي د شهوت دښمن دی او خالص د فرشتو جوهر دی دغه وروسته پیدا سو، چي پر دغه عقل شهوت خپل تسلط قائم کړی وو، او دا نسان د سینې پر قلعه (کلا) یې فتح مونډلې وه او د نفس هم د ده سره خاصه دوستي جوړه سوې وه بلکي دی یې عادي سوی وو، او یو ډول محبت د دواړو په مینځ کي پیدا سوی وو، نو کله چي د عقل ظهور وسو نو ده ته لازمه سوه چي د توبې او مجاهدې په قوّت سره دا قلعه فتح کړي او د شیطان د غلامی او نفس د

زبردستی شخصه ده ته نجارت ورکړي نو دا دعامو انسانانو ضرورت او د سالکانو اولنی قدم دی، او د دې شخصه وروسته چې هر کله د عقل په نور او د شرعي د رڼا په ذریعه بیداری حاصله سي نو د غلطي لاري شخصه صحیح لاري ته راوستل سي، نو گویا توبه یو داسي اهم ترینه فریضه ده چې پخپله د ټولو فرائضو سرداره ده، ځکه چې د دې مطلب دی د غلطي لاري شخصه سیده لاري ته راتلل.

**د توبې فضیلت او ثواب:** پوه سه! چې د توبې حکم د الله ﷻ د طرف شخصه د هر بنده د پاره دی، ارشاد دی: وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَا الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (النور: ۳۱) (اې مسلمانانو! د الله و طرف ته رجوع وکړئ چې تاسو کامیابي حاصله کړئ) یعني د خلاصون اُمیدوارانو ته خلاصون په توبه سره حاصلېدای سي، د نبي ﷺ ارشاد دی: کوم سړی چې توبه وباسي د ده توبه به قبلیږي مخکي د دې شخصه چې لمر د مغرب شخصه راوخیژي، او فرمایي تلافي پخپله توبه ده، او فرمایي: د خلکو په لاروکي مه کښېنئ چې دې ته د لانو وهلو د ځای حیثیت حاصل دی ځکه چې هلته ولاړ سړی پر نورو خلکو مسخري کوي، او د دغه ځای شخصه د تېرېدونکو ښځو سره بدتمیزي کوي، لنډه دا هلته ناست سړی (یاولاړ) تر هغه پوري د دغه ځای شخصه نه ځي تر څو پوري چې دوزخ ور ته واجب سوی نه وي). لېکن توبه د داسي خلکو هم قبلېدای سي، او فرمایي زه روزانه اویا ۷۰ واره توبه او استغفار کووم،او فرمایي کوم سړی چې توبه او استغفار کوي د الله ﷻ په حکمت سره: (۱) هغه فرشتې کومي چې پر گناه لیکلو مأموره دي د ده گناه لیکل هېر کړي (۲) د ده لاسونه پښې او نور اندامونه هم دغه گناه هېره کړي په کومو سره چې ده دغه گناه کړې وه، او (۳) هغه ځای هم هغه گناه هېره کړي په کوم ځای کي چې یې کړې وه، د دې د پاره چې کله دغه گناه گار توبه وکړي د الله ﷻ حضور ته ورسي نو د ده خلاف به هیڅ گواه موجود نه وي.

او فرمایي الله ﷻ د بنده توبه تر هغه وخته پوري قبلوي تر څو پوري چې د ده ساه مرۍ (غاړې) ته نه وي را رسېدلې، او فرمایي د الله ﷻ د کرم لاس هر وخت خلاص وي د ورځي دگناه او د شپې د توبې کوونکي توبه هم داسي قبلوي، حضرت عمر ؓ فرمایي چې نبي ﷺ ماته وفرمایل چې توبه کوه توبه، چې زه روزانه سل واره توبه کووم، نبي ﷺ فرمایي: هغه کوم سړی دي کوم چې گناه نه کوي، لېکن په دې گناه گاروکي ښه هغه دی چې توبه وکړي،او فرمایي گناهکاره چې توبه وکړي نو داسي سي چې گویا ده گناه بالکل کړې نه ده، او فرمایي: د گناه شخصه د توبې مطلب دا دی چې بیا د دغې گناه نوم هم وانه اخلې، او فرمایي: اې عائشې ؓ (بې شکه کومو خلکو چې خپل دین جلا

جلا کړی او ډلي ډلي سول ستا د دوی سره هيڅ تعلق نسته [الانعام] دلته اشاره اهلِ بدعت ته ده، يعني الله ﷻ د هر ډول ګناه ګارانو توبه قبلوي اومعاف کوي يې ليکن د اهلِ بدعتو توبه نه قبلوي. د الله ﷻ ارشاد دی چې زه د اهلِ بدعت څخه بې زاره يم او دوی زما څخه بې زاره دي.

او فرمايي د هري دوشنبې او پنجشنبې په ورځ د بندګانو عملونه الله ﷻ ته وړاندي کيږي، او چا چي توبه کړې وي د هغه توبه قبليږي، او څوک چي د بخښني اُميداوره وي هغه وبخښل سي، ليکن د کومو په زړونو کي چي کينه (بغض) باقي وي دغه پر خپل حال پرېښوول سي، او فرمايي: الله ﷻ د بنده په توبه ډېر زيات خوشحاله کيږي تر دې چي د هغه اعرابي (صحرايي) څخه زيات خوشحاله کيږي کوم چي په يو خوفناکه صحرا (بيابان) کي تيرېږي خوب ورسي،او چي د خوب څخه را پورته سي نو خپل هغه اوښ څيني ورک سوی وي پر کوم چي ده د لاري تو ښه ډودی، اُوبه پراته وي، په پرېشانی سره يې هاخوا دېخوا ولټوي خو پيدا نه سي او په ګرځېدلو ګرځېدلو د لوږې او تندې څخه بدحاله سي تر دې چي هلاکت ته نژدې سي او په دې مايوسی کي واپس خپل ځای ته راسي او د مرګ په آرزو او انتظار کي سر پر ځنګله کښيږدي او پرېوزي ليکن چي ځنګه راوېښ سي نو ورک سوی اوښ پر هغه ځای موجود ووېني او د ډيري خوشحالی څخه د الله تعالی شکر اداء کړي ليکن د زياتي خوشحالی په وجه يې خوله غلطه سي د دې پر ځای چي: "اې الله ته زما الله او رب يې او زه ستا بنده يم" داسي ووايي چي: "اې ته زما بنده يې او زه ستا ربّ يم" (او د دې غلطی سبب داغه انتهائي خوشحاله وي) نو دغه رنګه الله ﷻ بې حده هغه وخت خوشحاله کيږي کله چي بنده توبه کوي، دومره خوشحالي چي د دغه اعرابي (صحرايي) د خوشحالی څخه هم زياته وي.

**د توبې حقيقت او پېژندنه:** پوه سه! چي د توبې ابتداء داسي کيږي چي په زړه کي د معرفت نُور پيدا سي. او د دغه نُور په رڼا کي ده ته ښکاره سي چي ګناه زهرِ قاتل دی، او کله چي ده ته دا احساس وسي چي دا زهر خو ما په ډېر اندازه خوړلي دي تر دې چي هلاکت مخ ته ووېني نو يقيناً چي تلافي او ډېره به پر ده غالبه سي او لکه ځنګه چي زهر خوړونکی سړی پرېشانه د ډيري په حالت کي ګوتي ستوني ته ننباسي د قی کولو کوشش کوي چي په يو ډول دا زهر د باندي راوباسي، او دا کلر ځکه کوي چي د زهر خوړولو ډېره ور سره وي،او خواهش يې دا وي چي په يو درمل او دواء يې دا اثر زائل سي؛ دغه ډول د توبې طرف ته مائله کېدونکي چي هر کله دا محسوسه کړي چي زما ټول شهوتونه په اصل کي د هغه عسلو په ډول وه چي په هغه کي زهر ملاوُ سوي وي چي د خوراک په

وخت خو ډېر خواږه وو، ليکن آخر کار هغه خو د مار د چيچلو په ډول د زهرو ځنځه ډک وو، نو د دې گناه گار تلافي به دی پرېشانه کړي او د بې قراری اُور به په ده کي بل سي او خواهش د گناه به يې د افسوس د تو بې شکل اختيار کړي او د خپلو کړو گناهونو د معافی او تلافی اراده به يې په زړه کي بيداره سي او بار بار به يې د ژبې ځنځه دا الفاظ وځي: " هلی الله بيا به چيري گناه ته نژدې نه سم " او د دې وينا سره به د دې د زور او ظلم جلمې تار تار کړي او د خلوص او وفا فرش به وغوړوي، په ټولو حرکاتو او سکناتو کي به يې يو انقلاب را پورته سي،اول دی د فخر تکبر او ځان ښوولو يوټ وو، اوس به دی د اُوښکو پښېماني حسرت او ارمان يوه مجسمه جوړه سي، اول به يې د غافلانو مجلس خوښ وو، اوس به دا اهلِ معرفت مجلس د ده خوشحالی او راحت سرمايه وي، نو دا تلافي دا ستوماني و دا بې قراری په حقيقتَ کي توبه ده، او د دې بيخ (جرړه) هغه نُور دی کوم ته چي نُور د ايمان او نُور دمعرفت ويل کيږي، او د دې ښاخونه هغه حالات دي کوم چي تبديل سوي وي اوهغه مخالفت دی کوم چي د گناه په باره کي را پيدا سو هغه جذبه ده کومه چي دټولو اندامونو د گناه او بدی ځنځه پر راگرځولو باندي زور ورکوي، او د الله تعالی پر موافقت، متابعت او عبادت او بندگي باندي يې مجبوره کوي.

## د دې خبري څرگندتيا چي توبه په هر وخت کي پر هر چاواجبه ده

د دې خبري پېژندل چي توبه پر هر سړي واجبه ده داسي کېدای سي چي پر هر بالغ کوم چي کلفر دی پر هغه توبه واجبه ده او توبه دي د کفر ځنځه وکړي، او که مسلمان دی او د ده مسلماني صرف دا ده چي دمور او پلار په تقليد کي صرف په ژبه سره خپل ځان ته مسلمان وايي او ورته ويل کيږي، او پر زړه يې غفلت او ناپوهي قبضه کړې ده نو دی دي د دې غفلت او جهالت ځنځه توبه وکړي او داسي دې وکړي چي زړه يې د ايمان د اصل حقيقت ځنځه آشنا سي او ده ته واقعي معلومه سي چي زه تر اوسه نه پوهېدلم (چي مسلماني څه ته وايي) د دې وينا ځنځه زما مطلب دا نه دی چي پر هر سړي علمِ کلام ازده کول فرض دی او يا دی دې په دغو دليلونو سره خپل زړه مطمئن کړي، ځکه چي د دې علم ځنځه خبرېدل پر هر سړي فرض نه دي، بلکي کومه خبره چي فرض ده هغه دا ده چي د ايمان باچاه د ده پر زړه غالب او مسلّط سي او د دنيا زړه د ده محکومه سي او د دې حکومت مسلّم کېدل به هغه وخت صحيح وي چي د خپل د بدن د هيواد هر گوټ کوټ او هر کونج کونج د ده د تر فرمان لاندي سي او د شيطان د واکمنی په بشپړه توگه خاتمه و سي، گناه چي کله صادرېږي نو دغه وخت حالت دا وي

چي ایمان کامل نه وي، څنګه چي د نبي ﷺ ارشاد دی چي: کوم سړی زنا کوي یا غلا کوي نو دا ځکه چي د دغو ګناهونو په وخت کي د ده زړه مؤمن نه وي بیاهم د دې شخه مراد دا نه دی چي دی بالکل کافر دی، د ایمان په اصل کې بې شماره ښاخونه دي او د دوی څخه یو شاخ دا هم دی چي په دې خبره پوه سي چي زهر قاتل او هلاکوونکي دي او څنګه چي انسان ته د هوښ په راتلو سره دا معلومه سي چي زهر خوړل نه دي پکار. نو هرکله چي دغه رنګه د شهوت باچا د ده ایمان او یقین ته شکست ورکړی وي، یا غفلت یې ایمان ورک کړی وي، یا یې د ایمان رڼا د شهوت په تیارو کي ورکه سوې وي، نو د توبې ابتداء به په دې ترتیب سره وي چي:

که کافر وي نو د کفر څخه به توبه وکړي او که مسلمان وي خو صرف د تقلید صرف د نامه د پاره، نو د دې کچه ایمان څخه به توبه وکړي (اصل ایمان ته به رجوع وکړي) او ښکاره ده چي په دې دواړو کي به د انتهائي توبې سره سره د ګناه څخه بالکل خالي نه وي، نو د دغو ګناهونو څخه توبه کول به پر ده واجب وي، مطلب دا دی چي ظاهر د ګناهونو څخه یا کول کافي نه دي، چي د ده باطن د ګناه د تخم څخه خالي نه وي، مثلاً د طمع او حرص، د شهوت حرص، دمال او جاه حرص، د حسد او غصې جذبه، د تکبر او نخوت طمع او د ریا کاری عادت او نور.

او دغه ټول نور مهلکات خو په یواوو نه لیري کیږي، او دا هغه کارونه دي چي ټول خباثتونه ځیني پیدا کیږي او د دې څخه د ټولو ګناهونو بیخ راوځي، او دا هغه کارونه دي چي د دې څخه توبه کول واجب دي، چي په دوی کي هر شئ د اعتدال حدّ ته راسي، او دا ټول شهوات د عقل څخه مغلوبه سي او اطاعت یې اختیار کړي، د دې د پاره ډېري ختي مجاهدې ضرورت دی بیا به غلبه حاصله کړي لیکن د دې کارونو څخه د پاکېدلو څخه وروسته بیا هم وسوسې باقي پاته کیږي، د نفس بې ځایه مطالبې او ناجائز خیالات او تصوراتو څخه بیا هم خلاصون نه ملاوېږي په دې وجه د دوی څخه بیا توبه کول پر یوځي،او دا خو بیا فرض وي او بیا د ټولو نقصانونو اصل بیخ هغه غفلت او بې خبری ده کومه چي انسان د حق تعالی څخه غافله کوي او دا پر خپل ځای ډېره لویه ګناه ده، که څه هم دا بې خبري د یو کړی د پاره ولي نه وي، نو د دې بې خبری څخه هم توبه کول واجب سو. او که دا مقام هم حاصل سي او حالت دا سي چي همېشه په ذکر او فکر کي مشغوله وي او د یو ساعت د پاره ځیني هم غافله نسي نو هم به د مختلفو مقاماتو سلسله اوس هم باقي وي، یعني هري درجې ته چي رسیږي مخکي نظر کوي نو ګویا د یوې درجې حصول د دې څخه د اعلی درجې څخه د محرومی په سبب د حصول باوجود یو نقصان او خساره ورته ښکاره کیږي او پر کمه درجه قانع کېدل عین د خساري

موجب دی په دي وجه داعلی درجې د حصول په خاطر د دې کمي درجې څخه توبه کول هم واجب سي نو د نبي ﷺ دا ارشاد چي زه په یوه ورځ کي اویا ۷۰ واره توبه کووم غالباً په دې معنی سره دی چي د دوی کار همیشه پر ترقی وو، یعني د یو قدم څخه و روسته به دویم قدم پورته کېدی نو په دې کي یو نوی کمال ښکاره کیږي چي په مقابله کي یې اولنی قدم یو نقصان معلومیږي په دې وجه په اول قدم به یې توبه او استغفار کوی، عین د هغه سړي په څول کوم ته چي د یو کار په عوض یو درهم ملاو سي او دی خوشحاله سي لېکن د دې څخه وروسته ده ته معلومه سي چي د دې کار په عوض څو یو دینار هم ده ته ملاوېدی او ده صرف پر یوه درهم باندي قناعت وکړی نو دی غمجن غوندي سي او (بیا دغه کار په داسي انداز سره کوي چي) دینار حاصله کړي نو د مخکي څخه زیات خوشحاله سي او پوه سي چي د دې څخه د زیاتوب څو یو گنجائش او امکان نه وو، لېکن بیا ده ته معلومه سي چي ده څو د دې کار په عوض یوه ملغلره حاصلولای سوه چي قیمت یې څو زره دیناره وو، نو دی بیا سخت غمګین سي او د خپلی کوتاهی په احساس باندي ستومانه سي او دی توبه کوي چي آئنده به چیري د داسي غفلت په وجه داسي نقصان نه کووم، نو په هې ارشاد کي د دې حقیقت وطرف ته ارشاد دی چي: د نېکانو نېکي د مقرّبینو د پاره بدي ده" نو څرنګه چي د مقربینو د پاره هغه نېکي د بدو په څول وي، په دې وجه دوی توبه ځیني کوي.

**سوال**: کله چي د کفر او نافرماني څخه توبه وکړي (او داواجب دي) او د لوړو څخه د لوړي درجې د حصول د پاره کوشش کول د فضائلو څخه دي، نه دا چي د فرائضو څخه تر دې پوري چي په دې کوشش کي د تقصیر او غفلت څخه توبه کول هم په فضیلت کي شامله ده، فرض نه ده، نو تا داولي وویل چي دا فرض ده؟

**جواب**: موږ وایو چي د واجبو دوه قسمونه دي یو زموږ په نزد د ظاهري فتویٰ مطابق د عامو خلکو تر درجې پوري محدود دی او دا دومره اندازه دی چي که په دې کي مشغوله سي نو د عالَم بربادی څخه به محفوظه سي او خلک به په خپل خپل معیشت او کسب حلال کي لګیا سي، ګویا دا هغه واجب دي چي خلکو د عذاب د دوږخ څخه خوندي کوونکي دي، دویم واجب هغه دی چي عام خلک د دې طاقت نه لري، او په چا کي چي د دې طاقت نه وي دوی که پر اوّل الذکر درجې قائم وي نو د عذاب د دوږخ څخه به خلاصي دوی ته هم ملاویږي لیکن دا حسرت به د دوی په زړه کي باقي وي چي لوړه مرتبه را ته حاصله نه سوه او د قیامت په ورځ چي کله د دوی نظر پر هغو خلکو باندي پرېوځي کوم

چې د دوی څخه لوړي درجې ته رسېدلي وي نو دوی به هغو ته د غه رنګه په حسرت سره ګوري چې لکه څنګه چې په دې دنیا کې خلک لوړو ستورو ته په حسرت سره ګوري، او په قیامت کې به دغه حسرت ځکه پیداوي چې دوی دلته د بلندو درجه په حصول کې ناقص او ناتمامه پاته وو. په دې وجه دا توبه کومه چې پر موږ واجب کړې ده نو صرف په دې وجه چې د دې حسرت د عذاب څخه خلاصون ور ته ملاو سي.

**د توبې د قبلېدلو بیان:** توبه چې کله د خپلو شرطونو سره وي نو د الله ﷻ په فضل ضرور قبلېږي، کله چې توبه وکاږي نو د دې په قبلېدلو کې شک مه کوه!، لېکن په دې کې شک کوه چې شرطونه یې پوره دي او که نه؟ او چا چې دا معرفت چې د زړه حقیقت څه دی د بدن سره د ده تعلق څه دی؟ او د الله ﷻ سره ده ته څه نسبت حاصل دی؟ کوم شئ دي چې انسان د الله ﷻ څخه په پرده کې اچوي؟ نو ده ته به په دې ډول شک او شبهې کې دمبتلا کېدلو هیڅ ګنجایش نه وي، ځکه چې ګناه که سبب د حجاب دي نو توبه دا حجاب لیري کولای هم سي او پر توبه دا پوخ یقین د دې د قبولیت ضامن دی، د بنده زړه پخپله د هغه پاک جنس څخه دی کوم ته چې د فرشتو جوهر وایي، او د هینداري په ډول دی که د ګناه د زنګ څخه پاک کړل سي نو د الله ﷻ نور به په دې کې ښکاره سي، چې مشاهده یې کولای سي، د بنده هر یوه ګناه تیاره جوړېږي، د بنده پر زړه خوړېږي او هر عبادت یې یو نور جوړېږي او دغه تیاره خرابوي، او دغه ډول د عبادتونو رڼا او د ګناهونو تیاره پر زړه ور پسې وي او کله چې هم تیار غلبه وکړي نو توبه د یو داسې عبادت په شکل کې ښکاره سي چې د دې په نور سره تیار شکست (ماته) وخوري او زړه د نوی سره پاک صاف سي، ها دا ضرور ده چې که بنده پر ګناهو مسلسل دومره اصرار (ټینګار) کړی وي چې زنګ یې د زړه جوهر ته رسېدلی وي او دومره ژوري ته تللی وي چې د علاج تدبیر او اصلاح قبلولو صلاحیت یې ختم سوی وي نو داسې زړه توبه نه قبلوي، بالکل د هغې هینداري په ډول چې زنګ ور ته دننه و رغلی وي جوهر یې ور مسخ کړی وي دی که په ژبه په لکونو توبې کوي قبلېږي نه. دغه ډول د طاعت د نور په دولت د ګناه د ظلمت څخه پاکېږي، په دې وجه نبي ﷺ فرمایلي دي چې: د هري بدی څخه وروسته یوه نېکي ضرور کوه کومه چې د دې بدی اثر لیري کړی.

او فرمایي: که ستا ګناه آسمان ته ورسېږي نو هم که توبه وکړې قبوله به سي، یو وار یې وفرمایل چې: یو بنده به داسې هم وي چې ګناه به د ده د بخښني سبب سي او دی به جنت ته ولاړ سي، خلکو

عرض وکړی یا رسول الله! هغه څوک دی؟ ورېي فرمایل: هغه چي ګناه وکړي او پښېمانه سي لېکن داسي چي د دغه توبي تلافي او تدارک تر جنته پوري ذ ده پیش نظر وي، د داسي بنده په باره کي به شیطان ووایي چي اې کاش! ما دی په دې ګناه نه وای مبتلا کړای. فضیل رحمه الله وایي چي الله جل جلاله خپل یو پیغمبر ته وفرمایل چي: ګناهکارانو ته دا زیری واوروه چي که توبه وکړي نو قبوله به یې کړم، او صدّیقان په دې خبرو وېروه چي که موږ صرف د عدل څخه کار واخیستی نو دوی به هم په عذاب کي مبتلا سي، طلق بن حبیب رحمه الله وایي چي د حقوقُ الله اداء کول د انسان دپاره کله ممکن دي چي دغه خو بې پناه او بې حسابه دي، ها! شاید داسي پکار راسي چي سهار راپورته کیږي نو د توبې سره او چي د شپې بیده کیږي نو د توبې سره. حبیب بن ابی ثابت رحمه الله وایي چي د بنده ټول ګناهونه به جلاجلا ده ته وښوول سي، یوه ګناه چي ووېني نو چغې به کړي چي: آه کم بخته: زه خو ستا څخه همیشه بېرېدلم چي ته چیري زما څخه ونه کړل سې، آه! زما غفلت او بې خبري چي ته هم سوې یې؟ د دې بیري اظهار به د الله جل جلاله خوښ سي او دی به معاف کړل سي.

**قصّه (د توبې په اړه)**: په بني اسرائیلو کي یو سړی د حد څخه زیات ګناهګاره وو، نو د توبې خیال یې ور ته راغلی خو معلومه ور ته نه وه چي د ده په ډول د دومره غټ ګناهګار توبه به هم قبوله سي او که نه؟ نو پوښتنه یې وکړه نو خلګو ور ته وویل چي فلانی عابد ته ولاړ سه او خپل حال ور ته ووایه چي زه ډېر ګناهګاره یم تر دې چي یو کم سل بې ګناه قتلونه زما د لاسه سوي دي په دې کي به زما توبه قبوله سي او که نه؟ عابد جواب ورکړی چي ستا توبه نه قبلیږي، ده دا عابد هم مړ کړی او دغه رنګه د خپل قتل سوو شمار یې سلو ته ورساوه، بیا ور ته خلګو دیو لوړ عالم خبر ورکړی او دی عالم ته ولاړی او د هغه څخه یې هم دغه پوښتنه وکړه چي زما توبه به قبوله سي او که نه؟ عالم وویل چي هو! قبوله به سي مګر په دې شرط چي ته دا ځمکه پرېږدې، او یو بل داسي ځای ته ولاړ سې کوم ځای چي نېکان خلک وسیږي، ځکه چي دا ځمکه د فتنې او فساد ده، دغه سړي د عالم ښوولی ځای ته روان سو مګر په لاره کي اجل ور ته راورسېدی او پر مرګ یې د رحمت او عذاب په فرشتو کي اختلاف جوړ سو د هري فرشتې دعویٰ دا وه چي دی زما په ولایت کي مړ دی (د رحمت فرشتې جنت ته او د عذاب فرشتې دوږخ ته د ده پر بېولو ټینګار کولو) الله ور ته حکم وکړی چي د ځمکي پیمائش وکړی! چي پیمائش یې وکړی نو معلومه سوه چي د صالحانو (نېکانو) ځمکي ته یوه لوېشت نژدې وو، نو د رحمت فرشتو یې روح یووړی، د دې څخه صافه ښکاره کیږي چي شرط د

خلاصون اونجات دا نه دی چې د گناهونو پله د گناهونو څخه خالي وي بلکې شرط فقط دا دی چې د نېکیو پله درنه سي هغه که په اندازه کې ډېر لږ ولې نه وي، نجات په دې سره هم حاصلېدای سي.

**صغیره او کبیره گناهونه (او د کبیره گناهونو شمېر)**: توبه د گناهونو څخه کیږي، او گناه چې څومره کوچنی وي دومره په توبه سره آسانیږي خو په دې شرط چې بنده ټینگار او اصرارنه پر کوي (یعني بیا بیا او په وار وار یې نه کوي) په حدیث شریف کې دي چې فرض لمونځ د گناهونو کفاره جوړیږي ما سوا د هغو څخه کومو ته چې کبیره وایي دغه ډول د جمعې لمونځ تر بلې جمعې پورې د گناهونو کفاره کیږي په دې شرط چې کبیره گناه پکښې نه وي، د الله ﷻ رشاد په دې باره کې ډېر ښکاره دی: إِنْ تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ [النساء: ۳۱] (که تاسو د کبیره گناهونو څخه ځان وساتئ د کومو څخه چې تاسو منع سوي یاست نو ستاسو غلطی به موږ معاف کړو) نو د کبیره گناهونو پېژندل لازمي سو، او په دې کې د اصحابو ؓ رایې مختلفې دي بعضې اووه۷ وایي، بعضې یې زیات او بعضې د دې څخه هم کم: ابن عباس ؓ فرمایلي دي: چې حضرت عمر ؓ به د دې شمار اووه ۷ ښولو اوویل یې چې که داوو څخه زیاتي وي نو شاید چې دا تعداد اویاوو ۷۰ وي.

ابو طالب مکي رحمه الله وایي چې ما په کتاب "قوت القلوب" کي په دې ضمن کي ټول احادیث او د اصحابو ؓ اقوال یو ځای کړي دي او دې نتیجې ته رسېدلی یم چې د کبیره گناهونو شمار اوولس (۱۷) دی د دې څخه د څلورو تعلق د زړه سره دی:(۱) کفر (۲) پر گناه اصرار(ټینگار) کول یا یې اراده کول که څه هم دغه گناه صغیره ولې نه وي، یعني که یو سړی صغیره گناه کوي او پرېږدي یې نه، نو کبیره کیږي (۳) د الله ﷻ د رحمت څخه مایوسه کېدل (۴) د الله ﷻ دېري څخه بې نیازه کېدل او د ځانه دا فرض کول چې زه خو بخښل سوی یم،او د څلورو تعلق د ژبې سره دی:(۱) د دروا غو گواهي چې د یو چا حق په باطل سي (۲) پر چا د زنا تهمت لگول چې حد شرعي پر قائم سي (۳) په درواغه قسم خوړل چې یو څوک د مال څخه محرومه کړي (۴) جادو، سحر او نور... د دریو تعلق د نس سره دی:(۱) شراب چیښل یا داسي یو بل شئ چې نشه راولي او د مستی سبب وي (۲) د یتیم مال خوړل (۳) سُود خوړل، د دوو تعلق د فرج سره دي:(۱) زنا (۲) لواطت، دوه کبیره گناهونه دلاسو سره اړوند دي:(۱) قتل (۲) غلا کول چې پر هغه شرعي حدّ واجب وي، او یوه کبیره گناه په پښو سره کیږي او هغه د کفارو سره د مقابلې په وخت کي دمیدان

جنګ څخه تبنتېدل دي، هر کله چي د يوه په مقابله کي دوه يا د لسو په مقابله کي شل کفار وي، لېکن که د کفارو شمېر د دوچندي څخه هم زيات وو بيا تېښته صحيح ده، يوه کبيره ګناه داسي ده چي تعلق يې د ټول بدن سره دی او هغه مور او پلار ته تکليف ار رنځ رسول دي.

دا تفصيل داسي په لاس راغلی چي په دې کي بعضي خو هغه دي د کوم ذکر چي د حدّ شرعي د وجوب په بيان کي ملاوېږي او بعضي هغه دي د کومو په باره کي چي په قرآن کي سخت وعيدونه راغلي دي، دغه رنګه د دې په تفصيل کي يو تصرّف هم موجو د دی لېکن د دې ذکر مونږ په "احياء العلوم" کي کړی دي او دلته يې ځکه نه کوو چي دا کتاب يې متحمل کېدای نسي، او د دې ګناهونو په پېژندلو کي مقصود دا دی چي بنده د دې په باره کي خاص محتاط وسي، لېکن دا هم ياد ساته چي د ګناه تکرار که څه هم صغيره ګناه ولي نه وي دغه کبيره جوړوي.

که څه هم ويل کيږي چي د فرض لمونځ په ادا کولو سره د صغيره ګناهونو کفاره کيږي لېکن پر دې هم د ټولو اتفاق دی چي که د بنده پر ذمه يوه مظلمه هم باقي وي نو فرائض د دغو صغيره ګناهونو کفاره نسي جوړېدای، تر څو چي د دغه مظلمه څخه نجات حاصل نه کړي، کومه ګناه چي د الله ﷻ سره تعلق لري دغه بخښني ته زيات نژدې وي په نسبت د هغو ګناهونو څخه کوم چي د مخلوق سره تعلق لري، په حديث شريف کي دي چي د هر بنده درې عملنامې وي: (۱) په يوه عملنامه کي هغه ګناهونه ليکل کيږي کوم چي دمعافی قابل نه وي او تعلق يې د شرک سره وی (۲) په دويمه عملنامه کي هغه ګناهونه ليکل کيږي کوم چي دخدای او د بنده په مينځ کي وي کوم چي د ټولو څخه زيات په آسانی سره بخښل کيږي (۳) په دريمه عملنامه کي هغه ګناهونه ليکل کيږي د کومو څخه چي د خلاصی او نجات هيڅ صورت په نظر نه راځي ځکه چي د دغو تعلق د هغو ګناهونو سره دی کوم ظلمونه چي ده د خدای پر مخلوق کړي وي،او يوه سه! چي هغه اُمور کوم چي د يو مسلمان د زړه د ازارولو سبب وي هغه په دې زمره کي شمارل کيږي هغه که تعلق يې د مسلمان د مال سره وي يا د مسلمان د ذات سره يا د عزت يا د مروّت سره،بلکي که د دين سره وي هم په دې کي شامل دی مثلاً يو مسلمان د بدعت و طرف ته رابلل چي د ده دين برباد سي يا خلک جمع کول داسي خبري ور ته کول چي دوی په لاپرواهی او بې باکی سره ګناهونه شروع کړي.

## صغيره ګناهونه په کوم سبب سره کبيره ګناهونه جوړيږي؟

ياد ساته! چي د صغيره ګناه کوونکي دمعافی او بخښني اُميد کېدای سي لېکن بعضي اسباب داسي

وي چي دا صغیره کبیره جوروي داسي اسباب شپږ دي:

(۱) اول سبب: دا دی چي بنده پر صغیره گناه باندي ضد (ټینگار) کوي لکه غیبت یا د ورېښمواغوستل چي عادت یې جوړ کړي یا لهو لعب یې کښې، سرودونه(سروزونه) اوري، په دې وجه چي کومه گناه همېشه وي هغه د زړه په تورولو کي ډېر اثر کوي، په دې وجه نبي ﷺ فرمایلي دي همېشه کېدونکې د خیر کار ډېر غوره دی، که څه هم په تعداد کی کم وي(یعني کوم نېک کار چي همېشه کول کیږي هغه ډېر بهتره دی تر هغه نېک کار کوم چي کله کله کیږي)، د دې مثال داسي دی لکه د اوبو قطره کومه چي مسلسله پر یوه ډېره را څاڅي نو خامخا سوری پکښې کوي، که ډېري لوبه پر ویپول سي هیڅ اثر به ونه کړي، کوم سړی چي په صغیره گناهونو کي مبتلا وي ده ته د استغفار علاج جاري ساتل پکار دي ستومانه او پښېمانه کېدل ورته پکار دي او د دوهم ځل د پاره د گناه څخه د خوندي کېدلو کلک قصد پکار دی، او په مخه استغفار کول تر دې چي بزرگانو ویلي دي کبیره گناه په استغفار سره صغیره کیږي او صغیره په زوور تیا کبیره جوړیږي.

(۲) دویم سبب: دا دی چي بنده گناه سپکه او کوچنی وگڼي، پکاره ده چي گناه لوی او غټه وگڼي نو خامخا به کمیږي، ځکه چي گناه غټه گڼل د ایمان او ېږي سبب وي د گناه د تیارې څه دا کار د زړه ساته کوي چي اثر یې ونسي او گناه سپکه گڼل د غفلت او گناه سره د مناسبت په سبب وي او دا د دې خبري دلیل دی چي گناه په زړه کي ځای سوه، په هر حال کار د زړه سره وي کومه خبره چي پر زړه اثر وکړي دغه لوبه ده، په حدیث کي دي چي مسلمان خپل گناه د ځان په حق کي یو غر گڼي، ېرېږي چي هسي نه را باندي ونه لوېږي، او منافق گناه مچ گڼي کوم چي یې پر پزه کښېني او والوزي، بزرگانو ویلي دي چي هغه گناه نه بخښل کیږي چي د هغې په باره کي دا سوچ وي چي دا کوچنی ده! کاش چي ټول داسي وای!، پر یوه نبي باندي وحي راغلې چي د گناه کوچنیوالي ته مه گوره د الله ﷻ لویې ته گوره، بنده چي څومره زیات د الله تعالی جلال پېژني دومره دی هره کوچنی گناه غټه گڼي.

(۳) دریم سبب: دا دی چي بنده د گناه په سبب خوشحاله وي او فخر په کوي او د لویې مظاهره کوي چي فلانی مي دوکه کړی او ښه مي سره ومروړی، او مال مي څیني واخیستی، ښکنځل مي ورته وکړل، په مناظره کي مي مات کړی او داسي بکواس او واهیات خبري کوي، کوم سړی چي پخپل هلاکت او بربادی خوشحاله وي نو د دې خبري دلیل دی چي د ده زړه تور سوی دی، دا خبره به د ده د هلاکت او بربادی سبب وي.

(۴) څلورم سبب: دا دی چي الله ﷻ د ده پرده پوشي کوي (یعني د ده گناه پټوي) او انسان دا گڼي

چي دا پر ما د الله ﷻ عنایت او مهرباني ده، او د دې خبرې څخه نه بیرېږي چي شاید الله ﷻ مهلت را کوي، او دغه ټول دی د خپل هلاکت سامان تیاروي.

(٥) پنځم سبب: دا دی چي د الله ﷻ په پرده پوشی باندي د هغه د شکر ادا کولو پر ځای دی پرده پخپلو لاسونو پورته کړي چي کېدای سي نور خلک هم د ده په وجه سره د گناه سره دغه رنګه محبت ښکاره کړي (یعني الله تعالیٰ پر ده دا مهرباني وکړه چي د ده گناه یې پټه کړله او ده ته پکار وو چي شکر یې پر دا مهرباني ادا کړی وای لیکن دی د شکر پر ځای پخپله گناه ښکاره کړي چي خلک یې هم وکړي او ښکاره یې کړي، نو په دې سره دا گناه کبیره جوړېږي) په دې صورت کي به د نورو د گناه او رغبت د گناه ټول وبال پر ده باندي وي، او که د ترغیب ور کولو دا مکروه کار په ډاګه کوي، او د گناه اسباب او ذریعې هم را جمع کوي تر دې چي نور خلک واقعي په دې اسبابو سره متاثره سي دغه طور طریقې اختیاروي نو وبال به دوچنده سي، په دې وجه تیرو مشرانو ویلي دي چي د دې شخه غټ غضب به بل څه وي، چي یو مسلمان د نورو مسلمانو په نظر کي گناه آسانه او مرغوبه او محبوبه جوړه کړي.

(٦) شپږم سبب: دا دی چي دی عالم (امام) او پیشوا وي او په گناه کي مبتلی او نور خلک یې ویني نو خلک په بې باکی سره گناه کوي او وایي چي که دا خبره ناجائزه وای نو دغه عالم او مُقتدا به ولي کولای، مثلاً یو عالم وریښمني جامې واغوندي یا د دربارو زیارت کوي، او د باچا په حضور کي حاضرېږي او مال او زر ځیني حاصلوي، یا پر مال او جاه مَیَنْ وي او ناز او فخر هم په کوي، په مناظره کي پالتو او بکواس خبري کوي، پر خپلو همزولو اوهم عصرو باندي لعن طعن کوي اونور او د ده شاګردان هم دغه څه لازده کړي او بیا چي کله دغه استاذان سي نو دغه پالتو خبري د هغو څخه نور شاګردان اودغه سلسله جاري وي او په دې کي هر یو د جلا کلي او محلې د خرابولو او بربادی سبب سي، ځکه چي هر یو به په دوی کي د یو ښار یا کلي پیشوا خو به جوړېږي او په دې صورت کي به خامخا د ټولو د گناهونو وبال پر دغه پیشوا باندي وي، په دې وجه ویل سوي دي چي خوشبخته دی هغه سړی چي دی مړ سي او ور سره د ده گناه هم مړه سي کنې داسي بدبخته به هم وي چي پخپله به مړه سي خو گناه به یې وروسته په زرګونه کاله ژوندی وي (یعني نور خلک به عمل په کوي او ده ته به یې وبال او عذاب رسیږي).

## د رښتوني اوصحي توبې شرطونه او علامې (نښې)

تر اوسه تاسو ته معلومه سوه چي د توبې بنیاد پښېماني ده، او د توبې نتیجه هغه اراده ده کومه چي د تائب د طرف څخه ښکاره کیږي، د پښېمانی نښه یې دا ده چي تائب به همیشه غمجن او افسوس کوونکی وي او د ده کار به ژړا او فریاد وي، ځکه چي کوم سړی ځان د هلاکت په طوفان کي مبتلاووینی نو دی به د غم او افسوس څخه خالي څنګه سي؟ که دیو چا مریض بچی پروت وي او طبیب ووایي چي مرض یې خطرناکه دی او د مرګ بېره یې سته نو خیال وکړه چي د ده د پلار پر زړه به څه تېریږي او څومره غم او پرېشاني به باندي وي؟ او دا ځکه چي پلار ته اولاد د ځان څخه خوښ وي، لېکن دا هم صحیح ده چي پلار ته خپل ځان په هر حال کي زیات عزیز وي او د ده طبیب خدای او رسول ﷺ د دې دنیوي طبیب څخه زیات رښتوني دی، کله چي هغه ده ته ووایي چي د آخرت هلاکت د مرګ د خطرې څخه هم زیات غټ او عظیم دی، او زیاته ګناه به د الله ﷻ د زیاتي غصې سبب وي، تر دې چي د مرض څخه د مرګ خطره دومره یقیني نه وي څومره چي په ګناه سره د هلاکت وي، او که دا حقیقت د ده په زړه کي بېره پیدا نه کړي نو د دې مطلب به دا وي چي د ګناه په آفت او هلاکت لا تر اوسه د ده یقین او ایمان نسته، دا (د ندامت او پښېمانی) اور چي څومره تېز وي دومره زیات په تېزي سره ګناهونه سوځي ایره کوي یې چي د ګناه په وجه کوم زنګ د انسان پر زړه لګېدلی دی د حسرت او ندامت د اور څخه ملسوا یې بل څه شئ یې لیري کولای سي؟ او د دې څخه سوا بل کوم اور او ګرمي ده چي زړه صاف او نرم کړي، د حدیث په روی سره چي کوم د توبه کوونکو سره د صحبت او مجلس ساتلو حکم سوی دی ځکه چي د دوی زړه د نرمی څخه ډک وي او د هینداري په ډول صفا وي، او زړه چي څومره صفا وي دومره د ګناهونو څخه پاک وي، داسي زړه ته په ګناه کي کوږوالی نه بلکي تریخوالی محسوسیږي، دبني اسرائیلو یو پیغمبر یو وار الله ﷻ ته سپارښت وکړی: اې الله! د فلاني توبه قبوله کړه، الله ﷻ ورته وحی را نازلي کړي زما دي پخپل عزت قسم وي چي که د ټول اسمانونو فرشتې هم د ده سپارښت وکړي نو توبه به یې قبوله نه کړم چي د ده په زړه کي د ګناه خوږوالی لا اوس هم سته، او په دې خبره ځان ښه پوه کول پکار دي چي ګناه ځکه کیږي چي د بنده په طبیعت کي د دې څخه یو خاص لطف او خوند محسوسیږي، لېکن د تائب په حق کي ګناه د یو زهرآلود عسلو په ډول وي (یعني د هغه عسلو په ډول وي چي زهر پکښي ګډ سوي وي، یعني دی دا ګڼي چي په دې کي زما د هلاکت او بربادی خطره ده) چي څوک یې یو وار وڅکي دوباره

يې نوم هم نه اخلي بلکي په تصوّر سره يې پر بدن باندي وېښته جګيږي او د دې څخه د خوند اخيستلو خيال يې تر دې بيري لاندي سي کوم چي د دې د نقصان په تصور سره پيدا کيږي او دا تريخوالی ده ته په هره يوه ګناه کي ښکاره کيږي ځکه چي ده خو څه يوه ګناه نه ده کړي چي د الله ﷻ د رضامندی څخه خالي وه چي دا حالت خو د ټولو ګناهونو دی. (يعني حق تعالی خو په يوه ګناه هم راضي نه دی) د دې پښېمانۍ په سبب چي کومه اراده ښکاره کيږي د هغې تعلق د درې شيانو سره دی: (١) ماضي (٣) حال (٣) مستقبل سره. تر کومه پوري چي د حال تعلق دی نو پر دې خو داسي عمل کول لازمي دي چي ټول ګناهونه پرېږدي او د فرائضو په ادا کولو کي په زړه او روح سره شروع سي.

او د مستقبل سره د تعلق به يې دا حالت وي چي د دې خبري پوخ عزم وکړي چي په هره ګناه به د ضبط او صبر څخه کار اخلم (چي ونسي) او د الله ﷻ سره په ظاهر او باطن کي پوخ عهد وکړي چي په آينده (را روان وخت) کي به د ګناه تصور هم نه کووم او د فرائضو په ادا کولو کي به هيڅ تقصير نه کووم لکه څنګه چي يو مريض په دې د نه پوهېدلو په سبب چي آيا مېوه به د ده د پاره فائلمنده وي او که تاواني؟ د دې خبري عهد وکړي چي مېوه به چيري ونه خورم چي د دې امکاني نقصان بېره پاته نسي او د ارادې په وخت کي څه تردّد هم ونه کړي، که څه هم په وار وار ور ته د دې د خوړلو خواهش ولي نه کيږي (خو دی پر خپل عزم کلک ولاړ وي). دا هم ياد ساتل پکار دي چي توبه کول آسانه دي خو ساتنه يې ګرانه ده. او دا تر هغه وخته پوري نه ممکنه کيږي تر څو پوري چي تنهائي او خاموشي اختيار نه کړل سي، او په حلال ګوله اکتفاء ونه کړل سي او د کسب د پاره په حلال کسب قدرت حاصل نه کړل سي، چي تر څو پوري د مشتبه او مشکوکو شيانو څخه پرهېز ونسي د بنده توبه نسي پوره کېدای. دغه ډول د شهوت، خواهش، دمشتبه شيانو څخه د پرهېز او دغلطي اشتها څخه ډډه کول هم لازم دي، بزرګانو ويلي دي چي پر چا ديو شئ خواهش غالب او مسلطه وي نو ده ته پکار دي چي په تکلف سره دي اووه ٧ واره د دغه څخه لاس واخلي (يعني ځان دي ځيني وساتي) نو په دې ډول به ده ته آسانه سي.

پاته سو د ماضي سره د ده تعلق نو دغه داسي دی چي کومه ګناه د ده څخه سوې وي د هغې تدارک او تلافي دي وکړي په دې سلسله کي به ده ته غور کول وي چي ما د الله ﷻ په کومو کومو حقونو کي کمي کړې ده، د الله ﷻ د بندګانو په کومو کومو حقونو کي زما څخه تقصير سوی دي (او بيا دي د دې تلافي ته ملاوتړي)

اوس تر کومه پوري چي د الله ﷻ د حقونو تعلق دی، داپه پر دوه قسمه دی: (۱) د فرضواداء کول (۲) د گناه څخه منع کېدل. د فرضو په باره کي به دا وګوري چي زه د کوم وخت څخه بالغه سوی یم او تر اوسه پوري دیوې ورځي په حساب سره څومره لمونځونه زما څخه قضا سوي دي، څو واره مي جامې گنده وې څو واره مي نیت صحیح نه وو. یا څومره واره مي په عقیده کي خلل وو. لنډه دا چي څومره لمونځونه غلط سوي دي دهغو ټولو قضاء دي راوړي، د کوم وخت څخه مالداره سوی یم د هغه تاریخ څخه پوره په پوره زکوٰة دي اداء کړي که زکوٰة یې څه اداء کړی وي خو مستحقو ته یې نه وي رسولی یا د سرو او سپینو زرو لوښی ور سره وو د هغو زکوٰة یې نه وی اداء کړی د ټولو حساب دي وکړي پوره زکوٰة دي ادا کړي، په رمضان شریف کي چي څومره روژې ځیني خرابي سوي وي د هغه دي هم پوره حساب وکړي قضا دې ونیسي، د دې څخه ماسوا باقي گناهونه دي هم دبلوغت د کال څخه رایاد کړي چي د سترګو غوږونو ژبې نس څه څه گناهونه ځیني سوي دي او په دغو کي کبیره گناهونه څومره وو، مثلاً زنا، لواطت، غلا، شراب چیښل یا بله داسي یوه گناه چي حدّشرعي پر واجب وي، د دغو ټول څخه دي توبه وکړي که څه هم په موجوده صورت کي پر ده واجب نه دي چي د حاکم مخ ته ولاړ سي اقرار وکړي چي شرعي حد پر قائم سي بلکي په دې صورت کي یې پټ ساتل صحیح دي، او د تلافی اومعافی د پاره دي دېر عبادت شروع کړي او بار بار دي په خشوع او خضوع سره توبه کوي، د صغیره گناهونو تلافي به هم په دې ډول سره کوي، مثلاً نامحرم ته یې کتلي دي، بې اودسه یې قرآن ته لاس وروړی دی، د گندگی په حالت کي مسجد ته تللی دی، د سماع او سروز مجلس ته ورغلی دي، اونور نور، نو اوس دي داسي کار کوي چي د دې ضد وي چي د دغو کفاره اداء سي او دغه گناهونه په دي سره خراب سي، او د الله ﷻ ارشاد دی: إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ [هود: ۱۱۴] (بې شکه نېکیانې بدی ختموي).

## پر توبه باندي همېشه والی

که د چا څخه د توبې په دوران کي یو گناه وسي نو فوراً د هغې تلافي پکار ده، د بزرگانو په نزد اته کارونه داسي دي چي د گناه کېدلو څخه وروسته پر دوی عمل وسي نو د گناه کفاره به سي، د څلور تعلق د زړه سره دی: (۱) توبه کول یا د توبې نوی قصد کول (۲) دا خواهش کول چي آینده به داسي نه کووم (۳) د دغې گناه د عذاب څخه په بېره کي اوسېدل (۴) د الله ﷻ څخه د عفوي رحم او کرم

اُمید کول، او د څلور تعلق ببدن سره دي: (١) د تو بې دوه رکعته لمونځ کول (٢) د دې څخه وروسته اویا ٧٠ واره استغفار، سل واره سبحان الله العظیم وبحمده ویل (٣) څومره صدقه چې ورکولای سي نو ور دې کړي (۴) یوه ورځ دي روژه ونیسي.

د بعضي آثارو څخه معلومیږي چي د بزرګانو په نزد په ښه توګه د اودس څخه وروسته مسجد ته تلل او دوه رکعته لمونځ اداء کول پکار دي، لېکن په حدیث شریف کي دي چي که ګناه یې په پټه کړې وه نو د کفارې عبادت به هم په پټه کوي چي کفاره یې سي او که ګنا یې په ښکاره کړې وه نو د کفارې عبادت به هم په ښکاره کوي او یاد ساته! هغه استغفار د کوم ورد چي صرف په ژبه کول کیږي او زړه څېني غافله وي خاص فائده نه رسوي، او د زړه د شرکت څخه مراد دا دی چي استغفار کوي نو چي خشوع خضوع عاجزي پر غالبه وي د بېري څخه زړه رپیږي، د مغفرت او معافي طلب یې بې قراره کړی وي، پښېماني او شرمندګي پر زړه مسلطه وي نه دا چي زړه د دې څخه خالي وي، نو که مذکوره حالت پر زړه جاري وو نو د تو بې عزم پکار دی که څه هم ناپخته ولي نه وي د بخښني اُمید ضرو کېدای سي،هسي خو د غافل زړه سره یوه خبره قابلِ لحاظ ضرور ده، یعني زباني استغفار هم د فائدې څخه بالکل خالي نه دی ځکه چي په دې سره که نور څه نه وي نو ژبه خو د عبثو خبرو څخه محفوظه وي، او خاموشي پخپله ښه شئ دي، چي نیک او مبارک عادت دی، چي کله پرېوځي نو ژبه د بې هوده خبرو پر ځای استغفار ویلو ته زیاته مائله سي.

د ابو عثمان مغربي رحمه الله یوه مرید دوی ته وویل چي: داسي وخت هم پر ما راسي چي زما پر ژبه د حق تعالیٰ ذکر جاري خو وي لېکن په بې زړه توب او بې سوچی سره، وېې فرمایل: شکر کوه چي ستا یو اندام خو پر خدمت مأموره دی، پر دې موقع په دې پوهېدل ضروري دي چي د دې بې زړه توب پر موقع شیطان د خپل مکر او فریب توله جالونه خواره کړي او هر ډول دوکه ورکوي د دې کیفیت پوخ جوړولو د پاره لاس او پښې وهي او وایي چي: ژبه بنده کړه چي زړه دي غیرِ حاضر دی نو صرف په ژبه ویل خو بې ادبي او ګستاخي ده، د شیطان د دې فریب جواب ورکونکي پر درې ډلو تقسیم کیږي: (١) یوه ډله د هغو خلکو ده کومو ته چي سابقین ویل کیږي، داسي سړی شیطان ته وایي چي ها! ستا خبره خو صحیح ده خو اوس زه ستا د سوځولو د پاره په زبردستي زړه حاضروم، دا خلک د شیطان پر زخمونو مالګه اچوي.(٢) دویم ته ظالم وایي او د داسي سړي جواب دا وي: چي تا بالکل صحیح وویل، واقعي د زړه په غیر حاضری کي ژبه ښوروول بېکاره دي، او بیاواقعي

خاموشي اختیار کړي، او وايي چي د غتې پوهی ثبوت يې را کړی، او حال دا چي دا د شیطان موافقت دی. (۳) دریمي ډلي ته مقتصد وايي، داسي سړی شیطان ته دا جواب ورکوي چي: دا صحیح ده چي زما زړه حاضر نه دی لیکن زه ژبه د ذکر الهي څخه څنګه بنده کړم؟ آخر د خاموشۍ څخه خو ذکر الهي غوره دی چي بې شکه باچاهي ته پر صرّافي او صرّافي ته پرخاکروبي (جاروکښي) فضیلت حاصل دی، لیکن دا څه ضرروي ده چي باچاهي نه ملاوېږي نو صرّافي دي هم پرېښول سي او خاکروبي دي اختیار کړل سي؟

**د توبې نه کولو اسباب او د هغو علاج:** پوه سه! چي کوم سړی چي د سره توبه نه وکړي د دې علاج دا دی چي دی دي سوچ وکړي او د دې حقیقت دي څخه ځان خبر کړي چي آخر دا کومي وجهي دي او کوم اسباب دي چي دی يې پر ګناه دومره مُصِر کړی دي چي د توبې طرف ته يې بالکل خیال نه راځي؟ دغه موږ بنیو چي پنځه اسباب دي: او دا چي د هر يو جلا جلا علاج هم ذکر کوو:

(۱) اولنی سبب دا دی چي پر آخرت د دوی ایمان نه وي يا يې په دې باره کي شک شبه وي، او د دې علاج خو موږ مخکي په رکنِ مهلکات د غرور په باب کي بیان کړی دي.

(۲) دویم سبب دا کېدای سي چي شهوت دی داسي غلام کړی وي او خواهشاتو يو داسي مغلوب کړی وي چي د پرېښودلو همت پکي پاته نه وي دنیاوي لذتونه داسي د ده پر نفس مسلّطه سوي وي چي د آخرت بېره د ده څخه رخصت سوې وي، او که ربښتیا پوښتنه کوې نو د ډېرو خلګ حجاب دا خواهشات وي، په دې وجه نبي ﷺ فرمایلي دي چي: الله ﷻ کله اول اول دوږخ جوړ کړی نو حضرت جبرئیل ﷺ ته يې وویل لاړ وګوره! نو چي ده وکتل نو ويې ویل ستا په عزت قسم دی! چي کوم سړی به وي چي د ده لیدل خو پرېږده صرف په صفت اورېدلو به يې دومره ونه بېرېږي چي دې ته د راتلو څخه به تېښتي او هر ممکن کوشش به کوي چي د دې څخه خوندي سي، بیا الله ﷻ د دوږخ څخه شاخوا خواهشات او شهوات پیدا کړل او جبرئیل ﷺ ته يې وویل وګوره! نو هغه وویل چي آیا داسي څوک به وي چي د دوږخ ته د تللو څخه خوندي سي، بیا يې د جنت پیدا کولو څخه وروسته جبرئیل ﷺ ته د کتلو حکم وکړی، نو جبرئیل ﷺ وویل څوک به وي چي د دې صفت به واوري او د ده طرف ته به منډي نه وهي؟ بیا الله ﷻ هغه مکروهات او سختیاني او لوړي ژوري کومي چي د جنت په لاره کي حائلي دي د جنت څخه شاوخوا پیدا کړې او جبرئیل ﷺ ته يې د کتلو حکم وکړی نو هغه ویل ستا په عزت قسم دی! يو سړی به هم دې ته ولاړ نسي، ځکه چي دا تکالیف

کوم چي په دې لاره کي حائل دي انتهائي خوفناکه دي.

(۳) دریم سبب دا مفروضه وي چي دآخرت خو فقط وعده ده او دنیا نقده ده، او د بنده رجحان په عامه توګه سره په فطري توګه د نقد طرف ته زیات وي، او د کوم شئ چي وعده ده دغه د ستر ګو څخه پناه وی، او کوم شئ چي د ستر ګو څخه لیري وي هغه خامخا د زړه څخه لیري وي.

(۴) څلورم سبب دا وي چي مؤمن خو د توبې اراده همیشه لري لېکن د تأخیر او سُستی څخه کار اخلي، او دا وایي چي صبا به توبه وکړم بس چي دا یو خواهش پوره کړم بیا به د دې نوم هم وا نه اخلم.

(۵) پنځم سبب دا خیال دی چي دا څه ضروري ده چي ګناه به په لازمي توګه سره انسان دوږخ ته بیایي، ځکه چي الله ﷻ خو یې پخپل رحمت سره معاف کوي هم، چي رحیم او کریم دی، او پخپل حق کي بنده په ځانګړې توګه نېک ګمانه وي نو کوم خواهش چي هم پیدا سي نو وایي چي الله ﷻ معاف کوونکی دي، او دغه رنګه د رحمت الهي اُمیدونه کوي.

**فصل: که یو سړی د ټولو ګناهونو څخه توبه ونه کړي بلکي فقط د یوې ګناه څخه توبه وکړي:** د توبې په باره کي په یوه مسئله کي د علماؤ اختلاف دی او هغه دا چي که یو سړی د ټولو ګناهونو څخه توبه ونه کړي بلکي د یوې ګناه څخه توبه وکړي نو دې ته به جائز وویل سي که نه؟ د یوې ډلي په نزد دا ناممکنه ده چي یو سړی د زنا څخه خو تائب سي او شراب څښي، نو که په ترک د زنا سره د ده مراد ترک د ګناه وي نو شراب څښل ګناه نه ده؟ نو دا خو داسي ده چي لکه یو سړی چي د شرابو د څښلو څخه توبه وکړي او د ګیلاس څخه توبه نه کوي، حال دا دی چي تر څو پوري د شرابو د حرمت تعلق دی د غه لپوي او که زیات حرام دي، او دا حال دګناه هم دی، لېکن د دې صحیح صورت دا دی چي د دې ډلي خیال ته بالکل صحیح نه ویل کیږي ځکه چي ممکنه ده یو سړی زنا د شرابو څخه زیاته ګناه ګڼي او دی زنا ډېره بده وګڼي توبه ځیني وکړي او دا هم ممکنه ده چي د ده په نزد شراب د زنا څخه ډېر بد وي بلکي د زنا نمه وار شراب وي نه چي صرف زنابلکي د نورو ګناهونو تحریک هم د دې څخه کېدای سي، دغه رنګه ممکنه ده یو سړی د غیبت څخه توبه وکړي او د شرابو څخه یې ونه کړي او وایي چي دغیبت تعلق د مخلوق سره دی او د شرابو تعلق زما د ذات سره دی، یو صورت دا هم کېدای سي چي شراب کم کړي لېکن بالکل یې ترک نه کړي او وایي چي زیات څښل زیاته ګناه ده نو زه ځیني ضرور ځان ساتم، لېکن په بشپړه توګه شراب پرېښول زما په وس کي نه دي، نو د کثرت څخه قلت طرف ته راتلای سم،او دا لازمي خو نه ده چي شیطان په یو کار کي پر ما غالبه راسي نو په هر کار کي دي غالبه راځي، په کوم کار کي چي زه عاجزه ه نه یم په هغه کي د شیطان موافقت ولي

وکړم، نو دا تولي خبري عين ممکنه دي،او په حديث شريف کي راغلي دي چي: تائب د الله ﷻ دوست وی، او الله ﷻ چي کوم دا فرمايلي دي: إِنّ الله يحب التوابين [البقره] (بې شکه الله ﷻ توبه کوونکي دوستان لري) نو د دې څخه په ښکاره دامطلب اخيستل کيږي چي درجه د محبت الهي هغه ته حاصليږي کوم چي د ټولو ګناهونو څخه تائب سي، او هغه چي وايي چي د بعضو ګناهونو څخه توبه کول صحيح نه دي د هغه مراد هم دا دی ليکن په اصل کي د هري صغيره ګناه څخه تائب کېدل د هغه ګناه کفاره کيږي په کوم سر چي دغه ګناه ختمه سي او د ټولو ګناهونو څخه په يوه وخت توبه کول ګرګران هم دي په دې وجه زينه په زينه کول کيږي، او څومره چي حاصليږي دومره ورته ثواب ملاويږي، داسي نه ده چي تر څو پوري د ټولو ګناهونو څخه توبه ونه وي کړې ثواب نه حاصليږي بلکي د توبې په قدر به ثواب حاصلوي.

## دويم اصل: د صبر او شکر په بيان کي

پوه سه! چي د صبر څخه ماسوا د توبې صحيح کېدلو سوال هم نه پيدا کيږي او صرف پر توبه نو څه موقوف دي، يو فرض هم په صحيح طريقه سره تر هغه وخته نسي ادا کېدای تر څو پوري چي صبر اختيار نه کړل سي او د ګناه ترک کول په اصل کي صبر کول دي داوجه وه چي د نبي ﷺ څخه کله پوښتنه وسوه چي ايمان څه ته وايي؟ نو وې فرمايل: صبر ته، او د يو بل حديث په روی سره صبر ته نيم ايمان ويل سوي دي او د صبر د فضيلت اندازه د دې څخه کېدای سي چي الله ﷻ په قرآن پاک کي داويا ٧٠ وارو څخه په زياتو ځايونو کي د صبر په باره کي ارشاد فرمايلي دي، او د هري درجې او فضيلت لوړوالی يې په صبر پوري تړلی دي، فرمايي: وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوا [السجدة: ٢٤] (او موږ په دوی کي هغه خلک حقداره جوړ کړل کوم چي هدايت حاصلوي زموږ په حکم سره د صبر په ذريعه)، او د بې حسابه اجر او ثواب دارومدار يې صبر مقرر کړی لکه چي فرمايي: إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ (الزمر: ١٠) (صابرانو خلکو ته د دوی اجر بې حسابه ورکول کيږي)، دغه ډول د صابرانو سره يې داوعده وفرمايله چي زه ستاسو سره يم، فرمايي: إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ (بې شکه الله ﷻ د صبر کوونکو سره دی)، الله تعالی درود، رحمت او هدايت درې سره نعمتونه صبر کوونکو ته يو ځای ورکړل د بل چاد پاره داسي نه دي سوي: أُولَئِكَ عليهم صَلَوَاتٌ مِنْ

رَبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُونَ (البقرة: ١٥٧) (پر صابرانو باندي د الله ﷻ د طرف څخه درود، رحمت دی او دوی د هدایت موندونکي دي)، د صابر دا فضیلت دی چي دی الله ﷻ عزیز او ګران لري او هر چا ته دا نعمت نه ملاوېږي خپلو دوستانو ته لږ غوندي ورکوي، د نبي کریم ﷺ ارشاد دی: الله ﷻ چي کوم نعمتونه تاسو ته در کړي دي په دې کي یقین او صبر یې ډېر کم در کړی دي، او نبي ﷺ فرمایي: چي صبر یوه خزانه ده د جنت د خزانو څخه. او ویې فرمایل: صبر که یو سړی وای نو مرد کریم به وای، د الله ﷻ د صابرانو سره محبت وي، پر حضرت داؤد ﷺ باندي وحي را نازلي سوې چي: په اخلاقو کي صرف زما اقتدا کوه، یادساته چي زما د اخلاقو یو صفت دا هم دی چي زه "صبور" یم، د حضرت عیسی ﷺ قول دی چي: تاسو څه غواړئ دغه به صرف په هغه صورت کي حاصلوئ کله چي تاسو پر هغه صبر وکړئ کوم چي تاسو نه غواړئ، نبي ﷺ د انصارو یوې ډلي ته و کتل پوښتنه یې څیني وکړه: آیا تاسو مؤمنان یاست؟هغوی وویل: ها! موږ مؤمنان یو. ویې فرمایل: د دې نښه څه ده؟ هغو عرض وکړی: موږ پر نعمت صابره او پر مصیبت شاکره یو، او د الله ﷻ پر قضاء او قدر خوشحاله یو، ویې فرمایل: قسم دی په رب د کعبې چي تاسو په رشتیامؤمنان یاست، او د حضرت علي ﷺ قول دی چي صبر د ایمان سر دی لکه چي د بدن سر وي، د چا چي سر نه وي د هغه ګویا بدن نسته، دغه ډول په چا کي چي صبر نه وي په هغه کي ایمان هم نسته.

## د صبر حقیقت او پېژندنه

: پوه سه! چي د صبر خاصیت او ماده صرف بنده ته ورکول سوې ده او حیواناتو و ځاروېانو ته دا شئ حاصل نه دی ځکه چي دوی ناقص دي او فرشتې د صبر محتاجه نه دي ځکه چي دغه کاملي دي او د خواهش او شهوت څخه بې نیازه دي او وُحوش او ځاروېان د شهوت څخه مغلوب او مسخَره دي بلکي په دوی کي خو د خواهش او شهوت څخه ماسوا نور څه سته نه، او د دوی د نفس تقاضا صرف تر شهوت او خواهش پوري محدوده ده، او فرشتې په عشق الهي کي د مستغرق کېدلو په وجه د هر ډول بندیز څخه خوندي دي نو نه ورته دمدافعت یو مصیبت سته او نه و رته د صبر څه ضرورت سته، لېکن د انسان معامله د دې دواړو څخه مختلفه ده، انسان خو الله ﷻ په ابتداء کي پیدا خو د ځاروېانو په صفت کړی یعني د خوراک چښاک اخیستولو بنایست او زینت او لهو لعب، خواهش یې پر ده غالب کړی او کله چي بالغ کیږي نو د فرشتو د انوارو څخه یو نُور په ده کي ښکاره کېدل شروع کیږي د کوم په رڼا کي چي ده ته د کار د انجام مشاهده او د کار د عاقبت څرک ښکاره کېدل شروع سي، او د

الله ﷻ د طرف څخه دوې فرشتې پر ده مقرري کړل سي او دا هغه خاص شئ کوم ته چې شاروېانو په حصه کي را نه غلی د دغو دوو فرشتو څخه يوه فرشته د ده پرهدايت مأموره وي او د ده لارښوونه کوي او په دې ډول سره د هغې د انوارو څخه يو څه نُور په دې بنده کي چليږي، او دا هغه نُور وي چې دی د کار د انجام يا د کار د مصلحت د کتنه پورته څخه اګاه کوي، تر دې چې په دې نُور سره هغه معرفت ده ته حاصل سي د کوم په ذريعه سره چې دی خپل ذات نه بلکي د الله ﷻ د ذات د پېژندلو هم قابل سي او دا حقيقت ده ته ښکاره سي چې د خواهشاتو انجام هلاکت او بربادي ده، او د دې ښه او نبايسته معلومېدل صرف عارضي شئ دي او دا حقيقت ده ته ورځ په ورځ ښکاره کيږي چې د خواهشاتو څخه حاصل سوی لذّت د يو وخت شئ دي چې د سترګو په رپ کي تېرېږي، او د ځان څخه وروسته د غم اوتکليف يوه دنيا پرېږدي، په کومه کي چې تر مُدو مُدو پوري بيا انسان مبتلاوي، او د دې هدايت څخه ځاروي محرومه وي.

لېکن يخپله د بنده د پاره دا هدايت هم کافي نه وي ځکه چې د ده صرف د دې حقيت څخه خبرېدل چې شهوت او خواهش دغم او تاوان سبب دی تر هغه وخته بېکاره او بې فائدې دی تر څو چې دا معلومه نه وي چې د دې غم او نقصان څخه خلاصون څنګه حاصلېدای سي؟ ځکه چي ناروغه که په دې پوه سي چي مرض د ده د پاره د خطرې او تاوان سبب دی نو څه فائده ده کله چي ده ته دا معلومه نه وي چي د دې خطرې د لېري کولو او نقصان څخه د خوندي کېدلو طريقه څه کيدای سي؟ نو الله ﷻ دغه بله فرشته د دې د پاره مقرره کړه چي هغه فرشته ده ته د دې خبري همّت او طاقت هم ورکړي چي د دې نقصان څخه محفوظه سي او د ده تائيد او امداد هم کوي چي دا شهوت او خواهش عملاً ترک هم کړي کوم چي د ده د خيال يا علم مطابق د ده د پاره نقصاني ثابتېدای سي نو په بنده کي چي يې کوم ځای د شهوت پرستی قوّت پټ ايښی دی هلته يې دا قوّت هم ورکړی دي کوم چي د دې شهوت پرستی دروازه بنده کړي، چي بنده يې د ضرر او زيان څخه خلاصون حاصل کړي او د مخالفت دا قوّت د فرشتو د لښکر څخه دی او پر دې بناء دا انسان د قوّت دين موجب او د قوّت شهوت د هوا وهوس موجب مقرر کړل سو، نو دا دواړه لښکري هر وخت په جنګ کي اوي او د دوی دا جنګ هميشه جاري وي، د ملائکو د لښکر کوشش دا وي چي بنده د شهوت پرستی څخه خوندي سي، او د شيطان د لښکر کوشش وي چي په مستقله توګه په شهوت پرستی کي مبتلاوي، او دا غريب د دې دواړ قوّتونو په مېانځ کي حيران او پرېشانه دا سوچ کوي چي څه وکړي؟ په هر حال نتائج خلمخا مرتّب او ښکاره کيږي، که دوجه د خواهش سره بنده په جنګ کولو کي په وجه د دين ثابت قدم پاته

سي او لاس ځيني واخلي نو دې ته صبر وايي، او که په ثابت قدمي سره وجه د شهوت مغلوبه هم کړي نو دې ته ظفر وايي، او تر څو پورې چې د وجه هوا (خواهشات نفس) سره په جنګ کې مصروفه وي، دې ته: جهادِ نفس وايي، نو معنی د صبر دا ده چې د وجه د هواَ په مقابله کې پر وجه د دين ثابت قدم او قائم پاته سي، او کوم ځای چې دا دواړه لښکري مخامخ موجودې نه وي هلته صبر هم موجوده نه وي، او داوجه ده چې فرشتو ته د صبر حاجت نه وي، او په څارويانو او بچيانو کې د صبر قوّت نه وي.

## صبر ته نيم ايمان او روژې ته نيم صبر ولې ويل سوي دي؟

دلته دا شئ په ذهن کې کښېنول ضروري دي چې ايمان د يو ځانګړي شئ نوم نه دی، بلکې د دې ډېر ښاخونه دي، اوبيا مخکې د دې ډېر اقسام دي نو په حديث شريف کې راغلي دي چې: دايمان دواويا۷۰ بابونه دي او په دوی کې د ټولو څخه لوړ باب: لا اله الاّ الله دی او کمه درجه يې دا ده چې دلارې څخه ضررمن شئ ليرې کړل سي، دا صحيح ده چې د ده اقسام ډير دي لېکن د دې اصول د درې جنسو څخه زيات نه دي او د دريو جنسو څخه يو ته معرفات بل ته حالات او بل ته اعمال وايي، او د ايمان د ډېرو مقاماتو څخه يو مقام داسي نسته کوم چې د دې دريو څخه د باندې وي، مثلاً د توبې حقيقت تلافي ده او پښېماني د زړه د حالاتو څخه يو حالت دی او د دې حالت سرچينه د دې خبري معرفت دی چې ګناه زهرِ قاتل دی، او د دې تلافي (تدارک) دا دی چې بنده د ګناه څخه ډډه وکړي په عبادت کې مشغوله سي، نو دا حالت (تلافي) او معرفت (د نقصان څخه خبرتيا) اوعلم (په عبادت کې مشغولېدل) دايمان مختلف اجزاء دي او د دې درې سره وو د مجموعې نوم ايمان دی، بعضې وخت د دې تخصيص په معرفت سره کيږي ځکه چې اصل بيخ خو معرفت دی او د حالت ظهور په معرفت سره کيږي او د دې حالت څخه چې کوم شئ پيدا کيږي، عمل ور ته وايي نو که معرفاتو ته درخته ووايي نو حالاتو ته به د دغې درختي د معرفت ښاخونه وايي او د حالتونو په تغيّر سره چې کوم عملونه واقع کيږي هغو ته د دې درختي مېوه ويل کيږي، او دغه به ټول ايمان د دوو شيانو مرکب پاته سي يعني ديدار (معرفت) او کردار (عمل) او علم د صبر څخه نسي جلا کېدلای نو ګويا کردار د صبر دويم نوم سو، نو په ديدار او کردار کې يو ګويا صبر دی نو په دې وجه صبر نيم ايمان دی.

او څنګه چې صبر د دوو شيانو څخه کيږي يعني د شهوت او غصّه (غصې څخه) او روژه د شهوت څخه صبر کولو ته وايي، په دې وجه روژه نيم صبر دی.

د صبر د نیم ایمان کېدو یو اړخ دا هم دی: چي که ټول نظر پر کردار او عمل وسي او ایمان د دې څخه عبارت کړل سي نو د تکلیف او محنت په اعتبار سر د مسلمان کردار ټول صبر جوړېږي، او که د ناز او نعمت موقع حاصله وي نو د صبر ځای شکر اخلي (نو په دې لحاظ سره د ایمان دوه جزءه سول صبر او شکر) نو ثابته سوه چي صبر نیم ایمان دی.

**د صبر په هر حال کي ضرورت سته:** پوه سه! چي په یوه حالت کي هم انسان د دوو شیانو څخه خالي کېدای نسي یعني د دوو حالتونو څخه به په یوه حال کي همیشه وي، او هغه داسي چي کوم حالت ده ته ورپېښ وي یا خو به د ده د خواهش موافق وي یا مخالف، او د صبر محتاج به دی په هر حال کي وي، د خوهش موافق کېدلو څخه مراد دا دی چي مثلاً مال، جاه، نعمت او روغتیا، ښځه، بچیان او نور به موجود وي او دا هغه شیان دي د کومو په کېدلو سره چي صبر کول د نورو شیانو په نسبت زیات اهم دی ځکه چي په دې صورت کي که دی د ضبط څخه کار وانخلي او په عیش او عشرت کي پرېوځي او زړه په دې کي ومښلوي نو لازمي نتیجه به یې دا وي چي په زړه کي به کبر غرور او سرکښي په ډول بداخلاق پیدا سي، بزرگانو ویلي دي چي په تکلیف او غم خو صبر هر څوک کوي، لېکن د خوشحالی او عافیت په زمانه کي صبر کول صرف د صدّیقانو کار دی، څرنګه چي به دا صحابو ﷺ سره کله د ضرورت څخه زیات مال جمع سوا و د نعمت فرواني به سوه نو دوی به همیشه دا ویل: چي تر څو پوري په غم او تکلیف کي وو د صبر په نعمت سره پوره او مالامال وو، دا نعمت او طاقت چي ملاؤ سو نو صبر کول مشکل کېږي، او د الله ﷻ ارشاد هم دا دی چي: وَاعْلَمُوا أَنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ [الانفال:٢٨] (پوه سئ! چي ستاسو مال او اولاد ستاسو د پاره امتحان دی) غرض دا چي د مال او نعمت د شتون په وخت کي صبر کول ډېر گران وي په دې وجه خو ویل سوي دي چي د پاک لمنی د ټولو څخه غټه درجه دا ده چي الله ﷻ نعمت د سره ورنه کړي، پاته سوه پر نعمت د صبر مسئله نو هغه دا ده چي بنده د نعمتونو سره زړه ونه لګوي او په خوشحالي کي د ځانه بې خبره نسي، او دا دی ګڼي چي دا خو مستعار شئ دي چي ډېر ژر به زما څخه واخیستل هم سي، بلکي د ټولو څخه غوره خو دا ده چي نعمت یې د سره ونه ګڼي چي کېدای سي دا تصور پخپل ځای د قیامت په ورځ د ده په درجاتو کي د خسارې موجب جوړ سي نو داسي دي کوي چي د دې په شکر او شکرانې کي دي مشغوله وي چي مال وي که صحت یا بل یو نعمت، په هر نعمت د الله ﷻ حق پوره اداء سي، اوس دا ټول کارونه داسي دي په کومو کي چي د صبر حاجت دی، او کوم احوال چي د

---

طبيعت موافق نه وي هغه پر درې قسمه دي: (١) هغه چې دانسانانو په اختيار کي وي مثلاً عبادت کول يا گناه نه کول (٢) هغه چې د ده په اختيار کي نه وي مثلاً تکليف، بلا، مصيبت او نور (٣) هغه چې د کومو په اصل ده ته اختيار نه وي ليکن بدله يا انتقام اخيستل او د مدافعت کوشش کول يې په اختيار کي وي، مثلاً څوک ورته تکليف ورسوي او دی بدله او غچ ځيني واخلي او نور . . .
اوس اول قسم کوم چې د ده په ا ختيار کي دي او تعلق يې د عباداتو او ترک د گناه سره دی، نو په اصل کي دا اختيار د صبر طالب وي، ځکه چې ځيني عبادتونه د سُستی او کاهلی په وجه گران وي مثلاً لمونځ روژه او نور، بعضي عبادتونه د بخل په وجه سره گران وي مثلاً زکوٰة، صدقه. او بعضي د دواړو په وجه سره گران وي مثلاً حج، او په دوی کي يو هم د صبر څخه بغير ممکن نه دی.
دويم قسم چې بنده پکښي بې اختياره وي، لکه دخلکو دلاسه په تکليف کي مبتلا کېدل يا يې په خبرو باندي په مصيبت کي گرفتاره کېدل اونور . . . ، هغه خبري دي کومي چې د اصل په لحاظ سره د ده په اختيار کي نه دي ليکن د بدلې اختيار ده ته ضروري حاصل وي نو د صبر حاجت دلته هم دی او ډېر دی يعني که بدله وانه اخلي نو ځکه چې صبرو کړي او دا صبر ډېر مشکل دی او که اخلي يې نو د دې خبري خيال به ساتل وي چې د حد څخه زيات نسي، د يوه صحابي قول دی چې موږ هغه ايمان ايمان نه گڼو په کوم کي چې دخلکو څخه د تکليف او رنځ په رسېدلو باندي د صبر کولو همت نه وي، الله ﷻ په دې وجه نبي ﷺ ته وېلي وو چې هغه خلک کوم چې تا ته آزار رسوي ته هغو ته معافي کوه او په خدای بروسه ساته!، دارنگه د الله ﷻ ارشا دی دی چې: دا خلک چې کومي خبري کوي پر دې صبر کوه! او په ښه طريقه سره د دوی څخه جلا کيږه [المزمّل]. او د نبي ﷺ ارشاد دی چې کوم سړی تاسو محرمه کوي تاسو ورته تحفه (سوغات) وراندي کوئ او کوم چې در سره بدي وکړي تاسويې جواب په نېکی سره ورکوئ، د صبر لوړه درجه صرف صديقينو ته حاصليږي.
او دريم شئ کوم چې د اول څه تر آخره پوري د انسان د اختيار د دائرې څخه دباندی دی هغه ناڅاپه مصيبت دی، مثلاً د اولاد مړ کېدل دمال ضائع کېدل د انساني بدن د يو اندام بيکاره کېدل يا دغه ډول د يو بلې اسماني بلا نازلېدل او نور، پر دې ډول مصيبت او بلا د صبر څخه په کار اخيستو کي چې کوم ثواب او فضيلت حاصليږي د دې څخه زيات په بل صبر سره نسي حاصليدای، ابن عباس ؓ وايي چې په قرآن شريف کي د صبر ذکر په درې قسمه سره راغلی دی يوه هغه صبر چې پر عبادت کول کيږي او د دې درې سوه درجې دي، بل د حرام شئ څخه صبر او د دې شپږ سوه درجې دي

او دریم په ابتداء د مصیبت باندي صبر او د دې نهه سوه درجې دي او دا هغه صبر دی کوم ته چي د صدیقینو صبر وایي، او په دې وجه نبي ﷺ دعاء کړې وه چي: اې خدایه! موږ ته داسي یقین را کړې چي د دنیا ټولي بلاګاني او مصیبتونه پر موږ آسانه سي (یعني صبر پر وکړای سو) او فرمایي: دالله ﷻ ارشاد دی چي: زه کوم بنده په مرض کي مبتلا کووم که دی پر دې صابره سي او نورو ته د دې ګیله شکوه نه کوي نو زه د دې صبر په بدله کي (أ) که ده ته صحت ورکړم نو د مخکي څخه به ښه بدن او پوست ورکړم، (ب) او که صحت ورنه کړم نو د دې دنیا څخه یې د خپل رحمت په لمن کي یووسم.

او په دې ضمن کي داهم یاد ساتل پکار دي چي په غم او مصیبت کي چي کوم خلک غمجن او پرېشانه مره غوندي وي او ژاړي نو په دې ژړا سره د صبر ثواب نه زائله کیږي بلکي دا په هغه صورت کي زائله کیږي کله چي یو سړی جامي څیري او چغي وهي، ګیلې او شکایتونه کوي، د نبي ﷺ د زوی حضرت ابراهیم ؓ انتقال وسو نو دوی وژړل نو خلکو پوښتنه څیني وکړه چي تاسو خو د دې ممانعت فرمایلی دی، ارشاد یې وفرمایل: دا هغه ژړا نه ده، دا خو رحمت دی او د خدای رحمت پر هغه چاري چي پخپله رحیم وي، او بزرګانو ویلي دي چي د صبرِ جمیل تعریف دا دی چي د مصیبت په خاوند کي او په بل سړي کي فرق ونه کړل سي یعني چي په مصیبت کي مبتلا وي د هغه په حالت کي څه تغیر رانسي، نو جامي څیرل، سر او مخ وهل، چغې او نارې وهل او نور حرام دي، بلکي پکار خو دا ده چي خپل عام حالت هم بدل نه کړي، په پټو (څادر) کي مخ پټول، لنګوټه کوچنی کول هم په دې کي شامل دي او داسي کول نه دي پکار.

**د صبر یوه عجیبه قصه**: رمیضه امّ سلیم ؓ وایي چي زما خاوند ابو طلحه ؓ د یو کار د پاره یو ځای تللی وو، او د هغه په غیرِ حاضری کي زما زوی وفات سو ما پټو (څادر) پر واچولو زما خاوند چي واپس راغلی پوښتنه یې وکړه چي د بچي مرض څنګه دی؟ ماورېل نن شپه چي د هغه حالت څو مره ښه دی دومره مخکي نه وو، او هغه ته مي ډوډۍ کېښېښوله ډوډۍ یې ښه په اطمینان وخوړله، بیا ما د معمول څخه زیات ښایست او سینګار وکړی تر دې چي زما خاوند خپل حاجت هم پوره کړی، بیا ورته ما وویل چي د فلاني همسایه څخه چي ما خپل په سوال ورکړی شئ واپس وغوښتي نو هغه داسي چغي او نارې جوړي کړي او ژړا یې کوله زما خاوند وویل دا څومره احمق سړی دي چي کوم شئ د ده نه وو نو په واپس کولو یې ژړا د څه د پاره کوله؟ نو ما وویل چي ستا هغه

کوچنی مریض زوی کوم چي ستا سره د الله ﷻ یو امانت وو هغه تا ته مستعار در کړی وو هغه الله ﷻ
پاک واپس اخیستی دي، زما خاوند فوراً ورېل: انالله وانا الیه راجعون دسهار په وخت یې دا تړوله
واقعه نبي ﷺ ته بیان کړه نو نبي ﷺ وفرمایل الله ﷻ دي دا تېره شپه تا ته مبارکه کړي څومره
خونلوره شپه وه، بیا یې وفرمایل: ما اوس اوس جنت ته وکتل نو رمیضه دا بوطلحه بي بي مي
پکښې ولیدله.

نو په دې تړولو خبرو کي کومي چي لوړي بیان سوې تاولیدله چي صبر هغه شئ دي د کوم څخه چي
انسان په یووخت کي هم بې نیازه کېدای نسي، بلکي که د هر څه څخه ځان خلاص کړي گو ښه
نشین سي خو بیا هم په زړگونو وسوسې به د ده په زړه کي راپورته کېږي او بیا داوسوسې که دمباحو
شیانو په باره کي هم وي خو د نقصان سبب وي ځکه عزیز عمر چي قیمتي سرمایه ده دغه خوضائع
کوي، نو د دې څخه د محفوظه کېدلو غوره تدبیر دا دی چي بنده خپل ځان په تسبیح او اورادو کي
مشغوله کړي، او په لمانځه کي هم کوشش کوي چي داکیفیت پیدا نسي که په لمانځه کي نه وي نو
په داسي کار کي دي ځان محوه کړي چي پوره توجّه یې هغه ته سي. په حدیث کي دي چي بېکاره
او فارغ ځوان د الله ﷻ دښمن دی، او دا ځکه چي دځوان بېکاره کښېنستل خامخا د ده په زړه کي
وسوسې اچوي او شیطان په خیالاتوکي ده ته ارځي، نو زړه یې د شیطان قرارگاه جوړه سي او د
وسوسو هجوم او گنه گونه پرده جوړه سي، دغه وخت که دخدای په ذکر سره هم د دې وسوسو څخه
نه خلاصیږي نو پکار دي چي په داسي کسب یا خدمت یا کار کي ځان مشغوله کړي چي توجّه یې د
دې فکرونو څخه آزاده سي، داسي سړي ته خلوت نشیني د فائدې پر ځای نقصان ورکوي نو دا دي
هیڅکله هم نه اختیاروي بلکي د ده د پاره دا غوره ده چي د زړه پر ځای بدن په یو کار کي مشغوله
وساتي چي داسي به زړه پخپله داندېښنو او وسوسو څخه بې فکره سي.

**د صبر علاج**: یاد ساته! چي د صبر خو څه یو باب نه دی، د دې ډېر بابونه دي او د هر باب خپل خپل
مشکلات او تکلیفونه دي او د هر یوه علاج هم جلا جلا دی که څه هم د علم او عمل معجون (درمل)
د دې مؤثر علاج دی، او په رکن د مهلکاتو کي چي څه موږ بیان کړي دي دغه د صبر کولو دوائي ده،
بیاهم دلته په طریقه د مثال موږ یوه نمونه وړاندي کوو چي نور ټول بابونه هم پر دې قیاس کړل سي او
علاج یې وسي:
دا خو موږ ښوولې ده چي د شهواتو د باعث په مقابله کي د دین پر باعث باندي ثابت قدم پاته کېدلو

ته صبروا یي، او د دې دواړو باعثو او وجوهو په مینځ کې جنګ جاري وي، اوس ښکاره ده چې که یو سړی د دوو خلګو په جنګولو کې د یو تن پر غالب کېدلو راضي وي او دویم مغلوب کول غواړي، نو د ده طریقه به دا وي چې د چا فتح ورته منظوره وي د هغه سره به مدد کوي،او د چا شکست چې غواړي د هغه د کمزوري کیدلو کوشش به کوي او هیڅ ډول مدد به ور سره نه کوي.

اوس که شهوت د جماع پر ده دومره غالب سوی وي چې دی یې کنټرول کولای نسي نو ده ته پکار دي چې سترګې د نظر څخه او زړه د خیال څخه منع کړي او که دا ممکنه نه وي او د صبر طاقت نه لري نو بیا دي داسي وکړي چې دشهوت اسباب دي کمزوري کړي او د دې درې طریقې کېدای سي که معلومه سي چې د شهوت وجه او سبب غوړ او قوي خوراکونه دي د کوم چې دی عادي دی نو پکار دي چې فرج د دې مدد څخه محرومه کړي او روژې نیول شروع کړي او د شپې په لږ خوندي وچه ډوډۍ ګذاره کوي او قوّتناکه خوراکونه ترک کړي، دویم دا چې هغه اسباب لیري کړي کوم چې شهوت راپورته کوي، مثلاً که د ښه صورت په لیدلو یې شهوت راپورته کیږي نو ګوښه نشیني دي اختیار کړي او سترګي دي د کتلو څخه منع کړي، او په هغو ځایونو کي دي نه درېږي چې هلته ښځې او بې ږیري ښایسته هلکان تېرېږي، دریم دا چې مباح (روا) ډول شهوت دي د تسکین ذریعه جوړه کړي چې د حرام شهوت څخه خلاصون تر لاسه کړي، نفس خو دیو مست وحشي حیوان په ډول دی چې د ده تابع او مسخر کول یا خو په خوراک بندولو کیږي، یا چې داسي ځای یې ساتي چې خواک نه ورښي یاور ته دومره خواک ورکوي چې په مشکله د ده د ډاره کافي وي، نو د شهوت د دې څخه غوره بل علاج نسته چې اسباب د شهوت کمزوري کړل سي.

دغه ډول د دین د باعث قوي کولو هم درې طریقې دي: یوه خو دا چې ده ته د شهوت سره د جنګ کولو د فائدو او برکتونو لالچ ورکړي، اوبیا د هغو احادیثو مطالعه په غور او فکر سره وکړي په کومو کي چې د شهوت څخه د صبر کولو فضیلتونه بیان سوي دي او دهغه عظیم ثواب ذکر پکښي سوی دي کوم چې به صبر کوونکي ته حاصل وي، کله چې ایمان پر دې خبره پوخ سي چې د شهوت لذت صرف د یو ګړی شئ دي او د صبر بدله به د یو ابدي حکومت په صورت ورکول کیږي چې د لذّت به یې چیري زوال نه وي، نو باعث او وجه د دین چې د شهواتو د مخالفت عادي جوړېږي نو درجه په درجه او کراره کراره تر دې چې دی د قوي څخه قوي تر سي ځکه چې کله یو سړی طاقتور جوړېدل غواړي نو داسي کوي چې قوّت ازمایي، او د قوّت کار کوي او کرار کرار پکښي اضافه کوي، او کوم سړی چې د یو ډېر زوور سړي سره د مقابلې اراده لري ده ته دا پکار دي چې اول تر ځان د کمزوري

خلکو سره زور معلوم کړي او د خپل زور او قوّت اندازه وکړي چي په طاقت کي داضافې دا تدبير کارگر ثابت کيدای سي، داوجه ده چي کوم خلک سخت او ستونزمن کارونه کوي د دوی طاقت هم زياتيږي، نو په هر کار کي د صابر او ثابت قدم پاته کېدلو دا تدبير دی. (کوم چي کامياب کېدای سي).

**د شکر فضيلت او حقيقت**: دا يادلره! چي شکر يو عزيز مقام دی او د ده درجه انتهائي لوړه او اعلیٰ ده چي رسېدل ورته د هر سړي د وس خبره نه ده ځکه الله ﷻ فرمايي: وَقَلِيلٌ مِنْ عِبَادِيَ الشَّكُورُ (السبأ:١٣) (زما په بندگانو کي شکرگذاره ډېر لږ دي) او ابليس هم پر بنده د ټولو څخه غټ طنز (تمسخر) دا کړی وو چي: وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شَاكِرِينَ (الاعراف:١٧) (ته به په دوی کي زياتره شاکره ونه وينې)

دلته دا خبره يادساتل پکار دي چي کوم صفتونو ته موږ د منجياتو نوم ورکړی دي دغه پر دوه قسمه دي :يو هغه چي د لاري د دين د مقدّماتو حيثيت لري او مقصود بالذات نه دي، مثلاً توبه صبر، خوف، زهد، محاسبه او نور، چي دا ټول صفتونه په اصل کي وسيلې دي د هغه عظيم کار کوم چي د دوی څخه ماسوا دی، او دويم ډول پر مقاصدو او نهاياتو باندي مشتمل دی او مقصود بالذات دي او د ځان څخه ماسوا د يو کار د پار د وسيلې يا ذريعې حيثيت نه لري مثلاً محبت، شوق، رضا، توحيد، توکّل او نور، او په دوی کي ديوه نوم شکر دی او کوم شئ چي مقصود بالذات وي هغه په آخرت کي باقي پاته کېدونکي وي او په داسي باقي پاته کېدونکو شيانو کي شکر هم شامل دی لکه چي د الله ﷻ ارشاد دی: وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ (يونس:١٠) (او د دوی آخره دعاء به وي چي ټول تعريفونه الله ﷻ لره دي چي رب د مخلوقاتو دی) نو دې ته په کتني سره پکار دا وه چي موږ شکر د کتاب په آخر کي ذکر کړی وای لېکن د صبر سره د شکر ژور تعلق دی په دې وجه يې موږ دلته بيانوو، نو په دې ضمن کي د ټولو څخه مخکي خو دا څرگند کول ضروري دي چي د شکر درجه ډومره لوړه ده چي الله ﷻ دا د خپل ذکر سره بيان کړی دي: فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوا لِي وَلَا تَكْفُرُونِ (البقرة:١٥٢) (نو تاسو ما يادوئ زه به تاسو ياد کړم او تاسو زما شکر کوئ او ناشکري مه کوئ) نبي کريم ﷺ فرمايي چي د خوارک کوونکي شکر گزار درجه د روژه نيونکي صابر سره برابره ده،

او فرمايي چي کله په قيامت کي آواز وسي چي: حمد کوونکي دي پورته سي نو هغه به پورته

كيږي كوم چي په هر حال كي شكر ګذاره وو، او كله چي د مال جمع كولو په ممانعت كي دا آيت نازله سو: وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ (التوبه: ٣٤) (چي كوم خلک سره او سپين زر جمع كوي او د الله ﷻ په لاره كي يې نه خرڅ كوي دوى ته د دردناكي سزا خبر واوروه) نو حضرت عمر رضي الله عنه عرض وكړى چي بيا نو د مال څخه كوم شئ جمع كېداى سي؟ نو نبي ﷺ وفرمايل چي زړه شاكره، ژبه ذاكره، او مؤمنه بي بي، يعني پر دې درې شيانو باندي قناعت كوه (چي د دې مالک د ټولو څخه مالدار دى) ځكه چي مؤمنه ښځه په ذكر او شكر كي مددګاره وي. د ابن مسعود رضي الله عنه قول دى: چي شكر نيم ايمان دى. عطاء رحمه الله وايي چي ما يو وار حضرت عائشي رضي الله عنها ته عرض وكړى چي د حضور ﷺ يو عجيبه واقعه راته بيان كړه، دې وفرمايل: د نبي ﷺ كومه واقعه ده چي عجيبه نه ده، واوره! چي نبي ﷺ يوه شپه د شپې په جامو كي ما ته تشريف راوړى او زما سره پرېوتى چي ناڅاپه يې وفرمايل عائشي! ما پرېږده چي زه د خپل رب په حضور كي عبادت وكړم، ما عرض وكړى چي زما خو دا آرزو ده چي ستاسو قربت او محبت ما ته حاصل وي لېكن خير تشريف يوسئ، دوى پورته سو او دژي (مشكيزې) څخه يې اوبه را واخيستې او دس يې وكړى او د لمانځه نيت يې وتړى د الله ﷻ په حضور كي ودرېدى تر دې چي ټوله شپه په دې كي تېره سوه، سهار سو او حضرت بلال رضي الله عنه راغلى او دوى ﷺ د سهار د لمانځه د پاره د هغوى سره ولاړى، ما عرض وكړى چي هر كله الله ﷻ ستاسو ټول ګناهونه بخښلي دي نو بيا تاسو ولي او ښكي بېوى؟ وې يې فرمايل: آيا زه د هغه شكر ګذاره بنده جوړ نه سم؟ زه د هغوى په وړاندي داوښكو هديه ولي وړاندي نه كړم كوم چي دا آيت پر ما نازل وفرمايلو: إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيَاتٍ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ (۱۹۰) الَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِهِمْ [آل عمران: ۱۹۱] (بې شكه د اسمانونو او ځمكي په پيدايښت او د شپې ورځي په ادل بدل راتلو كي د عقلمندو د پاره نښې دي، هغه كوم چي الله ﷻ په ولاړې، ناستي او ډډه پرېتو او په هر حال كي يادوي). مقصد دا دى چي په هر حال كي الله ﷻ يادوي او د ځمكي او اسمان په عجائباتو كي په غور او تدبّر سره نظر كوي او د دې درجې د حاصلولو په خواهش كي ژاړي د غم او بيري څخه نه ژاړي.

**د شكر حقيقت او پېژندنه:** دا بيان خو وسو چي د دين ټول مقامونه د درې اُصولو سره متعلق دي يعني: (۱) علم (۲) حال، او (۳) عمل، او په دې كي د علم حيثيت د اصل دى چي د هغه څخه چي

حال پیدا کیږي، او د حال څخه دعمل ظهور کیږي، دغه ټول د نعمت ورکوونکي نعمت پېژندل هم علم دی او دې علم ته شکر وایي او د دې نعمت پر موقع بانديي د زړه خوشحاله کېدل حال دی او نعمت د خدای د نعمت د مراد او منشا مطابق صرف کول عمل دی او د دې عمل تعلق د زړه سره هم دی د ژبي سره هم د ی او د تن سره هم دی او تر څو چي په دوی کي د هر یو په باره کي معلومه نسي تر هغه وخته پوري د شکر حقیقت نسي معلومېدای.

نو تر کومه پوري چي د ده د علم کېدلو تعلق دی نو هغه دا دی چي تا ته معلومه سي چي تا ته کوم نعمت هم در کول سوی دي دغه صرف د الله ﷻ د طرف څخه دی او په دې کي بل چا ته شرکت حاصل نه دی او تر کومه پوري چي ستا نظر د مینځوی وسیلې طرف ته وي او ستا دا خیال وي چي ماته د دې نعمت په را کولو کي د دې وسیلې هم څه لاس سته تر هغه وخته ستا شکر ناقص او ناتمام دی، لکه یو باچا تا ته انعام (خلعت) در کړي او ته دا گنې چي دا د وزیر د وسیلې او د توجه نتیجه ده نو ستا شکر خالص د باچا د پاره خو نه سو بلکې تا خو په دې کي وزیر هم شامل کړی او ستا شکر به د باچا د پاره خالص نه سوه، لېکن که ته دا ووایې چي د خلعت حکم خو باچا کړی دي لیکن حکم د کاغذ او قلم په ذریعه سره وسو، نو په داسي گڼلو کي به ستا شکر ته ناقص نسي ویل کیږي، ځکه چي قلم او کاغذ خو مسخر وي، او دوی ته د خلعت ورکولو څه اختیار سته او نه څه دخل، بلکي که ته دا خیال وکړې چي دخلعت را رسولو سبب خزانچي وي نو په دې سره به هم شکر ناقص نه وي ځکه چي تا ته معلومه ده چي خزانچي هم مسخر دی او په ورکولو د خلعت کي د ده هم د څه عمل دخل نسته د باچا د حکم پابند دی، نه ځیني خلاف کولای سي او نه د حکم څخه بغیر د یو څه ورکولو مجاز دی د ده حیثیت د قلم په ټول دی.

نو دغه رنگه که ته د دنیا نعمتونو ته وګورې! دا تصور وکړې چي دا هر څه دباران په وجه دی او چي مخکي وګورې نو داو گڼې چي باران د وریځو په وجه سره دی (او حقیقي خالق هېر کړې)، دغه ټول په کښتۍ کي خپل نجات د هوا پر موافق کیدلو بانديي منحصر وګڼې (او د هوا د الله ﷻ په اختیار کي کېدل هېر کړې) نو یاد ساته چي په دې سره د الله ﷻ شکر په صحي توګه نه ا داء کیږي ځکه چي تا ته دا ګڼل پکار وو چي وریځ، باران، هوا او نور هر څه چي دي ټول د الله ﷻ په ا ختیار کي دي، د ده په په مخکي داسي مسخره دي لکه د لیکوونکي په لاس کي قلم، ځکه چي قلم د ځانه څه نسي لیکلای که داسي دي وګڼل نو ستا شکر به ناقص نه وي، دغه رنګه که یو نعمت د بنده د طرف څخه تا ته ملاو سي نو دا بنده د خدای نعمت تصور کول نه دي پکار چي دا صرف جهالت او بې

وقوفي ده د شکر د مقام څخه ليري ده بلکې دا د يو حجاب نښه ګڼل پکار دي څکه چې په دې صورت کې تا ته ګڼل دا پکار دي، چې دغه سړی بذات خود دنعمت خاوند نه دی بلکې پر ده الله ﷻ يو مؤکّل مقرر کړی دی او هغه د دې سړي په لاس دا نعمت جبراً درکړو کنې دی خو د دې خلاف وو. مګر مؤکّل پر ده زوروړ سو که د ده په وس کې دي نو يوه ګوله ډوډۍ به يې هم نه وای درکړې، او دغه مؤکل هغه اراده وه کومه چې الله ﷻ د ده په زړه کې پيدا کړه يعنې دا خبره يې ور ته په زړه کې واچوله چې په دې کې ستا سعادت دی په دې دنيا کې هم او په هغه بله کې هم چې دا نعمت دی تا ته حواله کړې تر دې چې ده صرف په دې اُميد چې په دنيا او آخرت کې به دی مراد ته ورسيږي دغه نعمت يې تا ته حواله کړی حالانکه په حقيقت کې دغه نعمت ده حواله کړی ځان ته دي څکه چې نعمت يې د حصول د مراد وسيله جوړ کړه، تا ته دغه نعمت په حقيقت کې الله ﷻ در کړی کوم چې پردې سړی يې داسې مؤکل مقرر کړی، چې دی يې مجبوره کړی نعمت يې تا ته در کړی او د هغه خپل يو غرض (نَعُوْذُ بِالله) د دې سره تړلی نه دی، نو کله چې تا داو پېژندله چې د دې ټولو شيانو حيثيت د خزانچي په ډول دی او د خزانچي درجه په ميانځ کې د قلم په ډول ده او په دوی کې د هيڅا هم خپل يو اختيار نسته بلکې د دې ټولو حکم کوونکې الله ﷻ دی نو خامخا به ته صرف او صرف د هغه شکر ادا کوې بلکې داسې ګڼل عين شکر دی لکه چې موسی ﷺ پخپل مناجات کې عرض کړی وو، اې الله! تا حضرت آدم ﷺ پخپل لاس د قدرت پيدا کړی، اوبيا دې دا احسان پر هغه وکړی نو هغه ستا شکر څنګه اداء کړی؟ ارشاد وسو چې آدم ﷺ دا حقيت پېژندلی وو چې دا هر څه زما د طرف څخه دي نو د ده دا پېژندل د شکر دليل وو. او پوه سه! چې دايمان دمعرفت ډېر بابونه دي او د دغو څخه اول شئ تقديس دی او هغه دا دی چې ته پوه سې چې الله ﷻ د ټول مخلوق د صفاتو څخه او څه چې هم په وهم او ګمان کې راسي د هغو څخه پاک او منزّه دی او د دې د پاره چې کومې کلمې په ژبه اداء کيږي هغه دا دي: سبحان الله، دويم شئ توحيد دی او هغه دا چې ته پوه سې چې الله ﷻ د خپلې پاکۍ سره سره صرف يو هم دی او څوک د هغه سره شريک نسته، د دې د پاره کلمه ده: لا إِلٰه الاّ الله. دريم شئ تحميد دی او د دې څخه مراد دا پېژندل دي چې څه هم دي ټول د هغه د طرف څخه دي او د هغه ورکړي نعمتونه او په عبادت او کلمه کې د دې د پاره: الحَمْدُ لله ويل کيږي او د دې درجه د اولو دواړو څخه لوړه ده چې د دغو دواړو معرفت تر دې لاندې راځي، او دا وجه ده چې نبي ﷺ وفرمايل پر: سبحان الله ويلو لس نېکی پر: لا إِلٰه الا الله شل نېکی او پر: الحَمْدُ لله ويلو ديرش نېکی دي، او د دې

نېکیو څخه مراد دا کلمې نه دي کومې چې صرف په ژبه سره ادا کیږي بلکې مراد هغه معرفتونه دي چې د کومو څخه دا کلمې عبارت دي نو دا وه دعلم دشکر معنی (چې بیان سوه).

## د کفرانِ نعمت (یعنې د نعمت د ناشکری) څخه څه مراد دی؟

پوه سه! چې د هر نعمت کفرانِ نعمت دا دی چې دغه نعمت د هغه د مخصوصې لارې د حکمت څخه لیرې کړي او په هغه غرض کې یې صرف نه کړي د کوم د پاره چې الله ﷻ دی پیدا کړی وي نو د الله ﷻ نعمت دالله ﷻ په خوښو لارو او کارونو کې خرڅ کول شکر ادا کول دي او په ناخوښو خبرو کې یې ضائع کول کفرانِ نعمت دی او د خوښو او ناخوښو تفصیل په بشپړه توگه ماسوا د شریعت څخه په بل څه کې نسي معلومېدای گویا شرط دا مقرر سو چې نعمت په طاعت کې صرف کړل سي او بالکل دالهي حکم مطابق صرف کړل سي، لېکن دا اهلِ بصیرت په مخکې یوه بله لاره هم سته چې په دغه کې د کارونو حکمت په کمال نظر عینِ ممکنه دی چې یو سړی پوه سي چې د وریځې په پیدا کولو کې دالله ﷻ حکمت دا دی چې باران وسي او په باران کولو کې حکمت دا دی چې وابنه پیدا سي او د وابنه په پیدا کولو کې دا حکمت دی چې د حیواناتو خوراک وسي، دغه ډول د لمر په پیدا کول کې داحکمت دی چې شپه او ورځ ښکاره سي او په شپه کې دا حکمت دی چې آرام وسي او په ورځ کې دا حکمت چې د معاش کسب او د دنیا د کاروبار سلسله قائمه وي او دغه ډول په نورو خبرو کې چې کوم حکمتونه دي هغه ظاهر دي او هر سړی څیني خبر دی، لېکن په لمر کې د دې څخه علاوه نور حکمتونه هم سته د کومو څخه چې هر سړی خبر نه دی، او په آسمان کې چې دا بې شماره ستوري دي د دوی په پیدایښت کې څه حکمت دی؟ د دې څخه څومره خلک خبر دي؟ علم انسانان خو د خپلو اندامونو څخه دغه څه پېژني چې لاسونه د نیولو د پاره دي، پښې د تللو د پاره سترگې د لیدلو و د پاره او نور، لېکن عینِ ممکنه ده چې ده ته د خپل ځیگر (اینې) او توري په باره کې هیڅ خبر نه وي چې د دوی په پیدا کولو کې څه حکمت پټ دی او دا سترگې پر لسو پردو مشتملې ولې دي؟ نو د دې حکمتونو څخه ځیني خو ډېر باریک او مشکل دي او د خواصو څخه ماسوا یې بل چا ته علم نسي کېدای چې د دې تفصیل ډېر اوږد دی بیاهم دومره پوهېدل هر سړي ته ضروري دي چې بنده پیدا سوی صرف دآخرت د پاره دی د دنیا د پاره هیڅ کله نه دی او دا په دنیا کې چې د ده کومه حصه په نظر راځي دا هم په اصل کې د دې د پاره پیدا سوې ده چې دی یې دآخرت تو ښه کړي، او دا سوچ خو چیري په هېره هم نه دي کول پکار چې الله ﷻ هر شئ د بنده د پاره پیدا کړی

دي، او دا ځکه وېل سوي دي چي بنده ته په يو شي کي خپله فائده په نظر راته سي نو ده ته د دې وېنا موقع ملاو سي: چي هر څه د بنده د پاره پيدا کړل سوی دي، مثلاً دا وواييي چي الله ﷻ دامچ او مېږی د څه د پاره پيدا کړي دي؟ يا وواييي چي دا مار د کوم مقصد د پاره پيدا سوي دي؟ اونور نور.

په دې ضمن کي دا هېرول نه دي پکار چي تعجب خو مېږی ته کېدای سي چي مېږی دي دا تعجب کوي چي الله ﷻ دا انسان ولي پيدا کړی دي چي بلاوجه موږ تر پښو لاندي کوي، نو که بنده تعجب کوي نو دغه رنګه مېږی هم تعجب کوي،او الله ﷻ نه صرف دا چي هرشئ يې پيدا کړی دي بلکي پخپل بې ناپايه فيض سره يې ورته وجود هم ورکړی دي چي دا د هغه د حکمت تخليق تقاضا ده.

ځومره اجناس، نباتات اومعدنيات غرض هر شئ ته يې دخپلي خپلي درجې مطابق ښايست او ترتيب ورکړی دي ځکه چي د ده سره د منع او بخل ګنجائش نسته او ښايست او زينت څه شئ که موږ ته په يو شئ کي ښکاره نسي نو د دې وجه دا وي چي دغه محل د دې قابل نه وي، ځکه چي دغه پخپل ضد کي مشغول وي او دغه ضد د يو بل کار د پاره پخپل ځای مقصود وي چي مثلاً د اُور د پاره دا ممکنه نه ده چي هغه د اُوبو په ډول يخوالی اولطافت قبول کړل سي ځکه چي د ګرم شئ يخ شئ قبلول ممکنه نه دي ځکه چي يخني د ګرمي او ګرمي د يخني ضد دی، او د ګرم شئ ګرمي پخپل ځای مقصود ده چي د دې ليري کول هم د نقصان باعث کيږي.

اوس د کوم خاص رطوبت څخه چي يې مچ پيدا کړی دي د ده تکميل د دې رطوبت څخه په مناسبه توګه وسو، يعني د دغه رطوبت څخه يې ځکه جوړ کړی چي مچ د دغه رطوبت څخه کامل تر دی او کوم رطوبت چي د دې کمال قابل وو، هغه يې د دغه کمال څخه محرومه نه کړی ځکه محروم کول يا منع کول هم په بخل کي شامل دي، مچ ته د دغه رطوبت کامل تر ځکه وېل سوي دي چي په ده کي ژوند، روح، قدرت، حس او حرکت عجيبه شکلونه اونا اشنا اندامونه موجود دي، حال دا دی چي په دغه رطوبت کي دا نسته. او د دې رطوبت څخه د بنده تخليق ځکه ونه سو چي په ده کي دا صلاحيت موجود نه وو، ځکه چي هغه رطوبت د داسي صفاتو او خصوصياتو مجموعه اومرکب وو کوم چي د دې صفاتو او خصوصياتو ضد دی، کوم چي د انسان د تخليق د پاره لازمي دي، هسي خو مچ ته هم چي د کوموشيانو ضرورت وو دی يې د هغو څخه محرومه نه کړو، يعني ځانګونه، وزرونه، لاس، پښې، سترګي خوله، سر، نس، معده، د هضم مقام، او داخراج مقام غرض د کومو ضروري شيان څخه يې دی محروم کړی دي؟(يعني دا ضروري شيان يې ټوله ورکړي دي) او بيا چي څرنګه نرمي چالاکي سپکوالی د ده د بدن د پاره مناسب او موزون وو هغه يې ورکړو، نو ده ته د ليدلو حاجت وو او

سرېږ کوچنی وو پر سترګوېږ بانوګان نه ځاېدل او نه یې ګنجائش وو نو د لیدلو د پاره یې ور ته دوه غمی ولګول او ځرنګه چې د پلکونو (بانوګانو) کار سترګي د ګرز او دوړو څخه پاک ساتل وو چې پر هیندارو د سترګو د صیقل (رېګمال) کار کوي او د مچ بانوګان نه وو، نو د دې د پاره یې دوه زیات لاسونه ورکړل چې د بانوګانو کار ځیني اخلي او غمي صاف ساتي، او بیا چې دواړه لاسونه په دې کار کي خیرین سي نو دیو بل سره یې وموږي چې صفا سي، د دې بیان څخه زموږ د دې امر وضاحت مراد دی چې تاسو ته د الله ﷻ د عامي بخښني او ورکړي په باره کي معلومه سي چې د ده فیض عام دی همیشه دي او د هر چا د پاره او صرف د انسان د پاره مخصوص نه دی، ده ﷻ خو هر حقیر چینجی او ناتوانه غېني (جولا ګي) ته هم هر هغه شئ ورکړی دي کوم ته چې د ده حاجت وو په تمام او کمال یې کړل، او دا چینجیان مینجیان یې د انسان د پاره نه دي پیدا کړي بلکي هر یو یې پخپله د هغه د پاره جوړ کړی دي داسي لکه څنګه چې یې تاسو ستاسو د پاره پیدا کړي یاست، ځکه چې ستاسو د تخلیق د پاره مخکي ستاسو د پاره یو وسیله او نمونه موجوده نه وه چې د هغې په وجه تاسو د پیدا کېدلو مستحق مقرر سواست، نو د نورو شیانو د پاره هم یو وسیله موجوده نه وه، دا خو د الله ﷻ د علم بخښش او دوامي فیض یو بې غاړي (کناري) سمندر دی چې د دې ټولو شیانو وجود پکښي پخپل خپل ځای ښکاره کېږي، د دغو څخه یو تاسو یاست یو مېږی هم دی او مچ، فیل او مرغی هم ده او داسي ټوله مخلوقات؟ ها! یو شئ لېکن دی او هغه دا چې په دې ټولو شیانو کي ناقص پر کامل ضرور قربانول کېږي، او څنګه چې د ځمکي د مخ په ټولو مخلوقاتو کي انسان کامل ترین دي په دې وجه زیاتره شیان پر ده قربان وي، لېکن تر ځمکي د لاندي او د سمندر په بېخ کي څومره شیان دي چې د انسان په دغو کي هیڅ حصه نسته. او الله ﷻ د دغو هم په ظاهري او باطني تخلیق کي د دغه مهرباني او عنایت څخه کار اخیستی دي (کومه مهرباني چې یې پر ځمکي د لوړ مخلوق سره کړې ده) بلکي څه عجیبه ده چې د دغو ظاهر او باطن په یو داسي نقش او نګار سره ښایسته وي چې بنده ور ته حیران سي، اوس د دغو څخه د ځان خبرولو د پاره دریابي علوم کافي کېږي د کومو څخه چې زیاتره علماء هم عاجزه دي او بیانول یې سخت طوالت غواړي او حال دا چې زموږ مقصود فقط دا ښودل دي چې تاسو خپل ځان په دې معنی کي په غوره او باعظمته تصور نه کړی چې دا هر څه بس ستاسو دي او ستاسو د پاره دي او بیا د کوم شئ څخه چې تاسو ته فائده ونه رسیږي د هغه په باره کي په آساني سره دا ووایاست چې د دې د پیدا کولو ضرورت څه وو؟ په دې کي خو څه مصلحت یا حکمت هم نه ښکاره کېږي.

نو میږي يې هم ستاسو د پاره ر نه دي پيدا کړی که څه هم تاسو ته د دې څخه په بعضي وجود سره فائده رسيږي، مچ ستاسو د پاره نه دي جوړ سوی لېکن تاسو ته ځيني فائده ضرور رسيږي چي ده ته قدرت کوم کار سپارلی دي هغه دا چي بلبوبه او وراسته شيان خوري، بلبويي کموي، دغه ډول قصاب د مچانو د پاره نه دي پيدا که څه هم د قصاب څخه مچانو ته فائده ضرور رسيږي، او دغه رنګه نور.

د شکر د معنی پېژندلو په سلسله کي د داسي شيانو د پيدايښت حکمت بيانول د کومو چي ستا سره څه تعلق نسته څه ګټه نه کوي، ځکه چي کوم شيان ستاسو سره متعلق دي پخپله څه کم دي؟ او متعلقه شيان دومره ډير دي چي د دوی څخه د هر يوه بيان مشکل لا څه چي محال دي په دې وجه د دوی څخه هم فقط په څو مثالونو اکتفا کول کيږي: مثلاً تاسو ته يې د ستر ګو نعمت در کړی دي نو د دو خبرو د پاره: (۱) چي تاسو د خپلو حاجتونو لاري معلومې کړي کوم چي د دې جهان سره متعلق دي (۲) او ځکه چي تاسو د الله عجيبه صنعتونه ووينې او د دوی په عظمت سره د دوی د خالق عظمت وپېژنی، اوس که تاسو د دې ستر ګو څخه غلط کار واخلئ دا چي يو نامحرم ته په وګوری نو پوه سئ چي دا کفران نعمت دی د ستر ګو، بلکي د ستر ګو نعمت د لمر څخه بغير نه مکمل کيږي چي د لمر د رڼا څه بغير به ليدل څنګه وکړي، او پخپله د لمر وجود د ځمکي او اسمان څخه بغير ممکن نه دی ځکه چي د شپې او ورځي تعلق د اسمان او ځمکي سره دی نو ګويا د يو نظر په وجه (چي تا نامحرم ته په کتلي دي) د نعمت د ستر ګو، د نعمت د لمر، د نعمت د ځمکي او اسمان د کفران نعمت مرتکب سوې، په دې وجه په حديث کي راغلي دي چي کوم سړی ګناه کوي پر ده باندي ځمکه او اسمان لعنت کوي.

دغه ډول د لاسونو نعمت چي تا ته در کړل سوی دي نو ځکه چي د دې په مدد سره ته خپل کار په صحيح طريقه سره وکړای سې، مثلاً په دې سره خوراک وخوړل سي او بدن په پاک صاف کړې او نور نور، لېکن که ته په دې ګناه کول شروع کړې نو بنکاره ده چي تا دلاسونو د نعمت کفران وکړی بلکي تر دې چي که ته په راسته لاس سره استنجاء وکړې او په چپه لاس قرآن مجيد راپورته کړې نو دا هم کفران نعمت دی ځکه چي ته د هغه کار څخه بهر ولاړې کوم چي د الله ﷻ خوښ دی، يعني الله ﷻ عدل خوښوي او د عدل تقاضا داده چي د شريف د پاره شريف او د حقير د پاره حقير لاس استعمال کړای سي، او د دواړو لاسونو څخه يو لاس په عامه توګه سره مضبوط تر وي نو هغه شريف دی او ستا کار هم هميشه پر دوه قسمه وي بعضي حقير او بعضي شريف نو کوم کار چي شريف دی

هغه په راسته سره اوکوم چي حقیر دی هغه په چپه سره کول پکار دي چي د عدل تقاضا پوره سي، او دغه ډول نور مثالونه په آساني سره معلومیږي.

## د زخیره اندوزی (د غنمو، اوربشو او نور د زخیره کولو) ممانعت

او کوم سړی چي غله په دې نیت سره زخیره کوي چي کله د دې قیمت ګران سي نو خرڅه به یې کړم نو داسي خلک به د الله تعالی په لعنت کي مبتلاوي، بلکي کوم سړی چي په تجارت کي غله د غلې په عوض د سود په توګه خرڅوي دغه به هم په لعنت کي ګرفتاره وي، ځکه چي غله الله ﷻ د خپل مخلوق خوارک مقرر کړی دي او دا که داسي تجارت جوړ کړل سي نو ښکاره ده چي دغه به قید او بندي پاته سي او ضرورتمنلو ته به ژر په ژره ونه رسیږي.

دغه ډول په سرو او سپینو زرو کي هم زخیره کول حرامه ده ځکه چي د سرو او سپینو په پیدا کولو کي حق تعالی دوه حکمتونه ایښي دي: یو خو دا چي په دې سره د حال د قیمت اندازه کیدای سي ځکه چي که دا نه وي نو دا به څنګه معلومیږي چي یو آس د څومره غلامانو په عوض خرڅ کړی سي؟ یایو غلام د څومره جامو په عوض واخیستل سي؟ او د دې شیانو اخیستلو خرڅولو څخه خوبله څه لاره نسته، نو ضرورت د یو داسي شئ را پیښ سو چي یو داسي شئ متعین سي چي ټول شیان په هغه سره متعینه کول کیږي، او په دې غرض سره یې سره او سپین زر پیدا کړل. او دا ګویا یو حاکم دی چي د هر شئ قدر او قیمت ظاهروي اوس که دا په یو ځای کي زخیره کړل سي نو دا داسي ده لکه حاکم چي قید کړی سي (نو چي حاکم قید سي عدل به څوک کوي؟) او کوم سړی چي د سرو سپینو لوښي جوړوي هغه ګویا دې حاکم ته داحکم کوي چي ته زما ډولۍ (کجاوه) پورته کړه، یا ته جولا (ټوکر ودونکی) جوړه سه، ځکه چي لوټه خو صرف د اوبو د پاره وي او د دې اوبو د پاره د خاوري او کیلټو او سرپو لوټه هم دغه کار کوي.

دویم حکمت دا دی چي دا دواړه شیان د کمیابه کېدلو په سبب ډېر قیمتي او عزیز دي، او د دې په ذریعه بل هر شئ حاصلول کیږي او هرڅوک د دې سره مینه کوي ځکه چي د چا سره سره زر سپین زر موجودوي د ده سره ګویا هر څه شئ سته چي دی هر څه کولای سي، ممکنه ده چي د چا سره جامه وي او غله نه وي او د بل جامه نه وي غله ور سره وي، نو د دې دا صورت نه دی چي غله به د جامې په عوض یا جامه د غلې په عوض خرڅوي، بلکي الله ﷻ سره زر او سپین زر پیدا کړل او دا یې د هرچا خوښ کړل، چي د دې په وجه سره د دنیا کاروبار جاري وي، حال دا دی چي پخپله سره او سپین زر د

خواراک چښاک یاوسېدلو په هیڅ کار نه راځي لېکن بیا هم هر حالت د دې په وجه پوره کېدای سو، نوبیا که خلک د سرو په عوض سره او د سپینو په عوض سپین خرڅوي او د دې په خاطر تکلیف برداشت کول شروع سي نو دا سره سپین به په یوبل کي مشغوله سي او د یوبل قیدیان به سي، او دنور څه کار وسیله به په دوی بیا څنګه جوړه سي؟ نو په دې ګمان کي خو چیري مبتلا کېدل نه دي پکار چي په شرع کي یو شئ د حکمت او علل څخه د باندي کېدای هم سي، ځکه چي په دې کي چي څه دي نو داسي دي څرنګه چي یې کېدل پکار دي، لېکن ځیني حکمتونه داسي ژور او ستونزمن دي چي د پیغمبرانو څخه ماسوا بل څوک نسي په پوه کېدای او ځیني داسي دي چي د لویو عالمانو څخه ماسوا بل څوک نه په پوهیږي، او هر هغه عالم کوم چي صرف د تقلید غلام وي او صرف په نورو د وریسې کېدلو اهل وي، هغه پخپل علم کي ناقص دی او عوامو ته د بر نژدې دي، او کله چي د دې حکمتونو څخه آشنا سي نو کوم شئ چي د فقهاؤ په نزد مکروه وي هغه دا حرام ګڼي تر دې چي یو بزرګ په غلطی سره اول چپه ښپلۍ (چوټه) په پښو کړه، نو د غنمو څو بوری (ګونی) یې د کفارې په توګه صدقه کړې، که د عوامو څخه یو سړی د درختي ښاخ پرې کړي یا قبلې ته لاړې (ناوړي) توکړي، یا په چپه لاس باندي قرآن شریف پورته کړي نو پر هغه به دومره اعتراض نه وي څومره چي پر خواصو باندي وي، ځکه چي عوام دا کارونه په دې وجه کوي چي په دوی کي او په حیواناتو کي څه فرق نه وي دوی حیواناتو ته زیات نژدې وي او د دې خبرو څخه د ځان ساتلو شعور په دوی کي نه وي او حکمت د دوی څخه د بر لیري وي نوبیا د حکمت ژوروالی به دوی څنګه وپېژني، نو په دوی کي که یو سړی د جمعې آذان واوري هم، او یو د آزاد سړي په خرڅولو کي مشغوله وي نو پرده به هتاب نه کېږي چي د جمعې د آذان څخه وروسته خو اخیستل خرڅول مکروه دي ځکه چي د آزاد د خرڅولو ګناه د دې کراهت څخه زیاته ده، هغه په دې کي پټ دی، او که یو سړی د مسجد په محراب کي داودس مات د پاره قبلې ته شاه کړي کښېني نو په دې صورت کي خو به قبلې ته د شا کولو ګناه خو ضرور نه پاته کېږي ځکه چي ده کومه ګناه کړې ده هغه دومره غټه ده چي دا قبلې ته شا کول د هغې یوه معمولي حصه ده، نو د کوچنی ګناه په هغه لوی ګناه کي ملغم سوه، او د عوامو سره چي په کومې آسانی سره کار اخیستل کېږي نو ځکه چي دوی جاهله وي او ظاهري فتویٰ صرف د عوامو د پاره وي لېکن کوم سالک چي د آخرت پر لاره باندي روان وي د هغه نظر پر ظاهري فتویٰ نه دی پکار بلکي د ده مخ ته باریکی پکار دي (کومو ته چي عوام نسي رسېدای) چي په علل او حکمت کي

فرشتو ته نژدې سي، کنې د درګرز(او ځان ایستلو) په وجه به دوی هم د عوامو په ډول حیوانانو ته زیات نژدې سي.

## د نعمت اصل حقیقت څه دی؟ او د نعمت پېژندنه

پوه سه! څه چي هم الله ﷻ دانسان د پاره پیدا کړي دي دغه دده په حق کي پر څلور قسمه دي: (١) څه شیان خو هغه دي چي په دې دنیا کي هم او په آخرت کي هم د ده د پاره رمفید وي لکه علم او اخلاق حسنه او نور، او په دې دنیا کي حقیقي نعمتونه هم داغه دي (٢) ځیني هغه دي چي په دواړو جهانو کي مُضر او زیان رسوونکي دي مثلاً بدخوئي (بد اخلاق) او جهالت او نور، او په حقیقت کي بلا او مصیبت هم دې ته ویل کیږي(٣) دریم قسم هغه شیان دي چي په دې دنیا کي خو راحت او آرام دی لیکن په هغه جهان کي عذاب او غم دی، مثلاً د دنیاوي نعمتونو ډېروالی او د دوی څخه مزې اخیستل او دې ته داحمقانو په نزد نعمت ویل کیږي او د عاقلانو او عارفانو په نزد بلا او مصیبت، او د دې مثال د ډېرې سرې سره داسي ورکول کیږي چي ده ته عسل ملاو سي لېکن زهر پکښې وي، اوس که دی احمق او جاهله وي نو په دې به پوه هم نسي چي په دې کي زهر ملاو دی او نعمت به یې وګڼي، او که عاقل وي نو دغه به بلا او آفت وګڼي نه چي نعمت (٤) او په څلورم قسم کي هغه شیان شامل دي چي په دې دنیا کي خود رنځ او محنت څخه سوا هیڅ نه وي لېکن په هغه جهان کي راحت وي، او هغه ریاضت او مجاهده او مخالفت د نفس او د شهوت قلبو کول دي،او دا هغه نعمتونه دي کوم چي دعارفانو خوښ دي، داسي دي لکه د عقلمند مریض په نزد چي ترخه او تروه دوایي نعمت وي، لېکن داحمقانو په نزد دانعمتونه نه دي بلکي بلاګاني دي.

**فصل**: د دنیازیاتره اسباب په یوبل کي مدغم او مخلوط وي یعني په یو شئ کي چي یو ځای خیر او نېکي ښکاره کیږي هلته د شر اوبدي خلط پکښې هم موجود وي، لېکن هر هغه شئ په کوم کي چي د فائدې اړخ د نقصان په نسبت زیات وي هغې ته نعمت وایي او په دې کي د خلکو د حال مطابق تبدیلي کېدای سي ځکه چي مال که په قدر د کفایت وي نو د دې نفع به دنقصان څخه زیاته وي اومال که د ضرورت څخه زیات وي نو د ډېرو خلکو په حق کي به د ده نقصان د نفعي څخه زیات وي،او ځیني داسي خلک به هم وي چي لږمال به د هغو په حق کي نقصاني ثابتیږي، ځکه چي دغه به د حرص څخه مغلوبه کیږي او په زیاته طمع کي به ګناه ګار کیږي، حال دا دی چي که د ده سره هیڅ هم نه وي نو حرص او طمع به یې هم نه وي و ځیني خلک داسي هم دي چي د مال زیاتوالی هم هغو

ته څه نقصان نسي رسولای ځکه چي د محتاجانو حاجتونه په پوره کوي، نو په دې خبره به اوس ته پوه سوی یې چي دا صحیح خبره ده چي یو شئ که د یو سړي په حق کي نعمت وي نو دغه د بل د پاره بلا او مصیبت ثابتیږي.

**فصل**: د خلکو وړنادا ده چي کوم شئ هم ښه معلوم سي نو هغه نعمت دی او د خوشحالیو اولذتونو دري درجې دي: (۱) یو لذت خو هغه دی چي د ټولو څخه نا کاره غونډي لذت ورته ویل پکار دي او دغه لذت د نس او لذت د فرج دی. اکثره خلک د دې سره آشنا دي او په دې کي مشغوله دي بلکي د دوی هر طلب او هره ځیږنه په اصل کي صرف د دې لذت په خاطر وي او د دې لذت د نا کاروالی ثبوت بالکل واضح دی، یعني ټول څاروبان او حیوانان په دې کي برابر سره شریک دي بلکي (دا حیوانان) د انسان څخه ډیر زیات دي ځکه چي دغه د انسان څخه زیاته خوري او زیات مباشرت کوي، تر دې چي مچ، میږی او نور چینجي مینجي او نور هم په دې کي د انسان سره برابر شریک دی، نو کوم سړی چي مکمل خپل ځان دې لذت ته وقف کړي ده خپل ځان د چینجیانو او نورو په درجه کي ساتل کافي وګڼل، (۲) یو لذت هغه دی چي دغلبې او حکومت لذت ورته ویل کیږي په کوم کي چي مزه په دې خبره کي راځي چي پر نورو سرداري حاصله کړي او دا هغه شئ دی چي قوّت غضب یا قوّت غصه ورته ویل سوي دي دا لذت د نس او فرج د لذت په مقابله کي شریف تر دې لیکن بیاهم خسیس دی ځکه چي بعضي حیوانات په دې کي هم دبنده سره شریک په نظر ارځي مثلاً: زمری او شرمښ چي پر نورو دغلبې او برتري حرص په دوی کي هم زیات دی، (۳) او دریم لذت د علم او حکمت دی چي په کوم کي ټوله خوند او لذت په دې خبره کي وي چي د الله ﷻ معرفت حاصل سي او د ده د عجیبه صنعتونو راز معلوم سي، او دا لذت د ډیري شریفي درجې والا دی، ځکه چي په دې کي د حیوانانو څه حصه نسته، او دا د فرشتو صفت دی بلکي د الله ﷻ د صفتونو څخه یو صفت دی، د کوم سړي لذت چي په دې کي وي او د دې څخه بهر نه وي دغه کامل دی او کوم ته چي په دې کي یو لذت او خوند نه راځي دغه ناقص دی بلکي مریض دی او د هلاکت د شلې پر غاړه دی، او زیاتره او اکثره مسلمانان د دې اولو دوو اقسامو سره تعلق وي بلکي د دواړو لذتونو شوق لري، لیکن کله چي پر یوه لذت د معرفت غلبه راسي نو دغه دواړه لذتونه خپل مخونه پټوي او شکست خوري او دا هغه سړی وي چي درجې دکمال ته زیات نژدې وي او پر کوم سړي چي دغو نورو لذتونو غلبه کړې وي نو ده لره لذت د علم او حکمت حاصلول ضروري دي، چي د دې په باره کي ده ته تکلف کول او د دې لذت د غالبه

کولو کوشش کول پکار دي کنې په سخته خساره کي به وي، او دا هغه شئ دي چي هغه ته د نیکیو د پلې درنېدل وايي.

## د نعمت قسمونه او درجې

یاد ساته! چي حقیقي نعمت هغه سعادت دی کوم چي په آخرت کي حاصل سي او دا هغه نعمت دی کوم چي فی نفسه مطلوب دی او پر دې لوړ بل نعمت نسته، او د دې څلور اجزاء دي:
(۱) هغه بقاء چي د فناء پکښې څه دخل نسته (۲) هغه خوشحالي په کومه کي چي رنځ او غم نسته (۳) هغه علم او کشف کوم چي د جهالت د خړوالي څخه پاک او د تیارو څخه خالي دي (۴) هغه استغناء او بې نیازي چي د درویشي او نیازمندي سره د دې څه واسطه نه وي، د دې څلورو سره وو نځوړ (خلاصه) دا ده چي د حضرت الهیّت په مشاهده کي هغه لذت حاصل وي کو چي دائم او همیشه قائم وي د خفګان په دې کي ګزر نه وي او د زوال خطره پکښې نه وي نو حقیقي نعمت دا دی او کوم شي ته چي په دنیا کي نعمت وايي دغه ځکه چي د آخرت د سعادت وسیله وي او دغه د آخرت د لاري وطرف ته تګ کوي، لېکن دا في نفسه مقصود نه وي، ځکه چي پوره نعمت هغه دی کوم چي مقصود هغه وي نه دا چي د بل نعمت د حصول صرف وسیله وي، په دې وجه نبي ﷺ فرمایلي دي لَا عَیْشَ اِلَّا عَیْشَ الاٰخِرة چي: عیش (خوشحالي) خو صرف عیش د آخرت ته ویل کیږي، دا کلمه یو وار دوی ﷺ د انتهائي خفګان په وخت کي فرمایلې وه چي د دنیا د رنج او غم څخه ځان ته تسکین ورکړل سي، او یو وار یې دغه کلمه د انتهائي خوشحالي پر موقع ارشاد فرمایلې وه یعني د حجِ وداع پر موقع چي دینِ اسلام کامل سوی وو، او د ټولي دنیا سترګي پر دوی لګېدلې وې، دوی ﷺ پر او بنه سپاره وو او خلګو ځیني د حج د ارکانو په باره کي پوښتني کولې، نو د اسلام د دین پر دې کمال بلندي د ډیري خوشحالی څخه یې دا کلمه پر ژبه راغله (چي خوشحالی د آخرت خوشحالي ده)، د دې د پاره چي خپل زړه د دنیا د لذت وطرف ته را ونه ګرځوي او د هغه وطرف ته ونه ګوري، پر دې موقع چا وویل: یا الله ﷻ ما ته پوره نعمت را کړه، دوی ﷺ واورېدل نو پوښتنه یې ځیني وکړه چي اي سړیه! تا ته دا خبر هم سته چي پوره نعمت وایې څه ته؟ هغه وویل نه! ورېې فرمایل: واوره! پوره نعمت دا دی چي ته جنت ته ولاړ سي، ځکه د دنیا د نعمتونو خو دا حال دی چي په دوی کي کوم شئ د آخرت وسیله نه ده دغه خو نعمت نه دی، او بعضي کوم چي د آخرت وسیلې دي د هغوی شپاړس قسمونه دي او د دوی څخه: (۱) څلور په زړه کي دننه دي (۲) څلور په بدن کي دننه دي (۳) څلور د

بلنځ څخه دباندې دي (۴) څلور د دې دوولسو په جمع کولو کي دي، په زړه کي دننه دا دي: (۱) علم مکاشفه (۲) علم معامله (۳) عفت (۴) عدل.
(۱) علم مکاشفه دا دی چي انسان الله ﷻ او د ده ټوله صفات او د ده فرشتې او د ده رسولان وپېژني (۲) دمعاملې څخه مراد چي کوم علم دی د دې بيان مو مخکې کړی دي يعني د دين څونډی چي ذکر يې په مهلکاتو کي بيان سوی دي او دا د لاري تو بنه ده کومه چي په عباداتو کي بيان سوې ده او دا منزلونه د لاري دي لکه چي په دې منجياتو کي بيانيږي، دا ټوله په ښه ډول پېژندل ضروري دي (۳) عفت دا دی چي بنده په داسي ښه خوی سره ځان ښايسته کړي چي قوّت د شهوت او غضب دواړه مات کړي (۴) عدل دا دیٔ چي شهوت او غضب مغلوبه کړی دا بالکل مړه کړي او پر ځان يې مسلط نه کړي چي هسي نه د حدّ څخه تېر سي د سېلاب شکل اختيار کړي، بلکي دا د راستی او اعتدال په تول کي وتلي د مينځ روي لاره اختيار کړي لکه چي الله ﷻ فرمايي: أَلَّا تَطْغَوْا فِي الْمِيزَانِ (٨) وَأَقِيمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيزَانَ (الرحمن: ٩) (چي په تول کي کمښت او زياتې مه کوئ او په انصاف سره وزن صحيح کوئ او تول کموئ مه) او د دې څلورو تکميل تر هغه وخته نسي کيدای تر څو چي د تن دننه څلور نعمتونه د دې سره شامل حال او ور سره نه وي: (۱) صحت (۲) قوّت (۳) جمال (۴) اوږد عمر، په دې څلورو کي سعادت د آخرت ته چي د صحت، قوّت او اوږد عمر کوم حاجت او ضرورت دی دغه د چا څخه پټ نه دی، ځکه علم او عمل او ښه اخلاق او هغه ټول فضيلتونه کوم چي دبنده په زړه کي وي او د کومو چي اوس ذکر وسو تر هغه وخته پوره په لاس نسي راتلای تر څو چي دا دري سره نعمتونه ور سره حاصل نه وي ليکن جمال يو داسی شیٔ دي چي د دې حاجت کم دی، ليکن د علمي مشاهدې خبره ده چي د صاحبِ جمال حاجتونه په دې دنيا کي ښه ښه پوره کيږي او په دې معنی کي جمال هم هغه کارکوي کوم چي په جاه او مال سره حاصليږي او کوم شیٔ چي د دنيا په حاجت او ضرورت کي پکار راځي هغه گويا د آخرت په ضرورتونو کي هم پکار راتلای سي، ځکه چي د دنياوي ضرورتونو د پوره کيدلو سره د آخرت د دلجمعی سامان ورکول کيږي او دنيا ته د آخرت د کروندې ځای ويل سوي دي، دويم دا چي د ظاهر ښايست والی دباطن د ښايست والی عنوان دی ځکه چي دغه نُورعنايت وي کوم چي دپيدايښت سره خپل څرک ښکاره کوي او عمومًا دا ليدل سوې هم ده چي الله څوک په ظاهري توگه بدلدي ښايسته کړی وي د ده باطن يې هم په نېکو اخلاقو سره ښايسته کړی وي، او په دې وجه سره بزرگانو ويلي دي چي بد سری داسي نه وي

چي کوم د خپلي بد اخلاقی په نسبت ښایسته وي، او نبي ﷺ فرمایلي دي چي: خپل حاجت د ښایستو خلکو او اصحاب جمال څخه طلب کوئ، حضرت عمرؓ فرمایي چي: کله څوک سفیر لیږي نو داسي سفیر دي ولیږي چي نوم یې هم ښه وي او صورت یې هم ښه وي، د فقهاؤ یو خیال دا هم دی چي کله دلمونځ دامامت د پاره څو تنه موجود وي چي د دې اهل وي او په علم او فضل، قراءت د قرآن، نېکو صفتونو او زهد او تقوی کي ټول برابروي نو په دوی کي قابل ترجیح به هغه وي کوم چي زیات ښایسته وي، دلته دا خبره واضحه کول ضروري معلومیږي چي د دې ښایست والی او ښایست څخه هغه نه دي مراد په کوم سره چي شهوت راپورته کیږي ځکه چي دغه حُسن خو دښځو حُسن وي دلته مراد مرادنه حُسن دی چي بنده باوقاره وي په اندامونوکي یې تناسب وي او په وضع قطع (شکل او حالت) کي یې کشش (جاذبه) غوندي وي چي په لیدلو سره یې د لږو څخه لږ نفرت هم نه محسوسیږي.

او کوم نعمتونه چي دبدن څخه د باندي وي لېکن بدن ته د دوی حاجت وي دا دي: (١) مال (٢) جاه (٣) زن او فرزند (ښځه او بچیان) (۴) د نسب بزرگي او غټوالی:

(١) د آخرت دپاره دمال حاجت په دې وجه وي چي د چا سره مال نه وي هغه ټوله و رځ دمعاش په تلاش کي سرګردانه وي او په علم او عمل کي د مصروف کېدلو موقع ورته ډېره کمه په لاس ورځي، نو په قدر دکفایت مال د دین د پاره هم نعمت دی (٢) او د جاه (مرتبې) ضروت په دې وجه وي چي جاه او مرتبه چي چا ته حاصله نه وي دی دخلکو په نظر کي ذلیله وي بلکي دی خو خپل ځان د دښمنانو څخه په مشکله خوندي کولای سي، لېکن دا ضروري ده چي د مال او جاه فرواني ډېر آفتونه د ځان سره راوړي (٣)ښځي او بچیانو ته یې ځکه نعمت ویلي دی چي ښځه د څومره دنلو او کارونو څخه انسان خلاصوي او د شهوت د بدترین شر څخه یې خوندي ساتي، په دې وجه نبي ﷺ فرمایلي دي چي: صالحه ښځه په دیني کارونو کي د سړي ښه مدګاره وي (۴) شرافت د نسب هم یو نعمت دی نو ځکه امامت په قریشو پوري مخصوص کړی سوی وو، نبي ﷺ فرمایي چي: تخم په ښه ځای کي اچوئ، او کومه ګیاه(وا ښه )چي په ګنده ګی را شنه سوې وي، دهغې څخه خوندي وسئ، خلکو عرض وکړي چي په ګنده ګي کي د شنه سوي وښو څخه څه مراد دي؟ نو ویې فرمایل چي ښایسته لېکن بداصله ښځه، په هر حال دا یاد ساتل پکاردي دلته د عالي نسب څخه دامراد نه دي چي پلار نیکه ته یې سرداري حاصله وي بلکي دیني پاکوالی او بزرګي مراد ده، کومه چي صالحو او عالمانو خلکو ته حاصله وي نو دا هم یو نعمت دی ځکه چي د بنده اخلاق او عادتونه په عامه توګه د

پلار اونیکه شخه ده ته راځي، او د اصل صلاحیت د فرع پر صلاحیت دلیل وي لکه چې د الله ﷻ ارشاد دی: وَكَانَ أَبُوهُمَا صَالِحًا (او د دوی پلار یونېک سړی وو (الكهف).
او هغه څلور نعمتونه کوم چې د مذکوره دوولسو نعمتونو سره جمع کول کیږي دا دي: (١) هدایت (٢) رُشد (٣) تائید (۴) تسدید. او دا څلور چې یو ځای سي (توفیق) ورته وایي او یو نعمت بغیر د توفیق څخه نعمت کېدای نسي، او د توفیق معنی دا ده: چې د قضاء الهي او د بنده د ارادې په مینځ کي موافقت ترلاسه سي، او دا خبره لکه څنګه چې په خیر کي کیږي، دغه رنګه په شر کي هم کېدای سي، لېکن د عام دستور مطابق دالفظ مخصوص جمع وي یعني د دوارو په مینځ کي موافقت وي او لکه لور چې بیان سو د توفیق اجزاء څلور دي چې د دوی څخه د ده تکمیل ممکن دی.
(١) اول شئ خو هدایت دی د کوم څخه چې یو سړی بې نیازه کېدای نسي ځکه چې د آخرت د سعادت طالب که د سعادت د لاري څخه واقف هم نه وي او د غلطي لاري تصور کوي نو ده ته به څه حاصل وي؟ نو د هدایت څخه بغیر که اسباب پیدا هم کړي نو د هیڅ کار به نه وي ځکه چې د دې دوارو احسان پخپله الله ﷻ کړی دی: رَبُّنَا الَّذِي أَعْطَىٰ كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ ثُمَّ هَدَىٰ (طه:٥٠) (زما پروردګار هغه دی چې هر شي ته یې صورت ورکړی بیا یې ورته هدایت وکړی). او بل ځای فرمایي: وَالَّذِي قَدَّرَ فَهَدَىٰ (الاعلى:٣) (د الله ﷻ ذات هغه برکت والا دی چې اندازه کوي بیا هدایت ور نصیب کوي).
یادساته! چې د دې هدایت درې درجې دي: اوّله درجه هغه ده چې بنده په خیر او شر کي فرق وکړي دا درجه ټولو عقلمندو ته الله ﷻ عنایت فرمایلې ده، بعضو ته د عقل په ذریعه بعضو ته د انبیاء علیهم اسلام په ذریعه، دویمه درجه دا خاص هدایت دی کوم چې په مجاهده او معاملې سره لږ لږ حاصلیږي او د حکمت لاره ښکاره کیږي دا هدایت د مجاهدې نتیجه وي، د الله ﷻ ارشاد دی: وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا (عنکبوت: ۶۹) (کوم خلک چې زموږ په لاره کي کوشش کوي نو موږ دوی ته د خپل هدایت لاري ښیو) په دې کي یې دانه دي ویلي چې موږ د ځانه هدایت ورکوو، بلکي د کوشش خبره یې مخکي وفرمایله. او دا چې ارشاد دی: وَالَّذِينَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى... (مُحَمَّد) (کوم خلک چې پر لاره دي الله ﷻ دوی ته نور زیات هدایت کوي) د دې څخه هم دا مراد دی. لېکن دریم هدایت کوم ته چې خاص او خاص هدایت وایي، او دا هغه نُور دی کوم چې په عالَم نبوّت او

ولایت کي ښکاره کیږي، او دا هدایت د الله ﷻ وطرف ته وي صرف ده ده لاري وطرف ته نه وي، او وي په داسي طریقه سره چي دعقل هلته دځانه د رسېدلو طاقت نه وي، ارشاد دی چي: قُلْ إِنَّ الْهُدَىٰ هُدَى اللَّهِ [البقرة] (ته صفا ووایه! چي په حقیقت کي خو د هدایت هغه لار ده کومه چي خدای ښوولې ده) نو دې مطلب دا دی چي هدایت مطلق دا دی او دې ته ژوند ویل سوي دي، فرمایي: أَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ وَجَعَلْنَا لَهُ نُورًا يَمْشِي بِهِ [الانعام:١٢٢] (داسي سړي چي مخکي مړ وو بیامو بې دی ژوندی کړی او ده ته مو داسي نُور ورکړی چي په هغه سره په خلګو کي ګرځي)

(٢) او دویم شئ یعني رُشد: مطلب یې دا دی چي بنده ته کومه لار د هدایت معلومه سوې ده، پر دغه باندي د تګ خواهش ده په زړه کي پیدا سي، دالله ﷻ ارشاد دی: وَلَقَدْ آتَيْنَا إِبْرَاهِيمَ رُشْدَهُ مِن قَبْلُ [الأنبياء:٥١] (چي موږ د زماني دموسی ؑ څخه مخکي حضرت ابراهیم ؑ ته ددې رُشد ورکړی وو) هلک چي بالغ سي او دا هدایت ورته حاصل وي چي د مال حفاظت څنګه کیږي لیکن عملاً یې حفاظت ونه کړي نو ده ته صاحب رُشد نسي ویل کېدای که څه هم دی هدایت یافته ولي نه وي.

(٣) دریم تسدید دی، تسدید دادی: چي د بنده حرکات او سکنات او د بنده ټول اندامونه دخیر د کار وطرف ته په آساني سره رامخکي کیږي چي ژر په ژره پخپل ښکو مقاصدو کي کامیاب سي نو د هدایت ثمره په معرفت کي ده او د رُشد ثمره په داعیه او اراده کي ده او د تسدید ثمره په قدرت او آلاتو دحرکت کي ده.

(٤) د تائید څخه مراد هغه امداد دی کوم چي د غیبو څخه ستا په باطن کي ستا په بصیرت سره او ستا په ظاهر کي په قوّت او حرکت سره تا ته رسیږي، د الله ﷻ ارشاد دی: وَأَيَّدْنَاهُ بِرُوحِ الْقُدُسِ [البقرة] (او موږ ده ته تائید په روح القدس یعني جبرئیل ؑ سره وکړی) او عصمت ده ته ډېر نږدې واقع سوی دي، کوم چي دا دی چي د بنده په باطن کي یو داسي شئ د منع کوونکي په صورت کي پیدا سي کوم چي دی د ګناه او د شرک څخه ساتي، او بنده ته د دې ښه احساس کیږي چي دغه طاقت راغلی دکوم ځای څخه دی، د الله ﷻ ارشاد دی: وَلَقَدْ هَمَّتْ بِهِ وَهَمَّ بِهَا لَوْلَا أَن رَّأَىٰ بُرْهَانَ رَبِّهِ [یوسف:٢٤] (او د دغه ښځي په زړه کي د ده خیال پوخ سوی وو او د ده به هم ښځي ته څه څه خیال راغلی وای که د خپل رب دلیل نه وی لیدلای نو خیال به یې زیات سوي وای) نو دا دی هغه

دنیاوي نعمتونه کوم چې دآخرت د پاره د لاري توښې دي، او دا د نورو اسبابو محتاجه دي او هغه اسباب پخپله د نورو اسبابو محتاجه دي تر دې چې بنده آخري حدّ ته ورسیږي کوم چې د لاالهانده خلګو لارښوونکی ربّ الارباب، مسببّ الاسباب دی، او د دې تولې سلسلې د اسبابو تفصیل بې اندازې اوږد دی، بس دلته دا کافي دي (کوم چې بیان سول).

## په شکرګزاری کې تقصیر کول

په شکر کې په دوو وجهو سره کمی او تقصیر کیږي یو دا الله ﷻ د ډېرو نعمتونو د نه پیژندلو په سبب ځکه چې د هغه د نعمتونو خو یو شمېر نسته لکه چې ارشاد دی: وَإِنْ تَعُدُّوا نِعْمَتَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا [ابراهیم:٣٤] (که تاسو د الله ﷻ نعتمونه شمېرئ نو نه یې سئ شمېرلی) د الله ﷻ لږ نعمتونه کوم چې د خوراک متعلق دي دغه په احیاء العلوم کې ذکر سوي دي چې بنده پر دې قیاس وکړي پوه سي چې د هغه تول نعمتونه پیژندل ممکن نه دي، په دې کتاب کې یې د تفصیل ځای نسته، دویم سبب دا دی چې د الله ﷻ عام نعتمونه خو انسان نعمت شماري هم نه، او د سره یې شکر نه اداء کوي نو دا نرمه هوا کومه چې په ساه اخیستو کې پکار راځي دا د دې حیواني روح امداد کوي چې معلذ یې زړه دی او د زړه ګرمي معتدله کوي که یوه ساه بنده سي نو بنده هلا کیږي لیکن بنده دا نعمت پیژني هم نه، دغه رنګه په لکونو نعتمونه سته چې د هغو وطرف ته د انسان توجه نسته، ها! که د یو ګړی د پاره داسي غاري ته شوه سي چې هوا یې سخته وي او ساه یې بنده سي یا په یو ګرم حمام کې قید کړل سي او د یو ساعت د پاره ربندي وي نو بنده ته به د دې نعمت د قدر اندازه وسي، تر څو پوري چې د انسان په سترګو کې تکلیف نه وي یا خدای مه کړه نظر یې بالکل ختم نسي تر هغه وخته بنده د روغې جوړې سترګې شکر نه اداء کوي، د داسي بنده مثال د هغه غلام په شان دی چې تر څو پوري وهل سوی نه وي تر هغه پوري د سزا نه ملاوېدلو شکر او قدر نه کوي، که دی ونه وهل سي نو په ده کې سرکښي پیدا کیږي، په دې وجه د شکر تدبیر دا دی چې د الله ﷻ نعمتونه بنده په زړه کې رایادوي، موږ په احیاء العلوم کې د بعضي نعمتونو تفصیل ذکر کړی دی دا تدبیر خو دکامل سړي د پاره دی، ناقص او ناپوه ته دا تدبیر کول پکار دي چې روزانه ځني شفاخانې (هسپتال)، قیدخانې (محبس) یا هدیرې ته ځي چې په مصیبت او پرېشانۍ کې اخته انسانان ووینې د خپل صحت او سلامتې اندازه وورته وسي ممکنه ده چې دغه وخت بیا د الله ﷻ په شکر کې مشغوله سي، هدیرې ته

چي ولاړ سي نو دا دي یاده کړي چي دا ټول مړي د یوې ورځي د پاره د دوباره ژوندي کېدلو خواهش لري چي د خپلو ګناهونو تلافي وکړي لېکن دوی ته د یوې ورځي ژوند هم نه نصیب کیږي، او دا فکر دي وکړي چي دا عجیبه انسان دی چي ده ته د ژوند ډېري ورځي لاباقي دي او دی یې قدر نه کوي، او کوم چي عام نعمتونه دي بنده خو د هغو د سره شکر نه کوي لکه هوا، لمر، سترګي، د سترګو دیداو مال، او صرف هغه نعمت نعمت ګڼي کوم چي د ده سره خاص وي، ده ته پوهېدل پکار دي چي دا د ده ناداني ده ځکه چي د یو شئ نفع عامه سي بیا هم هغه نعمت دی، بیا دي غور وکړي نو خاص نعمتونه هم ده ته ډېر حاصل دي ځکه چي یو سړی داسي نسته کوم چي دا ګمان نه کوي چي زما د عقل برابر د چا عقل نسته او زما د اخلاقو په ډول د چا اخلاق نسته د دې ګمان په سبب نور احمق او بد اخلاقه ګڼي او خپل ځان دا نه ګڼي، نو چي دا ګمان وکړي د خپلي عقل مندی او خوش اخلاقی شکر دي وکړي او د نورو عیب جوېي دي نه کوي، داسي څوک سته چي په هغه کي څه ناڅه عیب نه وي، دا جلا خبره ده چي الله ﷻ پر عیبونو باندي پرده اچولې ده بنده ته د داسي خطرو او وسوسو سره واسطه پرېوځي که دغه ونورو ته معلومه سي نو ځومره شرمندګي به یې وي دا خبره د هر یوه په حق کي خاص نعمت دی، انسان ته د دې شکر کول پکار دي او همیشه د هغه نعمت په فکر کي نه دي وسېدل پکار د کوم څخه چي محرومه وي په دا ډول بنده د شکر څخه محرومه کیږي، بلکي انسان ته و هغو نعمتو ته کتل پکار دي کوم چي بغیر د یو څه استحقاق څخه الله ﷻ ور کړي دي.

**قصه**: یو سړی د یوه بزرګ و خوا ته ولاړی د خپلي مفلسی فریاد یې ورته وکړی نو هغه بزرګ وویل چي ته په د دې راضي یې چي ستا سترګه وچاودي او تا ته لس زره درهمه ملاو سي هغه وویل نه!، هغه وویل په دي راضي یې چي لاس به در څخه لیري سي او لس زره درهمه به ملاو سي هغه وویل نه!، او دغه رنګه یې غوږونه پښې او نوري لیري کول او لس زره دیناره یې د هر یوه په بدله کي ملاوېدل ور ته وویل هغه وویل چي نه! بیا یې ورته وویل چي عقل در څخه ولاړ سي او لس زره دیناره درته ملاو سي هغه وویل چي نه! وبې فرمایل چي ستا سره پنځوست زره درهمه سرمایه خو اوس هم موجوده ده بیا هم شکایت څنګه کوې؟ که تلسو د چا څخه پوښتنه وکړی چي ته خپل حالت د فلاني سره بدلوې؟ نو بدلوي یې نه! نو بیا چي الله ﷻ تا ته څه در کړي دي او نورو ته یې نه دي ور کړي نو تا ته ضرور شکر کول پکار دي.

## دریم اصل: د خوف (د الله ﷻ څخه د ېرې) او رَجا (دالله ﷻ څخه دامید) په باره کې

پوه سه! چې دخوف (ېرې) او رجا (اُمید) حیثیت د سالک د دوو وزرونو په ډول دی، چې لوړو لوړو مقامونو او ځایونو ته په دې سره رسیږي، او هغه غوندۍ کومې چې بنده د الله ﷻ څخه په پرده کې ساتي دومره دنګې او جګې دي چې تر څو پورې پوخ طلب او رښتونی اُمید نه وي، او ستر ګې سیده جمال الهي ته پورته سوې نه وي تر هغه وخته دا سختې غوندۍ عبور کول ممکنه نه دي او شهوات او خواهشات کوم چې د دوږخ پر لاره واقع دي داسي فریب ګر او زړه را کشوونکي دي چې د دوی د تاو را تاو جالو څخه خوندي کېدل تر هغه وخته محاله دي تر څو پورې چې خوف او ېرې زړه په پوره توګه راګیر کړی نه وي او غلبه حاصله نه کړي، په دې سبب سره خوف او رجا ته زبردست او غټ فضیلت حاصل دی، په دې ډول کې رجا ته واګي (قیضه) وایي، او خوف کروړه ده ځکه چې رجا یې مخ ته راکشوي او خوف یې مخ ته تېزوي، اوس اول د رجا په باره کې لوبیا به د خوف په باره کې د خیال اظهار کوو.

## د رجا (اُمید) فضیلت

پوه سه! چې د الله ﷻ هغه عبادت کوم چې د ده د فضل او کرم په اُمید باندې وکړای سي د هغه عبادت څخه ډېر افضل دی کوم چې د ده د عتاب او عذاب څخه په ېرېدلو سره وکړای سي، ځکه چې د اُمید څخه محبت پیدا کیږي او د محبت څخه لوړ یو مقام نسته، او د ېیرې څخه ېره او نفرت بنکاره کیږي، په دې وجه نبي ﷺ فرمایي چې: ستاسو څخه د هر یوه د پاره لازم دي چې د مرګ په وخت پر الله ﷻ باندې نېک ګمان کوی چې د دې دنیا څخه رخصت سي، او فرمایي: د الله ﷻ ارشاد دی چې زه هغه یم څنګه چې زما بنده ما ګڼي، نو زما بندګانو ته ووایه چې هغوی څنګه ګمان غواړي پر ما دې کوي، نبي ﷺ د یو سړي څخه د ده د ساه ختلو په وخت کې پوښتنه وکړه چې: ته خپل ځان د لوخت څنګه وینې؟ هغه جواب ورکړی چې ما زما ګناهونه ېروي لېکن د رحمت اُمید واره یم، وېې فرمایل په داسي وخت کې دا خبرې د هغه سړي په زړه کې یو ځای کېدای سي چا ته چې الله ﷻ امان ورکړی وي چې د کوم شئ څخه دی ېرېږي او نه ېرېږي او د کوم شئ چې اُمیدلوواره وی هغه خپل په مخ کې پوره سوی ووینې.

الله ﷻ پر حضرت یعقوب علیه السلام وحي نازلې کړې: چې ته پوه یې چې ما حضرت یوسف علیه السلام ستا څخه ولې جلا کړی؟ او بیا یې وفرمایل: ځکه مې جلا کړی چې: تا خپلونورو ځلمنو ته ویلي وو

چي: إِنِّي أَخَافُ أَن يَأْكُلَهُ الذِّئْبُ وَأَنتُمْ عَنْهُ غَافِلُونَ [ يوسف:١٣] (زه بیرېږم چي دی به شرمښ وخوري او تاسو به خپل کار کي د ده څخه نا خبره یاست) د دې مطلب دا سو چي ته دشرمښ څخه بیرېدی لېکن زما څخه دې اُمید نه وو، او دغه رنګه د ده د ورنو غفلت دې یاد وو لېکن دا دی یاده نه وه چي زه حفاظت کوونکی یم حضرت علي رضي الله عنه یو سړی د ډېري ګناه په سبب نااُمیده ولیدی نو ورېې فرمایل: نااُمیده کېږې ولي؟ د هغه رحمت ستا د ګناهونو څخه زیات دی.

یوه ورځ نبي ﷺ وفرمایل: اي خلکو څه چي ماته معلوم دي که تاسو ته معلوم سي نو تاسو به ډېر ژاړئ، او کم به خاندئ، لېکن بالکل ممکنه ده چي تاسو ځنګلونو ته ووځی او سینه ووهئ ژړا اوفریاد کوئ، خاص په دغه وخت کي حضرت جبرئیل علیه السلام نازل سو او ویې ویل چي الله جل جلاله فرمایي چي ولي زما بندګان زما د رحمت څخه نااُمیده کوې؟ نبي ﷺ دغه وخت بهر تشریف راوړی او د الله جل جلاله د فضل او کرم ښه اُمیدونه یې خلکو ته وروکړل. په حدیث شریف کي دي چي په بني اسرائیلو کي به یو سړی خلک د خدای د رحمت څخه مایوسه او نااُمیده کول، د قیامت په ورځ به الله جل جلاله ده ته وواییي چي زه نن زه تا هم د خپل رحمت څخه نااُمیده کووم لکه چي تابه زما بندګان کول. او په حدیث شریف کي دي چي یو سړی به زرکاله په دوږخ کي وساتل سي بیا به د ده په یا حَنَّانُ یا مَنَّانُ ویلو الله جل جلاله جبرئیل علیه السلام ته وواییي چي دی د بلندي راوباسه، را وبه یې باسي او د الله جل جلاله په حضور کي به یې پیش کړي نو د الله جل جلاله د طرف څخه به ځیني پوښتنه وسي چي اي بنده! دوږخ دي څنګه پیدا کړی؟ عرض به وکړي چي د ده څخه بدترین هیڅ ځای نسته، الله جل جلاله به حکم وکړي چي بیا یې دوږخ ته واچوئ دی چي روان یې کړي نو شاته شاته به ګوري، الله جل جلاله به وواییي اي بنده شاته ولي ګورې؟ دی به عرض وکړي اي خدایه! زما ګمان وو چي زه یو وار د دوږخ څخه راویستل سوم، نو بیا به مي نه ور واچوي، په دې به الله جل جلاله حکم وکړي چي دی جنت به بوځئ او دغه رنګه به یې دا اُمید د خلاصون (نجات) وسیله سي.

## د رَجا حقیقت او پېژندنه

په راتلونکي وخت کي د خیر اُمید ته رَجَا وایي، او داسي هم کېدای سي چي دې اُمید ته تمنّا، غرور یا حماقت وویل سي، احمقان خلک په دې کي فرق نه کوي او ټولو ته اُمید وایي، حال دا دی چي داسي نه ده، بلکي که یو سړی ښه تخم وکوری او بیا یې په نرمه او پسته ځمکه کي وکری او دغه ځمکه د خاشو، ازغیاتو او وښو او نورو څخه پاکه کړي او پر وخت یې اُوبه کوي، او بیا اُمید لري چي

الله پاک به یې د آفتونو څخه خوندي کړي او بیه حاصلات، ګټه او پیداوار به حاصل کړم، نو دې ته اُمید او رَجاوایي، او که تخم وروست او خراب وي یا ځمکه سخته وي او د وبیو لوبوړو څخه یې صافه هم نه کړي او یا ورته اوبه پر وخت نه ور کوي او بیا د پیداوار او حاصلاتو توقع کوي نو دا غرور او حماقت دی رجا نه ده، لیکن که یبه تخم په صافه او پاکه ځمکه کي وکري لیکن اوبه ورنه کړي او د باران تمنّا ساتي او ځای داسي وي چي په عامه توګه پکښې باران نه کیږي لیکن د باران کیدل محاله هم نه وي نو دې ته آرزو او تمنّاوایي، دغه ډول کوم سړی چي د ایمان صحیح او یبه تخم د سینې په میدان کي وکري او سینه د بدو اخلاقو څخه صافه کړي او په عبادت سره د ایمان بوټی ته اوبه ورکوي او دا لله ﷻ څخه اُمید ساتي چي هغه به یې د آفتونو څخه خوندي کړي او تر مرګه پوري دا سړی په احتیاط کي وسیږي او د ایمان سره د دنیا څخه رخصت سي نو دا اُمید او رجاده، د دې علامه دا ده چي په مستقبل کي کومه نېکي ممکنه وي په هغې کي کمی نه کوي او د احتیاط لمن ونیسي، په دې وجه چي د فصل د حفاظت څخه غافل کېدل د نا اُمیدی علامه ده د اُمید نه ده، او که د ایمان تخم یې خدای مه کړه وروست وي یعني د کامل یقین د دولت څخه محرومه وي یا یقین کامل خو وي لیکن د بدو اخلاقو څخه سینه پاکه نه کړي او په عبادت سره یې د اُوبه کولو اهتمام ونه کړي نو د رحمت اُمید حماقت دی، نبي کریم ﷺ فرمایي: احمق دی هغه سړی چي هغه څه کوي کوم چي د ده د نفس خواږي او امید کوي د الله ﷻ د رحمت، دالله تعالی ارشاد دی: فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ وَرِثُوا الْكِتَابَ يَأْخُذُونَ عَرَضَ هَذَا الْأَدْنَى وَيَقُولُونَ سَيُغْفَرُ لَنَا [الاعراف:۱۶۹] (د دوی څخه وروسته داسي خلک د دوی ځای ناستي سول چي د کتاب (تورات) وارثان سول د دې دنیا حقیر مال اخلي او وایي چي زموږ به ضرور مغفرت وسي) الله ﷻ د دغو خلکو بد فرمایي کومو ته چي د انبیاء علیهم السلام څخه وروسته علم حاصل سو لیکن په دنیا کي مشغول سول د دې سره دا وایي: چي اُمید سته الله ﷻ به پر موږ رحمت وکړي، نو د کوم شئ اسباب چي د بنده په اختیار کي وي نو د دغو اسبابو پوره کولو څخه وروسته د الله ﷻ پر رحمت نظر ساتل خو بې شکه رجا ده، لیکن که دا اسباب تباه وبرباد کړي نو د رحمت اُمید درلودل حماقت او غروردی، او که وران او برباد یې نه کړي لیکن د آبادی یې هم څه تدبیر ونه کړي نو دمبوې اُمید ساتل صرف آرزو او تمنّا ده،

زید الخیل نومي یو سړی د نبي ﷺ په خدمت کي حاضر سو عرض یې وکری چي زه پوښتني ته راغلای یم، چي د هغه شئ علامه څه ده؟ چي د فلاني سړي خو الله ﷻ ته خیر منظور وی او د فلاني

خیر ورته منظور نه وي؟ ورېې فرمایل: ته چي هر سهار را وېښ سې نو ستا څه کیفیت وي؟ هغه وویل: چي زما حال خو دا وي چي زما د نېکو کارونو سره مینه وي او د نېکو خلکو سره مینه کول خوښوم، او که یو نېک کار مخي ته راځي نو په منډه یې کووم او پر ثواب یې مکمل یقین لرم، او که د یو نېک کار موقع مي د لاسه ځنې ووځي نو غمجن او خفه سم او د دې خبري آرزو لرم چي بیا یې راته کول نصیب سوي وای، نبي ﷺ وفرمایل: بس دغه علامه ده چي الله ﷻ ته د یو چا خیر منظور وي ځکه چي که هغه ته ستا بد منظور وای، ته به یې په بلو کي مشغول پاته کولای او د دې خبري به یې قطعاً څه پروا نه وای چي د دوږخ کومه کنده ستا ځای د هلاکت سي.

## د رَجَا حاصلولو علاج او طریقه

پوه سه! چي د دې علاج محتاجه صرف دوه قسمه مریضان دي یو هغه دی چي د ډېرو ګناهونو په وجه مایوسه سوی وي توبه نه کوي او وایي چي زما توبه به څنګه قبوله سي، دویم هغه سړی چي په ډېره مجاهده او ریاضت سره خپل ځان خواروي او دومره تکلیف او محنت کوي چي د قوّت څخه یې د باندي وي، نو دې مریضانو ته خامخا د دوایی ضرورت سته، لېکن غافلو ته چیري هم رجاد د دواء کار نسي ورکولای، بلکي د دوی په حق کي خو به دې ته زهر قاتل ویل کیږي، او د رَجَا (اُمید) د غلبې امکان په دوه ډول سره کېدای سي، اول دا چي بنده عبرت حاصل کړي د دنیا عجائباتو، نباتاتو او حیواناتو او د نورو ډول ډول نعمتونو پیدایښت ته د غور په نظر سره وګوري د کومو ذکر چي موږ په دې کتاب کي د شکر تر عنوان لاندي کړی دي چي د الله ﷻ هغه نعمتونه رحمتونه او عنایتونه ده ته ښکاره سي د کومو څخه چي د غوره او بهترینه تصوّر نسي کېدای، او پخپل ذات کي غور وکړي چي د کوم کوم شي ده ته ضرورت وو مثلاً لاس پښې او نور، یا هغه شیان چي د کومو حاجت په لازمي توګه نه وو، مثلاً د شونډانو سُرخي د ورځو کوږوالی د سترګو تورالی د بانوګانو د سترګو نېغوالی په څومره ښکلې طریقه سره جوړ کړل او پر تولو حیواناتو یې څومره رحمت وکړی تر دې چي د عسلو د مچمچی په جوړولو کي یې څومره لطافت او کشش (جاذبه) پیدا کړه چي د دې بدن څومره ښایسته ښکاره کیږي او بیا د ګبین په جوړولو کي یې دې ته څومره مهارت ورکړی چي داسي ښکلي کور جوړوي نو عسل پکښې جمع کوي او څومره په هنر (ذوق) سره دخپلي مَلکې (مشري) تابعداره وي، نو د کوم سړی نظر چي داسي عجائباتو ته رسېدای سي کوم چي د ده د ظاهر او باطن څخه ماسوا په ټول مخلوقاتو کي ښکاره کیږي نو دا غور او فکر به دی خامخا دې نتیجې ته ورسوي چي دخدای په

رحمت کي د نا اُمیدی د غلبې یاد یري قطعًا څه ګنجائش نسته، بلکي د خوف او رجا دواړو په یوه وخت کي موجود یدل لازمي دي او که غلبه وي نو د رجا پکار ده، د دې څخه ماسوا دا دي یاد ساتي چي د الله ﷻ رحمتونه او عنایتونه کوم چي هر وخت د بنده سره وي، دومره زیات دي چي حساب او شمېر یې ممکن نه دی، د یوبزرګ وینا ده چي په قرآن پاک کي د مداثناتو د آیت څخه زیات اُمید پیداکوونکی او رجا راپورته کوونکي نسته، یعني دا اوږد آیت: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنتُم بِدَيْنٍ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوهُ ۚ وَلْيَكْتُب بَّيْنَكُمْ كَاتِبٌ بِالْعَدْلِ ۚ وَلَا يَأْبَ كَاتِبٌ أَن يَكْتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ اللَّهُ ۚ فَلْيَكْتُبْ وَلْيُمْلِلِ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئًا [البقرة: ۲۸۲] چي هغه الله ﷻ پخپل کلام کي نازل کړی دي او د دې معنی اومفهوم دا دی: چي کله موږ چاته قرض مال ورکړو نو د هغه فرض دي چي پوره حفاظت یې کوي او د ضائع کېدلو څخه یې ساتي. بیا دا څنګه ممکنه ده چي د دا قسم مهربانیو سره سره به هغه زموږ په بخښني او معافي کي کمی وکړي او موږ به دوږخ ته واچوي؟ دا یو ډېر غټ علاج د رجا د حصول په ضمن کي دی چي فائده یې بې انتها ده، لیکن دې درجې ته رسېدل هر چاته نسي نصیب کېدای.

دویم سبب په هغه آیتونو او احادیثو کي غورکول دي کوم چي په دې باره کي په ډېر شمار سره موجود دي، لکه چي په قرآن مجید کي فرمایي: چا ته زما د رحمت څخه نا اُمیده کېدل نه دي پکار، او فرمایي: فرشتې ستاسو د بخښني طلب کوي، او د مځکي د خلکو د پاره معافیاني غواړي [شوریٰ]، او دا دوږخ څکه دی چي کافران دې ته واچول سي کنې مؤمنانو خو صرف د دې څخه یېرول مقصود دي: ذَٰلِكَ يُخَوِّفُ اللَّهُ بِهِ عِبَادَهُ (دا هغه عذاب دی چي الله ﷻ په دې سره خپل بنده ګان یېروي [الزمر] او نبي ﷺ خو د خپل امت د بخښني طلب همیشه بې آرامه کوی، تر دې چي دا آیت نازل سو: وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلَىٰ ظُلْمِهِمْ [الرعد:۶] (او دا خبره یقیني ده چي ستا رب د خلکو د خطاګانو سره سره د دوی ګناهونه معاف کوي) او کله چي دا آیت نازل سو: وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ فَتَرْضَىٰ (الضحی:۵) نو نبي ﷺ وفرمایل: چي زه به تر هغه وخته پوري راضي نه سم تر څو چي زما یو امتي هم په دوږخ کي پاته وي، او داسي آیتونه ډېر زیات دي، او احادیث بې شماره دي، مثلاً نبي کریم ﷺ فرمایي: چي زما اُمّت "اُمّت مرحومه" دی چي دوی ته هر څومره عذاب او عتاب ورکول وي په دې دنیا کي به وي هغه که د فتنو په شکل کي وي او که د زلزلو په شکل او د قیامت په ورځ به هر مسلمان

ته یو یو کافر وړکړل سي چې دا پر تا باندې قربانوو. او فرمایي: د الله جَلَّ جَلالُهُ ارشاد دی: چې زما بنده که گناه وکړي او هغه گناه دومره وي چې ټول اسمان په دې سره ډک سي لیکن د دې څخه وروسته هم اُمیدواره د رحمت وي استغفار وکړي نو زه دی معاف کووم، دغه ډول که د ده گناه ځمکه ډکوي نو زما سره د ده د پاره رحمت هم دومره اندازه هر وخت موجوده وي، او فرمایي: د بنده څخه د گناه کېدلو څخه وروسته تر شپږو گړیو پوري فرشته دغه په عملنامه کي نه لیکي ځکه چې په دې دوران کي که دی توبه وکړي نو دغه گناه به د سره ونه لیکل سي، بلکي که توبه هم ونه کړي خو یو ډول بندگي او اطاعت وکړي نو د راسته وړې نېکیو لیکونکې فرشته د چپه وړې بدی لیکونکي فرشتې ته ووايي چې ته دغه گناه د ده د عملنامې څخه ورانه کړه نو زه به دا نېکي هم د ده ونه لیکم، لیکن ځکه چې د هري نېکی لس چنده اجر وي په دې وجه نهه حصّې بیا هم د ده په عملنامه کي باقي پاته سي.

او فرمایي: بنده چې گناه وکړي نو د ده په عملنامه کي ولیکل سي، یو اعرابي وویل چې که چیري بنده بیا استغفار وکړي؟ ورې فرمایل: بیا خرابه کړل سي، هغه عرض وکړی، که بیا گناه وکړي؟ ورې فرمایل: بیا ولیکل سي، هغه وویل چې بیا استغفار وکړي؟ ورې فرمایل: بیا خرابه سي، هغه عرض وکړی دا سلسله تر کومه پوري جاري وي؟ ورې فرمایل تر کومه پوري چې دی د استغفار سلسله جاري ساتي، ځکه چې تر څو پوري د بنده د استغفار څخه زړه تنگ نسي، الله جَلَّ جَلالُهُ د بخښني څخه ستړي کیږي نه.

یو سړي عرض وکړی یا رسول الله ﷺ: زه د رمضان روژې نیسم او پنځه وخته لمونځ کووم، لیکن پر دې نوره زیاته اضافه نسم کولای ځکه چې زکوٰة او حج نه سم اداء کولای زما سره مال نسته د الله جَلَّ جَلالُهُ د پاره ماته ووایاست چې صبا به زما مقام کوم ځای وي، نبي ﷺ په تبّسم (مُسکا) سره وفرمایل چې ته به زما سره یې، په دې شرط چې: د دوو شیانو څخه زړه پاک کړی د حسد او کینې څخه، او د دوو شیانو څخه ژبه خوندي کړې: د غیبت او دروغو څخه، او د دوو شیانو څخه سترگي وساتې یعني پر نامحرم د نظر کولو څخه او خلکو ته د سپکو کتلو څخه، نو چې داسي وکړې نو زما سره به جنت ته داخله سې او زه به تا د لاس په ورغوي باندي گران ساتم، او فرمایي: د قیامت په ورځ به الله جَلَّ جَلالُهُ دومره رحمت ښکاره کړي چې کله به د چا په زړه کي د دې اندازه هم نه وي راغلې، تر دې چې ابلیس به هم غاړه جگه کړي د رحمت دا لوړوالی به ویني. او فرمایي: د الله جَلَّ جَلالُهُ سل رحمتونه دي یو کم سل یې د قیامت د پاره پرې ایښي دي او صرف یو رحمت یې په دې دنیا باندي را خور کړی دي او صرف دغه یو

يې ښکاره کړې دي او په دې دنيا کې ټول زړونه د دغې رحمت په طفيل سره رحم کوونکي سوي دي تر دې چې پر بچي د مور رحمت او شفقت، د څاروياتو پر خپلو بچياتو مينه او محبت ټول د دغه رحمت علامې دي، او په قيامت کې به دا يو رحمت هم د هغو يو کم سلو رحمتونو سره شامل کړي پر بندګانو به يې را خور کړي، او هر رحمت به دومره پلن او اوږد وي چې د اسمانونو او ځمکو پر څو څو طبقو باندي به خور وي، نو په دغه ورځ ما سوا د هغه بدبخت شخصه بل څوک هلاکېدلای سي د کوم هلاکت چي دازل د ورځي شخصه د ده مقدّر جوړ سوی وي.

او فرمايي: ما خو خپل شفاعت د هغو خلکو د پاره اېښی دي کومو ته چي اهلِ کبائر وايي، (يعني چي کبيره ګناهونه يې کړي وي) که تاسو ګنئ چي زما شفاعت د پرهېزګارانو او اطاعت ګزارو د پاره دی نو دا ستاسو غلط فهمي ده ځکه چي دا د هغو د پاره دی کوم چي په ګناه کي لت پت او ککړ وي.

سعيد بن بلال رحمه الله وايي چي دوه خلک به د قيامت په ورځ د دوږخ شخه د باندي را وويستل سي او الله ﷻ به دوی ته ووايي چي تاسو چي څه وليدل دا مو د خپلو عملونو په وجه وليدل ځکه چي زه پر بندګانو ظلم نه کووم دا به ووايي او حکم به وکړي چي دوی بوځئ بيا يې هغه دوږخ ته واچوئ نو په دوی کي به يو خو په منډه منډه دوږخ طرف ته روان سي او دويم به وروسته ودرېږي نو دواړه به راوغواړي پوښتنه به ځيني وکړي چي دا ولې؟ هغه په منډه تلونکي به ووايي، چي ماخو اوّل د ګناه وبال ځکلی دي اوس خو يوه ذرّه تقصير نه سم کولای، او دويم به ووايي چي خدايه! زه په دې نېک ګمان کي ووم او اُميد مي کولو چي اوس د دوږخ شخه چي راوويستل سوم نو شايد چي دو باره به ور وانه اچول سم، نو دواړه به جنت ته ولېږل سي، او فرمايي: د قيامت په ورځ به آواز وسي چي اې محمد ﷺ! ما خپل حق تا ته وبخښی او حقونه که پاته سول نو ستاسو پر يو بل پاته سول اوس دغه يو بل ته وبخښئ او په جنت کي مزې کوئ. او فرمايي: د قيامت په ورځ به زما يو اُمّتي په علمه توګه حاضر کړل سي چي د ده يو کم سل عملنامې به د ده په مخکي پېش کړل سي چي د اوّل شخه تر آخره به ټولي دګناهونو شخه ډکي وي نو ده ته به وويل سي چي په دې ګناهونو کي د کوم شخه ا نکار کوې؟ دی به ووايي اې خدايه! انکار نسته، بيا به پوښتنه ځيني وکړي آيا فرشتو خو به د ليکلو په وخت کي په دې کي يو ظلم نه وی کړی؟ دی به ووايي: هيڅ ظلم نه دي سوی، بيا به ارشاد وسي آيا ستا سره يو عذر د وړاندي کولو د پاره سته؟ دی به ووايي اې خدايه! هيڅ هم نسته وا بيا به دوږخ ته د تللو د پاره تيار سي، چي الله ﷻ به وفرمايي: اې بنده زما سره ستا يوه نېکي هم سته، په دې وجه زه

پر تا ظلم نه کووم، نو یوه پرچه به راوړل سي چي پر هغې به لیکلي وي: اَشْهَدُ اَنْ لَّآاِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ هغه بنده به عرض وکړی یا الله دا یو پرچه به د دومره دفترونو او عملنامو د پاره څنګه کافي سي؟ ارشاد به وسي زه پر تا ظلم نه کووم نو هغه ټول ګناهونه به په یو پله کي او هغه یوه رقعه (پرچه) به په بله پله کي کېښېښول سي او د ګناهونو هغه پله به پورته ولاړه سي او د یوې پرچې هغه پله به درنده سي، په دې وجه یو شئ هم دخدای د توحید په مقابله کي نسي راتلای.
**یو عجیبه روایت:** روایت سوی دی چي یو هلک په یو جنګ کي قیدي (بندي) کړل سو سخت لمر وو، ګرمي وه تر خیمې د دننه ښځه دیوې بنځي نظر پر ده پرېوتی نو بې اختیاره یې دلېونو په ډول ور منډه کړه د خېمې خلګو ورپسي هم ور منډه کړه هلک ته چي ور سېلله نو په خپلي سیني پورې یې ونیولو او د غرمي د تاو ښځه یې د ده د محفوظه کولو د پاره خپل ځان پر ده ور وغوړوی ګویا ځان یې پر سایوان کړی، او ویې ویل اي خلګو! دا زما د ځیګر ټکړه ده. ټولو خلګو چي دا رِقّت راپورته کوونکی او لالهانده منظرولیدی نواوښکي یې رواني سوې او د دې ښځې بې پناه محبت او شفقت اثر پر وکړی، د نبي ﷺ سره چي کله د اصحابو ﷺ ملاقات وسو نو دوی ورته دا واقعه بیان کړل، دوی ﷺ د دې ښځي پر شفقت او د خلګو پر زړه سوځولو باندي خوشحاله سو او ویې فرمایل: تاسو ته د دې ښځي شفقت دومره د حیرت وړ دی؟ ټولو عرض وکړی چي هو! یا رسول الله! ویې فرمایل: دا ښځه چي څومره پر دې خپل بچي رحیمه ده د دې ښځه زیات ستاسو الله ﷻ پر تاسو رحیم دی، دا ارشاد دټولو د پاره دانتهائي خوشحالي سبب جوړ سو، د هغه ځای ښځه رخصت سول او داسي خوشحالي دوی ته مخکي هیڅکله نه وه نصیب سوې.
ابراهیم ادهم رحمه الله وايي چي یوه شپه زه د کعبې شریفي په طواف کي بالکل یوازی پاته سوم او د دې خوا باران شروع سو ما عرض وکړی یا الله! ما د ګناه څخه محفوظ کړه هسي نه چي یو ګناه رانه وسي نا څاپه د خدای د کور څخه آواز راغلی، ستا مراد عصمت دی که نه؟ نو یاد ساته چي دا شئ زما هر بنده غواړي لېکن سوال دا دی چي که زه ټول بنده ګان د ګناه څخه محفوظ کړم نو خپل رحم او کرم به بیا پر چا کووم (یعني چي د ګناه څخه وروسته دعاء کوي نو زه به دی بخښم!) او پوه سه! چي دا ډول احادیث ډېر زیات دي او پر چا چي بېره غالبه وي د هغه دپاره داکسیر درجه لري،او پر چا چي غفلت غالبه وي هغو ته به دومره معلومه وي چي د دې احادیثو په روی سره دا هم ښکاره کیږي چي په دوږخ کي ځیني مسلمانان هم اچول کیږي، او کوم مسلمان چي د ټولو څخه آخر د دوږخ څخه را

وېستل سي نو اُووه زره کاله وروسته به د ده نمبر راځي، بلکې موږ خو وایو چې فرض کړه که صرف یو مسلمان دوږخې وي نو سوال دا دی چې څه معلومه ده چې هغه به کوم یو وي؟ د هر چا په حق کې دا امکان کېدای س چې شاید که دی دوږخې وي نو لازمه سوه چې هر یو احتیاط وکړي او پرهېز وکړي او د نېکی کوشش وکړي چې هر یو خپله خپله لمن پاکه وساتي د دوږخ څخه محفوظه سي، حق خو دا دی چې که د ټولې دنیا لذتونو ته په دوږخ کې د یوې شپې پاته کېدو د بیرې څخه خیرباد وویل سي (یعني حق او ربښتیا خبره دا ده چې که د دنیا ټولې مزې په دوږخ کې صرف د یوې شپې په عوض پرېښوول سي) نو هم دا سودا دخسارې او تاوان ده (ځکه چې یوه دقیقه عتاب یې د سوونو کالو برابر دی) او اُووه زره کاله خو په شمار یادیږي، غرض په خوف او رجا کې د اعتدال کېدل لازمي دي لکه چې حضرت عمر ﷺ فرمایي: د قیامت په ورځ که دا اعلان وسي چې د یوه انسان څخه ماسوا به بل هیڅ څوک جنت ته نه ځي نو زما به ګمان وي چې شاید زه به یم، او که دا آواز وسي چې د یوه انسان څخه بغیر به نور هیڅوک دوږخ ته نه ځي نو زما به دا بیره وي چې چیري هغه زه نه یم؟

## د خوف فضیلت، او د دې حقیقت او ډولونه یې

پوه سه! چې خوف یوه لوړه مرتبه او بزرګ مقام دی او د دې فضیلت د دې ثمراتو او اسبابو سره عین مطابق دی، تر کومه چې د دې د اسبابو تعلق دی نو هغه علم او معرفت دی په دې وجه الله ﷻ فرمایي: إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ [الفاطر: ۲۸] (د الله ﷻ څخه په حقیقت کې عالمان بیریږي) او نبي کریم ﷺ فرمایي: رَأْسُ الحكمةِ مَخَافَةُ اللهِ (د پوهې او حکمت بنیاد د الله ﷻ بیره ده) او پاک لمنې او تقوی د بیرې ثمرې دي، او دا ټول شیان د سعادت او نېک بختی تخمونه دي، ځکه چې د شهوتونو د پرېښوولو څخه بغیر او پر دې د صبر کولو څخه بغیر بنده د آخرت پر لاري نسي تللی او لکه څنګه چې د خوف اُور شهوتونه سوځي دغه ډول اثر د بل شئ نسته، ځکه چې الله ﷻ د بیرېدونکو د پاره هدایت، رحمت، علم او رضوان په درې آیتونو کې جمع کړي دي: هُدًى وَرَحْمَةٌ لِلَّذِينَ هُمْ لِرَبِّهِمْ يَرْهَبُونَ (الاعراف: ۱۵٤) (هدایت او رحمت د هغو خلګ مقدر دی کوم چې د رب خپل څخه بیریږي) یو آیت لوس لور تېر سو یعني: (إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ... الخ) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ رَبَّهُ (البينة: ۸)

(الله ﷻ د دوی څخه راضي دی او دوی د الله ﷻ څخه راضي دي دا ځکه چې دوی د خپل رب څخه بيرېږي).

او تقوی چې هغه د خوف ثمره ده د دې الله ﷻ د خپل ځان طرف ته نسبت کړی دی فرمايي: وَلَٰكِن يَنَالُهُ التَّقْوَىٰ مِنكُمْ [الحج:۳۷] (ليکن الله ﷻ ته صرف ستاسو تقوی رسيږي) او نبي ﷺ فرمايي: چې په کومه ورځ مخلوق په قيامت کې جمع کړي نو يو آواز کوونکې به په داسي زور سره اعلان وکړي چې ليري او نژدې ټول به يې واوري او وبه فرمايي: چې اې خلګو! په کومه ورځ چې ماتاسو پيدا کړی د هغې ورځې څه تر ننه پوري ما ستاسو خبري اوريدې نن تاسو غوږ کښيږدئ زما خبره واورئ، چې زه ستاسو عملنامې ستاسو په مخ کې ايږدم اې خلګو! يو نسب خو تاسو مقرر کړی او يو نسب ما تاسو ته در کړی وو، تاسو د خپل جوړ کړي نسب فکر خو وکړی ليکن زما دمقرر کړي نسب پروا مو ونه کړه ماويلي وو: إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ [الحجرات:۱۳] (يعني په تاسو کې بزرګ ترين شخصيت هغه دی کوم چې د ټولو څخه زيات تقوی داره وي) ليکن تاسو فلانی زوی ترفلانی زيات بزرګ ګڼلو، نن زه خپل مقرر کړی نسب لوړوم، او ستاسو خود ساخته (د ځانه جوړ سوی) نسب لاندي کووم، بيا به ارشاد وسي چې: أَيْنَ الْمُتَّقُونَ (متقيان خلګ چيري دي) بيابه يو بيرغ لوړ سي مخکې مخکې به روان وي او ټول متقيان به بې حسابه جنت ته ولاړ سي، او داوجه ده چې د بيرېدونکو ثواب دوچنده دی لکه چې فرمايي: وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ [الرحمن:۴۶] (او کوم سړی چې د خپل رب څخه بيرېږي د هغه د پاره دوه جنتونه دي) اونبي کريم ﷺ فرمايي چې الله ﷻ ارشاد فرمايي: چې قسم دی زما پخپل عزت چې دوه بيري او دوه امنه په يو بنده کې نه جمع کووم که بنده په دنيا کې زما څخه بيرېږي نو دی به په آخرت کې بې خوفه او بې خطره وي او که په دنيا کې بې خوفه وونو په آخرت کې به دېيري ښکار سي، او فرمايي: کوم سړی چې د الله ﷻ څخه بيرېږي د هغه څخه ټول شيان بيرېږي او څوک چې د الله ﷻ څخه نه بيرېږي الله ﷻ دی د ټولو شيانو څخه بيروي، او فرمايي: اصل عقلمند هغه دی کوم چې په تاسو کې زيات د الله ﷻ څخه بيرېدونکې وي.

اوفرمايي چې د کوم مسلمان د سترګو څخه اوښکې بهيږي که څه هم د مچ برابر ولې نه وي او دغه وبهيږي پر مخ راسي نو پر دغه مخ د دوږخ اُور حرام سي، او فرمايي چې کوم سړی د الله ﷻ د بيري په سبب ژاړي دی د دوږخ اُور نسي سوځلای څنګه چې د شيدو هغه څاڅکي چې د تيانو څخه

راووځي بيرته نسي تللی دغه ډول د الله ﷻ د ديري شخه ژړېدونکې دوږخ ته نسي تللی، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې: نبي کريم ﷺ ته خلکو عرض وکړی چې ستا د اُمت کوم سړی به بې حسابه هم جنت ته ولاړ سي؟ دوی ﷺ وفرمايل هو! کوم سړی چې خپله ګناه ياده کړي او ژاړي دغه به بې حسابه جنت ته ځي، نبي ﷺ فرمايلي دي چې د اوښکو کومه قطره د الله ﷻ د ديري شخه ووځي يا د وينو قطره د ده په لاره کې توی سي د دې شخه زياته يوه قطره د الله ﷻ په نزد محبوبه نسته. او فرمايي چې اووه خلک به د الله ﷻ په ځانګړي سيوري (سايه) کې وي: يو به هغه سړی وي چې په تنهائي کې الله ﷻ يادوي او ژاړي او د سترګو شخه يې اوښکي بهيږي، حضرت حنظله ﷺ فرمايي: چې زه د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضرسوم دوی ﷺ موږ ته نصيحت کولو پر زړونو د ېږي غلبه سوه او د سترګو شخه اوښکي رواني سوې، د دې مجلس شخه چې کور ته ولاړم نو ښځې را ته دُنيوي خبري شروع کړي او زما زړه په دنيا کې مشغوله سو ناڅاپه مې د نبي ﷺ خبري رايادي سوې چې لوس خو ما هلته ژړل نو فوراً د باندي راووتلم او په زار زار مې وژړل چې آه حنظله ﷺ منافق سوی، او صديق اکبر ﷺ مخ ته راغلی خبره يې زماواورېدله نو ويې فرمايل: نه! حنظله ﷺ ما منافقت نه دی،ليکن زه د نبي ﷺ په خدمت کې حاضر سوم او په ژړا سوم چې يارسول الله ﷺ! حنظله خو منافق وختی، نبي ﷺ وفرمايل: حنظله منافق سوی نه دي نو ماورته ټوله خبره وکړه،نوويې فرمايل اې حنظله! ته چې په کوم حال زما په مخکي يې که پر دې قائم پاته سې نو فرشتې به په هره لاره کې ستا سره مصافحه کوي، او په کور کې به فرشتې ستا استقبال کوي بلکي هر وخت به دوی دحنظله سره وي.

**آثار او اقوال:** شبلي رحمه الله وايي: چې پر ما يوه ورځ داسې نه تېرېږي چې د خدای ېږه زما پر زړه غالبه نه وي، او تر دې غلبې لاندي ما ته د حکمت او عبرت دروازې نه وي خلاصې سوې، د يحيی بن معاذ قول دی چې د عذاب د ويري او د رحمت د اُميد په مينځ کې د مسلمان د ګناه هغه حالت وي کوم چې د دوو زمريانو په مينځ کې د نيول سوي ګيدړي وي، او د دوی قول دي چې مسکين سړی که د دوږخ شخه هم دومره و ېرېږي شومره چې دی د مفلسی شخه ېرېږي نوجنتي به سي، او د ده شخه چې کله خلکو پوښتنه وکړه چې د قيامت په ورځ به کوم خلک زيات محفوظه او خوندي وي؟ نو ويې ويل: کوم چې نن د خدای شخه ډېر ېرېږي، د حسن بصري رحمه الله شخه خلکو پوښتنه وکړه چې د هغو خلکو د مجلس په باره کې ستا څه رايه ده کوم چې موږ ېروي زموږ زړونه ټکړې ټکړې

کوي، دوی ﷺ وویل د داسي خلګو سره م مجلس اختیارول کوم چي تاسو نن بېروي د صبا دېري څه در ته خلاصون در کوي د داسي خلګو دمجلس څخه په ځو ځو درجو بنه دی کوم چي نن تاسو بې بېري او بلا خوفه کوي صبا د قیامت دورځي په دردناکه بېره کي مو مبتلا کوي.
ابو بکر صدّیق ﷺ فرمایي چي ژاړه! او که ژړا نه درځي نو دژړا شکل او صورت جوړوه. کعب الاحبار ﷺ وایي چي د زرو دینارو په صدقه کي دو رکولو په نسبت زه هغه ژړا غوره ګنم په کومه کي چي اوبنکي را بهېږي زما مخ لندوي.

**د خوف حقیقت او پېژندنه:** پوه سه! چي خوف دحالاتو د زړه څخه یو حالت دی او د درد یو اُور دی کوم چي په زړه کي دننه لمبه کوي او د ده یو خاص سبب هم وي او خاص نتیجه هم د دې څخه راپیدا کیږي چي ثمره هم ورته ویل کیږي، سبب یې علم او معرفت دی، یعني دا خبرداري وي د هغو خطراتو کوم چي دآخرت په کارکي راپېښیږي نو کله چي بنده پر دغو اسبابو او حالاتو نظر اچوي کوم چي دی د هلاکت طرف ته بیایي نو خوف د یو اُور په دول د ده په زړه کي را بَلْ سي، د دې اُور په بلولو کي د دوو معرفتونو لاس وي: یو خو دا چي کله دی خپل ټولوو ګناهونو، خطاګانو، جرمونو او عیبونو او په عبادتونو کي د کرل سوو ریا کاریو پرده پنځپل مخکي ځیري ویني، او بل طرف ته دده دا نظر راسي چي ده د ټولو تقصیرونو سره سره د الله ﷻ نعمتونه ده ته حاصل دي نو یو اُور د ده په زړه کي پیدا سي، دغه وخت د ده مثال د هغه سړي په دول سي کوم چي باچا همیشه په ناز او نعمت سره پاللی وي او دی د هغه په حرم کي او خزانه کي خیانت کوي، او بیا یو دم ده ته معلومه سي چي د ده یو خیانت د باچا څخه پټ نه دی ځکه چي په هره واریې دی لیدلی دی، د دې سره ده ته دا هم معلومه سي چي باچا بې اندازي غیرتمند زورور او پر بدله اخیستلو ځامخا قادره دی او بدله اخلي، او بیا ده ته دا هم معلومه وي چي د باچا سره د ده څخه څه ذاتي خپلولي (قرابت) نسته نه یې څه وسیله سته او نه ور ته سپارښت حاصل دی نو اندازه وکړئ چي د دې سړي به کوم حالت وي او کله چي دی ځان په خطره کي اخته ویني نو دېري او درد اُور به څومره په سختي سره د ده زړه را ونیسي؟
دویم معرفت دا دی چي مثلاً مذکور سړی فرض کړه چي د ګناه څخه په بېره کي نه وي (ځکه چي بې ګناه وي) لیکن د دې باچا د قدرت، طاقت، بې باکي او انتقام څخه په بېره کي وي، لکه یو سړی چي د زمري په منګل کي ومنبلي نو هغه په دې وجه نه بیرېږي چي ده یو ګناه کړې ده او د زمري یې یو څه خراب کړي دي، لیکن د دې سره سره دېري څخه رپیږي ځکه د زمري خوی ده ته معلوم وي چي د ده

کار هلاکول دي او دی د کمزوري په وجه ځیني خپل ځان نسي ساتلای او دا هغه بېره ده چي دې ته کامل تره او فاضل تره وایي، نو کله چي یو سړی د الله ﷻ د صفاتو څخه خبر سي او د هغه لويي، عظمت، طاقت، قدرت وپېژني او ده ته معلومه سي که الله ﷻ ټول عالم د سترګي په رَپ کي هلاک او ختم کړي او بیا یې د همیشه همیشه د پاره دوږخ ته ور واچوي نو د هغه په باچاهي کي یوه ذرّه فرق هم نه راځي، او دا هم معلومه وي چي کوم ته رقّت او شفقت وایي د دغه حقیقت څخه د هغه پاک ذات بالکل منزّه دی نو لازمه ده چي د دې سړي په زړه کي بېره پیدا سي ځکه چي دا د بېري مقام دی، تر دې چي دا بېره پر انبیاؤ هم راغلې ده، حال دا چي دوی ته د خپل بې ګناه والی خبر هم وو، بلکي حقیقت دا دی چي څومره غټ عارف وي دومره به زیات دی په بېره کي وي، نبي ﷺ فرمایي: چي زه ستاسو د ټولو څخه زیات عارف یم لېکن په خدای قسم دی د ټولو څخه زیات بېرېږم، او د دې حقیقت وطرف ته اشاره په دې آیت کي هم سوې ده چي: "د الله ﷻ څخه بېرېدونکي صرف علماء دي" او زیات جاهل زیات بې خوفه وي، او پر حضرت داؤد ﷺ باندي وحي رانازلي سوې چي اې داؤده! زما څخه داسي بېرېږه لکه د خوفناک او خونخواره زمري څخه چي بېرېږې، نو دا وو د بېري سبب، اوس تر څو پوري چي د بېري د ثمرې تعلق دی نو دا په زړه، بدن او اندامونو کي وي؛

په زړه کي داسي چي د دنیا د خواهشاتو څخه بې زاره سي او هیڅ پرواه یې نه وي، د شهوتِ نکاح او شهوتِ طعام خوبې دا حال وي چي ګویا دی هیڅ ځیني خبر نه دی، په بدن کي داسي چي خَستګي او خوارَي پکښي پیدا سي، کمزوری او ضعیف څوندي ښکاري او پرمخ یې ژړوالی ښکاره وي، په اندامونو کي داسي چي د پاکو صافو او داوداسه د درلودلو احساس ور سره هر وخت وي، د ګناه څخه د هراندام د څوندي کولو، په ادب ساتلو خیال ور سره هر وخت وي، او ټوال اندامونه یې دا څواري چي په طاعت او بندګي کي وي.

**د خوف مختلفي درجې؛** پوه سه! چي د خوف دري درجې دي؛ (١)ضعیف (٢)قوي (٣)معتدل؛ (١) ضعیفه درجه هغه ده چي کار ته یې اماده هم نه کړي، لکه مثلاً چي د ښځو رِقت (د زړه نري کېدل) وي (چي د یوې خوا راسي او هاخوا غائب سي) (٢) د قوي درجې څخه مرادَ دا دی چي په دې سره ناأمیدي، مایوسي او قنوطیّت پیدا سي، بلکي د ناروغه کېدلو بېره وي تر دې چي د بې هو ښه کېدلو یا مرګ واقع کېدلو امکان وي، او دا دواړه درجې مذمومي او غلطي دي، ځکه چي خوف (بېره) في نفسه څه کمال نه دی او نه دې ته هغه مقام حاصل دی کوم چي توحید، معرفت او

محبت ته حاصل دی، او دامقام ده ته ځکه حاصل نه دی چي خوف په الهي صفاتو کي شامل نه دی، بلکي خوف همیشه د خپل جهالت او عاجزی او بې وسی پر بناء وي یعني تر څو چي عاقبت مجهول نه وي او په فطرت سره په بېره کي عجز موجود نه وي تر هغه وخته د خوف مقام څه دی؟ لیکن د غافلانو په حق کي خو بې شکه یو کمال دی ځکه چي دا یو ښنده(چلاخه)ده چي بچیان سبق ته مجبوره کوي او حیوانان پر لاري تللو ته مجبوره کوي، نو که ښنده دومره کمزوري وه چي جسم ته د تکلیف یا درد احساس نه وو، نو څه به سبق وواییي او څه به پر لاري ولاړ سي؟ او که دومره سخته وه چي څرمن یې ور واړوي یا یې هډوکی مات کړي نو هم غلطه ده. لنډاه دا دواړه صورتونه ناقص دي او پکار دا ده چي د حدّ د اعتدال خیال وساتل سي چي نه صرف د ګناه څخه منع سي بلکي اطاعت اوبندګي ته هم تیار سي، په دې وجه کوم سړی چي زیات عالم وي د ده خوف زیات معتدل وي او د افراط او تفریط خو دا شان وي چي که زیات وي نو د رجا او اُمید سبب جوړیږي، او که کمیږي نو د کار دانجام خطره وی د زړه په حال د غور او فکر دعوت ورکوي، او کوم سړی چي د خوف څخه خالي وي او دعویٰ دا کوي چي دی عالم دی، نو دی هیڅکله دعالم ویلو مستحق نه دی، او څه چي ده ویلي دي ټول بیکاره او بې هوده دي، او دغه ته عالم ویل حماقت دی او د ده مثال د هغه عطائي(پر تره ناست حکیم) یافال کتونکي دی کوم چي ځان ته حکیم وایي حال دا دی چي د حکمت کوم شئ ده مسه کړی لا نه وي ځکه چي د معرفت اولینه تقاضا ځان پېژندل او خدای پېژندل وي، او دځان پېژندلو د پاره به دی خپل ځان سرتر پایه تقصیر او خطاء او الله ﷻ پُرجلاله او پُرعظمته ګڼل وي، او جلال او عظمت هم داسي چي د خوف تقاضا کوي، او خوف د دوی څخه لازماً پیدا کیږي، په دې وجه د نبي ﷺ ارشاد دی چي: د علم ابتداء دا ده چي بنده دخپل رب د قهّاري او جبّاري سره آشنا سي اوانتهایې داده چي خپل هر کار هغه ته وسپاري او پوه سي چي نه زه پخپله یو شئ یم او نه یو شئ زما کېدای سي، نو دا څنګه ممکنه کېدای سي چي یو سړی د دې حقیقتنو نو څخه خبر سي او د دې خبرداری سره سره د ده سینه د خدای دېیري څخه خالي پاته سي.

**د خوف د اقسامو حال**: دا خبره خو څرګنده سوه چي بېره همیشه هغه وخت پیدا کیږي کله چي بنده په خطره پوه سي، اوس د دغې خطري مختلف اقسام دي، او د هر سړي په خپل نظر د خپل قسم جلا جلا خطره وي مثلاً یو سړی د دوږخ خیال کوي خطره محسوسوي او په بېره کي کیږي او د دې وجه دا وي چي یو شئ داسي ده ته مخ ته راسي چي ده ته بنکاري چي دا ما د دوږخ وطرف ته

بیایي، مثلاً دا بیره وي چې هسې نه توبه ونه کړم او مرګ راسي یا بېړېږي چې هسې نه توبه وکړم او بیا را څخه ګناه وسي یا دا وایي چې زړه مې دغفلت ښکار نسي، یا دا چې د ده فطرت بیا دی د ګناه میلانونو ته را ونه بولي، او د نعمت د دېروالي په وجه په مشکله سره پرابښی تکبر او غرور بیا را واپس نه سي، یا دا چې په قیامت کې مظلومان د ده ګریبان ونه نیسي؟ یا د ده دا رسوایي ښکاره نسي او دی رسوا نسي، یا د ده دا خیال راسي چې څه ما کړي دي خدای لیدلي دي او ځیني خبر دی. حال دا دی چې دا خبره د هغه خو ښه نه ده او نور . . . ، اوس د دې بېري څخه هر سړي ته داسي فائده اخیستل پکار دي چې کوم شئ د بېري سبب جوړ سوی دی د هغې څخه دې خوندي کېدلو تدبیر وکړي مثلاً که د عادت څخه په بېره کي دی چې بیا یې د ګناه وطرف ته بو نه ځي نو پکار دي چې دغه عادت پرېږدي، او که د دې څخه یې بیره وي چې خدای پاک د ده د هر څه څخه خبر دی نو بدخیالات دي زړه ته نه راولي او دغه ډول عمل دی د نورو اسبابو د بېري سره وکړي، هسې خو په بېرېدونکو کي پر اکثرو د آخرت د بیري غلبه زیاته وي و د انجام بیره وي چې معلومه نه ده ایمان به سلامت یووسي او که نه؟ او په دې تولوکي دا آخري ډول بېره کامل ترینه وي چې په ازل کي د ده سعادت یا بدبختي په باره کي ګوروځ حکم سوی دي ځکه چې مخکي دغه دی او خاتمه خو د دې یو ښاخ دی او د دې ښاخ د بېخ په باره کي دا ښوول کافي دي چې یوه ورځ نبي ﷺ پر منبر وفرمایل: چې الله ﷻ یو کتاب لیکلی دی چې د ټولو جنتیانو نومونه پکښې لیکلي دي او راسته لاس یې لوړ کړی، بیا یې وفرمایل: چې الله ﷻ یو کتاب لیکلی دی چې د دوږخیانو نومونه پکښې لیک دي او چپه لاس یې لوړ کړی، او ویې فرمایل: چې په دې کي اوس د کمښت او زیاتوب ځای نسته، نو کېدای سي چې یو جنتي سړی د دوږخیانو په ډول کار کوي تر دې چې بدبخته مشهور سي لېکن الله ﷻ د ده د مرګ څخه یو ساعت وړاندي ده ته د بدبختی څخه د نېکبختی وطرف ته د رجوع کولو توفیق ورکړي، نېک بخته په حقیقت کي هغه دی چې نیک بختي ور ته د ازل څخه مقدره سوې وي، دغه ډول بدبخته هغه دی چې د ازل څخه بدبخته قرار سوی وي او د دې انحصار د چا پر خاتمه باندي دی چې ځنګه وسوه؟ نو دا خیال اهلِ بصیرت په بېره کي ساتي او دا کامل ترینه بېره ده.

## د بد انجام (بدي خاتمې) په باره کي

پوه سه! چې بېرېدونکي اکثره د دې خبري څخه بېره کوي چې هسې نه خاتمه مو خرابه نسي ځکه چې د بنده زړه تغیر قبلوونکی دی د ده د واپس کېدلو خطره وي او دی پر یوه حالت نه پاته کیږي، او

د مرگ وخت نهایت عظیم وي، او څوک نسي ویلای چي دمرگ په وخت کي د زړه قیام پر کوم طرف وی؟ د یو عارف قول دی چي که یو سړی پنځوس کاله مسلسل زما دنظر په مخکي وي او د ده په موحّد کېدلو کي زما هیڅ شک نه وي، لېکن که دی د یو ساعت د پاره زما د ستر گو څخه پناه سي او د دې څخه وروسته ما ته وویل سي چي د هغه پر موحّد کېدلو گواهي ورکړه نو زه یې نه سم ورکولای ځکه چي زړه په یوه دقیقه کي هم بدلېدلای سي، او د یو عارف قول دی چي که ما ته وویل سي چي د کور پر دروازه شهادت خوښوې که دحجرې پر دروازه د مسلمان په مرگ دې مرگ خوښ دی؟ نو زه به وایم چي د حجرې پر درروازه زما مرگ خوښ دی ځکه چي د حجرې د دروازې څخه د کور د دروازې پوري په تلو کي څه معلومه ده چي د زړه څه حالت کیږي؟ یعني ایمان باقي پاته کیږي او که نه.ابو الدرداء وایي چي په خدای قسم دی د مرگ په وخت کي د ایمان څخه د محرومېدلو د بیرې څخه هیڅا ته خلاصون نسي کېدای یعني د دې بیرې څخه هیڅ څوک خلاص نه دی.

سهل تستري رحمه الله وایي چي صدّیقینو ته هر وخت دا بیره وي چي هسي نه خاتمه خرابه نسي.سفیان ثوري رحمه الله د وفات په و خت کي انتهائي بې آرامه په زار زار یې ژړل، خلکو ورته وویل ولي ژاړې؟ ستا گناه خو د الله جل جلاله در حمت څخه زیاتېدای نسي، ویې فرمایل د گناهونو غم خو نسته هغه که د غره په اندازه ولي نه وي لېکن اې کاش! دامعلومه وای چي د یو موحّد په مرگ مر کیږم (یعني کاش! دا معلومه وای چي دمرگ په وخت کي مي د توحید عقیده او ایمان سلامت دی او که نه)، یو بزرگ دمرگ په وخت کي خپل ټول مال یو سړي ته حواله کړی وصیت یې ورته وکړی چي فلانی شئ به د دې خبري علامه وي چي زما خاتمه د ایمان په سلامتیا سره سوې ده که دغه علامه تا زما د مرگ څخه وروسته ولیدله نو پوه سه! چي ما ایمان وړی دي نو د دغه مال په عوض خوږې او بادام واخله د ښار پر بچیانو یې تقسیم کړه او ووایه چي دا د فلاني سړي عُرس دی کوم چي د دې دنیا څخه د ایمان د سلامتي سره کوچ وکړی لېکن که دغه علامه تلونه لیدله نوزما جنازه هم په چا مه کوه چي بل څوک زما په وجه دوکه نسي او زه هم پخپله لږ تر لږه دمرگ څخه و روسته ریا کار خو جوړ نه سم.

پوه سه! چي منافقت هم د بد انجام دلیل دی په دې وجه صحابه کرام رضي الله عنهم به همیشه دمنافقت څخه ډېر بیرېدل، حسن بصري رحمه الله به ویل چي که ماته دا معلومه سي چي زه د نفاق څخه خالي یم نو زه به دا خبره د ټولي زمانې د تمامو اشیاؤ څخه عزیزه اومحبوبه لرم او بیا یې وویل چي د ظاهر اوباطن مختلف کېدل یعني د زړه او ژبي سره یو نه کېدل هم منافقت دی.

**فصل د آخرې خاتمې په اړه او د دې اسباب:** پوه سه! بده خاتمه چې د هغې شخه تولو بزرگانو همیشه ېيره کړې ده هغه دا ده چې هسې نه د مرگ په وخت د ده شخه ایمان وانه اخیستل سي، او د دې شخه د محرومۍ ډېر اسباب دي او د دې علم پټ دی لېکن په دغو کي چې کوم په دې کتاب" کیمیاء سعادت" کي بیانېږي هغه دا دي: چې دا دې دپيدا کېدلو دوه سببه دي: یو خو دا چې د یو باطل بدعت معتقده وي او ټول عمر پر داغه عقیده پاته وي او د دې د باطل کېدلو چیري خیال هم نه کوي، او دمرگ په وخت کېدای سي چې الله ﷻ د ده خطاء ده ته ښکاره کړي او د ده ټولي نوري عقیدې هم د ده په نظر کي مشکوکي سي او د عقیدو پوخوالی یې ختم سي،او د دې شک او شبهې په حالت کي د ده مرگ واقع سي، دا خطره اهلِ بدعت او د علمُ الکلام عالمانو ته را تلای سي کوم چې د خپلې ټولي پرهېزگارۍ او زهد سره سره په عقیده کي بحث او دلیل روا او جائز بولي، او ساده مسلمان کوم چې د قرآن او حدیث د ښکاره مطابق چلېږي د دې خطرې شخه په امان وي، په دې جه نبي کريم ﷺ فرمایلي دي: چې ټاسو ته د مشرانو، بداګانو دین اختیارول پکار دي چې اکثره جنتیان سیده ساده خلگ وي، او پر دې بنسټ تېرو بزرگانو علمُ الکلام، بحث او مناظره او د حقیقتونو د لټون او تلاش شخه په منع کوله، ځکه چې دوی ته معلومه وه چې په هر سړي کي د دې طاقت او صلاحیت نسته او دا ټول به په شه نا شه بدعت کي به ضرور اخته کېږي.

دوېم سبب دا دی چې ایمان په بنیادي توگه کمزوری وي او د دنیا محبت پر غالبه وي او د الله ﷻ محبت ضعیفه وي نو داسي سړی چې دمرگ په وخت وېني چې د خواهش ټول شیان د ده شخه اخیستل کېږي او د دنیا شخه جبراً او قهراً دی پورته کېږي او کوم ځای ته چې دی بیایې هغه ځای د ده خوښ نه دی نو په دې وجه سره یو ټول کراهت پیدا سي او د الله ﷻ سره چې کومه کمزورې دوستي وي دغه هم ختمه سي داسي لکه چې یو سړی یو شئ محبوب او گران لري او د خپل زوی شخه یې زیات خوښ وي او د ده زوی دغه شئ د ده شخه واخلي نو دغه سړی به خپل دا زوی دښمن گڼي او کومه لږ مینه چې یې د زوی سره وي هغه به هم ختمه سي، په دې وجه د شهادت درجه غټه ده چې دغه وخت دنیا د مخ شخه لیري کړي او د الله ﷻ محبت پر زړه غالبه وي او مرگ ته زړه تلوار کوونکي سي داسي وخت دمرگ راتلل غټ غنیمت وي په دې وجه چې دا حالت ډېر ژر تلونکي وي او زړه پر دې برقراره نه پاته کېږي نو پر کوم زړه چې دالله ﷻ محبت د ټولو شیانو د محبت شخه زیات غالبه وي نو د دې خبري شخه به الله ﷻ دی ضرور لیري ساتي چې دی خپل ځان بالکل دنیا ته حواله کړي داسي سړی د دې خطرې شخه په امن وي کله چې د مرگ وخت راسي او دغه سړی پوه

وي چي د دوست د دیدار وخت راغلی نو دمرګ څخه کراهت نه کوي او دا لله ﷻ محبت د ده پر زړه غالبه سي او د دنیا دوستی یې ورکه سي د خاتمې ښه کېدلو دا علامت دی، نو کوم سړی چي څواړي چي د دې خطرې څخه ډیر لیري وي ده ته پکار دي چي د بدعت څخه لیري ووسي، او څه چي په قرآن او سنت کي وي پر هغه ایمان راوړي په څه چي پوه سي هغه دي قبول کړي او په څه چي یې فکرا رانه سي هغه دي هم مني او پر ټولو دي ایمان راوړي او دا کوشش دي کوي چي دا لله ﷻ محبت د ده پر زړه غالبه راسي او د دنیا محبت ضعیفه سي او د دنیا محبت داسي ضعیفه کیږي چي د شریعت پر حدودو نظر ساتي چي شریعت پر ده دنیا تنګه کړي او دی د دنیا څخه نفرت کوونکي سي او په دې سبب سره د الله ﷻ دوستي قوي کیږي چي بنده همیشه د الله ﷻ ذکر کوي او همیشه د الله ﷻ د محبوبو بندګانو سره محبت ساتي، او د دنیا دبندګانو سره تعلق نه ساتي که د دنیا دوستي غالبه وي نو ایمان په خطره کي دی لکه چي په قرآن کي دي چي: که پلار، زوی، مال، نعمت او څه چي ستاسو سره دي غه تاسو د الله ﷻ څخه زیات محبوب او دوست ګڼئ نو د الله ﷻ د حکم انتظار وکړئ: فَتَرَبَّصُوا حَتَّىٰ يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ [التوبه:٢٤] (یعني د بد انجام سره د مخامخ کېدلو د پاره تیار سئ!)

**د خوف حاصلولو تدبیر او طریقه**: د دین دمقاماتو څخه اولنی مقام د یقین او معرفت دی، او بیا د معرفت څخه خوف پیدا کیږي او د خوف څخه زهد او صبر او توبه او د زهد او توبې څخه اخلاص او د ذکر مداومت او فکر پیدا کیږي، او د دې څخه اُنس او محبت ښکاره کیږي، محبت د ټولو مقاماتو انتها ده او تر کومه چي د تسلیم او رضا او شوق تعلق دی دغه د محبت تابع دی نو د یقین او معرفت څخه وروسته خوف د سعادت خزانه ده، او کوم صفتونه چي د خوف څخه وروسته پیدا کیږي دغه د خوف څخه بغیر نه فتې کیږي او خوف په دری طریقو سره پیدا کیږي، یو خو د علم او معرفت په ذریعه، څکه چي کله بنده خپل ځان او خپل رب پېژني نو خامخا بیرېږي څکه چي کوم سړی د زمري په منګل کي ګیر وي او زمری پېژني هم نو ده ته دزمري څخه د بیرېدلو د پاره د یو تدبیر ضرورت نه وي بلکي دی همه تن بیره بیره وي، او کوم سړی چي د الله ﷻ کمال جلال او کمال قدرت او کمال بې نیازي وپېژني او خپله عاجزي او بې چارګي ورته ښکاره سي د ده مثال داسي دی لکه د زمري په منګل کي مبتتل، بلکي کوم سړی چي صرف د الله ﷻ حکم وپېژني چي تر قیامته پوري دا څه کیږي د دې الله ﷻ حکم کړی دي او بعضو خوبې بغیر د یو سبب څخه په سعادت سره سرفراز فرمایلي دي او بعضي یې بدبخته جوړ کړي دي، الغرض څنګه چي یې غوښتلي دي هغسي یې کړي

دي او ده حکم هیڅکله بدلیږي نه، نو داسي سری به خامخا بربړيږي، په دې وجه نبي کریم ﷺ صحابه کرامو ته وفرمایل: چي حضرت موسی ؑ حضرت آدم ؑ ته ګیله وکړه او حضرت آدم ؑ ور ته هم جواب ورکړی، موسی ؑ وویل: اې آدم ؑ! الله ﷻ ستا سره ښه وکړه ته یې په جنت کي وساتلې ستا سره یې څومره ښه سلوک وکړی بیا دې سره سره تا ګناه وکړه او د ځان سره دې موږ هم په بلا کي مبتلا کړو، آدم ؑ ور ته وویل: وایه! چي په ازل کي دغه ګناه زما د پاره مقدّره سوې وه او که نه؟ موسی ؑ ور ته وویل: ضرور مقدره سوې وه، آدم ؑ وویل: نو وایه! ما د دې خلاف کولای سو؟ موسی ؑ ور ته وویل: هیڅ کله نه، نو آدم ؑ: بیا پر ما ولې اعتراض کوې؟ نو د آدم ؑ په دې جواب سره موسی ؑ لا جوابه سو او خاموشه سو، اوس پاته سو هغه اسباب کوم چي خوف پیدا کوي ډیر دي، او لکه څنګه چي موږ ویلي دي: "زیات عارف زیات خائف" وي، او په حدیث شریف کي دي چي یوه ورځ نبي ﷺ او حضرت جبرئیل ؑ دواړو وژړل، وحي پر رانازلې سوې چي ژاړئ ولې ما خو تاسو ته امان در کړی دی؟ عرض یې وکړی اې خدایه! موږ په امن یو خو ستا د تدبیر څخه په امن نه یو، ویې فرمایل نو هوا صحیح ده بیا دغه رنګه وسېږئ، او دا دوی د معرفت کمال وو چي دوی د وعدې دامن سره سره ژړل، او دا یې تصور کوی چي د الله ﷻ دامن دا ارشاد چیري ازماښت نه وي او پټ راز پکښې نه وي چي موږ څیني خبر نه یو، دغه ډول د جنګ بدر په ورځ چي په اول اول کي مسلمانان لږ کمزوري وه نو نبي ﷺ بېرېدی، عرض یې وکړی اې خدایه! که نن دا د اسلام لښکر هلاک سو نو پر مخ د ځمکي به ستا څوک نوم اخیستونکي پاته نسي، چي دا یې واورېدل نو حضرت ابو بکر ؓ عرض وکړی یا رسول الله! آیا ته الله ﷻ ته قسم ورکوې حال دا دی چي هغه ستا سره د مدد وعده نه ده کړي او هیڅ وجه نسته چي د هغه وعده رښتونې نه وي؟ دغه وخت د حضرت صدیق اکبر ؓ دا مقام وو چي په وعده د کرم یې مکمل اعتماد وو، او د نبي ﷺ مقام د خوف وو، ځکه چي دوی ﷺ د خَيْرُ الْمَاكِرِيْن د تدبیر څخه ځان محفوظه نه تصور کوی او کامل تر مقام دا دی ځکه چي په دې سره د نبي ﷺ مقصد دا واضح کول وو چي د خدای د پټو رازونو مصلحتونو او قضاء الهي څخه بنده آخر څنګه واقف کېدای سي،

دویمه طریقه دا ده چي که پخپله د اهلِ معرفت څخه نه وي نو د اهل خوف صحبت دي اختیار کړي چي شاید دغه ډول به د هغه خوف په ده کي سرایت وکړي، لېکن دا صحبت د اهلِ غفلت هیڅ کله نه دي پکار، د دوی د صحبت د اثر څخه قبول سوی خوف که څه هم خوف وي لېکن د محضِ تقلید

شخه خالي نه وي.
دربمه طريقه دا ده چي که داهل خوف صحبت ورته هم حاصل نه وي او نن صبا واقعي چي گران هم دی ځکه چي د داسي خلکو په زمانه کي سخت قحط دی نو بیا دي داسي وکړي چي د دوی حالات اوواقعات دي اوري او په کتابونو کي دې مطالعه کوي، دې خیال ته په کتني سره موږ د بعضي انبیاؑ او اولیاؒ ډېري واقعات په دې کتاب کي لیکو چي په کوم سړي کي صرف د عقل یو لږ اندازه هم وي هغه به پوه سي چي دا عظيم الشان خلګ هر کله دومره بېرېدل نو موږ ته خو زیاته بېره پکار ده.

## د پیغمبرانو او فرشتو قصې

روایت دی چي ابلیس کله د الله ﷻ لعنتي سو نو حضرت جبرئیل میکائیل علیهما السلام به همیشه ژړل، الله وحي را نازلي کړې چي تاسو ولي ژاړئ عرض یې وکړی یا الله! موږ ستا د تدبیر شخه ځان په امن نه وینو، نو ارشاد وسو چي هو! تاسو ته داسي خیال کول پکار دی او د امن کېدلو په تصوّر کي غافل کېدل نه دي پکار. حضرت مُحَمّد بن المنکدر رحمه الله وايي چي الله ﷻ دوږخ جوړ کړی نو ټولو فرشتو به ژړل، بدحاله کېدلې به، او هغه وخت د دوی ژړا بنده سوه کله چي الله ﷻ انسانان پیدا کړل ځکه چي دوی پوه سول چي دوږخ د دوی د پاره نه دي جوړ سی بلکي د دې انسانانو د پاره دی. نبي ﷺ فرمايي چي یوه موقع داسي نه وه چي جبرئیل به ماته راغلی وي او د خدای ﷻ د بېري شخه به رپېدونکي او لړزېدونکي نه وو.
د انس رضي الله عنه شخه روایت دی چي نبي ﷺ د حضرت جبرئیل علیه السلام شخه پوښتنه وکړه چي ما چیري هم حضرت میکائیل علیه السلام په خندا ونه لیدی؟ حضرت جبرئیل علیه السلام جواب ورکړی چي: د کله شخه الله ﷻ دوږخ پیدا کړی دي د هغه شخه وروسته ده چیري نه دي خندلي، او د حضرت ابراهیم علیه السلام په باره کي دا روایت دی چي که به دوی په حالت د لمانځه کي وو نو د دوی د زړه د غورځېدلو آواز به تر یومیل پوري اورېدل کېدی. او حضرت مجاهد رحمه الله وايي: چي حضرت داؤد علیه السلام تر څلوېښتو ورځو پوري مسلسل په حالت د سجده کي اوښکي بیولې تر دې چي د ده په اوښکو وا ښه راشنه سوه، نو آواز راغلی چي اې داؤده! ولي ژاړې! چي ځان وږلي کوې؟ ووایه که وږی یې، تږي او بې جامویې نو چي تا ته دوږي، اوبه یا جامې دروليږم، پر دې داؤد علیه السلام یو داسي سره ساه وکړه چي د ساه د تاوه یې لرگو اُور واخیستی، نو الله ﷻ د ده دعاء قبوله کړه او د ده توبه یې منظوره کړه، نو حضرت داؤد علیه السلام عرض وکړی چي: اې خدایه! زما گناه زما پر ورغوي ولیکه چي هروخت زما په نظر کي وي.

او د هېرولو امکان يې پاتې نسي، الله ﷻ يې دا عرض هم قبول کړی او د دې شخه وروسته به چي ده کله د خوراک، چښاک يو شئ ته لاس ورووړلو نو پر لاس به يې نقش سوې ګناه لیدل او بې اختیاره به يې د ستر ګو شخه اوښکي جاري کېدې او کله کله خو به يې دومره وژړل چي د اوبو کومه پیاله چي به دوی ته ورکړل سوې وه که هغه به خالي وه نو دا اوښکو شخه به ډکه سوه.

حضرت یحی بن زکریا علیهما السلام اوس لا کوچنی وو چي د عبادت او ریاضت د پاره به بیت المقدس ته تلی او کله چي به ورته همزولو د لوبو وویل نو دوی به وویل چي زه د لوبو د پاره نه یم پیدا سوی چي د پنځلسو کالو سو نو د خلکو شخه ګو ښه نشینه سو، صحرا ته ولاړی یوه ورځ د ده پلار حضرت زکریا ﷺ په ده پسي صحرا ته ولاړی چي ګوري زوی يې په اوبو کي ولاړ دی او د تندي شخه يې ساه شوندو ته راغلې ده لیکن ژاړي عرض کوي چي: اې خدایه! ستا په عزت مي قسم دی چي تر څو پوري دا معلومه نه کړم چي ستا په دربار کي ما ته کوم مقام حاصل دی؟ تر هغه وخته به اوبه ونه چیښم، او اوښکي يې پر مخ لړۍ لړۍ رواني وې، پر مخ يې د غوښې نوم او نښان نه وو تر دې چي غاښونه يې لا د باندې راوتلي وو، او د کپړې دوې ټکړې يې پر مخ ایښي وې چي خلک يې صورت و نه ویني، او دغه ډول ډېر حالات او واقعات د انبیاؤ په باره کي مذکور دي.

## د صحابه کرامو ﷺ او د تېرو بزرګانو قصې

حضرت ابو بکر صدیق ﷺ د خپلي دومره بزرګي سره سره چي ده به مرغی ولیدله نو فرمایل به يې کاش! زه هم ستا په شان مرغی وای، حضرت ابو ذر ﷺ به ویل: اې کاش! چي زه درخته وای؟ حضرت عائشې صدیقې ﷺ به فرمایل: اې کاش! چي زما چیري نوم او نښه هم نه وای، د حضرت عمر ﷺ سره به کله کله داسي کېدل چي د قرآن کریم یو آیت به يې واورېدی نو بې هوښي به پر راغله، او څو څو ورځي به بیا خلک پوښتني ته ورته راتلل او همیشه به لیدل کېدله چي د ډېرو اوښکو بهېدلو شخه يې پر مخ دوې تور لیکي (کرښي) ښکاره کېدې، او پر ژبه به يې دا الفاظ بار بار جاري وو: "اې کاش! چي زه پیدا سوی نه وای" یوه ورځ د یو کور پر دروازه باندې تېرېدئ چي د یوسړي تلاوت يې واورېدی چي هغه دې آیت ته ورسېدی: إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ (الطور:۷) نو د اوښ شخه را کښته سو، دېوال ته يې ډډه ووهله ودرېدی او د کمزورۍ شخه هلته څوځار سو، خلکو پور ته کړی کور ته يې راوستی او یوه میاشت مریض پروت وو، او چا ته معلومه نه سوه چي دغه څه مرض وو او ولي وو؟ علي بن حُسین ﷺ چي به کله اودس کوی نو مخ به يې ژړ سو ا چي چا به حُیني

پوښتنه وکړه نو ویل به یې چي تاسو ته څه معلومه ده؟ چي د چا په حضور کي به زه دریږم؟
په مسور بن مخرمه رضی الله عنه کي د قرآن شریف د اوریدلو طاقت نه وو، یوه ورځ یو ناآشنا سړی چي په ده خبر نه وو د ده په مخکي یې دا آیت ولوستی: يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِينَ إِلَى الرَّحْمَنِ وَفْدًا (٨٥) وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَى جَهَنَّمَ وِرْدًا (مریم:٨٦) (په کومه ورځ چي جمعه کړو موږ متقیان د رحمان خوا ته دمیلمونو په توګه او را کشوو به مجرمان جهنم ته تږي) ده وویل چه زه مجرم یم متقي نه یم یو وار بیا دې ووایه، هغه ناواقف بیاوویل نو یوه چغه یې وهله او پر هغه وفات سو.
حاتم اصم رحمه الله فرمایي چي په ښکلي مکان باندي غرور مه کوه چي دجنت څخه زیات کوم ځای ښایسته کېدای سي لیکن آدم علیه السلام د دې څه ولیدل؟ او په ډېر عبادت هم مه بې خوده کېږه چي دابلهس مثال ستا په مخکي دي چي په زرګونو کاله عبادت یې کړی وو، او په ډېر علم او فضل هم مه مغروره کېږه چي بلعم باعورا په علم کي دې درجې ته رسېدلی وو چي د الله جل جلاله اسم اعظم د ده په علم کي وو، او د ده حال په قرآن کي داسي بیان سوی دي چي: فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ الْكَلْبِ إِنْ تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ أَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَثْ [الاعراف:١٧٦] (د ده مثال د سپي په دول دی که ته حمله پر کوې نو هم غاپي او که یې پرېږدې نو هم غاپي) او د ښېکو خلګو په دیدار او زیارت هم نه دي غرور کول پکار، چي د نبي ﷺ شومره خپلوان او قریبان وو او دوی ﷺ یې شومره لیدلي وو لیکن ایمان لا هم ور ته نصیب نه سو.
عطاء سلمي رحمه الله هم د ډیرېدونکو څخه وو پوره څلوېښت کاله یې قهقهه خو لا څه کوې چیري تبسم (مُسکا) یې هم نه وه کړې، او نه یې چیري اسمان ته کتلي وو او کله چي یې یو وار پر آسمان نظر پرېوتی نو بې هو ښه سو پرېوتی، او دا یې عادت سوی وو چي هره شپه به یې ځان کتی چي چیري یو حصه خو مي مسخه سوې نه ده، او که پر خلګو به یو مصیبت نازل سو مثلاً وچکالي، زلزله او نور، نو ویل به یې چي آه! دا ټول زما د بدو اعمالو نتیجه ده او زما د بدبختي وبال دی کوم چي پر زمانه را نازل سو که زه نه وای نو خلګ به په دې آفت او بلا کي نه وای ګرفتاره.
حسن بصري رحمه الله یو وار داسي بې زړه سو چي تر څو کالو پري یې خندا بنده کړه خلګو چي به ور ته کتل نو داسي به ښکاره کېدی لکه چي بندي وي او دلوړي خوا حکم پر سوی وي، آخر پوښتنه ځیني وسوه چي دا څه وجه ده؟ تاسو خو ډېر عبادت، ریاضت او مجاهده هم کوئ؟ ویې ویل: زما سره د دې خبري ېره ده چي هسي نه الله جل جلاله زه پر یو داسي کار کولو لیدلای یم چي هغه زما دښمن

سوی وي او ماته وایي: چي څه کوې کوه یې! خو زه به دربانديي رحمت هیڅ کله ونه کړم نو بیا دا څه چي ځان ویلي کوم بې فائدې به وي؟

نو دا بول قصّې چي د مثال په توګه وړاندي کیږي بې شمارهٔ دي، اوس پر دې غور کوه! او سوچ کوه! چي دا خلګ څومره په بېره کي وو، او یواځي ته یې چي څومره په مزه او خوند سره بې بېري او بې خطرې وخت تېروې، اوس د دې دوې وجهي کېدای سي چي یا خو دغه خلګ ډېر ګناهګاره وو او ته بالکل بې ګناه یې، یا بیا ځکه چي دوی ته معرفت حاصل وو، او ته ځیني محرومه یې، او که رشتیا پوښتنه کوې نو حقیقت دا دی چي ته دخپل حماقت او غفلت په وجه سره د سخت ګناهګاره کېدلو سره سره بې خوفه او بې بیري یې او هغوی د خپل معرفت په وجه انتهائي اطاعت ګزاره او بیا هم په بېره کي وو.

**فصل: په خوف او رجا کي کوم یو افضل دی؟** : کېدای سي چي دلته څوک دا سوال وکړي چي د خوف او رجا د دواړو فضیلت په ډېرو احادیثو کي راغلی دی نو بیا په دې دواړو کي افضل کوم یو ته ویل کېدای سي، نو یاد ساته! چي خوف او رجادواړه دوایاني دي او یوې دواء ته د بلي دوا څخه افضله نسي ویل کېدای بلکي کتل کیږي چي په دوی کي کومه د کومي ناروغي د پاره زیاته فائده منده ده او بیا د خوف او رجا تعلق د صفات ناقصه وو سره دی د صفات کامله وو سره نه دی ځکه د بنده کمال دا دی چي په محبت د الله ﷻ کي مستغرق سي او ذکر الٰهي دی په خپل ځان کي بالکل محوه کړي تر دې چي د خپل آغاز او انجام خیال هم نه کوي او پر وخت باندي نظر نه ساتي، بلکي د وخت پر مالک او خدای باندي نظر ساتي ځکه چي که تول فکر او توجه خوف او رجا ته سي نو دا شئ به د ده د پاره حجاب جوړ سي که څه هم داسي حالت ډېر کم وي.

نو د کوم سړي وخت چي مرګ ته نژدې وي پر ده د رجا غلبه مناسبه ده چي د رجا څخه محبت پیدا کیږي او کوم سړی چي د دې جهان څخه ځي ده ته پکار دي چي د الله ﷻ د محبت سره رخصت سي چي د الله ﷻ ملاقات د ده سعادت جوړ سي، ځکه اصل لطف خو د محبوب په ملاقات کي دی، لیکن که یو سړی د غافلانو څخه وي نو پر ده دخوف غلبه پکار ده چي د ده د پاره غلبه د رَجَا د زهر قاتلو څخه کمه نه ده، او که د اهل تقوی څخه وي، او حال یې مهذب او بنایسته وي نو د خوف او رجا پر اعتدال باندي وسېدل پکار دي، لیکن په دې صورت کي کله چي په طاعت او عبادت کي مشغوله وي نو د رجا غلبه غوره ده ځکه په مناجات کي د زړه صفایي په محبت سره وي او رجا سبب د محبت دی، هاا! د ګناه په وخت کي د خوف غلبه لازمه ده، بلکي په مباحو کارونو کي هم د خوف

غلبه لازمه ده، کنې دمباح کیدلو سره سره د ده فعل په ګناه بدلېدای سي، نو څنګه چې د خوف او رجا حیثیت د دوایانو دی په دې وجه د دې نفع د خلګو پر احوالو باندې منحصره ده چې د دوی د بدلېدو سره دا هم بدلیږي، نو د دې سوال جواب مطلق او حتمي نسي کېدای، او اصل حال خو الله ﷻ ته معلوم دی.

## څلورم اصل: د فقر او زُهد په باره کې

پوه سه! چې د دین د لارې مدار پر دې څلور اصلونو دی چې ذکر یې د اسلام تر عنوان لاندې تېر سوی دي یعنې: (۱) نفس (۲) دنیا (۳) آخرت (۴) الله تعالیٰ، په دې کې د دوو طالب کېدل لازمي دي او دوو ترک کول مناسب دي، نو د الله ﷻ په طلب کې خپل نفس او د آخرت په طلب کې دنیا پرېښوول لازمي دي، په نورو الفاظو کې چې د خپل ځان څخه مخ اړول د الله ﷻ طرف ته او د دنیا څخه مخ اړول د آخرت وطرف ته متوجّه کېدل پکار دي، خوف، صبراو توبه د دې مقدمات دي، نو د دنیا دوستي د هلاکت باعث دی چې علاج یې موږ مخکې بیان کړی دي او د دنیا سره دښمني دا ده چې د د دې سره تعلق پرې کړل سي، نو اوس موږ تشریح او وضاحت کوو چې دا شرح په اصل کې د فقر او زهد هم شرح ده نو پکار دي چې دا یاده کړل سي.

## د فقر او زُهد (بزرګی) حقیقت او پېژندنه

فقر دا دی چې چاته د کوم شئ حاجت وي هغه د ده سره نه وي او نه یې د ده سره کېدل د ده په اختیار او وس کې وي، د بنده د حاجتونو خو دا حال دی چې اول خو د ده خپل وجود ته حاجت دی بیا د دې وجود ژوندي ساتلو ته او په دې سلسله کې د خوراک، څښاک او مال دولت او نور..... اوبیا د دې څخه ماسوا څومره حاجتونه او ضرورتونه ورته پېښیږي او په دې کې یو شئ هم د ده په قدرت اواختیار کې نسته او دی هر یوه ته محتاجه دی.

"غني" هغه دی چې د خپل غیر څخه بې نیازه وي او دغه ماسوا د یوه څخه بل هیڅوک نسته یعنې هغه ذات صرف د الله ﷻ دی چې د باقي ټولو شیانو هستی یعنې د انسانانو، پیریانو، فرښتو، شیطانانو او نورو هستي او بقا د دوی دخپل ذات څخه نه ده.

نو په حقیقت کې ټول فقیران دي په دې وجه ارشاد وسو چې: وَاللَّهُ الْغَنِيُّ وَأَنتُمُ الْفُقَرَاءُ [مُحَمَّد:۳۸] (غني صرف الله ﷻ دی او تاسو ټول فقیران او محتاجه یاست)، او بل ځای یې د دې معنی

وضاحت داسې فرمايلى دي: وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ ذُو الرَّحْمَةِ إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَسْتَخْلِفْ مِن بَعْدِكُم مَّا يَشَاءُ [الانعام:۱۳۳] (او ستارب غني او رحمت والا دى كه هغه وغواړي نو تاسو ټول به ليري كړي ستاسو پر ځاى چې څوک وغواړي پيدا به يې كړي). نو ټول مخلوق فقير دى (غني صرف الله ﷻ دى) ليكن د تصوف په اصطلاح كي د فقير اطلاق پر هغه سړي كيږي كوم چې خپل ځان پر دې صفت وويني هم او پر كوم چې واقعي دا حالت غالبه او طاري وي چې دى ګڼي چې زما سره هيڅ هم نسته او د دې دُنيا او د هغه جهان هيڅ شئ د ده په قبضه او اختيار كي نسته، نه د اصل آفرينش په لحاظ سره او نه د دوام آفرينش په اعتبار سره (يعني نه ده ده پر پيدا كېدلو اختيار سته او نه پر ژوندي پاته كېدلو) ليكن كوم احمقان چې دا وايي چې: ته به فقير هغه وخت يې چې ته عبادت هم نه كوې ځكه چې د عبادت په بدله كي ثواب ملاوېږي، او كه ثواب ستا سره وي نو مطلب يې دا دى چې ستا سره څه سته، نو كله چې څه در سره وي نو فقير څنګه سوې، د زنديقي او قباحت دا هغه تخم دى كوم چې شيطان د خلكو په زړونو كي اچولى دي، او دا هغه احمقان دي كوم چې شيطان د پوهې او عقل د هوېدار جوړ كړي دي دغه رنګه يې ګمراه كوي، چې دى خو ساده الفاظو ته ذليله معنى ور اغوندي، چې د دوى په ډول نور احمقان په آساني سره دوكه وخوري، او وګڼي چې كه پوهې ده نو بس دا ده حال دا دى چې د ا هغه خبره ده چې يو څوک (د دوى په ډول اصحاب عقل) داسې ووايي چې: څوک خداى لري هغه هر څه لري په دې وجه پكار دي د فقير جوړېدلو د پاره دي د خداى څخه يې زاره سي، دې (دعقل ړندو ته) دا هم معلومه نه ده چې فقير خو هغه وي چې عبادت كوي.

## د فقر فضيلت

د الله ﷻ ارشاد دى: لِلْفُقَرَآءِ الْمُهَاجِرِيْنَ (د دې محتاجو مهاجرينو (بالخصوص) حق دى) [الحشر] او د نبي ﷺ ارشاد دى چې" كوم درويش عيالدار او پلرسا وي الله ﷻ هغه دوست لري، او فرمايي: اې بلال رضي الله عنه! كوشش كوه چې د دې دنيا څخه د تللو په وخت فقير يې مالدار نه يې، او فرمايي: زما د اُمت فقيران به د مالدارو څخه پنځه سوه كاله مخكي جنت ته ځي.

او د يو روايت په روى سره يې دا مُده څلوېښت كاله ښوولي ده، او د لته د فقير څخه مراد حريص فقير هيڅ كله نه دى بلكي هغه فقير مراد دى چې په فقيري كي قانع او خوشحاله وي، او فرمايي: زما د امت افضل ترينه خلک هغه دي كوم چې فقيران دي، او فرمايي: جنت ته چې كوم خلک د ټولو څخه

مخکي داخليږي هغه ضعيفه خلک به وي، او فرمايي: زمادوه کسبه (پيشې) دي: فقيري اوجهاد.او زما دوست هغه دی کوم چي دا دوه کسبه دوست او خوښ گڼي.

روايت دی چي جبرئيل ﷺ نبي کريم ﷺ ته راغلی وريې ويل چي: الله ﷻ تا ته سلام وايي او پوښتنه کوي چي که ته غواړې نو چي زه د مځکي ټوله غرونه په سروزروکي تبديل کړم او بيا چي کوم ځای تاسو غواړئ دغه به حاضربږي، نبي ﷺ وفرمايل: نه! اې جبرئيله! زما دا نه دي پکار، ځکه چي دنيا د بې کورو کور دی اومال د مفلسانو مال دی او د دنيا مال جمع کول د احمقانو کار دی جبرئيل ﷺ وويل اې مُحَمّد ﷺ! الله ﷻ دي تا پر دې قول ثابت قدمه پاته کړي، حضرت عيسیٰ ﷺ په لاره کي يو سړی بيده وليدی نو ورته وريې ويل: اې د خدای بنده! پورته سه او خدای ياد کړه، هغه عرض وکړی اې عيسیٰ! زما څخه څه غواړې چي ما خو دنيا او دنياوالا پرې ايښې دي، وريې فرمايل: نو بيده وسه! اې دوسته ښه په ژور خوب بيده سه. حضرت موسیٰ ﷺ يو سړی وليدی چي ډېره يې تر سر لاندي کړې ده پر خاور بيده دی او يوه کمبله ور سره ده نور ور سره هيڅ نسته، عرض يې وکړی يا الله آيا ستا دا بنده ضائع دی چي د ده سره خو هيڅ هم نسته؟ ارشاد ورته وسو چي: آيا تا ته معلومه نه ده چي زه څومره چا ته زيات گورم دومره هغه زيات د دنيا څخه ليري ساتم.

نبي ﷺ فرمايي: کله چي خلک په دنيا راټولو، مال جمع کولو او آبادی جوړولو کي مشغوله سي او د فقيرانوسره دښمني وساتي نو الله ﷻ به دوی په څلور آفتونو کي مبتلا کړي: (١) په ټوله زمانه کي به قحط واچوي، (٢) پر دوی به ظالم او جابر حکمران (بادشاه) مسلّطه کړي (٣) بې دينه او خائنه حاکمان او افسران به پر دوی ظلم کوي (٤) د دوی دښمنانو او کافرانو ته به د دوی په مخکي شان او شوکت ورکړي.

د ابن عباس ﷺ قول دی چي لعنتي دی هغه سړی کوم چي څوک د درويشۍ په وجه ذليل او خوار او د مالداری په وجه ذليل عزيز اومحترم گڼي.

روايت دی چي د مالدارنو چي کوم ذلت به د سفيان ثوري په مجلس کي کېدی داسي به بل ځای نه کېدی ځکه چي هغوی به دوی هميشه په آخري صف کي کښېنول او فقيران او محتاجان به يې بالکل پخپله خوا کي کښېنيول. حضرت لقما خپل زوی ته وفرمايل: چي څيري او خرابي جامې والا ذليله او سپک مه گڼه ځکه چي د ده او ستا خدای يو دی، يحی بن معاذ وايي چي: مسکين بنده که د دوږخ څخه هم داسي بېرېدی لکه د فقيری څخه نو د دواړو څخه به محفوظه وای، او که د جنت يې هم داسي

طلب کولای لکه د دنیا چي یې کوي نو دواړه به یې حاصل کړي وای، او که په باطن کي هم د خدای څخه داسي بېرېدای لکه چي په ظاهر کي بېرېږي نو د دواړو جهانو په سعادت به سرفرازه وای، یو سړی لس زره درهمه راوړل ابراهیم ادهم رحمه الله ته راغلی او ورته ویل: چي دا قبول کړه دوی انکار څیني وکړی هغه په ډېرا سو اصرار (ټینګار) یې کوی تر دې چي منّت او زری یې شروع کړې، ابراهیم ادهم رحمه الله وویل ته دا غواړې چي د دې پیسو په عوض زه خپل نوم د درویشانو د فهرست څخه خارج کړم؟ نو ووه! دا زما څخه هیڅ کله نسي کېدای. نبي ﷺ حضرت عائشي رضي الله عنها ته وفرمایل: که غواړې چي د قیامت په ورځ زما سره یې نو د فقیری ژوند تېروه، دامیرانو څخه لیري وسه! او جامې تر هغه وخته مه بدلوه چي پیوند (پینه) نه پکښي ولګېږي.

## د قانع فقیر فضیلت

د نبي ﷺ ارشاد دی چي: خوش بخته دی هغه سړی کوم ته چي الله ﷻ د اسلام لار وښوولې او مال یې د کفایت په اندازه ورکړی او ده پر دغه باندي قناعت وکړی، او فرمایي: ای درویشانو! د زړه په صدق سره پر درویشی باندي قانع وسئ صابر او راضي وسئ چي د فقر ثواب تاسو ته ملاو سي کنې د دې څخه به محرومه سئ، او په دې کي اشاره و دې طرف ته ده چي حریص او لالچي فقیر ته ثواب نه ملاوېږي، دغه رنګه خو په نورو صریحو احادیثو کي مذکور دي چي ده ته هم ثواب ضرور ملاوېږي، او د نبي ﷺ ارشاد دی چي د هر شئ یوه چابي ده او د جنت چابي د صابرو فقیرانو صحبت او دوستي ده، چي دا خلک به د قیامت په ورځ الله ﷻ ته ډېر نژدې بلکي هم نشینه وي،او فرمایي چي: په بندګانو کي دالله ﷻ د ټولو څخه ښې دوست هغه درویش دی چي هغه پر دې باندي قانع وي کوم څه چي الله ﷻ ورکړي وي او پر هغه رزق صابره وي کوم چي الله ﷻ دوی ته ورکړی وي، او فرمایي: چي د قیامت په ورځ به فقیران او مالداران ټول په دې حسرت کي مبتلاوي چي ای کاش! په دنیا کي دوی ته د قدر د کفایت څخه زیات څه ملاو سوي نه وای! پر حضرت اسماعیل علیه السلام باندي وحي را نازلي سوې چي که ما تلاش کول غواړې نو دماتو زړونو په خوا کي مي تلاش کوه، عرض یې وکړی ای خدایه هغه څوک دي؟ ورته فرمایل: هغه درویش چي صابر او قانع وي، او فرمایي: د قیامت په ورځ به د الله ﷻ د طرف څخه ارشاد وسي، چي کوم ځای دي زما هغه بندګان کوم چي په ټول مخلوق کي خاص او غوره دي؟ فرښتې به پوښتنه وکړي چي هغه څوک دي؟ نو ارشاد به وسي چي هغه مسلمانان درویشان کوم چي زما په ورکړه همیشه راضي وو، نو ولاړ سئ هغه ټوله جنت ته

ورسوئ، او دوی به په دغه وخت کي جنت ته ورسول سي چي لا تر اوسه به باقي مخلوق په حساب کي وي.

ابو الدرداء ﷺ فرمايي: خرابي ده د هغه سړي په عقل کي کوم چي د دنيا په زياتېدلو خوشحاله وي او په عمر کمېدلو نه خفه کيږي، سبحان الله دا آخر کومه يوه داسي د خير خبره ده چي دنيا خو دي زياتيږي او عمر دي کميږي، يو سړي د عامر بن قيس پر خوا تېر سو نو وې ليدل چي ساګ (وابنه) او ډوډۍ خوري دې سړي پوښتنه وکړه اې عامر! په دنيا کي تا بس پر دې صبر وکړی؟ وېې فرمايل: دا څه دي ما خو داسي خلک هم ليدلي دي چي د دې څخه په کمه باندي زما څخه زيات قانع وو، هغه پوښتنه وکړه: دغه کوم خلک وو؟ وېې فرمايل: هغه کوم چي دنيا د آخرت په بدله کي اخلي او د دې څخه په کمه قانع وي.

ابو ذر ﷺ يوه ورځ په مجلس کي ناست د خلکو سره په خبرو کي مشغول وو چي په دې کي د دوی بي بي راغله وېې ويل ته دلته ناست يې او په خدای قسم په کور کي هيڅ هم باقي نسته، وېې فرمايل: اي ښځي! زما په مخکي يوه انتهائي ګرانه غونډۍ ده، او د هغې څخه هغه سړی تېرېدای سي کوم چي سپکباری (چي بوج او بار يې سپک وي) او تش لاسی وي، چي دا يې واورېدله نو ښځه يې خوشحاله سه او کور ته ولاړه.

او په دې خبره کي اختلاف دی چي د درويش صابر درجه افضله ده او که د مالدار شاکر؟ اصحيح دا ده چي درويش صابر افضل دی، دا څوره روايتونه چي موږ پيش کړي دي ټول پر دې حقيقت دلالت کوي.

## د درويشۍ او فقيري ادبونه

يوه سه! چي د درويشۍ د آدابو څخه افضل ترين ادب دا دی چي په باطن کي راضي په رضا د الله وي او په ظاهر کي ګيله شکوه نه کوي او تر څو چي دباطن تعلق دی نو د درويش درې حالتونه کېدای سي: (١) په درويشۍ خوشحاله او شاکره وي او د دې حقيقت څخه آشناوي چي درويشي د الله ﷻ هغه ربښتونې ورکړه ده کوم چي د ده د دوستانو دپاره ځانګړې ده. (٢) که په درويشی خوشحاله نه وي نو په ناراضه هم نه وي، او سره د دې چي درويشي د ده خوښه نه وي او بده يې ګڼي لکه يو سړی چي د رګ وهلو درديې خوښ نه وي خو بياهم د حجام څخه په دې وجه نفرت نه کوي ځکه چي هغه يې د ده په ورينا د ده د ښه کوي، نو دا هم ښه خبره ده (٣) د درويشی په وجه د حق تعالی څخه ناراضه

وي او دا حرام دی او د فقر ثواب زائله کوي، ځکه واجب دا دی چي هر وخت دا عقيده لري چي الله ﷻ هغه کوي کوم چي غواړي او چا ته دا حق نسته چي د الله ﷻ په کارونو کي دکراهت اظهار وکړي یا ځیني دانکار جرأت وکړي.

او دغه ډول په ظاهر کي هم دشکایت یو حرف پر ژبه راوړل پکار نه دی، دحضرت علي ﷺ قول دی چي درویشي کله دعذاب الهي سبب هم کیږي او د داسي درویش علامه دا وي چي په قضاء الهي بلندي چغي وهي د خفګان، او ناراضی اظهار کوي، او کله دا درویشي د سعادت سبب وي او د داسي درویش نښه دا وي چي دښه اخلاقو او نیک خویی لمنه دلاس څخه نه پریږدي او پر هره خبره دالله ﷻ شکر اداء کوي، په حدیث شریف کي دي خپله درویشي او محتاجي نه ښکاره کول یوه ډکه خزانه ده او د داسي درویشي آداب دا دي چي: (۱) درویش د مالدارانو سره هیڅ ډول خلط او ګډون نه ساتي (۲) د امیرانو په مخکي عاجزي نه کوي (۳) او نه د امیرانو خوشامندي (چاپلوسي) کوي، د حضرت سفیان ثوري رحمه الله قول دی چي: فقیر چي کله د مالدار خوا ته ځي نو ریاءکار دی او که د باچا څه مخکي او وروسته کیږي نو غل دی، او دویم ادب دادی چي کله کله د ځان څخه څه خوندي کوي او صدقه کوي یې، نبي ﷺ فرمایلي دي چي کله داسي هم کیږي چي یو درهم د یو لک درهمو سره برابر وي بلکي د دوی څخه افضل تره وي، اصحابو ﷺ پوښتنه وکړه چي هغه کله؟ورپی فرمایل: که د چا سره د دوو درهمو څخه زیات څه نه وي او دی ځیني یو درهم صدقه کړي نو دا د هغو درهمو څخه زیاته افضله ده چي د چا سره په لکونو کروړونو درهمونه موجود وي او دی د هغو څخه لک درهمه د خدای په لاره کي صدقه کړي.

## دهدیه(سوغات) او نذرانه اخیستولو ادبونه

اخیستونکي ته پکار دي چي: (۱) کوم مال مشتبه وي هغه نه اخلي (۲) کوم چي د ده د حاجت څخه ماسوا (یعني د ده ضرورت ورته نه وي) هغه هم نه اخلي، لیکن که درویشانو خدمت په کوي بیا یې اخیستلای سي (۳) که یو فقیر یې په ظاهري توګه واخلي او په پټه یې صدقه کړي نو دا درجه د صدیقینو ده، که د دې خبري د صلاحیت او طاقت څخه محرومه وي نو پکار دي چي قبلوي یې نه چي مالک یې پخپله پر حقدارانو تقسیم کړي (۲) د ورکوونکي نیت هم ضرور معلومول پکار دي ځکه چي ورکوونکي یې د (ا) هدیې په نیت، که (ب) د صدقې په نیت، که (ج) د ریاکاری په توګه ورکوي، په دې کي چي د کوم شئ په توګه هدیه ورانلي کړل سي هغه قبلول سنت

دی په دې شرط چې د احسان څخه خالي وي، او که دا معلومه وي چې دغه شئ په جزئي توګه احسان دی او په جزئي توګه بغير د احسان څخه دی نو پر کوم چې احسان نه وي هغه قبلول پکار دي.

**مثال:** يو سړي د نبي ﷺ په خدمت کې پوڅه (پنير)، غوړي او پیسې (روپی) حاضر کړل دوی ﷺ پیسې واپس کړې او نور دواړه شیان یې قبول کړل. فتح موصلي رحمه الله ته يو چا پنځوس زره درهمه راوړل هغه ووېل چې د حديث په روی سره چې څوک بغير د سوال څخه چا ته يو شئ ورکړي او هغه يې رد کړي نو ګويا ده د خدای دين رد کړی دا يې ووېل يو درهم يې څيني واخيستی او باقي يې واپس کړل.

که يو سړی يې د رياکاری په نيت سره څه ورکوي نو دغه قبلول نه دي پکار، يو بزرګ د يو سړي په ريا کاري سره يو شئ ورکول قبول نه کړی خلکو ډېره بده وګڼله، بزرګ ووېل زه ګنم چې ما ده شئ وانه اخيستی پر ده مي مهرباني وکړه ځکه چې د ده مقصود داوو چې د دې پنډوره به غږوم او په داسي خو به د ده مال ضائع سوی وای او ثواب به هم په لاس نه وی ورغلای، (۵) که يو سړی د صدقې په توګه څه ورکړي نو اخيستونکي که د صدقې مستحق وي نو وا دې اخلي او که نه وي نو نه دې اخلي، (۶)

په حديث شريف کي دي چې کوم سړي ته خلک بغير دسوال څخه څه ورکړي نو دا ګويا الله ﷻ د طرف څخه را لېږل سوی رزق دي (قبلوي دې) او د دې څخه بزرګانو دامقوله وضع کړې ده چې کوم سړي ته خلک څه ورکړي او دی يې وانه اخلي نو د ده په بلا کي اخته کېدل لازمي دي ځکه چې بيا که دی څه غواړي هم خو خلک يې ورته نه ورکوي، سري سقطي رحمه الله به هميشه احمد حنبل رحمه الله ته څه لېږل او هغه به هر وار د قبلولو څخه انکار کوی، يو وار داسي وسوه نو سري السقطي رحمه الله ووېل: اې احمد رحمه الله ! د رد کولو د آفت څخه ځان وساته، چې بيا يې هغه الفاظ ووېل، نو احمد بن حنبل رحمه الله ووېل چې بنه دی ته دا سنبال او خوندي کښيږده، زما سره في الحال د يوې مياشتي خرڅ موجود دی چې دا ختم شي قبول به يې کړم.

**بې ضرورته او بلا حاجته سوال حرام دی:** نبي ﷺ فرمايلي دي: چې سوال د فواحشو څخه دی او فحش بې ضرورته حلال نه وي او په فواحشو کي د دې د شمارېدلو سبب دا دی چې په دې کي څو قباحتونه او بدی دي:

اوله بدي خو يې دا ده چې درويشي ظاهرول ګويا د الله ﷻ خلاف شکايت کول دي ځکه چې د چا يو

غلام که دخلکو څخه څه غواړي ګرځي نو د ده دا کار به خپل مالک بدنامه کول وي، د دې کفاره داسې کېدای سي چې اول خو دی بغیر د ضرورت څخه سوال نه کوي او که یې کوي نو د شکایت په توګه دې نه کوي.

دویم قباحت دا دی چې سوال کوونکی کېدل ګویا ذلیل کېدل دي او مسلمان ته دا نه ښایي چې د الله ﷻ څخه ماسوا د بل چا په مخکې ځان ذلیله کړي.او د دې ذلت څخه د خوندي کېدلو فقط دا صورت کېدای سي چې تر څو پوري یې وس وي سوال دې صرف د داسې دوست یا قریب څخه یا داسې خلاص زړه والا سړي څخه کوي چې په حقارت او نفرت سره بیا ده ته نه ګوري چې د ده په مخکې ذلیله نسي که داسې نسي کېدای نو څومره چې د زیاتو څخه تر زیاتي اندازې پوري کېدای سي بې ضرورته دې سوال نه کوي.

دریمه بدي دا ده چې دا د نورو خلکو دتنګولو خبره ده ځکه چې ورکوونکي عین ممکنه ده چې صرف د ملامت او رسوایي په وجه یا د شرم او ریا کاری څخه ورکوي او داسې ورکول به د زړه نه وي نو په زړه کي به دننه خفګان، ملال او ستړیا محسوسوي د دې څه د ځان ساتلو طریقه دا کېدای سي چې سوال دې په صراحت سره نه بلکي په اشاره سره کوي چې که ورکوونکي ځان ناڅګاره کوي نو کولای به یې سي، او که په سوال کي صراحت ناګزیره وي نو یو سړی دې نښه کوي نه بلکي په مجموعي توګه دې خبره کوي،او که هلته موجود فقط یو امیر وي او د ټولو دا توقع وي چې دغه د دې سائل حاجت پوره کولای سي او د ده څه ورکول دملامت د ښه کېدلو د پاره کافي وي نو دا خبره پخپل ځای د خصوصي تعین مترادفه ده (نو هلته دې سوال نه کوي) که یو سائل د بل د پاره زکوٰة غواړي کوم چې واقعي د زکوٰة مستحقه وي نو دا صحیح ده په دې شرط چې د چا څخه غواړي پرهغه واقعي زکوٰة واجب وي او په دې کي که ورکوونکي خفه کیږي هم نو پروا نسته، او که سائل پخپله د زکوٰة مستحق وي نو د ځان د پاره هم سوال کولای سي دا جائز دي.

که یو سړی سائل ته صرف د شرم یا د ملامت د ېرې څخه څه ورکوي نو دا حرام دي ځکه چې دا ګویا د ده څخه جبراً څه اخیستل دي، په دې کي شک نسته چې په ظاهره فتویٰ کي صرف زباني الفاظو ته کتل کیږي، لېکن دا فتویٰ دلته په دې دنیا کي پکار راتلای سي چې د دنیاوي باچاهانو قانون دا وي لېکن په هغه جهان کي به فقط د زړه فتویٰ قابلِ اعتماد وي، نو د ښوولو مقصد دا دی چې که د اخیستونکي زړه ګواهي ورکوي چې ورکوونکي یې په کراهت سره را کوي نو نه دې اخلي او حرام

دې کړي.
نو د دې ټولو خبرو څخه داواضحه کیږي چي سوال حرام دی او صرف دسخت ضرورت او ناګزیر حاجت په وخت صحیح دی، نو که د سوال کولو څخه مقصد دا وي چي په ظاهري شان شوکت کي فرق را نسي یا ښه خوراک ملاؤ سي یا ښه لباس واغوندي نو دا جائز نه دی، ځکه چي سوال هغه ته کول پکار دي چي عاجزه وي او څه ورسره نه وي او څه کسب هم نسي کولای یا که د کسب قابل خو وي لیکن په طلب د علم کي مشغول وي، لیکن که په عبادت کي مشغوله وي نو بیاورته کسب کول لازم دی او سوال حرام دی، او د دوږي د محتاجه کیدلو په صورت کي هم که په کور کي یو کتاب یا جانماز (مُصلی، مسله) یا کمربند او نور موجود وي او دغه د ضرورت څخه زیات وي نو سوال کول حرام دي ځکه چي اول دغه شیان خرڅول او د دوږي انتظام کول پکار دي، لیکن که صرف د ځان او کور د تجمّل او ښایست پر ځای ساتل یا پکښې اضافه کول مقصودوي نو سوال حرام دی.
**دزهد حقیقت**: فرض کړه! چي یو سړی په ګرمي کي واوره د ځان سره ساتي او دا حرص د دې خبري وي چي کله هم تږی سي نو اوبه به په دې یخي کړي، بیا یو سړی راسي او غواړي چي سره زر ورکوي او واوره واخلي، او دغه د واوري خاوند دا سوچ وکړي چي که نن په ګرمو اُوبو قناعت وکړم نو څه به وسي، ځکه چي د دې واوري د ځان سره د اینښودلو څخه خو د سرو زرو ایښوول غوره دي او بیا په دې حال کي چي واوره خو د پاته کیدلو شئ هم نه ده، شپې ته خو به دا په هر حال ویلي سوې وي او دا سره زر خو به ټول عمر را سره وي نو په دې خیال سره که هغه د سرو په مقابله کي واوره سپکه وګڼي نو د ده دې ترک حرص ته زُهد وایي، کوم چي ده د واوري په مقابله کي اختیار کړی، نو همدا حالت د یوعارف د دنیَا په باره کي وي چي دی کله ویني چي دنیا تلونکې ده او همیشه کمیږي (لکه چي واوره ویلي کیږي ختمیږي) او بالآخره دمرګ پر وخت به بالکل د دې خاتمه وسي او هاخوا د ده نظر پر عاقبت باندي پرېوځي نو ویني چي هغه صاف او باقي دي او د ختمېدو یې بالکل سوال نه پیدا کیږي نو دا دنیا د ده د نظره څخه وغورزیږي او ذلیله او خواره سي نو دی یې د آخرت په مقابله کي ترک کړي، او د دنیا ترک کولو څخه وروسته آخرت اختیاروي ځکه چي آخرت د دنیا څخه غوره او بهتره دی، دې ترک د دنیا ته "زهد" وایي په دې شرط چي دا زهد د مباحو شیانو په سلسله کي وي ځکه چي د شرعي ممنوعاتو څخه پرهیز خو هسي هم لازم دي، دارنګه شرط دا دی چي پر دنیا باندي قادره وي خو بیا یې هم ترک کوي، ځکه چي چا ته قدرت حاصل نه وي نو د هغه

زهد خو د مجبورۍ زهد دی. دارنگه حالت دا وي چي دنيا ده ته ورانديي هم کړل سي خو دا اخيستولو څخه يې انکار وکړي هسي خو د دې آخرۍ شرط د ازمائش څخه بغير د دې تارک ته د زهد صحيح علم نسي کېدای، ځکه چي د بنده که پر دنيابانديي قدرت حاصل سي نو د ده دنيا بدليږي او د نفس کيفيت څه نور سي او کوم فريب د زهد چي ده جوړ کړی وي د هغې قلعي وخېژي. او بيا دا شرط هم دی چي مال خرڅ کړي او حفاظت يې نه کوي و د جاه او مرتبې څخه هم بې نيازه سي، ځکه چي د زهد مطلق تقاضا دا ده چي د دنيا د لذت څخه برکناره سي، او د دې ټولو لذتونو په آخرت سره تبادله وکړي او دا يوه ډېره منظمه غټه معامله. بيعي او سودا والا خبره ده چي ډېره غټه نفع پکښې حاصليږي، د الله ﷻ ارشاد دی: إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ [التوبه:۱۱۱] (بې شکه الله ﷻ د مسلمانانو څخه د دوی نفسونه او مالونه د دې خبرې په عوض اخيستي دي چي دوی ته به جنت ملاوېږي ) او بيا ورپسې فرمايي: فَاسْتَبْشِرُوا بِبَيْعِكُمُ الَّذِي بَايَعْتُم بِهِ (او تاسو پر دې خپله بيعه کومه چي مو د الله ﷻ سره کړې ده خوشحاله سی، چي دا غټه کاميابي ده) ګويا الله ﷻ د دا ډول بيعي کوونکو ته مبارکي ورکوي، چي دوی د غټي ګټي سودا وکړه.

ليکن ياد ساته چي کوم سړی د سخاوت د اظهار د پاره دنيا ترک کوي يا يې په ترک د دنيا کي يو بل پټ غرض وي نو نه دا زهد دی، او نه دا سې تارک زاهد دی. بلکي د اهل معرفت په نزد خو دنيا د آخرت په بدله کي خرڅول هم صرف يو ضعيف قسم زهد دی ځکه چي اصل زاهد خو هغه دی کوم چي د دنيا په ډول آخرت هم دمينځ څخه ليري کړي ځکه چي جنّت هم د آخرت شهوت د سترګو شهوت د فرج او شهوت د نس دی او زاهدان د دې ټولو شيانو څخه هسي هم نفرت ساتي او خپل ځان د دې څخه لوړ ګڼي ځکه چي په کوم شئ کي از رويې شهوت څاروی هم د ده سره شريک وي دغه ته دوی څنګه کتلای سي، چي د دوی خو په دنيا او آخرت داور وکي صرف د الله ﷻ څخه ماسوا نور څه مطلوب نه وي، او د ده د معرفت او مشاهدې څخه ماسوا په ... څه شي صبر نه ... سي. د الله ﷻ څخه بغير هر شئ د دوی په نظر کي بې وقعته وي، دا هغه زهد دی چي د عارفانو او صادقانو حصه وي او عارف چي کله دې مقام ته ورسيږي نو د ده د پاره دمال څخه تېښته هم روا ده بلکي ده ته پکار دي چي مال واخلي او پر مناسب ځای يې خرڅ کړي او مستحقو محتاجانو ته يې ورسوي لکه چي د روې زمين ټول مال د حضرت عمر ﷺ په قدمونو کي وو او دوی ځيني فارغه او بې نيازه وو، بلکي د

حضرت عائشې رضي الله عنها په دول چي یو لک درهمونه یې په یوه ورځ کي خرڅ کړل او د ځان د پاره یې د یو درهم غوښه وانه اخیسته، چي روژه په ماته کړي.
نو د عارف سره که لک درهمه وي نو هم هغه عارف وي او د بل سره که یو درهم نه وي خو هم زاهد نه وي، بلکي کمال خو په دې کي دی چي زړه د دنیا څخه قرابت پرې کړي چي نه یې په طلب کي مشغوله وي او نه ځیني تښتي د دنیا سره د ده نه جنګ وي او نه صلح او نه دوستي او نه دښمني، ځکه چي د یوشئ سره دښمني کول هم خپل ځان په دغه کي مشغولول دي، عین داسي لکه چي بنده پخپل دوست یا محبوب کي مشغولیږي نو کمال دا دی چي د غیر الله څخه بالکل خالي او بې غمه سي، د دنیا مال د ده په نظر کي د دریاب د اوبو په دول وي او لاس یې د الله ﷻ د خزانو په دول چي که کم وي که زیات، راسي او که ولاړ سي، دی ځیني په هر حال په هر صورت فارغه وي نو کمال د دې نوم دی، لېکن د احمقانو د پاره مقام د غرور هم دا دی ځکه چي ده ته د ترک مال همت هم نه وي، او خپل ځان داسي ځلوي چي زما څخه به څه وایي موږ خو د مال څخه فارغه یو حال دا دی چي د ده راز هلته ښکاره کیږي کله چي دی په دې خبره کي فرق کوي چي فلاني ته کوم چي مستحق وو موږ مال ورکړی او فلانی د دریاب څخه اوبه واخیستې، او فلانی د بل څخه مال واخیستی، نو دا فرق پخپله د ده د غرور او خود فریبي غماز وي، او صافه ظاهریږي چي د مال خواهش او قدر د دوی په باطن کي موجود دی حال دا دی چي اصل دا چي سره د قابض او قادر کېدلو څخه د مال څخه دستبرداره (لاس په سر) سي او لیري ځیني تښتي چي د دې سحر او طلسم څخه خلاصون وموميٰ.
ابن مسعود رضي الله عنه وايي چي تر څو پوري دا آیت نه وو نازل سوی: مِنكُم مَّن يُرِيدُ الدُّنْيَا وَمِنكُم مَّن يُرِيدُ الْآخِرَةَ [آل عمران:۱۵۲] (ځیني په تاسو کي هغه وو چي دنیا یې غوښته او ځیني هغه وو چي آخرت یې غوښتی) تر هغه وخته دا خبره زما په ذهن کي هم نه وه راغلې چي زموږ څخه هم څوک داسي سړی کېدای سي کوم چي دنیا خوښوي، او بیا چي کله مسلمانانو وویل چي که موږ ته دا علم وسو چي د الله ﷻ دوستي په کوم شئ کي ده نو موږ به هغه کولای، نو پر دې خبره دا آیت نازله سو: وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ أَنِ اقْتُلُوا أَنفُسَكُمْ أَوِ اخْرُجُوا مِن دِيَارِكُم مَّا فَعَلُوهُ إِلَّا قَلِيلٌ مِّنْهُمْ [النساء:۶۶] (که موږ دوی ته دا حکم کړی وای چي خپل ځانونه مړه کړی او د کورونو څخه بهر ووځی نو د څو تنو څخه ماسوا به چا پر دې عمل نه وای کړای)، نو پوهېدل پکار دي چي واوره د سرو زرو په عوض ورکول یو داسي خاص خبره نه ده چي هر عقلمند داسي کولای سي او بیا دا د دنیا او آخرت د باهمي

نسبت سره ملاوول خو هسې هم ګران دي چې د دې نسبت د هغې په مقابله کې ډېر کم دی لېکن خبره
دا ده چې خلک د دې اسبابو پر بنیاد د دې د حقیقت څخه بې خبره وي: (۱) د ایمان د ضُعف په سبب
(۲) د شهواتو د غلبې په سبب (۳) د غفلت او تأخیر په سبب یعني ځان په دې ویلو وروسته کوي
چې بیا به یې وکړم، بیا به یې وګورم او نور نور، او د دې (ځنډولو) سبب زیاتره د شهوت غلبه وي،
ځکه چې په حال کې بنده داسې نسې کولای، یعني فقط دا نقد ته ګوري او قرض (پور) یعني آخرت
هېروي.

**د زُهد فضیلت**: تر اوسه موږ د دنیا د دوستۍ په مذمت کې چې څه ویلي دي دغه ټول د زهد د
فضیلت ثبوت دی، لېکن خبره دا ده چې د دنیا دوستي تر مهلکاتو لاندې راځي او د دنیا د دښمنۍ
شمار به په منجیاتو کې وي، نو دلته موږ هغه احادیث او آیتونه ذکر کوو، د کومو تعلق چې د دنیا د
دښمنۍ سره دی (او دا زهد دی) د زهد د ټولو څخه زیات قابلِ تحسین اړخ دا دی چې الله ﷻ دې ته د
اهلِ علمو سره مناسبت ورکړی دی او په قرآنِ پاک کې راغلي دي چې کله قارون په ښه وضع قطع
(شکل او حالت) کې پر آس سپور راووتی نو هر سړي به ورته د افسوس په نظر سره کتل دا به یې ویل
چې ای کاش! دا وضع قطع او دولت او شوکت ما ته هم حاصل وای، لېکن کومو خلکو ته چې د دین
پوهه ورکړل سوې وه هغوی به ویل چې د آخرت ثواب د دې څخه زیات بهتره دی کوم چې به
ایماندار او نیک عمل کوونکو ته ملاوېږي [القصص] او دا یې ځکه وویل چې زهد که تر څلوېښتو
ورځو پوري هم اختیار کړل سي نو د زاهد په زړه کې د حکمت او معرفت هغه سترګه روښانه کوي
کومه چې چیري دوکه نسي خوړلای.

د نبي کریم ﷺ ارشاد دی چې که ستا د الله تعالی سره د دوستۍ آرزو وي نو په دنیا کې زاهد جوړ سه،
حارثه ﷜ عرض وکړی چې یا رسول الله! زه خو په حقیقت کې مؤمن سوم، نبي ﷺ پوښتنه وکړه
چې دلیل یې څه دی؟ عرض یې وکړی دا چې زما نفس د دنیا څخه داسې لیرې تښتي چې سره زر وي
او که ډبره، د دې سره یې هیڅ شوق نسته، او دواړه زما نفس ته برابر دي، او داسې ښکاري چې جنت او
دوږخ دواړه زما سترګو ته مخامخ دي، نبي ﷺ وفرمایل صحیح ده تا ته چې څه ملاوېدل وو ملاو
سول، اوس کوشش کوه چې ته دا پر ځای وساتې، بیا یې وفرمایل: دا حارثه هغه بنده دی د کوم زړه
چې الله ﷻ نوراني جوړ کړی دي، او کله چې دا آیت نازل سو: فَمَن يُرِدِ اللَّهُ أَن يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ
لِلْإِسْلَامِ... الخ [الانعام: ۱۲۵] (او څوک چې الله ﷻ پر لاري کول غواړي نو سینه یې د اسلام د پاره

خلاصه کړي...الخ) نو صحابه وو ﷺ عرض وکړی يا رسول الله! د دې شرح څه ده؟ دوی ﷺ وفرمايل: چې يو نُور دی کوم چې په زړه کې پيدا کيږي او زړه ته د دې څخه فراخي حاصليږي، صحابه وو ﷺ بيا عرض وکړی چې آيا د دې يو خاص ظاهري نښه سته؟ نو ويې فرمايل چې: ها! نښه د دې دا وي چې زړه د دې فاني دنيا څخه بيزاره د آخرت په کار کې لګيدلی وي او د مرګ سامان د مرګ څخه مخکې تيارولو ته يې د زړه توجه پيدا سوې وي.

يو وار نبي ﷺ وفرمايل: د الله ﷻ څخه شرم کوئ څنګه چې کول پکار دي، صحابه وو عرض وکړی چې آيا موږ شرم نه کوو؟ ويې فرمايل که شرم لرئ نو په دومره مال جمع کولو پسې ولې ورپسې ياست؟ چې په استعمال کې يې راوړل هم يقيني نه دي او ولې په داسي آباديو کې مشغول ياست چې د وسېدلو پکښې شايد نوبت هم رانسي.

يوه ورځ نبي ﷺ خطبه ويله ويې فرمايل: کوم سړی چې لا اِلٰهَ الاَّ الله صحيح سلامته او بغير د يو شئ د ګډوډ څخه يووسي دی جنتي دی، عرض وسو يا رسول الله! د دې وضاحت وفرماياست: چې د يو شئ د ګډون څخه يې بغير يووسي، ويې فرمايل: چې د دنيا د طلب، لټون او محبت څخه يې بغير يووسي، ځکه چې څومره خلک داسي ليدل کيږي چې د کومو خبري وا وريدل سي نو داسي معلومه سي چې ګويا پيغمبرانه خبري دي او زړونو ته چې يې وګوري نو د ټکو او نقطو څخه ډک وي، نو کوم سړی چې دا کلمه پر ژبه د راوړلو په وخت کې دا د بلي خبري سره خلط ملط او ګډه نه کړي دغه به جنتي وي.

او فرمايي، کوم سړی چې په دنيا کې زهد اختياروي الله ﷻ د ده زړه ته د حکمت دروازې خلاصوي، نو د ده د ژبې څخه چې څه وځي د حکمت څخه ډکي وي، او الله ﷻ چې څنګه دی د دنياوي علتونو او مرضونو د راز څخه خبروي نو هلته يې د دغو د درمل او دواء څخه هم خبروي او د دې دنيا څخه دی د سلامتی کور ته صحيح سالم رسوي، يوه ورځ نبي ﷺ د اوښانو د ګلې پر خوا تېرېدی څلور سره طرفو ته ښه ښه اوښان او ښې ښې اوښې په نظر راتلې، چې ځيني پکښې تازه تازه لنګي سوي وې په عربو کې دې مال ته ډېر د قدر په نظر سره کتل کېدله ځکه چې دا مال هم وي خو د دې سره سره ورې او شيدې هم پيدا کيږي، دوی ﷺ مخ مبارک بل طرف ته وګرځولو، صحابه وو عرض وکړي چې دا خو دومره خوږ مال دی، تاسو ولې نه ورته ګورئ؟ ويې فرمايل: ما ته د دې د کتلو څخه ممانعت دی او په ښکاره توګه يې وښوول چې آيت: (تاسو هيڅ کله د دې شيانو وطرف ته مه ګورئ کوم چې موږ

د کفارو مختلفو ډلو ته د دوی د آزمایښت د پاره ورکړي دي چي دغه صرف ددنیا د ژوند خوند او رڼا ده او ستاد ربّ عطیه چي هغه به په آخرت کي ملاوېږي په ډېرو درجو غوره او باقي پاته کېدنکي ده [طه].

ابن مسعود ﷺ وايي چي که څوک د دنیا څخه زهد اختیار کړي، د ده دوه رکعته لمونځ د ټولو مجتهدینو د ټول عمر د عبادت څخه غوره دی، د سهل تستري ﷫ قول دی چي ستاسو په عمل کي اخلاص هغه وخت پیدا کېدای سي چي ستاسو د څلور شیانو څخه لوېه بالکل ختمه سي (۱) د لوږي څخه (۲) د لڅېدلو څخه (۳) د فقیرۍ څخه (۴) د خوارۍ او رسوایي څخه.

## د زهد د درجو بیان

پوه سه! چي د زهد دري درجې دي: (۱) یو دا چي یو سړی د دنیا څخه لاس پورته کړي لېکن زړه یې پکښي لګېدلی وي بیا هم د دې څخه د نجات حاصلولو د پاره دی ریاضت او مجاهده کوي، صبر او قناعت خپلوي داسي سړي ته متزهّد ویل کیږي زاهد نه، که څه هم دا د زاهد اولنی منزل دی (۲) دویمه درجه دا ده چي د ده زړه هم د دنیا څخه بې نیازه سي لېکن دی د خپل زهد غټ خیال ساتي، یعني زهد اختیارول خپله غټه کارنامه ګڼي، داسي سړی زاهد دی خو د نقصان څخه بالکل خالي نه دی (۳) دریمه درجه دا ده چي د ده سره د خپل زهد احساس یا زعم هم نه وي او نه یې څه لویه کارنامه ګڼي، د داسي زاهد مثال د هغه سړي دی کوم چي د وزارت اُمید لري لېکن چي د باچا دروازې ته ورسیږي نو دی یو سپی د دننه تللو څخه منع کړي او دې ورته د ډوډۍ یوه ټکړه ورکړي چي د ده د لاري څخه لیري سي او بیا باچا ته ورسیږي د وزارت پر عهده فائز سي، د داسي سړي په نزد د ډوډۍ د دې ټکړي وقعت څه دی کومه چي ده سپي ته اچولې وه، نو په دې کي چي کوم پټ راز دی هغه دا دی چي دا ټول جهان یوه کوټه ده او د شیطان حیثیت د دغه سپي دی کوم چي د حقیقي باچا په دربار کي حاضرېدونکي خلک د دننه د تللو څخه د منع کولو کوشش کوي، لېکن که ته ورته کوټه واچوې بیا ستا لاره نه بندوي، او د دې دنیا قیمت خو د آخرت په مقابله د دې ټکړې څخه هم کم دی کومه چي د وزارت د عهدې د پاره سپي ته واچول سوه، ځکه چي د دې خو یو حد او انتها سته، او د آخرت خو یوه انتها او حد نسته او د بې انتها په مقابله کي د هغه شئ څه حقیقت وي دکوم چي انتها وي، دلوجه وه چي کله خلکو بایزید بسطامي ﷫ ته وویل چي فلانی سړی د زهد خبري کوي نو دوی پوښتنه وکړه چي په کوم شئ کي د زهد خبري کوي؟ خلکو وویل چي په دنیا کي د زهد، ورې

فرمایل: دنیا څه شئ ده چې په دې کې زهد وسي، چې اول خو څه یو شئ وي، بیا زهد په هغه شئ کې وسي (دنیا خو هیڅ شئ نه ده).

زهد ولې او د څه شئ د پاره اختیاروول کیږي؟ په دې اعتبار سره هم د زاهدانو درې درجې دي: (۱) اول دا چې بنده په دې غرض سره زاهد سي چې د آخرت د عذاب څخه خلاص سي او پر خپل مرګ راضي وي دا داهلِ خوف زهد دی، یوه ورځ مالک بن دینار وویل چې پرون شپه ما دالله ﷻ په مخ کې غټه زوروړتیا وکړه یعني جنّت مي څیني وغوښتی (یعني چې د مرګ څخه وروسته جنت ته ولاړ سم).

(۲) دویمه درجه دا ده چې زهد دآخرت دثواب د پاره اختیار کړل سي او دا پوره زهد دی ځکه چې د زهد سبب اُمید او محبت وي په دې وجه دې ته داهلِ رجا خواف وایي، یعني دأمید کوونکو زهد.

(۳) دریمه درجه دا ده چې په زړه کې نه د دوږخ بېره وي او نه دجنت آرزو بلکې دالله ﷻ محبت څیني دنیا او آخرت دواړه هېر کړي وي او غیر الله طرف ته کتل ده ته د شرم او رسوایی باعث وي، دا درجه د کمال ده، رابعه بصري ته خلکو دجنت خبره وکړه نو ویې ویل چې د کور مالک د کور څخه زیات وي (یعني د چا کور ته چې څوک ځي نو د کور د دېوالونو د لیدلو دپاره نه ځي د کور د مالک دیدار ته ځي) دکوم سړي په زړه کې چې دالله ﷻ مینه ځای وکړي د هغه د پاره د جنت لذتونه هیڅ نه وي، لکه څنګه چې د بادشاهی د لذت په مقابله کې د مرغی سره بازی کول یو څه لذت نه لري، لېکن یو بچی ته د مرغی سره بازی کول د بادشاهی د لذاتو څخه زیا ته درجه لري، نو د دې وجه دا نه ده چې د ده خیال واقعي صحیح دی بلکې د دې د پاره چې هغه د بادشاهی د لذت څخه بې خبره دی، او د ده د بې خبرۍ سبب د ده کم عقلي ده. دغه ډول دالله ﷻ د دیدار څخه ماسوا که یو بل خواهش څوک زُهد ته راغب کړي نو دی د دغه بچي په ډول ناقص العقل دی کوم چې د بادشاهی د لذت څخه ځکه بې خبره دی چې ده ته د دې خبر نسته.

او دکوم شئ په پرېښولو چې زهد اختیارېږي د دې په اعتبار سره هم د زهد مختلفي درجې دي ځکه چې د بعضو خلکو پرېښوول خو صرف تر څو شیانو پورې محدود وي، لېکن په دې کې درجه دکمال دا ده چې هر هغه شئ پرېښوول سي کوم چې نفس ته لذت او مزه رسوي او د دین په لاره کې دې ته هیڅ ضرورت نه وي، ځکه چې دنیا عبارت دی د مال او جاه څخه، د خوراک څښاک څخه، د اغوستولو او بیده کېدلو او د مجلسونو څخه چې یو ځای کښېني، دمجلس مزه واخلي، درس ورکړي حدیثونه واوروي خپل نفس ته راحت ورسوي، او کومه خبره هم چې د نفس په خاطر وي هغه په دنیا

کي شمارېږي، لېکن د درس او تدریس احادیثو اورولو څخه که مقصود دا وي چې د خدای مخلوق د هدایت وطرف ته راوبلل سي چې دوی خدای ته متوجّه سي نو دا په دنیا کي نه شمارل کېږي.

## زاهدانو (بزرګانو) ته پر کومو شیانو قانع کېدل پکار دي (ډېر مهم بحث)

یاد ساته! چې ټول خلک د دنیا په دوږخ کي پراته دي او دنیا هغه دوږخ دی چې کندي یې بې اندازې او بې شماره دي، مګر شپږ شیان په دوی کي ډیر اهم دي، چې دغه ټوله شپږ مهمّات دي: (۱) خوراک (۲) لباس (۳) د وسېدلو کور (۴) د کور سامان او اسباب (۵) ښځه، او (۶) مرتبه او دبدبه.

**اول مهم:** خوراک دی، او په دې کي درې شیانو ته پاملرنه وي، یعني: جنس، مقدار او سالن (کتغ)، تر کومه پوري چې د جنس تعلق دی نو کمترین قسم یې هغه دی چې نس په ډک سي مثلاً د اوربشو او جورو ډوډۍ او اعلیٰ درجه یې د غنمو ډوډۍ ده چې د بې چاڼه اُورو څخه تیاره سوې وي، نو تر دې پوري زهد قائم پاته کېدای سي خو که ډوډۍ د غنمو څخه وه، او غنم چاڼ کړل سوي وو نو خوږونکې یې د زهد د دائرې څخه خارج سو، تن پرور (ځان ساتونکی) شمار سو.

او د مقدار تعلق یې دا دی چې ادنیٰ درجه یې لس سیره مقدار دی او نیم من ته درمیاني (مینځوی) درجه ویل کېږي او انتهاء به یې یو مُد وي د درویش د غذا تعیّن پخپله شریعت تر یوه مُده پوري مقرر کړی دی او کوم سړی چې د دې څخه زیاته خوري د ده په معده کي د زهد کیفیت نه پاته کېږي، په دې سلسله کي د آینده د پاره د خوراک جمع کولو تعلق دا دی کوم چې د اعلیٰ درجې دی چې د یو وخت لوږه په ماتېږي، د دې څخه زیات به نه ساتي ځکه چې اُمید کول د زهد اصل دی او لوږه اُمیدونه ترل د حرص او لالچ اصل دی او مینځوی درجه په دې کي دا ده چې د یوې میاشتې یا څلوېښتو ورځو خوراک کېښېږدي او کمترینه درجه یې د یو کال خوراک جمع کول دي. اوس که د کال څخه هم زیات خوراک جمع کړل سي بیا نو زهد چیري دی؟ د نبي ﷺ معمول وو چې د خپل اهل او عیال د پاره به یې دیو کال خوراک بېشکه ایښوی ځکه چې په صبر کي د هغو درجه د دوی ﷺ برابره نه وه لېکن د خپل ځان د پاره به یې شپې ته هم څه نه پرېښوول. پاته سوه د سالن (کتغ) معامله په دې کي اعلیٰ درجه د زهد د پاره ساګ، سابه (تر کاري، سبزیجات) او سرکه ده، په مینځوی درجه کي تېل غوړي شمارل کېږي، او په دې کي د روغنو څخه تیار سوي ټول شیان شامل دي او اعلیٰ درجه (په زهد کي کمترینه درجه) د غوښې ده، تر دې چې که روزانه یې څوک خوري نو د زهد څخه

به خارج سي، ها! که په اوونۍ (هفته) کي یو وار دوه وي نو بیا د زهد څخه به خارج نه وي او دا خبره چي دورځي به څو واره خوري نو د دې خبري خیال دي ساتي چي په شپه او ورځ کي دي یوه وار خورک کوي، بلکي پوره زهد خو دا دی چي په دویمه دویمه ورځ یې خوري او په ورځ کي چي یې دوه واره خوري پوره زهد به نه وي، د خوراک په معامله که د زهد څخه مکمل واقفیت که پکار وي نو د نبي ﷺ او د صحابه وو ﷺ د سیرت مطالعه دي وکړل سي، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چي کله به داسي وسوه چي د نبي ﷺ په کور کي به تر څلوېښتو څلوېښتو ورځو پوري څراغ نه بلېدی، او ماسوا د خرما او اُوبو څخه به یو شئ په کور کي موجود نه وو، حضرت عیسیٰ ﷺ به فرمایل: چي که د جنت طالب یې نو د اوربشو ډوډۍ خوره، او د سپیانو سره پر اندیرو (ترو) پرېوزه چي د جنت طالب ته دا بس دي، او خپلو حواریانو ته به یې همېشه د اوربشو د ډوډۍ خوړلو هدایت کوی اوفرمایل به یې چي د غنمو د ډوډۍ دپاره د الله ﷻ شکر کول ستاسو د وس خبره نه ده، ډېر مشکل دی.

**دویم مهم**: لباس دی، زاهد ته لازم دي چي د یوې جوړې جامو څخه زیاتي نه دي ساتل پکار تر دې چي دغه پرېولي او لغړ وي، د کوم سړي سره چي دوې جوړې وي هغه زاهد هیڅ کله نه دی او د لباس د نوعیت په باره کي کمه درجه دا ده چي یو قمیص او څپلۍ او خولۍ (ټوپۍ) کافي دي، هسي خو په دې کي د لنګوټې او پټو (څادر) اضافه هم کېږي، د لباس په جنس کي ادنیٰ درجه په زهد کي ټاټ دی متوسط دا وړیو څخه جوړه جامه ده او د زیاتو څخه زیاته خوره چي اغوندي نو د پنبه وو جامه ده که د پنبه وو نرۍ او پسته جامه اغوندي نو زاهد به نه وي، د نبي ﷺ د وصال څخه وروسته به حضرت عائشي رضي الله عنها یو کمبل او لنګ ښولو چي بس دا د هغوی ﷺ لباس وو، په حدیث شریف کي دي چي کوم سړی چي داسي لباس اغوندي کوم چي په دنیا کي د شهرت او ځان ښوولو سبب وي نو ترڅو چي یې دغه لباس د ده په تن باندي وي الله ﷻ به د ده څخه ناراضه وي که څه هم دغه سړی د خپلو عملونو په لحاظ سره د الله ﷻ په دوستانو کي ولي نه وي د نبي ﷺ د لباس یعني پټو او لنګ مجموعي قیمت به د لس درهمه څخه زیات نه وو، یو وار په هدیه کي یوه جامه نبي ﷺ ته ورالندي کړل سوه چي ګلونه پر نقش سوي وو، دوی ﷺ واغوستل او فوراً یې وکښل ویې فرمایل: دا "ابوجهیم" ته ورکړئ د هغه پټو ما ته راوړئ ځکه چي دې ګلونو زما توجّه ځان ته کړه، یو وار د دوی په څپلیو کي نوې تسمه ولګول سوه نو هغه یې هم لیري کړه ویې فرمایل چي هغه زړه تسمه دو باره

په کي واچوئ، ځکه چي په لمانځه کي زما نظر پر دې پرېوتی، يو وار پرمنبر ولاړ وو چي نظر يې د مُهر کولو پر گوتمی پرېوتی فوراً يې د گوتی څخه وويسته ويې فرمايل: دا مناسبه نه ده چي يو وار تاسو ته گورم يو وار گوتمی ته، يو وار نوي څپلی د دوی د پاره راوړل سوې دوی سجده وکړه او د بلډي يې تشريف يووړی او چي کوم فقير يې د ټولو څخه اول په نظر راغلی هغه ته يې ورکړې، او ويې فرمايل: چي دا ما ته ښه معلومه سوه، او زه بېرېدم چي هسي نه د دې په وجه الله ﷻ ما خپل دښمن وگرځوي، نو ما د خپل رب د خوشحاله کولو د پاره سجده وکړه. يو وار دوی ﷺ وفرمايل: اې عائشې ﷝ که د قيامت په ورځ زما سره وسېدل غواړې نو په دنيا کي په قدر د کفايت باندي کفايت کوه، او جامه تر هغه وخته پوري مه کاږه تر څو پوري چي پکښي پيوند (پينه) ونه لگېږي. د عمر فاروق ﷛ په جامو کي يو وار خلکو څوارلس پيوندونه شمار کړي وه، حضرت علي ﷛ د خلافت په دوران کي يو وار په درې درهمه يو قميص واخيستی، او لستوڼي يې د لاس څخه چي څومره اوږده وو څيري يې کړل او ويې ويل شکر دی د هغه پاک ذات چي دا انعام يې را کړی.

**دريم مهم:** کور دی چي ادنیٰ درجه يې دا ده چي بنده د ځان د وسېدلو د پاره يو ځای متعين نه کړي بلکي د مسجد يا مسافرخانې په يو کونج کي قناعت کوي، او اعلیٰ درجه دا ده چي يوه کوټه د ملکيت په توگه د خپل ځان سره وساتي ليکن دغه دېر جگه نه وي او نقش او نگار پکي نه وي او د ضرورت څخه زياته پراخه هم نه وي، د شپږو گزو څخه لوړ چت د درجې د زهد څخه نه دی، د کور څخه مقصد دا دی چي بنده د گرمی يخنی څخه ځان خوندي کړي د دې څخه ماسوا دې د څه تلاش نه کوي، بزرگانو ويلي دي چي د نبي ﷺ څخه وروسته چي هم د اُميدونو په ضمن کي کومه مخکي فتنه په دنيا کي خوره سوه هغه دغه وه چي خلکو پاخه کورونه جوړول شروع کړل او په جامو کي متعدد چاکونه او بټنې لگول. د دوی ﷺ په زمانه کي به په يو قميص کي يو چاک او يوه بټن وه. حضرت عباس ﷛ دوه منزله کور د نبي ﷺ په حکم سره ونړوی، يوه ورځ دوی د گونبتې په ډول ديو کور پر طرف تېر سو نو پوښتنه يې وکړه دا د چا کور دی؟ خلکو وويل چي د فلانی، هغه چي کله د دوی په خدمت کي راغلی نو دوی ور ته نظر د التفات ونه فرمايلو هغه د ناراضوالی سبب معلوم کړی نو خلکو ور ته وويل: نو ده هغه ونړوی، دوی ﷺ خوشحاله سو او د ده په حق کي يې دعاء وغوښته. حضرت حسن ﷛ فرمايي: چي نبي ﷺ په ټوله عمر کي نه خښته پرخښته کښېښودله او نه لرگی پر لرگي، نبي ﷺ فرمايي: چي که ديو چا خرابي د الله ﷻ په نزد مقدّره سي د ده مال په اوبو او خاورو

کي برباديږي، حضرت عبد الله ابن عمر ﷺ فرمايي: چي نبي ﷺ زموږ خواته تشريف راوړی او پوښتنه يې وکړه چي څه کوئ موږ عرض وکړی چي د نلونو يو کور دي هغه خراب سوی دي مرمت (جوړښت) يې کوو، ويې فرمايل: چي دمرګ معامله د دې څخه زياته نژدې ده چي هغه پر سر ولاړ دی، نبي ﷺ فرمايي: چي کوم سړی د حاجت او ضرورت څخه زيات کور جوړوي د قيامت په ورځ به ده ته وويل سي چي دغه کور اوس پر سر پورته کړه. حضرت فضيل رحمه الله فرمايلي دي: زما پر هغه سړي هيڅ تعجب نسته چي مکان او کور جوړ کړي او ولاړ سي ځيني تعجب مي پر هغه چا دی چي د دې څخه عبرت وانه اخلي.

**څلورم مهم**: د کور سامان او اسباب دي: په دې باره کي د حضرت عيسیٰ ﷺ طريقه د ټولو څخه اعلیٰ وه چي د ده سره د ږمونځ او پيالې څخه ماسوا نور څه نه وو، ده يو سړی وليدی چي په ګوتو يې ږيره ږمنځوله نو ږمونځ يې هغه ته ورکړه او يو سړی يې په لپه پر اوبو څښلو باندي وليدی نو پياله يې هغه ته ورکړه. اوسط درجه دا ده چي د ضرورت په اعتبار سره يو يو شئ ساتي د خاوري وي او که د لرګي، لېکن که د ژړو او سپينو وي نو دا د زهد منافي دی، د تېرو بزرګانو معمول وو چي د يو يو شئ څخه به يې ډېر ډېر کارونه اخيستل. د نبي ﷺ سره چي کوم بالښت وو د کجورو په پوستوکو ډک وو او د پروتي د پاره غبرګه کمبله (ټاټ) وو، حضرت عمر ﷺ يو وار د نبي ﷺ پر بدن مبارک د ټاټ نښي وليدې نو ويې ژړل نبي ﷺ د ژړا پوښتنه وکړه، نو عرض يې وکړی: چي قيصر او کسریٰ د خدای دښمنان په نعمتونو کي دي او د الله ﷻ نبي او دوست په دې حال کي، دوی ﷺ وفرمايل: ته خوشحاله نه يې چي دوی ته دي د دنيا دولت نصيب وي او موږ ته د آخرت؟ عرض يې وکړی زه خوشحاله يم، ويې فرمايل: چي ته پوه سه! چي هم واقعي داسي به وي.

يو سړی د حضرت ابو ذر غفاري ﷺ کور ته ولاړی نو په کور کي هيڅ نه وو، پوښتنه يې ځيني وکړه ستا سره خو هيڅ نسته؟ ويې فرمايل: ما ته چي څه په لاس راځي هغه زه خپل بل کوز ته لېږم، يعني هغه کورته کوم چي په آخرت کي تياروم هغه سړي وويل چي تر څو پوري چي په دې کور کي وخت تېرول دي تر هغه پوري خو هم د سامان څخه بغير چاره نسته، ويې ويل چي د کور مالک ما دلته کله پرېږدي.

**پنځم مهم**: نکاح ده، د سهل تستري رحمه الله، سفيان عينيه رحمه الله او د نورو بزرګانو خيال دی چي نکاح نه کول د زهد په لوازماتو کي نه ده ځکه چي د ټولو څخه غټ زاهد نبي ﷺ وو او د هغه نهه

بیبیانې وې، او ښځې به یې خوښې وې،او د حضرت علي ﷺ څلور بیبیانې او لس دولس حرمونه وو، حال دا چې زاهد وو. او پوه سه چې د دې څخه مراد دا واضح کول وو، چې په زهد کې د مباشرت د لذت پرېښودلو په غرض د نکاح څخه لاس اخیستل لازم نه دي، ځکه چې د دې ډېرې فائدې هم دي او یوه دا چې اولاد ځیني حاصلیږي او بقاء د نسل ضروري ده نو په دې لحاظ نکاح نه کول به داسې وي لکه چې یو سړی د لذت څخه د لیرې کېدلو په خیال سره خوراک څښاک بند کړي چې دا خو به د ده د هلاکت سبب سي، دغه ډول نکاح ترک کول نسل منقطع کول دي، ها! دا ضروري ده چې که په نکاح کولو سره توجّه د الله ﷻ څخه اوښتله، نو بیا پرېښوول د نکاح غوره دي او که شهوت غالبه سو نو زاهد هغه دی چې د نکاح د پاره داسې ښځه تلاش کړي چې ښایسته نه وي چې په لیدلو یې شهوت راپورته کیږي نو داسې ښځه دې تلاش کړي چې شهوت په مړ سي خو نه په راپورته کیږي. د احمد بن حنبل ﷺ نکاح د یوې ښایسته ښځې سره مقرره سو لیکن د ذکر په دوران کې ده ته وویل سوه چې د دې ښایسته ښځې یوه بله خور ده چې په عقل او پوهه کې د دې څخه زیاته نه لیکن یوه سترګه یې نسته نو دوی نکاح د هغې سره وکړه او د هغه ښایسته سره یې ونه کړه. جنید ﷫ فرمایي: چې زما دا خبره ډېره خو ښه ده چې مرید په ابتداء کې د درې شیانو څخه ځان وساتي یعني د کسب، نکاح او حدیث لیکلو څخه. دارنګه فرمایي: زما دا خوښه نه ده چې صوفي په لیکلو لوستلوکې مشغوله وي ځکه چې په لیکلو لوستلو کې د صوفي توجّه تقسیمیږي، او خیالات یې ګډوډ کیږي.

**شپږم مهم:** جاه او مال دی: او په مهلکاتو کې موږ ښوولي دي چې دا دواړه د زهرو درجه لري، لیکن که په قدر د حاجت لږ لږ وي نو ګټمن هم دي او په دې صورت کې به د دوی شمار په دنیا کې وي، ځکه چې کوم شئ لازمه د دین سره وي هغه په دین کې شامل وي،حضرت خلیل ﷺ د خپل یو دوست څخه قرض وغوښتی نو وحي راغلې چې که څه دې غوښتل نو د خپل دوست (خدای) څخه دې ولې نه غوښتل، عرض یې وکړی اې خدایه! زه پوهېدلم چې ته دنیا دښمنه لرې نو ستا څخه په دنیا غوښتلو باندې ډېرېدم نو ارشاد ورته وسو، اې خلیله! کوم شئ چې په لازمي حاجت کې شامل وي هغه په دنیا کې نه دي شامل، لنډه دا چې په قدر د حاجت ساتل او زیات دآخرت د پاره پرېښوول او د مال او جاه څخه په قدر د حاجت باندې اکتفاء کول چې وسې نو دا دلیل د دې امر دي چې د زاهد زړه د مال او جهان څخه بېل او علیحده دی او د دنیا د محبت څخه بې نیازه دی او مراد د دې څخه دا وي چې که د دنیا څخه څې نو سر کښته به نه وي او دنیا ته به په حسرت سره نه ګوري، چې

دنیا ته په حسرت سره هغه کوري څوک چې دا خپل آرام ځای او دارُالامان گڼي، لېکن د چا په نزد چې د دې قدر او قیمت داودس مات د ځای (بیت الخلاء) څخه زیات نه وي د دغه په نزد مرګ داسې دی لکه چې د پاخانې (قضاءِ حاجت) څخه چې خلاص سي، او کوم سړی چې د دنیا سره زړه ولګوي د هغه مثال د هغه سړي په ډول دی چې د یو داسې ځای په خاطر چې هلته د ده پاته کېدل نصیب نه وي خپله غاړه په ځنځیرونو وتړي یا د خپل سر وېښتیانو ته کلکې غوټې ورکوي (چې د دې ځای څخه ولاړ نسم)، لېکن آخر چې د ده دېولو د پاره راسي او په داسې راکشولو راکشولو دی د دغه ځای څخه جلا کړي چې د سر ټول وېښتیان یې وخیږي او دی د وینو او زخمونو سره د هغه ځای څخه رخصت سي.

حسن بصري رحمه الله وایي ما داسې خلک هم لیدلي دي چې په آفتونو او بلاګانو به دومره خوشحالېدل چې لکه څنګه تاسو پر نعمتونو باندې خوشحاله کېږئ که هغوی تاسو لیدلي وای نو یقیناً چې شیطانان به یې ګڼلی او که تاسو هغوی ولیدل نو لېوني به ورته وایاست، او دغه خلک بلاء اومصیبت ته دومره راغب ځکه وو چې د دنیا څخه یې زړه پرېکړل سوی وو چې د مرګ په وخت یې د دنیا په یو شئ پوري هم زړه تړلی نه وي، او اصل حال خو الله جل جلاله ته معلوم دی.

## پنځم اصل: د صدق او اخلاص په باره کې

د نظر پر خاوندانو دا خبره ښکاره ده چې ټول خلک په هلاکت کې مبتلا دي ما سوا دعابدانو څخه او ټول عابدان هم په هلاکت کې دي ما سوا دعلماؤ څخه او ټول عالمان هم په هلاکت کې دي ماسوا د مخلصانو څخه او مخلصین پخپله په غټه خطره کې دي، نو د اخلاص څخه بغیر که محنت هم برداشت سي هغه ضائع دي او د صدق او اخلاص وجود پر نیت باندې منحصره دي، او کوم سړي ته چې دنیت علم نه وي هغه به پکښې د اخلاص خیال څه وساتي؟ نوموږ په یوه باب کې دنیت پر معنی رڼا اچوو، په دویم کې داخلاص پر حقیقت او په دریم کې د صدق حقیقت بیانوو.

## اول باب: دنیت په باره کې

په دې سلسله کې خو اول دنیت د فضیلت څخه خبرېدل ضروري دي چې د ټولو عملونو روح نیت دی او پر دې د حکم اطلاق هم کېږي او د بنده په عملونو کې د الله جل جلاله پېش نظر د عمل کوونکي نیت وي، د نبي ﷺ ارشاد دی: د الله جل جلاله نظر ستاسو پر اعمالو او صورت باندې نه وي بلکې هغه صرف

ستاسو زړه او کردار ته ګوري او زړه ته ځکه چې دنیت مقام او محل دغه دی، نبي ﷺ فرمايي چې د کار تعلق د نیت سره وي او هر سړي ته د ده د اطاعت او عبادت څخه ثواب صرف دومره ملاوېږي څنګه چې د ده نیت وي، مثلاً یو سړی دخدای په لاره کې هجرت کوي یا جهاد کوي یا حج ته ځي نو ده دا کارونه د خدای د پاره دي لیکن په دې هجرت یا سفر کې که د ده دا نیت وي چې د تجارت مال به په لاس راسي یا به یوه ښځه حاصله کړي نو دا هجرت به دخدای دپاره نه وي او اجر به یې د دې نیت مطابق وي د کوم د پاره چې دغه عمل سوی دی.

او نبي ﷺ فرمايي زما دامت ډېر شهیدان هغه هم دي د کومو مرګ چې په بستر کې واقع کیږي او ډېر هغه دي چې په میدان د جنګ کې ساه ورکوي او د دوی د نیت علم الله ﷻ ته وي، او فرمايي: د بنده ډېر کارونه داسې وي چې فرشتې دغه ډېر اعلیٰ تصور کوي او د الله ﷻ په نزد ورته د عظمت درجه ورکول غواړي چې ناڅاپه دا لله ﷻ حکم وسي چې دغه کارونه د دوی دعملنامو څخه ختم کړئ ځکه چې دا زما په لاره کې نه دي سوي، او د دې پر ځای فلانې فلانی عمل د ده په عملنامه کې ولیکئ، فرشتې به عرض کوي چې اې خدایه! دغه خو ده نه دي کړي ارشاد به وسي چې د دوی نیت ده کړی دي (او د نیت علم الله ﷻ ته وي فرشتو ته نه وي) او فرمايي: دخلګو څلور ډولونه دي: (۱) یو هغه چې مالداره وي او مال داسې خرڅ کوي د کوم چې علم تقاضا کوي. (۲) دویم هغه چې مال داره نه وي لیکن وايي چې که مال د دوی سره وي نو دوی به هم دغه رنګه خرڅ کولای، اوس تر څومره پورې چې د مال صرف کولو تعلق دی داجراو ثواب سره نو هغه دوی ته هم دومره رسیږي څومره چې اولې ډلې ته ملاوېږي (۳) دریم هغه چې مالدار وي او بې ځایه مال خرڅ کوي (۴) څلورم هغه چې مالداره نه وي خو نیت یې د دوی په ډول وي، اوس تر کومه پورې چې د بې ځایه مال خرڅولو د ګناه تعلق دی نو هغه دې څلورمې ډلې ته هم دومره ملاوېږي څومره چې دریمې ډلې ته ملاوېږي، ګویا کوم اجر او ګناه چې د عمل په کولو سره کیږي دغومره یې په نیت کولو سره هم کیږي. نبي ﷺ فرمايي: د چا پر نیت او همت چې دنیا غالبه وي هغه به همیشه په درویشۍ او مفلسۍ کې ځان وینې، او زړه به یې د دنیا په عشق کې ګرفتاره وي، او د چا نیت او همت چې دآخرت د پاره وي د ده زړه به الله ﷻ د دې ټولو جنجالونو څخه بې فکره او بې نیازه لري او د دنیا څخه د زُهد شرف به ده ته حاصل وي.

او فرمايي کوم چې قرض اخلي او نیت یې دنه اداء کولو وي دی غل دی، د عالمانو قول دی چې د عمل څخه مخکې نیت د عمل پېژندل نهایت ضروري دی، څرنګه چې کله یو سړي وویل چې ماته

څه نېک عملونه داسي و بنه یلست چي زه یې کووم او د خیر او نېکي څخه چیري خالي نه سم، نو ده ته وښوول سوه چي که د خیر کار نسي کولای نو په نیت د خیرو بلندي زره آباد ساته چي دا پرخپل ځای نېکي او ثواب دی. ابو هریره ﷺ وایي چي د قیامت په ورځ به د هر سړي حشر د ده د نیت مطابق وي. د حسن بصري ﷺ قول دی چي جنت دائمي او همیشه دی د ده په حصول کي څو ورځي عمل څه پکار راځي، لېکن د نیت په برکت سره دی حاصلېدای سي چي نیت هغه شئ دي کوم چي لامتناهي او بې نهایته دی.

## د نیت حقیقت او پېژندنه

پوه سه! چي د بنده څخه یو عمل تر هغه وخته نسي پیدا کېدای تر څو چي درې حاجتونه ده ته په مخکي نه وي او هغه دي: علم، اراده او قدرت، په نورو لفظونو کي دوی ته پوهه، طلب، طاقت هم وایي: مثلاً: (۱) تر څو چي طعام په نظر نه وي راغلی دی یې خوري نه (په نظر راتلل د ده علم دی چي سته) (۲) طعام په نظر را هم سي لېکن تر څو چي ورته خواهش (اراده) نه وي نو نه یې خوري (۳) او که خواهش هم وي خو لاس یې شل وي نو هم یې نسي خورای ځکه چي د خوراک طاقت نه لري، نو دا درې حالتونه دي چي په هر عمل کي مخ ته مخ ته وي، چي د دې څخه بغیر حرکت یا عمل نسي موجود کېدای.

لېکن: حرکت تابع دی د قدرت او قدرت تابع دی دا ارادې چي دا اراده د قدرت څخه کار اخلي، او اراده د علم تابع نه وي ځکه چي سړی خو بې شماره شیانویني لېکن د هر شئ خواهش یا اراده خو نه کوي، که څه هم د علم څه بغیر دا رادې هیڅ صورت نه سي ترلای، یعني دکوم شئ چي علم نه وي د هغه خواهش به څنګه وسي او اراده به یې څنګه وکړي؟ نو د دې درې حالتونو څخه نیت عبارت دی د ارادې او خواهش څخه، نه چي د علم او قدرت څخه، چي یو سړي پر یو کار بائدي قائم ساتل دا رادې کار دی، د دې نوم غرض او قصد هم دی او دې ته نیّت هم ویل کیږي ګویا دا درې سره الفاظ (غرض، قصد، نیت) په یوه معنی سره دي.

نو غرض (نیت) کوم چي بنده د یو کار د پاره تیاروي کله خو یو وي او کله دغه رنګه هم دوه غرضونه په یوشي کي جمع سي، خالص غرض هغه وي کوم چي صرف یو وي، مثلاً یو نلست وي ویني چي زمری پر ده حمله کوي او د دې په لیدلو سره فوراً دی د هغه ځای څخه وتښتي اوس په دې کار کي د ده صرف یو غرض دی او هغه دي تښتېدل، دغه ډول که یو سړی د یو لوی او غټ سړي پر

نو دیوې پر ځای لس نیکۍ د ده په عملنامه کي ولیکل سي، او د بعضي احادیثو په روی سره فرشتې دغه لس نیکۍ زیاتوي تر اوو سوو" پوري یې رسوي، د دې ځخه ځیني خلکو دا مفروضه قائمه کړې ده چي د ارادي او خیال پر بنسټ باندي د بنده مؤاخذه نه سي کېدلای، لېکن دا د دوی خطا ده ځکه چي موږ مخکي ویلي دي چي اصل شئ د بنده زړه دي او تن د ده تابع دی (نو مؤاخذه به په زړه سره وي) د الله ﷻ ارشاد دی: إِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللَّهُ [البقرة: ۲۸۴] (د خپلو نفسونو خبري که تاسو ښکاره کوئ او که یې پټي ساتئ خو الله ﷻ به ستاسو سره حساب پر کوي) دارنګه ارشاد دی: إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولَئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُولًا [اسرائيل: ۳۶] (بې شکه غوږونه، سترګي او زړه د هر سړي ځخه به د دې ټولو په قیامت کي پوښتنه کیږي، او فرمایي: لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللَّهُ بِاللَّغْوِ فِي أَيْمَانِكُمْ وَلَكِنْ يُؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُمُ الْأَيْمَانَ [المائدة: ۸۹] (الله ﷻ ستاسو مؤاخذه نه کوي ستاسو پر لغو قسمونو لېکن مؤاخذه به پر هغه کوي چي تاسو قسمونه مستحکم کړی)، او په دې خبره کي د چا اختلاف نسته چي د تکبر، منافقت، ریا کاری، غرور او حسد په سبب سره به مؤاخذه ضرور وي، او دا ټولي هغه خبري دي کومي چي د زړه سره تعلق لري، نو چي د دې معاملې په تحقیق باندي غور وسي نو دې نتیجې ته به ورسیږې چي پر زړه چي څه تېرېږي د دې ځلور حالتونه کېدای سي چي دوه پکښي داسي دي چي د بنده د اختیار ځخه بهر دي په دي وجه قابلِ مؤاخذه به هم نه وي، او دوه داسي دي چي د بنده په اختیار کي دي نو قابلِ مؤاخذه به وي، او د دې وضاحت موږ په یومثال سره کوو.

فرض کړه ته پر لاري روان یې یوه ښځه په تا پسي وروسته راځي اوس ستا په زړه کي به خیال راځي چي لږ خو ورته کتل پکار دي دې خیال ته "حدیث نفس" وایي، دویم دا چي ستا په طبیعت کي دا خواهش اوږي را اوړي چي په مخ اړولو ولي نه ورته ګورم، دې رغبت د زړه ته "میلان د طبع" وایي، او د دې پیدا کېدل د شهوت تر اثر لاندي وي، دریم حالت دا کېدای سي چي زړه د دې خبري حکم وکړي چي ضرور ورته وګوره، او دا حکم داسي ځای وکړي چي هلته یو بندیز یا ډېره هیڅ نه وي، په دې کي یو صورت دا هم کېدای سي چي د زړه حکم لازمي نه وي چي دشهوت په حق کي وي بلکي د زړه حکم د تقاضا د شهوت خلاف هم کېدای سي، یعني هغه داسي حکم وکړي چي نه! ته به داسي هیڅ کله نه کوې، په هر حال حکم هر څه چي وي دې ته په اصطلاح کي "حکم د زړه" وایي، ځلورم صورت دا کېدای سي چي دې ته د کتلو قصد او اراده وکړي او نه صرف د خلکو بلکي

راتلو ودیریږي نو په دې کي هم یو غرض وي یعني د راتلونکي عزت او احترام کول. او په دې دواړو صورتونو کي به د ده غرض ته خالص ویل کیږي.
او کوم چي موږ ویلي دي چي په یو کار کي دوه غرضونه هم جمع کیږي نو د دې دري اقسام کېداى سي: (۱) یو دا چي غرض که یو هم وي خو په کار کي دمشغولولو دپار کافي وي مثلاً د یو سړی خپل یو نژدې قریب د ده څخه یو درهم وغواړي او دی یې خپل عزیز او محتاج وګڼي ورېې کړي او په زړه کي ووایي چي که دی محتاج نه دي نو هم به مي ورکړی وای، بلکي که عزیز نه وای او صرف محتاج وای هم به مي ورکړي وای، نو دلته دوه غرضونه جمع سوا او نیت مشترک دی (۲) دوېم دا چي ورکوونکي په خپل زړه کي ووایي چي که دا خوښتونکي د عزیز کېدلو څخه ماسوا محتاج نه وی نو ما به نه وای ورکړی لېکن اوس چي څرنګه دواړه خبري جمع سوې نو ناچاره به یې خامخا ورکووم، په دې دواړو صورتونو کي داول مثال دا دی چي دوه خلک په جمع یوه دېره پورته کړي حالانکه په دې دواړو کي جلا جلا یې هر تن هم پورته کولای سوه. او د دوېم مثلاً دا دی چي دوه کمزوري خلک دغه دېره په جمع څکه پورته کوي چي یواځي یې د دې پر پورته کولو قادره نه وي.
(۳) درېم داچي د دوو غرضونو څخه یو ضعیفه وي او یواځی دا سړي په کار کي نسي مشغولولای، او بل غرض دومره قوي وي چي یواځي خوېې په کارکي مصروفه کولای سي لېکن د ضعیف په شاملېدلو سره کار آسانه سي مثلاً یو سړی یوازي د تهجد لمونځ اداء کوي او کولای سي لېکن د خلګو په جمع کېدلو سره پر ده آسانه سي چي په دې سره خوشحالي زیاته حاصلیږي، بیا هم که دثواب اُمید نه وي نو صرف خلګو ته په ښوولو سره دی تهجد نه کوي، د دې مثال داسي دی لکه یو مضبوط او طاقتو سړی دېره پورته کولای سي لېکن که یو کمزوری ور سره لاس ونیسي نو پورته کول به ورته آسانه سي. نو په دې کي د هر یو جلا جلا حکم دی چي په دې خبره پوه سي چي دنیت په سلسله کي کله د دې محرکات او اسباب خالص وي او کله مخلوط. (دیویل سره ملاؤ وي)

## کومي نفسیاتي وسوسې معاف دي او کومي نه دي؟

د نبي ﷺ ارشاد دی: چي الله ﷻ زما امّت ته نفساني خیالات او وسوسې معاف کړي دي او دا حدیث په مسلم او بخاري کي موجود دی، چي کوم سړی د ګناه اراده وکړي لېکن عملاً ګناه ونه کړي نو فرښتو ته حکم کیږي چي دغه ګناه د ده په حساب کي مه لیکئ، او که ګناه وکړي نو صرف یوه ګناه پسي شمار سي، لېکن د نېکی که صرف اراده وکړي نو یوه نېکي پسي ولیکل سي او که ورېې وکړي

د خدای څخه بېره هم نه کوي، او د زړه حکم هم باطل نه کړي نو دغه قصد او اراده ډېره ژر پخه سي.اوس په دوی کي چي کوم اولنی دوه حالتونه دي چي کومو ته "حدیثِ نفس" او "میلانِ طبع" موږ ویلي دي، دغه قابل مؤاخذه نه دي، ځکه چي دا خبري د ده د وس نه دي، او ارشاد باری دی: لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا لَهَا [البقرة: ۲۸۶] (الله چا ته تکلیف نه ورکوي مګر د هغه د وس مطابق)

او دا حدیثِ نفس خو هغه شئ دي چي مثلاً عثمان بن مظعون ﷺ د نبي کریم ﷺ په خدمت کي عرض وکړی چي زما نفس ما ته وایي چي ځان خصّي کړه چي خواهش د نکاح دي ختم سي، نبي ﷺ ورته وفرمایل: د داسي کولو ضرورت نسته ځکه چي زما امت ته روژه نیول دخصّي کېدلو په ډول دي، بیا یې عرض وکړی چي یا رسول ا لله ﷺ! زما نفس وایي چي زه خپله ښځه طلاقه کړم، ويې فرمایل: په یخ زړه سره کارکوه نکاح کول ستلسو د پیغمبر سنّت دی، بیا یې وویل زما زړه غواړي چي د راهبانو په ډول غرونو ته ولاړ سم، ويې فرمایل: داسي هیڅ کله مه کوه چي زما د امّت د پاره حج او جهاد د رهبانیت درجه لري، بیا یې وویل زما نفس غواړي چي غو ښه خوړل ترک کړم، ويې فرمایل: د دې هم امکان نسته ځکه چي زما غو ښه ډېره خو ښه ده او چي کله هم ملاؤ سي خورم يې او چي دخدای څخه یې غواړم نویقیناً یې ما ته را کوي، نو ګویا دا ټولي خبري کومي چي د ده په زړه کي پیدا کېدلې د "حدیثِ نفس" حیثیت لري او قابلِ معافي دی، ځکه چي دا د ده د لرادې څخه وې بلکي دغسي د زړه صلاح او مشوري وې او په دې وجه نبي ﷺ دغه اورېدلې هم او ورسره یې منع کولی هم، لېکن هغه دوه حالتونه کوم چي د بنده په زړه کي پخپل اختیار سره را پیدا کیږي یعني حکم د زړه او میلان د طبع کله چي دا میلان تقاضا وکړي چي دا کارد کولو دي او زړه دا تقاضا قبوله کړي او بیا د دې اراده وتړي نو دا دواړه حالتونه قابلِ مؤاخذه دي که څه هم وروسته د یو بیري یا بلدیز په وجه دغه ارادې ته عملي جامه وانه غوستل سي او ترک رغبت یا ترک اراده د الله ﷻ د پاره نه وي (بلکي د مجبوری څخه وي) نو د بنده مؤاخذه کېدل لازمي دي،او دلته د مأخوذ کېدلو معنی هم ضرور ازده کول پکاري دي د دې څخه دا مراد نه دي چي څوک دي ده ته غصّه سي او دا نتقام په خاطر دي پر ده تشدد وسي چي الله ﷻ د غصې او انتقام څخه ډېر لوړ دی، بلکي مطلب دا دی چي دا سري چي کومه اراده کړې وه نو دهغې په سبب سره د ده په زړه کي یو صفت ظاهر سوی وو کوم چي دی یې د الله ﷻ څخه لیري بېولی وو دغه شئ ته د بنده شقاوت وایي ځکه چي موږ ویلي دي چي د سعادت تقاضا دا وي چي د ځلته څخه او د ټولي دنیا څخه مخ واړوي، صرف د الله ﷻ وطرف ته مشغوله

سي، او ده دوه رُخي او خواهش که دی مجبوره کوي چي د دنیا سره دي تعلق قائم ساتي نو دغه رنګه د دنیا سره ده ده تعلق مضبوطیږي، او کوم شئ چي اصلي مقصود وي، د هغه څخه به روګردانه کیږي (نوبیا چي مأخوذ نه وي نو څه به وي؟) او د دې خبري معنی چي هغه مأخوذ او ملعون سو دا ده چي په دنیا کي زیات ګرفتاره سو او د الله ﷻ څخه دېر لیري سو او دا عمل د دې څخه دی، د ده سره دی، او په ده کي دي، نه د ده عبادت د چا د پاره د خوشحالی سبب دی نه د ده ګناه د چا د غیظ او غضب د تحریک موجب دی چي د ده څخه انتقام واخلي لېکن خلکو دخپل فهم لو عقل پر بنسټ دې ته دامعنی ورکړې ده، بیا هم څوک چي په دې رازونو پوه سو هغه ته د دې مسئلې په پوه کېدلو کي څه پرېشاني نه پیدا کیږي او نه ورته په دې کي د یو شک او ګمان امکان ښکاره کېدلای سي چي بنده مأخوذ د دې حالتونو پر بناء بلندي وي، پر دې دلیلِ قاطع د نبي ﷺ دا حدیث شریف دی چي فرمایي: کله دوه خلک د یو بل د وژلو د پاره توري راوباسي نو قاتل او مقتول به دواړه دوږخ ته ځي، خلکو عرض وکړی چي متقول به څنګه دوږخ ته ځي؟ ویې فرمایل: ځکه چي اراده خو د ده هم د قتل کولو وه، که د هغه زور چلېدلی وای نو هغه به قتل کړی وای (او قاتل به مقتول سوی وای) دویم دلیل دادی چي یو مالدار سړی خپل مال د شریعت مطابق نه استعمالوي او په ناجائزه یې صرف کوي (نو دی خو ګناه ګار دی) لېکن یو بل سړی د کوم سره چي مال نسته مګر په زړه کي وایي چي که مال په لاس راغلی نو زه به یې هم دغه رنګه خرڅ کووم، نو دی هم د هغه سره په (نا کړي) ګناه کي شریک دی، دا ټول څه دي؟ د زړه ارادي دي، مثلاً یو سړی پر خپله بستره یوه ښځه وویني او وګنې چي یو ښځه به وي او د دې سره سره جماع ور سره وکړي او بیا معلومه سي چي دا خو د ده خپله ښځه ده لېکن دی ګناه ګار دی (ځکه چي د ارادي په لحاظ د ده دغه جماع په اصل کي زناوه) دغه ډول که یو سړی په غلطي سره دا وګنې چي دی په اودسه کي دی حال دا دی چي بې اودسه وي او لمونځ وکړي نو دی د ثواب مستحق دی لېکن که په حقیقت کي په اودس کي وو او ګنل یې چي بې اودسه دی او لمونځ یې وکړی نو ګناهګاره دی که څه هم وروسته ده ته یاده سي چي د ده اودس وو، دا ټول حالتونه د زړه دي، او که د ګناه اراده وکړي د الله ﷻ د ویري څخه یې پرېږدي نو نېکي د ده په عملنامه کي لیکل کیږي، لکه چي په حدیث کي دي: د بنده اراده د ده د طبیعت تابع وي، او خلاف طبع یو خواهش پرېښوول مجاهده ده، ځکه چي قصد او اراده څومره زړه تاریک جوړوي مجاهده دا تاریکي هغومره روښانه کوي، نو په لیکلو کي هم دا راز پټ دی او دا مطلب د دې حدیث هم دی، نو یو سړی که د ګناه اراده وکړي او د مجبورۍ یا عدمِ قدرت پر بنیاد ګناه ونه کړای سي دا نه کول د ده د بدي ارادې کفاره کېدلای نه

سي او نه يې دزړه تياره ليري کيداى سي، نو مأخوذ به وي لکه هغه مقتول چي مؤاخذې شخه نسي خونديې کيداى کوم چي د خپل قاتل په قتل کولو کي ناکامه سي.

## هغه عملونه کوم چي دنيت په وجه سره بدل سي

د عملونو دري قسمه دي: طاعت، معاصي، مباح، د نبي ﷺ په دې ارشاد سره چي: انما الاعمال بالنيات بعضي خلک دا تصور کوي چي شايد گناه هم د نيت په وسيله نيکي جوړيږي حال دا چي دا بالکل غلطه ده، د دې ډول نيت به پر گناه څه اثر وي، ليکن دا به ضروري وي چي بدنيتی به دا د خبيث شخه خبيث تر جوړوي دا خو داسي ده لکه يو سړی چي د يو چا د زړه خوشحاله کولو د پاره غيبت کوي، يا په حرام مال سره مسجد، پُل يامدرسه جوړوي او وايي چي وگوره زما نيت څومره نېک دی، او د دې امر شخه بې خبره وي چي په شر سره د خير قصد کول د يو نوي شر بنياد ايښوول دي، او که په دې خبره پوه وي نو فاسق دی او که نه وي پوه او دا گڼي چي دا نېکي ده نو هم فاسق دی، ځکه چي په قول دحضرت سهل تستري رحمه الله د جهالت شخه غټه گناه يوه هم نسي متصورکيدلای او بيا د خپل جهالت شخه نا خبره وسېدل دېر غټ جهالت دی، چي چا ته دا معلومه نه وي چي دی جاهل دی، دی هيڅ کله هم څه نه ازده کوي او د ده دغه جهالت د ده د ټولو شخه غټ حجاب او زبردست بنديز جوړيږي، بلکي يو داسي شاگرد ته تعليم ورکول هم حرام دي د کوم په باره کي چي معلومه سي چي د ده مقصود حصول د تعليم شخه فقط دا دی چي په محکمه او قضا کي يا اوقاف کي يا د يتيمانو په مال کي يا په شاهي خزانه کي په ذريعه د ملازمت يا يو جوړ سره هم رسائي حاصله کړي دنياوي مال او دولت جمع کول وي، چي دفخر او مباهات موقع په لاس ورسي، که معلم دا وايي چي زما نيت د علمِ شريعت تدريس او اشاعت دی نو د دې فرضو په ادا کولو به زه د خپل نيت مطابق اجر حاصلوم زما په دې کي څه قصور دی چي شاگرد داعلم په بده طريقه سره پکار راولي؟ نو ده ته بايد ساتل پکار دي چي د ده دا وينا پرخپل ځاى جهالت او ناداني ده ځکه چي دا خو هغه خبره سوه لکه چي يو سړی ډاکو ته توره ورکړي يا داسي سړي ته انگور ورکړي چي شراب څيښي جوړوي او ورکوونکي دا وايي چي زه خوښي په خيرات کي ورکووم ځکه چي الله سخاوت کوونکي خوښوي، صافه ښکاره ده چي دا خو حماقت دی، بلکي پکار دا ده چي د ډاکو دلاسه توره واخلي، کومه چي ور سره وي نه دا چي بله توره ور ته ورکړي، دې ته ځنګه صحيح ويل کيږي؟ تېرو مشېرانو خو به دمعمولي فاجر شخه هم د الله ﷻ پناه غوښته او که په يو شاگرد کي به يې د گناه يو

شاثبه ولیده نو د خپلي شاګردۍ څخه به یې ایستی، احمد بن حنبل رحمه الله خپل یو قلیمي شاګرد صرف په دې وجه د درس څخه خارج کړی وو چې ده د خپل کور دېوال د بياندي طرف ته لږ اضافه کړی وو، دوی وویل چې تا د مسلمانانو د لارې څخه د نوک غوندي څمکه غصب کړې ده. نو ته د دې قابل نه یې چې په شاګردي کې وساتل سې، نو دا خبره غلطه ده چې ښه نیت ګناهونه هم په ښکیو بدلوي، ځکه چې ښکي خو هغه ده چې حکم یې د الله جل جلاله د طرف څخه سوی وي.

د اعمالو دویم قسم د اطاعت او عبادت سره متعلق دی، او په دې کې نیت په درې قسمه سره اثر کوي یعني: (۱) یو خو دا چې د اصل عمل د صحت دارومدار پر نیت دی او (۲) دویم دا چې نیت څومره زیات وي دومره ثواب هم زیات وي، او کوم سړی چې د نیت علم ازده کوي دغه په یو طاعت کې د لسو نیکیو نیتونه کولای سي، او دغه رنګه په یو طاعت سره دلسو طاعتونو ثواب ورته حاصلیږي، مثلاً یو سړی په مسجد کې د اعتکاف په نیت سره کښېني نو:

(۱) نو اول نیت خو دا وي چې دغه په مسجد کې د الله جل جلاله زیارت ته ځي ځکه چې مسجد د الله جل جلاله کور دی او هلته څوک هم چې ځي د هغه زیارت ته ځي، د نبي صلی الله علیه وسلم ارشاد دی چې: څوک مسجد ته ولاړ سي د الله جل جلاله زیارت ته ولاړی او بنکاره ده چې د چا زیارت ته ځي د ده انتهائي تعظیم او تکریم لازم وي. (۲) دویم نیت دا وي چې د هر لمانځه څخه وروسته د بل لمانځه منتظره وي په حدیث شریف کې دي چې: کوم سړی دلمانځه د پاره په انتظار کې وي دی ګویا په لمانځه کې وي (۳) دریم نیت دا وي چې سترګي، غوږونه، ژبه، لاس او پښې د ناجائزو او بې ځایه حرکتونو څخه ساتي او د اعمل پر خپل ځای یو ډول روژه ده، په حدیث کې دي: زما د امت رهبانیت دا دی چې په مسجد کې ناسته اختیار کړل سي. (۴) څلورم نیت دا وي چې د ټولو دنیوي مشغلو څخه ځان په ډډه کړي چې په بشپړه توګه ځان الله تعالی ته وسپاري، مناجات د مشغلې په توګه خپل کړل سي. (۵) پنځم نیت دا وي چې د خلکو دفتنو او شر څخه ځان وساتي او د دوی سره ګډون نه کوي. (۶) شپږم نیت دا وي چې په مسجد کې که د چا څخه خلاف شریعت خبره ووینې نو منع کوي یې او که څوک پر ښکي کولو ووینې نو زیات تلقین ورته کوي او په لمانځه کې که د چا څخه غلطي کیږي نو پوه کوي یې (۷) اووم نیت دا وي چې که په مسجد کې د صادقو مسلمانانو سره ملاقات وسي نو ورورولي ور سره قائمه کړي ځکه چې آخر مسجد خو د اهلِ دینو آرام ګاه ده. (۸) اتم نیت دا وي چې د الله جل جلاله څخه وشرمیږي چې یو ګناه ځیني په مسجد کې ونسي، لنډه دا چې پر دې باندي قیاس کړه چې بنده په هر هر طاعت کې هر څومره څومره د خیر او د نیکی نیتونه کولای سي چې زیات ثواب حاصل کړي.

داعمالو دریم قسم ته مباحات ویل کیږي، نویو سرې ته هم په مباحاتو کي د شاروپاتو په بول غافله او بې خبره نه دې پاته کېدل پکار. او د نېکی شخه غفلت نه دې کول پکار، ځکه چي دا خبره د غټې خسارې ده. ځکه چي دمباحاتو په باره کي به هم د ټولو حرکاتو او سکناتو پوښتنه به کیږي، او که نیت بد وو نو د عذاب سبب به وي او ثواب به صرف په هغه صورت کي ملاویږي کله چي نیت هم نېه وي، او که نیت هيڅ هم نه وي نودا نور زیات نقصان دی ځکه چي دا خو صرف وخت ضائع کولو والا خبره ده. یعني د نېک نیتی شخه بغیر چي څه کار وسي صرف وخت ضائع کول دي او د دې شخه د حقیقي فائدې اخیستولو ګواکي کوشش ونه کړای سو او دغه بول د دې آیت صریح خلاف ورزي وسوه: ولا تَنْسَ نَصِیْبَکَ مِنَ الدُّنْیَا (او د دنیا شخه خپله دآخرت حصه اخیستل مه هېروه) [القصص] یعني دنیا خو د تېرېدلو یو ځای دي د دې شخه خپله حصه (دآخرت تو ښه) ضرور حاصلول پکار دي.

دنبي ﷺ ارشاد دی: د بنده یو کار هم د پوښتني شخه مستثنی نه دی چي ده وکړل نو جواب به یې ورکوي، تر دې چي که په سترګو یې رانجه لګولي وي یا یوه لوټه یې په لاس کي را پورته کړي وي یا یې د خپل یو ورو په جامولاس وهلی وي (نو پوښتنه به ځیني کوي چي دا کاوورونه دې ولي کول؟) او د مباحاتو د نیت علم هم ډېر اوږدی تفصیل غواړي او لازمه ده چي د دې شخه خبرداری حاصله سي موږ د مثال په توګه وایو چي مثلاً د عطرو استعمال یو مباح کار دی لیکن دا بالکل ممکنه ده چي یو سړی عطر ولګوي د جمعې لمانځه ته ځي نونیت یې فقط دا وي چي پر خلګو د خپلې مالداری رعب واچوي یا فخر پر وکړي چي موږ صفایي خوښوونکي یو. یا د یو ښځې خپل وطرف ته تر یو فاسد خیال لاندې مائله کوي حال دا دی چي دعطرو په استعمال کي نېک نیتونه دا کېدای سي چي: (۱) د خدای د کور تعظیم او تکریم د پاره وي (۲) مقصد مي دا دی چي زما خوا ته ناست خلګ راحت محسوس کړي اوخوند ځیني واخلي (۳) زه غواړم چي زما د بدن شخه بدبوی لیري سي چي خلګ را شخه بده نه کوي او غیبت مي ونه کړي ګناه ګاره نسي (۴) زه غواړم چي دماغ مي په تر او تازه سي ذهن مي صفا سي او ذکر او فکر زیات وکړای سم، او دا نیتونه د هغو خلګو کېداسی په کومو چي د نېکیو ارادې غالبې وي او بدې ارادې یې مغلوبې کړي وي، او په دې کي هر یو نیت د الله ﷻ د نژدېکت موجب دی. او دا هغه کیفیت وو کوم چي د تېرو بزرګانو په کردار کي ښکاره وو تر دې چي د خوراک په وخت کي، د رفع حاجت په وخت کي، د بي بي سره د کوروالی په وخت کي به

هغوی نېک نيت مخ ته درلودی، ځکه چي بنده ته پکار دي چي هر يو کار تر يو خاص نېک نيت لاندي کوي چي د يو کار ثواب ځيني زائله نسي، مثلاً د بي بي سره په کوروالي کي يې هم دانيت وي چي: (۱) په دي سره به د نبي ﷺ امت ډېر سي، (۲) بي بي ته به آرام حاصل سي (۳) موږ دواړه بنځه خاوند به د ګناه څخه محفوظه سو، او دا ډول بايد هر کار تر يو نېک نيت لاندي تر سره سي.

## نيت پخپل اختيار کي نه وي

دا خبره ياده کړه چي ممکنه ده يو روغ او جوړ زړه والا دا واوري چي په هر مباح کار کي نيت ته دخل حاصل دی (او په هر کار کي په ژبه يا زړه سره به د دې اعلان کوي مثلاً) داسي به وايي چي دا نکاح زه دخدای د پاره کوم يا ډوډۍ خوري وايي چي دا ډوډۍ د خدای د پاره خورم په مجلس او درس کي مشغول وي نو وايي ورته چي د خدای د پاره يې کوم، او د ده په ذهن کي دا تصور وي چي په زړه کي يا په ژبه سره چي دا اعلان کووم نو دا زما د نيت ثبوت دی، حال دا دی که په ژبه سره وايي نو صرف زباني دي او که په زړه کي وايي نو صرف حديث نفس دی، ځکه چي نيت نوم د هغه رغبت او کشش (جاذبه) دی کوم چي په زړه کي پيدا کيږي او عمل يې سمدلاسه نتيجه وي، يعني نيت چي کله پيدا سي نو په کار کي يې مشغوله کړي مثلاً نيت که دا آه وفغان (آه او افسوس) وي نو بدن يې د حکم په تعميل کي په آه وفغان سر سي، او دا کيفيت په هغه صورت کي بنکاره کيږي چي غرض پيدا سي او ور سره غلبه هم حاصله کړي او تر څوچي دا تقاضا رابنکاره نه وي تر هغه وخته زباني نيت داسي دي لکه يو سړی چي نس بنه موړ کړي بيا وايي چي ورروه! زما نن نيت په خالي نس د وسپډلو دی، يا لکه چي يو سړی ووايي ما د فلاني سره د دوستی نيت کړی دي حال دا چي د هغه پروا لا هم نه کوي، نو دې ته نيت ويل محال دي، دغه ډول پر يو سړي غلبه خو د شهوت وي او وايي ما خو د اولاد حاصلولو د پاره جماع کړې ده، يا ووايي چي د اولاد پيدا کولو په نيت سره د جماع اراده لرم نو دا خبري به بالکل لغوه وي په دې کي دا بېهوده خبره هم شامله ده چي اصل مقصد شهوت پرستي وي او په ژبه څوک داوايي چي موږ خو د سنتو د ادا کولو په نيت نکاح کړې ده، نو خبره په اول کي دا ده چي د ټولو څخه مخکي خو پر شريعت محکم ايمان پکار دي بيا دا لازمه ده چي د هغو ټولو احاديثو په غور او فکر سره مطالعه وکړي په کومو چي د نکاح او اولاد په باره کي احکام مذکوره دي نو د بنده په زړه کي به د دې د ثواب يو لالچ (حرص) پيدا سي کوم چي په نکاح سره حاصليږي بيا به د زباني ونډوړې څرګولو ضرورت نه وي بلکي بالکل د خاموشۍ سره سره به د ده نکاح کول پخپله د سنتو ادا

کول مقرر سي او په نیت کي به يې یو شک او شبه نه وي، دغه ډول څوک چې د طاعت الهي تقاضا د ځانه لمانځه ادا کولو ته تیار کړی وي، ده ته به په ژبه د ویلو ضرورت نه سته چې زه د خدای حکم پر ځای کوم چې دا خبره بې سوده او فضوله ده. او داسې ده لکه چې یو وږی سړی دا ووایي چې ما خو د وږي خوړولو نیت څکه کړی دی چې زه وږی یم، د ده داوینا څکه بېکاره او بې فائدې ده چې وږی د وږي د خوړلو اراده نه کوي نو څه به کوي؟ او کوم ځای چې د نفس خواهشاتو کور جوړ کړی وي هلته د آخرت نیت کول مشکله وي، چې د دې امکان خو هلته وي چې د آخرت کار غلبه حاصله کړې وي، نو زموږ مقصود تا ته دا ښوول دي چې نیت هغه شئ دی کوم چې ستا په اختیار کي نه دی، ځکه نیت هغه خواهش ته وايي کوم چې تا په یو کار کي ولګوي، او کار هغه شئ دي د کوم پر کولو چې ته قادره یې، یعني که غواړې نو کوي يې او که نه غواړې نو نه يې کوې، لېکن خواهش ستا په اختیارکي نه دی چې که ته غواړې نوخواهش پیدا سي او که نه غواړي نه پیدا کیږي، ځکه چې خواهش کله وي او کله نه وي هم، لوس تر کومه پوري چې د خواهش په وجود کي د راتلو تعلق دی نو د دې د پاره ضروري ده چې په تا کي دا عقیده پخه قائمه سي چې ستا غرض د دې دنیا د پاره یا د هغه بل جهان د پاره د یو کار سره تړلی دي؟ او بیا د دغه تلاش کوونکي سې نو کوم سړی چې د دې نکتې او رمز څخه ځان خبروي هغه یو څو عبادتونه هم په وقتي توګه سره ترک کوي څکه چې د ده نیت حاضر سوی نه وي.

**مثالونه:** ابن سیرین رحمه الله د حسن بصري رحمه الله د جنازې لمونځ ونه کړی او صاف يې وویل چې زه د دې نیت په زړه کي حاضر نه وینم. د سفیان ثوري رحمه الله څخه خلکو پوښته وکړه چې تا د کوفې د مشهور عالِم دین حماد بن ابی سلیمان په جنازه کي شرکت ولي نه وفرمایلی؟ دوی جواب ورکړی چې که نیت مي حاضر وای نو شرکت به مي ضرور کړی وای.

طاؤس رحمه الله ته یو چا د دعاء درخواست وکړی، ویې فرمایل: ته به زما دنیت ترحاضریدلو پوري انتظار کوې، همدا حالت د دوی د احادیثو د روایت په باره کي وو چې کله به د دوی څخه د حدیث د روایت کولو خواست وسو نو کله به يې روایت کولو او کله به خاموشه وو او ویل به يې چې زه د نیت په انتظار کي یم. یو بزرګ وویل چې: روزانه د فلانی مریض د عیادت د پاره د تللو سوچ کوم یوه میاشت وسوه لېکن تر اوسه مي نیت صحیح نه سو.

لنډه دا چې د دنیاوي حرص د غلبې په موجود والي کي نیت د سره صحیح کېدای نسي، بلکې د فرضو په ادا کولو کي هم په مشکله سره صحیح کېدای سي، او بعضې وختونو کي خو داسې هم

کیږي چي تر څو پوري بنده پخپل ځان کي د دوږخ د عذاب څخه ېره پیدا نه کړي تر هغه پوري د (لمونځ، روژې، فرائضو) عباداتو د پاره هم نیت صحیح کېدای نه سي، داوجه ده چي کوم سړی د دې حقیقتو څخه خبر سي هغه بعضي وخت فضائل خو پرېږده صرف په مباحاتو اکتفا کول زیات مناسب ګڼي، ځکه چي بعضي وخت د نیت صحیح والی صرف دمباحاتو پوري محدوده پاته سي مثلاً که یو سړی د قصاص نیت حاضر ویني او د عفوې ده حاضر نه ویني نو ده ته قصاص اخیستل پکار دي په دې صورت کي غوره دا ده. دغه ډول دا هم کېدای سي چي د تهجد د لمانځه نیت یې نه وي او دا نیت یې موجود وي چي خوب پوره کړم د سهار د لمانځه د پاره وختي را پورته سم نو په دې صورت کي بیده کېدل افضله دي، بلکي که د عبادت سره یې زړه نه لګي او محسوس کوي چي دلږ وخت د پاره د خپلي بي بي سره خندا مذاق کول او زړه خوشحاله کول یې زړه غواړي چي طبیعت یې بنه سي او په دې سره یې بیا عبادت ته نیت حاضره سي زړه یې په عبادت کي ولګیږي نو په دې نیت سره دا خوش طبعي د هغه د بې زړه عبادت څخه غوره او افضله ده. د ابو الدرداء ﷺ قول دی چي: زه کله کله خپل ځان د دې د پاره په لهو او لعب (مذاق او بازۍ) سره تازه دم کړم چي د راحت او خوشحالی دا کیفیت دالله ﷻ په عبادت کي هم دمزې او خوشحالی سبب جوړ سي.

## دویم باب: د مُخلص نیت د فضیلت او حقیقت درجې

**فضیلت مدارج:** دالله ﷻ ارشاد دی: وَمَآ أُمِرُوٓا إِلَّا لِيَعۡبُدُوا ٱللَّهَ مُخۡلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ [البینة:۵] او دوی ته دا حکم سوی وو چي دالله ﷻ داسي عبادت کوي چي عبادت هغه ته خاص کړی ) دارنګه ارشاد دی: أَلَا لِلَّهِ ٱلدِّينُ ٱلۡخَالِصُ [الزمر] (خبردار! عبادت کوم چي خالص وي دالله ﷻ لائق دی) او نبي ﷺ فرمایلي دي: چي اخلاص دالله ﷻ د رازونو څخه یو راز دی، او دالله ﷻ ارشاد دی چي دا زهد د هغه چا په زړه کي ایږدم کوم چي زه دوست لرم، نبي ﷺ فرمایلي دي: اې معاذ ﷺ! عمل په اخلاص سره کوه که لږ هم وي نو کافي دی، او هر هغه شئ چي ذکر یې موږ د ریاء د مذمت په باب کي کړی دي، دغه د اخلاص په تعریف کي دی، چي د خلکو نظر هم په دې اسبابو کي شامل دی کوم چي د اخلاص صفایي کوي، او د دې څخه ملسو هم ډېر اسباب دي، معروف کرخي رحمه الله چي به خپل آس په چلاخه وهلو نو فرمایل به یې: چي که د چلاخي څخه خلاصي غواړې نو اخلاص پیدا کړه. ابو سلیمان رحمه الله وایي: چي خدای دي یخ (تر او تازه) ساتي هغه خوش بخته کوم چي پخپل

عمر کي یو قدم په اخلاص سره پورته کړي یعني په دغه کي یې ماسوا د الله ﷻ څخه بل یو شئ نه وي غوښتلی.

دابو ایوب سجستاني رحمه الله قول دی: چي د اخلاص نیت د اصل نیت څخه هم سخت ګران دی، یو بزرګ یو چا په خوب کي ولیدی او پوښتنه یې ځیني وکړه چي: الله ﷻ ستا سره کوم سلوک (چلند) وکړی؟ بزرګ جواب ورکړی چي: کوم څه چي ما خالص د خدای په لاره کي کړی وو، هغه مي د نېکیو په تول کي ولیدل (او د اخلاص څخه چي کوم خالي وو هغه مي ونه لیدل) نو د انار یوه دانه کومه چي ما په لاره کي لیدلې وه او پورته کړې مي وه د نېکیو په تول کي مي ولیدله او یوه پیشي چي زما په کور کي مړه وه هغه هم په دې تول کي وه، او یوه وریښمي ټکره چي ما پخپله خولی (ټوپی) کي ایښېوله د ګناهونو په تول کي مي ولیدله. لېکن زه حیران په دې سوم چي زما ساتلی خر چي قیمت یې سل دیناره وو او هغه هم زما په کور کي مړ وو، ما د نېکیو په تله کي ونه لیدی، آخر ما خدای تعالی څخه پوښتنه وکړه چي اې سبحان الله! پیشي خو د نېکیو په تله کي وه او خر یو ځای هم نه وو؟ ارشاد وسو چي کوم ځای تا خرڅ کړي وو، هلته ولاړې، او ستا په یاد دي چي د هغه پر مرګ تاویلي وو " الی لعنةِ الله" که تا دي پر ځای" في سبیل الله" ویلي وای نو نن به دی هم د نېکیانو په تول کي تا لیدلی وای. دغه بول یو وار ما د خدای په لار ه کي صدقه ورکړې وه لېکن معلومه سوه چي هغه ضائع سوه، (د نېکیو په تول کي نه وه) نو ما ته رایاده سوه چي صحیح ده ځکه چي کله ما صدقه ورکوله نو خلکو لیدلې وه او د هغوی د لیدل زما خوښ سوي وو. دا خبري چي کله سفیان ثوري رحمه الله واورېدې نو ویې فرمایل چي: دا خو ګران قیمته دولت دی چي ده ته په لاس راغلی، یعني ده ته نقصان زیات ونه رسېدی.

**قصه**: د یو سړي بیان دی چي زه جهاد ته تلم په لاره کي یو ملګري چي زما سره په کښتۍ کي سپور وو ویې ویل چي: دا توبره زه خرڅوم که څوک یې اخلي؟ ما وویل راوړه زه یې اخلم په فلاني ښار کي به یې خرڅه کړم او نفع به حاصله کړم په دغه شپه ما په خوب کي ولیدل چي د اسمان څخه دوه خلک را ښکته سوه یو بل ته یې وویل چي د دوی څخه د ټولو نومونه ولیکه چي کوم کوم د کوم کار د پاره راغلي دي، د فلاني په باره کي ولیکه چي غازي دی فلانی صرف تماشه کوونکي دی، فلانی د تجارت د پاره راغلی دي فلانی د ریا کاري د پاره راغلی دی چي زه یې ولیدم نو ویې ویل چي دی هم ولیکه چي د تجارت د پاره راغلی دي، ما وویل د الله د پاره یې کړی زما کار وګورئ او بیا دا هم

وګورئ چي زما سره د تجارت مال کوم دی؟ زه آخر دکوم تجارت د پاره راغلی یم؟ وبې ویل اې شیخ! کومه توبره چي تا اخیستې وه نو د نفع د پاره دي نه و اخیستې؟ چي دامي واورېدل نو په ژړا سوم او مي ویل چي په خدای دي زه سودا ګر نه یم نو هغه یو بل ته وویل چي زه داسي ولیکه چي دی د جهاد د پاره راغلی دي او په لاره کي یې یوه توبره د نفع د پاره اخیستې ده. بیا چي څه حکم الله ﷻ فرمایي وبه یې فرمایي: په دې وجه ویل سوي دي چي د یو ساعت اخلاص هم د نجات د پاره کافي کېدای سي لیکن اخلاص ډیر نادر او کمیاب جنس دی، او د یو بزرګ قول دی چي علم تخم دی عمل فصل دی او اخلاص یې اوبه دي.

## د اخلاص حقیقت او پېژندنه

دا خبره خو ستا په فکر کي راغله چي نیت باعث د عمل وي او دا دنیت تقاضا او غوښتنه وي کومه چي د عمل په صورت کي پوره سي، او دا تقاضا که صرف یوه او یوه وي نو خالص به ورته وایي، اوس د ناخالص صورت څو مثالونه موږ وړاندي کوو او وضاحت یې کوو، مثلاً:

روژه نیسي نو وایي چي د خدای په نوم یې نیسم لیکن (۱) دا مقصد یې هم وي چي د خوراک څخه پرېز وکړم صحت به مي ښه سي، یا (۲) د کور خرڅ به کم سي، یا(۳) د خوراک پخولو د زحمت څخه به خلاص سم، یا (۴) په فلاني کار کي د مشغولیت د پاره به فارغ سم، یا (۵) ویښ به یم نو یو بل کار به هم وکړم. او غلام آزاد کړي (په ظاهره د خدای د پاره ) او مقصد یې دا وي چي د ده د بدخویي او د خرڅ څخه به خلاص سم، حج ته ځي او مقصد یې داوي چي (۱) هوا به بدله سي په صحت به مي ښه اثر واچوي، یا (۲) نوي نوي ښارونه به ووینم د سېل او تفریح موقع به په لاس راسي، یا (۳) د اهل او عیال د جنجال څخه به څو ورځي سکون حاصل کړم، یا (۴) د دښمن څخه د خوندي کېدلو بهانه به په لاس راسي.

د شپې تهجّد کوي او وجه دا وي چي: (۱) خوب نه راځي، یا (۲) د مال او اسبابو حفاظت کوي، علم حاصلوي، او مطلب یې دا وي چي: (۱) روزګار به ملاؤ سي، یا (۲) په خلکو کي به مي قدر او مرتبه وي، د درس او تدریس اهتمام کوي او غواړي چي: (۱) د خاموشۍ د رنج څخه خلاص سم، د قرآن کتابت کوي او مطلب یې دا وي چي خط مي پوخ سي او صاف سي، په پښو حج ته ځي او مقصد یې دا وي چي کرایه بچت کوي، اودس کوي او مقصد یې کښې دا شامل وي چي یخ به سم او پاک صاف به سم، غسل کوي او مقصد یې دا وي چي بدبویي او نور لیري سي، په مسجد کي

اعتکاف د پاره کښېني او په زړه کي دا خیال هم وي چي د دومره ورځو کرایه به راته بچت سي، سائل ته خیرات ور کوي خو ځکه چي: (۱)هغه شور او فریاد نه کوي او (۲) په خلګو کي په نه ور کولو شرمنده نه سم، د ناروغه پوښتني ته ځي لېکن ځکه چي: (۱) که دی مریض سي نو خلګ به د ده پوښتني ته هم راځي یا ځکه چي که نه ځم نو (۲) خلګ به مي ملامتوي، بنه او نېک کار کوي چي خلګ یې نېک او صالح وګڼي او په دي صفتونو سره دی مشهوره سي.

نو دا ټول کارونه په ریاکاري کي شامل دي، او دریا په باره کي موږ د دې څخه مخکي په تفصیل سره بیان کړي دي چي داسي خیالات کم وي او که زیات اخلاص باطلوي، ځکه چي عمل خالص هغه دی په کوم کي چي د نفس هیڅ حصه نه وي او هغه صرف او صرف د الله ﷻ د پاره وي، نو د نبي ﷺ څخه خلګو د اخلاص د تعریف پوښتنه وکړه نو ویې فرمایل: اخلاص دا دی چي ته ووایې چي څه دي زما د پروردګار دي او بس، او بیا پر سیده لاره روان سې لکه چي تا ته حکم سوی دي،او دا شئ د بنده د پاره تر هغه وخته پوري بې اندازې ګران دی تر څو چي دی د بشري صفتونو څخه خلاصون و نه مومي، او په دې وجه ویل سوي دي چي د اخلاص څخه سخت او ستونزمن بل یو شئ نسته، او که په ټول عمر کي که یو واړ هم صحیح اخلاص نصیب سي نو د خلاصون (نجات) اُمید کېدای سي او وښیتا خو دا ده چي د غرضونو او بشري صفتونو د مینځ څخه یو خالص او مُصفا کار را ایستل داسي دي لکه دغوښو او وینو د مینځ څخه شیدې را ایستل، د الله ﷻ ارشاد دی: وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً نُسْقِيكُمْ مِمَّا فِي بُطُونِهِ مِنْ بَيْنِ فَرْثٍ وَدَمٍ لَبَنًا خَالِصًا سَائِغًا لِلشَّارِبِينَ (النحل:۶۶) (ستاسو د پاره په څارویانو کي غور پکار دي د دوی په نس کي د غوښو او وینو د مینځ څخه صافي او ترمري په آسانۍ کښته تلونکي شیدې موږ د څښلو د پاره تاسو ته درکوو)نو خودي د دې علاج که څه هم فقط دا دی: چي زړه د دنیا څه پر یکړل سي چي صرف د الله ﷻ محبت غلبه پر ومومي، او د ده حالت د هغه عاشق په ډول سي چي د ده هر څه د معشوق دپاره وي او دی که څه خواړې هم نو صرف دمشوق په خاطر، داسي سړی که څه هم خوراک خوري بلکي تر دې ویل کیږي چي که رفع حاجت ته هم ځي نو څه تعجب نه دي چي د اخلاص نیت په ده کي ظاهر وي لېکن کوم سړی چي د دنیا محبت پر غلبه وي، دی که په لکونو لمونځونه هم کوي او روژې هم نیسي اخلاص د ده پر خوا هم نه راځي، ځکه چي د بنده عملونه د ده د زړه پر صفت بلندي وي او میلان یې د هغه طرف ته وي کوم ته چي د زړه میلان وي، نو پر چا چي د دنیا د جاه (عزت او منصب) خیال سپور وي د هغه ټول کارونه خلګو

ته د ځان ښوولو د پاره وي تر دې چې دی سهار را پورته کیږي او کوم مخ او لاس چې مینځي، جامې بدلوي نو هم صرف خلکو ته د ښوولو د پاره وي، او په بل یو کار کي هم داخلاص لمنه نیول دومره گرانه نه وي څومره چې په مجلس کي یا د درس او تدریس په محفل کي یا د روایتِ حدیث په مجمع کي یا په داسې یو کار کي وي چې تعلق یې د خلکو سره وي، ځکه چې په داسې کارونو کي د شوق اخیستولو سبب دا وي چې په خلکو کي د مقبول کېدلو خیال یې پر سر سپور وي او په دومره شدّت سره چې د الله تعالی دقربت خواهش او د قبول عام خواهش زیات او کم سره برابر وي، او که برابر نه وي هم نو د گډون (امیزش) څخه خو په هر حالَ خالي نه وي، او د مقبولِ عام کیدلو د نیت څخه پاک پاته کېدل خو د لویو عالمانو د پاره هم محاله وي، ماسوا د هغو احمقانو څخه کوم چې صرف دحماقت پر بنیاد په دې زعم کي گرفتاره وي چې دوی د اخلاص خاوندان دي، او بیا پخپله پر دې مین وي او خپل عیبونه دوی ته ښه صفت معلومیږي بلکي خاص هوښیاران هم په دې سلسله کي معذوره اوعاجزه وي، د یوبزرگ وینا ده، ماته خو داسې معلومیږي چې د دېرشو کالو څخه چې کوم لمونځونه په جماعت ما اداء کړي دي هغه ټول قضا سوي دي، ځکه چې زما عادت وو چې همیشه به په اول صف کي دریدیم نن مي لږ ناوخته کړی نو په آخري صف کي را ته ځای ملاو سو او په زړه کي یو شرمندگي او پښېماني را ته محسوسه سوه چې خلک به څه وایي چې نن یې ناوخته کړی دی، اوس زه پوه سوم چې تر نن زه ځکه خوشحالیدم چې خلک ما په اول صف کيویني، نو اخلاص هغه صفت دی چې پېژندل یې ډېر گران وي او عمل په کول ډېر سخت دي، او په کوم عمل کي چې شرک یا یو ډول خلط (گډون) وي او د اخلاص څخه عاري وي دغه نسې قبلېدلای.

## دریم باب: د صدق (رښتیا) په باره کي (او صدّیق چا ته ویل کیږي)

په دې پوهېدل ضروري دي چې صدق او اخلاص یو بل ته ډېر نژدې دي، او د صدق درجه هم ډېره لوړه ده چې دا هغه درجه ده چې پر دې فائز سوي سړي ته "صدّیق" وایي، د دوی تعریف په قرآن کریم کي داسې سوی دی: رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللهَ عَلَيْه (په دې مؤمنانو کي ځیني داسې دي چې دوی کوم عهد د الله ﷻ سره کړی په هغه کي رښتوني سول)[الاحزاب]، دارنگه فرمایي: لِيَسْأَلَ الصَّادِقِينَ عَنْ صِدْقِهِمْ[الاحزاب:۸] (چې د دې رښتونو څخه د دوی د رښتیا تحقیق وسي) او د نبي ﷺ څخه خلکو پوښتنه وکړه چې کمال په کوم شيء کي دی؟ نو ویې فرمایل: په گفتار کي حق

ګویي او په کردار کي صدق، نو د صدّیق معنی پېژندل لوی اهمیت لري، د صدق معنی رښتیا یا راستي ده، دا راستي یا صدق په شپږو کارونو کي دی،او چا ته چي په دې شپږو خبرو کي کمال حاصل سو هغه صدّیق دی.

**اول صدق:** په ژبه کي دی او د دې څخه دا مراد دی چي درواغ هیڅکله پر ژبه رانه وړي هغه که د (۱) ماضي (تېر وخت) څه خبره وي، یا (۴) د حال څه خبره وي، یا (۳) دآئنده په باره کي یو وعده وي، ځکه چي دا خو موږ مخکي ښوولې ده چي زړه د ژبې څخه صفت اخلي، خبره که کږه وي نو په زړه کي هم کوږوالی پیدا کیږي او خبره که رښتوني وي نو زړه هم سیده وي، او د ژبې د دې صدق کمال په دوو شیانو سره حاصلیږي اول خو دا چي په خبره کي کنایه هم استعمال نه کړي هسي نه چي د ده د رښتوني خبري څخه غلطه معنی واخیستل سي، بلکي کوشش دي دا کوي چي کوم ځای مصلحتًا هم د درواغو اجازت وي (لکه مثلاً په جنګ اونورو کي) هلته هم درواغ ونه وایي، مثلاً د ښځي او خاوند په مینځ کي د صلح راوستولو، یا دوو تنو مسلمانانو د صلح کولو په وخت، کمال صدق دا دی چي په داسي موقع کي هم د درواغو څخه ځومره چي کېدای سي ډډه وکړي، لږ تر لږه صریح درواغ خو دي بالکل نه وایي، او نه دي داسي خبره کوي چي غلط مطلب ځیني اخیستل کیږي، حال دا چي دغه خبره په اصل کي رښتوني وي، په هر حال که په زړه کي رښتوني وي او دخدای د پاره د خلګو مصلحت ته په کتني سره په درواغو ویولو باندي مجبوره سي نو دغه خبره به دی د درجې د صدّیق څخه نه غورځوي، دویم کمال دا دی چي دالله ﷻ په مناجات کولو کي پخپل ذات سره د صدق طلب وي، مثلاً پر ژبه یې ورد وي د: وَجَّهْتُ وَجْهِي" او د زړه توجه یې وي د دنیا وطرف ته نو دا دژبې صدق خو نه سو، بلکي دا خو صفا درواغ خبره سوه، ځکه چي دی خو الله طرف ته متوجه دی نه، او صرف په ژبه وایي چي متوجّه یم، دغه ډول کله چي اِیَّاکَ نَعْبُدُ وایي نو په ژبه سره دا اعلان کوي چي زه ستا بنده یم او ستا عبادت کووم، لیکن زړه یې مبتنی دی په دنیاوي خواهشاتو او شهواتو کي، نو دی تابع د خواهشاتو دی نه چي د خدای، او ده داوینا صفا درواغ ده چي: زه ستا بنده یم، ځکه چي بنده خو به دی د هغه وي د چا په قید کي چي ګرفتاره وي په دې وجه نبي ﷺ فرمایلي دي چي: که ته د خدای بنده یې نو د درهم او دینار د بندګي څخه ځان وباسه، بلکي درهم او دینار خو څه کوې بنده چي تر څو د ټولي دنیا څخه آزاده او فارغه نه وي تر هغه وخته د الله ﷻ د بندګي دعویٰ نسي کولای،او د دنیا څخه د آزادېدلو کمال دا دی چي څنګه د نور مخلوق څخه آزاد سوی دي هلته د خپل ځان څخه

هم آزاد سي، يعني د ده خودي (خپلولي) بالکل ختمه سي، تر دې چې د ده خپله هيڅ يو اراده پاتې نسي او څه چې وي د الله ﷻ ذات وي، نو هغه غواړي او د هغه په کړو راضي وي چې په بندګي کې کمال صدق د دې نوم دي او څوک چې د دې څخه محرومه وي صدّيق څه چې هغه ته صادق هم نه ويل کېږي.

**دويم صدق** په نيت کي وي يعني د کوم کار په وجه سره چې بنده د الله ﷻ تقرب حاصلوي په دې کې ماسواد ذات د باري تعالی څخه بل يو مقصود نه وي د ده سره څوک شريک نه کړي، دا هغه شئ دي کوم ته چې اخلاص ويل کيږي او دې ته صدق هم وايي، په دې وجه چې که د تقرّب الهي څخه ماسوا دبل يو شئ تصوّر په زړه کي باقي وي نو دغه چې کوم عبادت هم کوي خو دروغ دي (او دی پخپله درواغجن دی).

**دريم صدق** په عزم او اراده کي وي مثلاً يو سړی داعزم وکړي چې که ما ته باچاهي ملاؤ سي نو د عدل او انصاف حق به اداء کړم، ياکه ما ته مال ملاؤ سي نو زه به ټول خيرت کړم يا دا چي که په مجلس او درس او سلطنت په صورت کي که ما ته د ځان څخه غوره يو سړی په نظر راسي نو دا ځهلې به فوراً هغه ته حواله کړم او نور......، نو دا ټول عزم کله مضبوط او قوي وي او کله په دې کي کمزوري هم واقع کيږي، او صدق د عزم دا دی چې قوي وي او د ترددیا تذبذب نوم پکښي هم نه وي، مثلاً کله چې موږ وايو چي دا خواهش صادق دی نو مراد دا وي چې قوي او مضبوط دی، او صدّيق هغه دی د کوم په زړه کي چې دخير او نېکی عزم رښتونی مضبوط او آتل وي، څنګه چې حضرت عمر ﷺ فرمايلي وو: که خلک ماونيسي او زما غاړه پرېکړي نو ما ته به دا خبره د دې څخه ډيره زياته محبوبه وي چې ما د هغه قوم امير جوړ کړي په کوم کي چې د حضرت ابو بکر ﷺ هستي موجوده وي، د فاروق اعظم ﷺ د دې قول بنياد پر دې عزم باندې مضبوط وو، کوم چې پر خپل قتل د صبر د پاره د دوی په زړه کي واقعي موجود وو د دې څخه د دې فرق اندازه پخپله وکړئ کوم چي د ځان په مقابله کي د صدّيقانو د قتل د اختيار په ورکولو باندې په خلګو کي ليدل کېدی، چي د دوی څخه څه خو هغه دي چي خپل ژوند عزيز او مقدم ساتي او څوک داسي د خدای بنده به هم وي کوم چي د فاروق ﷺ په ډول خپل قتل ته پر خپل ژوند ترجيح ورکولو ته په زړه سره تيار وي.

**څلورم صدق** د عزم او ارادې په پوره بنولو کي دی، څکه چې کيدلای سي عزم قوي وي چي په جهاد کي به ځان قربانووم يا دا چي که بهتر پيشوا (لاربنوونکي) پيدا سو نو حکومت به ورته سپارم

لېکن کله چې واقعي د دې صورتِ حال سره مخامخ سي نو نفس په دې اراده پوره کولو کې بندېز جوړ سي، په دې وجه الله ﷻ فرمايلي دي: رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ يعني دغو خلکو خپل عزم پوره کړی او خپل ځانونه يې قربان کړل، او کومو خلکو چې د مال خرڅ کولو عزم کړی وو او پوره يې نه کړی د دوی په باره کې فرمايي: وَمِنْهُمْ مَنْ عَاهَدَ اللَّهَ لَئِنْ آتَانَا مِنْ فَضْلِهِ لَنَصَّدَّقَنَّ وَلَنَكُونَنَّ مِنَ الصَّالِحِينَ (التوبة: ۷۵) (په دوی کې ځيني خلک داسې دي چې د خدای سره عهد کوي چې که الله ﷻ موږ ته د خپل فضل (مال) څخه را کړي نو موږ به ښه خيرات وکړو او نېک کار کوونکي به سو، نو کله چې ور ته الله ﷻ د خپل فضل څخه ورکړل نو بخل يې پکښې وکړی او مخ يې واړولو) او آخر په دې آيت کې فرمايي: چې په دې وعده کې دوی د شروع څخه درواغ ويل.

**پنځم صدق** دا دی چې باطن يې دکومو صفتونو حامل وي د هغه اظهار د ده د ظاهري عمل څخه وي، مثلاً په ظاهره داسې نه وي چې نرم وي او په باطن کې يې دغه وقار موجود نه وي، داسې سړي ته صادق نه ويل کيږي او دا صدق په دې صورت کې حاصلېدای سي چې ظاهر او باطن صحيح ساتي، او دا سعادت هغه ته نصيب کيږي چې باطن يې دظاهر څخه شريف تر او پاک تر وي يا لږ تر لږه برابر وي.

**شپږم صدق** دا دی چې بنده د مقاماتو د دين حقيقتونه د خپل زړه څخه طلب کړي دا چې بس ابتدائي سرسري واقفيت صرف په ظاهري توګه حاصل کړي او پر دې قانع سي مثلاً: زهد، توکّل، خوف، رجا، او شوق او نور هغه احوال دي چې د دې څخه لږ لږ واقفيت خو هر مسلمان ته وي لېکن حيثيت يې ډېر کمزوری وي، حال دا دی چې صادق هغه دی پر کوم چې دا حالات په ډېره مضبوطي سره غالبه او مسلطه وي، لکه چې ارشاد دی: إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أُولَئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ (الحجرات: ۱۵) (کامل مؤمنان هغه دي کوم چې په الله ﷻ او د هغه پر رسول ايمان راوړي او بيا شک نه کوي او په خپل مال او ځان سره د خدای په لاره کې جهاد وکړي دغه خلک رښتوني دي) نو دکوم ايمان چې کامل وي دغه ته الله ﷻ صادق ويلي دي.

## شپږم اصل: د محاسبې او مراقبې په باره کې

پوه سه! چې الله ﷻ په واضحو الفاظو کې فرمايلي دي: وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ فَلَا

تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا [الانبياء: ۴۷] (او موږ به د قیامت په ورځ د انصاف تله ودروو، بیا به پر چا باندي یوه ذرّه قدر ظلم هم نه وي او د چا چي دیوې ذرّې برابر عمل دی هغه به موجود کړو او موږ پوره حساب اخیستونکی یو) د دې وعدې سره یې خلکو ته دا حکم ور کړو چي: وَلْتَنظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ [الحشر] (هر سړی دې وګوري چي د سباد پاره ده څه ذخیره لېږلې ده) او په حدیث شریف کي دي چي عاقل هغه دی د کوم چي څلور ساعتونه وي: (۱) په یو ساعت کي خپله محاسبه کوي (۲) په بل کي د الله ﷻ مناجات کوي (۳) په دریم کي د رزق ګټلو تدبیر کوي (۴) په څلورم ساعت کي دی د هغو شیانو څخه آرام او آسودګي حاصله کړي کوم چي په دنیا کي پر ده حلال کړل سوي دي، د حضرت عمر ﷺ قول دی چي: مخکي د دې څخه چي ستا سره حساب وکړل سي ته د خپل ځان سره حساب وکړه، د الله ﷻ ارشاد دی: يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ٱصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا [آل عمران: ۲۰۰] (اې ایمانداراو ښه صبر کوئ او ښه صبر کوئ په مقابله کي او د مقابلې د پاره تیار وسئ) یعني تاسو په صبر سره د خپلو خواهشاتو او نفساني شهواتو سره ښه جهاد کوئ چي تاسو غوره سئ، او د رابطوا څخه مراد دا دی چي په دې جهاد کي د مستقل مزاجي او ثابت قدمي مظاهره کوئ، نو اهلِ نظر او بزرګانو د دین د دې داسي مثال ور کړی دی: چي زموږ د دې جهان ته راتلل ګویا یو ډول د سوداګري په غرض سره دي، چي معامله پکښي د نفس سره ده او نفع به یې د جنت په صورت کي او نقصان به یې د دوږخ په صورت کي ملاوېږي، نو دې بزرګانو نفس ته په دې تجارت کي د شریک درجه ور کړه او لکه څنګه چي د شریک سره تول شرطونه د کاروبار د مخکي څخه مقرر کیږي او بیا پر هغو باندي نظر ساتل کیږي، بیا حساب کتاب کول کیږي که معلومه سي چي شریک یو ډول دوکه یا خیانت کړی وي نو سزا او عذاب ور کول کیږي دغه ډول بزرګانو د دین هم د نفس سره شپږ شرطونه لازم مقرر کړي دي: (۱) مشارطه (۲) مراقبه (۳) محاسبه (۴) معاقبه (۵) مجاهده (۶) معاتبه.

## مشارطه

اوس په دوی کي اولنی اقدام مشارطه ده، نو پوه سه! چي کوم شریک ته مال ور کول کیږي هغه د منافعو په حصول کي مدد ګاره وي، لیکن د دې خبري هم بالکل امکان وي چي هغه خیانت او بې ایماني طرف ته راغبه سي او بیا چپه دښمني ته جوړ سي، او لکه څنګه چي د شریک سره اول شرطونه

تاکل لازم وي او بیا همیشه هغه ته چوکس (په خیر) وسپلل ضروري وي، او چي کله د حساب او کتاب وخت راسي نو پوره سختي کول پکي واجب وي دغه پول د منافعو په باره کي هم پوره پوره معامله طی کول بې حده اهم دي، ځکه چي دا هغه معامله ده چي د دې منافع به تر ابده پوري باقي وي حال دا دی چي د دنیاوي معاملاتو نفع خو صرف د یو څو ورځو خبره ده او د عاقلانو په نزد هغه شئ قطعي بې حقیقته او بې بنیاده دی چي بقاء ور ته حاصله نه وي، بلکي د دې څخه دامقوله دوی وضع کړې ده چي: د هغه خیر څخه کوم ته چي بقاء نه وي هغه شر بهتره دی کوم چي همیشه باقي وي، د عمر عزیز یو یو نفس یوه یوه ساه یو ګران قیمته ګوهر دی او د دې جواهراتو په قدر او عزت کولو سره یوه خزانه جمع کیږي په دې شرط چي په دې کي د هري ملغلري د پلره پوره پوره ساتنه او پوره پوره حساب مقدّم وساتل سي، نو عاقل هغه دی چي هره ورځ د سهار د لمانځه څخه وروسته د یو ساعت د پاره زړه په دې کاري کي مشغوله کړي او د خپل نفس سره داسي مخاطب سي:

د عمر څخه ماسوا ستا سره بله کومه سرمایه ده؟ اوس په دي کي چي کومه ساه تیرېږي او کوم وخت تیرېږي د هغه یو څه بدل خو په لاس راته اغلی، او بیا د دې سلملتو شمار هم څه دومره زیات نه دی او څومره چي دی د هغه علم هم مونږ ته نسته. او عمر که ختم سي نو خو د تجارت سوال نه پیدا کیږي، نو څه چي د کولو لائق وي هغه د اوس څخه کول پکار دي، د ژوند میدان تنګ او د آخرت د میدان پلنوالی او غتوالی لامحدوده او بې اندازې دی او هلته بیا کار نسته. نو بیا اې نفسه الله ﷻ چي نن ورځ کومه تا ته در کړې ده نو ګویا دا یې یو نوی ژوند در کړی چي د شپې که په خوب کي مړ وای نو دا حسرت او غم به وای چي اې کاش! چي دیوې ورځي مهلت وای، نو دیو کار موقع خو به ملاو سوې وای، او اوس چي الله ﷻ د کوم مهلت نعمت تا ته درکړی نو اې نفسه! اوس زما خبره ومنه او د ژوند دا سرمایه غنیمت وګنه هسي نه چي دا در څخه ضائع سي، هسي نه چي د صبا مهلت در ته ملاؤ نسي او بیا د افسوس څخه ما سوا په لمن کي هیڅ موجوده نه وي نو دا تصوّر ولي نه کوې چي دا یوه ورځ مهلت تا ته د مرګ څخه وروسته ملاؤ سوی دی یعني تاطلب کړی او الله ﷻ تا ته در کړی اوس که دا دي ضائع کړی نو د دې څخه زیاته د تاوان خبره به بله کومه وي، دغه پول خو به ته د سعادت حاصلولو څخه محرومه سي.

په حدیث شریف کي دي چي صبا د قیامت په ورځ به د شپې او ورځي چي دا څلورویشت ساعتونه دي، د دې د پاره به څلورویشت خزانې د بنده په مخکي کښېښول سي بیا به د دغو څخه د یوې خزانې خوله خلاصه سي او کوم نیک عملونه چي دا بنده په دغه کي کړي وي د هغو په نُور سره به دغه خزان

روښانه ښکاره سي او په لیدلو سره به یې دومره خوشحالي حاصله سي چي که دغه خوشحالي پر دوږخیانو تقسیم سي نو د هغو څخه به د دوږخ اُور هېر سي، او د دې بې پناه خوشحالی سبب به داوي چي بنده به دا نُور د الله ﷻ په نزد د خپل قبولیت وسیله وګڼي، بیا به د ده په مخکي د بلې خزانې خوله خلاصه سي کومه چي به د ظلمت او توروالی څخه په انتهائي توګه تاریکه وي او داسي بدبویې به څیني راپورته کیږي چي صرف د یوې وګمې څخه به یې پزه پټوي دا خزانه به د هغو ګناهونو وي کوم چي د ده د ورځي په بل ساعت کي کړی وي د دغو په لیدلو به پر ده دومره بیره او هیبت راسي چي که دغه بیره پر جنتیانو تقسیم کړل سي نوجنت به د دوی د پاره تریخ سي، د دې څخه وروسته به د یوې خزانې دروازه خلاصه سي هغه به خالي وي نه به پکښې نُور وي او نه ظلمت، دا به هغه ساعت وي چي به دغه کي به ده څه ګناه نه وي کړې لیکن نېکي به یې پکښې هم نه وي کړې نو د ده په زړه کي به دومره تلافي او افسوس پیدا سي چي دومره غم به د یوه حکومت یا د خزانې په لُوټ کېدلو باندي هم چا ته نه وي، لنډه دا چي د ده په مخکي به د ټول عمر ساعتونه پیش کړل سي نو بنده ته پکار دي چي خپل نفس خبرداره ساتي چي الله ﷻ کومي څلورېشت خزانې ده ته ورکړي دي چي دا څیني خالي پاته نسي ځکه چي د دې افسوس به بیا د برداشت څخه بهر وي.

## مراقبه

دویم شئ مراقبه ده چي معنی یې نګهباني کول دي لکه څنګه چي څوک سرمایه خپل شریک ته د تجارت د پاره حواله کړي د هغه سره نه صرف شرطونه لګوي بلکي تیار وسي او نه څیني غافله کیږي، او د هر حرکت څخه یې ځان خبروي، دغه ډول د نفس څخه خبردار وسېدل پکار دي، او غافله کېدل څیني نه دي پکاري، ځکه چي په لږ غوندي تغافل سره نفس بیا د سستی او شهوت پرستی تر اثر لاندي کیږي، د مراقبې صحیح حق هغه وخت اداء کېدای سي چي بنده پر دې خبره کامل یقین ساتي، چي الله ﷻ زما د هر فعل او هر خیال څخه با خبره دي، خلک خو صرف د ده د ظاهر څخه خبر وي، لیکن الله د ده د ظاهر څخه بلکي د باطن څخه هم خبر دی چا چي دا حقیقت ومونده او دا عقیده یې پخه سوه د ده ظاهر او باطن به ښایسته او آراسته سي، بلکي پر دې ایمان نه لرونکی کافر دی او د ایمان سره سره که د دې خلاف ورزي کوي نو دا هغه بدترینه زړورتیا ده چي د کومي په باره کي الله ﷻ فرمایي: أَلَمْ يَعْلَمْ بِأَنَّ اللّٰهَ يَرٰى (آیا ده ته معلومه نه ده چي الله ﷻ دی ویني). د نبي ﷺ څخه یو حبشي پوښتنه وکړه، یا رسول الله! زما ګناهونه بې حسابه دي که زه توبه وکړم نو زما توبه به

قبوله سي ؟ نبي ﷺ وفرمایل: ولي نه ضرور به قبوله سي، حبشي ووېل آیا الله ﷻ زه د ګناهونو په وخت کې لیدلم؟ ورته فرمایل: هو! هغه هر څه ویني، چې دا یې واورېدل نو حبشي یو چغه ووهله او خوځار سو او مړ سو.

د نبي ﷺ ارشاد دی چې: عبادت داسې کوه! چې ګویا الله ﷻ ته وینې اوکه داسې نسې کولای نو د دې یوخ یقین ساته چې تا الله ﷻ ویني، تر دې وخته پورې ستا یو کار هم په صحیح توګه بشپړ نه دی کېدای، الله ﷻ فرمایلي دي: إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا [النساء] (بې شکه الله ﷻ لوی علم والا او خبردار دی) بلکې د بنده اصلي کمال خو دا دی چې هر وخت د الله ﷻ په مشاهده کې وي، یعني داسې ګڼي چې الله ﷻ هر وخت د ده مخ ته دی، او دی پخپله هر وخت د الله ﷻ په نظر کې دی.

**یوه مشهوره قصه**: یو مرید د خپل پیر تر نظر ډېر لاندې وو، او ډېر پر ګران وو، او پیر به همیشه نورو مریدانو څخه پر ده زیات مهربانه وو، نورو مریدانو ته پر دې خبر غیرت راغلی، پیر یوه ورځ هر مرید ته یوه یوه چرګه ورکړه ورته ویل چې: دا یو په داسې ځای کې ذبح کړئ چې څوک تاسو ونه ویني، هر مرید یو پټ ځای ته ولاړی، او خپله خپله چرګه یې ذبح کړه را یې وړل،لیکن هغه مرید کوم چې پر پیر ډېر ګران وو خپله چرګه یې ژوندی راووړه، پیر ورته وویل تاولې ذبح نه کړه؟ مرید وویل: ما ته داسې ځای ملاو نه سو کوم ځای چې زه چا نه لیدلم ځکه چې هر ځای به راته خدای پاک کتل، نو پیر هغو نورو مریدانو ته وویل چې: اوس تاسو پخپله د دې مرید قدر او مرتبه وپېژنئ، دی خو همیشه په مشاهده د الله ﷻ کې ووسي، او د الله ﷻ څخه ماسوا بل چا ته بالکل التفات نه کوي.

## معاقبه

معاقبه مطلب دا چې نفس ته سزاور کول، په دې ضمن کې یاد لره چې د نفس سره دې حساب وکړي او چې دا معلومه سي چې خطا ځیني سوې ده، لیکن د دې سره سره که ته دې آزاده پرېږدې نو دی به زړه ور او بې باکه سي او بیا به په مشکله ستا څخه بیرېږي نو دلول څخه پر هر بد کار باندې نفس ته سزاورکول پکار دي، که یو مشتبه شئ وخوري نو په سزا کې یې دی وږي کړي، او که پر نامحرم یې نظر پرېوځي نو په سزا کې دې هاغوا دېخوا کتل بند کړي، او سترګې دې مجبوره کړي چې سیده سي، پر دې د نورو ټولو اندامونو حرکات اوسکنات هم قیاس کول پکار دي.

**د معاقبې اړونده روایتونه او قصې**: د یو عابد لاس پر ښځه لګېدلی وو هغه لاس یې په اور

وسوځولو. په بنی اسرائیلو کي یو عابد ډېره زمانه پخپله صومعه (خونه) کي وسېدی، یوه ورځ یوې ښځي ځان ده ته مخامخ کړی عابد د ور نژدې کېدلو د پاره پښه د صومعي څخه د باندي راوېستله. بیا د خدای څخه بېره پر غالبه سوه او واپس سو خو دا خیال یې وکړی چي دا پښه کومه چي دگناه په نیت سره د باندي تللې ده دې پلیتي او گندي پښې ته دواپس تلو څه حق دی؟ نو نور دننه سو او دغه پښه یې دغه ډول د باندي پرېښوده نو د یخ او گرمی په وجه هغه خرابه سوه، او د بدن څخه یې پرېکړل. حضرت جنید بغدادي رحمه الله وایي چي ابن الکزیني ته یوه شپه احتلام وسو د یخ ورځي وې ده دغه وخت غسل کول وغوښتل لیکن نفس یې سستي وکړل، د غسل څخه یې منع کړی چي یخ دی سهار به وېږ وکړو حمام ته به ولاړ سو بښه په آرام به فارغه سو، ابن الکزیني قسم وخوړی چي اوس به د جامو سره غسل کووم او دغه ډول په لندو جامو کي به ووسم تر څو چي پر بدن وچي سوې نه وي، چي نفسه! ته جوړ سو. یو عابد یوې ښځي ته وکتل بیا یې ستر گو ته د سزاوړ کولو د پاره قسم وخوړی چي یخي اوبه به چیري نه څښم، او بیایي چیري هم یخي اوبه ونه څښلې، حضرت حسان بن ابي حسّان رحمه الله یو ځای روان وو چي یو ځای یې ښکلی منظر لو کور ولیدی او ودرېدی پوښتنه یې وکړه چي دا چا تیار کړی دی؟ لیکن د دې سره سره دا احساس ور ته وسو خپل ځان ته یې وویل ستا آخر د دې سره څه کار دی چي دا فضول پوښتنه دې وکړه؟ د دې حال معلومولو تا ته څه ضرورت وو؟ نفسه! اوس د دې سزا ته تیار سه او هغه دا چي تر یو کال پوري به اوس روژې نیسې، او واقعي دغه سزا یې ځان ته ورکړه. ابو طلحه رضي الله عنه پخپل د کجورو په باغ کي لمونځ کوی یوه مرغۍ یې ولیدله چي ډېره ښایسته ور ته ښکاره سوه او په لمانځه کي یې هغې ته فکر ولاړی او دا څیني هېر سوه چي څومره رکعتونه مې وکړل د نفس د دې غفلت په عوض یې ټول باغ په صدقه کي ورکړی.

مالک بن ضیغم رحمه الله وایي چي یوه ورځ ریاح القیسي رحمه الله د ماځیگر د لمانځه څخه وروسته زما خوا ته تشریف راوړی او وېږ ویل چي خپل پلار دباندي را وغواړه، ما وویل چي اوس هغه بیده دی او هغه دا وویل واپس ولاړی چي: دا لا هم د خوب وخت دی؟ زه ورپسې سوم چي دوی روان وو، او د خپل نفس سره داسي مخاطب وو: اې لغوه او بې هوده بکواس کوونکیه نفسه! دا تلولي وویل: چي دا لاهم د خوب وخت دی، ستا دې وینا ته آخر ضرورت څه وو؟ بس اوس تا ته د سزا در کولو د پاره ما پخه اراده کړې ده چي تر یوه کاله پوري به زه تا پر بالښت سر ایښولو او خوب کولو ته پرې نه ږدم (بغیر د بالښت څخه به پرېوزم) دا یې ویل د ستر گو څخه یې اوښکي بهېدلې او په آخر کي یې پر ژبه دا الفاظ جاري وو: اې نفسه! آخر ته د خدای څخه ونه بېرېدې؟.

تمیم دلري ﷺ یوه شپه داسې ییده سو چې د تهجد لمونځ ځیني قضا سو قصد یې وکړی چې تر یوه کاله پوري به د شپې ییده نه سم، حضرت طلحه ﷺ روایت کوي چې یو سړي به خپل ځان لغړ کړی پر ګرمو شګو او دېر ویه رغړېدی، او ویل به یې اې مردار نفسه! ته به تر څو پوري داسې شپه ورځ سرکښې کوې؟ په دې کي نبي کریم ﷺ هلته تشریف راووړی او پوښتنه یې ځیني وکړه چې اې سړیه! ولې خپل ځان دومره خواروې؟ هغه عرض وکړی، دا نفس پر ماغلبه حاصلول غواړي (نو زه ځان پر غالبه کوم) نبي ﷺ وفرمایل: اوس اوس د آسمان دروازې ستا د پاره خلاصې سوې دي او الله ﷻ د فرښتو سره ستا تعریف کوي، بیا یې صحابه کرامو ﷺ ته وفرمایل: ورسئ د آخرت تو بنه د دې سړي څخه طلب کړئ، تول اصحاب ﷺ هغه ته راغلل او ویې ویل اې خدائې سړیه! زموږ د پاره دعاء وکړه هغه هر یوه ته دعاء وکړه، نو نبي ﷺ وفرمایل: ټولو ته په جمع دعاء وکړه، هغه وویل اې پروردګاره! تقویٰ د ټولو د آخرت تو بنه کړه او هر یو پر سیده لاره کړه، نبي ﷺ وویل: یا الله! کومه دعاء چي ځوره وي هغه د ده پر ژبه جاري کړه، نو د هغه د ژ بې څخه دا دعاء ووتله، اې خدایه! دا ټوله په جنت کي ووسوه.

## مجاهده

په دې ضمن کي بنه یاد ساتل پکار دي چي بزرګانو د دین به چي کله خپل نفس د تساهل یا تغافل وطرف ته مائل ولیدی نو داسې سزا به یې ورکوله او د داسې تنبیه او سیاست څخه به یې کار اخیستی چي په الزام کي به یې پرده اضافي عبادت لازم کولو لکه څنګه چي د حضرت عمر ﷺ معمول وو چي که یو باجماعته لمونځ به ځیني پاته سو نو په دغه شپه به نه ییده‌ېدی تر دې چي یو ولړ یې د باجماعته لمونځ په فوت کېدو دومره مال په صدقه کي ورکړی چي مجموعي قیمت یې دوه لکه درهمه جوړېدی، او د دوی د زوی ابن عمر ﷺ څخه یو وار د ماښام په لمانځه کي لږ تأخیر وسو او دوه ستوري پر اسمان ښکاره سو نو په کفاره کي یې دوه غلامه آزد کړل.
دا ډول روایتونه او حکایتونه (قصّې) بې شماره دي، نو نفس چي کله د سستی مظاهره ؤکړي نو علاج یې فوراً کول پکار دي، د دې یوه طریقه داهم ده چي د یو صاحب مجاهده او ریاضت صحبت اختیار کړل سي چي د ده د ریاضت په لیدلو سره په زړه کي شوق او رغبت پیدا کیږي، د یو بزرګ بیان دی چي کله هم په ریاضت کي څه کمی پنځپل ځان کي ووینم نو د حضرت مُحَمّد واسع ﷺ خوا ته د یوه ګړي د پاره ځم، د دوی یو ګړي زیارت ما د یوې اوونۍ د پاره داسې راغب

اومشتاق کړي چې سستي او غفلت ته بيا نژدې هم نه راشي، که ميو صاحب رياضت صحبت يا ديدار در ته حاصل نه وي نو د دوی قصّې او حالات او بيل او ويل هم دېر په کار راتلونکي ثابتيږي، مونږ دلته په مختصره توګه د بعضي اهلِ مجاهده وو حالات نقل کوو.

## د يو څو مجاهده کوونکو قصې

حضرت داؤد طائي رحمه الله به د ووړې پخولو پر ځای اُوره په ابو کي لړل او چښل به يې، د دوی شخه چې پوښتنه وسوه چې د دې څه وجه ده؟ نو ويې فرمايل: چې په دا بول د ووړې پخولو او خوړولو په نسبت دومره وخت ما ته بچت کيږي چې پنځوس آيتونه پکښې تلاوت کولای سم، نو په ووړې پخولو او خوړولو کي دومره وخت ولې ضائع کووم؟ هم د دوی واقعه ده چې يو سړی پوښتنه څيني وکړه، چې ستا د کور په چت کي داما ته کړی، د څومره وخت شخه ده؟ ويې فرمايل: ما ته نه ده معلومه ځکه دغه رنګه د دېرشو کالو شخه په دې کور کي ووسم خو چت ته مې چيرې کتلي هم نه دي، د بزرګانو په نزد بې فائدې د يو شئ طرف ته نظر پورته کول هم مکروه دي. داحمد بن زرين رحمه الله معمول وو چې روزانه به د سهار د لمانځه شخه تر ماښيګره پورې په مسجد کي ناست وو، او هيڅ يو طرف ته به يې نه کتل، يو وار خلکو پوښتنه څيني وکړه چې دا تاسو داسې ولې ناست ياست؟ ويې فرمايل: دا صحيح ده الله ﷻ چې بنده ته کومې سترګي ورکړي دي نو د دې د پاره چې دی په دې سره ناآشنا او عجيبه صنعتونو ته وګوري ليکن دا پکښې شرط دی چې څه ته ګوري چې د عبرت په سترګو ورته وګوري، کنې د ده په نوم به يوه خطا وليکل سي، ابو الدرداء رضي الله عنه فرمايي: چې درې شيان داسې دي د کومو په وجه چې دا ژوند پر ما ښه لګيږي: (۱) يو خو ځکه چې په اوږدو شپو کي سجدې وکړي (۲) دويم ځکه چې په اوږدو ورځو کي تږی ووسم (۳) دريم ځکه چې د داسې بزرګانو په صحبت کي ووسيږم چې هره خبره يې د حکمت او پوهې نځور (خلاصه) او د پاکوالی هيندلاره وي. د علقمه بن قيس شخه پوښتنه وسوه چې تاسو خپل نفس ته دومره بده سزا ولې ورکوئ، ويې فرمايل: ځکه چې زما د ده سره دوستي ده او زه دی د دوږخ د عذاب شخه خوندي کول غواړم، خلکو وويل: چې دا دومره سخت عذاب ورکول خو پر تا فرض کړی سوي نه دي؟ ويې فرمايل: په هر حال څه چې زما شخه کېدای سي زه په هغه کي کمي نه کوم چې په قيامت کي خوله تر ليه دا حسرت نه وي چې اې کاش! چې دغه فلانی کار مې کړی وی نو څومره به ښه وای؟ د حضرت جنيد بغدادي رحمه الله ارشاد دی چې دا عجيبه او ناآشنا خبره ما سوا د سري السقطي رحمه الله

شخه په بل چاه کې نه ښکاري چې دوی تر اته نوي ۹۸ کالو پورې ژوندی وو لېکن د مرګ شخه مخکې چا دوی ډېر څمکه لګېدلې نه وه لیدلې. ابو مُحَمّد جریري رحمه الله یو وار پوره یو کال په مکه مکرمه کې قیام کړی وو لېکن په دې ټول وخت کې یې نه د چا سره خبرې کړې وې نه چیرې بیده سوی وو او نه یې خپله ملا ځمکې ته وروړې وه، بلکې پښې یې هم چیرې نه وې غځولې: ابو بکر کتاني رحمه الله د دوی شخه پوښتنه وکړه چې د ریاضت دا درجه تاسو څنګه ومونده؟ دوی جواب ورکړی چې د باطن د هغه صدق په وجه کوم چې یې دا حقیقت وپېژندی او زما ظاهر ته یې د دې قوّت ورکړی کوم چې یې دا برداشت کړي. د یو بل بزرګ بیان دی چې ما فتح موصلي رحمه الله ولیدی چې ژاړي او د سترګو شخه بهېدونکې اوښکې خون آلود دي (یعني د اوښکو سره یې وینې وړسره وې)، ما پوښتنه وکړه دا شه خبره ده؟ او د سترګو دا شه حال جوړ سوی دي؟ وریې فرمایل: تر یوې مُدې پورې پخپلو ګناهونو مې هغه اوښکې هم بیولې دي کومې چې به دابو قطرې وې او س پر هغو اوښکوو باندي د ویني اوښکې بیووم کومې چې د اخلاص شخه خالي وې، د دوی د وفات شخه وروسته چا دوی په خوب کې ولیدل. نو پوښتنه یې ځینې وکړه، چې الله ﷻ ستا سو سره کومه معامله وکړه؟ دوی وویل: (لله الحَمد چې) موږ ته خو د قدر په نظر سره وکتل سوه، او دا عزت او مرتبه الله ﷻ د هغو اوښکو په وجه راکړه، او ارشاد وسو چې زما په خپل عزت قسم دی تر څلوېښتو کالو پورې چې ستا کومه عملنامه فرشتو ما ته پیش کړه ما هغه د خطا شخه بالکل خالي ومونده.

دواؤد طائي رحمه الله ته یو واري خلکو وویل چې که تاسو ږیره ږمنځ کړئ نو شه پروا سته؟ وریې فرمایل: چې که ږمنځ یې کړم نو ګویا دا به ثابته کړم چې فارغ سړی یم؟

اویس قرني شپې داسې تقسیم کړې وې چې فرمایل به یې: نن د رکوع شپه ده او دغه شپه به یې په رکوع کې تېره وله، بیا به یې فرمایل: نن د سجدې شپه ده او بیا به یې دغه ټوله شپه په یوه سجده کې تېره کړه، عتبة الغلام د ډېرې مجاهدې په وجه لذیذ او خوندور خوراک نه کوی او نه به یې چیښی، یوه ورځ د ده مور وویل زویه! پر خپل ځان خو شه رحم وکړه، ده وویل اې مورا رحم خو د هغه رحیم شخه طلب کووم، او دا خو د څو ورځو خبره ده دا که په تکلیف براشت کولو کې تیرې سې نو دهمیشه راحت به نصیب سي.

## معاتبه

معاتبه مطلب د نفس توبیخ او ملامتونه، دا پېژندل ډېر ضروري دي چې دا نفس په دا ډول پیدا سوی

دي چي د خير او نېکي څخه تېښتي او په شر او بدي کي مبتلي د ده په فطرت کي سستی او شهوت پرستي ده، لېکن تا ته صاف حکم دی چي د ده دا صفت بدلول او د غلطي لاري څخه یې سیده لاري ته را وېستل دي، په دې سلسله کي بعضي وخت د سختي څخه کار اخیستل وي او کله د نرمي معامله کول وي، کله په قول سره او کله په فعل سره د ده د لاربنوونې او حفاظت فرض پوره کول وي، ځکه چي دا رجحان په ده کي موجود دی چي که په یو کار کي ده ته خپل خیر او فائده په نظر راسي نو د کولو اراده یې کوي، هغه که تکلیف او ستونزه زغمل پکښې ولي نه وي، د دې لرادې دپوره کولو د پاره دی هر ډول سختي پورته کوي لېکن په دې کي اکثره دجهالت او حماقت او غفلت مظاهره کوي او دغه شئ د ده د پاره حجاب جوړ سي، لېکن که دی د غفلت د خوب څخه بیداره سي، پاکه او صافه هینداره مخ ته کښېښول سي نو دی دغه هم قبلوي، په دې وجه د الله ﷻ ارشاد دی: وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَىٰ تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ (الذاريات:٥٥) (او نصیحت کوه! ځکه چي نصیحت مؤمنانو ته فائده ورکوي)، او ستا نفس د نورو څخه څه مختلف نه دی بلکي دغه رنګه دی یعني نصیحت قبلوي، ضرورت د دې خبري دی چي دی مسلسل تر عتاب، ترټني او ترټیخ لاندي وساتې او پوه کوي یې، او د عتاب سلسله چیري بنده نه ده پکار، او ده ته برابر ویل پکار دي، چي: اې نفسه! د پوهي او عقلمندي دعوې خو ډېري کوې تر دې چي که څوک در ته احمق ووایي نوسخته در باندي لګیږي او حال دا دی ته څښت احمق یې او څښت به وقوفه یې، ته په خپله سوچ وکړه چي دیو سري د ګرفتارولو او د ګرفتارولو څخه وروسته د مرګ د سزاوړ کولو د پاره که لښکري (فوځ) د ښار څخه د باندي ولاړ وي لېکن دغه سړی په مزه سره په لوبو کي مشغول وي نو د ده څخه زیات احمق به څوک وي، او آیا د ده څخه زیات احمق هغه نه دی چي دمرو انسانانو لښکر د چا د ژوند د ښار پر دروازه ډېره اچولي وي او د کوچ د پاره صرف د ده په انتظار وي، او واضح اعلان یې کړی وي چي تر هغه به د دې ځای څخه ونه ښوري تر څو چي دی د ځان سره نه کړي.

او جنت او دوږخ ستا د پاره جوړ سوي دي څه معلومه ده چي دغه لښکر نن تلاراکش کړي او د ځان سره دې بوځي، او که نن نه وي نو صبا او که صبا نه وي نو بله ورځ، غرض خو یوه ورځ به په هر حال تا بیایي، او کومه خبره چي اتل او تاکل سوې وي هغه داسي ګڼه چي ګویا سوې ده، او دا خو د مرګ معامله ده او هغه خپل دراتلو وخت هیڅکله چا ته نه دي ښوولي چي د شپې راځي که د ورځي، ژر راځي او که وروسته، د ګرمی په موسم کي به وي او که د یخ، د هغه د دې سره هیڅ غرض نه سته خو

راځي ناڅاپه (او ناخاپه) او عموماً په داسې وخت کې راځي چې بنده بالکل بې فکره وي، اوس د دې سره سره ته مرګ ته تیار نه یې نو ستا څخه څوک احمق څوک دی. افسوس پر تا باندې اې نفسه! چې ستا ټوله ورځ په ګناهونو کې تېرېږي، که ته دا ګڼې چې الله ﷻ ستا ګناهونه نه ویني نو دا علامه ستا د کافر کېدلو ده او که د دې ګڼلو سره سره چې هغه یې ویني او پر ګناه مُصِر (ټینګار کوونکی) یې نو دا ستا بې حیایي او ګستاخي ده چې د الله د حکم څخه یرېږې هم نه. ستا غلام که ستا لږ غوندې ګستاخي او نافرماني وکړي نو ته څومره دغصې څخه تاو راتاو کېږې، نو بیا دا خبره دې په فکر کې نه راځي چې ته د الله ﷻ د قهر او غضب څخه ځان په کوم حساب سره خوندي او په امن ګڼې؟ که ته په دې غلط فهمي کې مبتلا یې چې ته د الله ﷻ د عذاب برداشت کولو طاقت لرې نو لږ خپل ځان وازمایه! اور ته یوه ګوته په اور دننه کړه که دا نسې کولای نو په تکنده غرمه کې لږ ودرېږه بلکې لږ تر لږه په ګرم حمام کې خو لږ ودرېږه چې د خپلې بې چارګۍ او بې طاقتۍ اندازه در ته وسي، او که دا خوش فهمي دې وي چې څه چې کوې نو نیوکه (مؤاخذه) یا پوښتنه به نه وي، او یو څوک ستا نیونکی نسته نو د دې دا مطلب دی چې ستا په نزد هغه یو لک څلورویشت زره پیغمبران ټول دروغجن وو، د کومو ګواهي چې قرآن کریم ورکړې ده؟ بلکې ته خو ګویا د دوی د وجود څخه انکار کوې؟ الله ﷻ صاف ویلي دي: ﴿مَنْ يَعْمَلْ سُوٓءًا يُجْزَ بِهِۦ﴾ (څوک چې بد کار کوي سزا به یې بیا مومي) [النساء] اې نفسه! شاید تا دا فرض کړې وي چې الله ﷻ رحیم او کریم دی تا به په عذاب کې نه مبتلا کوي، نو دومره سوچ خو وکړه چې په دې دنیا کې په زرګونو لکونو خلکو په لوږه، تنده او مرض کې څوک مبتلا کوي؟ ستا په خیال چې الله ﷻ رحیم او کریم دی نو دا بیا په لوږه مرض کې د خلکو مبتلا کېدل ولې دي؟ او څه وجه ده چې څه ونه کړې نو څه به لږ هم نه کړې (د ځانه فصل ولې نه تیارېږې؟) او اې احمق نفسه! ستا خو د مال دولت جمع کولو خواهش همیشه وي او د دغه د حاصلولو د پاره خو ته ډول ډول حیلې بهانې جوړوې او مختلف ډول تدبیرونه او منصوبې جوړوې، نو دغه وخت ستا دا تصور چیرې ولاړ سي چې الله ﷻ رحیم او کریم دی، او هغه به ستا کار پخپله وکړي؟ او ولې دومره تکلیفونه او مصیبتونه دمال او زر د پاره برداشت کوې؟ (د محنت بغیر ولې نه درته حاصلیږي).

او اې نفسه! ممکنه ده چې ته دا ووایې چې د الله ﷻ احکام پر حق دي لیکن زما څخه یو څه تکلیف نسي کېدای! لیکن ته دومره هم نه پوهېږې چې په چا کې د رنځ پورته کولو طاقت نه وي هغه ته خو

د غټ رنځ پورته کولو څخه د خوندي کېدلو په خاطر کوچنی رنځ ضروري پورته کول پکار دي چي پر نورو دا فرض ده نو پر دې کم همته خو زیاته فرض ده چي صبا خو د دوزخ د عظیم عذاب څخه خلاصون ومومي، ځکه څوک چي رنځ نه پورته کوي هغه د رنځ څخه خوندي کېدلای هم نسي، که نن دغه لږ اندازه تکلیف ته نه سي زغملای نو صبا به د دوزخ عذاب، ﷲ خوار وي او لعنت څنګه وزغملای سي؟ د سرو او سپینو زرو د پاره خو د لویو څخه لوی تکلیف پورته کول تا ته منظوره دي آخر ولي او څنګه، د مرض څخه د روغتیا د پاره خو د یو یهودي طبیب هدایتونه تا ته دومره د منلو وړ وي چي خپل خواهشات تو له پرېږدي؟ لېکن دا خبره ستا په فکر کي نه راځي چي د دوزخ سختي د دې دنیاوي مرض او مفلسی څخه ډېره زیاته سخته ده او بیا د هغه مُدې هم چي خیال وکړې چي د دنیاوي مُدې څخه د آخرت مُده څومره اوږده ده. آیا دا د خندا خبره نه ده چي یو لږي قیمتي ملغلره ورکړې، د لوبني یو ماته سوې ټوټه واخلې؟ څوک دي چي داسي سړي ته به احمق ونه وایي، نو ای نفسه! دا دنیا هم د خاورو یوه پیاله ده چي کله د لاس څخه ایله سوه نو ماته به وي، او د دې په عوض کي تا هغه همېشنی ګوهر هېر کړی دی، هغه بیا په لاس نه راځي، لېکن دائمي افسوس به وي او ته به یې، نو لازمه ده چي په داسي عبرتناکو خبرو او ترټنو سره نفس همېشه خبرداره کوې چي خپل حق خو اداء سي، او که د وعظ نصیحت شوق وي نو شروع یې د خپل ځان څخه کول پکار دي، (د نورو فکر بیا وروسته کول پکار دی).

## اووم اصل: د تفکر په باره کي

د نبي ﷺ دا ارشاد هیڅکله د هېرولو نه دی چي: دیو ساعت تفکر د یو کال د عبادت څخه غوره دی، او په قرآن شریف کي الله جل جلاله په ډېرو ځایونو کي په تفکر تدبّر، نظر او اعتبار باندي زور ورکړی دي، او د دې ټولو څخه مراد تفکّر دی چي دا ټول د ده مختلف اړخونه دي، د تفکّر فضیلت تر هغه وخته پوري څوک نسي پېژندلای تر څو چي مخکي داونه پېژني چي تفکّر (۱) په څه شئ کي دی (۲) د څه شئ د پاره دی؟ او (۳) ثمره یې څه ده؟ او چي د دې حقیقت څه دی؟ او د ده څخه مراد کوم کیفیت او حالت دی؟ د دې ټولو شرحه ډېره اهمه ده او موږ دا په دې ترتیب سره بیانوو چي اول به د ده فضیلت بنیو بیا حقیقت او دهې څخه وروسته به پر دې خبره رڼا اچوو چي تفکر د څه د پاره وي او پر څه شئ وي.

## د تفکر فضیلت

دا خبره په اسانۍ سره پېژندل کېږي چې هغه کار په کوم کې چې د مشغولیت یو ساعت او یو ګړی د یو کال پر عبادت باندې فضیلت لري د هغه درجه به څومره لوړه وي؟ ابن عباس ﷜ وایي چې بعضې خلکو د تفکر په سلسله کې د الله ﷻ په ذات کې تفکر کول شروع کړی وو دغه خلکو ته نبي ﷺ وفرمایل: د الله ﷻ په ذات کې تفکر مه کوئ بلکې د هغه په مخلوق کې تفکر کوئ، د هغه په ذات کې به تاسو څه تفکر وکړئ د دغه خو په تاسو کې طاقت نشته، د هغه قدر پېژندل ستاسو د پاره کله ممکن دی؟ حضرت عائشه فرمایي چې: یوه ورځ نبي ﷺ په لمانځه کې مشغول وو او ژړل یې، ما عرض وکړی چې: تاسو ولې ژاړئ؟ هرکله چې ستاسو د ګناهونو معافي د الله ﷻ د طرف څخه تاسو ته ملاوړې سوې ده؟ ویې فرمایل: آیا دا څنګه کېدای سي چې دا آیت دې پر ما باندې نازل وي او زه دې نه ژاړم؟: إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيَاتٍ لِأُولِي الْأَلْبَابِ (آل عمران: ۱۹۰) (بې شکه د اسمانونو او ځمکې په پیدا کولو کې او د شپې او ورځې په یو بل پسې په تللو راتللو کې علامې دي د عقلمندو د پاره) او بیا یې وفرمایل اې افسوس دی پر هغه سړي باندې چې دا وایي او تفکر نه کوي، د حضرت عیسی ﷺ څخه خلکو پوښتنه وکړه چې آیا پر مخ د ځمکې داسې سړی هم شته؟ چې ستا په څېر وي ته وویل سي؟ ویې فرمایل: هو! هغه سړی زما مثل دی د کوم چې هره خبره ذکر، خاموشي یې فکر، او نظر یې د عبرت وي، نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې: په عبادت کې خپلو سترګو ته هم ضرور څه حصه ورکوئ، خلکو عرض وکړی یا رسول الله ﷺ! هغه څنګه؟ ویې فرمایل: هغه داسې چې په ژبه د قرآن تلاوت کوئ په ذهن کې تفکر پر کوئ او په سترګو د قدرت د عجائبو او مظاهرو څخه عبرت اخلئ، ابو سلیمان درانی رحمه الله وایي چې په دنیا کې تفکر کول خو خیر د حجاب سبب دی یعنې حجاب د آخرت، لیکن په آخرت کې په تفکر کولو سره هغه حکمت او پوهې حاصلیږي کومه چې زړونو ته ژوند ورکوي. داؤد طائي یوه شپه پر چت ناست وو په ملکوتو د آسمان کې یې تفکر کوی او اوښکې یې بې اختیاره د سترګو څخه روانې وې، آخر (داسې بېخوده سو) چې د چت څخه را کښېل سو او د ګاونډي کره را ایله سو، ګاونډي فوراً پر را پورته سو او توره یې را واخېستله د ده خیال وو چې غل دی بیرې او وهم په وجه دته کور ته را ایله سو، کله چې یې ولیدی نو پوښتنه یې ځینې وکړه چې ته چا را ایله کړې؟ دوی وویل زه پخپل هوښ کې نه ووم او نه ما ته هیڅ خبر وو.

## د تفکر حقیقت او پېژندنه

پوه سه! چي د تفکّر معنی طلب د علم دی او هغه علم کوم چي په ظاهري توګه حاصل نسي یعني داسي نه وي چي د مخامخ شیانو څخه حاصل سي چي طلب او لټون یې پکار وي، او د دې طلب تر هغه وخته پوري ممکن نه دی، تر څو چي د پېژندلو او پیدا کېدلو (موندلو) دوه معرفتونه یو ځای نه سي ځکه چي د دې دواړو په دیو بل سره داسي ملاوول وي چي ګویا دوې جوړې سي، نو د دې دواړو په اختلاط سره به یو دریم معرفت پیدا سي لکه چي د نر او ماده په جوړه کېدلو سره بچی پیدا کیږي او دا دواړه معرفتونه ګویا دوې جوړې (ښځونه) دي د کومو څخه چي دریم معرفت را پیدا کیږي بیا دا درې هم چي په دغو دوو کي ملاوکړې نو څلورم معرفت ځیني پیدا کېدای سي او دغه ډول په تناسل د علومو سره تعداد د علومو زیاتیږي، تر دې چي څه انتها یې نه وي او په کوم سړي کي چي په دې انداز سره د علم حاصلولو صلاحیت موجود نه وي د دې وجه دا وي چي دی پر دې لاري تللی نه وي کوم چي موږ د دې بیخ مقرر کړی دی، د ده مثال د هغه سړي وي د کوم سره چي سرمایه نه وي چي تجارت په وکړي، او که د دې علومو څخه خبر وي خو ملاوولی یې نسي، نو هغه د داسي سړي په ډول دی چي سرمایه ور سره وي لېکن په تجارت کولو نه پوهیږي، د دې حقیقت تفصیل ډېر اوږد دی خو موږ یې په یو مثال سره ورانديي کوو، یعني که: یو سړی د دې خبري څخه خبر دی چي آخرت د دې دنیا څخه غوره دی نو ده دا خبر تیا تر هغه وخته پوري ممکنه کېدای نسي تر څو چي د مخکي څخه د دوو شیانو ده ته علم نه وي چي: (۱) باقي د فاني څخه غوره دی او (۲) آخرت باقي دی او دنیا فاني ده، د دې دوو أصولو څخه د واقفیت دا نتیجه وه چي د هلته دا دریم علم حاصل سو چي آخرت د دې دنیا څخه غوره دی ځکه چي د دوو أصولو په جوړه کېدلو سره د دې دریم علم پیدا کېدل وو، لېکن د علمونو د پیدایښت دا طریقه کومه چي موږ بیان وو داسي هیڅکله نه ده کومه چي معتزله غواړي، او دا مسئله پرخپل ځای ډېره اوږده شرح غواړي لېکن موږ په لنډه داسي ویلای سو چي د ټولو تفکّراتو حقیقت صرف او صرف طلب د علم دی کوم چي د دوو علومو په حاصلولو او بیا یې د یو بل سره په ملاوولو په زړه کي پیدا کیږي لېکن څنګه چي دا ممکنه نه ده چي د دوو آسونو (نر او ماده) په جوړه کېدلو به بزه (وزه) پیداسي دغه ډول کوم دوه عملونه چي ملاوېږي د دوی همجنسه دریم علم به په پیدا کیږي، دا نه چي دوه علمونه به ملاو سي نو دریم چي ته څنګه غواړې نو پیدا به سي، ځکه چي د علم هر قسم پر دوو جلا جلا اصلونو مشتمل وي نو په دې وجه چي دغه

دوه اصلونه په زړه کې حاضر کړل سي تر هغه وخته مطلوبه ښاخ نسي پیدا کېدای.

## تفکر ولي ګول پکار دي؟

پوه سه! چې انسان یې په تاریکۍ او جهالت کې پیدا سوی دی، په دې وجه ده ته د یوې ډاسې رڼا حاجت دی کومه چې دی د تیارې څخه راوباسي، او بیا پر هغه لاره روان سي کومه چې د ده پکار راسي او د دې تیارې څخه چې ووځی نو دی د دې خبرې څخه خبر کېدای سي چې ده ته څه کول دي، او پر کومه لاره تلل دي؟ او پر دې لاره بانديې هم دا چې ده ته د کوم لوري څخه کوم لوري ته تلل دي؟ آیا د دنیا د طرف څخه د دنیا وطرف ته او که د آخرت وطرف ته او بیا چې په ځان کې به مشغوله وي او که د الله ﷻ سره؟ او دا صورت تر هغه نسي پیدا کېدای تر څو چې نور د معرفت حاصل نه وي او نور د معرفت نه سي حاصلېدای تر څو چې تفکر ونه کړل سي. لکه چې په حدیث کې راغلي دي چې کله یو سړی د تیارې څخه تنګ سي او لار نه ویني نو دي لوسپنه او ډبره سره ووهي چې رڼا ځیني پیدا سي او څراغ دي په بل کړي او کله چې څراغ بل سي نو ده ته هر څه په نظر راسي او لاره هم ویني او په دغه لاره تلل هم ده ته آسانه سي، دا حال د هغو دوو علمونو دی کومو ته چې موږ دوه پېغونه (اصلونه) ویلي دي کله چې دا دوره د یو بل سره ملاؤ سي نو دریم ځیني معرفت پیدا سي لکه چې د ډبرې او اوسپني په وهولو سره اور پیدا کیږي، څنګه چې د تفکر مثال اوسپنه پر ډبره وهل دي او د دې څخه پیداکېدونکې رڼا یا نور هغه معرفت دی کوم چې ځیني حاصلیږي او په دې حاصلیدلو سره د زړه حالت بدل سي او کله چې حالت بدل سي نو په کار او عمل کې هم تبدیلي راسي، مثلاً کله چې دا ووایي چې آخرت د دنیا څخه بهتره دی نو مطلب یې دا دی چې شا یې دنیا ته کړه یعني د دنیا څخه یې مخ واړوی او توجه یې آخرت ته سوه.

نو تفکر د درې شیانو د پاره سو: (۱) معرفت (۲) حالت او (۳) عمل، اوس په دوی کې عمل تابع دی د حالت او حالت تابع دی د معرفت او معرفت تابع دی د تفکر، نو د دې څخه ښکاره واضحه سوه چې د ټولو نېکیانو بیخ او چلېې تفکر دی او په دې سره د دې فضیلت هم په پوره توګه ښکاره کیږي.

## د فکر میدانونه

یعني دا بیان چې فکر په کوم شي کې وي او بیا چیري ځي؟ د فکر میدان ډېر لا محدود دی، دلوجه ده چې د علم هم تر اوسه پوري یو حدّ او انتها مقرره نه سوه، فکر په هر شي کې جاري او ساري دی،

لېکن هغه شیان د کومو تعلق چې د دین سره نه دی د هغه تفصیل بیانول زموږ په مقصد کي شامل نه دي، زموږ تعلق صرف د دین د شیانو سره دی، که څه هم د دې تفصیل هم ډېر اوږد دی بیا هم دومره گنجائش پکښې سته چې په لنډه سره د دې د جنسونو او نوعونو شمار کېدای سي، نو په دې ضمن کي د ټولو څخه اول دا خبره په ذهن کي کښېنول پکار دي چې د دینداري څخه زموږ مراد هغه تعلق او معامله ده کومه چې د بنده او د خدای په مینځ کي لیدل کیږي ځکه چې دا هغه لار ده چې پر دې تلل بنده ته لازم دي، چې دا هغه ذریعه ده په کومه کي چې دی الله ﷻ ته رسېدلای سي، د بنده تفکر یا خو (۱) د خپل ذات په باره کي وي، یا (۲) د الله ﷻ د ذات په باره کي، او کله چې د الله ﷻ د ذات په باره کي وي نو د دې مطلب دا دی چې د ده د صفتونو یا افعالو یا عجائبو او مظاهرو یا د صنعتونو په باره کي دی، او پخپل ذات کي د بنده تفکر په دوه ډوله سره وي یا خو د هغو صفتونو په باره کي وي کوم چې د الله ﷻ ناخو ښه وي او بنده د هغه څخه لیري کوي، او دا هغه بدصفتونه دي کومو ته چې موږ معاصي او مهلکات ویلي دي، او یا بیا په هغو صفتونو کي وي کوم چې د الله ﷻ په نزد خوره دي او خوښ یې دي او بنده هغه ته نژدې کوي، او دا هغه نېک صفتونه دي چې ذکر یې موږ په ا طاعت او منجیاتو سره کړی دي، نو دا دوه څلورمیدانونه سول او د بنده مثال د یو عاشق دی چې د ده فکر او خیال په هیڅ توگه هم د معشوق د تصوره څخه نه وځي، او که ووځي نو دا علامه د ده د عشق ناقص کېدلو ده ځکه چې عشق کامل خو هغه دی چې د معشوق د تصور څخه ماسوا دبل یو شئ ځای باقي پاته نه وي، او د عاشق په خیالاتو باندي یا خو د معشوق حسن او جمال خور وي او د ده شکل او صورت هر وخت پر زړه نقش وي یا بیا د ده د افعالو اخلاقو نقشه یې تر نظر لاندي وي او تر څو چې د عشق پخپل ذات کي د تفکر کولو تعلق دی نو د هغه فکر د هغو اُمورو سره متعلق وي کوم چې دی د معشوق د پلوه د زیاتو څخه زیات د قبلولو جوړ کړي، چې دی هغوی خپل کړي او هغوی تلاش کړي یا بیا په داسي کارونو کي تفکر کوي کوم چې د محبوب په نزد مکروه او د نفرت وړ وي چې عاشق ځیني د ځان ساتلو کوشش وکړي، نو په حکم د عشق کي چې کوم خیال وي هغه د څلورو حالاتو څخه نسي وتلای، دغه د دین د عشق او د الله ﷻ د دوستی په باره کي هم یو خیال د مذکوره څلورو میدانونو څخه نه سي وتلای.

**اول میدان:** د میدانِ اول تعلق د هغه خیال (یعني تفکر) سره دی په کوم کي چې بنده د خپل ذات په باره کي سوچ کوي، چې د ده د صفتونو او عملونو هغه کومي کومي خبري دي کومي چې مکروه نو د نفرت وړ دي، چې ځان ځیني خوندي کړي او د دې څخه مراد یا خو د ده ظاهري گناهونه وي یا

هغه خبیث اخلاق وي کوم چې د ده په باطن کې وي او د دغو ظاهري ګناهونو تعلق اکثره د ده د اوو ظاهري اندامونو سره وي لکه چې ژبه، سترګې، پښې لاسونه او نور دي او یو ګناه داسې وي چې تعلق یې د ټول جسم سره وي او دا کیفیت د باطني خباثتونو هم دی، د دوی څخه د هر یوه د تفکر درې صورتونه دي: (۱) اول دا تعیین کول چې فلانی عمل یا صفت مکروه دی که نه دی؟ ځکه چې دا بالکل ښکاره نه دي چې د ځانه معلوم سي، بلکې تفکر ورته پکار وي (۲) دویم دا چې کله دا معلومه سي چې فلانی خبره مکروه ده نو دا سوچ کول چې آیا زه هم چیرې په دې کې اخته سوی یم او که نه؟ او دنفس د صفتونو شناخت یو اسانه کار نه دی په دې وجه هم د تفکر ضرورت دی (۳) او دریم دا چې که معلومه سي چې زه پخپله په دې صفت کې مبتلا یم نو بیا د دې څخه د خلاصون حاصلولو کوم صورت کیدای سي، نو روزانه د سهار یو ساعت د دې تفکر د پاره مخصوص. کول پکار دي چې اول پکښې ظاهري ګناهونه ته فکر وکړي، مثلاً د ژبې په باره کې سوچ وکړي چې نن به پر فلاني فلانی معامله په ژبه سره خبرې اترې کوي، نو د معاملې کوم کوم اړخونه دي چې په دروغو یا غیبت کې بتلا کیږي نو د هغه د علاج سوچ وکړي چې د دغو څخه به څنګه ځان ساتي او داسې نور..... کله چې د دې ظاهري ګناهونو او عبادتونو په باره کې تفکر وکړي، نو بیا دې باطن ته خیال وکړي او د بدو اخلاقو په باره کې دې سوچ وکړي چې کوم بدخویونه د ده په باطن کې موجود دي او د منجیاتو څخه کوم کوم د ده په باطن کې نسته چې دبدو لیرې کولو او د نیکو د حاصلولو تدبیر وکړي د دې تفصیل هم ډېر اوږد دی لیکن اصل مهلکات لس دي؛ یعني بخل، تکبر، ریا، حسد، غصّه، حرص د طعام، حرص د خبرو، دمال محبت، د جاه محبت.

او اصل منجیات هم لس دي؛ یعني پر ګناه پښېماني، پر مصیبت صبر، پر قضا باندې رضا، پر نعمت شکر، په خوف او رجا کې اعتدال، د دنیا څخه زهد، په عبادت کې اخلاص، د خلکو سره نیک خویي (ښه اخلاق)، د الله ﷻ سره دوستي، په دوی کې په هر یوه صفت کې د تفکر ډېر لوی امکان سته او دا لار هغو خلکو ته خلاصیږي کوم چې په دوی کې د هر صفت علم بالکل هغه ډول پېژني څنګه چې په دې کتاب کې موږ بیان کړی دي، د دې یوه طریقه دا ده چې مرید دخپلو اصلاحولو صفاتو فهرست جوړ کړي او بیا په دوی کې چې دی کوم کوم صفتونه حاصل کړي، پر هغه خط راکش کړي او بیا دبل په حصول کې لګیا سي (او دغه رنګه ټول مکمل کړي).

په دې سلسله کې یو امکان دا هم کېدای سي چې پر بعضي تفکراتو به دی زیات زور ورکوي کوم چې پر ده زیات حاوي وي یعني زیات پکښې مبتلا وي مثلاً یو عالم د دې ټولو بدو صفتونو څخه د

خلاصون سره سره د يو شي څخه خالي نه وي چي دی پخپل علم او فضل باندي نازيږي، او د شهرت تمنا لري، د داسي عالم د پاره ضروري ده چي په دې کارونو کي د ډير تفکر څخه کار واخلي او سوچ دي کوي چي د دې څخه نجات به څنګه حاصليږي؟ چي د خلو عدم او وجود د ده پاره برابر سي او دی همه تن په الله ﷻ کي د مشغولېدلو قابل سي، د تفکراتو دا ميدان بې اندازې فراخ دی، او د دې څخه معلوميږي چي که بنده په دې هلاکوونکو او نجات ورکوونکو صفتونو کي تفکر کول غواړي نو د دې سلسله لامتناهي ده، او تفصيلات بيانول يې ممکن نه دي چي په بيان کي راوړسټل سي. والسّلام.

**دويم ميدان:** د هغه تفکر دی کوم چي دا الله ﷻ سره متعلق دی او دا تفکر د الله ﷻ په ذات، يا د الله ﷻ په صفاتو يا افعالو يا صنائعو کې کېدای سي او په دې کي شک نسته چي په دوی کي بزرګ ترين مقام خو د صفاتو او د ذات حق د تفکر دی، لېکن خبره دا ده چي په خلګو کي د تفکر طاقت نسته هغوی د دې متحمل کېدای نسي د دوی عقلونه هلته نسي رسېدای، ځکه چي شريعت د دې تفکر څخه خلګ منع کړي دي، اوس په دې کي چي کومه سختي ده نو هغه په دې وجه سره نه ده چي د الله ﷻ ذات پټ دی بلکي ځکه ده چي روښانه دی خو دومره چي د بنده کمزوري سترګي او ضعيف بصيرت د دې تاب نسي راوړای او تاب راوړل خو لا څه کوې چي بې هو ښه کېدل يې لازمي دي، لکه چوپرک چي د ورځي ګرځيدای نسي، ځکه چي د ده کمزوري سترګي د لمر د رڼا برداشت نسي کولای نو دی د ورځي څه نه ويني نو دا خو د لمر پټوالی نه دی بلکي تېزه رڼا ده، او مانبام چي لمر پټ سي نو دی بيا هر څه ويني، دا درجه د عوامو ده لېکن صدّيقانو او بزرګانو ته د دې نظر طاقت وي، يعني دوی د دې نظارې تاب درلودلای سي که څه هم هميشه دوی هم تاب نه لري، او که دوی کوشش وکړي هم نو خپل ځان بې طاقته ومومي لکه څنګه چي بنده لمر لېدای سي لېکن دا ډول نه چي هميشه ورته ګوري ځکه چي په دې سره د نظر ضائع کېدلو خطره وي نو د الله ﷻ د ذات په باره کي بزرګانو ته که د څه حقيقتونو علم حاصل هم سي نو دا اجازت ورته نه وي چي عامو خلګو ته د هغه اظهار وکړي، او که کول هم وي نو په داسي ډول الفاظو کي يې کولای سي کوم چي بشري مقاماتو ته نژدې وي مثلاً د الله ﷻ د پاره د عالم مريد او متکلم الفاظ استعمالول ځکه چي بنده د خپلو صفاتو په جنس سره په دې خبرو پو هېدای سي ليکن دا صرف تشبيه وي نو ور سره دا هم ښوول ضروري وي چي دالله ﷻ خبري ستاسو د خبر وپه ډول نه ويْ چي د حروفو يا آواز حاجت ورته وي يا پکښي پيوستوالی وي، لېکن کله چي تاسو داسي ووايئست نو خبره به بيا د خلګو په ذهن کي رانسي، او انکار به وکړي چي دا څنګه ممکنه ده چي د الله ﷻ کلام د حرفونو او آواز څخه خالي وي، دا هغه

صورت دی کوم چې هغه وخت راپېښېږي چې کله خلکو ته دا وویل سي چې د الله ذات ستاسو د ذات په ډول نه دی څکه چې نه هغه جوهر دی نه عرض نه په یو ځای کي دی نه پر یو ځای دی نه په یو جهت کي، هغه د دنیا څخه لیري هم نه دی او نژدې هم نه دی هغه په دنیا کي دننه نه دی لېکن د ماندي څیني هم نه دی او د دې خبرو څخه خلک (د ناپوهي په وجه) انکار کوي او ناممکني ور ته وایي. اوس غوره دا ده چې دا مسئله بالکل ونه څېړي او نه په دې کي تفکر کوي، لېکن کاملانو ته اجازت دی لېکن دهغو هم حیرانه او متعجّبه کېدل لازمي دي، نو غوره دا ده چې د ده عظمت د عجیبو، غریبو صنعتونو او مظاهرو څخه وپېژندل سي چې د دې عالَمِ موجودات هر شئ د هغه د عظمت او قدرت د تولو څخه یو نُور خو دی که د لمر د لیدلو طاقت په چا کي نه وي نو رڼا خو یې لیدلای سي چې هر شئ په روښانه دی.

دریم میدان: دا هغه تفکر دی کوم چې د الله ﷻ په عجیب او غریب مخلوق کي کول کیږي او په دې سلسله کي دا پېژندل ضروري دي چې په دې د موجوداتو په عالم کي چې څه هم دي، ټول د الله ﷻ د صنعت کړی او تخلیق احسان مند دی او هر شئ پر خپل خپل ځای عجیبه او غریبه دی، او په اسمان او ځمکه کي یوه ذرّه هم داسي نسته چې په زبانِ حال سره د خپل پیدا کوونکي تسبیح او تقدیس کي مشغول نه وي او دانه وایي چې دا دی کمالِ قدرت، او د دې نوم دی "علمِ بې نهایت". او د الله ﷻ د دې عجائبو او غرائبو شمار دومره بې اندازې او بې حسابه دی چې بیانول یې هم ممکنه نه دي بلکي که ټول دریابونه سیاهي (رنګ) سي او ټولي درختي قلمونه سي او ټول مخلوق پر دې موضو لیکل شروع کړي او خپل ټول عمرونه پکښي ختم کړي نو دوی چې څه هم ولیکي نو د اصل حقیقت به یوه معمولي غوندي حصه هم نه ور ته ویل کیږي، لکي چې ارشاد دی: قُل لَّوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِّكَلِمَاتِ رَبِّي لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ أَن تَنفَدَ كَلِمَاتُ رَبِّي وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهِ مَدَدًا (الکهف:۱۰۹) (ای محمّد ﷺ! ته ووایه که زماد رب د خبرو لیکولو د پاره سمند سیاهي (رنګ) سي نو زما د رب د خبرو ختمېدلو څخه مخکي به سمندر ختم سي که څه هم د دې سمندر په ډول یو بل سمند یې مدد ته راولو) نو په مختصره توګه داسي ویل کیږي چې مخلوق پر دوه قسمه دی په دوی کي هم یو قسم داسي دی چې د کوم څخه موږ بالکل بې خبره او ناواقفه یو نو په دغه کي به تفکر څنګه وي؟ ارشاد دی: سُبْحَانَ الَّذِي خَلَقَ الْأَزْوَاجَ كُلَّهَا مِمَّا تُنبِتُ الْأَرْضُ وَمِنْ أَنفُسِهِمْ وَمِمَّا لَا يَعْلَمُونَ (یس:۳۶) (هغه پاک ذات دی کوم چې ټول قسمونه جوړې جوړې پیدا کړل هغه نباتات چې راشنه کوي یې ځمکه

او پخپله د دې قسمونو هم او د هغو شیانو هم کوم چې لا اوس یې دوی نه پیژني) او د کوم قسم شخه چې موږ واقف یو د دې خپله دوه قسمونه دي او د دوی شخه بیا یو قسم هغه دی کوم چې موږ په سترګو نه سو لیدلای لکه عرش، کرسي، فرشتې، بلاګانې، پیریان او د دوی همجنس نور مخلوقات چې په دنیا کې د تفکر طریقه هم په کوچني غوندې کتاب کې بیانول سخته ګرانه ده.

نو موږ صرف پر هغو شیانو اکتفا کوو کوم چې موږ پخپلو سترګو سره لیدلای سو یعني اسمان، لمر، سپوږمۍ، ستوري او د ځمکې پر مخ مختلف قسم نباتات او نور......، او د بنده شخه ماسوا چې کوم حیوانات او ساکنین مخلوق دی تر دې چې بنده ته ورسیږي کوم چې په مخلوق کې عجیب ترین دی او بیا چې شه د ځمکې او آسمان په مینځ کې موجود دی، مثلاً وریځ، باران، واوره، ږلۍ، رعد، برق، شنه او زرغونه او هغه ټول علامات کوم چې په هوا او فضا کې دي، نو ګویا دا یوه لنډه غوندې خلاصه ده د هغو شیانو چې فکر په کې کېدای سي، اوس دیو څو ذکر په لنډه طریقه سره کوو:

ارشاد دی: وَكَأَيِّن مِّنْ آيَةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يَمُرُّونَ عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُونَ (یوسف:۱۰۵) (څومره د قدرت علامې په اسمانونو او ځمکه کې دي چې دا خلک پر تېرېږي او هېڅ ځیني کوي) دارنګه ارشاد دی: أَوَلَمْ يَنظُرُوا فِي مَلَكُوتِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا خَلَقَ اللَّهُ مِن شَيْءٍ [آل عمران: ۱۸۵] (آیا دوی د آسمانونو او ځمکې حکمتونه او هغه شیان کوم چې الله ﷻ پیدا کړي دي نه دي لیدلي) یو بل ځای فرمایي: إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيَاتٍ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ (آل عمران:۱۹۰) (یقیناً د اسمانونو او ځمکې په پیدا کولو کې او د شپې او ورځې په بدلولو کې د عقلمندانو د پاره علامې دي)، نو ای عزیزه! په دې علامه کې کومه علامه چې تا ته نژدې ده هغه ته یې او ستا شخه ډېر عجیبه شیٔ پر مخ د ځمکې نسته، او د دې سره سره ستا حالت دا دی چې ته د خپل ځان شخه غافل او ناخبره یې، حال دا چې هر وخت دا آواز کېږي چې: ای انسانه! خپل ځان ته وګوره نو زما عظمت او لوی شان به وویني، ارشاد دی: (پخپله خپل ځان ته تاسو نه ګورئ؟) بس اول خو په پر خپله ابتداء باندې غور وکړه چې ته راغلی د کوم ځای شخه یې او شنګه؟ آخر ته خو د اوبو د یوې قطرې شخه پیدا سوی یې او د اوبو دا قطره اول د پلار په شا کې وه بیا دغه ستا د پیدایښت تخم سو او د مور رحم د دغه تخم د پاره ځمکه سوه، او د شهوت مؤکّل دغه تخم په دغه ځمکه کې وکری او د حیض په وینو باندې د دغه تخم اوبه کول شروع سول، او دغه رنګه نطفه او حیض ستا د ذات ابتداء سول، بیا دغه نطفه د وینې ټکره سوه بیا غوښه سوه بیا پکې روح واچول سو او بیا د دغه قطرې د اوبو

شخه څومره د مختلف شیانو جوړ بلل شوي سول مثلاً: هډوکي، پوست، رګونه، پلې، هډوکي او نور لو بیا استاد اندامونو ترتیب د هغو شیانو څخه وسو، سر ګول (ګرد) شکل اختیار کړی لاسونه پښې اوږده سوه او په دوی کې په هر یو کې پنځه پنځه ګوتې جوړې کړل سوې، او مخ ته یې سترګې، پزه، غوږونه، خوله، ژبه وا نور اندامونه پیدا کړل، او په دننه حصه کې یې معده، ځیګر، پښتورګي، ترېخې، توری، رحم، مثانه او کولمې او نور جوړې کړې،او هغه رنګه د هر یو شکل د بل څخه بالکل مختلف دی صفتونه یې هم د یو بل څخه جلا دي، او مقدار یې هم جلا جلا دی، بیا یې هر اندام په څو څو حصو کې تقسیم کړی مثلاً په هره ګوته کې درې درې بندونه او نور جوړ کړل، او د هر یو اندام په ترکیب کې هډوکي، غړمن، رګونه، پلې او هډوکي شامل کړل، بیا سترګو ته ګوره چې په مقدار کې ډیرې کوچنی دي لیکن پر اوو ۷ طبقو مشتملې دي او هره طبقه جلا جلا صفتونه او خاصیتونه لري چې که یوه طبقه پکښې خرابه سي نو دنیا به در باندې تیاره سه، حق خو دا دی چې که د یوې سترګې عجائبات په تفصیل سره بیان کړل سي نو بېشمېره پاڼې (ورقې) به په ډکې سي، دې څخه وروسته که په هډوکو کې غور وکړې نو معلومه به سي چې د یو معمولي غوندې نرمو اوبو څخه یې څومره سخت او مضبوط بدن جوړ کړی دي د هر هډوکي جوړ لو حصه د شکل او ساخت په لحاظ سره او یو د مقدار په اعتبار سره د یو بل څخه په جلا انداز باندې دی، څه ګول دي، څه اوږده دي، او یو څه پلن دي، او یو څه داسې دي چې د دننه څخه خالي او بعضې ډک، او بیا ټول د یو ترکیب او یو مقدار کې په صورت کې چې خاص حکمتونه پکښې پټ دي بلکې په هر یوه کې څو څو حکمتونه دي، او بیا دا هډوکي د بدن پایې (پیلران) دي چې د ټولو اندامونو بنیادونه پر ولاړ دي که د سر څخه د پښو پورې یو هډوکی وای نو ستا د پاره به کښېناستل کښته کېدل ممکنه نه وای، او که د یو بل څخه بالکل جلا وای نو بیا به د بدن سیده کول ګران وای، په پښو کې دننه څومره مُهرې (د هډوکي ټکرې) دي چې د یوې بلې سره پیوند دي دا شئ د بدن د یوه خوا بلې خوا اړولو کار کوي، بیا چې کوم ځای یو هډوکي د بل سره پیوست دی هلته یې د یو بل سره په رګونو او پلو کې بند کړی دي او مضبوط کړي یې دي چې په دریدلو او کښېناستو کې آسانې وي او په هره مهره کې یې څلور زاګرې (غوټې) د ګولې په ډول پیدا کړې دي او لاندې یې ځینې څلور دوغلې جوړې کړي دي چې دغه غوټې په دې دوغلو کې بندې سي او د مهرو کنارې یې د لیچو په ډول بهر را ایستلې دي چې کومې پلې چې د مضبوطولو د پاره د دوی څخه را تاو دي په هغو کې ومښلي،

او ستا په سر کې پنځه پنځوس ۵۵ هډوکي شامل دي چې د باریکو درزونو په ذریعه د یو بل سره

پیوست دي چي که یو خوړ سي نو بل به صحیح سلامت وي او ټول به نه ماتیږي، او غاښونو ته ګوره چي څیني پلن دي چي خوراک میده کړي، د څینو سرونه تیره دي چي د خوراک شئ پرې کړي، کوچنی کوچنی ټکرې څیني جوړي کړي او د پلنو غاښونو ژرندي ته یې حواله کړي. بیا ستا څټ یې د اوو ۷ مهرونو څخه جوړ کړی دي چي رګونه او پلې یې څیني چاپیره (شاوخوا) کړي دي او سري یې ور سره پیوست کړی دي په شا کي یې څلورویشت ۲۴ مهري جوړي کړي دي چي بیا یې څټ پر اینبي دي، بیا د دې مهرو په پلنوالي کي یې دسیني هلوکي پیدا کړي دي، او دغه رنګه نور ویر هلوکي دي چي تفصیل یې ډېر اوږد دی او په مجموعي توګه ستا په جسم کي یې ۲۴۷ هلوکي پیدا کړي دي (د طب په جدیدو کتابونو کي دا شمېر ۲۰۶ دی او دابه صحیح وي په هرحال امام صاحب د سر هلوکي ۵۵ ښوولي دي او په طب جدید کي ۱۴ دي نو د ۴۱ فرق راځي که دا ۴۱ د ۲۴۷ څخه تفریق (منفي) سي نو بیا به ۲۰۶ پاته سي، شاید چي امام صاحب د سر د هلوکو سره غاښونه شمارلي وي، مترجم) او هر یو یې تر یو جلا حکمت لاندي کړی دي، چي ستا کار چلیږي، او دا ټول د اوږو د دغه نرمي قطرې څخه جوړ دي، او په دې هلوکو کي که یو هلوکی هم کم سي نو ته به بېکاره سې او که یو پکښې زیات سي نو بیا به خلل راسي، بیا تا ته چي څرنګه د دې هلوکو د حرکت ضرورت وو، نو ستا په اندامونو کي یې ۵۲۷ عضلات (پلې) خواره کړل د هري پلې شکل د ماهي په ډول دی یعني مینځوی حصه یې پراخه ده او سرونه یې باریک دي هسي خو ټولي پلې یو ډول نه دي څوک کوچنی دي څوک غټي، او د هري پلې ترکیب دغوښې او پردې سره دی یعني د هري پلې په غوښه او پلو باندي پرده د یو غلاف په ډول خوره ده، ۲۴ عضلات خو صرف د سترګو او باتوګانو د حرکت د پاره پیدا سوي دي، دغه ډول د نورو عضلاتو اندازه هم کیږي جلا جلا تفصیل یې ډیر اوږد دی. بیا یې ستا په بدن کي درې حوضونه پیدا کړي دي چي څو څو نهرونه مختلفو طرفونو ته څیني روان دي، په دوی کي یو حوض د دماغ دي چي د هغه څخه د پلو (عضلاتو) نهرونه ټول بدن ته ورسیږي چي د حرکت او ګردش طاقت پکښې پیدا وي یو نهر څیني د شا د هلوکو وطرف ته جاري دي چي د دماغ څخه لیري نه وي کنې وچې به سي، دویم حوض ځیګر (اینه) ده چي د اوو اندامونو ټول رګونه څیني خواره دي او د دې حوض څخه خوراک ورته ملاویږي، دریم حوض زړه دی چي رګونه ټول بدن ته څیني تللي دي چي روح په دوی کي روان دی او د دغه ځای څخه اوو اندامونو ته جاري او ساري دی، نو دا تفکر تا ته په هر هر اندام کي کول پکار دي چي آخر د دې تخلیق خالقِ حقیقي څنګه او د څه د پاره کړي دي؟ د سترګو اووه ۷ طبقې دي او د هري یوې ساخت او شکل په

دې اندازې سره دی چې د دې شخه غوره تصور نسي کېدای پر سترګو باڼوګان د دې د پاره دي چې ښایسته وي او قوّت ځیني حاصل کړی او چې ګرز او دوړي وي نو بندي یې کړي چې خاوري او نور څه سترګو ته دننه ولاړې نسي، او بیا د لوړي خوا څخه که یو خاشه یا خاوري په سترګو کي ولګیږي نو باڼوګان یې ځیني ساتي، او د دې ټولو څخه عجیبه او غریبه خبره دا ده چې د سترګو توری چې د هغه د یو کوچنی دانې څخه غټ نه دی په دې کي اسمانونه او ځمکه سره د دومره پراخې په نظر راځي، یعني چې سترګي خلاصي کړي نو فوراً آسمان سره د دومره لیرې والي څخه ویني، غرض که د دید او نظارې په سلسله کي د سترګو عجائب یا بلکي د هینداري کتولو عجائب او په دې کي ښکاره کېدونکي غیر حقیقي شیان (چې صرف تصویرونه وي) بیانوې نو څو څو ضخیم جلدونه به تیار سي، بیا یې ستا غوږونه جوړ کړل او دننه یې پکښي ترخې غوندي خیري پیدا کړې چې یو چینجی او بل شئ پکښي په آساني سره دننه نسي بیا د ده جوړښت یې د یو کوجي په ډول جوړ کړی چې آواز جمع کوي او د غوږ سوري ته یې رسوي او تاو را تاو (پیچلې) یې جوړ کړی چې که په خوب کي یو حیوان دننه ځي نو چې لاره یې اوږده وي چې ته پر راویښ سې، که موږ د خولې او پزې او نورو اندامونو تفصیل بیانوو نو ډېر اوږد به سي او زموږ مقصد د دې څخه دا دی چې تا ته د تفکر لاره معلومه سي، و د هر اندام په باره کي ته د تفکر سره عادت سې، او ته سوچ وکړې چې د کوم غرض د پاره یې دا پیدا کړي دي، او بیا دا تفکر تا ته د دې د خالق د حکمت عظمت لطف او کرم او علم او قدرت د شان څخه په خبرولو کي معاون ثابت سي، چې څنګه ده ستا سر او پښې یوه عجائب خانه جوړه کړې ده، او بیا دا باطني او دننه عجائب او دماغي خزانې او حسّي قوّتونه کوم چې یې ستا په بدن کي ایښي دي نور زیات عجیبه او حیرانوونکي دي، او څه چې په سینه او نس کي دننه دي دغه هم په اندازې عجیبه دي، په دې وجه چې معده الله ﷻ د یک په ډول جوړه کړې ده چې همیشه په جوش کي وي، او په کومه کي چې خوړلې چنبلې په ښه ډول سره دو باره پاخه سي بیا ځیګر د دې طعام څخه وینه جوړه کړي چې رګونه یې اُوو اندامونو ته ورسوي او بیا دغه د ویني رګ توزی قبول کړي او دا هغه رګ وي کوم ته چې (په طب کي) صفرا وایي، بیا د دغه ویني تل چې هغه ته سودا وایي تریخی قبول کړي، او بلې خوا ته پښتورګي د دغه ویني څخه اُوبه جلا کړي، مثانې ته یې رسوي، غرض بچه داني او نور د ولادت آلات هم دغه ډول حیرانوونکي دي، او ظاهري او باطني قوّتونه او حواس مثلاً بصارت، سماعت، عقل، علم او داسي نور شیان کوم چې د بنده د پاره ر پیدا سوي دي څه لږ حیرانونکي نه دي.

د خدای شان! که یو مصوّر پر دیوال یو ښکلی تصویر جوړ کړي نو د هغه استاذي به تا په حیراني کي ډوب کړي او تعریفونه به یې کوې لیکن بل طرف ته د دې پېژندلو سره سره چي د یوې قطرې اوبو څخه (مصوّر حقیقي) څنګه ظاهري او باطني نقش اونګار پیدا کړی دی او لطف دا چي نه یې قلم په نظر راځي او نه دغه نقاش پخپله چیري ښکاري تا ته پر دې د هیڅ ډول تعجب او حیراني نه کیږي، او دې نقاش عظمت تا نه حیرانوي، او د ده بې پناه کمال او لامتناهي علم تا په تعجب کي نه اچوي، او صنعت ګري یې ستا په هوښ اوحواسو باندي اثر نه کوي، د هغه په کامل شفقت او تمام رحمت باندي ته متعجبه کیږې نه، چي څنګه یې د مور په رحم کي تا ته خوراک در رسوی، حال دا دی چي که دغه وخت ستا خولې ته د حیض د وینې د ټاکل سوي اندازې څخه یوه ذرّه هم زیاته ستا معدې ته داخله سوې وای نو پر د غه ځای به ختم وای نو د نوم (ناف) په ذریعه یې ستا معدې ته خوراک رسولو، او کله چي ته د رحم څخه بهر راغلې نو نوم دې بند سو خوله دې خلاصه سوه چي ستا مور تا ته د ضرورت په اندازې خوراک در کوی، او دغه وخت ستا جسم ډېر کمزوری وو ثقیل خوراک دې نه سو کولای نو د مور شیدې یې ستا خوراک جوړې کړې، د مور په سینه کي یې شیدې پیدا کړې او په سرونو کي یې ورته ګُلکې (تیان) ولګول چي دغه په خوله کي نیسې شیدې خورې داسې نه چي شیدې په یو وار ستا په خوله کي را توی سي او ته یې بیا طاقت نه سې درلودلای او بیا ګویا یو ډو یې یې د مور په سینه کي کښېنولو چي هغه سره وینه صفا کوي سپیني شیدې ځیني جوړوي چي هغه په ډېرلطیف او پاک شکل کي تا ته رسوي او ستا محبت یې ستا پر مور داسې مسلّط کړی چي که ته یو ساعت وږی سې نو د هغه صبر او قرار حرام سي او پرېشانه سي، څنګه چي شیدو ته د غاښونو ضرورت نه وو نو تر خاصي مُدې پوري یې ستا غاښونه پیدا نه کړل چي ته د مور سینه زخمي نه کړې او چي په تا کي د خوراک طاقت پیدا سو نو غاښونه یې در کړل، چي سخت طعام خوړل هم ستا د پاره آسانه سي، نو بیا به ته داسي سړي ته رونډ نه وا یې نو څه به ورته وا یې چي دا هر څه وینې او د داسي خالق د عظمت څخه بې هو ښه کیږې نه او د ده پر بې اندازې لطف (مهرباني) او کامل شفقت حیرانیږې نه او د ده د جلال عاشق کیږې نه؟ افسوس! پر هغه بدبخته حیوان صفته او غافل انسان کوم چي په دې عجائباتو کي تفکر نه کوي، تُف! پر هغه چي د خپل بدن پر جوړښت او ساخت حیرانیږي نه، افسوس! پر هغه چي دا عقل فضول مصروفوي چي ده ته الله ﷻ ور کړی دی او چي هغه د ټولي دنیا په ټولو شیانو کي قیمیتي دی، افسوس دی! پر هغه چي هغه ته د دې څخه سوا هیڅ خبر نه وي چي وږی سي خېټه مړه کړی غصه سي نو د چا سره ومښلي او د حیوانانو په ډول

دمعرفت د گلشن د رنګارنګ نظارو څخه بې خبره او محرومه وي چې هغه الله ﷻ د ده د پاره (بلکې په ده کې دننه) پیدا کړي دي، د خبر تیا په توګه د بنده د پاره دا کافي دي، حال دا چې تر کومه پورې چې د ده د تخلیق د عجائبو او غرائبو تعلق دی دا بیان د هغه یو لږه حصه هم نه ده،او په دې کې ډېر عجائبات د غوماشې څخه واخله تر فیل پورې په ټولو حیواناتو کې هم ښکاره دي او تفصیل یې ډېر اوږد دی.

نو انسان ته پکار دي چې د دنیا په ټولو مخلوقاتو لکه ځمکه، معدنیات، مچمچې، دریابونو، اسمانونو او ستورو کې تدبّر او تفکّر وکړي، او د الله ﷻ د معرفت د باغ ټول ټول، رنګارنګ ګلونه وویني او د لوی ښتن د لوی ذات او غټ قدرت او پر موږ بانديې د بې اندازې لُطف څخه خبر سي.

## اتم اصل: د توکّل په باره کې

پوه سه! چې توکل د الله ﷻ د دربار د مقرّبینو د مقاماتو څخه یو عظیم الشان مقام دی چې درجه یې ډېره بزرګه، غټه او لوړه ده لېکن د دې علم في نفسه نهایت نازک او مشکل دی او پر دې عمل کول نور زیات مشکل دي، او دا مشکل ځکه پرېوځي چې که یو سړی داوګنې چې په کارونو کې د الله ﷻ څخه ملسوا د بل یو شيءِ هم څه اثر یا عمل داخل دی نو ده په توحید کې نقص دی او که ټول اسباب د مینځ څخه پورته کړي نو دا هم پر شریعت طعن سي، او که اسباب، اسباب تصوّر نه کړي نو دا د عقل خلاف دي، او که سبب خو سبب وګنې لېکن توکّل (بروسه) د الله تعالی څخه ملسوا پر بل وکړي نو توحید به یې ناقص سي، نو د توکّل یو داسې شرح چې هغه عقل، شریعت او توحید ټول جمع کړي یا دې ټولو ته جامعه وي ډېر ګران شيءِ دي او ډېر ژور علم غواړي د هر چا د پاره د دې پېژندل او لږده کول څه مذاق (پسخند اوملندې)نه دی بلکې ډېر ګران دی، څنګه چې موږ پر دې موضوع اول د توکّل د فضیلت په باره کې څه وایو، بیا به یې حقیقت ښیو او په آخر کې به د دې د احوالو او اعمالو په باره کې بیان کوو:

## د توکّل فضیلت

الله ﷻ هر چاته د توکل تاکید فرمایلی دي او دا یې شرط د ایمان مقرر کړی دي فرمایي: وَعَلَى اللَّهِ فَتَوَكَّلُوا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ (المائدة: ۲۳) (او پر الله ﷻ توکّل کوئ که تاسو مؤمنان یاست) او فرمایي:

إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِينَ (بې شکه الله ﷻ د توکل کوونکو سره محبت کوي) [آل عمران]. او ارشاد دی:
وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ [الطلاق:۳] (څوک چې پر الله ﷻ توکل وکړي نو الله ور ته کافي دی)
او فرمايي: أَلَيْسَ اللَّهُ بِكَافٍ عَبْدَهُ [الزمر:۳۶] (آيا الله ﷻ د خپل بنده د پاره کافي نه دی) او د دې مضمون آيتونه په کلامُ الله کې ډېر موجود دي، نبي کريم ﷺ فرمايي چې: کله ټول امتونه ما ته وښول سوه نو ما چې خپل امت ته وکتل نو تر غرونو بيابانو پورې دوی خواره وو، د امت دې ډېروالي زه په تعجب کې کرم او بې اندازې خووشحالي را ته حاصله سوه، الله وفرمايل: آيا ته خوشحاله سوې؟ ما وويل: چې اې زما پروردګاره زه ډېر خوشحاله سوم، وبې فرمايل: نو واوره! په دوی کې به اويازره بې حسابه جنت ته ليږم، پر دې باندې اصحابو په بې تابي سره عرض وکړی چې يا رسول الله ﷺ! دغه به کوم خوش نصيبه وي چې بې حسابه به جنت ته ليږل کيږي؟ نبي ﷺ وفرمايل: هغه خلک چې پر سحر جادو، منترونو، داغ، او فال باندې بروسه نه کوي بلکې د دوی توکل صرف او صرف په الله ﷻ باندې وي، پر دې باندې عکاشه رضي الله عنه ودريدی عرض يې وکړی يا رسول الله ﷺ زما په حق کې دعاء وفرماياست چې ما هم الله ﷻ په دغو اويازرو کې راپورته کړي، نبي ﷺ دعاء وکړه چې اې پروردګاره خپل دا بنده په دغو کې کړه، ورووسته يو بل صحابي ودريدی عرض يې وکړی يا رسول الله ﷺ زما د پاره هم دا دعاء وفرماياست: نبي ﷺ وفرمايل اوس عکاشه رضي الله عنه په دې کې مخکې سوی دی، او وبې فرمايل که تاسو پر الله تعالی باندې توکّل وکړئ لکه څنګه چې د توکل حق دی نو الله تعالی به تاسو ته دغه رنګه رزق درسوي لکه چې مرغانو ته يې رسوي چې سهار وږې د خپلو ځالګيانو څخه ووځي او ماښام ماړه واپس راځي، او فرمايي: کوم سړی چې د الله ﷻ پناه اخلي الله ﷻ د ده ټول کارونه پوره کوي او د ده رزق د داسې ځای څخه ده ته رسوي د کوم چې ده چيرې سوچ هم نه وي کړی، او کوم سړی چې د دنيا پناه طلب کوي هغه الله ﷻ دنيا ته پرېږدي.

## د توکل په باره کې روايتونه

کله چې کافرانو حضرت ابراهيم عليه السلام په منجنيق کې کېښنولو چې اُور ته يې ور وغورځوي نو ده عليه السلام وويل: حَسْبِيَ اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ بيا چې هوا ته پورته سو نو حضرت جبرئيل عليه السلام پوښتنه ځيني وکړه که يو حاجت وي نو ووايه! ده عليه السلام وويل تا ته مې يو حاجت نسته، او دوی ځکه دا وويل چې د: حَسْبِيَ اللَّهُ چې کوم عهد او وعده ده کړې وه، په دې وجه چې الله د دوی ساتنه وکړي، دا وجه وه چې

الله ﷻ د وفا په صفت سره دوی وستایل: وَإِبْرَاهِيمَ الَّذِي وَفَّىٰ (النجم: ۳۷) (او د ابراهیم ﷺ کوم چې احکام په پوره توګه سره پر ځای راوړل). الله ﷻ پر داؤد ﷺ وحي نازلې کړې چې: اې داؤده: کوم بنده چې د ټولې دنیا لمن پرېږدي زما لمن ونیسي ده ته که ځمکه او اسمان یو ځای سي نو که ورکول وغواړي نو هم یې نه سي ورکولای، ځکه چې زه د دې ټولو د مکر او فریب څخه ساتونکی یم او ده هر مشکل آسانه کوم.

سعید بن جبیر ﷺ وایي چې زه پر لاس یو ولړ لړم وچیچلم، زما مور ما ته قسم را کړی او ویې ویل لاس را دې خوا کړه چې زه منتر پر وو ایم دم یې کړم. ما بل لاس کوم چې روغ وو، د منتر د پاره ور مخکې کړی چې د دې قسم پوره سي، ځکه چې ما ته د نبي ﷺ دا ارشاد یاد وو چې کوم سړی پر منتر باندې بروسه کوي متوکّل نه دی. ابراهیم ادهم رحمه الله وایي چې ما د یو راهب څخه پوښتنه وکړه چې د کومه یې خورې؟ هغه وویل چې د دې پوښتنه خو د خوراک ورکوونکي څخه وکړه چې هغه یې د کوم ځای څخه رالېږي ماته د دې څه علم دی؟ د یو سړي څخه خلکو پوښتنه وکړه چې ته چې همیشه په عبادت کې مشغول یې نو آخر بوږي در ته د کومه راځي؟ هغه غاښو نو ته اشاره وکړه ویې ویل چې چا دا ژرنده لګولې ده هغه اوړه کولو ته غله رالېږي. حرم بن حیان رحمه الله یو ولر د اویس قرني رحمه الله څخه پوښتنه وکړه چې زه مقام په کوم ځای کې وکړم؟ هغه جواب ورکړی چې: په شام کې، ما پوښتنه وکړه چې هلته به زما د رزق څه انتظام وي؟ اویس قرني وویل افسوس دی پر داسې زړونو چې پرهغوی شک غالبه وي!، پر داسې زړونو به نصیحت څه اثر وکړي؟

## د توحید حقیقت چې د توکّل بنیاد پر دې قائم دی

توکّل د زړه د حالاتو څخه د یو حال نوم دی او دغه حالت د ایمان ثمره ده او د ایمان ډېر بابونه دي چې د هغو څخه موږ د موضوع په اعتبار سره صرف د دوو بابونو ذکر کوو چې پر هغو ایمان راوړو ته توکّل وایي: د دوی څخه (۱) یو پر توحید ایمان راوړل دي (۲) دویم پر کمال لطف او رحمت باندې. (یعني د الله تعالیٰ پر کامله مهرباني او رحمت باندې)د توحید شرح او تفصیل ډېر اوږد دی ځکه چې دا هغه علم دی کوم چې د ټولو علومو نهایت او انتها ده نو موږ به دومره اندازه څیني بیان کړو پرکومو چې د توکل بنیاد قائم دی ځکه چې د ټولو څخه مخکې دا پېژندل ضروري دي چې دتوحید څلور درجې دي: (۱) یو د دې مغز دی (۲) بیا د دې مغز هم یو مغز دی (۳) یو د دې

پوستکی دی (۴) او یو د دې پوستکي پوستکی دی. گویا د توحید دوه مغزه او دوه پوستکي سول (او دغه یول د دې څلور درجې سوې) د دې مثال د جوز سره ورکول کیږي چې د هغه دوه پوستکي دي او یو مغز بیا د دغه مغز څخه چې کوم روغن (غوړي) وځي دغه د مغز مغز دی. اوله درجه دا ده چې په ژبه سره لا اله الا الله وواییي لیکن په زړه سره پر دې اعتقاد ونه ساتي، دا د منافق توحید دی. دویمه درجه دا ده چې د دې کلمې په معنی باندې په زړه سره اعتقاد هم وساتي لیکن د تقلید په توګه، لکه چې د عوامو وي یا د متکلم په یول چې په یو قسم دلیل سره یې لري.

دریمه درجه دا ده چې پخپله مشاهده سره معلومه کړي چې د هر شئ اصل یو دی او فاعل هم یو څخه زیات نه دی او د بل هیڅ فعل نسته او دا یو نور وي چې په زړه کې پیدا کیږي او د دې نُور څخه مشاهده هم حاصلیږي دا د یو عامي (امي) یا متکلم اعتماد نه وي، ځکه چې د دوی عقیده خو بس یوه غوټه وي چې د تقلید په وجه یا د دلیل په سبب سره د دوی پر زړونو باندې لګیږي، لیکن د امشاهده د زړه خلاصیدلو یو حالت دی چې ټولې غوټې هم ور سره خلاصې سي او ټول بندونه مات سي، او ښه فرق یې دا وي چې د دې خلکو په مینځ کې که یو وواییي چې فلانی سردار په کور کي موجو د دی او دا پر دې بنیاد باندې وواییي چې فلاني ویلي دي چې دی په کورکي دي، دا د عوامو تقلیدي اعتقاد دی، چې دوی صرف د مور او پلار څخه اوریدلي وي دغه د دوی عقیده جوړه سوې وي، او دویم وواییي چې سردار په کور کي موجود دی او د خپلي عقیدې بنیاد یې پر دې دلیل وي چې آس او غلام یې د کور پر دروازه لیدلي وي، نو دې وجه ښکاره ده چې د کور مالک سردار په کور کي سته، دا د متکلم اعتقاد دی چې دلیل او ثبوت د هرشئ بنیاد ګني، او یو بل سړی کورته ننه ورسي پخپلو سترګو سره ووینی او د خپلي مشاهدې پر بنیاد وواییي چې سردار په کور کي دی دا مثال د عارفانو د توحید دی، د دې توحید درجه که هر څومره ښه ده خو په دې کي دا کمی باقي پاته کیږي چې دې مقام ته هم عارف ورسیږي نو د خالق سره مخلوق هم ویني او دا تصور کوي چې ټول مخلوق د خپل خالق څخه ښکاره سوي دي ګویا په دې درجه کي د توحید هم کثرت ته دخل وي او تر څو چې د دوئي (دوه والی) داکیفیت باقي وي او عارف د دوئي د مشاهدې څخه بهر سوی نه وي تر هغه وخته دی په تفرقه کي وي او دجمع مقام ته نسي رسیدای او دامقام د کمال توحید نه وي. څلورمه درجه دا ده چې ما سوا د یوه څخه بل نه ویني او هر څه ورته یو ښکاري او هر څه چې دي یو یې ګني، نو په دې مشاهده کي د کثرت او تفرقې ګزر ممکن نه وي او نه پکښي د دې یو دخل وي، دا هغه درجه

ده کومې ته چې صوفیان: فناًفي التوحید وايي، څنګه چې منصور رحمه الله خواص رحمه الله ولیدی چې په ځنګل کې ناست په زار زار ژاړي، پوښتنه یې ځیني وکړه څه کوې! . خواص رحمه الله ورېل خپل قدم په توکّل کې صحیح کووم، منصور رحمه الله ورېل تا خو خپل عمر د باطن په آبادولو کې تېر کړی بیا دنېستۍ څخه به مقام توحید ته څنګه رسېږې؟

نو (د جوز مثال ته ګوره) د توحید دا څلور مقامونه دي: لومړی توحید د منافق توحید دی چې تول پټ او پټ دي لکه خراب جوز چې پټ وي په خوند کې بې مزې او تریخ وي، د دننه څخه بدشکله حال دا چې د بهر څخه ښین ښکاري، او که ونې سوځې نو دود وي او د لوړ تېزولو پر ځای اور مړ کوي او که په کور کې یې ایږدې نو هر څومره چې پروت وي نو د یو کار نه وي، لیکن پالتو (اضافي) ځای به یې نیولی وي او که یو کار کوي نو دا چې څومره ورځې پر جوز پاتې وي نو دننه پوستکی به تازه ساتي، او خرابوي به یې نه، دا حال د منافق د توحید دی چې د دې څخه ملسوا نور هیڅ پکار نه راځي، صرف دده پوستکی د توري د ګزار څخه ساتي، د پوستکي څخه مراد دې منافق بدن دی چې صرف په دې وجه د توري څخه خوندي وي چې په ژبه یې د توحید اقرار کړی وي، لیکن بدن خو یوه ورځ دغه رنګه ختمېدل دي نو چې کله بدن ولاړ سي او صرف روح باقي پاته سي نو د ده دا منافقانه توحید بیا هیڅ پکار نه راځي، لکه د خراب جُوز دننه پوستکی چې د سوځولو پکار هم نه راځي او صرف د دې د پلره ساتل کیږي چې دننه مغز د خرابېدو څخه خوندي سي کنې دغه پوستوکی د مغز په مقابله کې بېکاره او بې مرتبې وي.

دویم توحید د عامي (امي) او متکلم توحید وي چې د ده مغز یعني روح د دوږخ د اور څخه ساتي لیکن دغه که څه هم د ده پکار ضرور راځي لیکن بیا هم په ده کې هغه لطافت کوم ځای وي کوم چې په مغز او بیا خاص د مغز په روغنو کې وي، لکه څنګه چې د جوز مغز که څه هم مقصود هم وي او قیمتي هم لیکن که د ده مقابله د روغنو سره وکړل سي نو حیثیت به یې د درونداوالي څخه ملسوا نور هیڅ نه وي، یعني د مقصودي کېدلو او قیمتي کېدلو سره سره مغز پر خپل ځای کاملي صفایي ته رسېدلی نسي، دغه ډول د توحید دا دریمه درجه هم د کثرت، تفریقې او زیاتي څخه خالي نه وي نو د کمال درجه چې صفا او پاکیزه توحید فقط هغه دی د کوم تعلق چې د څلورمې درجې سره دی چې په دې کې حق او صرف حق باقي پاته سي او بس، د یو څخه ملسوا دی مؤحد ته نور څه ښکاره کیږي نه، تر دې چې د خپل ذات څخه هم بې خبره وي، او څنګه چې نور هر شئ د ده په نظر کې

نیست او نابود وي دغه ډول دی خپل ځان نیست کړي او خپل ځان ته نه وي بلکې لېدای یې هم نسي (بس په دیدارِ الهي کې ورک سي).

## دویم ایمان چي د توکل بنیاد پر قائم وي

موږ بیان کړي دي چي توکل د دوو ایمانونو ثمره ده، یو د توحید ایمان، دویم دا چي ته دا ایمان راوړې او پوه سې چي الله پیدا کوونکی دی او هر څه د هغه په سبب سره دي هغه د ټولو سره د رحمت حکمت او مهرباني معامله کوي، د هغه شفقت او عنایت د میږي او غوماشي څخه واخله ترښي آدم پوري پر هر شئ خور دی او شفقت هم داسې چي د مور پر بچي باندي د شفقت څخه د خالق پر خپل مخلوق شفقت ډېر زیات دی په دې الفاظو سره دا مضمون په حدیث کي راغلی دی، او ته پوه سه ا- چي دا جهان او څه چي په دې کي دي ټوله الله ﷻ په کمال جمال او لطف د حکمت سره داسې پیدا کړي دي چي د دې څخه د غوره تصوّر هم نسي کېدای او ته پوه سه اچي الله ﷻ یو شئ د خپل رحمت او مهرباني څخه محرومه کوي نه، او کوم شئ چي یې پیدا کړي دي دغه چي یې څنګه غوښته هغه شان یې پیدا کړی دي، که د ټولي دنیا عقلمندان را جمع سي او د پوره او کاملي درجې عقل پکښې وي او دوی غور وکړي چي فلانی شئ، فلانی وښته یا دغوماشي وزر که داسې نه وای داسې وای نو ښه به وای کوچنی وای یا لوی وای یا فلانی شئ د بد صورتی پر ځای ښایسته وای نو ښه به وای نو که هر څومره کوشش وکړی خو په یو شئ کي به یو عیب یا نقص په نظر رانسي او آخر اعتراف به وکړي چي دا هر څه چي څنګه دي هم دغه رنګه پکار دي، چا ته چي موږ وایو چي فلانی شئ ښه نه دی نو په دغه کي د خالق کمال دا دی چي دغه ښه نه دی دغه نقص د ده ښه والي او عیب د ده حسن دی، که دغه بدوالي په ده کي نه وای نو دا به یې نقص وای او د ده متعلق به هغه حکمت هم فوت سوی وای د کوم د پاره چي دی جوړ سوی دی، ځکه چي که یو شئ هم ناقص نه وای نو د کامل اطلاق به پر یو شئ نه سوی کېدای او کامل ته به پخپله کمال لذت او خوښي څنګه حاصلېدای؟ ځکه چي کامل ته کامل هلته ویل کیږي چي په مقابله کي یې ناقص وي، د ښه شئ قدر او قیمت د بد په مقابله سره کېدای سي چي بد شئ نه وي نو ښه ته به څنګه ښه ویلای سو؟ او د ښه والي لذت به څیني څنګه حاصلېدای سي؟ د ناقص او کامل اندازه په مقابله سره کیږي، چي پلار نه وي نو زوی به چا ته وویل سي؟ او چي زوی نه وي نو د پلار اطلاق به پر چا کیږي؟ د دې ټولو پته او خبر هلته معلومیږي چي مقابله یې وسي، او مقابله همیشه د دوو یا د دوو څخه د زیاتو په مینځ کي وي، چي دوئي او امتیاز

پوره ته سي نو يو والی به پيدا سي دغه پول خو به د مقابلې بنياد ختم سي، او دا خبره هم په ذهن کي کښېنول پکار دي چي الله ﷻ خپلو کارونو ته د خپل حکمت په وجه د بندګانو څخه که پټ ساتلی دي او ظاهر کړي يې نه دي نو دا بالکل صحيح ده ځکه چي ستا ايمان خو پر دې خبري پکار دی چي هغه هر څه چي کوي ستا د خير وي او هغه ته داسي کول پکار وو. نو په دنيا کي چي څه هم دي، مرض وي، بې چارګي وي، ګناه، عصيان، کفر، هلاکت، تاوان، زيان، درد او غم، هر څه چي وي د حکمت الهي څخه خالي نه دي او څه چي څنګه دي د غه رنګه پکار وو، مثلاً ده ﷻ يو څوک مفلس پيدا کړی نو ځکه چي د ده خير په مفلسي کي وو که دولتمند وای نو برباد به وو، دغه رنګه د چا په امير جوړولو کي يو حکمت وي، دا مضمون هم د توحيد د مضمون په پول د بې انتها ژور دی او د توحيد د مضمون په پول دېر خلک په دې کي غرق سوي دي، چي د قضا او تقدير راز په دې کي هم دغه پول ترلی او پټ دی، چي د ظاهرولو يې دلته اجازت نسته، او زه که په دې سمندر کي غوټه وهم نو خبره به دومره اوږده سي چي بشپړ تيا به يې ګرانه سي، غرض د بنده د ايمان ټول راز په دې يقين کي پټ دی او د دې حاجت توکل ته هم ور پېښ دی.

## د توکل د حقيقت بيان (په زړه پوري بحث)

پوه سه! چي توکل د زړه د حالاتو څخه د يو حال نوم دی او دا ثمره وي د هغه ايمان کوم چي پر توحيد او د لطف الهي پر کمال باندي راولاړ کيږي، او معنی د دې دا وي چي پر کارساز حقيقي باندي په صدق د زړه سره بروسه وکړي او بيا پر دې اعتماد هميشه مضبوط او پاته وي، چي زړه هميشه په آرام سکون او اطمينان سره وي، او د رزق په خيال کي نه وي مبتلی او که په ظاهري اسبابو کي څه کمی يا خرابي واقع هم سي نو بې حوصلې کيږي نه، بلکي پر الله ﷻ باندي په اعتماد کولو سره زړه خاطر جمع ساتي، د رزق خو ده ته رسيدل دي او ضرور به رسي، مثال يې داسي دی چي لکه مثلاً پر يو سړي باندي څوک د دروغو دعوه په مکر او فريب سره وکړي او دغه سړی د دې فريب څه د ځان خلاصولو د پاره يو څوک خپل وکيل مقرر کړي چي د دې جنجال څخه يې خلاص کړي، اوس د دې سړي ته پر خپل وکيل په زړه سره اعتماد په دې صورت کي کېدلی سي چي دی د دغه وکيل په درې صفتونو باندي يقين لري؛

(۱) اول يې دا تسلی وي چي وکيل د دوکې مکر او فريب د ټولو ممکنه صورتونو څخه پوره خبر دی(۲) دويم دا چي د دې پر اظهار باندي قادره دی، يعني په دوه قسمه قوّت ده ته حاصل دی (الف)

زړور او بې باکه دی (ب) فصیح ژبانه او مقرّر دی، ځکه بعضې وخت داسې هم کیږي چې د وکیل په عالم کېدلو کې خو یو شک نه وي لیکن د بُزدلۍ په وجه یا د فصاحت او مقرر کېدلو د صفت څخه د محرومۍ په وجه د خیال پر اظهار قادره نه وي. (۳) دا چې وکیل پر خپل مؤکّل باندې مهربانه دی او د ده د حقونو د تحفظ د پاره پخپله د ده په شان بې قراره او حریص دی، هر کله چې د مؤکّل په دې درې صفتونو باندې یقین وي نو پر وکیل به د ده اعتماد هم مکمل وي او د ده زړه به دومره مطمئن وي چې د خپل طرف څخه به هیڅ د یو زیاتې حیلې او تدبیر ضرورت نه محسوسوي.

بالکل دغه شان چې کوم سړی د نِعْمَ الْمَوْلٰی او نِعْمَ الْوَکِیْل د رمز څخه آشنا سي او د دې معنی د ده په فکر کې راسي نو د ده ایمان به پر دې خبره پوخ سي چې څه دي خدای دی، د هغه څخه ما سوا بل فاعل د سره څخه سته نه. او د دې سره سره د ده په علم او قدرت کې هیڅکله نقص نه واقع کیږي د ده د رحمت خو دا حال دی چې د دې څخه د زیات وهم او گمان هم نه سي کېدای، نو توکل کوونکي ته پکار دي چې د الله ﷻ پر فضل او کرم اعتماد په زړه سره وکړي، د دې ثبوت دا دی چې د خپل طرف څخه حیلې او تدبیرونه نه کوي، دا دي کښې چې د ده رزق مقدّر او مقرر دی کوم چې به په مقرره وخت په هرحال ده ته رسیږي، او هر کار چې کیږي نو د هغه په فضل او کرم سره په خیر او ښه طریقه سره به سر ته رسیږي.

ممکنه ده یو سړي ته خو پر دې صفتونو یقین وي لیکن طبیعت یې د بدوالی ښکار وي د کوم په وجه سره چې دی په بیړه کې وي، ځکه چې دا امر همیشه لازمي او ضروري نه وي چې د بنده پر کوم شئ یقین وي طبیعت یې هم پر دغه یقین عمل وکړي، بلکې عین ممکن ده چې طبیعت یې د وهم متابعت کوونکې وي هغه که ده ته معلومه ولې نه وي چې وهم پخپله یوه خطاء ده مثلاً داسې وهم کیږي چې یو سړی حلوا خوري او بل ده ته ووایي چې دا خو گندگي ده او دی یې خوراک پرېږدي حالانکه ده ته دغه خبره صافه دروغ ښکاري، دغه شان که یو وهمي سړی په یو داسې کور کې یوا ځې پروت وي په کوم کې چې دمړی لاش هم پروت وي نو ده ته به خوب نه ورځي حال دا دی چې ده ته به په یقین سره دا معلومه وي چې مړی یو جامد او بې حس او حرکت شئ دی او پر پورته کېدلو قادر نه دی. نو د توکل د پاره چې کوم ځای قوّت د یقین پکار دی هلته قوّت د زړه هم لازم دی چې په زړه کې یې یو شان اضطراب نه وي، ځکه چې کله په زړه کې اعتماد او په طبیعت کې آرام او اطمینان ښکاره نه وي تر هغه وخته بنده ته صاحبِ توکّل نه ویل کیږي، ځکه چې د توکل مطلب اعتماد د

زړه دی کوم چي دالله ﷻ په هر کار کي بنده ته پکار دی او حضرت ابراهیم خلیل الله عليه السلام ته پر الله ﷻ مکمل یقین هم وو او ایمان کامل هم لیکن د دې سره سره یې عرض وکړی چي: اې زما ربه! ما ته وښیه چي ته مړی څنګه ژوندی کوې؟ الله تعالیٰ وفرمایل: آیا ته پر دې یقین نه کوې؟ عرض یې وکړی یقین ولي نه کووم مګر د زړه تسکین او اطمینان غواړم [البقره]. غرض دا چي په ابتدائي حال کي زړه د خیالاتو او احساساتو تابع وي لیکن انتها ته په رسېدو رسېدو کي زړه هم د یقین تابع سي او بیا ده ته د تسلیم د پاره د ظاهري مشاهدې حاجت نه وی (چي ووېني نو یقین به یې وسي).

## د توکل درجې

پوه سه! چي د توکل درې درجې دي: (۱) یوه درجه خو دغه چي ذکر یې او س ... و چي د متوکّل حال د هغه سړي په ډول وي، کوم چي خپل په مقدمه کي یو پوه وکیل مقرر کړی وي او پر هغه یې پوره وي. (۲) دویمه درجه دا ده چي د متوکّل حال د هغه بچی په ډول و ... کوم چي د خپلي مور څخه علاوه بل څوک بالکل نه پېژني، بلکي بل څوک لا څه چي یو شئ هم نه پېژني که رېږي سي نو مور ته آواز کوي که بېره پر راسي نو منبلي په مور پوري او دا شئ د بچیانو په فطرت کي وي په دې کي د یو ډول تکلف او غور ته دخل نه وي، بلکي د ده ټول حرکتونه بې اختیاره وي، د دې ډول متوکل په اړه که داوویل سي چي دی د خپل توکل څخه بې خبره دی نو صحیح ده ځکه چي دی پخپل وکیل کي مستغرق وي، لیکن د اولي درجې د خپل توکل څخه خبر وي (۳) دریمه درجه دا ده چي د متوکل حال د هغه مړي په ډول وي کوم چي د غاسل په لاس کي وي، یعني دی خپل ځان مړ تصوّر کوي او خپل حرکت د ازل د طرف څخه ګڼي نه چي د خپل طرف څخه. دغه رنګه لکه مړی چي پخپله حرکت نه کوي او د ده ښوروول ټول د غاسل د طرف څخه وي، چي کوم خوا غواړي حرکت ور کوي، تر دې چي که یو کار یې پېښ سي نو دعاء لا هم نه کوي، ګویا د ده حالت د هغه بچي په ډول هم نه وي کوم چي د کار د پاره خپله مور رابولي، بلکي د هغه بچي په ډول وي د کوم چي یقین وي چي که مور رابولم او که نه یې رابولم هغه پخپله زما د حال څخه خبره ده او زما په ضرورتو ... باندي خبره ده، بلکي ځکه په دې فکر کي ده او زما د کار د پاره تدبیر هم کوي، او په پوره کولو کي یې هم مشغوله ده، نو دې دریمي درجې ته د رسېدلي متوکل هیڅ اختیار هم نه وي، په دویمه درجه کي هم اختیار خو نه وي مګر عاجزي او دعاء او پر وکیل د اعتماد سلسله په هر حال پاته وي، او په اوله درجه کي خو خیر اختیار هم وي خو وي صرف د هغو اسبابو د تدبیر په باره کي کوم چي د وکیل د وضع عادت او اصولو

شخه معلوم سوي وي، مثلاً کله چي ده ته معلومه سي چي د وکیل اصول دا دی چي کله ور سره دی پخپله حاضر نه وي او متعلقه کاغذات ورته تیار نه کړي هغه د مقدمي پیروي نه کوي او نه په یو ډول جرح او بحث کي ځان مبتلوي نو په دې صورت کي دا مؤکل دغه شرطونه پوره کوي، او بیا منتظره وي چي ګورو وکیل اوس څه کوي ؟ او کاروائي چي څه کیږي نو د وکیل طرف ته یې نسبت کوي او د هغه شخه یې ګڼي او د دستاویز (کاغذاتو) پیش کول هم د هغه د طرف شخه ګڼي، ځکه چي د وکیل په وینا ده هغه پیش کړي دي، نو کوم سړی چي د توکل پر دې درجې باندي وي هغه مثلاً د تجارت زراعت او نورو ظاهري اسبابو شخه کوم چي د سُنت حق شخه معلوم سوی وي ډډه نه کوي، لیکن بروسه په خپل تجارت یا زراعت نه کوي بلکي ټول اُمیدونه یې د الله ﷻ پر فضل او کرم باندي وي یعني بروسه یې دا وي چي الله ﷻ به پخپل فضل او کرم سره په دې کار او کسب کي ما منزل د مراد ته رسوي او څه چي هم د ده د نظر او سترګو په مخکي وي دغه د الله ﷻ شخه ګڼي، د دې تشریح دا ده، او دا معنی د لا حَوْلَ ولا قُوَّةَ الا بِاللّٰه ده، ځکه چي د حَوْل شخه مراد حرکت او د قوّت شخه مراد طاقت دی او کله چي په دې پوه سي چي نه زما قوّت زما په اختیار کي دی او نه زما حرکت زما په وجه سره دی بلکي دواړه د الله ﷻ په اختیار کي دي نو دی چي څه ویني د الله ﷻ د طرف شخه به یې ویني غرض خپل یو کار به هم په ظاهري اسبابو باندي منحصر ګڼل یا ورته حواله کول به د ده په تصوّر کي هم نه وي.او په هر شئ کي به الله ﷻ متصرف او صاحب اختیار ویني نو داسي سړی بې شکه د متوکل یا صاحب توکل ویلو مستحق دی، که څه هم د توکل اعلیٰ مقام هغه دی کوم چي ابو یزید بسطامي رحمه الله بیان کړي دي، یعني ابوموسی دیلمي رحمه الله وایي چي ما د ابو یزید بسطامي رحمه الله شخه پوښتنه وکړه چي د توکّل تعریف څه دی؟ هغه وویل چي اول ته ووایه ! چي ستا په نزد د توکّل شخه څه مراد دی؟ ما وویل چي ما ته خو د مشائخو د صحبت شخه دا معلومه سوه چي که د راسته او چپه طرف شخه ښامارانو ته په قبضه کي اخیستی یې خو بیا دي هم ستا په زړه کي یو ذره بېره نه وي بلکي د لږ حرکت اندازه نه دي هم وي (نو ته به متوکّل یې ) دوی وویل دا خو یو مشکله خبره نه ده، زما په نزد خو که یو سړی دوږخیان په سخت عذاب کي تپیدلي ویني او بل طرف ته جنّتیان په نعمتونو کي مشغول ویني او په دې کي فرق محسوس کړي نو دغه متوکل نه دی، (ځکه چي متوکل ته د الله ﷻ په کارونو کي فرق نه محسوسیږي) لیکن ابوموسیٰ رحمه الله چي څه ویلي دي دغه هم د توکل څه معمولي درجه نه ده، بلکي ډېره لوړه ده، ځکه چي په توکل کي خو د شرط په

توکه یو شئ هم شامل نه دی چي انسان به بېره هم نه کوي، ځکه چي حضرت ابوبکر صدیق ﷺ کله چي د نبي کریم ﷺ سره په غار کي وو نو دوی پونده د مار په سوری کي ایښي وه حال دا دی چي د دوی په متوکل کېدلو کي خو یو شک هم نسي کېدای؟ په دې اشاره د پوهېدلو ضرورت دی چي د دوی بېره د مار څخه نه وه بلکي د پیدا کوونکي څخه وه چي هغه مار ته حرکت او قوّت ور کوي، او د توکل دا هغه مقام دی کوم ځای چي متوکل ته په هر شئ کي د لا حول ولا قوة الا بالله معنی صافه بنکاره کیږي، او ابویزید بسطامي رحمه الله چي ویلي دي دغه پرخپل ځای د لوړ مقام ذکر دی او اشاره د هغه ایمان وطرف ته ده کوم چي د توکل د بنیاد او بیخ حیثیت لري او دا هغه ایمان دی چي د پر تیمتي او عزیز دی چي د دې څخه مراد د الله ﷻ پر فضل او کرم حکمت رحمت او بخشش باندي کامل یقین لرل دي او د بنده د دې حقیقت څخه اګاه کېدل دي چي څه چي الله ﷻ کوي هغه دغه رنګه وي څنګه چي د کېدلو حق وي، او د دې متوکل په نظر کي په غلب او رحمت کي فرق باقي نه پاته کیږي.

## د توکل د عملونو په باره کي

د دین ټول مقامات پر درې اصلونو باندي دي: (۱) علم (۲) حال (۳) عمل، د علم او حال په باره کي ذکر موږ کړی دی، او د عمل په سلسله کي ممکنه ده چي یو سړی دا تصور کړی وي چي د توکل مطلب دا دی چي بنده هر کار الله ﷻ ته پرېږدي چي په خپل اختیار سره هیڅ نه کوي تر دې چي د معاش د کسب څخه هم لاس واخلي، د صبا د پاره هم څه نه کوي د مار لړم څخه هم نه تښتي بلکي که مریض سي نو علاج هم نه کوي، لیکن دا ټول او د دې ټول نوري خبري بالکل غلطي دي ځکه چي دا د شریعت خلاف دي، او توکل چي د هغه بنیاد پر شرع باندي ایښوول سوی دی د شرع څخه خلاف څنګه کول کیږي؟ خبره دا ده چي د بنده اختیار (۱) به یا د هغه مال په حصول کي وي کوم چي ده ته حاصل نه دی (۲) یا د هغه مال په حفاظت کي به وي کوم چي ده ته حاصل دی (۳) یا به د هغه ضرر څخه د خوندي کېدو په سلسله کي وي کوم چي ده ته رسېدلی وي (۴) یا به د هغه ضرور څخه د محفوظ کېدو د پاره وي کوم چي ده ته نه وي رسېدلی، او دا ټول عملونه هغه دي چي د هر یوه په باره کي توکل کول کیږي، او د هر یو د پاره جلا جلا حکم هم موجود دی ګویا څلور مقامونه سو او په دوی کي د هر یو بیان اهم دی چي اوس لیکل کیږي.

لومړی مقام: د نفعي حاصلولو په باره کي دی او د دې خپلي درې درجې دي: اوله درجه دا ده چي د

سُنّت الهي ځنخه د یو سنت په روی سره موږ پوه هم یو چي بغیر د دې ځنخه کار نه کیږي یيا هم هغه پرېږدو نو دالیوتتوب او پاګلتوب دی، توکل نه دی، مثلاً یو سړی خوراک ته لاس نه وروږي، ګولې خولې ته نه کوي، او وایي چي خدای به ما موږ کړي پر هغه مي توکل دی. یا یو سړی نکاح نه کوي او وایي چي ما ته به خدای اولاد راکړي، نو دده په حماقت کي به هیڅ ځوک شک ونه کړي، بلکي هر هغه سبب کوم چي قطعي او نا ګزیر وي په دې کي د توکل ځنخه مراد د عمل ترک کول نه دي بلکي په دې کي توکل په علم او په حال سره وي د علم ځنخه مراد پوهه ده چي لاس، طعام، قدرت، حرکت، خوله او غابنونه او نور خدای پیدا کړي دي، او د حال ځنخه مطلب دا دی چي د ده د زړه اعتماد پر فضلِ الهي وي نه چي پر خوراک یا لاس باندي ځکه چي ممکنه ده دغه وخت د ده لاس فالج ووهي یا خوراک ځیني ځوک وتښتوي، نو د بنده نظر د الله ﷻ پر فضل د هغه پر پیدا کولو او د هغه پر محفوظ ساتلو پکار دی، یعني خوراک یې پیدا کړی، ده ته یې ورکړی بیا یې محفوظ کړی، پرخپلو موټانو او طاقت ور ته نظر نه دي پکار. دویمه درجه دهغو اسبابو ده چي قطعي نه وي خو اغلبه وي چي د دغو ځنخه بغیر مقصود حاصل نسي او شاید چي کله بغیر د دغو ځنخه هم مقصد حاصل سوی وي لکه د سفر توښه چي ده چي دا د ځان سره وړل نه وړل د توکل شرط نه دی ځکه چي دا سنت د رسول الله ﷺ دی، او د تېرو بزرګانو سیرت دی، لیکن متوکل هغه دی چي د ده نظر د سفر پر توښه نه وي ځکه چي دا د ده ځنخه پټېدای او ورکېدای هم سي بلکي د ده بروسه پر هغه الله ﷻ وي کوم چي د سفر د دې توښي پیدا کوونکی دی او چي د پیدا کولو ځنخه وروسته یې محفوظه هم ساتي، نو که یو سړی بې توښي ځنګل او بیابان ته روان سي نو د کمال توکّل په لحاظ سره د ده دا کار روا دی، لیکن دا به صحیح صرف د داسي مسافر د پاره وي کوم چي دوه صفتونه لري: (١) یو هغه چي اووني (هفته) دوې اووني لوږه برداشت کولای سي (٢) دویم دا چي لږ تر لږه دومره همّت لري چي څه مُده په وښو ګزاره کولای سي، که په مسافر کي دا صفت موجود وو نو کېدای سي چي په ځنګل کي هم ده ته د داسي ځای ځنخه روزي ملاؤ سي چي د ده په وهم او ګمان کي هم نه وي تېر سوي، په ابراهیم خواص رحمه الله کي دا دواړه صفتونه موجود وو او سفر ته به بالکل یواځي اوبغیر توښي وتلی لیکن بیا به هم رسۍ ځولاغه چاړه اوستن به خامخا ور سره وو ځکه چي دا اسباب یقیني او قطعي دي یعني د رسۍ ځنخه بغیر ځولاغه ځاه ته نسي ورشو، کېدلای او د ځاه ځنخه اوبه را ایستل بغیر د دې ځنخه کېدای نه سي، او په ځنګل کي به دا چیري وي. دغه رنګه که جامې ځیري سي نو د ستني ځنخه بغیر نسي ګنډل کېدای نو د اسبابو ترک کولو ته ترکّل نه وایي ځکه چي توکل دا دی چي په زړه سره د

الله ﷻ پر فضل او رحمت بروسه لري او پر اسبابو اعتماد نه کوي، نو که یو سړی په داسې غار کې کښېني چې چیرې هلته څوک نه راځي او وا ښه لا هم هلته نه وي او دعوی' کوي چې زه پر توکل ناست یم نو دا توکل حرام دی بلکې دا خودکشي ده، ځکه چې دا خو په ښکاره خپل ځان مرګ ته حواله کول دي او د سنت الهي څخه د ناخبرۍ ښکاره ثبوت دی، د دې مثال د هغه سړي دی چې د وکیل دا عادت ورته معلوم وي چې د سند څخه بغیر د خبرې کولو روا دار نه دی او بیا هم اسناد ورته نه رسوي.

**قصه**: یو زاهد د آبادۍ څخه لیرې په یو غار کې کښېنستی او په خپل خیال یې ځان متوکل کړی چې رزق خو رازق ورکوي دلته به ناست یم را واسې به، لیکن یوه اوونۍ (هفته) تېره سوه څه ملاؤ نه سوه تر دې چې مرګ ته نژدې سو د هغه وخت پر پیغمبر وحي نازلې سوې چې: دې احمق ته ووایه! چې تر څو ښار ته واپس نه سي او د خلکو سره ګډون ونه کړي رزق ورته نه سي ملاوېدای، نو هغه زاهد واپس راغلی او د هر طرف څخه شیان ورته را رسېدل شروع سول، اوس د ده په زړه کې خطره پیدا سوه، بیا وحي نازلې سوې او دی خبر کړی سو چې: ستا خیال وو چې ستا زهد او توکل به زما حکمت باطل کړي لیکن تا په دې حقیقت ځان پوهه نه کړی چې زموږ دا زیاته خوښه ده چې خپلو بندګانو ته د خپلو بندګانو په ذریعه رزق ور رسوو.

نو که یو سړی د کور دروازه بنده کړي دننه کښېني نو داسې توکل حرام دی ځکه چې کوم اسباب یقیني دي د هغو څخه بېلتون نه دی اختیارول پکار، لیکن که پر خلاصو دروازو څوک کښېني نو داسې توکل جائز دی په دې شرط چې سترګې یې دروازې ته نه وي نیولای چې کله به څوک څه راوړي، بلکې د داسې سړي زړه په خلکو کې مشغوله نه دې پکار، او شغل یې صرف ذکر الهي او طاعت. حق پکار دی، او یقین دې په زړه کې ساتي چې د اسبابو څخه مې کناره کشي نه ده کړې نو رزق به د رازق د د طرف څخه راځي، او دی به د بزرګانو د دې مشهورې مقولې مصداق وي چې: بنده کله د رزق څخه تښتي نو رزق پسې ور ږغلي، او ځکه د ده تلاش کوي، بلکې که دعاء هم کوي چې یا الله ما ته رزق مه راکوې نو د الله ﷻ د طرف څخه پیهته دا جواب ملاوېږي چې اې بې وقوفه! ما ته د دې د پاره پیدا کړی یې چې د لوږې څخه مړ سې؟ دا چیرې نه سي کېدای، نو توکل دا دی چې بنده د اسبابو څخه لاس ونه اخلي، لیکن دا ګڼي چې رزق ورکوونکی هغه مسبب الا سباب دی چا چې دا سبب پیدا کړی او دا حقیقت هم وپېژني چې خوري خو هر څوک د الله ﷻ ورکړی رزق، خو

د هر یو په خوراک کي فرق دی یعني څوک یې د سوال په ذلت سره خوري څوک د محنت او زیار په سبب سره خوري، څوک د محنت او مشقت سره د انتظار زحمت هم تېروي او بعضي دي چي په عزت او وقار سره یې خوري مثلاً صوفیان اونور، چي د دوی نظر صرف پر الله وي او څه چي ورته ملاو سي، دا الله ﷻ څخه یې ګڼي خلک په مینځ کي نه راولي، (یعني سبب ته رازق نه وایي مسبب الاسباب رازق ګڼي).

دریمه درجه د هغو اسبابو ده چي نه قطعي وي نه اغلب وي چي لازماً ورته حاجت پېښېږي، بلکي شمار یې په حیله اولټون کي وي، او دکسب سره د دوی هغه نسبت وي کوم چي مرض ته د فال او سحر او منتر سره وي، څکه چي نبي ﷺ کوم صفت د متوکل فرمایلی دي هغه دا دی چي جادو او سحر ته نه نژدې کیږي او دا یې نه دي فرمایلي چي کسب ترک کړل سي او د ښارونو څخه ځنګلونو ته ولاړ سي، نو په دې مقام کي د توکل درې درجې دي؛

(۱) اوله درجه د خواصو ده چي بغیر د زاد راه (د لارې د توښې) څخه په ځنګلونو بیابانوکي سفر کوي، او دا لوړه درجه وي په دې کي بنده د لوږې څخه هم ځان نه ساتي او یا د ځنګل په پاڼو او بوټو اونورو ګزاره کوي، تر دې چي د مرګ څخه هم نه بېرېږي، او په دې کي خپل خیر ګڼي، څکه ده ته معلومه وي چي د لارې توښه ورکېدی او غلا کېدای سي او په دغه صورت کي خو به هم مرګ وي، څکه چي په لارې کي دیو نادري واقعې د پېښېدلو امکان سته او بېره ځیني لازمه نه وي.

(۲) دویمه مرتبه دا وي چي صاحب توکل نه ځنګولو او بیاباتونو ته ځي او نه کسب کوي بلکي د ښار په یو مسجد کي ناست وي لیکن داسي نه چي په خلګو پورې یې امیدونه تړلي وي بلکي ټول اُمیدونه یې د الله ﷻ په رحمت باندي وي.

(۳) دریمه مرتبه دا ده چي بنده د کسب د پاره دباندي وځي لیکن د معاش په کسب کي د شریعت د آدابو لحاظ ساتي، او د رزق ګټلو د پاره د یو ډول مکر او فریب او دوکې څخه کار نه اخلي، ځان ځیني ساتي څکه چي داسي ناجائزې طریقې کول داسي دي لکه سحر جادو کول او دې ته توکل نسي ویل کېدای، او د کسب څخه ځان ساتل د توکل شرط نه دی، او د دې ثبوت دا دی چي د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ په ډول عظیم صاحب توکّل چي کله خلیفه سو نو د جامو ګاټونه (تاتونه) به یې پر شا وړلو په بازارکي به یې خرڅولو، او کله چي ورته خلګو عرض وکړی چي اې د مسلمانانو خلیفه! تاسو د دومره لوی عهدې سره تجارت ولې کوی؟ نو ویې فرمایل: ولي خپل اهل او عیال ضائع کړم؟ که دوی ضائع کووم نو دنورو خلګو په ضائع کولو کی به زما څه باک وي؟ داسې خو به ټوله خلک زما

دلاس ضائع سي، نو خلکو د دوی د پاره دبیت المال څخه وظیفه مقرره کړه او دوی نور زیات په ډلجمعي او فراغت سره خپل فرض منصبي په ښه طریقه پوره کولو کي مشغول سو، لیکن د توکل یې پیاهم دا حالت وو چي د مال دولت حرص قطعاً د دوی په زړه کي نه وو او څه چي به ورته په لاس راتلل دغه به یې قطعاً خپله سرمایه یا ملکیت نه ګڼلو، بلکي دا به یې ګڼله چي د الله ﷻ عنایت دی د دوی په نزد د دوی خپل مال د نورو مسلمانانو د مال څخه زیات عزیز نه وو، غرض زهد د توکل څخه بغیر نسي کیدای، ګواکي د زهد شرط توکل دی، که څه هم د توکل شرط زهد نه دی.

ابو جعفر حدّاد رحمه الله کوم چي د ابو جنید بغدادي پیر مرشد وو او انتهائي درجه صاحب توکل وو فرمایل به یې چي شل کاله ما خپل توکل لږ اندازه هم ښکاره کړی نه دی، هره ورځ به بازار ته د کسب معاش د پاره تلم یو دینار به مي ګټلو خو یو قیراط مي هم نه څیښي خرڅ کولو، چي حمام ته په ولاړ سم، بلکي ټول به مي دخدای په لاره کي خرڅ کولو، او د دوی مرید حضرت جنید رحمه الله فرمایي چي ما د خپل توکل اظهار چیري د مرشد په مخکي نه دی کړی ځکه چي زه به ډېر شرمنده کیدم چي د یو داسي مقام دعوی د داسي سړي په مخکي وکړم، کوم چي د دې دپاره مخصوص دی. بعضي صوفیان په خانقاوو کي ګوښه نشین کښیني او خپلو شاګردان دباندي لیږي چي کسب وکړي، نو یاد ساته! چي د دوی توکّل د هغو خلکو په ډول ضعیف او کمزوری وي کوم چي پخپله کسب کوي او د توکل پر ضعیفه درجه باندي وي، د توکل صحیح والي د ډیرو شرطونو په پوره کولو سره کیدای سي بیا هم که یو سړی د فتوحاتو په اُمید کښیني نو دی به هم توکّل ته نژدې منل کیږي، لیکن که دی پر یو داسي مقام باندي ناست وي چي خاص معروف وي نو په ده کي او په بازاري سړي کي به څه فرق نه وي او هین ممکنه ده چي شهوت نفس د ده د زړه د تسکین سبب وي ها! که زړه یې په دې خبرو کي نه وي منتهی نو د ده توکل ته به هم دا اهل کسب د توکّل همرتبه او همپله ویل کیږي په دې سلسله کي اصل خبره دا وي چي د بنده نظر پر خلکو باندي نه وي او نه یو پر یو سبب اعتماد کول پکار وي بلکي چي ټوله بروسه صرف پر مسبب الاسباب باندي وي.

ابراهیم خواص رحمه الله وایي زما ملاقات چي کله دخضر ؑ سره وسو نو دوی په دې ډېر راضي وه چي زه د دوی سره پاته سم، لیکن ما پر دې رضامندي ظاهره نه کړه او د دوی څخه جلا سوم ځکه زما سره دا ېره وه چي هسي نه زما زړه پر دوی بروسه کول شروع نه کړي او د حقیقي توکل څخه محرومه نه سم.

احمد حنبل رحمه الله دیو کار د پاره یو مزدور وساتلی، او خپل یو شاګرد ته یې وویل چې ده ته د اصل مزدورۍ څخه زیاتې پیسې ورکړه، لېکن مزدور د هغو د اخیستلو څخه انکار وکړی، دمزدور د تللو څخه وروسته دوی شاګرد ته وویل چې وروپسې ولاړ سه او دوباره دور کولو کوشش وکړه شاید چې ها وار یې واخلي، شاګرد وویل: دا څنګه؟ دوی وویل څکه چې دغه وخت ممکنه ده په خپل زړه کې طمع موجود موندلې وي، او د اخیستولو څخه یې انکار کړی وي اوس که طمع رخصت سوې وي نوغالباً چې وابه یې اخلي؛ لنډه دا چې د اهلِ کسبو توکل داوي چې د دوی بروسه پر سرمایه بانـدې نه وي او د دې علامه دا وي چې که مال غلا سي یا څیني ورک سي نو دوی یوه ذره خفه نه وي، او د رزق فکر نه وي، دوی ته دا یقین وي چې رازق پخپله د ده په فکر کې دی او په خپله به یې ور ته رسوي او د داسي ځای څخه به یې رسوي چې د ده په وهم او ګمان کې به نه وي، بلکې د ده د توکل شان دا وي چې که روزي هم نه راورسیږي نو دی دا ګڼي چې د ده خیر په دې کې دی چې رزق ملاو نسي

**د توکل دا حالت څنګه حاصلېدای سي؟** : دا حالت ډېر نادر او نایابه دی چې د یو سړی سره یو خاصه سرمایه وي او هغه غلا سي یا ضائع سي نو د ده زړه بې قراره نه وي بلکې ښه مطمئن او پر خپل ځای قائم او برقراره وي اوس منم چې دا شئ ډېر نادرالوقوع دی لېکن داسي هم نه دي چې محال او ناممکن وګڼل سي لېکن دا حالت صرف په هغه صورت کې حاصلېدای سي چې د الله ﷻ پر فضل او کرم او کمالِ قدرت پوره یقین وي، او پر دې خبره پخه عقیده وي چې د هغه ذات داسي بې نیازه دی چې څومره خلګو ته بغیر د سرمایه روزي رسوي او د څومره سرمایه داراتو د پاره پخپله د دوی سرمایه دهلاکت او بربادی سبب جوړیږي په دې باره کې یو حدیث داسي دی نبي کریم ﷺ فرمایي: بعضي وخت داسي هم کیږي چې بنده د شپې دیو کار د پاره په اطمینان او سوچ سره تدبیرونه سوچ کوي حال دا دی دغه اندېښنه د ده د هلاکت موجب وي ماخوا الله ﷻ د عرش څخه په نظر دمهرباني د ده طرف ته ګوري او د دې سړي ټول تدبیرونه دغه رنګه پاته سي او دی نا کامه سي نو چې سهار را پورته سي بې اندازې غمجن وي او کله وایي چې چا دا کار خراب کړی؟ او ولي یې خراب کړی؟ کله سوچ کوي چې هر څه چې دي خو دا د همسایه ګانو شرارت دی کله وایي چې ها! زه پوهه سوم زما دا کا زوی به د دې نمه واره وي کله وایي فلانی سړی به دا حکمت کړی وي وي حال دا چې په اصل کې به د ده هیڅ وران او خراب نه وي، بلکې الله ﷻ به پخپل رحمت سره د ده څه برابر کړي وي، ګویا دغه (ظاهري خرابوالی) به په اصل کې یو د الله ﷻ رحمت دی کوم چې د ده سره سوی دي (دی به یې د تباهی څخه خوندي کړی وي لیکن د ده خیال به نه ور رسیږي) داوجه وه چې حضرت عمر رضي الله عنه به

فرمایل: چې ماته د دې خبرې هیڅ فکر نه وي چې سهاربه په کوم حال کې پورته کېږم، د فقیرۍ په حالت کې که د مالدارۍ؟ ځکه چې ماته دا علم نسته چې زما خیر په څه کې دی؟ او دا شئ هم هېرول نه دي پکار، چې د دفقیرۍ او مسکینۍ څخه بېربدل یا په بدګمانۍ کې مبتلا کېدل د شیطان خاص تعلیم دی، لکه څنګه چې ارشاد دی: اَلشَّيْطَانُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ [البقرة:۲۶۸] (شیطان تاسو د محتاجۍ څخه بېروي) حال دا دی چې په دې حالت که هم پر الله ﷻ اعتماد او بروسه قائمه وي نو دا د کمال معرفت دلیل دی، په ځانګړې توګه کله چې د دې راز څخه هم خبر سي چې الله ﷻ رزق د داسې پټو او نا معلومو ځایونو څخه رسوي چې د ده یې چیرې ګمان هم نه وي سوی، او بیا د دې پېژندلو سره داهم ونه کړي چې په دې پټو اسبابو بروسه وکړي بلکې بروسه صرف د مسبب الاسباب پر ضمانت پکار ده.

## قصې د رزق په اړه

**عجیبه قصه**: یومتوکل عابد په یو مسجد کې وسیدی د مسجد امام پوښتنه ځیني وکړه چې ستا سره خو یو څه هم نسته نو پکار ده چې ته یو کسب وکړې؟ عابد وویل چې دلته یو یهودي دی کوم چې زما همسایه دی هغه را سره وعده کړې ده چې هره ورځ به دوې دوډۍ تا ته در رسووم او هغه یې را رسوي، امام د مسجد وویل چې ښه نو بیا ستا توکل خو خامخا صحیح توکل دی، عابد وویل ستاد پاره غوره دا ده چې د امامت معزز کسب نه ذلیله کوې او دا پرېږدې ځکه چې ستا په نزد ګویا د یهودي ضمانت د الله ﷻ د ضمانت څخه زيات مضبوط او د اعتماد ور دی.

**قصه**: د مسجد یو امام د یو سړي څخه پوښتنه وکړه چې دوډۍ د کومې خوا درته راځي؟ هغه وویل لږ صبروکړه چې زه د هغه لمونځ قضاء راوګرځوم کوم چې ما اوس په تا پسې کړی دی ځکه چې ستا د الله ﷻ پر ضمانت اعتماد نسته. نو کومو خلکو چې د دې خبرو آزمائش کړی دی هغوی ته د داسې داسې ځایونو څخه د فتوحاتو د مشاهدې موقع ملاو سوې ده کومه چې چیرې د دوی په تصور کې نه وې راغلې په اصل کې د دوی ایمان د الله ﷻ پر دې ارشاد قوي او محکم وو: وَمَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا [هود: ۶] (یو رزق خوړونکی ساکښ پر ځمکه داسې نسته چې د هغه رزق د الله ﷻ پر ذمه نه وي)

**قصه**: د حضرت حذیفه مرعشي رحمه الله څخه چې کله دا پوښتنه وسوه چې تا په ابراهیم

ادهم رحمه الله کي داسي کومه خبره لیدلې وه چي د هغه صبحت دي اختیار کړی، نو دوی وویل چي: موږ دواړه یو وخت د مکّي مکرمې پر لاره وو نو د لوږي څخه ډیر کمزوري سو او کوفې ته تر رسېدو پوري پر موږ د دې نبني صافي بنکاره سوې، ابراهیم ادهم رحمه الله ځما څخه پوښتنه وکړه چي لوږې ډېر ضعیفه کړې ؟ ماوویل هو! داسي ده، وېې فرمایل: ښه نو قلم کاغذ راوړه ما راوړل نو دوی دا عبارت پر ولیکی: بِسْمِ الله الرحمٰن الرحیم اې چي په هر حال کي ته مقصود او مطلوب یې او ټول کائنات ستا د اشارې منتظره دي زه ستا یو ادنیٰ ثناء ویونکی شاکر او ذاکر یم لیکن داوخت وږی تږی او لغړیم د خپلو درې سره شیانو کوم چي زما په نصیبه کي دي ضامن یم (چي همیشه به یې ضمانت کوم) او هغه درې شیان کوم چي صرف ستا حصه ده (یعني لوږه مړه کول و تنده سړول او جامه ورکول) د هغې ته ضامن سه!، دا یې ولیکل هغه کاغذ یې ماته را کړی ویې ویل چي اوس د باندي ولاړ سه لیکن په زړه کي ما سوا د الله جَلّ جَلالُهُ څخه د بل چا خیال مه راوله او کوم سړی چي د ټولو څخه مخکي ستا په نظر راسي، دا خط هغه ته ورکړه زه چي راووتم یو سړی پر اوښ سپور مي ولیدی خط مي هغه ته ورکړی هغه چي ووایی نو په ژړا سو او وېې ویل چي د خط خاوند کوم ځای دی؟ ما مسجد ته اشاره وکړه، هغه د شپږو سوو دنیارو څخه ډکه یوه تېلۍ (خلته) راکړه، ما د خلګو څخه پوښتنه وکړه چي دا څوک دی وېې ویل چي دا یو یهودي دی، خیر زه ابراهیم ادهم رحمه الله ته راغلم تېلۍ مي ورته ورکړه ټوله قصه مي ور ته وکړه، دوی وویل: تېلۍ ته څه مه وایه! هغه سړی به اوس راسي په دې کي هغه یهودي راغلی او د ابراهیم پښې یې مچ کړي او سلام یې قبول کړی.

**قصه**: ابو یعقوب بصري رحمه الله وایي چي زه لس ورځي د کعبې مکرمې په حرم کي وږی ناست ووم تر دې چي بې طاقته سوم د حرم څخه د باندي راووتم نو په لاره کي مي یو شلغم پروت ولیدی زړه مي وغوښتل چي دا وخورم خو د باطن څخه آواز راغلی چي د لسو ورځو د لوږي څخه وروسته ستا په قسمت کي دا خراب بوږناک شلغم دی؟ ما شلغم پر هغه ځای پرېښووی او مسجد ته را دننه سوم، لږ ګړی وروسته یو سړی مسجد ته راغلی او پراټې یې د شکرو او بادامو سره زما په مخ کي کېښښوې او وېې ویل: ما په کښتۍ کي سفر کوی په دریاب کي طوفان راغلی دغه وخت ما نذر ومنی چي که الله جَلّ جَلالُهُ سلامتي راکړه نو دا شیان به هغه فقیر ته نذر ورکووم، کوم چي د ټولو څخه مخکي ملاؤ سي، ما د هر شئ څخه یو یو موټی واخیستی او ومي ویل چي دا باقي زه تا ته بخښم، او بیا ما د ځان سره وویل چي: و دې لیدل ستا د رزق د پاره الله جَلّ جَلالُهُ هوا ته حکم وکړی چي هغه په دریاب کي د دې

اهتمام وکړي او ته پسې هاغو دېخوا کرځي. نو دا ډول نادري قصې مطالعه کول د بنده ايمان قوي او مستحکم کوي.

## د عيالداره خلکو د توکل په باره کې

پوه سه! چې پر عيالداره دا لازمه نه ده چې کسب دې پرېږدي په ځنګلونو کې دې کرځي، د ده توکل خو لازماً بنه هغه دی کوم چې په دريمه درجه کې ذکر سوی دی او کوم ته چې د کسب کرو توکل وايي، چې ژوندی مثال يې د ابو بکر صديق ﷺ د توکل په باره کې بيان سوی دی، وجه يې دا ده چې توکل په دوو معناوو کې منل کيږي، يعنې: (۱) يو خو دا چې په لوږه صابره وي او څه چې ورته ملاوېږي پر هغه قانع وي هغه که وابنه او پاڼي ولې نه وي (۲) دويم پر دې خبره يې پوخ ايمان وي چې کېدای سي لوږه او مرګ زما رزق وي او په دې کې زما خير وي، اوس دا خبره داسې ده چې پر عيالداره باندې د دې پابندي لازمي نه ده او توکل دی پر دې نسې مجبوره کولای، او حقيقت خو دا دی چې د ده خپل نفس هم په دغه خيال کې شامل دی، او که د ده په نفس کې د صبر قوت نه وي او د لوږې څخه د ده د بې قراره کېدلو يېره وي نو داسې سړي ته هيڅکله نه ښايي چې کسب پرېږدي توکل کوي، لېکن په اهل او عيال کې هم که د صبر قوت موجود وي او هغوی ده ته توکل اجازت ورکړي نو بيا به ده ته کسب پرېښول رواوي.

نو د دې څخه د زيات فرق امکان هيڅ کله نسته، ځکه چې کوم ځای خپل ځان په زوره خالي نس ساتل روا دي هلته عيال په دې مصيبت کې مبتلا کول هيڅ کله روا نه دي.

لوکه د چا ايمان کامل وي او په تقوی کې مشغوله وي نو دې کسب کوي او که نه يې کوي د ده د رزق اسباب ښکاره کيږي، لکه چې بچی د مور په نس کې عاجزه وي د کسب څخه نو الله ﷻ د نوم (ناف) په ذريعه د ده رزق ده ته رسوي او د پيدا کېدلو څخه وروسته د مور د سينې څخه د ده رزق ده ته ملاوېږي، لوکله چې د شيدو څخه ماسوا دبل شئ د خوراک قابله کيږي نو د غاښو نو نعمت ور ته ورکول کيږي او که د ده مور او پلار مړه سي يتيم سي نو ځکه چې د ده شفقت مخکې د ده پر مور مسلط کړل سوی وو چې د ده ساتنه وکړي بيا دغه رنګه شفقت د ده په حق کې پر نورو مسلط کول کيږي، ځکه چې پر يتيم د رحم کولو او ترس کوونکې جذبه د خلکو په زړونو کې پيدا کيږي، کواکې مخکې که د يو مشفق شفقت حاصل وو او نور ځيني ليرې تښتېدل اوس د مور په مرګ دغه نور ده ته نژدې کيږي او د ډېرو شفقت ده ته حاصل سي، بيا چې کله لوی سي د کسب قوت ورته

ور کړل سي او د کسب خواهش پر ده مسلط کړل سي چي دی اوس د شفقت حق ادا کړي کوم چي دعیال پر ده مسلط کړل سوی دي او دی دغه رنګه غمخورای وکړي لکه څنګه چي د ده مور د ده په حق کي کوله په دې مرحله (که عیالداره نه وي نو)الله ﷻ د ده څخه خواهش د کسب واخلي چي دی د خپل کسب څخه یتیم سي او په تقوی کي مشغوله سي نو بیا په ټولو زړونو کي د ده شفقت واچول سي او ټوله خلګ دا وایي چي: دی خو د الله ﷻ سوی دي نو حق دا دی چي بنه شئ کوم چي مور، ته حاصل وي اول یې ده ته ورکړو، ګویا که اول د ځان مشفق صرف دی وو، نو اوس ټول خلګ د ده مشفق سول لکه چي د یو یتیم وي، لېکن که دغه سړی په کسب قادره هم وي او په فضولیاتو کي مشغوله سي نو دا ډول شفقت د ده دپاره د چا په زړه کي نه پیدا کیږي، د داسي سړي د پاره دا هم صحیح نه ده چي کسب پرېږدي د توکل دعویٰ وکړي ځکه چي کله د خپل نفس بنده سونو تیمارداري به هم پخپله کوي(یعني پوښتنه او غمخواري به یې هم پخپله کوي)

نو کوم سړی چي په الله کي مشغول وي دی ګویا د خپل ځان څخه یتیم سي او د یتیمانو په حق کي الله ﷻ خلګ مهربانه کوي په دې وجه خلګ پر ده ضرور مهربانه کیږي، داوجه ده چي ترنه پوري دا نه لیدل سوي ده او نه اورېدل سوې ده چي فلانی متقي د لوږي څخه مړ سو، نو کوم سړي چي په دې معامله کي په بنه توګه غور کوي چي الله ﷻ د ملک او ملکوتو تدبیر په څومره بنه توګه کوي، هغه د دي آیت مشاهده یقینًا پخپلو سترګو سره کوي: وَمَا مِن دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا [هود:۶] (دا آیت لړمخکی تېر سوی دي). دا راز د ده څخه پټ نه پاته کیږي چي الله ﷻ د مملکت تدبیر په یو داسي انداز سره کړی دي چي څوک هم تباه او برباد نه سي او که داسي کیږي هم نو ډېر کم، او هغه هم تر یو حکمت او مصلحت لاندي چي د دغه تباهي د ده بهتري وي، په دې وجه نه چي ده کسب پرې اینبی دي، ځکه چي ډېر مالداران هم تباه کېدونکي ډېر کم لیدل کیږي، څرنګه چي حسن بصري رحمه الله د دې حال مشاهده کړې وه په دې وجه به یې ویل چي کاش! ټول بصري والا زما عیال وای او د غنمو یوه یوه دانه په دینار بدله وای.

یو څو خلګ د حضرت جنید رحمه الله په خدمت کي حاضر سول، ویې ویل چي: آیا موږ خپل رزق تلاش کړو؟ ویې فرمایل: که تاسو ته معلومه وي چي ستاسو رزق کوم ځای دي نو بې شکه تلاش یې کړی، دغو خلګو وویل: آیا د خدای څخه یې طلب کړو؟ وې فرمایل: که ستاسو خیال وي چي هغه تاسو هېر کړي یاست نو بې شکه وریاده یې کړی، هغوی وویل نو بیا توکل وکړو او ګورو چي څه

کیږي؟ ورته فرمایل: د ازمائش په توګه توکل کوئ؟ دا خو پخپله په شک کي داخله ده، هغوی عرض وکړی: نو وفرمایاست چي څه تدبیر وکړو؟ ورته فرمایل: دا چي د تدبیر څخه لاس واخلئ، ځکه چي د رزق په باره کي د هغه ورکړی ضمانت څه کوم خو نه دی؟ نو چا ته چي رزق پکار وي پر هغه لازمه ده چي هغه واحد ذات ته رجوع وکړي (اسباب د هغه سره دي).

دویم مقام په توکل کي د ذخیري جمع کولو دی، نو پوه سه اه چي کوم سړی د ځان د پاره د یو کال ذخیره جمع کوي دی د توکل د درجې څخه پاته کیږي ځکه چي دا د پټو اسبابو څخه مخ اړول او پر ظاهري اسبابو اعتماد کول دي ځکه چي دقدرت د طرف څخه هر کال دوباره د هغه دور کولو اهتمام کېدای سي، او کوم سړی چي دخوراک او اغوستلو د پاره په دومره اندازه اکتفا وکړي چي بس نس ډک سي او بدن پټ سي ده د توکّل ساتنه وکړه. د ابراهیم خواص رحمه الله په نزد د څلوېښتو ورځو د پاره ذخیره کول د توکل د درجې څخه نه پاته کیږي لیکن که د دې څخه زیات انتظام کوي نو د درجې د توکل څخه پاته کېدل لازمي دي. د سهل تستري رحمه الله قول دی چي ذخیره د توکل دښمنه ده او باطلوي یې. ابو طالب مکي رحمه الله فرمايي: ذخیره که د څلوېښتو ورځو د پاره وي نو توکل نه باطلوي په دې شرط چي بروسه نه پر کوي، حسین مغازلي رحمه الله د بشر حافي رحمه الله مرید وو، دی وایي چي یوه ورځ یو زوړ سړی زما پیر ته راغلی پیر ماته یو موټی سپین زر را کړل چي ولاړ سه په دې به خوندور خوراک راوړه، ما د دې څخه مخکي دوی په دا ډول خوراک راغوښتولو نه وو لیدلی، بهرحال ما طعام راوړی نو دوی د میلمه سره کښېنستل طعام یې وخوړی او دا شئ ما اول وار ولیدی ځکه چي ما چیري دوی د چا سره په خوراک نه وو لیدلی، چي خوراک یې وکړو نو ډېر ځیني پاته سو هغه زوړ سړي هغه ټول د ځان سره وتړی یو یې وړی. زه پر دې خبره حیران سوم چي څنګه میلمه وو بې اجازې یې هر څه یووړه، نو بشر حافي رحمه الله وویل: آیا ته په دې خبره حیران سوې؟ ما عرض وکړی چي: اې پیر مرشدا! زه واقعي ډېر حیران سوی یم، ورته فرمایل: واوره! دا حضرت شیخ موصلي وو چي نن د موصل څخه خاص زما د ملاقات د پاره راغلی وو، او د باقي خوراک په وړلو بلندي یې موږ ته دا تعلیم را کول مقصود وو چي توکّل کله صحیح سي نو ذخیره ساتل بیا نقصاني نه دي، نو حقیقت دا دی چي توکل د آرزوګانو د لنډولو نوم دی، او په دې وجه د ذخیره کولو حکم دی، او که ذخیره هم وکړي خو دا نه ګڼي چي مال زما په لاس کي دی بلکي دا ګڼي چي د الله جل جلاله په خزانه کي دی، نو د مال د کېدلو سره سره که په دې بروسه نه کوي نو توکّل نه باطلیږي.

لیکن د دې بیان کوم چي موږ وکړی تعلق یې د مجردو خلکو سره دی، ځکه چي عیالداره سړی که د

یو کال زخیره کنبیږدي نو توکل نه باطلوي ها! که د یو کال څخه یې زیاتوي نو باطل به سي، نبي کریم ﷺ د خپل عیال د زړه د کمزوری په وجه د دوی د پاره به د کال زخیره جمع ساتله، حال دا دی چي دځان د پاره به یې د سهار څخه تر ماښامه پوري دوی. هم نه پرېښوده. که پرېښوده به یې هم نو د دوی توکل نه ضائع کېدی ځکه چي د نبي ﷺ په نزد د دې کیدل اونه کېدل برابر وو. لیکن د خلګو د کمزوریو په لحاظ ساتلو سره یې دوی ته د دې تعلیم ورکړی کوم چي د دوی د درجې مطابق وو، په حدیث شریف کي دي چي په اصحاب صفّه کي د یو صحابي وفات وسو (یعني مړ سو) نو د جامو څخه یې دوه دیناره راووتل، نو نبي ﷺ وفرمایل: دوه دیناره نه دي بلکي دوه داغونه دي،او چي پر ده باندي د دوو حالتو څخه یو حالت کېدل لازمي دي یو دا چي دا سړی به متوکّل نه وو او په دوکه سره یې ځان متوکل ظاهر کړی وو، په دې صورت کي به دا د دوږخ داور دوه داغونه وي چي ده ته به عذاب په ورکول کیږي، دویم احتمال دا کېدای سي چي دا به فریبي نه وو،لېکن په زخیره کولو سره یې ځان د صحیح مقام څخه را وغورځی، په دې صورت کي به دا د ده د مخ داغونه جوړ سي او په هغه جهان کي به د ده ښایست متأثره کړي، دغه ډول د یو بل فقیر په باره کي د ده د انتقال څخه وروسته نبي ﷺ فرمایلي وو چي: د قیامت په ورځ به د ده مخ د څوارلسم د سپوږمي په ډول ځلیږي، او که په ده کي یو خصلت نه وای نو دلمر په ډول به ځلېدای، او هغه خصلت داوو چي ده به دژمي جامې بل ژمي ته او د ګرمی جامې بلي ګرمی ته ساتلې، او فرمایلي یې دي چي: تاسو ته د صبر او یقین څخه کمترینه درجه هم هیڅ نه ده درکول سوې، نو د جامو زخیره کول د یقین کمزوري ده. لیکن پر دې خبره ټول متفق دي چي پیاله، لوټه، منګی او نور د ضرورت ټول شیان زخیره کول جائز دي، ځکه چي سنت الهي دا دی چي خوراک او لباس خو هر کال په بله وجه سره پیدا کیږي لیکن د دې لوښو د پیدا کېدلو هیڅ وخت مقرر نه دی او نه دا هر وخت پیدا کیږي او د سنت الهي خلاف کول جائز نه دي، او دژمي جامې بیا په ګرمي کي پکار نه راځي نو د دوی جمع کول د یقین کمزوری ظاهروي، لیکن که دیو سړي زړه د زخیره په نه موجودګی کي بې قراره او مضطربه وي او د خلګو څخه اُمیدونه کوي نو د داسي سړي د پاره زخیره کول غوره دي، او که داسي وو نو د کفایت په اندازه ایښوول ښه دي، ځکه چي د ټولو خبرو څخه مقصود فقط سکون د زړه دی چي حاصل سي چي په فراغت سره په ذکر دحق کي مشغول سي، ځیني زړونه داسي وي چي دمال موجودګي د دوی په عبادت او ذکر فکر کي یو بندیز غوندي جوړیږي او په مفلسی کي دوی ته راحت او تسکین وي، دا هغه زړه وي کوم ته چي قلب شریف ویل کیږي، په بعضو زړونوکي د کفایت په اندازه د ځمکي د ټکري موجود کېدل د

تسکین باعث کیدی سي نو دوی ته د کفایت په قدر څمکه ساتل غوره دي،لیکن که یو زره داسې وي چي د جاه او حشمت او شوکت څخه بغیر یې تسکین نه کیدی نو ده ته دیندار زړه نه ویل کیږي، او نه د توکل په یو قسم کي شمارل کیږي.

دریم مقام دا دی چي د دفع د ضرر احکام وپیژني، نو په دې ضمن کي یاد ساته چي هغه اسباب کوم چي قطعي دي یا چي اکثره او زیاتره یې واقع کیدل ناګزیره وي د دوی څخه بیره کول د توکل په شرائطو کي شامل نه دي بلکي صاحبِ توکل که خپل کور ته قلف لګوي چي سامان یې غلا نه سي نو دا شئ هم د توکل خلاف نه دی او که د دښمن څخه د ځان ساتولو د پاره وسله دځان سره ګرځوي نو دا هم توکل ته نقصان نه رسوي. او که په دې خیال سره جبّه (چپنه، کوټ) اغوندي چي پر لاري مې یخ ونسي نو دا هم توکل نه باطلوي لیکن که په دې خیال سره نس زیاته وکوي چي بدن زیات ګرم سي او یخ کم سي نو داسي باریک اسباب توکل ناقصوي او د دې حیثیت خو سحر جادو او منترو ته نژدې رسیږي، بیا هم د ظاهري اسبابو څخه لاس اخیستل د توکل شرط نه دی، یو اعرابي د نبي ﷺ په خدمت کي حاضر سو، نو دوی ﷺ وفرمایل: چي ستا اوښ چیري دی؟ هغه عرض وکړی یا رسول الله! ما توکل وکړی او هغه مي پرېښودی وبې فرمایل: اې اعرابي! اول یې تړه بیا توکّل کوه. لیکن که د چا څخه در ته تکلیف ورسیږي نو دبرداشت کولو سره د هغه د دفع کولو کوشش نه کول په توکل کي داخل دي، د الله ﷻ ارشاد دی: د دې منافقانو د طرف څخه که در ته آزار ورسیږي نو خیال یې مه کوه او پر الله ﷻ بروسه کوه. [الاحزاب]. دارنګه ارشاد دی: څه چي موږ ته آزار او تکلیف رسیدلی دی، پر دغه موږ صبر کوو او توکل کوونکو ته پر الله بروسه کول پکار دي [ابراهیم].

لیکن که د مار لړم او درنده او نورو څخه آزار او تکلیف رسیږي نو د صبر ضرورت نسته او دغه ضرور دفع کول پکار دي، نو کوم سړی چي د دښمن څخه د خوندي کیدلو د پاره وسله پورته کړي نو په دې صورت کي د توکل تقاضا دا ده چي بروسه دي پر وسله نه وي دغه ډول د کور دروازې ته چي یې قلف ولګوي نو اعتماد پر قلف نه دي پکار. او په قلفلو کي خو ډېر داسي وي چي د غل ته د هغو هیڅ وقعت نه وي، متوکل خو هغه دی چي کور ته په راتلو که ووېني چي مال غلا سوی دي نو د الله ﷻ په رضا باندي راضي سي او هیڅ ډول غم په زړه کي نه پیدا کوي او نه د دې اظهار د ده د مخ څخه کیږي بلکي کله چي دکوره وځي نو په ژبه د حال سره دا الفاظ د ده پر ژبه جاري وي: اې الله! دا قلف کوم چي لګووم نو د دې د پاره نه چي ستا قضا دفع کول غواړم بلکي د دې د پاره چي ستا د سنتو موافقت مقصود دی، اې الله! که ته بل سړی پر دې مال قابض او متصرف کړې نو ما ته ستا حکم په زړ

سره منظور دی ځکه چي ماته څه علم دی چي دا مال تا دبل د رزق د پاره پیدا کړی وي او ما ته دي صرف په عارضي توګه راکړی وي یا که زما د رزق د پاره وي خو وي مستعار (چي یو وخت بیا را څخه اخیستل کیږي) یاکه واقعي زما درزق د پاره وي (چي زما په خرڅ کي به راځي).

د داسي وینا څخه وروسته که دغه سړی قلف ولګوي او ولاړ سي او د واپس کېدلو په وخت کي وویني چي مال نسته او غلا سوی دي یا ضائع سوی دي نو: (۱) که ده ته په دې تکلیف ورسیږي نو پوه سه چي د ده توکل صحیح نه دی او د ده نفس دی صرف دوکه کړی وو (۲) او که خاموش پاته سو او ګیله شکایت یې د ژبي څخه ونه کړي نو پوه سه چي (دی متوکل خو نه دی لیکن) د صابر درجه ورته حاصله ده (۳) لیکن که چغې او ګیله او شکایت یې کوی او دغل په لټونې پسي هم ګرځېدلی نو د صبر د درجې څخه هم پاته سو او نه د صابرانو څخه سو او نه دمتوکلینو څخه او د دې دعوی څخه دي لاس واخلي، دا ګواکي پر خپل ځای یوه غټه فائده وسوه کومه چي غل وده ته و ښووله.

**سوال:** که دی مال ته محتاجه نه وي نو د کور دروازه به یې ولي بندوله او حفاظت به یې ولي کولو؟ بیا چي ده د مال حفاظت د خپل حاجتمندی په وجه سره وکړی نو په غلا کېدلو یې د ده نه خفه کېدل څنګه ممکن دي؟

**جواب:** دا دی چي ممکن دي تر څو پوري چي دغه مال الله ﷻ ده ته ورکړی وو دی په دې خیال کي وو چي د ده خیر په دې کي دي چي دا مال د ده سره وي لیکن اوس به د ده خیر په دې کي وو چي دغه مال د ده سره نه وي او ښکاره خبره ده چي د ده څخه ولاړی، نو په دواړو صورتونو کي ده پرخپل خیر محمول کړی او راضي سو او پر دې خبره یې ایمان راوړی چي الله ﷻ هغه کوي کومه چي د چا په حق کي خیر وي او زما د پاره یې دا وکړه کومه چي زما د پاره غوره وه او زما د خیر علم ماته نسته صرف الله ﷻ ته دی،او د ده مثال د هغه مریض په ډول دی د کوم پلار چي پخپله خوش مزاجه او مشفق طبیب وي، نو که ده ته دخوراک د پاره غوښه ورکړي نو دی خوشحاله وي او وایي چي که داما ته ښه نه وای نو نه به یې را کولای، او که دورکولو څخه وروسته ځیني هغه غوښه بیرته واخلي نو بیا به هم دی خوشحاله وي او وایي به چي ده به ضرور دا زما دپاره نقصاني ګڼلې وي کني واپس به یې نه اخیستلای، او تر څو چي پر دې حالت پوخ یقین او ایمان ونه سي تر هغه وخته توکل نه سي صحیح کېدلای دغه بیا صرف په نامه متوکل وي.

## د مال غلا کېدلو په صورت کې د توکل آداب

پوه سه! چې مال که غل یووسي نو پر داسې موقع متوکل سړی هغه دی کوم چې د شپږو آدابو خیال ساتي: (۱) اول دا چې پر دروازه بندولو کې خاص اهتمام نه کوي، دیوه پر ځای دوه یا درې ځنځیرونه او قلفان نه لګوي، او همسایه ګانو ته دحفاظت او خیال کولو تأکید نه کوي بلکې اسانې اختیار کړي، مالک بن دینار چې به چیرې تلی نو دروازه به یې صرف په یو تار بندولوه او ویل به یې که د مال شک مې نه وای نو دا تار به مې هم نه تړلای (۲) دویم دا چې د کوم مال په باره کې معلومه وي چې دغه ښه مال دی او غل ورته حرص کوي (یعنې غل دا مال ډېر خوښوي چې وړې وړنې هیڅکله یې نه پرېږدي) نو داسې مال په کور کې ایږدي هم نه ځکه چې دغه خلمخا غلو ته ترغیب ورکوونکې خبره ده، حضرت مغیره ﷺ و مالک بن دینار رحمه الله ته د زکوة څه مال ولېږی، دوی قبول نه کړی واپس یې کړی او ورته وې ویل چې دا واپس واخله ځکه چې شیطان د لوس شخخه زه په دې شبه کې مبتلا کړم چې دا به غل یووسي، ګویا دوی دا خبره ښه ونه لګېدله چې خلمخا ځان په وسوسه کې مبتلا کړم او بل طرف ته به د غل په مفته (موته) کې د ګناه کندې ته د غور ځېدلو غم به کووم، لیکن دا خبره چې کله ابو سلیمان دراني رحمه الله ته ورسېدله نو وې وفرمایل چې: دا صرف د صوفیانه بزدلې مظاهره ده کنې که ده دنیا ترک کړې وې نو دې سره د ده څه غرض دی چې غل یې وړي او که پاتې کوي یې؟ دا خبره یو داسې صاحبِ نظر کولای سي کوم چې د کامل بصیرت مالک کوي. (۳) دریم دا چې کله د کوره ووځی نو دا نیت دې وکړي چې که دا مال غل یووسي نو الله ﷻ دې ورته مبارک کړي او پر هغه دې مباح او جائز کړي ځکه کېدای سي چې غل یو محتاجه سړی وي نو که حاجت یې زما شخخه په غلا کولو پوره سي نو زما خوشحالي ده او که مالداره وي نو ممکنه ده چې په دې مور سي او د بل مسلمان وړور شخخه غلا ونه کړي او دغه رنګه د نورو مسلمانانو وروڼو مال محفوظ سي دا ګویا یو شفقت سو د غله سره هم او د نورو مسلمانانو سره هم، او ده ته خو دا معلومه ده چې د ده نیت تقدیرِ الهي نسي بدلولای لېکن په دې نیت سره به ده ته په مفته کې (بلا عوضه) د صدقې ثواب ملاو سي او هغه هم په دې شرح سره چې دیوې روپۍ په عوض به د اوو سوه ۷۰۰ روپو اجر ده په حساب کې ولیکل سي ځکه چې که غلا ونسي هم لېکن ده په نیت کې خو وسوه. لکه چې په حدیث کې دي چې که یو سړی د خپلې بي بي سره د صحبت کولو په وخت عزل نه کوي بلکې نطفه دننه په رحم کې اچوي نو که اولاد پیدا سي او که نه ده ته په هر حال د یو داسې غلام آزادولو ثواب ملاوېږي کوم

چي په لاره دحق کي جهاد کوي شهيد سي، او وجه دې داده چي ده خو هغه وکړل کوم چي ده ته کول وو، او بيا اولاد که وسي هم نو نه يې ده په پيدا کولو اختيار وو نه په ژوند. (۴) څلورم دا چي د مال پر غلا کېدلو غمجن نه وي او گني چي په دې کي به خير وو، او که د دې مال په باره کي يې داويلي وي چي: في سبيل الله او بيا دې تلاش هم نه کوي بلکي که واپس يې ورته هم کړي خو قبلوي يې هم نه، هسي خو که واپس يې واخلي نو ده مال دی او صرف د نيّت پر بناء دملکيت څخه نه وځي، لېکن په مقام د توکّل کي دې ته غوره نه وايي. د حضرت عمر ؓ اوښ ورک سو ډير تلاش يې وکړی خو ملاو نه سو دوی ستړي سو آخر في سبيل الله يې وويل مسجد ته راغلی لږ ساعت وروسته يو سړی راغلی داوښ خبر يې ورکړی، چي په فلاني ځای کي دی، دوی د تللو دپاره څېلی په پښو کولې چي أَسْتَغْفِرُ الله يې وويل او کښېنستی او ويې فرمايل چي ما خو في سبيل الله ويلي وو، اوس ورته نږدې هم نه ورځم. يو بزرگ فرمايي چي ما په جنت کي يو سړی غمجن ناست وليدی، پوښتنه مې ځيني وکړه چي آيا دا د غم مقام دی؟ هغه وويل: افسوس صد افسوس! چي دا غم حو تر قيامته پوري د زړه څخه نه ليري کيږي ځکه چي په اعلیٰ عليين کي ديو داسي مقاماتو مشاهده په ما کړل سوې ده چي په ټول جنت کي د هغه جواب نه وو لېکن څنگه چي ما هغو ته مخ کړی نو حکم وسو چي دی د دې ځای څخه وباسئ ځکه چي دا د هغو خلکو ځايونه دي کوم و چي سبيل جاري وساتلو، ما وويل چي ما بد نصيبه ته خو ووايا ست چي د سبيل جاري ساتولو څه معنی ده؟ ارشاد وسو چي: تا د فلاني شيئ په باره کي في سبيل الله وويل، د هغه ساتنه دي ضروري وَنه گڼله که تا د هغه جهد پوره کړی وای نو نن به د دې مقاماتو څخه محرومه نه وای.

پنځم دا چي د ظل او ظالم په حق کي ښېراوي نه کوي چي په دې سره هم توکل باطليږي او هم زهد، ځکه کوم سړي چي په تيرو خبرو پسي غم کوي دی د متوکل نه کېدلو سره سره زاهد هم نه وي.

شپږم دا چي دغل د پاره غمجن وي يعني پر ده د شفقت په وجه د خفگان اظهار وکړی چي د ده څخه د غلا گناه سوې ده نو په عذاب کي به گرفتاروي، او شکر وکړي چي زه مظلوم يم ظالم نه يم، او کوم نقصان چي سوی دي صرف د مال نقصان دی د دين نه دی ځکه چي کوم سړی د داسي گناه گار د پاره غمجن نه وي کوم چي گناه حلاله گڼلې وي، نو دغه گويا خلکو ته نه د نصيحت کولو اهل نه وي او نه د خدای د مخلوق سره د ده يو شفقت وي.

**څلورم مقام:** د مرض علاج او د دې شخصه د رسېدونکي ضرر او نقصان رفع کولو په باره کي دی، د علاج درې درجې دي:

(۱) یوه درجه خو یقیني وي مثلاً د لوږې علاج په ډوډۍ کول د تندې علاج په اوبو کول پر یو ځای اور ولګېږي نو په اوبو یې مړ کول، اوس د دې علاجونو څخه لاس اخیستل توکل نه دی بلکې حرام دی. (۲) دویمه درجه د هغه علاج ده چې نه یقیني وي او نه ګماني خو بیاهم د دې د مؤثر کېدلو احتمال کېدای سي، مثلاً: منتر، داغ او فال او نور او دا هغه علاج دی چې د کوم څخه لاس اخیستل د توکل اهم ترین شرط دی، په حدیث شریف کي دي چې د دا ډول شیانو په اسبابو کي د مبالغې مترادف دي او پردې شیانو د بروسې کولو علامت دی، په دې کي قوي شئ داغ دی بیا منتر او د ټولو څخه کمه درجه د فال ده. (۳) دریمه درجه د مخکې دواړو درجو مینځ شمارل کېږي او د دې څخه مراد داسې علاج دي کوم چې یقیني خو نه وي لیکن غالب ګمان دا وي چې مؤثر به ثابت وي مثلاً: رګ وهل، حجامت، مسهل استعمالول، د یخ څخه د ګرمی یا د ګرمی څخه د یخ علاج او نور نور، د دې څخه لاس اخیستل حرام نه دي لیکن شرط د توکل هم نه دی ځکه چې په بعضي حالاتو کي د نه کولو څخه یې کول غوره وي او د دې خبرې دلیل چې د دې پرېښوول د توکل شرط نه دی پخپله د نبي کریم ﷺ اقوال او افعال دي (چې هغه په دې لړه ذکر سوي دي).

**اقوال:** فرمایي: (۱) اې د الله بندګانو! دوایي (درمل) استعمالوئ! (۲) یوه ناجوړي داسې نسته چې لاعلاجه وي ماسوا د مرګ څخه، لیکن د دوی په باره کي خلګ کله پوهېږي او کله نه پوهېږي، خلکو عرض وکړی یا رسول الله! آیا په دوایي او دم سره تقدیرِ الهي بدلېدای سي، ورته فرمایل: دا هم تقدیرِ الهي دی (۳) او فرمایي: د فرشتو پر کومه ډله چې زه تېر سووم هرې یوې دا وویل چې خپل امت ته حکم وکړه چې رګ دي ضرور وهي (۴) او فرمایي: د هرې میاشتي په اوولسم، نولسم او یوویشتم تاریخونو کي رګونه وهل پکار دي، هسې نه چې د وینې غلبه ستاسو د هلاکت سبب جوړه نه سي ځکه چې د الله ﷻ په حکم سره د وینې غلبه هم د هلاکت سبب جوړېږي، (۵) او فرمایي: د جسم څخه وینه ایستل، ملر، لړم، چینجیان او نور د جامو څخه لیري کول (ټکومل)، په کور کي لګېدلی اور مړ کول د یوې درجې شیان دي او د دوی په خطر ناکو کېدلو کي څه فرق نسته ځکه چې دا ټول په اسبابو د هلاکت کي شامل دي نو د دوی پرېښوول د توکل شرط نه دی (۶) او فرمایي: که د کومې میاشتي اوولسم تاریخ د سې شنبې ورځ راتله نو په د غه ورځ رګ وهلو سره د یو کال ناروغې

ليري کيږي هسي خو دا روايت په منقطع حديث کي ذکر سوی دی. دغه رنګه د منقطع حديث په روی سره روايت دی نبي کريم ﷺ فرمايي: (الف) ابن معاذ ﷺ ته چي رګ وهه، او (ب) د حضرت علي سترګي خوږ وې نو فرمايل يې چي تازه خرما مه خوره او د چقندر پاڼي د اوربشو د اوړو سره خوره، (ج) صهيب ﷺ ته يې وفرمايل: چي ستا سترګي خوږ دي اوبيا هم تازه خرما خوري؟ هغوی عرض وکړی چي دکم طرف سترګه خوږ ده زه يې په بل طرف خورم، پر دې نبي ﷺ تبسم وفرمايلو.

**افعال:** (۱) نبي ﷺ به روزانه د شپې سترګي رانجه کولې (۲) په هره مياشت کي به يې رګ وهلو (۳) هر کال به يې دوايي خوړل (۴) چي پر سر به يې درد سو نو نکريزي به يې پر مُږلې (اکثر به يې پر زخم صرف خاوره اچوله). دغه رنګه ډېر اقوال او افعال ذکر سوي دي، دلته عالمانو پوره يو کتاب د طبّ نبوي په نامه سره جمع کړی دی.

**فصل: د داغ په باره کي:** د مرض دفع کولو دپاره ځيني خلګ د داغ عاديان وي ليکن په دې فعل سره بنده د توکل د درجې ځخه لوېږي، بلکي د دې ځخه منع سوې ده حال دا دی چي د دم ځخه منع نه ده سوې ځکه چي په اُور سوځول د زخم د پاره خطرناک وي بلکي بيره وي چي جسم ته سرايت ونه کړي، دا کار نه د رګ وهلو په ډول دی او نه دومره مفيد دی.

د دې په عوض کي نور ډېر علاجونه مؤثر دي، حضرت عمران بن حصين رحمه الله يو وار سخت مريض سو خلګو د داغ مشوره ورکړه، ليکن دوی ډېر انکار وکړی، خلګو برابر ټينګار کوی، آخر په ډېره مجبوري کي دوی داغ ولګوی، ليکن د هغه ځخه وروسته يې فوراً ووېل: د داغ لګولو ځخه مخکي به ما ته يو نُور ښکاره کېدای او د دې سره به يو آواز زما په غوږونو کي راتلی او فرشتو به ما ته سلام کوی ليکن اوس هغه کيفيت ختم دی، او د داغ ځخه وروسته يوه خبره هم باقي پاته نه ده، آخر دوی توبه او استغفار وکړی، او بيا يې يوه ورځ مطرف بن عبد الله رحمه الله ته ووېل: شکر دی چي نن د يوې زماني ځخه وروسته الله ﷻ هغه کرامت ما ته واپس را کړی. د دې خبري وضاحت چي په ځيني حالاتو کي دوايي نه خوړل غوره دي او دا کار به د نبي کريم ﷺ په مخالفت کي شمار نه وي، پوه سه! ځنګه چي بعضي بزرګانو د خپلي ناروغی علاج نه دی کړی، نو کېدای سي چي يو سړی دلته دا اعتراض وکړي چي که کمال دا وي نو نبي کريم ﷺ دوايي ولي خوړله؟ دا ستونزه داسي ليري کېدای سي چي تا ته دا معلومه سي چي د دوايي نه خوړولو شپږ اسباب وي:

(۱) اول دا چې دوايي نه خوړولو والا صاحب کشف وي او ده ته معلومه سوې وي چې مرګ اوس پر سر راغلی دی، نو داوجه وه چې کله حضرت ابو بکر صدیق ﷺ ته عرض وسو چې که طبیب راوغوښتل سي نو په دې کي حرج څه دی؟نو ویې فرمایل: چې طبیب زه ولیدم او ماته یې ویلي هم دي چې زه هغه کووم کومه چې زما خو ښه وي. (۲) دا چې مریض د آخرت په خیال کي دومره مستغرق وي چې په زړه کي یې د دوایي تصوّر موجود نه وي، لکه چې د ابو الدرداء ﷺ څخه خلګو د ده د ناروغۍ په حالت کي پوښتنه وکړه چې ته ژاړې ولې؟ دوی جواب ورکړی چې پر خپلو ګناهونو ژاړم، بیا پوښتنه څیني وسوه چې طبیب راوغواړو؟ ویې فرمایل: چې طبیب خو زه مریض کړی یم. (۳) دریم دا چې ناجوړي ډېره اوږده وي او د مبتلا سوي په نزد د دې په دوایي سره علاج کول د متر څخه کم نه وي چې په دې سره به شاید چې یو څوک روغ سوی لیدل سوی وي او د کوم سړي چي د علم طبّ سره واقفیت نه وي د ده په نزد ډېري دوایانې بس هسې بې فائدې وي، ربیع خشیم رحمه الله وایي چې ما اراده وکړه چې د خپلي ناروغۍ علاج وکړم نو ما ته فوراً دا خیال راغلی چې په توم د عاد او ثمود کي د طبیبانو څه کمی وو؟ لیکن ټول مړه سول یو هم څیني پاته نه سو او د دوی علم طب د دوی هیڅ پکار را نه غلی، د دې بیان څخه ښکاره ده چې ربیع خشیم رحمه الله طب په ظاهري اسبابو کي نه شماری. (۴) څلورم دا چې د مریض د ناروغۍ څخه دخلاصېدو آرزو نه وي، چې د ناروغۍ ثواب هم ده ته حاصل سي او د صبر امتحان یې هم وسي، ځکه په حدیث شریف کي دي چې څوک الله ﷻ په مصیبت کي اچوي د ده امتحان کوي لکه سره زر چې په اُور کي اچوي کره (خالص) کوي یې، ځکه چې د چا لاس ته بیا خالص زر ارځي او د چا لاس ته خراب. (۵) پنځم دا چې د مریض ګناهونه بې شمېره وي او دی ناروغي د دغو کفاره کول غواړي ځکه چې په حدیث شریف کي دي چې بنده په تبه کي مبتلا کړي د ګناهونو څخه یې پاک صاف کوي تر دې چې داسي پاک سي لکه ږلی. چې د ګرز (خاورو) څخه پاکه وي. (۶) شپږم دا چې مریض د دې راز څخه خبر وي چې صحت د کاهلی او غفلت سبب دی، او په غرور او تکبر کي یې مبتلا کوي، نو مرض باقي ولي پاته نه کړل سي؟ چې بیا غلفت ښکاره نسي ځکه د الله ﷻ چې چا ته خیر رسول منظوره وي هغه همېشه په یو نه یو مرض کي مبتلا ساتي، په دې وجه ویل سوي دي چې مؤمن د درې شیانو څخه په یو وخت کي چیري خالي نه وي یعني: مفلسي، ناروغي، او خواري چې په دوی کي په یوه سره به خامخا ګرفتاره وي. او په حدیث شریف کي دی چې د الله ﷻ ارشاد دی چې مرض زما قید دی او درویشي زما زندان (محبس)، او په دې قید او زندان کي هغه ساتم کوم چې خپل محبوب ګڼم،

نوهر کله چي صحت (روغتیا) گناه ته تګ کوي او مرض يې د دې شخه ساتي نو مرض ښه سو که صحت؟ وايي چي فرعون دخدايي دعویٰ په دې وجه کړې وه چي څلور سوه کاله ژوندی وو لېکن چیري هم نه وو مريض سوی تر دې چي د سر درد هم نه وو پر راغلی او د تبي خو ده ته بالکل خبر نه وو چي څه به وي، که چیري يو ګړی هم د نیم سَري په درد کي مبتلا سوی وای نو داسي فضول دعویٰ به يې نه وای کړې، د بزرګانو وینا ده: بنده چي کله د يوې ورځي د پاره مريض سي او توبه نه کوي نو د مرګ فرشته ده ته وايي چي اې غافله! ځو واره ما تا ته خپل اُستاذی راولېږی خو پر تا هیڅ اثر نه کیږي، او ویلی يې دي چي مؤمن بنده هغه دی چي په هرو څلوېښتو ورځو کي يا خو په مرض کي مبتلا سي يا په يو بېره کي يا په يو تاوان کي. حضرت عائشې رضي الله عنها يو وار عرض وکړی چي يا رسول الله! آيا (بغير د قتلېدلو څخه) چا ته د شهادت درجه نصیب کېدای سي؟ ويې فرمايل: ها! هغه ته کوم چي د ورځي شل واره خپل مرګ يادوي، او په دې کي شک نسته چي مريض ته خو په ورځ کي د شلو وارو څخه هم زيات مرګ رايادیږي، نو د يو داسي وجهو او اسبابو پر بنياد بانَدي بعضي بزرګانو علاج نه دي کړی، او څنګه چي نبي ﷺ د دې خبرو محتاج نه وو په دې وجه علاج به يې کوی، او هسي هم د اسبابو څخه ځان ساتل خلاف توکل نه دی، حضرت عمر رضي الله عنه د شام پر سفر روانېدونکی وو چي خبَر سو چي هلته طاعون (وبا) خوره سوې ده، د بعضو خیال وو چي هلته تلل نه دي پکار او د بعضوو رایه دا وه چي د قضائی الهي څخه تېښته نه ده پکار، حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل: موږ د قضاء الهي څخه د قضاء الهي وطرف ته تېښتو، او ويې فرمايل: چي په تاسو کي د چا دوې شېلې (هغه شېله چي رمه پر کتل کیږي) وي يوه شنه او زرغونه او وښو والاوي، او بله وچه او بې د بنو وي نو شپانه چي کومي يوې ته هم رمه بوځي نوآيا په تقدير الهي سره به يې بیايي؟ دا يې وويل عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه يې راوغوښتی چي ګورو هغه څه وايي؟ هغوی وويل چي ما د نبي ﷺ څخه پخپله دا اورېدلي دي چي کله تاسو خبر سئ چي په فلاني ځای کي وبا خوره سوې ده نو هلته مه ځئ، لېکن که د وبا په وخت کي هلته واست نو دباندي هم مه ځيني تښتئ، بلکي هلته ووسئ، حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل: الحَمدُ لله چي زما رايه د نبي ﷺ دلرشاد مطابقه سوه.

**فصل: د مرض پټ ساتلو په باره کي:** پوه سه! چي د مرض پټ ساتل د توکل شرط دی بلکي ښکاره کول يا شکايت کول خو مکروه دي، لېکن که په شکايت کي عذر هم شامل وي نو مکروه نه دي، مثلاً طبيب ته خپل حالت بیانول او د خپل نفس تکبّر اولویي کښته کولو د پاره د عاجزی او بې

چارګی اظهار کول. لکه چې حضرت علي ﷺ ته د دوی د مرض په دوران کې د پوښتنې په توګه خلکو وویل چې اوس خو ښه یې کنه؟ او په خیریت یې؟ دوی وویل نه!، نو پر دې باندې ټول حیران سول یو بل ته یې وکتل نو دوی وویل چې هو! ووایم الله ﷻ ته هم د خپل نفس زړورتیا او تېزي وښیم؟ او دا جواب د دوی حسبِ حال او د شان سره مطابق وو چې د خپل ټول قوّت او عظمت سره یې د خپل عجز او بې چارګي اظهار وکړی او ویې ویل چې: اې خدایه! صبر زما روزي جوړه کړې، د نبي ﷺ ارشاد دی چې د خدای څخه خیر غواړئ د مصیبت او بلا مه طالب کېږئ، نو کله چې عذر موجود نه وو نو د شکایت په توګه د مرض ښکاره کول حرام دي، لیکن که د شکایت اړخ پکې نه راوتی نو روا دي که څه هم احسن او ښه اظهار نه کول دي ځکه ممکنه ده چې په اظهار او بیان کې مبالغه وکړي او اوږدونکي د شکایت ګمان پر وکړي، او ویل سوي دي چې د مریض فریاد کول هم په دې حساب کې لیکل کېږي ځکه چې دا خو هم د مریض اظهار دی. د فضیل عیاض رحمه الله، بشر حافي رحمه الله او وهب بن الورد رحمه الله دا عادت وو چې که به مریضان سول نو د کور دروازه به یې بنده کړه چې څوک خبر نسي، او ویل به یې چې موږ غواړو چې کله مریضان سو نو اې کاش! چې څوک پوښتنې ته رانسي؟

## نهم اصل: د محبت، شوق او رضا په باره کې

پوه سه! چې د الله ﷻ دوستي د محبت د ټولو مقاماتو څخه اعلیٰ ترین مقام دی، بلکې د ټولو مقاماتو مَاحَصَل او اصلي مقصود دا مقام دی، ځکه په مهلکاتو کې چې څه بیان سوي دي هغه د هغه طهارت په باره کې دي د کوم موجوداتو چې زړه د حق تعالی په محبت کې د مشغولو د پاره ضروري دي، دغه ټول د دې څخه مخکې چې د کومو منجیاتو ذکر سوی دی هغه هم ټول د دې مقام مقدّمات دي، مثلاً: توبه، صبر، شکر، زهد او خوف او نور....، او څه چې د دې څخه وروسته دي دغو ته د دې ثمره ویل پکار دي، چې هغه د دې تابع خو دي او دوی ته شوق او رضا وایي، او د کمال بنده کې انتها دا ده چې د الله ﷻ دوستي د ده پر زړه داسې غلبه حاصله کړي چې د سره څخه تر پښو پورې د هغه (الله ﷻ) سي او که داسې نه سي نو چې لږ ترلږه دومره خو سي چې دا دوستي د بل هر شئ پر دوستي باندې غالبه سي، او د دې محبت د حقیقت څخه خبرېدل خو دومره ګران دي چې د متکلمینو یوې ډلې خو د دې څخه انکار کړی دی، او دلیل یې دا ور کړی دی چې کوم شئ خپل هم جنسه نه وي د هغه سره دوستي څنګه کېدای سي؟ په دې وجه د الله ﷻ د دوستي څخه مراد فقط دا دی چې د هغه د

احکامو خلاف ورزي ونه کړل سي او بس! لېکن کوم سړی چي په دې ګمان کي مبتلا دی هغه په اصل کي د دين د حقیقت او اصلیّت څخه هیڅ هم نه دي خبر، او ددې تشریح او وضاحت ډېر اهم او ضرور دی، نو موږ د ټولو څخه مخکي هغه شرعي شواهد او دلائل وړاندي کوو په کومو کي چي دالله ﷻ د دوستي اثبات کیږي او بیا به ددې پر حقیقت او پر متعلقه احکامو رڼا واچوو:

## دالله ﷻ د دوستی فضیلت

پوه سه! چي ټول مسلمانان پردې متفق دي چي د الله ﷻ دوستي پر هر مسلمان فرض ده او د الله ﷻ ارشاد دی: يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُ [المائده: ۵۴] (الله تعالی د دوی سره دوستي کوي او دوی د الله تعالی سره) او نبي ﷺ فرمايي چي: د بنده ایمان نه صحیح کیږي تر څو چي دی خدای او د هغه رسول ﷺ د باقي ټولو شیانو څخه محبوب نه کړي، اصحابو ﷺ عرض وکړی چي د ایمان صحیح مفهوم څه دی؟ ويې فرمايل: چي دا چي بنده خدای او د هغه رسول د هر شئ څخه دوست ولري او فرمايي: بنده تر هغه وخته د مؤمن ويلو حقداره نه دی تر څو چي خدای او رسول ﷺ تر خپل ځان، مال، عیال او ټوله مخلوق څخه زيات عزيز او محبوب ونه ګڼي، او الله ﷻ هم فرمايي: قُلْ إِنْ كَانَ آبَاؤُكُمْ...الخ [التوبة] ((اې مُحَمّده! دوی ته ووايه! چي که ستاسو پلار، ځان، ورونه، ښځې، خاندان او هغه مال کوم چي تاسو ګټلی دي او هغه تجارت چي د هغه په نه ليدلو ستاسو سره بېره وي او هغه کورونه چي تاسو يې خوښوی، که تاسو ته دخدای او د رسول او د هغه په لاره کي د جهاد کوونکو څخه زيات محبوبه وي، نو منتظر وسئ چي حکم الهي تاسو ته راووسيږي او الله ﷻ د حکم څخه نافرماني کوونکي مقصود ته نه رسوی). يو اعرابي عرض وکړی، يا رسول الله! قيامت به کله راځي؟ نبي ﷺ وفرمايل: تا د هغه د پاره څه جمع کړي دي؟ عرض يې وکړی چي لمونځونه او روژې خو زما په لمن کي دومره نسته لېکن د خدای او د هغه د رسول سره دوستي ضرور کووم، دوی وفرمايل: نو ياد ساته چي د قيامت په ورځ به ته د هغو په صحبت کي يې د چا سره چي ته دوستي لري.

حضرت عیسی ﷺ پريو قوم تېر سو نو ويې ليدل چي ددې قوم هر سړی د لړګي په شان وچ کلک دی، پوښتنه يې ځيني وکړه چي پر تاسو څه تېر سوي دي؟ هغوی ووېل چي اې روح الله! موږ د الله ﷻ د عذاب د ډېري څه ويلي کيږو، ويې فرمايل: چي دالله ﷻ پر تاسو حق دی چي تاسو ته د عذاب دډيري څخه نجات درکړي، مخکي ولاړی نو يو بل قوم يې تر دوی لا خوار او کمزوری

ولیدی، پوښتنه یې ځینې وکړه چې تاسو په کوم آفت کې مبتلا یاست؟ هغوی وویل: اې د خدای پیغمبره! د جنت آرزو موږ ته دا ګزار را کړی دی، ویې فرمایل: د الله ﷻ پر تاسو حق دی چې تاسو په دې آرزو کې کامیابه کړي، بیا یې یو بل قوم ولیدی چې هغوی د دې دواړو څخه هم زیات کمزوري وو لیکن مخونه یې د هینداري په څېر روښانه او نوراني دي، پوښتنه یې ځینې وکړه چې په تاسو څه سوي دي؟ هغوی وویل چې د الله ﷻ محبت موږ ویلې کړي یو، ویې فرمایل: هاا تاسو د الله ﷻ مقرب یاست او د دوی سره کښېنستی ویې فرمایل: چې ما ته حکم سوی دی چې ستاسو سره کښېنم.

حضرت سري السقطي رحمه الله فرمایي: چې د قیامت په ورځ به هر سړی د هغه د پیغمبر د نوم په نسبت سره بلل کیږي چې د هغه دی اُمّتي وي، مثلاً: اې د موسی اُمّته! اې د مُحَمّد اُمّته! لیکن کوم چې د الله ﷻ دوستان وي هغوی به داسې بلل کیږي چې اې د خدای دوستانو! راسئ خپل خدای ته راتږدې سئ. د دې په اورېدو سره به د دوی زړونه دخوشحالی څخه ډک سي، او د پیغمبرانو په ځینې کتابو کې یې ویلي دي چې بیابه لله ﷻ دوی ته وایي چې: اې زما بندګانو! زما ستاسو سره محبت دی او دې وجه دا ده چې تاسو زما سره محبت ساتئ.

**د دوستی حقیقت او پېژندنه:** د الله ﷻ سره دوستي دومره ګران فهمه نه چې یوې ډلې خو د دې څخه انکار کړی دی او ویلي یې دي چې دا کیدای نسي چې بنده دې د الله ﷻ سره د دوستي دعوی وکړي ځکه چې دا قطعي نا ممکنه ده،او په دې کې شک نسته چې دا یوه نازکه موضوع ده چې د هر سړي په فکر کې نسي راتللای، ځکه چې هر ذهن دې ته کله رسېدای سي، لیکن تشریح یې دومره ضروري او اهمه ده چې موږ یې د بیان څخه بغیر نه سو پاته کېدای، نو ځکه موږ مثالونه وړاندې کوو او د دې وضاحت په داسې اندازه سره کوو چې که څوک لږ کوشش هم وکړي په پوه به سي.

اوس د ټولو څخه اول دا معلومول دي چې د دوستی اصلیّت څه دی؟ یعني محبت څه شئ دی؟ نو پوه سه! چې د محبت څخه مراد د طبیعت میلان دی د هغه شئ د طرف ته چې ښه او خوندور معلوم سي یعني د یو ښه شئ د طرف ته د زړه مائله کېدلو ته محبت وایي،او دا میلان که قوي او سخت وي نو دې ته عشق وایي. دغه ډول د دښمني څخه مراد د طبیعت نفرت دی دهغه شئ څخه چې نا کاره معلوم سي او بد معلومیږي، دې ته دښمني سائل وایي ګواکي چې په کوم ځای کې خوښي او ناخوښي نه وي هلته دوستي او دښمني هیڅ شئ هم نه وي. اوس پوه سه! چې د خوښي یا ښه والي

څخه مراد څه دی؟ نو د یو شيئ د ښه یا بد معلومېدلو انحصار پر دري خبرودی: (۱) بعضې شیان د طبیعت موافق وي او طبیعت ځان ته راکشوي او د زړه تقاضا وي چي خوند ځیني واخلي، دې شیانو ته ښه وایي.(۲) بعضې داسي وي چي طبیعت یې نه قبلوي، او دطبعي تقاضاوو څخه بالکل خلاف وي د دې په باره کي ویل کیږي چي دا شيئ زموږ ناخو ښه دی.(۳) بعضې شیان هغه وي چي نه دخوښي او نه د ناخوښي وي یعني نه دطبعي سره موافق وي او نه ځیني خلاف وي.

اوس پوه سه! چي یو شيئ ته ښه یا بد تر هغه وخته نسي ویل کېدای تر څو چي د مخکي څخه د هغه علم نه وي، او د شیانو څخه د خبرېدلو ذریعه دوه شیان دي: یعني حواس او عقل، حواس پنځه دي او هر یو حس د یو ځانګري لذت(خوند) حامل دی او د دغه لذت پر بنیاد هغه شيئ انسان ته ښه او خوښ معلومیږي، او طبیعت د هغه وطرف ته مائله کیږي: (۱) د سترګو لذت دا دی چي ښه او ښکلی شیان ور ته په مخ کي وي او سبزه(شنه او زرغونه وا ښه ) او بهېدونکي اُوبه د ښنده سترګو ته لوږوي، دا شیان بنده ته ښه معلومیږي نو محبت ور سره کوي.(۲) دویم د غوږونو لذت (خوند) او حس دی او دا هغه لذت دی چي د ښکلو آوازونو په اورېدلو حاصلیږي.(۳) دریم لذت د بوی دي چي د عطرو (خوشبويي) په بُویلوو سره حاصلیږي.(۴) څلورم حس د ذائقې دې یعني هغه لذت چي د خوندورو او مزېدارو شیانو په خوړلو سره بنده ته حاصلیږي.(۵) پنځم حِس د مَسَه کولو دی، یعني هغه لذت کوم چي دنرمو او پستو شیانو په مسه کولو سره حاصلیږي.

دا شیان بنده ته محبوب وي ځکه د دوی وطرف ته دی راغب کیږي، لیکن دا ټول شیان خو د حیوانانو هم کم او زیات خوښ وي (نو په انسان او حیوان کي فرق څه سو؟) نو پوه سه! چي د دې پنځه حِسونو څخه ماسوایو بل حس کوم چي د بنده په زړه کي پیدا کیږي، او دې ته عقل وایي، څوک ور ته بصیرت وایي او څوک ور ته نُور، د دې نوم که هر څه چي ایږدې خو دا هغه شيئ دي چي د دې په وجه په انسان او حیوان کي تمیز کیږي، او دا هغه شيئ دي چي انسان ته یې پر باقي هر شيئ باندي فضیلت ورکړی دي، او د عقل هم مدرکات سته چي د هغو پر بنیاد بعضې شیان ده ته ښه په نظر راځي او ده ته محبوب وي بلکل داسي لکه لور چي ذکر سوي لذتونه چي د پنځه حواسو په ذریعه سره حاصلیږي، دلوجه وه چي نبي ﷺ فرمایلي دي: چي د دنیا په شیانو کي ما ته دري شیئ خوښ دي:(۱) ښځي (۲) خوشبو (عطر) (۳) اولمونځ چي هغه زما د زړه یخوالی او د سترګو نُور دی، نو وګوره چي په دې کي یې کوم چي پر لوړه درجه ستایلی دی هغه لمونځ دی، نو کوم سری چي د حیوانانو د درجې څخه مخکي نه ځي هغه د زړه څخه بې خبره وي، او د ده د ټول کائنات بس دغه

پنځه حواس وي، او بس! د دې ځخه ماسوا دی څه پېژني هم نه اوس د دلسي سرې به څنګه يقين ولسي چي په لمانځه کي هم حُسن سته. دغه هم مرغوب او خوښ کېدای سي، او د دې سره هم محبت کېدای سي، لیکن اهل عقل پر کومو چي نور د بصیرت غالبه وي او د حیوانو د صفتونو ځخه ډېر لیري وي دغه د عقل په نور سره د الله ﷻ جمال هم پخپل ورانديي ښکاره لیدای سي او د زړه په سترګو یې جلال او کمال ملاحظه کولای سي د ده د صنعتنو عجائباتو او غرائبو د باطن په سترګو سره مشاهده کولای سي او بیا د دوی د ذات الهي او صفات باري تعالی سره محبت باقي پاته کیږي او په ظاهري حواسو سره په حاصلېدونکو لذتونو مثلاً د ښایسته کورونو، شینګیاه او ګلانو، روانو اوبو په نظارو کي د ده د پاره هیڅ کشش(جاذبه) نه پاته کیږي، بلکي دا لذتونه د ده په نظر کي بې حقیقته سي، ځکه چي دجمال الهي په کشف سره د دې شیانو قدر او قیمت باقي څنګه پاته کیږي.

## د دوستی او محبت د اسبابو په باره کي

دې پېژندلو د پاره چي د دوستی مستحق او لایق صرف د الله ﷻ ذات دی تا ته دا پېژندل پکار دي چي د دوستی پنځه اسباب دي:

(۱) اول دا چي بنده خپل ځان دوست (ملګری او محبوب) لري(یعني د خپل ځان سره دوستي او مینه کوي) او خپله بقاء خوښوي او خپل کمال دوست(مینوال) لري، لیکن خپل هلاکت خپل دښمن ګڼي، که څه هم د ده نه کېدل د ده د تکلیف او درد د خاتمې(ختمېدلو) سبب ولي نه وي، دی هلاکت ولي دوست نه لري ؟ ځکه چي سبب د دوستي د طبعي موافقت نوم دی نو بیا د ژوند ځخه زیات موافق او مناسب شئ کوم کېدای سي؟ او د دې ژوند ختمونکی شئ "نیستي" (یعني مرګ) دی نو د ده ځخه زیات نامواقفه شئ کوم کېدای سي، نو په دې وجه سره د ده اولاد هم خوښ وي، ځکه چي د دوی په بقاء کي ورته خپله بقاء ښکاري، او د خپلې بقاء ځخه خو دوی پخپله مجبوره وي په دې وجه چي د دوی کوم شئ هم باقي پاته کیږي هغه په څه ناڅه وجه سره دوست لري او دغه ډول په حقیقت کي د ده د هر شئ سره دوستي د خپل ځان سره دوستي وي په دې وجه د مال سره هم دی دوستي کوي چي دا هم یوه ذریعه د ده د خپلې بقاء وي یا لږ ترلږه د ده د صفاتو بقاء وي او خپلوان(قریبان) هم دوست لري چي دغه دی خپل وَزَرْ ګڼي، او ده ته دا احساس وي چي زما ذات بغیر د دوی ځخه بشپړ نه دی.

(۲) دويم سبب نېکي ده نو د بنده سره که بل بنده نېکي وکړي نو دی هغه طبعاً خوښوي او خپل دوست يې ګڼي، د ده دامقوله ياده وي چي: بنده د احسان بنده دی، او د دې پيش نظر نبي ﷺ دعاء کړې وه چي: اې خدايه! يو فاسق، فاجر زما مُحسن مه جوړوې ځکه چي د ده د احسان په وجه به زما زړه دی دوست ګڼي، او دا خبره د بنده د په طبيعت کي يو داسي ځای سوې ده چي که کوشش هم وکړي خو نسي ځيني خلاصېدای، او د دې حقيت بيا هغه دی چي دی خپل ځان دوست لري ځکه چي د احسان مطلب دا دی چي يو سړی د بل سړي د پاره داسي کار وکړي چي د ده د ژوند يا صفاتو په تکميل کي معاون ثابت سي او د ده د بقاء سبب وي، نو خپله روغتيا (صحت) عزيزه (ګرانه) ګڼي نو په دې وجه چي د ده ژوند خوندور جوړوي، تر دې چي دی طبيب دوست ګڼي نو صرف د دې د پاره چي هغه د ده د روغتيا (صحت) په برقراره ساتلو کي مرسته کوي نو دی په اصل کي د خپل ځان څخه ماسوا هيڅ څوک هم دوست نه لري، که لري يې نو صرف ځکه چي څوک د ده د ذات په دوستي کي د ده مرسته کوونکي او مددګاره وي، او احسان کوونکي د داسي خلګو څخه يو وي، په دې وجه دی دوست ګڼي.

(۳) دريم سبب دا دی چي د بنده د نېک سړي سره خامخا مينه او محبت خوندي پيدا کيږي که څه هم ده ور سره يو نېکي کړې وي او که نه وي، مثلاً که دی واوري چي په مغرب کي فلانی باچا داسي عادل دی چي ټول عوام د ده د عدل په سايه (سيوري) کي په آرامه ژوند تېروي، نو د ده يو رغبت خوندي په زړه کي پيدا سي که څه هم د ده يقين وي چي مغرب ته تلل به زما چيري هم نصيب نه سي او د ده د عدل څخه به فائده وانه اخستل سي.

(۴) څلورم سبب دا وي چي کوم سړی ښايسته وي، انسان هغه دوست لري، او مينه ور سره کوي، په دې وجه نه چي د ده څخه يو څه حاصل کړي بلکي د هغه ذات ځکه دوست لري چي حُسن او جمال في نفسه طبيعت ته خوښ او مرغوبه وي او ښه صورت بلا شهوته دوست ګڼل ممکنه دي لکه بنده چي شين ګيا او روانې اوبه خوښوي، په دې وجه نه چي وبې خوري او ويې چښېي بلکي په ليدلو سره يې سترګو ته راحت حاصلېږي او حُسن او جمال محبوب دی نو که د الله ﷻ بې مثاله جمال بنده ته معلوم سي نو ممکنه ده چي دوست به يې لري.

(۵) پنځم سبب هغه مناسبت دی کوم چي په طبيعتونو کي پيدا کيږي ځکه چي يو سړی داسي وي چي د هغه طبيعت د بل د طبعيت سره مناسب او موافق وي نو دی هغه دوست لري، دا مناسبت کله ښکاره وي لکه د هلک د بل هلک سره، د بازاري د بل بازاري سره، د عالم د عالم سره او د هر يوه د خپل

جنس سره اُلفت وي، او کله دا مناسبت پټ وي، او اصل فطرت او اسباب سماوي کوم چې د ولادت پر وخت غالبه وي پر دوی يو داسې اثر وکړي چې په دوی کي يو نست خونډي هم پيدا سي، او دا هغه مناسبت دی چې څوک د دې حقيقت ته نسي رسېدلای، نبي ﷺ د دې طرف ته اشاره کړې ده فرمايلي يې دي: يوه اشنائي (دوستي) هغه وي کومه چې دروح د روح سره وي او دغه ډول د روحونو په مېنځ کي بېگانگي او غيرت هم وي، کله چې په اصل کي اشنائي واقع سوې وي نو ديوبل سره الفت کوي، دا داشنائي د دې مناسبت څخه عبارت دی کم چې موږ ويلي دي چې بنده ته د دې خبر نسته.

## د حسن او جمال حقيقت

پوه سه! چې کوم سړی د څاروياتو (حيواناتو) مرتبې ته قريب (ژوندي) وي او فقط بصارت لري بصيرت نه لري (يعني ظاهري نظر يې وي باطني نه وي) دغه به وايي چې دمخ سُرخي او سپين والی او داعضاؤ د تناسب څخه ماسوا د حُسن او جمال يو بله معنی نسته، حسن او جمال د رنګ او صورت څخه حاصلېږي او کوم چې صورت او رنګ نه لري په هغه کي حسن او ښايستوالی کېدل محاله دي، حال دا دی چې دا غلطه ده، ځکه چې عقلمندان خلګ وايي: چې دا خط ښه دی، آواز ښه دی، کالي (جامه) ښه ده، آس ښه دی، کور ښه دی، باغ ښه دی، ښار ښه دی، په هر شئ کي د ښه والی دا معنی ده چې کوم کمال د دې شئ لايق دی هغه په دې کي سته، او د يو خبري کمی پکښې نسته، او د هر شئ يو مختلف ډول وي په دې وجه د خط کمال دا دی چې د ده حرفونه او نور متناسب (برابر) وي او په دې کي شک نسته چې د ښه خط او ښه ځای په ليدلو کي يو لذت وي، نو د مخ ښه والی (ښايستوالی) پر صورت موقوفه نه دی، ليکن دا ټول شيان په ظاهري سترګو سره محسوس دي، شايد يو سړی د دې خبري خو اقرار وکړي مګر ووايي چې کوم شئ سترګي ليدلای نه سي هغه به څنګه ښه وي، حال دا دی چې دا هم ناپوهي ده ځکه ته وايې! فلانی سړی ښه اخلاق لري، او ښه تنګ لري او علم د پرهيز ګارۍ سره ښه وي، شجاعت د سخاوت سره دېر ښه صفت دی، پرهېزګاري، بې طمعي او قناعت د ټولو شيانو څخه غوره دي، او داسې نوري خبري مشهوري او معروفي دي، حال دا دی چې په دوی کي يو شئ هم د سترګو په ليدلو سره نه ليدل کېږي بلکي دعقل په بصيرت سره معلومېدای سي، د نفس د رياضت په ذکر کي موږ بيان کړي دي چې صورتونه دوه دي يو ظاهري بل باطني، نېک خويي (ښه اخلاق) صورت دباطن دی او په طبع سره محبوب وی پر دې دليل دا دی چې مثلاً يو سړی امام ابو حنيفه رحمه الله او امام شافعي رحمه الله بلکي حضرت صدّيق اکبر رضي الله عنه او عمر

فاروق ﷺ دوستان لري، نو دا څه محاله نه ده او محاله به څنګه سي حال دا چي بعضي خلک خو په دې محبت کي خپل ځان اومال قربانوي، او دا دوستي دشکل او صورت په وجه سره نه وي ځکه چي دې حضراتو خو دوی لیدلي نه وي او د دې حضراتو صورتونه خو اوس په خاور کي دي بلکي دا دوستي د دې حضراتو د باطني صورت دجمال په سبب سره ده کوم چي علم، پرهیزګاري او سیاست او نور دي، دغه ډول خلک پیغمبران هم په دې سبب سره دوستان لري، او کوم سړی چي صدیق اکبر ﷺ دوستْ لري نو هغه دی د دې صفت په وجه سره دوست لري چي د هغه صفت په وجه دوی صدیق بلل سوي دي، او د صدیق د ذات سره د یو شئ صفت علم او صدق دی چي دې شئ ته جزء لایتجزئ وایي ځکه چي دغه نه شکل لري نه رنګ. او د حکماؤ په نزد څه ځای نه نیسي په هر حال په هر څه صفت چي وي د ده رنګ او شکل نسته. لیکن د دې سره سره که محبوب او ګران دی نو دغه دی، نه چي ظاهري ښوبنه پوست، نو په چاکي چي د عقل لږ اندازه هم وي دی به د دې خبري څخه انکار نه کوي چي د باطن جمال(ښایست) هم یو شئ دی بلکي دی به د ظاهري حسن څخه باطني حسن زیات خوښوي، په دې وجه چي پر دېوال د لګول سوی(عکس) په نسبت کومه دوستي او محبت چي دپیغمبر د پاره کېدای سي د هغه اثر زیات وي بلکي ته په دې مثال پوه سه! چي که دیو بچي په زړه کي د یو چا مینه او محبت اچول وي نو د هغه د سترګو بانوګانو او نورو تذکره به نه ور ته کوي، بلکي د هغه د علم سخاوت اونېکو صفتونو ذکر به کوي، دغه ډول که د چا څخه یې متنفره کوي نو د ظاهري بد شکلی ذکر به یې نه کوي بلکي د هغه دبدو صفتونو ذکر به کوي زړه به یې ځیني اړوي، هم په دغه وجه د دې صفتونو فرق دی چي خلک د اصحابو ﷺ سره محبت ساتي او د ابو جهل د نامه څخه هم بیزاره دي او خپل دښمن یې ګڼي، نو دا خبره بالکل ښکاره سوه چي جمال پر دوه قسمه دی: یعني ظاهري جمال او باطني جمال او په دې کي محبوب او خوښ باطني جمال دی او په چا کي چي عقل وي هغه به ظاهري جمال نه بلکي باطني جمال دوست لري.

## د دوستی لائق صرف د الله ﷻ ذات دی

نو اصل شئ اوس دا دی چي په حقیقت کي دا الله ﷻ څخه ماسوا بل څوک د دوستی مستحق نه دی او کوم سړی چي د هغه څخه ما سوا بل یو دوست لري د دې وجه صرف د ده خپل جهالت وي چي دی الله ﷻ نه پیژني، لیکن د الله ﷻ د دوستانو سره دوستي درلودل صحیح (درست) دي مثلاً د نبي کریم ﷺ سره محبت ساتل د الله ﷻ سره محبت دی، ځکه په دنیاکي چي کوم سړی د چا سره محبت

ساتي ذ هغه دوست هم دوست لري، او د چا سره چې هغه محبت کوي هغه ئې هم خپل محبوب ګڼي، دغه رنګه نبي کريم ﷺ د الله ﷻ محبوب هم دی او رسول هم، په دې وجه د دوی سره محبت او دوستي ګويا د الله ﷻ سره دوستي او محبت کول دي، نو د عالمانو د دينو او د متقيانو سره دوستي هم د الله ﷻ سره دوستي ده او دا خبره هلته پېژندل کيږي چې د دوستۍ پر اسبابو باندې بيا يو نظر واچول سي.

(۱) اول سبب دا دی چې بنده خپل ځان دوست لري او خپل کمال دوست لري، نو بيا د دې دوستۍ دپاره ضروري دي چې دی د الله ﷻ دوستي ولري، ځکه چې د ده خپله هستي او د ده د کمال هستي او د ده دا اوصافو هستي ټول د هغه د وجود په رحم او کرم سره ده ځکه چې که د هغه فضل او کرم نه وای نو دی به پيدا هم نه وای، او د دې ځخه وروسته هم که د هغه کرم او فضل نه وای نو ژوندی به نه وای پاته، او که پيدايښت په وخت که د هغه فضل شامل حال نه وای نو د ده په اندامونو او کمال اوصافو کې به دا سې نقص واقع سوی وای چې هر شئ به يې ناقص وای، نو تعجّب دی پر هغه سړي کوم چې دغرمو دګرمی ځخه خو د درختي سايه (سيوري) خوښوي لېکن د درختي سره مينه نه لري، چې د هغې په وجه سره د دا سيوري قيام دی، او بنده په دې پوه هم دی چې ځنګه د سيوري قيام د درختي په سبب دی دغه ډول د ده او د ده د صفتونو قيام د الله ﷻ په سبب سره دی نو دی به د الله ﷻ سره ځنګه محبت نه کوي، ها که دی په دې خبره پوه نه وي، نو په دې کې يو شک نسته چې جاهل الله ﷻ دوست نه لري، ځکه چې د ده سره نېکي يا احسان ماسوا د الله ﷻ ځخه بل څوک نه سي کولای او نه چا کړی دی، او بيا د الله ﷻ پر بنده باندې څه يو احسان خو نه دی؟ د هغه د احساناتو خو هيڅ شمار نسته، او هغه احسانات کوم چې ستا په خيال نورو پر تا کړي دي په اصل کې دوی نه دي کړي بلکې ته صرف د جهالت په وجه داسې خيال کوې، ځکه تر څو چې الله ﷻ پر چا باندې يو مؤکل مقرر نه کړي تر هغه وخته بل تا ته د يو څه در کولو د پاره نه تياريږي، ځکه چې هغه صرف د الله ﷻ ذات دی چې د چا په زړه کې واچوي چې تا ته څه در کړي، ځکه چې د ده بهتري (ښه والی) په دين او په دنيا کې پر دې منحصره ده.

(۲) دريم سبب دا دی چې کله انسان د يو نېک سړي سره محبت کوي که څه هم ده ور سره يو نېکي يا احسان نه وي کړی، مثلا يو سړی واوري چې په شام کې يو داسې عادل باچا دی چې ټول خلک ځيني خوشحاله دي ځکه چې هغه پخپل حکومت کې ظلم او زياتي کول نه پريږدي نو په دې خبره به ور سره لازما د ده مينه پيدا سي، که څه هم ده ته معلومه وي چې د ده به ور سره چيري هم ملاقات

ونه سي، او نه به څيني ده ته چيري يو فائده ورسيږي اوکه فکر وکړل سي نو دلته د دوستی اصل مستحق الله ﷻ دی، او که باچا مستحق گڼي نو دا د ده جهالت دی، څکه چي د دې احسان او ښکي اصل سبب خو الله ﷻ دی چي په دنيا کي دانسان په لاسو دانسان د خير سبب د الله ﷻ ذات دی د هغه په حکم سره د چا په زړه کي د ښکي جذبه مستحکمه کيږي کنې د خلکو سره يو چا ته دور کولو څه فکر دي.

(۴) څلورم سبب دا دی چي بنديو څوک د هغه د حسن او جمال په وجه دوست لري د دې حسن او جمال څخه مرد باطني حسن او جمال دی مثلاً: دا چي څوک امام ابوحنيفه رحمه الله او امام شافعي رحمه الله دوست لري او د چا محبت د حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه او د حضرت عمر رضي الله عنه سره وي او څوک ټوله دوستان لري، بلکي پيغمبران نور هم زيات دوستان لري او د دې دوستی او مينې سبب د دې عظيمو هستيو صفتونه وي اود باطن ښه والی، او که په غور سره دې ته وکتل سي نو د دوی د باطن د ښه والی "ما حصل" درې ښېگڼې وي: اوّله ښېگڼه د د دوی علم وي او د علم او صاحبِ علم سره محبت څکه وي چي علم شريف او ښک دی په دې وجه عالم هم شريف او ښک وي، او څومره چي د چا علم شريفبوي دومره صاحبِ علم هم شريف او ښک وي، او په دې سبب سره د ده د باطن جمال هم زيات د کشش (جاذبې) څخه ډک وي او په ټول علومو کي افضل ترينه درجه د معرفت الهي ده او د ده د درگاه معرفت ډېر عظيم وي چي پر فرشتو، پيغمبرانو، الهامي کتابو نو او د انبياؤ پر شريعتونواو دارنگه د دنيا او آخرت اوملک اوملکوت پر تدبيرونو غرض په هر علم باندي محيط وي، او د انبياؤ او صديقينو سره چي دکومو خلکو محبت وي نو څکه وي، چي دوی ته په دې علم يعني معرفت الهي کي کمال حاصل وي. دويمه ښېگڼه هغه قدرت دی کوم چي دې بزرگانو ته حاصل وي مثلاً دا چي د خپل نفس پر اصلاح او جوړښت، دخدای د بندگانو د اخلاقو په صحيح کولو او پالني او د دوی په سيلست د دنيا د حکومت د ظاهري نظام په صحيح والي او د دې دحقيقت پر قائم ساتلو دوی ته دلسي قدرت حاصل وي چي دوی د خلکو محبوب او گران جوړيږي. دريمه ښېگڼه د دوی تنزيه او پاکي وي: يعني د د وی د عيبونو او نقصانونو څخه څان پا کول د بدو اخلاقو څخه ليري وسپلل دوی د خلکو محبوب جوړوي، نو دلته هم چي وکوري معلومه به سي چي محبوب د دوی افعال نه دي بلکي د دوی صفات دي.

(۵) پنځم سبب دا دی چي د الله تعالیٰ سره د بنده په دوستي کي يو خاص نسبت هم پيدا کيږي، د

الله ﷻ ارشاد دی: قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي [ بني اسرائيل: ۸۶] (ووايه! چي روح زما درب حکم دی)
او په حديث شريف کي دي چي: په تحقيق سره الله ﷻ آدم پخپل صورت پيدا کړی، نو دا هم په
اصل کي د دې مناسبت وطرف ته اشاره ده. او دا چي يې فرمايلي دي چي: زما بنده خو زما د ژوندکت
تلاش کوونکی دی چي زما دوستي ده ته حاصله سي، نو کله چي زه دی خپل دوست جوړوم نو زه به د
ده سترګي غوږونه او ژبه جوړ سم، او دا چي ارشاد دی چي: ای موسی ﷺ! زه ناجوړه سوم ته زما
پوښتني ته نه ارغلې، او موسی ﷺ عرض وکړی چي ای خدايه! ته چي د ټوله عالم خدای او د
موجوداتو خالق يې ته څنګه مريض کېدای سې؟ نو ارشاد وسو چي: ای موسی! زما فلانی بنده چي
مريض وو که ته د هغه پوښتني ته تللی وای نو ګويا تا به زما پوښتنه کړې وای، او دالله ﷻ سره د آدم د
صورت د مناسبت تذکره په بعضي بابونو کي موږ کړې ده. او دا ډول مثالونه ډير پيدا کيږي، ليکن د
شريعت پر موضوع په کتاب ليکلو سره د دې شيانو ذکر نسي کېدای ځکه چي د عامو ذهن په دې
نسي پوهېدلای، ښه ښه ذهين او عاقلان هم په دې کي ټکري خوړلي او پر مخ مښتي دي، يعني
ځينو خو د تشبيه چکر اختيار کړی چي د صورت څخه مراد صرف ظاهري صورت کېدای سي او د
دې څخه ماسوا يې بل يو صورت نسته، بعضو د حلول ونډوره راپورته کړه او بعضو د اتحاد عقيده
ورانلدي کړه، غرض که په دې دپوهېدلو کوشش وسي نو هيڅ فائده ځيني نسته، ځکه چي د دې
پېژندل ډير ګران دي.

## کوم لذّت او خوند چي د الله ﷻ په ديدار کي دی هغه په يو بل شئ کي نسته!

نوياد ساته! چي په ويناو(ويلو) کي خو د ټولو مسلمانانو مذهب دا غه دی، ليکن دا ويل زياتره وخت
صرف زباني (پر ژبه وي) وي، ځکه چي د دې د تحقيق دا علم وي چي کله سوچ کوي نو د دوی زړه
دا وايي چي د هغه شئ ديدار به څنګه وي او لذت به يې څه رنګه وي، چي نه يې يو جهت وي نه شکل
نه رنګ، او په دې د نه پوهېدلو سره سره هم په ژبه اقرار کوي، ځکه چي د دوی سره دا ډېره وي چي په
شرع کي چي داسي ويل سوي دي نو که يې دروغ کوو، نو انکار به څنګه کوو؟ ليکن زړه د شوق څخه
بالکل خالي وي، په دې وجه بنده چي کوم شئ پېژني نه، د هغه شوق به د ده په زړه کي د کومي خوا
پيدا سي؟ اوس د دې پټ راز وضاحت او شرحه که څه هم په دې ډول کتاب کي کول ډېره ګرانه ده.
بياهم په لنډه سره مونږ يو څو اشاري په دې ضمن کي کوو:
نو پوه سه! چي دا بيان پر څلورو اُصولو تقسيميږي: (۱) بنده دا خبره وپېژني چي ديدارِ الهي د

معرفت الهي شخه زيات بنه دی، او (۲) پوه سه! چي دالله ﷻ معرفت د غير الله دمعرفت شخه غوره دی، او (۳) پوه سه! چي زړه ته په علم او معرفت سره راحت او خوشحالي حاصليږي بغير له دې شخه چي سترګي او بدن په دې کي شريک وي، او (۴) پوه سه! چي هغه خوشحالي کومه چي د زړه په خاصيت سره پيدا کيږي هغه د هغو ټولو خشحاليو شخه ډېر بنه او ډېر غالبه او ډېره مضبوطه وي کومي چي په سترګو غوږونو او نورو حواسو سره حاصلي سوي وي، نو کله چي د دې اصولو شخه خبرسي نو بنده ته به پخپله په لازمي توګه سره معلومه سي چي دالله ﷻ د ديدار شخه غوره او افضله او خوښه تره ديو ديدار تصوّر هم نسي کېدلای.

**اول اصل:** داپه دې باره کي دی چي تا ته دا معلومه سي چي په معرفت کي چي زړه ته کوم راحت حاصليږي د دې په لذت کي بدن ته شرکت حاصل نه وي، نو پوه سه! چي په بنده کي ډېر قوّتونه پيدا کړل سوي دي او هر يو قوت د شه نا شه کار د پاره ر پيدا کړل سوی دی، او دغو قوّتونو ته په اصل کي د ده طبعي تقاضاوي ل کيږي او دهه لذتونه د دغو طبعي تقاضاوو تابع وي، مثلاً قوّت د غصې او غضب يې دانتقام د غلبې د پاره پيدا کړی دي او د ده لذت په دې کي دی، قوّت د شهوت يې د روزی او غذا حاصلولو د پاره جوړ کړی دي او ده ته په دې کي لذت حاصليږي، دغه ډول قوّت سمع او قوّتِ بصر او د نورو قوّتونو اندازه لګول کيږي چي په دوی کي د هر يو جلا لذت دی، بيا دا ټول لذتونه ديو بل شخه مختلف دی، بيا دا چي دا هر لذت په قوّت کي هم ښکاره فرق ليدل کيږي يعني شه داسي دي چي مضبوط تر دي (او ځيني کمزوري دي) مثلاً لذت د سترګو د ښايسته صورتونو په ديدار کي دومره قوي اومضبوط دی چي پزه د خوشبو په بويلو کي دومره مضبوطه نه ده، او دغه ډول يو قوّت د بنده په زړه کي پيدا کړل سوی دی چي عقل يا نور (يا بصيرت) ور ته ويل کيږي او دا په دې واسطه پيدا کړل سو چي بنده د ټولو اشياؤ علم او معرفت حاصل کړای سي کوم چي په خيال او حس کي نسي راتلای، دا د ده طبعي تقاضا ده او د ده لذت په دې کي وي چي دی په دې پوه سي چي دی عالَمِ وجُود ته راويستل سوی دي ديو داسي صاحبِ تدبير او صاحبِ حکمت محتاج دی کوم چي هميشه باقي پاته کېدونکی وي، او چي د هغه د ټولو صنعتونو او حکمتونو شخه دی آشنائي حاصله کړي د کومو چي د حس او خيال په ذريعه پېژندل ممکن نه دي، د دې په برکت دی د صانعِ اصلي د باريکو شخه د باريکو صنعتونو او ژورو حکمتونو پېژندل غواړي او د مشاهداتو شخه د مختلفو نتيجو اَخذ کولو په شغل کي وي، او د حقيقتونو په لټون کي د کتابونو تصنيف کوي، دا شوق ده ته تر دې اندازې پوري وي چي که د شطرنج کوونکو سره کېښني او هغوه غواړي چي دی په

یو چال پوره نسي نو شومره شرطونه چي خواري ضائع کوي دې بیا هم خلوش نه پاته کیږي، گویا علم که یې ډېر کم ولي نه وي د دغه د ظاهرولو او لذت اخیستولو شخه بغیر دی نسي پاته کېدای او دا خواري چي په دې سره دی د فخر او غرور موقع دلاس شخه ونه باسي، او ولي نه چي علم دی د فخر شئ، شکه چي علم دخدائي صفتونو شخه دی او دبنده د پاره د دې کمال شخه ښ قابلِ فکر کمال کېدای نه سي کوم چي دالله ﷻ د صفتونو د حصول سبب وي.

**دویم اصل:** په دې باره کي دی: چي تاته معلومه سي چي زړه ته د علم او معرفت شخه کوم لذت حاصلیږي هغه د هغه لذت شخه ډېر زیات قوي وي کوم چي په محسوساتو یا شهواتو کي پیدا کیږي په دې سلسله کي پوه سه! چي کله یو سړی د شطرنج په لوبه کي مشغول وي نو تول ورځ ډوډۍ هم نه خوري بلکي که ورته د ډوډۍ خوړولو وویل سي نو نه یې خوري او بس په لوبه کي لګیاوي، د دې شخه موږ ته صافه معلومیږي چي د ده شطرنج کول او په دې کي ګټه کول د خوراک کولو شخه خوښ دي، ګویا دا لذت د خوراک د لذت شخه هم قوي تر وي، په دې وجه ده پر خوراک مقدم کړی، نو د یو لذت دقوّت د مضبوط یا دمضبوط تر کېدلو اندازه هغه وخت کېدای سي کله چي څه لذتونه په یو وخت کي جمع سي، نو چي په دغو کي بنده کوم ته ترجیح ورکړي هغه ته قوي تر ویل کیږي، هر کله چي دا قاعده معلومه سوه نو پوه سه چي کوم سړی شومره زیات عقلمند وي دومره به پر ده هغه لذتونه غالبه وي د کومو چي تعلق د باطني قوّتونو سره وي، نو که یو سړي ته دا اختیار ورکړل سي چي که غواړې نو حلوا او سور کړی چرګ حاضر دی دا وخوره او که غواړې نو فلانی کار وکړه دښمن به دي مغلوب سي، او ته به د ریاست مالک سې نو دی به یقیناً دا خوښوي چي پر دښمن غلبه ومومي ریاست حاصل کړي، په دې شرط چي دی عقلمند وي کنې که د ده فطرت نا مکمله وي مثلاً ناپوه هلک وي یا داسي سړی وي چي د عقل او پوهي شخه محروم وي او پاګل سوی وي، شکه چي په کوم سړي کي شهوت د طعام هم وي او شهوت د جاه او ریاست هم نو دی به طلب د جاه مخکي کوي، نو د دې شخه موږ ویږنله چي دا لذت قوي تر دی دغه ډول یو عالم هغه که د علم هندسه وي او که د علم طبي او د علم شریعت د ده لذت په دې کي وي، په دې شرط چي دا علم ناقص نه وي، او که په دې کي کوم کمال حاصل سي نو د دې لذت پر ټولو لذتونو باندي غالبه سي، او دی هغه مقدم کوي هم بلکي د ده په نزد خو د دې لذت د حکمت او ریاست شخه هم زیاتنړی او دی دا پر هغه هم مقدم کوي. ها! دا جلا خبره ده چي که د چا علم ناقص او ناتمام وي او ده ته هغه لذت نه حاصلیږي کوم چي عالم کامل ته حاصل وي، نو د دې وضاحت شخه معلومه سوه چي د علم او

معرفت لذت د باقي ټولو لذتونو څخه مضبوط تر وي ما سوا د هغو څخه چي علم یې ناقص وي او شهوتونه ټول په ده کي موجود وي، ځکه چي بچي ته که په باجه څوکولو کي د مباشرت یا حکومت په نسبت زیات لذت محسوس سو نو زموږ به په دې کي یو شک نه وي چي په ده کي دا نقص ځکه واقع سوی دی چي په ده کي د مباشرت یا حکومت شهوت موجود نه دی ځکه چي که دوا ړه خواهشونه موجود وای نو ده به یقینا مباشرت او حکومت ته ترجیح ورکړې وای، او دا به یې مخکي کړی وای.

**دریم اصل:** په دې باره کي دی: چي معرفت د الله ﷻ د ټولو معرفو تونو څخه خوش تره، غوره او بهتره دی، هرکله چي دا خبره صافه سوه چي علم او معرفت زړه ته بنه لوېږي نو په دې که هم شک پاته نه سو چي پخپله په علمونو او معرفتونو کي هم فرق پیدا کیږي یعني بعضي علمونه د بعضو څخه خوش تره وي، او "معلوم" چي څومره شریفه وي د هغه "علم" هم دومره شریف تره وي، مثلاً د شطرنج د ایجاد علم د شطرنج بازۍ څخه بهتر دی او مُلکی سیاست او وزارت او حکمراني علم د زرګر او د درزي (خیاطي) د علم څخه بهتر دی دغه ډول د شریعت او د شریعت د رازونو علم د علمِ نجوم او علمِ لغت څخه خوش تره دی، او دغه ډول د وزیر د پاره د وزارت د رازونو د کار څخه د آګاهي د اهلِ بازار د رازونو د کار څخه د اګاهي په نسبت غوره دی، نو څومره چي معلوم خوش تر وي دومره اندازه د ده علم هم لذیذ تر وي، نو غور وکړه چي په عالَمِ موجودات کي کوم شئ د ټوله عالم د څښتن الله ﷻ د جلال او کمال څخه شریف تر او عظیم تر کېدای سي کوم چي ټول کمالات او جمالات پیدا کړي دي، کوم باچاه دی چي په خپل حکمت کي داسي تدبیرونه د حکومت وکړای سي، په ملکوتو د اسمان او مځکي کي او د دې جهان د کار په نظام کي چي کومه ښېګڼه په نظر راځي آیا دغه د یو دنیاوي حکمران په نزدهم لیدل کیږي.

نو د دې څخه معلومه سوه چي معرفتِ الهي او معرفت د صفات الهي او معرفت د حکمت الهي او معرفت د اسرارِالهي هغه معرفت دی چي د باقي ټولو معرفتونو څخه بهتر او خوش تر دی، ځکه چي د دې معرفت معلومات د نورو ټولو معلوماتو څخه شریف تر دې بلکي شریف تر ویل ورته هم ګستاخي او خطا ده ځکه چي یو بل شئ د دې په مقابله کي راوړل کیږي، نو دې (معرفتِ الهي) ته به شریف تر هلته ویل سي چي مقابل شئ ته یې شریف وویل سي.

نو عارف خو په دې دنیا کي د وسپلو سره سره هم په جنت کي وي، او دا هغه جنت دی چي پر خپلو وسپلونکو نه تنګیږي بلکي په فراخوالي کي یې نور زیاتوب کیږي.

**خلورم اصل**: دادی چي لذت د نظارې د لذت د معرفت څخه هم زیات وی، پوه سه! چي د یو شيئ معرفت یا علم پر دوه قسمه وي: (۱) یو هغه چي په خیال کي راځي مثلاً رنګ او شکل او نور، او (۲) دویم هغه چي په خیال کي نه راځي صرف په عقل سره لیدل کیږي، مثلاً ذات الهي او صفات الهي بلکي ستا پخپلو صفتونو کي څومره داسي دي چي په خیال کي نسي راتلای، څکه چي په دوی کي څرنګوالی نه لیدل کیږي مثلاً علم، اراده، او ژوند او نور، بلکي د څرنګوالي کیفیت خو په غصه، عشق، شهوت او راحت او نورو کي هم نه لیدل کیږي او خیال همدې ته نه سي رسیدلای، لیکن عقل دا ټول معلومولای سي.

او بیا چي په خیال کي راځي د هغو ادارک پر دوه قسمه دی:

(۱) خو دا چي یو شيئ صرف په خیال کي حاضر وي ګویا چي ته هغه وینې او دا نقص دی، (۲) دویم دا چي هغه د سترګو په مخکي ګرځي او دا کامل تر دی، او لامحاله (خامخا) د خیال د معشوق څخه د دیدار د معشوق لذت زیات دی، او د دې سبب دا نه وي چي په دیدار کي د ده صورت بدل سي بلکي هغه صورت کوم چي په خیال کي وي د دیدار پر وخت وي، لیکن دا چي د خیال په نسبت زیات واضحه وي بلکي معشوق چي د لمر ختلو څخه وروسته وینې نو زیات خوند اخیستونکي به وي په نسبت د هغه چي عین د لمر ختلو پر وخت لیدل کیږي.

حال دا دی چي د وړځي په راختلو سره څه صورت نه تبدیلیږي بلکي دا چي په روښانه ورځ کي صورت هم زیات روښانه ښکاري، او کوم شيئ چي په کي خیال کي نه راځي بلکي عقل یې معلوموي د هغه هم دوه صورتونه وي: یو ته معرفت وایي او بل د دې څخه د لوړې درجې شیان دي کوم ته چي دیدار یا مشاهده وایي، او د رڼا په کمال کي د معرفت سره د دې هغه نسبت دی کوم چي دنظارې د خیال سره دی، او لکه څنګه چي د سترګو پټول د دیدار پرده ده نه چي د خیال، (یعني چي سترګي بندې وي نو د نظارې سلسله منقطعه سي لیکن د نظارې د خیال سلسله نه بندیږي) او تر څو چي دا د مغ څخه پورته سوې نه وي نظاره نه حاصلیږي، دغه ډول د بنده تعلق د خاورو او اوبو څخه مرکب دی د بدن سره چي وي نو د ده خواهشات او شهوات په مشاهده کي حائل کیدلی سي، لیکن د ده د معرفت لار نسي بندولای، او تر څو چي دا پرده پورته نسي د مشاهدې سوال نه پیدا کیږي، د دې وجهې څخه حضرت موسی ﷺ ته دا جواب ملاو سوی وو چي: ته هیڅ کله زما د دیدار طاقت نه سې درلودلای [الاعراف].

نو هر کله چي مشاهده ډیره ښکاره او ډیره بشپړه وي نو د دې لذت هم ډیر کیدل لازمي دي لکه چي د

خیال په مقابله کي په دیدار کي زیات لذت پیدا کیږي، او یوه سه ! چي دا معرفت دی چي په هغه جهان کي به یو بل صفت اختیار کړي او د خپل اول صفت څخه به دومره لیري او مختلف سي چي دواړه به بالکل جلا معلومیږي، داسي لکه چي څنګه نطفه بدله سي د بنده شکل اختیار کړي، او د خُرما تاکی د کجوري درخته جوړه سي، یعني دې معرفت ته به درجه د کمال هلته نصیب سي، او په دې ګردش به زیات روښانه سي، او دا به هغه رڼا وي کوم ته چي مشاهده یا نظاره یا دیدار وایي، ځکه چي دیدار عبارت دی د کمال ادراک څخه او مشاهده د دې کمال ادراک آخري درجه ده او دا وجه ده چي دا مشاهده دجهت تقاضا نه کوي عین دغه رنګه لکه چي معرَفت په دې دنیا کي د جهت تقاضا نه کوي نو معرفت ته تخم د دیدار ویل کیږي، یعني چا ته چي معرفت نه وي حاصل هغه ته مشاهده هم چیري نسي حاصلېدای او دغه به د دیدار الهي څخه همیشه محروم وي ځکه چي که دیو سړي سره د ګرلو د پاره تخم نه وي نو دی به کرونده څنګه وکړي؟ او څومره چي څوک ښه عارف وي دومره به ده ته دیدارِالهي په کامله طریقه سره حاصل وي، دا خیال نه دی کول پکار چي د دیدار به یو قسم وي نو لذت د دیدار به هم د ټولو د پاره یو قسم وي، ځکه چي د دیدار څخه لذت اخیستل د هر چا د خپل خپلِ معرفت د درجې مطابق به وي، په حدیث شریف کي دي چي: د الله ﷻ یو تجلّی به هغه وي کومي چه به د عوامو د پاره وي، او یوه تجلّی به هغه وي کومه چي به خاص د ابو بکر صدّیق ﷛ د پاره وي، نو د دې څخه دا مراد نه دی چي ابو بکر صدیق ﷛ ته به د الله ﷻ دیدار چیري جلا په تنهایي کي نصیب وي، ګوري به دی هم د ټولو سره په یوه وخت کي لېکن په کتلو کتلو کي به فرق وي په دې وجه کوم لذت د دیدار چي حضرت ابو بکر ﷛ ته حاصل وي دغه به نورو ته نصیب نه وي بلکي خاص د ده حصه به وي او د دې خصوصیت او امتیازي لذت وجه دا ده چي په معرفت کي کوم کمال حضرت ابوبکر ﷛ ته حاصل دی دغه نورو ته حاصل نه دی، او د نبي ﷺ دا ارشاد چي: حضرت ابوبکر ﷛ ته پر نورو اصحابو ﷡ باندي د لمانځه او روژې په وجه فضیلت نه دی بلکي دیوپټ راز په وجه دی کوم چي د ابوبکر رضی الله عنه په زړه کي دی، دا په اصل کي دې معرفت وطرف ته اشاره ده، او دا معرفت د دیدارِ الهي سبب به وي، په کوم کي چي به د صدّیق اکبر ﷛ حصه خاصه وي سره د دې چي الله ﷻ یو دی مګر په دیدار الهي به کي دخلګو په مینځ کي فرق وي، د دې مثال داسي دی چي هینداري که ډېري وي خو د یوه صورت عکس پکي مختلف ښکاري او دا صورت په کومه کي کوچنی ښکاري په کومه کي ښه په یوه هینداره کي صاف ښکاري په بله کي خړ، په چا کي برابر په چا کي کوږ، او دا کوږوالی زیاتره داسي وي چي بدن خو ښه وي خو په دې کي بدشکله

ښکاري، نوکوم سړی چي د خپل زړه هینداره توره کړي،یا پکي کوږوالی پیدا کړي، او په دې حالت کي يې بل جهان ته بوزي نو دغه شئ کوم چي نورو ته دخپلو زړونو په هینداره کي ښایسته ښکاري هغوی ته راحت رسوي، د دې تور زړه د پاره به باعث د تکلیف او زحمت وي، نو دا گمان بالکل غلط دی چي د دیدارِالهي څخه به کوم لذت چي پیغمرانو ته حاصل وي دغه لذت به عوامو ته هم نصیب وي، یا کوم لذت چي د علم خاوندانو ته وي دغه رنګه به عوامو ته هم وي، بلکي پخپله په عالمانو کي هم چي کوم لذت متقیانو عالمانو ته حاصل وي دغه لذت به هغو عالمانو ته نصیب نه وي کوم چي په پرهېزګاري کي د دوی څخه کم وي دا فرق به پخپله د عارفانو په لذت کي هم وي چي پر کومو د محبت الهي غلبه زیاته وي، دوی ته به لذت د دیدار هم د هغو عارفانو د لذت څخه زیات وي پر کومو چي د محبت الهي غلبه د دوی په اندازه نه وي، او د دې فرق سبب به دیدار نه وي، ځکه چي دواړه قسمه عارفان به دیدار خو په یوه وخت کي کوي ځکه چي د معرفت څخه وروسته دیدار خو به حاصلیږي او معرفت خو دې دواړه قسمه عارفانو ته حاصل دي، د دې دواړو عارفانو مثال د داسي دوو خلکو سره وکول کیږي د کومو نظر چي برابر یو ډول وي او دواړه یو ښایسته سړي ته وګوري نو ښکاره ده چي په دې دواړو کي که یو پر دغه ښایسته سړي عاشق وي او بل عاشق نه وي نو عاشق ته به په دغه دیدار کي زیات خوند وي، او که د واړه عاشقان وو نو هم د خوند مقدار به د عشق د زیاتوالي په مقدار وي، نو د پوره سعادت حاصلول صرف پر معرفت موقوف نه دی بلکي د دې سره د محبت غلبه هم لازمي ده، او د محبت غلبه به په هغه صورت کي ممکنه وي کله چي د دنیا دمحبت څخه دبنده زړه بالکل خالي وي، او دا پاکي او صفائي د زهد او تقوی څخه ماسوا چیري په لاس نسي راتلای، نو لذت هغه ته حاصلیدای سي کوم چي زاهد وي او عارف وي او د لوی څښتن ﷻ سره محبت کوونکی وي (چي دا ټول صفتونه لازم او ملزوم دي).

## معرفتِ الهي د سترګو څخه ولي پټ دی؟

یاد ساته! چي د کومو شیانو د پوه کېدلو څخه چي بنده معذوره وي د هغه دوې وجهې وي:

یوه دا چي هغه شئ پټ وي ښکاره نه وي، بل دا چي هغه شئ دومره روښانه وي چي سترګي يې لیدای نسي، چوپرک ځکه د شپې ویني د ورځي نسي لیدلای، د دې دا وجه نه ده چي د شپې شیان زیات ښکاره وي، بلکي شیان خو د ورځي زیات ښکاره او روښانه وي، مګر د هغه نظر کمزوری وي په دې وجه هغه د ورځي د رڼا طاقت نه سي درلودلای، دغه ډول سختي او تکلیف بنده ته د الله ﷻ په

معرفت کي مخ ته راځي چي ګویا د دوی تور زړونه د شپې په ډول دي چي دوی کتل په دغه تیاره کي کوي او دورځي په رڼا کي دوی ته ګویا هیڅ نه ښکاري، د الله ﷻ د نُور مثال داسي دي چي مثلاً که ته یو ښکلی لیکل سوی خط یا د درزي (خیاط) ګنډل سوي جامي وویني نو د کاتب او د درزي قدرت، علم او ژوند او ارادي به پخپل مخکي بالکل ښکاره ووینې، ځکه چي د دوی دا کار د دوی دباطن څخه داسي ښکاره کیږي چي خبره تا ته بالکل واضحه کیږي او په دې ته پوهیږي هم (چي دا د کاتب او درزي صنعت ګري ده)، الله ﷻ هم که په ټوله دنیا کي صرف یو بوټی راپیدا کړي یا یوه مرغي پیدا کړي نو چا چي ورته کتلي په دوی کي به یې د پیدا کوونکي کمال، علم، قدرت، جلال او عظمت په پوره ډول ښکاره موندلای، ځکه چي د صانع د وجود دلیل په دې شیانو کي د کاتب د خط د دلیل څخه زیات ښکاره دی، لیکن په عالم موجودات کي آسمان ځکه حیوانات نباتات او څه چي په وهم او خیال کي راځي، غرض ټول شیان هم صفته دي او د صانع د جلال ګواه دي، دکثرت دلیل او د حدّ څخه د زیات روښانه او ظاهر کېدلو په وجه سره مخ ته دی خو ګویا پټ دی، دا خبره که داسي وي چي یو فعل د یو صانع وي او یو فعل د بل نو صنعت به ظاهریږي، لیکن څنګه چي ټول صنعتونه هم صفته دي، په دې وجه د صانع معرفت پټ سو او مثال یې داسي ورکول کیږي، چي مثلاً لمر دی او هر یو پوه دی چي د دې څخه زیات روښانه بل شئ نسته ځکه چي ظاهري خبره ده چي د باقي هر شئ رڼا د ده څخه ده، لیکن دا لمر که د شپې پټ نه وای یا د ورځي د سیوري (سایې) په وجه پناه کېدای نه نو چا ته به نه محسوسېدلای چي پر مخ د مځکي یو نُور دی ځکه چي په دې صورت کي به د سپینوالي، توراوالي او رنګونو څخه ماسوا نور څه نه سوای لیدل کېدای، نو دا به یې ویلای چي د دې څخه ماسوا نور څه نسته، نو د دوی، د دې شئ څخه خبرېدل چي دنُور وجود د رنګونو څخه جلا شئ دي پر دې بناء دی چي د شپې رنګ پټ وي، بلکي په سایه (سیوری) کي هم دومره مبهم او بدل ښکاره سي چي د لمر د رڼا په موجودګي کي هم پوره واضح کیږي نه، نو لمر چي وپېژندل سو نو په ضد سره وپېژندل سو (یعني په مقابل شئ سره وپېژندل سو)، اوس که دغه ډول د خالق هم کله ورک او کله موجود کېدل ممکن وای نو اسمان او ځمکه خو به خیر درهم برهم (ذرّه ذرّه) او نیست نابود کېدلای، مګر خلکو ته به دا خبر هم خامخا کېدای چي الله ﷻ څه دی؟ څنګه چي صورتِ حال دادی چي ټولو موجوداتو او مخلوقاتو په یوه ژبه پرخپل خالق ګواه دي، او ګواهي هم داسي چي د همیشه همیشه دپاره حاضر او موجود، نو ګویا رڼا او رڼا ده، چي معرفتِ الهي په دې کي پټ سو.

دویمه خبره دا ده چې دالله ﷻ ټول صنعتونه او تخلیقات د کوچنیوالي څخه لیدل کیږي، او دغه زمانه داسې وي چې د دې خبرو شعور لږ اندازه هم نه وي چې دا صنعتونه د یو صانع ګواهي هم ورکوي، او بیا د دوی سره په عادي کېدلو ورسره اموخته سي بلکې په محبت کې یې هم قید سي. لېکن نه ځیني د صانع ګواهي طلب کوي او نه ځیني ځان خبروي، لېکن دا ضروري وي چې کله کله یو نوی او عجیبه حیوان ووینې یا یو داسې بوټي ووینې چې مخکې یې نه وي لیدلی نو بې اختیاره یې د: سبحان الله الفاظ د خولې څخه ووځي، ګویا د دې ګواهي د مخکې څخه په زړه کې موجوده خو وي، نو نظر که کمزوری نه وي نو لیدونکي ته په هر صنعت کې صانع ښکاره کیږي، نه چې دغه صنعت؟ دی اسمان او ځمکه هم وینې نو ځکه چې دغه د صانع پر صنعت ګواه دي دغسې لکه څنګه چې خط ته کتونکی په دې خیال سره نه ګوري چې دا سیاهي (رنګ) او کاغذ دی چې دا خبره خو هغه سړی وینې کوم چې د خط د تحریر څخه واقف نه وي کنې کوم چې واقف وي نو دا وینې چې مثلاً دا تحریر منظوم دی (یا نثر او نور) تر دې چې کاتب په دې کې وینې لکه چې په یو تصنیف کې د مصنف شخصیت موجود وینې، او په کتاب کې خط ته نه ګوري، وا کله چې دا کیفیت سي نو بیا چې پر هر شئ باندې نظر اچوي په دې کې الله ﷻ وینې چې یو شئ هم داسې نسته کوم چې د ده صنعت نه وي بلکې ټوله عالَم د ده جوړ کړل سوی دي او د دنیا کتاب د ده تصنیف دی او که ته کوشش کوې هم داسې یو شئ تلاش کول غواړې کوم چې د ده یا د ده طرف څخه نه وي نو په دې کوشش کې به هیڅکله کامیاب نه سې، او څنګه به کامیاب سې چې هر شئ، هر صنعت او هر مخلوق په زبان حال سره په ناکه چغې وهي ګواهي ورکوي چې کمال قدرت، جلال او عظمت والا چې دی نو فقط هغه کوم چې زموږ خالق دی او چا چې هر شئ جوړ کړی دی، د دې څخه ظاهر تر او روښن تر شئ په دنیا کې هیڅ نسته لېکن خلک د بې خبرۍ او عاجزه کېدلو په وجه د دې د معرفت څخه محرومه دي.

## د الله ﷻ سره محبت څنګه پیدا کیږي؟

پوه سه! چې محبت په ټولو مقاماتو کې بزرګ ترین او غټ مقام دی په دې وجه د دې په زړه کې د پیدا کولو د طریقې څخه خبریدل هم اهم ترین شئ دی، په دنیا کې چې څوک پر یو بنایسته مخې بلدې عاشق کیږي نو د ده اولنی کوشش دا وي چې د محبوب او معشوق څخه ماسوا باقي د هر شئ څه مخ واړوي او همېشه د هغه په نظاره کې محوه وي، او بیا دا نه چې د هغه مخ ته ګوري، بلکې د ده د

لاسو پښتو دحسن هم نظاره کول غواړي ځکه چي دغه د دې حُسن یوه حصه وي دغه ډول د ده محبت د عشق درجې ته ورسیږي اورغبت او کشش (جاذبه) یې زیاتیږي او کله چي دی په مستقله توګه قائم وي نو خامخا څه نا څه جوابي رغبت د بل طر ف څخه هم ظاهریږي، د الله ﷻ سره د محبت معامله هم لږ داسي ده، او د دې اولنی شرط دا دی چي د دنیا څخه مخ وګرځوي او د دنیا د محبت نوم او نښه هم په زړه کي پاته نه کړي، ځکه چي د یو شئ دوستي د بل شئ د دوستی په لاره کي بندیز راولي، نو د غیر حق دوستی د حق د دوستی په لاره کي حائله کیږي، د غیر الله د دوستی څخه زړه پا کول داسي دي لکه چي دتخم کرلو د پاره ځمکه د وښو (ګیا) ، خاشاکو او نورو څخه پاکه سي، چي دا وسي نوبیا د هغه د معرفت طالب کېدل پکار دي، کوم سړی چي د الله ﷻ سره محبت نه کوي هغه یې ځکه نه کوي چي هغه دی پېژندلی نه وي، کنې جمال او کمال خو د بنده په فطري توګه سره خوښ وي، کوم سړی چي ابو بکر صدیق ﷺ او عمر ﷺ وپېژني نو لازماً به ور سره محبت کوي او دا کېدای نسي چي داسي نه کوي، ځکه چي ښه والی او ښه صفتونه په طبعي توګه دانسان خوښ وي، د دې څخه وروسته د معرفت حاصلول ګویا په ځمکه کي تخم کرل دي (کومه چي صافه کړل سوې وي) او بیا په ذکر او فکر کي مشغولېدل ګویا دې ته اوبه ورکول دي، ځکه چي کله یو سړی بل سړی شپه ورځ یادوي نو د ده دا کار پرخپل ځای د محبت شوق د هغه په زړه کي پیدا کوي، او دا یاد ساته چي یو مسلمان داسي نسته چي په زړه کي یې د محبت بېخ موجود نه وي دا کوم باهمي (خپل مینځوي) فرق چي په نظر راځي، د دې دري وجهې وي:

(۱) اوله داچي په دنیوي محبت او مشغولیت کي د هر چا درجه مختلفه وي او د یو شئ محبت د بل شئ پر محبت یقیناً اثر غورځوي، یعني کموي یې.

(۲) دویم دا چي پخپله په معرفت کي فرق لیدل کیږي مثل یو سړی امام شافعي رحمه الله دوست لري او محبت ور سره کوي، ځکه چي هغه د یو غټي درجې عالم تیر سوی دي لېکن د دې سړي په مقابله کي یو فقهي عالم کوم چي د امام شافعي رحمه الله د علم او فضل دتفصیلاتو څخه هم خبر وي هغه به د دې عام سړي په نسبت هغه زیات دوست لري او زیات محبت به ور سره کوي، ځکه چي ده صرف اورېدلي نه دي بلکي لوستلي یې هم دي، چي هغه د کومي درجې عالم وو، نو د دوی شاګرد مزني کوم چي د استاذ د ټولو حالاتو اخلاقو او علومو څخه زیات باخبره وو هغه به د دوی رحمه الله زیات دوست درلودی، او د ټولو فقهاؤ په نسبت به یې د دوی سره زیات محبت کوی، دغه ډول چي کوم سړی الله ﷻ څومره زیات پېژني دومره به ور سره دوستي زیاته ساتي.

(۳) دریم دا چي د هر سړي په ذکر فکر طاعت او عبادت کي فرق وي او د محبت بنیاد پر اُنس او عبادت دی او کله چي په دې کي فرق وي نو خامخا به په شوق او محبت کي هم فرق وي نو د یو سړي د الله ﷻ سره محبت نه کول صرف په دې وجه سره وي چي دی د الله ﷻ څخه خبرنه وي، کنې حُسن او جمال چي څنګه په ظاهر کي د خوښي وړ دغه رنګه باطني جمال او حسن هم د خوښي او محبوب وي. نو محبت نتیجه وي د معرفت. او د معرفت حصول په دوه ډول سره کېدای سي: اول خو هغه طریقه ده کومه چي د صوفیانو ده یعني مجاهده او ریاضت اختیارول او په دوامي ذکر سره د باطن صفائي کول چي د غیر الله څخه بالکل نجات حاصل سي دې مقام ته چي ورسېږي نو پر ده په باطن کي احوال او معاملات ښکاره کېدل شروع سي، د کومو په رڼا کي چي عظمت الهي د مشاهدې په ډول ظاهر او صاف سي، د دې مثال د ښکاري د جال په ډول وي چي کېدای سي ښکار پکښي ومښلي او کېدای سي چي ونه مښلي، او بیا ممکنه ده چي موږک پکښي ومښلي او که باز. ګویا خپل خپل نصیب وي او ظاهره ده چي د هر چا نصیب د نورو څخه مختلف وي. دویمه طریقه دا ده چي علم د معرفت حاصل کړي نه چي علمِ کلام، او علمِ کلام لا څه چي د معرفت په مقابله کي بل یو علم حاصلول هم دومره ضروري نه دي، او د علم معرفت ابتداء دا ده چي دالله ﷻ په صنعتونو او عجیبو غریبو تخلیقاتو کي غور او فکر شروع کړي (نو د علم معرفت دروازې به پر ده خلاصي سي).

او بیا دا هم یاد ساتل پکار دي چي رسېدل (رسائي) که یو داسي شئ ته حاصله سي د کوم سره چي مخکي هم محبت سوی وي لیکن د څیني وجوهاتو پر بناء په وقتي توګه څیني جلا سوی وي یا یې د سترګو څخه پناه کړی وي حالانکه مخکي یې د رسره یوه زمانه په شوق او محبت تېره کړې وي، نو د بندیزونو او د پردو په لیري کېدلو باندې بیا هغه شوق د نوي سره تازه سي او بیو وار بیا هغه مزه او لذت حاصل سي او د ده خوشحالي د مخکي څخه هم زیاته وي او د دې نوم سعادت دی. لېکن که مخکي محبت موجود نه وي نو که څه شئ حاصله هم سي نو بیو لذت به ورته نه حاصلیږي او که معمولي خوندې محبت یې د دې څخه مخکي سوی وي نو معمولي خوندې لذت به هم حاصل وي.

نو د سعادت مقدار به هغه وي کوم چي د عشق او محبت وي. او که نَعُوذُبِالله چا پخپل باطن کي یو داسي نقشه جوړه کړې وي کومه چي د محبت الهي څخه بالکل ضد وي او دی د هغې په محبت کي ګرفتاره وي نو په آخرت کي به د ده انجام د اهلِ سعادت څخه بالکل برعکس (خلاف) وي. او د هلاکت، بربادي او عذاب په شکل کي به ظاهر وي. هغه شئ کوم چي د نورو د پاره د سعادت پیغام

راوړي د ده دپاره به د بدبختی شکل اختیاروي خلکو ته به د دې په وجه نېک بَخته وایي او ده ته به بدبخته وایي، د ده مثال د هغه بنګي (د ګندګیو صفا کوونکی) دی کوم چي د عطار دکان ته تللي وي، او د ټول خوشبویو په وجه بې هو بنه سوی راغورځار سوی وي، بلکي خلکو د ده په هوښ کي د را وستولو د پاره پر ده د ګلابو او مشکو څاڅکي کول او د ده حالت به د بد څخه بد تر کېدلو، تر دې چي یو سړی هلته راغلی کوم چي یو وخت پخپله بنګي پاته سوی وو هغه ته چي دا حال معلوم سو نو د ګبنده ګي یوه ټکره یې راوړه او د ده په پزه پوري یې ومُږله، فوراً په هوښ کي رغلی او ویې ویل چي دا دې خواږه عطر، نو څا چي د دنیوي لذت سره محبت پیدا کړی تر دې چي دا یې خپله معشوقه جوړه کړه هغه بالکل د دغه بنګي په ډول دی او لکه څنګه چي د عطارانو په بازار کي د ګندګی ګذر نسي کیدای بلکي د دوی په دکانونو کي چي څه وي هغه د ګندګیو بالکل ضد وي، او پخپله د بنګي طبیعت هم د دې څخه خلاف وي او ده ته تکلیف ورکوي، څکه چي د نجاست کومه بدبویي د ده خوښه وي هغه دلته وي نه، دغه ډول په آخرت کي د دنیوي شهواتو په ډول یو شئ نه وي، او څه چي هلته وي هغه د دنیا د دې عاشقانو د طبع څخه خلاف وي، او خامخا به د دوی دپاره د تکلیف او عذاب باعث وي.

نو آخرت عالَمِ ارواح دی، او یو داسي عالَم چي د حضرت الهیت تجلیات به هلته بار بار ښکاره کیږي، او هلته به خوش بخته هغه وي کوم چي په دې دنیا کي خپل طبیعت د دې مناسب او موافق جوړ کړی وي او د ده مناسبت یې ورته ورکړی وي چي هغه عالَم د ده سره موافق راسي، او ټول ریاضتونه، مجاهدې عبادتونه او معرفتونه د دې مناسبت د پاره وي او محبت پخپله د دې مناسبت عین دی، او د الله ﷻ دا ارشاد د دې په تائید کي دی: قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَکّٰی (یقیناً مراد ته ورسېدی چا چي روح پاک کړی)[الشمس] او ټول ګناهونه او شهوتونه او دنیوي دوستی د دې ضد دي، و د الله ﷻ دا ارشاد د دې تصدیق دی: وقَدْ خَابَ مَنْ دَسّٰهَا (نامراده سو هغه سړی چا چي خپل روح په فسق او فجور کي اخته کړی) [الشمس]

او اهلِ بصیرت د دې معنی په مشاهده د تقلید دحدود څخه وتلي مخکي تللي وي، یعني دا معنی یې د صدق د پیغمبر څخه پېژندلې ده یعني بغیر د معجزې څخه په صداقت د پیغمبر ایمان راوړل هم د دې په وجه دوی ته نصیب سوی دي، لکه یو سړی چي د علم طب څخه واقف وي نو دیو طبیب دخبرو څخه دی معلوموي چي دا طبیب دی، لیکن دیو دکاندار د پاره د طبیب خبري صرف دجهالت

پلنه وي، نو په دې طریقي سره د رښتوني نبي او درواغجن نبي پېژندل فوراً کېږي، ګویا څه چي پخپل بصیرت سره پېژندل کېږي په اصل کي د دې زیاته حصه د پیغمبر په وجه سره پېژندل کېږي، او دې ته علم ضروري وایي چي دا علم دغه رنګه نه سي حاصلیدای چي پخپل مخکي یې په لازمي توګه لکړه بنامار جوړېدل لیدلي هم وي ځکه چي د دې ډول علم د دې خطرې سره همیشه مخامخ کیږي، ځکه چي په معجزه د پیغمبر او په سحر د سامري کي فرق کول دومره آسان نه وي څومره چي ضروري علم آسانه وي.

## د محبت نښي او علامې

پوه سه! چي محبت یو عزیزي او کمیاب ګوهر دی او د محبت دعویٰ کول څه مشکل (مسخرې) نه دي، په دې وجه بنده ته بلا سوچ او فکره د محبت ګمان پر ځان نه دي کول پکار چي زه هم د اهل محبت شخه یم ځکه چي د محبت نښي او علامي موجودي دي، نو کتل پکار دي چي هغه په ده کي سته که نه؟ او دا علامې (نښي) اووه دي؛

(۱) اول دا چي مرګ بد نه ګڼي ځکه چي د دوست دیدار دوست کله بد ګڼي، د نبي ﷺ ارشاد دی چي: کوم سړی د الله ﷻ د دیدار سره محبت لري، الله تعالی هم د ده د دیدار سره محبت لري، حضرت بویطي رحمه الله د یو زاهد شخه پوښتنه وکړه آیا ستا د مرګ سره محبت سته؟ زاهد په جواب کي لږ توقف وکړی نو دوی وویل چي که ته صادق وای نو سوچ به دي نه کولای او د مرګ سر به دی محبت وای.

(۲) دویم دا چي د خدای پر خوښه خپله خوښه قربان کړي، او کوم شئ چي ده ته پخپل حق کي نږدې د قربت معلومیږي د هغه شخه هیڅ کله لاس نه سي اخیستلای، او کوم شئ چي د هغه شخه د لیري کېدلو سبب وي د هغه شخه لازماً ډډه کوي، او دا هغه سړی وي کوم چي په خلوص د زړه سره صرف الله ﷻ دوست لري، لکه چي نبي ﷺ فرمایلي دي؛ که ته دیو داسي سړي دلیدلو آرزو مند یې کوم چي په صدق د زړه سره په پوره توګه د الله ﷻ دوست وي نو د حذیفه رضي الله عنه غلام سالم رضي الله عنه ته وګوره، نو که د چا شخه ګناه وسي نو د دې دا مطلب نه دی چي د ده د الله ﷻ سره محبت نسته بلکي دا علامه د دې ده چي د ده محبت کمزوری دي، او زموږ د دې دعوی دلیل دا دی چي نعمان ته څو واره د شرابو په وجه شرعي حد ولګول سو، نو یو سړي پر ده لعنت وکړی، پر دې نبي ﷺ وفرمایل: چي پر ده لعنت مه کوه! ځکه چي دی د الله ﷻ او د هغه د رسول سره محبت کوي، د فضیل عیاض رحمه الله

قول دی چي که یو سړی ستا څخه پوښتنه وکړي چي ستاد الله ﷻ سره محبت دی؟ نو په جواب کي خاموشي اختیار کړه ځکه چي که ووایې چي نه! نو کافر به سې او که ووایې چي هو! نو ستا دا فعل به دالله ﷻ د دوستانو فعل نه وي.

(۳) دریم دا چي د ذکر الهي د تازه ګی څخه به د ده زړه چیري محرومه نه وي، او په بې تکلفي سره به د دې شوقي (مشتاقه) هم وي، ځکه چي دوست ته د دوست د دوستی په ذکر کي یو حجاب او یو ستونزه نه وي، دی اکثر په ذکر کي مشغوله وي؟ چي محبت کامل وي نو د محبوب یاد د زړه څخه چیري هم نه محوه کیږي، لېکن که په زوره او په تکلف د زړه په ذکر الهي کي د مشغولولو کوشش کوي نو د دې مطلب دا دی چي د ده محبوب هغه دی د کوم یاد چي د ده پر زړه مسلط دی، نه چي الله ﷻ چي د هغه یاد د ده پر زړه غالبه نه دی.

(۴) څلورم دا چي قرآن شریف دوست لري چي هغه د ده کلام دی، د ده رسول دوست لري چي هغه د ده دوست دی، او هر هغه شئ دوست لري د کوم چي د الله ﷻ سره یو ډول مناسبت وي ځکه چي د ده نسبت هم عزیز دی او دغه رنګه د ده دوستي مضبوطیږي دې حد ته ورسیږي چي ټول خلګ ده ته خپل دوستان ښکاره سي ځکه چي دا نسبت څه کم دی چي ټول د هغه بندګان دي بلکي خبره د دې څخه هم مخکي ولاړه سي او د عالم موجودات ذره ذره ده ته دوسته معلومیږي ځکه چي هره ذره د هغه جوړه کړل سوې ده، ځکه چي کله انسان یو سړی دوست لري نو د ده هر شئ تر دې چي د ده خط او تصنیف یې هم خوښ وي.

(۵) پنځم دا چي د خلوت د پاره بې قراره او د مناجات د پاره پرېشانه وي بلکي دا چي ګویا د دې په حرص کي ګرفتار وي، او همیشه په دې انتظار کي وي چي کله به شپه راځي او زه به د دنیا د دندو او کارو څخه خلاصون پیدا کړم، په خلوت کي به حضور د دوست ورسم لېکن که په عملي توګه صورت حال دا وي چي شپه او ورځ د خوب څخه فرصت نه وي او که وي نو دنیوي خبري نه ختمیږي نو بیا دوستي د خوب او خبرو سره سوه، نه چي د الله ﷻ سره دغه رنګه که د الله ﷻ سره دوستي وي هم نو کمزوري به وي.

(۶) شپږم دا چي عبادت د هغه د پاره ډېر آسانه وي او هیڅ کله پر بوج کیږي نه، دیو سړي ورنادي چي د عبادت په اوّلو شلو کالو کي به د شپې لمونځ پر ما دومره ګران وو چي ګویا ساه را څخه خیږي، بیا تر شلو کالو پوري عبادت ما ته عیش وعشرت معلومېدی او حقیقت هم دا دی چي کله د الله ﷻ دوستي مضبوطه سي نو د عبادت دلذت څخه بل خبې لذت نه وي، نو بیا څنګه ګرانېدای سي؟

(۷) اووم دا چې د الله ﷻ د ټولو عبادت کوونکو سره دوستي ساتي او پر ټولو رحم کوي، او ټولو کافران او ګناهګاران دښمنان ګڼي چې د الله تعالی لرشاد دی: أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ [الفتح:۲۹] (مسلمان هغه دي چې د کافرانو په مقابله کې سخت او پخپل مینځ کې مهربانه دي). یو پیغمبر پوښتنه کړې وه چې ای خدایه! هغه کوم خلک دي چې ستا د مُحب او دوست ویلو مستحق دي؟ لرشاد وسو چې هغه کوم چې زما سره داسې مینه کوي لکه پر مور چې بچی مین وي، او چې زما ذکر د کومو د پاره داسې پناه ګاه وي څنګه چې د مرغۍ د پاره خپله ځاله د دې پناه ګاه وي، دارنګه چې څوک پر ګناه کولو ووینې، نو په غصه کې داسې بې بیرې سي لکه زمری چې غصه سي او نه بېرېږي.

نو دا او دا ډول ډېرې نښې او علامتونه دي چې دا لله ﷻ په دوستانو کې وي، او که دا ټول په چا کې موجود وي نو بې شکه د الله ﷻ سره د ده دوستي کامله ده لېکن که په چا کې بعضې لیدل کیږي او بعضې نه نو د الله ﷻ سره به د ده دوستي هم د دغه مقدار مطابق وي.

## د الله ﷻ سره د شوق په باره کې

پوه سه! چې کوم سړی د محبت څخه انکار کوي، دی به لامحاله د شوق څخه هم منکر وي حال دا دی چې دنبي ﷺ د یوې دعاء الفاظ دا دي: ای خدایه! زه ستا دملاقات د شوق طالب یم او ستا د ښایسته د دیدار د لذت آرزومند یم، او په حدیث قدسي کي لرشاد دی: زمانیک بندګان زما دملاقات په شوق کي بې قراره وي او زه د دوی څخه زیات تر دوی د ملاقات شوق لرم. نو پکار دي چې تا ته د شوق معنی معلومه سي نو د شوق څخه بغیر محبت کېدای نه سي لېکن د کوم په باره کي چې چا ته څه معلوم نه وي د هغه شوق به په زړه کي څنګه پیدا سي؟ او څوک چې پېژني دغه که مخامخ موجود وي او په سترګو یې ویني نو هم شوق چیري وي؟ نو شوق د هغه شئ کېدای سي کوم چې په یوه لحاظ سره حاضر وي او په یوه اعتبار سره غائب وي، مثلاً معشوق واخله چې په خیال کي خو حاضر وي لېکن د نظر څخه غائب کېدای هم سي، او دا هغه مقام وي چې کوم ځای شوق ظهور کوي، یعنې په بې قرارۍ سره دا آرزو پیدا سي چې هغه ووینې ګویا دشوق معنی د "محبوب تلاش" سو.

نو په دې سره دا خبره خو ښکاره سوه چې په دنیا کي الله تعالی ته رسېدل دشوق په وجه نسي کېدای ځکه چې دغه په معرفت کي حاضر دی لېکن په مشاهده کي غائب دی او مشاهده په حقیقت کي د کمال معرفت دویم نوم دی، لکه چې کمال خیال دا وي چې دیدار حاصل سي، او د دې شوق خاتمه

دمرګ څخه ماسوا بل یو شئ نه سی کولای بلکي د شوق یو قسم بل هم وي چي په آخرت کي به هم باقي وي او هلته به هم د ختمیدلو نوم نه اخلي، ځکه چي په دې دنیا کي د ادراک تکمیل په دوو وجوهو سره ناقص پاته کیږي یو خو ځکه چي معرفت یو داسي ادارک دی لکه چي د پردې څخه هاخوا د چا دیدار کیږي چي دغه پرده باریکه ولي نه وي، یا د هغه دیدار په ډول ورته روایه کوم چي په تیاره کي دلمر ختلو څخه مخکي حاصل وي او په آخرت کي به دا پردې پورته سي او تیاري به لیري سي،او ادراک به بالکل مکمل روښانه وي په دې وجه دا شوق خو به ختم سي.

دویم دا چي مرض کړه یو سړی پر چا عاشق دی لیکن دیدار ده ته صرف ددهٔشوق حاصل سوی دي، د ده د زلفو او نورو ښایسته اندامونو د دیدار څخه یې ستر ګې ناکامله او نامراده دي، حال دا چي د ده یقین دی چي د هغه هر هر اندام زړه کشوونکی (دلکش) او دلفریبه دی، نو دلته د ده په زړه کي د دیدار چي کوم ترپ پیدا کیږي دې ته شوق وایي، اوس د الله ﷻ د جمال باکمال خو یوانتها نسته، چا که هر څومره معرفت حاصل کړی وي بیا هم چي یو باقي پاته وي زیات هغه وي ځکه چي د الله ﷻ د معلوماتو خو یو حد نسته، او د عاشق آرزو وي چي دی هر څه وپېژني، او دالله تعالیٰ په باره کي او د ده د جمال او کمال متعلق هر څه پېژندل د انسان د پاره نه په دې دنیا کي ممکن دي او نه په هغه جهان کي ممکن کېدای سي، ځکه چي د بنده علم محدود او ناقص دی، نو په آخرت کي دیدار چي څومره زیات وي هغه قدر به لذت هم بلا شُبه زیات خو وي،لېکن وي به بې انتها، په هرحال کله چي د زړه نظر پر یو داسي شئ پرېوځي کوم چي په مخ کي موجود وي نو د دې څخه چي کوم راحت او لذت حاصلیږي هغه ته اُنس وایي لیکن کله چي نظر د زړه د دغه شئ د دیدار طالب او متلاشي او آرزومند وي کوم چي لا اوس باقي پاته وي، نو د زړه دې کیفیت ته شوق وایي او دا هغه اُنس او هغه شوق دی چي نه یې په دنیا کي څه حد وي او نه په آخرت کي یو انتها، نو په آخرت کي به دخلکو پر ژبو همېشه دا الفاظ جاري وي چي: اې ربّ! خپل نُور زیات ونبیه زیات ونبیه، او دا ځکه چي دجمال الهي څخه چي څه هم ښکاره سي دغه به وي بس نُور او نُور، او پر خلکو به دا شوق غالب وي چي هر څنګه وي دا نُور د تمام او کمال تر درجې پوري ورېني، لېکن انتهاء ته به یې ونه رسېږي، ځکه چي الله ﷻ په درجه د تمام او کمال پېژندل خو پخپله الله تعالیٰ لره ممکن دي د بل د پاره څه مجال او ګنجایش سته چي په کامله توګه یې وپېژني؟، او بیا انسان چي کله د ده په معرفت کي نسي کاملېدای نو په دیدار کي به یې کله کامل سي،لېکن د مشتاقانو د دیدار د پاره به په هرحال لاري

خلاصي وي او په دې سره چې به چیرې په کشف کې اضافه کیږي هلته به په دیدار کې هم څه بنلیز نه وي، او د جنت هغه لذت کوم ته چې بې انتها او بې نهایت لذت ویل سوي دي هغه دا کشف او دیدار دی، کنې که داسې نه وای نو د لذت څخه د خبرتیا څخه وروسته به په دې کې کمې واقع کېدلای، ځکه چې کوم شئ همېشه مخ ته موجود وي زړه نه صرف د دې سره اموخته او عادي کیږي بلکې د دې څخه بیا لذت هم نه حاصلیږي، تر څو چې یو نوی شئ مخ ته را نسي، نو د جنتیانو لذت به ساعت په ساعت تازه او شگفته کیږي، تر دې چې د هر نوي لذت په مخکې به زوړ لذت بې وقعته او کم معلومیږي، ځکه چې په نعمتونو کې به روزانه نوې نوې اضافه کیږي.

## د رضا حقیقت او فضیلت

پوه سه! چې پر قضاء الهي باندې راضي کېدل لوړ مقام دی، بلکې دا ډېر لوړ مقام دی ځکه چې محبت خاص هغه مقام دی د کوم څخه چې لوړ بل مقام نسته او د اد محبت ثمره ده، چې انسان د الله ﷻ په هرفعل باندې راضي سي، لېکن د هر محبت دا ثمره نه وي بلکې صرف د هغه محبت کوم چې په درجه د کمال وي د نبي ﷺ ارشاد دی چې: په قضاء الهي راضي کېدل د بارگاه الهي د لولو څخه غټه دروازه ده، یو وخت نبي کریم ﷺ د یو قوم څخه پوښتنه وکړه چې ستاسو د ایمان نښه څه ده؟ هغوی وویل چې موږ پر بلا او مصیبت باندې صبر کوو، پر نعمت شکر کوو، او راضي په رضاء الهي یو، دوی ﷺ وفرمایل: دا هغه خلک دي کومو ته چې حکماء او علماء ویل پکار دي بلکې د خپلې عظیمې فقهې په وجه دوی ته انبیاؤ ته نژدې ویل پکار دي، دارنگه فرمایلي یې دي چې: د قیامت په ورځ به زما د اُمت ځینې خلکو ته وزرونه ورکړل سي چې د دې په ذریعه دوی په هوا جنت ته ورسیږي، فرښتې به د دوی څخه پوښتنه وکړي چې آیا تاسو خلکو حساب کتاب د عدل تله او پُل صراط او نور ولیدل؟ دغه خلک به وایي چې موږ خو په دغوکې هیڅ نه دي لیدلي، فرښتې به ووایي چې تاسو څوک یاست؟ دوی به ووایي چې د اُمت مُحَمّد ﷺ څخه یو، - ا به ځینې پوښتنه وسي چې ستاسو هغه کوم عمل وو چې تاسو یې دومره مکرّم او محترم جوړ کراست؟ دوی به جواب ورکړي چې: دامرتبه د دوو خصلتونو په وجه سره را کړل سوې ده، یو خو دا چې په خلوت کې به موږ د الله څخه شرم درلودلو او گناه ته به نژدې نه و رتلو دویم دا چې که څه لږ یا ډېر رزق به د الله ﷻ د طرف څخه موږ ته را کړل سو پر هغه به همیشه راضي وو، فرښتې به ووایي واقعي ستاسو حق دی چې دامرتبه در کړل سوه. حضرت موسیٰ ؑ ته خلکو وویل: چې د الله ﷻ څخه دا پوښتنه

وکړه چې د هغه د رضا حاصلولو طریقه څه ده؟ چې موږ هم هغه شان وکړو، وحي نازلې سوې چې: دې خلکو ته ووایه! چې زما څخه خوشحاله سئ، چې زه هم د دوی څخه خوشحاله سم، نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې د الله ﷻ ارشاد دی چې: زه هغه خدای یم چې زما څخه ما سوا بل خدای نسته نو کوم سړی چې زما پر لیږل سوي مصیبت صبر ونه کړي او زما پر ورکړي نعمت شکر ونه کړي او زما په قضا راضي نسي هغه ته ووایه! چې ځان ته بل خدای ولټوئ، او فرمایي: د الله ﷻ ارشاد دی چې: ما تقدیر جوړ کړی، تدبیر مې وکړی او خپل جوړ سوی مې محکم کړی، او کیږي به هغه چې زه حکم وکړم، پر دې چې څوک راضي دی زه د هغه څخه راضي یم او څوک چې په ناراضه دی زما د غصې د پاره دې تیار سي کله چې ما ووینې.

یو پیغمبر تر شلو کالو پوري ډېر تږی او په مصیبتونو کې مبتلاوو ډېري دعاګاني یې وغوښتلې لیکن نه قبلېدلې، وحي نازلې سوې چې د ځمکي او اسمان د پیدا کولو څخه مخکې ما ستا په نصیب کې دا مُقدّر کړې وه اوس ته غواړې چې د ځمکې او اسمان پیدایښت او تدبیر د مملکت بدل کړم او د نوي سره یې بیا جوړ کړم؟ او صرف ستاد پاره ټول احکام بدل کړم؟ زما کار خو به زما د خوښې مطابق کیږي نه چې ستا د خواهش مطابق، زما پخپل عزت قسم دی که بیا دا حرکت تا وکړی نو ستا نوم به د نبوّت د کتاب څخه خارج کړم.

په بني اسرائیلو کې یو عابد تر ډېري مدې پوري په مجاهده او ریاضت او عباداتو کې مشغول وو، آخر یوه شپه یې په خوب کې ولیدل چې ده ته اشاره کول کیږي چې په جنت کې به فلانۍ ښځه ستا ملګرې وي عابد د ډېر لټون څخه ورو سته هغه ولټوله چې دا خو معلومه سي چې د هغې عبادت او ریاضت د کومې درجې دی لیکن د هغې پر دې لیدلو یې تعجب وسو چې هغه نه د شپې تهجد کوي او نه نفلي روژه نیسي، لیکن فرض په پابندۍ سره کوي عابد پوښتنه وکړه چې ماته خو دومره ووایه چې ستا خاص عمل څه دی؟ هغه وویل چې بس دغه څه دی کوم چې ته وینې، عابد ډیر اصرار وکړی بلکې په ژړا ژړا یې ورته منّت وکړی نو هغې وویل چې د عمل خو ما ته علم نسته لیکن یو خصلت زما خامخا دی چې کله مریض سم نو د جوړېدلو خواهش نه کووم که په لمر کې یم نو د سیوری (سایې) آرزو مې نه وي او که سیوري بد لګیږي نو د لمر خواهش نه کووم، عابد خپل لاس پر سر کېښېنوده ویې ویل چې ته دې ته یو خصلت وایې، داسې نه و ایې چې یو عظیم الشان خصلت تا ته الله ﷻ در کړی دي، بې شکه نو دا ډېر لوی شئ دی.

## د رضا حقیقت او پېژندنه

بعضي خلک وايي انسان چې په آفت او بلا او خلاف خواهش مصيبتونو کې گرفتار سي نو د هغه شخه دا راضي کېدل ممکن نه دي، نو د زياتو شخه زيات دا کېدای سي چې انسان مجبوراً صبر وکړي لېکن دا عقيده د دغو خلکو غلطه او خطا ده ځکه چې محبت که غالبه وي نو پر خلاف خواهش راضي کېدل بالکل ممکن دي او دا خبره په دوه ډوله ممکنه ده:

(۱) اول دا چې په عشق او محبت کې انسان دومره مستغرق او مدهوښ سي چې د درد او تکليف خبر ورته نه وي، په دې سلسله کې دا د عامې مشاهدې خبره ده چې په ميلانِ جنگ کې دجنگ په دوران بنده بعضي وخت داسي مشغوله سي چې پر جسم د لګېدلو زخمونو په درد هم نه پوهېږي، بلکې تر څو پورې چې وينه بهېدل ونه ويني د زخمونو څخه خبر نه وي، او د دنيا د لالچ (حرص) په خاطر منډې وهونکی او زيار کښونکي سړی اکثر لېدل کېږي چې د طمع او حرص په وجه منډه وهي په پښو کې يې ازغي ولاړ سي خو خبر ورته هم نه وي. او کله چې زړه د هوا او هوس څخه مغلوبه سي نو لويه تنده هم هېره سي، اس غور وکړئ چې که داخبري د دنيا د حرص او محبت په خاطر ممکن کېدای سي نو دعشقِ الهي او آخرت د محبت په وجه څنګه ناممکن کېدای سي، او بيا چې کله دا معلومه وي چې د باطن د جمال او حُسن درجه د حُسن ظاهري څخه ډېره زياته او بزرګه ده ځکه چې د ظاهري صورت مثال خو د هغه څرمنې (پوست) دی کوم چه پر آس باندې هم ايښول سوې دي، دغه ډول باطني سترګې کومې چې د باطن د جمال مشاهده کوي د ظاهري سترګو څخه زياتې روښانه او تيزې وي د ظاهري سترګو څخه د خطا او غلطي امکان هر وخت وي تر دې چې کوچنی غټ او غټ کوچنی ګڼل خو د دوی معمولي غلطي ده او ليري نژدې ګڼل هم د دوی عادت دی.

(۲) دويم دا چې که د درد او تکليف احساس وي هم خو دا ګڼي چې هوست په دې راضي دی نو دغه رنګه موږ په دې راضي ولې نه يو، تر دې چې دوست که داسي ووايي چې خپله وينه وباسه يا مثلاً فلانی ترخه دوايي وخوره نو په دې خبرو هم ځکه راضي کېږي چې که پر دې لږ تکليف زغملو دوست خوشحاله کېږي نو نور څه غواړو؟ نو دغه ډول چې کوم سړی دا حقيقت ووينې چې دالله ﷻ رضا په دې کې ده چې بنده راضي په رضا سي نو مرض، مفلسي، رنځ او محنت او بلا او آفت کې راضي وسېدل ده ته قطعاً ګران نه وي بلکې دی پکښې خوشحاله وي، ځکه چې يو لالچي انسان د دنيوي نفع په اُميد باندې د درياب او د سفر په تکليف زغملو راضي او تيار وي. د حضرت فتح

موصلي رحمه الله د بي بي دگوتي ټکېدلو په وجه نوک وغورځېدی لېکن هغه خندل خلکو پوښتنه ځيني وکړه چې درد نه کوي؟ دې وويل چې: د ثواب په خوشحالي کي زه په درد نه پوهېږم، سهل تستري رحمه الله سخت مريض وو او د درد سخت تکليف وو لېکی ده د دې علاج نه کوی. خلکو پوښتنه وکړه چې علاج يې ولي نه کوې؟ ويې فرمايل: تاسو ته څه معلومه ده چې کوم درد دوست را کړی وي په هغه کي تکليف نه وي.

بشر حافي رحمه الله روايت کوي چې په بغداد کي يو سړی زر چلاخي (لرګيان) ووهل سو هغه اُف لا هم ونه کړی، ما پوښتنه ځيني وکړه اې سړيه! د دومره زور زياتي سره سره ستا د خولې څخه اُف لا هم نه ووتلی آخر دا څنګه؟ هغه وويل: محبوب زما ته ملمغ ولاړ وو، او کتل يې، ما وويل که هغه د تولو څخه غټه معشوقه مخامخ واى نو څنګه به واى، د دې په اورېدلو سره هغه يوه چغه وکړه او را غوځار سو چې موړ وکتل نو روح يې وتلې وه.

د قرآن کريم څخه معلومه سوې ده چې کومي ښځي د حضرت يوسف عليه السلام د ديدار شوقياني وې کله چې يې د هغه جمال وليدی نو د دوی دعظيم جمال طاقت يې نه درلودی مدهوښه سوې او د ترنجانو پر ځای يې خپلي ګوتي پرې کړې او دوی په پوه لا هم نه سوې (چې خپلي ګوتي پرېکوي) په مصر کي چې کله قحط سو نو ډېر خلک داسي وو چې کله به لوږي تنګ کړل نو تلل به او د حضرت يوسف عليه السلام ديدار به يې کوی او خپله لوږه به يې مړه کوله، د دې څخه اندازه وکړئ چې کله دخدای د مخلوق په جمال کي دا تاثير کېدای سي نو بيا د الله جل جلاله ديدار خو د الله جل جلاله ديدار دی که پر چا د دغه جمال کشف وسي او هغه د درد او مصيبت څخه بې خبره سي نو په دې کي د تعجب څه خبره ده؟

حضرت عيسى عليه السلام يو ځای روان وو په لاره کي يې يو سړی وليدی چې د برص (پيس) په مرض کي د مبتلا کېدلو سره سره جُذامي هم وو، ړوند او په دواړو طرفه فالج هم وهلی وو د دې مرضونو او خوارۍ سره سره يې پر ژبه دا الفاظ جاري وو چې: شکر دی د هغه پاک ذات چې ما ته يې عافيت راکړی دي او د هغو بلاګانو څخه يې محفوظ کړی يم په کومو کي چې ډېر خلک مبتلا دي، عيسى عليه السلام چې دا واورېدل نو پوښتنه يې ځيني وکړه چې هغه کومه بلا باقي ده چې ته ځيني محفوظه سوی يې، هغه وويل چې هو! زه د هغه سړي په نسبت يقيناً په عافيت کي يم چې د هغه په زړه کي چې يې هغه معرفت نه دی پيدا کړی د کوم په نُور سره چې زما سينه روښانه ده. حضرت عيسى عليه السلام وويل ته بالکل صحيح وايې، اوبيا يې د هغه لاس ونيوی خپل لاس يې پر را تېر کړی او هغه بالکل صحيح سو او ښايسته روغ جوړ سړی سو کښېنستی.

حضرت شبلي رحمه الله چي په کومو ورځو کي خلکو لیوني ګڼلی وو په پاګل خانه کي یې بند کړی وو، څه خلک د دوی پوښتني ته راغلل. دوی پوښتنه څیني وکړه تاسو څوک یاست؟ هغوی و ویل چي موږ ستا دوستان یو ستا پوښتني ته راغلي یو دوی فوراً د هغوی په ډبرو ویشتل شروع کړل، هغوی ټول د هغه ځای څخه وتښتېدل، نو دوی وفرمایل: تاسو چي ځان زما دوستان ګڼئ نو دا څو صفا درواغ وایاست ځکه چي که تاسو زما دوستان وای نو زما په بلاء به مو صبر کولای او داسي به نه تښتېدلای.

## لسم اصل: د مرګ یاد ساتلو په باره کي

کوم سړی چي په دې ښکاره حقیقت ښه پوه کړي چي زما انجام په هرحال مرګ دی او ښه پوه سي چي زما آخري قرار ځای قبر دی، مُنکر نکیر زما مؤکّل دي، د قیامت په میدان کي زما حاضري په هرحال ارضروري ده او د جنت او دوږخ څخه به خامخا زما یو ځای وي نو د دې د پاره خو به بیا د مرګ د فکر څخه بل یو فکر زیات اهم او ضروري نه وي، په دې شرط چي د عقل یو بخرکی هم په ده کي موجود وي، او د مرګ په تدبیر کي مَشغولیدل به د ده په نزد ډېر اهم کار وي، د نبي کریم ﷺ ارشاد څومره واضح دی چي: هوښیار هغه دی چا چي خپل نفس مغلوب او مسخر کړی او په هغو عملونو کي مصروف سو کوم چي د مرګ څخه وروسته په کار راځي، او بیا دا ساده څوندي خبره ده چي کوم سړی مرګ زیات یادوي هغه ، خامخا د دې د پاره په توښه تیارولو کي په زیات زور او کوشش سره لګیا وي، دا هغه سړی وي کوم چي د مرګ څخه وروسته قبر ته ځنګه ورسي نو ده ته به د جنت د باغونو څخه یو باغ تر او تازه ملاوېږي، او حال دا چي مرګ هېرونکی سړی چي په دنیا کي د ده مطلب لاندي اغوستل او د باندي اغوستل (یعني تولیه، بنین، پرتنې، جامې، زیب وزینت) وي کله چي په قبر کي کښېنول سي نو د آخرت د توښي څخه د خالي لاس کېدلو په وجه به داسي وي لکه د دوږخ د کندو څخه چي یوې کندې ته ورشوه سي، په دې وجه د مرګ یادول په ډېرو لویو فضیلتونو کي شمار سوي دي، نبي کریم ﷺ فرمایي: چي اې خلکو! کوم چي د دنیا په لذتونو کي مشغول سوي یاست هغه شی زیاتره یادوئ کوم چي لذتونه هلا کوي، یعني مرګ، او فرمایي: چي که څاروریانو او ځرېدونکو حیواناتو ته هم مرګ او د دې حال دومره یاد وای څومره چي تاسو ته دی نو یو انسان ته به د چاغ څاروري غوښه چیري هم نه وای نصیب سوې، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چي: ما د نبي ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي یو سړی د شهید کېدلو څخه ماسوا هم د شهیدانو مرتبې ته رسیدای سي؟

وېي فرمايل: هاا کوم چي لږ تر لږه شل واره د ورځي مرگ يادوي، نبي ﷺ پر يو قوم باندي تېر سو هر سړی په کټ کټ خندل. دوی ﷺ ور ته وويل چي: پر تاسو لازم دي چي پخپل مجلس کي ذکر د هغه شئ کوی کوم چي ټوله لذتونه ترخوي، اوبيا د دې خلکو په پوښتنه چي: هغه کوم شئ دي؟ وېي فرمايل چي: مرگ. حضرت انس ﷺ روايت کوي چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي مرگ ډېر يادوئ ځکه چي دی به صرف تاسو تارک دنيا نه جوړوي بلکي ستاسو د گناهونو کفاره به هم جوړېږي، او فرمايي: چي خلکو ته د پند او نَصيحت په باره کي کافي ده چي مرگ ور ته وريادسي. اصحابو ﷺ د نبي کريم ﷺ په مخکي ديو سړي بې اندازې تعريف وکړی دوی ﷺ وفرمايل چي: دا وواياست چي د هغه زړه دمرگ په باره کي څنگه دی؟ صحابه وو ﷺ عرض وکړی چي دمرگ په ذکر کولو خو هغه موږ چيري ليدلی نه دی، وېي فرمايل: نو بيا هغه داسي نه دی لکه چي تاسو واياست. حضرت ابن عمر ﷺ وايي چي زه د لسو خلکو سره د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سوم، د انصارو څخه يو تن عرض وکړی چي يا رسول الله! بزرگ ترين او کريم ترين سړی کوم يو دی؟ وېي فرمايل د دنيا شرافت او د آخرت کرامت خو د هغو خلکو حصه ده کوم چي مرگ ډېر يادوي، او په دې دنيا کي د آخرت د پاره په توبنه جمع کولو کي حريص وي او بې قراره وي، ابراهيم تيمي رحمه الله وايي چي دوه شيان دي کوم چي د دنيا راحت زما څخه د هميشه د پاره ر تښتولی دي: (١) دمرگ ياد او (٢) په حضورِ حق کي د درېدلو بېره، عمر بن عبد العزيز رحمه الله به هره شپه عالمان او فقهاء جمع کول دمرگ او قيامت تذکرې به يې کولې او دومره به يې ژړل چي گويا د چا جنازه ور ته په مخکي پر ته ده، حضرت حسن بصري رحمه الله چي به کوم ځای کښېنستی ټولې خبري به يې د مرگ او دوږخ او آخرت په باره کي کولې او بس.

يوې ښځې حضرت عائشي رضي الله عنها ته د خپل زړه شکايت وکړی چي زما زړه بې اندازې سخت دی، حضرت عائشي وفرمايل: چي مرگ ډېر زيات يادوه، دې ښځي په دې عمل وکړی او زړه يې نرم سو هر کله چي دو باره حاضره سوه، نو د دې بې مثله مشورې شکريه يې ادا کړه، ربيع خيثم رحمه الله په کور کي دننه يو قبر کښلی وو او د ورځي به يې څو څو واره په هغه کي پرېوتی او فرمايل به يې چي په دې سره د مرگ ياد هر وخت تازه وي، چي که زه ديو گړي د پاره هم دمرگ د يادولو څخه غافله سم نو خلای دي نه کړي زما زړه به تور سي. عمر بن عبد العزيز رحمه الله يوسړي ته نصيحت وکړی، چي مرگ څومره يادولای سې يادوه يې ځکه چي د دې يوه فائده خو به دا وي چي که ته په تکليف او محنت کي مبتلا يې نو په دې به دي زړه ته ډېره تسلّي حاصله سي او که په راحت او نعمت کي يې

نو لذت د عیش به تریخ سي. ابو سلیمان دراني رحمه الله فرمایي: ما د اُمّ هارون ښځه پوښتنه وکړه چي آیا ستا مرګ خوښ دی هغې ووېل چي نه! ماوویل چي دا ولي؟ هغې ووېل: چي که زما ښځه د چا په حق کي خطا وسي نو هغه ته به مخ ښوول ما ته مشکله سي، بیا به د دومره ګناهونو سره که د الله ﷻ د دیدار آرزو کووم نو څنګه به یې وکړم؟

## د مرګ یادونه پر زړه څه ډول اثر کوي؟

دا مه هېروه چي مرګ یو عظیم (غټ) کار دی او د دې سره یوه عظیمه خطره هم سته او خلک دي چي د دې څخه غافله دي، او که په هېره یې چیري دا یاد هم سي نو پر زړه یې څه اثر نه وي، ځکه چي زړه د دنیوي مشغلو څخه دومره ډک وي چي په هغه کي د بل یو شئ ځای نه وي، داوجه ده چي دې خلکو ته دالله ﷻ په تسبیح او حمد سره هم یو څه لذت یا خوند نه حاصلیږي، د دې تدبیر بس یو دا کېدای سي چي بنده د لږ وخت د پاره په خلوت کي کښېني د یو ګړي د پاره د دنیوي خیالاتو څخه زړه خالي کړي دا سوچ وکړي چي مرګ به آخیر یوه ورځ راځي او په دې کي ډېر زیات وخت هم پاته نه دی بلکې کېدای سي چي نن دمرګ ورځ وي او بیا دې د خپل غافل زړه سره خبري شروع کړي او ووایي: اي زړه! که تا ته ووېل سي چي فلانی غټې زهرخلتي ته شوه سه! (چي هلته خلک نه وسېږي او د هغې خبر د هیچا سره نه وي) او چي هلته سخته تیاره ده نو ستا فکر به په دې تصوّر سره ډېر په شک کي سي چي معلومه نه ده په لاره کي که غلو او څه معلومه ده که ډېره وه او نور نور، نو بیا ته دا سوچ ولي نه کوې چي د مرګ څخه وروسته به څه وي د دې حال خو هم ستا څخه پټ دی او د قبر خطره خو د توري زهرخلتي د خطرې څخه کمه نه ده ؟ بیا تا په څه وجه مرګ داسي هېر کړی دی؟ په کومه زړوره تیا تا دا غفلت اختیار کړی دی؟ بیا د دې څخه وروسته غوره طریقه دا ده چي ته هغه خلک یو یو رایاد کړې د کومو مرګ چي ستا په مخکي ستا په وخت کي سوی دی، د هغو هغه شان وشوکت ته وګوره په کوم کي چي هغو وخت تېرولی، او بیا یاد کړه چي دغه خلک د مرګ څخه څومره بې خبره او غافله وو، په خپلو خوشحالیو کي یو داسي مست وو چي د مرګ ګویا دوی ته خبر هم نه وو لیکن بالکل دغفلت په وخت مرګ ناڅاپه دوی را ټینګ کړل او د دې دنیا څخه یې لیري بوتلل، بیا دا سوچ وکړه چي د دوی کوم شکل په دې دنیا کي وو آیا په قبر کي به هم هغه وي (هیڅ کله نه) بلکې د هغوی خو هډوکي جلاجلا سي د اندامونو یې د یو بل څخه تعلق پرې سي، تو جلا جلا سي، نه یې غوښه نه پوست، نه سترګي او ژبه یې چینجي وخوري، او بیا دا سوچ وکړه چي

هاخوا په قبر کي د هغو دا حال سو او دېخوا يې وارثانو مال تقسيم کړی او مزې پر کوي، ښځو يې نور خاوندان وکړل او د هغو ياد يې په لږ اندازه هم په زړه کي پاته نه سو او دغه رنګه دي د خپلي زمانې يو يومړی ياد کړی او تصور دي وکړي چي د سيل او تفريح يې سامانونه څومره څومره وو. څومره په زوره زوره خنداګاني به يې کولې، غفلت دوی څومره مدهوښه کړي وو. تر دې چي پخپل خيال کي دوی د هر شئ تلافي د مخکي څخه کړې وه. د شلو شلو کالو سامان به هروخت جمع وو او د دې ساز او سامان په جمع کولو کي يې څومره تکليفونه برداشت کړي وو. لېکن دوی ته د دې سوچ توفيق چيري هم ونه سو چي د دوی کفن هم د يو دکاندار په دکان کي پرورت دی. بيا خپل زړه ته ووايه! چي اې زړه! ربښتيا وايه ته هم دغه رنګه په غفلت کي نه يې؟ په داسي حرص کي مبتلا نه يې؟ حال دا دی چي تا ته قدرت دا موقع هم در کړل چي ته د دوی د مرګ څخه عبرت حاصل کړې. او په دې حقيقت باندي پوه سې چي: نېک بخته هغه دی چي دنورو د حال څخه عبرت واخلي. بيا خپلو اندامونو ته فکر وکړه چي دا به د يو بل څخه جلا سي لاسونه پښې سترګي ګوتي ژبه لنډه دا چي هر اندام به جلاجلا سي، او په څو ورځو کي به دې د مځکي چينجي وخوري،بيا دا تصور وکړه چي په قبر کي دننه به دي دا بدن څنګه مسخ سي؟ افسوس چي يوه مرداره به در څخه جوړه سي، او بس! دا ډول خبري د لږ وخت د پاره روزانه د ځان سره کوه. شايد چي دغه رنګه به دمرګ څخه خبر سې کنې صرف پر ژبه دا خبري هيڅ اثر نه کوي، څومره جنازې روزانه د بنده په مخکي قبر ته رسيږي، لېکن دی کله دا ګڼي چي دا هم يوه نظاره ده کومه چي ده ته همېشه حاصليږي؟ ده ته خپل مرګ ولي نه ياديږي، او دا خيال ولي نه کوي چي يوه ورځ به دغه رنګه د ده د جنازې نظاره نور خلګ کوي، و دا څکه چي ده خپل ځان مړ نه دي ليدلای او چي نه يې دی ليدلی نو خيال يې هم په زړه کي نه راځي، په دې وجه نبي کريم ﷺ په خطبه کي و فرمايل: چي رښتيا ووايست دا مرګ ستاسو د پاره ليکل سوی نه دی؟ او دا جنازې چي خلګ پرخپلو وږو باندي وړي آيا دا د هغو مسافرانو نه دي کوم چي بيااوپس نه راځي آيا دا خلګ دغه په خاوړ کي نه پټوي او ميراثونه يې پخپله نه خوري؟ او د دې حقيقت څخه غافله نه وي چي دا لاره پخپله دوی ته هم په مخ کي ده؟ نو مرګ نه يادول زياتره او اکثره په دې وجه سره وي چي خلګو اوږده اوږده اُميدونه تړلي وي، او دا اوږده اميدونه په اصل کي د ټولو فسادونو بيخ دی.

## د امید لنډولو فضیلت

پوه سه! چي کوم سړی پخپل زړه کي دا تصور کړی وي چي د ده عمر به ډېر اوږد وي او ډېره مُده به ور ته مرګ نه راځي، نو د ده شخصه د دین یو کار نسي کېدای ځکه چي د خپل ځان ته همیشه دا وایي چي اوس لا ډېره مُده پاته ده، آخر ولي داسي تلوار کوې دا دیني کار چي کله غواړم وبه یې کړم، اوس خو لا د آرام او عیش او عشرت وخت دی، د دې پر خلاف کوم سړی چي خپل مرګ ډېر نژدې ګڼي هغه په هر حال کي تدبیرونه هم د دې د اصلاح کوي او د دې خیال شخصه غافله نه وي، او دا هغه شئ دی کوم ته چي د سعادت اصل وایي، نبي کریم ﷺ ابن عمر رضي الله عنه ته وفرمایل چي: سهار پورته کېږې نو داسي مه ګڼه چي تېملښامه پوري به ضرور ژوندی یم، او ماښام داخیال مه کوه چي سهار به ضرور ژوندی راپورته سم، دلرنګه فرمایي: د ژوند شخصه د مرګ تو ښه تیاروۍ، او د صحت شخصه د مرض تو ښه حاصلوۍ، ځکه چي تا ته هیڅ علم نسته چي صبا به د الله ﷻ په نزد ستا انجام څه وي؟ یو واري حضرت اُسامه رضي الله عنه د یوې میاشتي دپاره یو شئ پر یو ځای واخیستی، نبي ﷺ واورېدل نو ویې فرمایل: د اُسامه رضي الله عنه شخصه څه لیري نه ده ځکه چي هغه ډېر اوږده اوږده اُمیدونه تړلي دي، او بیا یې وفرمایل: قسم دی په الله ﷻ چي زما روح د هغه په لاس کي دی چي زه خو چي کله سترګي بندې کړم نو دا ګڼم چي شاید بیا به یې نه کړم خلاصي او چي خلاصي یې کړ نو ګڼم چي شاید بیا به یې نه کړم بندي، چي ممکنه ده د دې شخصه مخکي مرګ راسي، او کله چي ګوله په خوله کړم نو ګڼم چي شاید دا وروسته ګوله وي بلکي ګڼم چي شاید مرګ دا هم زما د حلق شخصه لاندي نه کړي او دا په حلق کي ومښلي، د دې ارشاد شخصه وروسته یې وفرمایل چي: اې خلګو! که تاسو عاقلان یاست نو داسي ګڼئ چي تاسو مړه یاست ځکه چي زما قسم دی په الله ﷻ د کوم په قبضه کي چي زما روح دی چي کومه وعده هغه ستاسو سره کړې ده هغه به پوره کېږي او تاسو په هیڅ ډول هم د هغه شخصه خلاصون نسي تر لاسه کولای، نبي ﷺ به د رفع حاجت شخصه فوراً وروسته تیمم کوی او که به ورته وویل سوه چي اوبه خو هم دومره لیري نه دي نو فرمایل به یې څه معلومه ده چي اوبو ته د رسېدلو شخصه مخکي مړ سم. په حدیث شریف کي دي چي حضرت عیسیٰ علیه السلام یو سپینږیری (بابا) ولیدی چي بېلچه ور سره وه کار یې کوی، دوی دعاء وکړه چي: اې خدایه! اُمید د ده د زړه شخصه وباسې! الله ﷻ یې د زړه شخصه اُمید وېستلو، نو هغه کار پرېښوی بیده سو، نو دوی بیا دعاء وکړه چي خدایه! امید بیا د ده په زړه کي واچوې الله ﷻ یي امید بیا په زړه کي پیدا کړی او هغه سپینږیري د خوبه را پورته سو بیا په

کار کي مشغول سو، حضرت عیسیٰ ﷺ پوښتنه څیني وکړه چي دا څه خبره وه؟ سپینږیري ووېل ناڅاپه دا خبره زما په زړه کي راغله چي آخر تر څو به کارونه کوم اوس خو ښا سوي کارونه پرېښول پکار دي چي مرگ ډېر ژر را روان دی، لیکن بیا لږ وخت وروسته مي خیال راغلی چر تر څو مرگ نه وي راغلی تر هغه وخته خو بوږی په هر حال پکار ده، نو کار مي شروع کړی. نبي ﷺ یو وار د صحابه وو ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي آیا تاسو خلک جنت ته د تلو خواهش لری؟ ټولو عرض وکړی چي یا رسول الله ﷺ! هو! موږ دا آرزو لرو، ویې فرمایل: نو بیا د دنیا آرزو کانې مه اوږدوئ! مرگ همېشه پخپل مخ کي موجود گڼئ! او د الله ﷻ څخه داسي شرم کوئ! څنگه چي دمؤمن بنده حق دی.

یو بزرگ خپل ورور ته په خط کي ولیکل چي دنیا یو خوب دی آخرت بیداري ده د دې دواړو په مینځ کي مرگ دی او په اوسني حال کي په کوم عالَم کي چي موږ یو د دې حیثیت د هغو پرېشانه خیالاتو څخه زیات نه دی کوم چي په خوب کي وي.۴۵ددد

## د امید اوږدولو سببونه

پوه سه! بنده چي د اوږده ژوند اُمیدونه پخپل زړه کي تړي د دې دوې وجهې وي: اوله وجه خو جهالت او ناپوهي وي، او دویمه وجه وي د دنیا محبت. او د دنیا محبت چي کله د ده پر زړه غالب سي نو څرنگه چي مرگ دنیا او مال د ده څخه اخلي نو گویا د ده محبوب د ده څخه تښتوي، په دې وجه مرگ دی خپل دښمن وگڼي، ځکه چي دا د ده د طبع څخه خلاف دی، او کوم شئ چي دانسان د طبیعت موافق نه وي دی څیني لیري ووسي، او خپل زړه ته ډول ډول فریبونه ورکوي همیشه ور ته دهغو شیانوشنه باغونه ښیي کوم چي د طبیعت موافق وي، دی په خپل زړه کي مسلسل دا تصور کوي چي ژوند، مال، ښځه، بچي د دنیا اسباب به همیشه قائم او برقرراره وي، او څنگه چي مرگ د دې تصوّر خلاف دی په دې وجه د دې صرف یادول بلکي که چیري یې اتفاقاً را یاد هم سي نو په تکلف یې هېروي او د زړه څخه یې باسي، او د زړه د تسلی دپاره وایي: اوس خو لا ډېر وخت پاته دی مرگ لا کوم دی ؟ یو وخت به را سي، او کله چي لوی سي نو وایي: لږ چي زوړ سم، او کله چي سپینږیری سي نو وایي بس دا کور چي جوړ کړم او چي دا فصل اوبه سي نو بس په فراغت به بیا عبادت ته کښېنم، بس دغه رنگه په مخه ځنډ کوي چي بس دا کار ختم کووم، دا ختم کووم او دغه رنگه په یو کار کي لس لس کارونه نور را پیدا کیږي، او دا احمق دومره هم سوچ نه کوي چي د دنیا د کارونو

څخه څوک فارغه سوی دي تر څو چي ترک یې نه کړي، او پخپله ځیني لاس وانه اخلي، په هر حال د دې تأخیر او ټال متول سلسله جاري وي تر دې چي مرګ رارسي، او بیا ملسوا د افسوس څخه څه باقي وي؟ د دوږخیانو څخه به ډېر پر دې تأخیر او ټال متول چیغي کاږي چي موږ ولي تأخیر کوی. نبي کریم ﷺ فرمایي: چي کوم څوک او څومره شیان چي غواړي دوستي ور سره کوي خو دا مه هېروه چي دا ټول به در څخه پاته کیږي، او تر کومه پوري چي د جهالت او ناپوهي تعلق دی هغه دا دی چي بنده په ځواني کي بې اندازې بروسه کوي او دا نه ګڼي چي د بُډاکېدلو څخه مخکي مرګ خو ناممکنه خبره نه ده په زړګونو خلک په عینِ ځواني کي مړه دي او په لکونو بچي د ځوانېدلو څخه مخکي مړه کیږي، بلکي په ښارونو کي خو ډېر کم خلک بډاګان په نظر راځي، او په شمار هم ډېر کم وي، بله ناپوهي دا وي چي بنده کله جوړ روغ وي نو ناڅاپي مرګ ډېرلیري بلکي ناممکن ګڼي او دا نه ګڼي چي که ناڅاپي مرګ نادر دی نو ناڅاپه مرض خو نادره نه دی ځکه چي مرض خو همېشه راځي ناڅاپه او کله چي مرض راسي نو په مرض کي خو مرګ یو نادر شئ نه دی مرګ خو همېشه د غرمې په ډول ګڼه چي ستا په مخکي سایه (سیوری) نه دی چي په تاپسي درپسې وی او ته به په لاس ورنه سې او نه دلسي دی چي ستا څخه به مخکي وي ته به ور ونه رسیږي.

## د اوږده امید علاج

د اوږده امید علاج دا دی چي د دې سبب لیري کړل سي، یعني چي سبب یې معلوم سي نو د لیري کولو کوشش کول یې پکار دي (چي یو سبب یې د دنیا سره محبت دی) د دنیا سره د محبت علاج دي په دې طریقه وکړي کوم چي د دنیا د محبت په باب کي بیان سوی دي او هغه ټول دا دی چي کوم سړی د دنیا د حقیقت څخه خبر سي، هغه به یې بیا دوسته نه لري ځکه چي ده ته دا حقیقت ښکاره سي چي د دنیا لذت صرف څو ورځي دی او د مرګ د لاسه به دا ختمیږي او عین هغه وخت هم چي کله دا لذت حاصل وي تریخ او بیخونده به وي او تکلیف او مشقت څخه به چیري خالي نه وي، خالص لذت هیچا ته هم په هیڅ وخت کي نصیب نه وي او بیا چي کوم سړی د آخرت د عمر د اوږدوالی او د دنیا د عمر د لنډوالی موازنه وکړي نو حقیقت به ورته ښکاره سي، ده ته به دا خبره د ځلته واضحه سي چي د دنیا په خاطر آخرت بربادول داسی دی لکه چي د خوب په حالت کي د یو درهم پر پیدا کېدلو د ویښتوب (بیداری) د یو دینار په په بدله ضائع کړای سي، ځکه چي د دنیا حیثیت د خوب څخه زیات نه دی په دې وجه ارشاد دی: اَلنَّاسُ نِيَامٌ اِذَا مَاتُوْا اِنْتَبَهُوْا (خلک بیده دي مرګ به

دوی بیدار کړي) او د جهالت علاج په حقیقي معرفت او صفا تفکر سره کېدای سي، او په دې ضمن کي اهم ترینه نکته کومه چي دیادولو قابله ده دا ده چي دی وګنئ چي مرګ د ده په اختیار کي نه دی چي هله به ارځي چي دی یې وغواړي دغه ډول پر ځواني یا پر بل شئ باندي بروسه کول به پخپله ده ته یو حماقت ښکاره سي.

## د اوږده أمید درجې

پوه سه! چي په دې ضمن کي د خلکو په اُمیدونو کي فرق دی، یعني ځیني خلک خو داسي وي چي همېشه په دنیا پوري مبتني وي لکه چي الله ﷻ فرمایي: يَوَدُّ أَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ أَلْفَ سَنَةٍ [البقرة: ۹۶] (په دوی کي یوسړی په دې هوس کي وي چي د ده عمر زر کاله سوي وای) او هر یو داسي وي چي زوړوالي ته د رسېدلو آرزومند وي، د چا دیو کال څخه د زیات اُمید نه وي په دې وجه دبل کال د پاره څه اهتمام نه کوي، د چا دیوې ورځي څخه زیات اُمید نه وي او دی د بلي ورځي د پاره څه اهتمام نه کوي، لکه چي حضرت عیسی ﷺ فرمایي چي: د صبا د پاره رزق ولي جمع کوې؟ که ژوند باقي وي نو رزق هم ختم نه دی، او که ژوندباقي نه وي نو دبل د پاره خپل سر ولي کړوې، او د یو چا دیوې ثانیې (سیکند) هم اُمید نه وي، لکه چي نبي کریم ﷺ به داسي وخت هم فوراً تیمم کوی چي اوبو ته به د رسېدلو امکان وو چي هسي نه اوبو ته د رسېدو څخه مخکي مرګ راسي، دغه ډول ځیني خلک هر وخت دمرګ په تصور کي وي او یو ګړی یې هم د سترګو څخه پناه نه وي، نو نبي ﷺ یو واري د معاذ ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي وایه! د ایمان تعریف څه دی؟ عرض یې وکړی یا رسول الله ﷺ! زما په خیال کي خو د ایمان صحیح تعریف دا دی چي انسان د کوم کار په باره کي هم سوچ کوی نو دا فکر دي کوی چي شاید د آخري کار دی او د دې څخه و روسته شاید لږ اندازه سوچ هم نصیب نسي، اسود حبشي رحمه الله به په لمانځه کي هاخو دېخوا کتل، یو وار خلکو پوښتنه ځیني وکړه چي ته هاخوا دېخوا ولي ګورې؟ ویې ویل چي فرښته د مرګ ګورم چي د کوم طرف څخه را روانه ده؟ غرض هر سړی په دې باره کي د نورو څخه مختلف دی نو د چا امید چي د یوې میاشتي څخه زیات نه وي هغه د څلوېښتو ورځو د اُمید کوونکي په نسبت غوره دی د دې خبري اصل دخلکو د عملونو او رویې څخه ښکاره کېږي مثلاً د یو سړي دوه وروڼه وي او دواړه پر سفر وي د یوه د یوې میاشتي وروسته او د بل د یوه کال وروسته د راتلو اُمید وي او په دې خیال سره د یوه دپاره مخکي اهتمام کوي او د بل د پاره تأخیر کوي، نو هسي خو په خوله هر یو وایي چي زما اُمید لنډ دی لېکن دا نه ګڼئ چي د لنډ اُمید

نښه دا وي چي بنده د نیکیو په کار کي تلوار کوي او د یوې ثانیې (سیکند) مهلت هم غنیمت ګڼي، د نبي کریم ﷺ ارشاد دی چي پنځه شیان مخکي تر پنځو شیانو غنیمت ګڼئ، یعني: (۱) ځواني د زوړوالی څخه مخکي (۲) صحت د مرض څخه مخکي (۳) مالداري د مفلسی څخه مخکي (۴) فراغت د مصروفتیا څخه مخکي (۵) ژوند د مرګ څخه مخکي، او نبي کریم ﷺ چي به کله په اصحابو ﷺ کي د غفلت نښي ولیدلې، نو و به یې فرمایل: مرګ راغلی او ځان سره یې د چا د پاره شقاوت او د چا د پاره سعادت راوړی، او فرمایي: دوه نعمتونه داسي دي چي خلګ د دوی دلاسه زیاتره په نقصان کي وي، یعني: (۱) صحت او (۲) فراغت (حال دا چي د دې څخه د فائدې اخیستلو پوره امکان وي). حذیفه ﷺ وایي چي: هره ورځ د سهار په وخت کي یوه فرشته آواز کوي چي الرَّحِيلُ الرَّحِيلُ (یعني کوچ دی کوچ دی)، داؤد طائي ﷺ د لمانځه د پاره په منډه روان وو، خلګو وویل داسي تلوار ولي کوې؟ ورته یې وویل: د ښار پر دروازه یولوی لښکر زما په انتظار کي دی، یعني په هدیره کي چي کوم مړي دي دغه زما په انتظار کي دي او تر څو چي ما بونه ځې تر هغه وخته کوچ نه کوي، ابوموسیٰ اشعري ﷺ په آخر د عمر کي ډېره زیاته مجاهده او زیات ریاضت شروع کړی وو، خلګو ورته وویل چي په دومره محنت او تکلیف کي لږ نرمي وکړه، آخر په دې کي حرج څه دی؟ ورته یې فرمایل: چي آس کله د جنګ په میدان کي ځغلي نو پوره زور لګوي، زما د عمر هم آخري میدان دی او مرګ راته بالکل مخامخ ښکاري، بیا که زه په ریاضت او مجاهده کي محنت وکړم نو د حیرت څه خبره ده؟

## د روح وتولو (ختلو) سختي (یعني د مرګ سختي)

پوه سه اچي بنده ته که بالفرض د روح ختلو د سختي څخه ماسوا بل یو تکلیف په مخکي هم نه وای نو که د عقل یوه ذره یې هم درلودلای نو د دې ډیري څخه به د دنیا یوه شئ هم ده ته لذت او خوند نه وای ورکړی، ځکه چي که یو سړی ته دا معلومه سي چي ډاکو د ده پر کور د ډاکې اچولو د پاره را روان دی، او کېدای سي چي دی هم یو ګرز* دوه لګاو کړی (او ویې وهي)، نو د دې ډیري څخه خوب، خوراک، څښاک پر ده حرام وي او خوب به یې هم د ډیري څخه وتښتي، حال دا چي عین ممکنه ده ډاکو رانسي، لیکن د ملکُ الموت راتلل خو یقیني دي او روح به هم هغه ضرور کاږي، او د روح وتلو

---

* ګرز لوسپنې یوه درنه آله ده.

تکليف يقيناً چي د گرز د ګذار شخه زيات سخت دی مګر د دې سره سره دغفلت داسي راخور دی چي خلګ د دې شخه بې بيري (بلاخوفه) په نظر راځي، حال دا دی چي پر دې خبره ټول بزرگان متفق دي چي د روح ختلو تکليف د دې تکليف په نسبت زيات دی، کوم چي د جسم په ټوره په ټکرې ټکرې کولو سره وي، ځکه په زخم کي تکليف ځکه وي چي هلته ګزارلګيږي او زخم پيدا کيږي او روح ته صدمه رسيږي او د دې شخه تکليف وي، او داهم ښکاره ده چي د زخم په مقام کي ټوره روح څومره پرې کوي، په اور کي سوځېدل په دې وجه زيات تکليف رسوي چي اثريې پر ټولو اجزاؤ د جسم باندي وي، ځکه چي روح په ټولو اجزاؤ کي خور وي، او د روح وتلو سختي او تکليف بالکل سيده سيده پر روح وي کوم چي د بنده ټول اجزاء را ګير کړي وي او جاري وي پکښي د مرګ حمله کېدل پر عينِ روح باندي وي نو په حالت دسکرات کي پر بنده چي کومه خلوشي وي نو ځکه چي د بې طاقتی شخه يې ژبه نسي ښوروولای او د خبرو طاقت يې نه وي عقل يې هم بې هوښه سي، دا سختي هغه ته معلومېدای سي څوک چي يې څکي، بلبيا هغه ته کوم چي د مخکي شخه په نُور د نبوت سره معلومه کړې وي، لکه چي عيسی ﷺ خپلو حواريانو ته وفرمايل چي: که دعاء کوئ نو بس دا دعاء کوئ چي الله ﷻ د روح وتلو سختي پر ما آسانه کړې، ځکه چي دمرګ شخه زه دومره بيرېږم چي د دې بيري شخه مرم، او نبي کريم ﷺ عينِ هغه وخت دا فرمايل چي: اې الله سکرات د مرګ پر ما آسانه کړې، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي: چي د چا روح وتل آسانه وي د هغه په باره کي زما هيڅ اُميد نسته، ځکه چي ما د نبي ﷺ د روح وتلو وخت پخپلو سترګو ليدلی دي چي څومره ګران وو او نبي ﷺ به دا ويل اې الله! ته د هډوکو او رګونو شخه روح را وباسې دا سختي پرما باندي آسانه کړې، او د دې درد په صفت بيانولو کي نبي ﷺ وفرمايل: چي ګويا په سوونو ګزارونه د توري پر هر رګ د روح باندي لګول کيږي، او فرمايي: ډېره آسانه مرګ د هغه ازغو په شان دی چي په پنبه ووکي ومنبلي او په آساني ځيني را ايستل ممکنه نه وي، يو واري نبي ﷺ د مريض خوا ته تشريف يو وړی کوم چي د روح ختلو په حالت کي وو، ويې فرمايل: ما ته د ده سختي معلومه ده د ده په بدن کي داسي رګ نسته چي په هر يو کي جلا جلا درد او چريکي نه وي، حضرت علي ﷺ فرمايي: چي جنګ کوه! او شهيد سه ځکه چي د توري هزار ضربونه پر بستر باندي د پونډو سولولو او مړ کېدلو شخه غوره ګڼم، د بني اسرائيلو يوه ډله د هديرې پر خوا تېرېدله، دوی دعاء وکړه يا الله ﷻ! د دې مړو شخه يو ژوندی کړې؟ د دوی شخه يو مړی راپورته سو او ويې ويل: اې خلګو! زما شخه شه غواړئ زما پنځوس کاله سوي دي چي مړ يم مګر تر اوسه د روح ختلو

تریخوالی محسوسوم، او په آثاروکي مذکور دي چي د مؤمن بعضي درجې کله چي باقي یا ناتمامي پاته سي یا په عمل سره هغو ته ونه رسیږي، نو د دغو درجو ورکولو د پاره الله ﷻ پر ده روح ختل گران کړي، او کافر که یو نېکي کړې وي نو د هغه په بدل کي روح ختل پر ده آسانه کړي، چي حساب یې برابر سي او د ده هیڅ حق باقي پاته نه سي، او په حدیث شریف کي دي چي ناڅاپه مرګ د مؤمن راحت دی او د کافر حسرت او غم، او په حدیث کي دي چي کله د حضرت موسی ﷺ د مرګ وخت راغلی نو الله ﷻ وفرمایل: اې موسی! د ساه ختلو په حالت کي تا خپل ځان څنګه محسوس کړی؟ عرض یې وکړی اې خدایه! د هغه ژوندی مرغی په ډول کوم چي وریښتل سي، نه ساه ځیني خیږي او نه الوتلای سي، حضرت عمر فاروق ﷺ د حضرت کعب الاحبار څخه د روح ختلو د سختي په باره کي پوښتنه وکړه، نو هغوی وویل، بس داسي وګڼه چي د سختو ازغو (ځوزانو) یو تازه ټوټه د چا په نس کي ور ننباسې او په هر رګ کي یې ازغي پیوست سي او پکښې ومښلي او بیا یو طاقتور سړی دغه ټوټه په خپل زوره سره د ده څخه راکاږي.

## د روح وتولو هیبتونه

پوه سه! چي د ساه ختلو څخه ماسوا درې هیبتونه نور هم دي دکوم سره چي به بنده مخامخ کیږي؛ لول هیبت او ډېره خو به د ملکُ الموت د ډېرونکي شکل وي، په حدیث کي دي چي حضرت ابراهیم ﷺ ملک الموت ته وویل چي ما ته خپل هغه صورت وښیه په کوم کي چي ته د ګناه ګارانو روح قبض کوې، هغه وویل چي ته به یې طاقت ونه لرلې، لیکن دوی اصرار (ټینګار) کولو چي طاقت به یې ولرم، آخر هغه ور ته خپل صورت وښووی نو دوی بې هوښه سو او غوځار سو، څکه چي هغه تک تور د رسی په ډول خټ خټ خواره وښته سخت خوفناک او مهیب شکل والا سړی یې په مخ کي ولاړ وو، چي وښته یې پښو ته رسېدل توري جامې او د خولې څخه یې دودان او د اور لمبې را وتلې، کله چي دوی په هوښ کي راغلل نو ملک الموت ته (چي پخپل اصلي صورت کي راغلی وو) ویې ویل چي اې ملک الموته! د ګناهګارانو د پاره دا ستا صورت بس دی، لیکن د الله ﷻ د اطاعت ګزارو د پاره به دا هیبتناک صورت نه وي، څکه چي ملک الموت به دوی ته په ښکلي صورت کي مخامخ کیږي بلکي په دومره ښایسته او ښکلي صورت کي به وي چي د ده جمال او ښکلا به د راحت او سکون سبب وي، حضرت سلیمان ﷺ ملک الموت ته وویل چي ته عدل او مساوات ولي ملحوظ نه ساتې یعني داسي ولي ده؛ چي د چا روح د سترګو په رپ کي قبض کوې او څوک د ذبح سوي چرګ

په ډول تر ډېره پورې کړوې؟ ملک الموت وویل چې دا خبره زما په خپل اختیار کې نه ده ځکه چې ماته خو دهر چا د نوم اجازت نامه را کول کیږي، او په دغه کې چې څه ډول حکم وي د هغه مطابق د هر چا روح قبض کووم.

**قصه**: وهب ابن منبه رحمه الله وایي چې: یو باچا یوه ورځ د سپرتیا دپاره راووتلو د روانېدلو څخه مخکې یې فخرجن لباس (جامې) طلب کړې، ډېر لباسونه ورته پیش کړل سوه، یو یې هم خوښ نه سو، آخر په مشکله یې یو لباس خوښ سو، دا غوستولو څخه وروسته یې آس طلب کړی ډېر آسونه ورته په وار وار پیش کړل سول، آخر یو آس یې خوښ سو پر هغه سپور سو او په شان وشوکت سره دباندې راووتی د تکبر څخه یې څټ کوږ کړی وو او چا ته یې کتل هم نه، ملک الموت په خیرنو جامو کې دیو فقیر په شکل کې مخ ته راغلې او سلام یې وکړی، ده د تکبر څخه ورته جواب هم ورنه کړی، ملک الموت یې د آس واګي (قیضه) ونیولې، نو ده ورته په سخته لهجه سره وویل واګي ایله کړه ته وینې نه چې زه څوک یم او دا ته څه حرکت کوې؟ فرښتې ورته وویل زما ستا سره یو څه کار دی، باچا وویل ودرېږه او زما د واپسي انتظار کوه، ملک الموت وویل چې ما ته حکم سوی دی چې اوس فوراً خپل کار وکړم، باچا وویل ښه دی چې د آس څخه شوه سم، فرښتې وویل نه! لږ ګړی لا هم نه زه اوس خپل کار کووم، باچا وویل وایه! څه وایې؟ فرښتې خپل سر د ده غوږو ته را نژدې کړی وېې ویل چې زه ملک الموت یم اوس در څخه روح اخلم، دباچا رنګ ژړ سو ژبه یې تته سوه، په اشاره یې وویل دومره مهلت خو را کړه چې کور ته ولاړ سم د ښځې بچیانو څخه خو رخصت واخلم، وېې ویل هیڅ کله نه! اوس په دې ګړۍ ستا روح اخلم دا یې وویل: روح یې ځینې قبض کړی او باچا د آس څخه لاندې رایله سولو ملک الموت ولاړی، د دې څخه وروسته د یو مؤمن خوا ته ولاړی، او ورته وېې ویل چې زما ستا سره د راز څه خبره ده هغه وویل: وفرمایاست څه ارشاد دی؟ فرښتې وویل زه ملک الموت یم فقیر وویل مرحبا مرحبا! زه خو د ډېر وخته څخه ستا په انتظار کې ووم، زه خو ستا څخه زیات دبل هیچا په راتلو خوشحاله نه یم، بس فوراً زما روح واخله چې زه خپل مراد ته ورسېږم فرښتې وویل که یو ضروري کار دې وي نو هغه وکړه، فقیر وویل :زما د دې څخه زیات ضروري بل کار نسته چې د خپل پروردګار په دیدار سره دې بې قراره روح ته تسکین ورکړم، فرښتې وویل ځنګه چې ستا خو ښه وي لیکن کله چې ووایې هله به ستا روح قبضه کړم، وېې ویل ښه دي، چې اودس وکړم و د لمانځه سره سره د شکر سجده ادا کړم بیا مې روح واخله نو دغه رنګه وسوه.

دریم هیبت به د هغو دوو فرشتو په لیدلو سره وي کومې چې پر هر یوه مؤکلې سوې دي، په حدیث کې دي چې د مرگ په وخت به دا دواړه فرښتې هم بنده ته مخامخ ښکاري که دی نیک وي نو وایي به: جزاک الله خیراً ستا نیکې کولو موږ ته ډېر آرام راکړ، او که گناهگار وي نو وایي به: لَا جَزَاکَ اللّٰهُ خَیْرًا ته ډېر گناه گار وې ډېر گناهونه دې زموږ په مخکې وکړل موږ ته تا ډېر تکلیف را کړی، او دا به هغه وخت وي چې د دې بې چاره سترگې به وازې (خلاصې) پاته سي بیابه نه بندیږي.

دریم هیبت به د مرگ په وخت کې دا وي چې جنت یا دوزخ به ورته هم وښوول سي او کوم سړی چې نیک وي، ملک الموت به ورته وایي چې اې د خدای دوسته! تا ته دې مبارک وي چې جنت ستا ځای دی او کوم چې بدعمله گناهکاره وي هغه ته به وایي اې دخدای دښمنه! تا ته د دوزخ خوشخبري ده، نو د دې تولو هېتیونو او بېرو څخه به د روح وتولو تکیلف نور زیات سي، نَعُوْذُ بِاللّٰهِ منها، دا هیبتونه خو هغه دي کوم چې بنده ته په دې دنیاکي مخ ته راځي، او مرگ د خپلو تولو هیبتونو او بېرو سره سره د هغو هیبتونو په مخکې گویا هیڅ نه دی کوم چې به په قبر کې د دې څخه وروسته وي.

## د بنده سره د قبر خبري

د نبي کریم ﷺ ارشاد دی چې کله مړی په قبر کې کښېښول سي نو قبر فوراً د ده څخه پوښتنه کوي چې اې د آدم زویه! تا په کومه وجه زه هېر کړی ووم؟ آیا تا ته خبر نه وو چې زه د دردونو او غمونو ځای یم، زه د تیارې کور یم چې په مخه تیاره او تیاره ده، د تنهایي کور یم بیا اې سړیه! تا په کومه خبره تکبر کولو؟ تر دې چې پر ما به ستا یوه پښه د تکبر څخه هاخوا بله د بخوا پرېوته؟ د قبر دا خبري چې واوري که دغه مړی نیک وي نو یو غیبي آواز به دا خبره وکړي او د قبر تسلّی به وکړي چې: اې قبره! دا ته چا ته وایې دا خو یو صالح او نیک سړی دی کوم چې همېشه په امر بالمعروف او نهی عن المنکر بلدي عمل کولو، وروسته: قبر به ووایي چې بنه دا خبره ده نو واخله دا زه د ده د پاره گل وگلزار جوړیږم، او بیا به د دغه مړی بدن نُور جوړ سي او روح به یې د اسمان وطرف ته والوزي، او فرمایي: مړی چې په قبر کې کښېښول سي نو ور سره به د عذاب سلسله شروع سي، نو همسایه مړی به ورته وایي چې اې وروسته راتلونکیه! ته هم دغه دې راغلې، ته موږ وروسته پرې ایښی وې او موږ مخکې راغلي وو زموږ توقع وه چې ته به زموږ د حال څخه عبرت واخلې بیا تا د اسې ولې ونه کړه؟ موږ چې دلته راغلو نو ور سره د عملونو سلسله هم ختمه سوه لیکن تا ته خو مهلت ملا ؤ سوی

ووکومي نېکی چي موږ ونه کړل سوي تا ولي پرې اېښولې؟ غرض د مځکي د کونج کونج څخه به آوازونه راځي چي اې د دنیا په ظاهر مینه تا ته د هغو څخه عبرت ولي حاصل نه سو کوم چي ستا څخه مخکي دلته راغلی وو.

عبد الله بن عبید رحمه الله وایي چي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: مړی چي کله په قبر کي کښېښول سي نو د هغو خلکو د پښو کښهار به اوري کوم چي د ده د جنازې سره راغلي وي لېکن په دوی کي د ده سره هیڅ څوک د خبرو طاقت نه لري ماسوا د قبر څخه کوم چي ده ته په چغه چغه وایي، آیا ته بار بار زما د هیبتونو او تنګی څخه نه وي خبر کړی سوی؟ اوس وایه! چي تا زما د پاره څه تیاري کړې ده؟

## د مُنکر نکیر سوال

نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: چي بنده کله مړ سي نو دوې فرشتې ده ته راسي مخونه به یې تور او ستر ګي به یې شنې وي، د یوې نوم منکر دی او د بلې نوم نکیر دی دا به د راتلو سره د مړي څخه پوښتنه کوي چي: وایه! تا به د پیغمبر په باره کي څه ویل او اوس څه وایې ؟ دی که مؤمن وي نو وایي به چي: نبي کریم ﷺ د الله ﷻ بنده او د هغه رسول وو او زه ګواهي ورکووم چي الله ﷻ یو دی او مُحَمّد ﷺ د الله ﷻ رسول دی، نو د ده د دې وینا سره به د ده قبر څلور سره وو طرفو ته اویا " اویا " ګزه فراخه کړل سي او د نُور څخه به ډک سي او منکر نکیر به ده ته دا وایي خوشحاله به رخصت سې، بس اوس ته آرام کوه! د نوي ناوې په ډول بیده سه اوس به تا هیڅ څوک راپورته نه کړي ماسوا د هغه څخه چي ستا دوست وي، او که دغه مړی منافق وي نو د منکر نکیر د مذکوره سوال په جواب کي به وایي، ما ته هیڅ معلوم نه دي، ما خو به په دنیا کي چي د خلکو څخه چي څه اورېدل هغه به مي ویل د ده پر دې وینا به ځمکه پر ده را ټوله کړی سي او حکم به ورته وسي چي داسي را ټوله سه چي دی نڅوړ کړه نو ځمکه به سره ملاوسي او د ده هډوکي او پښتی به په یو بل کي ننوځي، او تر قیامته پوري به په دې عذاب کي مبتلا وي، نبي کریم ﷺ یو وار د حضرت عمر رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه، اې عمره! څه دي خیال دی؟ چي که د مرګ څخه وروسته وویني چي په څلور ګزه ځمکه کي ستا قبر وکښل سي، بیا ته وویني چي تا ته غسل درکوي، کفن در اغوندی، په دې قبر کي دي اېږدي خاوري دربانديي اړوي او پټوي دي، او آخر د دفن کولو څخه وروسته خلک راځي، بیا منکر نکیر راسي چي آواز به یې د "رعد" په ډول او ستر ګي به یې د"برق" په ډول وي او وېښته به یې پر مځکه پراته وي او په خپلو اوږدو اوږدو غاښونو به د قبر خاوري لیري کړي او تا ونیسي؟ عرض یې وکړی، یا رسول الله! زما عقل

به پر ځای وي؟ ورپې فرمایل: کېدای سي، عرض یې وکړی نو بیا به زه د دوی څخه نه بېرېږم، زه د دوی د پلوه کافي یم.

او په حدیث شریف کې دي چې پر کافر باندې به په قبر کې دوه حیوانان مقرر کړل سي نه به د دوی سترګې وي او نه غوږونه دهر یو سره به د اوسپنې یو دروند ګرز (د اوسپنې یوه درنه آله ده) وي چې سر به یې د بوکی" هومره غټ وي او دواړه به په دغو خوفناکو ګرزونو باندې دی تر قیامته پورې وهي، او بغیر له سترګو او غوږونو به وي نو نه به دی وریني چې رحم پر وکړي او نه به یې فریاد اوري چې رحم یې پر راسي. د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روایت دی چې نبي ﷺ فرمایلي دي چې مځکه به قبر داسي راټولوي او زور به ورکوي چې بنده یې په مینځ کې نښور سي، د دې عذاب څخه که څوک خوندي کېدی سي نو هغه سعد بن معاذ ﷺ دی. نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې د کافر په قبر کې نهه نوي[1] ښامار ان پیدا کېږي او هغه به دومره غټ وي چې د هر یوه به نهه نهه سرونه وي چې دی به مسلسل چیچي او په زهرو سره به دی لوخړه (غړوسکه) کوي او سوځي به یې او دا سلسله به تر قیامته جاري وي، او فرمایي: قبر د آخرت اولنی منزل دی، که دا په آسانۍ او عافیت سره تېر سي نو د دې څخه وروسته چې څه را پېښېږي هغه به آسانه وي، او که دلته سخته سوه نو د دې څخه وروسته مصیبتونه به نور زیات مشکل او سخت وي.

او په وروسته راتلونکو هیبتونو کې به اولنی هیبت د شپېلۍ وهولو وي او بیا د قیامت شور او د دې بې پناه اوږدوالی، بیا د دې سخت ترینه ګرمي او په خولو کې ډوبېدل، بیا د عملنامو مخ ته راتلل، بیا د ګناه پوښتنه، په دواړو لاسو کې د عملنامې دفتر او د دې په وجه ذلت او رُسوايي، لوخواري هیبت او بېره یو طرف ته او بل طرف ته د عدل په تله کې دنیکۍ او بدۍ د پلو کښته کېدل او پورته کېدل او د دې هیبت او د دې سره سره پر چا د ظلم زیاتوب کولو د مصیبت څخه ځان خلاصول، چې څومره مظلومانو دعوی کوونکو به د ده لمن نیولې وي، کوم چې به دا پر خپل ځای یو زبردست هیبت او بېره وي، او د دې هر څه څخه وروسته به د پُل صراط پر پُل پورې وتل وي، کوم چې به انتهائي د لړزان او د هیبت وي او بیاکه دوږخ ته ولېږل سي نو په یو نظر کتلو به یې هوښ والوزي بیا د دوږخ د فرشتو هغه بېرونکي شکلونه هغه طوقونه او ځنځیرونه او د هغه بېروونکي شرنګار د زقوم، د ملرانو لړمانو شورماشور او د دې څخه ماسوا په زرګونو قسمه بدني او روحاني

(۱) اوښاتو ته د اوږو ور کولو بوکی ښینې مرادده.

عذابونه،غرض پر قدم قدم به بیري اوهیبتونه ښکاره کیږي، په دې کي د جسماني عذابونو تفصیل موږ په احیاء العلوم کي بیان کړی دی چي پوره تشریح یې هلته سوې ده نو د دې دپاره هغه کتاب وګورئ، دغه ډول کوم سزی چي د روحاني عذاب په برخه کي د تفصیلاتو معلومولو خواهشمند وي هغه دي هم په دغه کتاب تر متعلقه عنوان لاندي وګوري، دلته یې دو باره بیانول دطوالت سبب به وي، نو بس پر دې اکتفاء کوو چي کتاب اوږد نسي،او دا کتاب د خوب پر قصو بلندي ختموو، کومي چي بزرګانو د مړو په باره کي بیان کړي دي، ځکه چي د دنیا خلګو ته د مړو د حالاتو خبرتیا سوا د باطن د کشف څخه نه سي حاصلېدای او یا بیا د خوب په حالت کي د دوی حالات لیدل کیږي، او د مکاشفې په صورت کي په حالت دبیداري هم بزرګانو ته دمړوحالات معلومېدای سي، لېکن انساني حواس دغو ته لار نه سي پیدا کولای، چي هوبن حواس او عقل پر دې کار نه کوي ځکه چي مړي داسي مقام ته تللی دی چي دا ټول حواس هلته ورسیږي نومعزوله کیږي.
چي غوږونه معزوله سي نواوریدل ناممکن سي، سترګي معزولي سي نو د رنګ پېژندل باطل سي غرض د هریو حس دمعزولی په وجه یوه رابطه د دوی سره نسي قائمېدای، نویو خاصیت په بنده کي داسي پټ وي د کوم په وجه او وسیله چي د هغه عالَم وسېلونکي لیدای سي، لېکن دا خاصیت په دنیوي مشغولو او مصروفیتونو کي داسي پټ سي چي کار نه کوي، او څنګه چي په خوب کي بنده د دې مشغلو او شور نمرو څخه لیري وي یو قسم نجات څیني حاصل کړي او خپل حالت یې هم زیات او کم د مړو په ډول سي په دې وجه د دوی د حالاتو کشف ورته په خوب کي کیږي او څه چي په بیداری کي د ده د سترګو څخه بالکل پناه وي ظاهرېدل پرشروع سي، او د دې خاصیت په وجه سره مړو ته هم زموږ دحالاتو څخه خبرداري ملاوېږي، تر دې پوري چي زموږ نیکي د دوی د پاره د خوشحالي باعث وي، او ګناهونه اوبدي د دوی د خفګان باعث وي، او د دې ذکر په حدیث شریف کي سته، اوحقیقت دا دی چي زموږ او د دوی په مینځ کي د خبر او اطلاع دا سلسله د لوحِ محفوظ د واسطې څخه بغیر نه ده، ځکه چي زموږ حالت وي اوکه د دوی ټول په لوح محفوظ کي لیکلی سوی دي، اوکله چي د دغو سره یو مناسبت راسي نو په خوب کي د دوی حالات موږ ته معلومېږي او کله چي ور سره د دوی یونسبت پیدا سي نو زموږ د حالاتو څخه دوی خبرېږي ځکه چي لوح محفوظ د یوې هینداري په ډول دی چي د هر شئ صورت او عکس پکښې موجود او محفوظ دی او د بنده روح هم د هینداري په ډول دی او د مړو روحونه هم داسي وي نو لکه څنګه چي د یوې هینداري د شیانو عکس په بله هینداره کي ښکاره کیږي دغه ډول د لوحِ محفوظ په هینداره کي د شیانو عکس زموږ په

روحونو کي ظاهرېږي، لېکن دا نه دي کښل پکار چي لوح محفوظ هم یو جوړ سوی جسم دی چي د لرګي یا بانس یا بل شئ څخه پیدا کړل سوی دي چي دا ظاهري سترګي یې ولیدلای سي او په دې کي چي څه لیکلي سوي دي هغه په سترګو سره ولوستل سي، بلکي که ته غواړې چي د دې مثال معلوم کړې نو دا دخپل ځان څخه معلوم کړه چي په تا کي د پیدائښت هر څرک او هره تجلي پته کړل سوې ده چي ته د معرفت په لاره هغه ته رسېدل حاصله کړې لېکن ته چي د خپل ځان څخه غافله یې نو نور به څنګه وپېژنې؟ د دې یو نښه خو ستا دماغ دی چي ټول قرآن داسي یاد کړې چي ګویا لفظ په لفظ په دې کي لیکل سوی دي او یو یو حرف او یوه یوه کرښه په دې کي صافه ښکارېږي، لېکن دا دماغ که ته ذرّه ذرّه کړې او وګورې پکښې نو نه به پکښې دا قرآن په دې ظاهري سترګو ولیدل سي او نه به پکښې د قرآن یو حرف چیري لیکلی ولیدل سي، نو په لوح محفوظ کي چي کومي خبري نقش وي دغه د دې څخه ګڼل پکار دي چي بې انتها اولا محدوده نقشونه په دې کي ثبت دي، او سترګي متنهي او محدود دي، او د محدود د پاره د لامحدود نقشونو معلومول ممکنه نه دي، چي د دغه یو معیّن شکل او صورت په تصور کي راولي، نو د هغه مخ د هغه لوح د هغه قلم د هغه لاس غرض د هغو څخه یو شئ هم ستا سره نه سي پاته کېدای لکه چي مړ سوې پخپله ستا سره نسي پاته کېدایی بلکي کېږي داسي لکه چي ویل سوي دي:

*از خانه بکد خدائی ماند همه چیز*

(دکور ټوله شیان د کور مالک ته پاته سو)

او مقصود د دې وضاحت څخه دا دی چي ته دا خبره محاله ونه ګڼې چي دوی زموږ د حال څخه خبرېږي او موږ د دوی د حال څخه. لکه چي ته په خوب کي دوی وینې، او په خوب کي مړه په ښه یا بدحالت کي لیدل د دې خبري عظیم الشان ثبوت دی چي هغه ژوندي دي، هغه که د انعام په حالت کي دي او که د عذاب په حالت کي، او نیست نابوده سوی نه دي لکه چي د الله ﷻ ارشاد دی: وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ (۱۶۹) فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ [آل عمران: ۱۷۰] (کوم خلک چي د الله ﷻ په لاره کي قتل سوي دي پر دوی د مړو خیال مه کوئ بلکي دغه ژوندي دي او د خپل پروردګار مقرب دي دوی ته رزق هم ملاوېږي او خوشحاله دي په هغه شئ سره کوم چي دوی ته الله ﷻ په خپل فضل سره ورکړی دی).

## د خوب په ذریعه دمړو څخه معلوم سوي حالات

د نبي کریم ﷺ ارشاد دی چي څوک ما په خوب کي ویني نو واقعي یې زه ولیدم ځکه چي شیطان زما په صورت د چا مخ ته نسي راتلای، حضرت عمر ؓ فرمایي: چي ما په خوب کي نبي ﷺ ولیدی، او د ځان په باره کي مي لېږلراضه ولیدی، ما عرض وکړی چي زما څخه څه قصور سوی دی؟ ویې فرمایل: آیا ستا څخه دا نه سي کېدلای چي په روژه کي خپله بي بي مچ نه کړې، نو د دې څخه وروسته بیا حضرت عمر ؓ چیري داسي ونه کړل، حالانکي دا حرام نه دي لېکن غوره دا ده چي داسي ونه کړای سي، په دې وجه د صلیقانو دا معمولي غوندي خطا او سهو هم نه معاف کېږي که څه هم د نورو څخه معاف کول کېږي.

حضرت عباس ؓ فرمایي: چي ما حضرت عمر ؓ په زړه سره دوست او ملګری درلودی (یعني په زړه سره پر ما ګران وو) نو زما آرزو وه چي د وفات څخه وروسته دوی په خوب کي ووینم د یو کال څخه وروسته په خوب کي په نظر راغلی نو سترګي یې مُږلې او فرمایل یې چي اوس راته فراغت نصیب سو، او هغه هم داسي چي الله ﷻ کریم وو کنې چي څه به کېدلای؟ او د حضرت عباس ؓ څخه روایت دی چي ما ابو لهب په خوب کي ولیدی په اُور کي سوځیدی، ما ځیني د حال پوښتنه وکړه، نو ویې ویل په همیشه عذاب کي ګرفتاره یم، لېکن د ګُل (دوشنبې) په شپه چي د نبي کریم ﷺ د پیدایښت شپه ده ما ته د عذاب څخه خلاصون ملاوېږي چي په د غه شپه ما هم د دوی پر ولادت مبارک یو غلام آزاد کړی وو. حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله وایي چي مایوه شپه نبي کریم ﷺ په خوب کي ولیدی چي د حضرت صدیق ؓ او حضرت عمر ؓ سره ناست وو، زه هم هلته کښېنستم ناڅاپه حضرت علي ؓ او حضرت معاویه ؓ هلته راوستل سول او په یو کور کي دننه سول او دروازه یې بنده سوه، حضرت علي ؓ فوراً د باندي راووتی ویې ویل: په رب د کعبې قسم دی! زما حق مقرر کړل سو، او فوراً پسې امیر معاویه ؓ هم دباندي راغلی ویې ویل په ر ب د کعبې قسم دی زه هم معاف کړی سوم.

د امام حُسین ؓ دشهادت څخه څو ورځي مخکي ابن عباس ؓ یوه شپه د خوب څخه راویښ سو ویې ویل: إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ خلګو ورته وویل حضرت څه وسو؟ ویې فرمایل: ما نبي ﷺ اوس اوس په خوب کي ولیدی چي د ویني څخه ډکه یوه شیشه یې په لاس کي نیولې ده فرمایي: وګوره زما اُمّت زما سره څه سلوک وکړی؟ زما عزیز بچی حسین ؓ یې مړ کړی، دا د هغه او د هغه د

ملګرو وینه ده، په تو که د فریاد یې د الله ﷻ دربار ته وړم؛ څلوېښت ورځې وروسته خبر راغلی چې امام حسین رضی الله عنه قتل کړی سو. یو سړي حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په خوب کي ولیدی او ورېو ویل: چې تاسو په ژبه همېشه اشاره څوندی کوله او فرمایل به مو چې زما په مخکي خو بس دا یو کار دیَ ورېو فرمایل: ها! (اوس هم داسي ده څکه چي) ما دغه یول د ژبي په اشارې سره: لا اِلٰه اِلاّ الله وویل او جنت زما په مخکي کېښېنول سو. یوسف بن الحسین چا په خوب کي ولیدی نو پوښتنه یې څیني وکړه چي الله ﷻ ستا سره څه معامله وکړه؟ ورېو فرمایل: پر ما رحمت وسو. او چي پوښتنه څیني وسوه چي په څه وجه او د کوم عمل په برکت؟ نو جواب یې ورکړی چي ما صحیح او سمي خبري چیري د خرافاتو، لغویاتو او پالتو خبرو سره نه دي یو ځای کړي.

حضرت ابن عُیینه رضی الله عنه فرمایي: چي ما په خوب کي خپل ورور ولیدی نو پوښتنه مي څیني وکړه چي الله تعالی ستا سره څه وکړل؟ هغه وویل چي د کوموکومو ګناهو څخه چي ما توبه او استغفار کړی وو هغه معافي سوې او د کومو څخه چي مي نه وو کړی د هغو بخښنه ونه سوه. یو چا بي بي زبیده په خوب کي ولیدله او پوښتنه یې څیني وکړه چي هلته پر تا څه تېر سول. جواب یې ورکړی چي الله ﷻ پر ما رحم وکړی. پوښتنه یې څیني وکړه آیا هغه مال د رحمت سبب جوړ سو کوم چي تا د مکې مکرمې د سفر په دوران کي خرڅ کړی وو؟ ورېو ویل نه!. د مال اجر خو مال والاته ملاو سو زما بخښنه زما د نیت په وجه وسوله. د حضرت سفیان ثوري رحمه الله څخه چا په خوب کي پوښتنه وکړه چي الله ﷻ ستا سره څه معامله وکړه؟ ورېو فرمایل: زما یو قدم پر پُلِ صراط وو نو دویم په جنت کي. کتاني رحمه الله فرمایي: چي ما حضرت جُنید بغدادي رحمه الله په خوب کي ولیدی او پوښتنه مي څیني وکړه چي الله ﷻ ستا سره څه وکړل. ورېو فرمایل: رحمت یې وکړی لېکن هغه عبادتونه او اشارې هیڅ پکار رانه غلې، پکار که راغلل نو هغه دوه رکعته لمونځ چي د شپې به مي ادا کولو. د بي بي زبیدې رحمها الله څخه چا په خوب کي پوښتنه وکړه، نو ورېو فرمایل: دا څلور کلمې زما د بخښني باعث سوې: (۱) لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اَفْنٰی بِهَا عُمْرِیْ (۲) لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اُدْخِلُ بِهَا قَبْرِیْ (۳) لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اَخْلُوْا بِهَا وَحْدِیْ (۴) لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اَلْقٰی بِهَا رَبِّیْ.

د بشر رضی الله عنه څخه یو چا په خوب کي پوښتنه وکړه چي څه حال دي دی نو ورېو فرمایل: پر ما رحم وسو او ارشاد وسو چي ته دومره په سختۍ زما څخه بیرېدې نو آیا تا ته زما څخه شرم نه درتلی؟ (ولي زه دي ظالم ګڼلم؟). د حضرت ابو سلیمان دراني رحمه الله څخه په خوب کي چي کله چا دا

پوښتنه وکړه، نو جواب یې دا و چې: الله ﷻ پر ما رحمت وکړی او دیو شي څخه ماته نقصان ونه رسیدی بلکي د دې خلکو د ګوتو نیولو څخه ماته فائده ورسیدله. (یعني خلکو چي کوم تهمتونه پر ما لګول په هغه سره ما ته په قبر کي فائده ورسیدل) ابوسعید خزاز رحمه الله فرمایي: چي ما په خوب کي ابلیس ولیدی نو د ده د وهلو د پاره مي ډنډه (لکړه) راپورته کړه خو د هغه هیڅ بېره نه کېدله، په دې کي آواز راغلی چي دی د ډنډو او وهلو څخه تښتېدونکی نه دی، دی خو د هغه نور څخه تښتي کوم چي د مؤمن بنده په زړه کي وي. حضرت سبوحي رحمه الله په خوب کي ابلیس ولیدی نو ور ته وې فرمایل: ته د بني آدمو (انسانانو) څخه نه شرمیږې!. ابلیس وویل: مګر دا بني آدم (انسانان) کله دي؟ که بني آدم وای نو ما به په دوی سره داسي بازي نه کولای لکه کوچني چي یې په فټبال (ګېن) سره کوي، لېکن هغه (صوفیان) ضرور بني آدم (انسانان) دي د کومو دلاسو څخه چي زه مریض او ناتوانه کېږم. ابو سعید خزاز رحمه الله وایي په کومو ورځو کي چي زه په دمشق کي ووم، یوه شپه ما نبي کریم ﷺ په خوب کي ولیدی چي د حضرت ابو بکر صدّیق رضي الله عنه او عمر فاروق رضي الله عنه پر وږو یې لاسونه اچولي وو، تشریف یې راوړی، ما دغه وخت یو شعر وایی زنګېدم او ګوتي مي پر سینه راایله کړې، د نبي ﷺ نظر پر ما پرېوتی نو وې فرمایل: ستا په دې کار کي فائده کمه او نقصان زیات دی. حضرت شبلي رحمه الله د وفات په دریمه ورځ چا په خوب کي ولیدی نو پوښتنه یې ځیني وکړه چي الله ﷻ ستا سره څنګه معامله وکړه؟ دوی وویل چي: حساب په دومره سختي سره شروع سو چي زه ناامیده سوم لېکن زما مایوسي ته چي یې وکتل نو الله ﷻ رحمت وفرمایی. د حضرت سفیان ثوري رضي الله عنه څخه په خوب کي یو چا داغه پوښتنه وکړه نو وې فرمایل: چي پر ما دالله تعالی رحمت وسو، بیا د عبدالله بن مبارک رضي الله عنه په باره کي پوښتنه ځیني وسوه نو دوی وویل چي هغوی ته روزانه دوه واره دالله ﷻ دیدار نصیب کېږي. د مالک بن انس رضي الله عنه څخه چا په خوب کي پوښتنه وکړه نو وې فرمایل: چي د یوې کلمې په برکت پر ما الله ﷻ رحمت وکړی، دا کلمه ما د حضرت عثمان رضي الله عنه څخه اورېدلې وه، یعني چي هغه به جنازه ولیدله نو ویل به یې: سُبْحَانَ اللهِ الْحَيِّ الَّذِيْ لَا يَمُوْتُ. حضرت حسن بصري رحمه الله چي په کومه شپه وفات سو په دغه شپه یو سړي په خوب کي ولیدل چي د جنت دروازې خلاصې سوي دي او یو آواز ځیني راووتی په فضا کي خور سو چي حسن بصري رحمه الله ته د خپل خدای دیدار حاصل سو، او دا وخت هغه ډېر خوشحاله دی. حضرت جنید بغدادي رحمه الله په خوب کي ابلیس ولیدی نو وې فرمایل: ته څومره بې حیاء یې چي د انسانانو

شخصه شرمیږي هم نه؟ ابلیس وویل: دا کله انسانان دي، انسانان خو هغه دي کوم چي په "مسجدِ شونیز" (دیو مسجد نوم دی) کي دي، دکومو په وجه چي زما بد حال دی، دوی رحمه الله بله ورځ سهار وختي "مسجدِ شونیز" ته ولاړی، هلته یې هر سړی پر ځنګونانو سر ایښی غمجن او متفکره ولیدی، هغوی دده دلیدلو سره په جمع وویل: اي جنید رحمه الله ! د دغه لعنتي په خبره باندي دوکه نه سې. عُتبه ابن الغلام دجنت حوره په خوب کي ولیدله چي هغې ده ته ویل اي عتبه ! ګوره داسي کار هیڅکله مه کوه کوم چي تا زما څخه محرومه کړي، ددې څخه وروسته عتبه وویل چي ما دنیا ته درې طلاق ورکړي دي، اوس به هیڅ کله دې ته نژدې نه ورځم چي هغه حوره حاصله کړم. خلګو د یو مفسد او بد سړي جنازه وړله، حضرت ابو ایوب سجستاني رحمه الله چي ولیدله چي د مفسد جنازه ده نو د کور دویم منزل ته یې تشریف یووړی چي چیري په دې جنازه کي شریک نه سم، وروسته دغه مړی چا په خوب کي ولیدی او د حال پوښتنه یې ځیني وکړه نو هغه جواب ورکړی چي الله ﷻ پر ما رحم وکړی او دا یې وویل چي ابو ایوب ته ووایه ! چي: قُل لَّوْ أَنتُمْ تَمْلِكُونَ خَزَائِنَ رَحْمَةِ رَبِّي إِذًا لَّأَمْسَكْتُمْ خَشْيَةَ الْإِنفَاقِ [بني اسرائیل: ۱۰۰] (که تاسو مالکان وای زما د رب د خزانو د رحمت نو د بخل د وجهي څخه به تاسو څه نه وای خرڅ کړي).

حضرت داؤد طائي رحمه الله چي په کومه شپه وفات سو په دغه شپه یو سړي په خوب کي ولیدل چي پر اسمان باندي فرشتې په ډېر شان او دبدبې سره کله پر هاخوا کله پر دېخوا ځي راځي، ده د فرشتو څخه پوښتنه وکړه چي آیا نن یو څه خاص خبره ده ؟ فرشتو جواب ورکړی چي نن د داؤد طائي د پاره جنت ښایسته کیږي. ابوسعید شحام رحمه الله سهل سعلوکي رحمه الله په خوب کي ولیدی، نو عرض یې ورته وکړی اي خواجه ا دوی وویل: کوم خواجه او څنګه خواجه؟ دا لفظ هېر کړه چي ددې اطلاق اوس پر ما نه کیږي هغه خبره اوس نه ده پاته، ابو سعید وایي چي ما عرض وکړی، مګر ستاسو هغه ټول ښکاره ښت کارونه او عظیم عملونه او کردارونه څه سول؟ آیا د هغو څه بدله ملاؤ نه سوه؟ ویې فرمایل: هغه ټول بیکاره ولاړل، لیکن کوم شئ چي زه وساتلم هغه د هغو مسئلو جوابونه وو کومو چي به سپین سرو ښځو زما څخه پوښتنه کول او ما به ورته ښوول.

ربیع بن سلیمان وایي: چي ما امام شافعي رحمه الله په خوب کي ولیدی او پوښتنه مي ځیني وکړه چي ستا سره څه معامله وسوه؟ ویې ویل: چي ماته کرسی (چوکی) را کړل سوه او ملغلري پر ما خوري کړل سوې.

امام شافعي رحمه الله فرمايي: چي ما ته يو وار يو داسي ستونزه پيدا سوه چي زه حيران او پريشانه ووم؛ يوسرى په خوب کي راته راغلى، او ويې ويل: چي اې ادريسه! حيران ولي يې، دا دعاء ووايه!: اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ لَا اَمْلِکُ لِنَفْسِيْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا وَلَا مَوْتًا وَّلَا حَيٰوةً وَّلَا نُشُوْرًا وَلَا اَسْتَطِيْعُ اَنْ اٰخُذَ اِلاَّ مَا اَعْطَيْتَنِيْ وَلَا اَنْ اَتَّقِيَ اِلاَّ مَا وَقَيْتَنِيْ. اَللّٰهُمَّ وَفِّقْنِيْ لِمَا تُحِبُّ وَتَرْضٰى مِنَ الْقَوْلِ وَالْعَمَلِ فِيْ عَافِيَةٍ.
سهار چي را وپښ سوم ما دا دعاء وويل نو د ښانيت وخت لا نه وو سوى چي زما ستونزه ليري سوه. او هغه کار پر ما آسانه سو نو هر چا ته پکار دي چي دا دعاء ياده کړي او هيڅکله يې هېره نه کړي.

يوسړي عتبه ابن الغلام رحمه الله په خوب کي وليدى او دا پوښتنه يې ځيني وکړه چي ستا سره الله جل جلاله څه معامله وکړه؟ ده ځواب ورکړى چي هغه دعاء زما د بخښني سبب جوړه سوه کومه چي ستا د کور پر دېوال ليکلې ده، سهار چي هغه سړى راوپښ سو، او دېوال ته يې وکتل نو د عتبه ابن الغلام رحمه الله په خط يې دا عبارت ليکلى وليدى: يَاهَادِيَ الْمُضِلِّيْنَ وَيَا رَاحِمَ الْمُذْنِبِيْنَ وَيَا مُقِيْلَ عَثَرَاتِ الْعَاثِرِيْنَ اِرْحَمْ عَبْدَکَ ذَا الْخَطَرِ الْعَظِيْمِ. وَالْمُسْلِمِيْنَ کُلَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ. وَاجْعَلْنَا مَعَ الْاَحْيَاءِ الْمَرْزُوْقِيْنَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّيْنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِيْنَ. اٰمِيْنَ رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ.

د مرګ اروند دا خبري زموږ په خيال پوره او کافي دي کومي چي وليکل سوي، او پر دې موږ خپل کتاب "کيمياء سعادت" ختموو او هيله لرو چي خلک به فائده ځيني واخلي او د مصنّف په حق کي به د خير دعاء کوي چي که په تصنيف کي زما څخه يو خطا او غلطي سوې وي نو چي د دې دعاګانو په صدقه کي الله جل جلاله پر ما فضل او کرم وکړي، وَنَقُوْلُ فِيْ خَاتِمَةِ الْکِتَابِ: اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَعُوْذُبِکَ بِعَفْوِکَ مِنْ عِقَابِکَ وَنَعُوْذُ بِرِضَائِکَ مِنْ سَخَطِکَ وَنَعُوْذُ بِکَ مِنْکَ لَا نُحْصِيْ ثَنَاءً عَلَيْکَ اَنْتَ کَمَا اَثْنَيْتَ عَلٰى نَفْسِکَ. وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ. وَالصَّلٰوةُ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهِ الطَّيِّبِيْنَ الطَّاهِرِيْنَ.

په پاى کي زه ګناه ګار حبيب الرحمن د خپلو کړانو لوستونکو څخه دا هيله کووم چي موږ د الفاظو د اصلاح او د عبارت د سمون پوره پوره کوښښ کړى دي، بيا هم هېره او ضُعف د انسان په خمير او فطرت کي اېښوول سوي دي، نو که يو غلطي يا سهو ووينې هغه دي زموږ پر کمزوري محموله کړي، او د کتاب خپرندويه اداري ته دي اطلاع ورکړي چي د دويم ځل د پاره يې اصلاح وسي.

نور نو په دې هيله چي کرېدلى اولس مو تل تر تله سوکاله او برېمن وي .

